تاج

# تاج البخاری

## پښتو شرح صحیح البخاری

جلد ۳

شارح: مولانا ظهورالباری اعظمی فاضل دارالعلوم دیوبند

پښتو ترجمه: مولانا محمد امین درانی

نظرثانی: حافظ قاری فضل کریم

اهتمام: دکتور محمد دین البشاوری

تاج کتب خانه (رجسٹرڈ) قصه خوانی پشاور پاکستان

تاج

# تاج البخاری

## توشرح صحیح البخاری

## جلد ۳ پاره ۱۱ تا ۱۵

شارح: مولانا ظہور الباری اعظمی فاضل دارالعلوم دیوبند

پښتو ترجمه: مولانا محمد امین درانی

نظرثانی: حافظ قاری فضل کریم

اهتمام: دکتور محمد دین البشاوری

تاج کتب خانہ رجسٹرڈ

قصہ خوانی پشاور
فون: 214454

c-19

# تاج البخاري پاره ۱۱ دمضامينو فهرست

# یوؤلسمه پاره

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ ط

## باب ۱: الشُّرُوْطِ مَعَ النَّاسِ بِالْقَوْلِ.

۱: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِیْمُ بْنُ مُوْسٰی اَخْبَرَنَا هِشَامٌ اَنَّ ابْنَ جُرَیْجٍ اَخْبَرَهُ قَالَ اَخْبَرَنِیْ یَعْلَی ابْنُ مُسْلِمٍ وَ عَمْرُو بْنُ دِیْنَارٍ عَنْ سَعِیْدِ بْنِ جُبَیْرٍ یَزِیْدُ اَحَدُهُمَا عَلٰی صَاحِبِهٖ وَغَیْرُهُمَا قَدْ سَمِعْتُهُ یُحَدِّثُهُ عَنْ سَعِیْدِ بْنِ جُبَیْرٍ قَالَ اِنَّا لَعِنْدَ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ حَدَّثَنِیْ اُبَیُّ بْنُ کَعْبٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ مُوْسٰی رَسُوْلُ اللّٰهِ فَذَکَرَ الْحَدِیْثَ قَالَ اَلَمْ اَقُلْ اِنَّکَ لَنْ تَسْتَطِیْعَ مَعِیَ صَبْرًا کَانَتِ الْاُوْلٰی نِسْیَانًا وَالْوُسْطٰی شَرْطًا وَالثَّالِثَةُ عَمَدًا قَالَ لَا تُؤَاخِذْنِیْ بِمَا نَسِیْتُ وَلَا تُرْهِقْنِیْ مِنْ اَمْرِیْ عُسْرًا لَقِیَا غُلَامًا فَقَتَلَهُ فَانْطَلَقَا فَوَجَدَا جِدَارًا یُرِیْدُ اَنْ یَنْقَضَّ فَاَقَامَهُ قَرَاَهَا ابْنُ عَبَّاسٍ اَمَامَهُمْ مَلِکٌ.

## باب ۱: خلقو سره دَ زباني شرطونو فیصله کولو بیان.

۱: ابراهیم بن موسٰي. هشام بن جریج. یعلي بن مسلم. عمر بن دینار. سعید بن جبیر. حضرت ابن عباسؓ ابي ابن کعبؓ نه روایت کوي. چه رسول الله صلعم، دَ موسٰي علیه السلام دَ قصے پوره حدیث او دَ خضر، موسٰي ته دا، وئیل چه آیا ما تاته دَ مخکښ نه دا نهٔ وو وئیلے، چه ته به ماسره صبر ونکړے شے. دے ټولے واقعے بیانولو سره ارشاد وفرمائیلو، چه په ړومبي ځل خو هیرے سره اعتراض وُشو. په دویم ځل دَ شرط په طور، اوپه دریم ځل هغه قصداً دَ معاهدے خلاف وکړل. حضرت موسٰي علیه السلام وئیلے وو، هغه څما نه هیر شوے وو، دَ هغے مواخذه څما نه مه کوه. اوپه ما تنگسیا مهٔ راوله. بیا هغوي دواړه یو هلک سره یو ځائے شو، چه هغه حضرت خضرؑ قتل کړلو. او دواړه مخ په وړاندے روان شو. بیا هغوي یو دیوال ولیدو، چه غرځیدونکے وو حضرت خضرؑ هغه درست کړلو (ابن عباس به دے سورت یعني سُوره کهف کښ "وراء هم ملک" په ځائے "امامهم ملک" وئیلے. (لیکن دا قول ضعیف دے).

## باب ۲: الشُّرُوْطِ فِی الْوَلَاءِ.

۲: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِیْلُ حَدَّثَنَا مَالِکٌ

## باب ۲: دَ آزاد کړده غلام دَ میراث دَ شرط مقررولو بیان.

۲: اسماعیل. مالک. هشام بن عروه. دَ

عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ جَاءَ تْنِيْ بَرِيْرَةُ فَقَالَتْ كَاتَبْتُ اَهْلِيْ عَلٰى تِسْعِ اَوَاقٍ فِيْ كُلِّ عَامٍ اُوْقِيَّةٌ فَاَعِيْنِيْنِيْ فَقَالَتْ اِنْ اَحَبُّوْا اَنْ اَعُدَّهَا لَهُمْ وَ يَكُوْنُ وَلَاءُ كِ لِيْ فَعَلْتُ فَذَهَبَتْ بَرِيْرَةُ اِلٰى اَهْلِهَا فَقَالَتْ لَهُمْ فَاَبَوْا عَلَيْهَا فَجَاءَ تْ مِنْ عِنْدِهِمْ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسٌ فَقَالَتْ اِنِّيْ قَدْ عَرَضْتُ ذٰلِكَ عَلَيْهِمْ فَاَبَوْا اِلَّا اَنْ يَّكُوْنَ الْوَلَآءُ لَهُمْ فَسَمِعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرَتْ عَائِشَةُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ خُذِيْهَا وَاشْتَرِطِيْ لَهُمُ الْوَلَآءَ فَاِنَّمَا الْوَلَآءُ لِمَنْ اَعْتَقَ فَفَعَلَتْ عَائِشَةُ ثُمَّ قَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي النَّاسِ فَحَمِدَ اللّٰهَ وَ اَثْنٰى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ مَا بَالُ رِجَالٍ يَشْتَرِطُوْنَ شُرُوْطًا لَيْسَتْ فِيْ كِتَابِ اللّٰهِ مَا كَانَ مِنْ شَرْطٍ لَيْسَ فِيْ كِتَابِ اللّٰهِ فَهُوَ بَاطِلٌ وَ اِنْ كَانَ مِائَةَ شَرْطٍ قَضَآءُ اللّٰهِ اَحَقُّ وَ شَرْطُ اللّٰهِ اَوْثَقُ وَ اِنَّمَا الْوَلَآءُ لِمَنِ اَعْتَقَ.

بي بي عائشےؓ نه روایت کوي. چه بریره ماله راغله او ماته ئے اووے چه ما خپلو مالکانو سره په نهه اوقیه د آزاد کیدلو معاهده اوکړه. هر کال به ورته یو اوقیه ادا کوم. نو ته زما مدد وکړه بي بي عائشےؓ ورته ووے که هغه حلق غواړي. نو زه به هغوي ته یکمشت ستا ټول رقم ادا کړم. او ستا میراث به خما شي. زه داسے کولے شم. پدے خبره بریره خپلو مالکانو له ورغله او ورته ئے اووے خو هغوي اونه منله. بیا بي بي عائشےؓ له راغله. او حضور صلعم هم ناست وو. بریره اووے ما ستا هغه خبره هغوي ته وکړه خو هغوي بغیر شرط نه. نه مني. حضورؐ دا خبره اوریدله. بي بي عائشےؓ حضورؐ ته دا ټوله واقعه بیان کړه. حضورؐ ورته وفرمائیل ته بریره په بیع راخله. او د ولاء شرط هغوي د پاره پریږده. ځکه چه ولاء خو به هغے چاته رسي چه ازاده ئ کړي نو بي بي عائشےؓ دغسے وکړل. دینه پس حضورؐ خلقو ته ودریدلو د الله د حمد ثنا نه پس ئے وفرمائیل چه د آزاد کرده غلام د میراث په بابت کښې خلق داسے شرطونه لګوي چه کتاب الله کښې نشته. یاد ساتئ. کوم شرط چه کتاب الله کښې نه وي هغه باطل دے. د الله فیصله ډیره ربنتینے ده. او د الله شرط ډیر مضبوط دے. او ولاء هغے چاته رسي چه آزاد ئے کړي.

ف: اوقیه د څلویښت درم یو وزن دے. ولاء: یو حق دے. چه آزاد کونکي ته یو خپل آزاد کړي غلام یا وینزے کښې حاصل وي. یعني که هغه مړشي. نو آزاد کونکے هم دهغه یو وارث وي. عربو به دا حق خرڅولو او هبه کولو. حضورؐ د دے نه منع اوفرمائیله.

## بَابٌ ۳: إِذَا اشْتَرَطَ فِي الْمُزَارَعَةِ إِذَا شِئْتُ أَخْرَجْتُكَ.

۳: حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى أَبُو غَسَّانَ الْكِنَانِيُّ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ لَمَّا فَدَعَ أَهْلُ خَيْبَرَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ قَامَ عُمَرُ خَطِيبًا قَالَ إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ عَامَلَ يَهُودَ خَيْبَرَ عَلَى أَمْوَالِهِمْ وَقَالَ نُقِرُّكُمْ مَا أَقَرَّكُمُ اللّٰهُ وَإِنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ خَرَجَ إِلَى مَالِهِ هُنَاكَ فَعُدِيَ عَلَيْهِ مِنَ اللَّيْلِ فَفُدِعَتْ يَدَاهُ وَرِجْلَاهُ وَلَيْسَ لَنَا هُنَاكَ عَدُوٌّ غَيْرَهُمْ هُمْ عَدُوُّنَا وَتُهْمَتُنَا وَقَدْ رَأَيْتُ إِجْلَاءَهُمْ فَلَمَّا أَجْمَعَ عُمَرُ عَلَى ذٰلِكَ أَتَاهُ أَحَدُ بَنِي الْحُقَيْقِ فَقَالَ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ أَتُخْرِجُنَا وَقَدْ أَقَرَّنَا مُحَمَّدٌ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَامَلَنَا عَلَى الْأَمْوَالِ وَشَرَطَ ذٰلِكَ لَنَا فَقَالَ عُمَرُ أَظَنَنْتَ أَنِّي نَسِيتُ قَوْلَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَيْفَ بِكَ إِذَا أُخْرِجْتَ مِنْ خَيْبَرَ تَعْدُو بِكَ

**باب ۳:** مزارعت کښې د شرط لږولو بیان. چه کله زه غواړم نو کاشتکار به بې دخله کړم (مزارعت معني مشترکه کاشت. چه هغې کښې د یو محنت او د بل سرمایه وي).

۳: ابو احمد. محمد بن یحیی. ابوغسان کناني. مالک. نافع ابن عمرؓ نه روایت کوي. چه کوم وخت خیبر والو زد په لاس پښو اووهلم. نو د هغې نه پس یوه ورځ حضرت عمر اودریدلو د یو تقریر په دوران کښې ئې اووے چه بیشکه رسول الله صلعم د خیبر یهودیانو سره د هغوي د مالونو پحقله یوه معامله کړے وه. او فرمائیلے وو. چه څو پورے الله تاسو قائم ساتي. مونږ به هم تاسو قائم ساتو. او دا واقعه هغه وخت پیښه شوه چه عبدالله بن عمرؓ خپل جائیداد له ورغلے وو نو هلته د شپے په هغه ظلم وشولو او لاس پښے ورله مات کړے شو. هغه اووے د دے یهودیانو نه سیوا هیڅوک خمونږ دشمن دلته نشته. خمونږ شبه هم په دوي ده او اوس زه د دوي جلا وطن کول مناسب ګڼړم. کوم وخت چه حضرت عمرؓ د دے خبرے مضبوطه اراده وکړله. نو د ابوالحقیق یهودي د خاندان نه سړے راغے. او وئیلے چه اے امیر المؤمنین تاسو مونږ وکاږئ حالانکه نبي صلعم مونږ برقرار ساتلے یو او د دے خائے د جائیداد په حقله ئے مونږ سره معامله اوکړه. او د دے خبرے ئے مونږ د پاره شرط کړے وو. حضرت عمرؓ ورته وفرمائیل ستا څه خیال دے. چه ما د حضور صلعم قول هیر کړے دے. چه تاسو سره ئے کړے وو. ستا به څه حال وي کوم وخت چه ته د خیبر نه وبنکلے شے. ستا اوښ به ثاخستے ئے او شپه په شپه به ګرځي. هغه ووے دا خو د ابوالقاسم

قَلُوْصُكَ لَيْلَةً بَعْدَ لَيْلَةٍ فَقَالَ كَانَتْ هٰذِهٖ هُزَيْلَةً مِنْ اَبِي الْقَاسِمِ قَالَ كَذَبْتَ يَا عَدُوَّ اللّٰهِ فَاَجْلَاهُمْ وَ اَعْطَاهُمْ قِيْمَةَ مَا كَانَ لَهُمْ مِنَ الثَّمَرِ مَالًا وَ اِبِلًا وَ عُرُوْضًا مِنْ اَقْتَابٍ وَ حِبَالٍ وَ غَيْرِ ذٰلِكَ رَوَاهُ حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ اَحْسِبُهُ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنْ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِخْتَصَرَهُ.

مذاق وو. حضرت عمرؓ ورته اووے. اے د خدائے دُشمنه، ته دروغ وائے بیا هغوي حضرت عمرؓ وښکل، او څه چه د میوه جاتو، اُوښانو، اسبابو، انبالئ اورسو (رسیوں) وغیره نه د هغوي وو. د هغے قیمت ئے ورکړلو دا حماد بن سلمه هم روایت کۀ. هغه د عبدالله نه روایت کۀ، زه ګمان کوم چه هغه د نافع نه او هغه د ابن عمرؓ نه او هغه د حضرت عمرؓ نه او هغه د رسول الله صلي الله علیه و اله وسلم نه مختصر طور سره دغه روایت بیان که.

ف: جلاوطن: د وطن نه اوښکل، بے وطنه کول، چه د څه جرم په وجه سړے د وطن نه اوښکلے شي.

بَاب ۴: الشُّرُوْطِ فِي الْجِهَادِ وَالْمُصَالَحَةِ مَعَ اَهْلِ الْحَرْبِ وَ كِتَابَةِ الشُّرُوْطِ.

باب ۴: کافرو سره د جهاد او مصالحت د شرطونو لیکلو بیان.

۴: حَدَّثَنِي عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ قَالَ اَخْبَرَنِي الزُّهْرِيُّ قَالَ اَخْبَرَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ وَ مَرْوَانَ يُصَدِّقُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا حَدِيْثَ صَاحِبِهٖ قَالَا خَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَمَنَ الْحُدَيْبِيَّةِ حَتّٰى كَانُوْا بِبَعْضِ الطَّرِيْقِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ خَالِدَ بْنَ الْوَلِيْدِ

۴: عبدالله بن محمد. عبدالرزاق. معمر. زهري. عروه بن زبیر. حضرت مسور بن مخرمه او مروان نه روایت کوي، او دواړه د یو بل تصدیق کوي. چه رسول الله صلي الله علیه و اله وسلم د حدیبیه زمانه کښې تشریف یوړلو. لار کښې ئے د معجزے په طور، د خالد بن ولید (چه لا مسلمان شوے نه وو) متعلق ئے وفرمائیل، چه مقام غمیم کښې قریشو سره مقدمة الجیش کښې دے تاسو ښي اړخ ته څئے. ځکه چه هغه دے طرفته دے. او اخوا خالد ته د مسلمانانو راتلل ذره قدرے معلوم شوے نه وو. کوم وخت چه د لښکر ګرد هغه ته ورسیدو. نو نو هغه ته معلومه شوه، چه حضور صلے الله علیه و اله وسلم راغلو، دے دوران کښې سمدستي یو سړي قریشوته خبر ورکولو د پاره روان شولو. اخوا نبي صلے الله علیه و اله وسلم

بِالْغَمِيمِ فِي خَيْلٍ لِقُرَيْشٍ طَلِيعَةٌ فَخُذُوا ذَاتَ الْيَمِينِ فَوَاللَّهِ مَا شَعَرَ بِهِمْ خَالِدٌ حَتَّى إِذَا هُمْ بِقَتَرَةِ الْجَيْشِ فَانْطَلَقَ يَرْكُضُ نَذِيرًا لِقُرَيْشٍ وَسَارَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى إِذَا كَانَ بِالثَّنِيَّةِ الَّتِي يُهْبَطُ عَلَيْهِمْ مِنْهَا بَرَكَتْ بِهِ رَاحِلَتُهُ فَقَالَ النَّاسُ حَلْ حَلْ فَأَلَحَّتْ فَقَالُوا خَلَأَتِ الْقَصْوَاءُ خَلَأَتِ الْقَصْوَاءُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا خَلَأَتِ الْقَصْوَاءُ وَمَا ذَاكَ لَهَا بِخُلُقٍ وَلَكِنْ حَبَسَهَا حَابِسُ الْفِيلِ ثُمَّ قَالَ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَا يَسْأَلُونِي خُطَّةً يُعَظِّمُونَ فِيهَا حُرُمَاتِ اللَّهِ إِلَّا أَعْطَيْتُهُمْ إِيَّاهَا ثُمَّ زَجَرَهَا فَوَثَبَتْ قَالَ فَعَدَلَ عَنْهُمْ حَتَّى نَزَلَ بِأَقْصَى الْحُدَيْبِيَةِ عَلَى ثَمَدٍ قَلِيلِ الْمَاءِ يَتَبَرَّضُهُ النَّاسُ تَبَرُّضًا فَلَمْ يَلْبَثْهُ النَّاسُ حَتَّى

برابر تللو تردے چه كوم وخت هغے غنډئ (پهاړئ) ته ورسيدلو، چه د هغے د پاسه نه خلق مكے ته راكوزيږي نو ذَ حضور صلے الله عليه و اله وسلم اوښه كيناستله. خلقو اووے حَلْ حَلْ (ذ اوښے د پاسولو آواز دے) ډير كوشش وكړے شو. چه هغه پاسي، خو هغے حركت اونه كړ صحابهؓ اووے قصواء كيناسته قصواء (د حضور د اوښے نوم) كيناسته نبي صلي الله عليه و اله وسلم وفرمائيل چه قصواء خپله نهٔ ده ناسته نه د هغے دا عادت دے، بلكه دا هغے چا (ذات) منع كړے ده. چا چه د هاتيانو لښكر بند كړے وو. بيائے اوفرمائيل خما دِ قسم وي په هغه ذات چه د هغه لاس كښې خما ساه ده چه كفار قريش مانه د كومے خبرے غوښتنه كوي. او هغوي هغے كښې دَ الله حرام كړے څيزونو تعظيم كوي نو زهٔ به د هغوي هغه خبره منظوروم. دے نه پس حضور صلے الله عليه و اله وسلم قصوي له ډب وركه، نو هغے اودانګل، او روانه شوه تردے چه ذ حديبيه په غاړه په يوه كنده كيناسته، چه هغے كښې اوبه ډيرے لږے وے. خلقو به د هغے نه لږے لږے اوبه اخستے. لږ ساعت كښې خلقو هغه اوڅكلے. بيائے حضور صلي الله عليه و اله وسلم ته د تندے (پياس) شكايت اوكه، نو حضور صلے الله عليه و اله وسلم ذ خپل تركش نه تير راوښكلو. اوحكم ئے اوكه چه دا هغے اوبو كښې اوغرځوئ په خدائے دِ دے قسم وي، چه اوبه سمدستي ذ هغے نه راؤخوټكيدے تر دے چه ټول خلق پرے سيراب شو. دے كښې بديل بن ورقاء خزاعي ذَ خپل خزاعه قوم څو سړو سره چه ذَ حضور صلي الله عليه و اله وسلم خير خواه وو. او دَ تهامه

نَزَحُوْهُ وَ شُكِيَ اِلَى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعَطَشُ فَانْتَزَعَ سَهْمًا مِّنْ كِنَانَتِهٖ ثُمَّ اَمَرَهُمْ اَنْ يَّجْعَلُوْهُ فِيْهِ فَوَاللّٰهِ مَا زَالَ يَجِيْشُ لَهُمْ بِالرِّيِّ حَتّٰى صَدَرُوْا عَنْهُ فَبَيْنَمَا هُمْ كَذٰلِكَ اِذْ جَآءَ بُدَيْلُ بْنُ وَرْقَآءَ الْخُزَاعِيُّ فِيْ نَفَرٍ مِّنْ قَوْمِهٖ مِنْ خُزَاعَةَ وَ كَانُوْا عَيْبَةَ نُصْحِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ اَهْلِ تِهَامَةَ فَقَالَ اِنِّيْ تَرَكْتُ كَعْبَ بْنَ لُؤَيٍّ وَ عَامِرَ بْنَ لُؤَيٍّ نَزَلُوْا اَعْدَادَ مِيَاهِ الْحُدَيْبِيَةِ وَ مَعَهُمُ الْعُوْذُ الْمَطَافِيْلُ وَهُمْ مُقَاتِلُوْكَ وَ صَادُّوْكَ عَنِ الْبَيْتِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّا لَمْ نَجِئْ لِقِتَالِ اَحَدٍ وَلٰكِنَّا جِئْنَا مُعْتَمِرِيْنَ وَ اِنَّ قُرَيْشًا قَدْ نَهِكَتْهُمُ الْحَرْبُ وَ اَضَرَّتْ بِهِمْ فَاِنْ شَآءُوْا مَادَدْتُهُمْ مُدَّةً وَّ يُخَلُّوْا بَيْنِيْ وَ بَيْنَ النَّاسِ فَاِنْ اَظْهَرْ فَاِنْ شَآءُوْا اَنْ يَّدْخُلُوْا

اوسیدونکے وو. راغے او ونیلے چه ما کعب بن لؤي او عامر بن لؤي داسے حال کښې پریښیے دي. چه هغوي د حدیبیه ژورو چینو سره تیکاؤ شوي دي. هغوي سره د پیو اوښے دي. هر لحاظ سره د هغوي سامان درست دے او هغه حتی تاسو سره جنګ کول غواړي. او تاسو د کعبے نه منع کول غواړي رسول الله صلي الله علیه و اله وسلم وفرمائیل چه مونږ چاسره جنګ د پاره نه یو راغلي مونږ خو صرف عمرے کولو له راغلي یو. حقیقت کښې قریش جنګ کمزوري کړیدي. او هغوي ته ډیر نقصان رسیدلے دے که هغوي غواړي نو زه به هغوي سره څه موده مقرر کړم لیکن هغوي به څما او د کفار عرب په مینځ کښې نه راپروځي. که نتیجه کښې زه غالب شوم. او هغه وخت قریش وغواړي. چه دے دین کښې داخل شي. چه هغے کښې نور خلق داخل شوي دي. نو هغوي دے داسے او کړي او که نه زه غالب رانشم. نو بیا به هغوي په آرام شي. ځکه چه دغے صورت کښې به د هغوي مقصود پوره شي. او که هغوي دا منظور نکړي. نو قسم دے په هغه ذات چه د هغه لاس کښې څما ساه ده. چه زه به خپل دے حالت کښې هغوي سره د هغه وخته پورے جنګیږم. تر دے چه قتل کړے شم او بیشکه الله به خپل دین جاري ساتي بدیل اووے. څه چه تاسو وفرمائیل. زه به قریشو ته همدغسے اوویم نو هغه لاړ او قریشوته ئے اووے چه مونږ تاسوته د هغے سړي د طرف نه راغلي یو او مونږ د هغه نه څه اوریدلي دي، که تاسو غواړئ مونږ به ئے درته بیان کړو. نو د هغوي بے وقوفانو اووے چه مونږ ته د هغه هیڅ حاجت نشته چه څه خبره ئے راته وکړے. لیکن عقلمندو

فِيْمَا دَخَلَ فِيْهِ النَّاسُ فَعَلُوْا
وَ إِلَّا فَقَدْ جَمُّوْا وَ إِنْ هُمْ
اَبَوْ فَوَالَّذِيْ نَفْسِيْ
بِيَدِهٖ لَاُقَاتِلَنَّهُمْ عَلٰى اَمْرِيْ
هٰذَا حَتّٰى تَنْفَرِدَ سَالِفَتِيْ
وَلَيُنْفِذَنَّ اللّٰهُ اَمْرَهٗ فَقَالَ
بُدَيْلٌ سَاُبَلِّغُهُمْ مَا تَقُوْلُ
قَالَ فَانْطَلَقَ حَتّٰى اَتٰى قُرَيْشًا
قَالَ اِنَّا قَدْ جِئْنَا كُمْ مِنْ هٰذَا
الرَّجُلِ وَ سَمِعْنَاهُ يَقُوْلُ قَوْلًا
فَاِنْ شِئْتُمْ اَنْ نَعْرِضَهٗ
عَلَيْكُمْ فَعَلْنَا فَقَالَ سُفَهَآءُ هُمْ
لَا حَاجَةَ لَنَا اَنْ تُخْبِرَنَا
عَنْهُ بِشَيْءٍ وَ قَالَ ذُوْو
الرَّاْيِ مِنْهُمْ هَاتِ مَا سَمِعْتَهٗ
يَقُوْلُ قَالَ سَمِعْتُهٗ يَقُوْلُ
كَذَا وَ كَذَا فَحَدَّثَهُمْ بِمَا
قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ فَقَامَ عُرْوَةُ بْنُ مَسْعُوْدٍ
فَقَالَ اَيْ قَوْمِ اَلَسْتُمْ بِالْوَلَدِ
قَالُوْا بَلٰى قَالَ اَوَلَسْتُ
بِالْوَالِدِ قَالُوْا بَلٰى قَالَ فَهَلْ
تَتَّهِمُوْنِيْ قَالُوْا لَا قَالَ اَلَسْتُمْ
تَعْلَمُوْنَ اَنِّيْ اِسْتَنْفَرْتُ
اَهْلَ عُكَاظٍ فَلَمَّا بَلَّحُوْا عَلَيَّ
جِئْتُكُمْ بِاَهْلِيْ وَ وَلَدِيْ وَمَنْ

اووے چه تا د هغه نه څه اوریدلي دي' هغه بیان کړه بدیل ورته اووے ما د هغه نه دا اوریدلي دي. بیا څه چه حضور صلي الله علیه وسلم ورته فرمائیلی وو هغه ئے ورته بیان کړل' نو عروه بن مسعود اودریدلو اووے وئیل اے خلقو زهٔ ستاسو پلار نه یم هغوي ورته اووے' او عروه اووے' آیا تاسو ځما ذ اولاد په شان نه ئے' هغوي اووے' او' یو' عروه اووے آیا تاسو ماسره څه قسم بدظني (بدګماني) لرئے. هغوي اوے نه' عروه اووے آیا تاسوته معلومه نه ده چه ما عکاظ واله ستاسو مدد د پاره راوغوښتل' خو هغوي چه ځما خبره ونه منله نو ما خپل رشته داران او اولاد' چا چه ځما خبره اومنله' هغه د تاسوله راوستل هغوي اووے او (همدغسے ده) دا هر څه رښتیا دي. عروه اووے' ښه' اوس ځما یوه خبره واورئے. هغے سړي (یعني حضور صلي اللّٰه علیه و اٰله وسلم) ستاسو مخکښ یوه خبره پیش کړے ده. هغه منظور کړئ او ماله اجازت راکړئ چه زهٔ هغه له ورشم' ټولو اووے ډیره ښه ده. ته لاړ شه' نو عروه' حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم له راغے' او خبرے اترے ئے ورسره شوع کړے' حضور صلے اللّٰه علیه و اٰله وسلم هغه سره هغه خبرے اوکړے کومے چه بدیل سره ئے کړے وے. عروه اووے اے محمد صلے اللّٰه علیه و اٰله وسلم دا راته ووایه کهٔ ته دَ خپل قوم بالکل بیخ بنیاد اوکاږے نو دے کښ ستا څه فائده ده. آیا تا دَ خپل ځان نه مخکښ دَ یو عرب متعلق اوریدلي دي چه هغه دَ خپل قوم بنیاد اوښکلے وي او کله کهٔ دا خبره جوړه شي. چه ته مغلوب شے نو بیا به څه وي' او نتیجه کښ خو دا آخري خبره معلومیږي. خکه چه زه

...غَنِيْ قَالُوْا بَلٰى قَالَ اِنَّ
... قَدْ عَرَضَ لَكُمْ خُطَّةَ
رُشْدٍ اِقْبَلُوْهَا وَدَعُوْنِيْ اٰتِيْهِ
قَالُوْا ائْتِهِ فَاَتَاهُ فَجَعَلَ يُكَلِّمُ
النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ نَحْوًا مِّنْ قَوْلِهِ
...يْلٍ فَقَالَ عُرْوَةُ عِنْدَ ذَالِكَ
اَيْ مُحَمَّدُ اَرَاَيْتَ اِنِ اسْتَاصَلْتَ
اَمْرَ قَوْمِكَ هَلْ سَمِعْتَ
...حَدٍ مِّنَ الْعَرَبِ اِجْتَاحَ
...هُ قَبْلَكَ وَ اِنْ تَكُنِ
الْاُخْرٰى فَاِنِّيْ وَاللّٰهِ لَاَرٰى
وُجُوْهًا وَ اِنِّيْ لَاَرٰى اَشْوَابًا
مِّنَ النَّاسِ خَلِيْقًا اَنْ يَّفِرُّوْا
وَ يَدَعُوْكَ فَقَالَ لَهُ اَبُوْبَكْرٍ
اُمْصُصْ بِبَظْرِ اللَّاتِ اَنَحْنُ
نَفِرُّ عَنْهُ وَ نَدَعُهُ فَقَالَ مَنْ
ذَا قَالُوْا اَبُوْبَكْرٍ قَالَ اَمَا
وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَوْلَا يَدٌ
كَانَتْ لَكَ عِنْدِيْ لَمْ اَجْزِكَ
بِهَا لَاَجَبْتُكَ قَالَ وَ جَعَلَ
يُكَلِّمُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكُلَّمَا تَكَلَّمَ
اَخَذَ بِلِحْيَتِهٖ وَالْمُغِيْرَةُ بْنُ شُعْبَةَ
قَائِمٌ عَلٰى رَاْسِ النَّبِيِّ

ستا ملګرتیا کښې داسې خلق او داسې مختلف سړي وینم چه تیښتې ته زیاته ترجیح ورکوي. واوره هغوي به تا میدان جنګ کښې ایکې یوازې پریږدي. دے او ریدو سره حضرت ابوبکرؓ عروه ته اووې چه: امصص ببظر اللات: لات په معنې د مخصوص بُت. بظر په معني د ښځې د شرمګاه د غوښې حصه. امصص په معني د رودل (چوسنا) او دا جمله د یو ډیر خراب کنځل په طور ونیلے شي. بیا حضرت ابوبکرؓ اووې آیا مونږ به د حضور صلے اللّه علیه و اله وسلم د ملګرتیانه تښتو او هغه به یوازې پریږدو. عروه اووې دا څوک دے خلقو ورته اووې ابوبکرؓ دے نو عروه اووې قسم دے په هغه ذات چه د هغه لاس کښې خما ساه ده که ستا په ما یو احسان نۀ وے چه د هغې اوسه پورې ما بدله نۀ ده ورکړې نو ما به ضرور جواب درکړے وے. حضرت مسور بن مخرمه وائي عروه بیا حضور صلے اللّه علیه و اله وسلم سره خبرې اترې شروع کړې او کله چه به ئې حضور صلے اللّه علیه و اله وسلم سره خبرې کولے نو د خوشامندې په طور به ئې د حضور صلے اللّه علیه و اله وسلم ږیرې مبارکې ته لاس وروړلو. مغیره بن شعبهؓ د حضور صلے اللّه علیه و اله وسلم سرته ولاړ وو چه د هغه لاس کښې بربنډه توره وه او خود ئې په سر وو. کوم وخت چه عروه خپل لاس د حضور صلے اللّه علیه و اله وسلم ږیرې مبارکې ته ورمخکښې کړ نو مغیره خپل لاس د تورې په قبضه کیښودلو او وئیلے عروه خپل لاس د رسول اللّه صلي اللّه علیه وسلّم د ږیرې مبارکې نه لرې کړه. عروه خپل سر اوچت کړلو او تپوس ئې اوکه دا څوک دے.

١

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
وَمَعَهُ السَّيْفُ وَ عَلَيْهِ الْمِغْفَرُ
فَكُلَّمَا اَهْوٰى عُرْوَةُ بِيَدِهٖ اِلٰى
لِحْيَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ ضَرَبَ يَدَهٗ بِنَعْلِ
السَّيْفِ وَ قَالَ لَهٗ اَخِّرْ يَدَكَ
عَنْ لِحْيَةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَفَعَ عُرْوَةُ رَاْسَهٗ
فَقَالَ مَنْ هٰذَا قَالُوا الْمُغِيْرَةُ
بْنُ شُعْبَةَ فَقَالَ اَيْ غُدَرُ
اَلَسْتُ اَسْعٰى فِيْ غَدْرَتِكَ وَ
كَانَ الْمُغِيْرَةُ صَحِبَ قَوْمًا فِيْ
الْجَاهِلِيَّةِ فَقَتَلَهُمْ وَ اَخَذَ
اَمْوَالَهُمْ ثُمَّ جَآءَ فَاَسْلَمَ فَقَالَ
النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ اَمَّا الْاِسْلَامُ فَاَقْبَلُ وَ اَمَّا
الْمَالُ فَلَسْتُ مِنْهُ فِيْ شَيْءٍ ثُمَّ
اِنَّ عُرْوَةَ جَعَلَ يَرْمُقُ اَصْحَابَ النَّبِيِّ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعَيْنَيْهِ
قَالَ فَوَاللّٰهِ مَا تَنَخَّمَ رَسُوْلُ
اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
نُخَامَةً اِلَّا وَقَعَتْ فِيْ كَفِّ رَجُلٍ
مِنْهُمْ فَدَلَكَ بِهَا وَجْهَهٗ وَ جِلْدَهٗ وَ
اِذَا اَمَرَهُمُ ابْتَدَرُوْا اَمْرَهٗ وَ اِذَا
تَوَضَّاَ كَادُوْا يَقْتَتِلُوْنَ عَلٰى
وَضُوْئِهٖ وَ اِذَا تَكَلَّمَ خَفَضُوْا

خلقو ورته اووے. مغیره بن شعبه دے عروه اووے. اے بے وقوفه ستا څه خیال دے چه زه ستا د بیوفائي د بدلے په فکر کښې نه یم مغیره چه زمانه جاهلیت کښې څنو خلقو سره ناسته پاسته کړله هغه څوک قتل کړے وو. او د هغه مال ئے اخستے وو. او هغے نه پس بیا مسلمان شوے وو. دے نه پس عروه د سترګے په اوتکي (کښت) کښې د رسول صلے اللّٰه علیه و اٰله وسلم اصحابو ته کتل. راوي وائي چه هغه دا حال ولید چه کله به نبي صلے اللّٰه علیه و اٰله وسلم لاړے تو کلے هغه به چه صحابه کښې د چا په لاس پریوتلے نو هغه به بیا هغه په خپل مخ او بدن باندے مږلے. او کله چه به حضور صلے اللّٰه علیه و اٰله وسلم څۀ حکم کولو نو هغوي به ئے سمدستي تعمیل کولو. کوم وخت چه حضور صلے اللّٰه علیه و اٰله وسلم به اودس کولو نو هغے خلقو به د حضور صلے اللّٰه علیه و اٰله وسلم د اودس په اوبو جګړه کوله یو به وئیلے زه دا اخلم او بل به وئیلے چه زۀ ئے اخلم او هغے خلقو چه به خبرے کولے نو د حضور صلے اللّٰه علیه و اٰله وسلم مخکښې به ئے خپل اوازونه پست کول (یعني غلے غلے یا رو رو خبرے به ئے کولے) او د حضور صلے اللّٰه علیه و اٰله وسلم طرف ته به ئے د ډیر تعظیم په وجه نه کتل. بیا عروه خپلو ملګرو ته واپس راغے اووئیلے. اے خلقو په اللّٰه م دے قسم وي زه د بادشاهانو دربار ته تلے یم. د قیصر، کسري او نجاشي دربار م کتلے دے. خو قسم په خدائے ما هیڅ بادشاه داسے نه دے لیدلے چه د هغه ملګري (هم نشینان) د هغه داسے تعظیم کوي. څنګه چه د محمد صلے اللّٰه علیه و اٰله وسلم دا خلق تعظیم کوي.

اَصْوَاتَهُمْ عِنْدَهُ وَمَا يَحِدُّوْنَ اِلَيْهِ تَعْظِيْمًا لَهُ فَرَجَعَ عُرْوَةُ اِلٰى اَصْحَابِهِ فَقَالَ اَيْ قَوْمِ وَاللّٰهِ لَقَدْ وَفَدْتُ عَلَى الْمُلُوْكِ وَ وَفَدْتُ عَلٰى قَيْصَرَ وَ كِسْرٰى وَالنَّجَاشِيِّ وَاللّٰهِ اِنْ رَاَيْتُ مَلِكًا قَطُّ يُعَظِّمُهُ اَصْحَابُهُ مَا يُعَظِّمُ اَصْحَابُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُحَمَّدًا وَاللّٰهِ اِنْ تَنَخَّمَ نُخَامَةً اِلَّا وَقَعَتْ فِيْ كَفِّ رَجُلٍ مِنْهُمْ فَدَلَكَ بِهَا وَجْهَهُ وَ جِلْدَهُ وَ اِذَا اَمَرَهُمُ ابْتَدَرُوْا اَمْرَهُ وَ اِذَا تَوَضَّاَ كَادُوْا يَقْتَتِلُوْنَ عَلٰى وَضُوْئِهِ وَ اِذَا تَكَلَّمَ خَفَضُوْا اَصْوَاتَهُمْ عِنْدَهُ وَمَا يَحِدُّوْنَ اِلَيْهِ النَّظَرَ تَعْظِيْمًا لَهُ وَ اِنَّهُ قَدْ عَرَضَ عَلَيْكُمْ خُطَّةَ رُشْدٍ فَاقْبَلُوْهَا فَقَالَ رَجُلٌ مِنْ بَنِيْ كِنَانَةَ دَعُوْنِيْ اٰتِيْهِ فَقَالُوْا ائْتِهِ فَلَمَّا اَشْرَفَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَصْحَابِهِ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هٰذَا فُلَانٌ وَهُوَ مِنْ قَوْمٍ يُعَظِّمُوْنَ الْبُدْنَ فَابْعَثُوْهَا لَهُ فَبُعِثَتْ لَهُ وَ اسْتَقْبَلَهُ النَّاسُ يُلَبُّوْنَ فَلَمَّا رَاٰى ذٰلِكَ

په الله مې دې قسم وي کوم وخت چه هغه تو کي. نو هغه تو کانړې چه د چا په لاس پريوځي هغه ئې په خپل مخ او بدن مږي. او هر کله چه هغه د څه خبرې حکم ورکوي نو د هغه اصحاب سمدستي د هغې تعميل کوي. کله چه هغه اودس کوي نو دهغه د اودس په اوبو جګړه کوي. د هغه مخکښې په اوچت اواز خبرې نکوي. او د ډير تعظيم نه هغه ته پاس نه ګوري. بيشکه هغوي ستاسو مخکښې يوه ښه مسئله پيش کړې ده. تاسو هغه اومنئ. نو د بني کنانه نه هم يو سړي اووې ماله اجازت راکړئ چه زه هغه سره يو ځائې شم او هغه وګورم. خلقو ورته اووې ښه ده ته هم ورشه. کوم وخت چه هغه د حضور صلی الله عليه و اله وسلم او صحابه ؤ مخې ته راغې. نو حضور صلی الله عليه و اله وسلم وفرمائيل. دا فلانې سړې دې او دې د هغې قوم نه دې چه د قرباني د خناورو تعظيم کوي. نو تاسو د قرباني خناور دۀ ته مخکښې کړئې. کوم وخت چه د قرباني خناور د هغه مخې ته راوستې شو. او خلقو لبيک وئيلو سره د هغه استقبال اوکه هغه چه دا حال اوليد نو وې وئيل سبحان الله داسې ښۀ خلق د کعبې نه منع کول مناسب نۀ دي. بيا چه هغه خپلو خلقو ته واپس لاړ نو وئيلې ما د قربانئې خناور اوليدل. چه هغوي ته پټې اچولې شوې وې. او د هغوي اشعار ئې کړې وو (يعني د هغې اوښانو په قبونو په دې وجه زخم کولې شي. چه هغه د حج هديه متصور کړې شي) نو زه خو دا مناسب نه ګنړم. چه دا خلق د دې کعبې نه منع کړې شي. بيا هغوي کښې يو بل سړې اودريدو. چه د هغه نوم مکرز بن حفص وو هغه اووې ماله هم اجازت راکړئ چه زه هم محمد

قَالَ سُبْحَانَ اللّٰهِ مَا يَنْبَغِيْ لِهٰؤُلَاۤءِ اَنْ يُّصَدُّوْا عَنِ الْبَيْتِ فَلَمَّا رَجَعَ اِلٰى اَصْحَابِهٖ قَالَ رَاَيْتُ الْبُدْنَ قَدْ قُلِّدَتْ وَ اُشْعِرَتْ فَمَا اَرٰى اَنْ يُّصَدُّوْا عَنِ الْبَيْتِ فَقَامَ رَجُلٌ مِّنْهُمْ يُقَالُ لَهٗ مِكْرَزُ بْنُ حَفْصٍ فَقَالَ دَعُوْنِيْ اٰتِيْهِ فَقَالُوْا ائْتِهٖ فَلَمَّا اَشْرَفَ عَلَيْهِمْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هٰذَا مِكْرَزٌ وَّهُوَ رَجُلٌ فَاجِرٌ فَجَعَلَ يُكَلِّمُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبَيْنَمَا هُوَ يُكَلِّمُهٗ اِذْ جَاۤءَ سُهَيْلُ بْنُ عَمْرٍو قَالَ مَعْمَرٌ فَاَخْبَرَنِيْ اَيُّوْبُ عَنْ عِكْرِمَةَ اَنَّهٗ لَمَّا جَاۤءَ سُهَيْلُ بْنُ عَمْرٍو قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَقَدْ سَهُلَ لَكُمْ مِّنْ اَمْرِكُمْ قَالَ الزُّهْرِيُّ فِيْ حَدِيْثِهٖ فَجَاۤءَ سُهَيْلُ بْنُ عَمْرٍو فَقَالَ هَاتِ اكْتُبْ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ كِتَابًا فَدَعَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْكَاتِبَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ قَالَ سُهَيْلٌ اَمَّا الرَّحْمٰنُ فَوَاللّٰهِ مَا اَدْرِيْ مَا

صلى الله عليه و اله وسلم ته ورشو حضور ورته اوليدے نو دوي ته هم ورشه کوه وخت چه هغه مسلمانانوله راغے نو رسول الله صلى الله عليه و اله وسلم وفرمائيل دا مکرز دے او دا يو بدکار سړے دے هغه رسول الله صلى الله عليه و اله وسلم سره خبرے کولے چه سهيل بن عمرو نومے يو سړے د کافرو د طرف نه راغے معمر وائي ما ته ايوب د عکرمه نه روايت اوکړه چه کوم وخت سهيل راغے نو رسول الله صلى الله عليه و اله وسلم اوفرمائيل اوس ستاسو کار آسان شولو معمر وائي زهري ما ته خپل حديث کښې دا بيان هم اوکړه چه کوم وخت سهيل بن عمرو راغے نو هغه اووے تاسو زمونږ او خپل مينځ کښې صلح نامه وليکئي نو رسول صلى الله عليه و اله وسلم کاتب راوغوښتلو او هغه ته ئے وفرمائيل ليکه بسم الله الرّحمٰن الرّحيم. سهيل اووے. په خدائے مې دې قسم وي مونږ خو رحمن نه پيژنو چه هغه څوک دے (کفارو دا خکه وے چه هغوي لفظ رحمن د خدائے نوم هم نه پيژندلونه) تاسو داسے اوليکئے باسمک اللهم څنګه چه به مو مخکښې ليکل مسلمانانو اووے مونږ خو به بسم الله الرحمٰن الرّحيم ليکو رسول الله صلى الله عليه و اله وسلم ورته اوفرمائيل په دے اصرار مه کوئ باسمک اللهم اوليکئے. بيا حضور صلى الله عليه و اله وسلم اوفرمائيل (ليکه) هذا ما قاضى عليه محمد رسول الله سهيل اووے په خدائے مې دې قسم وي. که مونږ دا گڼرلے چه تاسو د خدائے رسول يئے نو مونږ به تاسو د کعبے نه نه منع کړلے او نه به مو درسره جنګ کولو تاسو من جانب محمد بن عبدالله اوليکئے په دے رسول الله صلى

هُوَ وَلٰكِنِ اكْتُبْ بِاسْمِكَ اللّٰهُمَّ
كَمَا كُنْتَ تَكْتُبُ فَقَالَ الْمُسْلِمُوْنَ
وَاللّٰهِ لَا نَكْتُبُهَا اِلَّا بِسْمِ اللّٰهِ
الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ فَقَالَ النَّبِيُّ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
اُكْتُبْ بِاسْمِكَ اللّٰهُمَّ ثُمَّ قَالَ هٰذَا
مَا قَاضٰى عَلَيْهِ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ
اللّٰهِ فَقَالَ سُهَيْلٌ وَاللّٰهِ لَوْ كُنَّا
نَعْلَمُ اَنَّكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ مَا
صَدَدْنَاكَ عَنِ الْبَيْتِ وَلَا قَاتَلْنَاكَ
وَلٰكِنِ اكْتُبْ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ
اللّٰهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاللّٰهِ اِنِّيْ لَرَسُوْلُ
اللّٰهِ وَاِنْ كَذَّبْتُمُوْنِيْ اُكْتُبْ
مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ الزُّهْرِيُّ
وَذٰلِكَ لِقَوْلِهٖ لَا يَسْاَلُوْنِيْ خُطَّةً
يُعَظِّمُوْنَ فِيْهَا حُرُمَاتِ اللّٰهِ
اِلَّا اَعْطَيْتُهُمْ اِيَّاهَا فَقَالَ لَهُ
النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
عَلٰى اَنْ تُخَلُّوْا بَيْنَنَا وَبَيْنَ
الْبَيْتِ فَنَطُوْفُ بِهٖ فَقَالَ سُهَيْلٌ
وَاللّٰهِ لَا تَتَحَدَّثُ الْعَرَبُ اَنَّا
اُخِذْنَا ضُغْطَةً وَلٰكِنَّ ذٰلِكَ مِنَ
الْعَامِ الْمُقْبِلِ فَكُتِبَ فَقَالَ سُهَيْلٌ
وَعَلٰى اَنَّهٗ لَا يَاْتِيْكَ مِنَّا رَجُلٌ وَ
اِنْ كَانَ عَلٰى دِيْنِكَ اِلَّا رَدَدْتَّهٗ

اللّٰه علیه و اٰله وسلم اوفرمائیل' په خدائے مې قسم وي بیشکه زه د اللّٰه رسول یم' او که تاسو خلق زما تکذیب کوئے' نو محمد بن عبدالله اولیکئے زهري وائي دا ټولې خبرے حضور صلی الله علیه و اٰله وسلم ځکه منظورې کړلے' چه حضور صلی الله علیه و اٰله وسلم فرمائیلے وو چه هغوي د کومے خبرے ماته خواست او کړي په شرط د دے چه هغے کښې هغوي د الله د حرمت واله خیزونو عظمت کوي' زه به هغه قبلوم بیا رسول الله صلی الله علیه و اٰله وسلم اوفرمائیل علی ان تخلوا بیننا و بین البیت فنطوف به' (په دے خبره چه اے کفار مکه تاسو زمونږ او کعبے په مینځ کښې لار صافه کړئے' چه مونږ د هغے طواف وکړو) نو سهیل اووے' قسم په خدائے مونږ دا خبره سخکال نه منظورو' ځکه چه مونږ سري ویره ده چه عرب دا اونه وائي' چه مونږ مجبور کړے شو. بلکه مخې کال له به دا خبره پوره شي' نو حضور صلی الله علیه و اٰله وسلم دغسے اولیکل. بیا سهیل اووے دا هم اولیکئے وعلی انه لا یاتیک منا رجل و ان کان علی دینک الا رددته الینا (په دے خبره چه اے محمد صلی الله علیه و اٰله وسلم ځمونږ د اړخ نه چه کوم سړے تاته راشي' اګر که هغه ستاسو په دین وي خو بیا به هم تاسو هغه مونږ ته واپس کوئے) مسلمانانو اووے' سبحان الله' هغه به څنګه مشر کانوته واپس کولے شي' حالانکه هغه مسلمان شویدے دے حالت کښې ابوجندل بن سهیل خپلو بیړو کړپولو سره د مکے د نشیب نه د مسلمانانو مینځ ته راغے نو هغه اووے اے محمد صلی الله علیه و اٰله وسلم دا د ټولونه وړومبئے خبره ده' چه په هغے مونږ

اَلَیْنَا قَالَ الْمُسْلِمُوْنَ سُبْحَانَ اللّٰهِ كَيْفَ يُرَدُّ اِلَى الْمُشْرِكِيْنَ وَقَدْ جَاءَ مُسْلِمًا فَبَيْنَمَا هُمْ كَذٰلِكَ اِذْ دَخَلَ اَبُوْ جَنْدَلِ بْنُ سُهَيْلِ بْنِ عَمْرٍو يَرْسُفُ فِيْ قُيُوْدِهٖ وَقَدْ خَرَجَ مِنْ اَسْفَلِ مَكَّةَ حَتّٰى رَمٰى بِنَفْسِهٖ بَيْنَ اَظْهُرِ الْمُسْلِمِيْنَ فَقَالَ سُهَيْلٌ هٰذَا يَا مُحَمَّدُ اَوَّلُ مَا اُقَاضِيْكَ عَلَيْهِ اَنْ تَرُدَّهٗ اِلَيَّ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّا لَمْ نَقْضِ الْكِتَابَ بَعْدُ قَالَ فَوَاللّٰهِ اِذًا لَمْ اُصَالِحْكَ عَلٰى شَيْءٍ اَبَدًا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَجِزْهُ لِيْ قَالَ مَا اَنَا بِمُجِيْزِهٖ لَكَ قَالَ بَلٰى فَافْعَلْ قَالَ مَا اَنَا بِفَاعِلٍ قَالَ مِكْرَزٌ بَلْ قَدْ اَجَزْنَاهُ لَكَ قَالَ اَبُوْ جَنْدَلٍ اَيْ مَعْشَرَ الْمُسْلِمِيْنَ اُرَدُّ اِلَى الْمُشْرِكِيْنَ وَقَدْ جِئْتُ مُسْلِمًا اَلَا تَرَوْنَ مَا قَدْ لَقِيْتُ وَكَانَ قَدْ عُذِّبَ عَذَابًا شَدِيْدًا فِي اللّٰهِ قَالَ فَقَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ فَاَتَيْتُ نَبِيَّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ اَلَسْتَ نَبِيَّ اللّٰهِ حَقًّا قَالَ بَلٰى قُلْتُ اَلَسْنَا عَلَى الْحَقِّ وَعَدُوُّنَا عَلَى الْبَاطِلِ

تاسره صلح کوو چه نه ابوجندل مونږ ته واپس راولیږه پـه دے حبره رسول اللّه صلے اللّه علیه و آله وسلم اوفرمائیل. اوس لا مونږ تحریر ختم کړے نه دے. د اوس نه پـه دے شـرطونو عمل څنګه ضروري کیدیشی سهیل اووے پـه اللّه م دے قسم وي مونږ تاسره پـه هیڅ خبره صلح نـه کـوو. رسول اللّه صلے الله علیه و اله وسلم وفرمائیل ښه د دے یو سړي ته ماله اجازت راکړه. سهیل اووے زه هـر ګز دده اجازت نه درکوم. حضور صلے اللّه علیه و آلهٖ وسلم اوفرمائیل نه ذَده اجازت راکړه هغه اووے زه نـه درکوم مکـرز اووے زه دده اجازت تاسوله درکوم. ابوجندل اووے مسلمانانو' آیا زه به مشر کانوته واپس کولے شم. حالانکه زه مسلمان شوے یم تاسو نه ګوري چه ما ذَ اسلام ذَ پاره څه څه مصیبتونه زغملے دي. حقیقت کښې ابوجندل ته ذَ خدائے په لار کښې ډیر سخت تکلیفونه ورکړے شوے وو. حضرت عمر فاروق وائي زهٔ رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه و آلهٖ وسلم له راغلم او عرض م اوکه آیا تاسو د اللّٰه ریښتنے نبي نه ئے. حضور صلے اللّٰه علیه و آلهٖ وسلم اوفرمائیل ولے نه' زه ضرور ریښتنے نبي یم' ما عرض اوکه آیا مونږ په حقه او زمونږ دشمن په باطله نه دے حضور صلے اللّٰه علیه و آلهٖ وسلم وفرمائیل ولے نه تاسو په حقه ئے. ما عرض اوکه. بیا دے مونږ خپل دین کښې ولے دباؤ شو. حضور صلے اللّٰه علیه و آلهٖ وسلم اوفرمائیل' زه ذَ اللّٰه رسول یم ذَ هغه نافرماني نه کوم. هغه زمونږ مددګار دے. ما عرض اوکه آیا تاسو به مونږ ته نه وئیلے چه مونږ به کعبے ته ځو او ذَ هغے طواف به کوو حضورؐ اوفرمائیل آیا ما درته دا وئیلي وو چه دے کال له

قَالَ بَلٰى قُلْتُ فَلِمَ نُعْطِي الدَّنِيَّةَ فِي دِيْنِنَا اِذًا قَالَ اِنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ وَلَسْتُ اَعْصِيْهِ وَهُوَ نَاصِرِيْ قُلْتُ اَوَلَيْسَ كُنْتَ تُحَدِّثُنَا اَنَّا سَنَأْتِي الْبَيْتَ فَنَطُوْفُ بِهٖ قَالَ بَلٰى افَاَخْبَرْتُكَ اَنَّا نَأْتِيْهِ الْعَامَ قَالَ قُلْتُ لَا قَالَ فَاِنَّكَ اٰتِيْهِ وَمُطَوِّفٌ بِهٖ قَالَ فَاَتَيْتُ اَبَا بَكْرٍ فَقُلْتُ يَا اَبَا بَكْرٍ اَلَيْسَ هٰذَا نَبِيَّ اللّٰهِ حَقًّا قَالَ بَلٰى قُلْتُ اَلَسْنَا عَلَى الْحَقِّ وَعَدُوُّنَا عَلَى الْبَاطِلِ قَالَ بَلٰى قُلْتُ فَلِمَ نُعْطِي الدَّنِيَّةَ فِيْ دِيْنِنَا اِذًا قَالَ اَيُّهَا الرَّجُلُ اِنَّهٗ لَرَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَيْسَ يَعْصِي رَبَّهٗ وَهُوَ نَاصِرُهٗ فَاسْتَمْسِكْ بِغَرْزِهٖ فَوَاللّٰهِ اِنَّهٗ عَلَى الْحَقِّ قُلْتُ اَلَيْسَ كَانَ يُحَدِّثُنَا اَنَّا سَنَاْتِي الْبَيْتَ وَنَطُوْفُ بِهٖ قَالَ بَلٰى اَفَاَخْبَرَكَ اَنَّكَ تَاْتِيْهِ الْعَامَ قُلْتُ لَا قَالَ فَاِنَّكَ اٰتِيْهِ وَمُطَوِّفٌ بِهٖ قَالَ الزُّهْرِيُّ قَالَ عُمَرُ فَعَمِلْتُ لِذٰلِكَ اَعْمَالًا قَالَ فَلَمَّا فَرَغَ مِنْ قَضِيَّةِ الْكِتَابِ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِاَصْحَابِهٖ قُوْمُوْا فَانْحَرُوْا ثُمَّ احْلِقُوْا قَالَ فَوَاللّٰهِ

به خو؟ ما وې چه نه. حضور صلی الله علیه و اله وسلم و فرمائیل ته به کعبې ته ځې او د هغې طواف به کوې حضرت عمرؓ وائي بیا زه د حضور صلی الله علیه و اله وسلم نه ابوبکرؓ له ورغلم او هغه ته م اووې اې ابوبکر محمد صلی الله علیه و اله وسلم د الله پاک ریښتنې نبي نه دې ابوبکرؓ اووې ولې نه بیشکه هغه د الله رسول دې ما اووې آیا مونږ په حقه او خمونږ دشمن په باطله نه دې هغه اووې ولې نه، دا خبره درست ده. ما اووې بیا دې ولې مونږ د خپل دین په بره کښې دباؤ شو، نو ابوبکرؓ اووې اې عمرؓ بیشکه دې د خدائې تعالي رسول دې. او د خپل پروردګار نافرماني نه کوي، او الله د هغه مددګار دې. نو ته د هغه مخالفت مکوه. ځکه چه قسم په خدائې هغه په حقه دې ما اووې آیا حضورؐ به مونږ ته نه وئیلې چه مونږ به کعبې ته ځو، او د هغې طواف به کوو، نو ابوبکرؓ اووې او وئیلې ئې وو. خو آیا تاسو ته ئې دا هم وئیلې وو، چه ته به سږکال کعبې ته ځې. ما اووې دا خوئې نه وو. وئیلې ابوبکرؓ اووې، نو بیا به ته ضرور کعبې ته ځې، او د هغې طواف به کوې زهري وائي. فاروق اعظمؓ به وئیلې ددې ګستاخۍ په کفاره کښې ما ډیر عبادتونه اوکړل. د راوي بیان دې. چه کوم وخت د صلحنامې د تحریر نه فراغت اوشو. نو رسول الله صلی الله علیه و اله وسلم صحابه ؓ ته اوفرمائیل پاسئې سرونه وُخریئې. او قرباني اوکړئې. راوي وائي په الله م د قسم وي. هیڅوک د هغوي نه پانڅ سیدل. تر دې چه حضور صلی الله علیه و اله وسلم درې ځله دغسې اوفرمائیل چه هیڅوک د هغوي نه پانه سیدل نو حضور صلی الله علیه

مَا قَامَ مِنْهُمْ رَجُلٌ حَتّٰى قَالَ ذٰلِكَ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ فَلَمَّا لَمْ يَقُمْ مِنْهُمْ اَحَدٌ دَخَلَ عَلٰى اُمِّ سَلَمَةَ فَذَكَرَ لَهَا مَا لَقِيَ مِنَ النَّاسِ فَقَالَتْ اُمُّ سَلَمَةَ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ اَتُحِبُّ ذٰلِكَ اخْرُجْ ثُمَّ لَا تُكَلِّمْ اَحَدًا مِنْهُمْ كَلِمَةً حَتّٰى تَنْحَرَ بُدْنَكَ وَ تَدْعُوَ حَالِقَكَ فَيَحْلِقَكَ فَخَرَجَ فَلَمْ يُكَلِّمْ اَحَدًا مِّنْهُمْ حَتّٰى فَعَلَ ذٰلِكَ فَنَحَرَ بُدْنَهُ وَ دَعَا حَالِقَهُ فَحَلَقَهُ فَلَمَّا رَاَوْا ذٰلِكَ قَامُوْا فَنَحَرُوْا وَ جَعَلَ بَعْضُهُمْ يَحْلِقُ بَعْضًا حَتّٰى كَادَ بَعْضُهُمْ يَقْتُلُ بَعْضًا غَمًّا ثُمَّ جَآءَهُ نِسْوَةٌ مُّؤْمِنَاتٌ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اِذَا جَآءَكُمُ الْمُؤْمِنٰتُ مُهٰجِرٰتٍ فَامْتَحِنُوْهُنَّ حَتّٰى بَلَغَ بِعِصَمِ الْكَوَافِرِ فَطَلَّقَ عُمَرُ يَوْمَئِذٍ امْرَاَتَيْنِ كَانَتَا لَهُ فِي الشِّرْكِ فَتَزَوَّجَ اِحْدٰهُمَا مُعَاوِيَةُ بْنُ اَبِيْ سُفْيَانَ وَالْاُخْرٰى صَفْوَانُ بْنُ اُمَيَّةَ ثُمَّ رَجَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَى الْمَدِيْنَةِ فَجَآءَهُ اَبُوْ بَصِيْرٍ رَجُلٌ مِّنْ قُرَيْشٍ وَّهُوَ مُسْلِمٌ فَاَرْسَلُوْا

و اله وسلم خپلې بي بي اُم سلمهؓ له ورغے، او هغې ته ئے دا ټوله واقعه بیان کړه. کومه چه خلقو سره حضور ته پېښه شوې وه. ام سلمه اووے: یا رسول اللّٰه! آیا تاسو دا خبره غواړئ؟ نو بیا ده تاسو لږ بهر ته تشریف یوسئ، او هغوي کښې چا سره خبرے مه کوئ تر دے چه تاسو د خپلې قربانۍ څناور قرباني کړئ، سر خریونکے راوغواړئ چه تاسو د سر ویښتهٔ صاف کړي. نو حضور بهر ته راغلو چا سره ئے څهٔ خبره ونکړه، تر دے چه حضور صلی اللّٰه علیه و اله وسلم هر څه پوره کړل. او سرئے اوخریلو صحابهؓ چه دا اولیدل، نو پاسیدل، قرباني ئے وکړه، ذ یو بل سر ئے اوخریلو دا د ډیرے پرېشانۍ په وجه عین ممکنه وه چه یو بل اووهي دے نه پس حضور صلی اللّٰه علیه و اله وسلم ته څهٔ مسلمانانې ښځے راغلے، نو اللّٰه پاک دا آیت نازل کړو: یاایها الذین امنو اذا جاء کم المؤمنات مهاجرات: اے مسلمانانو کله چه تاسو ته مسلمانې ښځے په هجرت راشي، نو هغوي اؤ آزمائې، دَ هغې نه وړاندے دادي، چه تاسو هغوي کافرو ته مه واپس کوئے بعصم الکوافر پورے: (دَ دے پوره آیت مطلب دا دے، چه کافرے ښځے چه ستاسو نکاح کښې دي، هغه خپلے نکاح کښې مه ساتے) حضرت عمرؓ دوه مشرکے ښځے چه دَ هغه په نکاح کښې وے، په هغه ورځ طلاقې کړے. هغې کښې یوے سره معاویه بن ابوسفیان اوبلے سره صفوان بن امیه نکاح او کړله. بیا رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه و اله وسلم مدینے ته واپس راغے، نو ابو البصیر چه قریشي نسل وو، حضور صلی اللّٰه علیه وسلم ته راغے، هغه مسلمان شوے وو، کفارو هغه پسے ورستو

فِي طَلَبِهِ رَجُلَيْنِ فَقَالُوا الْعَهْدَ الَّذِي جَعَلْتَ لَنَا فَدَفَعَهُ إِلَى الرَّجُلَيْنِ فَخَرَجَا بِهِ حَتَّى بَلَغَا ذَا الْحُلَيْفَةِ فَنَزَلُوا يَأْكُلُونَ مِنْ تَمْرٍ لَهُمْ فَقَالَ أَبُو بَصِيرٍ لِأَحَدِ الرَّجُلَيْنِ وَاللَّهِ إِنِّي لَأَرَى سَيْفَكَ هٰذَا يَا فُلَانُ جَيِّدًا فَاسْتَلَّهُ الْآخَرُ فَقَالَ أَجَلْ وَاللَّهِ إِنَّهُ لَجَيِّدٌ لَقَدْ جَرَّبْتُ بِهِ ثُمَّ جَرَّبْتُ فَقَالَ أَبُو بَصِيرٍ أَرِنِي أَنْظُرْ إِلَيْهِ فَأَمْكَنَهُ مِنْهُ فَضَرَبَهُ حَتَّى بَرَدَ وَفَرَّ الْآخَرُ حَتَّى أَتَى الْمَدِينَةَ فَدَخَلَ الْمَسْجِدَ يَعْدُو فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ رَآهُ لَقَدْ رَأَى هٰذَا ذُعْرًا فَلَمَّا انْتَهَى إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قُتِلَ وَاللَّهِ صَاحِبِي وَإِنِّي لَمَقْتُولٌ فَجَاءَ أَبُو بَصِيرٍ فَقَالَ يَا نَبِيَّ اللَّهِ قَدْ وَاللَّهِ أَوْفَى اللَّهُ ذِمَّتَكَ قَدْ رَدَدْتَنِي إِلَيْهِمْ ثُمَّ أَنْجَانِي اللَّهُ مِنْهُمْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَيْلُ أُمِّهِ مِسْعَرُ حَرْبٍ لَوْ كَانَ لَهُ أَحَدٌ فَلَمَّا سَمِعَ ذٰلِكَ عَرَفَ أَنَّهُ سَيَرُدُّهُ إِلَيْهِمْ فَخَرَجَ حَتَّى أَتَى سِيفَ

دوه سړي راوليږل، او حضور صلي الله عليه وسلّم ته ئے اووے چه مونږ سره کومه معاهده تاسو کړے ده، د هغے خيال اوساتئے. نو حضور صلي الله عليه وسلّم ابوالبصير هغے دوو سړو ته حواله که. کوم وخت چه ذوالحليفه ته راورسيدل. نو هغوي راکوز شو، خپلے چوهارے خوړل ئے شروع کړل ابوالبصير هغوي کښې يو سړي ته اووے اے فلانيه. قسم په خدائے، ستا توره خو ډيره اعلي معلوميږي. هغے سړي خپله توره د تيکي نه راوښکله اووے ونيال. او. قسم په خدائے. دا، ډيره ښه توره ده. دا ما خو څو ځايه آزمائيلے ده. ابوالبصير ورته اووے. ماته به ئې لږه اوښائے چه زۀ ئے هم اووينم، نو هغه توره، هغه ابوالبصير له ورکړه. ابوالبصير هم په هغه توره هغه قتل کړلو، او هغه دونم سړے اوتښتيدلو، او مدينے ته په منډه منډه راغے. جمات کښې داخل شولو. رسول الله صلي الله عليه وسلّم چه هغه اوليد. نو وے فرمائيل. چه دے څه خوفزده کړے دے، کوم وخت چه هغه رسول الله صلي الله عليه وسلّم ته راورسيد، نو هغه اووے. په خدائے م دے قسم وي خما ملګرے قتل کړے شو، او که لږ څه نور وے نو زۀ به هم قتل شوے ووم. بيا ابوالبصير راغے. او هغه اووے. يا رسول الله. قسم په خدائے. الله تاسو بري الذمه کړلے. تاسو خو، زۀ کفارو طرف ته استولے ووم. ليکن الله ماله د دے کفارونه خلاصي راکه. په دے خبره رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. داخو، د جنګ اور دے. که څوک د ده مددګار وے. نو دے اور به بړق وهلے وو. ابوالبصير چه دا خبره واوريده. نو پوهه شو، چه حضور صلي الله عليه وسلّم بيا هغه کافرو،

الْبَحْرِ قَالَ وَ يَنْقَلِبُ مِنْهُمْ اَبُوْ
جَنْدَلِ ابْنُ سُهَيْلٍ فَلَحِقَ بِاَبِيْ
بَصِيْرٍ فَجَعَلَ لَا يَخْرُجُ مِنْ
قُرَيْشٍ رَجُلٌ قَدْ اَسْلَمَ اِلَّا لَحِقَ
بِاَبِيْ بَصِيْرٍ حَتّٰى اجْتَمَعَتْ
مِنْهُمْ عِصَابَةٌ فَوَاللّٰهِ مَا يَسْمَعُوْنَ
بِعِيْرٍ خَرَجَتْ لِقُرَيْشٍ اِلَى الشَّامِ
اِلَّا اعْتَرَضُوْا لَهَا فَقَتَلُوْهُمْ وَ
اَخَذُوْا اَمْوَالَهُمْ فَاَرْسَلَتْ قُرَيْشٌ
اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ تُنَاشِدُهُ بِاللّٰهِ وَالرَّحِمِ
لَمَّا اَرْسَلَ فَمَنْ اَتَاهُ فَهُوَ اٰمِنٌ
فَاَرْسَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَيْهِمْ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ
تَعَالٰى وَهُوَ الَّذِىْ كَفَّ اَيْدِيَهُمْ
عَنْكُمْ وَ اَيْدِيَكُمْ عَنْهُمْ بِبَطْنِ
مَكَّةَ مِنْ بَعْدِ اَنْ اَظْفَرَكُمْ
عَلَيْهِمْ حَتّٰى بَلَغَ الْحَمِيَّةَ
حَمِيَّةَ الْجَاهِلِيَّةِ وَ كَانَتْ
حَمِيَّتُهُمْ اَنَّهُمْ لَمْ يَقِرُّوْا اَنَّهُ نَبِيُّ
اللّٰهِ وَلَمْ يَقِرُّوْا بِبِسْمِ اللّٰهِ
الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ وَ حَالُوْا بَيْنَهُمْ
وَ بَيْنَ الْبَيْتِ وَ قَالَ عُقَيْلٌ
عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ عُرْوَةُ فَاَخْبَرَتْنِيْ
عَائِشَةُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَمْتَحِنُهُنَّ

ته واپس کوي' نو هغه روان شو' تردې چه د' درياب غاړې ته اورسيدو' او د هغې طرف نه ابوجندل بن سهيل هم راروان وو' لار کښې هغه هم ابوالبصير سره يوځائے شو تردې چه کوم قريشي به مسلمانيده نو ابوالبصير سره به يوځائے کيده' آخر دا چه د هغوي يوه ډله جوړه شوه قسم په خدائے' چه کله به هغوي د' يوې قافلې په نسبت واوريدل چه هغه شام طرف ته ځي نو هغې ته به سو کښې کيناستل' د هغې سړي به ئې قتل کړل او مال به ئې لوټ کړلو. آخر قريشو رسول الله صلي الله عليه وسلّم ته سړے راوليږلو' او حضور صلي الله عليه وسلّم ته ئې د' الله او د خپل قرابت واسطه ورکړله' چه تاسو ابوالبصير د دې خبرونه منع کړئې. مخکښې د پاره چه کوم سړے تاسوته مسلمان درځي' نو هغه بے خوفه دے' نو رسول الله صلي الله عليه وسلّم ابوالبصير وغيره منع کړل' او الله پاک آيت: وهو الّذى الخ: يعني الله هغه ذات دے' چه هغه د کافرو لاس له تاسونه او ستاسو لاس د هغوي نه منع کړلو. حمية الجاهلية پورے نازل کړلو' او د هغوي د تعصب دا حال ئې ظاهر کړلو' چه هغوي نه د حضور صلي الله عليه وسلّم د نبي کيدو مضمون قائم اوساته' او نه ئې بسم الله الرحمن الرحيم قائم اوساتله' بلکه د مسلمانانو او کعبې مينځ کښې حائل شو. عقيل د زهري نه راوي دے' عروه اووے' ماته بي بي عائشے اوفرمائيل' چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم به د هغې ښځو چه مسلمانے به شوے' او راتلے به' امتحان اخستلو. او مونږ ته دا خبر هم رارسيدلے دے' چه کوم وخت الله تعالي دا حکم نازل کړلو' چه کافرو په خپلو هغې بيبيانو'

وَ بَلَغَنَا اَنَّهُ لَمَّا اَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى اَنْ يَرُدُّوْا اِلَى الْمُشْرِكِيْنَ مَا اَنْفَقُوْا عَلٰى مَنْ هَاجَرَ مِنْ اَزْوَاجِهِمْ وَ حَكَمَ عَلَى الْمُسْلِمِيْنَ اَنْ لَّا يُمْسِكُوْا بِعِصَمِ الْكَوَافِرِ اَنَّ عُمَرَ طَلَّقَ امْرَاَتَيْنِ قُرَيْبَةَ بِنْتَ اَبِيْ اُمَيَّةَ وَابْنَةَ جَرْوَلِ الْخُزَاعِيِّ فَتَزَوَّجَ قُرَيْبَةَ مُعَاوِيَةُ وَ تَزَوَّجَ الْاُخْرٰى اَبُوْ جَهْمٍ فَلَمَّا اَبَى الْكُفَّارُ اَنْ يُقِرُّوْا بِاَدَاءِ مَا اَنْفَقَ الْمُسْلِمُوْنَ عَلٰى اَزْوَاجِهِمْ اَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى وَ اِنْ فَاتَكُمْ شَيْءٌ مِّنْ اَزْوَاجِكُمْ اِلَى الْكُفَّارِ فَعَاقَبْتُمْ وَالْعَقْبُ مَا يُؤَدِّى الْمُسْلِمُوْنَ اِلٰى مَنْ هَاجَرَتْ اِمْرَاَتُهُ مِنَ الْكُفَّارِ فَاَمَرَ اَنْ يُعْطٰى مَنْ ذَهَبَ لَهُ زَوْجٌ مِّنَ الْمُسْلِمِيْنَ مَا اَنْفَقَ مِنْ صَدَاقِ نِسَاءِ الْكُفَّارِ اللَّاتِيْ هَاجَرْنَ وَمَا نَعْلَمُ اَحَدًا مِّنَ الْمُهَاجِرَاتِ ارْتَدَّتْ بَعْدَ اِيْمَانِهَا وَ بَلَغَنَا اَنَّ اَبَا بَصِيْرِ بْنِ اَسِيْدِ الثَّقَفِيَّ قَدِمَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُؤْمِنًا مُهَاجِرًا فِى الْمُدَّةِ فَكَتَبَ الْاَخْنَسُ بْنُ شُرَيْقٍ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى

چه هجرت ئې کړې دې او مسلمانې شوې دي، نو خرچ کړې دې، هغه ټول خرچ دې دا مسلمانان دې مشرکانوله ورکړي. او مسلمانانوته ئې دا حکم ورکړلو چه د کافرو ښځو عصمت دې نه بندوي. دغه وخت حضرت عمرؓ خپلو دوو بيبيانو يوه قريبه بنت اميه او بله بنت جرول خزاعي له طلاق ورکړلو. قريبه سره خو معاويه نکاح اوکړله، او بلې سره ابو جهم نکاح اوکړله. او کافرو د دې خبرې نه انکار اوکه، چه څه مسلمانانو په خپلو بيبيانو خرچ کړې دې، که هغوي کافروله لاړې شي، نو هغه خرچ د مسلمانانوته واپس کړي، نو دغه وخت اللّٰه پاک دا آيت نازل کړلو: و ان فاتکم الخ (يعني که ستاسو څه ښځې کافروله لاړې شي، نو تاسو هم معاوضه واخلئ، او معاوضه دا وه، چه د کافرو ښځې به مسلمانې شوې او په هجرت به راغلې، د هغې خرچ به مسلمانانو واپس کولو. اوس هغوي ته حکم اوشو چه د کافرو د هغې ښځو چه په هجرت راغلې دي، د هغوي مهر وغيره هر څه چه حاصل شوې وي، هغه دې هغه مسلمان ته ورکړې شي چه د هغه بي بي کافروله تلې وي، او مونږ ته نه ده معلومه چه هجرت کونکو نه څوک ښځه د مسلمانيدونه پس مرتده شوې وي، او مونږ ته دا خبر هم رارسيدلې دې چه ابوالبصير بن اسيد ثقفي مسلمانيدو سره رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ته په هجرت راغلې دې. د صلح هغې موده کښې اخنس بن شريق، رسول اللّٰهؐ ته خط اوليکه، چه هغې کښې ئې ابوالبصير د حضورؐ

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْأَلُهُ أَبَا بَصِيرٍ فَذَكَرَ الْحَدِيثَ.

نه واپس غوښتې وو دې نه پس هغه پوره حدیث بیان کړو.

**بـاب۵ : الشُّرُوطِ فِي الْقَرْضِ.**

**بـاب۵ : قـرض کـښې د شـرط لـګولـو بیان.**

۵ : وَ قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِي جَعْفَرُ بْنُ رَبِيعَةَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ هُرْمُزَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ ذَكَرَ رَجُلًا سَأَلَ بَعْضَ بَنِيَّ إِسْرَائِيلَ أَنْ يُسْلِفَهُ أَلْفَ دِينَارٍ فَدَفَعَهَا إِلَيْهِ إِلَى أَجَلٍ مُسَمًّى وَ قَالَ ابْنُ عُمَرَ وَعَطَاءٌ إِذَا أَجَّلَهُ فِي الْقَرْضِ جَازَ.

۵ : لیث. جعفر بن ربیعه. عبدالرحمن بن هرمز او د ابوهریرهؓ په ذریعه د رسول روایت کوي. چه حضورﷺ د بني اسرائیلو د یو سړي ذکر او کړه چه هغه د بني اسرائیلو نه یو زر ۱۰۰۰ دینار یو مودې د پاره قرض اخستې وو حضرت ابن عمرؓ او عطا وائي، که قرض کښې څوک موده مقرر کړي نو دا درست دي.

**بـاب۶ : الْمُكَاتَبِ وَمَا لَا يَحِلُّ مِنَ الشُّرُوطِ الَّتِي تُخَالِفُ كِتَابَ اللّٰهِ.**

**بـاب۶ : د مکاتب او ناجائز شرطونو بیان چه د کتاب اللّٰه خلاف دي.**

۶ : وَ قَالَ جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ فِي الْمُكَاتَبِ شُرُوطُهُمْ بَيْنَهُمْ وَ قَالَ ابْنُ عُمَرَ أَوْ عُمَرُ كُلُّ شَرْطٍ خَالَفَ كِتَابَ اللّٰهِ فَهُوَ بَاطِلٌ وَّ إِنِ اشْتُرِطَ مِائَةَ شَرْطٍ وَ قَالَ أَبُو عَبْدِ اللّٰهِ يُقَالُ عَنْ كِلَيْهِمَا عَنْ عُمَرَ وَ ابْنِ عُمَرَ.

۶ : جابر بن عبداللّٰه د مکاتب باره کښې وئیلي دي. چه د هغوي شرطونه د هغوي او د هغوي د مالکانو مینځ کښې څه فیصله اوشي هغه صحیح دي. او ابن عمرؓ یا حضرت عمرؓ وئیلي دي چه کوم شرط د کتاب اللّٰه مخالف وي هغه باطل دې اګر که شرط کونکې په سوونو شرطونه اوکړي. امام بخاريؒ اووې دا قول حضرت عمرؓ او ابن عمرؓ دواړو نه روایت دې.

۷ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ يَحْيٰى عَنْ عَمْرَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ أَتَتْهَا بَرِيرَةُ تَسْأَلُهَا فِي كِتَابَتِهَا فَقَالَتْ إِنْ شِئْتِ

۷ : علي بن عبداللّٰه. سفیان. یحیٰی. د عمره په ذریعه د بي بي عائشېؓ نه روایت دې چه بریره د خپل کتابت روپئې ورکولو کښې مدد د پاره هغې له راغله. نو هغې ورته اووې، که ته غواړې. نو زه به ستا مالکانو ته

اُعْطِيْتُ اَهْلَكِ وَ يَكُوْنُ الْوَلَاءُ لِيْ فَلَمَّا جَاءَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَكَرْتُهُ ذٰلِكَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ابْتَاعِيْهَا فَاَعْتِقِيْهَا فَاِنَّمَا الْوَلَاءُ لِمَنِ اَعْتَقَ ثُمَّ قَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْمِنْبَرِ فَقَالَ مَا بَالُ اَقْوَامٍ يَشْتَرِطُوْنَ شُرُوْطًا لَيْسَتْ فِيْ كِتَابِ اللّٰهِ مَنِ اشْتَرَطَ شَرْطًا لَيْسَ فِيْ كِتَابِ اللّٰهِ فَلَيْسَ لَهُ وَ اِنِ اشْتَرَطَ مِائَةَ شَرْطٍ.

پوره قیمت ور کړم. هغې نه پس به تا ازاده کړم او ورثه (ترکه) به ماته حاصلیږي. بیا چه رسول تشریف راوړلو نو ما حضرت ته ددې ذکر او که رسول او فرمائیل چه هغه (یعني بریره) خرید کړه بیا هغه آزاده کړه او ولاء خو به هغې چاته حاصلیږي چه هغه آزاده کړه. هغې نه پس رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم په منبر اودریدلو وې فرمائیل خلق داسې شرطونه ولې لږوي. چه کتاب اللّٰه کښې نشته. کوم سړې چه داسې شرط وکړي چه هغه کتاب اللّٰه کښې نه وي. نو هغه به په شرط نه حسابیږي اګر کۀ هغه سل شرطونه وکړي.

**باب۷:** مَا يَجُوْزُ مِنَ الْاِشْتِرَاطِ وَالثُّنْيَا فِي الْاِقْرَارِ وَالشُّرُوْطِ الَّتِيْ يَتَعَارَفُهَا النَّاسُ بَيْنَهُمْ وَ اِذَا قَالَ مِائَةٌ اِلَّا وَاحِدَةً اَوْ ثِنْتَيْنِ.

**باب۷:** ذ خلقو مینځ کښې ذ متعارف شرطونو اقرار کښې استثنیٰ او ذ شرط لږولو ذ جواز بیان او که یو سړې اووائي چه ما باندې یو یا دوه درهم نه سوا سل درهم ذ فلاني سړي واجب دي.

۸: وَ قَالَ ابْنُ عَوْفٍ عَنِ ابْنِ سِيْرِيْنَ قَالَ رَجُلٌ لِكَرِيِّهِ ارْحَلْ رِكَابَكَ فَاِنْ لَّمْ اَرْحَلْ مَعَكَ يَوْمَ كَذَا اَوْ كَذَا فَلَكَ مِائَةُ دِرْهَمٍ فَلَمْ يَخْرُجْ فَقَالَ شُرَيْحٌ مَنْ شَرَطَ عَلٰى نَفْسِهٖ طَائِعًا غَيْرَ مُكْرَهٍ فَهُوَ عَلَيْهِ وَ قَالَ اَيُّوْبُ عَنِ ابْنِ سِيْرِيْنَ اِنَّ رَجُلًا بَاعَ طَعَامًا وَّ قَالَ اِنْ لَّمْ اٰتِكَ الْاَرْبِعَاءَ فَلَيْسَ بَيْنِيْ وَ بَيْنَكَ بَيْعٌ فَلَمْ يَجِئْ فَقَالَ شُرَيْحٌ لِلْمُشْتَرِيْ اَنْتَ اَخْلَفْتَ

۸: ابن عون. ابن سیرین نه روایت کوي هغه اووې. یو سړي خپل کرائې والا ته اُوې چه ته خپلې سورلۍ کس کړه کۀ زۀ فلانې فلانې ورځ باندې ستا ملګرتیا کښې لاړ نشم. نو تاله به سل درهم درکړم. لیکن هغۀ په هغه ورځ لانه ړلو شریح اووې چه کوم سړې خوشۍ سره بغیر جبر نه خپل ځان باندې څه شرط عائد کړي. نو هغه به په هغۀ لازم شي. ایوب ذ ابن سیرین نه نقل کړې دې چه یو سړي څۀ غله خرڅه کړه او مشتري اووې که زه د چار شنبې په ورځ تاله رانشم. نو زما او ستا مینځ کښې به بیع باقي پاتې نشي بیا هغه د چار شنبې په ورځ رانغې. نو شریح مشتري ته اووې. چه تا وعده

فَقَضٰى عَلَيْهِ.

٩ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِىْ هُرَيْرَةَؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ لِلّٰهِ تِسْعَةً وَّ تِسْعِيْنَ اِسْمًا مِائَةً اِلَّا وَاحِدًا مَّنْ اَحْصَاهَا دَخَلَ الْجَنَّةَ.

بَابٌ ٨: الشُّرُوْطِ فِى الْوَقْفِ.

١٠ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الْاَنْصَارِيُّ حَدَّثَنَا ابْنُ عَوْفٍ قَالَ اَنْبَاَنِىْ نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ عُمَرَ ابْنَ الْخَطَّابِ اَصَابَ اَرْضًا بِخَيْبَرَ فَاَتَى النَّبِىَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَاْمِرُهُ فِيْهَا فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّىْ اَصَبْتُ اَرْضًا بِخَيْبَرَ لَمْ اُصِبْ مَالًا قَطُّ اَنْفَسَ عِنْدِىْ مِنْهُ فَمَا تَاْمُرُ بِهٖ قَالَ اِنْ شِئْتَ حَبَّسْتَ اَصْلَهَا وَ تَصَدَّقْتَ بِهَا قَالَ فَتَصَدَّقَ بِهَا عُمَرُ اَنَّهٗ لَا يُبَاعُ وَلَا يُوْهَبُ وَلَا يُوْرَثُ وَ تَصَدَّقَ بِهَا فِى الْفُقَرَآءِ وَ فِى الْقُرْبٰى وَ فِى الرِّقَابِ وَ فِى سَبِيْلِ اللّٰهِ وَابْنِ السَّبِيْلِ وَالضَّيْفِ لَا جُنَاحَ عَلٰى مَنْ وَّلِيَهَا اَنْ يَّاْكُلَ

خلافي وکړه نو ددې خلاف هغه فيصله ور کړه.

٩ : ابو اليمان. شعيب. ابو الزناد. اعرج. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي چه رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل' د الله تعالي يو کم سل نومونه دي. څوک چه دا ياد کړي نو هغه به جنت کښې داخليږي.

باب ٨: وقف کښې دَ شرطونو لړولو بيان.

١٠ : قتيبه بن سعيد. محمد بن عبدالله انصاري. ابن عون. د نافع په ذريعه د حضرت ابن عمرؓ نه روايت کوي چه حضرت عمرؓ ابن الخطاب ته خيبر کښې څۀ زمکه ورکړې شوه' نو هغۀ رسول الله صلي الله عليه وسلّم ته د هغېپه باره کښې مشوره اخستلو دَ پاره راغې' اووې وئيل' يا رسول الله صلعم ماته خيبر کښې يو داسې قسم زمکه حاصله شوې ده چه ما ددې نه زيات نفيس (اعلي) مال هيڅکله نۀ دې بيامندلې' دې باره کښې تاسوٌ ماته څۀ حکم راکوئ. حضورؐ ورته اوفرمائيل کۀ ته غواړې نو اصل اُوئې خپلې قبضه کښې اوساته او دَ هغې ميوه صدقه کړه. حضرت عمرؓ وائي ما هغه صدقه کړه په دې شرط چه هغه به نه شي خرڅولې. او نه به هبه کولې شي او نه به ورثه کښې ورکولې شي بلکه فقيرانو' رشته دارانو' د غلامانو آزادولو کښې' د مسافرو او ميلمنو په صرف کښې به راوستې شي. او د متولي د پاره څه حرج نشته چه هغه د دستور موافق د هغې نه څه واخلي' او په چا غير متمول ئې اوخوروي. بيا

مِنْهُ بِالْمَعْرُوفِ وَ يُطْعِمَ غَيْرَ مُتَمَوِّلٍ قَالَ فَحَدَّثْتُ بِهِ ابْنَ سِيْرِيْنَ فَقَالَ غَيْرَ مُتَأَثِّلٍ مَالًا.

ما دا حديث ابن سيرين ته بيان كه، هغه اووے دا هم شرط دے چه هغه متولي د څه مال د جمع كولو اراده نه لري.

# كِتَابُ الْوَصَايَا

# (د وصيتونو بيان)

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

بَابٌ ۹ : الْوَصَايَا وَ قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَصِيَّةُ الرَّجُلِ مَكْتُوْبَةٌ عِنْدَهُ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى كُتِبَ عَلَيْكُمْ اِذَا حَضَرَ اَحَدَكُمُ الْمَوْتُ اِنْ تَرَكَ خَيْرَا نِ الْوَصِيَّةُ لِلْوَالِدَيْنِ وَالْاَقْرَبِيْنَ بِالْمَعْرُوْفِ حَقًّا عَلَى الْمُتَّقِيْنَ فَمَنْ بَدَّلَهُ بَعْدَ مَا سَمِعَهُ فَاِنَّمَا اِثْمُهُ عَلَى الَّذِيْنَ يُبَدِّلُوْنَهُ اِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ فَمَنْ خَافَ مِنْ مُّوْصٍ جَنَفًا اَوْ اِثْمًا فَاَصْلَحَ بَيْنَهُمْ فَلَا اِثْمَ عَلَيْهِ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ جَنَفًا مَيْلًا مُتَجَانِفٌ مَائِلٌ.

باب ۹ : د وصيتونو بيان. او د حضور صلي الله عليه وسلم ارشاد گرامي چه د وصيت كونكي وصيت نامه ليكلے پكار ده، او فرمان الهي چه كله تاسو كښے څوك په حق رسي (يعني مړ كيږي) او مال پريږدي، نو د مور پلار او رشته دارانو (خپلوانو) په حق كښے په تاسو وصيت كول فرض دي او پرهيزگارانو د پاره داسے ضروري دي، كوم سړے چه د وصيت كولو نه پس هغه بدل كړي نو د هغے گناه په بدلونكي ده، بے شكه الله تعالي اوريدونكے او پوهيدونكے دے. او كوم سړے چه د وصيت كونكي د طرف نه د حق تلفي يا طرفداري ويره لري او د هغوي مينځ كښے صلح اوكړي، نو په هغه هيڅ گناه نشته، بيشكه الله تعالي بخښونكے مهربانه دے. د جنف نه مراد دے بنكته كيدل (جهك جانا) متجانف (جهكنے والا) ددے نه ماخوذ دے.

۱ ۱ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا حَقُّ امْرِئٍ مُّسْلِمٍ لَهُ شَيْءٌ يُوْصِيْ فِيْهِ

۱ ۱ : عبدالله بن يوسف. مالك. نافع. حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، هيڅ مسلمان د پاره چه هغه سره د وصيت لائق څه مال وي، دا جائز نه دي، چه دوه شپے هم بغير ددے نه پاتے شي چه وصيت دے

يَبِيتُ لَيْلَتَيْنِ اِلَّا وَصِيَّتُهُ مَكْتُوبَةٌ عِنْدَهُ تَابَعَهُ مُحَمَّدُ بْنُ مُسْلِمٍ عَنْ عُمَرَوَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

هغه سره ليکلے نۀ وي. امام مالک سره دا حديث محمد بن مسلم هم د عمرو بن دينار نه' هغۀ د ابن عمر نه او هغه د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه روايت کړے دے.

۱۲ : حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيمُ بْنُ الْحَارِثِ حَدَّثَنَا يَحْيٰى بْنُ اَبِيْ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ مُعَاوِيَةَ الْجُعْفِيُّ حَدَّثَنَا اَبُوْ اِسْحَاقَ عَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ خَتَنِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَخِيْ جُوَيْرِيَةَ بِنْتِ الْحَارِثِ قَالَ مَا تَرَكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَ مَوْتِهٖ دِرْهَمًا وَّلَا دِيْنَارًا وَّلَا عَبْدًا وَّلَا اَمَةً وَّلَا شَيْئًا اِلَّا بَغْلَتَهُ الْبَيْضَاءَ وَلَا سَلَاحَهُ وَ اَرْضًا جَعَلَهَا صَدَقَةً.

۱۲ : ابراهيم بن حارث. يحيي بن ابي بکر. زهير بن معاويه جعفي. ابو اسحاق. عمرو بن حارث د رسول الله صلي الله عليه وسلم نسبتي وررور يعني د اُمّ المومنين بي بي جويريهٓ بنت حارث د وررور نه روايت کوي چه رسول الله صلي الله عليه وسلم د خپل وفات په وخت نه څۀ درهم پريښودل' نه څۀ غلام' نۀ څۀ وينزه او نۀ څه څيز' سوا د خپل سپين قچر (خچر) او اسلحے او يوے زمکے نه چه هغه حضور صلي الله عليه وسلم صدقه کړے وه.

۱۳ : حَدَّثَنَا خَلَّادُ بْنُ يَحْيٰى حَدَّثَنَا مَالِكُ حَدَّثَنَا طَلْحَةُ بْنُ مُصَرِّفٍ قَالَ سَأَلْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ اَبِيْ اَوْفٰيٌّ هَلْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوْصٰى فَقَالَ لَا فَقُلْتُ كَيْفَ كُتِبَ عَلَى النَّاسِ الْوَصِيَّةُ اَوْ اُمِرُوْا بِالْوَصِيَّةِ قَالَ اَوْصٰى بِكِتَابِ اللّٰهِ.

۱۳ : خلاد بن يحيي. مالک. طلحه بن مصرف نه روايت کوي' هغۀ اووے چه ما د عبدالله بن ابي اوفي نه تپوس اوکۀ چه رسول الله صلي الله عليه وسلم څۀ وصيت کړے وو نو هغۀ اووے' نه ما اووے' بيا ولے په خلقو وصيت فرض شو' يا هغوئ ته د وصيت حکم ورکړے شو' نو هغه جواب اوکه چه حضور صلي الله عليه وسلم قرآن شريف بانـدِ د عمل کولو وصيت کړيدے.

۱۴ : حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ زُرَارَةَ اَخْبَرَنَا اِسْمٰعِيْلُ عَنِ ابْنِ عَوْنٍ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنِ

۱۴ : عمرو بن زراره. اسمٰعيل. ابن عون. ابراهيم. اسود روايت کوي چه د بي بي عائشيٓ مخکښے خلقو بيان اوکه چه د رسول الله صلي الله عليه

الْاَسْوَدِ قَالَ ذَكَرُوْا عِنْدَ عَآئِشَةَ اَنَّ عَلِيًّا كَانَ وَصِيًّا فَقَالَتْ مَتٰى اَوْصٰى اِلَيْهِ وَقَدْ كُنْتُ مُسْتَنِدَتَهٗ اِلٰى صَدْرِيْ اَوْ قَالَتْ حَجْرِيْ فَدَعَا بِالطَّسْتِ فَلَقَدِ انْخَنَثَ فِيْ حَجْرِيْ فَمَا شَعَرْتُ اَنَّهٗ قَدْ مَاتَ فَمَتٰى اَوْصٰى اِلَيْهِ.

وسلَم وصي حضرت عليٌ وو نو هغے اووے چه حضور کله هغه ته وصيت اوکه ما خو حضورؐ خپلے سينے سره يا خپلے غيږے سره لګولے وو. حضور صلي الله عليه وسلَم د اوبو لوښے اوغوښتلو او څما غيږ کښے ښکته شو. ماته معلومه هم نه شوه چه حضورؐ وفات شولو. اوس اوښايي چه حضور صلي الله عليه وسلَم هغه ته وصيت کوم وخت اوکه.

بَابُ ١٠ : اَنْ يَتْرُكَ وَرَثَتَهٗ اَغْنِيَآءَ خَيْرٌ مِّنْ اَنْ يَتَكَفَّفُوا النَّاسَ.

باب ١٠ : د محتاج او ناداره پريښودو نه زياته ښه داده چه وارثان مالدار پريښودے شي.

١٥ : حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ سَعْدِ بْنِ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ سَعْدِ بْنِ اَبِيْ وَقَّاصٍ قَالَ جَآءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعُوْدُنِيْ وَ اَنَا بِمَكَّةَ وَهُوَ يَكْرَهُ اَنْ يَّمُوْتَ بِالْاَرْضِ الَّتِيْ هَاجَرَ مِنْهَا قَالَ يَرْحَمُ اللّٰهُ ابْنَ عَفْرَآءَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اُوْصِيْ بِمَالِيْ كُلِّهٖ قَالَ لَا قُلْتُ فَالشَّطْرُ قَالَ لَا قُلْتُ الثُّلُثُ قَالَ فَالثُّلُثُ وَالثُّلُثُ كَثِيْرٌ اِنَّكَ اَنْ تَدَعَ وَرَثَتَكَ اَغْنِيَآءَ خَيْرٌ مِّنْ اَنْ تَدَعَهُمْ عَالَةً يَتَكَفَّفُوْنَ النَّاسَ فِيْ اَيْدِيْهِمْ وَ اِنَّكَ مَهْمَا اَنْفَقْتَ مِنْ نَفَقَةٍ فَاِنَّهَا صَدَقَةٌ حَتَّى اللُّقْمَةَ الَّتِيْ تَرْفَعُهَا اِلٰى فِيْ اِمْرَاَتِكَ وَ عَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّرْفَعَكَ فَيَنْتَفِعَ بِكَ نَاسٌ وَ

١٥ : ابونعيم. سعد بن ابراهيم. عامر بن سعد. حضرت سعد بن ابي وقاصؓ نه روايت کوي چه رسول الله صلي الله عليه وسلَم څما د پښتنے د پاره تشريف راوړلو دغه وخت زهٔ مکه کښے ووم. حضورؐ دا خبره نه خوښوله چه د کوم مقام نه ئے هجرت کړے دے هلته پرے مرګ راشي. په دے وجه حضورؐ اوفرمائيل الله دِ په ابن عفراء رحم اوکړي. ما عرض اوکه يا رسول اللهؐ زهٔ دَ خپل ټول مال وصيت اوکړم وے فرمائيل نه. ما عرض اوکه، د نيم مال، وے فرمائيل نه. ما عرض اوکهٔ د دريمے حصے مال. وے فرمائيل د ثلث (دريمے حصے) حرج نشته او ثلث هم ډير دے تاله خپل وارثان مالدار پريښودل ددے نه بهتر دي چه هغوئ محتاجه پريږدے. داسے مه کوه چه هغوي د خلقونه سوالونه کوي. او ته چه هر څهٔ د ثواب په غرض خرڅ کوے هغه صدقه ده تردے چه هغه نوړئ (لقمه) چه د خپلے بي بي په خوله کښے واچوے هغه هم صدقه ده او عنقريب الله به تا سرفراز او بلند مرتبه کړي نو څنو خلقو ته به ستانه فائده

يَضُرُّ بِكَ اٰخَرُوْنَ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ يَوْمَئِذٍ اِلَّا ابْنَةٌ.

اورسي او حسرته به ضرر اورسي. هغه زمانه کښې د حضرت سعد صرف يوه لور وه.

**بـاب ۱۱ : الْوَصِيَّةِ بِـالثُّلُثِ.** وَ قَـالَ الْحَسَنُ لَا يَجُوْزُ لِلذِّمِّيْ وَصِيَّةٌ اِلَّا الثُّلُثُ وَ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى وَ اَنِ احْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَـا اَنْزَلَ اللّٰهُ.

**باب ۱۱ :** د دريمے حصے مال د وصيت کولو بيان. او حسن بصري اوفرمائيل ذمی له هم د دريمے حصے مال نه د زيات وصيت جائز نه دے حکه چه الله تعالي فرمائيلي دي د ذميانو مينځ کښې هم د هغے مطابق فيصله کوه. څه چه الله تعالي نازل فرمائيلی دی.

۱۶ ا : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَوْ غَضَّ النَّاسُ اِلَى الرُّبُعِ لِاَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الثُّلُثُ وَالثُّلُثُ كَثِيْرٌ اَوْ كَبِيْرٌ.

۱۶ ا : قتيبه بن سعيد. سفيان. هشام بن عروه. عروه. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي کاش چه خلق دَ وصيت مسئله کښې څلورمے حصے (ربع) ته راتلے ځکه چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم فرمائيلی دي. د ثلث څه حرج نشته يعني دريمه حصه هم ډيره ده.

۱۷ ا : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيْمِ حَدَّثَنَا زَكَرِيَّاءُ بْنُ عَدِيٍّ حَدَّثَنَا مَرْوَانُ عَنْ هَاشِمٍ عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ مَرِضْتُ فَعَادَنِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اُدْعُ اللّٰهَ اَنْ لَّا يَرُدَّنِيْ عَلٰى عَقِبِيْ قَالَ لَعَلَّ اللّٰهَ يَرْفَعُكَ وَ يَنْفَعُ بِكَ نَاسًا قُلْتُ اُرِيْدُ اَنْ اُوْصِيَ وَ اِنَّمَا لِيَ ابْنَةٌ قُلْتُ اُوْصِيْ بِالنِّصْفِ قَالَ النِّصْفُ كَثِيْرٌ قُلْتُ فَالثُّلُثِ قَالَ

۱۷ ا : محمد بن عبدالرحيم. زکريا بن عدي. مروان. هاشم بن هاشم عامر بن سعد د خپل پلار نه روايت کوي' يو ځل زۀ ناروغه شوم. نو حضور صلي الله عليه وسلّم خما تپوس له تشريف راوړلو. ما عرض او کړه يا رسول اللّٰه تاسو د الله نه دعا اوغواړئ چه هغه ما د پوندو په زور واپس نه کړي (يعني مکه کښې چه د هغے ځائے نه ما هجرت کړے دے' ماله مرګ رانه ولي) حضورؐ ورته اوفرمائيل' ويريږه مه' تاله به هلته مرګ نه راځي اميد دے چه الله به تا بلند مرتبه کړي. تا نه به خلقو ته نفع اورسيږي. ما عرض او که زه غواړم چه وصيت اوکړم. او خما صرف يوه لور ده' آيا زه د نيم مال وصيت اوکړم. حضورؐ ورته اوفرمائيل نيم ډير دے ما اووے نو د دريمے حصے مال' حضورؐ اوفرمائيل د

الثُّلُثُ وَالثُّلُثُ كَثِيرٌ اَوْ كَبِيرٌ قَالَ فَاَوْصَى النَّاسُ بِالثُّلُثِ وَ جَازَ ذٰلِكَ لَهُمْ.

دریمے حصے حرج نشته، او دریمه حصه مال هم ډیر دے نو خلقو د دریمے حصے مال وصیت کول شروع کړل او دا د هغوئ د پاره جائز شولو.

**بَابُ ١٢ : قَوْلِ الْمُوْصِيْ لِوَصِيِّهٖ تَوَاهَدْ وَلَدِيْ وَمَا يَجُوْزُ لِلْوَصِيِّ مِنَ الدَّعْوٰى.**

**باب ۱۲ :** د وصیت کونکي وصي ته ددے وئیلو بیان چه ته خما د اولاد نګهداشت کوه او دا چه وصي د پاره کوم قسم دعويٰ جائز ده.

١٨ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهَا قَالَتْ كَانَ عُتْبَةُ بْنُ اَبِيْ وَقَّاصٍ عَهِدَ اِلٰى اَخِيْهِ سَعْدِ بْنِ اَبِيْ وَقَّاصٍ اَنَّ ابْنَ وَلِيْدَةِ زَمْعَةَ مِنِّيْ فَاقْبِضْهُ اِلَيْكَ فَلَمَّا كَانَ عَامُ الْفَتْحِ اَخَذَهٗ سَعْدٌ فَقَالَ ابْنُ اَخِيْ كَانَ عَهِدَ اِلَيَّ فِيْهِ فَقَامَ عَبْدُ بْنُ زَمْعَةَ فَقَالَ اَخِيْ وَابْنُ اَمَةِ اَبِيْ وُلِدَ عَلٰى فِرَاشِهٖ فَتَسَاوَقَا اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ سَعْدٌ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ابْنُ اَخِيْ كَانَ عَهِدَ اِلَيَّ فِيْهِ فَقَالَ عَبْدُ بْنُ زَمْعَةَ اَخِيْ وَابْنُ وَلِيْدَةِ اَبِيْ وَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هُوَ لَكَ يَا عَبْدَ بْنَ زَمْعَةَ الْوَلَدُ لِلْفِرَاشِ وَ لِلْعَاهِرِ الْحَجَرُ ثُمَّ قَالَ لِسَوْدَةَ بِنْتِ زَمْعَةَ احْتَجِبِيْ مِنْهُ لِمَا رَاٰى مِنْ شَبَهِهٖ بِعُتْبَةَ فَمَا رَاٰهَا حَتّٰى لَقِيَ

۱۸ : عبدالله بن مسلمه. مالک. ابن شهاب. عروه بن زبیر د حضور صلي الله علیه وسلّم د ټبر بي بي عائشے صدیقےؓ نه روایت کوي چه عتبه بن ابي وقاص خپل ورور سعد بن ابي وقاص ته دا وصیت کړے وو چه دَ زمعه د وینځے ځوئے خما دے تهٔ هغه ځان سره کړه. کوم وخت چه د مکے د فتحے کال راغے نو هغه هغه هلک واخست اووے وئیل، دا خما د ورور ځوئے دے. هغهٔ دے باره کښے ماته وصیت کړے دے. په دے خبره عبد بن زمعه اودرید او وئیلے دا خما ورور دے، خما د پلارْ دَ وینځے ځوئے دے، هغهٔ نه پیدا شوے دے. بیا دواړه رسول الله صلي الله علیه وسلّم له راغلل. سعد اووے، یا رسول اللّٰہ دا خما د ورور ځوئے دے هغهٔ دے باره کښے ماته وصیت کړے دے. عبد بن زمعه اووے دا خما ورور دے خما د پلار دَ وینځے ځوئے دے. دے مقدمے آوریدو سره رسول الله صلي الله علیه وسلّم ارشاد اوفرمائیل اے عبد بن زمعه، دا هلک ستا رسي دا هلک د صاحب فراش رسي، او زاني د پاره کاڼړي دي. بیا حضورؐ ام المؤمنین سوده بنت زمعه ته اوفرمائیل. ته ددے هلک نه پرده کوه ځکه چه حضورؐ هغے هلک کښے د عتبه مشابهت اولید نو هغے هلک بیا بي بي

اللّٰهِ.

سو دہ تر مرګه پورے اونه لیده.

**بَابٌ ۱۳ : اِذَا اَوْمَا الْمَرِيْضُ بِرَاْسِهٖ اِشَارَةً بَيِّنَةً جَازَتْ.**

**باب ۱۳ : کله مریض خپل سر سره څه واضحه اشاره اوکړی نو په هغې به اعتبار کولے شی.**

۱۹ : حَدَّثَنَا حَسَّانُ بْنُ اَبِيْ عَبَّادٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ اَنَّ يَهُوْدِيًّا رَضَّ رَاْسَ جَارِيَةٍ بَيْنَ حَجَرَيْنِ فَقِيْلَ لَهَا مَنْ فَعَلَ بِكِ اَفُلَانٌ اَوْ فُلَانٌ حَتّٰى سُمِّيَ الْيَهُوْدِيُّ فَاَوْمَأَتْ بِرَاْسِهَا فَجِيْءَ بِهٖ فَلَمْ يَزَلْ حَتّٰى اعْتَرَفَ فَاَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرُضَّ رَاْسُهٗ بِالْحِجَارَةِ.

۱۹ : حسان بن ابی عباد. همام. قتاده. حضرت انس نه روایت کړی چه یو یهودی د یوې جینۍ سر د دوو کاڼړو مینځ کښې اوچقولو چه د هغې نه تپوس اوشو تا سره دا سلوک چا کړے دے آیا فلانی فلانی خلقو، څو کوم وخت چه د هغې یهودی نوم واخستے شو نو هغې خپل سر سره اشاره اوکړه چه هو. نو هغه یهودي راوستے شو د هغه نه تپوس اوشو هغه اقرار اوکړلو په دے رسول اللّٰه حکم اوکړلو چه د هغه سر د هم په کاڼړي اوچقولے شي نو د هغه سر هم اوچقولے شو.

**بَابٌ ۱۴ : لَا وَصِيَّةَ لِوَارِثٍ.**

**باب ۱۴ : د وارث په حق کښې وصیت درست نه دے.**

۲۰ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ عَنْ وَرْقَاءَ عَنِ ابْنِ اَبِيْ نَجِيْحٍ عَنْ عَطَاءٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ الْمَالُ لِلْوَلَدِ وَكَانَتِ الْوَصِيَّةُ لِلْوَالِدَيْنِ فَنَسَخَ اللّٰهُ مِنْ ذٰلِكَ مَا اَحَبَّ فَجَعَلَ لِلذَّكَرِ مِثْلَ حَظِّ الْاُنْثَيَيْنِ وَجَعَلَ لِلْاَبَوَيْنِ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا السُّدُسَ وَجَعَلَ لِلْمَرْاَةِ الثُّمُنَ وَالرُّبُعَ وَلِلزَّوْجِ الشَّطْرَ وَالرُّبُعَ.

۲۰ : محمد بن یوسف. ورقاء. ابن ابي نجیح. عطاء. د حضرت ابن عباسؓ نه روایت کړي د اسلام شروع کښې دا دستور وو چه مال د اولاد دے او مور پلار له وصیت کول پکار دے بیا اللّٰه د هغې حکم نه چه څه غوښتل هغه منسوخ کړل او د سړي حصه ئے د ښځے دوچند کړه او د مور پلار کښې د هر یو د پاره شپږمه حصه او بي بي د پاره که اولاد ئے وي نو اتمه حصه او که اولاد ئے نه وي نو څلورمه حصه او خاوند د پاره که اولاد ئے نه وي نو نیمه او که اولاد ئے وي نو څلورمه حصه مقرر کړے شوه.

**بَابٌ ۱۵ : الصَّدَقَةِ عِنْدَ**

**باب ۱۵ : د مرګ په وخت د خیرات کولو**

الْمَوْتِ.

بيان.

۲۱۰: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ عُمَارَةَ عَنْ اَبِيْ زُرْعَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَجُلٌ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَيُّ الصَّدَقَةِ اَفْضَلُ قَالَ اَنْ تَصَدَّقَ وَ اَنْتَ صَحِيْحٌ حَرِيْصٌ تَأْمَلُ الْغِنٰى وَ تَخْشَى الْفَقْرَ وَلَا تُمْهِلُ حَتّٰى اِذَا بَلَغَتِ الْحُلْقُوْمَ قُلْتَ لِفُلَانٍ كَذَا وَ لِفُلَانٍ كَذَا وَقَدْ كَانَ لِفُلَانٍ.

۲۱۰: محمّد بن العلاء. ابو اسامه. سفيان. عماره. ابو زرعه. ابوهريرهؓ نه روايت كوي. يو سړي د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه تپوس او كه، چه كومه صدقه افضله ده نو حضورؐ ورته اوفرمائيل، ستا د تندرستئ زمانه كښې چه ستا د دولت حرص وي. د سرمايه دارئ دې خواهش وي د تنګدستئ درسره ويره وي هغه وخت صدقه اوكړه او صدقه كښې دومره تاخير مه كوه چه ساه دې حلق ته راورسي او ته اووائې چه فلاني سړي له دومره وركړئې او فلاني سړي له دومره ځكه چه اوس خو خپله د هغې فلاني يعني د وارث تركه ده. (تركه هغه مال او اسباب چه د مړي نه پاتې شي).

باب ۱٦۰: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى مِنْ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُّوْصِيْ بِهَا اَوْ دَيْنٍ. وَ يُذْكَرُ اَنَّ شُرَيْحًا وَّ عُمَرَ بْنَ عَبْدِ الْعَزِيْزِ وَ طَاوُسًا وَ عَطَاءً وَابْنَ اُذَيْنَةَ اَجَازُوْا اِقْرَارَ الْمَرِيْضِ بِدَيْنٍ وَ قَالَ الْحَسَنُ اَحَقُّ مَا يَصَدَّقُ بِهِ الرَّجُلُ اٰخِرَ يَوْمٍ مِنَ الدُّنْيَا وَ اَوَّلَ يَوْمٍ مِنَ الْاٰخِرَةِ وَ قَالَ اِبْرَاهِيْمُ وَالْحَكَمُ اِذَا اَبْرَاَ الْوَارِثُ مِنَ الدَّيْنِ بَرِئَ وَ اَوْصٰى رَافِعُ ابْنُ خَدِيْجٍ اَنْ لَّا تُكْشَفُ اِمْرَاَتُهُ الْفَزَارِيَّةُ عَمَّا اُغْلِقَ عَلَيْهِ بَابُهَا وَ قَالَ الْحَسَنُ اِذَا قَالَ لِمَمْلُوْكِهٖ عِنْدَ الْمَوْتِ كُ . اَعْتَقْتُكَ جَازَ.

باب ۱٦۰: د وصيت د جاري كيدو او دَ قرض ادا كولو نه پس دې حصې تقسيم كړې شي. بيان شويدې چه شريح عمر بن عبدالعزيز. طاؤس. عطاء او ابن اذينه د مريض اقرار د قرض متعلق جائز ګرځولې دې. حسن بصريؒ وائي چه دَ سړي د تولو نه زياته د تصديق كولو قابله هغه ورځ ده چه د دنيا آخري ورځ او د آخرت ورمبنې ورځ وي او ابراهيم او حكم وائي چه كله وارث سړې د قرض نه بري كړي، نو هغه بري الذمه شي. رافع بن خديج دا وصيت كړې وو چه خما د ښځې فزاريه نه دې هغه مال وانخستې شي چه دهغې د دروازې دننه بند شوې دې او په هغې د هغې قبضه ده. د حسن بصريؒ قول دې، كه يو سړې د مړ كيدو په وخت خپل غلام ته اووائي چه ماته آزاد كړلې. نو جائز دې، شعبي وائي كه ښځه د مرګ په وخت اووائي چه خما

وَ قَالَ الشَّعْبِيُّ إِذَا قَالَتِ امْرَأَةٌ عِنْدَ مَوْتِهَا اِنَّ زَوْجِيْ قَضَانِيْ وَ قَبَضْتُ مِنْهُ جَازَ وَ قَالَ بَعْضُ النَّاسِ وَ يَجُوْزُ اِقْرَارُهُ لِسُوْءِ الظَّنِّ بِهٖ لِلْوَرَثَةِ ثُمَّ اسْتَحْسَنَ فَقَالَ يَجُوْزُ اِقْرَارُهُ بِالْوَدِيْعَةِ وَالْبِضَاعَةِ وَالْمُضَارَبَةِ وَ قَدْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِيَّاكُمْ وَالظَّنَّ فَاِنَّ الظَّنَّ اَكْذَبُ الْحَدِيْثِ وَلَا يَحِلُّ مَالَ الْمُسْلِمِيْنَ لِقَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اٰيَةُ الْمُنَافِقِ اِذَا اؤْتُمِنَ خَانَ وَ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى اِنَّ اللّٰهَ يَاْمُرُكُمْ اَنْ تُؤَدُّوا الْاَمَانَاتِ اِلٰى اَهْلِهَا فَلَمْ يَخُصَّ وَارِثًا وَّلَا غَيْرَهٗ فِيْهِ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَمْرٍو عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

خاوند مالـه مهر راکړلو، او ما د هغه نه واخستلو نو دا وصیت معتبر دے. لیکن بعضے خلق وائي چه د مریض اقرار معتبر نه دے ځکه چه وارثانوته د هغے بدګماني کیدے شي. دے نه پس هغوئ استحسان او که. او وے وئیل چه د مریض اقرار، ودیعت، بضاعت او د مضاربت متعلق جائز دے. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم فرمائیلي دي د بدظنئ نه ځان ساتئ ځکه چه بدظني (بدګماني) یو دروغ څیز دے. او د مسلمانانو مال په ناحقه آخستل جائز نه دي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم فرمائي د منافق نښه داده چه کوم وخت هغه امین (امانت دار) جوړولے شي نو خیانت کوي اللّٰه فرمائیلي دي ان اللّٰه یَاْمُرُکُمْ الخ (بیشکه) اللّٰه تاسوته حکم درکوي چه تاسو امانتونه خپلو مالکانوته واپس کړي) نو اللّٰه تعالٰي د وارث او غیر وارث دے کښے تخصیص نه دے کړے. دا حدیث عبداللّٰه بن عمرو د رسول اللّٰه صلعم نه روایت کړیدے.

ف: ودیعت. امانت، بضاعت: سرمایه، دولت، مال اسباب مضاربت، د نفع په شرکت چاته مال ورکول.

۲۲: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ اَبُو الرَّبِيْعِ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا نَافِعُ بْنُ مَالِكِ بْنِ اَبِيْ عَامِرٍ اَبُوْ سُهَيْلٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اٰيَةُ الْمُنَافِقِ ثَلٰثٌ اِذَا حَدَّثَ كَذَبَ وَ اِذَا اؤْتُمِنَ خَانَ وَ اِذَا وَعَدَ اَخْلَفَ.

۲۲: سلیمان. اسماعیل. نافع بن مالک بن ابي عامر. ابوسهیل. د هغهٔ پلار حضرت ابوهریرهؓ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کوي. حضورؐ اوفرمائیل د منافق درے علامتونه دي، چه خبره کوي نو دروغ وائي چه امین (امانت دار) جوړ کړے شي نو خیانت کوي او کله چه معاهده اوکړي نو وعده خلافي کوي.

ف: معاهده: خپلو کښے عهد و پیمان کول.

بَـابُ ۷ ا : تَـاوِيْـلِ قَـوْلِ اللّـٰهِ تَـعَـالٰى مِنْ بَعْدِ وَصِيَّةٍ تُوْصُوْنَ بِهَا اَوْ دَيْـنٍ. وَ يُـذْكَرُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَـلَيْـهِ وَسَـلَّـمَ قَـضٰـى بِالدَّيْنِ قَبْلَ الْـوَصِيَّةِ وَ قَـوْلِهٖ اِنَّ اللّٰهَ يَاْمُرُكُمْ اَنْ تُـؤَدُّوا الْاَمَـانَـاتِ اِلٰـى اَهْلِهَـا فَـاَدَاءُ الْاَمَانَةِ اَحَقُّ مِنْ تَطَوُّعِ الْوَصِيَّةِ وَ قَالَ النَّبِـيُّ صَـلَّـى الـلّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا صَـدَقَةَ اِلَّا عَـنْ ظَهْـرِ غِنًى وَ قَالَ ابْنُ عَبَّـاسٍ لَا يُـوْصِي الْعَبْدُ اِلَّا بِاِذْنِ اَهْلِهٖ وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعَبْدُ رَاعٍ فِيْ مَالِ سَيِّدِهٖ.

باب۷ ا : دَ آيت مِنْ بَـعْـدِ وَصِيَّةٍ تُوْصُوْنَ بِهَا اَوْ دَيْنٍ: مـطـلـب يعني د قرض او وصيّت مطلب رسول اللّٰه صـلـے اللّٰه عليه وسلّم دَ وصيت نه مخكښې د يو د بل نه قـرضه چه ذ هغهٔ په ذمه واجب وه ادا كړے وه. د اللّٰه عز و جل ارشاد دے اِنَّ الـلّٰـهَ يَـاْمُـرُكُمْ اَنْ تُؤَدُّا الْاَمَانَاتِ اِلٰى اَهْلِهَا نـو د امـانـت ادا كول د نفلي وصيت پوره كولو نه مـقـدَم دي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلي دي صـدقــه ذ مـالـدارئ خـالـت كـښ وركول پكار دي ابن عبـاسؓ اووے غـلام دے د خپـل مـالـک د اجازت نه بغير وصيـت نـه كـوي، ځـكـه چـه رسـول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسـلّـم فرمائيلي دي غلام د خپل مالک د مال نگران او محاظ دے.

۲۳ : حَـدَّثَـنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَـدَّثَـنَـا الْاَوْزَاعِـيُّ عَـنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ وَ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ اَنَّ حَـكِيْـمَ بْـنَ حِـزَامٍ قَـالَ سَـاَلْـتُ رَسُـوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَـاَعْطَانِيْ ثُمَّ سَاَلْتُهٗ فَاَعْطَانِيْ ثُمَّ قَالَ لِـيْ يَـا حَـكِـيْـمُ اِنَّ هٰـذَا الْـمَالَ خَضِرٌ حُـلْـوَةٌ فَـمَـنْ اَخَذَهٗ بِسَخَاوَةِ نَفْسٍ بُـوْرِكَ لَـهٗ فِيْـهِ وَمَنْ اَخَذَهٗ بِاِشْرَافِ نَفْسٍ لَمْ يُبَارَكْ لَهٗ فِيْهِ وَ كَانَ كَالَّذِيْ يَـاْكُلُ وَلَا يَشْبَعُ وَالْيَدُ الْعُلْيَا خَيْرٌ مِنَ الْيَـدِ السُّـفْـلٰـى قَالَ حَكِيْمٌ فَقُلْتُ يَا رَسُـوْلَ الـلّٰـهِ وَالَّـذِيْ بَعَثَكَ بِالْحَقِّ لَا اَرْزَاُ اَحَـدًا بَـعْـدَكَ شَيْـئًا حَتّٰى اُفَارِقَ

۲۳ : محمد بن يوسف. اوزاعي. زهري. سعيد بن مسيـب او عروه بن زبير. حكيم بن حزام نه روايت كوي چـه مـا يـو ځـل د رسـول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه څهٔ اوغـوښتـل حـضورؐ ماته راكړل، بيا ما د حضور صلي اللّٰه عـليـه وسـلّـم نـه اوغوښتل حضورؐ بيا ماله راكړل دے نه پـس حـضـورؐ مـاتـه اوفرمائيل اے حكيمه دا مال يو شين خوږ څيز دے. كوم سړے چه بغير حرص نه دا اخلي هغه د پـاره دے كښے بـركـت وي او څوک چـه ئے لالچ (حـرص) سره غواړي هغهٔ دَ پاره دے كښے بركت نشته او هـغـه پـه مثـل د هـغـه سړي وي چه خوراک كوي او مـړيږي نـه او د پـاسـه لاس د لانـدے لاس نه بهتر دے. حـضرت حكيم وائي. بيا ما اووے اے د اللّٰه رسولهٔ قسم دے پـه هـغه ذات چه حق سره ئے تاسوؐ رالیږلے يئ. زهٔ به سـتـاسـونه پس د هيچا نه سوال اونكړم. تردے چه دنيا نه

الدُّنْيَا فَكَانَ اَبُوْبَكْرٍ يَدْعُوْ حَكِيْمًا لِيُعْطِيَهُ الْعَطَاءَ فَيَأْبٰى اَنْ يَّقْبَلَ مِنْهُ شَيْئًا ثُمَّ اِنَّ عُمَرَ دَعَاهُ لِيُعْطِيَهُ فَاَبٰى اَنْ يَّقْبَلَهُ فَقَالَ يَا مَعْشَرَ الْمُسْلِمِيْنَ اِنِّيْ اَعْرِضُ عَلَيْهِ حَقَّهُ الَّذِيْ قَسَمَ اللّٰهُ لَهُ مِنْ هٰذَا الْفَيْءِ فَيَأْبٰى اَنْ يَّاْخُذَهُ فَلَمْ يَرْزَاْ حَكِيْمٌ اَحَدًا مِّنَ النَّاسِ بَعْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى تُوُفِّيَ رَحِمَهُ اللّٰهُ تَعَالٰى.

لاړشم. حضرت ابوبکرؓ د خپل خلافت زمانه کښې حضرت حکیم ته وظیفې ورکولو د پاره هغه غوښتلو خو هغهٔ د قبلولو نه انکار اوکړلو. بیا حضرت عمرؓ د خپل خلافت زمانه کښې هغه اوغوښتلو چه څهٔ ورکړي خو هغهٔ د اخستلو نه انکار اوکه نو حضرت عمرؓ اووے. اے مسلمانانو زهٔ حکیم ته د هغهٔ هغه حق چه اللّٰه هغهٔ د پاره دے مال غنیمت نه مقرر کړیدے ورکول غواړم، خو هغه د اخستلو نه انکار کوي غرض دا چه حضرت حکیم د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم نه پس د چانه تر مرګه پورے سوال اونهٔ که.

۲۴: حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ السَّخْتِيَانِيُّ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَالِمٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ كُلُّكُمْ رَاعٍ وَّ مَسْئُوْلٌ عَنْ رَّعِيَّتِهٖ وَالْاِمَامُ رَاعٍ وَّ مَسْئُوْلٌ عَنْ رَّعِيَّتِهٖ وَالرَّجُلُ رَاعٍ فِيْ اَهْلِهٖ وَ مَسْئُوْلٌ عَنْ رَّعِيَّتِهٖ وَالْمَرْاَةُ فِيْ بَيْتِ زَوْجِهَا رَاعِيَةٌ وَ مَسْئُوْلَةٌ عَنْ رَّعِيَّتِهَا وَالْخَادِمُ فِيْ مَالِ سَيِّدِهٖ رَاعٍ وَّ مَسْئُوْلٌ عَنْ رَّعِيَّتِهٖ قَالَ وَ حَسِبْتُ اَنْ قَدْ قَالَ وَالرَّجُلُ رَاعٍ فِيْ مَالِ اَبِيْهِ.

۲۴: بشر بن محمد سختیاني. عبداللّٰه. یونس. زهري. سالم دَ حضرت ابن عمرؓ نه روایت کوي ما د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم نه اوریدلي دي. تاسو کښې هر سړے د نګرانئ ذمه وار دے. حاکم نه به د هغهٔ دَ رعیت په بابت کښې تپوس کیږي. امام هم نګران دے. هغهٔ نه به دَ هغهٔ د مقتدینو په حقله پښتنه کیږي. سړے هم د خپل کور نګران دے هغه نه به د هغه د کور د خلقو په باره کښې تپوس کیږي او ښځه د خاوند د کور نګرانه ده هغې نه به د هغې د کور باره کښې پښتنه کیږي او خادم د خپل آقا د مال نګران دے هغه نه به د هغه د مال په باب کښې تپوس کیږي حضرت ابن عمرؓ وائي خما خیال دے چه حضورؐ دا هم فرمائیلي دي چه سړے د خپل پلار د مال نګران دے.

**بَابٌ ۱۸**: اِذَا وَقَفَ اَوْ اَوْصٰى لِاَقَارِبِهٖ وَمَنِ الْاَقَارِبُ قَالَ ثَابِتٌ عَنْ اَنَسٍ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

**باب ۱۸**: خپلو رشته دارانو د پاره د وقف او دَ وصیّت دَ جواز بیان او رشته دار څوک دي ثابت د انس نه نقل کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه

وَسَلَّمَ لِاَبِیْ طَلْحَةَ اجْعَلْهَا لِفُقَرَآءِ اَقَارِبِكَ فَجَعَلَهَا لِحَسَّانَ وَ اُبَیِّ بْنِ كَعْبٍ وَ قَالَ الْاَنْصَارِیُّ حَدَّثَنِیْ اَبِیْ عَنْ ثُمَامَةَ عَنْ اَنَسٍ مِثْلَ حَدِیْثِ ثَابِتٍ قَالَ اجْعَلْهَا لِفُقَرَآءِ قَرَابَتِكَ قَالَ اَنَسٌ فَجَعَلَهَا لِحَسَّانَ وَ اُبَیِّ بْنِ كَعْبٍ وَ كَانَا اَقْرَبَ اِلَیْهِ مِنِّیْ وَ كَانَ قَرَابَةُ حَسَّانٍ وَ اُبَیٍّ مِنْ اَبِیْ طَلْحَةَ وَ اِسْمُهٗ زَیْدُ بْنُ سَهْلِ بْنِ الْاَسْوَدِ بْنِ حَرَامِ بْنِ عَمْرِو بْنِ زَیْدِ مَنَاةَ بْنِ عَدِیِّ بْنِ عَمْرِو بْنِ مَالِكِ بْنِ النَّجَّارِ وَ حَسَّانُ بْنُ ثَابِتِ بْنِ الْمُنْذِرِ حَرَامٍ فَیَجْتَمِعَانِ اِلٰی حَرَامٍ وَّهُوَ الْاَبُ الثَّالِثُ وَ حَرَامُ بْنُ عَمْرِو بْنِ زَیْدِ مَنَاةَ بْنِ عَدِیِّ بْنِ عَمْرِو بْنِ مَالِكِ بْنِ النَّجَّارِ فَهُوَ یُجَامِعُ حَسَّانَ اَبَا طَلْحَةَ وَ اُبَیًّا اِلٰی سِتَّةِ اٰبَآءٍ اِلٰی عَمْرِو بْنِ مَالِكٍ وَهُوَ اُبَیُّ بْنُ كَعْبِ بْنِ قَیْسِ بْنِ عُبَیْدِ بْنِ زَیْدِ بْنِ مُعَاوِیَةَ بْنِ عَمْرِو بْنِ مَالِكِ بْنِ النَّجَّارِ فَعَمْرُو بْنُ مَالِكٍ یَجْمَعُ حَسَّانَ وَ اَبَا طَلْحَةَ وَ اُبَیًّا وَ قَالَ بَعْضُهُمْ اِذَا اَوْصٰی لِقَرَابَتِهٖ فَهُوَ اِلٰی اٰبَآئِهٖ فِی الْاِسْلَامِ.

۲۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ یُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ اِسْحٰقَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِیْ طَلْحَةَ اَنَّهٗ سَمِعَ

وسلم ابو طلحه ته اوفرمائیل دا خپل باغ خپلو غریبانو عزیزانو بانديے تقسیم کړه نو هغهٔ هغه باغ حضرت حسان او ابي بن کعب له ورکړلو. انصاري وائي ماته خما پلار په روایت د ثمامه او حضرت انس دَ ثابت د حدیث په شان بیان کوي. حضور صلعم ابو طلحه ته اوفرمائیل دا باغ خپلو غریبو رشته دارانو له ورکړه. د حضرت انس بیان دے بیا هغهٔ حسان او ابي بن کعب ته ورکړلو' او هغوي زمانه زیات د هغهٔ نزدے خپلوان وو د حسان او ابي قرابت ابو طلحه سره داسے دے چه دَ ابو طلحه نوم زید بن سهل بن اسود بن حرام بن عمرو بن زید مناة بن عدي بن عمرو بن مالک بن نجار دے. او د حسان نسب دا دے' حسان بن ثابت بن منذر بن حرام دا دواړه چه حرام ته اورسي' نو دریم پشت کښې یوځائے شي. په دا شان چه حرام بن عمرو بن زید مناة بن عدي بن عمرو بن مالک بن نجار' نو عمرو بن مالک پورے. او حسان او ابي طلحه او دَ ابي شپږ پشتونه' او ابي بن کعب خپله شجره ابي بن کعب بن قیس بن عبید بن زید بن معاویه بن عمرو بن مالک بن نجار' نو عمرو بن مالک کښلے حسان' او ابوطلحه او ابي ټول یوځائے کیږي. بعضے خلق وائي که خپل قرابت والو د پاره وصیت څوک سړے اوکړي' نو وصیت به دَ هغهٔ مسلمان پلار نیکه طرف ته وي. دَ هغے وصیت اثر نشي واپس کیدے.

۲۵: عبدالله بن یوسف. مالک. اسحاق بن عبدالله بن ابي طلحهؓ. انسؓ نه روایت کوي' حضورؐ ابو طلحهؓ ته اوفرمائیل' زهٔ مناسب ګنړم

اَنَسًا قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِاَبِيْ طَلْحَةَ اَرٰى اَنْ تَجْعَلَهَا فِي الْاَقْرَبِيْنَ قَالَ اَبُوْ طَلْحَةَ اَفْعَلُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَقَسَمَهَا اَبُوْ طَلْحَةَ فِيْ اَقَارِبِهٖ وَ بَنِيْ عَمِّهٖ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لَمَّا نَزَلَتْ وَ اَنْذِرْ عَشِيْرَتَكَ الْاَقْرَبِيْنَ جَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُنَادِيْ يَا بَنِيْ فِهْرٍ يَا بَنِيْ عَدِيٍّ لِبُطُوْنِ قُرَيْشٍ وَ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ لَمَّا نَزَلَتْ وَ اَنْذِرْ عَشِيْرَتَكَ الْاَقْرَبِيْنَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا مَعْشَرَ قُرَيْشٍ.

چه تهٔ دا باغ خپلو عزيزانو كښې تقسيم كړې' نو ابو طلحه عرض اوكه' يا رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم زهٔ به هم دغسې اوكړم' نو ابو طلحه هغه خپلو عزيزانو او دَ ترهٔ ځامنو كښې تقسيم كړلو ابن عباسؓ وائي كوم وخت چه دا آيت نازل شو وَ اَنْذِرْ عَشِيْرَتَكَ الْاَقْرَبِيْنَ نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم قبائل قريش ته اوفرمائيل اے بني فهر' اے بني عدي. حضرت ابوهريرهؓ وائي كوم وخت چه آيت و اَنْذِرْ عَشِيْرَتَكَ الْاَقْرَبِيْنَ نازل شو نو رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم په اوچت آواز اوفرمائيل اے د قريشو ډلے دَ اللّٰه تعالىٰ نه اُويريږئ.

**باب ۱۹ : هَلْ يَدْخُلُ النِّسَآءُ وَالْوَلَدُ فِي الْاَقَارِبِ.**

**باب ۱۹ : د ښځو او بچو عزيزانو كښې دَ داخليدو بيان.**

۲۶ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَعِيْدُ بْنِ الْمُسَيَّبِ وَ اَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ قَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ اَنْزَلَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ وَ اَنْذِرْ عَشِيْرَتَكَ الْاَقْرَبِيْنَ قَالَ يَا مَعْشَرَ قُرَيْشٍ اَوْ كَلِمَةً نَحْوَهَا اشْتَرُوْا لِاَنْفُسِكُمْ لَا اُغْنِيْ عَنْكُمْ مِّنَ اللّٰهِ شَيْئًا يَا بَنِيْ عَبْدِ مُنَافٍ لَا اُغْنِيْ عَنْكُمْ مِنَ اللّٰهِ شَيْئًا يَا عَبَّاسُ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ لَا اُغْنِيْ عَنْكَ مِنَ اللّٰهِ

۲۶ : ابواليمان. شعيب. زهري. سعيد بن مسيب. ابو سلمه بن عبدالرحمان. ابوهريرهؓ نه روايت كوي. كوم وخت چه دا آيت نازل شو وَ اَنْذِرْ عَشِيْرَتَكَ الْاَقْرَبِيْنَ. نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اودريدلو او وې فرمائيل اے دَ قريشو ډلے' تاسو خپل ځان بچ كړئ' زهٔ تاسو دَ اللّٰه تعالىٰ د عذاب نه هيڅكله هم نشم بچ كولے. اے بني عبدمناف زهٔ تاسو د خدائے د عذاب نه هيڅكله نشم بچ كولے. انے عباس بن مطلب' زهٔ تاسو د اللّٰه د عذاب نه هيڅ كله نشم بچ كولے. او اے صفيه دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ترور (دَ پلار خور) زهٔ تا د خدائے د

شَيْئًا وَ يَا صَفِيَّةُ عَمَّةُ رَسُوْلِ اللّٰهِ لَا أُغْنِيْ عَنْكِ مِنَ اللّٰهِ شَيْئًا وَ يَا فَاطِمَةُ بِنْتُ مُحَمَّدٍ سَلِيْنِيْ مَا شِئْتِ مِنْ مَالِيْ لَا أُغْنِيْ عَنْكِ مِنَ اللّٰهِ شَيْئًا تَابَعَهُ اِصْبَغُ عَنِ ابْنِ وَهْبٍ عَنْ يونس عَنِ ابْنِ شِهَابٍ.

عذاب نه خنکه بچ کولے شم. او اے فاطمهؓ بنت محمدؐ، ته ما نه خما مال څومره چه غواړے واخله خو زهٔ تا د خدائے د عذاب نه نشم بچ کولے ابو الایمان سره دا روایت اصبغ په سلسله د سند د ابن وهب یونس، ابن شهاب روایت کړے دے.

بَابٌ ۲۰: هَلْ يَنْتَفِعُ الْوَاقِفُ بِوَقْفِهِ وَقَدِ اشْتَرَطَ عُمَرُؓ لَا جُنَاحَ عَلٰى مَنْ وَلِيَهُ أَنْ يَأْكُلَ وَقَدْ يَلِيْ الْوَاقِفُ وَغَيْرُهُ وَ كَذٰلِكَ مَنْ جَعَلَ بَدَنَةً أَوْ شَيْئًا لِلّٰهِ فَلَهُ أَنْ يَنْتَفِعَ بِهَا كَمَا يَنْتَفِعُ غَيْرُهُ وَ إِنْ لَّمْ يَشْتَرِطْ.

باب ۲۰: آیا واقف (وقف کونکے) دَ خپل وقف نه منتفع کیدے شي. حضرت عمرؓ خپل وقف کښے دا شرط کړے وو چه د وقف په متولي هیڅ گناه نشته چه هغه ددے نه اوخوري. او د وقف متولي کله خپله وقف کونکے وي، او کله بل څوک، او دغه شان څوک سړے د قربانئ څناور یا بل څهٔ څیز که د اللّٰه د پاره نذر اومني نو هغه د پاره جائز دي چه د هغے نه فائده واخلي څنګه چه غیر د هغے نه فائده اخلي، اګر که هغهٔ څه شرط نه وي کړے.

۲۷: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنِ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا أَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍؓ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاٰى رَجُلًا يَّسُوْقُ بَدَنَةً فَقَالَ لَهُ ارْكَبْهَا فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ إِنَّهَا بَدَنَةٌ فَقَالَ فِيْ الثَّالِثَةِ أَوِ الرَّابِعَةِ ارْكَبْهَا وَيْلَكَ أَوْ وَيْحَكَ.

۲۷: قتیبه بن سعید. ابو عوانه. قتاده. حضرت انسؓ نه روایت کوي رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم یو سړے اولید چه د قربانئ څناور ئے شړلو، حضورؐ ورته اوفرمائیل په دے سور شه، هغهٔ عرض اوکه، اے د اللّٰه رسولهٔ دا د قربانئ څناور دے حضورؐ ورته په دریم یا څلورم ځل اوفرمائیل اے بیوقوفه، په دے سور شه.

۲۸: حَدَّثَنَا إِسْمٰعِيْلُ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ أَبِيْ الزِّنَادِ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَؓ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاٰى رَجُلًا يَّسُوْقُ بَدَنَةً

۲۸: اسمٰعیل. مالک. ابوالزناد. اعرج. حضرت ابو هریرهؓ نه روایت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم یو سړے اولید چه د قربانئ څناور ئے روان کړے وو. حضورؐ ورته اوفرمائیل سور شه پرے، هغهٔ عرض

فَقَالَ ارْكَبْهَا قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّهَا بَدَنَةٌ قَالَ ارْكَبْهَا وَيْلَكَ فِي الثَّانِيَةِ اَوْفِي الثَّالِثَةِ.

او که، دا خو د قرباني خناور دے. حضورؐ ورته اوفرمائیل په دے سور شه، په دویم یا دریم ځل ئے ورته اوفرمائیل کم بخته سور شه پرے.

**بَاب ٢١: اِذَا وَقَفَ شَيْئًا فَلَمْ يَدْفَعْهُ اِلٰى غَيْرِهٖ فَهُوَ جَائِزٌ.** لِاَنَّ عُمَرَؓ اَوْقَفَ وَ قَالَ لَا جُنَاحَ عَلٰى مَنْ وَّلِيَهُ اَنْ يَّاْكُلَ وَلَمْ يَخُصَّ اَنْ وَلِيَّهُ عُمَرُ اَوْ غَيْرُهُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِاَبِيْ طَلْحَةَ اَرٰى اَنْ تَجْعَلَهَا فِي الْاَقْرَبِيْنَ فَقَالَ اَفْعَلُ فَقَسَمَهَا فِيْ اَقَارِبِهٖ وَ عَمِّهٖ.

**باب ٢١: مال موقوفه د غیر په قبضه کښے د ور کولو بیان.** دا ځکه جائز دي چه حضرت عمرؓ خپله وقف وکه. او وے فرمائیل چه متولي د پاره دے نه خوراک کښے څۀ حرج نشته او هغۀ دا تخصیص اونه که چه ددے به خپله متولي وي یا بل څوک. او حضورؐ ابوطلحهؓ ته اوفرمائیل، زۀ دا مناسب ګنړم چه دا باغ ته خپلو عزیزانو کښے تقسیم کړه هغۀ اووے زه به هم دغسے کوم نو هغۀ هغه باغ خپلو عزیزانو او د ترۀ اولاد کښے تقسیم کړلو.

**بَاب ٢٢: اِذَا قَالَ دَارِيْ صَدَقَةٌ لِلّٰهِ وَلَمْ يُبَيِّنْ لِلْفُقَرَآءِ اَوْ غَيْرِهِمْ فَهُوَ جَائِزٌ وَ يَضَعُهَا فِي الْاَقْرَبِيْنَ اَوْ حَيْثُ اَرَادَ قَالَ** النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِاَبِيْ طَلْحَةَ حِيْنَ قَالَ اَحَبُّ اَمْوَالِيْ اِلَيَّ بَيْرُ حَآءَ وَ اِنَّهَا صَدَقَةٌ لِلّٰهِ فَاَجَازَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذٰلِكَ وَ قَالَ بَعْضُهُمْ لَا يَجُوْزُ حَتّٰى يُبَيِّنَ لِمَنْ وَالْاَوَّلُ اَصَحُّ.

**باب ٢٢: د انسان خپل کور اللّٰه د پاره صدقه** کولو د پاره دالفاظو د ادائیګئ بیان اګر که دا اونه وائي چه فقیرانو د پاره دے یا بل چا د پاره دے نو دا قول جائز دے او هغه هغه خپلو عزیزانو کښے یا کوم ځائے چه غواړي، تقسیم کړي. نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم ابوطلحهؓ ته اوفرمائیل. هغۀ عرض کړے وو چه خپل مالونو کښے بیر حا باغ ځما د ټولو نه زیات خوښ دے او هغه اللّٰه دَ پاره صدقه دے نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم هغه جائز کولو بعضے خلق وائي چه داسے وقف ناجائز دے څو پورے چه بیان اونکړي چه چا د پاره ئے وقف کوئ لیکن وړمبنے قول زیات صحیح دے.

**بَاب ٢٣: اِذَا قَالَ اَرْضِيْ اَوْ بُسْتَانِيْ صَدَقَةٌ عَنْ اُمِّيْ فَهُوَ جَائِزٌ وَّ اِنْ لَّمْ يُبَيِّنْ لِمَنْ ذٰلِكَ.**

**بَاب ٢٣: دَ يو سړي دَ خپلے مور** دَ طرف نه دَ خپل باغ یا زمکے د صدقه کولو بیان.

۲۹ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا مَخْلَدُ بْنُ يَزِيْدَ اَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ يَعْلٰى اَنَّهُ سَمِعَ عِكْرَمَةَ يَقُوْلُ اَنْبَاَنَا ابْنُ عَبَّاسٍ اَنَّ سَعْدَ بْنَ عُبَادَةَ تُوُفِّيَتْ اُمُّهُ وَهُوَ غَآئِبٌ عَنْهَا فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ اُمِّيْ تُوُفِّيَتْ وَ اَنَا غَآئِبٌ عَنْهَا اَيَنْفَعُهَا شَيْءٌ اِنْ تَصَدَّقْتُ بِهٖ عَنْهَا قَالَ نَعَمْ قَالَ فَاِنِّيْ اُشْهِدُكَ اَنَّ حَآئِطِيَ الْمِخْرَافَ صَدَقَةٌ عَلَيْهَا.

۲۹ : محمد. مخلد بن يزيد. ابن جريج. يعلي. عكرمه. حضرت عباسؓ نه روايت كوي چه د سعد بن عباده مور وفات شوه' او هغه ورسره هغه وخت موجود نه وو. هغهٔ اووے يا رسول اللّٰهٔ خما مور وفات شوه' او خهٔ ورسره موجود نهٔ ووم' آيا هغے ته به څهٔ نفع اورسي کهٔ زهٔ د هغے د طرفه صدقه ورکرم. حضورؐ ورته اوفرمائيل او. سعد اووے' بيا زهٔ تاسو گواه کوم' چه خما باغ مخراف نومے دهغے دَ طرف نه صدقه دے.

باب ۲۴ : اِذَا تَصَدَّقَ اَوْ اَوْقَفَ بَعْضَ مَالِهٖ اَوْ بَعْضَ رَقِيْقِهٖ اَوْ دَوَآبِّهٖ فَهُوَ جَآئِزٌ.

باب ۲۴ : د يو سړي صدقه او خيرات دَ پاره خپل مال' خپل څهٔ غلام يا څهٔ څناور دَ وقف کولو بيان.

۳۰ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ كَعْبٍ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ كَعْبٍ قَالَ سَمِعْتُ كَعْبَ بْنَ مَالِكٍ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ مِنْ تَوْبَتِيْ اَنْ اَنْخَلِعَ مِنْ مَّالِيْ صَدَقَةً اِلَى اللّٰهِ وَ اِلٰى رَسُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَمْسِكْ عَلَيْكَ بَعْضَ مَالِكَ فَهُوَ خَيْرٌ لَّكَ قُلْتُ فَاِنِّيْ اُمْسِكُ بِسَهْمِيَ الَّذِيْ بِخَيْبَرَ.

۳۰ : يحيي بن بكير. ليث. عقيل. ابن شهاب. عبدالرحمٰن بن عبداللّٰه بن كعب. كعب بن مالک نه روايت كوي' ما عرض اوكړو اے د اللّٰه رسولهٔ' خما دَ توبے قبلولو شكريه داده چه زهٔ خپل كل مال اللّٰه او رسول د پاره صدقه كرم چه دَ دے دولت نه لاس په سر شم' حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' تهٔ څهٔ مال خان سره اوساته نو دا به ستا د پاره بهتره وي. ما عرض اوكړو' زهٔ خپله هغه حصه چه خيبر كښے ده خان دَ پاره ساتم.

باب ۲۵ : مَنْ تَصَدَّقَ اِلٰى وَكِيْلِهٖ ثُمَّ رَدَّ الْوَكِيْلُ اِلَيْهِ وَ

باب ۲۵ : د يو سړي خپل وكيل ته د صدقه وركولو بيان او دَ وكيل دَ هغے واپس كول. اسمعيل

قَالَ اِسْمٰعِيْلُ اَخْبَرَنِيْ عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اِسْحٰقَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ طَلْحَةَ لَا اَعْلَمُهٗ اِلَّا عَنْ اَنَسٍ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتّٰى تُنْفِقُوْا مِمَّا تُحِبُّوْنَ ط جَآءَ اَبُوْ طَلْحَةَ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ يَقُوْلُ اللّٰهُ تَبَارَكَ وَ تَعَالٰى فِيْ كِتَابِهٖ لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتّٰى تُنْفِقُوْا مِمَّا تُحِبُّوْنَ وَ اِنَّ اَحَبَّ الْاَمْوَالِ اِلَيَّ بَيْرُ حَآءَ قَالَ وَ كَانَتْ حَدِيْقَةٌ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْخُلُهَا وَ يَسْتَظِلُّ بِهَا وَ يَشْرَبُ مِنْ مَائِهَا فَهِيَ اِلَى اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ وَ اِلٰى رَسُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرْجُوْ بِرَّهٗ وَ ذُخْرَهٗ فَضَعْهَا اَيْ رَسُوْلَ اللّٰهِ حَيْثُ اَرَاكَ اللّٰهُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَخٍ يَا اَبَا طَلْحَةَ ذٰلِكَ مَالٌ رَابِحٌ قَبِلْنَاهُ مِنْكَ وَ رَدَدْنَاهُ فَاجْعَلْهُ فِي الْاَقْرَبِيْنَ فَتَصَدَّقَ بِهٖ اَبُوْ طَلْحَةَ عَلٰى ذَوِيْ رَحِمِهٖ قَالَ وَ كَانَ مِنْهُمْ اُبَيٌّ وَّ حَسَّانُ قَالَ وَ بَاعَ حَسَّانُ حِصَّتَهٗ مِنْهُ مِنْ مُعَاوِيَةَ فَقِيْلَ لَهٗ تَبِيْعُ صَدَقَةَ اَبِيْ طَلْحَةَ فَقَالَ اَلَا اَبِيْعُ صَاعًا مِنْ تَمْرٍ بِصَاعٍ مِنْ دَرَاهِمٍ قَالَ وَ كَانَ تِلْكَ الْحَدِيْقَةُ فِيْ مَوْضَعِ

وانـي ماته عبدالعزيز بن عبدالله بن ابي سلمه' اسحاق بن عبدالله بن ابي طلحه اووے' زهٔ دا حديث د حضرت انسؓ نه گنړم چه هغه ونيلي کوم وخت چه دا آيت نازل شو لَنْ تَنَالُوْا الْبِرَّ حَتّٰى تُنْفِقُوْا مِمَّا تُحِبُّوْنَ ط (تاسو هيڅ کله ثواب نـه شـئـے بيامندے څو پورے چه هغه څيز خرڅ نه کړئے' چه هغه ستاسو زيات خوښ وي) نو ابو طلحه رسول الله صـلعم له راغے او عرض ئے وکه اے د خدائے رسولهٔ الله پاک خپل کتاب کښے فرمائي' لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حتى تُنْفِقُوْا مِـمَّا تُحِبُّوْنَ' او بيشـکـه مـاتـه خپل ټول مالونو کښے بير حاء مشهور باغ زيات محبوب دے. حضرت انسؓ وائي' هـغـه يـو داسـے بـاغ وو چـه هلته به رسول الله صلعم هم تشـريف اوړلـو. دَ هـغـے سـوري کښـے به کيناستلو او د هـغـے اوبهٔ به ئے څکلے. ابو طلحهؓ اووے' هغه باغ الله او رسول د پاره صدقه دے. زهٔ دَ هغے د ثواب آخرت کښے اميـد لـرم' يـا رسـول الله تاسو دا کوم ځائے چه الله تعالیٰ حـکـم درکـړي خـرچ کـړئ. رسـول الله صلي الله عليه وسـلّم ورته اوفرمائيل' مبارک شه' اے ابوطلحهؓ دا خو' د فائدے تجارت دے. مونږ دا ستا دَ طرف نه قبول کړلو او اوس دا تـاته واپـس کوو ته دا خپلو عزيزانو کښے تقسيم کړه. بيا ابو طلحهؓ هغه خپلو خپلوانو کښے تقسيم کړلو. حضرت انس وئيلے چه هغے خپلوانو کښے اُبي او حسّان هـم وو. انسؓ وائي' بيا حسان خپله حصه په معاويه خرڅه کـړه' نـو هـغوئ کښے چا اووے چه ته د ابو طلحهؓ صدقه خـرڅـوے' هغهٔ جواب ورکهٔ. زهٔ د چوهارو يو صاع د يو صـاع درهـم پـه بـدله کښے ولے خرڅ نه کړم' (خکه چه هـغـه پـه ډيـر زيـات گـران قيـمت خرڅيږي) نو زهٔ ئے

قَصْرِ بَنِي جُدَيْلَةَ الَّذِيْ بَنَاهُ مُعَاوِيَةُ.

خرخوم، انسؓ وئيلے هغه باغ د بني جُديله د محل برابر وو چه هغه معاويه تعمير كړے وو.

ف: صاع د دوه سوه څلور ديرش (۲۳۴) تولے يو وزن يا پيمانه.

باب ۲۶: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ اِذَا حَضَرَ الْقِسْمَةَ اُولُوا الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنُ فَارْزُقُوْهُمْ مِنْهُ.

باب ۲۶: ددے فرمان الٰهي بيان، چه د مال تقسيمولو په وخت رشته دار او يتيم او مسكين راشي، نو هغوئ ته هم دے نه څۀ وركړئے.

۱۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْفَضْلِ اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ اَبِيْ بِشْرٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ اِنَّ نَاسًا يَزْعُمُوْنَ اَنَّ هٰذِهِ الْاٰيَةَ نُسِخَتْ وَلَا وَاللّٰهِ مَا نُسِخَتْ وَلٰكِنَّهَا مِمَّا تَهَاوَنَ النَّاسُ هُمَا وَالِيَانِ وَالٍ يَّرِثُ وَ ذَاكَ الَّذِيْ يَرْزُقُ وَ وَالٍ لَّا يَرِثُ فَذَاكَ الَّذِيْ يَقُوْلُ بِالْمَعْرُوْفِ يَقُوْلُ لَا اَمْلِكُ اَنْ اُعْطِيَكَ.

۱۳: محمد بن فضل. ابوالنعمان. ابو عوانه. ابي بشر. سعيد بن جبير. ابن عباسؓ نه روايت كوي. هغۀ اووے، د څنو خلقو دا خيال دے چه دا آيت منسوخ دے حالانكه قسم په خدائے دا منسوخ نه دے بلكه دا منجمله د هغے آيتونو نه دے چه په هغے عمل كولو كښے خلقو سستي كړيده واورئ عزيز په دوه قسمه وي، يو هغه چه وارث وي او دا مطلب دے چه د چا په ذمه څه واجب وي هغه دِ هغوئ له وركړي او بل هغه چه وارث نه وي چه د هغے دا معنٰي وي چه هغه دے داسے نرمه خبره اوكړي چه څما اختيار د وركړو نشته.

بَابُ ۲۷: مَا يُسْتَحَبُّ لِمَنْ يُتَوَفّٰى فَجَاۤءَةً اَنْ يَّتَصَدَّقُوْا عَنْهُ وَ قَضَاۤءُ النُّذُوْرِ عَنِ الْمَيِّتِ.

باب ۲۷: ډَ مړي د نذرونو پوره كولو او ناساپه ډَ مړ كيدونكي د طرف نه ډَ خيرات كولو ډَ استحباب بيان.

۲۳: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَاۤئِشَةَ اَنَّ رَجُلًا قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ اُمِّيْ اُفْتُلِتَتْ نَفْسُهَا وَ اَرَاهَا لَوْ تَكَلَّمَتْ تَصَدَّقَتْ اَفَاَتَصَدَّقُ عَنْهَا قَالَ نَعَمْ تَصَدَّقْ عَنْهَا.

۲۳: اسمٰعيل. مالک. هشام. د هشام پلار، بي بي عائشےؓ نه روايت كوي. يو سړي نبي صلي الله عليه وسلّم ته عرض اوكه، څما مور ناساپه مړه شوله او څما خيال دے، كه هغے خبرے كولے شوے نو خيرات به ئے كړے وے نو آيا زۀ ډَ هغے ډَ طرفه صدقه وركړم. حضورؐ ورته اوفرمائيل او د هغے د طرف نه صدقه وركړه.

۳۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍؓ اَنَّ سَعْدَ بْنَ عُبَادَةَ اِسْتَفْتٰى رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اِنَّ اُمِّيْ مَاتَتْ وَ عَلَيْهَا نَذْرٌ فَقَالَ اقْضِهٖ عَنْهَا.

۳۳: عبدالله بن يوسف. مالک ابن شهاب. عبيدالله بن عبدالله. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي. چه حضرت سعد بن عباده د رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه فتوئ اوپښته، چه خما مور مړه شوه، او په هغې يو نذر باقي دے نو حضورؐ اوفرمائيل ته د هغې د طرف نه هغه پوره كړه.

باب ۲۸: اَلْاِشْهَادِ فِي الْوَقْفِ وَالصَّدَقَةِ.

باب ۲۸: وقف او صدقه كښې ذَ ګواه مقرر كولو بيان.

۳۴: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ يُوْسُفَ اَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ اَخْبَرَهُمْ قَالَ اَخْبَرَنِيْ يَعْلٰى اَنَّهٗ سَمِعَ عِكْرَمَةَ مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ يَقُوْلُ اَنْبَاَنَا ابْنُ عَبَّاسٍ اَنَّ سَعْدَ بْنَ عُبَادَةَ اَخَابَنِيْ سَاعِدَةَ تُوُفِّيَتْ اُمُّهٗ وَهُوَ غَائِبٌ فَاَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ اُمِّيْ تُوُفِّيَتْ وَ اَنَا غَائِبٌ عَنْهَا فَهَلْ يَنْفَعُهَا شَيْءٌ اِنْ تَصَدَّقْتُ بِهٖ عَنْهَا قَالَ نَعَمْ قَالَ فَاِنِّيْ اُشْهِدُكَ اَنَّ حَائِطِي الْمِخْرَافِ صَدَقَةٌ عَلَيْهَا.

۳۴: ابراهيم بن موسٰي. هشام بن يوسف. ابن جريج. يعلٰي. د ابن عباس آزاد كړده غلام عكرمه ابن عباسؓ نه روايت كوي، چه سعد بن عباده چه د بني ساعده بهائي بند وو. ذَ هغهٔ مور وفات شوه او هغه (هغه وخت) هغې سره موجود نه وو يو ورځ هغه رسول الله صلے الله عليه وسلّم له راغې او عرض ئې اوكه اے د خدائے رسولهٔ خما مور وفات شوے ده او زهٔ هغې سره حاضر نه ووم. كه زهٔ ذَ هغې د طرفه څه صدقه وركړم نو هغې د پاره به فائده منده شي، حضورؐ ورته اوفرمائيل، او. په دے خبره هغهٔ اووے زهٔ تاسو ګواه كوم چه خما باغ مخراف (نومے) هغې د پاره خيرات دے.

باب ۲۹: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ اٰتُوا الْيَتٰمٰى اَمْوَالَهُمْ وَلَا تَتَبَدَّلُوا الْخَبِيْثَ بِالطَّيِّبِ وَلَا تَاْكُلُوْا اَمْوَالَهُمْ اِلٰى اَمْوَالِكُمْ اِنَّهٗ كَانَ حُوْبًا كَبِيْرًا وَ اِنْ خِفْتُمْ اَنْ لَّا تُقْسِطُوا فِي الْيَتٰمٰى

باب ۲۹: ذَ الله تعالٰي قول چه يتيمانو له د هغوئ مال وركړئے او خراب مال ښه مال سره مهٔ بدلوئے او د هغوئ مال خپل مال سره ګډوډ كړے مهٔ خورئ. بے شكه دا لويه ګناه ده. او كهٔ تاسو ويريږئ چه يتيمانو كښې به برابري اونكړے شئے. نو تاسو هغې ښځو سره

فَانْكِحُوْا مَا طَابَ لَكُمْ مِّنَ النِّسَآءِ.

۳۵: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ كَانَ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ يُحَدِّثُ اَنَّهٗ سَأَلَ عَآئِشَةَ وَ اِنْ خِفْتُمْ اَنْ لَّا تُقْسِطُوْا فِيْ الْيَتٰمٰى فَانْكِحُوْ مَا طَابَ لَكُمْ مِّنَ النِّسَآءِ قَالَتْ عَآئِشَةُ هِيَ الْيَتِيْمَةُ فِيْ حَجْرِ وَلِيِّهَا فَيَرْغَبُ فِيْ جَمَالِهَا وَمَالِهَا وَ يُرِيْدُ اَنْ يَّتَزَوَّجَهَا بِاَدْنٰى مِنْ سُنَّةِ نِسَآئِهَا فَنُهُوْا عَنْ نِكَاحِهِنَّ اِلَّا اَنْ يُّقْسِطُوْا لَهُنَّ فِيْ اِكْمَالِ الصَّدَاقِ وَ اُمِرُوْا بِنِكَاحِ مَنْ سِوَاهُنَّ مِنَ النِّسَآءِ قَالَتْ عَآئِشَةُ ثُمَّ اسْتَفْتَى النَّاسُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدُ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ وَ يَسْتَفْتُوْنَكَ فِى النِّسَآءِ قُلِ اللّٰهُ يُفْتِيْكُمْ فِيْهِنَّ قَالَتْ فَبَيَّنَ اللّٰهُ فِيْ هٰذِهٖ اَنَّ الْيَتِيْمَةَ اِذَا كَانَتْ ذَاتَ جَمَالٍ وَ مَالٍ رَغِبُوْا فِيْ نِكَاحِهَا وَلَمْ يُلْحِقُوْهَا بِسُنَّتِهَا بِاِكْمَالِ الصَّدَاقِ فَاِذَا كَانَتْ مَرْغُوْبَةً عَنْهَا فِيْ قِلَّةِ الْمَالِ وَالْجَمَالِ تَرَكُوْهَا وَالْتَمَسُوْا غَيْرَهَا مِنَ النِّسَاءِ قَالَ فَكَمَا يَتْرُكُوْنَهَا حِيْنَ يَرْغَبُوْنَ عَنْهَا فَلَيْسَ لَهُمْ اَنْ يَنْكِحُوْهَا

نکاح او کړئ چه تاسو ته خوښې وي.

۳۵: ابو الیمان. شعیب. زهري. عروه بن زبیر نه روایت کوي، هغه دَ بي بي عائشې نه وَ اِنْ خِفْتُمْ اَنْ لَّا تُقْسِطُوْا فِي الْيَتٰمٰى الخ. مطلب او پوښتنه نو بي بي عائشې ورته اووې، ددې مطلب دا دې چه یتیمه جینۍ به دَ خپل ولي په تربیت کښې وه، نو ولي به د هغې دَ حسن او مال لالچ کولو، هغهٔ به غوښتل، چه زهٔ د هغې دَ خاندان د ښځونه کم مهر سره هغې سره نکاح اوکړم، نو هغې یتیمو جینکو سره د نکاح ممانعت اوشو، خو دا چه دَ هغوئ د مهر تکمیل د انصاف د مخه اوکړي. او دَ یتیمو جینکو نه سِوا نورو ښځو سره دَ نکاح کولو هغوئ ته اجازت ورکړې شویدې. بي بي عائشهٔ فرمائي. دې نه پس خلقو بیا د رسول الله صلي الله علیه وسلّم نه دَ یتیمانو جینکو د نکاح په حقله تپوس اوکه نو الله پاک د آیت نازل کړلو يَسْتَفْتُوْنَكَ فِى النِّسَآءِ (او تا نه دَ یتیمانو جینکو باره کښې تپوس کوي، ورته اووایه چه الله تاسو ته دَ هغوئ باره کښې فتوئ درکوي) بي بي عائشهٔ وائي، الله تعالیٰ دې آیت کښې دا خبره بیان کړله چه یتیمه کوم وخت صاحب جمال او مالداره وي نو هغې سره نکاح کولو کښې دا خلق رغبت کوي، او تکمیل مهر کښې د هغې د خاندان دستور هغې سره نه وي. خو کله چه دَ ښائست او مال د کمي په وجه غیر مرغوب وي، نو هغه په خائې پریږدي او چا بلې ښځې سره نکاح کوي. بي بي عائشهٔ وائي، نو څنګه چه هغوئ یتیمه جینۍ په خائې پریږدئ هر کله چه هغه غیر مرغوب وي. نو دغه شان هغوئ ته دا اختیار نشته چه

اِذَا رَغِبُوْا فِیْهَا اِلَّا اَنْ یُّقْسِطُوْا لَهَا الْاَوْفٰی مِنَ الصِّدَاقِ وَ یُعْطُوْهَا حَقَّهَا.

یتیمے جینئ سره هر کله چه هغه مرغوبه وي بغیر د دے نه چه هغے له پوره مهر ورکړي او د هغے حق ادا کړي، هغے سره دے نکاح اوکړي.

**باب ۳۰: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰی وَابْتَلُوا الْیَتٰمٰی حَتّٰی اِذَا بَلَغُوا النِّکَاحَ فَاِنْ اٰنَسْتُمْ مِّنْهُمْ رُشْدًا فَادْفَعُوْا اِلَیْهِمْ اَمْوَالَهُمْ وَلَا تَاْکُلُوْهَا اِسْرَافًا وَّ بِدَارًا اَنْ یَّکْبَرُوْا وَمَنْ کَانَ غَنِیًّا فَلْیَسْتَعْفِفْ وَمَنْ کَانَ فَقِیْرًا فَلْیَاْکُلْ بِالْمَعْرُوْفِ فَاِذَا دَفَعْتُمْ اِلَیْهِمْ اَمْوَالَهُمْ فَاَشْهِدُوْا عَلَیْهِمْ وَ کَفٰی بِاللّٰهِ حَسِیْبًا لِلرِّجَالِ نَصِیْبٌ مِّمَّا تَرَکَ الْوَالِدَانِ وَالْاَقْرَبُوْنَ وَ لِلنِّسَآءِ نَصِیْبٌ مِّمَّا تَرَکَ الْوَالِدَانِ وَالْاَقْرَبُوْنَ مِمَّا قَلَّ مِنْهُ اَوْ کَثُرَ نَصِیْبًا مَّفْرُوْضًا حَسِیْبًا یَعْنِیْ کَافِیًا.**

**باب ۳۰:** د اللّٰه تعالٰي قول چه ذ یتیمانو ذ خوانیدو، کوم وخت تاسو ته یقین اوشي، او هغوئ کښے صلاحیت اووینئے نو ذ هغوئ مال ورته واپس کړئے او د هغوئ د لوئے کیدو ذ ویرے نه تاسو فضول خرچئ سره دهغوئ مالونه زر زر مۀ خورئ. او کوم سړے چه مالدار وي نو ذ یتیم د مال خوړلو نه دِ جدا اوسي او کوم سړے چه فقیر وي، نو د دستور مطابق دے د هغے نه خوري، او هر کله چه هغوئ له د هغوئ مالونه ورکوئے نو ګواهان پرے مقرر کړئے. اللّٰه یقیناً حساب اخستونکے کافي دے مور پلار او رشته دار چه کوم مال پریږدي، هغے کښے ذ نارینه ؤ حصه ده او ذ زنانه ؤ حصه ده، خواه مال زیات وي یا کم، حصه مقرر ده. او حسیب نه مراد کافي دے.

**باب ۳۱: وَمَا لِلْوَصِیِّ اَنْ یَّعْمَلَ فِیْ مَالِ الْیَتِیْمِ وَمَا یَاْکُلُ مِنْهُ بِقَدْرِ عُمَالَتِهٖ.**

**باب ۳۱:** ددے امر بیان چه ذ یتیم ذ مال نه وصي د پاره محنت کول او د هغے نه د خپل محنت مطابق خوړل جائز دي.

**۳۶: حَدَّثَنَا هَارُوْنُ حَدَّثَنَا اَبُوْ سَعِیْدٍ مَوْلٰی بَنِیْ هَاشِمٍ حَدَّثَنَا صَخْرُ بْنُ جُوَیْرِیَةَ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ اَنَّ عُمَرَ تَصَدَّقَ بِمَالٍ لَهٗ عَلٰی عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وَ کَانَ یُقَالُ لَهٗ ثَمْغٌ وَ کَانَ نَخْلًا فَقَالَ عُمَرُ یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّی**

**۳۶:** هارون. ابوسعید. (د بني هاشم آزاد کړده غلام) صخر بن جویریه. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روایت کوي چه حضرت عمرؓ څۀ مال د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم په زمانه کښے یعني یو باغ خیرات کړے وو چه ذ هغے نوم ثمغ وو. حضرت عمرؓ عرض اوکه، یا رسول اللّٰه، ما څۀ مال حاصل کړے دے، چه خما په نزد ډیر نفیس (اعلٰي) دے. زۀ غواړم چه هغه خیرات

اِسْتَفَدْتُ مَالًا وَّهُوَ عِنْدِي نَفِيْسٌ فَأَرَدْتُ اَنْ اَتَصَدَّقَ بِهٖ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَصَدَّقْ بِأَصْلِهٖ لَا يُبَاعُ وَلَا يُوْهَبُ وَلَا يُوْرَثُ وَلٰكِنْ يُّنْفَقُ ثَمَرُهٗ فَتَصَدَّقَ بِهٖ عُمَرُ فَصَدَقَتُهٗ ذٰلِكَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَ فِي الرِّقَابِ وَالْمَسَاكِيْنِ وَالضَّيْفِ وابْنِ السَّبِيْلِ وَ لِذِي الْقُرْبٰى وَلَا جُنَاحَ عَلٰى مَنْ وَّلِيَهٗ اَنْ يَّأْكُلَ مِنْهُ بِالْمَعْرُوْفِ اَوْ يُوْكِلَ صَدِيْقَهٗ غَيْرَ مُتَمَوِّلٍ بِهٖ.

کړم رسول الله صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، چه تـه اصل اُونبے پـه دې شـرط خيرات کړه چـه هغـه بـه خـرڅيـږي نـه، او نـه به هبه کولے شي او نه به دَ هغے ځنې وراثت جاري وي بلکه د هغے ميوه دې په کار راوستلے شي، نو حضرت عمرؓ هغه په دْغے شرط خيرات کړلو. دَ هغۀ دا صدقه به د الله په لار کښې په غلامانو، مسکينانو، ميلمنو، مسافرو او په قرابت دارو خرڅ کولے شوه او هغۀ دا هم وئيلے وو چه کوم سړے ددې متولي وي نو هغۀ دَ پاره څۀ ګناه نشته، که د دستور مطابق د هغے نه څه خوري، يا په خپل يو دوست ئې خوروي، خو په شرط د دې چه ددې فعل نه ئې د مال جمع کولو اراده نه وي.

۳۷: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ وَمَنْ كَانَ غَنِيًّا فَلْيَسْتَعْفِفْ وَمَنْ كَانَ فَقِيْرًا فَلْيَأْكُلْ بِالْمَعْرُوْفِ قَالَتْ اُنْزِلَتْ فِيْ وَالِي الْيَتِيْمِ اَنْ يُّصِيْبَ مِنْ مَالِهٖ اِذَا كَانَ مُحْتَاجًا بِقَدْرِ مَالِهٖ بِالْمَعْرُوْفِ.

۳۷: عبيد بن اسمٰعيل. ابو اسامه. هشام. عروه. بي بي عائشےؓ اوفرمائيل چهٔ آيت وَمَنْ كَانَ غَنِيًّا فَلْيَسْتَعْفِفْ وَمَنْ كَانَ فَقِيْرًا فَلْيَأْكُلْ بِالْمَعْرُوْفِ دَ يتيم د ولي پـه باره کښې نازل شويدے، کـه هغـه محتاج وي، نو د دستور موافق د خپل حق د لحاظ نـه د يتيم د مال نـه اخستے شي.

باب ۳۲: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى اِنَّ الَّذِيْنَ يَأْكُلُوْنَ اَمْوَالَ الْيَتٰمٰى ظُلْمًا اِنَّمَا يَأْكُلُوْنَ فِيْ بُطُوْنِهِمْ نَارًا وَّ سَيَصْلَوْنَ سَعِيْرًا.

باب ۳۲: د الله تعالٰي قول چه کوم خلق دَ يتيمانو مال خوري، هغوئ خپلو خيټو کښې اُور اچوي او هغوئ به عنقريب دوزخ کښې داخل شي. (دے باب کښې د يتيم د مال خوړلو ممانعت دے).

۳۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ عَنْ ثَوْرِ بْنِ زَيْدِ الْمَدَنِيِّ عَنْ اَبِي الْغَيْثِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ عَنِ

۳۸: عبدالعزيز. عبدالله. سليمان بن بلال. ثور بن زيد مدني. ابوالغيث. حضرت ابوهريرةؓ دَ نبي صلي الله عليه وسلّم نه روايت کوي، حضورؐ اوفرمائيل، اووه

النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اجْتَنِبُوْا السَّبْعَ الْمُوْبِقَاتِ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَمَا هُنَّ قَالَ الشِّرْكُ بِاللّٰهِ وَالسِّحْرُ وقَتْلُ النَّفْسِ الَّتِيْ حَرَّمَ اللّٰهُ اِلَّا بِالْحَقِّ وَ اَكْلُ الرِّبٰو وَ اَكْلُ مَالِ الْيَتِيْمِ وَالتَّوَلِّيْ يَوْمَ الزَّحْفِ وَقَذْفُ الْمُحْصَنَاتِ الْمُؤْمِنَاتِ الْغَافِلَاتِ.

هلاکونکو څيزونونه لرې اوسئ خلقو تپوس اوکړ، يا رسول اللّٰهٔ هغه کومې خبرې دي، وې فرمائيل، چه خدائے سره شرک کول او جادو کول او ذ هغې چا په ناحقه وژل چه هغه اللّٰه تعالیٰ حرام کړې دې او سود خوړل او ذ يتيم مال خوړل، او جهاد نه تيښتنه کول او پاکدامنو، ساده مؤمنو ښځو باندې ذ زنا تهمت لګول.

بَابُ ٣٣: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ يَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الْيَتَامٰى قُلْ اِصْلَاحٌ لَّهُمْ خَيْرٌ وَ اِنْ تُخَالِطُوْهُمْ فَاِخْوَانُكُمْ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ الْمُفْسِدَ مِنَ الْمُصْلِحِ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَاَعْنَتَكُمْ اِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ لَاَعْنَتَكُمْ لَاَحْرَجَكُمْ وَ ضَيَّقَ وَ عَنَتْ خَضَعَتْ وَ قَالَ لَنَا سُلَيْمَانُ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ نَّافِعٍ قَالَ مَا رَدَّ ابْنُ عُمَرَ ؓ عَلٰى اَحَدٍ وَصِيَّةً وَ كَانَ ابْنُ سِيْرِيْنَ اَحَبَّ الْاَشْيَآءِ اِلَيْهِ فِيْ مَالِ الْيَتِيْمِ اَنْ يَّجْتَمِعَ اِلَيْهِ نُصَحَآؤُهٗ وَ اَوْلِيَآؤُهٗ فَيَنْظُرُوا الَّذِيْ هُوَ خَيْرٌ لَّهٗ وَ كَانَ طَاؤُسٌ اِذَا سُئِلَ عَنْ شَيْءٍ مِّنْ اَمْرِ الْيَتٰمٰى قَرَاَ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ الْمُفْسِدَ مِنَ الْمُصْلِحِ وَ قَالَ عَطَآءٌ فِيْ يَتَامَى الصَّغِيْرِ وَالْكَبِيْرِ يُنْفِقُ الْوَلِيُّ عَلٰى كُلِّ اِنْسَانٍ بِقَدْرِهٖ

باب ٣٣: ذ اللّٰه تعالیٰ قول چه خلق تانه د يتيمانو متعلق تپوس کوي، نو ورته اووايه چه ذ هغوئ اصلاح بهتره ده، او که تاسو هغوئ سره اوسيږئ نو هغوئ ستاسو ورونړه دي. اللّٰه مفسد او مصلح پيژني که اللّٰه غوښتلے نو تاسو به ئے مصيبت کښې اچولے وے بيشکه اللّٰه عزت والا حکمت واله دے او د لاعنتکم معني لَاَحْرَجَكُمْ و ضيق (يعني تاسو به ئے حرج او تنګسيا کښې اچولے وے) او سليمان بن حرب اووئيل چه حماد بن اسامه، ايوب، نافع اووئيل چه عبداللّٰه بن عمر به که چا وصي جوړولو نو کله انکار به ئے نه کولو او محمدؒ بن سيرين (تابعي) به دا خوښول چه ذ يتيم ذ مال بندوبست د پاره به ئے خلق او ولي راجمع کړل او ذ دوئ ذ فائدې د پاره به ئے سوچ کولو. ذ طاؤس بن کيسان نه به چه د يتيمانو ذ مقدمې په حقله تپوس کولو نو دهٔ به د سورة بقره دا آيت لوستلو چه اللّٰه پاک فساد جوړونکے او اصلاح راوستونکے ښه پيژني. او عطاء بن ابي رباح وائي چه يتيم لوئے وي يا وړوکے. دهٔ ولي دے دهٔ ذ حصے نه څهٔ چه لائق وي هغه دے په دے

مِنْ حِصَّتِهِ.

يتيم باندے خرچ كوي.

بـاب ۳۴: اِسْتِخْدَامِ الْيَتِيْمِ فِي السَّفَرِ وَالْحَضَرِ اِذَا كَانَ صَلَاحًا لَهُ وَ نَظَرِ الْاُمِّ وَ زَوْجِهَا لِلْيَتِيْمِ.

باب ۳۴: د يتيم نه په سفر او حضر كښے كار اخستل چه په هغے كښے ذ هغۀ فائده وي او ذ مور او ذ مور ذ خاوند (پلندر پلار) په يتيم نظر ساتل.

۳۹: حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ بْنِ كَثِيْرٍ حَدَّثَنَا ابْنُ عُلَيَّةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ عَنْ اَنَسٍؓ قَالَ قَدِمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ لَيْسَ لَهُ خَادِمٌ فَاَخَذَ اَبُوْ طَلْحَةَ بِيَدِيْ فَانْطَلَقَ بِيْ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ اَنَسًا غُلَامٌ كَيِّسٌ فَلْيَخْدُمْكَ قَالَ فَخَدَمْتُهُ فِي السَّفَرِ وَالْحَضَرِ مَا قَالَ لِيْ لِشَيْءٍ صَنَعْتُهُ لِمَ صَنَعْتَ هٰذَا هٰكَذَا وَلَا لِشَيْءٍ لَمْ اَصْنَعْهُ لِمَ لَمْ تَصْنَعْ هٰذَا هٰكَذَا.

۳۹: يعقوب بن ابراهيم بن كثير بيان كوي چه اسمٰعيل بن عليه' او عبدالعزيز. د حضرت انسؓ نه اوويل چه رسول اللّٰه صلي الله عليه وسلّم مدينے منورے ته تشريف راوړو نو دوئ سره څوک خدمتگار نه وو. ابو طلحه (چه ځما د مور بل خاوند وو) دۀ ځما لاس اونيوۀ او حضور صلي الله عليه وسلّم ته ئے بوتلم. حضورؐ ته ئے اوويل يا رسول اللّٰهؐ دا يو هوښيار ماشوم دے. دے به ستاسو خدمت كوي. حضرت انسؓ وائي چه ما به ذ حضورؐ خدمت په سفر او حضر دواړو كښے كولو (دوئ د لسو كالو په موده كښے) كله هم دا نه وو وئيلے چه تا دا كار داسے ولے اوكړو. كله چه ما به څۀ كار اوكړو او يا به م اونه كړو. حضورؐ كله هم نه دي فرمائيلي چه دا دِ ولے اونكړو.

باب ۳۵: اِذَا وَقَفَ اَرْضًا وَّلَمْ يُبَيِّنِ الْحُدُوْدَ فَهُوَ جَآئِزٌ وَّ كَذٰلِكَ الصَّدَقَةُ.

بـاب ۳۵: كۀ چا يو زمكه وقف كړه او د هغے حدود ئے بيان نكړۀ نو ذ داسے زمكے صدقه جائز ده.

۴۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ اِسْحٰقَ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ طَلْحَةَ اَنَّهُ سَمِعَ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَّقُوْلُ اَبُوْ طَلْحَةَ اَكْثَرَ اَنْصَارِيٍّ بِالْمَدِيْنَةِ مَالًا مِّنْ نَّخْلٍ وَ كَانَ اَحَبُّ مَالِهِ

۴۰: عبداللّٰه بن مسلمه وئيلي دي. چه ما د امام مالک. اسحاق بن عبداللّٰه ابن طلحه. انس بن مالک نه اوريدلي دي چه ذ ابو طلحه ټولو انصارو نه زيات په مدينه منوره كښے د كهجورو باغونه وو. په دے ټولو باغونو كښے د بير حا باغ ئے ډير خوښ وو خكه چه دا باغ مسجد نبوي ته مخامخ وو. حضورؐ به اكثر هغے ته

اِلَيْهِ بَيْرُ حَاءَ مُسْتَقْبِلَةَ الْمَسْجِدِ وَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْخُلُهَا وَ يَشْرَبُ مِنْ مَاءٍ فِيْهَا طَيِّبٍ قَالَ اَنَسٌ فَلَمَّا نَزَلَتْ لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتّٰى تُنْفِقُوْا مِمَّا تُحِبُّوْنَ قَامَ اَبُوْ طَلْحَةَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ اللّٰهَ يَقُوْلُ لَنْ تَنَالُوْا الْبِرَّ حَتّٰى تُنْفِقُوْا مِمَّا تُحِبُّوْنَ وَ اِنَّ اَحَبَّ اَمْوَالِيْ اِلَيَّ بَيْرُ حَاءَ وَ اِنَّهَا صَدَقَةٌ لِلّٰهِ اَرْجُوْ بِرَّهَا وَ ذُخْرَهَا عِنْدَ اللّٰهِ فَضَعْهَا حَيْثُ اَرَاكَ اللّٰهُ فَقَالَ بَخْ ذٰلِكَ مَالٌ رَابِحٌ اَوْ رَائِحٌ شَكَّ ابْنُ مَسْلَمَةَ وَقَدْ سَمِعْتُ مَا قُلْتَ وَ اِنِّيْ اَرٰى اَنْ تَجْعَلَهَا فِي الْاَقْرَبِيْنَ قَالَ اَبُوْ طَلْحَةَ اَفْعَلُ ذٰلِكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَقَسَمَهَا اَبُوْ طَلْحَةَ فِيْ اَقَارِبِهٖ وَ فِيْ بَنِيْ عَمِّهٖ وَ قَالَ اِسْمٰعِيْلُ وَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ وَ يَحْيَى بْنُ يَحْيٰى عَنْ مَالِكٍ رَائِحٌ.

تشریف اوړلو. او د هغې پاکې اوبه به ئې څکلې حضرت انسؓ وائي هر کله چه د سورهٔ آل عمران دا آیت نازل سو چه تاسوته د نیکۍ درجه تر هغې نشي درکیدې څو چه زړهٔ تهٔ نږدې مال د خدائې په لاره کښې خرچ نکړئې. ابو طلحه او دریدو حضور صلی الله علیه وسلم ته ئې عرض اوکړو. چه یا رسول الله صلعم خدائې فرمائي چه تاسوته د نیکۍ درجه تر هغې نشي ملاویدې تر سو چه د خپلې خوښې مال د الله په لاره کښې خرچ نکړئې. ځما چه څومره باغونه دي په هغو کښې د بیر حاء باغ ځما ډیر خوښ دې. څهٔ دا باغ د الله په لاره کښې صدقه کوم. امید دې چه ددې بدله به خدائې راکړي. تاسو چه څهٔ مناسب کنړئ دا باغ صدقه کړئ. حضور ورته اوفرمایل چه ډیره ښه ده. دا خو د ډیرې فائدې ورکولو مال دې ته دا مال یعني باغ په خپلوانو تقسیم کړه ابو طلحه عرض اوکړو. ډیره ښه ده. زهٔ به هم دغسې اوکړم. ابو طلحه هغه باغ خپلو عزیزانو او د تره په ځامنو تقسیم کړو. اسمعیل. عبدالله بن یوسف او یحیي بن یحیي هم د امام مالک نه دا روایت کړے دے.

۱۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيْمِ اَخْبَرَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ حَدَّثَنَا زَكَرِيَّاءُ بْنُ اِسْحٰقَ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَمْرُو بْنُ دِيْنَارٍ عَنْ عِكْرَمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ رَجُلًا قَالَ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ اُمَّهٗ تُوُفِّيَتْ اَيَنْفَعُهَا اِنْ تَصَدَّقْتُ عَنْهَا قَالَ نَعَمْ قَالَ فَاِنَّ

۱۴: محمد بن عبدالرحیم. روح بن عباده. زکریا بن اسحاق. عمرو بن دینار. عکرمه. ابن عباسؓ. وائي چه یو سړي (سعد بن عباده) حضور صلی الله علیه وسلم ته عرض اوکړ: زما مور مړه شوې ده: که چرې زهٔ د هغې د طرف نه څهٔ خیرات اوکړم: نو هغې ته به فائده اورسي؟ حضورؐ اوفرمایل: او: هغه اووئیل: زما د میرې ډک

لِـيْ مِـخْـرَافًـا وَّ اُشْهِدُكَ اَنِّيْ قَدْ تَصَدَّقْتُ عَنْهَا.

یو باغ دے، زۀ تاسو گواه کوم چه ما هغه باغ دَ هغې دَ طرفه صدقه کړو.

**بـاب ۳٦: اِذَا اَوْقَفَ جَـمَـاعَةٌ اَرْضًا مُشَاعًا فَهُوَ جَآئِزٌ.**

**باب ۳٦: که چرے یو څو کسانو مشترکه زمکه چه تقسیم کړے نه وي وقف کړي نو جائز ده.**

۴۲: حَـدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنْ اَبِي التَّيَّاحِ عَنْ اَنَسٍؓ قَالَ اَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِبِنَاءِ الْمَسْجِدِ فَقَالَ يَا بَنِي النَّجَّارِ ثَامِنُوْنِيْ بِحَآئِطِكُمْ هٰذَا قَالُوْا لَا وَاللّٰهِ لَا نَـطْـلُـبُ ثَـمَـنَـهُ اِلَّا اِلَـى اللّٰهِ.

۴۲: مُسدّد. عبدالوارث. ابي التَّياح (يزيد بن حميد) حضرت انسؓ وائي چه حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم په مدينه منوّره کښې دَ جماعت جوړولو حکم اوفرمائيلو او بني نجاروته ئے اوفرمائيل چه تاسو دَ دے خائے قيمت مانه واخلئ. دوئ اووئيل چه په خدائے قسم دَ دے قيمت به هر ګز وانخلو. دَ دے قيمت به اللّٰه پاک نه غواړو.

**بـــاب ۳۷: الْـوَقْفِ كَيْفَ يُكْتَبُ.**

**بـــاب ۳۷: د وقف د کـــاغـذاتـو ليـکـلـو بيان.**

۴۳: حَـدَّثَـنَـا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَـزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا ابْـنُ عَوْنٍ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ قَالَ اَصَابَ عُمَرُ بِخَيْبَرَ اَرْضًا فَاَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَصَبْتُ اَرْضًا لَمْ اُصِبْ مَالًا قَطُّ اَنْفَسَ مِنْهُ فَكَيْفَ تَاْمُرُنِيْ بِهٖ قَالَ اِنْ شِئْتَ حَبَّسْتَ اَصْلَهَا وَ تَصَدَّقْتَ بِهَا فَتَصَدَّقَ عُمَرُ اَنَّهُ لَا يُبَاعُ اَصْلُهَا وَلَا يُوْهَبُ وَلَا يُوْرَثُ فِي الْفُقَرَآءِ وَالْقُرْبٰى وَالرِّقَابِ وَ فِي سَبِيْلِ اللّٰهِ وَالضَّيْفِ وَابْنِ

۴۳: مسدّد. يزيد بن زريع. ابن عون. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روايت کوي چه حضرت عمرؓ ته خيبر کښې څه زمکه حاصله شوه هغه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم له راغے، اووے وئيل، ما ته يوه داسے زمکه په لاس راغلے ده چه ددے نه ښه مال ماته هيڅ کله نه وو حاصل شوے نو تاسو دے باره کښې ماته څۀ حکم راکوئ حضور اکرمؐ ورته اوفرمائيل. کۀ غواړے نو اصل اونے خپله قبضه کښې اوساته، او دَ هغے ميوه خيرات کړه: نو حضرت عمرؓ په دے شرط هغه خيرات کۀ، چه اصل اونے دے خرڅولے نشي. او نه دِ هبه کولے شي او نه دے کښې ميراث جاري کړے شي، بلکه فقيرانو قرابت دارو، غلامانو آزادولو کښې، د خدائے لار کښې په ميلمنو او مسافرو دے دَ هغے ميوه خرچ (لګولے شي)

السَّبِيْلِ لَا جُنَاحَ عَلٰى مَنْ وَّلِيَهَا اَنْ يَّأْكُلَ مِنْهَا بِالْمَعْرُوْفِ اَوْ يُطْعِمَ صَدِيْقًا غَيْرَ مُتَمَوِّلٍ فِيْهِ.

او کوم سړے چه ذَ دے متولّي وي هغه دومره کولے شي چه ذَ خپل ضرورت مطابق دِ دهغے نه خوري په دوست دِ خوروي په دے شرط چه جمع دِ نکوي.

**بَاب ۳۸: اَلْوَقْفِ لِلْغَنِيِّ وَالْفَقِيْرِ وَالضَّيْفِ.**

**باب ۳۸:** فقیر. مالدار او میلمنو ذَ پاره ذَ وقف کولو بیان.

۴۴: حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ حَدَّثَنَا ابْنُ عَوْنٍ عَنْ نَّافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ اَنَّ عُمَرَؓ وَجَدَ مَالًا بِخَيْبَرَ فَاَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرَهٗ قَالَ اِنْ شِئْتَ تَصَدَّقْتَ بِهَا فِي الْفُقَرَآءِ وَالْمَسَاكِيْنِ وَ ذِي الْقُرْبٰى وَالضَّيْفِ.

۴۴: ابو عاصم. ابن عون. نافع. حضرت عمرؓ نه روایت کوي. چه حضرت عمرؓ ته خیبر کښے خه مال په لاس ورغے. رسول الله صلے الله علیه وسلّم له راغے او حضور ته ئے بیان اوکړ حضور ورته اوفرمائیل که ته غواړے، دا خیرات که نو هغهٔ هغه مال په فقیرانو، مسکینانو او خپلوانو او په میلمنو خیرات کړلو.

**بَاب ۳۹: وَقْفِ الْاَرْضِ لِلْمَسْجِدِ.**

**باب ۳۹:** جمات ذَ پاره د زمکے وقف کولو بیان.

۴۵: حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ قَالَ سَمِعْتُ اَبِيْ حَدَّثَنَا اَبُو التَّيَّاحِ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَنَسُ ابْنُ مَالِكٍؓ لَمَّا قَدِمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ اَمَرَ بِالْمَسْجِدِ وَ قَالَ لِبَنِي النَّجَّارِ ثَامِنُوْنِيْ بِحَائِطِكُمْ هٰذَا قَالُوْا لَا وَاللّٰهِ لَا نَطْلُبُ ثَمَنَهٗ اِلَّا اِلَى اللّٰهِ.

۴۵: اسحاق. عبدالصمد. عبدالوارث. ابوالتیاح. حضرت انسؓ بن مالکؓ نه روایت کوي، کوم وخت چه رسول الله صلے الله علیه وسلّم مدینے ته تشریف راوړلو، نو حضورؐ د جمات جوړولو حکم اوکړلو، اووے فرمائیل. اے بني نجار، تاسو دا خپل باغ په ما خرخ کړئ. نو هغے خلقو اووے په خدائے مو دِ قسم وي مونږ به ددے قیمت د الله نه سِوا د بل چا نه وانخلو.

**بَاب ۴۰: وَقْفِ الدَّوَابِّ وَالْكُرَاعِ وَالْعُرُوْضِ وَالصَّامِتِ** قَالَ الزُّهْرِيُّ فِيْمَنْ جَعَلَ اَلْفَ دِيْنَارٍ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَ دَفَعَهَا اِلٰى غُلَامٍ لَّهٗ تَاجِرٍ

**باب ۴۰:** خناور، آسونه، اسباب او سپین، سرهٔ (زر) ذَ وقف کولو بیان زهري د هغے سړي باره کښے چه هغه زر، اشرفئ ذَ خدائے په لار کښے وقف کړي، او خپل غلام تاجر ته ئے په دے

يَتَجِرُبِهَا وَ جَعَلَ رِبْحَهُ صَدَقَةً لِلْمَسَاكِيْنِ وَالْاَقْرَبِيْنَ هَلْ لِلرَّجُلِ اَنْ يَاْكُلَ مِنْ رَبْحِ ذٰلِكَ الْاَلْفِ شَيْئًا وَ اِنْ لَمْ يَكُنْ جَعَلَ رِبْحَهَا صَدَقَةً فِي الْمَسَاكِيْنَ قَالَ لَيْسَ لَهُ اَنْ يَاْكُلَ مِنْهَا.

وجه حواله کړي چه هغه دے سره تجارت کوي. او نفع په مسکینانو او په خپلو عزیزانو خیرات کوي. نو هغے سړي له جائز دي چه د هغے زر اشرفو نه خپله هم خوري څو که هغه د هغے نفع په مسکینانو خیرات نکړه نو بیا هغه ته د هغے نه خوراک اختیار نشته.

۴۶: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ عُمَرَ حَمَلَ عَلٰى فَرَسٍ لَهُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَعْطَاهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيَحْمِلَ عَلَيْهَا رَجُلًا فَاُخْبِرَ عُمَرُ اَنَّهُ قَدْ وَقَفَهَا يَبِيْعُهَا فَسَاَلَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يَبْتَاعَهَا فَقَالَ لَا تَبْتَعْهَا وَلَا تَرْجِعَنَّ فِيْ صَدَقَتِكَ.

۴۶: مسدد. یحیی. عبیدالله. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روایت کوي. حضرت عمرؓ یو خُلے خپل یو اس د خدائے په لار کښے ورکړے وو چه رسول الله صلي الله علیه وسلم حضرت عمرؓ ورکړے وو. چه هغه دے پرے سوریږي. لیکن حضرت عمرؓ ته هغه یو بل سړي له سورلی د پاره ورکه. بیا حضرت عمرؓ اولیدل چه هغه سړے ولاړ دے بازار کښے هغه اس خرخوي. په دے خبره حضرت عمرؓ د رسول اللهؐ نه اجازت طلب که چه زهٔ ئے خپله په بیع واخلم. نو حضورؐ ورته اوفرمائیل ته ئے مه اخله او خپله صدقه مهٔ واپس کوه.

بَابُ ۴۱: نَفَقَةِ الْقَيِّمِ لِلْوَقْفِ.

باب ۴۱: د نګران د وقف نه خان د پاره د ضروري خرڅ اخستلو بیان.

۴۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَقْتَسِمُ وَرَثَتِيْ دِيْنَارًا مَّا تَرَكْتُ بَعْدَ نَفَقَةِ نِسَآئِيْ وَمَؤُنَةِ عَامِلِيْ فَهُوَ صَدَقَةٌ.

۴۷: عبدالله بن یوسف. مالک. ابوالزناد. اعرج. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي چه رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل خما وارث د نه دینار تقسیموي او نه درهم. بلکه څه چه زهٔ د خپلو بیبیانو د خرڅ او کارندهٔ د اجرت نه زیات پریږدم. هغه صدقه دے.

۴۸: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ

۴۸: قتیبه بن سعید. حماد. ایوب. نافع. حضرت

حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ عُمَرَؓ اِشْتَرَطَ فِيْ وَقْفِهٖ اَنْ يَّاْكُلَ مَنْ وَّلِيَهٗ وَ يُوْكِلَ صَدِيْقَهٗ غَيْرَ مُتَمَوِّلٍ مَالًا.

ابن عمرؓ نه روایت کوي. حضرت عمرؓ خپل وقف کښې دا شرط لګولے وو چه کوم سړے ددے متولّي وي، هغه د ددے نه خوري په شرط ددے چه هغه په دے طریقه د مال جمع کولو اراده نه لري.

**بـــاب ۴۲:** إِذَا وَقَفَ أَرْضًا أَوْ بِئْرًا وَاشْتَرَطَ لِنَفْسِهٖ مِثْلَ دِلَاءِ الْمُسْلِمِيْنَ وَ أَوْقَفَ أَنَسٌ دَارًا فَكَانَ إِذَا قَدِمَهَا نَزَلَهَا وَ تَصَدَّقَ الزُّبَيْرُ بِدُوْرِهٖ وَ قَالَ لِلْمَرْدُوْدَةِ مِنْ بَنَاتِهٖ أَنْ تَسْكُنَ غَيْرَ مُضِرَّةٍ وَلَا مُضَرٍّ بِهَا فَإِنِ اسْتَغْنَتْ بِزَوْجٍ فَلَيْسَ لَهَا حَقٌّ وَ جَعَلَ ابْنُ عُمَرَ نَصِيْبَهٗ مِنْ دَارِ عُمَرَ سُكْنٰى لِذَوِي الْحَاجَةِ مِنْ اٰلِ عَبْدِ اللّٰهِ وَ قَالَ عَبْدَانُ أَخْبَرَنِيْ أَبِيْ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ أَبِيْ إِسْحَاقَ عَنْ أَبِيْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ أَنَّ عُثْمَانَ حَيْثُ حُوْصِرَ أَشْرَفَ عَلَيْهِمْ وَ قَالَ أَنْشُدُكُمْ وَلَا أَنْشُدُ إِلَّا أَصْحَابَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلَسْتُمْ تَعْلَمُوْنَ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ حَفَرَ بِئْرَ رُوْمَةَ فَلَهُ الْجَنَّةُ فَحَفَرْتُهَا

**باب ۴۲:** زمکه یا کوهے (کنواں) وقف کونکے که خان د پاره دا شرط اوتړي چه د نورو مسلمانانو په شان به هغه هم خپله بورقه کوهي کښې اچوي. نو د داسے وقف د درست کیدو بیان. حضرت انسؓ یو کور وقف کړے وو، بیا چه کله به هغه هلته ورتلو نو هغے کښے به مقیم کیدو حضرت زبیرؓ هم خپل کورونه خیرات کړي وو او خپلو خوړو لونړو ته نے وئیلے وو چه هغوئ د پکښے اوسیږي، خو کورته به نقصان نه رسوي. او نه د خپله تکلیف اوچتوي. بیا که څوک خاوند داره جینئ د خپل خاوند به وجه مالداره شي نو هغے ته به نے دا وئیلے چه هغے ته دے کورونو کښې د اوسیدو حق نشته. او حضرت ابن عمرؓ ته چه خپله حصه د حضرت عمرؓ د کور نه حاصله شوے وه هغه نے د خپل محتاج اولاد د پاره عسري کړے وه. او عبدان دغے څو واسطو لرد نقل کوي، چه حضرت عثمانؓ محاصره کښې راغے، نو هغه بالا خانے ته اوخت او د باغیانو د وړاند نے اووے زهٔ تاسو له په خدائے قسم درکوم او دا قسم صرف اصحاب رسول اللّٰه له ورکوم چه آیا تاسو ته نه دهٔ معلومه چه رسول اللّٰه فرمائیلي وو کوم سړے چه رومه نوم کوهے (کنواں) واخلي هغه ته به جنت حاصلیږي نا هغه اخستے دے او آیا تاسو ته نه دهٔ معلومه چه حضور فرمائیلي دي کوم سړے چه د جیش عسرت یعني د

اَلَسْتُمْ تَعْلَمُوْنَ اِنَّهُ قَالَ مَنْ جَهَّزَ جَيْشَ الْعُسْرَةِ فَلَهُ الْجَنَّةُ فَجَهَّزْتُهُمْ قَالَ فَصَدَّقُوْهُ بِمَا قَالَ وَ قَالَ عُمَرُ فِيْ وَقْفِهٖ لَا جُنَاحَ عَلٰى مَنْ وَّلِيَهٗ اَنْ يَّاْكُلَ وَ قَدْ يَلِيْهِ الْوَاقِفُ وَغَيْرُهٗ فَهُوَ وَاسِعٌ لِّكُلٍّ.

غزوهٔ تبوک سامان درست کړي، هغه به جنت له ځي، ما د هغې سامان درست که. راوي وائي. صحابه وُ ر حضرت عثمانؓ تصديق اوکه، او حضرت عمرؓ خپل وخت کښې دا فرمائيلي وو کوم سړے چه ددے متولي وي په هغهٔ څهٔ ګناه نشته چه هغه ددے نه اوخوري او د وقف متولي کله خپله وقف کونکے هم وي کله بل څوک نو دا خبره هر يو ذ پاره جائز شوه چه متولي د خپل ضروري خرڅ د پاره د هغې نه واخلي.

باب ۴۳: اِذَا قَالَ الْوَاقِفُ لَا نَطْلُبُ ثَمَنَهٗ اِلَّا اِلَى اللّٰهِ فَهُوَ جَآئِزٌ.

باب ۴۳: ذَ وقف کونکي وئيل چه ددے قيمت ذ الله نه مطلوب دے، نو ذَ داسے وقف بيان.

۴۹: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنْ اَبِي التَّيَّاحِ عَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا بَنِي النَّجَّارِ ثَامِنُوْنِيْ بِحَائِطِكُمْ قَالُوْا لَا نَطْلُبُ ثَمَنَهٗ اِلَّا اِلَى اللّٰهِ.

۴۹: مسدد. عبدالوارث. ابوالتياح. حضرت انسؓ نه روايت کوي، رسول الله صلعم د جمات جوړولو په وخت فرمائيلي وو چه اے بني نجار تاسو خپل باغ په ما خرڅ کړئ. هغې خلقو عرض اوکه مونږ خو به ددے قيمت يواځے د الله نه غواړو. بل چا نه ئې نۀ غواړو.

باب ۴۴: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى: يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا شَهَادَةُ بَيْنِكُمْ اِذَا حَضَرَ اَحَدَكُمُ الْمَوْتُ حِيْنَ الْوَصِيَّةِ اثْنَانِ ذَوَا عَدْلٍ مِّنْكُمْ اَوْ اٰخَرَانِ مِنْ غَيْرِكُمْ اِنْ اَنْتُمْ ضَرَبْتُمْ فِي الْاَرْضِ فَاَصَابَتْكُمْ مُّصِيْبَةُ الْمَوْتِ تَحْبِسُوْنَهُمَا مِنْ بَعْدِ الصَّلٰوةِ فَيُقْسِمَانِ بِاللّٰهِ اِنِ ارْتَبْتُمْ لَا نَشْتَرِيْ بِهٖ ثَمَنًا وَّلَوْ كَانَ ذَا قُرْبٰى وَلَا نَكْتُمُ شَهَادَةَ

باب ۴۴: ذَ الله تعالٰي قول: اے ايمان والو تاسو کښې چه کله څوک مړ کيږي نو ذَ وصيت وخت کښې دِ تاسو کښې يا ستاسو عزيزانو کښې دوه عادل ګواهان موجود وي. که تاسو سفر کښې يئ اوپه تاسو د مرګ مصيبت راشي، نو هغه دواړه ذَ مانځه نه پس ايسار کړئ، هغوئ دِ په الله قسم اوخوري که ستاسو شک شبه وي چه مونږ به ددے په بدله کښې هيڅ قيمت نه اخلو اګر کهٔ قرابت واله وي او مونږ به د الله ګواهي نه پټوو (که دابښے ئے اوکړو، نو) هغه وخت به مونږ د ګنهګارو نه شو. بيا که معلومه شي چه واقعي دا ګواهان

اللّٰهِ اِنَّا اِذًا لَّمِنَ الْاٰثِمِيْنَ فَاِنْ عُثِرَ عَلٰى اَنَّهُمَا اسْتَحَقَّا اِثْمًا فَاٰخَرَانِ يَقُوْمَانِ مَقَامَهُمَا مِنَ الَّذِيْنَ اسْتَحَقَّ عَلَيْهِمُ الْاَوْلَيٰنِ فَيُقْسِمٰنِ بِاللّٰهِ لَشَهَادَتُنَا اَحَقُّ مِنْ شَهَادَتِهِمَا وَمَا اعْتَدَيْنَا اِنَّا اِذًا لَّمِنَ الظّٰلِمِيْنَ ذٰلِكَ اَدْنٰى اَنْ يَّاْتُوْا بِالشَّهَادَةِ عَلٰى وَجْهِهَا اَوْ يَخَافُوْا اَنْ تُرَدَّ اَيْمَانٌ بَعْدَ اَيْمَانِهِمْ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاسْمَعُوْا وَاللّٰهُ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الْفَاسِقِيْنَ وَ قَالَ لِيْ عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ اٰدَمَ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ زَائِدَةَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اَبِي الْقَاسِمِ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ خَرَجَ رَجُلٌ مِّنْ بَنِيْ سَهْمٍ مَعَ تَمِيْمِ الدَّارِيِّ وَ عَدِيِّ ابْنِ بَدَّاءٍ فَمَاتَ السَّهْمِيُّ بِاَرْضٍ لَيْسَ بِهَا مُسْلِمٌ فَلَمَّا قَدِمَا بِتَرِكَتِهِ فَقَدُوْا جَامًا مِّنْ فِضَّةٍ مُخَوَّصًا مِّنْ ذَهَبٍ فَاَحْلَفَهُمَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ وُجِدَ الْجَامُ بِمَكَّةَ فَقَالُوا ابْتَعْنَاهُ مِنْ تَمِيْمٍ وَّ عَدِيٍّ فَقَامَ رَجُلَانِ مِنْ اَوْلِيَائِهِ فَحَلَفَا لَشَهَادَتُنَا اَحَقُّ مِنْ شَهَادَتِهِمَا وَ اِنَّ الْجَامَ لِصَاحِبِهِمْ قَالَ وَ فِيْهِمْ نَزَلَتْ هٰذِهِ الْاٰيَةُ يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا شَهَادَةُ

دروغژن وو نو نور دوه ګواهان دِ اودریږي چه دَ مړي قریبي رشته دار وي هغوئ دِ دَ خدائے په قسم اووائي چه زمونږ ګواهي د وړمبنو ګواهانو مقابله کښے زیاته معتبره ده، او مونږ هیڅ ناحقه خبره نه ده کړے که داسے مو کړے وي نو بیشکه مونږ ګنهګار یو. دا تدبیر داسے دے چه دے نه دَ ټیک ټیک ګواهي ورکولو زیات اُمید کیدے شي. یا ګواهانو سره به ویره وي. چه داسے نه دَ هغو دَ قسم خوړولو نه پس بیا وارثانو ته قسم ورکړیشي. او دَ اللّٰه تعالٰی نه ویره کوئ. دَ هغه حکم اورئ او اللّٰه نافرمانه خلق نه په لاره کوي. او امام بخاريؒ وائي ماته علي بن عبداللّٰه اووے چه مونږ ته یحيٰي بن آدم او هغه ته ابن ابي زائده د محمد بن قاسم نه هغهٔ د حضرت ابن عباسؓ نه روایت اوکه. چه یو سړے د قبیلهٔ بني تمیم داري او عدي بن بداء سره ملګرتیا کښے بهر تلے وو. بیا سهمي یو داسے ځائے کښے مړ شولو چه هلته هیڅوک مسلمان نه وو. کوم وخت چه تمیم او عدي دَ هغهٔ ترکه (میراث) راوړلو نو د چاندئ یو جام چه په هغے د سرو زرو نقش وو هغه پکښے نه وو. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم هغے دواړو له قسم ورکړلو. دے نه پس خلقو هغه جام مکه معظمه کښے اولید، او بیان ئے اوکه چه مونږ دا جام د تمیم او عدي نه اخستے دے. بیا دوه سړي د مړي په رشته دارانو کښے اودریدل او هغوئ قسم او خوړ چه ځمونږ شهادت ددے دواړو شهادتونو په نسبت زیات دَ قبلولو قابل دے مونږ ګواهي کوو چه دا جام زمونږ د عزیز دے نو حضرت انس وائي چه دا آیت دَ هغوئ په حق کښے نازل شولو یٰاَیها الذین

بَيْنِكُمْ.

باب ۴۵: قَضَاءِ الْوَصِيِّ دُيُوْنَ الْمَيِّتِ بِغَيْرِ مَحْضَرٍ مِّنَ الْوَرَثَةِ.

۵۰: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَابِقٍ اَوِ الْفَضْلُ بْنُ يَعْقُوْبَ عَنْهُ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ اَبُوْ مُعَاوِيَةَ عَنْ فِرَاسٍ قَالَ قَالَ الشَّعْبِيُّ حَدَّثَنِيْ جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الْاَنْصَارِيُّ اَنَّ اَبَاهُ اُسْتُشْهِدَ يَوْمَ اُحُدٍ وَ تَرَكَ سِتَّ بَنَاتٍ وَ تَرَكَ عَلَيْهِ دَيْنًا فَلَمَّا حَضَرَ جَدَادُ النَّخْلِ اَتَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَدْ عَلِمْتَ اَنَّ وَالِدِيْ اُسْتُشْهِدَ يَوْمَ اُحُدٍ وَّ تَرَكَ دَيْنًا كَثِيْرًا وَّ اِنِّيْ اُحِبُّ اَنْ يَّرَاكَ الْغُرَمَآءُ قَالَ اذْهَبْ فَبَيْدِرْ كُلَّ تَمْرٍ عَلٰى نَاحِيَتِهٖ فَفَعَلْتُ ثُمَّ دَعَوْتُهُ فَلَمَّا نَظَرُوْا اِلَيْهِ اُغْرُوْا بِيْ تِلْكَ السَّاعَةَ فَلَمَّا رَاٰى مَا يَصْنَعُوْنَ طَافَ حَوْلَ اَعْظَمِهَا بَيْدَرًا ثَلٰثَ مَرَّاتٍ ثُمَّ جَلَسَ عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ ادْعُ اَصْحَابَكَ فَمَا زَالَ يَكِيْلُ لَهُمْ حَتّٰى اَدَّى اللّٰهُ اَمَانَةَ وَالِدِيْ وَ اَنَا وَاللّٰهِ رَاضٍ اَنْ يُّؤَدِّيَ اللّٰهُ اَمَانَةَ وَالِدِيْ وَلَا اَرْجِعَ اِلٰى اَخَوَاتِيْ بِتَمْرَةٍ فَسَلِمَ وَاللّٰهِ الْبَيَادِرُ كُلُّهَا حَتّٰى اِنِّيْ اَنْظُرُ اِلَى الْبَيْدَرِ

امنوا شهادة بَيْنَكُمْ.

باب ۴۵: د ورثه غير حاضرئ كښې دَ وصي دَ مړي دَ قرضونو دَ ادا كولو بيان.

۵۰: محمد بن سابق يا فضل بن يعقوب. شيبان. ابو معاويه. فراش. شعبي. جابر بن عبداللّٰه انصاري نه روايت كوي چه دَ هغهٔ پلار د اُحد په ورځ شهيد شولو او دَ هغهٔ نه شپږ لونړه پاتې شوې او څهٔ قرض پرې هم پاتې شو د قجورو دَ شوكولو وخت چه راغې. نو ما حضور صلي اللّٰه عليه وسلم ته عرض اوكهٔ، اې د اللّٰه رسولهٔ. تاسوٗ ته معلومه ده چه د اُحد په ورځ زما پلار شهيد شولو او هغه باندې ډير قرض پاتې دې. زهٔ غواړم چه تاسو ماسره تشريف يوسئ چه قرض خواه تاسو اووينئ او قرض كښې څه كمي اوكړي، حضورٗ ورته اوفرمائيل، څه تهٔ لاړ شه، او هر قسم قجورې يو ځكت كښې جمع كړه، ما دغسې اوكړل. هغې نه پس حضورٗ تشريف راوړلو. كوم وخت چه قرض خواهانو حضورٗ اوليدلو، نو هغه وخت ئې زما نه نوره هم سخته تقاضا شروع كړله. حضورٗ چه هغوئ په داسې كولو اوليدل، نو دَ لوئې ډهيري نه ئې چاپيره درې چكرونه اووهل. بيا حضورٗ په هغې كيناستلو. بيائې اوفرمائيل. تهٔ خپل قرض خواهان راتول كړه. بيا برابر حضورٗ هغوئ ته په ناپ ناپ وركول، تردې چه اللّٰه زما دَ پلار قرض ادا كړلو. او زهٔ په خدائې قسم خورم، په دې راضي ووم. چه اللّٰه زما دَ پلار قرض ادا كړي. خواه زهٔ خپلو خويندو له يوه قجوره هم واپس يونسم اوه تولې قجورې قرضه كښې لاړې شي، خو قسم په خدائې پوره ډهيرې بچ شو ما

الَّذِي عَلَّمَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَأَنَّهُ لَمْ يَنْقُصْ تَمْرَةً وَاحِدَةً.

هغې ډېري ته چه په هغې حضور صلعم ناسته وو خاص طور سره غور کولو. دا معلومه شوه چه د هغې نه يو قجوره هم کمه نه وه.

# كِتَابُ الْجِهَادِ وَالسِّيَرِ

# جهاد او دَ سيرت رسول صلى الله عليه وسلم بيان

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

بسم الله الرحمن الرحيم

بَابُ ۴۲۶: فَضْلِ الْجِهَادِ وَالسِّيَرِ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى اِنَّ اللّٰهَ اشْتَرٰى مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ اَنْفُسَهُمْ وَ اَمْوَالَهُمْ بِاَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ يُقَاتِلُوْنَ فِي سَبِيْلِ اللّٰهِ فَيَقْتُلُوْنَ وَ يُقْتَلُوْنَ وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا فِي التَّوْرٰىةِ وَالْاِنْجِيْلِ وَالْقُرْاٰنِ وَمَنْ اَوْفٰى بِعَهْدِهٖ مِنَ اللّٰهِ فَاسْتَبْشِرُوْا بِبَيْعِكُمُ الَّذِيْ بَايَعْتُمْ بِهٖ اِلٰى قَوْلِهٖ وَ بَشِّرِ الْمُؤْمِنِيْنَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ الْحُدُوْدُ الطَّاعَةُ.

باب ۴۲۶: د جهاد فضيلت او د حضور صلي الله عليه وسلم د حالاتو بيان. او د الله تعالي قول. چه الله تعالي د مسلمانانو نه د جنت په بدله کښې د هغوئ خانونه په بيع اخستي دي. د هغوئ حالت دا دے چه هغوئ د الله لار کښې جهاد کوي، قتل کوي او خپله قتليږي. تورات او انجيل او قرآن کښې دا د خدائے ريښتني وعده ده او د الله نه زيات وعده پوره کونکے څوک دے نو تاسو په دے خريدو فروخت د خوشحالئ اظهار کوئ تاسو چه کوم تجارت کړيدے هغه لويه کاميابي ده د الله تعالي د قول پورے وَ بَشِّرِ الْمُؤْمِنِيْن او حضرت ابن عباس اوفرمائيل د حدود نه مراد د الله اطاعت دے.

۱۵۱: حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ صَبَّاحٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ ابْنُ سَابِقٍ حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ مِغْوَلٍ قَالَ سَمِعْتُ الْوَلِيْدَ بْنَ الْعَيْزَارِ ذَكَرَ عَنْ اَبِيْ عَمْرٍو الشَّيْبَانِيِّ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْعُوْدٍ سَأَلْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَيُّ الْعَمَلِ اَفْضَلُ قَالَ الصَّلٰوةُ عَلٰى مِيْقَاتِهَا قُلْتُ ثُمَّ اَيٌّ قَالَ ثُمَّ بِرُّ

۱۵۱: حسن بن صباح. محمد بن سابق مالک بن مغول. وليد بن عيزار. ابو عمرو شيباني. حضرت عبدالله بن مسعودؓ نه روايت کوي. ما د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوکه کوم عمل د تولو نه زيات افضل دے حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل په خپل وخت نمونځ کول. ما عرض اوکه: بيا کوم عمل. حضورؐ اوفرمائيل د الله په لار کښې جهاد

الْوَالِدَيْنِ قُلْتُ ثُمَّ اَيٌّ قَالَ الْجِهَادُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَسَكَتُّ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَوِ اسْتَزَدْتُّهُ لَزَادَنِيْ.

کول. دے نه پس ما د رسول الله صلعم نه تپوس اونه که. که ما د حضور صلي الله عليه وسلم نه زيات تپوس کړے وے نو حضور صلے الله عليه وسلم به ماته زيات ښودلے وو.

۵۲ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا يَحْيٰى بْنِ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَنْصُوْرٌ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ طَاوُسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا هِجْرَةَ بَعْدَ الْفَتْحِ وَلٰكِنْ جِهَادٌ وَّ نِيَّةٌ وَّ اِذَا اسْتُنْفِرْتُمْ فَانْفِرُوْا.

۵۲ : علي بن عبدالله. يحيي بن سعيد. سفيان. منصور. مجاهد. طاؤس. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي. رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل د مکے د فتحے نه پس هجرت باقي پاتے نه شو او د جهاد او نيک نيتي ثواب اوس هم حاصليږي. که تاسو جهاد ذ پاره طلب کړے شئ. نو سمدستي کمر بسته شئ.

۵۳ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا خَالِدٌ حَدَّثَنَا حَبِيْبُ بْنُ اَبِيْ عَمْرَةَ عَنْ عَائِشَةَ بِنْتِ طَلْحَةَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّهَا قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ نَرَى الْجِهَادَ اَفْضَلُ الْعَمَلِ اَفَلَا نُجَاهِدُ قَالَ لٰكِنْ اَفْضَلُ الْجِهَادِ حَجٌّ مَبْرُوْرٌ.

۵۳ : مسدد. خالد. حبيب بن ابي عمره. عائشه بنت طلحه. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي هغے اووے يا رسول الله صلي الله عليه وسلم مونږ جهاد ټولو اعمالو کښے افضل ګڼړو نو بيا مونږ د ولے جهاد اونکړو. حضورؐ اوفرمائيل ستاسو ښه جهاد حج مبرور (حج مقبول) دے.

ف : مبرور : پاک چه هغے سره نيکي شوے وي.

۵۴ : حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُوْرٍ اَخْبَرَنَا عَفَّانُ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جُحَادَةَ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ حَصِيْنٍ اَنَّ ذَكْوَانَ حَدَّثَهُ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ حَدَّثَهُ قَالَ جَآءَ رَجُلٌ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ دُلَّنِيْ عَلٰى عَمَلٍ يَعْدِلُ الْجِهَادَ قَالَ لَا اَجِدُهُ قَالَ هَلْ تَسْتَطِيْعُ اِذَا

۵۴ : اسحق بن منصور. عفان. همام. محمد بن حجاده. ابوحصين. ذکوان. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي. يو سړے رسول الله صلي الله عليه وسلم له راغے او عرض ئے اوکه ماته داسے يو عبادت اوښايئ چه د جهاد هم مرتبه وي. حضورؐ ورته اوفرمائيل داسے عبادت خو نشته خو ته دا کولے شے چه کوم وخت مجاهد د جهاد د پاره اوځي نو ته خپل جمات ته لاړ شے. او مونځ د پاره اودريږے او سست نه شے او برابر

خَرَجَ الْمُجَاهِدُ اَنْ تَدْخُلَ مَسْجِدَكَ فَتَقُوْمَ وَلَا تَفْتُرَ وَتَصُوْمَ وَلَا تُفْطِرَ قَالَ وَمَنْ يَّسْتَطِيْعُ ذٰلِكَ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ اَنَّ فَرَسَ الْمُجَاهِدِ لَيَسْتَنُّ فِيْ طِوَلِهٖ فَيُكْتَبُ لَهٗ حَسَنَاتٍ.

روژے نیسے. څه روژه پرے نږدے' هغه عرض او کړ. حضورؐ داسے څوک کولے شي حضرت ابوهریرهؓ به وئیلے چه د مجاهد اس خپلے رسئ کښے ترلے وي او خرند د پاره ګرځي راګرځي نو دهغے اس په هر هر قدم مجاهد د پاره نیکئ لیکلے شي.

**باب ۴۷: اَفْضَلُ النَّاسِ مُؤْمِنٌ يُجَاهِدُ بِنَفْسِهٖ وَمَالِهٖ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَ قَوْلِهٖ تَعَالٰى يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا هَلْ اَدُلُّكُمْ عَلٰى تِجَارَةٍ تُنْجِيْكُمْ مِنْ عَذَابٍ اَلِيْمٍ تُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ وَ تُجَاهِدُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ بِاَمْوَالِكُمْ وَ اَنْفُسِكُمْ ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ يَغْفِرْلَكُمْ ذُنُوْبَكُمْ وَ يُدْخِلْكُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ وَ مَسٰكِنَ طَيِّبَةً فِيْ جَنّٰتِ عَدْنٍ ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ.**

**باب ۴۷:** د ټولو نه افضل هغه مومن دے چه د اللّٰه په لار کښے دَ خپل جان و مال په ذریعه جهاد او کړي او د اللّٰه تعالٰي قول چه اے ایمان والو آیا زهٔ تاسو ته هغه تجارت اوښایم چه تاسو د عذاب د تکلیف نه خلاص کړي. هغه دا دے چه دَ خپل ځانونو او مالونو په ذریعه جهاد کوئ. دا ستاسو دَ پاره ډیر بهتر دے کهٔ تاسو پوهیږئ او اللّٰه تعالٰي به ستاسو ګناه اوبخښي. او تاسو به داسے باغونو کښے داخل کړي چه دَ هغے لاندے نهرونه بهیږي او دَ همیشه باغونو ښه کورونو کښے به مو داخل کړي او دا دَ ټولو نه لویه کامیابي ده.

**۵۵: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَطَآءُ بْنُ يَزِيْدَ اللَّيْثِيُّ اَنَّ اَبَا سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ حَدَّثَهٗ قَالَ قِيْلَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَيُّ النَّاسِ اَفْضَلُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُؤْمِنٌ يُجَاهِدُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ بِنَفْسِهٖ وَمَالِهٖ قَالُوْا ثُمَّ مَنْ قَالَ مُؤْمِنٌ فِيْ شِعْبٍ مِنَ الشِّعَابِ يَتَّقِي اللّٰهَ وَ يَدَعُ النَّاسَ مِنْ شَرِّهٖ.**

**۵۵:** ابوالیمان. شعیب. زهري. عطاء بن یزید لیثي. حضرت ابوسعید خدري نه روایت کوي. یو خلے دربار رسول صلي اللّٰه علیه وسلّم کښے عرض اوکړے شو' یا رسول اللّٰه ټولو خلقو کښے افضل څوک دے نو وے فرمائیل هغه مؤمن چه خپل سر او مال سره د خدائے په لار کښے غزا کوي. بیا صحابهؓ عرض اوکړ. د هغه نه پس څوک. حضورؐ ورته اوفرمائیل. هغه مومن چه د غر په یوه درّه کښے اوسیږي او هلته د خدائے عبادت کوي او خلق د خپل ضرر نه ساتي.

٥٦ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَثَلُ الْمُجَاهِدِ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَنْ يُجَاهِدُ فِيْ سَبِيْلِهِ كَمَثَلِ الصَّائِمِ الْقَائِمِ وَ تَوَكَّلَ اللّٰهُ الْمُجَاهِدَ فِيْ سَبِيْلِهِ بِاَنْ يَتَوَفَّاهُ اَنْ يُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ اَوْ يُرْجِعَهُ سَالِمًا مَعَ اَجْرٍ وَ غَنِيْمَةٍ.

٥٦ : ابو اليمان. شعيب. زهري. سعيد بن مسيب. حضرت ابوهريرة نه روايت كوي. ما د رسول اللّه صلي اللّه عليه وسلّم نه دا واوريدل. كوم سړے چه د اللّه په لار كښې غزا كوي. اللّه هغه ښه پيژني. چه د هغه لار كښې غزا كوي. د هغه مثال د هغې چا دے. چه روزانه روژه نيسي. او تول شپه عبادت كوي. اللّه خپل لار كښې د غزا كونكو د پاره دا خبره په ذمه اخستے ده كه هغه له مرګ ور كوي نو هغه به جنت كښې داخلوي يا غازي به ئے جوړ كړي. ثواب او مال غنيمت سره به ئے ژوندے واپس كړي.

بَابٌ ٤٨ : الدُّعَاءِ بِالْجِهَادِ لِلرِّجَالِ وَالنِّسَآءِ. وَ قَالَ عُمَرُ ارْزُقْنِيْ شَهَادَةً فِيْ بَلَدِ رَسُوْلِكَ.

باب ٤٨ : د نارينه ؤ او زنانه ؤ جهاد او د شهادت د دُعا غوښتلو بيان. حضرت عمرؓ به وئيل. اے اللّه ماته د خپل رسول په ښار (مدينه منوره) كښې شهادت راكړے.

٥٧ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ اِسْحٰقَ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ طَلْحَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ سَمِعَهُ يَقُوْلُ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْخُلُ عَلٰى اُمِّ حَرَامٍ بِنْتِ مِلْحَانَ فَتُطْعِمُهُ وَ كَانَتْ اُمُّ حَرَامٍ تَحْتَ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ فَدَخَلَ عَلَيْهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَطْعَمَتْهُ وَ جَعَلَتْ تَفْلِيْ رَاْسَهُ فَنَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ اسْتَيْقَظَ

٥٧ : عبداللّه بن يوسف. مالک. اسحق بن عبداللّه بن ابي طلحة نه روايت كوي. هغه د انس بن مالک نه واوريدل. د رسول اللّه صلي اللّه عليه وسلّم دا عادت وو چه امّ حرام بنت ملحان كره به ئے تشريف اوړلو. هغې به حضورؐ باندے طعام خوړولو او امّ حرام د عباده بن صامت په نكاح كښې وه. يوه ورځ د دے عادت موافق حضورؐ هغې كره ورغے او هغې په حضورؐ ډوډۍ اوخوړوله او د حضورؐ په سر كښې ئے سپږے كتل شروع كړل. بيا حضورؐ اوده شولو. او خندا سره بيدار شولو. امّ حرام واني ما عرض اوكه يا رسول اللّهؐ تاسو ولے خاندئ. ورے فرمائيل. دے وخت په خوب

وَهُوَ يَضْحَكُ قَالَتْ قُلْتُ وَ مَا يُضْحِكُكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ نَاسٌ مِّنْ اُمَّتِيْ عُرِضُوْا عَلَيَّ غُزَاةٌ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ يَرْكَبُوْنَ ثَبَجَ هٰذَا الْبَحْرِ مُلُوْكًا عَلَى الْاَسِرَّةِ اَوْ مِثْلَ الْمُلُوْكِ عَلَى الْاَسِرَّةِ شَكَّ اِسْحٰقُ قَالَتْ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اُدْعُ اللّٰهَ اَنْ يَّجْعَلَنِيْ مِنْهُمْ فَدَعَا لَهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ وَضَعَ رَاْسَهٗ ثُمَّ اسْتَيْقَظَ وَهُوَ يَضْحَكُ فَقُلْتُ وَمَا يُضْحِكُكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ نَاسٌ مِّنْ اُمَّتِيْ عُرِضُوْا عَلَيَّ غُزَاةٌ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ كَمَا قَالَ فِي الْاَوَّلِ قَالَتْ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اُدْعُ اللّٰهَ اَنْ يَّجْعَلَنِيْ مِنْهُمْ قَالَ اَنْتِ مِنَ الْاَوَّلِيْنَ فَرَكِبَتِ الْبَحْرَ فِيْ زَمَانِ مُعَاوِيَةَ بْنِ اَبِيْ سُفْيَانَ فَصُرِعَتْ عَنْ دَابَّتِهَا حِيْنَ خَرَجَتْ مِنَ الْبَحْرِ فَهَلَكَتْ.

کښې خما د اُمت ځنې خلق د الله په لار کښې جهاد کولو کښې راته پیش کړے شو چه بحري جهاز کښې سوارۀ وو او د تخت نشین بادشاهانو په شان وو. اُمّ حرام وائي: ما عرض او کړو. یا رسول اللّٰه تاسو د الله نه دعا اوغواړئ چه هغه ما هم دغې خلقو کښې شامله کړي. رسول الله صلي الله علیه وسلم خما د پاره دعا اوکړله. دے نه پس بیا حضورؐ له خوب راغے. حضور اوده شولو او لږ ساعت پس خندا سره بیدار شولو. ما عرض اوکړه یا رسول اللّٰه تاسو ولې خاندئ؟ ورے فرمائیل دے ځل خوب کښې خما د امت خلق د خدائے په لار کښې جهاد کونکي راته راوستے شو. څنګه چه حضورؐ مخکښې ځل فرمائیلي وو. اُم حرام وائي ما عرض اوکړه یا رسول اللّٰه الله نه دُعا اوغواړئ چه ما دے خلقو کښې شامله کړي. نو حضورؐ اوفرمائیل چه ته وړمبنو خلقو کښې ئے. نو هغه د حضرت معاویه بن ابي سفیان زمانه کښې دریاب کښې سوره شوه. بیا چه دریاب نه بهر وتله نو د سورلۍ ځناور نه اوغورزیده او په حق اورسیده.

بـــاب ۴۹: دَرَجَـــاتِ الْـمُـجَـاهِـدِيْـنَ فِـيْ سَبِيْـلِ اللّٰـهِ يُـقَـالُ هٰـذِهٖ سَبِيْـلِـيْ وَ هٰـذَا سَبِيْلِيْ.

باب ۴۹: د اللّٰه په لار کښې د جهاد کونکو د درجو بیان. لفظ سبیل عربي کښې مذکر او مونث دواړه شان استعمالیږي لکه هٰذا سبِیْلِیْ او هٰذِه سبِیْلِیْ دواړه طور سره مستعمل دے.

۵۸: حَـدَّثَـنَـا يَـحْيَـى بْـنُ صَالِحٍ حَـدَّثَـنَـا فُـلَيْحٌ عَنْ هِلَالِ بْنِ عَلِيٍّ عَـنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى

۵۸: یحیی بن صالح. فلیح. هلال بن علي. عطاء بن یسار. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي: رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل: کوم سړے چه په الله او د هغۀ په رسولؐ ایمان راوړي:

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَ بِرَسُوْلِهٖ وَ اَقَامَ الصَّلٰوةَ وَ صَامَ رَمَضَانَ كَانَ حَقًّا عَلَى اللّٰهِ اَنْ يُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ جَاهَدَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَوْ جَلَسَ فِيْ اَرْضِهِ الَّتِيْ وُلِدَ فِيْهِ فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَفَلَا نُبَشِّرُ النَّاسَ قَالَ اِنَّ فِي الْجَنَّةِ مِائَةَ دَرَجَةٍ اَعَدَّهَا اللّٰهُ لِلْمُجَاهِدِيْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ مَا بَيْنَ الدَّرَجَتَيْنِ كَمَا بَيْنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ فَاِذَا سَاَلْتُمُ اللّٰهَ فَاسْئَلُوْهُ الْفِرْدَوْسَ فَاِنَّهٗ اَوْسَطُ الْجَنَّةِ وَ اَعْلَى الْجَنَّةِ اُرَاهُ فَوْقَهٗ عَرْشُ الرَّحْمٰنِ وَ مِنْهُ تَفَجَّرُ اَنْهَارُ الْجَنَّةِ قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ فُلَيْحٍ عَنْ اَبِيْهِ وَ فَوْقَهٗ عَرْشُ الرَّحْمٰنِ.

او مونځ کوي او د رمضان روژے نيسي نو د اللّٰه په ذمه دا وعده ده چه هغه به جنت کښے داخل کړي خواه هغه في سبيل اللّٰه جهاد اوکړي، يا کومه زمکه کښے چه پيدا شوے وي، هلته تيکاؤ پاتے شي. صحابهؓ عرض اوکړ يا رسول اللّٰهؐ. آيا مونږ خلقو ته دا خوشخبري ورکړو، حضورؐ ورته اوفرمائيل: جنت کښے سل درجے دي، هغه اللّٰه في سبيل اللّٰه جهاد کونکو د پاره مقرر کړيدي. د دوه ؤ درجو په مينځ کښے دومره فاصله ده لکه د اسمان او زمکے مينځ کښے فاصله. کله چه تاسو د اللّٰه نه دعا غواړئ نو د هغه نه د جنت فردوس سوال کوئ ځکه چه هغه د جنت افضل او اعلیٰ حصه ده، ځما خيال دے چه دے نه پس حضورؐ دا هم اوفرمائيل چه د هغے د پاسه صرف د رحمٰن عرش دے او ددے ځائے نه د جنت نهرونه جاري شوي دي.

ف: اللّٰه پاک دے خمونږ د ټولو هم جنت فردوس نصيب کړي. اللّٰهم امين ثم امين يا رب العلمين.

۵۹: حَدَّثَنَا مُوْسٰى حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ حَدَّثَنَا اَبُوْ رَجَاءٍ عَنْ سَمُرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاَيْتُ اللَّيْلَةَ رَجُلَيْنِ اَتَيَانِيْ فَصَعِدَا بِيَ الشَّجَرَةَ فَاَدْخَلَانِيْ دَارًا هِيَ اَحْسَنُ وَ اَفْضَلُ لَمْ اَرَقَطُّ اَحْسَنَ مِنْهَا قَالَا اَمَّا هٰذِهِ الدَّارُ فَدَارُ الشُّهَدَآءِ.

۵۹: موسیٰ. جرير. ابو رجاء. سمره نه روايت کوي. رسول اللّٰه صلعم يوه ورځ اوفرمائيل، نن شپه ما دوه سړي خوب کښے اوليدل، هغوئ ماله راغلل، او زهٔ ئے اونے ته اوخيژولم، بيا هغوئ زهٔ يو کور کښے چه ډير اعلیٰ او افضل وو، او د هغے نه اعلیٰ مکان ما هيڅ کله نه وو ليدلے. زهٔ ئے هغے کښے داخل کړم او هغے دواړو سړو ماته اووے چه دا د شهيدانو مکان دے.

باب ۵۰: اَلْغَدْوَةِ وَالرَّوْحَةِ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَ قَابَ قَوْسُ اَحَدِكُمْ مِنَ الْجَنَّةِ.

باب ۵۰: سحر او مابنام د اللّٰه په لار کښے د تللو بيان. او جنت کښے په قدر د يو کمان د ځائے د فضيلت بيان.

**ف:** زمونږ په نزد چه څنگه پيمائش لاس سره يا ليشت سره يا گز سره کيږي، دغه شان عربو کښې کمان (لينده) يا کوړې سره ذ پيمائش دستور وو او د جنت دومره خائے د ټولے دنيا نه بهتر دے.

**۶۰:** حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ اَسَدٍ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَغَدْوَةٌ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَوْ رَوْحَةٌ خَيْرٌ مِّنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيْهَا.

**۶۰:** معلى بن اسد. وهيب. حميد. حضرت انس بن مالک د رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي. حضورؐ اوفرمائيل ذ خدائے په لار کښے سحر ماښام تلل ذ تمامي دنيا او مافيها نه بهتر دي.

**۶۱:** حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُلَيْحٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ عَنْ هِلَالِ بْنِ عَلِيٍّ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِيْ عَمْرَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَقَابُ قَوْسٍ فِي الْجَنَّةِ خَيْرٌ مِّمَّا تَطْلُعُ عَلَيْهِ الشَّمْسُ وَ تَغْرُبُ وَ قَالَ لَغَدْوَةٌ اَوْ رَوْحَةٌ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ خَيْرٌ مِّمَّا تَطْلُعُ عَلَيْهِ الشَّمْسُ وَ تَغْرُبُ.

**۶۱:** ابراهيم بن منذر. فليح. ذ فليح پلار. هلال بن علي. عبدالرحمٰن بن ابي عمره. ابوهريرهؓ د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي. حضورؐ اوفرمائيل بيشکه ذ جنت وړوکے شان مقام چه په قدر ذ يو کمان وي. د هغے څيزونو نه چه په هغے نمر طلوع او غروب کوي يعني د تمامي دنيا نه بهتر دے. حضورؐ اوفرمائيل د خدائے په لار کښے سحر يا ماښام تلل د هغے ټولو څيزونو نه بهتر دي چه په هغے نمر راخيژي او ډوبيږي.

**۶۲:** حَدَّثَنَا قَبِيْصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الرَّوْحَةُ وَالْغَدْوَةُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَفْضَلُ مِنَ الدُّنْيَا وَ مَافِيْهَا.

**۶۲:** قبيصه. سفيان. ابو حازم. سهل بن سعدؓ د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نه روايت کوي. حضورؐ اوفرمائيل. ذ خدائے په لار کښے سحر يا ماښام (يعني لږ ساعت هم) تلل د تمامي دنيا او مافيها نه افضل دي.

**بَابُ ۱۵: اَلْحُوْرُ الْعِيْنُ وَ صِفَتُهُنَّ يُحَارُ**

**باب ۱۵:** ذ غټو سترګو د حورو بيان او صفت. چه ليدو سره ورته عقل حيرانيږي د هغوئ د

فِيْهَا الطَّرْفُ شَدِيْدَةُ سَوَادِ الْعَيْنِ شَدِيْدَةُ بَيَاضِ الْعَيْنِ وَ زَوَّجْنَاهُمْ اَنْكَحْنَاهُمْ.

ستر کو توروالے به هم زیات وي او د هغوئ د ستر کو سپین والے به هم ډیر صاف وي زَوَّجْنَاهُم بحور عین دا مطلب دے چه مونږ حور عین سره د هغوئ نکاح اوکړله.

۶۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ عَمْرٍو حَدَّثَنَا اَبُوْ اِسْحٰقَ عَنْ حُمَيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسَ ابْنَ مَالِكٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا مِنْ عَبْدٍ يَمُوْتُ لَهٗ عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرٌ يَسُرُّهٗ اَنْ يَرْجِعَ اِلَى الدُّنْيَا وَ اَنَّ لَهُ الدُّنْيَا وَمَا فِيْهَا اِلَّا الشَّهِيْدُ لِمَا يَرٰى مِنْ فَضْلِ الشَّهَادَةِ فَاِنَّهٗ يَسُرُّهٗ اَنْ يَرْجِعَ اِلَى الدُّنْيَا فَيُقْتَلُ مَرَّةً اُخْرٰى وَ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَرَوْحَةٌ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَوْ غَدْوَةٌ خَيْرٌ مِّنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيْهَا وَ لَقَابُ قَوْسِ اَحَدِكُمْ مِّنَ الْجَنَّةِ اَوْ مَوْضَعُ قِيْدٍ يَعْنِيْ سَوْطَهٗ خَيْرٌ مِّنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيْهَا وَلَوْ اَنَّ امْرَاَةً مِنْ اَهْلِ الْجَنَّةِ اطَّلَعَتْ اِلٰى اَهْلِ الْاَرْضِ لَاَضَآءَتْ مَا بَيْنَهُمَا وَلَمَلَاَتْهُ رِيْحًا وَلَنَصِيْفُهَا عَلٰى رَاْسِهَا خَيْرٌ مِّنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيْهَا.

۶۳: عبداللّٰه بن محمد. معاویه بن عمرو. ابو اسحٰق. حمید. حضرت انس بن مالک. رسول الله صلي الله علیه وسلّم نه روایت کوي. حضورؐ اوفرمائیل کوم بنده ذ پاره چه اللّٰه سره څۀ نیکي شته هغه د مړ کیدونه پس دا نه غواړي چه دنیا ته واپس راشي خواه هغۀ ته د دنیا هر څیز ورکړے شي. خو شهید به دے وجه چه هغۀ د شهادت فضیلت ویني نو هغه دا خبره خوښوي چه دنیا ته واپس راشي او دوباره بیا قتل کړے شي. حمید راوي وائي ما د انسؓ نه د رسول الله صلعم نه دا روایت هم اوریدلے دے. چه ذ خدائے په لار کښے سحر، ماښام لږ ساعت تلل هم ذ ټولے دنیا او مافیها نه بهتر دي. او بیشکه جنت کښے ستاسو یو ورکوټے شان مقام چه د یو کمان یا کوړے برابر وي. د تمامي دنیا او مافیها نه بهتر دے او که د اهل جنت نه یوه ښځه زمکے طرف ته مخ کړي نو هغه به ټوله فضاء چه د آسمان او زمکے په مینځ کښے ده، روښانه کړي او هغه به ذ خوشبوئ نه ډکه کړي او بیشکه د هغے لوپټه چه ذ هغے په سر ده ذ تمامي دنیا او مافیها نه اعلٰي او افضله ده.

باب ۲۵۲: تَمَنِّى الشَّهَادَةِ.

باب ۲۵۲: ذ شهادت ذ آرزو کولو بیان.

۶۴: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ

۶۴: ابو الیمان. شعیب. زهري. سعید بن مسیب. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي. ما د رسول الله صلي

الـزُّهْـرِيّ قَـالَ اَخْبَـرَنِـيْ سَعِيْـدُ بْـنُ الْـمُسَيَّـبِ اَنَّ اَبَـا هُـرَيْـرَةَ قَـالَ سَـمِـعْـتُ الـنَّبِـيَّ صَـلَّـى اللّٰـهُ عَـلَيْـهِ وَسَـلَّـمَ يَـقُـوْلُ وَالَّـذِيْ نَـفْسِـيْ بِيَـدِهٖ لَـوْلَا اَنَّ رِجَـالًا مِّـنَ الْـمُـؤْمِـنِيْـنَ لَا تَـطِيْـبُ اَنْـفُسُهُمْ اَنْ يَّتَخَـلَّـفُوْا عَنِّي وَلَا اَجِدُ مَا اَحْمِلُهُمْ عَلَيْهِ مَا تَخَلَّفْتُ عَنْ سَرِيَّةٍ تَغْزُوْا فِيْ سَبِيْـلِ اللّٰـهِ وَالَّـذِيْ نَـفْسِـيْ بِيَدِهٖ لَـوَدِدْتُّ اَنِّيْ اُقْتَلُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ثُمَّ اُحْيَـا ثُمَّ اُقْتَلُ ثُمَّ اُحْيَا ثُمَّ اُقْتَلُ ثُمَّ اُحْيَا ثُمَّ اُقْتَلُ.

اللّٰه علیه وسلّم نه داسې واوریدل. قسم دې په هغه ذات چه دَ هغه لاس کښې خما ساه ده که څه مسلمانان داسې نه وې چه دَ هغوئ زړهٔ بـه خما نه وروستو پاتې کیدل برداشت نکړي. او کـه هغوئ ټول خان سره بوځم نو دومره سورلي ماته نه حاصلیږي چه په هغې هغوئ سوارهٔ کړم. نو زهٔ به بیا ذیو وړوکي لښکر نه هم چه د خدائې پـه لار کښې جهاد کوي ورستو نه پاتې کیدې قسم دې په هغه ذات چه د هغهٔ لاس کښې خما ساه ده زهٔ دا خبره زیاتـه خوښوم چه د خدائې لار کښې قتل کړې شم، بیا ژونـدې کـړې شـم. بیـا قتل کړې شم، بیا ژوندې کړې شـم، بیـا قتـل کـړې شـم. بیـا ژونـدې کړې شم، بیا قتل کړې شم.

۲۵ : حَـدَّثَـنَـا يُـوْسُفُ بْـنُ يَـعْـقُـوْبِ الـصَّـفَّـارُ حَـدَّثَـنَـا اِسْـمٰـعِيْـلُ بْـنُ عُـلَيَّةَ عَـنْ اَيُّـوْبَ عَـنْ حُـمَيْـدِ بْـنِ هِلَالٍ عَـنْ اَنَـسِ بْـنِ مَـالِكٍ قَـالَ خَـطَـبَ الـنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰـهُ عَـلَيْـهِ وَسَـلَّـمَ فَـقَـالَ اَخَذَ الـرَّايَةَ زَيْـدٌ فَـاُصِيْـبَ ثُـمَّ اَخَـذَهَـا جَـعْـفَـرٌ فَـاُصِيْبَ ثُمَّ اَخَذَهَا عَبْدُ اللّٰهِ بْـنُ رَوَاحَةَ فَـاُصِيْـبَ ثُمَّ اَخَذَهَا خَالِدُ بْـنُ الْـوَلِيْـدِ عَـنْ غَيْرِ اِمْرَةٍ فَفُتِحَ لَهٗ وَ قَـالَ مَـا يَسُـرُّنَـا اَنَّـهُـمْ عِـنْدَنَا وَ عَيْنَاهُ تَذْرِفَانِ.

۲۵ : یوسف بـن یعقوب صفار. اسمٰعیل بن علیه. ایوب. حمیـد بن هلال. انس بن مالک نه روایت کوي چه (غزویه موته طرف ته د لښکر لیږلو نه پس یوه ورځ) حضورؐ خطبه شروع کړه. دا وخت زید جنډه واخسته چه شهیـد کړې شو، هغه نه پس جعفر جنډه واخسته او هغـه هـم شهیـد کړې شو، هغه نه پس عبداللّٰه بن رواحه جنډه اوچته کړه. هغه هم شهید کړې شو. هغه نه پس خالد بـن ولیـد بـغیـر ددې نـه چه څوک هغه امیر جوړ کړي، جنډه واخستـه او د هغـه پـه لاس فتح اوشوه. حضورؐ اوفرمائیل خمونږ دا خواهش نشته چه هغوئ دِ مونږ سره ژوندي وې. داسې حالت کښې ئې فرمائیل چه د سترګو نه ئې اوښکې بهیدلې.

بَـــابْ۵۳ : فَـضْـلِ مَـنْ يُّـصْـرَعُ فِيْ سَبِيْـلِ اللّٰـهِ فَـمَاتَ

باب۵۳ : د هغې سړي دَ فضیلت بیان چـه د اللّٰه په لار کښې د سورلئ نه اوغورځیږي، مړ شي نو هغه

فَهُوَ مِنْهُمْ. وَ قَوْلُ اللّٰهِ تَعَالٰى وَمَنْ يَّخْرُجْ مِنْ بَيْتِهٖ مُهَاجِرًا اِلَى اللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ ثُمَّ يُدْرِكْهُ الْمَوْتُ فَقَدْ وَقَعَ اَجْرُهٗ عَلَى اللّٰهِ وَقَعَ وَجَبَ.

د هغوئ نه دے. او د اللّٰه تعالٰي قول کوم سړے چه د خپل کورنه اللّٰه او د هغه رسول طرف ته په هجرت اوخي. بيا هغه له مرګ راشي نو د هغه اجر د اللّٰه تعالٰي په ذمه واجب شولو د وقع معني "وَجَب" ده يعني واجب شو.

۲۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اللَّيْثُ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيٰى بْنِ حِبَّانَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ خَالَتِهٖ اُمِّ حَرَامٍ بِنْتِ مِلْحَانَ قَالَتْ نَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا قَرِيْبًا مِنِّيْ ثُمَّ اسْتَيْقَظَ يَتَبَسَّمُ فَقُلْتُ مَا اَضْحَكَكَ قَالَ اُنَاسٌ مِنْ اُمَّتِيْ عُرِضُوْا عَلَيَّ يَرْكَبُوْنَ مِثْلَ هٰذَا الْبَحْرِ الْاَخْضَرِ كَالْمُلُوْكِ عَلَى الْاَسِرَّةِ قَالَتْ فَادْعُ اللّٰهَ اَنْ يَّجْعَلَنِيْ مِنْهُمْ فَدَعَا لَهَا ثُمَّ نَامَ الثَّانِيَةَ فَفَعَلَ مِثْلَهَا فَقَالَتْ مِثْلَ قَوْلِهَا فَاَجَابَهَا مِثْلَهَا فَقَالَتْ اُدْعُ اللّٰهَ اَنْ يَّجْعَلَنِيْ مِنْهُمْ فَقَالَ اَنْتِ مِنَ الْاَوَّلِيْنَ فَخَرَجَتْ مَعَ زَوْجِهَا عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ غَازِيًا اَوَّلَ مَا رَكِبَ الْمُسْلِمُوْنَ مَعَ مُعَاوِيَةَ فَلَمَّا انْصَرَفُوْا مِنْ غَزْوِهِمْ قَافِلِيْنَ فَنَزَلُوا الشَّامَ فَقُرِّبَتْ اِلَيْهَا دَابَّةٌ لِتَرْكَبَهَا فَصَرَعَتْهَا

۲۶: عبداللّٰه بن يوسف. ليث. يحيٰي. محمد بن يحيٰي بن حبان. انس بن مالک د خپلے ترور (د مور خور) اُم حرام بنت ملحان نه روايت کوي. هغے ونيلے چه يوه ورځ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم مونږ کره اوده وو. دے کښے حضورؐ مُسکا سره د خوب نه بيدار شولو. ما عرض اوکړه يا رسول اللّٰه تاسو ولے مُسکا کوئ. وے فرمائيل خما د امت څنے خلق دا وخت خوب کښے خما مخکښے پيش کړے شو. او هغوئ هغے شين درياب کښے کشتئ باندے د تخت نشين بادشاهانو په شان سوارۀ وو. اُم حرام عرض اوکړه. يا رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم تاسو د اللّٰه نه دُعا اوغواړئ چه هغه ما هم د دغے خلقو نه کړي. حضورؐ ما د پاره دعا اوکړه. بيا حضورؐ اوده شولو. او مسکا سره رابيدار شولو. نو ام حرام هم هغسے بيا اووے او حضورؐ هغه قسم جواب ورکړلو. هغے اووے يا رسول اللّٰه تاسو اللّٰه نه دُعا اوغواړئ چه هغه ما ددغے خلقو نه کړي حضورؐ ورته اوفرمائيل ته د ړومبنو خلقو نه ئے. هغه خپل خاوند عبادة بن صامت سره جهاد د پاره اوو تله. هغه د تبولو نه ړومبے جهاد وو چه هغے کښے مسلمانان حضرت معاويه سره په درياب پوريوتلے وو. بيا چه هغه خلق د جهاد نه فارغ شو نو د شام مملکت ته واپس شو.

فَمَاتَتْ.

## بَابُ ۵۴: مَنْ يُنْكَبُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ.

۶۷: حَدَّثَنَا حَفْصُ ابْنُ عُمَرَ الْحَوْضِيُّ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ اِسْحٰقَ عَنْ اَنَسٍ قَالَ بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَقْوَامًا مِنْ بَنِيْ سُلَيْمٍ اِلٰى بَنِيْ عَامِرٍ فِيْ سَبْعِيْنَ فَلَمَّا قَدِمُوْا قَالَ لَهُمْ خَالِيْ اَتَقَدَّمُكُمْ فَاِنْ اَمَّنُوْنِيْ حَتّٰى اُبَلِّغَهُمْ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اِلَّا كُنْتُمْ مِنِّيْ قَرِيْبًا فَتَقَدَّمَ فَاَمَّنُوْهُ فَبَيْنَمَا يُحَدِّثُهُمْ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذْ اَوْمَاُوْا اِلٰى رَجُلٍ مِنْهُمْ فَطَعَنَهُ فَاَنْفَذَهُ فَقَالَ اللّٰهُ اَكْبَرُ فُزْتُ وَ رَبِّ الْكَعْبَةِ ثُمَّ مَالُوْا عَلٰى بَقِيَّةِ اَصْحَابِهِ فَقَتَلُوْهُمْ اِلَّا رَجُلٌ اَعْرَجُ صَعِدَ الْجَبَلَ قَالَ هَمَّامٌ فَاُرَاهُ اٰخَرُ مَعَهُ فَاَخْبَرَ جِبْرَئِيْلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّهُمْ قَدْ لَقُوْا رَبَّهُمْ فَرَضِيَ عَنْهُمْ وَ اَرْضَاهُمْ فَكُنَّا نَقْرَاُ اَنْ بَلِّغُوْا قَوْمَنَا اَنْ قَدْ لَقِيْنَا رَبَّنَا فَرَضِيَ عَنَّا وَ اَرْضَانَا

نو اُم حرام د یو خناور نه پریوته او وفات شوله.

## باب ۵۴: د خدائے په لار کښے یو اندام ته ذ صدمے رسیدو بیان.

۶۷: حفص بن عمرو حوضي. همام. اسحاق. انس نه روایت کوي' چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلَم ذ قبیله بن سلیمؤ خنے خلق قبیله بن عامر طرف ته اویا سړو سره تبلیغ د پاره اولیږل. کوم وخت چه هغه خلق هلته اورسیدل. نو خما ماما حرام بن ملحان هغوئ ته اووے. اول زهٔ ورځم' کهٔ هغے خلقو ماله امن راکه. تردے چه زهٔ به ورته د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلَم حکم اورسوم نو ډیره ښه ده: کني تاسو ماسره نزدے اوسئ اوپه وخت خما مدد کوئ. نو هغه ور مخکښے شو کافرو هغه له آمان ورکه' او هغے حالت کښے چه هغه هغوئ ته د رسول اللّٰهَ پیغام رسولو. ناساپه کافرو خپل یو سړي ته اشاره اوکړه او هغهٔ ذ هغهٔ په سینه کښے نیزه ورښخه کړه نو هغهٔ اووے اللّٰه اکبر د کعبے په رب م د قسم وي زهٔ خو خپل مراد ته اورسیدم. دے نه پس هغه خلق د هغهٔ باقي اصحابو ته متوجه شو او هغوئ نے قتال کړل' صرف یو ګوډے (لنګړا) سړے بچ شو چه غر ته او ختلو. همام راوي وائي خما دا خیال راتلو چه هغه سره یو بل سړے بچ شوے وو. ددے واقعے جبرائیلَ رسول اللّٰه صلعم ته خبر ورکه. چه هغه خلق کوم چه تاسو د تبلیغ د پاره استولے وو هغوئ ټول خپل پروردګار سره یوځائے شول. اللّٰه د هغوئ نه راضي دے او هغوئ ټول د اللّٰه نه راضي دي بعضے وائي مونږ خلقو به وئیلے بلِّغُوْا قَوْمَنا الخ یعني زمونږ قوم ته دا خبر اورسوئے' چه مونږ

ثُمَّ نُسِخَ بَعْدُ فَدَعَا عَلَيْهِمْ اَرْبَعِيْنَ صَبَاحًا عَلٰى رِعْلٍ وَّ ذَكْوَانَ وَ بَنِيْ لَحْيَانَ وَ بَنِيْ عُصَيَّةَ الَّذِيْنَ عَصَوُا اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

خپل رب سره يوخائے شو. هغه خمونږ نه خوشحاله شو او مونږ ئے هم خوشحاله کړو. ليکن حضورؐ څلويښت ورځے پورے د قبيلۀ رعل، بني ذکوان، بني لحيان او د بني عصيه خلقو چه هغوئ د الله او د هغۀ د رسولؐ نافرماني کړے وه بددعا اوکړله.

۱. دلته راوي ته وهم شوے دے. حضور اکرم صلي الله عليه وسلّم ذ قبيله بنو سُليم خلق نه وو ليګلي بلکه کوم خلق چه حضورؐ ليګلي وو هغوئ ذ انصارو نه وو او ټول حضرات د قرآن قاريان وو. حضورؐ بنو عامرو له دغه حضرات پخپله د هغوئ په درخواست باندے قبيله کښ د اسلام تبليغ د پاره ليګلي وو. دے مهم سره غداري کونکي د بنو سليم قبيلے خلق وو او هغوئ په دهوکے سره دغه ټول حضرات شهيدان کړل. چونکه د دغه اصحابو مقصد صرف تبليغ وو په دے وجه بے وسلے وُو. په روايت کښ وهم پخپله د امام بخاري شيخ حفص بن عمر نه شوے دے.

۶۸: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنِ الْاَسْوَدِ بْنِ قَيْسٍ عَنْ جُنْدُبِ بْنِ سُفْيَانَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ فِيْ بَعْضِ الْمَشَاهِدِ وَ قَدْ دَمِيَتْ اِصْبَعُهٗ فَقَالَ هَلْ اَنْتِ اِلَّا اِصْبَعٌ دَمِيْتِ وَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ مَا لَقِيْتِ.

۶۸: موسٰي بن اسمٰعيل. ابو عوانه. اسود بن قيس. جندب بن سفيان نه روايت کوي رسول اللهؐ يو جهاد کښے وو. د حضورؐ يوه ګوته د زخم په وجه په وينو رنګ شوه. حضورؐ اوفرمائيل هل انت الا اصبع دميت و فى سبيل الله ما لقيت. (ته خو يوه ګوته ئے چه په وينو رنګ شوے او تاته چه څۀ اورسيدل ذ الله تعالٰي په لار کښے درته اورسيدل).

## باب ۵۵: مَنْ يُّجْرَحُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ.

## باب ۵۵: د اللّٰه په لار کښے ذ زخمي کيدو بيان.

۶۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَا يُكْلَمُ اَحَدٌ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَنْ يُّكْلَمُ فِيْ سَبِيْلِهٖ اِلَّا جَآءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ

۶۹: عبدالله بن يوسف. مالک. ابو الزناد. اعرج. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي. رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. قسم دے په هغه ذات چه د هغه لاس کښے څما ساه ده، کوم سړے چه ذ الله په لار کښے زخمي شي، الله هغه سړے بنه پيژني چه د هغه په لار کښے زخمي کيږي هغه به ذ قيامت په ورځ داسے حالت کښے راپورته کړيشي چه د هغے وينے به بالکل ذ

وَالـلَّـوْنُ لَـوْنُ الـدَّمِ وَالـرِّيْـحُ رِيْـحُ الْمِسْكِ.

تازه وينـې پـه شـان وي او ذ هـغې نه به د مشک بُوي راخي.

باب ۵۶: قَـوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى هَلْ تَـرَبَّـصُـوْنَ بِـنَا اِلَّا اِحْدَى الْحُسْنَيَيْنِ وَالْحَرْبُ سِجَالٌ.

باب ۵۶: د اللّٰه تعالي قول اے نبي تهٔ ورته اووايه چـه تـاسـو زمـونږ دوو ښـو څيزونو کښې ذ يو انتظار کوئ۱، جنګ ذ ډول په شان دے.

۱. يعني د جنګ انجام يا د ناکامئ په صورت کښې اوخي يا د کاميابئ په صورت کښې. مسلمان به په جنګيدو جنګيدو کښې خپل خان قربان کړي يا به ورته فتحه حاصله شي. د ايمان راوړلو نه پس مسلمانانو د پـاره دواړه انجامونه نيک او ښهٔ دي. د فتحے په صورت کښې خو ټول ښه پوهيږي' ليکن په جنګ کښې مرګ او شهادت د يو مومن آخري مقصود دے. د اللّٰه په لاره کښې جنګيږي او خپل خان قربان کړي' کله چه د اللّٰه بـارګـاه ته اورسي نوٌ ګوري چه اللّٰه دده نه خوشاله دے او د هغه نوازشونه او ميلمستياګانې دده استقبال کوي.

۷۰: حَـدَّثَـنَـا يَـحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَـدَّثَـنَـا الـلَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْـنِ شِهَـابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ ابْنِ عَبْـدِ الـلّٰـهِ اَنَّ عَبْـدَ الـلّٰهِ بْنَ عَبَّاسٍ اَخْبَـرَهُ اَنَّ اَبَا سُفْيَانَ اَخْبَرَهُ اَنَّ هِرَقْلَ قَـالَ لَهُ سَاَلْتُكَ كَيْفَ كَانَ قِتَالُكُمْ اِيَّاهُ فَـزَعَـمْـتَ اَنَّ الْـحَـرْبَ سِجَالٌ وَّ دُوَلٌ فَكَذٰلِكَ الرُّسُلُ تُبْتَلٰى ثُمَّ تَكُوْنُ لَهُمُ الْعَاقِبَةُ.

۷۰: يـحـيـي بـن بـكـيـر. ليـث. يـونــس. ابـن شهـاب. عبيـداللّٰـه بـن عبـداللّٰـه. حضرت عبداللّٰه بن عبـاسؓ نــه روايـت کـوي' ابـوسـفيـان بـن حـرب تـه هـرقـل اووے' مـ تـانـه تپـوس کـړے وو' چـه ستـاسو جـنګ مـحـمـد (صـلـعـم) سره څنګـه وي. نو تا اووے جـنګ د ډول پــه شــان دے. کـلـه څمونږ لاس کښې. کـلـه ذ هـغـوئ لاس کښې. او ذ ټولو رسولانو دغسے ازمـائـښ کـيږي' بيـا انـجـامِ خيـر د هـغې چاوي چه اللّٰه واله وي.

بـاب۵۷: قَـوْلِ الـلّٰـهِ تَعَـالٰى مِـنَ الْـمُـؤْمِـنِيْـنَ رِجَـالٌ صَدَقُوْا مَـا عَـاهَدُوا اللّٰهَ عَلَيْهِ فَمِنْهُمْ مَنْ قَضٰى نَـحْبَـهُ وَ مِـنْهُمْ مَّنْ يَّنْتَظِرُ وَمَا بَدَّلُوْا تَبْدِيْلًا.

باب۵۷: د اللّٰـه تـعـالٰي قـول مسلمانانو کښې بـعـضـې هـغـه سـړي دي چه هغوئ اللّٰه سره کړے وعده رښتـنـې اوښـودلـه. بيـا هغوئ کښې بعضې هغه دي چه هـغـوئ خپل کار پوره که. او بعضې انتظار کښې دي او هغوئ خپل عهد کښې هيڅ تبديلي اونکړه.

۷۱: حَـدَّثَـنَـا مُـحَـمَّـدُ بْـنُ سَـعِيْـدٍ الْـخُـزَاعِـيُّ حَـدَّثَـنَـا

۷۱: مـحـمـد بـن سـعيـد خـزاعـي. عبدالاعلٰي. حـميـد. ح. عمرو بن زراره. زياد. حميد طويل. انس بن

عَبْدُ الْاَعْلٰى عَنْ حُمَيْدٍ قَالَ سَأَلْتُ اَنَسًا ح حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ زُرَارَةَ حَدَّثَنَا زِيَادٌ قَالَ حَدَّثَنِيْ حُمَيْدُ الطَّوِيْلُ عَنْ اَنَسٍ قَالَ غَابَ عَمِّيْ اَنَسُ بْنُ النَّضْرِ عَنْ قِتَالِ بَدْرٍ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ غِبْتُ عَنْ اَوَّلِ قِتَالٍ قَاتَلْتَ الْمُشْرِكِيْنَ لَئِنِ اللّٰهُ اَشْهَدَنِيْ قِتَالَ الْمُشْرِكِيْنَ لَيَرَيَنَّ اللّٰهُ مَا اَصْنَعُ فَلَمَّا كَانَ يَوْمُ اُحُدٍ وَانْكَشَفَ الْمُسْلِمُوْنَ قَالَ اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعْتَذِرُ مِمَّا صَنَعَ هٰؤُلَاءِ يَعْنِيْ اَصْحَابَهُ وَ اَبْرَاُ اِلَيْكَ مِمَّا صَنَعَ هٰؤُلَاءِ يَعْنِي الْمُشْرِكِيْنَ ثُمَّ تَقَدَّمَ فَاسْتَقْبَلَهُ سَعْدُ بْنُ مُعَاذٍ فَقَالَ يَا سَعْدُ ابْنَ مُعَاذٍ اَلْجَنَّةَ وَ رَبِّ النَّضْرِ اِنِّيْ اَجِدُ رِيْحَهَا مِنْ دُوْنِ اُحُدٍ قَالَ سَعْدٌ فَمَا اسْتَطَعْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا صَنَعَ قَالَ اَنَسٌ فَوَجَدْنَا بِهٖ بِضْعًا وَّ ثَمَانِيْنَ ضَرْبَةً بِالسَّيْفِ اَوْ طَعْنَةً بِرُمْحٍ اَوْ رَمْيَةً بِسَهْمٍ فَوَجَدْنَاهُ قَدْ قُتِلَ وَقَدْ مَثَّلَ بِهِ الْمُشْرِكُوْنَ فَمَا عَرَفَهٗ اَحَدٌ اِلَّا اُخْتُهٗ بِبَنَانِهٖ قَالَ اَنَسٌ كُنَّا نَرٰى اَوْ نَظُنُّ اَنَّ هٰذِهِ الْاٰيَةَ نَزَلَتْ فِيْهِ وَ فِيْ اَشْبَاهِهٖ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ رِجَالٌ صَدَقُوْا مَا عَاهَدُوا اللّٰهَ عَلَيْهِ اِلٰى اٰخِرِ الْاٰيَةِ وَ

مالکؓ نه روايت کوي چه څما تره انس بن نضر جنګ بدر کښې شريک شوے نه وو، نو هغهٔ عرض او کړ. يا رسول اللّٰهؐ دَ تهولونه ورمبنے جنګ چه تاسو مشرکان سره کړے دے، زهٔ هغے کښې شريک نه ووم، که اللّٰ اوس ماته د مشرکانو جنګ اوښائي، نو بيشکه اللّٰه به تاسوؐ ته اوښائي چه زهٔ به څه څه کوم. کوم وخت چه د اُحد دَ جنګ ورځ راغله او مسلمانانو تيښته او کړه نو هغهٔ اووے. اے اللّٰه زهٔ تاته دے حرکت عذر خواهي کوم، چه دے مسلمانانو او کړه، او زهٔ ستا مخکښې بيزاري ظاهروم ددے حرکت نه چه دوئ کړے دے او کوم وخت چه هغه ورمخکښې شو نو سعده بن معاذ ورسره يوځائے شو. نو هغهٔ ورته اووے، اے سعد قسم دے د نضر په پروردګار جنت قريب دے ماته د اُحد د طرف نه د جنت خوشخبري راځي. سعدؓ به وئيلے يا رسول اللّٰهؐ اګر که زهٔ هم يو عربي بهادر او جانباز يم. ليکن انسؓ چه څه اوکړل هغه څهٔ نشم کولے انس بن مالک وائي. چه مونږ خپل ترهٔ ميدان جنګ کښې داسے مقتول بياموند چه دَ اتياؤ نه زيات د تورو. نيزو او دَ غشو زخمونه دَ هغهٔ په جسم لږيدلے وو. او مشرکانو دهغهٔ مثله هم کړے وه (مثله يعني د هغهٔ غوږونه پوزه وغيره ئے پريکړے وو) په دے سبب دَ هغهٔ د خور نه سوا بل چا هغه اونهٔ پيژندلے شو. هغے د هغه ګوتونه هغه اوپيژندلو. انس بن مالک وئيلے، خمونږ خيال دے چه دا آيت دَ هغهٔ او دَ هغهٔ په شان د مسلمانانو په حق کښې نازل شويدے. رجال صدقوا ما عاهدوا اللّٰه عليه الخ. انس وائي د هغهٔ خور چه د هغے نوم ربيع وو. د يوے

قَالَ اِنَّ اُخْتَهُ وَهِيَ تُسَمَّى الرُّبَيِّعَ كَسَرَتْ ثَنِيَةَ اِمْرَأَةٍ فَاَمَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْقِصَاصِ فَقَالَ اَنَسٌ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَالَّذِيْ بَعَثَكَ بِالْحَقِّ لَا تُكْسَرُ ثَنِيَّتُهَا فَرَضُوْا بِالْاَرْشِ وَتَرَكُوا الْقِصَاصَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ مِنْ عِبَادِ اللّٰهِ مَنْ لَوْ اَقْسَمَ عَلَى اللّٰهِ لَا بَرَّهُ.

ښځې مخکښي غاښونه ئې مات کړې وو، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم د قصاص حکم ورکړے وو. انس بن نضر اووې، يا رسول اللّٰهؐ په هغه ذات مِ دې قسم وي چه تاسوئې حق سره راليږلې يې، خما دَ خور غاښونه نشي ماتيدې. دې نه پس مدعي خلق په ديت راضي شولو او قصاص ئې معاف کړلو نو رسول اللّٰه صلعم اوفرمائيل د اللّٰه بنديانو کښې بعضې داسې دي که هغوي د اللّٰه په بهروسه قسم اوخوري نو هغه د هغوئ قسم پوره کوي.

۴۷: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَنِيْ اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَخِيْ عَنْ سُلَيْمَانَ اَرَاهُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَتِيْقٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ خَارِجَةَ بْنِ زَيْدٍ اَنَّ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ قَالَ نَسَخْتُ الصُّحُفَ فِي الْمَصَاحِفِ فَفَقَدْتُ اٰيَةً مِنْ سُوْرَةِ الْاَحْزَابِ كُنْتُ اَسْمَعُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ بِهَا فَلَمْ اَجِدْهَا اِلَّا مَعَ خُزَيْمَةَ ابْنِ ثَابِتٍ الْاَنْصَارِيِّ الَّذِيْ جَعَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَهَادَتَهُ شَهَادَةَ رَجُلَيْنِ وَهُوَ قَوْلُهُ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ رِجَالٌ صَدَقُوْا مَا عَاهَدُوا اللّٰهَ عَلَيْهِ.

۴۷: ابوالیمان. شعيب. زهري. اسمٰعيل. سليمان. محمد بن ابي عتيق. ابن شهاب. خارجه بن زيد نه روايت کوي حضرت زيد بن ثابت وئيلې، کوم وخت چه ما قرآن مجيد د متفرق خيزونو نه نقل کړه، مصحف کښې مِ اوليکه، نو يو آيت دَ احزاب ما بيا نه موند. او ما به د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه لوستلو کښې اوريدلو. آخر ما هغه صرف خزيمه انصاري سره بيا موند چه دَ هغهٔ شهادت رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ دوؤ سړو د شهادت برابر گرځولې وو[۱] هغه آيت دا وو مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ رِجَالٌ صَدَقُوْا مَا عَاهَدُوا اللّٰهَ عَلَيْهِ.

۱. د حضرت ابوبکر رضي اللّٰه عنه د خلافت زمانه کښ چه کله د هغوئ په رائې سره د قرآن متفرق او منتشر اجزاء د يو مصحف په شکل کښ جمع کيدل شروع شُو نو د جمع کونکو اوچتو صحابهؤ په

جماعت کښې يو مشهور او معروف شخصيت زيد بن ثابت رضي الله عنه وو. د حديث مفهوم دا دے چه کله هغوئ مصحف جمع کولو نو يو آيت چرته ليکلے نه ملاويدو او د تلاش نه پس صرف د خُزيمه بن ثابت رضي الله عنه سره ملاؤ شو. هسے خو قرآن دَ اول نه تر آخره پورے د يو يو حرف احتياط او رعايت سره په سوؤنو زرګونو صحابه ؤ ته ياد وو. او په هغے کښې دا آيت هم شامل وو کوم چه زيد بن ثابت رضي الله عنه ته نهٔ ملاويدو. ليکن هغوئ دا غوښتل چه څرنګ د حضور اکرم صلي الله عليه وسلّم په وړاندے ليکلي شوي نور تمام آيتونه ملاؤ شُو نو دا آيت دِ هم چرته نه ملاؤ شي او آخر هغه ملاؤ شو. دا مطلب دِ هر ګز اونه ګڼړلے شي چه چاته هډو دا پته نه وه چه دا آيت په قرآن مجيد کښې دے او زيد بن ثابتؓ صرف د يو صحابي په ګواهئ باندے اعتماد کولو سره دا په قرآن کښې شامل کړو. بخپله د هغوئ بيان دے چه ما به دا آيت دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه د هغوئ په ژوند کښې اوريدلو. ددے نه مفهوميږي چه څومره پورے دَ يادو تعلق دے' او دا چه دا آيت هم د نورو آيتونو پشان د قرآن مجيد جُز دے' په دے باندے بخپله هغوئ ته هم اعتماد وو' البته ليکلے شوے هغوئ ته نهٔ ملاويدو او ددے تلاش هغوئ کولو. ظاهره ده چه هر کله زيد بن ثابت رضي الله عنه د حضور اکرم نه ډير خله اوريدلے وو او هغوئ ته دغه آيت ياد وو نو هغه ټولو صحابه ؤ ته به هم ياد وو څوک چه دَ پوره قرآن حافظان وو. څومره پورے چه ددے صداقت تعلق دے بخپله د حضرت عمر رضي الله عنه نه روايت دے چه زه ګواهي کوم چه ما دا آيت د رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه اوريدلے وو. د اُبي بن کعب او هلال بن اُميه نه هم داسے روايت راغلے دے. ظاهره ده چه دا څه داسے خبره نه ده چه د ټولو صحابه ؤ او د قرآن د حافظانو فردًا فردًا ګواهي ضروري وي' پس د قرآن نورو آيتونو پشان دا آيت هم هغوئ ته ياد وو' او څرنګ چه دغه حضراتو څوک چه د قرآن حافظان وو چرے ئے د قرآن د يو يو آيت نوم اخستلو سره ددے ګواهي نه ده ورکړے چه فلانے آيت ماته ياد دے او ما ددے تلاوت کول د رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه اوريدلي دي. همدغه شان ددے آيت متعلق هم چانه دي ونيلي. البته چا ته چه د صورتحال علم اوشو او د زيد بن ثابت رضي الله عنه په تلاش او لټون باندے خبردار شُو نو هغوئ دَ مزيد احتياط په خيال سره خپل تائيد هم پيش کړلو. خُزيمه رضي الله عنه چا سره چه دا آيت ليکلے ملاؤ شوے وو يو جليل القدر صحابي دے' په غزوه بدر او د هغے نه روستو غزاګانو کښې حضور اکرم صلي الله عليه وسلّم سره برابر شريک شوے وو او په يوه موقعه حضور اکرم د هغوئ خانله ګواهي د دوؤ سړو د ګواهئ برابر ګرځولے وه.

**بـاب۵۸: عَمَلٌ صَالِحٌ قَبْلَ الْقِتَالِ. وَ قَالَ اَبُو الدَّرْدَآءِ اِنَّمَا تُقَاتِلُوْنَ بِاَعْمَالِكُمْ وَ قَوْلُهُ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لِمَ تَقُوْلُوْنَ مَالَا تَفْعَلُوْنَ كَبُرَ مَقْتًا عِنْدَ اللّٰهِ اَنْ تَقُوْلُوْا مَالَا تَفْعَلُوْنَ اِنَّ اللّٰهَ**

**باب۵۸:** دَ جهاد نه مخکښے د عمل صالح د موجود کيدو بيان. ابو درداء وائي' تاسو خلق به د خپلو اعمالو موافق جهاد کښے ثواب حاصلوئ. او دَ الله تعالٰي قول' اے ايمان والو ولے داسے خبره کوئ چه خپله ئے نه کوئ د الله په نزد دا خبره ډيره ناخوښه ده چه تاسو داسے خبره کوئ چه تاسونے خپله نه کوئ

يُحِبُّ الَّذِيْنَ يُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِهٖ صَفًّا كَاَنَّهُمْ بُنْيَانٌ مَّرْصُوْصٌ.

بيشکه الله هغه خلق خوښوي چه ذَ خدائے په لار کښے داسے صف بسته جنګيږي لکه چه ذَ ويلے کړے سکے ديوالونه وي.

۷۴۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيْمِ حَدَّثَنَا شَبَابَةُ بْنُ سَوَّارٍ الْفَزَارِيُّ حَدَّثَنَا اِسْرَآئِيْلُ عَنْ اَبِيْ اِسْحَاقَ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَآءَ يَقُوْلُ اَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ مُقَنَّعٌ بِالْحَدِيْدِ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اُقَاتِلُ اَوْ اُسْلِمُ قَالَ اَسْلِمْ ثُمَّ قَاتِلْ فَاَسْلَمَ ثُمَّ قَاتَلَ فَقُتِلَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَمِلَ قَلِيْلًا وَ اُجِرَ كَثِيْرًا.

۷۴۳: محمد بن عبدالرحيم شبابه بن سوار فزاري. اسرائيل. ابو اسحاق. براء نه روايت کوي. رسول الله صلي الله عليه وسلّم ته يو سړے وَسله بند راغے' او عرض ئے اوکه يارسول الله زهٔ جهاد له اول لاړ شم' که اسلام اول راوړم. حضور صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل. اول اسلام راوړه' بيا جهاد کښے شريک شه' نو هغهٔ دغسے اوکړل او جهاد کښے قتل شولو. نو رسول الله صلعم اوفرمائيل هغهٔ عمل خو کم اوکه ليکن ثواب به زيات بيامومي.

باب ۵۹: مَنْ اَتَاهُ سَهْمٌ غَرْبٌ فَقَتَلَهٗ.

باب ۵۹: څوک چه ناګهانه په غشي اولګي' (دا نشي معلومه چه چا اوويشتلو) او مړشي.

۷۴۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ مُحَمَّدٍ اَبُوْ اَحْمَدَ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ قَتَادَةَ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ اَنَّ اُمَّ الرُّبَيِّعِ بِنْتَ الْبَرَآءِ وَ هِيَ اُمُّ حَارِثَةَ ابْنِ سُرَاقَةَ اَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ اَلَا تُحَدِّثُنِيْ عَنْ حَارِثَةَ وَ كَانَ قُتِلَ يَوْمَ بَدْرٍ اَصَابَهٗ سَهْمٌ غَرْبٌ فَاِنْ كَانَ فِي الْجَنَّةِ صَبَرْتُ وَ اِنْ كَانَ غَيْرَ ذٰلِكَ اجْتَهَدْتُ عَلَيْهِ فِي الْبُكَآءِ قَالَ يَا اُمَّ حَارِثَةَ

۷۴۴: محمد بن عبدالله' حسين بن محمد. ابو احمد. شيبا. قتاده. ذَ انس بن مالک نه روايت کوي د ام ربيع براء لور چه ذَ حارثه بن سراقه مور وه حضور صلي الله عليه وسلّم ته راغله او وے وئيل يا رسول الله تاسو اوفرمائي چه حارثه چرته دے. حارثه د جنګ بدر په ورځ وژلے شوے وو هغه ته ناګهانه غشے راغلو (دا نشو معلومه چه چا اوويشتلو) که چرے هغه جنت کښے وي نو زه به صبر شم په ارام کښے خو دے' او که نه نو زه به په هغے پسے ښهٔ اوژاړم. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل ذَ حارث مورے په جنت کښے خو درجه په

اِنَّهَا جِنَانٌ فِي الْجَنَّةِ وَ اِنَّ ابْنَكَ اَصَابَ الْفِرْدَوْسَ الْاَعْلٰى.

درجه باغونه دي او ستا خوئے دَ ټولونه اعلٰی (باغ) فردوس کښے دے.

**باب ۲۰ : مَنْ قَاتَلَ لِتَكُوْنَ كَلِمَةُ اللّٰهِ هِيَ الْعُلْيَا.**

**باب ۲۰ :** د اللّٰه خبره بالا کونکي مجاهد بیان.

۷۵: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ جَاءَ رَجُلٌ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ الرَّجُلُ يُقَاتِلُ لِلْمَغْنَمِ وَالرَّجُلُ يُقَاتِلُ لِلذِّكْرِ وَالرَّجُلُ يُقَاتِلُ لِيُرٰى مَكَانُهُ فَمَنْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ قَالَ مَنْ قَاتَلَ لِتَكُوْنَ كَلِمَةُ اللّٰهِ هِيَ الْعُلْيَا فَهُوَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ.

۷۵: سلیمان بن حرب. شعبه. عمرو. ابي وائل. ابو موسٰي اشعريؓ نه روایت کوي یو سړے رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم له راغے اووئیلے. بعضے سړے دَ غنیمت حاصلولو د پاره غزا کوي څوک دَ ناموري په غرض غزا کوي او څوک دَ خپلے بهادرئ ښودلو د پاره جنګیږي نو في سبیل اللّٰه مجاهد څوک دے. حضورؐ ورته اوفرمائیل هغه سړے چه صرف دے دَ پاره جنګ کوي چه دَ اللّٰه خبره بالا شي نو دا سړے مجاهد في سبیل اللّٰه دے.

**باب ۲۱ : مَنِ اغْبَرَّتْ قَدَمَاهُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى مَا كَانَ لِاَهْلِ الْمَدِيْنَةِ اِلٰى قَوْلِهِ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُضِيْعُ اَجْرَ الْمُحْسِنِيْنَ.**

**باب ۲۱ :** دَ هغے سړي بیان کښے چه دَ هغهٔ دواړه پښے د خدائے په لار کښے غبار آلود شي او د اللّٰه تعالٰي قول چه اهل مدینه او اهل اعراب چه دَ هغوئ خواؤشا کښے اولس ته دا حق نشته چه د رسول اللّٰه صلعم نه روستو شي آیت اِنَّ اللّٰهَ لا یضیع اجر المحسنین پورے.

۷۶: حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ اَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُبَارَكِ حَدَّثَنَا يَحْيٰى بْنُ حَمْزَةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ يَزِيْدُ بْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ اَخْبَرَنَا عُبَايَةُ بْنُ رَافِعِ بْنِ خَدِيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ عَبْسٍ هُوَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ جَبْرٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا

۷۶: اسحٰق. محمد بن مبارک. یحیٰي بن حمزه. یزید بن ابي مریم. عبایه بن رافع بن خدیج. ابو عبس چه دَ هغهٔ نوم عبدالرحمٰن بن جبر دے نه روایت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل د کوم سړي پښے چه دَ اللّٰه په لار په تللو تللو کښے غبار آلود شي

اغْبَرَّتْ قَدَمَا عَبْدٍ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَتَمَسَّهُ النَّارُ.

(گرد ئے اووهي) نو هغه به اُور نه مس کوي.

**باب ٦٢ : مَسْحِ الْغُبَارِ عَنِ النَّاسِ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ.**

**باب ٦٢ : د الله په لار کښې د سر نه د گرد لرے کولو بیان.**

۷۷: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ عِكْرَمَةَ اَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ قَالَ لَهُ وَ لِعَلِيِّ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ ائْتِيَا اَبَا سَعِيْدٍ فَاسْمَعَا مِنْ حَدِيْثِهِ فَاَتَيْنَاهُ وَهُوَ اَخُوْهُ فِيْ حَآئِطٍ لَهُمَا يَسْقِيَانِهِ فَلَمَّا رَاٰنَا جَآءَ فَاحْتَبٰى وَ جَلَسَ فَقَالَ كُنَّا نَنْقُلُ لَبِنَ الْمَسْجِدِ لَبِنَةً لَبِنَةً وَّ كَانَ عَمَّارٌ يَنْقُلُ لَبِنَتَيْنِ لَبِنَتَيْنِ فَمَرَّ بِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ مَسَحَ عَنْ رَّأْسِهِ الْغُبَارَ وَ قَالَ وَيْحَ عَمَّارٌ تَقْتُلُهُ الْفِئَةُ الْبَاغِيَةُ عَمَّارٌ يَّدْعُوْهُمْ اِلَى اللّٰهِ وَ يَدْعُوْنَهُ اِلَى النَّارِ.

۷۷: ابراهیم بن موسی. عبدالوهاب. خالد. عکرمه نه روایت کوي چه ابن عباسؓ هغهٔ ته او علي بن عبدالله ته اووے چه تاسو دواړه ابوسعید خُدري له ورشئ، نو مونږ هغه له ورغلو، هغه وخت هغه او ذ هغهٔ ورور یو باغ کښې وو. او اوبه ئے راوښکلے نو مونږ ئے اولیدو، نو راغے نو ذ احتباء په صورت کښې کیناستلو اووئیلے چه مونږ به د مسجد نبوي د تعمیر په وخت یوه یوه ښخته اوچتوله. او عمار به دوه دوه ښختے اوچتولے. بیا رسول الله صلعم د هغه خوا کښې تیر شولو او د هغه د سر نه ئے گرد صاف که، وے فرمائیل د عمار بیکسي قابل افسوس ده هغه‌به یو باغي جماعت قتل کړي. هغه به هغوئ خدائے طرف ته بلي او هغوئ به هغه د دوزخ طرف ته بلي.

**باب ٦٣ : الْغُسْلِ بَعْدَ الْحَرْبِ وَالْغُبَارِ.**

**باب ٦٣ : جنګ کښې گرد آلود کیدونه پس ذ لامبلو بیان.**

۷۸: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا عَبْدَةُ عَنْ هِشَامِ ابْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا رَجَعَ يَوْمَ الْخَنْدَقِ وَ وَضَعَ السِّلَاحَ وَاغْتَسَلَ فَاَتَاهُ جِبْرِيْلُ وَقَدْ عَصَبَ رَأْسَهُ الْغُبَارُ

۷۸: محمد. عبده. هشام بن عروه ذ بي بي عائشےؓ نه روایت کوي، رسول الله صلي الله علیه وسلَم غزوهٔ احزاب (ذ خندق غزا) نه واپس شو، خپله وسله ئے کوزه کړه او ذ غُسل اراده ئے اوکړه نو جبرائیل علیه السلام راغلو او د حضورؐ په سر مبارک گرد پروت وو. جبرائیلؑ ورته اووے آیا تا وسله کوزه کړه او قسم په

فَقَالَ وَضَعْتَ السِّلَاحَ فَوَاللّٰهِ مَا وَضَعْتُهُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَيْنَ قَالَ هٰهُنَا وَ اَوْمَأَ اِلٰى بَنِيْ قُرَيْظَةَ قَالَتْ فَخَرَجَ اِلَيْهِمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

خدائے مالا نه ده کوزه کړے. رسول الله صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل اوس کوم خوا تلل پکار دي. جبرائيل ورته اووے دغے طرف ته، او بني قريظه طرف ته ئے اشاره اوکړله. بي بي عائشهؓ وائي. بيا هغه وخت حضورؐ بني قريظه طرف ته اووتلوا.

۱. ولے چه هغوئ د لوظنامے خلاف د خندق په جنګ کښې د حضور اکرم صلي الله عليه وسلّم خلاف حصه اخستے وه.

بَاب ۲۴: فَضْلِ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ قُتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَمْوَاتًا بَلْ اَحْيَآءٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُوْنَ فَرِحِيْنَ بِمَا اٰتٰهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ وَ يَسْتَبْشِرُوْنَ بِالَّذِيْنَ لَمْ يَلْحَقُوْا بِهِمْ مِّنْ خَلْفِهِمْ اَلَّا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَاهُمْ يَحْزَنُوْنَ يَسْتَبْشِرُوْنَ بِنِعْمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ وَ فَضْلٍ وَ اَنَّ اللّٰهَ لَا يُضِيْعُ اَجْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ.

باب ۲۴: دَ اللّٰه تعالٰي قول، چه هغے خلقو ته چه دَ اللّٰه په لار کښے وتلے وي، مړهٔ مهٔ وايئ، بلکه ژوندي دي. هغوئ ته دَ اللّٰه د طرف نه رزق رسي. هغوئ په هغے خوشحاله دي، چه اللّٰه تعالٰي هغوئ ته دَ خپل فضل نه ورکړے دي. چه هغوئ ته به نه خوف وي او نه به هغوي غمژن وي. دَ اللّٰه تعالٰي نعمت او فضل سره خوشحاليږي، او دا چه اللّٰه تعالٰي د مسلمانانو اجر نهٔ ضائع کوي.

۲۷۹: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ اِسْحٰقَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ طَلْحَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ دَعَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الَّذِيْنَ قَتَلُوْا اَصْحَابَ بِئْرِ مَعُوْنَةَ ثَلٰثِيْنَ غَدَاةً عَلٰى رِعْلٍ وَ ذَكْوَانَ وَ عُصَيَّةَ عَصَتِ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ قَالَ اَنَسٌ اُنْزِلَ فِي الَّذِيْنَ قُتِلُوْا بِبِئْرِ مَعُوْنَةَ قُرْاٰنٌ قَرَاْنَاهُ ثُمَّ نُسِخَ بَعْدُ بَلِّغُوْا قَوْمَنَا اَنْ

۲۷۹: اسمٰعيل بن عبدالله. مالک. اسحٰق بن ابي عبدالله بن ابي طلحه. انس بن مالکؓ نه روايت کوي رسول الله صلي الله عليه وسلّم هغے خلقو د پاره چه هغوئ اصحاب بئر معونه قتل کړے وو ديرش ورځو پورے بددُعا اوکړله قبيلهٔ رعل او ذکوان او عصيه ته چه، هغوئ د الله او رسول نافرماني کړے وه دا قاتلين دَ اصحابو بير معونه دي. حضرت انسؓ وائي کوم مسلمانان چه بير معونه کښے قتل شوے وو، دَ هغوئ باره کښے دَ قرآن آيت نازل شوے وو چه هغه به مونږه لوستلو خو لږ ورځے پس هغه منسوخ شولو. هغه آيت دا وو زمونږ قوم ته دا پيغام اورسوئ چه

قَدْ لَقِيْنَا رَبَّنَا فَرَضِيَ عَنَّا وَ رَضِيْنَا عَنْهُ.

مونږه خپل رب سره ملاؤ شُو نو هغهٔ زمونږ نه راضي دے او مونږ د هغه نه راضي يُو.

۸۰: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ يَقُوْلُ اِصْطَبَحَ نَاسٌ الْخَمْرَ يَوْمَ اُحُدٍ ثُمَّ قُتِلُوْا شُهَدَآءَ فَقِيْلَ لِسُفْيَانَ مِنْ اٰخِرِ ذٰلِكَ الْيَوْمِ قَالَ لَيْسَ هٰذَا فِيْهِ.

۸۰: علي بن عبدالله. سفيان. عمرو نه روايت كوي. هغه د جابر بن عبدالله نه واوريدل. د اُحد په ورځ سحر وخت كښے څنے خلقو شراب اوڅكل (د جنګ اُحد نه پس ذ شرابو د حرمت حكم نازل شوے دے) بيا هغے نه پس هغوئ شهيدان شول، سفيانه، تپوس اوشو آيا د هغے ورځ په آخر كښے هغه خلق شهيدان شو، هغهٔ اووے، دامضمون دے حديث كښے نشته.

باب ۲۵: ظِلِّ الْمَلَائِكَةِ عَلَى الشَّهِيْدِ.

باب ۲۵: شهيد باندے ذ فرښتو د سوري كولو بيان.

۸۱: حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ قَالَ اَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ قَالَ سَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ الْمُنْكَدِرِ اَنَّهُ سَمِعَ جَابِرًا يَقُوْلُ جِيْءَ بِاَبِيْ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ مُثِّلَ بِهٖ وَ وُضِعَ بَيْنَ يَدَيْهِ فَذَهَبْتُ اَكْشِفُ عَنْ وَّجْهِهٖ فَنَهَانِيْ قَوْمِيْ فَسَمِعَ صَوْتَ صَآئِحَةٍ فَقِيْلَ اِبْنَةُ عَمْرٍو اَوْ اُخْتُ عَمْرٍو فَقَالَ لِمَ تَبْكِيْ اَوْلَا تَبْكِيْ مَا زَالَتِ الْمَلٰٓئِكَةُ تُظِلُّهٗ بِاَجْنِحَتِهَا قُلْتُ لِصَدَقَةَ اَفِيْهِ حَتّٰى رُفِعَ قَالَ رُبَمَا قَالَهٗ.

۸۱: صدقه بن فضل ابن عيينه. محمد بن منكدر نه روايت كوي. هغه د جابر بن عبدالله نه واوريدل څما پلار رسول الله صلي الله عليه وسلَم ته راوړلے شو، ذ هغهٔ مُثله شوے وه (غوږونه، پوزه وغيره تړے پريكړے شوے وو) هغه د حضورﷺ مخے ته كيښودے شو. ما ذ هغهٔ مخ پرانستلو كتلو م، نو څما قوم زهٔ منع كړم، بيا ذ ژړا آواز راغے. بيان اوكړے شو چه دا د عمرو لور يا د عمرو خور ده. حضورﷺ اوفرمائيل، ولے ژاړے، څكه چه فريښتو خپلو وزرو سره برابر په هغهٔ سورے كړے دے. (امام بخاريؒ) وائي ما د صدقه نه چه څما استاد وو تپوس اوكهٔ چه دے حديث كښے دا هم شته، تردے چه هغه اسمان طرف ته اوچت كړے شو، او كله كله به جابر دا هم وئيلے چه فرښتو هغه اوچت كړو اسمان ته ئے يوړلو. او لږ ساعت پس ئے بيا زمكے ته راكوز كړلو.

**باب ٦٦: تَمَنِّي الْمُجَاهِدِ اَنْ يَرْجِعَ اِلَى الدُّنْيَا.**

۸۲: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدُرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ سَمِعْتُ قَتَادَةَ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا اَحَدٌ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ يُحِبُّ اَنْ يَرْجِعَ اِلَى الدُّنْيَا وَلَهُ مَا عَلَى الْاَرْضِ مِنْ شَيْءٍ اِلَّا الشَّهِيْدُ يَتَمَنّٰى اَنْ يَرْجِعَ اِلَى الدُّنْيَا فَيُقْتَلَ عَشْرَ مَرَّاتٍ لِمَا يَرٰى مِنَ الْكَرَامَةِ.

**باب ٦٦: د شهيد دُنيا ته دوباره دَ تللو د تمنا كولو بيان.**

۸۲: محمد بشار. غندر. شعبه. قتاده. انس بن مالک رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلَم نه روايت كوي. حضورٌ اوفرمائيل كوم سړے چه جنت كښے داخل شي' هغهٔ به دا نه غواړي چه دنيا ته بيا راشي' خو اه دنيا كښے بيا هغه ته د دنيا هر څهٔ حاصل شي' البته شهيد به دا غواړي چه هغه دوباره دنيا ته راواپس كړلے شي چه هغه لس خله قتل شي. ځكه چه هغهٔ دَ قتل في سبيل اللّٰه فضيلت ليدلے دے.

**باب ٦٧: اَلْجَنَّةُ تَحْتَ بَارِقَةِ السُّيُوْفِ.** وَ قَالَ الْمُغِيْرَةُ بْنُ شُعْبَةَ اَخْبَرَنَا نَبِيُّنَا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ رِسَالَةِ رَبِّنَا مَنْ قُتِلَ مِنَّا صَارَ اِلَى الْجَنَّةِ وَ قَالَ عُمَرُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلَيْسَ قَتْلَانَا فِي الْجَنَّةِ وَ قَتْلَاهُمْ فِي النَّارِ قَالَ بَلٰى.

**باب ٦٧: دَ تورے د چمک لاندے دَ جنت دَ وجود بيان.** حضرت مغيره بن شعبه وائي مونږ ته خمونږ نبي محترم رسول اللّٰه صلعم اوفرمائيل كوم سړے چه مونږ نه قتل كړے شي هغه به جنت له ځي' او كوم وخت چه حضرت عمرٌ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلَم ته عرض اوكه' آيا خمونږ مقتول به جنت ته او دَ كافرو مقتول به جهنم ته نه ځي. نو حضورٌ اوفرمائيل' او ضرور به ځي.

۸۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ عَمْرٍو حَدَّثَنَا اَبُوْ اِسْحَاقَ عَنْ مُوْسَى ابْنِ عُقْبَةَ عَنْ سَالِمٍ اَبِي النَّضْرِ مَوْلٰى عُمَرَ بْنِ عُبَيْدِ اللّٰهِ وَ كَانَ كَاتِبَهُ قَالَ كَتَبَ اِلَيْهِ عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ اَبِيْ اَوْفٰى اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۸۳: عبداللّٰه بن محمد. معاويه بن عمرو. ابو اسحاق. موسي بن عقبه. سالم. ابو النضر. چه د عمر بن عبيداللّٰه مولي (او منشي هم وو) نه روايت كوي' حضرت عبداللّٰه بن اوفي هغهٔ ته دا خط ليكلے وو. رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلَم فرمائيلي دي چه جنت د تورو د لاندے دے. عبدالعزيز

وَسَلَّمَ قَالَ وَاعْلَمُوْا اَنَّ الْجَنَّةَ تَحْتَ ظِلَالِ السُّيُوْفِ تَابَعَهُ الْاُوَيْسِيُّ عَنْ اَبِيْ الزِّنَادِ عَنْ مُوْسَى بْنِ عُقْبَةَ.

ف: مولي: آزاد کړے شوے غلام.

اویسي دا روایت د ابن ابو الزناد موسی بن عقبه، ذ حدیث په متابعت کښې کړے دے.

## باب ۲۸: مَنْ طَلَبَ الْوَلَدَ لِلْجِهَادِ.

باب ۲۸: جهاد ذ پاره ذ اولاد د آرزو کولو بیان.

۸۴: وَقَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ جَعْفَرُ بْنُ رَبِيْعَةَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ ابْنِ هُرْمُزَ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قَالَ سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوٗدَ عَلَيْهِمَا السَّلَامُ لَاَطُوْفَنَّ اللَّيْلَةَ عَلٰى مِائَةِ امْرَاَةٍ اَوْ تِسْعٍ وَّتِسْعِيْنَ كُلُّهُنَّ تَأْتِيْ بِفَارِسٍ يُّجَاهِدُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَقَالَ لَهُ صَاحِبُهُ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ فَلَمْ يَقُلْ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ فَلَمْ يَحْمِلْ مِنْهُنَّ اِلَّا امْرَاَةٌ وَّاحِدَةٌ جَآءَتْ بِشِقِّ رَجُلٍ وَالَّذِيْ نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهٖ لَوْ قَالَ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ لَجَاهَدُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فُرْسَانًا اَجْمَعُوْنَ.

۸۴: ذ لیث قول دے چه ماته جعفر بن ربیعه د عبدالرحمٰن بن هرمز نه نقل او که، هغهٔ وئیلے ما حضرت ابوهریرهؓ د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم نه دا روایت کول واوریدل. حضور اوفرمائیل، سلیمان بن داؤد علیهما السلام یوه ورځ وئیلے وو. زهٔ به نن شپه سل یا یو کم سل بیبیانو له ورځم. او هغه بیبیانے به یو یو شهسوار پیدا کړي چه ذ خدائے په لار کښې به جهاد کوي، نو هغه ته ذ هغهٔ یو ملګري اووے چه انشاء اللّٰه اووایه، خو هغهٔ انشاء اللّٰه اونه وے. هغے کښې صرف یوه بي بي حامله شوه خو هغے هم نیم بچے راوړلو. قسم دے په هغه ذات چه د هغهٔ قبضه کښې د محمدؐ ساه ده که هغهٔ انشاء اللّٰه وئیلے وے نو ذ ټولو بیبیانو نه به بچي پیدا شوي وو، او بیشکه هغه ټول به جانباز او بهادران وو او د اللّٰه په لار کښې به ئے جهاد کولو.

## باب ۲۹: الشَّجَاعَةُ فِي الْحَرْبِ وَالْجُبْنُ.

باب ۲۹: جنګ کښې د بهادرئ او بُزدلي ښودونکي بیان.

۸۵: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ وَاقِدٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ اَنَسٍ قَالَ كَانَ

۸۵: احمد بن عبدالملک بن واقد. حماد بن زید. ثابت. انسؓ نه روایت کوي چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم د ټولو خلقونه زیات حسین

النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَحْسَنُ النَّاسِ وَ اَشْجَعُ النَّاسِ وَ اَجْوَدُ النَّاسِ وَلَقَدْ فَزِعَ اَهْلُ الْمَدِیْنَةِ فَکَانَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ سَبَقَهُمْ عَلٰی فَرَسٍ وَ قَالَ وَجَدْنَاهُ بَحْرًا.

او ذَ ټولو نه زیات بهادر او د ټولونه زیات سخي وو، مدینې والوته څهٔ خوف پیدا شوے وو نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم په یو اَس سور شولو، او ذَ ټولونه مخکښې مخکښې ئې تشریف یوړلو، او وے فرمائیل مونږ دا اَس ذَ ژور دریاب په شان (تېز رو) بیا مُند.

۸۶: حَدَّثَنَا اَبُو الْیَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَیْبٌ عَنِ الزُّهْرِیِّ قَالَ اَخْبَرَنِیْ عُمَرُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ جُبَیْرِ ابْنِ مُطْعِمٍ اَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ جُبَیْرٍ قَالَ اَخْبَرَنِیْ جُبَیْرُ بْنُ مُطْعِمٍ اِنَّهٗ بَیْنَمَا هُوَ یَسِیْرُ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وَ مَعَهُ النَّاسُ مَقْفَلَهٗ مِنْ حُنَیْنٍ فَعَلَقَهُ النَّاسُ یَسْئَلُوْنَهٗ حَتّٰی اضْطَرُّوْهُ اِلٰی سَمُرَةٍ فَخُطِفَتْ رِدَائُهٗ فَوَقَفَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَعْطُوْنِیْ رِدَائِیْ لَوْ کَانَ لِیْ عَدَدُ هٰذِهِ الْعِضَاهِ نَعَمًا لَقَسَمْتُهٗ بَیْنَکُمْ ثُمَّ لَا تَجِدُوْنِیْ بَخِیْلًا وَلَا کَذُوْبًا وَّلَا جَبَانًا.

۸۶: ابوالیمان. شعیب. زهري. عمر بن محمد بن جبیر بن مطعم. محمد بن جبیر وائي. ماته جبیر بن مطعم بیان اوکه، چه غزوهٔ حنین نه په واپسي مونږ د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم همرکاب روان وو، او حضورؐ سره ځنې نور خلق هم وو. څو کلي وال (بانډیسیان) د حضورؐ نه راتاؤ شولو، او څهٔ غوښتل ئې تړے شروع کړل. تردے چه هغوئ حضورؐ د اُونے سوري ته بوتلو. او ذَ حضورؐ نه ئې څادر کوز کړلو رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم هلته ایسار شولو اووے فرمائیل څما څادر راکړئ، که ما سره ددے اُونو برابر چیلئ وے. نو ما به په تاسو تقسیم کړے وے. بیا به تاسو زه بخیل یا دروغژن یا بزدل نه وے موندلے.

باب ۷۰: مَا یُتَعَوَّذُ مِنَ الْجُبْنِ.

باب ۷۰: بزدلي نه د پناه غوښتلو بیان.

۸۷: حَدَّثَنَا مُوْسَی بْنُ اِسْمٰعِیْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عُوَانَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ عُمَیْرٍ سَمِعْتُ عَمْرَو

۸۷: موسي بن اسمٰعیل. ابو عوانه. عبدالملک بن عمیر. عمرو بن میمون اودي نه روایت کوي. حضرت سعد بن ابي وقاص

بْنَ مَيْمُوْنِ الْاَوْدِيّ قَالَ كَانَ سَعْدٌ يُعَلِّمُ بَنِيْهِ هٰؤُلَاءِ الْكَلِمَاتِ كَمَا يُعَلِّمُ الْمُعَلِّمُ الْغِلْمَانَ الْكِتَابَةَ وَ يَقُوْلُ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَتَعَوَّذُ مِنْهُنَّ دُبُرَ الصَّلٰوةِ اللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَعُوْذُبِكَ مِنَ الْجُبْنِ وَ اَعُوْذُبِكَ اَنْ اُرَدَّ اِلٰى اَرْذَلِ الْعُمُرِ وَ اَعُوْذُبِكَ مِنْ فِتْنَةِ الدُّنْيَا وَ اَعُوْذُبِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ فَحَدَّثْتُ بِهٖ مُصْعَبًا فَصَدَّقَهُ.

خپلو خامنو ته دا کلمات داسې ښودل، څنګه چه معلم خلقوته کتابت ښائي. او وئيل ئې، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم به دَ مانځه نه پس دا لوستل، هغه کلمات دا دي: اللّٰهم انى اعوذبک من الجبن و اعوذبک ان ارد الى ارزل العمر و اعوذبک من فتنة الدُّنيا و اعوذبک من عذاب القبر. بيا ما مصعب ته دا حديث بيان کړه. نو هغهٔ د دې تصديق او کړهٔ.

**ف:** دا کلمات هر پلار خپل اولاد ته او هر استاد خپل شاګرد ته ښودلې شي.

**بَابُ ۷۱: مَنْ حَدَّثَ بِمُشَاهِدِهٖ فِي الْحَرْبِ قَالَهٗ اَبُوْ عُثْمَانَ عَنْ سَعْدٍ.**

**باب ۷۱:** دَ جنګي کارنامو د اعلان کونکو بيان. دا ابو عثمان دَ حضرت سعد نه هم بيان کړيدې.

**۸۸:** حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا حَاتِمٌ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يُوْسُفَ عَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيْدَ قَالَ صَحِبْتُ طَلْحَةَ بْنَ عُبَيْدِ اللّٰهِ وَ سَعْدًا وَ الْمِقْدَادَ بْنَ الْاَسْوَدِ وَ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ فَمَا سَمِعْتُ اَحَدًا مِنْهُمْ يُحَدِّثُ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَّا اِنِّيْ سَمِعْتُ طَلْحَةَ يُحَدِّثُ عَنْ يَوْمِ اُحُدٍ.

**۸۸:** قتيبه بن سعيد. حاتم. محمد بن يوسف. سائب بن يزيدؓ نه روايت کوي. زهٔ دَ حضرت طلحه بن عبيداللّٰه، مقداد بن اسود او د عبدالرحمٰن بن عوف صحبت کښې پاتې شوې يم. هغوئ کښې م هيڅ نه د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه داسې څه حديث نقل کول نهٔ دي اوريدلي صرف حضرت طلحهؓ نه م دَ جنګ اُحد واقعه بيانول اوريدلې دي.

**بَابُ ۷۲: وُجُوْبِ النَّفِيْرِ وَمَا يَجِبُ مِنَ الْجِهَادِ وَالنِّيَّةِ وَ قَوْلِهٖ اِنْفِرُوْا خِفَافًا وَّثِقَالًا وَ جَاهِدُوْا بِاَمْوَالِكُمْ وَ اَنْفُسِكُمْ**

**باب ۷۲:** جهاد دَ پاره وتل واجب دي او جهاد کښې نيک نيت کيدل لازمي دي. دَ اللّٰه تعالٰي قول، جهاد دَ پاره اوځئ. کهٔ سپک يئې يا بوج لرونکي، (پلي يابوجهل) او خپل مالونو او ځانونو (سرونو) سره د اللّٰه په

فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ لَوْ كَانَ عَرَضًا قَرِيْبًا وَّ سَفَرًا قَاصِدًا لَّا تَّبَعُوْكَ وَلٰكِنْ بَعُدَتْ عَلَيْهِمُ الشُّقَّةُ وَ سَيَحْلِفُوْنَ بِاللّٰهِ الْاٰيَةَ وَ قَوْلِهٖ يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَالَكُمْ اِذَا قِيْلَ لَكُمُ انْفِرُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اثَّاقَلْتُمْ اِلَى الْاَرْضِ اَرَضِيْتُمْ بِالْحَيٰوةِ الدُّنْيَا مِنَ الْاٰخِرَةِ اِلٰى قَوْلِهٖ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ يُذْكَرُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اِنْفِرُوْا ثُبَاتٍ سَرَايَا مُتَفَرِّقِيْنَ يُقَالُ وَاحِدُ الثُّبَاتِ ثُبَةٌ.

لار کښې جهاد کوئ. دا ستاسو ذَ پاره بهتره ده. که تاسو پوهيږئ. که څه سامان قريب وے، او نزدے سفر وے، نو هغوئ به ضرور تاسو سره تلے. ليکن هغوئ ته دا (د تبوک) لار لرے معلومه شوه او عنقريب هغوئ به قسمونه خوري چه الله آخر آيت پورے او د الله تعالیٰ قول اے مسلمانانو هر کله چه تاسوته ووئيلے شي چه د الله په لار کښې جهاد له اوځئ، نو تاسو له څۀ شويدي چه زمکے سره اونښلئ آيا تاسو د آخرت په بدله کښې دنياوي ژوند باندِ خوشحاله يئ!. او حضرت عباسؓ نه منقول دي چه فانفروا ثبات مطلب دادے چه وړو وړو دستو کښې متفرق طور سره جهاد ذَ پاره اوځئ د ثبات واحد ثبه دے چه ذَ هغے معنٰي پلاټون يعني د فوځ وړو کي دسته.

۱۰۰. دا دواړه آيتونه د تبوک جنګ سره تعلق لري. تبوک د مدينے په شمال کښې د شام په سرحد باندے يو مقام دے. په شام باندے هغه وخت د عيسايانو حکومت وو. حضور اکرم صلي الله عليه وسلّم چه د غزوه حُنين نه فارغ شو او مدينے ته راواپس شو نو هغوئ ته اطلاع اوشوه چه څو فوځونه په تبوک کښې لګيا دي جمع کيږي او په مدينے باندے د حملے کولو تيارئ کښې مصروف دي. حضورؐ او غوښتل چه پخپله پرے ورانده شي او مقابله ئے اوکړي. په دا شان ديرش زره لښکر هغوئ سره شو، ليکن د سخت اوړي موسم وو، د فصل پخيدلو او ريبلو زمانه وه کوم باندے چه د مدينے ذَ معيشت ډيره حده پورے انحصار وو. يو طرفته خو مقابله يو باقاعده فوځ سره وه او هغه هم د خپل وخت د لوئے سلطنت فوځ وو، او مسافت هم ډير لرے وو. په دے وجه د بعضو کسانو همت جواب ورکړو او منافقانو خو خان پوره ښکاره کړلو، بيا هم کله چه د کافرانو لښکر ته د حالاتو ناموافق والي باوجود د مسلمانانو ددے چابکوالي پته اولګيده نو پخپله د هغوئ حوصلے ښکته شوے او هغوئ د حملے کولو همت اونه کړو. اسلامي لښکر يو مودے پورے انتظار نه پس واپس راغے.

۸۹: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَنْصُوْرٌ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ طَاؤُسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ النَّبِيَّ

۸۹: عمرو بن علي. يحيٰي. سفيان. منصور. مجاهد. طاؤس ابن عباس نه روايت کوي. رسول الله صلي الله عليه وسلّم د مکے د فتح په ورځ اوفرمائيل چه ذَ مکے د فتح نه پس هجرت پاتے نه شو، خو جهاد او ذَ

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَوْمَ الْفَتْحِ لَا هِجْرَةَ بَعْدَ الْفَتْحِ وَلٰكِنْ جِهَادٌ وَ نِيَّةٌ وَ اِذَا اسْتُنْفِرْتُمْ فَانْفِرُوْا.

نیت ثواب باقي دے. او کله چه جهاد دَ پاره (حاکم شریعت د طرف نه) اوغوبنتلے شئ. نو سمدستي حاضریږئ.

بَـابُ ۷۴۳: اَلْكَافِرُ يَقْتُلُ الْمُسْلِمَ ثُمَّ يُسْلِمُ فَيُسَدِّدُ بَعْدُ وَ يُقْتَلُ.

باب ۷۴۳: د کافر مسلمان قتلول او خپله مسلمانیدل' بیا اسلام باندے ثابت قدم پاتے کیدل. او دَ خدائے په لار کښے دَ قتلیدو بیان.

• ۹۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَضْحَكُ اللّٰهُ مِنَ الرَّجُلَيْنِ يَقْتُلُ اَحَدُهُمَا الْاٰخَرَ يَدْخُلَانِ الْجَنَّةَ يُقَاتِلُ هٰذَا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَيُقْتَلُ ثُمَّ يَتُوْبُ اللّٰهُ عَلَى الْقَاتِلِ فَيُسْتَشْهَدُ.

• ۹۰: عبداللّٰه بن یوسف. مالک: ابوالزناد. اعرج. ابوهریرهؓ نه روایت کوي' رسول الله صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل اللّٰه د هغې دوو سړو په حال تعجب کوي' یو هغه چه بل قتل کړي' بیا هغوئ دواړه جنت له ځي. یو خو په دے وجه چه د خدائے په لار کښے غزا اوکړئ اوقتل شي. بیا اللّٰه دَ قاتل هم توبه نصیب کړي' نو هغه هم د اللّٰه تعالیٰ په لار کښے شهید شيءا.

ا. یعني ضابطه خو داده چه قاتل او مقتول به یوځائے په جنت یا دوزخ کښ نه جمع کیږي. که چرے یو سړے د اللّٰه په لاره کښ شهید شوے وي نو یقیناً د داسے انسان قاتل به جهنم ته ځي لیکن خدائے تعالیٰ پخپله د خپل قدرت عجائباتو ته ګوري او هغهٔ له خندا وَرشي' یو سړي د کافرانو د طرفه جنګیدلو سره یو مسلمان مجاهد شهید کړو بیا د خدائے قدرت ته ګوره چه هغه ته هم ایمان نصیب شو او د هغے نه پس هغه د مسلمانانو د طرفه جنګیږي او شهید کیږي او په دا شان قاتل او مقتول دواړه جنت ته داخل کړے شي' او خدائے تعالیٰ چه کله د خپل قدرت دا عجوبه اووینی نو هغهٔ له پخپله خندا ورشي.

۹۱: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَنْبَسَةُ بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ اَتَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ بِخَيْبَرَ بَعْدَ مَا افْتَتَحُوْهَا فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اسْهَمْ لِيْ فَقَالَ بَعْضُ بَنِيْ سَعِيْدِ بْنِ الْعَاصِ

۹۱: حمیدي. سفیان. زهري. عتبسه بن سعید. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي. زهٔ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم له ورغلم' هغه وخت حضور صلعم په خیبر کښے وو او مسلمانانو خیبر فتح کړے وو. ما عرض اوکهٔ یا رسول اللّٰهٔ دَ غنیمت مال کښے ځما حصه هم اوکړئ' دَ سعید بن عاص په ځامنو کښے یو کس اووے' یا رسول اللّٰهَ

لَا تَسُهُمْ لَهُ يَا رَسُولَ اللَّهِ فَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ هٰذَا قَاتِلُ ابْنِ قَوْقَلٍ فَقَالَ ابْنُ سَعِيدِ بْنِ الْعَاصِ وَاعَجَبًا لِوَبْرٍ تَدَلّٰى عَلَيْنَا مِنْ قَدُومِ ضَانٍ يَنْعٰى عَلَيَّ قَتْلَ رَجُلٍ مُسْلِمٍ أَكْرَمَهُ اللَّهُ عَلٰى يَدَيَّ وَلَمْ يُهِنِّيْ عَلٰى يَدَيْهِ قَالَ فَلَا أَدْرِيْ أَسْهَمَ لَهُ أَمْ لَمْ يُسْهِمْ لَهُ قَالَ سُفْيَانُ وَحَدَّثَنِيْهِ السَّعِيْدِيُّ عَنْ جَدِّهِ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ أَبُوْ عَبْدِ اللَّهِ السَّعِيْدِيُّ عَمْرُو بْنُ يَحْيَى بْنِ سَعِيْدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ سَعِيْدِ بْنِ الْعَاصِ.

دَده حصه مه کوئ ما اووے' حضورؐ دا دَ ابن قوقل قاتل دے. هکفر حالت کښې ده هغه قتل کړے وو. تاسو ددې خبره مه مني. د سعيد بن عاص ځوئے اووے تعجب دے دَ اوضان غنډئ ګيدړه. نه په ما د يو مسلمان سړي د قتل عيب لګوے. چه هغه له الله ځما په لاس بزرګي ورکړه' او زهٔ ئے دَ هغهٔ په لاس ذليل نکړم. اعرج وائي' ماته نه ده معلومه' چه بيا حضورؐ هغه له حِصه ورکړه که نه. سفيان اووے. دا حديث ماته سعيدي په واسطه د خپل نيکهٔ او حضرت ابوهريرهؓ بيان کړيدے بخاريؒ اووے' دَ سعيدي نوم عمرو بن يحيي بن سعيد بن عاص وو.

بَابٌ ۷۴ : مَنِ اخْتَارَ الْغَزْوَ عَلَى الصَّوْمِ.

باب ۷۴: روژے باندے جهاد له دَ ترجيح ورکونکو بيان.

۹۲ : حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا ثَابِتٌ الْبُنَانِيُّ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ قَالَ كَانَ أَبُوْ طَلْحَةَ لَا يَصُوْمُ عَلٰى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ أَجْلِ الْغَزْوِ فَلَمَّا قُبِضَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ أَرَهُ مُفْطِرًا إِلَّا يَوْمَ فِطْرٍ أَوِ الضُّحٰى.

۹۲ : آدم. شعبه. ثابت بناني. حضرت انس بن مالک نه روايت کوي. ابو طلحه د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم په زمانه کښې د جهاد په سبب روژے نه نيولے' کوم وخت چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم وفات شو' نو هغهٔ ماسوا د وړوکي اختر او لوئے اختر نه هيڅ کله روژه ترک کونکے اونهٔ ليدلو.

بَابٌ ۷۵ : الشَّهَادَةُ سَبْعٌ سِوَى الْقَتْلِ.

باب ۷۵: د قتل نه سِوا دَ شهادت دَ مابقي اوو صورتونو بيان.

۹۳ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوْسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ سُمَيٍّ عَنْ أَبِيْ صَالِحٍ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ

۹۳ : عبداللّٰه بن يوسف. مالک. سمي. ابوصالح. ابوهريرهؓ نه روايت کوي. رسول الله صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' شهيد په پنځه قسمه وي (۱)

اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الشُّهَدَآءُ خَمْسَةٌ اَلْمَطْعُوْنُ وَالْمَبْطُوْنُ وَالْغَرِقُ وَ صَاحِبُ الْهَدْمِ وَالشَّهِيْدُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ.

چه دَ طاعون په مرض مړشي (۲) د خيټې د مرض نه مړ شي (۳) ډوبيدو سره ساه ورکړي (۴) ديوال غورزيدو سره مړشي او ځوک چه د هغه لاڼدې داسې شهيد شي او چه خپل ځائې ته اورسي او ساه ورکړي يا ميدان جنګ ته رسيدو سره په حق اورسي.

۱. احاديث مختلف دي په بعضو كښې د شهادت د اوو قسمونو په صراحت سره ذكر دې او مصنف د همدغې احاديثو تر مخه عنوان لګولے دے ليكن دغه احاديث د بيان په شرائطو باندې پوره نه څيزي په دے وجه ئې هغه د عنوان لاندې رانه وړے شو. مقصد دا دے چه شهادت صرف په جهاد كښې قتليدلو باندې منحصر نه دے بلكه ددے مختلف صورتونه دي. دا بيله خبره ده چه دَ اللّٰه په لاره كښې جهاد كښې د شهادت موندلو درجه ډيره اعلىٰ او اوچته ده.

۹۴: حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا عَاصِمٌ عَنْ حَفْصَةَ بِنْتِ سِيْرِيْنَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الطَّاعُوْنُ شَهَادَةٌ لِكُلِّ مُسْلِمٍ.

۹۴: بشر بن محمد. عبداللّٰه. عاصم. حفصه بن سيرين. حضرت انس بن مالك نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم فرمائيلي دي، چه طاعون هم دَ مسلمان دَ شهادت سبب دے.

باب ۷۶: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى لَا يَسْتَوِى الْقَاعِدُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ غَيْرُ اُولِى الضَّرَرِ وَالْمُجَاهِدُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ بِاَمْوَالِهِمْ وَ اَنْفُسِهِمْ فَضَّلَ اللّٰهُ الْمُجَاهِدِيْنَ بِاَمْوَالِهِمْ وَ اَنْفُسِهِمْ عَلَى الْقَاعِدِيْنَ دَرَجَةً وَ كُلًّا وَعَدَ اللّٰهُ الْحُسْنٰى وَ فَضَّلَ اللّٰهُ الْمُجَاهِدِيْنَ عَلَى الْقَاعِدِيْنَ اِلٰى قَوْلِهِ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا.

باب ۷۶: د اللّٰه تعالىٰ قول چه مسلمانانو كښې كوم خلق معذور نه وي او دَ جهاد نه پاتې شي، هغوئ او د خدائې په لار كښې خپل سر و مال سره جهاد كونكي يو برابر كيدے نشي. اللّٰه تعالىٰ هغه خلق چه خپل مال و سر، سره جهاد اوكړي په ناستو خلقو يو درجه فضيلت وركړيدے او هر يو سره اللّٰه تعالىٰ وعده كړيده او اللّٰه تعالىٰ په ناستو خلقو جهاد كونكوله فضيلت وركړے دے، آخر آيت غفوراً رحيمًا پورے.

۹۵: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِىْ اِسْحَاقَ قَالَ سَمِعْتُ

۹۵: ابوالوليد. شعبه. ابو اسحاق نه روايت كوي ما د براء نه واوريدل كوم وخت چه

الْمِرَاءُ يَقُوْلُ لَمَّا نَزَلَتْ لَا يَسْتَوِي الْقَاعِدُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ دَعَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَيْدًا فَجَاءَ بِكَتِفٍ فَكَتَبَهَا وَ شَكَا ابْنُ اُمِّ مَكْتُوْمٍ ضَرَارَتَهُ فَنَزَلَتْ لَا يَسْتَوِي الْقَاعِدُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ غَيْرُ اُولِي الضَّرَرِ.

دا آيت نازل شو، لا يستوى القاعدون من المؤمنين، نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم زيد بن ثابت كاتب وحي اوغوښتلو چه دَ مټ (شانې) هډوکے ئے راوړلو[۱]، او په هغے ئے دا آيت اوليكلو، ابن اُم مكتومؓ دَ خپلے نابينائي شكايت اوكه نو په دے خبره دا آيت نازل شولو لا يستوى القاعدون من المؤمنين غير اولى الضرر.

۱. په هغه دور كښ چونكه د كاغذ وجود نه وو په دے وجه به هډوكي يا په نورو ډيرو څيزونو باندے خاص طريقے استعمالولو نه پس به داسے ليكل كيدل چه صفا به لوستے كيدلو اوليكل به هم تر يوے اوګدے زمانے پورے باقي پاتے وو.

۹۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ صَالِحُ بْنُ كَيْسَانَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدِ السَّاعِدِيِّ اَنَّهُ قَالَ رَاَيْتُ مَرْوَانَ بْنَ الْحَكَمِ جَالِسًا فِي الْمَسْجِدِ فَاَقْبَلْتُ حَتّٰى جَلَسْتُ اِلٰى جَنْبِهٖ فَاَخْبَرَنَا اَنَّ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ اَخْبَرَهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمْلٰى عَلَيْهِ لَا يَسْتَوِي الْقَاعِدُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُجَاهِدُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ قَالَ فَجَاءَهُ ابْنُ اُمِّ مَكْتُوْمٍ وَهُوَ يُمِلُّهَا عَلَيَّ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ لَوْ اَسْتَطِيْعُ الْجِهَادَ لَجَاهَدْتُ وَ كَانَ رَجُلًا اَعْمٰى فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَبَارَكَ وَ تَعَالٰى عَلٰى رَسُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۹۶: عبدالعزيز بن عبداللّٰه. ابراهيم بن سعد. زهري. صالح بن كيسان. ابن شهاب. سهل بن سعد ساعدي فرمائي. ما مروان بن حكم جمات كښے ناست اوليد، نو زهٔ ورته مخے ته راغلم، او دَ هغهٔ خوا كښے كيناستم، هغهٔ ماته اووے، زيد بن ثابت ته اطلاع وركړه، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم هغه ته آيت لا يستوى القاعدون من المؤمنين والمجاهدون فى سبيل اللّٰه، اوليكلو نو عبداللّٰه ابن ام مكتومؓ حضور له راغے او حضور دغه وخت ماته دا آيت ليكلو. ابن ام مكتومؓ اووے، يا رسول اللّٰهٔ كهٔ څما وس رسيدے، نو ضرور به م جهاد كولے، هغه نابينا سړے وو، نو اللّٰه تعالٰي په خپل رسولٌ دا آيت نازل كړلو. هغه وخت دَ حضورٌ (پتون) څما په ورونړ پروت وو او دومره بوج رابانديے غرخيدلو، چه

وَسَلَّمَ وَ فَخِذُهُ عَلٰى فَخِذِيْ فَثَقُلَتْ عَلَيَّ حَتّٰى خِفْتُ اَنْ تُرَضَّ فَخِذِيْ ثُمَّ سُرِّيَ عَنْهُ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ غَيْرُ اُولِي الضَّرَرِ.

مـاسـره ذ خپل پتـون د مـاتيـدلو ويـره پيـدا شـوه، کـوم وخـت چـه غيـر اولـي الضـرر نـازل شـولـو نـو ذ حـضـورؐ هغـه درونـد کيـفيـت پـه لـرې کيدو شولو.

باب۷۷: اَلصَّبْرُ عِنْدَ الْقِتَالِ.

بـاب۷۷: د جـنـګ پـه وخـت د صبـر کـولـو بيان.

۹۷: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ عَمْرٍو حَدَّثَنَا اَبُوْ اِسْحَاقَ عَنْ مُوْسَى بْنِ عُقْبَةَ عَنْ سَالِمٍ اَبِي النَّضْرِ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ اَوْفٰى كَتَبَ فَقَرَأْتُهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا لَقِيْتُمُوْهُمْ فَاصْبِرُوْا.

۹۷: عبـداللّٰـه بـن مـحـمـد. مـعـاويـه بـن عـمـرو. اسـحـاق. موسـي بـن عقبـه. سـالم. ابي الـنـضـرؓ نـه روايـت کـوي. حـضـرت عبـداللّٰـه بن ابـي اوفـي لـيـکـلـې وو، او مـا هـغـه اولـوسـتـلـو، چـه رسـول اللّٰـه صـلـي اللّٰـه عليـه وسـلّم فـرمـائيل چـه کـلـه تـاسـو د دشـمـن مقـابلـې تـه اوځئ، نـو صبـر کوئ. (خانونه کلک کړئ)

باب۷۸: اَلتَّحْرِيْضِ عَلَى الْقِتَالِ وَ قَوْلِهٖ تَعَالٰى حَرِّضِ الْمُؤْمِنِيْنَ عَلَى الْقِتَالِ.

باب۷۸: د جهـاد ذ ترغيب بيان، او ذ اللّٰه تعالٰي قـول چه اې نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم مسلمانان جهاد ته آماده کړه.

۹۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ ابْنُ عَمْرٍو حَدَّثَنَا اَبُوْ اِسْحَاقَ عَنْ حُمَيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسًا يَقُوْلُ خَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَى الْخَنْدَقِ فَاِذَا الْمُهَاجِرُوْنَ وَالْاَنْصَارُ يَحْفِرُوْنَ فِيْ غَدَاةٍ بَارِدَةٍ فَلَمْ يَكُنْ لَّهُمْ عَبِيْدٌ يَعْمَلُوْنَ ذٰلِكَ لَهُمْ فَلَمَّا رَاٰى مَا بِهِمْ مِنَ النَّصَبِ وَالْجُوْعِ قَالَ اللّٰهُمَّ اِنَّ الْعَيْشَ عَيْشُ الْاٰخِرَةِ. فَاغْفِرْ لِلْاَنْصَارِ

۹۸: عبـداللّٰـه بـن مـحـمـد. مـعـاويـه بـن عـمـرو. ابـو اسـحـاق. حـمـيـد نـه روايـت کـوي. مـا ذ حـضـرت انـسؓ نـه واوريـدل چـه رسـول اللّٰـه صلي اللّٰه عليـه وسـلّـم خـنـدق لـه ورغـې، نو مهاجرينو او انصارو ذ يـخـنـئ پـه زمـانـه کښې د وختـه وختـه خندق کنستلو. چـه هـغـوئ سـره غـلامـان هـم نه وو، هغې کښې ئې کار کـولـو. کـوم وخـت چـه حـضـورؐ ذ هغوئ پريشاني او ذ لـوږې حـالت اوليد، نو وې فرمائيل اې اللّٰه ژوند بيشکه ذ آخـرت ژونـد دې اې خـمـا اللّٰـه تهٔ انصار او مهاجرين اوبښـې، ددې پـه جـواب کښـې مهـاجـرينو او انصـارو

وَالْمُهَاجِرَةِ فَقَالُوْا مُجِيْبِيْنَ لَهٗ. نَحْنُ الَّذِيْنَ بَايَعُوْا مُحَمَّدًا عَلَى الْجِهَادِ مَا بَقِيْنَا اَبَدًا.

اووې. "مونږ هغه يو چه د محمدؐ په لاس مو بيعت کړيدې څو پورې چه ژوندوي، نو جهاد د پاره به تل کمربسته يو".

## بَابُ ۷۹: حَفْرِ الْخَنْدَقِ.

## باب ۷۹: دَ خندق کنستلو بيان.

۹۹: حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ عَنْ اَنَسٍ قَالَ جَعَلَ الْمُهَاجِرُوْنَ وَالْاَنْصَارُ يَحْفِرُوْنَ الْخَنْدَقَ حَوْلَ الْمَدِيْنَةِ وَ يَنْقُلُوْنَ التُّرَابَ عَلٰى مُتُوْنِهِمْ وَ يَقُوْلُوْنَ. نَحْنُ الَّذِيْنَ بَايَعُوْا مُحَمَّدًا عَلَى الْجِهَادِ مَا بَقِيْنَا اَبَدًا وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُجِيْبُهُمْ وَ يَقُوْلُ اَللّٰهُمَّ اِنَّهٗ لَا خَيْرَ اِلَّا خَيْرَ الْاٰخِرَةِ فَبَارِكْ فِي الْاَنْصَارِ وَالْمُهَاجِرَةِ.

۹۹: ابو معمر. عبدالوارث. عبدالعزيز. حضرت انسؓ نه روايت کوي. چه مهاجرين او انصار به دَ مديني نه چاپيره خندق کنولو. اوپه خپله شا به ئې خاوره اوړله. او دابه ئې ونيلې. مونږ هغه يو. چه محمد صلي اللّٰه عليه وسلّم نه مو د اسلامي جهاد بيعت کړې دې. څو پورې چه ژوندي يو مسلمانان به يو او رسولؐ به هغوئ له جواب ورکولو اې خُدا اللّٰه د آخرت د نيکئ نه سوا بله هيڅ نيکي نشته، نو ته مهاجرين او انصارو ته برکت عطا کړې.

۱۰۰: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ اِسْحَاقَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْقُلُ وَ يَقُوْلُ لَوْلَا اَنْتَ مَا اهْتَدَيْنَا.

۱۰۰: ابوالوليد. شعبه. ابو اسحاق. حضرت براء نه روايت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم به کانړي اوچتول او فرمائيل به ئې لولا انت ما اهتدينا (که تا هدايت نه وې کړې نو مونږ به حق لار نه وه موندلې).

۱۰۱: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ اِسْحَاقَ عَنِ الْبَرَاءِؓ قَالَ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْاَحْزَابِ يَنْقُلُ التُّرَابَ وَقَدْ وَارٰى التُّرَابُ بَيَاضَ بَطْنِهٖ وَهُوَ

۱۰۱: حفص بن عمر. شعبه. ابو اسحاق. حضرت براء نه روايت کوي، ما د جنگ احزاب په ورځ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خاوره اوچتونکې ليدلې دې، او خاورې دَ حضورؐ د خيټې مبارکې رنگ پټ کړې وو، او حضورؐ به فرمائيل اې اللّٰه که ستا هدايت نه وې نو مونږ به هدايت نه وو موندې اومونږ به

يَقُوْلُ لَوْلَا اَنْتَ مَا اهْتَدَيْنَا. وَلَا تَصَدَّقْنَا وَلَا صَلَّيْنَا. وَ اَنْزِلِ السَّكِيْنَةَ عَلَيْنَا وَ ثَبِّتِ الْاَقْدَامَ اِنْ لَاقَيْنَا اِنَّ الْاُلٰى ءِ قَدْ بَغَوْا عَلَيْنَا اِذَا اَرَادُوْا فِتْنَةً اَبَيْنَا.

نه صدقه ورکوله او نه به مو مونځ کولو، نو ته په مونږ اطمینان نازل کړې او کله چه مونږ دښمن سره مقابله کوو، نو مونږ ثابت قدم لرې. بیشکه هغې خلقو په مونږ ظلم کړیدې. کوم وخت چه هغوئ څه فساد کول غواړي، نو مونږ دَ هغوئ په خبرو کښې نه راځو.

باب ۸۰: مَنْ حَسَبَهُ الْعُذْرُ عَنِ الْغَزْوِ.

باب ۸۰: د هغه سړي بیان چه هغه څه عذر د جهاد نه منع کوي.

۱۰۲: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ اَنَّ اَنَسًا حَدَّثَهُمْ قَالَ رَجَعْنَا مِنْ غَزْوَةِ تَبُوْكَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ح حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ هُوَ ابْنُ زَيْدٍ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ اَنَسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ فِيْ غَزَاةٍ فَقَالَ اِنَّ اَقْوَامًا بِالْمَدِيْنَةِ خَلْفَنَا مَا سَلَكْنَا شِعْبًا وَلَا وَادِيًا اِلَّا وَهُمْ مَعَنَا فِيْهِ حَبَسَهُمُ الْعُذْرُ وَ قَالَ مُوْسٰى حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ مُوْسَى ابْنِ اَنَسٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ اَلْاَوَّلُ اَصَحُّ.

۱۰۲: احمد بن یونس. زهیر. حمید. حضرت انسؓ نه روایت کوي. مونږ چه غزوهٔ تبوک نه رسول الله صلي الله علیه وسلّم سره واپس راوګرځیدو، نوې فرمائیل، څهٔ خلق مدینه کښې څمونږ نه ورستو پاتې شویدي هغوئ داسې دي، چه کومې دَرې یا میدان ته مونږ لاړ شو، نو هغوئ ضرور هغې کښې مونږ سره وي، هغوئ څهٔ عذر منع کړې دي. او موسٰی دا روایت، حماد. حمید. موسٰی بن انس. حضرت انسؓ نه نقل کړیدې. لیکن امام بخاريؒ فرمائیلي دي. چه ورمبنې سند زیات صحیح دې.

باب ۸۱: فَضْلِ الصَّوْمِ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ.

باب ۸۱: دَ الله په لار کښې دَ روژې ساتلو دَ فضیلت بیان.

۱۰۳: حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ وَ

۱۰۳: اسحاق بن نصر. عبدالرزاق. ابن جریج. یحیي بن سعید. اسمعیل بن ابي صالح. نعمان بن ابي عیاش. ابو سعید

سُهَيْلُ بْنُ أَبِيْ صَالِحٍ أَنَّهُمَا سَمِعَا النُّعْمَانَ بْنَ أَبِيْ عَيَّاشٍ عَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍؓ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنْ صَامَ يَوْمًا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ بَعَّدَ اللّٰهُ وَجْهَهُ عَنِ النَّارِ سَبْعِيْنَ خَرِيْفًا.

خدري نه روايت كوي. ما د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل فرمائيل ئې. بيشكه كوم سړې چه د اللّٰه په لار كښې يوه ورځ هم روژه اونيسي[۱]، نو اللّٰه هغه د دوزخ نه د اويا كاله د مسافت برابر لرې ساتي.

۱. "في سبيل اللّٰه" چه مونږه ئې ترجمه د اللّٰه په لاره كښې كړې ده. ددې نه مراد دَ امام بخاري په نزد په قرآن او حديث كښې جهاد دې او په دې احاديثو كښې هم دغه مراد دې.

## بَابٌ ۸۲: فَضْلِ النَّفَقَةِ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ.

## باب ۸۲: د اللّٰه په لار كښې د خرڅ كولو دَ برترئ بيان.

۱۰۴: حَدَّثَنِيْ سَعْدُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ يَحْيٰى عَنْ أَبِيْ سَلَمَةَ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ أَنْفَقَ زَوْجَيْنِ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ دَعَاهُ خَزَنَةُ الْجَنَّةِ كُلُّ خَزَنَةِ بَابٍ أَيْ هَلُمَّ قَالَ أَبُوْ بَكْرٍ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ذَاكَ الَّذِيْ لَا تَوٰى عَلَيْهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنِّيْ لَأَرْجُوْ أَنْ تَكُوْنَ مِنْهُمْ.

۱۰۴: سعيد بن حفص. شيبان. يحيٰي. ابوسلمه. ابوهريره رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كوي حضورؐ اوفرمائيل كوم سړې چه د اللّٰه په لار كښې دوه څيزونه خرچ كړي، هغه به دجنت داروغه بلي. هر داروغه به د جدا جدا دروازې نه وائي. اې فلاني، فلانيه دلته راشه، حضرت ابوبكرؓ عرض اوكه، يا رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم هغې سړي ته خو بيا هيڅ خوف نشته. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، زۀ اميد لرم، چه ته به دَ هغوئ نه ئې.

۱۰۵: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ حَدَّثَنَا هِلَالٌ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ أَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ عَلَى الْمِنْبَرِ فَقَالَ إِنَّمَا

۱۰۵: محمّد بن سنان. فليح. هلال. عطاء بن يسار. ابوسعيد خدريؓ نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم په منبر ولاړ اوفرمائيل، زۀ په تاسو دَ خان نه پس دَ دې څيزونو خوف دركوم چه د دنيا دَ بركتونو نه به تاسو ته حاصل شي، دې نه پس حضورؐ دَ دنيا دَ نعمتونو ذكر شروع كه، او يو بل پسې ئې بيانول شروع كړل، بيا

اَخْشٰى عَلَيْكُمْ مِنْ بَعْدِيْ مَا يُفْتَحُ عَلَيْكُمْ مِنْ بَرَكَاتِ الْاَرْضِ ثُمَّ ذَكَرَ زَهْرَةَ الدُّنْيَا فَبَدَأَ بِاِحْدٰهُمَا وَ ثَنّٰى بِالْاُخْرٰى فَقَامَ رَجُلٌ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَوَ يَأْتِي الْخَيْرُ بِالشَّرِّ فَسَكَتَ عَنْهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْنَا يُوْحٰى اِلَيْهِ وَ سَكَتَ النَّاسُ كَاَنَّ عَلٰى رُؤُسِهِمُ الطَّيْرُ ثُمَّ اِنَّهُ مَسَحَ عَنْ وَّجْهِهِ الرُّحَضَاءَ فَقَالَ اَيْنَ السَّائِلُ اٰنِفًا اَوَ خَيْرٌ هُوَ ثَلٰثًا اِنَّ الْخَيْرَ لَا يَأْتِيْ اِلَّا بِالْخَيْرِ وَ اِنَّهُ كُلُّ مَا يُنْبِتُ الرَّبِيْعَ مَا يَقْتُلُ حَبَطًا اَوْ يَلِمُّ اِلَّا اٰكِلَةَ الْخَضِرِ اَكَلَتْ حَتّٰى اِذَا امْتَلَئَتْ خَاصِرَتَاهَا اسْتَقْبَلَتِ الشَّمْسَ فَثَلَطَتْ وَ بَالَتْ ثُمَّ رَتَعَتْ وَ اِنَّ هٰذَا الْمَالَ خَضِرَةٌ حُلْوَةٌ وَ نِعْمَ صَاحِبُ الْمُسْلِمِ لِمَنْ اَخَذَهُ بِحَقِّهٖ فَجَعَلَهُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسَاكِيْنِ وَمَنْ لَمْ يَأْخُذْهُ بِحَقِّهٖ فَهُوَ كَالْاٰكِلِ الَّذِيْ لَا يَشْبَعُ وَ يَكُوْنَ عَلَيْهِ شَهِيْدًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ.

يو سړي اودريد، هغه اووې، يا رسول اللّٰهؐ آيا د خير (مال) نه به شر او فساد پيدا شي رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم هغه له جواب ورنه كړو. مونږ خلقو خپل زړهٔ كښې اووې، چه شايد په حضورؐ وحي نازليږي ټول خلق خاموش وو، لكه چه د هغوئ په سرونو مارغه ناست وي چه حركت سره به والوځي څهٔ وقفې نه پس حضورؐ د خپل مخ مبارک نه خوله اوچه كړه، وې فرمائيل. هغه سائل چه اوس وو چرته دې، آيا هغه مال خير دې، دا ئې درې ځله اوفرمائيل، بيشكه خير بدي نه پيدا كوي. د موسم بهار سبزه اگر كه خوشگواره وي، ليكن كله كله ذَ فنا گودرته كوزول كوي، يا مرگ ته قريب كول كوي، كوم ځناور چه دا سبزه دومره اوخوري چه د هغه خيټه اوپړسيږي، نو نمر كښې كيني. او هلته په ناسته ناسته شخوندوهي، خاشنړه كوي. متيازې كوي، او بيا كه خريدل شروع كړي نو هغه داسې سبزه نه هلاكوي، د دنيا دا مال شين ضرور دې، ليكن حقيقت كښې د هغې مسلمان مال بنه دې چه حق سره ئې حاصل كړي او بيا مجاهدينو، يتيمانو، مسكينانو او مسافرولو ئې وركوي، او كوم سړې چه ناحق د چا مال والوځوي نو هغه د هغې بيمار په شان دې چه هر څومره اوخوري خو مړيږي نه. داسې دولت به ذ هغې صاحب مال خلاف شهادت د قيامت په ورځ وركړي.

بَابُ ۸۳: فَضْلُ مَنْ جَهَّزَ غَازِيًا اَوْ خَلَفَهُ بِخَيْرٍ.

باب ۸۳: غازي ته سامان مهيا كول، يا ذَ هغهٔ عدم موجودگئ كښې د هغه د كور په بنه شان سره د خبر گيرئ د فضيلت په بيان.

۱۰۲: حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا

۱۰۲: ابوعمر. عبدالوارث. حسين. يحيٰي.

عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا الْحُسَيْنُ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ بُسْرُ بْنُ سَعِيْدٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ زَيْدُ بْنُ خَالِدٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ جَهَّزَ غَازِيًا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَقَدْ غَزَا وَمَنْ خَلَفَ غَازِيًا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ بِخَيْرٍ فَقَدْ غَزَا.

ابو سلمه. بسر بن سعيد. حضرت زيد بن خالد نه روايت كوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم او فرمائيل كوم سړے چه د اللّٰه په لار كښې دَ جهاد كونكي سامان درست كړي، ګويا هغهٔ خپله جهاد اوكړلو او كوم سړے چه د اللّٰه تعالٰي په لار كښې د جهاد كونكي نه ورستو د هغه د كور د خلقو په ښه شان خبر ګيري كوي، ګويا هغه خپله جهاد اوكړلو.

۱۰۷ : حَدَّثَنَا مُوْسٰى حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ اِسْحٰقَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَنَسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَكُنْ يَدْخُلُ بَيْتًا فِي الْمَدِيْنَةِ غَيْرَ بَيْتِ اُمِّ سَلِيْمٍ اِلَّا عَلٰى اَزْوَاجِهٖ فَقِيْلَ لَهٗ فَقَالَ اِنِّيْ اَرْحَمُهَا قُتِلَ اَخُوْهَا مَعِيَ.

۱۰۷ : موسٰي. همام. اسحاق بن عبداللّٰه. حضرت انسؓ نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم مدينے كښې د اُم سليم او خپلو بيبيانو دَ كورونو نه علاوه دَ بل چا كورته تشريف نهٔ اوړلو. حضورؐ ته چا اووے، تاسوَ داسے ولے كوئ نو حضورؐ ورته اوفرمائيل، زهٔ په هغې ترس كوم، ځكه چه دَ هغې ورور ځما ملګرتيا كښې قتل شوے دے.

## بَابُ ۸۴ : التَّحَنُّطِ عِنْدَ الْقِتَالِ.

## باب ۸۴ : د جنګ په وخت دَ خوشبو لګولو بيان.

۱۰۸ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ الْحَارِثِ حَدَّثَنَا ابْنُ عَوْنٍ عَنْ مُوْسٰى بْنِ اَنَسٍ قَالَ وَ ذَكَرَ يَوْمَ الْيَمَامَةِ قَالَ اَتٰى اَنَسُ بْنُ ثَابِتِ بْنِ قَيْسٍ وَقَدْ حَسَرَ عَنْ فَخِذَيْهِ وَهُوَ يَتَحَنَّطُ فَقَالَ يَا عَمِّ مَا يَحْبِسُكَ اَنْ لَّا تَجِيْءَ قَالَ الْاٰنَ يَا ابْنَ اَخِيْ وَ جَعَلَ يَتَحَنَّطُ يَعْنِيْ مِنَ الْحَنُوْطِ ثُمَّ جَاءَ فَجَلَسَ فَذَكَرَ فِي الْحَدِيْثِ انْكِشَافًا مِنَ النَّاسِ فَقَالَ

۱۰۸ : عبداللّٰه بن عبدالوهاب. خالد بن حارث. ابن عون. موسٰي بن انس يوه ورځ د جنګ يمامه ذكر كولو، هغهٔ اووے حضرت انس، ثابت بن قيس له ورغے او هغه خپل دواړه پتونان څرګند كړي وو او په خپل بدن ئے حنوط (خوشبوي) لګوله. انس اوے، اے ترهٔ تا كوم څيز ميدانِ جنګ ته د تلو نه منع كوي هغهٔ ورته اووے اے وراره، دا دے اوس څم، او هغهٔ خوشبوي اولګوله هغے نه پس راغے او كيناست، بيا هغهٔ دَ خلقو دَ تيښتې ذكر اوكه،

هٰكَذَا عَنْ وُجُوهِنَا حَتّٰى نُضَارِبَ الْقَوْمَ مَا هٰكَذَا كُنَّا نَفْعَلُ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِئْسَ مَا عَوَّدْتُمْ اَقْرَانَكُمْ رَوَاهُ حَمَّادٌ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ اَنَسٍ.

او ونیلے کفار چه به کوم وخت مونږ ته مخامخ شو' نو مونږ به ورسره جنګیدلو. خو مونږ به داسے د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم په ملګرتیا کښے نه کول. تاسو خپل حریف (مقابل) کښے خراب عادت اچولے دے.

**بَابٌ ۸۵: فَضْلِ الطَّلِيْعَةِ.**

**باب ۸۵: د دشمن د حال خبر راوړونکو د فضیلت بیان.**

**۱۰۹ :** حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ عَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يَّأْتِيْنِيْ بِخَبَرِ الْقَوْمِ يَوْمَ الْاَحْزَابِ قَالَ الزُّبَيْرُ اَنَا ثُمَّ قَالَ مَنْ يَّأْتِيْنِيْ بِخَبَرِ الْقَوْمِ قَالَ الزُّبَيْرُ اَنَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِكُلِّ نَبِيٍّ حَوَارِيًّا وَ حَوَارِيَّ الزُّبَيْرُ.

**۱۰۹ :** ابونعیم. سفیان. محمد بن منکدر. حضرت جابر نه روایت کوي' رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم جنګ احزاب کښے اوفرمائیل' ماله به د دشمن خبر څوک راوړي' زبیرؓ اووے' زهٔ. حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل' ماله به دَ دشمن خبر څوک راوړي. زبیرؓ عرض اوکه زهٔ. حضورؓ اوفرمائیل د هر نبي حواري (یارِ غار) وي' او خما حواري زبیرؓ دے.

**بَاب ۸۶: هَلْ يُبْعَثُ الطَّلِيْعَةُ وَحْدَهُ.**

**باب ۸۶: څوک یو سړے جاسوسي دَ پاره دَ لیګلو بیان.**

**۱۱۰ :** حَدَّثَنَا صَدَقَةُ اَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُنْكَدِرِ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ نَدَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّاسَ قَالَ صَدَقَةُ اَظُنُّهُ يَوْمَ الْخَنْدَقِ فَانْتَدَبَ الزُّبَيْرُ ثُمَّ نَدَبَ فَانْتَدَبَ الزُّبَيْرُ ثُمَّ نَدَبَ النَّاسَ فَانْتَدَبَ الزُّبَيْرُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ

**۱۱۰ :** صدقه ابن عیینه. ابن منکدر. جابر بن عبداللّٰه نه روایت کوي' چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم خلقوله آواز ورکه. صدقه راوي وائي خما خیال دے د جنګ خندق ورځ وه' زبیرؓ جواب ورکه' بیا حضورؓ خلقوته آواز ورکه نو زبیرؓ بیا جواب ورکه. آخر کښے حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل' دَ هر نبي حواري

لِكُلِّ نَبِيٍّ حَوَارِيًّا وَ اِنَّ حَوَارِيَّ الزُّبَيْرُ بْنُ الْعَوَّامِ.

وي او خما حواري زبير بن عوام دے.

## باب۸۷: سَفَرِ الْاِثْنَيْنِ.

## باب۸۷: دَ دوو سړو يوځائے دَ سفر بيان.

۱۱۱: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا اَبُوْ شِهَابٍ عَنْ خَالِدِ الْحَذَّاءِ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ مَالِكِ ابْنِ الْحُوَيْرِثِ قَالَ انْصَرَفْتُ مِنْ عِنْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَنَا اَنَا وَ صَاحِبٌ لِّيْ اَذِّنَا وَ اَقِيْمَا وَلْيَؤُمَّكُمَا اَكْبَرُكُمَا.

۱۱۱: احمد بن يونس. ابن شهاب. خالد حذاء. مالک بن حويرث نه روايت کوي. مونږ د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه واپس راغلو، يو زۀ ووم، او بل خما ملګرے. دواړو ته حضورؐ فرمائيلي وو چه تاسو آذان او کړئ او اقامت او کړئ او تاسو کښې چه کوم مشر وي، امام دِ شي.

## باب۸۸: اَلْخَيْلُ مَعْقُوْدٌ فِيْ نَوَاصِيْهَا الْخَيْرُ اِلٰى يَوْمِ الْقِيَامَةِ.

## باب۸۸: د اس په تندي کښې د قيامته پورے د بر کت قائم پاتے کيدو بيان.

۱۱۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْخَيْلُ فِيْ نَوَاصِيْهَا الْخَيْرُ اِلٰى يَوْمِ الْقِيَامَةِ.

۱۱۲: عبداللّٰه بن مسلمه. مالک. نافع. عبداللّٰه بن عمرؓ نه روايت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل دَ اسونو تندي سره دَ قيامته پورے بر کت تړلے دے.

۱۱۳: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ حُصَيْنٍ وَابْنِ اَبِي السَّفَرِ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الْجَعْدِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْخَيْلُ مَعْقُوْدٌ فِيْ نَوَاصِيْهَا الْخَيْرُ اِلٰى يَوْمِ الْقِيَامَةِ قَالَ سُلَيْمَانُ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ اَبِي الْجَعْدِ تَابَعَهُ مُسَدَّدٌ عَنْ هُشَيْمٍ عَنْ حُصَيْنٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ

۱۱۳: حفص بن عمر. شعبه. حصين. ابن ابي السفر. شعبي. عروه بن جعد، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي، حضورؐ اوفرمائيل دَ اسونو تندي سره دَ قيامته پورے بر کت تړلے دے. سليمان په روايت د شعبه عروه بن ابي جعد روايت کړے دے او مسدد په روايت دَ هشيم، حصين، شعبي، عروه بن ابي جعد ددے متابعت

أَبِي الْجَعْدِ.

کړے دے.

۱۱۴: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ شُعْبَةَ عَنْ أَبِي التَّيَّاحِ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْبَرَكَةُ فِيْ نَوَاصِي الْخَيْلِ.

۱۱۴: مسدد. یحیٰي. شعبه. ابوالتیاح. انس بن مالک نه روایت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل د اسونو په تندي کښې برکت ایښے شوے دے.

باب ۸۹: اَلْجِهَادُ مَاضٍ مَعَ الْبِرِّ وَالْفَاجِرِ لِقَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْخَيْلُ مَعْقُوْدٌ فِيْ نَوَاصِيْهَا الْخَيْرُ إِلٰى يَوْمِ الْقِيَامَةِ.

باب ۸۹: هر امام سره خواه هغه نیک وي یا بدکار د جهاد سلسله د قیامته پورے لازماً د جاري کیدو بیان، ځکه چه د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم ارشاد دے چه دَ اسونو تندي سره د قیامته پورے برکت تړلے دے[۱].

۱. مصنف رحمة اللّٰه علیه دا ښودل غواړي چه په اَس کښې د خیر او برکت متعلق چه کوم حدیثونه راغلے دي هغه د دوئ د آلۀ جهاد کیدلو په وجے سره دي او هر کله چه تر قیامته پورے به په دوئ کښې خیر او برکت قائم اوسي نو ددے نه دا نتیجه راؤځي چه د جهاد حکم به هم تر قیامته پورے باقي اوسي، او چونکه تر قیامته پورے راتلونکے هر دَور خیر نشي کیدے بلکه ښه او بَد دواړه قسمه به وي، دے د پاره د مسلمانانو حاکمان به هم کله نیکان او د اسلامي شریعت په پوره توګه پابند وي او کله به داسے نه وي، لیکن د جهاد سلسله چرے هم بندیدل نه دي پکار، ولے چه دا دَ إعلاء کلمة اللّٰه او په دنیا او آخرت کښې د سرمائے ذریعه ده دے د پاره د حق د مفادو تر مخه د ظالمانو حکمرانانو په مشرئي کښې به هم جهاد کولے شي او د یو سړي ذاتي نقصان به د جماعت د پاره نظر انداز کولے شي.

۱۱۵: حَدَّثَنَا أَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا زَكَرِيَّاءُ عَنْ عَامِرٍ حَدَّثَنَا الْعُرْوَةُ الْبَارِقِيُّ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْخَيْلُ مَعْقُوْدٌ فِيْ نَوَاصِيْهَا الْخَيْرُ إِلٰى يَوْمِ الْقِيَامَةِ الْأَجْرُ وَالْمَغْنَمُ.

۱۱۵: ابونعیم. زکریا. عامر. عروه بارقي نه روایت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل د اسونو تندي کښې دَ قیامته پورے برکت او صلاحیت ایښے شویدے یعنې ثواب او غنیمت.

باب ۹۰: مَنِ احْتَبَسَ فَرَسًا لِقَوْلِهٖ تَعَالٰى وَمِنْ رِّبَاطِ

باب ۹۰: د اللّٰه په لار کښې د مجاهد دَ اَس ساتونکي دَ فضیلت او دَ بزرګي بیان. او دَ مِنْ رِّبَاطِ

الْخَيْلِ.

١١٦: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ أَخْبَرَنَا طَلْحَةُ بْنُ أَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ سَعِيْدَ الْمَقْبُرِيَّ يُحَدِّثُ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ يَقُوْلُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنِ احْتَبَسَ فَرَسًا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ إِيْمَانًا بِاللّٰهِ وَتَصْدِيْقًا بِوَعْدِهِ فَإِنَّ شِبْعَهُ وَرِيَّهُ وَرَوْثَهُ وَبَوْلَهُ فِيْ مِيْزَانِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ.

الْخَيْلِ: اعلان

١١٦: علي بن حفص. ابن مبارک. طلحه بن ابي سعيد. سعيد مقبري. ابوهريرةؓ نه روايت کوي رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل کوم سړے چه دَ الله په لار کښې دَ جهاد دَ پاره اس اوساتي. او محض الله باندِ د ايمان راوړلو په وجه دَ هغې وعدې رېښتنې او ګڼړي نو بيشکه د هغه خوراک څکاک دَ هغه خاشنړه او د هغه متيازې (غرض دا چه د هغه هر څيز ثواب جوړيږي او دَ قيامت په ورځ به د هغې جهاد کونکي په اعمال کښې وزن کيږي' (او دا وزن ډير درونډ وي).

## باب ٩١: اِسْمُ الْفَرَسِ وَالْحِمَارِ.

## باب ٩١: دَ آس او خر د نوم ايښودو بيان.

١١٧: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبِيْ بَكْرٍ حَدَّثَنَا فُضَيْلُ بْنُ سُلَيْمَانَ عَنْ أَبِيْ حَازِمٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِيْ قَتَادَةَ عَنْ أَبِيْهِ أَنَّهُ خَرَجَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَخَلَّفَ أَبُوْ قَتَادَةَ مَعَ بَعْضِ أَصْحَابِهِ وَهُمْ مُحْرِمُوْنَ وَهُوَ غَيْرُ مُحْرِمٍ فَرَأَوْا حِمَارًا وَحْشِيًّا قَبْلَ أَنْ يَرَاهُ فَلَمَّا رَأَوْهُ تَرَكُوْهُ حَتّٰى رَآهُ أَبُوْ قَتَادَةَ فَرَكِبَ فَرَسًا لَهُ يُقَالُ لَهُ الْجَرَادَةُ فَسَأَلَهُمْ أَنْ يُنَاوِلُوْهُ سَوْطَهُ فَأَبَوْا

١١٧: محمّد بن ابي بکر. فضيل بن سليمان. ابو حازم. عبدالله بن ابي قتاده دَ خپل پلار نه روايت کوي چه هغه رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره ملګرتيا کښې لاړ. او هغه خپلو څو ملګرو سره ورستو پاتے شو. او دے ټولو احرام تړلے وو. البته ابو قتاده غير محرم وو. بيا هغوئ ټولو يو ځنګلي خر (ګورخر) اوليدلو. خو هيڅ ئے اونه وے. ليکن ابو قتاده چه هغه اوليد نو هغه په خپل آس چه د هغه نوم جراده وو' سور شولو او هغے خلقو ئے اووے چه هغوئ هغه له د هغه کوړه ورکړئ. خو هغے خلقو ورنکړه آخر هغه پخپله راکوز شو' کوړه ئے واخسته او په ځنګلي خر ئے حمله اوکړه' هغه ئے زخمي که' بيا دَ هغې غوښه ابو قتاده هم اوخوړله' او هغے خلقو هم اوخوړله. بيا هغه خلق نادم

فَتَنَاوَلَهُ فَحَمَلَ فَعَقَرَهُ ثُمَّ أَكَلَ فَأَكَلُوا فَنَدِمُوا فَلَمَّا أَدْرَكُوهُ قَالَ مَعَكُمْ شَيْءٌ مِنْهُ قَالَ مَعَنَا رِجْلُهُ فَأَخَذَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَكَلَهَا.

(ستومانه) شو چه مونږ خو محرم وو. مونږ غوښه ولې اوخوړله. او رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره ابو قتاده يوخائې شو نو ددې بابت کښې ئې ترې تپوس اوکه. حضورؐ ورته اوفرمائيل آيا تاسو سره دهغې څه غوښه بچ شوې ده، خلقو اووې او د هغې پښه بچ شويده. حضورؐ هغه واخسته، اووې خوړله.

۱۱۸ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا مَعْنُ بْنُ عِيسَى حَدَّثَنَا أُبَيُّ بْنُ عَبَّاسِ بْنِ سَهْلٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ كَانَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَائِطِنَا فَرَسٌ يُقَالُ لَهُ اللَّحِيفُ.

۱۱۸ : علي بن عبدالله بن جعفر. معن بن عيسٰي. ابي بن عباس بن سهيل دَ خپل پلار نه هغه د هغه د نيکه (دادا) نه روايت کوي. چه هغه اووې خمونږ باغ کښې د رسول الله صلي الله عليه وسلّم يو اس وو، او دَ بعضې خلقو خيال دې، چه د هغه نوم لحيف وو.

۱۱۹ : حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ سَمِعَ يَحْيَى بْنَ آدَمَ حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُونٍ عَنْ مُعَاذٍ قَالَ كُنْتُ رِدْفَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى حِمَارٍ يُقَالُ لَهُ عُفَيْرٌ فَقَالَ يَا مُعَاذُ هَلْ تَدْرِي مَا حَقُّ اللَّهِ عَلَى عِبَادِهِ وَمَا حَقُّ الْعِبَادِ عَلَى اللَّهِ قُلْتُ اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ قَالَ فَإِنَّ حَقَّ اللَّهِ عَلَى الْعِبَادِ أَنْ يَعْبُدُوهُ وَلَا يُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا وَحَقَّ الْعِبَادِ عَلَى اللَّهِ أَنْ لَا يُعَذِّبَ مَنْ لَا يُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَفَلَا أُبَشِّرُ بِهِ النَّاسَ قَالَ لَا تُبَشِّرْهُمْ فَيَتَّكِلُوا.

۱۱۹ : اسحاق بن ابراهيم. يحيٰي بن آدم. ابوالاحوص. ابو اسحاق. عمرو بن ميمون. حضرت معاذؓ نه روايت کوي. چه زۀ يو خر باندې رسول الله صلي الله عليه وسلّم پسې ورستو سور ووم. دَ حضورؐ د هغې خر نوم عفير وو. حضورؐ او فرمائيل، اې معاذؓ آيا تاته معلومه ده چه دَ اللّٰه تعالٰي حق دَ هغه په بنديانو څه دې، ما عرض اوکه، اللّٰه او دَ هغه رسولؐ ښۀ پوهيږي. وې فرمائيل دَ اللّٰه حق په بنديانو دادې. چه دَ هغۀ عبادت اوکړي او هغه سره څوک شريک جوړ نکړي. او دَ بنديانو حق په اللّٰه دا دې، چه کوم سړې هغه سره شريک جوړ نه کړي هغه له عذاب ورنکړي. ما عرض اوکه زه ددې خبرې خلقوله خوشخبري ورکړم، وې فرمائيل، خوشخبري مه ورکوه، کني هغوئ به په دې تکيه اوکړي او اعمال صالحه به پريږدي.

۱۲۰ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ سَمِعْتُ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَانَ فَزَعٌ بِالْمَدِيْنَةِ فَاسْتَعَارَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَسًا لَنَا يُقَالُ لَهُ مَنْدُوْبٌ فَقَالَ مَا رَاَيْنَا مِنْ فَزَعٍ وَ اِنْ وَجَدْنَاهُ لَبَحْرًا.

۱۲۰ : محمد بن بشار. غندر. شعبه. انس بن مالک نه روایت کوي. یو خل مدینه کښې څۀ خوف پیدا شو. نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم عاریةً خمونږ مندوب نومې اس واخستلو' او په هغه ئې سورلي اوکړه او چه واپس شولو نو وې فرمائیل چه مونږ هیڅ د خوف خبره اونه لیده او بیشکه مونږ دا اس د دریاب په شان تیز رفتاره بیاموند.

## باب ۹۲ : مَا يُذْكَرُ مِنْ شُؤْمِ الْفَرَسِ.

## باب ۹۲ : دَ اس دَ نحوست (سپیره والي) بیان.

۱۲۱ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ ابْنَ عُمَرَ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنَّمَا الشُّؤْمُ فِيْ ثَلٰثَةٍ فِي الْفَرَسِ وَالْمَرْاَةِ وَالدَّارِ.

۱۲۱ : ابوالیمان. شعیب. زهري. سالم بن عبداللّٰه. عبداللّٰه ابن عمرؓ نه روایت کوي. ما د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم نه اوریدلي دي چه نحوست صرف درې څیزونو کښې وي (۱) اس کښې (۲) ښځه کښې (۳) او کور کښې ۱.

۱. عام طور سره په احادیثو کښې همدې درې څیزونو ته سپیره وئیلي شوي دي. البته د اُم سلمهؓ په یو روایت کښې په تُوره کښې هم د سپیره والي ذکر دې. ددې حدیثونو د بعضو طُرقونه معلومیږي چه حضور اکرم صلي اللّٰه علیه وسلّم صرف د خبر په طور باندې دا فرمائیلي وو' اِنشاء یا څه حکم نه دې. څنګه چه په یو روایت کښې دي چه د عائشېؓ په مخکښې چه کله دَ ذکر شوي حدیث ذکر اوشو نو هغې په دې باندې د ناګوارۍ اظهار اوفرمائیلو چه پاک حضرتؐ خو صرف دومره فرمائیلي وو چه دَ جاهلیت په زمانه کښې به په دې دریو څیزونو کښې سپیره والے ګنړلے کیدو. حضورؐ دا هر ګز نه وو فرمائیلي چه په دې کښې څۀ واقعیت هم شته. واقعه داده چه اسلام اصلاً د هر قسم بد فالۍ او سپیره والي نفي کړې ده. حضور اکرمؐ فرمائیلي دي چه سپیره والے او بدفالي قطعًا لایعني څیزونه دي. د نحوست وغیره تصور خالص د جاهلیت پیداوار وو. او کله چه حضورؐ پخپله نفي کړې وه نو بیا د هغې د همت افزايۍ خو هیڅ سوال نه پیدا کیږي. بعضو محدثینو لیکلي دي چه که چرې د خبر په څائې یو حکم اومنلے شي نو بیا هم ددې نه مقصود دَ جاهلیت نحوست نه دې بلکه په دې درې واړو څیزونو کښې د نحوست تخصیص نه مقصود دا دې چه دا درې واړه څیزونه یا په روایت دَ اُم سلمهؓ څلورم څیز تُوره د هر سړي د ژوند اهم

عناصر دي او په پوره ژوند کښې د انسان دے سره مخ کيد نه راځي، اَس او توره خاص طور سره د عربو د ژوند اهم عناصر وُو، دے د پاره بعضے اوقات يو خاص سړي ته څه خاص څيز ناموافق هم راشي. او کله چه يو څيز موافق رانشي نو د هغې پريښودل بهتر وي. پس په حديث کښې د نحوست (شؤم) نه مراد صرف عدم موافقت او مطابقت دے، ددے نه زيات نه دے. او ددے درے څيزونو ذکر د دوئ د اهميت او د ژوند په ضرورياتو کښې د کيدلو په وجے سره کړے شوے دے. مطلب دا هم کيدلے شي چه په دے کښې کله کله بنيادم مبتلا کيږي.

۱۲۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ اَبِيْ حَازِمِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدِ السَّاعِدِيِّ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنْ كَانَ الشُّؤْمُ فِيْ شَيْءٍ فَفِي الْمَرْاَةِ وَالْفَرَسِ وَالْمَسَاكِنِ.

۱۲۲: عبداللّٰه بن مسلمه. مالک. ابو حازم بن دينار. سهل بن سعد ساعدي نه روايت کوي رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل که نحوست څۀ څيز کښې وے، نو ښځه کښې به وو، مکان کښې به وو، او اس کښې به وو.

بَابُ ۹۳: اَلْخَيْلُ لِثَلٰثَةٍ وَقَوْلُهٗ تَعَالٰى وَالْخَيْلَ وَالْبِغَالَ وَالْحَمِيْرَ لِتَرْكَبُوْهَا وَزِيْنَةً.

باب ۹۳: اس درے قسمه خلقو سره وي لکه چه دَ اللّٰه تعالي فرمان دے والخيل والبغال والحمير لتركبوها و زينة (آسونه، قچر او خرونه، مونږ ددے د پاره پيدا کريدي چه تاسو پرے سورلي کوئ، او زينت هم وي).

۱۲۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ عَنْ اَبِيْ صَالِحِ السَّمَّانِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْخَيْلُ لِثَلٰثَةٍ لِّرَجُلٍ اَجْرٌ وَلِرَجُلٍ سِتْرٌ وَعَلٰى رَجُلٍ وِزْرٌ فَاَمَّا الَّذِيْ لَهٗ اَجْرٌ فَرَجُلٌ رَبَطَهَا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَاَطَالَ فِيْ مَرْجٍ اَوْ رَوْضَةٍ فَمَا اَصَابَتْ فِيْ طِيَلِهَا ذٰلِكَ مِنَ

۱۲۳: عبداللّٰه بن مسلمه. مالک. زيد بن اسلم. ابو صالح سمان. ابوهريرهؓ نه روايت کوي. حضورؐ اوفرمائيل. اس درے قسمه خلقو سره کيدے شي، يو سړي د پاره دَ اجر باعث دے، يو سړي دَ پاره دَ ستر باعث دے او يو سړي د پاره دَ جرم باعث دے نو هغه سړے چه هغه د پاره د ثواب باعث دے هغه دے چه هغه ئے د خدائے په لار کښې جهاد د پاره ساتي او که يو ورشو (چراگاه) يا باغ کښې هغه اوږدے رسئ سره اوتړي نو د هغې ورشو يا باغ کومه حصه چه هغې رسئ کښې دننه راځي. دَ هغو هومره ډکو (نیکوں) برابر نيکئ

الْمَرْجِ اَوِ الرَّوْضَةِ كَانَتْ لَهُ حَسَنَاتٍ وَلَوْ اَنَّهَا قَطَعَتْ طِيَلَهَا فَاسْتَنَّتْ شَرَفًا اَوْ شَرَفَيْنِ كَانَتْ اَرْوَاثُهَا وَ اٰثَارُهَا حَسَنَاتٍ لَهُ وَلَوْ اَنَّهَا مَرَّتْ بِنَهَرٍ فَشَرِبَتْ مِنْهُ وَلَمْ يُرِدْ يَسْقِيَهَا كَانَ ذٰلِكَ حَسَنَاتٍ لَهُ وَ رَجُلٌ رَبَطَهَا فَخْرًا وَ رِيَاءً وَلِوَاءً لِاَهْلِ الْاِسْلَامِ فَهِيَ وِزْرٌ عَلٰى ذٰلِكَ وَ سُئِلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْحُمُرِ فَقَالَ مَا اُنْزِلَ عَلَيَّ فِيْهَا اِلَّا هٰذِهِ الْاٰيَةُ الْجَامِعَةُ الْفَاذَّةُ فَمَنْ يَّعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَّرَهُ وَمَنْ يَّعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَّرَهُ.

**باب ۹۴: مَنْ ضَرَبَ دَابَّةَ غَيْرِهِ فِي الْغَزْوِ.**

۱۲۴: حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا اَبُوْ عُقَيْلٍ حَدَّثَنَا اَبُو الْمُتَوَكِّلِ النَّاجِيُّ قَالَ اَتَيْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ الْاَنْصَارِيَّ فَقُلْتُ لَهُ حَدِّثْنِيْ بِمَا سَمِعْتَ مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ سَافَرْتُ مَعَهُ فِيْ بَعْضِ اَسْفَارِهِ قَالَ اَبُوْ عُقَيْلٍ لَا اَدْرِيْ غَزْوَةً اَوْ عُمْرَةً فَلَمَّا اَنْ اَقْبَلْنَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ اَحَبَّ اَنْ

به هغه ته حاصلیږي. او اتفاق سره که هغه خپله رسۍ اوشلوي او یا ډبه (یا کمر) دوه ټوپ اووهي نو د هغه د خاشنرو د وزن او قدم د نښو برابر به هغه ته نیکئ رسي. او که هغه په یو نهر تیر شي چه د هغې نه اوبه اوڅکي اګر که مالک ئې دا اراده نه وي کړې چه اوبه پرې اوڅکوي نو بیا به هم هغه ته نیکي رسي. او کوم سړے چه اس د ښودنې او فخر د پاره ساتي او د اهل اسلام د دشمنئ د پاره ئې ساتي، نو هغه اس د هغه د پاره د جرم سبب دے کوم وخت چه د رسول الله صلعم نه د خرو په باره کښې تپوس اوشو نو حضورؐ اوفرمائیل دے باره کښې ماته څه حکم نه دے شوے خو دا آیت فَمَنْ يَّعْمَلْ الخ یعني څوک چه ذره قدرے نیکي او کړي هغه به اووینی او څوک چه ذره قدرے بدي او کړي هغه به اووینی دا آیت جامع دے.

**باب ۹۴: د بل خناور جهاد کښې د وهلو بیان.**

۱۲۴: مسلم. ابوعقیل. ابوالمتوکل ناجي بیان دے، زۀ حضرت جابر بن عبدالله انصاري له ورغلم ورته م اووے. دے مسئله کښې چه څه تا د رسول الله صلي الله علیه وسلّم نه اوریدلے دي. ماته بیان که هغه اووے زۀ یو سفر کښې حضورؐ سره ملګرے ووم. ابوعقیل وائي، ماته یاد نه دي، چه هغه د جهاد سفر وو یا د عمرے لیکن کوم وخت چه مونږ واپس شو نو رسول الله صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل. کوم سړے چه خپل کوروالوته زر واپس کیدل غواړي هغه د تادي کوي جابر وائي، بیا مونږه روان شو او زۀ خپل جدا رنګې

يَتَعَجَّلَ اِلٰى اَهْلِهٖ فَلْيُعَجِّلْ قَالَ جَابِرٌ فَاَقْبَلْنَا وَ اَنَا عَلٰى جَمَلٍ لِيْ اَرْمَكَ لَيْسَ فِيْهِ شِيَةٌ وَالنَّاسُ خَلْفِيْ فَبَيْنَا اَنَا كَذٰلِكَ اِذْ قَامَ عَلَيَّ فَقَالَ لِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا جَابِرُ اسْتَمْسِكْ فَضَرَبَهٗ بِسَوْطِهٖ ضَرْبَةً فَوَثَبَ الْبَعِيْرُ مَكَانَهٗ فَقَالَ اَتَبِيْعُ الْجَمَلَ قُلْتُ نَعَمْ فَلَمَّا قَدِمْنَا الْمَدِيْنَةَ وَ دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَسْجِدَ فِيْ طَوَائِفِ اَصْحَابِهٖ فَدَخَلْتُ اِلَيْهِ وَ عَقَلْتُ الْجَمَلَ فِيْ نَاحِيَةِ الْبَلَاطِ فَقُلْتُ لَهٗ هٰذَا جَمَلُكَ فَخَرَجَ فَجَعَلَ يُطِيْفُ بِالْجَمَلِ وَ يَقُوْلُ الْجَمَلُ جَمَلُنَا فَبَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوَاقٍ مِنْ ذَهَبٍ فَقَالَ اَعْطُوْهَا جَابِرًا ثُمَّ قَالَ اسْتَوْفَيْتَ الثَّمَنَ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ الثَّمَنُ وَالْجَمَلُ لَكَ.

اوښ بانديے سور ووم او نور خلق خما ورستو وو. زۀ دغه شان روان ووم چه ناساپه هغه اوښ ستړے شو، او اودريدلو رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، جابره اودريږه او حضورؐ خپلے كوړے سره يو خل اووهلو، نو هغه اوښ تيز روان شو، حضورؐ اوفرمائيل. آيا ته دا اوښ خرخوے، ما عرض اوكه، جي، او كوم وخت چه مونږ مدينے ته اورسيدو. او رسول الله صلي الله عليه وسلّم د خپلو صحابه ؓ جماعت سره جمات ته تشريف يوړلو، نو زۀ هم حضورؐ له ورغلم. اوښ ما د بلاط په يو گټ كښے تړلے وو، بيا د نشست دوران كښے م حضورؐ ته عرض اوكه، چه دا ستاسوؐ اوښ دے. حضورؐ بهر ته تشريف راوړلو. او اوښ له چكر وركول ئے شروع كړل، او ماته ئے اوفرمائيل، دا اوښ خو زمونږه دے. بيا رسول الله صلي الله عليه وسلّم څو اوقيه سرۀ زر راوليږل. او وے فرمائيل دا جابر له وركړئ، دے نه پس ئے اوفرمائيل چه تا پوره قيمت واخست، ما عرض اوكه جي اووے فرمائيل اوس دا اوښ او قيمت دواړه ستا دي.

**ف**: بلاط: د فرش په شان آواره زمكه، ذ كاڼري يا ښختو فرش. اوقيه: د څلويښت درم د وزن نوم، يو درهم درے نيمے ماشے وي.

## باب ۹۵ : الرُّكُوْبُ عَلَى الدَّابَّةِ الصَّعْبَةِ وَالْفُحُوْلَةِ مِنَ الْخَيْلِ. وَ قَالَ رَاشِدُ بْنُ سَعْدٍ كَانَ السَّلَفُ يَسْتَحِبُّوْنَ الْفُحُوْلَةَ لِاَنَّهَا اَجْرٰى وَ اَجْسَرُ.

**باب ۹۵** : شرير ځناور او آس بانديے ذ سورلئ كولو بيان. او راشد بن سعد وائي، د زمانه سلف خلقو په نر ځناورو سورلي خوښوله ځكه چه هغه زيات بهادر او زړور وي.

**۱۲۵** : حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ

**۱۲۵** : احمد بن محمد. عبدالله. شعبه. قتاده نه

اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ قَالَ كَانَ بِالْمَدِيْنَةِ فَزَعٌ فَاسْتَعَارَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَسًا لِاَبِيْ طَلْحَةَ يُقَالُ لَهُ مَنْدُوْبٌ فَرَكِبَهُ وَ قَالَ مَا رَأَيْنَا مِنْ فَزَعٍ وَ اِنْ وَجَدْنَاهُ لَبَحْرًا.

روایت کوي. ما دَ انسؓ بن مالک نه واوریدل، چه مدینه کښې څهٔ خوف پیدا شو، نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم دَ ابو طلحهٔؓ نه یو اس اوغوښتلو چه دَ هغهٔ نوم مندوب وو، او حضورؐ په هغې سور شولو، بهرته ئې تشریف یوړلو چه واپس راغې نو وې فرمائیل مونږ هیڅ خوف اونه لیدلو. البته مونږ دا اس د دریاب په شان تیز رفتاره بیاموند.

بَاب ۹۶ : سِهَامِ الْفَرَسِ وَ قَالَ مَالِكٌ يُسْهَمُ لِلْخَيْلِ وَالْبَرَاذِيْنِ مِنْهَا لِقَوْلِهٖ وَالْخَيْلَ وَالْبِغَالَ وَالْحَمِيْرَ لِتَرْكَبُوْهَا وَلَا يُسْهَمُ لِاَكْثَرَ مِنْ فَرَسٍ.

باب ۹۶ : غنیمت نه د حصې بیامندو بیان.

☆☆☆☆☆

۱۲۶ : حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ اِسْمَاعِيْلَ عَنْ اَبِيْ اُسَامَةَ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَعَلَ لِلْفَرَسِ سَهْمَيْنِ وَ لِصَاحِبِهٖ سَهْمًا وَ قَالَ مَالِكٌ يُسْهَمُ لِلْخَيْلِ وَالْبَرَاذِيْنِ مِنْهَا لِقَوْلِهٖ وَالْخَيْلَ وَالْبِغَالَ وَالْحَمِيْرَ لِتَرْكَبُوْهَا وَلَا يُسْهَمُ لِاَكْثَرَ مِنْ فَرَسٍ.

۱۲۶ : عبید بن اسماعیل. ابو اسامه. عبیداللّٰه. نافع. ابن عمرؓ نه روایت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم دَ اَس دوه حصې او دَ سور یو حصه[۱] مال غنیمت مقرر کړې وو؛ او امام مالک او فرمائیل چه دَ عامو اسونو او خصوصاً د ترکي اسونو مال غنیمت کښې حصه لګول پکار دي، ځکه چه اللّٰه تعالیٰ فرمائیلي دي مونږ آسونه قچرې او خرونه ستاسو سورلۍ د پاره جوړ کړيدي، او د یو آس نه د زیات حصه نه دي لګول پکار.

۱. امام ابو حنیفه رحمة اللّٰه علیه فرمائیلي دي چه چرې امام مصلحت اوګنړي نو داسې کولې شي، هسې دا څه قاعده نه ده، ولې چه بهرحال اس له په انسان باندې د فضیلت ورکولو هیڅ وجه نشته. د بعضو روایتونو نه معلومیږي چه دَ مال غنیمت تقسیمولو وخت کښې حضور اکرم صلي اللّٰه علیه وسلّم غازیان په دوؤ طبقو کښې تقسیم کړي وو، یو هغه خوک چه ورسره اس وو، هغوئ له خو حضورؐ دوه حصې ورکړې او خوک چه پیاده وو هغوئ ته ئې صرف یوه حصه ورکړه.

بَاب ۹۷ : مَنْ قَادَ دَابَّةَ غَيْرِهٖ فِي الْحَرْبِ.

باب ۹۷ : میدانِ جنګ نه دَ نورو دَ ځناورو دَ شړلو (بوتلو) بیان.

۱۲۷ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا سَهْلُ بْنُ يُوسُفَ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ قَالَ رَجُلٌ لِلْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ أَفَرَرْتُمْ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ حُنَيْنٍ قَالَ لٰكِنْ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَفِرَّ إِنَّ هَوَازِنَ كَانُوا قَوْمًا رُمَاةً وَ إِنَّا لَمَّا لَقِيْنَاهُمْ حَمَلْنَا عَلَيْهِمْ فَانْهَزَمُوا فَأَقْبَلَ الْمُسْلِمُونَ عَلَى الْغَنَائِمِ وَاسْتَقْبَلُونَا بِالسِّهَامِ فَأَمَّا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يَفِرَّ فَلَقَدْ رَأَيْتُهُ وَ إِنَّهُ لَعَلٰى بَغْلَتِهِ الْبَيْضَاءِ وَ إِنَّ أَبَا سُفْيَانَ اٰخِذٌ بِلِجَامِهَا وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ أَنَا النَّبِيُّ لَا كَذِبْ أَنَا ابْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبْ.

۱۲۷ : قتيبه. سهل بن يوسف. شعبه. ابو اسحاق نه روايت كوي يو سړي د براء بن عازب نه تپوس اوكه. آيا تاسو خلقو د حنين جنګ كښې رسول الله صلي الله عليه وسلّم پرېښې وو او تښتيدلي وئ؛ ونيلې داسې شوې خو وو؛ ليكن رسول الله صلي الله عليه وسلّم په خپل ځائې ثابت قدم ولاړ وو؛ ذَ هغې وجه دا وه چه ذَ قبيلهٔ هوازن خلق ډير تير انداز وو. مونږ چه هغوئ سره مقابله اوكړه اوپه هغوئ مو حمله اوكړه نو هغوئ اوتښتيدل بيا مسلمانان په غنيمت وړپريوتل او ذَ كافرو غشو زمونږ سينې خيرل شروع كړل او مونږ خلق ئې په وروستو كړو خو رسول الله صلي الله عليه وسلّم په خپل ځائې ولاړ وو ما اوليدل چه هغه په خپل سپين قچر سور وو او ابوسفيانؓ (بن حارث) ذَ هغې واګې نيولې وې. او حضور صلي الله عليه وسلّم به فرمائيل. "زهٔ نبي يم دې كښې څه دروغ نشته زهٔ د عبدالمطلب (په شان د سردار) خوئې يم".

باب ۹۸ : الرِّكَابِ وَالْغَرْزِ لِلدَّابَّةِ.

باب ۹۸ : د څناور ذَ ركاب او تسمې بيان۱.

۱. غرز هم ركاب ته وائي؛ فرق ئې صرف دومره دې چه ركاب كه چړې د اوسپنې يا لرګي وي نو هغې ته ركاب وائي؛ ليكن كه چړې د څمړې وي نو هغې ته غرز وائي.

۱۲۸ : حَدَّثَنِي عُبَيْدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ عَنْ أَبِي أُسَامَةَ عَنْ عُبَيْدِ اللهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ إِذَا أَدْخَلَ رِجْلَهُ فِي الْغَرْزِ وَاسْتَوَتْ بِهِ نَاقَتُهُ قَائِمَةً أَهَلَّ مِنْ عِنْدِ مَسْجِدِ ذِي

۱۲۸ : عبيد بن اسماعيل. ابو اسامه. نافع ابن عمرؓ نه روايت كوي. رسول الله صلي الله عليه وسلّم به چه خپله پښه په ركاب كښې اينبودله او ذَ حضور صلي الله عليه وسلّم اوښې به حضورؐ واخست اوبه دريدله نو كوم خلق چه به مسجد ذوالحليفه سره وو؛ هغوئ به احرام

الْحُلَيْفَةِ.

اوترلو.

بَـابٌ ۹۹ : رُكُـوْبِ الْفَـرَسِ الْعُرْيِ.

باب ۹۹ : پـه شـاتـوره پـه اَس دَ سورلئ كولو بيان.

۱۲۹ : حَـدَّثَـنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ حَـدَّثَـنَا حَـمَّـادٌ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ اَنَـسٍ اِسْتَـقْبَـلَهُـمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَـلٰى فَـرَسٍ عُرْيٍ مَا عَلَيْهِ سَرْجٌ فِيْ عُنُقِهٖ سَيْفٌ.

۱۲۹ : عـمـرو بـن عون. حـمـاد. ثابت. انسؓ نـه روايت كوي رسـول الـلّٰـه صـلـے الـلّٰه عليه وسلَم دَ خـلـقـو مـخـكـښـے پـه شـاتـوره اَس بـانـدِ سور شولو. پـه هـغـے زيـن نـهٔ وو، دَ حـضـورؐ گـردن كـښـے يوه توره آويزانده وه.

بَابٌ ۱۰۰ : الْفَرَسِ الْقَطُوْفِ.

باب ۱۰۰ : دَ سُست رفتاره اَس بيان.

۱۳۰ : حَـدَّثَـنَـا عَبْـدُ الْاَعْلٰى بْـنُ حَـمَّـادٍ حَـدَّثَـنَـا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَـدَّثَنَا سَعِيْدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَـالِكٍ اَنَّ اَهْـلَ الْـمَـدِيْـنَةِ فَـزِعُوْا مَرَّةً فَـرَكِـبَ الـنَّـبِـيُّ صَـلَّـى الـلّٰـهُ عَلَيْـهِ وَسَلَّمَ فَرَسًا لِاَبِيْ طَلْحَةَ كَانَ يَقْطِفُ اَوْ كَـانَ فِيْـهِ قِـطَـافٌ فَـلَـمَّا رَجَعَ قَالَ وَجَـدْنَـا فَرَسَكُمْ هٰذَا بَحْرًا فَكَانَ بَعْدَ ذٰلِكَ لَا يُجَارٰى.

۱۳۰ : عـبـدالاعـلٰي بـن حـمـاد. يزيد بن زريع. سعيد. قتاده. حضرت انس بن مالكؓ نه روايت كوي، يو خـلـے مـديـنـے والـوته د دشمن نه څه خوف پيدا شو. نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلَم د ابوطلحهؓ په اَس باندے سـور شولو، چه ډير سست رفتاره وو، يا دا چه هغهٔ كښے سستي وه. كـوم وخـت چـه حضورؐ راواپس شو، نو ورے فـرمـائـيـل مـونـږ ستـا دا اَس د دريـاب په شان تيز رفتاره بيـامـونـد. بيا د هغے نه پس هغه اَس داسے تيز شو چه بل هيڅ اَس هغه لاندے كولے نهٔ شو.

بَـابٌ ۱۰۱ : السَّبْـقِ بَيْـنَ الْخَيْلِ.

بـاب ۱۰۱ : د كـور دوړ (گھوڑ دوڑ) كـولـو بيان.

۱۳۱ : حَـدَّثَـنَـا قَبِيْصَةُ حَدَّثَنَا سُـفْيَـانُ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ اَجْرَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَـلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا ضُمِّرَ مِنَ الْخَيْلِ مِنَ الْـحَـفْيَاءِ اِلٰى ثَنِيَّةِ الْوِدَاعِ وَ اَجْرٰى مَا لَـمْ يُضَمَّرُ مِنَ الثَّنِيَّةِ اِلٰى مَسْجِدِ بَنِيْ

۱۳۱ : قبيـصـه. سـفيـان. عبيـداللّٰـه. نافع. حـضـرت ابـن عـمـرؓ نـه روايت كـوي، رسـول اللّٰـه صـلـي الـلّٰـه عـلـيـه وسـلَم تـربيـت يـافته (تهرينڈ) آسونه دَ مـقـام حـفيـانـه مـقـام ثنية الـوداع پورے اوزغلول او غيـر تـربيـت آسـونـه ئے د مقام ثنيـه نـه مسجد بني زريـق پـورے اوزغـلـول حضـرت ابـن عـمـرؓ وائـي زهٔ

زُرَيْقٍ قَالَ ابْنُ عُمَرَ وَ كُنْتُ فِيْمَنْ اَجْرٰى قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بَيْنَ الْحَفْيَاءِ اِلٰى ثَنِيَّةِ الْوَدَاعِ خَمْسَةُ اَمْيَالٍ اَوْ سِتَّةٌ وَ بَيْنَ ثَنِيَّةَ اِلٰى مَسْجِدِ بَنِيْ زُرَيْقٍ مِيْلٌ.

هم هغې خلقو کښې ووم. چه هغوئ کوړ دوړ کړې وو. سفیان وائي د حفیانه ثنیه پورې پینځه یا شپږ میله دي. او ثنیه نه مسجد بني زریق پورې یو میل دې.

بَابٌ ١٠٢: اِضْمَارِ الْخَيْلِ لِلسَّبْقِ.

باب ۱۰۲: زغلولو د پاره اسونو ته د تربیت ورکولو بیان.

۲۳۲ ا: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَابَقَ بَيْنَ الْخَيْلِ الَّتِيْ لَمْ تُضَمَّرْ وَ كَانَ اَمَدُهَا مِنَ الثَّنِيَّةِ اِلٰى مَسْجِدِ بَنِيْ زُرَيْقٍ وَ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ كَانَ سَابَقَ بِهَا قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ اَمَدًا غَايَةً فَطَالَ عَلَيْهِمُ الْاَمَدُ.

۲۳۲ ا: احمد بن یونس. لیث. نافع. عبدالله بن عمرؓ نه روایت کوي رسول الله صلي الله علیه وسلّم هغې اسونو کښې چه هغوئ له تربیت ورکړې شوې وو، کوړ دوړ اوکړلو. او د هغوئ امد (حد) ئې د ثنیه نه مسجد بني زریق پورې مقرر کړلو. او عبدالله بن عمر هم هغې خلقو کښې وو، چه هغوئ کوړ دوړ کړې وو. ابو عبدالله اووې د امد معني غایة (آیه کریمه) دَ فطال علیهم الامدهم دا معني وي.

بَابٌ ١٠٣: غَايَةِ السَّبْقِ لِلْخَيْلِ الْمُضَمَّرَةِ.

باب ۱۰۳: د اسونو دَ کوړ دوړ د حد مقررولو بیان.

۲۳۳ ا: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ حَدَّثَنَا اَبُوْ اِسْحَاقَ عَنْ مُوْسٰى بْنِ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ سَابَقَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ الْخَيْلِ الَّتِيْ قَدْ اُضْمِرَتْ فَاَرْسَلَهَا مِنَ الْحَفْيَاءِ وَ كَانَ اَمَدُهَا ثَنِيَّةُ الْوَدَاعِ فَقُلْتُ لِمُوْسٰى كَمْ كَانَ بَيْنَ ذٰلِكَ قَالَ سِتَّةُ اَمْيَالٍ اَوْ سَبْعَةٌ وَ سَابَقَ بَيْنَ

۲۳۳ ا: عبدالله بن محمّد. معاویه. ابو اسحاق. موسٰي بن عقبه. نافع. ابن عمرؓ نه روایت کوي، رسول الله صلي الله علیه وسلّم د هغې اسونو مینځ کښې چه دَ هغې تربیت شوې وو (تړینه شوي)، کوړ دوړ اوکړلو او هغه ئې دَ مقام حفیا نه پریښودل، او دَ هغې انتهائي ثنیة الوداع اوګرځولو. ابو اسحاق راوي وائي ما موسٰي ته اووې، ددې دواړو ځایونو مینځکښې څومره فاصله وه، هغهٔ اووې، شپږ یا اوه میله، او کوم اسونه چه تړینه شوي نهٔ وو دَ هغوئ مینځ کښې ئې هم کوړ دوړ اوکړلو او

الْغُمْلِ الَّتِي لَمْ تُضْمَرْ فَأَرْسَلَهَا مِنْ ثَنِيَّةِ الْوَدَاعِ وَ كَانَ أَمَدُهَا مَسْجِدُ بَنِي زُرَيْقٍ فَقُلْتُ فَكَمْ بَيْنَ ذٰلِكَ قَالَ مِيلٌ أَوْ نَحْوُهُ وَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ مِمَّنْ سَابَقَ فِيهَا.

هغه ئې د ثنية الوداع نه پريښودل' او د هغوئ انتهائې مسجد بني زريق او كرخولو ما تپوس او كه ددې دواړو مينځ كښې خومره فاصله وه' هغه اووې يو ميل يا ددې قريب. او ابن عمرؓ هم هغې خلقو كښې وو' چه هغه ګوړ دوړ كړې وو.

باب ۱۰۴ : نَاقَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ ابْنُ عُمَرَ أَرْدَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُسَامَةَ عَلَى الْقَصْوَاءِ وَ قَالَ الْمِسْوَرُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا خَلَاتِ الْقَصْوَاءُ.

باب ۱۰۴ : د رسول الله صلي الله عليه وسلّم دَ اوښې بيان. ابن عمرؓ وائي رسول الله صلي الله عليه وسلّم اسامه په خپله اوښه قصواء نومې باندې ځان پسې ورستو سور كړې وو او حضرت مسور وائي رسول الله صلي الله عليه وسلّم فرمائيلي وو چه قصواء كټه شوې نه ده.

۱۳۴ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا أَبُوْ إِسْحَاقَ عَنْ حُمَيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسًا يَقُوْلُ كَانَتْ نَاقَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقَالُ لَهَا عَضْبَاءُ.

۱۳۴ : عبدالله بن محمد. معاويه. ابو اسحاق. حميد. انس نه روايت كوي هغه فرمائي د رسالت مآب صلي الله عليه وسلّم دَ اوښې نوم عضباء وو۱.

۱. د سيرت عالمان په دې باره كښې متفق نه دي چه قصواء' جدعاء' او عضباء دا دَ حضور اكرم صلي الله عليه وسلّم دَ درې اوښو نامې وې يا اوښه صرف يوه وه او نامې ئې درې وې. دواړه قوله موجود دي.

۱۳۵ : حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ إِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَاقَةٌ تُسَمَّى الْعَضْبَاءَ لَا تُسْبَقُ قَالَ حُمَيْدٌ أَوْ لَا تَكَادُ تُسْبَقُ فَجَاءَ أَعْرَابِيٌّ عَلٰى قَعُوْدٍ فَسَبَقَهَا فَشَقَّ ذٰلِكَ عَلَى الْمُسْلِمِيْنَ حَتّٰى عَرَفَهُ

۱۳۵ : مالک بن اسمٰعيل. زهير. حميد. حضرت انسؓ نه روايت كوي. د رسول الله صلي الله عليه وسلّم يوه اوښه وه. دَ هغې نوم عضباء وو. هيڅ يوه اوښه د هغې نه مخكښې كيده نه حميد راوي وائي. يا دائې اووې چه مخكښې كيدې ترې نه شوه. نو يو بانډيسې (اعرابي) په يو خوان اوښ سور راغې' او هغه ترې مخكښې شو' مسلمانانو باندې دا

فَقَالَ حَقٌّ عَلَى اللّٰهِ اَنْ لَا يَرْتَفِعَ شَيْءٌ مِنَ الدُّنْيَا اِلَّا وَضَعَهُ طَوَّلَهُ مُوْسٰى عَنْ حَمَّادٍ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

بده اولګیده، تردے چه حضورؐ ته معلومه شوه، نو حضورؐ اوفرمائیل الله باندے دا حق دے چه دنیا کښے کوم څیز بلند وي هغه پست کړي، موسٰی، حماد، ثابت حضرت انسؓ نه روایت کړیدے. طویل حدیث نے بیان کړیدے.

باب ۱۰۵ : بَغْلَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. قَالَ اَنَسٌ وَ قَالَ اَبُوْ حُمَيْدٍ اَهْدَى مَلِكُ اَيْلَةَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَغْلَةً بَيْضَاءَ.

باب ۱۰۵ : د رسول الله صلي الله عليه وسلّم د سپین قچر (خچر) بیان. حضرت انسؓ او ابو حمید وائي چه شاه ایله نبي کریم صلي الله علیه وسلّم ته یو سپین قچر هدیه کښے ورکړے وو.

۱۳۶ : حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ اِسْحَاقَ قَالَ سَمِعْتُ عَمْرَو بْنَ الْحَارِثِ قَالَ مَا تَرَكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَّا بَغْلَتَهُ الْبَيْضَاءَ وَسِلَاحَهُ وَ اَرْضًا تَرَكَهَا صَدَقَةً.

۱۳۶ : عمرو بن علي. یحیٰي. سفیان. ابو اسحاق. عمرو بن حارث نه روایت کوي. چه رسول الله صلي الله علیه وسلّم هیڅ پرے نه ښودل، سوا د یو سپین قچر او وسلے نه، او یوے زمکے نه. چه هغه حضورؐ په طور د صدقے پریښے وه.

۱۳۷ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا يَحْيٰى بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ سُفْيَانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ اِسْحَاقَ عَنِ الْبَرَاءِ قَالَ لَهُ رَجُلٌ يَا اَبَا عُمَارَةَ وَلَّيْتُمْ يَوْمَ حُنَيْنٍ قَالَ لَا وَاللّٰهِ مَا وَلَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلٰكِنْ وَلّٰى سَرْعَانُ النَّاسِ فَلَقِيَهُمْ هَوَازِنُ بِالنَّبْلِ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى بَغْلَتِهِ الْبَيْضَاءِ وَ اَبُوْ سُفْيَانَ بْنُ الْحَارِثِ اٰخِذٌ بِلِجَامِهَا

۱۳۷ : محمد بن مثنٰي. یحیٰي بن سعید. سفیان. ابو اسحٰق براء نه روایت کوي. هغه ته یو سړي اووے. اے ابو عماره، آیا تاسو خلق د حنین په ورځ تښتیدلي وئ. هغه اووے، نه، په خدائے مِ دے قسم وي رسول الله صلي الله علیه وسلم شا کړے نه وه. بلکه جلد باز خلق تښتیدلے وو، ځکه چه دَ قبیلهٔ هوازن خلقو هغوئ په (غشو) راخستي وو. او رسول الله صلي الله علیه وسلّم په خپل یو سپین قچر سور

وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ:

وو. او ابـو سـفيـان بـن حـارث د هغـه واګـې نيـولې وې. حضورؐ به دا فرمائيل:

اَنَا النَّبِيُّ لَا كَذِبُ
اَنَا ابْنُ عَبْدُ الْمُطَّلِبُ

زه پيغمبر يم دا دروغ نه دي
زه د عبدالمطلب خوئې يم

باب ۱۰٦ : جِهَادِ النِّسَاءِ.

باب ۱۰٦ : دَ ښځو دَ جهاد بيان.

۱۳۸ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ اِسْحَاقَ عَنْ عَائِشَةَ بِنْتِ طَلْحَةَ عَنْ عَائِشَةَ اُمِّ الْمُؤْمِنِيْنَؓ قَالَتْ اِسْتَاْذَنْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْجِهَادِ فَقَالَ جِهَادُ كُنَّ الْحَجُّ وَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مُعَاوِيَةَ بِهٰذَا.

۱۳۸ : محمد بن کثير. سفيان. معاويه بن اسحاق. عائشه بنت طلحه. ام المؤمنين بي بي عائشېؓ نه روايت کوي، ما د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه دَ جهاد بابت کښې اجازت طلب که، حضورؐ اوفرمائيل، ستاسو خلقو جهاد خو حج دې. او عبداللّٰه بن الوليد اووې مونږ ته سفيان ثوري بيان اوکۀ، بيا هغۀ معاويه ته ددې بيان اوکۀ.

۱۳۹ : حَدَّثَنَا قَبِيْصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مُعَاوِيَةَ بِهٰذَا وَ عَنْ حَبِيْبِ ابْنِ اَبِيْ عَمْرَةَ عَنْ عَائِشَةَ بِنْتِ طَلْحَةَ عَنْ عَائِشَةَ اُمِّ الْمُؤْمِنِيْنَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَاَلَهُ نِسَاءُهُ عَنِ الْجِهَادِ فَقَالَ نِعْمَ الْجِهَادُ الْحَجُّ.

۱۳۹ : قبيصه. سفيان. حبيب بن ابي عمره. عائشه بنت طلحه. عائشه ام المؤمنينؓ د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کوي. حضورؐ نه دَ هغوئ بيبيانو د جهاد اجازت طلب که. نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل. ستاسو ښۀ جهاد حج دې.

باب ۱۰۷ : غَزْوِ الْمَرْاَةِ فِي الْبَحْرِ.

باب ۱۰۷ : درياب کښې په سورلئ د ښځو جهاد.

۱۴۰ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ عَمْرٍو وَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اِسْحَاقَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ الْاَنْصَارِيِّ قَالَ سَمِعْتُ

۱۴۰ : عبداللّٰه بن محمد. معاويه بن عمرو. ابو اسحاق. عبداللّٰه بن عبدالرحمٰن نه روايت کوي. ما د حضرت انس نه واوريدل. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم بنت ملحان

اَنَّسًا يَقُوْلُ دَخَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى اِبْنَةِ مِلْحَانَ فَاتَّكَأَ عِنْدَهَا ثُمَّ ضَحِكَ فَقَالَتْ لِمَ تَضْحَكُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَقَالَ نَاسٌ مِنْ اُمَّتِيْ يَرْكَبُوْنَ الْبَحْرَ الْاَخْضَرَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ مَثَلُهُمْ مَثَلُ الْمُلُوْكِ عَلَى الْاَسِرَّةِ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اُدْعُ اللّٰهَ اَنْ يَجْعَلَنِيْ مِنْهُمْ قَالَ اللّٰهُمَّ اجْعَلْهَا مِنْهُمْ ثُمَّ عَادَ فَضَحِكَ فَقَالَتْ لَهُ مِثْلَ اَوْمِمَّ ذٰلِكَ فَقَالَ لَهَا مِثْلَ ذٰلِكَ فَقَالَتْ اُدْعُ اللّٰهَ اَنْ يَجْعَلَنِيْ مِنْهُمْ قَالَ اَنْتِ مِنَ الْاَوَّلِيْنَ وَلَسْتِ مِنَ الْاٰخِرِيْنَ قَالَ قَالَ اَنَسٌ فَتَزَوَّجَتْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ فَرَكِبَتِ الْبَحْرَ مَعَ بِنْتِ قَرَظَةَ فَلَمَّا قَفَلَتْ رَكِبَتْ دَابَّتَهَا فَوَقَصَتْ بِهَا فَسَقَطَتْ عَنْهَا فَمَاتَتْ.

کره تشریف یوړلو، هلته ئې تکیه اولګوله، سملاستلو، او اوده شولو، بیا چه بیدار شو نو په خندا شو. بنت ملحان اووې، یا رسول اللّٰه! تاسو ولې خاندئ. وې فرمائیل. ما خوب کښې اولیدل چه څما د امت ځنې خلق د خدائې په لار کښې جهاد کولو ډ پاره په دې دریاب سواره پوریوځي، د هغوئ حالت په مثل د تخت نشین بادشاهانو وو. بنت ملحان اووې یا رسول اللّٰه. اللّٰه نه دعا اوغواړئ چه ما هم د دغې خلقو نه کړي. حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ورته اوفرمائیل. ته ډ وړمبنو خلقو نه ئې، ډ وروستو خلقونه نه ئې. عبدالرحمان وائي، انسؓ وئیلې. بیا بنت ملحان عباده بن صامت سره نکاح اوکړهٔ. هغه د بنت قرظه سره دریاب کښې سوره شوه[۱]، چه واپسئ کښې په خپله سورلئ کیناستله، نو ډ هغې نه راوغورځیدله، اومړه شوله.

۱. د حضرت عثمان رضي اللّٰه عنه د خلافت زمانه کښې د ټولونه ړومبئ سمندري بیړه حضرت معاویه رضي اللّٰه عنه ډ امیر المؤمنین په اجازت سره تیار کړې وه اوپه قبرص باندې ئې حمله کړې وه، دا ډ مسلمانانو د ټولونه ړومبې بحري جنګ وو کوم کښې چه ام حرام شریکه شوه او شهادت ئې هم نصیب شو. د معاویه رضي اللّٰه عنه د بي بي نوم فاخِته وو، او هغه هم هغوئ سره په دې جنګ کښې شریکه وه.

## بَاب۱۰۸ : حَمْلِ الرَّجُلِ اِمْرَأَتَهُ فِي الْغَزْوِ دُوْنَ بَعْضِ نِسَائِهِ.

## باب۱۰۸ : ځنې بیبیانې نه بوتلل، او ځنې جهاد کښې ځان سره د بوتلو بیان.

۱۴۱ : حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ النُّمَيْرِيُّ حَدَّثَنَا يُوْنُسَ قَالَ سَمِعْتُ الزُّهْرِيَّ قَالَ سَمِعْتُ عُرْوَةَ بْنَ الزُّبَيْرِ وَ

۱۴۱ : حجاج بن منهال. عبداللّٰه بن عمر نمیري. یونس زهري. عروه بن زبیر او سعید بن مسیب او علقمه بن وقاص او عبیداللّٰه بن عبداللّٰه، دې څلور واړو حضراتو

سَعِيْدَ بْنَ الْمُسَيِّبِ وَ عَلْقَمَةَ بْنَ وَقَّاصٍ وَ عُبَيْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ حَدِيْثِ عَائِشَةَ كُلٌّ حَدَّثَنِيْ طَائِفَةً مِنَ الْحَدِيْثِ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَخْرُجَ أَقْرَعَ بَيْنَ نِسَائِهٖ فَأَيَّتُهُنَّ يَخْرُجُ سَهْمُهَا خَرَجَ بِهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَقْرَعَ بَيْنَنَا فِيْ غَزْوَةٍ غَزَاهَا فَخَرَجَ فِيْهَا سَهْمِيْ فَخَرَجْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ مَا أُنْزِلَ الْحِجَابُ.

ماته دَ بي بي عائشې حديث لږ لږ بيان كه، بي بي عائشې اوفرمائيل. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم چه به د سفر كولو اراده فرمائيله نو دَ خپلو بيبيانو مينځ كښې به ئې قرعه (پچه) اچوله. د چا په نوم چه به قرعه راوختله. هغه به ئې خان سره بوتله (دَدې دستور مطابق) يو جهاد كښې خمونږ مينځ كښې قرعه واچولې شوه هغې كښې خما نوم راوختلو. زه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم سره لاړم او دا واقعه دَ نزول حجاب نه پس ده.

بَابُ ١٠٩ : غَزْوِ النِّسَاءِ وَقِتَالِهِنَّ مَعَ الرِّجَالِ.

باب ۱۰۹ : دَ زنانه ؤ، نارينه ؤ سره يوخائې د جنګ كولو بيان.

۱۴۲ : حَدَّثَنَا أَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ عَنْ أَنَسٍ قَالَ لَمَّا كَانَ يَوْمُ أُحُدٍ انْهَزَمَ النَّاسُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَلَقَدْ رَأَيْتُ عَائِشَةَ بِنْتَ أَبِيْ بَكْرٍ وَ أُمَّ سُلَيْمٍ وَ إِنَّهُمَا الْمُشَمِّرَتَانِ أَرٰى خَدَمَ سُوْقِهِمَا تَنْقُزَانِ الْقِرَبَ وَ قَالَ غَيْرُهٗ تَنْقُلَانِ الْقِرَبَ عَلٰى مُتُوْنِهِمَا ثُمَّ تُفْرِغَانِهٖ فِيْ أَفْوَاهِ الْقَوْمِ ثُمَّ تَرْجِعَانِ فَتَمْلَآنِهَا ثُمَّ تَجِيْئَانِ فَتُفْرِغَانِهَا فِيْ أَفْوَاهِ الْقَوْمِ.

۱۴۲ : ابو معمر. عبدالوارث. عبدالعزيز. حضرت انسؓ نه روايت كوي. د أحد په ورځ خلقو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم پريښود مخ په شا شو، نو ما عائشه بنت ابي بكر او ام سليمؓ اوليدهٔ چه دې دواړو خپلې لمنې اوچتې كړې وې ما د هغوئ دَ پښو جانجړ ليدل. د اوبو مشكونه به ئې په شا راوړول. او دَ تږو خلقو په خوله كښې به ئې اوبهٔ اچولې، بيا به واپس تلې. هغه به ئې ډكول بيا به راتلې، او هغه به ئې دَ تږو په خوله كښې اچولې.

بَابُ ١١٠ : حَمْلِ النِّسَاءِ الْقِرَبَ إِلَى النَّاسِ فِي الْغَزْوِ.

باب ۱۱۰ : جهاد كښې دَ ښځو سرو له دَ اوبو نه ډک مشكونه دَ اوړلو بيان.

۱۴۳ : حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ ثَعْلَبَةُ بْنُ اَبِيْ مَالِكٍ اَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ قَسَمَ مُرُوْطًا بَيْنَ نِسَاءٍ مِّنْ نِسَاءِ الْمَدِيْنَةِ فَبَقِيَ مِرْطٌ جَيِّدٌ فَقَالَ لَهٗ بَعْضُ مَنْ عِنْدَهٗ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ اَعْطِ هٰذَا ابْنَةَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّتِيْ عِنْدَكَ يُرِيْدُوْنَ اُمَّ كُلْثُوْمٍ بِنْتَ عَلِيٍّ فَقَالَ عُمَرُ اُمُّ سُلَيْطٍ اَحَقُّ وَ اُمُّ سُلَيْطٍ مِنْ نِسَاءِ الْاَنْصَارِ مِمَّنْ بَايَعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ عُمَرُ فَاِنَّهَا كَانَتْ تَزْفِرُ لَنَا الْقِرَبَ يَوْمَ اُحُدٍ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ تَزْفِرُ تَخِيْطُ.

۱۴۳ : عبدان. عبدالله. یونس ابن شهاب. ثعلبه بن ابي مالک نه روايت کوي. عمر بن خطابؓ دَ مدينې په زنانه ؤ کښې څه څادرونه تقسيم کړي وو. نو يو ډير اعلیٰ څادر بچ شولو، خوا کښې ناستو خلقو کښې چا اووے چه امير المؤمنين دا څادر تاسو د رسول الله صلي الله عليه وسلّم دَ صاحبزادګئ يعني نمسئ چه ستاسو په نکاح کښې ده، هغې له ورکړئ (د هغوئ مراد اُم کلثومؓ بنت عليؓ وو) عمرؓ ورته اوفرمائيل اُم سليط ددے زياته مستحقه ده. او اُم سليط هغه انصاري خواتينو کښې وه چه هغې د رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه بيعت کړے وو. عمرؓ اووے هغې به دَ اُحد په ورځ مونږ له ډک ډک مشکونه راوړل. ابو عبدالله وائي د ''تزفر'' معني ''تحيط'' يعني يخے اوبه ديا.

۱. محدثينو ليکلي دي چه د تَزْفِرُ معنیٰ تَخِيْطُ (ګنډلو) سره کول سهوه ده. ددے اصل معنیٰ اوچتول دي. ''تَزْفِرُ'' بمعني تَحْمِلِ.

## بَاب ۱۱۱ : مُدَاوَاةِ النِّسَاءِ فِي الْغَزْوِ.

## باب ۱۱۱ : د جهاد ميدان کښې دَ ښځو دَ زخميانو دَ مرهم پټئ کولو بيان.

۱۴۴ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ ذَكْوَانَ عَنِ الرُّبَيِّعِ بِنْتِ مُعَوِّذٍ قَالَتْ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَسْقِيْ وَ نُدَاوِي الْجَرْحٰى وَ نَرُدُّ الْقَتْلٰى اِلَى الْمَدِيْنَةِ.

۱۴۴ : علي بن عبدالله. بشر بن مفضل. خالد بن ذکوان. ربيع بنت معوذ نه روايت کوي. مونږ به جهاد کښې رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره تلو. او اوبه به مو پرے څکولے او دَ زخميانو علاج به مو کولو. او زخميان او قتل شوي خلق به مو اوچتول او مدينے ته به مو راوړل.

## بَاب ۱۱۲ : رَدِّ النِّسَاءِ الْجَرْحٰى وَالْقَتْلٰى.

## باب ۱۱۲ : ميدان جنګ کښې دَ ښځو دَ زخميانو او قتل شوو د اوچتولو او اوړلو بيان.

۱۴۵ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ عَنْ خَالِدِ بْنِ ذَكْوَانَ عَنِ الرُّبَيِّعِ بِنْتِ مُعَوِّذٍ قَالَتْ كُنَّا نَغْزُوْ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَسْقِي الْقَوْمَ وَ نَخْدُمُهُمْ وَ نَرُدُّ الْجَرْحٰى وَالْقَتْلٰى اِلَى الْمَدِيْنَةِ.

۱۴۵ : مسدد. بشر بن مفضل. خالد بن ذكوان. ربيع بنت معوذ نه روايت دے مونږ به رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم سره جهاد له تلو او په خلقو به مو اوبۀ څکولے ' او د هغوئ خدمت به مو كولو. او زخميان او قتل شوي به مو مدينے ته راوړل.

باب ۱۱۳ : نَزْعِ السَّهْمِ مِنَ الْبَدَنِ.

باب ۱۱۳ : بدن نه د تير اوبِنكلو بيان.

۱۴۶ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ رُمِيَ اَبُوْ عَامِرٍ فِيْ رُكْبَتِهٖ فَانْتَهَيْتُ اِلَيْهِ قَالَ انْزِعْ هٰذَا السَّهْمَ فَنَزَعْتُهٗ فَنَزَا مِنْهُ الْمَاءُ فَدَخَلْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرْتُهٗ فَقَالَ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِعُبَيْدٍ اَبِيْ عَامِرٍ.

۱۴۶ : محمد بن علاء. ابو اسامه. بريد بن عبداللّٰه. حضرت ابو موسٰي نه روايت كوي. د ابو عامر كونډئ په غشي اولګيده نو زۀ هغه له ورغلم. هغۀ ماته اووے چه دا غشے اوكاږه' ما اوبِنكلو' نو د هغے نه اوبۀ بهيدل شروع شو. زۀ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم له ورغلم. او حضورٗ ته مِ بيان اوكه وے فرمائيل اے اللّٰه عبيد يعني ابو عامر اوبښے.

باب ۱۱۴ : اَلْحِرَاسَةُ فِي الْغَزْوِ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ.

باب ۱۱۴ : د جهاد ميدان كښے د نګرانئ كولو بيان.

۱۴۷ : حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ بْنُ خَلِيْلٍ اَخْبَرَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ اَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَامِرِ بْنِ رَبِيْعَةَ قَالَ سَمِعْتُ عَائِشَةَ تَقُوْلُ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَهِرَ فَلَمَّا قَدِمَ الْمَدِيْنَةَ قَالَ لَيْتَ رَجُلًا مِّنْ اَصْحَابِيْ صَالِحًا

۱۴۷ : اسمٰعيل بن خليل. علي بن مسهر. يحيٰي بن سعيد. عبداللّٰه بن عامر بن ربيعه. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي. چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم يو سفر كښے يوه شپه نه وو اودۀ شوے چه مدينے ته راورسيدلو' نو خوب پرے غلبه اوكړه. حضورٗ اوفرمائيل كاش څما اصحابو كښے چا نيک سړي نن شپه څما څوكيداري كړے وے. ناساپه مونږ د وسلے

يَحْرُسُنِي اللَّيْلَةَ إِذْ سَمِعْنَا صَوْتَ سِلاَحٍ فَقَالَ مَنْ هٰذَا فَقَالَ أَنَا سَعْدُ بْنُ أَبِيْ وَقَّاصٍ جِئْتُ لِأَحْرُسَكَ وَ نَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۱۴۸ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا أَبُوْبَكْرٍ عَنْ أَبِيْ حُصَيْنٍ عَنْ أَبِيْ صَالِحٍ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ تَعِسَ عَبْدُ الدِّيْنَارِ وَالدِّرْهَمِ وَالْقَطِيْفَةِ وَالْخَمِيْصَةِ إِنْ أُعْطِيَ رَضِيَ وَ إِنْ لَّمْ يُعْطَ لَمْ يَرْضَ لَمْ يَرْفَعْهُ إِسْرَائِيْلُ عَنْ أَبِيْ حُصَيْنٍ وَ زَادَنَا عَمْرٌو وَ قَالَ أَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ دِيْنَارٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ أَبِيْ صَالِحٍ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ تَعِسَ عَبْدُ الدِّيْنَارِ وَ عَبْدُ الدِّرْهَمِ وَ عَبْدُ الْخَمِيْصَةِ إِنْ أُعْطِيَ رَضِيَ وَ إِنْ لَّمْ يُعْطَ سَخِطَ تَعِسَ وَانْتَكَسَ وَ إِذَا شِيْكَ فَلَا انْتَقَشَ طُوْبٰى لِعَبْدٍ اٰخِذٍ بِعِنَانِ فَرَسِهٖ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ أَشْعَثَ رَأْسُهُ مُغْبَرَّةٌ قَدَمَاهُ إِنْ كَانَ فِي الْحِرَاسَةِ كَانَ فِي الْحِرَاسَةِ وَ إِنْ كَانَ فِي السَّاقَةِ كَانَ فِي السَّاقَةِ إِنِ اسْتَأْذَنَ لَمْ يُؤْذَنْ لَهٗ وَ إِنْ شَفَعَ لَمْ يُشَفَّعْ قَالَ أَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ لَمْ يَرْفَعْهُ إِسْرَائِيْلُ وَ مُحَمَّدُ

آواز واوریدلو، ورې فرمائیل، دا څوک دې هغه اووې. سعد بن ابي وقاص زۀ څکه راغلے یم چه د حضور څوکیداري اوکړم. دې نه پس حضور اوده شولو.

۱۴۸ : یحیی بن یوسف. ابوبکر. ابوحصین. ابو صالح. ابوهریرةؓ رسول الله صلي الله علیه وسلم نه روایت کوي. حضورؐ اوفرمائیل د دینار او درهم بنده او د قطیفه او خمیصه بنده د هلاک شي (دا دواړه څادرونه دي) که دا ورکړے شي، نو خوشحاله شي، او که ورنکړے شي نو خفه شي. دا حدیث عمرو بن مرزوق، عبدالرحمن بن عبدالله او هغۀ د خپل پلار نه، ابو صالح، ابوهریرةؓ نه روایت دې، چه حضور صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل چه د دینار او درهم بنده او خمیصه بنده دې هلاک شي. نسکور دې شي چه ازغي پکښې ننوځي. او ترې اونۀ خي. خوشخبري ده هغه بنده لره چه د اس خپل واګې د الله په لار کښې اونیسي. د هغۀ د سر ویښته پریشانه یعني دوړو نه ګنده او پښې ګرد وهلے وي. او کۀ هغه د امامۀ طرف نه په پاسباني مقرر وي. نو حفاظت کښې پوره په تندۍ لګیدلے وي، او که د فوځ ورستو حفاظت د پاره اولګولے شي، نو لښکر پسے وي. کۀ دننه د راتلو اجازت اوغواړي، نو اجازت ورنه کړے شي او که هغه سفارش اوکړي، نو د هغۀ سفارش اونۀ منلے شي، ابو عبدالله اووې چه اسرائیل او محمد بن حجاده د ابو حصین نه

بُـنُ جُـحَـادَةَ عَنُ اَبِیُ حُصَیُنٍ وَ قَالَ تَـعُسًا کَـاَنَّـهُ یَقُوُلُ فَـاَتُعَسَهُمُ اللّٰهُ خَیُبَهُـمُ الـلّٰـهُ طُـوُبٰی فُعُلٰی مِنُ کُلِّ شَیُءٍ طَیِّبٍ وَهِیَ یَاءٌ حُوِّلَتُ اِلَی الْوَاوِ وَهِیَ مِنُ یَطِیُبُ.

دا مـرفـوعـا روایـت کـړیدے اوونیلے دي چـه د تعسا معنـي دي چـه الـلـه هـغـه هـلاک کړلو. طوبي د فعلي پـه وزن دے یـعـنـي هـر پـاکیزه څیز د هغے اصل یاء دے چـــه واو ســـره بـدل شـوے دے او دا د یـطیـب نـه مشتق دے.

## بـاب ۱۱۵ : فَضُلِ الْخِدُمَةِ فِی الْغَزُوِ.

بـاب ۱۱۵ : میـدان جهـاد کښـے د خدمت د فضیلت بیان.

۱۴۹ : حَـدَّثَـنَـا مُحَـمَّـدُ بُـنُ عَـرُعَـرَةَ حَدَّثَنَا شُعُبَةُ عَنُ یُوُنُسَ بُنِ عُبَیُدٍ عَنُ ثَابِتِ الْبُنَانِیِّ عَنُ اَنَسِ بُنِ مَـالِکٍ قَالَ صَحِبُتُ جَرِیُرَ بُنِ عَبُدِ اللّٰهِ فَـکَـانَ یَخُدُمُنِیُ وَهُوَ اَکُبَرُ مِنُ اَنَسٍ قَـالَ جَـرِیُـرٌ اِنِّـیُ رَاَیُتُ الْاَنُـصَـارَ یَـصُنَعُوُنَ شَیُئًا لَّا اَجِدُ اَحَدًا مِنُهُمُ اِلَّا اَکُرَمُتُهُ.

۱۴۹ : مـحـمـد بـن عـرعـره. شعـبـه. یـونـس بـن عبیـد. ثـابـت بـنـانـي. حضرت انس بن مـالک نـه روایـت کـوي زهٔ یـو سـفـر کښـے جـریـر بن عبداللّٰه ســره مـلـګـرے ووم، هـغـه بـه خـمـا خـدمت کولو، حـالانـکـه هـغـه د انـس نـه عمر کښـے زیات وو جریر وئیـلـے مـا انـصـار پـه یـو داسـے کار (خدمت د رسولؐ) بـانـدے لیـدلـي دي چـه هـغـويٍ کښـے څوک بیاموم نو د هغه خدمت کوم.

۱۵۰ : حَـدَّثَـنَـا عَبُـدُ الْعَـزِیُـزِ بُـنُ عَبُدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بُنُ جَعُفَرٍ عَـنُ عَـمُـرِو بُـنِ اَبِـیُ عَمُرٍو مَوُلَـی الْـمُـطَّـلِبِ بُنِ حَنُطَبٍ اَنَّهُ سَمِعَ اَنَسَ بُـنَ مَـالِکٍ یَـقُـوُلُ خَـرَجُتُ مَعَ رَسُوُلَ الـلّٰـهِ صَـلَّـی الـلّٰـهُ عَلَیُهِ وَسَلَّمَ اِلٰی خَیُبَـرَ اَخُدُمُهُ فَلَمَّا قَدِمَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیُهِ وَسَلَّمَ رَاجِعًا وَ بَدَالَهُ اُحُدٌ قَالَ هٰذَا جَبَلٌ یُحِبُّنَا وَ نُحِبُّهُ ثُمَّ اَشَارَ بِیَـدِهٖ اِلَـی الْـمَـدِیُـنَةِ قَالَ اَللّٰهُمَّ اِنِّیُ اُحَـرِّمُ مَـا بَیُـنَ لَابَتَیُهَـا کَتَحُرِیُمِ

۱۵۰ : عبـدالعزیز بن عبداللّٰه. محمد بن جعفر. عـمر بن ابي عمرو (د مطلب بن حنطب آزاد کړے غلام) نـه روایت کـوي. هـغـه د انس بن مالک نه واوریدل زهٔ رسـول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم سره د حضورؐ خدمت د پـاره خیبـر تـه لاړم. کـوم وخـت چـه حضورؐ د خیبر نه واپـس کیـدلـو او حـضورؐ ته اُحد (غر) ښکاره شولو. نو حـضورؐ اوفرمائیل. دا غر مونږ سره محبت کوي او مونږ دهٔ سـره مـحبـت کـوو. بیـا حضور صلے اللّٰه علیه وسلّم مـدینـے تـه اشـاره اوکـړه وے فرمائیل. اے اللّٰه زهٔ ددے دواړو سـنـګـستـان (غـرنیزے علاقے) درمیاني مقام حرم جوړوم. څـنـګه چه ابراهیم علیه السلام مکه حرم جوړه

اِبْرَاهِيْمُ مَكَّةَ اَللّٰهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِيْ صَاعِنَا وَ مُدِّنَا.

کړے ده. اے اللّٰه خمونږ صاع او مد کښے برکت واچوے.

ف: (صاع او مد) د غلے او چوهارو ناپ کولو دوه پيمانے دي. (صاع) د دوه سوه خلور ديرش تولے بو وزن يا پيمانه ده (مُد) يوه پيمانه عراق کښے دوه رطل ده۱ ا.

۱۵۱: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ اَبُو الرَّبِيْعِ عَنْ اِسْمَاعِيْلَ بْنِ زَكَرِيَّاءَ حَدَّثَنَا عَاصِمٌ عَنْ مُوَرِّقٍ الْعِجْلِيِّ عَنْ اَنَسٍ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَكْثَرُنَا ظِلًّا الَّذِيْ يَسْتَظِلُّ بِكِسَائِهٖ وَ اَمَّا الَّذِيْنَ اَفْطَرُوْا فَبَعَثُوا الرِّكَابَ وَامْتَهَنُوْا وَ عَالَجُوْا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَهَبَ الْمُفْطِرُوْنَ الْيَوْمَ بِالْاَجْرِ.

۱۵۱: سليمان بن داؤد. ابو الربيع. اسمعيل بن زکريا. عاصم. مورق. عجلي. انسؓ نه روايت دے مونږ يو سفر کښے رسول اللّٰه صلي الله عليه وسلّم سره ملګري وو. مونږ کښے زيات سورے په هغے سړي وو چه خپل څادر سره ئے سورے کړے وو (بعضے سړي به د نمر نه خپلو لاسونو سره پناه آخستله) د بعضے سړو روژه وه. دَ بعضو نه وه' چا چه روژه نيولے وه هغوئ هيڅ کار اونه که. او چا چه نه وه نيولے. هغوئ اوښان پاسول او په هغوئ ئے اوبه راوړلے. غرض هر شان خدمت ئے اوکه. او کار ئے وکه. حضورؐ اوفرمائيل نن خو روژه نه نيونکو ټول ثواب او ګټلو۱.

۱. مصنفؒ په دے غزوه کښے د غازيانو د خدمت فضيلت ښودل غواړي' ولے چه په حديث کښے همغه طبقه ستائيلے شوے ده او دَ اجر او ثواب زياته مستحقه ګرځولے شوے ده چا چه د غازيانو خدمت کړے وو' حالانکه هغوي روژه نه وه نيولے. د حديث مفهوم دا دے چه روژه اګرچه سراسر خير دے او مخصوص او مقبول عبادت دے خو بيا هم په سفر وغيره کښے په داسے موقعو کښے هر کله چه ددے په وجے سره د نورو اهمو کارونو پاتے کيدلو خطره وي نو روژه نه نيول غوره دي. کومه واقعه چه په حديث کښے ده په دے کښے هم همدا صورت پيښ شوے وو چه کومو خلقو روژه نيولے وه هغوئ د سترې والي په وجے سره هيڅ کار اونه کړے شو ليکن د چا چه کوجه وه هغوئ په پوره چستئ سره ټول خدمات تر سره کړل' په دے وجه د هغوئ ثواب زيات شو.

په اسلام کښے د عبادت نظام د انسان د فطرت مطابق او په نهايتے معقول طريقے باندے قائم دے. دين په فرائضو او واجباتو کښے درجے قائمے کړے دي او څوک چه د دغه درجو پوره پوره لحاظ ساتي نو د اللّٰه په نزد به د هغهٔ عبادت په همغه درجه کښے مقبول وي په حديث کښے همدے د پاره ويلے شوي دي چه روژه نه نيونکو نن اجر او ثواب يوړو' حالانکه هغوئ يو اهم عبادت پريښے وو ليکن د هغے نه د زيات اهم عبادت د خاطره په دے وجه د ثواب هم زيات مستحق شول.

باب۱۱۶: فَضْلِ مَنْ حَمَلَ مَتَاعَ صَاحِبِهٖ فِي السَّفَرِ.

۱۵۲: حَدَّثَنِيُ اِسْحَاقُ بُنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا عَبُدُ الرَّزَّاقِ عَنُ مَعْمَرٍ عَنُ هَمَّامٍ عَنُ اَبِيُ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كُلُّ سُلَامٰى عَلَيْهِ صَدَقَةٌ كُلَّ يَوْمٍ يُعِيْنُ الرَّجُلَ فِيُ دَابَّتِهٖ يُحَامِلُهُ صَدَقَةٌ وَالْكَلِمَةُ وَ كُلُّ خُطُوَةٍ يَمْشِيْهَا اِلَى الصَّلٰوةِ صَدَقَةٌ وَدَلُّ الطَّرِيْقِ صَدَقَةٌ.

باب۱۱۶: سفر کښې د خپل ملګري ذ سامان اوچتولو ذ برتری بیان.

۱۵۲: اسحاق بن نصر. عبدالرزاق. معمر. همام. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي. حضورؐ اوفرمائیل ذ انسان په هر هر جوړ یوه صدقه روزانه واجب کیږي که څوک د چا سورلۍ کښې مدد اوکړي' هغه سور کړي. یا ذ هغهٔ اسباب په هغې کیږدي نو دا هم صدقه ده. او چا سره ښهٔ خبره کول هم صدقه ده. او هر قدم چه ذ نمانځه ذ پاره اخستې شي. هغه هم صدقه ده. او یو مسافر ته لار ښودل دا ټول د صدقې قسمونه دي.

باب۱۱۷: فَضْلِ رِبَاطِ يَوْمٍ فِيُ سَبِيُلِ اللّٰهِ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اصْبِرُوْا اِلٰى اٰخِرِ الْاٰيَةِ.

۱۵۳: حَدَّثَنَا عَبُدُ اللّٰهِ بُنُ مُنِيْرٍ سَمِعَ اَبَا النَّضْرِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بُنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنُ اَبِيُ حَازِمٍ عَنُ سَهْلِ بُنِ سَعْدِ السَّاعِدِيِّ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ رِبَاطُ يَوْمٍ فِي سَبِيْلِ اللّٰهِ خَيْرٌ مِّنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيْهَا وَ مَوْضِعُ سَوْطِ اَحَدِكُمْ مِّنُ الْجَنَّةِ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيْهَا وَالرَّوْحَةُ يَرُوْحُهَا الْعَبْدُ فِيُ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَوِ الْغَدْوَةُ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا عَلَيْهَا.

باب۱۱۷: د اللّٰه په لار کښې یوه ورځ د نګرانۍ کولو فضیلت. اللّٰه پاک فرمائي اے مسلمانانو صبر کوئ او نوروته د صبر تلقین کوئ او نګهداشت کوئ. ذ ربط معنٰی نګراني او نګهداشت کول دي.

۱۵۳: عبداللّٰه بن منیر. ابوالنضر. عبدالرحمٰن بن عبداللّٰه بن دینار. ابو حازم. سهل بن سعد ساعدي نه روایت کوي چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل د خدائے په لار کښې یوه ورځ پاسباني کول د تمامي دنیا او مافیها نه بهتر ده. او جنت کښې ستاسو (د وړوکے نه وړوکے مقام) چه په قدر د یوے کوړے وي' هغه ذ تمامي دنیا او مافیها نه بهتر دے. او ذ سحر' مابنام (یعني لږ) وخت کښې چه څوک د اللّٰه په لار کښې اوخي' هغه ذ ټولے دنیا او مافیها نه بهتر دے.

بـاب۱۱۸ : مَنْ غَزَا بِصَبِيٍّ لِلْخِدْمَةِ.

۱۵۴ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِأَبِي طَلْحَةَ الْتَمِسْ غُلَامًا مِنْ غِلْمَانِكُمْ يَخْدُمُنِي حَتَّى أَخْرُجَ إِلَى خَيْبَرَ فَخَرَجَ بِي أَبُو طَلْحَةَ مُرْدِفِيَّ وَ أَنَا غُلَامٌ رَاهَقْتُ الْحُلُمَ فَكُنْتُ أَخْدُمُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا نَزَلَ فَكُنْتُ أَسْمَعُهُ كَثِيرًا يَقُولُ اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُبِكَ مِنَ الْهَمِّ وَالْحُزْنِ وَالْعَجْزِ وَالْكَسَلِ وَالْبُخْلِ وَ الْجُبْنِ وَ ضَلَعِ الدَّيْنِ وَ غَلَبَةِ الرِّجَالِ ثُمَّ قَدِمْنَا خَيْبَرَ فَلَمَّا فَتَحَ اللَّهُ عَلَيْهِ الْحِصْنَ ذُكِرَ لَهُ جَمَالُ صَفِيَّةَ بِنْتِ حُيَيِّ ابْنِ أَخْطَبَ وَقَدْ قُتِلَ زَوْجُهَا وَ كَانَتْ عَرُوسًا فَاصْطَفَاهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِنَفْسِهِ فَخَرَجَ بِهَا حَتَّى بَلَغْنَا سَدَّا الصَّهْبَاءِ حَلَّتْ فَبَنٰى بِهَا ثُمَّ صَنَعَ حَيْسًا فِيْ نِطْعٍ صَغِيْرٍ ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اٰذِنْ مَنْ حَوْلَكَ فَكَانَتْ تِلْكَ وَلِيْمَةُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى صَفِيَّةَ ثُمَّ

باب۱۱۸ : بچے میدان جنګ ته د خدمت د پاره د بوتلو بیان.

۱۵۴ : قتیبه. یعقوب. عمرو. انس بن مالک نه روایت کوي رسول الله صلي الله علیه وسلم ابوطلحه ته اوفرمائیل' ته خپلو هلکانو کښے ځوک اوګوره چه څما کار کوي. چه زهٔ خیبر ته لاړ شم' نو زهٔ ابو طلحه خان سره سور بوتلم. زهٔ بلوغ ته قریب ووم. د رسول الله صلي الله علیه وسلم خدمت به م کولو. کوم وخت چه به کوزیدو ما بـه اکثر حضورؐ نـه اوریدل اَللّٰهُمَّ اِنّیْ اَعُوْذُبِکَ مِنَ الهَمِّ وَالحُزْنِ الخ (اے الله زهٔ ستا پناه غواړم د غم او رنج نه او عاجزئ او سستئ نه او بخل نه او نامردئ نه او د قرض د بوج نه او د خلقو د غلبے نه) دے نه پس مونږ خیبر ته لاړو' نو کوم وخت چه الله د خیبر قلعه د حضورؐ د پاره فتح کړه نو حضورؐ ته د صفیه بنت حي د ښائست ذکر اوکړے شو. د هغے خاوند دغے جنګ کښے قتل کړے شوے وو. او هغه تازه ناوے (دلهن) وه. نو هغه رسول الله صلي الله علیه وسلم خان د پاره خاص کړله. او هغه ئے خان سره بوتله' تردے چه کوم وخت مونږ مقام سدّ الصهباء ته اورسیدو' او هغه (د حیض نه) پاکه شوه نو هغے سره حضورؐ زفاف اوکړلو هغے نه پس حضورؐ د څرمنے وړوکي دسترخوان کښے حیس جوړ کړلو' او ماته ئے اوفرمائیل څومره خلق چه ستا خواوشا کښے وي تهول راوغواړه. بس دغه د بي بي صفیےؓ ولیمه وه. دے نه پس مونږ مدینے ته راورسیدو' حضرت انسؓ وائي. بیا ما رسول الله صلعم اولیدلو چه حضورؐ په صفیے خپله جُبه اچولے وه (کله چه به د

خَرَجْنَا اِلَى الْمَدِيْنَةِ قَالَ فَرَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحَوِّيْ لَهَا وَرَاءَهٗ بِعَبَاءَةٍ ثُمَّ يَجْلِسُ عِنْدَ بَعِيْرِهٖ فَيَضَعُ رُكْبَتَهٗ فَتَضَعُ صَفِيَّةُ رِجْلَهَا عَلٰى رُكْبَتِهٖ حَتّٰى تَرْكَبَ فَسِرْنَا حَتّٰى اِذَا اَشْرَفْنَا عَلَى الْمَدِيْنَةِ نَظَرَ اِلٰى اُحُدٍ فَقَالَ هٰذَا جَبَلٌ يُحِبُّنَا وَ نُحِبُّهٗ ثُمَّ نَظَرَ اِلَى الْمَدِيْنَةِ فَقَالَ اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اُحَرِّمُ مَا بَيْنَ لَابَتَيْهَا بِمِثْلِ مَا حَرَّمَ اِبْرَاهِيْمُ مَكَّةَ اَللّٰهُمَّ بَارِكْ لَهُمْ فِيْ مُدِّهِمْ وَ صَاعِهِمْ.

کوزیدو ختلو ضرورت پیښ شو نو) حضورؐ به خپل اوبښ سره کیناستلو، او خپله کونډئ به ئے اودرؤله. صفیےؓ به خپله پښه د حضورؐ په کونډئ کیښودله، او سوره به شوله بیا مونږ روان شو تردے چه مدینے ته رانزدے شو. نو حضورؐ احد طرف ته اوکتل اوورے فرمائیل دا غر مونږ سره مینه کوي او مونږ دۀ سره مینه کوو. بیا حضورؐ مدینے طرف ته اوکتل. اوورے فرمائیل اے اللّٰه زۀ ددے دواړو غریزے علاقے درمیاني مقام حرم ګرځوم. څنګه چه ابراهیمؑ مکه حرام ګرځولے ده. اے اللّٰه د مدینے والو مُداو صاع کښے برکت واچوے.

**ف**: زفاف: همبستري کول. حیس: هغه طعام چه دَ غوړو، قجورو او پنیر نه تیاریږي.

## باب ۱۱۹ : رُكُوْبِ الْبَحْرِ.

## باب ۱۱۹ : دریاب کښے د سورلئ کولو بیان.

**۱۵۵** : حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ يَحْيٰى عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيٰى ابْنِ حِبَّانَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ حَدَّثَتْنِيْ اُمُّ حَرَامٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَوْمًا فِيْ بَيْتِهَا فَاسْتَيْقَظَ وَهُوَ يَضْحَكُ قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا يُضْحِكُكَ قَالَ عَجِبْتُ مِنْ قَوْمٍ مِنْ اُمَّتِيْ يَرْكَبُوْنَ الْبَحْرَ كَالْمُلُوْكِ عَلَى الْاَسِرَّةِ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اُدْعُ اللّٰهَ اَنْ يَجْعَلَنِيْ مِنْهُمْ فَقَالَ اَنْتِ مَعَهُمْ ثُمَّ نَامَ فَاسْتَيْقَظَ وَهُوَ يَضْحَكُ فَقَالَ مِثْلَ ذٰلِكَ مَرَّتَيْنِ اَوْ ثَلٰثًا قُلْتُ يَا

**۱۵۵** : ابوالنعمان. حماد بن زید. یحيٰي. محمد بن یحيٰي بن حبان. انس بن مالکؓ نه روایت کوي. ماته اُم حرام بیان اوکه. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم یوه ورځ خما کور کښے قیلوله اوفرمائیله، بیا حضورؐ خندا سره بیدار شولو. نو اُم حرام عرض اوکۀ. یا رسول اللّٰهؐ تاسو ولے خاندئ. وے فرمائیل، زه د خپل اُمت یوه ډله خوب کښے لیدو سره خوشحاله شوم. هغوئ به په دریاب داسے سواره وي، لکه تخت نشین بادشاهان. ما عرض اوکه، یا رسول اللّٰه، اللّٰه نه ذعا او غواړئ، چه ما هم د هغوئ نه کړي. حضورؐ اوفرمائیل. تۀ د هغوئ نه ئے. دے نه پس حضورؐ اودۀ شولو. بیا خندا سره رابیدار شولو. او دغه شان دوه یا درے خله ئے اوفرمائیل. هغے عرض اوکه یا رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم. اللّٰه نه

رَسُوْلَ اللّٰهِ اُدْعُ اللّٰهَ اَنْ يَجْعَلَنِيْ مِنْهُمْ فَيَقُوْلُ اَنْتِ مِنَ الْاَوَّلِيْنَ فَتَزَوَّجَ بِهَا عُبَادَةُ بْنُ الصَّامِتِ فَخَرَجَ بِهَا اِلَى الْغَزْوِ فَلَمَّا رَجَعَتْ قُرِّبَتْ دَابَّةٌ لِتَرْكَبَهَا فَوَقَعَتْ فَانْدَقَّتْ عُنُقُهَا.

دعـا اوغـواړی چـه مـا د دوئ نـه كړي' حضورؐ ورتـه اوفرمائيل. ته د وړومبنونه ئے نو ام حرام عباده بن صامت سره نكاح اوكړو او هغه خان سره جهاد له بوتله. بيا چه هغه واپس شوه نو سورلئ باندے سوره كيدو په وخت راپريوته. ختې ئے مات شو. او مړه شوه.

**بـاب ١٢٠ : مَنِ اسْتَعَانَ بِالضُّعَفَاءِ وَالصَّالِحِيْنَ فِي الْحَرْبِ.** وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ سُفْيَانَ قَالَ قَالَ لِيْ قَيْصَرُ سَأَلْتُكَ اَشْرَافُ النَّاسِ اتَّبَعُوْهُ اَمْ ضُعَفَائُهُمْ فَزَعَمْتَ ضُعَفَائَهُمْ وَهُمْ اَتْبَاعُ الرُّسُلِ.

**بـاب ١٢٠ : جـنـگ كښـے د نيـكـو كـارو او كـمـزورو پـه ذريـعـه د مـدد غـوښتلو بيان.** حضرت ابن عباسؓ وائي. مـاتـه ابـوسفيان بيان اوكړ' هغهٔ وئيلے ماته قيـصـر اووے مـا تانه تپوس كړے وو' چه اميرانو خلقو د محمدؐ پيروي كړيده يا غريبانو. نو تا اووے غريبانو اوهم دا غريب خلق د رسولانو پيروي كوي.

**١٥٦ : حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ** بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ طَلْحَةَ عَنْ طَلْحَةَ عَنْ مُصْعَبِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ رَاٰى سَعْدٌ اِنَّ لَهُ فَضْلًا عَلٰى مَنْ دُوْنَهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلْ تُنْصَرُوْنَ وَ تُرْزَقُوْنَ اِلَّا بِضُعَفَائِكُمْ.

**١٥٦ :** سـلـيـمـان بـن حـرب. مـحمد بن طلحـه. طـلـحـه. مـصـعب بن سعد نه روايت كوي. هغه وائي يو خـلـے د سعد بن ابي وقاص په زړهٔ كښے خيال راغے' چه هغه تـه ذ هـغـه پـه ماتحت خلقو (كسب معاش كښے د هـغوئ نه د زيات كوشش كولو په وجه) فضيلت حاصل دے نـو حـضـورؐ اوفرمائيل' چه تاسوته د كمزور خلقو په وجه مدد حاصليږي' او رزق دركولے شي.

**١٥٧ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ** مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو سَمِعَ جَابِرًا عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَأْتِيْ زَمَانٌ يَغْزُوْ فِئَامٌ مِنَ النَّاسِ فَيُقَالُ فِيْكُمْ مَنْ صَحِبَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيُقَالُ نَعَمْ فَيُفْتَحُ عَلَيْهِ ثُمَّ يَأْتِيْ زَمَانٌ فَيُقَالُ فِيْكُمْ

**١٥٧ :** عـبـدالله بن محمد. سفيان. عمرو. جابر. ابـوسـعـيـد خـدري رسـول الـلّٰـه صـلي الله عليه وسلّم نه روايـت كـوي. حضورؐ اوفرمائيل يو داسے زمانه به راشي چـه خـلـق به جهاد كوي. نو دا به وئيلے شي چه آيا تاسو كښے څـوک داسے سړے شتـه. چه د رسول صلعم د صـحـبـت نه فيضياب شوے وي. جواب به ور كړے شي' او' نـو ذ هـغـه پـه ذريـعـه بـه دعـا غوښتلے شي او فتح به كيږي. بيـا بـه يـوه داسے زمانه راشي. تاسونه به پوښتنه

مَنْ صَحِبَ اَصْحَابَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيُقَالُ نَعَمْ فَيُفْتَحُ ثُمَّ يَأْتِيْ زَمَانٌ فَيُقَالُ فِيْكُمْ مَنْ صَحِبَ صَاحِبَ اَصْحٰبِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيُقَالُ نَعَمْ فَيُفْتَحُ.

کیږي چه ستاسو جماعت کښې داسې څوک شته. چه هغه د رسول اللّٰه صلعم دَ اصحابو د صحبت والو د صحبت نه فائده اوچته کړي وي د جواب به ورکړیشي او' موجود دي. د هغه په ذریعه به دعا غوښتلې شي او فتح به او کړي.

## بَـابُ ۱۲۱ : لَا يُـقَـالُ فُلَانٌ شَـهِـيْـدٌ.

قَالَ اَبُـوْ هُـرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّـى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَللّٰهُ اَعْلَمُ بِـمَـنْ يُّـجَاهِدُ فِيْ سَبِيْلِهٖ اَللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَنْ يُّكْلَمُ فِيْ سَبِيْلِهٖ.

باب ۱۲۱ : داسې دِ نه وائي چه فلانې شهید دې. حضرت ابوهریرهؓ د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کوي اللّٰه دَ هغه سړي نه ښهٔ واقف دې چه دَ هغه لار کښې جهاد کوي. اللّٰه د هغه نه ښه واقف دې چه دَ هغه لار کښې زخمي کیږي.

۱۵۸ : حَـدَّثَـنَـا قُتَيْبَةُ حَـدَّثَنَا يَـعْـقُـوْبُ بْـنُ عَبْـدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ حَـازِمٍ عَـنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدِ السَّاعِدِيِّ اَنَّ رَسُـوْلَ الـلّٰـهِ صَـلَّـى الـلّٰهُ عَلَيْهِ وَسَـلَّـمَ الْـتَـقَـى هُـوَ وَالْـمُشْرِكُـوْنَ فَاقْتَتَلُوْا فَلَمَّا مَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى الـلّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى عَسْكَرِهٖ وَ مَالَ الْاٰخَـرُوْنَ اِلٰـى عَسْـكَـرِهِـمْ وَ فِـيْ اَصْحَابِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَـلَّـمَ رَجُـلٌ لَا يَـدَعُ لَهُمْ شَاذَّةً وَّلَا فَـاذَّةً اِلَّا اتَّبَعَهَا يَضْرِبُهَا بِسَيْفِهٖ فَقَالَ مَا اَجْـزَاَ مِـنَّا الْيَوْمَ اَحَدٌ كَمَا اَجْزَاَ فُلَانٌ فَـقَـالَ رَسُـوْلُ الـلّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَـلَّـمَ اَمَـا اِنَّـهٗ مِـنْ اَهْلِ النَّارِ فَقَالَ رَجُـلٌ مِـنَ الْـقَوْمِ اَنَـا صَـاحِـبُـهٗ قَـالَ فَـخَـرَجَ مَـعَـهٗ كُلَّمَا وَقَفَ وَقَفَ مَعَهٗ وَ

۱۵۸ : قتیبه. یعقوب بن عبدالرحمٰن. ابو حازم. سهل بن سعد ساعدي نه روایت کوي. چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم سره او مشرکانو سره مقابله اوشوه او دواړو فریقو خپلو کښې جنګ اوکه. آخر رسول اللّٰه صلعم واپس خپل لښکر ته راغې. او هغوئ خپل لښکر ته واپس لاړل. د رسول په اصحابو کښې یو سړې وو چه د کافرو هیڅ تښتیدلې سړې به ئې نه پریښودلو' هغه پسې به ئې منډې وهلې او خپلې تورې سره به ئې قتلولو. سهل اووې نن خمونږ د طرف نه هیچا داسې سخت جنګ نه دې کړې. څنګه چه فلاني سړي کړیدې. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم ورته اوفرمائیل. آګاه شه هغه دوزخیانو نه دې. حاضرینو کښې یو کس اووې زهٔ به هغه سره یم چه د هغه به څه انجام کیږي' نو هغه ورسره وو کوم ځائې به چه هغه اودریدلو هلته به دې هم اودریدلو. او کله چه به هغهٔ

إِذَا اَسْرَعَ اَسْرَعَ مَعَهُ فَقَالَ فَجُرِحَ الرَّجُلَ جُرْحًا شَدِيْدًا فَاسْتَعْجَلَ الْمَوْتَ فَوَضَعَ نَصْلَ سَيْفِهِ بِالْاَرْضِ وَ ذُبَابَهُ بَيْنَ ثَدْيَيْهِ ثُمَّ تَحَامَلَ عَلٰى سَيْفِهِ فَقَتَلَ نَفْسَهُ فَخَرَجَ الرَّجُلُ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَشْهَدُ اَنَّكَ رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ وَمَا ذَاكَ قَالَ الرَّجُلُ الَّذِىْ ذَكَرْتَ اٰنِفًا اِنَّهُ مِنْ اَهْلِ النَّارِ فَاَعْظَمَ النَّاسُ ذٰلِكَ فَقُلْتُ اَنَا لَكُمْ بِهٖ فَخَرَجْتُ فِيْ طَلَبِهٖ ثُمَّ جُرِحَ جُرْحًا شَدِيْدًا فَاسْتَعْجَلَ الْمَوْتَ فَوَضَعَ نَصْلَ سَيْفِهٖ فِي الْاَرْضِ وَ ذُبَابَهُ بَيْنَ ثَدْيَيْهِ ثُمَّ تَحَامَلَ عَلَيْهِ فَقَتَلَ نَفْسَهُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَ ذٰلِكَ اِنَّ الرَّجُلَ لَيَعْمَلُ عَمَلَ اَهْلِ الْجَنَّةِ فِيْمَا يَبْدُوْ لِلنَّاسِ وَهُوَ فِيْ اَهْلِ النَّارِ وَ اِنَّ الرَّجُلَ لَيَعْمَلُ عَمَلَ اَهْلِ النَّارِ فِيْمَا يَبْدُوْا لِلنَّاسِ وَهُوَ مِنْ اَهْلِ الْجَنَّةِ.

منډې کړې نو دهٔ به ورسره منډې کړې. سهل وائي بيا هغه سړے سخت زخمي نو هغه مرګ کښې تادی اوکړه د خپلے تورے قبضه ئے په زمکه کيښودله او د هغې سر ئے د خپلو دوارو تيونو په مينځ کښې کيښودلو او په توره ورښکته شو او خپل خان ئے قتل کړو. بيا هغه دويم سړے رسول اللّه صلعم له راغے او وے وئيل چه زهٔ ګواهي کوم چه تاسو د خدائے رسول يئ. حضور ورته اوفرمائيل څهٔ چل اوشو، هغهٔ عرض اوکهٔ د چا نسبت کښې چه تاسو فرمائيلي وو چه دے د دوزخيانو نه دے او خلقو ته هغه ګرانه ښکاريده، نو ما اووے چه زهٔ به ستاسو اطمينان اوکړم، نو زهٔ دَ هغهٔ نګرانئ پسے اولګيدم. آخر هغه سړے سخت زخمي شو. هغه مرګ کښې تادي اوکړه او دَ خپلے تورے قبضه ئے په زمکه کيښوده، او دَ هغه تيره طرف ئے دَ خپلو تيونو (پستان) په مينځ کښې کيښودهٔ، او په خپله توره ورپريوتلو او خپل خان ئے خپله قتل کړلو. رسول صلعم اوفرمائيل يو سړے په ظاهره د جنتيانو کارونه کوي. حالانکه هغه آخر دوزخيانو کښې شي. او يو سړے ظاهر کښې د دوزخيانو کارونه کوي. حالانکه هغه آخر ته جنتيانو کښې شي.

بَاب ١٢٢ : التَّحْرِيْضِ عَلَى الرَّمْيِ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ اَعِدُّوْا لَهُمْ مَا اسْتَطَعْتُمْ مِنْ قُوَّةٍ وَمِنْ رِّبَاطِ الْخَيْلِ تُرْهِبُوْنَ بِهٖ عَدُوَّ اللّٰهِ وَ عَدُوَّكُمْ.

باب ١٢٢ : د تير اندازئ دَ شوق ورکولو بيان. او دَ اللّٰه تعالٰي قول، هغوئ دَ پاره چه څومره قوت او آسونه ستاسو دَ پاره ممکن وي حاصل کړئ هغې سره به تاسو د اللّٰه تعالٰي دشمن او خپل دشمن ويروئ.

١٥٩ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنِ

١٥٩ : عبداللّٰه بن مسلمه. حاتم بن

مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ اِسْمَاعِيْلَ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ اَبِيْ عُبَيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ سَلَمَةَ بْنَ الْاَكْوَعِ قَالَ مَرَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى نَفَرٍ مِنْ اَسْلَمَ يَنْتَضِلُوْنَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِرْمُوْا بَنِيْ اِسْمَاعِيْلَ فَاِنَّ اَبَاكُمْ كَانَ رَامِيًا اِرْمُوْا وَ اَنَا مَعَ بَنِيْ فُلَانٍ قَالَ فَاَمْسَكَ اَحَدُ الْفَرِيْقَيْنِ بِاَيْدِيْهِمْ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَالَكُمْ لَا تَرْمُوْنَ قَالُوْا كَيْفَ نَرْمِيْ وَ اَنْتَ مَعَهُمْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِرْمُوْا فَاَنَا مَعَكُمْ كُلِّكُمْ.

اسماعيل. يزيد بن ابو عبيد. سلمه بن اكوع نه روايت كوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم د قبيلۀ اسلم څنو خلقو طرف ته تير شولو، هغوئ د تير اندازئ مشق (پركټس) كولو. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو اے د اسمٰعيلؑ اولاده تير اندازي كوئ. ستاسو پلار اسمٰعيلؑ هم لوئے تير انداز وو، او زۀ دَ فلانو خلقو طرف ته يم. سلمه وائي چه دواړو ډلو كښے يوه ډله اودريده. رسول صلعم ورته اوفرمائيل اوس ولے تير اندازي نه كوئ. هغوئ عرض اوكۀ. مونږ څنګه تير اندازي اوكړو. چه تاسو دے خلقو سره يئ. حضورؐ ورته اوفرمائيل. تير اندازي كوئ. زۀ تاسو ټولو سره يم.

۱۶۰ ا : حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ الْغَسِيْلِ عَنْ حَمْزَةَ بْنِ اَبِيْ اُسَيْدٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ بَدْرٍ صَفَفْنَا لِقُرَيْشٍ وَ صَفُّوْلَنَا اِذَا اَكْثَبُوْكُمْ فَعَلَيْكُمْ بِالنَّبْلِ. قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ اَكْثَبُوْكُمْ يَعْنِيْ اَكْثَرُوْكُمْ.

۱۶۰ ا : ابو نعيم. عبدالرحمن بن غسيل. حمزه بن ابي اسيد د خپل پلار نه روايت كوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم د بدر په ورځ كوم وخت چه مونږ د بدر په ورځ دَ قريشو په مقابله كښے صفونه قائم كړل. او هغوئ زمونږ مقابله كښے صفونه قائم كړل. وے فرمائيل كوم وخت چه دغه خلق ستاسو قريب راشي نو تاسو غشي اولئ. ابو عبداللّٰه وائي د اكثبوكم معني دي اكثروكم (يعني په تاسو زياته حمله اوكړي).

## بَاب ۱۲۳ ا : اَللَّهْوِ بِالْحِرَابِ وَ نَحْوِهَا.

## بـاب ۱۲۳ ا : وسلو سره د لوبو كولو بيان.

۱۶۱ ا : حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنْ مَعْمَرٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنِ ابْنِ الْمُسَيِّبِ عَنْ اَبِيْ

۱۶۱ ا : ابراهيم بن موسي. هشام. معمر. زهري. ابن مسيب. ابوهريرهؓ نه روايت كوي. كوم وخت چه حبشيانو د حضور صلعم

هُرَيْرَةَ قَالَ بَيْنَا الْحَبَشَةُ يَلْعَبُوْنَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِحِرَابِهِمْ دَخَلَ عُمَرُ فَأَهْوٰى إِلَى الْحَصٰى فَحَصَبَهُمْ بِهَا فَقَالَ دَعْهُمْ يَا عُمَرُ وَ زَادَ عَلِيٌّ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ فِي الْمَسْجِدِ.

مخکښې خپلو جنګي وسلو سره لوبې (جنګي مشق) کولې. نو حضرت عمرؓ راغې، او هغوئ ئې په کنکر اوويشتل په دې حضورؐ اوفرمائيل. اې عمرؓ دوئ پريږده. عمرؓ علي، عبدالرزاق او معمر بيان اوکړ چه جمات کښې هغې خلقو (جنګي) لوبې کولې.

باب ۱۲۴: الْمِجَنِّ وَمَنْ يَتَتَرَّسُ بِتُرْسِ صَاحِبِهِ.

باب ۱۲۴: دَ ډهال استعمال او دَ بل ډهال استعمالول.

۱۶۲: حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ أَخْبَرَنَا الْأَوْزَاعِيُّ عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِيْ طَلْحَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَانَ أَبُوْ طَلْحَةَ يَتَتَرَّسُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِتُرْسٍ وَاحِدٍ وَ كَانَ أَبُوْ طَلْحَةَ حَسَنَ الرَّمْيِ فَكَانَ إِذَا رَمٰى تَشَرَّفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَنْظُرُ إِلٰى مَوْضِعِ نَبْلِهِ.

۱۶۲: احمد بن محمد. عبدالله. اوزاعي. اسحٰق بن عبدالله بن ابي طلحه. انس بن مالکؓ نه روايت کوي. حضرت طلحه، رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره دَ يو ډهال نه کار اخستلو[1]. او هغه تير اندازئ کښې ډير مړنې وو. هغه به چه غشې ويشتلو. نو رسول الله صلي الله عليه وسلّم به سر مبارک اوچت که. دَ هغه دَ غشي غرځيدلو ځائې به ئې سهي کولو.

۱. په اصل کښې ابو طلحه رضي الله عنه ډير ښه تير انداز وو دې د پاره چه کله به هغه د جنګ په موقعه په دشمنانو باندې غشي ورؤل نو حضور اکرم صلي الله عليه وسلّم به په خپل ډهال سره د هغه حفاظت کولو چه هسې نه د يو طرف نه د دشمن کوم غشې دې زخمي نه کړي. همدا طرز عمل په حديث کښې بيان کړې شوې دې.

۱۶۳: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ أَبِيْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلٍ قَالَ لَمَّا كُسِرَتْ بَيْضَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى رَأْسِهِ وَ أُدْمِيَ وَجْهُهُ وَ كُسِرَتْ رُبَاعِيَّتُهُ وَ كَانَ عَلِيٌّ

۱۶۳: سعيد بن عفير. يعقوب بن عبدالرحمٰن. ابو حازم. سهل بن سعد نه روايت کوي. سلوم وخت چه دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم په سر خود (جنګي ټوپئ) ماته شوه او دَ حضورؐ مخ مبارک په وينو رنګ شو. او دَ حضورؐ مخکښې غاښ مات شولو. نو حضرت عليؓ به

يَخْتَلِفُ بِالْمَاءِ فِي الْمِجَنِّ وَ كَانَتْ فَاطِمَةُ تَغْسِلُهُ فَلَمَّا رَأَتِ الدَّمَ يَزِيدُ عَلَى الْمَاءِ كَثْرَةً عَمِدَتْ إِلَى حَصِيرٍ فَأَحْرَقَتْهَا وَ أَلْصَقَتْهَا عَلَى جُرْحِهِ فَرَقَأَ الدَّمُ.

په ډهال کښې اوبه راوړلې او بي بي فاطمې به هغه وينزلو. هر کله چه هغوئ ته معلومه شوه چه اوبو سره وينه زياتيږي نو هغوئ يو پوزکے (تکوره) واخستو هغه ئې اوسوزولو بيائې هغه د حضور په زخم اولګولو. نو وينه بنده شوه.

۱۶۴: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ مَالِكِ بْنِ أَوْسِ بْنِ الْحَدَثَانِ عَنْ عُمَرَ قَالَ كَانَتْ أَمْوَالُ بَنِي النَّضِيرِ مِمَّا أَفَاءَ اللّٰهُ عَلَى رَسُولِهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِمَّا لَمْ يُوجِفِ الْمُسْلِمُونَ عَلَيْهِ بِخَيْلٍ وَلَا رِكَابٍ فَكَانَتْ لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَاصَّةً وَّ كَانَ يُنْفِقُ عَلَى أَهْلِهِ نَفَقَةَ سَنَةٍ ثُمَّ يَجْعَلُ مَا بَقِيَ فِي السِّلَاحِ وَالْكُرَاعِ عُدَّةً فِي سَبِيلِ اللّٰهِ.

۱۶۴: علي بن عبدالله. سفيان. عمرو. زهري. مالک بن اوس بن حدثان. عمر نه روايت کوي. د بني نضير دولت د داسے قسم وو چه الله خپل رسول ته بے ډزه ډوزه ورکړے وو. دديے حاصلولو د پاره مسلمانانو څه آسونه نه وو زغلولي. او جنګ ئې نه وو کړے. نو هغه مال رسول الله صلي الله عليه وسلم واخستو، او د هغے نه د يو کال خرڅ ئے خپل کوروالو ته ورکولو. هغے نه پس چه به څه باقي پاتے شو. هغه به ئې په وسله او آسونو د الله په لار کښې جهاد د پاره خرڅ کولو.

۱۶۵: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ سُفْيَانَ قَالَ حَدَّثَنِي سَعْدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ شَدَّادٍ عَنْ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ سَعْدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ قَالَ حَدَّثَنِي عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ شَدَّادٍ قَالَ سَمِعْتُ عَلِيًّا يَقُولُ مَا رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُفَدِّي رَجُلًا بَعْدَ سَعْدٍ سَمِعْتُهُ يَقُولُ اِرْمِ فِدَاكَ

۱۶۵: مسدد. يحيي. سفيان. سعد بن ابراهيم. عبدالله بن شداد. حضرت علي نه روايت کوي. ما رسول الله صلي الله عليه وسلم نه دے ليدلے چه د سعد بن وقاص نه سوا د بل چا د پاره ئې د خپل مور پلار د قربانولو فرمائيلي وي. او د سعد په نسبت البته د حضور صلي الله عليه وسلم نه ما اوريدلي دي. چه تير چلوه خما مور پلار دے په تا

اَبِیْ وَ اُمِّیْ.

**باب ١٢٥ : الدَّرَقِ.**

**١٦٦ : حَدَّثَنَا** اِسْمَاعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِیْ ابْنُ وَهْبٍ قَالَ عَمْرٌو حَدَّثَنِیْ اَبُو الْاَسْوَدِ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ دَخَلَ عَلَیَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ عِنْدِیْ جَارِيَتَانِ تُغَنِّيَانِ بِغِنَاءِ بُعَاثَ فَاضْطَجَعَ عَلَى الْفِرَاشِ وَ حَوَّلَ وَجْهَهٗ فَدَخَلَ اَبُوْ بَكْرٍ فَانْتَهَرَنِیْ وَ قَالَ مِزْمَارَةُ الشَّيْطَانِ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَقْبَلَ عَلَيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ دَعْهُمَا فَلَمَّا عَمِلَ غَمَزْتُهُمَا فَخَرَجَتَا فَقَالَتْ وَ كَانَ يَوْمُ عِيْدٍ يَلْعَبُ السُّوْدَانُ بِالدَّرَقِ وَالْحِرَابِ فَاِمَّا سَاَلْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اِمَّا قَالَ تَشْتَهِيْنَ اَنْ تَنْظُرِیْ فَقُلْتُ نَعَمْ فَاَقَامَنِیْ وَرَاءَهٗ خَدِّیْ عَلٰى خَدِّهٖ وَ يَقُوْلُ دُوْنَكُمْ بَنِیْ اَرْفَدَةَ حَتّٰى اِذَا مَلِلْتُ قَالَ حَسْبُكِ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ فَاذْهَبِیْ قَالَ اَحْمَدُ عَنِ ابْنِ وَهْبٍ فَلَمَّا غَفَلَ.

**باب ١٢٦ : اَلْحَمَائِلِ وَ تَعْلِيْقِ السَّيْفِ بِالْعُنُقِ.**

**١٦٧ : حَدَّثَنَا** سُلَيْمَانُ بْنُ

قربان وي.

**باب ١٢٥ : ډهال وغیره سره د لوبو کولو بیان**

**١٦٦ :** اسماعیل. ابن وهب. عمرو ابوالاسود. بی بی عائشہؓ نه روایت کوي. چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم ما پلو تشریف راوړلو. هغه وخت ما سره دوه جینکۍ وې چه د جنګ بعاث د واقعاتو سندرې ئې ونیلې. حضور صلعم په بستره ملاست وو او خپل مخ مبارک ئې اوګرځولو. بیا ابوبکرؓ راغے او هغه ماله زور نه راکړه اووې ونیل د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم مخکښې د شیطان باجې څۀ مطلب دے. نو حضورؐ هغه ته متوجه شو اووې فرمائیل' دوی پریږده. اووې فرمائیل کوم وخت چه حضورؐ یو بل کار کښې مشغول شو نو ما هغې دواړو ته اشاره اوکړه. هغوی اووتلې بی بی عائشہؓ وائي' د اختر په ورځ حبشیانو چاړه او ډهال سره لوبې کولې. نو ما حضورؐ ته خواست اوکه او یا حضورؐ ماته اوفرمائیل آیا ته لیدل غواړې. ما عرض اوکۀ' جي' نو حضورؐ زۀ خپلې شاته اودرولم' څما مخ د حضورؐ مخ ته قریب وو او حضورؐ به فرمائیل ''دونکم بنی ارفدة'' تردې چه زۀ ستړې شوم' نو حضورؐ اوفرمائیل بس ما اووې جي' اودې نه پس حضورؐ اوفرمائیل ښه دۀ اوس څه. احمد د ابن وهب نه ''فلما غفل'' نقل کړیدے.

**باب ١٢٦ :** توره غاړه کښې د اچولو بیان.

**١٦٧ :** سلیمان بن حرب. حماد بن زید. ثابت

حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ اَنَسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَحْسَنَ النَّاسِ وَاَشْجَعَ النَّاسِ وَلَقَدْ فُزِّعَ اَهْلُ الْمَدِيْنَةِ لَيْلَةً فَخَرَجُوْا نَحْوَ الصَّوْتِ فَاسْتَقْبَلَهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدِ اسْتَبْرَأَ الْخَبَرَ وَهُوَ عَلٰى فَرَسٍ لِّاَبِيْ طَلْحَةَ عُرْيٍ وَ فِيْ عُنُقِهِ السَّيْفُ وَهُوَ يَقُوْلُ لَمْ تُرَاعُوْا لَمْ تُرَاعُوْا ثُمَّ قَالَ وَجَدْنَاهُ بَحْرًا اَوْ قَالَ اِنَّهُ لَبَحْرٌ.

حضرت انسؓ نه روایت کوي. رسول الله صلي الله علیه وسلم دَ ټولونه زیات خوبصورت (ښکلے) او دَ ټولونه زیات بهادر وو. یو ځل ے مدینے والوته څهٔ خوف پیدا شو، او دَ یو طرف نه څهٔ آواز راغے نو خلق هغے آواز پسے لاړل، حضور صلعم د ټولونه مخکښے تشریف یوړلو. او ددے واقعے تحقیق ئے اوکه، حضورؐ د ابو طلحه په اَس په شاتوره (بغیر زین نه) سور شولو، او غاړه کښے ئے توره وه، او حضورؐ به فرمائیل مهٔ ویریږئ هیڅ خوف نشته دے نه پس ئے اوفرمائیل البته ما دا اَس دَ دریاب په شان تیز رفتار بیامند.

## بـــــاب۱۲۷ : حِـــلْيَةُ السُّيُوْفِ.

## باب۱۲۷ : په توره د سرو سپینو د کار کولو بیان.

۱۶۸ : حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنِيْ الْاَوْزَاعِيُّ قَالَ سَمِعْتُ سُلَيْمَانَ بْنَ حَبِيْبٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا اُمَامَةَ يَقُوْلُ لَقَدْ فَتَحَ الْفُتُوْحَ قَوْمٌ مَّا كَانَتْ حُلْيَةُ سُيُوْفِهِمُ الذَّهَبَ وَلَا الْفِضَّةَ اِنَّمَا كَانَتْ حُلْيَتُهُمُ الْعَلَابِيَّ وَالْاٰنُكَ وَالْحَدِيْدَ.

۱۶۸ : احمد بن محمد. عبدالله. اوزاعي. سلیمان بن حبیب نه روایت کوي. ما د ابو امامه نه دا واوریدل بیشکه دا ټول فتوحات هغه خلقو کړیدے چه دَ هغوئ په تورو نهٔ د سرو زرو کار شوے وو، او نه د سپینو زرو دَ هغوئ په تورو د خرمنے، او دَ سکے او دَ اوسپنے کار شوے وو.

## باب۱۲۸ : مَنْ عَلَّقَ سَيْفَهُ بِالشَّجَرِ فِي السَّفَرِ عِنْدَ الْقَائِلَةِ.

## باب۱۲۸ : سفر کښے د قیلوله کولو په وخت توره اُونه کښے دَ آویزاندولو بیان.

۱۶۹ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ سِنَانُ بْنُ اَبِيْ سِنَانٍ الدُّؤَلِيُّ وَ اَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ

۱۶۹ : ابوالیمان. شعیب. زهري. سنان بن ابي سنان دولي. او ابو سلمه جابر بن عبدالله نه روایت کوي، چه هغهٔ د رسول الله صلي الله علیه وسلّم سره جهاد دَ پاره دَ نجد سفر اوکه، کوم وخت چه حضور

الرَّحْمٰنِ اَنَّ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ اَخْبَرَ اَنَّهُ غَزَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِبَلَ نَجْدٍ فَلَمَّا قَفَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَفَلَ مَعَهُ فَاَدْرَكَتْهُمُ الْقَائِلَةُ فِيْ وَادٍ كَثِيْرِ الْعِضَاهِ فَنَزَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ تَفَرَّقَ النَّاسُ يَسْتَظِلُّوْنَ بِالشَّجَرِ فَنَزَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَحْتَ سَمُرَةٍ وَعَلَّقَ بِهَا سَيْفَهُ وَ نِمْنَا نَوْمَةً فَاِذَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْعُوْنَا وَ اِذَا عِنْدَهُ اَعْرَابِيٌّ فَقَالَ اِنَّ هٰذَا اخْتَرَطَ عَلَيَّ سَيْفِيْ وَ اَنَا نَائِمٌ فَاسْتَيْقَظْتُ وَهُوَ فِيْ يَدِهٖ صَلْتًا فَقَالَ مَنْ يَّمْنَعُكَ مِنِّيْ فَقُلْتُ اللّٰهُ ثَلٰثًا وَّلَمْ يُعَاقِبْهُ وَ جَلَسَ.

صلي اللّٰه عليه وسلّم د هغه خانې نه واپس شولو. نو هغه هم حضورؐ سره واپس شولو. دې خلقو غرمه يو داسې خنګل كښې تيره كړه چه هغې كښې كنړې او سايه دارې اونې وې. كوم وخت چه كوز شولو نو ټول خلق دَ اونو لاندې سوري كښې خوارهٔ شول. چه ستوماني ئې لرې شي رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم د يوې اونې لاندې كيناستلو او خپله توره ئې هغې كښې اويزانده كړه، مونږ خلق لږ ساعت اودهٔ شوي وو چه رسول اللّٰه صلعم مونږ ته آواز اوكه. نو څه ګوري چه يو اعرابي (باندېسې) حضورؐ سره ناست دې. حضورؐ اوفرمائيل دې سړي په ما توره راوښكلې وه. زهٔ اودهٔ ووم بيا زهٔ راويښ شوم. بربنډه توره د هغه په لاس كښې وه. هغه اووې. اوس به تا مانه څوك خلاصوي، ما درې ځله اللّٰه اللّٰه وې حضورؐ دَ هغه نه بدله وانه خستله. او هغه كيناست. او موسٰي بن اسمٰعيل بن سعد نه. هغه زهري نه راوي دې چه هغه توره تيكي كښې كينبوده. او ناست دې ليكن حضورؐ د هغه نه بدل وانخست.

## بَاب ۱۲۹ : لُبْسِ الْبَيْضَةِ.

## باب ۱۲۹ : دَ خود په سرولو بيان.

۱۷۰ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ سَهْلٍ اَنَّهُ سُئِلَ عَنْ جُرْحِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ اُحُدٍ فَقَالَ جُرِحَ وَجْهُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ كُسِرَتْ رُبَاعِيَّتُهُ وَ هُشِمَتِ الْبَيْضَةُ عَلٰى رَاْسِهٖ فَكَانَتْ فَاطِمَةُ (عَلَيْهَا

۱۷۰ : عبداللّٰه بن مسلمه. عبدالعزيز بن ابي حازم. ابي حازم. سهل نه روايت كوي. د هغه نه د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم د زخم متعلق چه دَ اُحد په ورځ ورته لګيدلې وو تپوس اوشو نو هغهٔ اووې د رسول اللّٰه صلعم مخ مبارك زخمي شوې وو او دَ حضورؐ مخكنې غاښ مات شوې وو، او خود دَ حضورؐ په سر مبارك مات كړې شوې وو. بي بي فاطمهؓ به وينه وينزله او حضرت علي به پرې اوبهٔ اچولې. بي بي فاطمهؓ ته چه

السَّلَامُ) تَغْسِلُ الدَّمَ وَ عَلِيٌّ يُمْسِكُ فَلَمَّا رَأَتْ اَنَّ الدَّمَ لَا يَزِيْدُ اِلَّا كَثْرَةً اَخَذَتْ حَصِيْرًا فَاَحْرَقَتْهُ حَتّٰي صَارَ رَمَادًا ثُمَّ اَلْزَقَتْ فَاسْتَمْسَكَ الدَّمُ.

پته اولګیده، چه وینه زیاتیږي نو هغې د بوزي یوه ټکړه واخسته هغه ئې اوسوزوله ایره ئې کړه او د حضورؐ په زخم ئې واچوله نو هغې سره د حضورؐ وینه مبارکه اودریدله.

## بَابٌ ۱۳۰ : مَنْ لَمْ يَرَ كَسْرَ السِّلَاحِ عِنْدَ الْمَوْتِ.

## باب ۱۳۰ : د مرګ په وخت د وسلې د ماتولو د نه جائز کیدو بیان[1].

۱. د عربو د جاهلیت دا دستور وو چه کله به د یوې قبیلې سردار یا د قبیلې څوک بهادر مړ شو نو د هغه وسلې به ماتې کړې شوې، دابه ددې خبرې علامت ګنړلې کیدو چه اوس په حقیقي معنو کښې ددې وسلو څوک اوچتونکې باقي پاتې نشو. ظاهره ده چه په اسلام کښې ددې قسمه طرز عمل د پاره د جواز هیڅ وجه نیشته.

۱۷۱ : حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَبَّاسٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ اَبِيْ اِسْحَاقَ عَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ قَالَ مَا تَرَكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَّا سِلَاحَهُ وَ بَغْلَةً وَ اَرْضًا جَعَلَهَا صَدَقَةً.

۱۷۱ : عمرو بن عباس. عبدالرحمٰن. سفیان. ابو اسحاق. عمرو بن حارثؓ نه روایت کوي، رسول الله صلي الله علیه وسلم د خپل وفات نه پس هیڅ نه وو پریښې، سوا د خپلو وسلونه او د یو سپین قچر نه، او د یوې زمکې نه چه هغه حضورؐ صدقه کړله.

## بَابٌ ۱۳۱ : تَفَرُّقُ النَّاسِ عَنِ الْاِمَامِ عِنْدَ الْقَائِلَةِ وَالْاِسْتِظْلَالِ.

## باب ۱۳۱ : د قیلوله کولو په وخت د خلقو د امام نه جدا کیدو سره د اونې لاندې د ملاستې بیان.

۱۷۲ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَنَا سِنَانُ بْنُ اَبِيْ سِنَانٍ وَ اَبُوْ سَلَمَةَ اَنَّ جَابِرًا اَخْبَرَهُمَا حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ اَخْبَرَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ سِنَانِ بْنِ اَبِيْ سِنَانٍ الدُّؤَلِيِّ اَنَّ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ اَخْبَرَهُ اَنَّهُ غَزَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَدْرَكَتْهُمُ الْقَائِلَةُ فِيْ

۱۷۲ : ابوالیمان. شعیب. زهري. سنان بن ابي سنان. او ابو سلمه. جابر (دوئم سند) موسیٰ بن اسمٰعیل. ابراهیم بن سعد. ابن شهاب. سنان بن ابي سنان دولي. جابر بن عبدالله نه روایت کوي، هغهٔ یو خلې د رسول الله صلي الله علیه وسلم ملګرتیا کښې جهاد او کړه، کوم وخت چه د هغې ځائې نه واپس شو نو غرمه پرې یو داسې میدان کښې راغله چه هلته ازغنې ونې کثرت سره موجود وې. ټول خلق د اونو د سوري لاندې خوارهٔ شولو. او حضورؐ هم د یوې اونې لاندې

وَادٍ كَثِيرِ الْعِضَاهِ فَتَفَرَّقَ النَّاسُ فِي الْعِضَاهِ يَسْتَظِلُّونَ فِي الشَّجَرِ فَنَزَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَحْتَ شَجَرَةٍ فَعَلَّقَ بِهَا سَيْفَهُ ثُمَّ نَامَ فَاسْتَيْقَظَ وَعِنْدَهُ رَجُلٌ وَهُوَ لَا يَشْعُرُ بِهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ هٰذَا اخْتَرَطَ سَيْفِيْ فَقَالَ مَنْ يَمْنَعُكَ مِنِّيْ قُلْتُ اللّٰهُ فَشَامَ السَّيْفَ فَهَا هُوَ ذَا جَالِسٌ ثُمَّ لَمْ يُعَاقِبْهُ.

سوري ته راغے. او خپله توره نے هغے کښے آویزانده کړه چه آرام اوکړي، کوم وخت چه بیدار شو، نو یو سړے نے خان سره ناست اولید چه ذ هغه نه حضور واقف نه وو، حضورؐ مونږ ته ارشاد اوفرمائیلو چه دے سړي ماپسے خما توره راوښکلے وه، او وئیلے چه اوس به دِ مانه څوک خلاصوي، ما ورته اووے. اللّٰه تعالیٰ خما دِ حفاظت وعده کړیده هغه خما محافظ او بچاؤ کونکے موجود دے په دے خبره هغه توره اوغورځوله، اوس دا دے دلته ناست دے. بیا حضورؐ هغه له هیڅ سزا ورنه کړه.

بَابٌ ۱۳۲ : مَا قِيْلَ فِي الرِّمَاحِ. وَ يُذْكَرُ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جُعِلَ رِزْقِيْ تَحْتَ ظِلِّ رُمْحِيْ وَ جُعِلَ الذِّلَّةُ وَالصَّغَارُ عَلٰى مَنْ خَالَفَ اَمْرِيْ.

باب ۱۳۲ : ذ نیزه بازئ متعلق بیان ذ حضرت ابن عمرؓ مرفوع روایت دے چه حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل چما رزق خما د نیزے لاندے مقرر شویدے او څوک چه خما دِ حکم خلاف ورزي کوي، په هغهٔ ذلت او رسوائي مقرر شویده.

۱۷۳ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِي النَّضْرِ مَوْلٰى عُمَرَ بْنِ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَّافِعٍ مَوْلٰى اَبِيْ قَتَادَةَ الْاَنْصَارِيِّ عَنْ اَبِيْ قَتَادَةَ اَنَّهُ كَانَ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى اِذَا كَانَ بِبَعْضِ طَرِيْقِ مَكَّةَ تَخَلَّفَ مَعَ اَصْحَابٍ لَهُ مُحْرِمِيْنَ وَهُوَ غَيْرُ مُحْرِمٍ فَرَاٰى حِمَارًا وَحْشِيًّا فَاسْتَوٰى عَلٰى فَرَسِهٖ فَسَاَلَ اَصْحَابَهُ اَنْ يُّنَاوِلُوْهُ سَوْطَهُ فَاَبَوْا فَسَاَلَهُمْ رُمْحَهُ فَاَبَوْا

۱۷۳ : عبداللّٰه بن یوسف. مالک. ابوالنضر (د عمر بن عبیداللّٰه آزاد کرده غلام) نافع (د ابو قتاده انصاري آزاد کرده غلام) ابو قتاده نه روایت کوي، هغه یو خل رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم سره حج ته لاړلو او کوم وخت چه ذ مکے لارے ته اورسیدل. نو ذ خپلو ملګرونه ورستو پاتے شو، داسے حالت کښے چه خپله غیر محرم وو، هغه چه یو ځنګلي خر (ګورخر) اولید، نو په خپل اس سور شولو. او ذ خپلو ملګرونه نے خپله کوړه اوغوښتله. خو هغوئ انکار اوکه. بیائے خپله نیزه اوغوښتله. بیاهم هغوئ انکار اوکه. بیا خپله د اَس نه راکوز شو، کوړه او نیزه ئے واخسته او په ځنګلي خر ئے

فَاَحَذَهُ ثُمَّ شَدَّ عَلَى الْحِمَارِ فَقَتَلَهُ فَاَكَلَ مِنْهُ بَعْضُ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاَبَى بَعْضٌ فَلَمَّا اَدْرَكُوا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَأَلُوْهُ عَنْ ذٰلِكَ فَقَالَ اِنَّمَا هِيَ طُعْمَةٌ اَطْعَمَكُمُوْهَا اللّٰهُ وَعَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِي قَتَادَةَ فِي الْحِمَارِ الْوَحْشِيِّ مِثْلَ حَدِيْثِ اَبِي النَّضْرِ قَالَ هَلْ مَعَكُمْ مِنْ لَحْمِهِ شَيْءٌ.

حمله او کړه هغه ئې قتل که چه هغه د حضورؐ بعضے ملګرو او خوړلو او بعضو انکار او که (چه نه ئې خوړلو) کوم وخت چه د دې واقعې اطلاع حضورؐ ته اوشوه او د ښکلي څر د غوښے خوړلو متعلق مسئله ترے اوپوښتے شوه نو حضور صلعم اوفرمائیل - دا خو یوه غذا وه چه الله تاسو له درکړه. زید بن ثابت - عطاء بن یسار نه د ښکلي څر متعلق په واسطه د ابو قتاده د ابو النضر د حدیث په مثل روایت کوي هغے کښے دا سے دي چه حضور صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل. آیا تاسو سره څه بچ شوے غوښه شته.

باب ۱۳۳۳ : مَا قِيْلَ فِي دِرْعِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْقَمِيْصِ فِي الْحَرْبِ، وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمَّا خَالِدٌ فَقَدِ احْتَبَسَ اَدْرَاعَهُ فِي سَبِيْلِ اللّٰهِ.

باب ۱۳۳۳ : د سرور عالم صلي الله علیه وسلم د زغرے او قمیص بیان، چه حضورؐ به جنګ کښے اچولو. د نبي اکرم صلي الله علیه وسلم قول دے خالد خپلے زغرے د خدائے په لار کښے وقف کړے دي.

۱۷۴ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي قُبَّةٍ اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَنْشُدُكَ عَهْدَكَ وَوَعْدَكَ اَللّٰهُمَّ اِنْ شِئْتَ لَمْ تُعْبَدْ بَعْدَ الْيَوْمِ فَاَخَذَ اَبُوْ بَكْرٍ بِيَدِهٖ فَقَالَ حَسْبُكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَقَدْ اَلْحَحْتَ عَلٰى رَبِّكَ وَهُوَ فِي الدِّرْعِ فَخَرَجَ وَهُوَ يَقُوْلُ سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَيُوَلُّوْنَ الدُّبُرَ بَلِ السَّاعَةُ مَوْعِدُهُمْ

۱۷۴ : محمد بن مثني. عبدالوهاب. خالد. عکرمه. ابن عباسؓ روایت کوي. رسول الله صلي الله علیه وسلم د بدر په ورخ چه یوه قبه کښے وو. ویے فرمائیل. اے الله، زه تا ته ستا د عهد او وعدے واسطه درکوم، اے الله که ته غواړے، نو د نن ورځ نه پس به ستا عبادت نه کیږي. نو ابوبکرؓ د حضورؐ لاس اونیولو او ونیلے یا رسول الله دومره قدرے دعا تاسو له کافي ده. بے شک تا خپل پروردګار ته ډیره منت زاري اوکړه. دې وخت حضور زغره اغوستے وه. نو حضور دې ونیلو سره بهر ته راووتلو: عنقریب دا جماعت به اوتښتولے شي، او دا خلق به شا کړي بلکه قیامت د دوی

وَالسَّاعَةُ اَدْهٰى وَاَمَرُّ وَقَالَ وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا خَالِدٌ يَوْمَ بَدْرٍ.

وعده ده. او قیامت ډیر سخت او تریخ څیز دے وهب اووے مونږ ته خالد د یوم بدر لفظ بیان کړلو.

۱۷۵ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنِ الْاَسْوَدِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ تُوُفِّيَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَدِرْعُهُ مَرْهُوْنَةٌ عِنْدَ يَهُوْدِيٍّ بِثَلٰثِيْنَ صَاعًا مِنْ شَعِيْرٍ وَقَالَ يَعْلٰى حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ دِرْعٌ مِنْ حَدِيْدٍ وَقَالَ مُعَلّٰى حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ وَقَالَ رَهَنَهُ دِرْعًا مِنْ حَدِيْدٍ.

۱۷۵ : محمد بن کثیر - سفیان - اعمش - ابراهیم - اسود - بي بي عائشې نه روایت کوي چه رسول الله صلی الله علیه وسلم چه وفات شو نو هغه وخت د حضور زغره یو یهودي سره دیرش صاع اوربشو کښې ګانړه وه. اعمش وائي حضور صلعم خپله د اوسپنې زغره ګانړه کړې وه. او معلی اووے حدثنا عبدالواحد حدثنا الاعمش وقال رهنه درعا من حديد.

۱۷۶ : حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا ابْنُ طَاوُسٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَثَلُ الْبَخِيْلِ وَالْمُتَصَدِّقِ مَثَلُ رَجُلَيْنِ عَلَيْهِمَا جُبَّتَانِ مِنْ حَدِيْدٍ قَدِ اضْطُرَّتْ اَيْدِيْهِمَا اِلٰى تَرَاقِيْهِمَا فَكُلَّمَا هَمَّ الْمُتَصَدِّقُ بِصَدَقَتِهِ اتَّسَعَتْ عَلَيْهِ حَتّٰى تُعَفِّيَ اَثَرَهُ وَكُلَّمَا هَمَّ الْبَخِيْلُ بِالصَّدَقَةِ انْقَبَضَتْ كُلُّ حَلْقَةٍ اِلٰى صَاحِبَتِهَا وَتَقَلَّصَتْ عَلَيْهِ وَانْضَمَّتْ يَدَاهُ اِلٰى تَرَاقِيْهِ فَسَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ فَيَجْهَدُ اَنْ يُوَسِّعَهَا فَلَا تَتَّسِعُ.

۱۷۶ : موسی بن اسماعیل - وهیب - ابن طاوس - د طاوس پلار - ابو هریره نه روایت کوي حضور اوفرمائیل د بخیل او سخي مثال د هغې دوو سړو دے چه د هغوی په بدن د اوسپنې دوه تنګې دوه جبې وي. چه هغې سره د هغوی لاس کردن طرف ته رابنکلي شوي وي. بیا هر کله چه سخي د صدقې ورکولو اراده اوکړي نو هغه جبّه د هغه په جسم خوریږي تردے چه د هغه د جسم نه لاندے زانګي لږ. او هر کله چه بخیل د صدقې ورکولو اراده اوکړي نو د هغه د جبّې هره کړۍ بیلے کړی سره جخته کیږي او د هغه په جسم راغنډه شي او د هغه لاسونه د هغه کردن سره یو ځائے شي. بیا هغه د حضور نه دا واوریدل چه هغه د هغې د خورولو کوشش کوي خو د هغه لاسونه کشاده کیږي نه.

۱. مطلب دادے چه د هغهٔ په ګناهونو باندې پرده اچوي خرنګت چه تر زمکې پورې زورند لباس په زمکه باندې د قدم وغیره نښې ورانوي. همدغه شان د سخي سخاوت هم د هغه عیبونه متاوئي. لیکن د هغهٔ په مقابله کښې بُخل تړولے بدئ راخرګندوي او سړے ذلیله او رُسوا کوي.

بَاب ۱۳۴: الْجُبَّةِ فِي السَّفَرِ وَالْحَرْبِ.

باب ۱۳۴: سفر او جنګ کښې دَ جُبه آغوستلو بیان.

۱۷۷: حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ اِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ اَبِي الضُّحٰى مُسْلِمٍ هُوَ ابْنُ صَبِيحٍ عَنْ مَسْرُوقٍ قَالَ حَدَّثَنِي الْمُغِيرَةُ بْنُ شُعْبَةَ قَالَ انْطَلَقَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِحَاجَتِهٖ ثُمَّ اَقْبَلَ فَلَقِيْتُهٗ بِمَاءٍ وَ عَلَيْهِ جُبَّةٌ شَامِيَّةٌ فَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ وَ غَسَلَ وَجْهَهٗ فَذَهَبَ يُخْرِجُ يَدَيْهِ مِنْ كُمَّيْهِ فَكَانَا ضَيِّقَيْنِ فَاَخْرَجَهُمَا مِنْ تَحْتُ فَغَسَلَهُمَا وَ مَسَحَ بِرَأْسِهٖ وَ خُفَّيْهِ.

۱۷۷: موسٰي بن اسمٰعيل. عبدالواحد. اعمش. ابو الضحٰي مسلم بن صبيح. مسروق. حضرت مغيره بن شعبه نه روايت كوي. چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم قضائے حاجت دَ پاره يو ورخ بهر تشريف يوړلو. كوم وخت چه حضورؐ واپس شولو نو ما حضورؐ له مخې ته اوبه يوړلے حضورؐ اودس اوكه. اودغه وخت د حضورؐ په جسم مبارك يوه شامي جُبه وه. حضورؐ خوله كنګال كړه پوزه كښې ئے اوبه واچولے او خپل مخ ئے اووينځلو. او دواړه لاسونه ئے د خپلو لستونړو نه اوبښكل شروع كړل. خو هغه تنګ وو نو حضورؐ هغه د دننه ئے راوبښكل او هغه ئے اووينځل، او د خپل سر مسح ئے اوكړله. او په موزو ئے هم مسح اوكړه.

بَاب ۱۳۵: الْحَرِيْرِ فِي الْحَرْبِ.

باب ۱۳۵: په جنګ كښې د ريښمينې كپړې آغوستلو بيان.

۱۷۸: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ الْمِقْدَامِ حَدَّثَنَا خَالِدٌ حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ عَنْ قَتَادَةَ اَنَّ اَنَسًا حَدَّثَهُمْ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَخَّصَ لِعَبْدِ الرَّحْمٰنِ ابْنِ عَوْفٍ وَالزُّبَيْرِ فِيْ قَمِيْصٍ مِّنْ حَرِيْرٍ مِنْ حِكَّةٍ كَانَتْ بِهِمَا.

۱۷۸: احمد بن مقدام. خالد. سعيد. حضرت انسؓ نه روايت كوي رسول الله صلي الله عليه وسلّم عبدالرحمٰن بن عوف ته او زبير ته دَ ريښمين قميص د اغُستلو اجازت وركړے وو. په وجه دَ خارښت چه دَ هغوئ په جسم كښې وو.

١٧٩ : حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ ح وَحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ اَنَّ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ وَالزُّبَيْرَ شَكَوَا اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْنِي الْقُمَّلَ فَاَرْخَصَ لَهُمَا فِي الْحَرِيْرِ فَرَاَيْتُهُ عَلَيْهِمَا فِيْ غَزْوَةٍ.

١٧٩ : ابوالوليد. همام. قتاده. انس. ح. دونم سند. محمد بن سنان. همام. قتاده حضرت انس نه روايت كوي چه عبدالرحمان بن عوف او زبير رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ته د سپږو (جوؤں) شكايت اوكه نو حضورؐ هغوئ ته د ريښمينے كپړے اغوستلو اجازت وركړو. نو يو جهاد كښے ما ذ هغوئ په جسم ريښمينه كپړه ليدلے وه۱.

۱. كه چرے ذ اوګدو او پلنو دواړه تارونه ئے د ريښمو وي نو داسے جامه اغوستل په هر صورت حرام دي او كه صرف د اوګدو تار ئے د ريښمو وي او ذ پلنو ئے نه وي نو داسے جامه استعمالول قطعًا حلال دي ليكن كه چرے صرف د پلنو تار ئے ريښمي وي نو صرف د جنګ په موقعه باندے ددے استعمال نه جائز ويلے شوي دي. اګرچه په جنګ كښے بعضو عالمانو د هر قسمه ريښمي جامے اجازت هم وركړے دے، په حديث شريف كښے د خارښ په وجے سره د اجازت ذكر دے، د طب په كتابونو كښے ددے تصريح ده چه ريښمي جامه خارښ د پاره فائده منه ده.

١٨٠ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ شُعْبَةَ اَخْبَرَنِيْ قَتَادَةُ اَنَّ اَنَسًا حَدَّثَهُمْ قَالَ رَخَّصَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِعَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ وَالزُّبَيْرِ بْنِ الْعَوَّامِ فِيْ حَرِيْرٍ.

١٨٠ : مسدد. يحيي. شعبه. قتاده. ذ حضرت انسؓ نه روايت كوي چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم عبدالرحمٰن بن عوف او زبير بن عوام له د ريښمينے كپړے ذ اغوستلو اجازت وركړے وو.

١٨١ : حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ سَمِعْتُ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ رَخَّصَ اَوْ رُخِّصَ لِحَكَّةٍ بِهِمَا.

١٨١ : محمد بن بشار. غندر. شعبه. قتاده ذ حضرت انسؓ نه روايت كوي. چه عبدالرحمٰن بن عوف او زبير ته د ريښمينے كپړے اغوستو اجازت ذ خارښت په وجه وركړے شو.

باب ١٣٦ : مَا يُذْكَرُ فِي السِّكِّيْنِ.

باب ١٣٦ : چړے سره د څه څيز د پريكولو، خوړلو بيان.

١٨٢ : حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ اِبْرَاهِيْمُ بْنُ

١٨٢ : عبدالعزيز بن عبداللّٰه. ابراهيم بن سعد. ابن شهاب. جعفر بن عمرو بن اُميه د خپل

سَعْدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ جَعْفَرِ بْنِ عَمْرِو بْنِ أُمَيَّةَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْكُلُ مِنْ كَتِفٍ يَحْتَزُّ مِنْهَا ثُمَّ دُعِيَ إِلَى الصَّلٰوةِ فَصَلَّى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ.

پلار نه روایت کوي. هغه اووې: ما رسول الله صلی الله علیه وسلم اولید چه حضور د پتون غوښه خوړله او هغه ئې پرې کوله. بیا حضور د مانځه د پاره اوغوښتلے شو نو حضور مونځ ورکړلو او (تازه) اودس ئې اونه که.

١٨٤٣: حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَزَادَ وَأَلْقَى السِّكِّينَ.

١٨٤٣: ابو الیمان، شعیب، د زهري نه دومره زیات نقل کړیدې چه حضور چاړه او غورځوله.

## بَابٌ ١٣٣٧: مَا قِيلَ فِي قِتَالِ الرُّومِ.

## باب ١٣٣٧: د جنګ روم بیان.

١٨٤٤: حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ بْنُ يَزِيدَ الدِّمَشْقِيُّ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَمْزَةَ قَالَ حَدَّثَنِي ثَوْرُ بْنُ يَزِيدَ عَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ أَنَّ عُمَيْرَ بْنَ الْأَسْوَدِ الْعَنْسِيَّ حَدَّثَهُ أَنَّهُ أَتَى عُبَادَةَ بْنَ الصَّامِتِ وَهُوَ نَازِلٌ فِي سَاحِلِ حِمْصَ وَهُوَ فِي بِنَاءٍ لَهُ وَمَعَهُ أُمُّ حَرَامٍ قَالَ عُمَيْرٌ فَحَدَّثَتْنَا أُمُّ حَرَامٍ أَنَّهَا سَمِعَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ أَوَّلُ جَيْشٍ مِنْ أُمَّتِي يَغْزُونَ الْبَحْرَ قَدْ أَوْجَبُوا قَالَتْ أُمُّ حَرَامٍ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَنَا فِيهِمْ قَالَ أَنْتِ فِيهِمْ ثُمَّ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوَّلُ جَيْشٍ مِنْ أُمَّتِي يَغْزُونَ مَدِينَةَ قَيْصَرَ مَغْفُورٌ لَهُمْ فَقُلْتُ أَنَا فِيهِمْ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ لَا.

١٨٤٤: اسحق بن یزید دمشقي، یحیی بن حمزه، ثور بن یزید، خالد بن معدان، عمیر ابن اسود عیني نه روایت کوي، چه هغه حضرت عباده بن صامت له ورغ هر کله چه هغه ساحل حمص کښې خپل یو محل کښې ا وو. او هغه سره خپله بي بي ام حرام هم وه. عمیر وائي مونږ ته ام حرام بیان اوکه. هغې د رسول الله صلي الله علیه وسلم نه دا واوریدل. خما امت کښې چه د ټولو نه مخکښې کوم وخلق دریاب کښې جنګ کوي. هغوی د پاره جنت واجب دې. ام حرام وئیلې. ما عرض اوکړ یا رسول الله چه زهٔ هم د هغوی نه شم. وې فرمائیل. تهٔ د هغوی نه ئې. ام حرام وئیلې. بیا رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل خما امت کښې د ټولو نه مخکښې چه کوم خلق به د قیصر پایتخت کښې جنګ کوي هغوی مغفور دي. ما عرض اوکه یا رسول الله آیا زهٔ ددې خلقو نه یم حضور اوفرمائیل: نه.

باب ۱۳۸ : قِتَالِ الْيَهُودِ.

باب ۱۳۸ : يهوديانو سره د جنګ کولو بيان.

۱۸۵ : حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْفَرْوِيُّ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ تُقَاتِلُونَ الْيَهُودَ حَتَّى يَخْتَبِئَ أَحَدُهُمْ وَرَاءَ الْحَجَرِ فَيَقُولُ يَا عَبْدَ اللَّهِ هَذَا يَهُودِيٌّ وَرَائِي فَاقْتُلْهُ.

۱۸۵ : اسحاق بن محمد فروي. مالک. نافع. عبدالله بن عمرؓ نه روايت کوي. رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل يو زمانه کښې به تاسو يهوديانو سره جنګ کوئ. او کله چه يو يهودي د يو کاڼړي په خوا کښې پټيږي نو هغه کاڼړے به وائي چه اے د خدائے بنده کوره يو يهودي زما شاته پټ دے راشه قتل ئے کړه.

۱۸۶ : حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ أَخْبَرَنَا جَرِيرٌ عَنْ عُمَارَةَ بْنِ الْقَعْقَاعِ عَنْ أَبِي زُرْعَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى تُقَاتِلُوا الْيَهُودَ حَتَّى يَقُولَ الْحَجَرُ وَرَاءَهُ الْيَهُودِيُّ يَا مُسْلِمُ هَذَا يَهُودِيٌّ وَرَائِي فَاقْتُلْهُ.

۱۸۶ : اسحٰق بن ابراهيم. جرير. عماره بن قعقاع. ابوزرعه. ابوهريرهؓ نبي صلي الله عليه وسلم نه روايت کوي: چه حضورؐ اوفرمائيل قيامت به نه راځي ترڅو چه تاسو به يهوديانو سره جنګ کوئ. حتي چه هغه کاڼړے چه د هغے لاندے يهودي پټ وي، وائي به چه اے مسلمانه، دا ځما شاته يهودي دے. دے قتل کړه.

باب ۱۳۹ : قِتَالِ التُّرْكِ.

باب ۱۳۹ : ترکو سره د جنګ کولو بيان ۱.

۱. د ترکو په باره کښې چه په احاديثو کښې کوم مذمت راغلے دے د هغې وجه داده چه هغه وخت دا قوم کافر وو او هغوئ سره جنګ يا د هغوئ په کوم حيثيت سره مذمت صرف په دے وجے سره وو چه هغوئ کافران وو. او دا هم حقيقت دے چه د هغوئ د کفر په زمانه کښې د هغوئ د لاسه مسلمانانو ته ډير نقصانونه رسيدلي دي. ليکن اوس دا قوم مسلمان دے، دے د پاره په احاديثو کښې چه د کومو امورو ذکر شوے دے هغه ددے دور په ترکو باندے يا د کله نه چه هغوئ مسلمانان شوي دي نشي نافذ کيدلے. حضرت علامه انور شاه صاحب کشميري ليکلي دي چه په دنيا کښې درے قومونه داسے دي کوم چه ټول په ټوله مسلمانان شوي دي. عرب، ترک او پښتانه ـ که چرې په دوئ کښې روستو چا تکفير کړے دے نو د اسلام راؤړلو نه پس ئے کړے دے.

۱۸۷ : حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ قَالَ سَمِعْتُ الْحَسَنَ

۱۸۷ : ابوالنعمان. جرير بن حازم. حسن بصري. عمرو بن تغلب نه روايت

يَقُوْلُ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ تَغْلِبَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ مِنْ اَشْرَاطِ السَّاعَةِ اَنْ تُقَاتِلُوْا قَوْمًا يَنْتَعِلُوْنَ نِعَالَ الشَّعْرِ وَ اِنَّ مِنْ اَشْرَاطِ السَّاعَةِ اَنْ تُقَاتِلُوْا قَوْمًا عِرَاضَ الْوُجُوْهِ كَاَنَّ وُجُوْهَهُمُ الْمَجَانُّ الْمُطْرَّقَةُ.

كوي، چه من جملـه د قيامت ذ علامتونو نه يو دادې، چه تاسو به داسې خلقو سره جنګ كوئ چه ذ ويښتو پنړې به پښو كوي او بله ذ قيامت ذ علامو نه داده چه تاسو به ذ داسې قوم سره جنګ كوي چه ذ هغوئ مخونه به داسې پلن وي لکه پلن ډهالونه.

۱۸۸ : حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ حَدَّثَنَا اَبِيْ عَنْ صَالِحٍ عَنِ الْاَعْرَجِ قَالَ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰى تُقَاتِلُوا التُّرْكَ صِغَارَ الْاَعْيُنِ حُمْرَ الْوُجُوْهِ ذُلْفَ الْاُنُوْفِ كَاَنَّ وُجُوْهَهُمُ الْمَجَانُّ الْمُطْرَّقَةُ وَلَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰى تُقَاتِلُوْا قَوْمًا نِعَالُهُمُ الشَّعْرُ.

۱۸۸ : سعيد بن محمد. يعقوب بن ابراهيم. ابو صالح. اعرج. ابوهريرةؓ نه روايت كوي. چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل: قيامت به نه قائميږي تردې چه تاسو به تركو سره جنګ كوئ چه ذ هغوئ سترګې به ورې وي. رنګ به ئې سُور، پوزه چپټه، اومخونه به ئې داسې پلن وي لكه پلن ډهالونه. او قيامت به نه قائميږي ترسو چه تاسو به داسې خلقو سره جنګ كوئ چه ذ ويښتو پنړې به په پښو كوي.

بَابٌ ۱۴۰ : قِتَالِ الَّذِيْنَ يَنْتَعِلُوْنَ الشَّعْرَ.

باب ۱۴۰ : ذ ويښتو پنړو په پښو كونكو سره ذ جنګ كولو بيان.

۱۸۹ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ الزُّهْرِيُّ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰى تُقَاتِلُوْا قَوْمًا نِعَالُهُمُ الشَّعْرُ لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰى تُقَاتِلُوْا قَوْمًا كَاَنَّ وُجُوْهَهُمُ الْمَجَانُّ الْمُطْرَّقَةُ قَالَ سُفْيَانُ وَ زَادَ

۱۸۹ : علي بن عبدالله. سفيان. زهري. سعيد بن مسيب. ابوهريرةؓ. رسول الله نه روايت كوي. حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. قيامت به نه قائميږي تردې چه تاسو به داسې خلقو سره جنګ اوكړئ چه ذ هغوئ پنړې (پيزار) به ذ ويښتو وي. او قيامت به نه قائميږي. حتّي چه تاسو به داسې خلقو سره جنګ اوكړئ چه ذ هغوئ مخونه به د لويو ډهالونو په مثل وي سفيان وائي. ابوالزناد. ذ اعرج نه هغهٔ ذ حضرت

فِيهِ أَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رِوَايَةً صِغَارَ الْأَعْيُنِ ذُلْفَ الْأُنُوفِ كَأَنَّ وُجُوهَهُمُ الْمَجَانُّ الْمُطْرَقَةُ.

ابو هريرهؓ نه دومره روايت زيات كړيدے چه ذ هغوئ سترګے به وړے او ذ هغوئ پوزے به چپټے وي او د هغوئ مخونه به د ډهالونو په مثل پلن وي.

**باب ۱۴۱ : مَنْ صَفَّ أَصْحَابَهُ عِنْدَ الْهَزِيمَةِ وَ نَزَلَ عَنْ دَابَّتِهِ وَاسْتَنْصَرَ.**

**باب ۱۴۱ :** ذ شكست نه پس ذ امام ذ سورلئ نه كوزيدل، ذ باقيمانده ملګرو صف بندي كول .او ذ الله نه د مدد غوښتلو بيان.

**۱۹۰ :** حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ وَسَأَلَهُ رَجُلٌ أَكُنْتُمْ فَرَرْتُمْ يَا أَبَا عُمَارَةَ يَوْمَ حُنَيْنٍ قَالَ لَا وَاللَّهِ مَا وَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَكِنَّهُ خَرَجَ شُبَّانُ أَصْحَابِهِ وَ أَخِفَّاءُهُمْ حُسَّرًا لَيْسَ بِسِلَاحٍ فَأَتَوْا قَوْمًا رُمَاةً جَمْعَ هَوَازِنَ وَ بَنِي نَصْرٍ مَا يَكَادُ يَسْقُطُ لَهُمْ سَهْمٌ فَرَشَقُوهُمْ رَشْقًا مَا يَكَادُونَ يُخْطِئُونَ فَأَقْبَلُوا هُنَالِكَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ عَلَى بَغْلَتِهِ الْبَيْضَاءِ وَابْنُ عَمِّهِ أَبُو سُفْيَانَ بْنُ الْحَارِثِ ابْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ يَقُودُ بِهِ فَنَزَلَ وَاسْتَنْصَرَ ثُمَّ قَالَ أَنَا النَّبِيُّ لَا كَذِبَ. أَنَا ابْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ ثُمَّ صَفَّ أَصْحَابَهُ.

**۱۹۰ :** عمرو بن خالد. زهير. ابو اسحاق نه روايت كوي. ما ذ حضرت براء نه واوريدل. هغهٔ نه يو سړي تپوس كړے وو، ابو عماره، آيا تاسو د حنين په ورځ تښتيدلے وئ. هغهٔ اوويے، نه، قسم په خدائے رسول اللّٰه صلعم نه وو تښتيدلے بلكه ذ حضورؐ نوعمر صحابه چه هغوئ سره وسله نه وه هغوئ تللي وو، او وجه داوه چه ذ هغوئ واسطه ذ قبيلهٔ هوازن او ذ بني نصر تير اندازو سره راغله. هغوئ دومره ماهران وو چه ذ هغوئ هيڅ تير به خالي نه تلو. هغوئ دوئ په تيرونو واخستل. په دے وجه دوئ روستو شو. بيا دوئ رسول الله صلعم ته حاضر شو دغه وخت حضورؐ په خپل سپين قچر سور وو چه ذ حضورؐ د ترهٔ ځوئ ابوسفيان بن حارث بن عبدالمطلب نيولے بوتلو. نو حضورؐ راكوز شو او ذ ارحم الراحمين نه ئے مدد اوغوښتلو. دے نه پس ئے اوفرمائيل انا النبی لا كذب انا ابن عبدالمطلب او اصحاب ئے صف بسته كړل.

**بَابٌ ۱۴۲ : الدُّعَاءِ عَلَى الْمُشْرِكِينَ بِالْهَزِيمَةِ وَالزَّلْزَلَةِ.**

**باب ۱۴۲ :** مشركانو ذ پاره د شكست او ذ زلزلے ذ بددعا كولو بيان.

۱۹۱ : حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا عِيسَى حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ عُبَيْدَةَ عَنْ عَلِيٍّ قَالَ لَمَّا كَانَ يَوْمُ الْأَحْزَابِ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَلَأَ اللّٰهُ بُيُوتَهُمْ وَقُبُورَهُمْ نَارًا شَغَلُونَا عَنِ الصَّلٰوةِ الْوُسْطٰى حِيْنَ غَابَتِ الشَّمْسُ.

۱۹۱ : ابراهیم بن موسي. عیسي. هشام. محمد. عبیده. حضرت عليؓ نه روایت کوي چه دَ جنگ احزاب ورځ راغله نو رسول الله صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل اے الله ددے کافرو کورونه او دَ دوئ قبرونه د اور نه ډک کړے. دوئ مونږ د درمیانی مونځ نه منع کړو. تردے چه نمر ډوب شو.

۱۹۲ : حَدَّثَنَا قَبِيصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ ابْنِ ذَكْوَانَ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَؓ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْعُوا فِي الْقُنُوتِ اَللّٰهُمَّ أَنْجِ سَلَمَةَ بْنَ هِشَامٍ اَللّٰهُمَّ أَنْجِ الْوَلِيدَ بْنَ الْوَلِيدِ اَللّٰهُمَّ أَنْجِ عَيَّاشَ بْنَ أَبِي رَبِيعَةَ اَللّٰهُمَّ أَنْجِ الْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اَللّٰهُمَّ اشْدُدْ وَطْأَتَكَ عَلٰى مُضَرَ اَللّٰهُمَّ سِنِينَ كَسِنِي يُوسُفَ.

۱۹۲ : قبیصه. سفیان. ذکوان. اعرج. ابوهریرهؓ نه روایت کوي. چه رسول الله صلي الله علیه سلّم به قنوت کښے دا دعا کوله. اے الله سلمه بن هشام له د کفارو د ظلم نه خلاصے ورکړے. اے الله ولید بن ولید له خلاصے ورکړے اے الله عیاش بن ربیعه له خلاصے ورکړے. اے الله د قبیلهٔ مضر په کافرو سختي اوکړے. اے الله داسے قحط په کافرو راولے څنګه چه د یوسف علیه السلام په زمانه کښے قحط سالي نازل شوے وه.

۱۹۳ : حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ أَبِي خَالِدٍ أَنَّهُ سَمِعَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ أَبِي أَوْفٰىؓ يَقُولُ دَعَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْأَحْزَابِ عَلَى الْمُشْرِكِينَ قَالَ اَللّٰهُمَّ مُنْزِلَ الْكِتَابِ سَرِيعَ الْحِسَابِ اَللّٰهُمَّ اهْزِمِ الْأَحْزَابَ اَللّٰهُمَّ اهْزِمْهُمْ وَ

۱۹۳ : احمد بن محمد. عبدالله. اسمٰعیل بن ابي خالد. عبدالله بن ابي اوفي نه روایت کوي. رسول الله صلي الله علیه وسلّم د جنگ احزاب په ورځ مشرکانو ته بددعا کړے وه. چه اے الله د کتاب نازلونکیه د حساب زر اخستونکیه اے الله دا ټولے په تیښته کړے. اے الله دوئ تس نس کړے. او د دوئ بیخ

زَلْزِلْهُمْ.

۱۹۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ عَوْنٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اَبِيْ اِسْحَاقَ عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُوْنٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ فِيْ ظِلِّ الْكَعْبَةِ فَقَالَ اَبُوْ جَهْلٍ وَنَاسٌ مِنْ قُرَيْشٍ وَنُحِرَتْ جَزُوْرٌ بِنَاحِيَةِ مَكَّةَ فَاَرْسَلُوْا فَجَاءُوْا مِنْ سَلَاهَا وَطَرَحُوْهُ عَلَيْهِ فَجَاءَتْ فَاطِمَةُ فَاَلْقَتْهُ عَنْهُ فَقَالَ اللّٰهُمَّ عَلَيْكَ بِقُرَيْشٍ اللّٰهُمَّ عَلَيْكَ بِقُرَيْشٍ اللّٰهُمَّ عَلَيْكَ بِقُرَيْشٍ لِاَبِيْ جَهْلِ ابْنِ هِشَامٍ وَعُتْبَةَ بْنِ رَبِيْعَةَ وَشَيْبَةَ بْنِ رَبِيْعَةَ وَالْوَلِيْدِ بْنِ عُتْبَةَ وَاُبَيِّ ابْنِ خَلَفٍ وَعُقْبَةَ بْنِ اَبِيْ مُعَيْطٍ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ فَلَقَدْ رَاَيْتُهُمْ فِيْ قَلِيْبِ بَدْرٍ قَتْلٰى قَالَ اَبُوْ اِسْحٰقَ وَنَسِيْتُ السَّابِعَ وَقَالَ يُوْسُفُ بْنُ اَبِيْ اِسْحَاقَ عَنْ اَبِيْ اِسْحَاقَ اُمَيَّةُ بْنُ خَلَفٍ وَقَالَ شُعْبَةُ اُمَيَّةُ اَوْ اُبَيُّ وَالصَّحِيْحُ اُمَيَّةُ.

۱۹۵: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ اَيُّوْبَ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ الْيَهُوْدَ دَخَلُوْا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوْا السَّامُ عَلَيْكَ

او کاږې.

۱۹۴: عبداللّٰه بن ابي شيبه. جعفر بن عون. سفيان. ابو اسحٰق. عبداللّٰه بن مسعود نه روايت کوي. چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم يوه ورځ د کعبې په سوري کښې مونځ کولو، ابو جهل او يو څو قريشو دا مشوره او کړه. د مکې نه بهر يوه اوښه حلاله شوې وه، هغوئ يو سړې اوليږلو چه د هغې لړې ئې راوړلو. او په حضورؐ ئې د پاسه اوغرځولو، بيا بي بي فاطمهؓ راغله او هغې هغه لړې د حضورؐ نه بيرته کړو. حضورؐ اوفرمائيل. اې اللّٰه قريش راونيسې، اې اللّٰه قريش راونيسې، اې اللّٰه قريش راونيسې. ابو جهل بن هشام. او عتبه بن ربيعه او شيبه بن ربيعه، او وليد بن عتبه او ابي بن خلف او عتبه بن معيط د پاره ئې دا بدعا کړې وه. عبداللّٰه بن مسعود وائي، په خدائې م د قسم وي. دا کسان م د بدر په کوهي کښې قتل شوي پراته اوليدل. او ابو اسحاق اووې، ما نه اووم کس هير شولو. او يوسف بن ابي اسحٰق، د ابو اسحاق په واسطه د اميه بن خلف نوم واخسته او شعبه، اميه يا ابي اووې، او صحيح اُميه دې.

۱۹۵: سليمان بن حرب. حماد. ايوب. ابن ابي مليکه. بي بي عائشهؓ نه روايت کوي، چه يهود يو ځل رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم له راغلل. اوونيلې، اَلسَّامُ عَلَيْکَ (يعني په تا دِ مرګ راشي) نو ما په هغوئ لعنت اووې، حضورؐ اوفرمائيل، په تا څهٔ شويدي، ما

فَلَعَنْتُهُمْ فَقَالَ مَالَكِ قُلْتُ اَوَلَمْ تَسْمَعْ مَا قَالُوْا قَالَ فَلَمْ تَسْمَعِيْ مَا قُلْتُ وَ عَلَيْكُمْ.

اوږے تاسو واونه ريدل. چه دے خلقو څۀ اووے، حضورؐ ورته اوفرمائيل، تا واونه ريدل چه ما هم ورته اووے. وعليکم[۱].

۱. يعني ما څه بد لفظ د ژبے نه نۀ دے ويستے صرف د هغوئ خبره مې ورته واپس کړه. دے د پاره د نامعقول او بيهوده حرکتونو جواب همدغسے ورکول پکار دي.

## باب ۱۴۳: هَلْ يُرْشِدُ الْمُسْلِمُ اَهْلَ الْكِتَابِ اَوْ يُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ.

باب ۱۴۳: د مسلمانانو اهل کتاب ته دَ هدايت کولو او هغوئ ته دَ کتاب الله دَ تعليم ورکولو بيان.

۱۹۶: حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ اَخْبَرَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا ابْنُ اَخِي ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَمِّهٖ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُوْدٍ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبَّاسٍ اَخْبَرَهٗ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَتَبَ اِلٰى قَيْصَرَ وَ قَالَ فَاِنْ تَوَلَّيْتَ فَاِنَّ عَلَيْكَ اِثْمَ الْاَرِيْسِيِّيْنَ.

۱۹۶: اسحٰق. يعقوب بن ابراهيم. دَ ابن شهاب ورارۀ. ابن شهاب. عبيد اللّٰه بن عبداللّٰه بن عتبه بن مسعود. حضرت عبداللّٰه بن عباسؓ نه روايت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم قيصر ته خط اوليکلو. اوږے فرمائيل چه دا هم دے کښے اوليکئ. چه "فَاِنَّ عَلَيْكَ اِثْمَ الْاَرِيْسِيِّيْنَ.

## باب ۱۴۴: الدُّعَاءِ لِلْمُشْرِكِيْنَ بِالْهُدٰى لِيَتَاَلَّفَهُمْ.

باب ۱۴۴: دَ تاليف قلوب په طور، مشرکينو د پاره دَ هدايت دَ لارے د دُعا کولو بيان.

۱۹۷: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ اَنَّ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ قَالَ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ قَدِمَ طُفَيْلُ بْنُ عَمْرٍو الدَّوْسِيُّ وَ اَصْحَابُهٗ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ دَوْسًا عَصَتْ وَ اَبَتْ فَادْعُ اللّٰهَ عَلَيْهَا فَقِيْلَ هَلَكَتْ دَوْسٌ قَالَ اَللّٰهُمَّ اهْدِ دَوْسًا وَ اْتِ

۱۹۷: ابواليمان. شعيب. ابوالزناد. عبدالرحمٰن. ابو هريرهؓ نه روايت کوي. چه طفيل بن عمرو دوسي او دَ هغۀ ملګري حضورؐ له راغلل، او ونيل يا رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ قبيلۀ دوس خلقو نافرماني اوکړه او ستاسو دَ پيروئ نه ئے انکار اوکړلو. تاسوّ هغوئ دَ پاره د اللّٰه نه بددعا اوغواړئ. خلقو ونيلے چه اوس به حضورؐ بددعا اوکړي او قبيله دوس به هلاک شي. خو حضورؐ اوفرمائيل اے اللّٰه دوس ته

بِهِمْ.

باب ۱۴۵: دَعْوَةِ الْيَهُوْدِيِّ وَ النَّصْرَانِيِّ وَ عَلٰى مَا يُقَاتَلُوْنَ عَلَيْهِ. وَمَا كَتَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى كِسْرٰى وَ قَيْصَرَ وَالدَّعْوَةُ قَبْلَ الْقِتَالِ.

۹۸ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ ابْنُ الْجَعْدِ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسًا يَقُوْلُ لَمَّا اَرَادَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يَّكْتُبَ اِلَى الرُّوْمِ قِيْلَ لَهُ اِنَّهُمْ لَا يَقْرَؤُنَ كِتَابًا اِلَّا اَنْ يَّكُوْنَ مَخْتُوْمًا فَاتَّخَذَ خَاتَمًا مِنْ فِضَّةٍ فَكَاَنِّيْ اَنْظُرُ اِلٰى بَيَاضِهٖ فِيْ يَدِهٖ وَ نَقَشَ فِيْهِ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ.

۱۹۹ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبَّاسٍ اَخْبَرَهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ بِكِتَابِهٖ اِلٰى كِسْرٰى فَاَمَرَهُ اَنْ يَّدْفَعَهُ اِلٰى عَظِيْمِ الْبَحْرَيْنِ يَدْفَعُهُ عَظِيْمُ الْبَحْرَيْنِ اِلٰى كِسْرٰى فَلَمَّا قَرَاَهُ كِسْرٰى خَرَّقَهُ فَحَسِبْتُ اَنَّ سَعِيْدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ قَالَ فَدَعَا عَلَيْهِمُ النَّبِيُّ

هدايت او کړے او ذَ اسلام دائره کښے ئے راولي.

باب ۱۴۵ : يهود او نصاري ته ذَ اسلام دعوت ورکول او هغوئ سره په کومه خبره جنګ پکار دے. او رسول اللّٰه صلعم قيصر و کسرىٰ ته خط ليکلي وو او ذَ جنګ نه مخکښے دعوتِ اسلام ضروري دے.

۱۹۸ : علي بن جعد. شعبه. قتاده. حضرت انس بن مالک نه روايت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم چه روم بادشاه ته خط ليکل اوغوښتل نو حضورؐ ته اووئيلے شو چه هغه خلق بغير د مهر نه خط نه لولي نو حضورؐ د سپينو زرو ګوته جوړه کړه، ګويا زهٔ اوس هم ذَ هغې چمک ذَ حضورؐ په لاس کښے وينم. هغې کښے حضورؐ "محمّد رسول اللّٰه" کنده کړے وو.

۱۹۹ : عبداللّٰه بن يوسف. ليث. عقيل. ابن شهاب. عبيد اللّٰه بن عبداللّٰه بن عتبه. حضرت عبداللّٰه بن عباس نه روايت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خپل خط کسريٰ ذَ ايران بادشاه ته اوليږلو. نو قاصد ته حضورؐ حکم ورکه چه خط ذَ بحرين سردار ته حواله کړي، بيا ذَ بحرين سردار هغه خط کسريٰ ته اورسولو. کوم وخت چه هغه خط کسريٰ اولوست، نو ورے شلولو. زهٔ خيال کوم، سعيد بن مسيب وئيلے، بيا رسول صلي اللّٰه عليه وسلم هغوئ ته بددُعا

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يُمَزَّقُوْا كُلَّ مُمَزَّقٍ.

او کړه چه هغوئ دې بالکل ټکړې ټکړې شي.

**باب ۱۴۶ : دُعَاءُ النَّبِيِّ صَلَّى** اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَى الْاِسْلَامِ وَالنُّبُوَّةِ وَ اَنْ لَّا يَتَّخِذَ بَعْضُهُمْ بَعْضًا اَرْبَابًا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَ قَوْلُهُ تَعَالٰى مَا كَانَ لِبَشَرٍ اَنْ يُّؤْتِيَهُ اللّٰهُ الْكِتَابَ اِلٰى اٰخِرِ الْاٰيَةِ.

**باب ۱۴۶ :** د نبي کريم صلي الله عليه وسلّم کافرو ته د اسلام او نبوت طوف ته د بللو بيان. (د حضورﷺ د پيغمبرئ منلو) دعوت ورکول او د الله تعالي نه سوا بل څوک خدائے نهٔ ګڼړل. خدائے پاک فرمائي چه بني آدم له پکار دي چه د خدائے او د رسول په وينا عمل اوکړي.

**۲۰۰ :** حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ حَمْزَةَ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ ابْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحِ ابْنِ كَيْسَانَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ اَنَّهُ اَخْبَرَهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَتَبَ اِلٰى قَيْصَرَ يَدْعُوْهُ اِلَى الْاِسْلَامِ وَ بَعَثَ بِكِتَابِهِ اِلَيْهِ مَعَ دِحْيَةَ الْكَلْبِيِّ وَ اَمَرَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يَدْفَعَهُ اِلٰى عَظِيْمِ بُصْرٰى لِيَدْفَعَهُ اِلٰى قَيْصَرَ وَ كَانَ قَيْصَرُ لَمَّا كَشَفَ اللّٰهُ عَنْهُ جُنُوْدَ فَارِسَ مَشٰى مِنْ حِمْصَ اِلٰى اِيْلِيَاءَ شُكْرًا لِمَا اَبْلَاهُ اللّٰهُ فَلَمَّا جَاءَ قَيْصَرَ كِتَابُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

**۲۰۰ :** ابراهيم بن حمزه. ابراهيم بن سعد. صالح بن کيسا. ابن شهاب. عبيدالله بن عتبه. حضرت عبدالله بن عباسؓ نه روايت کوي. رسول الله صلي الله عليه وسلّم قيصر ته خط اوليکلو، هغے کښے حضورﷺ هغه ته د اسلام دعوت ورکړے وو. او حضور صلي الله عليه وسلّم خپل خط د دِحيه کلبي په لاس ليږلے وو. او دا حکم ئے ورکړے وو. چه هغه دِ دا خط د بصري سردار ته حواله کړي. چه هغه ئے قيصر ته اورسوي. قيصر چه د کوم وخت نه هغه ته الله د فارس فتح عنايت کړے وه. د مقام حمص نه بيت المقدس طرف ته تللے وو. د الله د هغے نعمت شکريه ادا کولو د پاره. نو کوم وخت چه قيصر ته د رسول الله صلي الله عليه وسلّم هغه خط مبارک اورسيد. او هغهٔ اولوست نووے وئيل د هغوئ د قوم څوک سړے ماته راولئ. چه زهٔ ترے د رسول الله صلعم متعلق تپوس اوکړم حضرت عباسؓ وائي: ماته سفيان اووے چه هغه: هغه زمانه کښے د قريشو يو څو سړو سره هلته وو، چه د تجارت په غرض شام ته تللے وو. دا سفر هغے موده کښے اوشو. چه د رسول صلعم

حِمْصَ قَرَأَهُ الْتَمِسُوْا لِيْ هٰهُنَا أَحَدًا مِنْ قَوْمِهِ لِأَسْأَلَهُمْ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فَأَخْبَرَنِيْ أَبُوْ سُفْيَانَ أَنَّهُ كَانَ بِالشَّامِ فِيْ رِجَالٍ مِنْ قُرَيْشٍ قَدِمُوْا تِجَارًا فِي الْمُدَّةِ الَّتِيْ كَانَتْ بَيْنَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَبَيْنَ كُفَّارِ قُرَيْشٍ قَالَ أَبُوْ سُفْيَانَ فَوَجَدَنَا رَسُوْلُ قَيْصَرَ بِبَعْضِ الشَّامِ فَانْطَلَقَ بِيْ وَبِأَصْحَابِيْ حَتّٰى قَدِمْنَا إِيْلِيَاءَ فَأُدْخِلْنَا إِلَيْهِ فَإِذَا هُوَ جَالِسٌ فِيْ مَجْلِسِ مُلْكِهِ وَعَلَيْهِ التَّاجُ وَإِذَا حَوْلَهُ عُظَمَاءُ الرُّوْمِ فَقَالَ لِتَرْجُمَانِهِ سَلْهُمْ أَيُّهُمْ أَقْرَبُ نَسَبًا إِلٰى هٰذَا الرَّجُلِ الَّذِيْ يَزْعُمُ أَنَّهُ نَبِيٌّ قَالَ أَبُوْ سُفْيَانَ فَقُلْتُ أَنَا أَقْرَبُهُمْ إِلَيْهِ نَسَبًا قَالَ مَا قَرَابَةُ مَا بَيْنَكَ وَبَيْنَهُ فَقُلْتُ هُوَ ابْنُ عَمِّيْ وَلَيْسَ فِي الرَّكْبِ يَوْمَئِذٍ أَحَدٌ مِنْ بَنِيْ عَبْدِ مَنَافٍ غَيْرِيْ قَالَ قَيْصَرُ أَدْنُوْهُ وَأَمَرَ بِأَصْحَابِيْ فَجُعِلُوْا خَلْفَ ظَهْرِيْ عِنْدَ كَتِفِيْ ثُمَّ قَالَ لِتَرْجُمَانِهِ قُلْ لِأَصْحَابِهِ إِنِّيْ سَائِلٌ

او كفار قريش مينځ كښې صلح شوې وه. ابو سفيان وائي چه مونږ د شام يو مقام كښې د قيصر قاصد بيامندو. او هغهٔ زهٔ او څما ملګري بيت المقدس ته بوتلو نو مونږ قيصر ته پيش كړې شو. هغه هغه وخت خپل دربار كښې ناست وو. او د روم سرداران د هغه نه چار چاپيره را جمع وو. قيصر خپل ترجمان ته اووې' دوئ نه تپوس اوكه' چه دا سړے چه د نبوت دعوي كوي نسب كښې د ټولونه زيات هغهٔ ته قريب دوئ كښې څوك دے. ابوسفيان وائي' ما اووې زهٔ د ټولونه زيات د هغه قريب عزيز يم. قيصر اووې د هغهٔ او ستا مينځ كښې څه قرابت دے' ما اووې' هغه زما د ترهٔ ځوئے دے. قافله كښې دا وخت څما نه سوا د عبدمناف په اولاد كښې بل څوك نه وو. قيصر اووې. دے ماله راولې. او څما د ملګرو په نسبت ئے حكم اوكه چه هغوئ زما شاته زما اوګې سره' او دريږي' بيا هغهٔ خپل ترجمان ته اووې. ددهٔ ملګروته اووايه. زهٔ دده نه د هغې سړي دَ حالاتو تپوس كوم چه د نبي كيدو دعوي كوي. كه دے دروغ اووائي. نو تاسو ددهٔ تكذيب كوئ. ابوسفيان وائي' قسم په خدائے كه هغه وخت ددے خبرے شرم نه وے چه څما ملګري به ماته دروغژن اووائي نو ما به خپل طرف نه هم قيصر ته څه (دروغ) بيان كړے وے. چه هغهٔ مانه د حضورؐ باره كښې څه تپوس كړے وے. خو ماته ددے خبرے غيرت راغې چه خلق به ماته دروغژن وائي. په دے وجه ما بالكل رښتيا رښتيا بيان اوكهٔ. بيا قيصر خپل ترجمان ته اووې' دهٔ نه تپوس اوكه هغه سړے چه ستاسو مينځ كښې دے' د هغه

هٰذَا الرَّجُلَ عَنِ الَّذِيْ يَزْعَمُ اَنَّهُ نَبِيٌّ فَاِنْ كَذَبَ فَكَذِّبُوْهُ قَالَ اَبُوْ سُفْيَانَ وَاللّٰهِ لَوْلَا الْحَيَاءُ يَوْمَئِذٍ مِنْ اَنْ يَأْثِرَ اَصْحَابِيْ عَنِّيْ الْكَذِبَ لَكَذَبْتُهُ حِيْنَ سَأَلَنِيْ عَنْهُ وَلٰكِنِّيْ اِسْتَحْيَيْتُ اَنْ يَأْثِرُوا الْكَذِبَ عَنِّيْ فَصَدَقْتُهُ ثُمَّ قَالَ لِتَرْجُمَانِهٖ قُلْ لَهُ كَيْفَ نَسَبُ هٰذَا الرَّجُلِ فِيْكُمْ قُلْتُ هُوَ فِيْنَا ذُوْ نَسَبٍ قَالَ فَهَلْ قَالَ هٰذَا الْقَوْلَ اَحَدٌ مِنْكُمْ قَبْلَهٗ قُلْتُ لَا فَقَالَ كُنْتُمْ تَتَّهِمُوْنَهٗ بِالْكَذِبِ قَبْلَ اَنْ يَقُوْلَ مَا قَالَ قُلْتُ لَا قَالَ فَهَلْ كَانَ مِنْ اٰبَائِهٖ مِنْ مَلِكٍ قُلْتُ لَا قَالَ فَاَشْرَافُ النَّاسِ يَتَّبِعُوْنَهٗ اَمْ ضُعَفَاءُ هُمْ قُلْتُ بَلْ ضُعَفَاؤُهُمْ قَالَ فَيَزِيْدُوْنَ اَوْ يَنْقُصُوْنَ قُلْتُ بَلْ يَزِيْدُوْنَ قَالَ فَهَلْ يَرْتَدُّ اَحَدٌ سُخْطَةً لِدِيْنِهٖ بَعْدَ اَنْ يَدْخُلَ فِيْهِ قُلْتُ لَا قَالَ فَهَلْ يَغْدِرُ قُلْتُ لَا وَنَحْنُ الْاٰنَ مِنْهُ فِيْ مُدَّةٍ فَنَحْنُ نَخَافُ اَنْ يَغْدِرَ قَالَ اَبُوْ سُفْيَانَ وَلَمْ تُمْكِنِّيْ كَلِمَةٌ اُدْخِلُ فِيْهَا شَيْئًا اَنْتَقِصُهٗ بِهٖ لَا اَخَافُ اَنْ تُؤْثَرَ عَنِّيْ غَيْرَهَا قَالَ فَهَلْ

نسب څنګه دے . ما اووے هغه مونږ کښې د لوئے نسب خاوند دے . هغهٔ اووے . هغه نه مخکښې تاسو کښې چا دا خبره کړے ده، ما اُووے "نه" هغهٔ اووے، قبل د دے نه چه هغهٔ دا خبره کړیده. آیا هغه نه تاسو چرته دروغ اوریدلے دي ما اووے نه. وئیلے د هغهٔ پلار نیکه څوک بادشاه تیر شویدے. ما اووے نه، هغهٔ اووے، آیا امیران خلق د هغهٔ پیروي کوي یا غریبان. ما اُووے، امیران نه بلکه غریبان خلق د هغهٔ پیروي کوي. بیائے اووے هغه خلق ورځ تر ورځه زیاتیږي یا کمیږي ما اووے زیاتیږي. وئیلے بیا څوک چه د هغه دین کښې داخل شي، نو واپس هم بے دینه کیږي که نه. ما اووے نه، وئیلے آیا کله کله هغه وعده خلافي هم کوي. ما اووے هیڅکله نه، او اوس مونږ د هغه د طرف نه د صلح د مودے په اختتام یو. مونږ سره ویره ده چه هغه عهد شکني اوکړي. ابوسفیان اووے ماته داسے خبره د خپل طرف نه د داخلولو چه په هغے خلق ماته دروغژن اونه وائي سوا د دے خبرے نه بله موقع په لاس رانغله. هغه وئیلے آیا هغه سره چرته تاسو جنګ کړیدے. ما اووے، او وئیلے، بیا ستاسو او د هغهٔ جنګ څنګه شویدے. ما اووے جنګ خو د ډول کش په شان دے کله هغه په مونږ غالب شي او کله مونږ په هغهٔ غالب شو. هغهٔ وئیلے آخر هغه تاسوته د څه خبرے حکم درکوي. ما اووے هغه مونږ ته صرف د دے خبرے حکم راکوي چه مونږ صرف د یو الله عبادت اوکړو هغه سره څوک شریک نکړو. زمونږ پلار نیکه چه د کومو څیزونو پرستش کولو. د هغوئ د عبادت نه مو منع کوي مونږ ته د

قَاتَلْتُمُوْهُ اَوْ قَاتَلَكُمْ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ فَكَيْفَ كَانَتْ حَرْبُهُ وَ حَرْبُكُمْ قُلْتُ كَانَتْ دُوْلًا وَّ سِجَالًا يُدَالُ عَلَيْنَا الْمَرَّةَ وَ تُدَالُ عَلَيْهِ الْاُخْرٰى قَالَ فَمَا ذَا يَاْمُرُكُمْ قَالَ يَاْمُرُنَا اَنْ نَعْبُدَ اللّٰهَ وَحْدَهٗ لَا نُشْرِكَ بِهٖ شَيْئًا وَ يَنْهَانَا عَمَّا كَانَ يَعْبُدُ اٰبَاءُ نَا وَ يَاْمُرُنَا بِالصَّلٰوةِ وَالصَّدَقَةِ وَالْعَفَافِ وَالْوَفَاءِ بِالْعَهْدِ وَ اَدَاءِ الْاَمَانَةِ فَقَالَ لِتَرْجُمَانِهٖ حِيْنَ قُلْتُ ذٰلِكَ لَهٗ قُلْ لَهٗ اِنِّيْ سَاَلْتُكَ عَنْ نَسَبِهٖ فِيْكُمْ فَزَعَمْتَ اِنَّهٗ ذُوْ نَسَبٍ وَّ كَذٰلِكَ الرُّسُلُ تُبْعَثُ فِيْ نَسَبِ قَوْمِهَا وَ سَاَلْتُكَ هَلْ قَالَ اَحَدٌ مِنْكُمْ هٰذَا الْقَوْلَ قَبْلَهٗ فَزَعَمْتَ اَنْ لَّا فَقُلْتُ لَوْ كَانَ اَحَدٌ مِنْكُمْ قَالَ هٰذَا الْقَوْلَ قَبْلَهٗ قُلْتُ رَجُلٌ يَاْتَمُّ بِقَوْلٍ قَدْ قِيْلَ قَبْلَهٗ وَ سَاَلْتُكَ هَلْ كُنْتُمْ تَتَّهِمُوْنَهٗ بِالْكَذِبِ قَبْلَ اَنْ يَّقُوْلَ مَا قَالَ فَزَعَمْتَ اَنْ لَّا فَعَرَفْتُ اَنَّهٗ لَمْ يَكُنْ لِيَدَعَ الْكَذِبَ عَلَى النَّاسِ وَ يَكْذِبَ عَلَى اللّٰهِ وَ سَاَلْتُكَ هَلْ كَانَ مِنْ اٰبَائِهٖ مِنْ مَّلِكٍ فَزَعَمْتَ اَنْ لَّا فَقُلْتُ لَوْ كَانَ مِنْ اٰبَائِهٖ مَلِكٌ قُلْتُ يَطْلُبُ مُلْكَ اٰبَائِهٖ وَ سَاَلْتُكَ اَشْرَافُ

مونځ، صدقې پرهيزګارئ وعده وفائي او د امانت د ادا کولو حکم راکوي. کوم وخت چه دا ټولې خبرې ما اوکړې نو هغه خپل ترجمان ته اووې دۀ ته اووايه کوم وخت چه ما تانه د هغه د نسب متعلق تپوس اوکه نو تا اووې چه هغه ذي نسب (نسب دار) دې او ټول پيغمبرانٔ د خپل قوم نسب کښې دغه شان ذ لوئې درجې راستولې شويدي او ما تانه تپوس اوکه چه آيا ددۀ نه مخکښې دا خبره تاسو کښې بل چا کړيده نو تا اووې چه نه، که ذدۀ نه مخکښې چا دا خبرې کړي وي نو ما به وئيلې وو چه هغه داسې سړې دې چه د هغې قول اقتدا کوي چه ذدۀ نه وړاندې وئيلې شويدې، او ما تانه تپوس اوکه چه قبل ددې نه چه ده دا خبره کړيده تاسوته دۀ چرته دروغ وئيلې دي نو تا اووې نه. نو زۀ پوهٔ شوم چه داسې نشي کيدې چه هغه دِ په خلقو دروغ نه وائي او په خدائې دِ دروغ اووائي. او ما تانه تپوس اوکه چه آيا د هغه پلار نيکه کښې څوک بادشاه تير شويدې، نو تا اووې نه، زۀ وايم که ذ هغه پلار نيکه کښې څوک بادشاه تير شوې، نو هغه په دې طريقه د خپل پلار نيکه ملک حاصلول غواړي او ما تانه تپوس اوکه. آيا سرمايه دار خلق د هغه پيروي کوي يا غريب خلق، نو تا اووې چه زيات تر غريب خلق د هغه اتباع کوي. او د ټولو پيغمبرانو متابعت (تابعداري) دا خلق کوي. او ما تانه تپوس اوکه، چه آيا هغه خلق زياتيږي يا کميږي نو تا اووې هغوئ زياتيږي د ايمان هم دغه حال دې چه هغه عنقريب کامل شي. او ما تانه تپوس اوکۀ، چه څوک يو خل ذَ هغهٔ په دين کښې داخل شي، بيا په ناخوښئ د هغې

النَّاسِ يَتَّبِعُوْنَهُ اَمْ ضُعَفَاءُ هُمْ فَزَعَمْتَ ضُعَفَاؤُهُمْ اتَّبَعُوْهُ وَهُمْ اَتْبَاعُ الرُّسُلِ وَ سَاَلْتُكَ هَلْ يَزِيْدُوْنَ اَوْ يَنْقُصُوْنَ فَزَعَمْتَ اَنَّهُمْ يَزِيْدُوْنَ وَ كَذٰلِكَ الْاِيْمَانُ حَتّٰى يُتِمَّ وَ سَاَلْتُكَ هَلْ يَرْتَدُّ اَحَدٌ سَخْطَةً لِدِيْنِهٖ بَعْدَ اَنْ يَدْخُلَ فِيْهِ فَزَعَمْتَ اَنْ لَّا فَكَذٰلِكَ اَلْاِيْمَانُ حِيْنَ تَخْلُطُ بَشَاشَتُهُ الْقُلُوْبَ لَا يَسْخَطُهُ اَحَدٌ وَ سَاَلْتُكَ هَلْ يَغْدُرُ فَزَعَمْتَ اَنْ لَّا وَ كَذٰلِكَ الرُّسُلُ لَا يَغْدُرُوْنَ وَ سَاَلْتُكَ هَلْ قَاتَلْتُمُوْهُ وَ قَاتَلَكُمْ فَزَعَمْتَ اَنْ قَدْ فَعَلَ وَ اَنَّ حَرْبَكُمْ وَ حَرْبَهُ تَكُوْنُ دُوَلًا يُدَالُ عَلَيْكُمُ الْمَرَّةَ وَ تُدَالُوْنَ عَلَيْهِ الْاُخْرٰى وَ كَذٰلِكَ الرُّسُلُ تُبْتَلٰى وَ تَكُوْنُ لَهَا الْعَاقِبَةُ وَ سَاَلْتُكَ بِمَا ذَا يَاْمُرُكُمْ فَزَعَمْتَ اَنَّهُ يَاْمُرُ اَنْ تَعْبُدُوا اللّٰهَ وَلَا تُشْرِكُوْا بِهٖ شَيْئًا وَ يَنْهَاكُمْ عَمَّا كَانَ يَعْبُدُ اٰبَاءُ كُمْ وَ يَاْمُرُكُمْ بِالصَّلٰوةِ وَالصَّدَقَةِ وَالْعَفَافِ وَالْوَفَاءِ بِالْعَهْدِ وَ اَدَاءِ الْاَمَانَةِ قَالَ وَ هٰذِهٖ صِفَةُ النَّبِيِّ قَدْ كُنْتُ اَعْلَمُ اَنَّهُ خَارِجٌ وَلٰكِنْ لَمْ اَظُنَّ اَنَّهُ مِنْكُمْ وَ اِنْ يَكُ مَا قُلْتَ حَقًّا فَيُوْشِكُ اَنْ يَمْلِكَ مَوْضِعَ قَدَمَيَّ هَاتَيْنِ وَلَوْ اَرْجُوْ اَنْ اَخْلُصَ اِلَيْهِ لَتَجَشَّمْتُ لُقِيَّهُ وَلَوْ كُنْتُ عِنْدَهُ

نه واپس ګرځي نو تا اُووے، نه دَ ايمان دغه حال دے چه ر هغے خوشحالي زړهٔ کښې پريوځي نو بيا هيڅوک ر هغے نه خفه کيږي نه. او ما تانه تپوس او که چه هغه کله وعده شکني (وعده خلافي) کوي. نو تا اووے، نه، دغه شان ټول رسولان وعده خلافي نه کوي. او ما تانه دا تپوس هم اوکه چه تاسو چرته هغوئ سره جنګ کړيدے، او هغوئ تاسو سره جنګ کړيدے، نو تا اووے هغوئ داسے کړيدي او دا چه ځمونږ او دَ هغوئ جنګ دَ ډول په شان وي کله هغوئ په تاسو غالب کيږي او کله تاسو په هغوئ غالب کيږئ دغه شان دَ ټولو پيغمبرانو ازمائش کيږي. او او انجام کار سرخروئي او عزت دَ هغوئ وي، او ما تانه تپوس او کهٔ چه هغه تاسو ته دَ څهٔ خبرے حکم درکوي. نو تا اووے هغه تاسو ته ددے خبرے حکم درکوي چه تاسو دَ الله عبادت کوئ هغه سره څوک شريک مهٔ جوړوئ، هغه تاسو ته د هغے څيزونو دَ پرستش نه منع کوي چه ستاسو پلار نيکه به دَ هغے عبادت کولو، او هغه تاسو ته د مانځه، صدقے، پرهيزګارئ د وعدے پوره کولو او د امانت ادا کولو حکم درکوي او هم دا دَ پيغمبر صفت دے زهٔ پوهيدم چه يو پيغمبر ظاهريدونکے دے خو دا راته نه وه معلومه چه هغه به ستاسو نه وي. څهٔ چه تهٔ وائے که دا رښتيا وي نو عنقريب هغه به ځما د دے ځائے مالک شي. زهٔ اُميد کوم چه زهٔ به هغه سره يوځائے شم، ليکن دا دَ لرے ځ ده که زهٔ هغه سره وے نو د هغه مقدسے پښے به م وينځلے. ابوسفيان نه روايت دے. قيصر بيا د حضورﷺ خط اولوستلو. دَ هغے مضمون دا وو. بسم الله الرَّحمٰن

لَغَسَلْتُ قَدَمَيْهِ قَالَ اَبُوْ سُفْيَانُ ثُمَّ دَعَا بِكِتَابِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُرِئَ فَاِذَا فِيْهِ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ مِنْ مُحَمَّدٍ عَبْدِ اللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ اِلٰى هِرَقْلَ عَظِيْمِ الرُّوْمِ سَلَامٌ عَلٰى مَنِ اتَّبَعَ الْهُدٰى اَمَّا بَعْدُ فَاِنِّيْ اَدْعُوْكَ بِدِاعِيَةِ الْاِسْلَامِ اَسْلِمْ تَسْلَمْ وَ اَسْلِمْ يُؤْتِكَ اللّٰهُ اَجْرَكَ مَرَّتَيْنِ فَاِنْ تَوَلَّيْتَ فَعَلَيْكَ اِثْمَ الْاَرِيْسِيِّيْنَ وَ يٰاَهْلَ الْكِتَابِ تَعَالَوْا اِلٰى كَلِمَةٍ سَوَآءٍ بَيْنَنَا وَ بَيْنَكُمْ اَنْ لَّا نَعْبُدَ اِلَّا اللّٰهَ وَلَا نُشْرِكَ بِهٖ شَيْئًا وَّلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا اَرْبَابًا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ فَاِنْ تَوَلَّوْا فَقُوْلُوْا اشْهَدُوْا بِاَنَّا مُسْلِمُوْنَ قَالَ اَبُوْ سُفْيَانَ فَلَمَّا اَنْ قَضٰى مَقَالَتَهٗ عَلَتْ اَصْوَاتُ الَّذِيْنَ حَوْلَهٗ مِنْ عُظَمَاءِ الرُّوْمِ وَ كَثُرَ لَغَطُهُمْ فَلَا اَدْرِيْ مَاذَا قَالُوْا وَ اُمِرَبِنَا فَاُخْرِجْنَا فَلَمَّا اَنْ خَرَجْتُ مَعَ اَصْحَابِيْ وَ خَلَوْتُ بِهِمْ قُلْتُ لَهُمْ اَمِرَ اَمْرُ ابْنُ اَبِيْ كَبْشَةَ هٰذَا مَلِكُ بَنِي الْاَصْفَرِ يَخَافُهٗ قَالَ اَبُوْ سُفْيَانَ وَاللّٰهِ مَازِلْتُ ذَلِيْلًا مُسْتَيْقِنًا بِاَنَّ اَمْرَهٗ سَيَظْهَرُ حَتّٰى اَدْخَلَ اللّٰهُ قَلْبِيَ الْاِسْلَامَ وَ اَنَا كُرِهٌ.

الرَّحِيْمِ ط دا خط دَ اللّٰه دَ بنده او دَ هغهٔ د رسول محمد د طرف نه دهرقل بادشاه روم په نوم دے. سلام د وي په هغه چا چه دَ هدايت پيروي او کړي. امّا بعد زهٔ تا اسلام طرف ته بلم. اسلام راوړه چه بچ شے، اسلام راوړه نو اللّٰه به دوچند ثواب درکړي. او که اسلام نه انکار کوے نو ستا د ټول قوم ګناه به هم ستا په سر وي. اے اهل کتابو تاسو يوے داسے خبرے ته راشئ چه زمونږ او ستاسو دواړو تر مينځه مشترک ده. هغه دا چه مونږ صرف دَ اللّٰه تعالٰي عبادت اوکړو او مونږ دِ څوک مخلوق معبود جوړنکړو. بيا که تاسو دَدے خبرے نه مخ اړوئ نو ګواه اوسئ چه مونږ مسلمانان يو ابوسفيان راوي دے چه هرقل دا خط اولوست ټولو ته ئے واورولو. اهاليانِ دربار کښے قسم قسم خبرے شروع شوے او نتيجه شورنه اورسيده دَ هر بنهر حاکم او وزرائے مملکت کښے په زوره زوره خبرے شروع شوے او معلومه نه ده چه اول ئے څه څه وئيلے. آخرکار مونږ خلق ئے دَ دربار نه بهر اوبښکلو، نو زهٔ خپلو ملګرو سره بهر راووتلم ما هغوئ ته تنهائئ کښے اووے اوس خو د ابن کبشه يعني د محمد (صلعم) کار ډير مخ په وړاندے روان دے. دَ روم دا بادشاه جنګ کښے دَ هغه نه ويريږي او ما خپل زړه کښے ذلت محسوس کولو. او په دے خبره م يقين راغے، چه د محمد (صلعم) دين عنقريب غالب کيدونکے دے تردے چه د هغے پس اللّٰه تعالٰي څما زړهٔ کښے اسلام پوخ کړلو. حالانکه (مخکښے) ما ترينه نفرت کولو.

۲۰۱ : حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ

۲۰۱ : عبداللّٰه بن مسلمه. عبدالعزيز بن ابي

بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ سَهْلِ ابْنِ سَعْدٍؓ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ يَوْمَ خَيْبَرَ لَاُعْطِيَنَّ الرَّايَةَ رَجُلًا يَّفْتَحُ اللّٰهُ عَلٰى يَدَيْهِ فَقَامُوْا يَرْجُوْنَ لِذٰلِكَ اَيُّهُمْ يُعْطٰى فَغَدَوْا كُلُّهُمْ يَرْجُوْ اَنْ يُّعْطٰى فَقَالَ اَيْنَ عَلِيٌّ فَقِيْلَ يَشْتَكِيْ عَيْنَيْهِ فَاَمَرَ فَدُعِيَ لَهٗ فَبَصَقَ فِيْ عَيْنَيْهِ فَبَرَاَ مَكَانَهٗ حَتّٰى كَاَنَّهٗ لَمْ يَكُنْ بِهٖ شَيْءٌ فَقَالَ نُقَاتِلُهُمْ حَتّٰى يَكُوْنُوْا مِثْلَنَا فَقَالَ عَلٰى رِسْلِكَ حَتّٰى تَنْزِلَ بِسَاحَتِهِمْ ثُمَّ ادْعُهُمْ اِلَى الْاِسْلَامِ وَ اَخْبِرْهُمْ بِمَا يَجِبُ عَلَيْهِمْ فَوَاللّٰهِ لَاَنْ يُّهْدٰى بِكَ رَجُلٌ وَّاحِدٌ خَيْرٌ لَّكَ مِنْ حُمْرِ النَّعَمِ.

حازم. ابو حازم. سهل بن سعد نه روايت كوي. هغهٔ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه د خيبر په ورځ واوريدل. اوس به جنډه هغه چاله ور كوم چه ذ هغهٔ په لاس به فتح اوشي. بيا صحابه ؤ كښې هر يو دے اميد كښې وو چه جنډه به اوس مونږ ته مرحمت شي. ليكن بله ورځ د ټولو صحابه ؤ موجودګئ كښې سرور عالم صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. عليؓ چرته دے چا اووے، ذ هغهٔ سترګے درد كوي. حضورؐ هغه راوغوښتلو. او هغه د حضورؐ مخكښے حاضر كړے شو. حضورؐ ذ هغهٔ په دواړو سترګو لعاب اولګولو (يعني خپلے لاړے مباركے ئے پرے پورے كړے) نو هغه ښه شولو، او داسے معلوميدهٔ چه مخكښے هغه ته هډو څهٔ شكايت نه وو. دے نه پس ئے هغه ته جنډه وركړه. حضرت عليؓ اووے، مونږ به دے كافرو سره جنګ كوو چه هغوئ څمونږ په مثل شي. حضورؐ ورته اوفرمائيل ذ قلارے نه كار آخله. كوم وخت چه تهٔ د هغوئ ميدان ته ورشے نو هغوئ ته د اسلام دعوت وركړه او څه چه د خدائے د طرف نه په هغوئ فرض دي د هغے نه هغوئ خبر كړه په خدائے مِ دے قسم وي كه ستا په ذريعه يو سړي ته هم هدايت حاصل شو نو دا عمل ستا د پاره د سرو اوښانو نه هم زيات ښه دے.

۲۰۲ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ عَمْرٍو حَدَّثَنَا اَبُوْ اِسْحَاقَ عَنْ حُمَيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسًا يَقُوْلُ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا غَزَا قَوْمًا

۲۰۲ : عبداللّٰه بن محمّد. معاويه بن عمرو. اسحاق. حميد. حضرت انسؓ نه روايت كوي چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم به يو قوم سره جهاد كولو، نو بغير ددے نه چه سحر شي جهاد به ئے نه شروع كولو. بيا كه حضورؐ به اذان واوريدلو، نو جهاد به ئے موقوف

لَمْ يُغِرْ حَتّٰى يُصْبِحَ فَاِنْ سَمِعَ اَذَانًا اَمْسَكَ وَ اِنْ لَمْ يَسْمَعْ اَذَانًا اَغَارَ بَعْدَ مَا يُصْبِحُ فَنَزَلْنَا خَيْبَرَ لَيْلًا حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ اَنَسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا غَزَابِنَا.

کړلو، او که د آذان آواز به ئې واونه ریدلو نو صبا پسې سمدستي به ئې د حملې کولو حکم ورکولو نو مونږ خیبر ته هم د شپې وخت کښې تلي وو. قتیبه اسمعیل بن جعفر. حمید. حضرت انسؓ نه روایت کوي. چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم چه به مونږ سره جهاد کولو. (بیا هم دغه حدیث ئې بیان کړلو).

۲۰۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ اَنَسٍؓ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ اِلٰى خَيْبَرَ فَجَاءَ هَا لَيْلًا وَ كَانَ اِذَا جَاءَ قَوْمًا بِلَيْلٍ لَا يُغِيْرُ عَلَيْهِمْ حَتّٰى يُصْبِحَ فَلَمَّا اَصْبَحَ خَرَجَتْ يَهُوْدُ بِمَسَاحِيْهِمْ وَ مَكَاتِلِهِمْ فَلَمَّا رَأَوْهُ قَالُوْا مُحَمَّدٌ وَاللّٰهِ مُحَمَّدٌ وَالْخَمِيْسُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَللّٰهُ اَكْبَرُ خَرِبَتْ خَيْبَرُ اِنَّا اِذَا نَزَلْنَا بِسَاحَةِ قَوْمٍ فَسَاءَ صَبَاحُ الْمُنْذَرِيْنَ.

۲۰۳: عبداللّٰه بن مسلمه. مالک. حمید د حضرت انسؓ نه روایت کوي چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم خیبر ته د شپې وخت کښې اورسیدلو او حضورؐ به د شپې وخت کښې یو قوم ته ورتلو نو د صبا کیدو نه مخکښې به ئې په هغوئ حمله نه کوله. بیا چه سحر شو، نو یهودو خپلې بیلچې او ټوکرئ اخستې اووتل کوم وخت چه هغوئ حضورؐ اولیدلو، نو وئیلې محمد صلعم راغې. په خدائې مو دې قسم وي، د هغهٔ لښکر هم راغې رسول اللّٰه صلعم اوفرمائیل اللّٰه اکبر خیبر برباد شولو مونږ چه د یو قوم په میدان کښې ډیره واچوو نو د هغې ویریدلو سحر په بد حال شي.

۲۰۴: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُمِرْتُ اَنْ اُقَاتِلَ النَّاسَ حَتّٰى يَقُوْلُوْا لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ فَمَنْ قَالَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ فَقَدْ عَصَمَ مِنِّيْ نَفْسَهُ وَمَا لَهُ اِلَّا بِحَقِّهِ وَ حِسَابُهُ عَلَى اللّٰهِ رَوَاهُ

۲۰۴: ابوالیمان. شعیب. زهري. سعید بن مسیب. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت دې. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل ماته دا حکم راکړې شویدې چه زهٔ خلقو سره جهاد او کړم تر دې چه هغوئ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اووائي، نو کوم سړې چه لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اووائي، د هغه جان و مال محفوظ شي مګر د حق بدله کښې، او د هغهٔ حساب کتاب د خدائې په ذمه دې. دا مضمون حضرت عمرؓ او

عُمَرُ وَ ابْنُ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

ابن عمرؓ هم دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه بيان كړيدے.

۱. ياد ساتئ چه دا حكم د حالت امن نه دے بلكه كوم قوم سره چه د مسلمانانو جنګ كيږي نو د جنګ حالات وي يا جنګ روان وي نو هغے د پاره دا حكم دے چه د لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه كلمے د اقرار نه پس زمونږه هغوئ سره هيڅ جهګړه نيشته. په دے باندے نوټ ددے نه مخكښے هم تير شوے دے.

بَاب۱۴۷: مَنْ اَرَادَ غَـزْوَةً فَـوَرّٰى بِـغَيْـرِهَـا وَمَـنْ اَحَبَّ الْخُرُوْجَ يَوْمَ الْخَمِيْسِ.

بـاب۱۴۷: دَ جـنـګ خـائـے پـټـول. (او بـل خـائـے ښـودل) او دَ زيـارت پـه ورځ سفر كول.

۲۰۵: حَـدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَـدَّثَـنَـا الـلَّيْـثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ كَعْبِ ابْنِ مَالِكٍ اَنَّ عَبْدَ اللّٰـهِ بْنَ كَعْبٍ وَّ كَانَ قَائِدُ كَعْبٍ مِنْ بَنِيْهِ قَالَ سَمِعْتُ كَعْبَ بْنَ مَالِكٍ حِيْنَ تَـخَـلَّفَ عَـنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَـلَيْـهِ وَسَـلَّمَ وَلَمْ يَكُنْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّـى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُرِيْدُ غَزْوَةً اِلَّا وَرّٰى بِغَيْرِهَا.

۲۰۵: يـحـيـي بـن بـكـيـر. لـيـث. عقيل. ابـن شـهـاب. عبـدالـرحـمٰن بـن عـبـداللّٰـه بـن كعب بـن مـالـك نـه روايـت دے. عـبـداللّٰـه بـن كعب بـن مـالـك تـولـو ځـامـنـو كښـے حـضـرت كعب ځـان سـره بـوتـلـونـكـے وو. مـا د حضـرت كعب بن مـالـك نـه واوريـدل چـه هـغـه د رسـول اللّٰه صلي اللّٰـه عـلـيـه وسـلّـم نـه جـهـاد كښـے ورستـو پـاتـے شـوے وو. حـضـور صلي اللّٰه عليه وسلّم به چه كله دَ يو جهاد اراده اوفـرمـائيـلـه نـو پـه طـور د توريـه بـه ئے بل جهت ظاهرولو.

۲۰۶: حَـدَّثَـنِـيْ اَحْـمَـدُ بْـنُ مُحَمَّدٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَـنِ الـزُّهْـرِيِّ قَـالَ اَخْـبَـرَنِـيْ عَبْـدُ الـرَّحْـمٰـنِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَـالِكٍ قَـالَ سَـمِـعْتُ كَعْبَ بْنَ مَـالِكٍ يَـقُـوْلُ كَـانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَـلَيْهِ وَسَلَّمَ قَلَّمَا يُرِيْدُ غَزْوَةً يَغْزُوْهَا اِلَّا وَرّٰى بِـغَيْـرِهَـا حَتّٰـى كَـانَتْ غَزْوَةُ

۲۰۶: احـمـد بـن مـحـمـد. عـبـداللّٰـه. يـونـس. زهـري. عـبـدالـرحـمٰن بـن عبـداللّٰـه بن كـعـب نـه روايـت كـوي هـغـه وائـي مـا د حضرت كـعـب بـن مـالـك نـه واوريـدل چـه اكثـر حضور صـلـي الـلّٰـه عـلـيـه وسلّم بـه چـه كلـه د يو جهـاد اراده فـرمـائيـلـه نـو (د مـصـلـحـت پـه وجـه د خپل عمل نه) دَ هـغـے خـلاف مقام بـه ئے ظاهـرولـو، تـر دے چه دَ تبـوك غـزا راغـلـه. ددے جهـاد اراده رسول

تَبُوْكَ فَغَزَاهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ حَرٍّ شَدِيْدٍ وَاسْتَقْبَلَ سَفَرًا بَعِيْدًا وَ مَفَازًا وَّاسْتَقْبَلَ غَزْوَ عَدُوٍّ فَجَلّٰى لِلْمُسْلِمِيْنَ اَمْرَهُمْ لِيَتَاَهَّبُوْا اُهْبَةَ عَدُوِّهِمْ فَاَخْبَرَهُمْ بِوَجْهِهِ الَّذِيْ يُرِيْدُ وَ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ كَعْبَ بْنَ مَالِكٍ كَانَ يَقُوْلُ لَقَلَّمَا كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْرُجُ اِذَا خَرَجَ فِيْ سَفَرٍ اِلَّا يَوْمَ الْخَمِيْسِ.

اللّٰـه صلي اللّٰـه عليـه وسلّم سختې کرمۍ کښې اوفرمائيلـه د لرې سفر وو او مخې تـه خنګلات وو او ذ دشمـن کثير تعداد سره مقابلـه وه، نو حضورؐ مسلمانانو ته دا جهاد صاف صاف ښودلې وو چـه د دشمن مطابق سامان تيار کړي. او کوم طرف تـه چـه تـل وو هغـه ئې هم ښودلې وو يونس پـه واسطه ذ زهري بيان کړيدې. ماتـه عبدالرحمٰن بن كعب بن مالک اوفرمائيل. چـه حضرت كعب بن مالک بـه فرمائيل. داسې بـه ډيره کمه موقع وه چـه رسول اللّٰـه صلي اللّٰـه عليـه وسلّم بـه د جمعرات نـه علاوه پـه بله ورځ سفر کولو.

حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هِشَامٌ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ اَبِيْهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ يَوْمَ الْخَمِيْسِ فِيْ غَزْوَةِ تَبُوْكَ وَ كَانَ يُحِبُّ اَنْ يَخْرُجَ يَوْمَ الْخَمِيْسِ.

عبداللّٰـه بن محمد. هشام. معمر. زهري. عبدالرحمٰن بن كعب بن مالک. د خپل پلار نـه روايت کوي. چـه حضور صلي اللّٰه عليـه وسلّم ذ تبوک غزا کښې ذ زيارت پـه ورځ (مدينې نـه) وتلې وو او حضورؐ بـه دا خوښولـه چـه پـه سفر ذ پاره ذ زيارت پـه ورځ اوځي.

## باب ۱۴۸ : اَلْخُرُوْجُ بَعْدَ الظُّهْرِ.

## باب ۱۴۸ : د ماسپخين د مونځ نـه پس سفر.

۲۰۷ : حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ اَنَسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلّٰى بِالْمَدِيْنَةِ الظُّهْرَ اَرْبَعًا وَالْعَصْرَ بِذِي الْحُلَيْفَةِ

۲۰۷ : سليمان بن حرب. حماد. ايوب. ابوقلابه. انسؓ نـه روايت کوي. چـه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليـه وسلّم مدينه کښې د ماسپښين څلور رکعتـه او ذ مازيګر ذوالحليفه کښې دوه رکعاتـه اوکړل او مـا د صحابـهؓ نـه واوريدل چـه

رَكْعَتَيْنِ وَ سَمِعْتُهُمْ يَصْرِخُوْنَ بِهِمَا جَمِيْعًا.

د حج او عمرے دواړو تلبيه به ئے اوچت آواز سره کوله.

بَاب ۱۴۹ : اَلْخُرُوْجِ اٰخِرِ الشَّهْرِ. وَ قَالَ كُرَيْبٌ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ انْطَلَقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْمَدِيْنَةِ لِخَمْسٍ بَقِيْنَ مِنْ ذِى الْقَعْدَةِ وَ قَدِمَ مَكَّةَ لِاَرْبَعِ لَيَالٍ خَلَوْنَ مِنْ ذِى الْحِجَّةِ.

باب ۱۴۹ : آخر مياشت کښے د وتلو بيان.

او کريب د حضرت عباسؓ نه روايت کړيدے چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د مدينے نه د ذيقعدے په پنځويشتم تاريخ رواق شوے وو، او مکے شريفے ته د ذي الحجے په څلورم تاريخ رسيدلے وو.

۲۰۸ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ يَحْيَى ابْنِ سَعِيْدٍ عَنْ عَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّهَا سَمِعَتْ عَائِشَةَ تَقُوْلُ خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِخَمْسِ لَيَالٍ بَقِيْنَ مِنْ ذِى الْقَعْدَةِ وَلَا نُرٰى اِلَّا الْحَجَّ فَلَمَّا دَنَوْنَا مِنْ مَكَّةَ اَمَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ لَمْ يَكُنْ مَعَهُ هَدْيٌ اِذَا طَافَ بِالْبَيْتِ وَسَعٰى بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ اَنْ يَحِلَّ قَالَتْ عَائِشَةُ فَدَخَلَ عَلَيْنَا يَوْمَ النَّحْرِ بِلَحْمِ بَقَرٍ فَقُلْتُ مَا هٰذَا فَقَالَ نَحَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ اَزْوَاجِهٖ قَالَ يَحْيٰى فَذَكَرْتُ هٰذَا الْحَدِيْثَ لِلْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ فَقَالَ اَتَتْكَ وَاللّٰهِ بِالْحَدِيْثِ عَلٰى وَجْهِهٖ.

۲۰۸ : عبداللّٰه بن مسلمه. مالک. يحيٰي بن سعيد. عمره بنت عبدالرحمٰن نه روايت کوي هغې د بي بي عائشےؓ نه واوريدل. چه مونږ خلق رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم سره حج د پاره په پنځويشتم ذيقعده روان شو. زمونږ صرف د حج خيال وو. ليکن څه وخت چه مونږ مکے ته قريب شو نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اعلان او کړلو چه کوم سړي سره قرباني نه وي. او هغهٔ د کعبے طواف او د کوه صفا او مروه مينځ کښے سعي کړے وي، نو احرام دِ پرانزي بي بي عائشهؓ وائي. د قربانئ په ورځ مونږ ته د غوا غوښه راوړے شوه. ما تپوس او کړهٔ. دا غوښه څنګه ده. وئيلے. رسول اللّٰه صلعم د خپلو بيبيانو د طرف نه قرباني کړيده. مشهور راوي يحيٰي وائي ما دا حديث قاسم بن محمد بن ابي بکرؓ ته بيان که نو هغه اووے په اللّٰه مِ دِ قسم وي بي بي عائشےؓ دا حديث تاته بالکل ټيک بيان کړيدے.

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ وَالشکر لِلّٰهِ چه د صحيح بخاري يوولسمه پاره ختمه شوه

تاج

# تاج البخاري

## پښتو شرح صحيح البخاري

پاره ۱۲

شارح: مولانا ظهور الباری اعظمی فاضل دارالعلوم دیوبند

پښتو ترجمه: مولانا محمد امین درانی

نظرثانی: حافظ قاری فضل کریم

اهتمام: دکتور محمد دین البا

تاج کتب خانه رجسټرډ

C-20

# تاج البخاري پاره ۱۲ دمضامينو فهرست

# دولسمه پاره

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

بَاب ۱۵۰ : اَلۡخُرُوۡجِ فِيۡ رَمَضَانَ.

۲۰۹ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بۡنُ عَبۡدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفۡيَانُ قَالَ حَدَّثَنِيۡ الزُّهۡرِيُّ عَنۡ عُبَيۡدِ اللّٰهِ عَنِ ابۡنِ عَبَّاسٍ قَالَ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ فِيۡ رَمَضَانَ فَصَامَ حَتّٰى بَلَغَ الۡكَدِيۡدَ اَفۡطَرَ قَالَ سُفۡيٰنُ قَالَ الزُّهۡرِيُّ اَخۡبَرَنِيۡ عُبَيۡدُ اللّٰهِ عَنِ ابۡنِ عَبَّاسٍ وَّ سَاقَ الۡحَدِيۡثَ.

بَاب ۱۵۱ : التَّوۡدِيۡعِ. وَ قَالَ ابۡنُ وَهۡبٍ اَخۡبَرَنِيۡ عَمۡرُو عَنۡ بُكَيۡرٍ عَنۡ سُلَيۡمَانَ ابۡنِ يَسَارٍ عَنۡ اَبِيۡ هُرَيۡرَةَ اَنَّهُ قَالَ بَعَثَنَا رَسُوۡلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ فِيۡ بَعۡثٍ وَ قَالَ لَنَا اِنۡ لَقِيۡتُمۡ فُلَانًا وَّ فُلَانًا لِرَجُلَيۡنِ مِنۡ قُرَيۡشٍ سَمَّاهُمَا فَحَرِّقُوۡهُمَا بِالنَّارِ قَالَ ثُمَّ اَتَيۡنَاهُ نُوَدِّعُهُ حِيۡنَ اَرَدۡنَا الۡخُرُوۡجَ فَقَالَ اِنِّيۡ كُنۡتُ اَمَرۡتُكُمۡ اَنۡ تُحَرِّقُوۡا فُلَانًا وَّ فُلَانًا بِالنَّارِ وَ اِنَّ النَّارَ لَا يُعَذِّبُ بِهَا اِلَّا اللّٰهُ فَاِنۡ اَخَذۡتُمُوۡهُمَا فَاقۡتُلُوۡهُمَا.

شروع کوم په نامه د خدائے چه بخښونکے مهربانه دے

باب ۱۵۰ : د رمضان میشت کښې د سفر کولو بیان.

۲۰۹ : علي بن عبدالله. سفیان. زهري. عبیدالله. ابن عباسؓ نه روایت کوي. یو خلې رسول الله صلي الله علیه وسلم د رمضان میاشت کښې د روژې حالت کښې سفر اوکړ. او مقام کدید ته اورسید هلته ئې روژه ماته کړه. سفیان په واسطه د زهري اووے چه عبیدالله د حضرت عباسؓ نه هم دا حدیث او دوے ما بقي پوره حدیث ئې بیان که.

باب ۱۵۱ : د مسافر په سفر رخصتول. او ابن وهب اووے چه ماته په واسطه د عمرو. بکر او سلیمان بن یسار ذَ ابوهریرهؓ نه دا حدیث رارسیدلے دے چه حضورؐ یو لښکر کښې مونږ اولیږلو. او ذَ قریشو د دوؤ سړو نومونه ئې واخستل، کۀ ذَ قریشو فلانے فلانے سړے بیامومئ، نو هغه په اُور اوسیزئ. ابوهریرهؓ وائي. کوم وخت چه مونږ روان شو، ذَ حضورؐ نه رخصت اخستو ذَ پاره راغلو نو ارشاد ئې اوفرمائیلو ما تاسوته حکم درکړے وو چه فلانے فلانے په اُور اوسیزئ. خو اُور سره الله عذاب ورکوي. گرفتار ئې کړئ او په توره ئې قتل کړئ..

۱. انسان که هر څومره مجرم ولې نه وي بلکه د هیڅ جاندار هم روستو پخپله نبي کریم صلی الله علیه وسلّم پسه اور سره د سزا ورکولو ممانعت کړې وو. دا ذ حضور حکم د دې نه مخکښې دې او دا خدائې تعالی د طرفنه بیا د اسلامي شریعت قانون دا او تیاکلې شو چه خواه جرم هر څومره سنګین ولې وي خو د سوزولو سزا د هیچا له هم ورنه کړې شي، څنګه چه پخپله ددې حدیث په آخره کښې ددې تصریح ده.

بَاب ۱۵۲ : السَّمْعِ وَالطَّاعَةِ لِلْإِمَامِ.

۲۱۰ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ صَبَّاحٍ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ زَكَرِيَّا عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ السَّمْعُ وَالطَّاعَةُ حَقٌّ مَالَمْ يُؤْمَرْ بِالْمَعْصِيَةِ فَاِذَا اَمَرَ بِمَعْصِيَةٍ فَلَا سَمْعَ وَلَا طَاعَةَ.

باب ۱۵۲ : د امام د احکامو د تعمیل او فرمانبرداری بیان.

۲۱۰ : مسدد. یحیی. عبیدالله. نافع. حضرت ابن عمر نه روایت کوي حضور صلی الله علیه وسلّم اوفرمائیل محمد بن صباح. اسمٰعیل بن زکریا، عبیدالله، نافع، حضرت ابن عمر نه روایت کوي. حضورؐ اوفرمائیل د امام خبره اوریدل او حکم منل په هر سړي لازم دي، خو پورې چه د یوې خرابې خبرې یا د ګناه حکم ورنکړي او که د څه ګناه کولو حکم ورکړي نو هغه وخت دې د امام خبره نه آوري. او نه دې د هغه احکام مني.

بَاب ۱۵۳ : يُقَاتَلُ مِنْ وَّرَاءِ الْاِمَامِ وَ يُتَّقٰى بِهٖ.

۲۱۱ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ اَنَّ الْاَعْرَجَ حَدَّثَهٗ اَنَّهٗ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ اَنَّهٗ سَمِعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ نَحْنُ الْاٰخِرُوْنَ السَّابِقُوْنَ وَ بِهٰذَا الْاِسْنَادِ مَنْ اَطَاعَنِيْ فَقَدْ اَطَاعَ اللّٰهَ وَمَنْ عَصَانِيْ فَقَدْ عَصَى اللّٰهَ وَمَنْ

باب ۱۵۳ : د امام د طرف نه د جنګ کولو او هغه په ذریعه ذ پناه غوښتلو بیان.

۲۱۱ : ابوالیمان. شعیب. ابوالزناد. اعرج. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي هغهٔ د حضور صلی الله علیه وسلّم نه واوریدل. مونږ ذ نورو امتونو په اعتبار د زمانې اګر که آخر کښې یو لیکن مرتبه کښې ډیر مخکښې او بلند یو او دې اسناد سره بیان شویدي چه حضورؐ اوفرمائیل چا چه څما اطاعت او که هغه د الله تعالی اطاعت اوکه او چا چه څما نافرماني او کړه هغه: الله نافرماني اوکړه: او کوم سړي چه د حاکم شریعت

يُطِعِ الْاَمِيْرَ فَقَدْ اَطَاعَنِيْ وَمَنْ يَعْصِ الْاَمِيْرَ فَقَدْ عَصَانِيْ وَ اِنَّمَا الْاِمَامُ جُنَّةٌ يُقَاتَلُ مِنْ وَّرَائِهٖ وَ يُتَّقٰى بِهٖ فَاِنْ اَمَرَ بِتَقْوَى اللّٰهِ وَ عَدَلَ فَاِنَّ لَهٗ بِذَالِكَ اَجْرًا وَ اِنْ قَالَ بِغَيْرِهٖ فَاِنَّ عَلَيْهِ وِزْرًا.

اطاعت او كړو هغه خما اطاعت او كړو او څوک چه د حاكم خلاف ورزي او كړي نو هغه خما نافرماني او كړه واوره امام د ډهال په شان دے د هغه پناه اخستو سره جنګ كيږي او د هغه په ذريعه (دشمن نه) بچاؤ كيږي نو كه هغه ده ته د تقوي او د عدل او انصاف كولو حكم وركړي نو ده ته به ثواب حاصليږي او كه هغه د دے خلاف ورزي او كړي نو ګناه به په هغه ده.

## باب ۱۵۴ : اَلْبَيْعَةِ فِي الْحَرْبِ اَنْ لَّا يَفِرُّوْا وَ قَالَ بَعْضُهُمْ عَلَى الْمَوْتِ لِقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى لَقَدْ رَضِيَ اللّٰهُ عَنِ الْمُؤْمِنِيْنَ اِذْ يُبَايِعُوْنَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ.

باب ۱۵۴ : ميدان جنګ نه د نه تښتيدو د بيعت بيان او بعضے وائي، په مرګ دے[۱]، حسب فرمان الٰهي چه بيشكه اللّٰه تعالٰي د هغے مسلمانانو نه راضي شو هر كله چه اے رسول اكرمه تانه خلقو د اونې د لاندے بيعت كولو.

۱. كه د جنګ په موقعه باندے امام په مرګ باندے لوظ واخلي يا په صبر او استقامت او په هيڅ صورت كښے هم تيښته نۀ كولو باندے، د دواړو مقصد يو دے، بعضو حضراتو دا فرمائيلي دي چه په مرګ باندے لوظ دِ وانۀ خستے شي، ولے چه مقصود مرګ نه دے، بلكه د جنګ په موقعه باندے استقامت او په ټينګه مقابله كول دي، نه چه مرګ. كومو حضراتو چه دا فرمائيلي دي چه په مرګ باندے لوظ اخستل پكار دي نو د هغوئ مقصد هم د سختے نه سختے موقعه باندے صبر او استقامت او د تيښتے نۀ كولو نه سوا بل څه نه دي.

هسے كه د كمانډر په هدايت باندے ټول فوځ ماتے او كړي نو دا قطعًا جُدا څيز دے، مقصود همدا دے چه د جنګ وخت كښے د فوج يو يو فرد له د كمانډر د هدايت نه يو انچ اَخوا كيدل نه دي پكار. هيڅوک دِ داسے نه كوي چه د خپل خانله خان بچ كولو د پاره په څه موقعه باندے تيښته او كړي يا د كمانډر د هدايت نه بغير د خپل ځائے نه اخوا شي.

۲۱۲ : حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَافِعٍ قَالَ ابْنُ عُمَرَؓ رَجَعْنَا مِنَ الْعَامِ الْمُقْبِلِ فَمَا اجْتَمَعَ مِنَّا اثْنَانِ عَلَى الشَّجَرَةِ الَّتِيْ بَايَعْنَا تَحْتَهَا كَانَتْ رَحْمَةً مِنَ اللّٰهِ

۲۱۲ : موسٰي. جويريه. نافع. ابن عمرؓ نه روايت كوي چه آئنده كال يعني د بيعت رضوان نه پس هر كله چه مونږ بيا واپس شو نو زمونږ دوو ملګرو كښے يو هم هغه اُونه بيانه مُندله چه د هغے لاندے مونږ بيعت كړے وو چه د اللّٰه مهرباني وه[۱] دے نه پس ما د نافع نه تپوس اوكۀ چه حضورؐ د صحابهؓ نه په كومه

فَسَأَلْتُ نَافِعًا عَلَى اَيِّ شَيْءٍ بَايَعَهُمْ عَلَى الْمَوْتِ فَقَالَ لَا بَايَعَهُمْ عَلَى الصَّبْرِ.

خبره بيعت اخستے وو مرګ باندے' نو هغه اووے نه بلکه جنګ کښے په ثابت قدم پاتے کیدو ئے بیعت اخستے وو.

۱. یعني د صلحے نه مخکښ چه کله د حضرت عثمان رضي الله عنه د قتل خبر راغے نو حضور صلي الله علیه وسلّم ددے ناحقے وینے (د کومے باره کښے چه روستو معلومه شوه چه خبر غلط وو) بدلے اخستلو د پاره ئے د ټولو اصحابو رضوان الله علیهم اجمعین نه دیوے اونے لاندے ناستے سره بیعت اخستے وو چه ددے ناحقے وینے دَ بدل د پاره به تر آخري سلګئ پورے کافرو سره جنګیږو. په دے بیعت باندے الله تعالٰي د خپلے رضا اظهار په قرآن کښے فرمائیلے وو او دا په دغه بیعت کښے دَ شریکیدونکو ټولو اصحابوؓ د پاره فخر او د دین او دنیا د ټولونه لوئے اعزاز کیدے شي.

ابن عمر رضي الله عنه فرمائي چه بیا روستو کله مونږه د صلحے کال د عمرے قضا راګرځولو د پاره حضور اکرم صلي الله علیه وسلّم سره لاړو نو مونږه د هغه ځائے نشاندهي اونکړے شوه کوم ځائے ناستے سره چه پاک حضرتؐ خمونږ نه لوظ اخستے وو. بیا ابن عمر رضي الله عنه فرمائي چه دا دَ اسلام دَ تاریخ یوه عظیم الشانه واقعه ده. او دا هم ظاهره ده چه په دغه ځائے به د الله تعالٰي د رحمتونو نزول ډیر زیات وي کوم ځائے کښے ناستے سره چه حضور اکرم صلي الله علیه وسلّم د خپلو ټولو اصحابوؓ نه د الله دَ دین د پاره دومره اهم بیعت اخستے وو. دے د پاره ممکنه ده چه کله چرے هغه ځائے مونږ ته معلومه وے نو دَ امت بعضے افراد به د هغے په وجے سره فتنه کښے پریوتي وے او ممکنه وه چه جاهل او خوش عقیده قسمه مسلمانانو خلقوبه دهغے تعظیم او تکریم شروع کړے وے' دے دَ پاره دا هم د خدائے لوئے رحمت وو چه د هغه ځائے آثار او نخے ئے خمونږ د ذهنونونه هیرے کړے او د اُمت یوه طبقه ئے د عقیدے فساد کښے مبتلا کیدلو نه بچ کړه.

۲۱۳: حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ يَحْيٰى عَنْ عَبَّادِ بْنِ تَمِيْمٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ زَيْدٍ قَالَ لَمَّا كَانَ زَمَنَ الْحَرَّةِ اَتَاهُ اٰتٍ فَقَالَ لَهٗ اِنَّ ابْنَ حَنْظَلَةَ يُبَايِعُ النَّاسَ عَلَى الْمَوْتِ فَقَالَ لَا اُبَايِعُ عَلٰى هٰذَا اَحَدًا بَعْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۲۱۳: موسٰي بن اسمٰعیل. وهیب. عمرو. عباد. حضرت عبدالله بن زید نه روایت کوي دَ واقعه حره په زمانه کښے یو سړے راغے. ماته ئے اووے دَ حنظله ځامن د خلقو نه په مرګ بیعت اخلي نو حضرت عبدالله اووے' مونږ دَ رسالت مآب حضور صلي الله علیه وسلّم نه پس هیچا سره په دے شرط بیعت نه کووڼ.

۱. یعني په حدیبیه مقام کښے د صلحے نه مخکښے د رسول الله صلي الله علیه وسلّم په مخکښے ټولو اصحابوؓ سره ما یو لوظ کړے وو. هغه یو لوظ کافي دے. د حضورؐ نه پس د چا په وړاندے ددے لوظ اوس ضرورت نیشته.

۲۱۴: حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ أَبِيْ عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ قَالَ بَايَعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ عَدَلْتُ إِلٰى ظِلِّ الشَّجَرَةِ فَلَمَّا خَفَّ النَّاسُ قَالَ يَا ابْنَ الْأَكْوَعِ أَلَا تُبَايِعُ قَالَ قُلْتُ قَدْ بَايَعْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَ أَيْضًا فَبَايَعْتُهُ الثَّانِيَةَ فَقُلْتُ يَا أَبَا مُسْلِمٍ عَلٰى أَيِّ شَيْءٍ كُنْتُمْ تُبَايِعُوْنَ يَوْمَئِذٍ قَالَ عَلَى الْمَوْتِ.

۲۱۴: مكي بسند ابراهيم. يزيد بن ابي عبيده. سلمه بن اكوع نه روايت كوي. څهٔ د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه د بيعت رضوان نه پس د يوې اونې سورې طرف ته لاړم د خلقو د كيدو نه پس حضورؐ اوفرمائيل اې ابن اكوع! آيا ته بيعت نه كوې ما عرض اوكه يا رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ما خو اوس تاسو نه بيعت اوكړو. وې فرمائيل مكرر نو ما دوباره بيعت اوكړلو. ما هغه ته اووې اې ابو مسلم تا په هغه ورځ د څهٔ خبرې بيعت كړې وو هغه جواب راكه، په مرګ مِ بيعت كړې وو.

۲۱۵: حَدَّثَنَا حَفْصُ ابْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ حُمَيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسًا يَقُوْلُ كَانَتِ الْأَنْصَارُ يَوْمَ الْخَنْدَقِ تَقُوْلُ ۔ نَحْنُ الَّذِيْنَ بَايَعُوْا مُحَمَّدًا عَلَى الْجِهَادِ مَا بَقِيْنَا أَبَدًا فَأَجَابَهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَللّٰهُمَّ لَا عَيْشَ إِلَّا عَيْشُ الْاٰخِرَةْ. فَاغْفِرِ الْأَنْصَارَ وَالْمُهَاجِرَةْ.

۲۱۵: حفص. شعبه. حميد. انس نه روايت كوي. چه دَ خندق په ورځ انصارو وئيلې، مونږ د محمّد رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه په جهاد بيعت كړيدې، او څو پورې چه ژوندي يو پرله پسې جهاد به كوو. (او جهاد زمونږ ژوند دې). چه دَ هغې په جواب كښې رحمة للعٰلمين اوفرمائيل، اې اللّٰه عيش خو د آخرت دې. او اې اللّٰه تهٔ انصار او مهاجرين سربلند كړې، عيش و آرام ئې نصيب كړې.

۲۱۶: حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيْمَ سَمِعَ مُحَمَّدَ بْنَ فُضَيْلٍ عَنْ عَاصِمٍ عَنْ أَبِيْ عُثْمَانَ عَنْ مُجَاشِعٍ قَالَ أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَا وَ أَخِيْ فَقُلْتُ بَايِعْنَا عَلَى الْهِجْرَةِ فَقَالَ مَضَتِ الْهِجْرَةُ لِأَهْلِهَا

۲۱۶: اسحٰق. محمد بن فضيل. عاصم. ابو عثمان. مجاشع نه روايت كوي چه ما خپل ورور خان سره كه او دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت كښې حاضر شو، عرض مو اوكه يا رسول اللّٰه مونږ نه په هجرت بيعت واخلې. حضورؐ اوفرمائيل چه هجرت خو د مسلمانانو دَ پاره ختم شولو، ما عرض اوكه تاسو په

فَقُلْتُ عَلٰى مَا تُبَايِعُنَا قَالَ عَلَى الْإِسْلَامِ وَالْجِهَادِ.

**باب ۱۵۵ : عَزْمِ الْإِمَامِ عَلَى النَّاسِ فِيْمَا يُطِيْقُوْنَ.**

۲۱۷ : حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ اَبِیْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اَبِیْ وَائِلٍ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ لَقَدْ اَتَانِی الْيَوْمَ رَجُلٌ فَسَاَلَنِیْ عَنْ اَمْرٍ مَا دَرَيْتُ مَا اَرُدُّ عَلَيْهِ فَقَالَ اَرَاَيْتَ رَجُلًا مُؤْدِيًا نَشِيْطًا يَخْرُجُ مَعَ اُمَرَائِنَا فِی الْمَغَازِیْ فَيَعْزِمُ عَلَيْنَا فِیْ اَشْيَاءَ لَا نُحْصِيْهَا فَقُلْتُ لَهٗ وَاللّٰهِ مَا اَدْرِیْ مَا اَقُوْلُ لَكَ اِلَّا اِنَّا كُنَّا مَعَ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَسٰی اَنْ لَا يَعْزِمَ عَلَيْنَا فِیْ اَمْرٍ اِلَّا مَرَّةً حَتّٰی نَفْعَلَهٗ وَ اِنَّ اَحَدَكُمْ لَنْ يَّزَالَ بِخَيْرٍ مَا اتَّقَی اللّٰهَ وَ اِذَا شَكَّ فِیْ نَفْسِهٖ شَیْءٌ سَاَلَ رَجُلًا فَشَفَاهُ مِنْهُ وَ اَوْشَكَ اَنْ لَا تَجِدُوْهُ وَالَّذِیْ لَا اِلٰهَ اِلَّا هُوَ مَا اَذْكُرُ مَا غَبَرَ مِنَ الدُّنْيَا اِلَّا كَالثَّغْبِ شُرِبَ صَفْوُهٗ وَ بَقِیَ كَدَرُهٗ.

**باب ۱۵۶ : كَانَ النَّبِیُّ صَلَّی**

کومه خبره زمونږ نه بیعت اخلئ. ورے فرمائیل اسلام او جهاد باندے.

**باب ۱۵۵ : ذ امام په خلقو حسب طاقت احکامو ذ واجب کولو بیان.**

۲۱۷ : عثمان بن ابو شیبه. جریر. منصور. ابو وائل نه روایت کوي. عبدالله بن مسعود د یوه ورځ اوورے چه یو سړي مانه مسئله اوپښتله چه د هغے جواب ما ورنکړے شو. هغه اوورے مونږ ذ هغے سړي باره کښے څه رویه اختیار کړو چه په وسله پوره او بالکل تندرست وي هغه څمونږ ذ رئیسانو معیت کښے جهاد هم کوي لیکن هغه داسے احکام ورکوي چه ذ هغے تعمیل مونږ نشو کولے ما هغه ته جواب ورکه په خدائے چه خما په پوهه کښے خو هیڅ نه راځي چه زۀ تاله څه جواب درکړم البته دا واوره مونږ رسول الله صلي الله علیه وسلم سره وو نو حضورؐ به د هر کار مونږ ته یو ځل حکم راکولو او هغه کار به مونږ کولو او بیشکه تاسو کښے به هر سړے د هغه وخته پورے ښه وي څو پورے چه الله تعالٰي نه ویریږي. او کله چه دَ چا په زړۀ کښے څه شبه پیدا شي' نو هغه له پکار دي چه هغه د بل سړي نه تپوس اوکړي چه ددۀ تسلي اوکړي او تاسو به عنقریب ذ داسے ښو صفاتو سړي بیا مومئ او قسم دے هغے معبود واحد څومره دنیا چه تیره شویده د هغے بابت کښے زۀ وایم چه هغه د یو حوض په شان ده چه د هغے صفا اوبۀ خو څکلے شوے وي او دَ هغے ناصفا اوبه باقي پاتے شوي وي.

**باب ۱۵۶ : رسول الله صلي الله علیه**

اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ إِذَا لَمْ یُقَاتِلْ أَوَّلَ النَّهَارِ أَخَّرَ الْقِتَالَ حَتّٰی تَزُوْلَ الشَّمْسُ.

وسلّم چه به د ورځې اول وخت کښې جنګ اونکړلو نو د نمر د زوال پورې به ئې جنګ مؤخر کړلو.

**۲۱۸**: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا مُعَاوِیَةُ بْنُ عَمْرٍو وَ حَدَّثَنَا أَبُوْ إِسْحَاقَ عَنْ مُوْسَی بْنِ عُقْبَةَ عَنْ سَالِمٍ أَبِی النَّضْرِ مَوْلٰی عُمَرَ ابْنِ عُبَیْدِ اللّٰهِ وَ کَانَ کَاتِبًا لَّهٗ قَالَ کَتَبَ إِلَیْهِ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ أَبِیْ أَوْفٰی فَقَرَأْتُهٗ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فِیْ بَعْضِ أَیَّامِهِ الَّتِیْ لَقِیَ فِیْهَا انْتَظَرَ حَتّٰی مَالَتِ الشَّمْسُ ثُمَّ قَامَ فِی النَّاسِ قَالَ أَیُّهَا النَّاسُ لَا تَتَمَنَّوْا لِقَاءَ الْعَدُوِّ وَ سَلُوا اللّٰهَ الْعَافِیَةَ فَإِذَا لَقِیْتُمُوْهُمْ فَاصْبِرُوْا وَاعْلَمُوْا أَنَّ الْجَنَّةَ تَحْتَ ظِلَالِ السُّیُوْفِ ثُمَّ قَالَ اَللّٰهُمَّ مُنْزِلَ الْکِتٰبِ وَ مُجْرِیَ السَّحَابِ وَ هَازِمَ الْأَحْزَابِ اهْزِمْهُمْ وَانْصُرْنَا عَلَیْهِمْ.

**۲۱۸**: عبداللّٰه. معاویه. ابو اسحٰق. موسٰی. سالم د حضرت عمر بن عبیداللّٰه آزاد کرده غلام ابوالنضر نه روایت کوی، عبداللّٰه بن ابی اوفٰی یو خط اولیږه هغه ما لوستے وو. چه حضورؐ یو خلے د جهاد دوران کښې د نمر د زوال منتظر وو. او د نمر زوال نه پس حضورؐ خلقو کښې اودریدو. اووے فرمائیل. اے خلقو تاسو دشمن سره دوه په دوه د مقابلے خواهش مه کوئ. او د اللّٰه تعالٰی نه عافیت او سلامتی غواړئ، او هر کله چه تاسو دشمن سره مقابله کوئ نو صبر کوئ، او پوهه شئ چه جنت د تورو د سوری د لاندے دے. بیائے اوفرمائیل اے اللّٰه د کتاب نازل کونکیه او د وریځے چلونکیه او کافر په لړزان او تیښته کونکی مالکه. ته دے کافرو له ماتے ورکړے او مونږ له په دوئ فتح راکړے.

**باب ۱۵۷**: اسْتِیْذَانِ الرَّجُلِ الْإِمَامَ إِنَّمَا الْمُؤْمِنُوْنَ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ وَ إِذَا کَانُوْا مَعَهٗ عَلٰی أَمْرٍ جَامِعٍ لَّمْ یَذْهَبُوْا حَتّٰی یَسْتَأْذِنُوْهُ إِنَّ الَّذِیْنَ یَسْتَأْذِنُوْنَکَ إِلٰی اٰخِرِ الْاٰیَةِ.

**باب ۱۵۷**: امام نه د اجازت طلب کولو بیان. د اللّٰه تعالٰی ددے قول موافق مؤمنان هغه دی چه اللّٰه او د هغه په رسول ایمان راوړی او هر کله چه د یو کار د پاره جمع کیږی نو اجازت حاصلولو نه بغیر نه خی. آخر آیت پورے.

**۲۱۹**: حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِیْمَ أَخْبَرَنَا جَرِیْرٌ عَنِ الْمُغِیْرَةِ

**۲۱۹**: اسحٰق. جریر. مغیره. شعبی. جابر بن عبداللّٰه نه روایت کوی. زه رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه

عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ
اللّٰهِ قَالَ غَزَوْتُ مَعَ رَسُوْلِ
اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
قَالَ فَتَلَاحَقَ بِيَ النَّبِيُّ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَنَا عَلٰى نَاضِحٍ
لَنَا قَدْ اَعْيٰى فَلَا يَكَادُ يَسِيْرُ فَقَالَ
لِيْ مَا لِبَعِيْرِكَ قَالَ قُلْتُ عَيِيَ
قَالَ فَتَخَلَّفَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَزَجَرَهٗ وَ دَعَا لَهٗ
فَمَا زَالَ بَيْنَ يَدَيِ الْاِبِلِ قُدَّامَهَا
يَسِيْرُ فَقَالَ لِيْ كَيْفَ تَرٰى بَعِيْرَكَ
قَالَ قُلْتُ بِخَيْرٍ قَدْ اَصَابَتْهُ
بَرَكَتُكَ قَالَ اَفَتَبِيْعُنِيْهِ قَالَ
فَاسْتَحْيَيْتُ وَلَمْ يَكُنْ لَنَا نَاضِحٌ
غَيْرُهٗ قَالَ فَقُلْتُ نَعَمْ قَالَ فَبِعْنِيْهِ
فَبِعْتُهٗ اِيَّاهُ عَلٰى اَنَّ لِيْ فِقَارُ ظَهْرِهٖ
حَتّٰى اَبْلُغَ الْمَدِيْنَةَ قَالَ فَقُلْتُ يَا
رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ عَرُوْسٌ فَاسْتَأْذَنْتُهٗ
فَاَذِنَ لِيْ فَتَقَدَّمْتُ النَّاسَ اِلَى
الْمَدِيْنَةِ حَتّٰى اَتَيْتُ الْمَدِيْنَةَ فَلَقِيَنِيْ
خَالِيْ فَسَاَلَنِيْ عَنِ الْبَعِيْرِ فَاَخْبَرْتُهٗ بِمَا
صَنَعْتُ فِيْهِ فَلَامَنِيْ قَالَ وَقَدْ كَانَ
رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
قَالَ لِيْ حِيْنَ اسْتَأْذَنْتُهٗ هَلْ تَزَوَّجْتَ
بِكْرًا اَمْ ثَيِّبًا فَقُلْتُ تَزَوَّجْتُ ثَيِّبًا
فَقَالَ هَلَّا تَزَوَّجْتَ بِكْرًا تُلَاعِبُهَا وَ

وسلّم سره میدان جنګ کښې ووم. دغې میدان کښې
رسول الله صلي الله علیه وسلّم ماسره یوځائې شولو او
زۀ خپل اوبه راوړونکي اوښ باندِ سور ووم، چه ستړې
شوې وو، اوتلې نه شو، حضورؐ تپوس او که، ستا په دې
اوښ څه چل شوې دې. ما عرض او که، ستړې شویدې
حضورؐ د شا اړخ نه ورله ډب ور که او هغه د پاره ئې دعا
او کړله، بیا حضورؐ خما اوښ سره تلو اووې فرمائیل:
اوس ستا د اوښ څۀ حال دې؟ ما عرض او که. اوس خو
بهتر شویدې. اصل کښې ستاسوؐ برکت ورته حاصل
شویدې، وې فرمائیل آیا ته دا په ما خرڅوې، نو ځۀ
اوشرمیدم ځکه چه ماسره اوبو راوړلو د پاره بل اوښ نه
وو. لیکن ددې باوجود ما "او" اوکړل. حضورؐ
اوفرمائیل ته دا په ما خرڅ کړه بیا ما هغه په دې شرط
خرڅ که چه مدینې پورې به پرې سورلي کوم. بیا ما
عرض او که یا رسول اللهؐ خما اوس اوس وادۀ شوې دې
او ما حضورؐ نه اجازت طلب کۀ نو هغویؐ ماله اجازت
راکۀ نو زۀ د خپلو ټولو ملګرو نه مخکښې مدینې ته
اورسیدم او د ټولو نه مخکښې مدینه کښې ماسره خما
ماما یو ځائې شو او هغۀ د هغې اوښ تپوس او که نو ما
ورته ټوله واقعه تیره کړه، او هغۀ چه ټوله واقعه واوریده
نو زۀ ئې ملامت کړم او کوم وخت چه ما د حضورؐ نه د
روانګئ اجازت طلب که. نو حضورؐ اوفرمائیل اې
جابره، تا جینئ سره وادۀ کړیدې که کُنډې سره، نو ما
ورته اووې کنډې سره، نو حضورؐ اوفرمائیل، پیغلې سره
دِ ولې وادۀ نه کولو چه دواړه خپلو کښې لوبیدئې، ما
عرض او که یا رسول اللهؐ خما پلار وفات یا شهید شو، او

تُلَاعِبُكَ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ تُوُفِّيَ وَالِدِيُ اَوُ اُسْتُشْهِدَ وَلِيُ اَخَوَاتٌ صِغَارٌ فَكَرِهْتُ اَنْ اَتَزَوَّجَ مِثْلَهُنَّ فَلَا تُؤَدِّبُهُنَّ وَلَا تَقُوْمُ عَلَيْهِنَّ فَتَزَوَّجْتُ ثَيِّبًا لِتَقُوْمَ عَلَيْهِنَّ وَ تُؤَدِّبُهُنَّ قَالَ فَلَمَّا قَدِمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ غَدَوْتُ عَلَيْهِ بِالْبَعِيْرِ فَاَعْطَانِيُ ثَمَنَهُ وَ رَدَّهُ عَلَيَّ قَالَ الْمُغِيْرَةُ هٰذَا فِيُ قَضَائِنَا حَسَنٌ لَّا نَرٰى بِهٖ بَاْسًا.

خما ورې ورې خوېندې دي. ماته بده ښکاریده چه زۀ د هغوئ په شان جینئ سره واده اوکړم چه نه به هغوئ ته ادب اوښودلې شي او نه به د هغوئ خدمت اوکړې شي. په دې وجه ما کونډې سره واده اوکه چه د هغوئ خدمت اوکړي او هغوئ سليقه مندې کړي. بيا چه حضورؐ مدينې ته اورسيدلو نو په دويمه ورځ زۀ خپل اوښ سره د حضورؐ په خدمت کښې حاضر شولم او حضورؐ ماته د اوښ قيمت راکړو. او هغه اوښ ئې هم ماته واپس کړلو مغيره وائي زمونږ رائې کښې دا بيع ډيره ښه ده او دې کښې هيڅ حرج نشته.

بَابٌ ۱۵۸ : مَنْ غَزَا وَهُوَ حَدِيْثُ عَهْدٍ بِعُرُسِهٖ. فِيْهِ جَابِرٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۱۵۸ : د نوي واده د خلمي جهاد ته د تلو بيان. دې مسئله کښې حضرت جابر د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت نقل کړيدې.

بَاب ۱۵۹ : مَنِ اخْتَارَ الْغَزْوَ بَعْدَ الْبِنَاءِ. فِيْهِ اَبُوْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۱۵۹ : شب زفاف نه پس جهاد ته د تللو بيان. دا مسئله حضرت ابوهريرهؓ نبي عليه السلام نه روايت کړيده.

ف: شب زفاف: دَ واده رومبئ شپه.

بَاب ۱۶۰ : مُبَادَرَةِ الْاِمَامِ عِنْدَ الْفَزَعِ.

باب ۱۶۰ : د خوف حالت کښې د امام دَ تيز روي بيان.

۲۲۰ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ شُعْبَةَ حَدَّثَنِيُ قَتَادَةُ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَانَ بِالْمَدِيْنَةِ فَزَعٌ فَرَكِبَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَسًا لِاَبِيُ طَلْحَةَ فَقَالَ مَا رَاَيْنَا مِنْ شَيْءٍ وَ اِنْ وَجَدْنَاهُ لَبَحْرًا.

۲۲۰ : مسدد. يحيٰي. شعبه. قتاده. حضرت انس بن مالک نه روايت کوي. مدينه کښې يو خل ويره پيدا شوې وه. نو دَ ابو طلحه په اس باندې حضورؐ سور شولو، بهر اووتلو چه واپس راغې نو وې فرمائيل مونږ هيڅ هم او نه ليدل البته دا اَس مو د درياب په شان تيز رفتاره بيامونډ.

باب ۱۶۱ : اَلسُّرْعَةِ وَالرَّكْضِ فِي الْفَزَعِ.

۲۲۱ : حَدَّثَنَا فَضْلُ بْنُ سَعْدٍ حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا جَرِيْرُ بْنُ حَازِمٍ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ فَزِعَ النَّاسُ فَرَكِبَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَسًا لِاَبِيْ طَلْحَةَ بَطِيْئًا ثُمَّ خَرَجَ يَرْكُضُ وَحْدَهُ فَرَكِبَ النَّاسُ يَرْكُضُوْنَ خَلْفَهُ فَقَالَ لَمْ تُرَاعُوْا اِنَّهُ لَبَحْرٌ فَمَا سُبِقَ بَعْدَ ذٰلِكَ الْيَوْمِ.

باب ۱۶۲ : اَلْجَعَائِلِ وَالْحُمْلَانِ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ. وَقَالَ مُجَاهِدٌ قُلْتُ لِابْنِ عُمَرَ الْغَزْوُ قَالَ اِنِّيْ اُحِبُّ اَنْ اُعِيْنَكَ بِطَائِفَةٍ مِنْ مَالِيْ قُلْتُ اَوْسَعَ اللّٰهُ عَلَيَّ قَالَ اِنَّ غِنَاكَ لَكَ وَاِنِّيْ اُحِبُّ اَنْ يَكُوْنَ مِنْ مَالِيْ فِيْ هٰذَا الْوَجْهِ وَقَالَ عُمَرُ اِنَّ نَاسًا يَاْخُذُوْنَ مِنْ هٰذَا الْمَالِ لِيُجَاهِدُوْا ثُمَّ لَا يُجَاهِدُوْنَ فَمَنْ فَعَلَهُ فَنَحْنُ اَحَقُّ بِمَالِهِ حَتّٰى نَاْخُذَ مِنْهُ مَا اَخَذَ وَقَالَ طَاؤُسٌ وَمُجَاهِدٌ اِذَا دُفِعَ اِلَيْكَ شَيْءٌ تَخْرُجُ بِهِ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ

باب ۱۶۱ : د خوف حالت کښې د تیز روي کولو او اس ته د پونديے ورکولو بیان.

۲۲۱ : فضل. حسین. جریر. محمد. انس بن مالک نه روایت کوي چه خلقو کښې خوف او ویره پیدا شوله. نو رسالتمآب صلي الله علیه وسلّم د ابو طلحهؓ په سست رفتاره اَس باندِ سور شولو، هغے له ئے پونده ورکړه. او نور سړي هم حضورؐ پسے په خپلو اسونو زغلولو سره اووتل، واپسئ کښے حضورؐ اوفرمائیل تاسو کښے چاته د ویریدو ضرورت نشته. البته دا اَس دریاب صبا رفتار او تیز رو دے بیا دے نه پس هغه اَس د چا نه ورستو پاتے نشو.

باب ۱۶۲ : د خدائے په لار کښې لِـ د اجرت ورکولو او د سورلو د مهیا کولو بیان. مجاهد وائي ما یو خل ابن عمرؓ ته اووے جهاد کښے لاړ شه نو جواب ئے راکړو زهٔ خو زړهٔ سره غوارم چه زهٔ خپل مال سره ستا مدد اوکړم. ما ورته اووے الله ماله ډیر څهٔ راکړیدي. په هغے هغه اوفرمائیل ستا سرمایه داري د تاته مبارک شي. زهٔ خو دا غوارم چه خما هم څهٔ مال په دے لار کښے پکار راشي. او حضرت عمرؓ اوفرمائیل بعضے خلق دا مال دے د پاره اخلي چه جهاد اوکړي. لیکن هغوی د جهاد میدان کښے قدم نه اږدي. څوک چه دا حرکت اوکړي نو مونږ د هغه د مال زیات حقدار یو. او څه چه هغه د جهاد په نوم اخستے وي د هغه نه به ئے واپس اخلو. طاؤس او مجاهد وائي چه هر کله تاسوله څه څیز دے د پاره درکړے شي چه د هغے مدد سره د خدائے په لار کښے اوځئے. نو هغه څیز خپل کوروالو سره

فَاصْنَعْ بِهِ مَا شِئْتَ وَضَعْهُ عِنْدَ أَهْلِكَ. كېږدئ، يا څه چه غوارې او كړئ خو جهاد د پاره د كور نه ضرور اوخي.

۱. دلته ددے نه هغه اُجرت مراد دے كوم چه په جهاد كښے شركت نه كونكے څوك سړے بل سړي له اُجرت وركړي او جهاد ته ئے اوليګي. څومره پورے چه په جهاد باندے د اُجرت تعلق دے نو ظاهره ده چه اُجرت اخستل جائز دي. اګرچه ددے نه پس په جهاد كښے هغه زور باقي نه پاتے كيږئ او يقيناً په ثواب كښے به هم كمے كيږي. هسے د جهاد حكم ټولو د پاره برابر دے. په دے وجه د څه معقول عذر نه بغير په دے كښے د شركت كولو نه ډډه كول مناسب نه دي. البته دا صورت ددے نه جُدا دے چه په چا باندے جهاد فرض يا واجب نه وي او هغه جهاد ته د تلونكي سړي مدد او كړي او په ثواب كښے شريك شي. څرنګ چه حضرت ابن عمر رضي الله عنه كړي وو. ظاهره ده چه دا يو مستحسن صورت دے او په دے كښے هيڅ بدعت نشي كيدے، يعني كه چرے په جهاد كښے د شركت نه بچ كيدلو د پاره داسے كار كوي نو پسنديده نه دے، هاؤ كه چرے په شوق او جذبے سره ئے كوي نو پسنديده او مستحسن دے.

۲۲۲: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ سَمِعْتُ مَالِكَ بْنَ أَنَسٍ سَأَلَ زَيْدَ بْنَ أَسْلَمَ فَقَالَ زَيْدٌ سَمِعْتُ أَبِيْ يَقُوْلُ قَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ حَمَلْتُ عَلٰى فَرَسٍ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَرَأَيْتُهُ يُبَاعُ فَسَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَشْتَرِيْهِ فَقَالَ لَا تَشْتَرِيْهِ وَلَا تَعُدْ فِيْ صَدَقَتِكَ.

۲۲۲: حميدي. سفيان. مالك. زيد نه روايت كوي. ما د خپل پلار نه اوريدلي دي وئيل ئے چه حضرت عمر اوفرمائيل، ما يو اس د خدائے په لار كښے سورلئ د پاره وركړلو، ليكن ما اوليدل چه هغه خرڅيږي نو ما رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه تپوس اوكړ، آيا زۀ دا واخلم نو حضور ارشاد اوفرمائيلو دا په بيع مۀ اخله، خپله صدقه واپس مۀ اخله.

۲۲۳: حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ حَمَلَ عَلٰى فَرَسٍ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَوَجَدَهُ يُبَاعُ فَأَرَادَ أَنْ يَبْتَاعَهُ فَسَأَلَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَا تَبْتَعْهُ وَلَا تَعُدْ فِيْ صَدَقَتِكَ.

۲۲۳: اسمٰعيل. مالك. عبدالله بن عمر نه روايت كوي يو ځلے حضرت عمرؓ يو اس د خدائے په لار كښے سورلئ د پاره وركړلو بيائے اوليدل چه هغه خرڅيږي نو دا خيال ئے اوكه چه وائے خلي. بيا رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه ئے دريافت اوكه نو حضورؐ ورته اوفرمائيل ته دا په بيع مۀ اخله او خپل صدقه كړے شوے څيز واپس مۀ اخله.

۲۲۴: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ يَحْيَى بْنِ

۲۲۴: مسدد. يحيي. ابو صالح. حضرت ابوهريرةؓ نه روايت كوي. چه رسول الله صلي الله

سَعِيْدِ الْاَنْصَارِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ صَالِحٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْلَا اَنْ اَشُقَّ عَلٰى اُمَّتِيْ مَا تَخَلَّفْتُ عَنْ سَرِيَّةٍ وَّلٰكِنْ لَا اَجِدُ حَمُوْلَةً وَّلَا اَجِدُ مَا اَحْمِلُهُمْ عَلَيْهِ وَ يَشُقُّ عَلَيَّ اَنْ يَّتَخَلَّفُوْا عَنِّيْ وَلَوَدِدْتُ اَنِّيْ قَاتَلْتُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَقُتِلْتُ ثُمَّ اُحْيِيْتُ ثُمَّ قُتِلْتُ ثُمَّ اُحْيِيْتُ.

عليه وسلّم اوفرمائيل که ما په اُمت گران نه گنړلے نو ذ يو وړوکي لښکر او پلاتهون نه به هم ورسته نه پاتے کيدم. ليکن ماته دومره سورلي په لاس نه راځي چه زهٔ هغه ټول سوارهٔ کړم. او ماته دا ښهٔ نهٔ معلوميږي چه خما ملګري خما نه روستو پاتے شي او خما خواهش خو دا دے چه زهٔ د خدائے په لار کښے جهاد اوکړم او قتل کړے شم، بيا ژوندے کړے شم او بيا قتل کړے شم او بيا ژوندے کړے شم.

## بَاب ۱۶۳ : مَا قِيْلَ فِيْ لِوَاءِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

## باب ۱۶۳ : ذَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ جنډے بيان.

۲۲۵ : حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ ثَعْلَبَةُ بْنُ اَبِيْ مَالِكٍ الْقُرَظِيُّ اَنَّ قَيْسَ بْنَ سَعْدٍ الْاَنْصَارِيَّ وَ كَانَ صَاحِبُ لِوَاءِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرَادَ الْحَجَّ فَرَجَّلَ.

۲۲۵ : سعيد. ليث. عقيل. ابن شهاب. ثعلبه بن ابي مالک قرظي نه روايت کوي، قيس بن سعد انصاري، د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم د جنډے علمبردار وو کوم وخت چه هغهٔ ذ حج اراده اوکړه، نو سر ئے ګومنز کړلو.

۲۲۶ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ اَبِيْ عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْاَكْوَعِ قَالَ كَانَ عَلِيٌّ تَخَلَّفَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ خَيْبَرَ وَ كَانَ بِهٖ رَمَدٌ فَقَالَ اَنَا اَتَخَلَّفُ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَخَرَجَ عَلِيٌّ فَلَحِقَ بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۲۲۶ : قتيبه. حاتم. يزيد. مسلمه نه روايت کوي. حضرت عليؓ خيبر نه روستو پاتے شوے وو، ځکه چه ذ هغهٔ سترګے خوږ شوے وے. هغهٔ اووے زهٔ د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روستے پاتے شوے يم نو هغه روان شو او رسالتمآب سره يوځائے شولو او ذ هغے شپے ماښام چه راغے چه ذ هغے په سحر ئے خيبر فتح که نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل

وَسَلَّمَ فَلَمَّا كَانَ مَسَاءُ اللَّيْلَةِ الَّتِيْ فَتَحَهَا فِيْ صَبَاحِهَا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَأُعْطِيَنَّ الرَّايَةَ اَوْ قَالَ لَيَأْخُذَنَّ غَدًا رَّجُلٌ يُحِبُّهُ اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهُ اَوْ قَالَ يُحِبُّ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهُ يَفْتَحُ اللّٰهُ عَلَيْهِ فَإِذَا نَحْنُ بِعَلِيٍّ وَمَا نَرْجُوْهُ فَقَالُوْا هٰذَا عَلِيٌّ فَأَعْطَاهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَفَتَحَ اللّٰهُ عَلَيْهِ.

صبا لـه بـه جنډا هغه سړي لـه ورکوم چـه اللّٰـه او ذ هغه رسول سره مینه ساتـي. او اللّٰـه تعالٰـي بـه ذ هغه پـه لاس فتح نصیب کړي. بیا ناساپـي مونږ سره حضرت عليؓ یوځائے شـولـو، چـه ذ هغـه د راتـلـو زمونږ اُمید نـه وو. خـلـقـو اووے دا عـلـيؓ دے. نو رسالتمآب صلي اللّٰـه علیـه وسلّم حضرت علـيؓ لـه جنډه ورکـړه. او ذ حـضـرت عـلـيؓ پـه لاس ذ خیبر فتح نصیب شوه.

۲۲۷ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ نَافِعِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ سَمِعْتُ الْعَبَّاسَ يَقُوْلُ لِلزُّبَيْرِؓ هٰهُنَا اَمَرَكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ تَرْكُزَ الرَّايَةَ.

۲۲۷ : مـحـمـد. ابـو اسـامـه. هشـام. عـروه نـافـع نـه روایت کوي ما ذ حضرت عباس نـه واوریـدل چـه زبیر تـه ئے وئیلے. پـه دے ځائے رسول اللّٰـه صلي اللّٰـه علیـه وسلّم تاتـه حکم کړے وو. چـه جنډا دلتـه نصب کړه (یعني اولګوه).

بَابُ ۱٦۴ ا : اَلْاَجِيْرِ. وَ قَالَ الْحَسَنُ وَابْنُ سِيْرِيْنَ يُقْسَمُ لِلْاَجِيْرِ مِنَ الْمَغْنَمِ وَ اَخَذَ عَطِيَّةُ بْنُ قَيْسٍ فَرَسًا عَلَى النِّصْفِ فَبَلَغَ سَهْمُ الْفَرَسِ اَرْبَعَ مِائَةِ دِيْنَارٍ فَاَخَذَ مِائَتَيْنِ وَ اَعْطٰى صَاحِبَهُ مِائَتَيْنِ.

باب ۱٦۴ ا : ذ مزدور بیان[1]. حسن او ابن سیرین وائي. چه مزدور ته مال غنیمت نه حصه ورکړے شوے ده. عطیه بن قیس یو اس په کرایه واخستلو د هغے اس حصه څلور سوه دیناره راغلل نو دوه سوه ئے خپله واخستل او باقي دوه سوه دینار ئے د اس مالک ته ورکړل.

۱. یعني که چرے مجاهدینو جهاد ته تللو وخت کښے څه مزدوران د خپلو ضروریاتو او کار وغیره د پاره خان سره کړل او مزدوري ئے ورله مقرر کړه نو آیا دا مزدوران به د خپلے مزدورۍ وصولولو نه پس د غنیمت د مال مستحق به هم ګرځي او که نه؟ د همدے جواب په دے باب کښے ورکړے شوے دے.

۲۲۸ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا

۲۲۸ : عبداللّٰـه. سفیـان. ابـن جریج. عطاء. صفوان. یعلٰي نه روایت کوي. زهٔ غزوهٔ تبوک کښے

ابْنُ جُرَيْجٍ عَنْ عَطَاءٍ عَنْ صَفْوَانَ بْنِ يَعْلٰى عَنْ اَبِيْهِ قَالَ غَزَوْتُ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَزْوَةَ تَبُوْكٍ فَحَمَلْتُ عَلٰى بَكْرٍ فَهُوَ اَوْثَقُ اَعْمَالِيْ فِيْ نَفْسِيْ فَاسْتَاْجَرْتُ اَجِيْرًا فَقَاتَلَ رَجُلًا فَعَضَّ اَحَدُهُمَا الْاٰخَرَ فَانْتَزَعَ يَدَهٗ مِنْ فِيْهِ وَ نَزَعَ ثَنِيَّتَهٗ فَاَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَهْدَرَهَا فَقَالَ اَيَدْفَعُ يَدَهٗ اِلَيْكَ فَتَقْضِمُهَا كَمَا يَقْضِمُ الْفَحْلُ.

حضور صلي الله عليه وسلم سره شريک ووم. ما يو خوان اوبښ يو مجاهد له سورلئ د پاره ورکۀ چه خما اعمالو کښې زيات قابل اعتماد وو. او دے جهاد کښې م يو سړے په مزدورئ نيولے وو. چه هغه يو سړے سره ګه. هغے دواړو خپلو کښې يو بل چيچلو او لاس ئې د هغه د خولے نه جټکے سره راښکلو او د هغه غاښونه ئې اوغرځول. بيا هغه سړے د حضورؐ په خدمت کښې حاضر شو او د غاښونو معاوضه ئې طلب که خو حضورؐ څه بدله ورنکړه اووے فرمائيل آيا هغے سړي به خپل لاس ستا په خوله کښې پريښے وے چه تا د هغه لاس داسے ميده کړے وے څنګه چه اوبښ وابنه (د جامو) لاند ميده کوي).

بَابٌ ۱۶۵ : قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نُصِرْتُ بِالرُّعْبِ مَسِيْرَةَ شَهْرٍ وَّ قَوْلُهٗ عَزَّ وَ جَلَّ سَنُلْقِيْ فِيْ قُلُوْبِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا الرُّعْبَ بِمَا اَشْرَكُوْا بِاللّٰهِ. قَالَ جَابِرٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۱۶۵ : د سرور عالم صلي الله عليه وسلم فرمان چه د يو مياشت مسافت پورے د رعب او دبدبے په ذريعه خما مدد اوکړے شو. او د الله تعالٰي دا اعلان چه د کافرو زړونو کښې به مونږ عنقريب رعب او دبدبه قائمه کړو څکه چه هغوئ الله سره شرک کړيدے. دا حضرت جابر د رسالت مآب صلي الله عليه وسلم نه نقل کړيدے.

۲۲۹ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بُعِثْتُ بِجَوَامِعِ الْكَلِمِ وَ نُصِرْتُ بِالرُّعْبِ فَبَيْنَا اَنَا نَائِمٌ اُتِيْتُ بِمَفَاتِيْحِ خَزَائِنِ الْاَرْضِ

۲۹۹ : يحيي. ليث. عقيل. ابن شهاب. سعيد. ابوهريرهؓ نه روايت کوي چه رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل زۀ جوامع الکلم سره مبعوث شوے يم او د رعب په ذريعه خما مدد کړے شوے دے. او يوه ورځ زۀ اوده ووم. نو ماته د روئے زمين د خزانو چابيانے راوړلے شوے. او خما لاس کښې

فَوُضِعَتْ فِيْ يَدَيَّ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ وَقَدْ ذَهَبَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَنْتُمْ تَنْتَثِلُوْنَهَا.

کېښودې شوې. ابوهريره وائي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خو رخصت شو او تاسو هغه خزانې راوکاږئ!.

۱. په دې خوب کښې حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم له دا زيرې ورکړې شوې وو چه ستا د اُمت او ستاسو د متبعينو د لاسه به د دنيا دوه د ټولونه لوئې حکومتونه فتحه شي او د هغوئ د خزانو به دوئ مالکان اوګرځي. په دا شان روستو ددې خوب واضحه او مکمل تعبير مسلمانانو اوليدلو چه د دنيا دوه د ټولونه لوئې حکومتونه ايران او روم مسلمانانو فتح کړل. د ابوهريره رضي اللّٰه عنه اشاره هم دې طرفته ده چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ستاسو د هدايت او د خپل کار تکميل کولو نه پس خدائے تعالٰي سره ملاؤ شو ليکن هغه خزانې اوس ستاسو په لاس کښې دي.

۲۳۰: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ اَخْبَرَهٗ اَنَّ اَبَا سُفْيَانَ اَخْبَرَهٗ اَنَّ هِرَقْلَ اَرْسَلَ وَهُمْ بِاِيْلِيَاءَ ثُمَّ دَعَا بِكِتَابِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا فَرَغَ مِنْ قِرَاْةِ الْكِتَابِ كَثُرَ عِنْدَهُ الصَّخَبُ فَارْتَفَعَتِ الْاَصْوَاتُ وَ اُخْرِجْنَا فَقُلْتُ لِاَصْحَابِيْ حِيْنَ اُخْرِجْنَا لَقَدْ اَمِرَ اَمْرُ بْنُ اَبِيْ كَبْشَةَ اِنَّهٗ يَخَافُهٗ مَلِكُ بَنِي الْاَصْفَرِ.

۲۳۰: ابواليمان. شعيب. زهري. عبيداللّٰه بن عبداللّٰه ابن عباسؓ نه روايت کوي چه ابوسفيان هغه ته اووې چه هرقل زه د بيت المقدس نه راوغوښتلم او د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خط مبارک ئے اولوستلو. او څه وخت چه د خط د لوستلو نه فراغت اوشولو، نو هرقل سره شور و غوغا زياته شوه او چغې آوازونه شروع شو او مونږ خلق چه بهر کړې شو نو ما خپل يو ملګري ته اووې د ابن ابي کبشه يعني د رسالتمآبؐ معامله اوس مخ په ترقئ ده او بني اصفر يعني شاه روم هم د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه ويريږي.

بَاب ۱۲۶: حَمْلِ الزَّادِ فِي الْغَزْوِ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ تَزَوَّدُوْا فَاِنَّ خَيْرَ الزَّادِ التَّقْوٰى.

باب ۱۲۶: جهاد کښې د زاد راه اوړلو بيان. د اللّٰه تعالٰي فرمان چه تاسو زادِ راه ځان سره اخلئ. او بهترينه زادِ راه خو دراصل تقويٰ ده.

۲۳۱: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبِيْ وَ حَدَّثَتْنِيْ اَيْضًا فَاطِمَةُ عَنْ اَسْمَاءَ قَالَتْ صَنَعْتُ

۲۳۱: عبيد. ابو اسامه. هشام. عروه. بي بي فاطمة الزهراؓ. بي بي اسماءؓ نه روايت کوي. چه ما د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم د پاره د حضرت ابوبکر صديقؓ په کور کښې هغه وخت طعام تيار کړلو چه

سُفْرَةَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ بَيْتِ اَبِيْ بَكْرٍ حِيْنَ اَرَادَ اَنْ يُهَاجِرَ اِلَى الْمَدِيْنَةِ قَالَتْ فَلَمْ نَجِدْ لِسُفْرَتِهٖ وَلَا لِسِقَائِهٖ مَا نَرْبِطُهُمَا بِهٖ فَقُلْتُ لِاَبِيْ بَكْرٍ وَاللّٰهِ مَا اَجِدُ شَيْئًا اَرْبِطُ بِهٖ اِلَّا نِطَاقِيْ قَالَ فَشُقِّيْهِ بِاثْنَيْنِ فَارْبِطِيْهِ بِوَاحِدٍ السِّقَاءَ وَبِالْاٰخَرِ السُّفْرَةَ فَفَعَلْتُ فَلِذٰلِكَ سُمِّيَتْ ذَاتَ النِّطَاقَيْنِ.

حضورؐ مدينې طرف ته د هجرت اراده كړې وه. ماته ذ حضورؐ د خوراك او ذ اوبو د لوښي تړلو ذ پاره هيڅ يو لاس رانغلل چه هغې سره هغه ما تړلې وې. نو ما صديق اكبرؓ ته اووې. په اللّٰه مِ دِ قسم وي ددې ذ تړلو ذ پاره سوا خما د كمر بند نه بل هيڅ څيز ماته حاصل نه شولو. نو صديق اكبرؓ اوفرمائيل تهٔ هغه كمربند دوه ټكړې كړه يو سره ذ اوبو لوښي او بل سره ناشته دان اوتړه. ما هغسې اوكړل او په دې وجه خما نوم "دوه كمربندو والا" كيښودې شو.

۲۳۲: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَطَاءٌ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ كُنَّا نَتَزَوَّدُ لُحُوْمَ الْاَضَاحِيِّ عَلٰى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَى الْمَدِيْنَةِ.

۲۳۲: علي. سفيان. عمرو. عطاء. حضرت جابرؓ نه روايت كوي چه ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم زمانه كښې به مونږ د قرباني غوښه مدينې منورې پورې رسوله.

۲۳۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ قَالَ سَمِعْتُ يَحْيٰى قَالَ اَخْبَرَنِيْ بُشَيْرُ بْنُ يَسَارٍ اَنَّ سُوَيْدَ بْنَ النُّعْمَانِ اَخْبَرَهٗ اَنَّهٗ خَرَجَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ خَيْبَرَ حَتّٰى اِذَا كَانُوْا بِالصَّهْبَاءِ وَهِيَ مِنْ خَيْبَرَ وَهِيَ اَدْنٰى خَيْبَرَ فَصَلَّوُا الْعَصْرَ فَدَعَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْاَطْعِمَةِ فَلَمْ يُؤْتَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَّا بِسَوِيْقٍ فَلُكْنَا فَاَكَلْنَا وَ

۲۳۳: محمد. عبدالوهاب. يحيٰي حضرت سويد بن نعمان نه روايت كوي چه هغه ذ خيبر په كال رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم سره ذ خيبر حلقه كښې په مقام ذ صهبا وارد شولو. ذ هغې ځائې نه خيبر نزدې وو، ټولو ذ مازيګر مونځ اوكه او رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم طعام طلب كړلو. ذ حضورؐ په خدمت كښې صرف ستوان پيش كړې شو. نو ذ ستوانو خوړل شكل مو اوكړل. بيا رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اودريدلو

شَرِبْنَا ثُمَّ قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَضْمَضَ وَ مَضْمَضْنَا وَ صَلَّيْنَا.

حضورؐ خوله كنګال كړه. او مونږه هم خوله كنګال كړه او مونځ مو ادا كه.

۲۳۴: حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ مَرْحُوْمٍ حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ اِسْمَاعِيْلَ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ اَبِيْ عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ قَالَ خَفَّتْ اَزْوَادُ النَّاسِ وَ اَمْلَقُوْا فَاَتَوُا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ نَحْرِ اِبِلِهِمْ فَاَذِنَ لَهُمْ فَلَقِيَهُمْ عُمَرُ فَاَخْبَرُوْهُ فَقَالَ مَا بَقَائُكُمْ بَعْدَ اِبِلِكُمْ فَدَخَلَ عُمَرُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا بَقَائُهُمْ بَعْدَ اِبِلِهِمْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَادِ فِي النَّاسِ يَأْتُوْنَ بِفَضْلِ اَزْوَادِهِمْ فَدَعَا وَ بَرَّكَ عَلَيْهِ ثُمَّ دَعَاهُمْ بِاَوْعِيَتِهِمْ فَاحْتَثَى النَّاسُ حَتّٰى فَرَغُوْا ثُمَّ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ اَنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ.

۲۳۴: بشر. حاتم. يزيد. سلمه نه روايت كوي. يو خلے د خلقو د لارے توښه كمه شوه. او ټول تهي دسته (خالي لاسے) شو، نو حضورؐ ته د اوښ حلالولو اجازت طلب كولو دَ پاره حاضر شُو. حضورؐ هغوئ ته اجازت وركه. دے نه پس حضرت عمرؓ سره هغه خلق يو ځائے شو، او پوره كيفيت ئے بيان كه. نو هغهٔ اوفرمائيل. د اُوښانو (حلالولو) نه پس تاسو څنګه ژوندي پاتے كيدے شئ. نو حضرت عمرؓ دربار رسالت كښے حاضر شو، اووے وئيل يا رسول اللّٰهؐ د اوښانو نه پس به دَ هغوئ ژوند څنګه تيريږي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل. خلقو كښے اعلان اوكه چه د هغوئ خپله بچ شوے د لارے توښه مونږ ته راوړي نو دَ هغوئ د زادِ راه راوړلو نه پس حضورؐ دعا اوكړله او دَ اللّٰه پاك نه ئے بركت طلب كه. د هغوئ دَ خوراك لوښي ئے راوغوښتل. خلقو د هغے لوښو ډكول شروع كړهٔ. كله چه دوئ فارغه شو نو حضورؐ اوفرمائيل زهٔ ګواهي كوم چه د اللّٰه نه سِوا بل معبود نشته. او زهٔ د اللّٰه رسول يم.

## باب۱٦٧: حَمْلِ الزَّادِ عَلَى الرِّقَابِ.

باب۱٦٧: په خپلو اوږو د زاد راه اوړلو بيان.

۲۳۵: حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ اَخْبَرَنَا عَبْدَةُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ وَهْبِ بْنِ كَيْسَانَ عَنْ جَابِرٍ قَالَ خَرَجْنَا وَ نَحْنُ ثَلٰثُ مِائَةٍ نَحْمِلُ زَادَنَا

۲۳۵: صدقه. عبده. هشام. وهب. حضرت جابر بن عبداللّٰهؓ نه روايت كوي. يو خل مونږ درے سوه سړي جهاد دَ پاره روان شو. او مونږ ټولو خپل خپل زادِ راه په خپلو اوږو ايښے وو. لږے ورځے پس هغه توښه

عَلٰى رِقَابِنَا فَفَنِيَ زَادُنَا حَتّٰى كَانَ الرَّجُلُ مِنَّا يَاكُلُ فِيْ كُلِّ يَوْمٍ تَمْرَةً قَالَ رَجُلٌ يَا اَبَا عَبْدِ اللّٰهِ وَ اَيْنَ كَانَتِ التَّمْرَةُ تَقَعُ مِنَ الرَّجُلِ قَالَ لَقَدْ وَجَدْنَا فَقْدَهَا حِيْنَ فَقَدْنَاهَا حَتّٰى اَتَيْنَا الْبَحْرَ فَاِذَا حُوْتٌ قَدْ قَذَفَهُ الْبَحْرُ فَاَكَلْنَا مِنْهَا ثَمَانِيَةَ عَشَرَ يَوْمًا مَا اَحْبَبْنَا.

**باب ١٦٨ : اِرْدَافِ الْمَرْاَةِ خَلْفَ اَخِيْهَا.**

**٢٣٦** : حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ الْاَسْوَدِ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّهَا قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ يَرْجِعُ اَصْحَابُكَ بِاَجْرِ حَجٍّ وَ عُمْرَةٍ وَلَمْ اَزِدْ عَلَى الْحَجِّ فَقَالَ لَهَا اذْهَبِيْ وَلْيُرْدِفْكِ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ فَاَمَرَ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ اَنْ يُّعْمِرَهَا مِنَ التَّنْعِيْمِ فَانْتَظَرَهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاَعْلٰى مَكَّةَ حَتّٰى جَاءَتْ.

**٢٣٧** : حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ اَوْسٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِيْ بَكْرِ الصِّدِّيْقِ قَالَ اَمَرَنِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

ختمه شوه او يو يو سړي به صرف په يوه يوه چوهاره ګذاره کوله. يو سړي اووے. اے ابو عبدالله يوے چوهارے سره د سړي څۀ ګزاره کيدے شي، نو هغه جواب ورکه مونږ ته ذَ هغے يوے چوهارے قدر هم هغه وخت معلوم شو چه هغه هم مونږ سره پاتے نه شوه تردے چه کوم وخت مونږ د درياب غاړے ته اورسيدو نو ناساپه درياب يو کب بهرته راوغورځولو او مونږ اتلس ورځے د هغے نه خومره چه مو خوړله او مو خوړله.

**باب ١٦٨ : ذَ خاتون خپل ورور پسے په يوه سورلئ ذَ ناستے بيان.**

**٢٣٦** : عمرو بن علي. ابو عاصم. عثمان. ابن ابي مليکه. بي بي عائشے نه روايت کوي. هغے اووے يا رسول الله ستاسو اصحاب خو د حج او عمرے دواړو ثواب حاصلولو نه پس واپس کيږي. او ما صرف حج کړيدے. رسول الله صلعم ورته اوفرمائيل. تۀ لاړه شه. او تا به عبدالرحمان په خپله سورلئ شاته کښينوي. او بيا حضورؐ عبدالرحمن ته حکم ورکه چه په دے د مقام تنعيم نه عمره اوکړه. دے نه پس حضورؐ چه د مکے بلندئ ته اورسيدلو، نو هلته ئے ذ هغے د راتلو انتظار اوکړلو.

**٢٣٧** : عبدالله. ابن عيينه. عمرو بن دينار. عمرو بن اوس. عبدالرحمن بن ابوبکرؓ نه روايت کوي. رسول الله صلى الله عليه وسلم ما (عبدالرحمن بن ابوبکرؓ) ته حکم راکۀ چه زۀ بي بي عائشهؓ په خپلے

وَسَلَّمَ اَنْ اُرْدِفَ عَائِشَةَ وَ اَنْ اُعَمِّرَهَا مِنَ التَّنْعِيْمِ.

سورلئ ورستو كينوم او د مقام تنعيم نه پرے عمره اوكړم.

بـاب ۱۶۹ : اَلْاِرْتِدَافِ فِي الْغَزْوِ وَالْحَجِّ.

باب ۱۶۹ : حج او جهاد كښې په يوه سورلئ د دوؤ سړو د ناستے بيان.

۲۳۸ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ اَنَسٍ قَالَ كُنْتُ رَدِيْفَ اَبِيْ طَلْحَةَ وَ اِنَّهُمْ لَيَصْرِخُوْنَ بِهِمَا جَمِيْعًا الْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ.

۲۳۸ : قتيبه. عبدالوهاب. ابو ايوب. ابو قلابه. حضرت انسؓ نه روايت كوي. زۀ ابو طلحه پسے په يوه سورلئ ناست ووم، او خلقو د حج او عمرے په يو ځائے اوچت آواز سره تلبيه وئيله.

ف: تلبيه معنې لبيک وئيل.

بـاب ۱۷۰ : الرِّدْفِ عَلَى الْحِمَارِ.

باب ۱۷۰ : په خر ورستو د كينولو بيان.

۲۳۹ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اَبُوْ صَفْوَانَ عَنْ يُوْنُسَ ابْنِ يَزِيْدَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ اُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكِبَ عَلٰى حِمَارٍ عَلٰى اِكَافٍ عَلَيْهِ قَطِيْفَةٌ وَّ اَرْدَفَ اُسَامَةَ وَرَاءَهٗ.

۲۳۹ : قتيبه. سفيان. يونس. ابن شهاب. عروه. اسامه بن زيدؓ نه روايت كوي. يو خر چه دَ هغۀ په زين يو څادر پروت وو، په هغے رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم سور شو او څان پسے ئے اُسامه كينولے وو.

۲۴۰ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ يُوْنُسُ اَخْبَرَنِيْ نَافِعٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَقْبَلَ يَوْمَ الْفَتْحِ مِنْ اَعْلٰى مَكَّةَ عَلٰى رَاحِلَتِهٖ مُرْدِفًا اُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ وَ مَعَهٗ بِلَالٌ وَ مَعَهٗ عُثْمَانُ بْنُ اَبِيْ طَلْحَةَ مِنَ الْحَجَبَةِ حَتّٰى اَنَاخَ فِي الْمَسْجِدِ فَاَمَرَهٗ

۲۴۰ : يحيي. ليث. يونس. نافع. عبداللّٰه بن عمرؓ نه روايت دے. د مكے د فتح په ورځ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د مكے د بالائي حصے نه تشريف راوړلو. او څان پسے ئے اُسامه كينولے وو. او همركابئ كښې بلالؓ او عثمان بن طلحهؓ دربان كعبه وو حضورؐ خپل اوښ جماعت كښې كينولو. حضرت عثمان ته ئے حكم وركه چه هغه دَ كعبے كنجي راوړي. نو دَ كعبے دروازه لرے

اَنْ يَأْتِيَ بِمُفْتَاحِ الْبَيْتِ فَفَتَحَ وَ دَخَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ مَعَهُ اُسَامَةُ وَ بِلَالٌ وَ عُثْمَانُ فَمَكَثَ فِيْهَا نَهَارًا طَوِيْلًا ثُمَّ خَرَجَ فَاسْتَبَقَ النَّاسُ وَ كَانَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ اَوَّلَ مَنْ دَخَلَ فَوَجَدَ بِلَالًا وَّرَاءَ الْبَابِ قَائِمًا فَسَأَلَهُ اَيْنَ صَلّٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَشَارَ لَهُ اِلَى الْمَكَانِ الَّذِيْ صَلّٰى فِيْهِ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ فَنَسِيْتُ اَنْ اَسْأَلَهُ كَمْ صَلّٰى مِنْ سَجْدَةٍ.

کړے شوه. او رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم سره اُسامه، بلال او عثمان کعبه کښے داخل شو او ډير ساعت ئ ايساريدونه پس د هغے خائے نه اووتل. خلق ورمخکښے شو. عبداللّٰه بن عمر د ټولونه اول داخل شولو. نو بلالؓ ئے د دروازے شاته ولاړ بيامونډ. او د هغه نه ئے تپوس او کړه چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم کوم خائے نمونځ کړيدے. حضرت بلالؓ ورته اشارے سره هغه خائے اوښودلو چه هلته رسالتمآب نمونځ کړے وو. عبداللّٰه وائي. دا پښتنه مانه هيره شوه چه حضورؐ څو رکعاته نمونځ او کړو.

**بَاب ۱۷۱ : مَنْ اَخَذَ بِالرِّكَابِ وَ نَحْوِهٖ.**

**باب ۱۷۱ :** د يو سړي رکاب يا دغه شان د څه څيز ټينګولو بيان.

۱۲۴۱ : حَدَّثَنِيْ اِسْحَاقُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّ سُلَامٰى مِنَ النَّاسِ عَلَيْهِ صَدَقَةٌ كُلَّ يَوْمٍ تَطْلُعُ فِيْهِ الشَّمْسُ يَعْدِلُ بَيْنَ الْاِثْنَيْنِ صَدَقَةٌ وَ يُعِيْنُ الرَّجُلَ عَلٰى دَابَّتِهٖ فَيَحْمِلُ عَلَيْهَا اَوْ يَرْفَعُ عَلَيْهَا مَتَاعَهُ صَدَقَةٌ وَالْكَلِمَةُ الطَّيِّبَةُ صَدَقَةٌ وَ كُلُّ خُطْوَةٍ يَخْطُوْهَا اِلَى الصَّلٰوةِ صَدَقَةٌ وَ يُمِيْطُ الْاَذٰى عَنِ الطَّرِيْقِ صَدَقَةٌ.

۱۲۴۱ : اسحاق. عبدالرزاق. معمر. همام. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل چه د انسان د بدن په هر جوړ نمر راختو سره يوه صدقه واجب کيږي. دوو سړو کښے انصاف او عدل کول صدقه ده. د يو سړي سوريدو کښے هغه سره مدد کول يا د هغه په سورلئ د هغه مال او اسباب کيښودل صدقه ده چا سره ښۀ خبره کول صدقه ده او هر هغه قدم چه مانځه د پاره واخستے شي صدقه ده او تکليف ورکونکے څيز د لارے نه لرے کول صدقه ده.

**بَاب ۱۷۲ : كَرَاهِيَةِ السَّفَرِ**

**باب ۱۷۲ :** د دشمن ملک کښے

بِـالْمَصَاحِفِ اِلَى الْاَرْضِ الْعَدُوِّ. وَ كَذٰلِكَ يُرْوٰى عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ بِشْرٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ تَابَعَهُ ابْنُ اِسْحَاقَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ سَافَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَصْحَابُهُ فِيْ اَرْضِ الْعَدُوِّ وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ الْقُرْاٰنَ.

قرآن كريم سره ذَ سفر كولو بيان. بشر په وساطت ذَ عبيدالله، نافع او ابن عمرؓ نه ددے قسم حديث ذ رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه روايت كړيدے. چه حضور صلي الله عليه وسلّم او صحابهٔ د دشمن ملكونو كښے سفر اوكړ. او هغوئ ذ قرآن كريم عالمان وو.

۲۴۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى اَنْ يُسَافَرَ بِالْقُرْاٰنِ اِلٰى اَرْضِ الْعَدُوِّ.

۲۴۲: عبدالله. مالک. نافع. حضرت عبدالله بن عمرؓ نه روايت كوي. رسول الله صلي الله عليه وسلّم ځان سره قرآن شريف اوړلو سره د دشمن ملک كښے ذَ سفر كولو نه منع فرمائيلے دهٔ[۱].

۱. د دشمن علاقو ته قرآن مجيد اوړلو نه ددے د پاره ممانعت راغلے دے چه د هغهٔ بے حرمتي اونشي، ولے چه د جنگ وغيره په موقعو كښے ممكن ده چه قرآن شريف د هغوئ لاس له ورشي او هغوئ ئے سپكاوے اوكړي. ظاهره ده چه ددے نه سوائے بله څه وجه كيدے شي؟

## بَابٌ ۱۷۳: التَّكْبِيْرِ عِنْدَ الْحَرْبِ.

## باب ۱۷۳: ذَ جنگ دوران كښے ذَ تكبير وئيلو بيان.

۲۴۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ اَنَسٍ قَالَ صَبَّحَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْبَرَ وَقَدْ خَرَجُوْا بِالْمَسَاحِيْ عَلٰى اَعْنَاقِهِمْ فَلَمَّا رَاَوْهُ قَالُوْا هٰذَا مُحَمَّدٌ وَالْخَمِيْسُ مُحَمَّدٌ وَالْخَمِيْسُ فَلَجَءُوْا اِلَى

۲۴۳: عبدالله بن محمد. سفيان. ايوب. محمد. انسؓ نه روايت كوي. رسول الله صلي الله عليه وسلّم خيبر ته سحر هغه وخت اورسيدلو چه ذَ هغه ځائے باشندگانو خپلے پاوړے وغيره په خپلو گردنونو اينبے وے ذَ كورونو نه وتل هغوئ چه حضورؐ اوليد نو وے وئيل محمد (صلعم) راغے ذَ هغهٔ لښكر راغے او ذَ هغهٔ فوځ راغے هغوئ قلعه

الْحِصْنِ فَرَفَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَيْهِ وَ قَالَ اَللّٰهُ اَكْبَرُ خَرِبَتْ خَيْبَرُ اِنَّا اِذَا نَزَلْنَا بِسَاحَةِ قَوْمٍ فَسَاءَ صَبَاحُ الْمُنْذَرِيْنَ وَ اَصَبْنَا حُمُرًا فَطَبَخْنَاهَا فَنَادٰى مُنَادِي النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ يَنْهَيَانِكُمْ عَنْ لُحُوْمِ الْحُمُرِ فَاُكْفِئَتِ الْقُدُوْرُ بِمَا فِيْهَا تَابَعَهٗ عَلِيٌّ عَنْ سُفْيَانَ رَفَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَيْهِ.

كښې پناه ګزين شو. بيا رسول اللّٰه صلعم لاس اوچت كړل. ورے فرمائيل' اللّٰه اكبر خيبر وران شو. واقعه دا ده چه كله مونږ يو ميدان كښې ډيرے واچوو نو دَ هغے خائے دَ يرندو كو هوا اوخي. او مونږ هلته څه خرونه اونيول. دَ هغے غوښه مو پخه كړه نو رسالتمآب اعلان اوكړو چه اللّٰه او رسولؐ تاسو د خر د غوښے خوړلو نه منع كوي. نو ټولے كټوئ اړولے (نسكورے) كړے شوے يعني واړولے شوے. ددے حديث متابعت علي د سفيان نه كړيدے چه حضورؐ لاس اوچت كړل.

## باب ۱۷۴ : مَا يُكْرَهُ فِيْ رَفْعِ الصَّوْتِ فِي التَّكْبِيْرِ.

## باب ۱۷۴ : په اوچت آواز د تكبير وئيلو د كراهت بيان[۱].

۱. خاص كر چه كله د جهاد' جنګ موقعه هم نه وي. ددے عنوان لاندے چه كوم حديث دے په هغے كښے صراحت سره ددے مخالفت هم نيشته. البته د يوے مناسبے طريقے نشاندهي شوے ده' يعني هر كله چه خدائے پاک حاضر او ناظر دے او د هغه رابللو كښے چغو سورو ته څه ضرورت دے؟ په وقار او قلار والي سره هغهٔ راؤبلئ او دعا ترے اوغوارئ.

۲۴۴ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَاصِمٍ عَنْ اَبِيْ عُثْمَانَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى الْاَشْعَرِيِّ قَالَ كُنَّا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكُنَّا اِذَا اَشْرَفْنَا عَلٰى وَادٍ هَلَّلْنَا وَ كَبَّرْنَا ارْتَفَعَتْ اَصْوَاتُنَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يٰاَيُّهَا النَّاسُ ارْبَعُوْا عَلٰى اَنْفُسِكُمْ فَاِنَّكُمْ لَا تَدْعُوْنَ اَصَمَّ وَلَا غَائِبًا اِنَّهٗ مَعَكُمْ اِنَّهٗ سَمِيْعٌ قَرِيْبٌ تَبَارَكَ اِسْمُهٗ وَ تَعَالٰى جَدُّهٗ.

۲۴۴ : محمد. سفيان. عاصم. ابوعثمان. ابو موسٰي اشعري نه روايت كوي' مونږ حج كښے رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم سره وو. كله چه به مونږ په يوے بلندئ ختلو' نو اوچت آواز سره به مو 'لا اِلٰـهَ اِلَّا اللّٰهُ' او اللّٰه اكبر' وئيلو' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. خلقو تاسو په خپل ځان رحم اوكړئ ځكه چه نهٔ خو تاسو كونړ ته آواز كوئ او نه څهٔ غائب ته. اللّٰه تعالٰي خو تاسو سره دے بيشكه هغه اوري او بلاشبه هغه تاسو ته قريب او نزدے دے د هغه نوم متبرک دے او د هغه بزرګي ډيره بلنده ده.

باب ۱۷۵ : التَّسْبِيحِ إِذَا هَبَطَ وَادِيًا.

۲۴۵ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ حُصَيْنِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ كُنَّا إِذَا صَعِدْنَا كَبَّرْنَا وَ إِذَا نَزَلْنَا سَبَّحْنَا.

باب ۱۷۶ : التَّكْبِيرِ إِذَا عَلَا شَرَفًا.

۲۴۶ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِيْ عَدِيٍّ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ حُصَيْنٍ عَنْ سَالِمٍ عَنْ جَابِرٍ قَالَ كُنَّا إِذَا صَعِدْنَا كَبَّرْنَا وَ إِذَا تَصَوَّبْنَا سَبَّحْنَا.

۲۴۷ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِي عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ صَالِحِ بْنِ كَيْسَانَ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَفَلَ مِنَ الْحَجِّ أَوِ الْعُمْرَةِ وَلَا أَعْلَمُهُ إِلَّا قَالَ الْغَزْوِ يَقُولُ كُلَّمَا أَوْفَى عَلٰى ثَنِيَّةٍ أَوْ فَدْفَدٍ كَبَّرَ ثَلٰثًا ثُمَّ قَالَ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ آيِبُوْنَ تَائِبُوْنَ عَابِدُوْنَ سَاجِدُوْنَ لِرَبِّنَا حَامِدُوْنَ صَدَقَ اللّٰهُ وَعْدَهُ وَ

باب ۱۷۵ : نشيب (ژوره) كښې د كوزيدو په وخت د سبحان الله وئيلو بيان.

۲۴۵ : محمد. سفيان. حصين. سالم. حضرت جابرؓ نه روايت كوي. مونږ به هميشه چه په بلندئ ختلو. نو الله اكبر به مو ونيلے او كله چه په نشيب كښې كوزيدلو، نو سبحان الله به مو وئيلے.

باب ۱۷۶ : په بلندئ ذ ختلو په وخت د تكبير بيان.

۲۴۶ : محمد بن بشار. ابن ابي عدي. شعبه. حصين. سالم. حضرت جابرؓ نه روايت كوي چه كله به مونږ په څۀ بلندئ ختلو نو الله اكبر به مو وئيل او په نشيب به مو سبحان الله وئيل.

۲۴۷ : عبدالله. عبدالعزيز. صالح. سالم. عبدالله بن عمر نه روايت كوي. چه رسول الله صلي الله عليه وسلم به ذ حج يا عمرے نه واپس كيدلو. او خما ګمان دا دے چه هغه ذ جهاد نه ذ واپسئ نوم اخستے وو، نو كله چه به حضورؐ يوے اوچتے غُندئ يا ډهيرئ بانډ ختلو، نو درے ځله به ئے الله اكبر وئيلو. او دے نه پس به ئے فرمائيل. د الله نه سِوا بل معبود نشته. هغه يو دے ذ هغۀ هيڅوک شريک نشته. ذ هغۀ بادشاهي ده. او ټول تعريفونه هغه له دي او هغه په هر څيز قادر دے. مونږ توبه كونكي ورځو. مونږ عبادت ګزار سجده كونكي، د خپل رب تعريف كونكي يو. الله خپله وعده رينښتنے اوښودله. او ذ خپل بنده مدد ئے او كه. او هغه

نَصَرَ عَبْدَهٗ وَ هَزَمَ الْاَحْزَابَ وَحْدَهٗ قَالَ صَالِحٌ فَقُلْتُ لَهٗ اَلَمْ يَقُلْ عَبْدُ اللّٰهِ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ قَالَ لَا.

جماعتونه تن تنها اوزغلول. د صالح بیان دے ما د سالم نه معلومات اوکړل چه آیا عبدالله بن عمرؓ انشاء الله نه وو وئیلے، نو هغه اووے، نه ووئے وئیلے.

بَـــابٌ ۱۷۷۷ : يُـــكْتَـــبُ لِلْمُسَافِرِ مِثْلُ مَا كَانَ يَعْمَلُ فِي الْاِقَامَةِ.

باب ۱۷۷۷ : د مسافر (مسافرئ کښې) هغومره عبادتونه ليکلے شي څومره چه د سکونت حالت کښې ئے کول.

۲۳۴۸ : حَدَّثَنَا مَطَرُ بْنُ الْفَضْلِ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ هَارُوْنَ حَدَّثَنَا الْعَوَّامُ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ اَبُوْ اِسْمَاعِيْلَ السَّكْسَكِيُّ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا بُرْدَةَ وَاصْطَحَبَ هُوَ وَ يَزِيْدُ بْنُ اَبِيْ كَبْشَةَ فِيْ سَفَرٍ فَكَانَ يَزِيْدُ يَصُوْمُ فِي السَّفَرِ فَقَالَ لَهٗ اَبُوْ بَرْدَةَ سَمِعْتُ اَبَا مُوْسٰى مِرَارًا يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا مَرِضَ الْعَبْدُ اَوْ سَافَرَ يُكْتَبُ لَهٗ مِثْلُ مَا كَانَ يَعْمَلُ مُقِيْمًا صَحِيْحًا.

۲۳۴۸ : مطر. يزيد بن هارون. عوام. ابراهيم. ابو اسمٰعيل سكسكي نه روايت كوي. ما دَ ابوهريرهؓ نه واوريدل چه شعبه او زيد بن ابو كبشه يو ځلے همسفر وو. او يزيد به سفر كښې روژه ساتله. هغه ته ابو برده اووے ما څو ځله دا دَ ابو موسٰي نه اوريدلے دي. چه رسالتمآب صلي الله عليه وسلّم ارشاد فرمائيلے دے، بنده چه كله ناروغه شي، يا سفر كوي نو څومره عبادت چه هغه د سكونت او صحت په حالت كښې كولو، هغومره عبادتونه د هغه دَ پاره ليكلے شي[۱].

۱. يعني سفر هم يو عذر دے او بيماري هم. په دواړو صورتونو كښې سړے تر ډيره حده پورے مجبور شي. په دے وجه شريعت ددے لحاظ كړے دے او په دے دواړو مجبورو باندے ئے رعايتونه وركړي دي. د نورو ډيرو رعايتونو سره ئے يوه د ټولونه لويه خوشخبري داده چه د كومو عباداتو مسافر يا مريض عادي وو او د سفر يا مرض په وجے سره د هغے په پريښودلو باندے مجبوره شو نو الله تعالٰي به د هغے دَ پريښودلو باوجود د هغے ثواب دده په عملنامه كښے ليكي.

بَابٌ ۱۷۸ : السَّيْرِ وَحْدَهٗ.

باب ۱۷۸ : ايكي يواځے د تلو بيان.

۲۳۴۹ : حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُنْكَدِرِ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ يَقُوْلُ نَدَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ

۲۳۴۹ : حميدي. سفيان. محمد بن منكدر. حضرت جابر بن عبدالله نه روايت كوي. د خندق په ورځ رسول الله صلي الله عليه وسلّم خلقو له آواز وركه، نو زبيرؓ لبيك اووے. بيا حضورؐ خلقوته آواز

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّاسَ يَوْمَ الْخَنْدَقِ فَانْتَدَبَ ثُمَّ نَدَبَهُمْ فَانْتَدَبَ الزُّبَيْرُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ لِكُلِّ نَبِيٍّ حَوَارِيًّا وَ حَوَارِيَّ الزُّبَيْرُ قَالَ سُفْيَانُ الْحَوَارِيُّ النَّاصِرُ.

ورکه. نو زبیرؓ جواب ورکه، او (په دریم ځل) بیا حضورؐ خلقو له آواز ورکه، نو زبیرؓ جواب ورکړه. بیا رسول الله صلي الله علیه وسلّم ارشاد اوفرمائیل د هر نبي حواریان وي او ځما حواري زبیرؓ دے سفیان اووے، د حواري معنٰي مددګار.

ف: حواري: مددګار. ملاتړ. امدادي، مددګیر، تکلیف اوچتونکے.

۲۵۰: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا عَاصِمُ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا عَاصِمُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ زَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَوْ يَعْلَمُ النَّاسُ مَا فِي الْوَحْدَةِ مَا اَعْلَمُ مَا سَارَ رَاكِبٌ بِلَيْلٍ وَّحْدَهٗ.

۲۵۰: ابوالولید. عاصم. محمد. ابن عمرؓ نه روایت کوي. رسول الله صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل که خلقو ته معلومه شي څه چه ماته معلوم دي چه تنهائي کښې څه دي نو هیڅ مسافر به د شپے وخت کښې یواځے سفر نه کوي. ابو نعیم عاصم بن محمد بن زید، بن عبدالله، بن عمر او د هغهٔ پلار ابن عمرؓ روایت کوي رسول الله صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، که خلقو ته پته اولږي، چه تنهایئ کښې څهٔ خرابي ده، کومه چه ماته معلومه ده، نو بیا به هیڅوک یواځے د شپے سفر نه کوي.

بَاب ۱۷۹: اَلسُّرْعَةِ فِي السَّيْرِ. قَالَ اَبُوْ حُمَيْدٍ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنِّيْ مُتَعَجِّلٌ اِلَى الْمَدِيْنَةِ فَمَنْ اَرَادَ اَنْ يَتَعَجَّلَ مَعِيَ فَلْيُعَجِّلْ.

باب ۱۷۹: تلو کښې د تیز رفتارئ بیان. ابو حمید اووے رسول الله صلي الله علیه وسلّم فرمائیلي دي. ځما مدینے ته د تلو تادي ده نو څوک چه ماسره په تادئ تلل غواړي، هغه دِ تادي اوکړي.

۲۵۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ هِشَامٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبِيْ قَالَ سُئِلَ اُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ كَانَ يَحْيٰى يَقُوْلُ وَ اَنَا اَسْمَعُ فَسَقَطَ عَنِّيْ عَنْ مَسِيْرِ النَّبِيِّ صَلَّى

۲۵۱: محمد. یحیٰي. هشام نه روایت کوي ماته ځما پلار عروه اووے. اسامه وائي، یحیٰي بیان اوکه چه هغه ما واوریده چه حجة الوداع بانديے د رسالتمآب د رفتار، روایت ځما نه ساقط شوے دے. او هغهٔ اُووے چه حضور

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ حَجَّةِ الْوِدَاعِ قَالَ فَكَانَ يَسِيْرُ الْعَنَقَ فَاِذَا وَجَدَ فَجْوَةً نَصَّ وَالنَّصُّ فَوْقَ الْعَنَقِ.

صلعم به درمياني چال سره تلو او کله چه به يو ميدان تيريدلو، نو حضورٌ به خپله سورلي تيزوله.

۲۵۲: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ اَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ زَيْدٌ هُوَ ابْنُ اَسْلَمَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ كُنْتُ مَعَ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ بِطَرِيْقِ مَكَّةَ فَبَلَغَهُ عَنْ صَفِيَّةَ بِنْتِ اَبِيْ عُبَيْدٍ شِدَّةِ وَجْعٍ فَاَسْرَعَ السَّيْرَ حَتّٰى اِذَا كَانَ بَعْدَ غُرُوْبِ الشَّفَقِ ثُمَّ نَزَلَ فَصَلَّى الْمَغْرِبَ وَالْعَتَمَةَ يَجْمَعُ بَيْنَهُمَا وَقَالَ رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا جَدَّ بِهِ السَّيْرُ اَخَّرَ الْمَغْرِبَ وَجَمَعَ بَيْنَهُمَا.

۲۵۲: سعيد. محمّد. زيد. اسلم نه روايت کوي، زهٔ دَ مکے معظمے لار کښے عبداللّٰه بن عمرٌ سره ووم. کوم وخت چه هغه ته د هغه دَ بي بي صفيه بنت ابو عبيده دَ سختے بيمارئ خبر اورسيد، نو هغهٔ دَ سورلئ رفتار تيز کړلو. او دَ شفق د غروب کيدو نه پس هغهٔ د سورلئ نه کوز شولو. دَ ماښام او ماسخوتن مونځ ئے په يو ځائے اوکړلو، اووئيل ئے. ما رسالتمآب صلي اللّٰه عليه وسلّم ليدلے دے چه کله به مسافت قطع کولو کښے حضورٌ ته تادي وه نو حضورٌ به د ماښام مونځ کښے تاخير کولو او دواړه مونځونه به ئے يو ځائے کول.

۲۵۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ سُمَيٍّ مَوْلٰى اَبِيْ بَكْرٍ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ السَّفَرُ قِطْعَةٌ مِنَ الْعَذَابِ يَمْنَعُ اَحَدَكُمْ نَوْمَهُ وَطَعَامَهُ فَاِذَا قَضٰى اَحَدُكُمْ نَهْمَتَهُ فَلْيُعَجِّلْ اِلٰى اَهْلِهِ.

۲۵۳: عبداللّٰه. مالک. ابو صالح. ابوهريرهٌ نه روايت کوي چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلي دي. دَ عذاب يوه حصه سفر دے چه تاسو کښے د چا خوب خوراک او څکاک بند وي تاسو کښے چه څوک خپل ضرورت پوره کړي نو خپل اهل و عيال طرف ته واپسئ کښے دے دَ تادئ نه کار اخلي.

باب ۱۸۰: اِذَا حَمَلَ عَلٰى فَرَسٍ فَرَاٰهَا تُبَاعُ.

باب ۱۸۰: خپل اس سورلئ د پاره ورکول. بيا هغه اَس خرخدو کښے دَ ليدلو بيان.

۲۵۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ

۲۵۴: عبداللّٰه بن يوسف. مالک. نافع. عبداللّٰه بن عمرٌ نه روايت کوي. حضرت

عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ حَمَلَ عَلٰي فَرَسٍ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَوَجَدَهٗ يُبَاعُ فَاَرَادَ اَنْ يَبْتَاعَهٗ فَسَاَلَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَا تَبْتَعْهُ وَلَا تَعُدْ فِيْ صَدَقَتِكَ.

فاروق اعظمؓ یو اَس د خدائے په لار کښې چاله د سورلئ د پاره ورکه. او بیائے هغه خرڅیدونکے اولید، نو غوښتل ئے چه په بیعه واخلي. دَ حضورؐ نه ئے تپوس اوکهٔ نو حضورؐ ورته اوفرمائیل ته ئے مه اخله خپله صدقه کښې څه نقص مه پیدا کوه.

۲۵۵: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ سَمِعْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ يَقُوْلُ حَمَلْتُ عَلٰي فَرَسٍ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَاَبْتَاعَهٗ اَوْ فَاَضَاعَهُ الَّذِيْ كَانَ عِنْدَهٗ فَاَرَدْتُّ اَنْ اَشْتَرِيَهٗ وَ ظَنَنْتُ اَنَّهٗ بَائِعُهٗ بِرُخْصٍ فَسَاَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَا تَشْتَرِهٖ وَ اِنْ بِدِرْهَمٍ فَاِنَّ الْعَائِدَ فِيْ هِبَتِهٖ كَالْكَلْبِ يَعُوْدُ فِيْ قَيْئِهٖ.

۲۵۵: اسماعیل. مالک. زید. اسلم نه روایت کوي ما د حضرت عمرؓ نه واوریدل، ما د الله په لار کښې یو سړي ته یو اَس د سورلئ دَ پاره ورکړلو. نو هغه هغه اَس خراب کړلو یا هغه ئے خرڅولو چه ما اولیدلو، نو ما هغه اخستل غوښتل او خما دا ګمان هم راغے چه هغه به دا اس په کم قیمت راباندے خرڅ کړي. په دے وجه ما دَ حضورؐ نه تپوس اوکه، نو حضورؐ اوفرمائیل ته ئے هر ګز مه اخله خواه که په یو درهم ئے ولے درنکړي. څکه چه هبه اپس اخستونکے داسے دے، لکه سپے چه خپل قے خپله ښتې.

بَابُ ۱۸۱: اَلْجِهَادُ بِاِذْنِ الْاَبَوَيْنِ.

باب ۱۸۱: د مور پلار په اجازت جهاد ته تلل.

۲۵۶: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا حَبِيْبُ بْنُ اَبِيْ ثَابِتٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا الْعَبَّاسِ الشَّاعِرَ وَ كَانَ لَا يُتَّهَمُ فِيْ حَدِيْثِهٖ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو يَقُوْلُ جَاءَ رَجُلٌ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَاْذَنَهٗ فِي الْجِهَادِ فَقَالَ اَحَيٌّ وَالِدَاكَ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَفِيْهِمَا فَجَاهِدْ.

۲۵۶: آدم. شعبه. حبیب. ابو العیاش نه روایت کوي، ما د عبدالله بن عمرؓ نه واوریدل. هغهٔ وے چه رسول الله صلي الله علیه وسلم له یو سړے راغے، او میدان جنګ ته دَ تلو اجازت ئے ترے طلب که. حضور صلعم ترے تپوس اوکه، ستا مور پلار ژوندي دي وے ونیل جي او، نو ارشاد ئے ورته اوفرمائیل څه او د هغوئ خدمت کوه.

بَابٌ ۱۸۲ : مَا قِيلَ فِي الْجَرَسِ وَ نَحْوِهِ فِيْ اَعْنَاقِ الْإِبِلِ.

باب ۱۸۲ : د اوښ څټ کښې د کنټي (جرس) وغیره لګولو بیان.

۲۵۷ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ بَكْرٍ عَنْ عَبَّادِ بْنِ تَمِيْمٍ اَنَّ اَبَا بَشِيْرٍ الْاَنْصَارِيَّ اَخْبَرَهُ اَنَّهُ كَانَ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ بَعْضِ اَسْفَارِهٖ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ حَسِبْتُ اَنَّهُ قَالَ وَالنَّاسُ فِيْ مَبِيْتِهِمْ فَاَرْسَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَسُوْلًا اَنْ لَّا تَبْقَيَنَّ فِيْ رَقَبَةِ بَعِيْرٍ قِلَادَةٌ اِلَّا قُطِعَتْ.

۲۵۷ : عبدالله بن یوسف. مالک عبدالله بن ابوبکر. عباد. ابوالبشیر انصاري نه روایت کوي، چه یو خل هغه رسالتمآب صلعم سره سفر کښې ملګرے وو. عبدالله اووے. خما خیال دے، هغه اووے خلق د خپل خوب ځایونو کښې وو. چه رسول الله صلعم د یو قاصد په ذریعه اطلاع اوکړله چه د هیڅ اوښ غاړه کښې دے جرس وغیره نه شي اچولے. او که اچولے وي، نو پریدے کړي.

بَابٌ ۱۸۳ : مَنِ اكْتُتِبَ فِيْ جَيْشٍ فَخَرَجَتِ امْرَاَتُهٗ حَاجَّةً وَّ كَانَ لَهٗ عُذْرٌ هَلْ يُؤْذَنُ لَهٗ.

باب ۱۸۳ : د چا نوم چه یو ځل لښکر کښې اولیکلے شي او د هغهٔ ښځه حج د پاره روانه شي یا هغه ته خپله څهٔ عذر وي، نو آیا داسے سړي ته میدان جنګ ته تلل پکار دي؟

۲۵۸ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ اَبِيْ مَعْبَدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّهٗ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَا يَخْلُوَنَّ رَجُلٌ بِامْرَاَةٍ وَّلَا تُسَافِرَنَّ امْرَاَةٌ اِلَّا وَ مَعَهَا مَحْرَمٌ فَقَامَ رَجُلٌ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اكْتُتِبْتُ فِيْ غَزْوَةِ كَذَا وَ كَذَا وَ خَرَجَتِ امْرَاَتِيْ حَاجَّةً فَقَالَ اذْهَبْ فَحُجَّ مَعَ امْرَاَتِكَ.

۲۵۸ : قتیبه. سفیان. عمرو. ابو معبد. حضرت ابن عباس نه روایت کوي. هغه د رسول الله صلي الله علیه وسلّم نه واوریدل، هیڅ سړے دے یوے ښځے سره تنهایئ کښې نهٔ کیني. او نه دے یوه ښځه بغیر د یو محرم نه یواځے سفر کوي. بیا یو سړے اودرید او عرض ئے اوکړهٔ. یا رسول الله صلعم ځما نوم فلاني فلاني جهاد کښې لیکلے شویدے او ځما ښځه حج له ځي نو حضورؐ ورته ارشاد اوفرمائیلو خپلے ښځے سره حج اوکړه.

بَابٌ ۱۸۴ : الْجَاسُوْسِ. وَ قَوْلِ

باب ۱۸۴ : د جاسوس بیان. او فرمانِ الٰهي،

اللّٰهِ تَعَالٰى لَا تَتَّخِذُوْا عَدُوِّيْ وَ
عَدُوَّكُمْ اَوْلِيَاءَ التَّجَسُّسُ التَّبَحُّثُ.

۲۵۹: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ
اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ
دِيْنَارٍ سَمِعْتُهُ مِنْهُ مَرَّتَيْنِ قَالَ
اَخْبَرَنِيْ حَسَنُ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ
اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِيْ رَافِعٍ قَالَ
سَمِعْتُ عَلِيًّا يَقُوْلُ بَعَثَنِيْ رَسُوْلُ
اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَا
وَالزُّبَيْرَ وَالْمِقْدَادَ بْنَ الْاَسْوَدِ قَالَ
انْطَلِقُوْا حَتّٰى تَأْتُوْا رَوْضَةَ خَاخٍ فَاِنَّ
بِهَا ظَعِيْنَةً وَّ مَعَهَا كِتَابٌ فَخُذُوْهُ مِنْهَا
فَانْطَلَقْنَا تَعَادٰى بِنَا خَيْلُنَا حَتّٰى
انْتَهَيْنَا اِلَى الرَّوْضَةِ فَاِذَا نَحْنُ
بِالظَّعِيْنَةِ فَقُلْنَا اَخْرِجِيْ الْكِتَابَ
فَقَالَتْ مَا مَعِيَ مِنْ كِتَابٍ فَقُلْنَا
لَتُخْرِجَنَّ الْكِتَابَ اَوْ لَنُلْقِيَنَّ الثِّيَابَ
فَاَخْرَجَتْهُ مِنْ عِقَاصِهَا فَاَتَيْنَا بِهٖ
رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
فَاِذَا فِيْهِ مِنْ حَاطِبِ بْنِ اَبِيْ بَلْتَعَةَ
اِلٰى اُنَاسٍ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ مِنْ اَهْلِ
مَكَّةَ يُخْبِرُهُمْ بِبَعْضِ اَمْرِ رَسُوْلِ اللّٰهِ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ رَسُوْلُ
اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا
حَاطِبُ مَا هٰذَا قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ لَا
تَعْجَلْ عَلَيَّ اِنِّيْ كُنْتُ امْرَأً مُلْصَقًا

خما دشمنان او خپل دشمنان تاسو دوستان مۀ جوړوئ.
تجسس په معنٰي د تفتیش راځي.

۲۵۹: علي. سفیان. عمرو. حسن. عبيدالله
بن ابي رافع نه روايت کوي. ما د حضرت عليؓ
نه دا واوريدل چه رسالتمآب صلي الله عليه وسلم
ماته او زبير او مقداد ته اوفرمائيل، روان شئ، او
کوم وخت چه روضۀ خاخ (مقام) ته اورسئ، نو هلته
به تاسو يوه بوډئ ښځه اووينئ، هغې سره يو خط دے.
نو هغه خط تاسو دَ هغې نه واخلئ. نو مونږ روان شو. او
اسونه مو تيز کړل. مونږ چه روضۀ خاخ ته اورسيدو نو
مونږه هغه ښځه اوليدله مونږ ورته اُوے چه خط
راوکاږه، هغې اووے، ماسره خو څۀ خط نشته مونږ ورته
اووے، خط راوکاږه، کنې تالاشئ د پاره درنه کپړے
اوکاږو. نو هغه خط هغې د خپې کمسئ نه راوښکلو،
هغه مونږ ترے واخستو او دَ رسول الله صلي الله عليه
وسلم خدمت کښې حاضر شو. هغې خط کښې ليکلے
وو. دَ حاطب بن ابي بلتعه د جانب نه د مکې مشرکينو
په نوم. چه هغې کښې د رسول الله صلي الله عليه
وسلم د بعضې حالاتو حاطب مشرکينو ته خبر
ورکړے وو. نو سرور عالم صلي الله عليه وسلم
حاطب راوغوښتلو. او تپوس ئے ترے اوکه، اے
حاطب، دا څه دي؟ حاطب عرض اوکه، يا رسول
الله صلعم ماته سزا راکولو کښې تاسو تادي مۀ
کوئ، واقعه داده چه زۀ دَ قريش خاندان غړے (فرد)
نه يم، ليکن الحاقي طور سره خما شمار دَ هغوئ
نه کيږي. تاسو سره چه کوم مهاجرين دي د هغوئ

فِيْ قُرَيْشٍ وَلَمْ اَكُنْ مِّنْ اَنْفُسِهَا وَ كَانَ مَعَكَ مِنَ الْمُهَاجِرِيْنَ لَهُمْ قَرَابَاتٌ بِمَكَّةَ يَحْمُوْنَ بِهَا اَهْلِيْهِمْ وَ اَمْوَالَهُمْ فَاَحْبَبْتُ اِذْ فَاتَنِيْ ذٰلِكَ مِنَ النَّسَبِ فِيْهِمْ اَنْ اَتَّخِذَ عِنْدَهُمْ يَدًا يَحْمُوْنَ بِهَا قَرَابَتِيْ وَمَا فَعَلْتُ كُفْرًا وَّلَا اِرْتِدَادًا وَّلَا رِضًى بِالْكُفْرِ بَعْدَ الْاِسْلَامِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَقَدْ صَدَقَكُمْ قَالَ عُمَرُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ دَعْنِيْ اَضْرِبُ عُنُقَ هٰذَا مُنَافِقٍ قَالَ اِنَّهٗ قَدْ شَهِدَ بَدْرًا وَّمَا يُدْرِيْكَ لَعَلَّ اللّٰهَ اَنْ يَّكُوْنَ قَدِ اطَّلَعَ عَلٰى اَهْلِ بَدْرٍ فَقَالَ اعْمَلُوْا مَا شِئْتُمْ فَقَدْ غَفَرْتُ لَكُمْ قَالَ سُفْيَانُ وَ اَيُّ اَسْنَادٍ هٰذَا.

## باب ١٨٥ : اَلْكِسْوَةُ لِلْاُسَارٰى.

٢٦٠ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ عَمْرٍو سَمِعَ جَابِرَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ لَمَّا كَانَ يَوْمُ بَدْرٍ اُتِيَ بِاُسَارٰى وَ اُتِيَ بِالْعَبَّاسِ وَلَمْ يَكُنْ عَلَيْهِ ثَوْبٌ فَنَظَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَهٗ قَمِيْصًا فَوَجَدُوْا قَمِيْصَ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اُبَيٍّ يَقْدِرُ عَلَيْهِ فَكَسَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِيَّاهُ فَلِذَالِكَ نَزَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَمِيْصَهٗ

قرابت دار مکه کښې موجود دي چه د هغې په وجهٔ هغوئ ذَ مال و دولت او اهل و عیال هغوئ حفاظت کوي. ددې حالاتو لاندې ما دا سوچ اوکه چه ځما نسبي تعلق هغوئ سره نشته نو په هغوئ دِ څه احسان اوکړم چه هغوئ زما د قرابت دارو حفاظت اوکړي او ما دا کار په کافرانه خیال نه دې کړې، او زهٔ د دین اسلام نه مرتد شوې هم نه یم. او د اسلام راوړلو نه پس کفر طرف ته ځما هیڅ قسم رغبت هم نشته. په دې خبره حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، حاطب رښتیا وائي. حضرت عمرؓ اووې، یا رسول اللّٰه صلعم ماته اجازت راکړئ چه ددې منافق ګردن والوځوم. حضورؐ ارشاد اوفرمائیلو او تاته معلومه نه ده چه ذَ اهل بدر حالت خو اللّٰه تعالٰي پیژني، لکه چه هغه ارشاد فرمائیلې دې. تاسو چه څه غواړئ کوئ. ما تاسو بخښلي يئ. سفیان اووې دا څه ښه سند دې.

## باب ١٨٥ : قیدیانو ته د لباس اغستولو بیان.

٢٦٠ : عبداللّٰه ابن عیینه. عمرو. جابر بن عبداللّٰه نه روایت کوي. جنګ بدر کښې قیدیان ګرفتار کړې شو، هغې کښې حضرت عباسؓ هم راوستې شو. ذَ هغهٔ په جسم هیڅ کپړه نه وه. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم ذَ هغهٔ ذَ پاره یو قمیص تلاش کولو. او خلقو د عبداللّٰه بن ابي قمیص چه ذَ حضرت عباسؓ په بدن تیک راتله راوړلو چه حضورؐ حضرت عباسؓ ته واغستولو په دې وجه رسالتمآب صلعم خپل قمیص هغه ته ورکړې وو. چه عبداللّٰه بن ابئ ته واغستې شو.

الَّذِيْ اَلْبَسَهُ قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ كَانَتْ لَهُ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدٌ فَاَحَبَّ اَنْ يُكَافِئَهُ.

ابن عيينه اووې چه حضورؐ باندې هغه څه احسان کړې وو. په دې وجه حضورؐ اوغوښتل چه د هغې بدل ورکړي.

**باب ۱۸۶: فَضْلِ مَنْ اَسْلَمَ عَلٰى يَدَيْهِ رَجُلٌ.**

**باب ۱۸۶:** د چا په لاس چه څوک مسلمان شوې وي د هغه د فضيلت بيان.

**۲۶۱۱:** حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ الْقَارِيُّ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَهْلٌ يَّعْنِي ابْنَ سَعْدٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ خَيْبَرَ لَاُعْطِيَنَّ الرَّايَةَ غَدًا رَّجُلًا يُّفْتَحُ عَلٰى يَدَيْهِ يُحِبُّ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهُ وَ يُحِبُّهُ اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهُ فَبَاتَ النَّاسُ لَيْلَتَهُمْ اَيُّهُمْ يُعْطٰى غَدًا فَغَدَوْا كُلُّهُمْ يَرْجُوْهُ فَقَالَ اَيْنَ عَلِيٌّ فَقِيْلَ يَشْتَكِيْ عَيْنَيْهِ فَبَصَقَ فِيْ عَيْنَيْهِ وَ دَعَا لَهُ فَبَرِاَ كَاَنْ لَّمْ يَكُنْ بِهٖ وَجَعٌ فَاَعْطَاهُ الرَّايَةَ فَقَالَ اُقَاتِلُهُمْ حَتّٰى يَكُوْنُوْا مِثْلَنَا فَقَالَ انْفُذْ عَلٰى رِسْلِكَ حَتّٰى تَنْزِلَ بِسَاحَتِهِمْ ثُمَّ ادْعُهُمْ اِلَى الْاِسْلَامِ وَ اَخْبِرْهُمْ بِمَا يَجِبُ عَلَيْهِمْ فَوَاللّٰهِ لَاَنْ يَّهْدِيَ اللّٰهُ بِكَ رَجُلًا

**۲۶۱۱:** قتيبه. يعقوب. ابو حازم. سهل يعني ابن سعد نه روايت کوي. رسول الله صلعم جنګ خيبر کښې اوفرمائيل. صبا له زۀ چه کوم سړي له جنډه ورکوم. د هغه په لاس به فتح نصيب شي هغه الله او د هغۀ رسول صلعم سره محبت ساتي. او الله او رسولؐ هغه سره محبت ساتي. نو خلقو ټوله شپه انتظار کولو، چه صبا له به دا جنډه چاته ورکړې کيږي. صبا ته ټول خلق ددې اُميدوار وو چه حضورؐ اوفرمائيل، عليؓ چرته دې. عرض اوشو چه د هغۀ سترګې خوږ دي. نو هغه ئې راوغښتلو، او د هغۀ په سترګو حضورؐ د خپلې خولې مبارکې لاړې پورې کړې او دُعائې ورته اوکړه او هغه ښۀ شولو. داسې معلوميدۀ چه ګويا د هغۀ سترګو ته هيڅ څه تکليف شوې نه وو او حضورؐ جنډه حضرت عليؓ ته ورکړله په هغې حضرت عليؓ اووې زه به دې خلقو سره هغه وخته پورې جنګيږم، څو پورې چه هغوئ زمونږ په شان نشي (يعني اسلام رانه وړي) حضورؐ ورته اوفرمائيل لږ د صبر نه کار واخله کله چه تۀ د هغوئ ميدان ته ورشې نو هغوئ ته د اسلام دعوت ورکړه او د الله د جانب نه چه څه په هغوئ واجب دي. د هغې اطلاع ورکړه. ځکه که الله تعالٰي ستا په ذريعه يو سړي ته هدايت اوکړي نو ستا دا فعل ستا د پاره د سرو اوښانو د

خَيْرٌ لَكَ مِنْ اَنْ يَّكُوْنَ لَكَ حُمْرُ النَّعَمِ.

باب۱۸۷ : اَلْاُسَارٰی فِی السَّلَاسِلِ.

۲۶۲ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ زِيَادٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ عَجِبَ اللّٰهُ مِنْ قَوْمٍ يَّدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ فِي السَّلَاسِلِ.

باب۱۸۸ : فَضْلِ مَنْ اَسْلَمَ مِنْ اَهْلِ الْكِتَابَيْنِ.

۲۶۳ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ ابْنُ عُيَيْنَةَ حَدَّثَنَا صَالِحُ بْنُ حَيٍّ اَبُوْ حَسَنٍ قَالَ سَمِعْتُ الشَّعْبِيَّ يَقُوْلُ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ بُرْدَةَ سَمِعَ اَبَاهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ثَلٰثَةٌ يُؤْتَوْنَ اَجْرَهُمْ مَرَّتَيْنِ الرَّجُلُ تَكُوْنُ لَهُ الْاَمَةُ فَيُعَلِّمُهَا فَيُحْسِنُ تَعْلِيْمَهَا وَ يُؤَدِّبُهَا فَيُحْسِنُ اَدَبَهَا ثُمَّ يُعْتِقُهَا فَيَتَزَوَّجُهَا فَلَهُ اَجْرَانِ وَ مُؤْمِنُ اَهْلِ الْكِتَابِ الَّذِيْ كَانَ مُؤْمِنًا ثُمَّ اٰمَنَ بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَهُ اَجْرَانِ وَالْعَبْدُ الَّذِيْ يُؤَدِّيْ حَقَّ اللّٰهِ وَ يَنْصَحُ لِسَيِّدِهٖ ثُمَّ قَالَ الشَّعْبِيُّ اَعْطَيْتُكُمَا بِغَيْرِ شَيْءٍ وَقَدْ كَانَ الرَّجُلُ يَرْحَلُ فِيْ اَهْوَنَ

ګلې نه زيات بنه دي.

باب۱۸۷ : قيديان په زنځيرونو کښې د تړلو کولو بيان.

۲۶۲ : محمد بن بشار. غندر. شعبه. محمد بن زياد حضرت ابوهريرةؓ نه روايت کوي. رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل الله تعالٰي د هغه خلقو په حال تعجب کوي چه زنځيرونو کښې کس شوي په جنت کښې داخليږي.

باب۱۸۸ : اهل کتابو کښې دَ اسلام راوړونکو دَ فضيلت بيان.

۲۶۳ : علي. سفيان. صالح. شعبي. ابوبردهؓ نه روايت کوي. دهٔ دَ خپل پلار نه واوريدل چه حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. درے سړي داسے دي چه هغوئ ته به دوچند ثواب حاصليږي، يو هغه چه خپلے وينزے ته په ښه شان سره تعليم ورکړي او هغے ته ادب اوښائي، او بيا هغه آزاده کړي او خپله ورسره نکاح اوکړي هغه به دو چند ثواب بيا مومي، او بل هغه مومن اهل کتاب چه دَ مخکښے نه مومن خو وو، ليکن بيائے په رسول الله صلي الله عليه وسلّم ايمان راوړلو. هغه ته به دو چند ثواب ملاويږي او بل هغه غلام چه د الله حق ادا کړي او دَ خپل مالک هم خير خواهي کوي. بيا شعبي اووے. دا حديث ما تاسو ته د څه اخستلو نه بغير آورولے دے، حالانکه ددے نه د کم مضمون حديث اوريدو دَ پاره به سړے

مِنْهَا اِلَى الْمَدِيْنَةِ.

مدینے منورے ته تلو.

**بَـــابٌ ۱۸۹ : اَهْـلِ الـدَّارِ يُبَيَّتُوْنَ فَيُصَابُ الْوِلْدَانُ وَالذَّرَارِيُّ بَيَـاتًـا لَيْلًا لَيُبَيِّتَنَّـهٗ لَيْلًا يُبَيِّتُ لَيْلًا.**

**بـاب ۱۸۹ : دارالحـرب والـو بـانـدے د شپے حـمـلـه کـولـو کـښـے د بـچو او اوده ښځو د قتل کیدو بیان**[۱]. لیبیتنـه لیلا: معني د شپے اوده (چه د شپے اوده وي).

۱. د اسلام حکم دا دے چه په جنګ کښے دِ ښځو، ماشومانو یا بوډاګانو ته هیڅ تکلیف اونه رسولے شي. دلته دا ښودل غواړي چه که چرے د شپے وخت کښے مسلمانان په هغوئ باندے حمله او کړي نو ظاهره ده چه په تیاره کښے خاصکر هر کله چه دشمن په خپلو کورونو کښے غافل اوده وي نو ښځو او ماشومانو تمیز به مشکل شي. اوس که چرے دوئ قتل شي نو دا به هیڅ ګناه نه وي. د شریعت مقصد صرف دا دے چه په قصد او ارادے سره ښځو، ماشومانو یا د جنګ وغیره نه عاجزه بوډاګانوته په جنګ کښے هیڅ تکلیف رسول نه دي پکار، او نهٔ هغوئ قتلول پکار دي لیکن که چرے د حالاتو مجبوري وي نو ظاهره ده چه ددے نه بغیر هیڅ چاره کار نیشته. نیت او د زړه اراده ضرور داسے پکار ده چه تر خومره پورے ممکنه وي (د حالاتو تر مخه دِ) ښځے او ماشومان قتل نه کړے شي یعني ممنوع صرف قصداً او ارادةً د هغوئ وژل دي. ددے ډیر واضحه نظیر دادے چه که چرے د مسلمانانو په مقابله کښے د دارالحرب کافرانو د خپل ځائے مسلمانان وړاندے کړل نو ظاهره ده چه په داسے موقعه باندے اسلامي فوځ پسپائي نشي اختیارولے بلکه ددے د ټولونه رومبئ نشانه به د کافرانو د طرفه راتلونکي هغه مسلمانان وي، خواه که هغوئ په مجبوره کولو سره ولے نه وي راوستي شوي، ولے چه عین دَ مورچے نه په شا تښیدل پخپله د اسلامي حکومت د پاره مضر دي. اوس به اَهْوَنُ البلیتین اختیارول وي. همدا حال د کافرانو د ښځو او ماشومانو د قتل هم دے.

**۲۶۴ :** حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ الصَّعْبِ بْنِ جَثَّامَةَ قَالَ مَرَّبِىَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْاَبْوَاءِ اَوْ بِوَدَّانَ وَ سُئِلَ عَنْ اَهْلِ الدَّارِ يُبَيَّتُوْنَ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ فَيُصَابُ مِنْ نِسَاءِ هِمْ وَ ذَرَارِيْهِمْ قَالَ هُمْ مِنْهُمْ وَ سَمِعْتُهٗ يَقُوْلُ لَاحِمٰى اِلَّا لِلّٰهِ وَلِرَسُوْلِهٖ

**۲۶۴ :** علي. سفیان. عبیدالله. ابن عباس. صعب بن جثامه نه روایت کوي. چه مقام ابواء یا ودان کښے ځما خوا سره رسول الله صلعم تیر شو او دَ حضورﷺ نه د حربي مشرکانو باره کښے تپوس اوشو چه په هغوئ د شپے حمله کیږي نو د هغوئ ښځے او بچي هم قتلیږي. حضورﷺ جواب ورکه هغوئ هم دَ هغوئ نه دي او ما هم دا دَ رسول الله صلعم نه واوریدل چه ورشو

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ عَنِ الزُّهْرِيِّ أَنَّهُ سَمِعَ عُبَيْدَ اللّٰهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ حَدَّثَنَا الصَّعْبُ فِي الذَّرَارِيِّ كَانَ عَمْرٌو يُحَدِّثُنَا عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَمِعْنَاهُ مِنَ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ الصَّعْبِ قَالَ هُمْ مِّنْهُمْ وَلَمْ يَقُلْ كَمَا قَالَ عَمْرٌو وَهُمْ مِنْ اٰبَائِهِمْ.

(چراګاه) د الله او رسول نه سوا، د بل چا نه وي، صعب. عمرو. ابن شهاب. زهري. عبدالله. حضرت ابن عباس د زهري په واسطه بیان کوي. حضورٌ ارشاد اوفرمائیلو، هغه بچي او د هغوئ ښځې ددغې مشر کانو نه دي. او د عمرو دَ قول په شان داسې ئې اونه وې چه هغوئ دَ خپل پلار نیکه نه دي.

**ف:** دارالحرب: هغه ملک چه پکښې د کافرو حکومت وي او مسلمانان پکښې د خپل دین فرائض نشي ادا کولې. دارالاسلام: هغه ملک چه پکښې اسلامي حکومت وي.

## باب ۱۹۰: قَتْلِ الصِّبْيَانِ فِي الْحَرْبِ.

## باب ۱۹۰: جنګ کښې د بچو د قتلولو بیان.

۲۶۵: حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ أَخْبَرَنَا اللَّيْثُ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ أَخْبَرَهُ أَنَّ امْرَأَةً وُجِدَتْ فِيْ بَعْضِ مَغَازِي النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَقْتُوْلَةً فَأَنْكَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَتْلَ النِّسَاءِ وَالصِّبْيَانِ.

۲۶۵: احمد بن یونس. لیث. نافع. حضرت عبداللهؓ نه روایت کوي چه حضور صلي الله علیه وسلّم یو جهاد کښې یوه قتله شوې ښځه اولیده، نو حضورؐ د بچو او ښځو قتلول بد اوکنړل.

## باب ۱۹۱: قَتْلِ النِّسَاءِ فِي الْحَرْبِ.

## باب ۱۹۱: جنګ کښې د ښځو د قتلولو بیان.

۲۶۶: حَدَّثَنَا إِسْحٰقُ بْنُ إِبْرَاهِيْمَ قَالَ قُلْتُ لِأَبِيْ أُسَامَةَ حَدَّثَكُمْ عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ وُجِدَتْ امْرَأَةٌ مَقْتُوْلَةٌ فِيْ

۲۶۶: اسحاق بن ابراهیم. ابو اسامه. عبیدالله. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روایت کوي. رسالتمآب صلي الله علیه وسلّم یو جهاد کښې

بَعْضِ مَغَازِيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ قَتْلِ النِّسَاءِ وَالصِّبْيَانِ.

يوه قتل شوې ښځه اوليده نو رسول الله صلي الله عليه وسلم د ښځو او بچو د قتل ممانعت اوفرمائيلو.

باب ۱۹۲ : لَا يُعَذَّبُ بِعَذَابِ اللّٰهِ.

باب ۱۹۲ : د عذاب الٰهي د سزا نه ورکولو بيان.

۲٦۷ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ ابْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ بُكَيْرٍ عَنْ سُلَيْمَانَ ابْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّهُ قَالَ بَعَثَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ بَعْثٍ فَقَالَ اِنْ وَجَدْتُّمْ فُلَانًا وَ فُلَانًا فَاَحْرِقُوْهُمَا بِالنَّارِ ثُمَّ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ اَرَدْنَا الْخُرُوْجَ اِنِّيْ اَمَرْتُكُمْ اَنْ تُحَرِّقُوْا فُلَانًا وَ فُلَانًا وَ اِنَّ النَّارَ لَا يُعَذِّبُ بِهَا اِلَّا اللّٰهُ فَاِنْ وَجَدْتُّمُوْهُمَا فَاقْتُلُوْهُمَا.

۲٦۷ : قتيبه. ليث. بكير. سليمان. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم مونږ ته يو لښکر سره د تلو حکم اوکه. اوويې فرمائيل که فلانے فلانے سړے بيامومئ نو په اُور کښې ئې اوسيزئ. بيا چه مونږ روانيدو، نو حضور صلعم اوفرمائيل. ما تاسو ته وئيلي چه فلانے فلانے په اُور کښې اوسيزئ، ليکن دَ اور عذاب خو صرف اللّٰه تعالٰي ورکوي که تاسو هغوئ بيامومئ، نو هغوئ دواړه قتل کړئ.

۲٦۸ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ عِكْرَمَةَ اَنَّ عَلِيًّا حَرَّقَ قَوْمًا فَبَلَغَ ابْنَ عَبَّاسٍ فَقَالَ لَوْ كُنْتُ اَنَا لَمْ اُحَرِّقْهُ لِاَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تُعَذِّبُوْا بِعَذَابِ اللّٰهِ وَلَقَتَلْتُهُمْ كَمَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ بَدَّلَ دِيْنَهُ فَاقْتُلُوْهُ.

۲٦۸ : علي. سفيان. ايوب. عکرمه نه روايت کوي. چه عليؓ څنے خلق اُور کښې سوزولي وو، چه ابن عباسؓ ته دا اطلاع اورسيده نو هغهٔ اووے که زهٔ دَ هغه په ځائے وے نو هيڅکله به مو نه وو سوزولي ځکه چه رحمة للعالمين فرمائيلي دي چه عذاب الٰهي سره چاله سزا مهٔ ورکوئ. او ما خو به هغوئ قتل کړي وو (نه چه سيزلي به مِ وو) ځنګه چه حضورؐ ارشاد فرمائيلے دے چه څوک خپل مذهب بدل کړي، نو هغه اووژنئ.

باب ۱۹۳ : فَاِمَّا مَنًّا بَعْدُ

باب ۱۹۳ : دَ اللّٰه تعالٰي قول چه قيدولو نه پس

وَ اِمَّـا فِـدَاءً. فِيْـهِ حَـدِيْـثُ ثُـمَـامَةَ وَ قَـوْلُـهُ عَـزَّ وَ جَـلَّ مَـا كَـانَ لِنَبِـيٍّ اَنْ يَـكُـوْنَ لَهُ اَسْرٰى اَلْاٰيَةَ.

يـا خو احسان پكار دے يا فديه اخستل پكار دي او ددے مضمون حديث دَ ثمامه بيان كړے شويدے او فرمان الهي چه نبي دَ پاره دا مناسب نه دي چه هغه سره د قيديان وي' آخر پورے.

بـاب ۱۹۴: هَـلْ لِلْاَسِيْرِ اَنْ يَـقْتُـلَ وَ يَـخْدَعَ الَّذِيْنَ اَسَـرُوْهُ حَتّٰى يَنْجُـوَمِنَ الْكُفْرِ فِيْهِ الْمِسْوَرُ عَـنِ النَّبِيِّ صَلَّـى اللّٰـهُ عَـلَيْـهِ وَسَلَّمَ.

باب ۱۹۴: دَ مسلمان قيدي هغه خلق چه هغوئ هغه قيد كړي وي قتلول او هغوئ له دهوكه وركول چه د كافرو نه خلاصي بيامومي آيا دا خبره جائز ده. مسور دَ حضور صلي الله عليه وسلّم نه دا حديث بيان كړے دے.

باب ۱۹۵: اِذَا حَـرَّقَ الْمُشْرِكُ الْمُسْلِمَ هَلْ يُحْرَقُ.

بـاب ۱۹۵: دَ يـو مشرک دَ يو مسلمان د سوزولو په بدله كښے دَ هغے مشرک دَ سوزولو بيان.

۲۶۹: حَـدَّثَـنَـا مُعَلَّـى بْـنُ اَسَدٍ حَدَّثَـنَا وُهَيْبٌ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ اَبِـيْ قِلَابَةَ عَـنْ اَنَـسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ رَهْطًا مِـنْ عُكْلٍ ثَمَانِيَةٌ قَدِمُوْا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّـى اللّٰـهُ عَلَيْـهِ وَسَلَّمَ فَـاجْتَـوَوُا الْـمَـدِيْـنَةَ فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰـهِ ابْـغِنَا رِسْلًا قَالَ مَا اَجِدُ لَكُمْ اِلَّا اَنْ تَـلْـحَقُوْا بِالذَّوْدِ فَانْطَلَقُوْا فَشَرِبُوْا مِـنْ اَبْـوَابِهَا وَ اَلْبَانِهَا حَتّٰى صَحُّوْا و سَـمِـنُـوْا وَ قَتَـلُـوْا الرَّاعِيَ وَاسْتَاقُوا الْاِبِـلَ وَ كَـفَـرُوْا بَـعْدَ الْاِسْلَامِ فَـاَتَى الصَّـرِيْـخُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰـهُ عَلَيْـهِ وَسَـلَّـمَ فَبَـعَـثَ الـطَّـلَـبَ فَمَا تَرَجَّلَ الـنَّـهَارُ حَتّٰى اُتِيَ بِهِمْ فَقَطَعَ اَيْدِيَهُمْ وَ اَرْجُلَهُمْ ثُمَّ اَمَرَ بِمَسَامِيْرَ فَاُحْمِيَتْ

۲۶۹: مـعـلـي. وهيـب. ايـوب. ابـو قلابـه. انـس بـن مـالـک نـه روايـت كـوي. د قبيلۀ عكل اتۀ سړي دربار رسالت كښے حاضر شولو. په هغوئ دَ مدينے منورے آب و هوا موافق رانغله. نو عرض ئے اوكه يا رسول الله صلعم مونږ له څۀ اوښان راكړه. په دے خبره حضورؐ اوفرمائيل' ستاسو د پاره دا مناسب دي چه تاسو ځنګل كښے دَ اوښانو پراؤ سره اوسيږئ. نو هغوئ دَ اوښانو پراؤ سره اوسيدل. او د اوښانو پئے او متيازے به ئے څكلے. چه تندرست او غټ شو نو هغوئ ګوارچيان قتل كړل' او اوښان ئے اوتښتول. او دَ اسلام راوړلو نه پس مرتد شول. كوم وخت چه دا اطلاع دربار رسالت كښے اوشوه نو حضورؐ د هغوئ په تلاش كښے سړي اوليږل. ورځ لا زياته نه وه راختلے چه هغوئ ټول ګرفتار كړے شول. دَ هغوئ لاس پښے پريكړے شو بيا ګرم

فَكَحَلَهُمْ بِهَا وَ طَرَحَهُمْ بِالْحُرَّةِ يَسْتَسْقُوْنَ فَمَا يُسْقَوْنَ حَتّٰى مَاتُوْا قَالَ اَبُوْ قِلَابَةَ قَتَلُوْا وَ سَرَقُوْا وَ حَارَبُوا اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَسَعَوْا فِي الْاَرْضِ فَسَادًا.

سلايان د هغوئ په سترګو كښے او ګرځولے شو او بيابان كښے اوغرځولے شو. او اوبه اوبه وئيلو سره تول مړۀ شو. ابو قلابه اووے دے خلقو قتل و غارت اوكه او اللّٰه او رسولؐ سره ئے جنګ كړے وو. او ملك كښے ئے بدامني خوره كړے وه.

ف: د بنارښت مرض د پاره د اوښانو پيے او متيازے څكل هم يو علاج دے په دے جوړيږي.

۱. دا حديث ددے نه مخكښے تير شوے دے او نوټ ئے هم دغه خلقو په يو خل د ګنړو سنګينو جرمونو ارتكاب كړے وو. او د ټولو نه زيات دا چه د حضور اكرم صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ ښاروان مُثله ئے كړے وه، په دے وجه هغوئ له هم په دغه شان سزا وركړے شوه، ليكن روستو ددے نه ممانعت او كړے شو چه خواه هر څه اوشي خو دغه شان سزاګانے دِ ورنه كړے شي. په دے حديث كښے دا هم دي چه هغوئ اوبه او غوښتے ليكن هغوئ له اوبه ورنكړے شوے. د اُمت په دے باندے اجماع ده چه چاله پهانړسي يا د قتل سزا وركولے شي، كه چرے هغه اوبه اوغواړي نو هغه باندے اوبه څكول پكار دي. خبره همدا صحيح ده چه ددے حديث احكام د سورت مائدے آيت سره منسوخ شوي وو.

## باب ۱۹۶:

۲۷۰: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ وَ اَبِيْ سَلَمَةَ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ قَرَصَتْ نَمْلَةٌ نَبِيًّا مِنَ الْاَنْبِيَاءِ فَاَمَرَ بِقَرْيَةِ النَّمْلِ فَاُحْرِقَتْ فَاَوْحَى اللّٰهُ اِلَيْهِ اَنْ قَرَصَتْكَ نَمْلَةٌ اَحْرَقْتَ اُمَّةً مِنَ الْاُمَمِ تُسَبِّحُ.

## باب ۱۹۶:

۲۷۰: الف. يحيي. بن بكير. ليث. يونس. ابن شهاب. سعد بن مسيب او ابو مسلم حضرت ابوهريرةؓ نه روايت كوي. ما د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه اوريدلي دي، چه يو ميږي يو نبي چيچلے وو. نو هغه حكم اوكه او ذ ميږو هغه كورنے اوسوزولو. اللّٰه تعالي پرے وحي راوليږله. تۀ يو ميږي چيچلے وے او تا د ټولو ميږو كور اوسوزولو چه د اللّٰه تسبيح به ئے كوله.

## بـاب ۱۹۷: حَرْقِ الدُّوْرِ وَ النَّخِيْلِ.

## باب ۱۹۷: ذ كورونو او باغونو ذ سوزولو بيان.

۲۷۱: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا

۲۷۱: مسدد. يحيي. اسمٰعيل. قيس. جرير

يَحْيٰى عَنْ اِسْمَاعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنِيْ قَيْسُ بْنُ اَبِيْ حَازِمٍ قَالَ قَالَ لِيْ جَرِيْرٌ قَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلَا تُرِيْحُنِيْ مِنْ ذِي الْخَلَصَةِ وَ كَانَ بَيْتًا فِيْ خَثْعَمَ يُسَمّٰى كَعْبَةَ الْيَمَانِيَّةِ قَالَ فَانْطَلَقْتُ فِيْ خَمْسِيْنَ وَ مِائَةِ فَارِسٍ مِنْ اَحْمَسَ وَ كَانُوْا اَصْحَابَ خَيْلٍ قَالَ وَ كُنْتُ لَا اَثْبُتُ عَلَى الْخَيْلِ فَضَرَبَ فِيْ صَدْرِيْ حَتّٰى رَاَيْتُ اَثَرَ اَصَابِعِهٖ فِيْ صَدْرِيْ وَ قَالَ اَللّٰهُمَّ ثَبِّتْهُ وَاجْعَلْهُ هَادِيًا مَهْدِيًّا فَانْطَلَقَ اِلَيْهَا فَكَسَرَهَا وَ حَرَّقَهَا ثُمَّ بَعَثَ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُخْبِرُهٗ فَقَالَ رَسُوْلُ جَرِيْرٍ وَالَّذِيْ بَعَثَكَ بِالْحَقِّ مَا جِئْتُكَ حَتّٰى تَرَكْتُهَا كَاَنَّهَا جَمَلٌ اَجْوَفُ اَوْ اَجْرَبُ قَالَ فَبَارَكَ فِيْ خَيْلِ اَحْمَسَ وَ رِجَالِهَا خَمْسَ مَرَّاتٍ.

نه روايت كوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ماته اوفرمائيل' ته ما د ذي خلصه د طرف نه ولې نه بې فکره کوې او هغه ولې نه بربادوې' هغه دَ قبيلۀ خثعم بت خانه وه او دوئ د کعبۀ يمانيه په نوم يادوله. نو ما (جرير) د بنو حمس يو نيم سل اَس سوارۀ واخستل' روان شوم. او زۀ په خپل اَس ټينګ کيناستې نه شوم' نو حضورؐ زۀ په سينه او ټپولم نو دَ حضورؐ دَ ګوتو مبارکو نښې ما په سينه خپله اوليدې بيا رسالتمآبؐ اوفرمائيل' اے اللّٰه دۀ له ثبات ورکړې او دې هدايت کونکې او هدايت يافته جوړ کړې. آخر جرير هغې بت خانې طرف ته روان شو هغه ئې زير و زبر کړه او په اُور ئې اوسيزله. بيائې رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم له د هغې اطلاع ورکړه او د جرير قاصد دربار رسالت کښې عرض اوکه قسم دې په هغه ذات چه هغه حق سره تاسو مبعوث کړې يې. زۀ تاسوّ ته داسې وخت راغلې يم چه ما هغه داسې حالت کښې پريښودو چه هغه د ډډ اوښ يا خارشي اوښ په شان شوه نو حضورؐ د بني حمس اَسونو او باشنده ګانو ته پنځه خله د برکت دعا اوکړه.

۲۷۲: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ مُوْسَى ابْنِ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ قَالَ حَرَّقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَخْلَ بَنِي النَّضِيْرِ.

۲۷۲: محمد بن كثير. سفيان. موسٰي. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روايت کوي چه رسالت مآب صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ قبيلۀ بنو نضير باغونه چه دَ يهوديانو وو او دَ کجهورو باغونه وو سوزولې وو.

## بـاب ۱۹۸: قَتْلِ الْمُشْرِكِ النَّائِمِ.

## بـاب ۱۹۸: د اودۀ مشرک د قتلولو بيان.

۲۷۳: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْلِمٍ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ زَكَرِيَّاءَ ابْنِ زَائِدَةَ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ بَعَثَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَهْطًا مِنَ الْأَنْصَارِ إِلَى أَبِي رَافِعٍ لِيَقْتُلُوهُ فَانْطَلَقَ رَجُلٌ مِنْهُمْ فَدَخَلَ حِصْنَهُمْ قَالَ فَدَخَلْتُ فِي مَرْبِطِ دَوَابَّ لَهُمْ قَالَ وَأَغْلَقُوا بَابَ الْحِصْنِ ثُمَّ إِنَّهُمْ فَقَدُوا حِمَارًا لَهُمْ فَخَرَجُوا يَطْلُبُونَهُ فَخَرَجْتُ فِي مَنْ خَرَجَ أُرِيهِمْ أَنَّنِي أَطْلُبُهُ مَعَهُمْ فَوَجَدُوا الْحِمَارَ فَدَخَلُوا وَدَخَلْتُ وَأَغْلَقُوا بَابَ الْحِصْنِ لَيْلًا فَوَضَعُوا الْمَفَاتِيحَ فِي كُوَّةٍ حَيْثُ أَرَاهَا فَلَمَّا نَامُوا أَخَذْتُ الْمَفَاتِيحَ فَفَتَحْتُ بَابَ الْحِصْنِ لَيْلًا ثُمَّ دَخَلْتُ عَلَيْهِ فَقُلْتُ يَا أَبَا رَافِعٍ فَأَجَابَنِي فَتَعَمَّدْتُ الصَّوْتَ فَضَرَبْتُهُ فَصَاحَ فَخَرَجْتُ ثُمَّ رَجَعْتُ كَأَنِّي مُغِيثٌ فَقُلْتُ يَا أَبَا رَافِعٍ وَغَيَّرْتُ صَوْتِي قَالَ مَا لَكَ لِأُمِّكَ الْوَيْلُ قُلْتُ مَا شَأْنُكَ قَالَ لَا أَدْرِي مَنْ دَخَلَ عَلَيَّ فَضَرَبَنِي قَالَ وَضَعْتُ سَيْفِي فِي بَطْنِهِ ثُمَّ تَحَامَلْتُ عَلَيْهِ حَتَّى قَرَعَ الْعَظْمَ ثُمَّ خَرَجْتُ وَأَنَا دَهِشٌ فَأَتَيْتُ سُلَّمًا لَهُمْ لِأَنْزِلَ مِنْهُ فَوَقَعْتُ

۲۷۳: علي. يحيي. زكريا. ابو اسحٰق. حضرت براء بن عازب نه روایت کوي. چه رسول الله صلي الله علیه وسلّم څو انصار ابو رافع ته اولیږل چه هغه قتل کړي، نو یو انصاري د هغه په قلعه کښې ور داخل شو هغه وائي زهٔ د اَسونو په اصطبل کښې پټ شوم او دَ قلعه دروازه بنده کړے شوه، دے نه پس یو څو کیدار خپل خر تلاش کولو دَ پاره بهر راووتلو. زهٔ هم هغے خلقو سره بهر راووتم، او ما دا ښودله چه زهٔ هم هغوئ سره دَ خر تلاش کښې یم. کوم وخت چه هغوئ خر بیامند، نو زهٔ هغوئ سره قلعه ته رادننه شوم. او دَ قلعه دروازه ئے بنده کړه. دَ هغے کنجیانے ئے یو سوري (سوراخ) کښې کیښودے. او کوم وخت چه هغوئ ټول اوده شو، نو ما هغه کنجیانے راواخستے. دَ قلعه دروازه مِ پرانستله ابو رافع طرف ته ورغلم. او آواز مِ ورکه اے ابو رافع، هغه چه جواب راکولو، نو زهٔ آواز طرف ته په ورمنډه شوم، او په هغهٔ مِ حمله اوکړه، هغهٔ چغې شروع کړے. نو زهٔ بهر راووتلم، دے نه پس بیا هغه شان ورغلم چه زهٔ فریاد رس یم ما آواز بدل کړ. او مِ وے اے ابو رافع هغهٔ اووے، تهٔ څوک ئے مور دِ خواره شه ما اووے څهٔ خبره ده، نو هغهٔ اووے ماته هیڅ معلومه نه ده، بس یو سړي په ما دَ تورے ګزار کړیدے. دے اوریدو سره ما خپله توره دَ هغه په خیټه کښې ورښخه کړه. او دومره زور مِ ورکه، چه دَ هغهٔ هډوکي ته ورغله او دے نه پس زهٔ بهر راووتم او زهٔ خوفزده ووم، په څهٔ طریقه دَ کوزیدو د پاره اندرپائے (سیڑھی) له راغلم خو راپریوتم او زما پښه ماته شو، او بیا دغے حالت کښې ما خان خپلو دوستانو ته

فَوُثِئَتْ رِجْلِيْ فَخَرَجْتُ اِلٰى اَصْحَابِيْ فَقُلْتُ مَا اَنَا بِبَارِحٍ حَتّٰى اَسْمَعَ النَّاعِيَةَ فَمَا بَرِحْتُ حَتّٰى سَمِعْتُ نَعَايَا اَبِيْ رَافِعٍ تَاجِرِ اَهْلِ الْحِجَازِ قَالَ فَقُمْتُ وَمَا بِيْ قَلَبَةٌ حَتّٰى اَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرْنَاهُ.

اورسولو ورته م اووے، زۀ هغے پورے نه خم ثو پورے چه د ژړا آواز واونه رم، نو زۀ هغه وخته پورے بهر اونه وتلم ثو پورے چه ما د اهل حجاز تاجر ابو رافع باندې ژړیدونکو ښځو آواز واونه ریدلو. زه هلته ولاړ ووم خو ما کښے د تلو قوت نه وو پاتے شوے. آخر مونږ تولو حضورﷺ ته حاضري اوکړه. او پوره واقعه مو ورته بيان کړه.

۲۷۴ : حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ اٰدَمَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ اَبِيْ زَائِدَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ اِسْحَاقَ عَنِ الْبَرَآءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ بَعَثَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَهْطًا مِّنَ الْاَنْصَارِ اِلٰى اَبِيْ رَافِعٍ فَدَخَلَ عَلَيْهِ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَتِيْكٍ بَيْتَهُ لَيْلًا فَقَتَلَهُ وَهُوَ نَائِمٌ.

۲۷۴ : عبدالله بن محمد. يحيٰي بن آدم. يحيٰي بن ابي زائده. د هغۀ پلار ابو اسحٰق. حضرت براء بن عازبؓ نه روايت کوي حضور صلي الله عليه وسلم څو انصار د ابو رافع د قتل د پاره ليږلے وو. نو حضرت عبدالله بن عتيک د شپے وخت کښې هغۀ په کمره کښے ور داخل شو. او اودۀ کښے ئے هغه اووژلو.

باب ۱۹۹ : لَا تَمَنَّوْا لِقَآءَ الْعَدُوِّ.

باب ۱۹۹ : دشمن سره د مقابلے تمنا نه کولو بيان.

۲۷۵ : حَدَّثَنَا يُوْسُفُ بْنُ مُوْسٰى حَدَّثَنَا عَاصِمُ بْنُ يُوْسُفَ الْيَرْبُوْعِيُّ حَدَّثَنَا اَبُوْ اِسْحَاقَ الْفَزَارِيُّ عَنْ مُوْسَى بْنِ عُقْبَةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ سَالِمٌ اَبُو النَّضْرِ مَوْلٰى عُمَرَ بْنِ عُبَيْدِ اللّٰهِ كُنْتُ كَاتِبًا لَهُ قَالَ كَتَبَ اِلَيْهِ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِيْ اَوْفٰى حِيْنَ خَرَجَ اِلَى الْحَرُوْرِيَّةِ فَقَرَأْتُهُ فَاِذَا فِيْهِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۲۷۵ : يوسف بن موسٰي. عاصم بن يوسف يربوعي. ابو اسحاق فرازي. موسٰي بن عقبه. سالم ابوالنضر نه روايت کوي چه زۀ عمر بن عبيدالله سره منشي ومه. عبدالله بن ابي اوفٰي هغۀ ته يو خط اوليږۀ چه په هغے کښے ليکلي وو حضور صلي الله عليه وسلم بعضے غزاګانو کښے چه دشمن سره به مخامخ کيدلو نو انتظار به ئے کولو، او هر کله چه زوال به شو نو حضور صلي الله

فِيْ بَعْضِ اَيَّامِهِ الَّتِيْ لَقِيَ فِيْهَا الْعُدُوَّ انْتَظَرَ حَتّٰى مَالَتِ الشَّمْسُ ثُمَّ قَامَ فِي النَّاسِ فَقَالَ يَا اَيُّهَا النَّاسُ لَا تَمَنَّوْا لِقَاءَ الْعُدُوِّ وَسَلُوا اللّٰهَ الْعَافِيَةَ فَاِذَا لَقِيْتُمُوْهُمْ فَاصْبِرُوْا وَاعْلَمُوْا اَنَّ الْجَنَّةَ تَحْتَ ظِلَالِ السُّيُوْفِ ثُمَّ قَالَ اَللّٰهُمَّ مُنْزِلَ الْكِتٰبِ وَ مُجْرِي السَّحَابِ وَ هَازِمَ الْاَحْزَابِ اهْزِمْهُمْ وَانْصُرْنَا عَلَيْهِمْ وَ قَالَ مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ حَدَّثَنِيْ سَالِمٌ اَبُو النَّضْرِ كُنْتُ كَاتِبًا لِعُمَرَ بْنِ عُبَيْدِ اللّٰهِ فَاَتَاهُ كِتَابُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ اَوْفٰیؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَمَنَّوْا لِقَآءَ الْعَدُوِّ وَ قَالَ اَبُوْ عَامِرٍ حَدَّثَنَا مُغِيْرَةُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَمَنَّوْا لِقَآءَ الْعَدُوِّ فَاِذَا لَقِيْتُمُوْهُمْ فَاصْبِرُوْا.

عليه وسلّم به په خطبه كښے اوفرمائيل چه دشمن سره دَ جنګيدو آرزو مه كوئ. او د اللّه تعالي نه سلامتي غوارئ. او په دشمن چه غالب شئ نو صبر كوئ او دا په زړه كښے راولئ چه جنت ستاسو تُورو لاندے دے. بيا حضورؐ دا دُعا اوفرمائيله. اے د كتاب (قرآن مجيد) نازلونكيه‘ اے دَ وريځے چلونكيه‘ اے د فوځيانو تبنتونكيه‘ دوئ اوزغلے. او مونږ ته پرے فتحه راكړے‘ موسٰي بن عقبه‘ سالم ابوالنضر روايت كوي. چه زهٔ د عمر بن عبيداللّٰه منشي ووم‘ دهٔ ته د عبداللّٰه بن اوفٰي خط راغلو چه پكښے ليكلے وو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلي دي چه دشمن سره دَ جنګ آرزو مه كوئ او ابو عامر‘ مغيره بن عبدالرحمان. ابوالزناد. اعرج دَ ابو هريرهؓ نه روايت كوي چه حضور صلعم فرمائيلي دي تاسو دشمن سره دوه په دوه كيدو خواهش مه كوئ او كه ستاسو هغوئ سره مقابله اوشي نو صبر كوئ. (ځانونه كلك كړئ)

## بــاب ۲۰۰ : اَلْحَرْبُ خَدْعَةٌ.

## باب ۲۰۰ : جنګ كښے دَ دهوكے وركولو بيان[۱].

۱. عنوان د حديث نه اخستے شوے دے. مطلب دا دے چه د طاقتور نه طاقتور فريق په حق كښے هم په جنګ كښے د فتحے پيشين ګوئي نشي كيدلے اونه په جنګ كښے صرف په دے باب باندے اعتماد كيدلے شي بلكه داسے كيږي چه دَ فتحے موندلو ټول امكانات په يوے مرحلے باندے د يو فريق په حق كښے روښانه وي‘ او يوه غلطي هم او د شكست خوړلي فريق كوم چال د جنګ نقشه بدلولے شي او فاتحانه پيش قدمي كونكے په يو منټ كښے مفتوح اوګرځي او وسله اوغورزوي. دا ځيز پخوانئ زمانه كښے هم وو او د موجوده دور د جنګونو هم دا حال روان دے‘ په دے وجه جنګ د يو چال نه زيات بل څه

نه دي.

ددے مفهوم دا هم بيان کړے شوے دے چه دشمن له شکست ورکولو د پاره پټ تدابير اختيارولے شي ليکن تر څو پورے چه دَ غدر، بے لوظئ او دروغو تعلق دے نو دا په هيڅ صورت کښے جائز نه دي، نه د جنګ په دوران کښے او نه د هغے نه پس.

۲۷۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ هَلَكَ كِسْرٰى ثُمَّ لَا يَكُوْنُ كِسْرٰى بَعْدَهٗ وَ قَيْصَرُ لَيَهْلِكَنَّ ثُمَّ لَا يَكُوْنُ قَيْصَرُ بَعْدَهٗ وَلَتُقْسَمَنَّ كُنُوْزُهُمَا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَ سَمَّى الْحَرْبَ خَدَعَةً.

۲۷۶: عبداللّٰه بن محمد. عبدالرزاق. معمر. همام. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، کسريٰ هلاک شولو او اوس به دَ هغه نه پس څوک کسريٰ نه وي او عنقريب قيصر به هم هلاک شي او د هغه نه پس به هيڅ قيصر پاتے نشي، بيشکه تاسو به د قيصر و کسريٰ خزانے د اللّٰه په لار کښے تقسيموئ او جنګ ته حضورؐ د فريب (دهوکے) نوم ورکړو.

۲۷۷: حَدَّثَنَا اَبُوْبَكْرِ بْنُ اَصْرَمَ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ سَمَّى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْحَرْبَ خَدَعَةً.

۲۷۷: ابوبکر بن اصرم. عبداللّٰه. معمر. همام بن منبه د حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي چه رسالت مآب صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ جنګ نوم فريب (دهوکه) ايښے دے.

۲۷۸: حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ اَخْبَرَنَا بْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ عَمْرٍو سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْحَرْبُ خُدْعَةٌ.

۲۷۸: صدقه ابن عيينه. عمرو. دَ حضرت جابر رضي اللّٰه عنه نه روايت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل چه جنګ دراصل دهوکه (فريب) ده.

باب ۲۰۱: اَلْكَذِبِ فِي الْحَرْبِ.

باب ۲۰۱: جنګ کښے د دروغ وئيلو بيان.

۲۷۹: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ جَابِرِ بْنِ

۲۷۹: قتيبه ابن سعيد. سفيان. عمرو بن دينار. حضرت جابرؓ نه روايت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل دَ کعب بن اشرف دَ قتل ذمه وارئ

عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ لِكَعْبِ بْنِ الْاَشْرَفِ فَاِنَّهُ قَدْ اٰذَى اللّٰهَ وَرَسُوْلَهُ قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ اَتُحِبُّ اَنْ اَقْتُلَهُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَاَتَاهُ فَقَالَ اِنَّ هٰذَا يَعْنِي النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ عَنَّانَا وَ سَاَلَنَا الصَّدَقَةَ قَالَ وَ اَيْضًا وَاللّٰهِ قَالَ فَاِنَّا قَدِ اتَّبَعْنَاهُ فَنَكْرَهُ اَنْ نَدَعَهُ حَتّٰى نَنْظُرَ اِلٰى مَا يَصِيْرُ اَمْرُهُ قَالَ فَلَمْ يَزَلْ يُكَلِّمُهُ حَتّٰى اسْتَمْكَنَ مِنْهُ فَقَتَلَهُ.

څوک اخلي؟ ځکه چه هغهٔ الله او دَ هغهٔ رسول ته ډیر تکلیف ورکړے دے، نو محمد بن مسلمه عرض اوکه، یا رسول الله صلعم تاسو دا خوښه وئ چه زهٔ هغه قتل کړم، حضورؐ ورته اوفرمائیل او، جابرؓ اووے چه محمد بن مسلمه هغه له ورغے، او ورته ئے اووے چه هغے نبيؐ مونږ پریشانه کړي یو، مونږ نه صدقه عواړي، هغهٔ جواب کښے اووے، قسم په خدائے تاسو هم هغهٔ پریشانه کړئ په دے محمد اووے چه مونږ خو دَ هغهٔ د پیروئ اقرار کړیدے هغه پریښودے نه شو، پس مونږ خو د دے خبرے انتظار کښے یو چه دَ هغه انجام کار به څهٔ کیږي او هغه دغه شان کعب بن اشرف سره ئے خبرے کولے چه قابو ئے پرے بیاموند او هغه ئے قتل کهٔ.

## بَابٌ ۲۰۲ : اَلْفَتْكِ بِاَهْلِ الْحَرْبِ.

## باب ۲۰۲ : د حربي کفارو په پټه دَ قتلولو بیان.

۲۸۰ : حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ لِكَعْبِ ابْنِ الْاَشْرَفِ فَقَالَ مُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ اَتُحِبُّ اَنْ اَقْتُلَهُ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَأْذَنْ لِيْ فَاَقُوْلَ قَالَ قَدْ فَعَلْتُ.

۲۸۰ : عبدالله بن محمد. سفیان. عمرو حضرت جابرؓ نه روایت کوي، چه رسول الله صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، دَ کعب بن اشرف د پاره څوک ذمه واري اخلي؟ نو محمد بن مسلمه اووے تاسو دا خوښوئ چه زهٔ هغه قتل کړم، حضورؐ ورته اوفرمائیل، او، نو محمد بن مسلمه بیا عرض اوکه تاسو ماته اجازت راکړئ چه زهٔ هغه ته څه اووایم نو حضورؐ ورته اوفرمائیل، ما اجازت درکهٔ.

## بَابٌ ۲۰۳ : مَا يَجُوْزُ مِنَ الْاِحْتِيَالِ وَالْحَذَرِ مَعَ مَنْ يَّخْشٰى مَعَرَّتَهُ.

## باب ۲۰۳ : د دشمن د شر او فساد نه دَ بچاؤ دَ پاره دَ حیله کرئ بیان.

۲۸۱ : وَ قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ

۲۸۱ : الف. لیث. عقیل. ابن شهاب. سالم

عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّهُ قَالَ انْطَلَقَ رَسُوْلُ اللّٰهِ وَ مَعَهُ اُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ قِبَلَ ابْنِ صَيَّادٍ فَحُدِّثَ بِهِ فِيْ نَخْلٍ فَلَمَّا دَخَلَ عَلَيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّخْلَ طَفِقَ يَتَّقِيْ بِجُذُوْعِ النَّخْلِ وَابْنُ صَيَّادٍ فِيْ قَطِيْفَةٍ لَهُ فِيْهَا رَمْرَمَةٌ فَرَاَتْ اُمُّ ابْنِ صَيَّادٍ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا صَافِ هٰذَا مُحَمَّدٌ فَوَثَبَ ابْنُ صَيَّادٍ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ تَرَكَتْهُ بَيَّنَ.

ابن عبداللّٰه. عبداللّٰه ابن عمرؓ نه روايت كوي چه ابن صياد طرف ته رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم روان شو او حضورؐ سره ابن صياد طرف ته تلو ذ پاره ابي بن كعب هم ملګرے وو. حضور صلعم ته اووئيلے شو چه ابن صياد باغ كښې دے، نو حضورؐ د اونو په پناه كښې هغهٔ ته اورسيد چه هغه خپل څادر كښې ملاست وو، څهٔ ګن ګن ئے كولو. د ابن صياد مور حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوليد، او وئيلے اے صاف (ابن صياد) ګوره محمد صلعم تشريف راوړے دے نو ابن صياد سمدستي پاسيد، كيناست، په دے رسالت مآب صلعم اوفرمائيل كه ذ هغه مور هغه په خپل حال پريښے وے نو حقيقت حال به معلوم شوے وو.

بَاب۲۰۴: الرَّجْزِ فِي الْحَرْبِ وَ رَفْعِ الصَّوْتِ فِيْ حَفْرِ الْخَنْدَقِ فِيْهِ سَهْلٌ وَ اَنَسٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ فِيْهِ يَزِيْدُ عَنْ سَلَمَةَ.

بـاب ۲۰۴: جنګ كښې رجز خواني او ذ خندق كنولو په وخت د آواز اوچتولو بيان. سهل او انس دواړو ذ حضورؐ نه او يزيد د سلمه په ذريعه دا حديث ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه بيان كړيدے.

۲۸۲: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا اَبُو الْاَحْوَصِ حَدَّثَنَا اَبُوْ اِسْحَاقَ عَنِ الْبَرَآءِ قَالَ رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْخَنْدَقِ وَهُوَ يَنْقُلُ التُّرَابَ حَتّٰى وَارٰى التُّرَابُ شَعْرَ صَدْرِهٖ وَ كَانَ رَجُلًا كَثِيْرَا الشَّعْرِ وَهُوَ يَرْتَجِزُ بِرَجْزِ عَبْدِ اللّٰهِ. اَللّٰهُمَّ لَوْلَا اَنْتَ مَا اهْتَدَيْنَا وَلَا تَصَدَّقْنَا وَلَا

۲۸۲: مسدد. ابو الاحوص. اسحاق. حضرت براء بن عازبؓ نه روايت كوي چه ما د خندق په ورځ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم په خاوره اوچتولو اوليدلو، خاوړے سره ذ حضورؐ د سينے مُباركے ويښتهٔ پټ شوے وو. ذ حضور صلعم ګنړ ويښتهٔ وو، او حضورؐ به ذ عبداللّٰه بن رواحه رجز وئيلو او فرمائيل به ئے "اے اللّٰه كه ته خمونږ مددګار او معاون نه وے نو مونږ به هدايت نه وو موندلے، نه به مو صدقه وركوله او نه به مو مونځ كولو، نو ته په مونږ اطمينان نازل كړے او ذ دشمن

صلُّیْنَا فَاَنْزِلَنْ سَکِیْنَةً عَلَیْنَا وَ ثَبِّتِ الْاَقْدَامَ اِنْ لَاقَیْنَا اَنَّ الْاَعْدَاءَ قَدْ بَغَوْا عَلَیْنَا اِذَا اَرَادُوْا فِتْنَةً اَبَیْنَا یَرْفَعُ بِهَا صَوْتَهٔ.

مقابله کښې مونږ ثابت قدم اوساتې، بیشکه دشمن په مونږ بغاوت او چړهائي کړیده کله چه هغوئ فساد کول غواړي نو مونږ مانع شو او دا الفاظ ئې اوچت آواز سره فرمائیل.

## باب ۲۰۵ : مَنْ لَّا یَثْبُتُ عَلَی الْخَیْلِ.

## باب ۲۰۵ : په اَس چه ښهٔ سورلي نشي کولې، دَ هغهٔ بیان.

۲۸۳ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ نُمَیْرٍ حَدَّثَنَا ابْنُ اِدْرِیْسَ عَنْ اِسْمَاعِیْلَ عَنْ قَیْسٍ عَنْ جَرِیْرٍ قَالَ مَا حَجَبَنِیْ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ مُنْذُ اَسْلَمْتُ وَلَا رَاٰنِیْ اِلَّا تَبَسَّمَ فِیْ وَجْهِیْ وَلَقَدْ شَکَوْتُ اِلَیْهِ اَنِّیْ لَا اَثْبُتُ عَلَی الْخَیْلِ فَضَرَبَ بِیَدِهٖ فِیْ صَدْرِیْ وَ قَالَ اَللّٰهُمَّ ثَبِّتْهُ وَاجْعَلْهُ هَادِیًا مَّهْدِیًّا.

۲۸۳ : محمد بن عبدالله ابن ادریس. اسمٰعیل. قیس. حضرت جریر نه روایت کوي. د کله نه چه ما اسلام راوړلو، دَ هغې وخت نه حضور صلي الله علیه وسلّم ځما نه څهٔ حجاب نه ساتلو او ځما لیدو سره به مسکې کیدلو ما حضورﷺ ته شکایت اوکه چه زهٔ اَس باندې تینګ کیناستې نشم، نو حضورﷺ خپل لاس مبارک سره ځما سینه اوټپوله اووې فرمائیل اې الله دې تینګ کړې او دې هدایت کونکې او هدایت یافته جوړ کړې.

## باب ۲۰۶ : دَوَاءِ الْجُرْحِ بِاِحْرَاقِ الْحَصِیْرِ وَ غَسْلِ الْمَرْاَةِ عَنْ اَبِیْهَا الدَّمَ عَنْ وَجْهِهٖ وَ حَمْلُ الْمَاءِ فِی التُّرْسِ.

## باب ۲۰۶ : سوزیدلي پوزکي سره د زخم دِکول، دَ ښځې د خپل پلار د مخ نه وینه وینزل، او په ډهال کښې دَ اوبو راوړلو بیان.

۲۸۴ : حَدَّثَنَا عَلِیُّ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْیَانُ حَدَّثَنَا اَبُوْ حَازِمٍ قَالَ سَاَلُوْا سَهْلَ بْنَ سَعْدِ نِالسَّاعِدِیَّ بِاَیِّ شَیْءٍ دُوْوِیَ جُرْحُ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا بَقِیَ مِنَ النَّاسِ اَحَدٌ بِهٖ مِنِّیْ کَانَ عَلِیٌّ یَجِیْءُ بِالْمَاءِ فِیْ تُرْسِهٖ وَ کَانَتْ

۲۸۴ : علي بن عبدالله. سفیان. ابو حازم روایت کوي خلقو دَ حضرت سهل بن سعد ساعدي نه تپوس اوکهٔ. د رسالتمآب صلي الله علیه وسلّم د زخم علاج څه څیز سره اوشولو، هغهٔ جواب ورکهٔ ما نه زیات واقف کار خلقو کښې څوک نه دې پاتې شوې. حضرت عليؓ به خپل ډهال کښې اوبهٔ راوړلې، او بي بي

يَعْنِي فَاطِمَةَ تَغْسِلُ الدَّمَ عَنْ وَجْهِهِ وَ أُخِذَ حَصِيرٌ فَأُحْرِقَ ثُمَّ حُشِيَ بِهِ جُرْحُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

فاطمہؓ به دَ حضورؐ د مخ مبارک نه وينه وينزله. او دَ پوزکي تکړه ئے او سوزوله او دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم زخم مبارک پرے ډک کړے شو.

باب ۲۰۷: مَا يُكْرَهُ مِنَ التَّنَازُعِ وَالْإِخْتِلَافِ فِي الْحَرْبِ وَ عُقُوْبَةِ مَنْ عَصٰى إِمَامَهُ وَ قَالَ اللّٰهُ وَلَا تَنَازَعُوْا فَتَفْشَلُوْا وَ تَذْهَبَ رِيْحُكُمْ قَالَ قَتَادَةُ الرِّيْحُ الْحَرْبُ.

باب ۲۰۷: ميدان جنگ کښے د افراتفري او خپلو کښے د فتنه او فساد خورولو او دَ حکم حاکم د مخالفت کولو د کراهت بيان او د اللّٰه تعالیٰ فرمان چه تاسو خپلو کښے جګړه مۀ کوئ کني سست به شئ او ستاسو هوا به اوځي. قتاده اووے چه ريح په معنیٰ د جنګ دے.

۲۸۵: حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا وَكِيْعٌ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ أَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ جَدِّهٖ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ مُعَاذًا وَ أَبَا مُوْسٰى إِلَى الْيَمَنِ قَالَ يَسِّرَا وَلَا تُعَسِّرَا وَ بَشِّرَا وَلَا تُنَفِّرَا وَ تَطَاوَعَا وَلَا تَخْتَلِفَا.

۲۸۵: يحيٰي. وکيع. شعبه. سعيد دَ خپل پلار برده او دَ خپل نيکۀ نه روايت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم حضرت معاذ او ابو موسٰي يمن ته ليږل نو ورته ئے اوفرمائيل تاسو دواړه نرمي کوئ، سختي مۀ کوئ، خوشخبري آوروئ او خلق متنفر کوئ مه، خپلو کښے اتحاد او انصاف نه کار اخلئ او هيڅ کله اختلاف مه پيدا کوئ.

۲۸۶: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا أَبُوْ إِسْحَاقَ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ بْنَ عَازِبٍ يُحَدِّثُ قَالَ جَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الرَّجَّالَةِ يَوْمَ أُحُدٍ وَ كَانُوْا خَمْسِيْنَ رَجُلًا عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ جُبَيْرٍ فَقَالَ إِنْ رَأَيْتُمُوْنَا تَخْطَفُنَا الطَّيْرُ فَلَا تَبْرَحُوْا مَكَانَكُمْ هٰذَا حَتّٰى

۲۸۶: عمرو بن خالد. زهير. ابو اسحاق. حضرت براء بن عازب نه روايت کوي رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم د اُحد په ورځ پنځوس پياده ګانو باندے عبداللّٰه بن جبير سردار مقرر کړۀ. اووے فرمائيل که تاسو مونږ داسے حالت کښے اووينئ چه مارغان خمونږ غوښے خوري، نو بيا هم دَ خپلے مورچے نه مۀ اخوا کيږئ، خو پورے چه زۀ درته اونۀ وايم. او کۀ تاسو دا اووينئ چه مونږ کافر اوتښتول او هغوئ مو برباد کړل نو بيا هم تاسو د خپل ځائے نه مه خوزئ خو پورے چه زۀ

أُرْسِلَ إِلَيْكُمْ وَ إِنْ رَأَيْتُمُوْنَا
هَزَمْنَا الْقَوْمَ وَ أَوْطَأْنَاهُمْ فَلَا
تَبْرَحُوْا حَتّٰى أُرْسِلَ إِلَيْكُمْ
فَهَزَمُوْهُمْ قَالَ فَأَنَا وَاللّٰهِ
رَأَيْتُ النِّسَآءَ يَشْدُدْنَ قَدْ بَدَتْ
خَلَاخِلُهُنَّ وَ أَسْوُقُهُنَّ رَافِعَاتٍ
ثِيَابَهُنَّ فَقَالَ أَصْحَابُ عَبْدِ اللّٰهِ
بْنِ جُبَيْرٍ الْغَنِيْمَةَ أَيْ قَوْمِ
ظَهَرَ أَصْحَابُكُمْ فَمَا تَنْتَظِرُوْنَ
فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ جُبَيْرٍ أَنَسِيْتُمْ
مَا قَالَ لَكُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالُوْا وَاللّٰهِ
لَنَأْتِيَنَّ النَّاسَ فَلَنُصِيْبَنَّ مِنَ
الْغَنِيْمَةِ فَلَمَّا أَتَوْهُمْ صُرِفَتْ
وُجُوْهُهُنَّ فَأَقْبَلُوْا مُنْهَزِمِيْنَ
فَذَاكَ إِذْ يَدْعُوْهُمُ الرَّسُوْلُ
فِيْ أُخْرٰهُمْ فَلَمْ يَبْقَ مَعَ النَّبِيِّ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَيْرَ
اِثْنَى عَشَرَ رَجُلًا فَأَصَابُوْا مِنَّا سَبْعِيْنَ
وَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ وَ أَصْحَابُهُ أَصَابَ مِنَ
الْمُشْرِكِيْنَ يَوْمَ بَدْرٍ أَرْبَعِيْنَ وَ مِائَةً
سَبْعِيْنَ أَسِيْرًا وَّ سَبْعِيْنَ قَتِيْلًا فَقَالَ
أَفِي الْقَوْمِ مُحَمَّدٌ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ فَنَهَا
هُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
أَنْ يُجِيْبُوْهُ ثُمَّ قَالَ أَفِي الْقَوْمِ ابْنُ

درته اونه وایم. آخر حضورؐ کفاروله شکست ور کړو
حضرت براء اووے، ما ښځے اولیدے په الله م دے قسم
وي چه هغوئ تېښتېدلے او دَ هغوئ جانجر شرنګیدل او دَ
هغوئ پنډئ څرګندے وے او هغوئ خپلے کپړے اوچتے
کړے وے، چه دَ عبدالله بن جبیر ملګرو اووے خلقو مال
غنیمت دے، مال غنیمت، ستاسو ملګري خو غالب شو.
اوس تاسو څه ګورئ. په دے عبدالله بن جبیر اووے،
خلقو آیا تاسو د حضور صلعم ارشاد هیر کړلو، نورو
خلقو اووے، مونږ خو کافروله ورځو چه دَ هغوئ مال
غنیمت لوټ کړو، دا خلق هلته ورغلل، نو دَ هغوئ رُخ
بدل شو او کفار په تیښته کښے مخے طرف ته راغلل، بیا
جنګ شروع شو او مسلمانان شکست خورده شو او دا
معني دي ددے آیت او حکمِ الٰهي چه کوم وخت رسولؐ
هغوئ د هغوئ د شانه. لل او رسول صلي الله علیه وسلّم
سره سوا د دولس کسانو نه نور څوک پاتے نه شو. او دَ
مسلمانانو اویا کسان کافرو شهید کړل. اخوا رسولِ الله
صلي اللّٰه علیه وسلّم او دَ حضورؐ اصحابو یو سل
څلویښت مشرکان د بدر په ورځ وژلي وو او اویا قیدیان
ورته په لاس راغلي وو، نو ابوسفیان درے ځله اووے، آیا
دوئ کښے محمد (صلعم) شته، په هغے رسول الله صلي
اللّٰه علیه وسلّم خپل اصحاب د جواب ورکولونه منع
کړي وو. بیا ابوسفیان درے ځله اووے آیا تاسو کښے
ابن ابي قحافه (یعني صدیق اکبرؓ) شته. بیائے درے ځله
اووے. تاسو کښے عمر بن الخطاب شته، بیا دے نه پس
خپلو ملګروته مخاطب شو، ورته ئے اووے دا خو ټول
وژلي شویدي. په دے فاروق اعظمؓ خپل ځان قابو نه

أَبِيْ قُحَافَةَ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ ثُمَّ قَالَ أَفِي الْقَوْمِ ابْنُ الْخَطَّابِ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ ثُمَّ رَجَعَ إِلٰى أَصْحَابِهِ فَقَالَ أَمَّا هٰؤُلَاءِ فَقَدْ قُتِلُوْا فَمَا مَلَكَ عُمَرُ نَفْسَهُ فَقَالَ كَذَبْتَ وَاللّٰهِ يَا عَدُوَّ اللّٰهِ إِنَّ الَّذِيْنَ عَدَدْتَّ لَأَحْيَاءٌ كُلُّهُمْ وَقَدْ بَقِيَ لَكَ مَا يَسُوْءُكَ قَالَ يَوْمٌ بِيَوْمِ بَدْرٍ وَالْحَرْبُ سِجَالٌ إِنَّكُمْ سَتَجِدُوْنَ فِي الْقَوْمِ مُثْلَةً لَمْ اٰمُرْ بِهَا وَلَمْ يَسُؤْنِيْ ثُمَّ أَخَذَ يَرْتَجِزُ أُعْلُ هُبَلُ أُعْلُ هُبَلُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلَا تُجِيْبُوْا لَهُ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا نَقُوْلُ قَالَ قُوْلُوْا اَللّٰهُ أَعْلٰى وَ أَجَلُّ قَالَ إِنَّ لَنَا الْعُزّٰى وَلَا عُزّٰى لَكُمْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلَا تُجِيْبُوْا لَهُ قَالَ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا نَقُوْلُ لَهُ قَالَ قُوْلُوْا اَللّٰهُ مَوْلَانَا وَلَا مَوْلَا لَكُمْ.

کړے شو اووے وئيل اے د اللّٰه دشمنه په اللّٰه مِ دِ قسم وي د کومو خلقو چه تا نوم اخستے دے، هغه ټول ژوندي دي او په کومه خبره چه تهٔ خفه کيږے، هغه برقرار ده. ابوسفيان اووے نن دَ بدر د ورځ بدله واخستے شوه او جنګ خو د ډول په شان دے تاسو به خپلو خلقو کښے دَ بعضو غوږ پوزه پريکړے اووينئ چه دَ هغے ما هيڅ حکم نه دے ورکړے، او دا خبره ماته ناګواره هم نه معلوميږي. دے نه پس ابوسفيان رجز وئيل شروع کړل چه اے هُبل اوچت شه اے هبل اوچت شه. په هغے رسالتمآب صلعم اوفرمائيل چه تاسو خلق جواب ولے نه ورکوئ. نو د حضورؐ صحابهؓ تپوس اوکهٔ يا رسول اللّٰهؐ مونږ څهٔ جواب ورکړو. ورته ئے اوفرمائيل وايئ چه اللّٰه دَ ټولونه زيات بلند او بزرګ موجود دے په هغے ابوسفيان اووے مونږ سره عزيٰ دے او تاسو سره عزيٰ نشته. بيا رسول اللّٰه صلعم اصحابو ته اوفرمائيل جواب ورکړئ. هغوئ عرض اوکړو څه جواب ورکړو. حضورؐ اوفرمائيل، وايئ چه اللّٰه زمونږ پروردګار دے او ستاسو هيڅوک مددګار او معاون نشته.

بـاب۲۰۸ : إِذَا فَزِعُوا بِاللَّيْلِ.

باب۲۰۸ : هر کله چه دَ شپے څهٔ خوف پيدا شي.

۲۸۷ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ ابْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحْسَنَ النَّاسِ وَ أَشْجَعَ النَّاسِ قَالَ وَقَدْ فَزِعَ أَهْلُ الْمَدِيْنَةِ لَيْلَةً سَمِعُوْا صَوْتًا فَتَلَقَّاهُمْ

۲۸۷ : قتيبه بن سعيد. حماد. ثابت. حضرت انسؓ نه روايت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ ټولونه زيات خوبصورته، دَ ټولونه زيات سخي، او دَ ټولونه زيات بهادر وو. يو ځل دَ شپے وخت يو آواز اوريدو سره څهٔ خوف پيدا شو. نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم د ابو طلحه په اَس

النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى فَرَسٍ لِأَبِي طَلْحَةَ عُرْيٍ وَهُوَ مُتَقَلِّدٌ سَيْفَهُ فَقَالَ لَمْ تُرَاعُوْا لَمْ تُرَاعُوْا ثُمَّ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجَدْتُهُ بَحْرًا يَعْنِي الْفَرَسَ.

په شاتوره سور شولو په غاړه کښې نې توره واچوله او بهرته نې تشریف یوړلو. او ذ هغې خائے نه بیا راواپس شو وے فرمائیل چه هیڅ ویره نشته بیائے اُفرمائیل دا اَس مِ د دریاب په شان تیز رفتاره بیامند.

**بَاب ۲۰۹ : مَنْ رَاٰى الْعَدُوَّ فَنَادٰى بِأَعْلٰى صَوْتِهٖ يَا صَبَاحَاهُ حَتّٰى يَسْمَعَ النَّاسُ.**

**باب ۲۰۹ :** دَ دشمن لیدونه پس بنه په چغه تول خلق خبرول چه فریاد له را اورسئ دَ ونیلو بیان.

**۲۸۸ :** حَدَّثَنَا الْمَكِّيُّ ابْنُ إِبْرَاهِيْمَ أَخْبَرَنَا يَزِيْدُ بْنُ أَبِيْ عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ أَنَّهُ أَخْبَرَهُ قَالَ خَرَجْتُ مِنَ الْمَدِيْنَةِ ذَاهِبًا نَحْوَ الْغَابَةِ حَتّٰى إِذَا كُنْتُ بِثَنِيَّةِ الْغَابَةِ لَقِيَنِيْ غُلَامٌ لِعَبْدِ الرَّحْمٰنِ ابْنِ عَوْفٍ قُلْتُ وَيْحَكَ مَا بِكَ قَالَ أُخِذَتْ لِقَاحُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْتُ مَنْ أَخَذَهَا قَالَ غَطَفَانُ وَ فَزَارَةُ فَصَرَخْتُ ثَلٰثَ صَرَخَاتٍ أَسْمَعْتُ مَا بَيْنَ لَابَتَيْهَا يَا صَبَاحَاهُ يَا صَبَاحَاهُ ثُمَّ انْدَفَعْتُ حَتّٰى أَلْقَاهُمْ وَقَدْ أَخَذُوْهَا فَجَعَلْتُ أَرْمِيْهِمْ وَ أَقُوْلُ أَنَا ابْنُ الْأَكْوَعِ وَالْيَوْمُ يَوْمُ الرُّضَّعِ فَاسْتَنْقَذْتُهَا مِنْهُمْ قَبْلَ أَنْ يَشْرَبُوْا فَأَقْبَلْتُ بِهَا أَسُوْقُهَا فَلَقِيَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ إِنَّ الْقَوْمَ عِطَاشٌ وَ إِنِّيْ أَعْجَلْتُهُمْ أَنْ يَشْرَبُوْا سَقْيَهُمْ

**۲۸۸ :** مکي بن ابراهیم. یزید بن ابي عبید حضرت سلمه‌ؓ نه روایت کوي. زهٔ د مدینے نه غابه طرف ته تلم او کوم وخت چه د غابه غنډئ ته اورسیدم، نو ما ذ عبدالرحمٰن بن عوف یو غلام اولید، ما ورته اووے خوار شے دلته څهٔ کوے هغهٔ اووے د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم یوه اوښه نیولے شوے ده. او څما په تپوس هغهٔ جواب راکه چه بنو غطفان او فزاره نیولے ده، او بیا ما اووے، فریاد له رااورسئ. فریاد له رااورسئ درے خله دومره زور سره مِ اووے چه ټولو مدینے والؤ واوري ده. دے نه پس ما په منډه هغه خلق را لاندے کړل، چه اوښه ئے نیولے وه روان وو. او ما وئیلے زهٔ د اکوع خوئے یم او نن ذ ذلیلانو د هلاکت ورځ ده، آخر دا چه ما د هغوئ نه هغه اوښه ذ پیو څکلونه مخکښے خلاصه کړه اورامِ وسته بیا رسالت مآب صلي اللّٰه علیه وسلّم سره یو ځائے شوم. ما ورته اووے یا رسول اللّٰهؐ هغه خلق تږي وو او ذ هغوئ د پیو څکلو نه مخکښے ترے ما هغه اوښه خلاصه کړه. اوس تاسو هغوئ پسے څوک اولیږئ. وے

فَابْعَثْ فِيْ اِثْرِهِمْ فَقَالَ يَا ابْنَ الْاَكْوَعِ مَلَكْتَ فَاَسْجِعْ اِنَّ الْقَوْمَ يُقْرَوْنَ فِيْ قَوْمِهِمْ.

فرمائیل اے ابن اکوع اوس تا اوبنه بیامندے ده او کله چه تـه قـابـو بیـا مومے نو بخشش کوه د هغوئ قوم به د هغوئ میلمستیا اوکړي.

باب ۲۱۰: مَنْ قَالَ خُذْهَا وَ اَنَا ابْنُ فُلَانٍ. وَ قَالَ سَلَمَةُ خُذْهَا وَ اَنَا ابْنُ الْاَكْوَعِ.

باب ۲۱۰: چا چه اووے چه دے اونیسئ' او زه د فلاني خوئے یم. سلمه اووے چه دے اونیسئ' او زه ابن اکوع یم.

۲۸۹: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ اِسْرَائِيْلَ عَنْ اَبِيْ اِسْحَاقَ قَالَ سَاَلَ رَجُلٌ الْبَرَاءَ فَقَالَ يَا اَبَا عُمَارَةَ اَوَلَّيْتُمْ يَوْمَ حُنَيْنٍ قَالَ الْبَرَاءُ وَ اَنَا اَسْمَعُ اَمَّا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يُوَلِّ يَوْمَئِذٍ كَانَ اَبُوْ سُفْيَانَ بْنُ الْحَارِثِ اٰخِذًا بِعِنَانِ بَغْلَتِهٖ فَلَمَّا غَشِيَهُ الْمُشْرِكُوْنَ نَزَلَ فَجَعَلَ يَقُوْلُ اَنَا النَّبِيُّ لَا كَذِبْ' اَنَا ابْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبْ قَالَ فَمَا رُءِيَ مِنَ النَّاسِ يَوْمَئِذٍ اَشَدَّ مِنْهُ.

۲۸۹: عبیدالله. اسرائیل. ابو اسحاق نه روایت کوي. حضرت براء نـه یو سړي تپوس اوکه. اے ابو عماره آیا تاسو د حنین په ورځ تبنتیدلے وئ. نو براء اووے. او ما اوریدل' لیکن رسول الله صلي الله علیه وسلّم خو پـه هغهٔ ورځ شا کړے نه وه. ابوسفیان بن حارث دَ حضورؐ دَ قچر واګے نیولے وے. او کوم وخت چه مشرکانو حضورؐ کیره کښے واخست' نو حضورؐ د سورلئ نه راکوز شولو فرمائیل ئے زه نبي یم په دے کښے څه دروغ نشته او زهٔ د عبدالمطلب خوئے یم براء وائي په دغه ورځ د حضورؐ نه زیات بهادر څوک نه دے لیدلے شوے.

باب ۲۱۱: اِذَا نَزَلَ الْعَدُوُّ عَلٰى حُكْمِ رَجُلٍ.

باب ۲۱۱: د چـا سړي پـه حکم د دشمن دَ راکوزیدو بیان.

۲۹۰: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَعْدِ بْنِ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ اَبِيْ اُمَامَةَ هُوَ ابْنُ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ بَنُوْ قُرَيْظَةَ عَلٰى حُكْمِ سَعْدٍ هُوَ ابْنُ مَعَاذٍ بَعَثَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ كَانَ قَرِيْبًا

۲۹۰: سلیمان. شعبه. سعد. ابو امامه بن سهل بن حنیف. حضرت ابوسعید خدريؓ نه روایت کوي دَ سعد بن معاذ په ثالثئ چه کوم وخت بني قریظه رضامند شو نو بنکته راکوز شو. رسالتمآب صلعم سعد راوغوښتلو چه حضورؐ سره قریب مقیم وو' هغه پـه خر سور راغے. او کوم وخت چه هغه نزدے شو' نو حضور صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل

مِنْهُ فَجَاءَ عَلٰى حِمَارٍ فَلَمَّا دَنٰى قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُوْمُوْا اِلٰى سَيِّدِكُمْ فَجَاءَ فَجَلَسَ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَهُ اِنَّ هٰؤُلَاءِ نَزَلُوْا عَلٰى حُكْمِكَ قَالَ فَاِنِّىْ اَحْكُمُ اَنْ تُقْتَلَ الْمُقَاتِلَةُ وَ اَنْ تُسْبَى الذُّرِّيَّةُ قَالَ لَقَدْ حَكَمْتَ فِيْهِمْ بِحُكْمِ الْمَلِكِ.

دَ خپل سردار دَ استقبال دَ پاره اودریږئ. حضرت سعد حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم سره خوا کښېنې کيناست، بيا حضورؐ اوفرمائيل چه دا خلق ستا په حکم دَ قلعه نه راکوز شويدي. سعد جواب ورکړ دوئ کښې چه څوک د جنګ قابل دي هغه دِ قتل کړيشي او بال بچ دِ قيد کړيشي. په دې خبره حضورؐ اوفرمائيل اې سعد تا دَ اللّٰه تعالیٰ د حکم مطابق دا فيصله کړې ده.

**باب۲۱۲ : قَتْلِ الْاَسِيْرِ وَ قَتْلِ الصَّبْرِ.**

**باب ۲۱۲ : دَ جنګي قيدي د قتل او په يوځائې اودرولو او قتلولو بيان.**

**۲۹۱** : حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِىْ مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَامَ الْفَتْحِ وَ عَلٰى رَأْسِهِ الْمِغْفَرُ فَلَمَّا نَزَعَهُ جَاءَ رَجُلٌ فَقَالَ اِنَّ ابْنَ خَطَلٍ مُتَعَلِّقٌ بِاَسْتَارِ الْكَعْبَةِ فَقَالَ اقْتُلُوْهُ.

**۲۹۱** : اسمٰعيل. مالک. ابن شهاب. حضرت انس بن مالک نه روايت کوي. چه رسالتمآب صلي اللّٰه عليه وسلّم د مکې د فتح په کال مکه معظمه کښې داخل شو. د حضورؐ په سر مبارک خود وو. کوم وخت چه حضورؐ هغه د سر نه کوز کړلو نو يو سړي اووې چه ابن خطل د کعبې پرده نيولې ولاړ دې. ددې جواب کښې حضورؐ اوفرمائيل. دې همدغلته قتل کړئ.

**بَابٌ۲۱۳ : هَلْ يَسْتَاسِرُ الرَّجُلُ وَمَنْ لَمْ يَسْتَأْسِرْ وَمَنْ رَكَعَ رَكْعَتَيْنِ عِنْدَ الْقَتْلِ.**

**باب۲۱۳ : آيا سړې چه خپل ځان ګرفتارئ له ورکړي او هغه چه خپل ځان ګرفتارئ له ورنکړي او د قتل کيدو په وخت دَ دوه رکعاته مونځ کولو بيان.**

**۲۹۲** : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِىْ عَمْرُو بْنُ اَبِىْ سُفْيَانَ ابْنِ اُسَيْدِ بْنِ جَارِيَةَ الثَّقَفِيُّ وَهُوَ حَلِيْفٌ لِبَنِىْ زُهْرَةَ وَ كَانَ مِنْ اَصْحَابِ اَبِىْ هُرَيْرَةَ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ

**۲۹۲** : ابواليمان. شعيب. زهري. عمرو بن ابي سفيان حليف دَ بنو زهره او دوست د ابوهريره، حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ لسو سړو د جاسوسئ ګروپ جوړ کړلو. او په هغوئ ئې عاصم بن ثابت انصاري چه د عاصم بن عمر نيکهٔ (دادا) وو، سردار جوړ کړهٔ اووې ليږل، کوم وخت

بَعَثَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَشَرَةَ رَهْطٍ سَرِيَّةً عَيْنًا وَ اَمَّرَ عَلَيْهِمْ عَاصِمَ بْنَ ثَابِتٍ الْاَنْصَارِيَّ جَدَّ عَاصِمِ بْنِ عُمَرَ فَانْطَلَقُوْا حَتّٰى اِذَا كَانُوْا بِالْهَدَاَةِ وَهُوَ بَيْنَ عُسْفَانَ وَ مَكَّةَ ذُكِرُوْا لِحَيٍّ مِنْ هُذَيْلٍ يُقَالُ لَهُمْ بَنُوْا لَحْيَانَ فَنَفَرُوْا لَهُمْ قَرِيْبًا مِنْ مِائَتَيْ رَجُلٍ كُلُّهُمْ رَامٍ فَاقْتَصُّوْا اٰثَارَهُمْ حَتّٰى وَجَدُوْا مَاْكَلَهُمْ تَمْرًا تَزَوَّدُوْهُ مِنَ الْمَدِيْنَةِ فَقَالُوْا هٰذَا تَمْرُ يَثْرِبَ فَاقْتَصُّوْا اٰثَارَهُمْ فَلَمَّا رَاٰهُمْ عَاصِمٌ وَّ اَصْحَابُهُ لَجَئُوْا اِلٰى فَدْفَدٍ اَحَاطَ بِهِمُ الْقَوْمُ فَقَالُوْا لَهُمْ اَنْزِلُوْا وَاَعْطُوْنَا بِاَيْدِيْكُمْ وَلَكُمُ الْعَهْدُ وَالْمِيْثَاقُ وَلَا نَقْتُلُ مِنْكُمْ اَحَدًا قَالَ عَاصِمُ بْنُ ثَابِتٍ اَمِيْرُ السَّرِيَّةِ اَمَّا اَنَا فَوَاللّٰهِ لَا اَنْزِلُ الْيَوْمَ فِيْ ذِمَّةِ كَافِرٍ اَللّٰهُمَّ اَخْبِرْ عَنَّا نَبِيَّكَ فَرَمَوْهُمْ بِالنَّبْلِ فَقَتَلُوْا عَاصِمًا فِيْ سَبْعَةٍ فَنَزَلَ اِلَيْهِمْ ثَلٰثَةُ رَهْطٍ بِالْعَهْدِ وَالْمِيْثَاقِ مِنْهُمْ خُبَيْبٌ الْاَنْصَارِيُّ وَابْنُ دَثِنَةَ وَ رَجُلٌ اٰخَرُ فَلَمَّا اسْتَمْكَنُوْا مِنْهُمْ اَطْلَقُوْا اَوْتَارَ قِسِيِّهِمْ فَاَوْثَقُوْهُمْ فَقَالَ الرَّجُلُ

چه دا خلق د مکے او عسفان په مینځ کښې مقام هداة ته اورسیدل، نو د بني هذیل یو قبیله بنو لحیان ته د هغوئ خبر اورسید، چه هغوئ د هغوئ مقابلے د پاره تقریبًا دوه سوه سړي اولیږل. چه ټول ماهر تیر انداز وو. او د هغوئ د پښو په نښو روان شو. تردے چه هغوئ د هغوئ خوړلے چوهارے چه د زادِ راه په طور سره دے خلقو مدینے نه راوړے وے، اولیدے، نو وے وئیل چه دا د مدینے چوهارے دي، او کوم وخت چه دے خلقو عاصم او د هغه ملګري اولیدل، نو دا خلق د غرڅوکے ته اوختل. او دوئ قبیله بنو لحیان والو ګیر کړل. او دوئ ته ئے اووے چه د غر نه راکوز شئ او خپل لاس زمونږ لاس کښې راکړئ او زمونږ دا عهد و پیمان دے چه مونږ تاسو کښې هیڅوک نه قتلوو په دے عاصم بن ثابت د لښکر سردار اووے په الله م دے قسم وي زۀ خو د هیڅ کافر آمان کښې نه راکوزیږم. او اے الله تۀ زمونږ خبر خپل رسول پاک له ورکړے نو هغوئ دے په غشي او ویشتلو او مړئے کړو سره د شپږو ملګرو، او هغه نور درے واړه په وعده راکوز شول او هغے خلقو د لیندو په جے دوئ اوتړل. دوئ کښې دریم سړي اووے، دا وړومبئ بیوفائي ده او وعده خلافي ده، او قسم په خدائے زۀ تاسو سره نه ځم. بیشکه زه د خپلو ملګرو په شان کیدل غواړم. بیا ئے ټولو خلقو هغه راښکلو او په دے خبرو ئے مجبور کړلو چه هغه هم هغوي سره شي خو هغه اونه منله، نو هغے کافرو هغه هم هلته شهید کړلو او خبیب او ابن دثنه ئے بوتلل مکه کښې ئے خرڅ کړل. خبیب د حارث بن نوفل بن عبد مناف ځامنو واخستلو. دده

الْقَائِلُ هٰذَا اَوَّلُ الْغَدْرِ وَاللّٰهِ لَا اَصْحَبُكُمْ اِنَّ فِيْ هٰؤُلَاءِ لَاُسْوَةً يَرِيْدُ الْقَتْلٰى فَجَرَّرُوْهُ وَ عَالَجُوْهُ عَلٰى اَنْ يَصْحَبَهُمْ فَاَبٰى فَقَتَلُوْهُ فَانْطَلَقُوْا بِخُبَيْبٍ وَابْنِ دَثِنَةَ حَتّٰى بَاعُوْهُمَا بِمَكَّةَ بَعْدَ وَقْعَةِ بَدْرٍ فَابْتَاعَ خُبَيْبًا بَنُو الْحَارِثِ بْنِ عَامِرِ بْنِ نَوْفَلِ ابْنِ عَبْدِ مُنَافٍ وَ كَانَ خُبَيْبٌ هُوَ قَتَلَ الْحَارِثَ بْنَ عَامِرٍ يَوْمَ بَدْرٍ فَلَبِثَ خُبَيْبٌ عِنْدَهُمْ اَسِيْرًا فَاَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ ابْنُ عِيَاضٍ اَنَّ بِنْتَ الْحَارِثِ اَخْبَرَتْهُ اَنَّهُمْ حِيْنَ اجْتَمَعُوْا اِسْتَعَارَ مِنْهَا مُوْسٰى يَسْتَحِدُّ بِهَا فَاَعَارَتْهُ فَاَخَذَ ابْنًا لِّيْ وَ اَنَا غَافِلَةٌ حِيْنَ اَتَاهُ قَالَتْ فَوَجَدْتُهُ مُجْلِسَهُ عَلٰى فَخِذِهٖ وَالْمُوْسٰى بِيَدِهٖ فَفَزِعْتُ فَزْعَةً عَرَفَهَا خُبَيْبٌ فِيْ وَجْهِيْ فَقَالَ تَخْشَيْنَ اَنْ اَقْتُلَهُ مَا كُنْتُ لِاَفْعَلَ ذٰلِكَ وَاللّٰهِ مَا رَاَيْتُ اَسِيْرًا قَطُّ خَيْرًا مِنْ خُبَيْبٍ وَاللّٰهِ لَقَدْ وَجَدْتُهُ يَوْمًا يَّاْكُلُ مِنْ قِطْفِ عِنَبٍ فِيْ يَدِهٖ وَ اِنَّهُ لَمُوْثَقٌ فِي الْحَدِيْدِ وَمَا بِمَكَّةَ مِنْ ثَمَرٍ وَ كَانَتْ تَقُوْلُ اِنَّهُ رِزْقٌ مِنَ اللّٰهِ رَزَقَهُ خُبَيْبًا فَلَمَّا خَرَجُوْا مِنَ الْحَرَمِ لِيَقْتُلُوْهُ فِي الْحِلِّ قَالَ لَهُمْ خُبَيْبٌ ذَرُوْنِيْ اَرْكَعْ

حارث پلار ئے ذَ بدر په ورځ خبیب وژلے وو. خبیب هغے خلقو سره قید و بند کښے پاتے شو. زهري اووے ماته عبید اللّٰه بن عیاض اطلاع راکړه چه ذَ حارث لور ماته خبر راکړهٔ کوم وخت چه هغه خلق ذَ دهٔ ذَ قتل ذَ پاره راجمع شو نو هغه د حارث د لور نه اُستره (چاړهٔ) اوغوښته چه ذَ نامے لاندِ صفائي اوکړي. نو هغے استره (پاکي) ورکړله، او ځما یو بچے ئے کینو او اوزهٔ غفلت کښے ووم. چه ځما بچے هغهٔ له ورغے. هغه وائي. بیا ما ذَ خبیب په پتون خپل بچے ناست اولید او استره ذَ هغه په لاس کښے وه، زهٔ ویرے واخستم او هوش و حواس مِ په ځائے پاتے نشو. خبیبؓ ځما د مخ نه اندازه اولګوله اووے وئیل، آیا تهٔ ددے خبرے نه ویریږے چه زهٔ به دا بچے اووژنم. زهٔ خو هیڅکله داسے نه کوم. ذَ حارث لور اووے. په اللّٰه مِ دے قسم وي، ما ذَ خبیب نه بهتر هیڅ قیدي نه دے لیدلے او قسم په خدائے ما خو یو ورځ دا اولیدل چه ذَ انګورو غنچک د هغه په لاس کښے وو. او هغهٔ انګور خوړل. حالانکه هغه زنځیرونو کښے تړلے شوے وو او هغه وخت مکه کښے هیڅ میوه نه وه، د حارث لور وائي چه دا رزق د اللّٰه ذَ جانب نه نازل شوے وو چه هغه خبیب له ورکړے وو، بیا چه هغه خلق د حرم نه بهر اووتل چه هغه د حرم نه بهر قتل کړي. نو خبیب هغوئ ته اووے. ماله دومره مهلت راکړئ چه زهٔ دوه رکعاته مونځ اوکړم. نو هغوئ مهلت ورکړو. خبیب چه دوه رکعاته مونځ نه فارغ شو نو وئیلے، کهٔ ستاسو دا خیال نه وے چه ماسره ذَ قتل ویره ده نو یو ډیر اوږد مونځ به مِ کړے وو، او اے اللّٰه دا کافر په شمیر شمیر

رَكْعَتَيْنِ فَتَرَكُوْهُ فَرَكَعَ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ قَالَ لَوْلَا اَنْ تَظُنُّوْا اَنَّ مَابِيْ جَزَعٌ لَطَوَّلْتُهُمَا اَللّٰهُمَّ اَحْصِهِمْ عَدَدًا وَ قَالَ مَا اُبَالِيْ حِيْنَ اُقْتَلُ مُسْلِمًا عَلٰى اَيِّ شِقٍّ كَانَ لِلّٰهِ مَصْرَعِيْ وَ ذٰلِكَ فِيْ ذَاتِ الْاِلٰهِ وَ اِنْ يَّشَأْ يُبَارِكْ عَلٰى اَوْصَالِ شِلْوٍ مُمَزَّعٍ فَقَتَلَهُ اِبْنُ الْحَارِثِ فَكَانَ خُبَيْبٌ هُوَ سَنَّ الرَّكْعَتَيْنِ لِكُلِّ امْرِئٍ مُسْلِمٍ قُتِلَ صَبْرًا فَاسْتَجَابَ اللّٰهُ لِعَاصِمِ بْنِ ثَابِتٍ يَوْمَ اُصِيْبَ فَاَخْبَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَصْحَابَهُ خَبَرَهُمْ وَمَا اُصِيْبُوْا وَ بَعَثَ نَاسٌ مِنْ كُفَّارِ قُرَيْشٍ اِلٰى عَاصِمٍ حِيْنَ حُدِّثُوْا اَنَّهُ قُتِلَ لِيُؤْتَوْا بِشَيْءٍ مِنْهُ يُعْرَفُ وَ كَانَ قَدْ قَتَلَ رَجُلًا مِنْ عُظَمَاءِهِمْ يَوْمَ بَدْرٍ فَبُعِثَ عَلٰى عَاصِمٍ مِثْلُ الظُّلَّةِ مِنَ الدَّبْرِ فَحَمَتْهُ مِنْ رَسُوْلِهِمْ فَلَمْ يَقْدِرُوْا عَلٰى اَنْ يَّقْطَعُوْا مِنْ لَحْمِهٖ شَيْئًا.

پـخپله وهنه اووهے او بيائے اووے. "خما هيڅ پروا نشته چه زهٔ دَ اسلام حالت کښے شهيد کيږم. په کوم اړخ چه دَ اللّٰه په لار کښے را اوغرځولے شم، او دا هر څه د اللّٰه تعالٰي په لاس کښے دي ته د پريکړے اندامونو په ټکړو کښے برکت واچوے". بيا خبيب ابن حارث قتل که. خبيب هغه شخصيت دے چه هغه هر مرد مسلمان دَ پاره چه قيد کښے قتلولے شي دوه رکعاته مونځ مسنون کړيدے او اللّٰه تعالٰي د عاصم بن ثابت هغه دعا په کومه ورځ چه شهيد کړے شو واوريده او رسول صلي اللّٰه عليه وسلّم ئے دَ هغے نه خبر که. دے نه پس حضورؐ خپلو صحابه ؤ ته دَ هغه خبر ورکه او څه چه په هغهٔ تير شوے وو، دَ هغے اظهار ئے اوفرمائيلو، او قريش کفارو د حضرت عاصم لاش مبارک ته څو سړي اوليږل چه دَ هغهٔ د جسم څهٔ حصه پريکړي څان سره يوسي. چه دَ هغے نه د هغهٔ د وفات تصديق اوشي او حضرت عاصم د بدر په ورځ دَ قريش کفارو يو سردار قتل کړے وو. خو د عاصم په لاش مبارک مچئ دَ وريځے په شان اللّٰه پاک مقرر کړے چه دَ عاصم لاش د کافرو دَ سړو نه بچ کړي او هغوئ په دے خبره قادر نه شو چه د هغه د لاش مبارک نه څهٔ ټکړه پريکړي[1].

۱. په بل روايت کښے د بنيرو دا الفاظ هم راغلي دي چه اے اللّٰه! په دوئ کښے يو کس هم ژوندے مه پريدے او بيل بيل دا تهول اووژنے. نو يو کال هم تير شوے نه وو چه په قاتلانو کښے يو يو کس هلاک شوے وو.

## باب ۲۱۴ : فِكَاكِ الْاَسِيْرِ فِيْهِ

عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

## باب ۲۱۴ : دَ جنګي قيدي دَ خلاصي بيان.

دے باره کښے حضرت ابو موسٰيؓ د رسالت مآب صلي اللّٰه عليه وسلّم نه حديث بيان کړيدے.

۲۹۳ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فُكُّوا الْعَانِيَ يَعْنِي الْاَسِيْرَ اَطْعِمُوا الْجَائِعَ وَ عُوْدُوا الْمَرِيْضَ.

۲۹۳ : قتیبه بن سعید. جریر. منصور. ابو وائل. حضرت ابو موسٰی نه روایت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل قیدي له خلاصي ورکړئ اوږي بانډ طعام خوروئ او د بیمارانو تپوس کوئ. یعني بیمار پرسي (عیادت) نے کوئ.

۲۹۴ : حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا مُطَرِّفٌ اَنَّ عَامِرًا حَدَّثَهُمْ عَنْ اَبِيْ جُحَيْفَةَ قَالَ قُلْتُ لِعَلِيٍّ هَلْ عِنْدَكُمْ شَيْءٌ مِنَ الْوَحْيِ اِلَّا مَا فِيْ كِتَابِ اللّٰهِ قَالَ وَالَّذِيْ فَلَقَ الْحَبَّةَ وَ بَرَاَ النَّسَمَةَ مَا اَعْلَمُهُ اِلَّا فَهْمًا يُّؤْتِيَهُ اللّٰهُ رَجُلًا فِي الْقُرْاٰنِ وَمَا فِيْ هٰذِهِ الصَّحِيْفَةِ قُلْتُ وَمَا فِي الصَّحِيْفَةِ قَالَ الْعَقْلُ وَ فِكَاكُ الْاَسِيْرِ وَ اَنْ لَّا يُقْتَلَ مُسْلِمٌ بِكَافِرٍ.

۲۹۴ : احمد بن یونس. زهیر. مطرف. عامر. ابو جحیفهؓ نه روایت کوي. ما د حضرت عليؓ نه تپوس اوکۀ، چه تاسره د قرآن کریم نه سِوا بل څۀ هم د وحي په طور شته. هغۀ جواب راکۀ، په اللّٰه م دِ قسم وي چه هغۀ دا نه اوچوله، چا چه روح پیدا کړے دے، زۀ ددے خبرے نه واقف نه یم البته اللّٰه تعالٰي ماله یوه پوهه راکړیده چه اللّٰه تعالٰي فهم قرآن کښے چاته مرحمت کوي، او څه چه دے صحیفه کښے دي.¹ ما تپوس اوکه صحیفه کښے څۀ څیز دے، هغۀ او فرمائیل دیت او دَ قیدي خلاصي، او دا چه هیڅ مسلمان دِ د کافر بدله کښے قتلولے نشي.

ف : دیت : خون بها.

۱. د حضور اکرم صلي اللّٰه علیه وسلّم څه حدیثونه حضرت علي کرم اللّٰه وجهه سره لیکلي شوي وو، کوم چه به هغوئ د خپلے تورے په تیکي کښے ساتل دلته هغے طرفته اشاره ده.

## بَابٌ ۲۱۵ : فِدَاءِ الْمُشْرِكِيْنَ.

## باب ۲۱۵ : د مشرکانو د فدیئے د ادائیګۍ بیان.

۲۹۵ : حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ بْنُ اَبِيْ اُوَيْسٍ حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ بْنِ عُقْبَةَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ اَنَّ رِجَالًا

۲۹۵ : اسمٰعیل بن ابو اویس. اسماعیل بن ابراهیم. موسٰي بن شهاب. حضرت انس بن مالک نه روایت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم نه بعضے انصارو اجازت واخست، هغوئ اووے

مِنْ اَنْصَارٍ اِسْتَأْذَنُوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ائْذَنْ فَلْنَتْرُكْ لِابْنِ اُخْتِنَا عَبَّاسٍ فِدَاءَهٗ فَقَالَ لَا تَدَعُوْنَ مِنْهَا دِرْهَمًا وَ قَالَ اِبْرَاهِيْمُ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيْزِ بْنِ صُهَيْبٍ عَنْ اَنَسٍ قَالَ اُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَالٍ مِنَ الْبَحْرَيْنِ فَجَآءَهُ الْعَبَّاسُ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَعْطِنِيْ فَاِنِّيْ فَادَيْتُ نَفْسِيْ وَ فَادَيْتُ عَقِيْلًا فَقَالَ خُذْهَا فَاَعْطَاهُ فِيْ ثَوْبِهٖ.

يا رسولَ اللّٰه تاسو مونږ ته اجازت راکړئ چه مونږ خپل خورئ (بهانجه) عباس دَ پاره دَ هغهٔ فديه پرېږدو. نو حضورؐ اوفرمائيل' يو درهم هم ورته مهٔ پرېږدئ. او ابراهيم' عبدالعزيز حضرت انسؓ په ذريعه روايت کوي چه بحرين نه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ته مال راغے' نو حضرت عباسؓ ورته راغے. او عرض ئے اوکه يا رسول اللّٰهؐ ماله ترے څهٔ راکړئ ځکه چه ما د خپل ځان او عقيل فديه ورکړے ده. حضورؐ ورته اوفرمائيل واخله او هغه ته سرور عالم صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ هغه کپړه کښے دَ بحرين مال ورکهٔ.

٢٩٦: حَدَّثَنَا مَحْمُوْدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنْ اَبِيْهِ وَ كَانَ جَاءَ فِيْ اُسَارٰى بَدْرٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَاُ فِي الْمَغْرِبِ بِالطُّوْرِ.

٢٩٦: محمود. عبدالرزاق. معمر. زهري. محمد بن جبير د خپل پلار نه روايت کوي. زهٔ بدري قيدي ووم او ما د حضورؐ نه دَ ماښام مونځ کښے سورهٔ طور آوريدلے دے.

باب٢١٦: اَلْحَرْبِيُّ اِذَا دَخَلَ دَارَ السَّلَامِ بِغَيْرِ اَمَانٍ.

باب٢١٦: دَ حربي کافر دَ امان طلب کولو نه بغير دارالاسلام کښے داخليدل.

٢٩٧: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا اَبُو الْعُمَيْسِ عَنْ اِيَاسِ بْنِ سَلَمَةَ بْنِ الْاَكْوَعِ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ اَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَيْنٌ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ وَهُوَ فِيْ سَفَرٍ فَجَلَسَ عِنْدَ اَصْحَابِهٖ يَتَحَدَّثُ ثُمَّ انْفَتَلَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

٢٩٧: ابو نعيم. ابو عميس. اياس بن سلمه بن اکوع د خپل پلار نه روايت کوي' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ته د سفر حالت کښے د مشرکانو يو جاسوس راغے' او دَ حضور صلعم صحابه کرامو سره کښيناست' خبرے ئے ورسره کولے او کوم وخت چه هغه تلو' نو حضورؐ اوفرمائيل دے اونيسئ او مړ ئے کړئ نو هغه قتل کړے شو او دَ هغه سامان حضورؐ قاتل ته

اُطْلُبُوْهُ وَاقْتُلُوْهُ فَنَفَّلَهٗ فَنَفَلَهٗ سَلَبَهٗ. ورکړلو.

باب۲۱۷: يُقَاتَلُ عَنْ اَهْلِ الذِّمَّةِ وَلَا يُسْتَرَقُّوْنَ.

باب۲۱۷: د ذميانو د جانب نه دَ جنګ او غلام نه جوړيدو بيان.

۱. ذميان د غير مسلمو هغه طبقے ته وائي کومه چه د اسلامي حکومت په حدودو کښے اوسيږي. مصنف رحمة الله عليه د اسلام دا حکم په وضاحت سره بيانول غواړي چه د داسے ټولو غير مسلمو خان او مال، عزت او آبرو د مسلمانانو پشان ده او که چرے په دوئ باندے د يو طرفنه څه مصيبت راځي نو د مسلمان حکومت او دَ ټولو مسلمانانو فرض دي چه د هغوئ حمايت او حفاظت د پاره که چرے د هغوئ دشمنانو سره جنګ کول هم راشي نو سَرفه دِ نه کوي.

۲۹۸: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ حُصَيْنٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُوْنٍ عَنْ عُمَرَؓ قَالَ وَ اُوْصِيْهِ بِذِمَّةِ اللّٰهِ وَ ذِمَّةِ رَسُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يُوَفّٰى لَهُمْ بِعَهْدِهِمْ وَ اَنْ يُقَاتَلَ مِنْ وَّرَائِهِمْ وَلَا يُكَلَّفُوْا اِلَّا طَاقَتَهُمْ.

۲۹۸: موسٰي بن اسمٰعيل. ابو عوانه. حصين. عمرو بن ميمون. حضرت عمرؓ نه روايت کوي. حضور صلعم اوفرمائيل زما نه پس چه څوک خليفه وي، هغهٔ ته دَ الله او رسولؐ د ذمے وصيت کوم، چه هغه خلقو سره قول و اقرار پوره کړي او دَ هغوئ د طرف نه جنګ اوکړي. او دَ هغوئ د طاقت نه زيات کار ترے وانخلي.

باب۲۱۸: جَوَائِزِ الْوَفْدِ.

باب۲۱۸: قاصد ته دَ انعام ورکولو بيان (دے باب لاندے څه حديث نشته).

باب۲۱۹: هَلْ يُسْتَشْفَعُ اِلٰى اَهْلِ الذِّمَّةِ وَ مُعَامِلَتِهِمْ.

باب۲۱۹: ذميانو او دَ هغوئ معاملاتو کښے دَ سفارش کولو بيان.

۲۹۹: حَدَّثَنَا قَبِيْصَةُ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ سُلَيْمَانَ الْاَحْوَلِ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ اَنَّهٗ قَالَ يَوْمُ الْخَمِيْسِ وَمَا يَوْمُ الْخَمِيْسِ ثُمَّ بَكٰى حَتّٰى خَضَبَ دَمْعُهُ الْحَصْبَاءَ فَقَالَ اِشْتَدَّ بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجْعُهُ الْخَمِيْسَ فَقَالَ ائْتُوْنِيْ بِكِتَابٍ اَكْتُبْ

۲۹۹: قبيصه. ابن عيينه. سليمانؒ. احول. سعيد. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي هغهٔ اووے دَ زيارت ورخ او آه دَ زيارت ورخ هم څنګه وه، او بيائے دومره اوژړل چه دَ هغهٔ دَ اوښکو نه کنکر هم لوانده شولو او بيائے وئيلے دَ زيارت په ورځ دَ حضور صلي الله عليه وسلّم په مرض کښے زياتے اوشو، نو حضورؐ اوفرمائيل ليکلو دَ پاره څهٔ څيز راوړئ چه زهٔ تاسو ته يو تحرير اوليکم چه دَ هغے نه ورستو به تاسو هيڅکله

لَكُمْ كِتَابًا لَنْ تَضِلُّوْا بَعْدَهٗ اَبَدًا فَتَنَازَعُوْا وَلَا يَنْبَغِيْ عِنْدَ نَبِيٍّ تَنَازُعٌ فَقَالُوْا هَجَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ دَعُوْنِيْ فَالَّذِيْ اَنَا فِيْهِ خَيْرٌ مِّمَّا تَدْعُوْنِيْ اِلَيْهِ وَ اَوْصٰى عِنْدَ مَوْتِهٖ بِثَلٰثٍ اَخْرِجُوا الْمُشْرِكِيْنَ مِنْ جَزِيْرَةِ الْعَرَبِ وَ اَجِيْزُوا الْوَفْدَ بِنَحْوِ مَا كُنْتُ اُجِيْزُهُمْ وَ نَسِيْتُ الثَّالِثَةَ وَ قَالَ يَعْقُوْبُ بْنُ مُحَمَّدٍ سَاَلْتُ الْمُغِيْرَةَ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ جَزِيْرَةِ الْعَرَبِ فَقَالَ مَكَّةُ وَالْمَدِيْنَةُ وَالْيَمَامَةُ وَالْيَمَنُ وَ قَالَ يَعْقُوْبُ وَالْعَرَبُ اَوَّلُ تِهَامَةَ.

گمراهۍ کښې نه پريوځئ، بيا خلقو اختلاف اوکړ. حالانکه د رسول الله صلي الله عليه وسلّم فرمان باره کښې اختلاف نه دې پکار. دَ خلقو بيان دې چه حضورؐ دا معامله پريښنوده. اووې فرمائيل ما پريږدۀ، کوم حالت کښې چه زۀ يم. دا دَ هغې نه بهتر دې چه هغې طرف ته تاسو خلق ما بلئ او حضورؐ د وفات په وخت درې وصيتونه اوکړل. (۱) مشرکان دَ جزيرۀ عرب نه اوکاږئ. (۲) قاصدانوته داسې انعام ورکوئ څنګه چه ما ورکولو. (۳) او دريم وصيت مانه هير شولو. يعقوب بن محمد اووې. ما د مغيره بن عبدالرحمٰن نه دَ جزيرۀ عرب بابت کښې تپوس اوکه نو هغه اووې. دې نه مکه معظمه، مدينه منوره، يمامه او ارض يمن مراد دې. او يعقوب اووې. عرب دَ تهامې ابتدائي حصه ده.

## بَابٌ ۲۲۰: اَلتَّجَمُّلُ لِلْوُفُوْدِ.

## باب ۲۲۰: د قاصدانو مخکښې د خپل آرائش بيان.

۳۰۰۰: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ ابْنَ عُمَرَؓ قَالَ وَجَدَ عُمَرُ حُلَّةَ اِسْتَبْرَقٍ تُبَاعُ فِي السُّوْقِ فَاَتٰى بِهَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ابْتَعْ هٰذِهِ الْحُلَّةَ فَتَجَمَّلْ بِهَا لِلْعِيْدِ وَلِلْوُفُوْدِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّمَا هٰذِهٖ لِبَاسُ مَنْ لَّا خَلَاقَ لَهٗ فَلَبِثَ مَاشَآءَ اللّٰهُ ثُمَّ اَرْسَلَ اِلَيْهِ النَّبِيُّ

۳۰۰۰: يحيٰي. ليث. عقيل. ابن شهاب. سالم بن عبدالله. حضرت ابن عمرؓ نه روايت کوي. حضرت عمرؓ بازار کښې يوه ريښمنه چغه خرڅدونکې اوليده. نو هغه ئې دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم خدمت کښې پيش کړه او عرض ئې اوکه، يا رسول الله، تاسو دا واخلئ، دَ اختر په ورځ او په کومه ورځ چه وفد راځي نو دا تاسو زيب تن کوئ. حضورؐ ورته اوفرمائيل دا لباس د هغې خلقو دې چه دَ هغوئ په آخرت کښې څۀ حصه نه وي. بيا لږو ورځو کښې دَ مشيت خداوندي مطابق حضورؐ يوه ريښمينه چغه حضرت عمرؓ ته اوليږله، نو حضرت عمرؓ هغې سره دَ حضورؐ خدمت کښې حاضر

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِجُبَّةِ دِيْبَاجٍ فَاَقْبَلَ بِهَا عُمَرُ حَتّٰى اَتٰى بِهَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قُلْتَ اِنَّمَا هٰذِهٖ لِبَاسُ مَنْ لَّا خَلَاقَ لَهٗ اَوْ اِنَّمَا يَلْبَسُ هٰذِهٖ مَنْ لَّا خَلَاقَ لَهٗ ثُمَّ اَرْسَلْتَ اِلَيَّ بِهٰذِهٖ فَقَالَ تَبِيْعُهَا اَوْ تُصِيْبُ بِهَا بَعْضَ حَاجَتِكَ.

**باب ۱۲۲۱: كَيْفَ يُعْرَضُ الْاِسْلَامُ عَلَى الصَّبِيِّ.**

۱۰۳۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هِشَامٌ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَنِيْ سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ اَنَّهٗ اَخْبَرَهٗ اَنَّ عُمَرَ انْطَلَقَ فِيْ رَهْطٍ مِنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِبَلَ ابْنِ صَيَّادٍ حَتّٰى وَجَدُوْهُ يَلْعَبُ مَعَ الْغِلْمَانِ عِنْدَ اُطُمِ بَنِيْ مُغَالَةَ وَقَدْ قَارَبَ يَوْمَئِذٍ ابْنُ صَيَّادٍ يَحْتَلِمُ فَلَمْ يَشْعُرْ بِشَيْءٍ حَتّٰى ضَرَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ظَهْرَهٗ بِيَدِهٖ ثُمَّ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَتَشْهَدُ اَنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَظَرَ اِلَيْهِ ابْنُ صَيَّادٍ فَقَالَ اَشْهَدُ اَنَّكَ رَسُوْلُ الْاُمِّيِّيْنَ قَالَ ابْنُ صَيَّادٍ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ

شو، او حضورؐ ته ئې عرض اوکه، یا رسول الله! تاسو خو فرمائیلي وو چه دا لباس د هغې سړي دې چه آخرت کښې ئې څۀ حصه نه وي. یا، دائې فرمائیلې وو. چه دا خو هغه سړې اغوندي چه هغه دَ پاره آخرت کښې څه حصه نشته لیکن هغه لباس تاسو ما د پاره رالیږلې دې. ارشاد گرامي اوشو دا خرڅه کړه یا خپل څه بل کار کښې ئې زاوله.

**باب ۱۲۲۱: دَ ماشوم په وړاندې به اسلام څرنګ پیش کولې شي ته دَ اسلامي اصولو ښودلو د ترکیب بیان.**

۱۰۳۰: عبدالله بن محمد. هشام. معمر. زهري. سالم. عبدالله بن عمرؓ نه روایت کوي، حضرت عمرؓ او نورو اصحابوؓ، سرور عالم صلعم سره ابن صیاد طرف ته تلو دَ پاره سفر اوکۀ. او د بنو مغاله ډهیرو سره هغه ئې ماشومانو سره په لوبو اولیدلو، ابن صیاد ماشومانو نه وو، بلکه هغه تقریبًا بالغ شوې وو. لیکن دَ سرور عالم صلي الله علیه وسلم دَ تشریف آورئ هغۀ ته هیڅ پته اونه لګیده، تردې چه حضورؐ خپل لاس سره دَ هغۀ شاله ډب ورکه اووې فرمائیل، آیا ته ددې خبرې شهادت کوې چه زۀ د الله رسول یم، نو ابن صیاد حضور صلعم طرف ته اوکتل، اووئیلې، زۀ یقینًا ددې خبرې شهادت ورکوم چه تاسو د امیانو رسول یئ او بیائې د رسول صلعم نه تپوس اوکه، آیا تاسو ددې خبرې شهادت ورکوئ چه زۀ د الله رسول یم، نو حضور صلعم دا اوفرمائیل چه ما خو الله او دَ هغۀ په رسولانو ایمان راوړې دې. اوس ته څه وینې.

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَتَشْهَدُ اَنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ قَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اٰمَنْتُ بِاللّٰهِ وَ رُسُلِهٖ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَاذَا تَرٰى قَالَ ابْنُ صَيَّادٍ يَّأْتِيْنِيْ صَادِقٌ وَ كَاذِبٌ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لُبِسَ عَلَيْكَ الْاَمْرُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنِّيْ قَدْ خَبَأْتُ لَكَ خَبِيْئًا قَالَ ابْنُ صَيَّادٍ هُوَ الدُّخُّ قَالَ النَّبِيُّ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِخْسَئْا فَلَنْ تَعْدُوَ قَدْرَكَ قَالَ عُمَرُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ائْذَنْ لِيْ فِيْهِ اَضْرِبُ عُنُقَهٗ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنْ يَّكُنْهُ فَلَنْ تُسَلَّطَ عَلَيْهِ وَ اِنْ لَّمْ يَكُنْهُ فَلَا خَيْرَ لَكَ فِيْ قَتْلِهٖ قَالَ ابْنُ عُمَرَ انْطَلَقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ يَاْتِيَانِ النَّخْلَ الَّذِيْ فِيْهِ ابْنُ صَيَّادٍ حَتّٰى اِذَا دَخَلَ النَّخْلَ طَفِقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَّقِيْ بِجُذُوْعِ النَّخْلِ وَهُوَ يَخْتِلُ اَنْ يَّسْمَعَ مِنْ ابْنِ صَيَّادٍ شَيْئًا قَبْلَ اَنْ يَرَاهُ وَ ابْنُ صَيَّادٍ مُضْطَجِعٌ عَلٰى فِرَاشِهٖ فِيْ قَطِيْفَةٍ لَهٗ فِيْهَا رَمْزَةٌ فَرَاَتْ اُمُّ ابْنِ صَيَّادٍ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَتَّقِيْ بِجُذُوْعِ النَّخْلِ فَقَالَتْ لِابْنِ صَيَّادٍ اَيْ صَافِ

په دې خبره ابن صياد اووې، ما ته خنې ريښتيا خبر راځي او خنې دروغ، نو سرور عالم ارشاد اوفرمائيلو، په تا د اصل حقيقت پرده پريوتې ده. او دې نه پس نې اوفرمائيل. زۀ خپل زړۀ کښې يوه خبره کوم، اوښايه، هغه څۀ خبره ده، په دې ابن صياد جواب ورکه، هغه لوګې (دهواں) دې. چه دَ هغې جواب الجواب کښې سرور عالم صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، لرې شه، ته دَ خپل حد نه زيات نۀ شې وړاندې کيدې، حضرت عمرؓ عرض اوکۀ، يا رسول اللّٰه، ما ته اجازت راکړئ، چه زۀ ددۀ ګردن والوځوم، رسول اللّٰه صلي الله عليه وسلم ورته اوفرمائيل که دې دجال وي نو ددۀ وژل ستا د وس نه بهر خبره ده، او که دجال نه دې، نو ددۀ قتل کښې ستا هيڅ فائده نشته دَ ابن عمرؓ بيان دې چه حضورٌ او ابي ابن کعب هغې باغ کښې چه هغې کښې ابن صياد اوسيدو، يوه ورځ روان وو. او کوم وخت چه باغ ته اورسيدل. نو د کجورو د تنو پناه ورروان شو چه ابن صياد حضورٌ اونۀ ويني، او حضورٌ دَ هغه څۀ خبرې واوري. حضورٌ اوليدل چه هغه په خپل ځائې خپل څادر کښې پروت دې چه هغې کښې يو قسم ګنړ ګنړ (ګنګناهٹ) کيږي، حضورٌ دَ قجورو دَ تنو پناه راروان وو چه دَ ابن صياد مور حضورٌ اوليدلو نو خپل خوئې ابن صياد ته ئې دَ هغۀ نوم واخست، اې صاف ابن صياد کيناست نو رسالت مآب اوفرمائيل، کۀ دې ښځې خپل خوئې "صاف" په خپل حالت

وَهُوَ اِسْمُهُ فَثَارَ ابْنُ صَيَّادٍ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ تَرَكَتْهُ بَيَّنَ وَ قَالَ سَالِمٌ قَالَ ابْنُ عُمَرَ ثُمَّ قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَثْنٰى عَلَى اللّٰهِ بِمَا هُوَ اَهْلُهُ ثُمَّ ذَكَرَ الدَّجَّالَ فَقَالَ اِنِّيْ اُنْذِرُكُمُوْهُ وَمَا مِنْ نَبِيٍّ اِلَّا اَنْذَرَ قَوْمَهُ لَقَدْ اَنْذَرَهُ نُوْحٌ قَوْمَهُ وَلٰكِنْ سَاَقُوْلُ لَكُمْ فِيْهِ قَوْلًا لَمْ يَقُلْهُ نَبِيٌّ لِقَوْمِهِ تَعْلَمُوْنَ اَنَّهُ اَعْوَرُ وَ اَنَّ اللّٰهَ لَيْسَ بِاَعْوَرَ.

پریښنبے وے' نو حقیقت حال بـه معلوم شوے وو د سالم بیان دے حضرت عمرؓ اووے' دے نه پس رسالت مآب صلي اللّٰه علیه وسلّم د خلقو مجمع کښے اودریدلو. دَ تـولـونـه مـخـکښـے ئـے د اللّٰـه تـعـالٰـي تـعـریف او تـوصیف اوکـه بیانئے د دجال ذکـر اوکـړو. وے فـرمـائیـل' زهٔ تاسو دَ دجال نه ویروم' او هـر نبـي خپـل قـوم دَ دجـال نـه ویرولے دے لیکن زه هغه خبره هم درتـه ښایم چه هیڅ یو نبي خپل قوم ته نه ده کـړے' هغه دا چه دجـال کـانړے (یو سترګے) دے او اللّٰه تعالٰي کانا (یو سترګے) نهٔ دے.

## باب ۲۲۲: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْيَهُوْدِ اَسْلِمُوْا تَسْلَمُوْا. قَالَهُ الْمَقْبُرِيُّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ.

## باب ۲۲۲: دَ رسالتمآب صلي اللّٰه علیه وسلّم

ارشاد ګرامي' یهودیانو تاسو اسلام راوړئ چه ستاسو حفاظت اوشي دا سعید مقبري دَ ابوهریرهؓ نه روایت کوي.

## بـاب ۲۲۳: اِذَا اَسْلَمَ قَوْمٌ فِيْ دَارِ الْحَرْبِ وَلَهُمْ مَالٌ وَّ اَرْضُوْنَ فَهِيَ لَهُمْ.

## بـاب ۲۲۳: دارالـحـرب کښـے مسلمـان

کیدونکي کـه سرمایه دار او زمیندار دي' نو هغه ټوله سرمایه دَ هغوئ ده.

۳۰۲: حَدَّثَنَا مَحْمُوْدٌ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ عَنْ عَلِيِّ بْنِ حُسَيْنٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ عَنْ اُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَيْنَ تَنْزِلُ غَدًا فِيْ حَجَّتِهٖ قَالَ وَهَلْ تَرَكَ لَنَا عَقِيْلٌ مَنْزِلًا ثُمَّ قَالَ نَحْنُ نَازِلُوْنَ غَدًا بِخَيْفِ بَنِيْ كِنَانَةَ الْمُحَصَّبِ حَيْثُ قَاسَمَتْ قُرَيْشٌ عَلَى الْكُفْرِ وَ

۳۰۲: محمود. عبدالرزاق. معمر. زهري. علي. عمرو بن عثمان بن عفانؓ. حضرت اُسامه بن زیدؓ نه روایت کوي. ما د حجة الوداع په موقع عرض اوکه یا رسول اللّٰه صلعم تاسو به صباله کوم ځائے قیام کوئ' حضورؐ اوفرمائیل عقیل مونږ د پاره څه مکان نه دے پریښے بیائے اوفرمائیل مونږ به صباله خیف بني کنانه کښے دَ محصب په مقام قیام کوو. چه هلته قریشو په کفر قسم خوړلے وو. او دا واقعه داسے وه' چه بني کنانه د قریشـونه بنو هاشم باره کښے دا قسم اخستے وو' چه

ذٰلِكَ اَنَّ بَنِيْ كِنَانَةَ حَالَفَتْ قُرَيْشًا عَلٰى بَنِيْ هَاشِمٍ اَنْ لَّا يُبَايِعُوْهُمْ وَلَا يُؤْوُوْهُمْ قَالَ الزُّهْرِيُّ وَالْخَيْفُ الْوَادِيْ.

٣٠٤٣: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ اسْتَعْمَلَ مَوْلًى لَهٗ يُدْعٰى هُنَيًّا عَلَى الْحِمٰى فَقَالَ يَا هُنَيُّ اضْمُمْ جَنَاحَكَ عَنِ الْمُسْلِمِيْنَ وَاتَّقِ دَعْوَةَ الْمَظْلُوْمِ فَاِنَّ دَعْوَةَ الْمَظْلُوْمِ مُسْتَجَابَةٌ وَ اَدْخِلْ رَبَّ الصُّرَيْمَةِ وَ رَبَّ الْغُنَيْمَةِ وَ اِيَّايَ وَ نَعَمَ ابْنِ عَوْفٍ وَ نَعَمَ ابْنِ عَفَّانَ فَاِنَّهُمَا اِنْ تَهْلِكْ مَاشِيَتُهُمَا يَرْجِعَانِ اِلٰى نَخْلٍ وَّ زَرْعٍ وَ اِنَّ رَبَّ الصُّرَيْمَةِ وَ رَبَّ الْغُنَيْمَةِ اِنْ تَهْلِكْ مَاشِيَتُهُمَا يَاْتِيْنِيْ بِبَنِيْهِ فَيَقُوْلُ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ اَفَتَارِكُهُمْ اَنَا لَا اَبَالَكَ فَالْمَاءُ وَالْكَلَاءُ اَيْسَرُ عَلَيَّ مِنَ الذَّهَبِ وَالْوَرِقِ وَ اَيْمُ اللّٰهِ اِنَّهُمْ لَيَرَوْنَ اَنِّيْ قَدْ ظَلَمْتُهُمْ اِنَّهَا لَبِلَادُهُمْ قَاتَلُوْا عَلَيْهَا فِي الْجَاهِلِيَّةِ وَ اَسْلَمُوْا عَلَيْهَا فِي الْاِسْلَامِ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ

په هغوئ به نه څه څيز خرڅوو او نه به هغوئ اوسيدو له ځائے ورکوو. زهري اووے چه خيف معني چټيل ميدان. داسے ځاے يا ميدان چه شين بوټے پکښے نه وي.

٣٠٤٣: اسمعيل. مالک. زيد د خپل پلار اسلم نه روايت کوي حضرت عمرؓ خپل هني غلام په يو ورشو مقرر کړه او ورته ئے اوفرمائيل: اے هني ته مسلمانانو سره ډيرے عاجزئ سره يو ځائے کيږه نو مظلوم د بد دعا نه بچ اوسه ځکه چه د مظلوم بددعا ډير زر قبليږي او دے ورشو کښے کم اوښانو والو او لږو چيلو والو ته د ننه راتلو اجازت ورکوه. ليکن خبردار د عبدالرحمٰن بن عوف او عثمان بن عفان ډنګر دے ته مه رادننه کوه ځکه که ددے دواړو څناور هلاک هم شي نو دا دواړه کر کيلے او باغونو سره خپل کار چلولے شي او که د لږو اوښانو او لږو چيلو والو ډنګر هلاک شي نو هغوئ به خپل بچي ماله راولي او وائي به اے امير المؤمنين مونږ خو خوار شو اے هني ستا پلار دِ پاتے نشي آيا زه به هغوئ ته د څه رقم ورکولو حکم نه کوم. نو د سرو زرو او نوټونو ورکولو په نسبت هغوئ ته اوبه او واښه ورکول ماته زيات آسان دي او په الله م د قسم وي دا خلق به دا خيال کوي چه ما په دوئ ظلم کړيدے ځکه چه دا ښهرونه د دوئ دي. د جاهليت زمانه کښے دوئ خپلو ښهرونو د پاره خپل عزيز ځانونه قربان کړيدي. او اسلام کښے دوئ په دے سرزمين اسلام راوړے دے قسم دے په هغه ذات چه د هغه لاس کښے زما ساه ده که زما تحويل کښے داسے څاروي نه وے

لَوْلَا الْمَالُ الَّذِيْ اَحْمِلُ عَلَيْهِ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ مَا حَمَيْتُ عَلَيْهِمْ مِنْ بِلَادِهِمْ شِبْرًا.

چه هغه ز.ف.د الله په لار کښې د سورلئ په طور ور کوم' نو ما به هيڅکله ددې ښهرونو يو ليشت قدرې ځائې هم ورشو نه وو جوړ کړې.

## بـاب ۲۲۴: كِتَابَةِ الْإِمَامِ النَّاسَ.

## بـاب ۲۲۴: ذَ امام ذَ خلقو د نومونو ليکلو بيان.

۳۰۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُكْتُبُوْا لِيْ مَنْ تَلَفَّظَ بِالْاِسْلَامِ مِنَ النَّاسِ فَكَتَبْنَا لَهُ اَلْفًا وَّ خَمْسَمِائَةِ رَجُلٍ فَقُلْنَا نَخَافُ وَنَحْنُ اَلْفٌ وَّ خَمْسُمِائَةٍ فَلَقَدْ رَاَيْتُنَا اُبْتُلِيْنَا حَتّٰى اِنَّ الرَّجُلَ لَيُصَلِّيْ وَحْدَهٗ وَهُوَ خَائِفٌ.

۳۰۴: محمد بن يوسف. سفيان. اعمش. ابووائل. حضرت حذيفهؓ نه روايت کوي يو ځلې رسول اللّه صلي اللّه عليه وسلَم اوفرمائيل څومره خلق چه د اسلام کلمه وائي ذَهغې ټولو نومونه ماته ليکلې راوړه نو مونږ يو زر پنځه سوه نامې ليکلې پيش کړې. ما زړهٔ کښې اووې چه مونږ اوسه پورې د کافرو نه خوف کوو، حالانکه مونږ يو نيم زر خلق وو. او خپل ځان فتنه کښې آخته بيا موموٴ او ذَ ډيرې ويرې نه بعضې سړې هم ځان له مونځ کوي.

۳۰۵: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ عَنْ اَبِيْ حَمْزَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ فَوَجَدْنَاهُمْ خَمْسَمِائَةٍ قَالَ اَبُوْ مُعَاوِيَةَ مَا بَيْنَ سِتِّ مِائَةٍ اِلٰى سَبْعِ مِائَةٍ.

۳۰۵: عبدان. ابوحمزه. اعمش نه روايت کوي چه مونږ هغه پنځه سوه بيامندل ابو معاويه وائي چه هغه شپږ اووه سوه ته قريب وو.

۳۰۶: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ اَبِيْ مَعْبَدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ كُتِبْتُ فِيْ غَزْوَةِ كَذَا وَ كَذَا وَ امْرَاَتِيْ حَاجَّةٌ قَالَ ارْجِعْ فَحُجَّ مَعَ امْرَاَتِكَ.

۳۰۶: ابونعيم. سفيان. ابن جريج. عمرو بن دينار. ابي معبد. عبداللّه بن عباسؓ نه روايت کوي. يو سړي ذَ رسالت مآب صلي اللّه عليه وسلَم خدمت کښې عرض اوکه چه څما نوم فلاني فلانې جهاد کښې ليکلې شويدې' او څما ښځه حج ته تلونکې ده' حضور صلعم ورته اوفرمائيل' ځه واپس شه' او خپلې ښځې سره ذَ حج فريضه ادا کړه.

## باب ۲۲۵: إِنَّ اللّٰـهَ يُـؤَيِّـدُ الدِّيْنَ بِالرَّجُلِ الْفَاجِرِ.

۳۰۷: حَـدَّثَـنَـا اَبُـو الْيَمَـانِ اَخْبَـرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ وَ حَدَّثَنِيُ مَـحْمُـوْدُ بْـنُ غَيْلَانَ حَـدَّثَـنَـا عَبْـدُ الـرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنِ ابْـنِ الْمُسَيَّبِ عَـنْ اَبِـيْ هُـرَيْرَةَ ؓ قَالَ شَهِدْنَـا مَـعَ رَسُـوْلِ الـلّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَـلَيْــهِ وَسَـلَّـمَ فَـقَـالَ لِرَجُلٍ مِمَّنْ يَّـدَّعِـي الْاِسْلَامَ هٰـذَا مِـنْ اَهْلِ النَّارِ فَـلَـمَّا حَضَرَ الْقِتَالُ قَاتَلَ الرَّجُلُ قِتَالًا شَـدِيْـدًا فَـاَصَـابَـتْـهُ جِـرَاحَةٌ فَقِيْلَ يَا رَسُـوْلَ الـلّٰهِ الَّذِيْ قُلْتَ اِنَّهٗ مِنْ اَهْلِ النَّارِ فَاِنَّهٗ قَدْ قَاتَلَ الْيَوْمَ قِتَالًا شَدِيْدًا وَقَـدْ مَـاتَ فَـقَـالَ الـنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَـلَيْـهِ وَسَـلَّـمَ اِلَـى الـنَّـارِ قَالَ فَكَادَ بَـعْـضُ الـنَّـاسِ اَنْ يَّرْتَابَ فَبَيْنَمَاهُمْ عَـلٰى ذٰلِكَ اِذْ قِيْلَ اِنَّهٗ لَمْ يَمُتْ وَلٰـكِنْ بِـهٖ جِـرَاحًـا شَـدِيْـدًا فَـلَمَّا كَانَ مِنَ الـلَّـيْـلِ لَمْ يَصْبِرْ عَلَى الْجِرَاحِ فَقَتَلَ نَـفْسَهٗ فَاُخْبِرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَـلَّـمَ بِـذٰلِكَ فَقَالَ اَللّٰهُ اَكْبَرُ اَشْهَدُ اَنِّـيْ عَبْـدُ اللّٰهِ وَ رَسُوْلُهٗ ثُمَّ اَمَرَ بِلَالًا فَـنَادٰى بِالنَّاسِ اَنَّهٗ لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ اِلَّا نَـفْـسٌ مُـسْلِـمَةٌ وَ اِنَّ اللّٰهَ لَيُؤَيِّدُ هٰذَا الدِّيْنَ بِالرَّجُلِ الْفَاجِرِ.

## باب ۲۲۵: دَ اللّٰـه تعالٰي دَ فاسق، فاجر سړي په ذريعه دَ اسلام دَ امداد بيان:

۳۰۷: ابـو اليـمـان. شـعـيـب. زهـري. (دويم سـنـد) مـحـمـود. عـبدالـرزاق. مـعـمـر. زهـري. ابن مسيـب. حـضـرت ابـوهـريـره ؓ نـه روايت مونږ د رسـالتـمـآب صـلّـي الـلّـه عليـه وسلّم هم ركاب وو. حـضـورؐ دَ هـغـې سـړي متـعلق چـه دَ اسلام دعوي ئې كـولـه اوفـرمـائـيـل، دے دوزخـي دے. او كوم وخت چـه ميـدان جـنـگ تـه ژاغـے، نـو ډير خلق ئې اووژل او دغـے جـنـگ كـښـے هـغـه سـخـت زخـمـي شـوے وو، چـا عـرض اوكـه، يـا رسـول الـلّٰـه صلعم كوم سړي ته چـه تاسو دوزخي فرمائيلي دي هغه نن ډيرے خوانمردئ سره دَ مړو ډهيري لگولے دي. او آخر خپله هم مړشو. نـو حـضـور صـلـعـم اوفرمائيل هغه خو دوزخ ته لاړو. دَ حـضـرت ابـوهـريـره ؓ بيان دے، قريب وه چه بعضے خلق شـك شبـه كـښـے آخته شوے وے. دے كـښـے چا اووے هـغـه ځـوانمرد لا اوسه پورے مړ شوے نه دے، بلكه هغه سـخـت زخـمـي شوے دے. چه شپه شوه، نو هغهٔ دَ هغے زخـمـونـو تـكـليف اونـهٔ زغـملے شو. او خود كشي ئې اوكـړلـه كوم وخت چه حضورؐ ته دَ هغهٔ اطلاع اورسيده نووے فرمائيل، الله اكبر زهٔ ددے امر شهادت وركوم چه زهٔ د الـلّٰـه بـنـده او دَ هغهٔ رسول يم. او دے نـه پـس حضور بـلالؓ تــه حـكـم وركـه، اعلان اوكـه چـه جنت تـه بـه دَ مسـلـمـانـانـونه سِوا بل څوك نه داخليږي او الله تعالٰي بـعـضـے وختونو كښے اسلام ته د بدكار سړي د لاس نه هم مدد وركوي.

۱. حضور صلي الله علیه وسلّم د خوشالئ اظهار غالبًا خکه اوفرمائیلو چه په ظاهره کښې د هغه سړي د طرفنه د اسلامي حکم خلاف ورزي په مشاهده کښې راغلې وه. خودکشي ممنوع او حرامه ده لیکن دے سره ایمان نه ختمیږي. د حدیث الفاظو نه معلومیږي چه ذکر شوے سړے په حقیقت کښې مومن نه وو او په همدے بنیاد باندے د هغهٔ ټولے ظاهري قربانئ نظر انداز کړے شوے.

بَاب ۲۲۶: مَنْ تَأَمَّرَ فِي الْحَرْبِ مِنْ غَيْرِ إِمْرَةٍ إِذَا خَافَ الْعَدُوَّ.

باب ۲۲۶: میدانِ جنګ کښې د دشمن دَ ویرے د امیر جوړولو بغیر خپل خان نه دَ سالار جوړولو بیان.

۳۰۸: حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا ابْنُ عُلَيَّةَ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ هِلَالٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍؓ قَالَ خَطَبَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَخَذَ الرَّايَةَ زَيْدٌ فَأُصِيبَ ثُمَّ أَخَذَهَا جَعْفَرٌ فَأُصِيبَ ثُمَّ أَخَذَهَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ رَوَاحَةَ فَأُصِيبَ ثُمَّ أَخَذَهَا خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ عَنْ غَيْرِ إِمْرَةٍ فَفُتِحَ عَلَيْهِ مَا يَسُرُّنِي أَوْ قَالَ مَا يَسُرُّهُمْ أَنَّهُمْ عِنْدَنَا وَقَالَ إِنَّ عَيْنَيْهِ لَتَذْرِفَانِ.

۳۰۸: یعقوب. ابن عیینه. ایوب. حمید. انس بن مالکؓ نه روایت کوي. حضورؐ دَ جنګ موته زمانه کښې خطبه کښې اوفرمائیل، زیدؓ جنډه واخسته او هغه شهید کړے شو، بیا هغه جنډه جعفرؓ واخسته او هغه هم شهید کړے شو، هغه نه پس عبدالله بن رواحه هغه جنډه اوچته کړه، او هغه هم شهید کړے شو، بیا خالد بن ولید قبل ددے نه چه هغه امیر جوړ کړے شي هغهٔ جنډه اوچته کړه، او دَ هغهٔ په لاس فتح نصیب شوه، ماته په دے خه خوشحالي نشته یا دائے اوفرمائیل چه هغوئ ته په دے خوشحالي نشته چه هغوئ دِ مونږ سره وے. دَ انسؓ وینا ده، چه دے وخت کښې د حضورؐ د سترګو مُبارکو نه رټے رټے اوښکے بهیدلے.

بَاب ۲۲۷: اَلْعَوْنِ بِالْمَدَدِ.

باب ۲۲۷: دَ فوځي امداد بیان.

۳۰۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا ابْنُ عَدِيٍّ وَسَهْلُ بْنُ يُوسُفَ عَنْ سَعِيدٍ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَاهُ رِعْلٌ وَذَكْوَانُ وَعُصَيَّةُ وَبَنُو لِحْيَانَ فَزَعَمُوا أَنَّهُمْ قَدْ أَسْلَمُوا وَاسْتَمَدُّوهُ عَلَى

۳۰۹: محمد بن بشار. ابن عدي او سهل. سعید. قتاده. حضرت انسؓ نه روایت کوي، حضورؐ سره رعل، ذکوان، عصیه او بنو لحیان دا دعويٰ او کړه چه هغوئ اسلام راوړے دے، حضورؐ ته ئے د خپل قوم دَ پاره دَ امداد خواست اوکهٔ نو حضورؐ او یا انصار د هغوئ د امداد دَ پاره هغوئ ته حواله کړل. انسؓ اووے مونږ به هغے انصاروته قراء (قاریان) وئیلے. دے خلقو به دَ

قَوْمِهِمْ فَأَمَدَّهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسَبْعِيْنَ مِنَ الْأَنْصَارِ قَالَ أَنَسٌ كُنَّا نُسَمِّيْهِمُ الْقُرَّاءَ يَحْطِبُوْنَ بِالنَّهَارِ وَ يُصَلُّوْنَ بِاللَّيْلِ فَانْطَلَقُوْا بِهِمْ حَتّٰى بَلَغُوْا بِئْرَ مَعُوْنَةَ غَدَرُوْا بِهِمْ وَ قَتَلُوْهُمْ فَقَنَتَ شَهْرًا يَدْعُوْا عَلٰى رِعْلٍ وَّ ذَكْوَانَ وَ بَنِيْ لِحْيَانَ وَ قَالَ قَتَادَةُ وَ حَدَّثَنَا أَنَسٌ أَنَّهُمْ قَرَءُوْا بِهِمْ قُرْاٰنًا اَلَا بَلِّغُوْا قَوْمَنَا بِأَنَّا قَدْ لَقِيْنَا رَبَّنَا فَرَضِيَ عَنَّا وَ اَرْضَانَا ثُمَّ رُفِعَ بَعْدَ ذٰلِكَ.

ورخپے لرکي جمع کول او تـوله شپه به ئے مونځونه کول، نو هغه اويا زاهد او عبادت گذار قراء (د قرآن پاک قاريان) هغوئ سره روان شو او مقام بير معونه ته چه اورسيدل نو هغے خلقو دغے انصارو سره بے وفائي اوکړه او د سيلمے ئے شهيدان کړل، نو حضورؐ يو مياشت پورے قنوت کښے رعل ذکوان او بني لحيان ذ پاره بددعا اوکړله. قتاده اووے، د انسؓ بيان دے مسلمانانو دَ هغوئ په شان کښے يوے مودے پورے دا آيت لوستلو چه آگاه شئ او زمونږ قوم ته دا خبر اورسوئ چه مونږ خپل رب سره يوځائے شو هغه مونږ نه راضي شو او مونږ دَ هغه نه راضي يو بيا دا آيت ورستو منسوخ شو.

باب ۲۲۸: مَنْ غَلَبَ الْعَدُوَّ فَأَقَامَ عَلٰى عَرْصَتِهِمْ ثَلٰثًا.

باب ۲۲۸: په دشمن د فتح نه پس ميدان جنګ کښے درے ورځو پورے د ايساريدلو.

۳۱۰: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيْمِ حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ عَنْ قَتَادَةَ قَالَ ذَكَرَ لَنَا أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ عَنْ أَبِيْ طَلْحَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ إِذَا ظَهَرَ عَلٰى قَوْمٍ أَقَامَ بِالْعَرْصَةِ ثَلٰثَ لَيَالٍ تَابَعَهُ مُعَاذٌ وَ عَبْدُ الْأَعْلٰى حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ عَنْ أَبِيْ طَلْحَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۳۱۰: محمد بن عبدالرحيم. روح بن عباده. سعيد. قتاده نه روايت کوي مونږ ته حضرت انسؓ په واسطه د ابو طلحهؓ اووے، چه کوم وخت به رسول اکرم صلي اللّٰه عليه وسلّم په يو قوم غالب شولو نو درے ورځو پورے به ميدان جنګ کښے ايساريدلو، معاذ او عبدالاعلٰي دا حديث د سعيد، قتاده، حضرت انسؓ او ابو طلحهؓ په ذريعه دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم بيان کړيدے.

باب ۲۲۹: مَنْ قَسَّمَ الْغَنِيْمَةَ فِيْ غَزْوِهٖ وَ سَفَرِهٖ. وَ

باب ۲۲۹: د جهاد او سفر دوران کښے دَ مال غنيمت تقسيم کولو بيان. حضرت رافعؓ اووے، مونږ

قَالَ رَافِعٌ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِذِي الْحُلَيْفَةِ فَأَصَبْنَا غَنَمًا وَّ إِبِلًا فَعَدَلَ عَشَرَةً مِّنَ الْغَنَمِ بِبَعِيْرٍ.

رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم سره ذوالحليفه كښې مقيم وو هلته مونږ ته د مال غنيمت نه اوښان چيلۍ په لاس راغلې او حضورﷺ لس چيلۍ د يو اوښ مساوي اوګرځولې.

۳۱۱۱: حَدَّثَنَا هُدْبَةُ ابْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ اَنَّ اَنَسًا اَخْبَرَهُ قَالَ اِعْتَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْجِعِرَّانَةِ حَيْثُ قَسَّمَ غَنَائِمَ حُنَيْنٍ.

۳۱۱۱: هدبه بن خالد. همام. قتاده. حضرت انسؓ نه روايت كوي. حضورﷺ مقام جعرانه نه عمره اوكړه، هلته حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ جنګ حنين غنيمت تقسيم كړلو.

بَاب ۲۳۰: إِذَا غَنِمَ الْمُشْرِكُوْنَ مَالَ الْمُسْلِمِ ثُمَّ وَجَدَهُ الْمُسْلِمُ. قَالَ ابْنُ نُمَيْرٍ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ ذَهَبَ فَرَسٌ لَّهُ فَاَخَذَهُ الْعَدُوُّ فَظَهَرَ عَلَيْهِ الْمُسْلِمُوْنَ فَرُدَّ عَلَيْهِ فِيْ زَمَنِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَبَقَ عَبْدٌ لَّهُ فَلَحِقَ بِالرُّوْمِ فَظَهَرَ عَلَيْهِمُ الْمُسْلِمُوْنَ فَرَدَّهُ عَلَيْهِ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيْدِ بَعْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۲۳۰: دَ مسلمان مال چه مشرك لوټ كړي، بيا دا مال مسلمان بيامومي. ابن نمير. عبداللّٰه. نافع دَ ابن عمرؓ په ذريعه بيان اوكه چه دَ هغهٔ يو اس لاړ دشمن اونيولو. كوم وخت چه مسلمانانو په كافرو غلبه اوكړه، نو هغه اَس د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم په زمانه كښې ابن عمرؓ ته واپس كړے شو، او دَ هغهٔ يو غلام هم تښتيدلے وو، او روميانو سره يوځائے شوے وو، كوم وخت چه مسلمانانو په روميانو فتح بيامونده نو هغه غلام هم حضرت خالد بن وليد د حضورﷺ نه پس ابن عمرؓ ته واپس كړو.

۳۱۱۲: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنِيْ نَافِعٌ اَنَّ عَبْدًا لِّابْنِ عُمَرَ اَبَقَ فَلَحِقَ بِالرُّوْمِ فَظَهَرَ عَلَيْهِ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيْدِ فَرَدَّهُ عَلٰى عَبْدِ اللّٰهِ وَ اِنَّ فَرَسًا لِّابْنِ عُمَرَ عَارَ فَلَحِقَ بِالرُّوْمِ

۳۱۱۲: محمد بن بشار. يحيٰي. عبيداللّٰه. نافع نه روايت كوي. دَ حضرت ابن عمرؓ يو غلام اوتښتيد او روميانو سره يوځائے شولو. او حضرت خالد بن وليد چه كوم وخت روم فتح كه نو دَ حضرت عبداللّٰه بن عمرؓ هغه غلام ئے ورته واپس كړلو. د هغهٔ يو اَس هم روميانو ته ورغلے وو. د فتح نه پس هغه اَس هم هغه واپس

فَظَهَرَ عَلَيْهِ فَرَدَّهُ عَلٰى عَبْدِ اللّٰهِ.

کړو.

۳۱۳: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ عَنْ مُوْسَى ابْنِ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّهُ كَانَ عَلٰى فَرَسٍ يَوْمَ لَقِيَ الْمُسْلِمُوْنَ وَ اَمِيْرُ الْمُسْلِمِيْنَ يَوْمَئِذٍ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيْدِ بَعَثَهُ اَبُوْ بَكْرٍ فَاَخَذَهُ الْعَدُوُّ فَلَمَّا هُزِمَ الْعَدُوُّ رَدَّ خَالِدٌ فَرَسَهُ.

۳۱۳: احمد. زهیر. موسي. نافع نه روایت کوي. په کومه ورځ چه مسلمانانو رومیانو سره مقابله اوکړه په هغه ورځ عبدالله بن عمرؓ په یو اَس سور وو او خالد بن ولید د مسلمانانو سپه سالار وو چه حضرت ابوبکرؓ د فوځ سردار مقرر کړے وو. دغه اَس دشمن اونیولو. دے نه پس چه دشمنانوته شکست اوشو نو خالد بن ولید هغه اَس واپس کړلو.

باب ۱۲۳۱: مَنْ تَكَلَّمَ بِالْفَارِسِيَّةِ وَالرَّطَانَةِ. وَ قَوْلِهٖ تَعَالٰى وَاخْتِلَافُ اَلْسِنَتِكُمْ وَ اَلْوَانِكُمْ وَمَا اَرْسَلْنَا مِنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا بِلِسَانِ قَوْمِهٖ.

باب ۱۲۳۱: فارسي یا غیر عربي ژبه کښې خبرے اترے کول. او د اللّٰه تعالٰي فرمان' ستاسو دَ رنګ او ژبے اختلاف' او مونږ هر قوم کښے دَ هم زبان رسول اولیږلو.

۳۱۴: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ اَخْبَرَنَا حَنْظَلَةُ ابْنُ اَبِيْ سُفْيَانَ اَخْبَرَنَا سَعِيْدُ بْنُ مِيْنَآءَ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ذَبَحْنَا بُهَيْمَةً لَّنَا وَ طَحَنْتُ صَاعًا مِنْ شَعِيْرٍ فَتَعَالَ اَنْتَ وَ نَفَرٌ فَصَاحَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا اَهْلَ الْخَنْدَقِ اِنَّ جَابِرًا قَدْ صَنَعَ سُوْرًا فَحَيَّهَلًا بِكُمْ.

۳۱۴: عمرو بن علي. ابو عاصم. حنظله. ابوسفیان. سعید. حضرت جابر بن عبداللّٰهؓ نه روایت کوي. یوځلے ما عرض اوکه' یا رسول اللّٰه صلعم مونږ دَ چیلۍ یو وړوکے بچے ذبح کړیدے او یو صاع دَ وربشو اوړه مو پخکړي دي. نو تاسو څو سړو سره تشریف راوړئ' رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم اوچت آواز سره اوفرمائیل' اے اهل خندق' جابر طعام پخکړیدے زر کړئ چه دا دَ خوشخبرۍ خبره ده.

۳۱۵: حَدَّثَنَا حِبَّانُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ عَنْ خَالِدِ بْنِ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اُمِّ خَالِدٍ بِنْتِ خَالِدِ بْنِ سَعِيْدٍ قَالَتْ اَتَيْتُ رَسُوْلَ

۳۱۵: حبان. عبداللّٰه. خالد. سعید. اُم خالد. بنت خالد بن سعید نه روایت کوي. زه خپل پلار سره دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم په خدمت کښے حاضره شوم او ما دَ زیړ رنګ

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَ اَبِيْ وَعَلَيَّ قَمِيْصٌ اَصْفَرُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَنَهْ سَنَهْ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ وَهِيَ بِالْحَبْشِيَّةِ حَسَنَةٌ قَالَتْ فَذَهَبْتُ اَلْعَبُ بِخَاتَمِ النُّبُوَّةِ فَزَبَرَنِيْ اَبِيْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعْهَا ثُمَّ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَبْلِيْ وَاَخْلِفِيْ ثُمَّ اَبْلِيْ وَاَخْلِقِيْ ثُمَّ اَبْلِيْ وَاَخْلِقِيْ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ فَبَقِيَتْ حَتّٰى ذُكِرَ.

يو قميص اغوستے وو. رسول اللّه صلي اللّه عليه وسلّم اوفرمائيل، سنه، سنه عبداللّه وائي، د سنه معنے حبشي ژبه كښے حسنه او دَ ښه دي. بيا زۀ (اُم خالد) مهر نبوت سره په لوبو شوم نو خما پلار زۀ اوټوكلم. په دے خبره حضورؐ اوفرمائيل پريږده چه دا لوبے كوي، بيا حضورؐ ماته د عمر درازئ دعا اوكړه ورے فرمائيل، قميص زوړ كه، اووے شلوه، قميص زوړ كړه اووے شلوه او بيائے زوړ كړه اووے شلوه عبداللّٰه بن مبارك وائي چه اُم خالد دومره عمر بيامونده چه دَ هغے د عمر درازئ خلقو كښے چرچا كيدله.

۳۰۱۶: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ زِيَادٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ الْحَسَنَ بْنَ عَلِيٍّ اَخَذَ تَمْرَةً مِنْ تَمْرِ الصَّدَقَةِ فَجَعَلَهَا فِيْ فِيْهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْفَارِسِيَّةِ كَخْ كَخْ اَمَا تَعْرِفُ اَنَّا لَا نَاْكُلُ الصَّدَقَةَ.

۳۰۱۶: محمد بن بشار. غندر. شعبه. محمد بن زياد. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي. حضرت حسن بن عليؓ د صدقے دَ چوهارونه يوه چوهاره خپلے خوله كښے واچوله نو سرور كائنات صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، كخ، كخ آيا تۀ نه پوهيږے چه مونږ صدقه نه خورو. (فارسي ژبه كښے د كخ كخ معني ده تهو تهو (يعني تهو كه د خولے نه اوغرخوه).

بَابُ ۲۳۲: اَلْغُلُوْلِ وَقَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَمَنْ يَّغْلُلْ يَاْتِ بِمَا غَلَّ.

باب ۲۳۲: مال غنيمت كښے دَ خيانت كولو بيان او دَ اللّٰه تعالٰي فرمان، كوم سړے چه خيانت اوكړي نو په ورځ د محشر به هغه څيز راوړي چه دَ هغے ئے خيانت كړے وو.

۳۰۱۷: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ اَبِيْ حَيَّانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ زُرْعَةَ قَالَ

۳۰۱۷: مسدد. يحيٰي. ابوحيان. ابوزرعه. حضرت ابوهريره نه روايت كوي. يو ځلے حضورؐ زمونږ كښے اودريدلو او مال غنيمت كښے دَ خيانت ذكر ئے

حَـدَّثَـنِـيْ اَبُـوْ هُـرَيْـرَةَ قَالَ قَامَ فِيْنَا النَّبِيُّ صَلَّـى اللّٰـهُ عَلَيْـهِ وَسَلَّمَ فَـذَكَـرَ الْغُـلُـوْلَ فَـعَـظَّـمَـهُ وَ عَظَّمَ اَمْـرَهُ قَـالَ لَا اُلْـفِيَـنَّ اَحَـدَكُـمْ يَـوْمَ الْقِيَـامَةِ عَـلٰـى رَقَبَتِـهٖ شَاةٌ لَهَا ثُـغَـآءٌ عَـلٰـى رَقَبَتِـهٖ فَرَسٌ لَـهُ حَـمْحَـمَةٌ يَـقُـوْلُ يَـا رَسُـوْلَ اللّٰـهِ اَغِثْـنِـيْ فَـاَقُـوْلُ لَا اَمْـلِكُ لَكَ شَيْـئًـا قَـدْ اَبْـلَـغْـتُكَ وَ عَـلٰـى رَقَبَتِـهٖ بَعِيْـرٌ لَهُ رُغَاءٌ يَقُوْلُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَغِثْنِيْ فَاَقُوْلُ لَا اَمْلِكُ لَكَ شَيْئًا قَدْ اَبْلَغْتُكَ وَ عَلٰى رَقَبَتِهٖ صَامِتٌ فَيَقُوْلُ يَا رَسُوْلَ اللّٰـهِ اَغِثْنِيْ فَاَقُوْلُ لَا اَمْلِكُ لَكَ شَيْئًا قَـدْ اَبْـلَـغْـتُكَ وَ عَـلٰـى رَقَبَتِـهٖ رِقَـاعٌ تَـخْـفِقُ فَيَقُوْلُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَغِثْنِيْ فَاَقُوْلُ لَا اَمْلِكُ لَكَ شَيْئًا قَدْ اَبْلَغْتُكَ وَ قَـالَ اَيُّـوْبُ عَـنْ اَبِـيْ حَيَّانَ فَرَسٌ لَهُ حَمْحَمَةٌ.

اوکه چه دا ډیره لویه ګناه او جرم دے، وے فرمائیل د قیامت په ورخ څوک دے حالت کښې بیا نه مومم چه د هغه په ګردن به بیړ بیړ کونکے چیلۍ سوره وي او د هغه په ګردن به هنړیدونکے اَس سورروي او هغه خائن به وائي، یا رسول اللّٰهؐ مدد م اوکړه، نو زهٔ به ورته وایم ستا دَ پاره څما هیڅ اختیار نشته، ما درته حکم الٰهي رسولے وو، او دَ هغه په ګردن به بو جدار اوښ برېږ کړي هغه خیانت ګر به وائي یا رسول اللّٰهؐ څما امداد اوکړه. زهٔ به ورته وایم دا څما دَ اختیار نه بهر خبره ده ما خو درته احکام الٰهي رسولے وو. اوکه د هغهٔ په ګردن سرهٔ زر سپین زر وي. او هغه ماته اووائي، یا رسول اللّٰه امداد اوکړه، نو زهٔ به ورته وایم، ستا د پاره څما په اختیار کښې هیڅ نشته، ما درته د خدائے احکام رسولے وو یا به دَ هغه په ګردن د جامو ټکړے وي او خوزیږي. او هغه به وائي یا رسول اللّٰهؐ فریاد له راورسه نو زهٔ به ورته وایم اوس څما اختیار نشته، ما درته د خدائے احکام رسولے وو. ایوب دَ ابو حیان په واسطه د فرس له حمحمة الفاظ روایت کړے دے.

## بَـابٌ ۲۳۳ : اَلْـقَـلِـيْـلِ مِـنَ الْـغُـلُـوْلِ وَلَـمْ يَـذْكُـرْ عَبْـدُ اللّٰـهِ بْـنُ عَـمْـرٍو عَـنِ النَّبِـيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْـهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ حَرَّقَ مَتَاعَهٗ وَ هٰذَا اَصَحُّ.

## باب ۲۳۳ : دَ مال غنیمت نه لږ شان اخستلو بیان.

عبداللّٰه بن عمرؓ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم نه دا روایت نه دے کړے چه حضورؐ د داسے خیانت کونکي سړي مال و متاع سوزولي وي، او دا بیان صحیح دے.

۳۱۸: حَـدَّثَـنَا عَلِيُّ ابْنُ عَبْدِ اللّٰـهِ حَـدَّثَـنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ سَـالِمِ بْـنِ اَبِـى الْجَعْدِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ

۳۱۸: علي. سفیان. عمرو. سالم بن ابي الجعد. عبداللّٰه بن عمرؓ نه روایت کوي چه کرکره نومے یو سړے د رسول اللّٰه صلي اللّٰه

بْنِ عَمْرٍو وَقَالَ كَانَ عَلَى ثَقَلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ يُقَالُ لَهُ كِرْكِرَةُ فَمَاتَ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هُوَ فِي النَّارِ فَذَهَبُوا يَنْظُرُونَ إِلَيْهِ فَوَجَدُوا عَبَاءَةً قَدْ غَلَّهَا قَالَ أَبُو عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ ابْنُ سَلَامٍ كَرْكَرَةُ يَعْنِي بِفَتْحِ الْكَافِ وَهُوَ مَضْبُوطٌ كَذَا.

عليه وسلم په اسباب مقرر وو. كوم وخت چه هغه وفات شو. نو حضورً اوفرمائيل هغه دوزخي دے. بيا خلقو د هغه تفتيش كولو. نو هغوی د هغه په سامان كښے يوه څڼه اوليده. چه هغه خيانت كړے وه. او د مال غنيمت نه نے پټه كړے وه¹. د ابو عبدالله بيان دے. ابن اسلام اووے چه كركره د كاف زبر سره دے. او دا شان محفوظ دے.

۱. يعني د څنا خيانت اگرچه يو معمولي خيانت وو ليكن ددے سزا به هم دے خوري. د هسدے گناه په وجے سره حضور صلي الله عليه وسلم هغه لذه جهنم ته داخليدلو باره كښے اوفرمائيل.

## بَابٌ ۲۳۴: مَا يُكْرَهُ مِنْ ذَبْحِ الْإِبِلِ وَالْغَنَمِ فِي الْمَغَانِمِ.

## باب ۲۳۴: د مال غنيمت د اوښانو او چيلو د ذبح كولو د كراهت بيان.

۳۱۹: حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ سَعِيدِ بْنِ مَسْرُوقٍ عَنْ عَبَايَةَ بْنِ رِفَاعَةَ عَنْ جَدِّهِ رَافِعٍ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِذِي الْحُلَيْفَةِ فَأَصَابَ النَّاسَ جُوعٌ وَأَصَبْنَا إِبِلًا وَغَنَمًا وَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي أُخْرَيَاتِ النَّاسِ فَعَجِلُوا فَنَصَبُوا الْقُدُورَ فَأَمَرَ بِالْقُدُورِ فَأُكْفِئَتْ ثُمَّ قَسَمَ فَعَدَلَ عَشَرَةً مِنَ الْغَنَمِ بِبَعِيرٍ فَنَدَّ مِنْهَا بَعِيرٌ وَفِي الْقَوْمِ خَيْلٌ يَسِيرٌ فَطَلَبُوهُ فَأَعْيَاهُمْ

۳۱۹: موسي بن اسمٰعيل. ابو عوانه. سعيد بن مسروق. عبايه. رافع بن خديج نه روايت كوي. مقام ذوالحليفه كښے مونږ رسول الله صلي الله عليه وسلم سره قيام او كړ، هلته خلق اوږي شو، او مونږ ته څه چيلي په لاس راغلے وے، او حضورً د خلقونه لږ ورستو وو نو هغوی په تادئ تادئ كټوئ اوخيژولے حضورً چه تشريف راوړلو نو د هغے كټوو د اړولو حكم ئے اوكړلو. نو ټولے واړولے شوے. دے نه پس حضورً لس چيلئ د يو اوښ مساوي اوګرځولے، او مال غنيمت ئے تقسيم كړلو. هغے كښے يو اوښ اوتښتيدلو خلقو سره آسونه ډير كم وو. هغوئ ټولو اؤښ پسے په منډه شول. ليكن تهول ستړي شول بيا يو سړي هغه اوښ په غشي اوويشتلو، چه هغے سره اوښ اودريدلو نو حضورً اوفرمائيل دے خناورو كښے خنے خناور د وحشيانو

فَـأَهْـوٰی اِلَيْـهِ رَجُـلٌ بِسَهْمٍ فَحَبَسَـهُ اللّٰـــهُ فَـقَـالَ هٰذِهِ الْبَهَـائِـمُ لَهَـا اَوَابِـدُ كَـأَوَابِـدِ الْـوَحْــشِ فَـمَـا نَدَّ عَـلَيْـكُـمْ فَـاصْـنَـعُـوْا بِـهٖ هٰـكَـذَا فَـقَـالَ جَـدِّيْ اِنَّـا نَـرْجُوْ اَوْ نَخَافُ اَنْ نَـلْـقَـىْ الْـعَـدُوَّ غَـدًا وَ لَيْــسَ مَـعَـنَـا مُـدًى اَفَـنَـذْبَحُ بِالْقَصَبِ فَقَالَ مَـا اَنْهَـرَ الـدَّمَ وَ ذُكِـرَ اسْـمُ اللّٰـهِ عَـلَيْـهِ فَـكُـلْ لَيْــسَ السِّنَّ وَالظُّفُرَ وَ سَـاُحَـدِّثُـكُـمْ عَـنْ ذٰلِكَ اَمَّـا السِّنُّ فَعَظْمٌ وَالظُّفُرُ فَمُدَى الْحَبَشَةِ.

ځنـاورو پـه شـان وحشـي کيږي، کوم چـه دے کښے سـر کشي اوکړي تاسوهم ورسره دغسے معامله کوئ په دے خبـره ځـما نيکهٔ (دادا) اووے مونږ ته صبا له دشمن سره دَ مقابلے خوف دے او مونږ سره چاقو نشته اوښائي چـه آيـا مـونـږ بـانـړس سـره ذبيحـه اوکړو نو حضورؐ اوفـرمـائيـل کـوم څيـز چـه دَ ځـنـاورو د ګردن نـه وينه اوبهيـوي او دَ ذبـح پـه وخـت پـرے دَ اللّٰه نوم اخستے شـوے وي، نـو هـغـه خورئ پـه شرط ددے چـه غاښ او نـوک سـره ذبـح شـوے نه وي. او د هغے اِصل وجه هم تاسوته ښايم، چه غاښ اصل کښے هډوکے دے او نوک نه حبشيان دَ ذبح کار اخلي.

بـاب ۲۳۵: اَلْـبَـشَـارَةِ فِـى الْفُتُوْحِ.

بـاب ۲۳۵: د فتـوحـاتـو د بشـارت ورکولو بيان.

۳۲۰: حَـدَّثَـنَـا مُـحَـمَّـدُ بْـنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَـالَ حَـدَّثَـنِـىْ قَيْسٌ وَّ قَالَ لِىْ جَرِيْرُ بْـنُ عَبْـدِ الـلّٰـهِ قَالَ لِىْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَـلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلَا تُرِيْحُنِىْ مِـنْ ذِى الْـخَـلَـصَةِ وَ كَـانَ بَيْتًـا فِيْـهِ خَـثْـعَـمُ شَعْبَةَ الْيَمَانِيَّةِ فَانْطَلَقْتُ فِىْ خَـمْـسِيْـنَ وَ مِائَةٍ مِنْ اَحْمَسَ وَ كَانُوْا اَصْـحَابَ خَيْلٍ فَاَخْبَرْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنِّىْ لَا اَثْبُتُ عَلَى الْـخَيْـلِ فَـضَـرَبَ فِـىْ صَدْرِىْ حَتّٰى رَاَيْتُ اَثَـرَ اَصَـابِعِهٖ فِىْ صَدْرِىْ فَقَالَ اَللّٰهُمَّ ثَبِّتْـهُ وَاجْـعَـلْـهُ هَادِيًا مَّهْدِيًّا

۳۲۰: مـحـمـد بن مثنى. يحيٰى. اسمٰعيل. قيس. جـريـر بـن عبـداللّٰه روايت کوي، حضورؐ ماته اوفرمائيل تـاسو خلق دَ ذي الخلصه تباه کولو سره ماته خوشخبري ولـے نـه راکـوئـے. ذي الـخلصه اصل کښے يو مکان وو هغے کښے به بنو خثعم اوسيدل، او هغوئ به ورته کعبه يـمانيه وئيلے. زهٔ دَ بنو احمس يو نيم سل اَس سورو سره روان شـوم، او مـا حـضـورؐ تـه عـرض اوکهٔ چه زهٔ په اَس تـينـک کـينـاستے نشم، نو حضور ځما سينه اوټپوله چه هـغـے سـره د مبـارکـو ګـوتـے نښـے مـا پـه خپلے سينے اوليـدلـے. بيا حضورؐ اوفرمائيل اے اللّٰه جرير له د اس په سـوريـدو ثبـات ورکـړے. او هـغـه هدايت کوونکے او هـدايـت يافته جوړ کړے، بيا زمونږ تـولـے هغے بت خانے طرف تـه روان شـولـو. او هـغـه مـو تـس نـس کړله. بيا

فَانْطَلَقَ اِلَيْهَا فَكَسَرَهَا وَ حَرَّقَهَا فَاَرْسَلَ اِلَي النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُبَشِّرُهُ فَقَالَ رَسُوْلُ جَرِيْرٍ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَالَّذِيْ بَعَثَكَ بِالْحَقِّ مَا جِئْتُكَ حَتّٰى تَرَكْتُهَا كَاَنَّهَا جَمَلٌ اَجْرَبُ فَبَارَكَ عَلٰى خَيْلِ اَحْمَسَ وَ رِجَالِهَا خَمْسَ مَرَّاتٍ قَالَ مُسَدَّدٌ فِيْ خَثْعَمَ.

حضور ته مو د خوش خبرئ د پاره يو قاصد اوليږلو. د جرير هغه قاصد دربار رسالت كښې عرض اوكړ: يا رسول الله صلعم قسم دے په هغه ذات چه تاسوئ په حقه راليږلے يئ تاسو ته د راتلو نه مخكښې ما هغه بت خانه د خارښي اوښ په شان پريښے ده نو حضورؐ د قبيله احمس او د هغوي د سورو د پاره پنځه خله د بركت دعا اوكړله. مسدد اووے چه ذي الخلصه د بنو خشعم بت خانه وه.

## بَابُ ٢٣٦: مَا يُعْطِيَ لِلْبَشِيْرِ. وَ اَعْطٰى كَعْبُ بْنُ مَالِكٍ ثَوْبَيْنِ حِيْنَ بُشِّرَ بِالتَّوْبَةِ.

## باب ۲۳۶: خوشخبري وركونكي ته د انعام وركولو بيان. كعب بن مالك د توبے قبليدو په خوشحالئ كښے خوشخبري وركونكي ته دوه كپړے وركړلے.

## بَابُ ٢٣٧: لَا هِجْرَةَ بَعْدَ الْفَتْحِ.

## باب ۲۳۷: د مكے د فتح نه پس د هجرت باقي نه پاتے كيدل[۱].

۱. مراد خاص د مكے معظمے نه مدينے منورے ته هجرت دے. يعني مخكښے چه كله مكه دارالاسلام نه وو او مسلمانانو ته د اسلام احكام په ځائے راوړلو هلته آزادي نه وه نو د هغه ځائے نه هجرت ضروري او د اجر او ثواب باعث وو ليكن اوس مكه د اسلامي او الٰهي حكومت لاندے راغلے ده' دے د پاره ددے ځائے نه د هجرت كولو هيڅ سوال باقي پاتے نشو. دا معني ئے هر گز نه ده چه د هجرت حكم د سره ختم شو ولے چه تر څو پورے چه د اسلام او كفر كشمكش باقي دے تر هغه وخته پورے د هر هغه ملك نه چرته چه مسلمانانو ته په الٰهي احكامو باندے د عمل آزادي نيشته هغه ځائے نه هجرت ضروري او فرض دے.

۳۲۱: حَدَّثَنَا اٰدَمُ بْنُ اَبِيْ اَيَاسٍ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ طَاوٗسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ لَا هِجْرَةَ وَلٰكِنْ جِهَادٌ وَّ نِيَّةٌ وَ اِذَا اسْتُنْفِرْتُمْ فَانْفِرُوْا.

۳۲۱: آدم. شيبان. منصور. مجاهد. طاؤس. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي رسول الله صلي الله عليه وسلّم د مكے د فتح په ورځ اوفرمائيل اوس هجرت باقي پاتے نه شو' خو جهاد او د نيك نيتئ ثواب باقي دے' او كله چه تاسو خلق جهاد د پاره طلب كړيشئ نو سمدستي حاضريږئ.

۳۲۲: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ

۳۲۲: ابراهيم. زيد. خالد. ابو

مُوْسٰى اَخْبَرَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ عَنْ خَالِدٍ عَنْ اَبِيْ عُثْمَانَ النَّهْدِيِّ عَنْ مُجَاشِعِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ جَاءَ مُجَاشِعٌ بِاَخِيْهِ مُجَالِدِ بْنِ مَسْعُوْدٍ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ هٰذَا مُجَالِدٌ يُبَايِعُكَ عَلَى الْهِجْرَةِ فَقَالَ لَا هِجْرَةَ بَعْدَ فَتْحِ مَكَّةَ وَلٰكِنْ اُبَايِعُهُ عَلَى الْاِسْلَامِ.

عثمان نهدي. مجاشع بن مسعود نه روایت کوي. مجاشع خپل وورر مجالد بن مسعودؓ د حضورؐ خدمت کښې حاضر ک او عرض ئے اوکړ چه مجالد تاسو نه پ هجرت بیعت کول غواړي نو ارشاد اوش چه د مکې د فتح نه پس هجرت باقي نه د پاتې شوے. لیکن اسلام باندې د هغه بیع اخلم.

۳۲۳: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ عَمْرُو ابْنُ جُرَيْجٍ سَمِعْتُ عَطَاءً يَقُوْلُ ذَهَبْتُ مَعَ عُبَيْدِ بْنِ عُمَيْرٍ اِلٰى عَائِشَةَ وَهِيَ مُجَاوِرَةٌ بِثَبِيْرٍ فَقَالَتْ لَنَا انْقَطَعَتِ الْهِجْرَةُ مُنْذُ فَتَحَ اللّٰهُ عَلٰى نَبِيِّهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَّةَ.

۳۲۳: علي. سفیان. عمرو بن جریج. عطاء نه روایت کوي، هغهٔ اووے، ما خان سره عبید بن عمر ملګرے که، او بي بي عائشې صدیقېؓ له ورغلو. هغهٔ ثبیر غر سره تشریف فرما وه نو هغې مونږ ته اوفرمائیل د کو وخت نه چه پروردګار عالم خپل پاک حبیبؐ له په مکا فتح ورکړه نو د هغې وخت نه هجرت باقي پاتې شوې نه دے.

باب ۲۳۸: اِذَا اضْطَرَّ الرَّجُلُ اِلَى النَّظَرِ فِيْ شُعُوْرِ اَهْلِ الذِّمَّةِ وَالْمُؤْمِنَاتِ اِذَا عَصَيْنَ اللّٰهَ وَتَجْرِيْدِهِنَّ.

باب ۲۳۸: د ذمي ښځو او نافرمان مسلمانو ښځو د ویښتو کتلو او د هغوی بربنډولو ضرورت باندې د مجبوره کیدونکي سړ بیان.

۳۲۴: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ حَوْشَبٍ الطَّائِفِيُّ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ اَخْبَرَنَا حُصَيْنٌ عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ عَنْ اَبِيْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ وَكَانَ عُثْمَانِيًّا فَقَالَ لِابْنِ عَطِيَّةَ وَكَانَ عَلَوِيًّا اِنِّيْ لَاَعْلَمُ مَا الَّذِيْ جَرَّاَ صَاحِبَكَ

۳۲۴: محمد. هشیم. حصین. سعد. اب عبدالرحمٰن عثماني نه روایت کوي! ما ابن عطیه علو ته اووے. زهٔ ښه پوهیږم چه کوم څیز ستاسو پیرو مرش په خونریزۍ زړور کړلو؟ ما د هغه نه دا اوریدلي د چه رسول الله صلعم ما (عليؓ) او زبیرؓ ته فلاني باغ ته تلو حکم ورکړلو. اووے فرمائیل هلته به تاسو یوه ښځ اووینئ چه هغې ته حاطب یو خط ورکړیدے. مونږ با

عَلَى الدِّمَاءِ سَمِعْتُهُ يَقُولُ بَعَثَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالزُّبَيْرَ فَقَالَ ائْتُوا رَوْضَةَ كَذَا وَ تَجِدُوْنَ بِهَا امْرَأَةً أَعْطَاهَا حَاطِبٌ كِتَابًا فَأَتَيْنَا الرَّوْضَةَ فَقُلْنَا الْكِتَابَ قَالَتْ لَمْ يُعْطِنِي فَقُلْنَا لَتُخْرِجِنَّ أَوْلَاُجَرِّدَنَّكِ فَأَخْرَجَتْ مِنْ حُجْزَتِهَا فَأَرْسَلَ إِلٰى حَاطِبٍ فَقَالَ لَا تَعْجَلْ وَاللّٰهِ مَا كَفَرْتُ وَلَا ازْدَدْتُ لِلْإِسْلَامِ إِلَّا حُبًّا وَلَمْ يَكُنْ أَحَدٌ مِنْ أَصْحَابِكَ إِلَّا وَلَهُ بِمَكَّةَ مَنْ يَدْفَعُ اللّٰهُ بِهِ عَنْ أَهْلِهِ وَمَالِهِ وَلَمْ يَكُنْ لِيْ أَحَدٌ فَأَحْبَبْتُ أَنْ أَتَّخِذَ عِنْدَهُمْ يَدًا فَصَدَّقَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ عُمَرُ دَعْنِيْ أَضْرِبْ عُنُقَهُ فَإِنَّهُ قَدْ نَافَقَ فَقَالَ مَا يُدْرِيْكَ لَعَلَّ اللّٰهَ اطَّلَعَ عَلٰى أَهْلِ بَدْرٍ فَقَالَ اعْمَلُوْا مَا شِئْتُمْ فَهٰذَا الَّذِيْ جَرَّأَهُ.

تـه اورسيدو او ذ هغې ښځې نه مو هغه خط اوغوښتلو. هغې جواب راكړو. حاطب خو ماته څه خط نه دے راكړے مونږ ورته اووے. هغه خط راوكاږه. كني مونږ به دِ بربنډه كړو. بيا هغې هغه خط د كمسى نه راوښكلو (چه مونږ دربار رسالتؐ كښې پيش كړلو) په هغې حضورؐ حاطب راوغښتلو او عرض ئے اوكړلو. تاسوّ تادي مۀ كوئ پـه اللّٰه م دِ قسم وي ما څه كفر نه دے كړے او اسلام كښې م د څه نوي څيز زياتے هم نه دے كړے او ماتـه اسلام زيات محبوب دے واقعه داده چه ستاسو صحابه ؤ كښې يو سړے هم داسې نشته چه ذ هغه دے مكه كښې څوک عزيز نه وي او هغه سره اللّٰه د هغه د اهل و عيال او مال و اسباب حفاظت نه كوي. ليكن هلته خما هيڅوک نشته. په دے وجه ما دا سوچ اوكه چه زۀ بـه په هغوئ يو احسان اوكړم. نو حضورؐ د هغۀ د خبرے تصديق اوفرمائيلو. حضرت عمرؓ عرض اوكه حضورؐ ماته اجازت راكړئ چه زۀ دده كردن والوخوم. خكه چه دے منافق دے. حضورؐ ورته اوفرمائيل تاته نه ده معلومه چه اللّٰه تعالٰي ذ اهل بدر حال پيژني او هغه فرمائيلي دي، اے بدر والو تاسو چه څه غواړئ هغه كوئ نو دے خبرے هغه لره جري او دلير جوړ كړيدے.

۱. چه كومو خلقو به حضرت عثمان رضي اللّٰه عنه له په حضرت علي رضي اللّٰه عنه باندے فضيلت وركولو سلفو به هغوئ ته عثماني وئيل او چا به چه حضرت علي رضي اللّٰه عنه له په حضرت عثمان رضي اللّٰه عنه باندے فضيلت وركولو هغوئ ته به ئے علوي وئيل. دا اصطلاح تر يوے زمانے پورے باقي وه، بيا ختمه شوے وه.

۲. پـه حقيقت كښې په دے كښې حضرت علي رضي اللّٰه عنه سره لږ شان د بے ادبئ اړخ راؤزي، حضرت علي رضي اللّٰه عنه د عدل او انصاف نمونه وو او معاذ اللّٰه هغوئ په ناحقه د چا وينه بهيولے نه وه. ليكن كله چه په دوؤ فريقو كښې دا قسمه خبرے اترے كيږي نو څه سخت او تيز الفاظ د ژبے نه اوځي. دا

خبره هم نه ده چه حضرت ابي عبدالرحمن د حضرت علي رضي الله عنه د عظمت او د هغوی مرتبې نه غافله وو. صرف د افضليت او مفضوليت حده پورې خبره وه.

## بَاب ۲۳۹ : اسْتِقْبَالِ الْغُزَاةِ.

۳۲۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِي الْاَسْوَدِ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ وَ حُمَيْدُ بْنُ الْاَسْوَدِ عَنْ حَبِيْبِ ابْنِ الشَّهِيْدِ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ قَالَ ابْنُ الزُّبَيْرِ لِابْنِ جَعْفَرٍ اَتَذْكُرُ اِذْ تَلَقَّيْنَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَا اَنْتَ وَابْنُ عَبَّاسٍ قَالَ نَعَمْ فَحَمَلَنَا وَ تَرَكَكَ.

۳۲۶: حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ قَالَ السَّائِبُ بْنُ يَزِيْدَ ذَهَبْنَا فَتَلَقَّى رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَ الصِّبْيَانِ اِلٰى ثَنِيَّةِ الْوَدَاعِ.

## بَاب ۲۴۰ : مَا يَقُوْلُ اِذَا رَجَعَ مِنَ الْغَزْوِ.

۳۲۷: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا قَفَلَ كَبَّرَ ثَلٰثًا قَالَ اٰئِبُوْنَ اِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَائِبُوْنَ عَابِدُوْنَ حَامِدُوْنَ لِرَبِّنَا سَاجِدُوْنَ صَدَقَ اللّٰهُ وَعْدَهٗ وَ نَصَرَ عَبْدَهٗ وَ هَزَمَ الْاَحْزَابَ

## باب ۲۳۹ : د غازيانو د استقبال كولو بيان.

۳۲۵: عبدالله بن ابي الاسود. يزيد بن زريع او حميد بن الاسود. حبيب بن الشهيد. ابن ابي مليكه نه روايت كوي. حضرت ابن زبير. حضرت ابن جعفر ته اووې. تاته به ياد وي كوم وخت چه زۀ، تۀ او حضرت ابن عباس د رسول الله صلي الله عليه وسلم استقبال د پاره راغلو. هغه اووې او، حضور مونږه سوارۀ كړلو او تۀ ئې پريښودې.

۳۲۶: مالك بن اسمٰعيل. ابن عيينه. زهري. سائب بن يزيد نه روايت كوي. مونږ به هلكان ځان سره كړل او ثنية الوداع پورې به د رسول صلي الله عليه وسلم د استقبال (په خيره راغلے د پاره) به تلو.

## باب ۲۴۰ : جهاد نه چه واپس شي نو څه به وائي.

۳۲۷: موسى. جويريه. نافع. عبدالله بن عمرؓ نه روايت كوي چه حضورؐ به د جهاد نه واپس شولو. نو درې ځل به ئې تكبير (الله اكبر) وئيلے، او فرمائيل به ئې مونږ واپس راغلو، انشاء الله توبه كونكي پوخ عبادت گزار كيدونكي او د خپل پروردګار تعريف به كوو او ښې سجدې به كوو. الله تعالي خپله وعده رېښتنې اوښودله، او د خپل بنده مدد ئې اوكه او د كافرو

وَعُدَّةً.

جماعتونه ئے تس نس کړل.

۳۲۸: حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ قَالَ حَدَّثَنِيْ يَحْيٰى بْنُ اَبِيْ اِسْحَاقَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى رَاحِلَتِهٖ وَقَدْ اَرْدَفَ صَفِيَّةَ بِنْتَ حُيَيٍّ فَعَثَرَتْ نَاقَتُهٗ فَصُرِعَا جَمِيْعًا فَاقْتَحَمَ اَبُوْ طَلْحَةَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ جَعَلَنِي اللّٰهُ فِدَاءَكَ قَالَ عَلَيْكَ الْمَرْاَةَ فَقَلَبَ ثَوْبًا عَلٰى وَجْهِهٖ وَ اَتَاهَا فَاَلْقَاهَا عَلَيْهَا وَ اَصْلَحَ لَهُمَا مَرْكَبَهُمَا فَرَكِبَا وَاكْتَنَفْنَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا اَشْرَفْنَا عَلَى الْمَدِيْنَةِ قَالَ اٰيِبُوْنَ تَائِبُوْنَ عَابِدُوْنَ لِرَبِّنَا حَامِدُوْنَ فَلَمْ يَزَلْ يَقُوْلُ ذٰلِكَ حَتّٰى دَخَلَ الْمَدِيْنَةَ.

۳۲۸: ابومعمر. عبدالوارث. يحيي بن اسحاق. حضرت انس بن مالک نه روايت کوي. عسفان نه په واپسئ مونږ د حضور صلي الله عليه وسلم همرکاب وو او رسول الله صلي الله عليه وسلم په اوښه سور وو او خپله بي بي صفيه بنت حي ئے خان پسے سوره کړے وه. د حضورؐ د اوښے پښه اوخوئيده. دواړه راوغورځيدل نو ابو طلحهؓ د خپلے سورلئ نه راودانګل او عرض ئے اوکه اے سرور عالمؐ الله دِ ما په تاسو قربان کړي. نو حضورؐ ورته اوفرمائيل، ته صفيهؓ لره اوګوره (يعنے د هغے خبر واخله) نو ابو طلحهؓ په خپل مخ څادر واچولو صفيےؓ له ورغے او په هغے ئے څادر واچولو او دواړو د پاره ئے سورلي ټيک ټاک کړه. هر کله چه هغوئ دواړه سوارهٔ شو. نو مونږ د رسول الله صلي الله عليه وسلم په اطرافو حلقه جوړه کړه او کوم وخت چه مدينے منورے ته نزدے شو نو حضورؐ مدينے منورے ته رسيدو پورے ائبون، تائبون، عابدون لربنا حامدون فرمائيل (ددے دعا ترجمه حديث ۳۲۷ کښے تيره شويده).

۳۲۹: حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ اَبِيْ اِسْحَاقَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّهٗ اَقْبَلَ هُوَ وَ اَبُوْ طَلْحَةَ وَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَفِيَّةُ مُرْدِفُهَا عَلٰى رَاحِلَتِهٖ فَلَمَّا كَانُوْا بِبَعْضِ الطَّرِيْقِ عَثَرَتِ النَّاقَةُ فَصُرِعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۳۲۹: علي. بشر بن المفضل. يحيي بن ابي اسحٰق. حضرت انسؓ بن مالک نه روايت کوي. هغه او ابو طلحهؓ دواړه حضورؐ سره سفر کښے ملګرے وو، او حضور صلعم خان پسے خپله بي بي صفيهؓ سوره کړے وه. لار کښے د اوښے پښه اوخوئيده نو حضورؐ سره د بي بي راوغورځيدلو. حضرت انسؓ وائي ماته ياد دي

وَالْمَرْأَةَ وَ اِنَّ اَبَا طَلْحَةَ قَالَ اُحْسِبُ قَالَ اِقْتَحَمَ عَنْ بَعِيْرِهٖ فَاَتَى رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ جَعَلَنِيَ اللّٰهُ فِدَاكَ هَلْ اَصَابَكَ مِنْ شَيْءٍ قَالَ لَا وَلٰكِنْ عَلَيْكَ بِالْمَرْاَةِ فَاَلْقٰى اَبُوْ طَلْحَةَ ثَوْبَهٗ عَلٰى وَجْهِهٖ فَقَصَدَ قَصْدَهَا فَاَلْقٰى ثَوْبَهٗ عَلَيْهَا فَقَامَتِ الْمَرْاَةُ فَشَدَّلَهُمَا عَلٰى رَاحِلَتِهِمَا فَرَكِبَا فَسَارُوْا حَتّٰى اِذَا كَانُوْا بِظَهْرِ الْمَدِيْنَةِ اَوْ قَالَ اَشْرَفُوْا عَلَى الْمَدِيْنَةِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اٰئِبُوْنَ تَائِبُوْنَ عَابِدُوْنَ لِرَبِّنَا حَامِدُوْنَ فَلَمْ يَزَلْ يَقُوْلُهَا حَتّٰى دَخَلَ الْمَدِيْنَةَ.

چه ابو طلحهٔ د خپلے اوښے نه راټوپ کړو او د حضورؐ په خدمت کښے حاضر شو او عرض ئے اوکه اے سرور عالمؐ الله دِ ما په تاسو قربان کړي تاسو ته خو څه چوټ (خوږوالے) نه دے رسيدلے حضورؐ ورته اوفرمائيل نه، خو د بي بي حال معلوم کړه. نو ابو طلحهٔ په خپل مخ کپړه واچوله. او د بي بي صفيهٔ ارخ ته ورغے او په هغے ئے څادر واچولو. نو بي بي صفيهٔ راپاسيده بيا ئے دواړو سورلي تيک کړے شوه نو دواړه سواره شو روان شولو تردے چه کوم وخت د مدينے ميدان کښے وو. يا مدينه منوره د لرے نه ليدے شوه، نو حضورؐ فرمائيل شروع کړل آئبون، تائبون، عابدون لربنا، حامدون او دے دعا لوستو سره مدينه کښے داخل شو ترجمه ئے مخکښے تيره شوے ده.

## باب ۱۴۴: الصَّلٰوةِ اِذَا قَدِمَ مِنْ سَفَرٍ.

## باب ۱۴۴: سفر نه په واپسئ د مونځ کولو بيان.

۳۳۰: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُحَارِبِ ابْنِ دِثَارٍ قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ سَفَرٍ فَلَمَّا قَدِمْنَا الْمَدِيْنَةَ قَالَ لِيْ اُدْخُلِ الْمَسْجِدَ فَصَلِّ رَكْعَتَيْنِ.

۳۳۰: سليمان بن حرب. شعبه. محارب بن دثار. حضرت جابرؓ بن عبدالله نه روايت کوي، چه زهٔ يو سفر کښے د حضورؐ همر کاب ووم، کوم وخت چه مونږ مدينے ته راورسيدو نو حضورؐ ماته او فرمائيل جمات ته لاړ شه دوه رکعته مونځ اوکړه.

۳۳۱: حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ كَعْبٍ عَنْ

۳۳۱: ابو عاصم. ابن جريج. ابن شهاب. عبدالرحمٰن بن عبدالله بن کعب نه روايت کوي. چه

كَعْبٍ عَنْ اَبِيْهِ وَ عَمِّهٖ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ كَعْبٍ عَنْ كَعْبٌ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا قَدِمَ مِنْ سَفَرٍ ضُحًى دَخَلَ الْمَسْجِدَ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ اَنْ يَجْلِسَ.

د چاشت په وخت به رسول الله صلي الله عليه وسلم چه د سفر نه واپس راغے نو د ناستے نه مخکښے به ئے دوه رکعاته نمونځ ادا کۀ.

## بَابٌ ۲۴۲: اَلطَّعَامِ عِنْدَ الْقُدُوْمِ. وَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ يُفْطِرُ لِمَنْ يَغْشَاهُ.

## باب ۲۴۲: په مسافر د راتلو په وخت د طعام خوررولو بيان[۱] او ابن عمرؓ به په هر سړي چه په هغه به نمابنام شو افطار کولو (طعام خوړلو).

۱. د حضرت ابن عمر رضي الله عنه دا عادت وو چه په سفر کښے به ئے روژه نه نيوله نه فرض او نه نفل. البته کله به چه په کور کښے مقيم وو نو په کثرت سره به ئے روژے نيولے. مطلب دا دے چه اګر چه د ابن عمر رضي الله عنه عادت د اقامت په حالت کښے په کثرت سره د روژو نيولو وو ليکن کله به چه هغوی د سفر نه واپس راتلل نو يو دوه ورځے به ئے په دے خيال سره روژه نه نيوه چه خلق به م پوښتنے له راځي او د هغوی ميلمستيا ضروري ده.

۲۳۳۲: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا وَكِيْعٌ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ مُحَارِبِ بْنِ دِثَارٍ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا قَدِمَ الْمَدِيْنَةَ نَحَرَ جَزُوْرًا اَوْ بَقَرَةً زَادَ مُعَاذٌ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ مُحَارِبٍ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ اشْتَرٰى مِنِّي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعِيْرًا بِوَقِيَّتَيْنِ دِرْهَمٍ اَوْ دِرْهَمَيْنِ فَلَمَّا قَدِمَ صِرَارًا اَمَرَ بِبَقَرَةٍ ذُبِحَتْ فَاَكَلُوْا مِنْهَا فَلَمَّا قَدِمَ الْمَدِيْنَةَ اَمَرَنِيْ اَنْ اٰتِيَ الْمَسْجِدَ اُصَلِّيْ رَكْعَتَيْنِ وَ وَزَنَ لِيْ ثَمَنَ الْبَعِيْرِ.

۲۳۳۲: محمد. وکيع. شعبه. محارب بن دثار. حضرت جابر بن عبدالله نه روايت کوي. چه حضورؐ مدينے ته تشريف راوړلو نو يو اوښ يا غوائے ذبح کړه. معاذ د شعبه په ذريعه محارب نه دے حديث کښے دومره الفاظ نور زيات کړيدي. جابر وائي چه دوه اوقيه اويا يو يا (دوه) درهم کښے حضورؐ يو اوښ خما نه په بيع اخست[۱] او مقام صرار ته چه اورسيدو نو هلته ئے د غوا د ذبح کولو حکم اوکړلو. نو هغه ذبح کړے شوه او ټولو خلقو د هغے غوښه اوخوړله. او حضورؐ چه مدينے ته اورسيدلو نو ماته ئے حکم راکه چه زۀ جمات ته لاړ شم او دوه رکعاته مونځ ادا کړم حضورؐ د هغے اوښ قيمت ماته په تول راکړلو.

ف: اوقيه د څلويښت درمو د وزن نوم دے. درم درے نيمے ماسے وي.

۳۳۳: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا كَعْبَةُ عَنْ مُحَارِبِ بْنِ دِثَارٍ عَنْ جَابِرٍ قَالَ قَدِمْتُ مِنْ سَفَرٍ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلِّ رَكْعَتَيْنِ صِرَارٌ مَوْضِعٌ نَاحِيَةَ الْمَدِيْنَةِ.

۳۳۳: ابوالوليد. شعبه. محارب بن دثار. حضرت جابرؓ نه روايت کوي يو سفر نه زۀ واپس شوم نو حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل دوه رکعاته مونځ اوکړئ. دَ مدينې اطرافو کښې دَ يو مقام صرار نوم دے.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ.

بَابُ ۲۴۳: فَرْضِ الْخُمُسِ.

باب ۲۴۳: د مال غنيمت د پنځمې حصې د فرضيت بيان.

۳۳۴: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَلِيُّ بْنُ الْحُسَيْنِ اَنَّ حُسَيْنَ بْنَ عَلِيٍّ (عَلَيْهِمَا السَّلَامُ) اَخْبَرَهُ اَنَّ عَلِيًّا قَالَ كَانَتْ لِيْ شَارِفٌ مِنْ نَصِيْبِيْ مِنَ الْغَنَمِ يَوْمَ بَدْرٍ وَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَعْطَانِيْ شَارِفًا مِنَ الْخُمُسِ فَلَمَّا اَرَدْتُ اَنْ اَبْتَنِيَ بِفَاطِمَةَ بِنْتِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاعَدْتُ رَجُلًا صَوَّاغًا مِنْ بَنِيْ قَيْنُقَاعَ اَنْ يَرْتَحِلَ مَعِيَ فَنَأْتِيَ بِاِذْخَرَ اَرَدْتُ اَنْ اَبِيْعَهُ الصَّوَّاغِيْنَ وَ اَسْتَعِيْنُ بِهٖ فِيْ وَلِيْمَةِ عِرْسِيْ فَبَيْنَا اَنَا اَجْمَعُ لِشَارِفَيَّ مَتَاعًا مِنَ الْاَقْتَابِ وَالْغَرَائِرِ وَالْحِبَالِ وَ شَارِفَايَ مُنَاخَتَانِ اِلٰى جَنْبِ حُجْرَةِ رَجُلٍ مِنَ الْاَنْصَارِ

۳۳۴: عبدان. عبدالله. يونس. زهري. علي بن حسين. حسين بن عليؓ نه روايت کوي، حضرت عليؓ اووے چه دَ بدر په ورځ مال غنيمت کښې يوه اوښه خما حصه کښې رسيدلې وه او دَ خمس د مال نه يوه اوښه حضورؐ ماله راکړه. بيا ما چه بي بي فاطمېؓ بنت رسول الله صلي الله عليه وسلم سره دَ وادۀ د شپې (شب زفاف) تيرولو اراده اوکړه. نو ما د بني قينقاع يو زرګر سره خبره اوکړه چه هغه ما سره لاړ شي اذخر (واښه) راوړي، او زۀ به هغه اذخر په زرګرانو خرڅ کړم او هغې نه به دَ خپلې نکاح دعوت وليمه کښې مدد اخلم. او دے دوران کښې ما خپلې اوښې دَ پاره چه متعلقه سامان از قسم کجاوه د واښو جال اورسۍ په هغې ايښودلو د پاره جمع کولې. او خما دا دواړه اوښې دَ يو انصاري کمرې سره ناستې وې چه ما سامان راوړلو، راغلم نو او م ليدل چه زما د دواړه اوښو قبونه او نوتې (کناتې) پريکړې

رَجَعْتُ حِيْنَ جَمَعْتُ مَا جَمَعْتُ فَإِذَا شَارِفَايَ قَدِ اُجِبَّتْ اَسْنِمَتُهُمَا وَ بُقِرَتْ خَوَاصِرُهُمَا وَ اُخِذَ مِنْ اَكْبَادِهِمَا فَلَمْ اَمْلِكْ عَيْنَيَّ حِيْنَ رَاَيْتُ ذٰلِكَ الْمَنْظَرَ مِنْهُمَا فَقُلْتُ مَنْ فَعَلَ هٰذَا فَقَالُوْا فَعَلَ حَمْزَةُ بْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ وَهُوَ فِيْ هٰذَا الْبَيْتِ فِيْ شَرْبٍ مِنَ الْاَنْصَارِ فَانْطَلَقْتُ حَتّٰى اَدْخُلَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ عِنْدَهٗ زَيْدُ بْنُ حَارِثَةَ فَعَرَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ وَجْهِيَ الَّذِيْ لَقِيْتُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَالَكَ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا رَاَيْتُ كَالْيَوْمِ قَطُّ عَدَا حَمْزَةُ عَلٰى نَاقَتَيَّ فَجَبَّ اَسْنِمَتَهُمَا وَ بَقَرَ خَوَاصِرَهُمَا وَهَا هُوَ ذَا فِيْ بَيْتٍ مَّعَهٗ شَرْبٌ فَدَعَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِرِدَائِهٖ فَارْتَدٰى ثُمَّ انْطَلَقَ يَمْشِيْ وَ اتَّبَعْتُهٗ اَنَا وَ زَيْدُ بْنُ حَارِثَةَ حَتّٰى جَآءَ الْبَيْتَ الَّذِيْ فِيْهِ حَمْزَةُ فَاسْتَاْذَنَ فَاَذِنُوْا لَهُمْ فَاِذَا هُمْ شَرْبٌ فَطَفِقَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَلُوْمُ حَمْزَةَ فِيْمَا فَعَلَ فَاِذَا حَمْزَةُ قَدْ ثَمِلَ مُحَمَّرَةٌ عَيْنَاهُ فَنَظَرَ حَمْزَةُ اِلَى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ صَعَّدَ النَّظَرَ فَنَظَرَ

شویدي او اینه ئے راوښکلے شویده. دے منظر لیدو سره خما په ستر ګو قابو پاتے نه شو، ما تپوس او کۀ چه دا حرکت چا کړیدے، نو خلقو اووے دا تهولے کانے د حمزه بن عبدالمطلب.دي چه دے کور کښے خو شرابیانو انصارو سره ناست دے. زۀ نیغ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم له ورغلم. دغه وخت حضورؐ سره زید بن حارثه ناست وو. حضورؐ خما دَ مخ نه خما دَ زړۀ کیفیات معلوم کړل. وے فرمائیل. څۀ خبره ده. ما عرض او کړه حمزه خما په اوښو ظلم کړیدے. دَ هغوئ قبونه او تهوټي ئے پریکړي دي او هغه یو کور کښے ناست دے، شراب څکي. حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم خپل څادر راخست په سر ئے کړه او روان شولو، حضورؐ سره زید بن حارثه هم وو، هغے کورته چه اورسیدو نو حضورؐ دننه دَ ورتلو اجازت اوغوښتلو. دَ هغوئ په اجازت حضورؐ دننه ورغے. نو حضورؐ اولیدل چه ټول شراب نوشئ کښے اخته دي او حمزه ئے په خپل حرکت ملامته کولو خو حمزه بدمست وو او دَ هغۀ سرے سرے ستر ګے بهرته راوتلے وے. هغۀ اول نظر راپورته کۀ. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم ئے دَ ګنډو پورے اولید. بیائے نوم (ناف) طرفته او کتل. بیائے ستر ګے راپورته کړے دَ حضور مخ مبارک ته ئے

اِلَىٰ رُكْبَتِهِ ثُمَّ صَعَّدَ النَّظَرَ فَنَظَرَ اِلَىٰ سُرَّتِهِ ثُمَّ صَعَّدَ النَّظَرَ فَنَظَرَ اِلَىٰ وَجْهِهِ ثُمَّ قَالَ حَمْزَةُ هَلْ اَنْتُمْ اِلَّا عَبِيْدٌ لِاَبِيْ فَعَرَفَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ قَدْ ثَمِلَ فَنَكَصَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى عَقِبَيْهِ الْقَهْقَرٰى وَ خَرَجْنَا مَعَهُ.

۵۳۳ : حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ ابْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّ عَائِشَةَ اُمَّ الْمُؤْمِنِيْنَ اَخْبَرَتْهُ اَنَّ فَاطِمَةَ (عَلَيْهَا السَّلَامُ) بِنْتَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَاَلَتْ اَبَا بَكْرِ الصِّدِّيْقَ بَعْدَ وَفَاةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يَقْسِمَ لَهَا مِيْرَاثَهَا مَا تَرَكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِمَّا اَفَاءَ اللّٰهُ عَلَيْهِ فَقَالَ لَهَا اَبُوْبَكْرٍ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا نُوْرَثُ مَا تَرَكْنَا صَدَقَةٌ فَغَضِبَتْ فَاطِمَةُ بِنْتُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَهَجَرَتْ اَبَا بَكْرٍ فَلَمْ تَزَلْ مُهَاجِرَتَهُ حَتّٰى تُوُفِّيَتْ وَ عَاشَتْ بَعْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سِتَّةَ اَشْهُرٍ قَالَتْ وَ كَانَتْ فَاطِمَةُ تَسْاَلُ اَبَا

او کتل، نو وې وئيل، تاسو خلق څما د پلار غلامان يئ. بيا رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم پوهه شولو. چه حمزه ذ شرابو نشه کښې دې (دې په هوش کښې نه دې) نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم واپس مخ په شا راغلو. او مونږ هم حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم سره واپس شولو.

۵۳۳ : عبدالعزيز. عبداللّٰه. ابراهيم بن سعد. صالح. ابن شهاب. عروه بن زبير. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي. ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم د وفات نه پس بي بي فاطمےؓ حضرت ابوبکر صديقؓ ته اووے. ذ حضورؐ ذ هغے ترکے (ميراث) نه چه اللّٰه تعالي حضورؐ ته په طور ذ "فے" ورکړے وو، ذ هغے ميراثي حصه هغے ته ورکړي، صديق اکبرؓ جواب ورکه، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلي دي څمونږ مال کښې د ميراث عمل نه وي. مونږ چه څه پريږدو، هغه صدقه ده. په دے بي بي فاطمهؓ خفه شوله، او ذ خپل مرګ پورے ئے صديق اکبرؓ سره خبرے اونکړے. او ذ حضورؐ د وفات نه پس بي بي فاطمهؓ شپږ مياشتو پورے ژوندئ وه. بي بي عائشےؓ اوفرمائيل چه بي بي فاطمےؓ ذصديق اکبرؓ نه خپله حصه د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم د خيبر او فدک د مال متروکه نه او ... هغے مال ... صدقه ... چه مدينه منوره کښې موجود ... طلب ... صديق اکبرؓ د هغے

بَكْرٍ نَصِيْبَهَا مِمَّا تَرَكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ خَيْبَرَ وَفَدَكٍ وَ صَدَقَتِهٖ بِالْمَدِيْنَةِ فَاَبٰى اَبُوْبَكْرٍ عَلَيْهَا ذٰلِكَ وَ قَالَ لَسْتُ تَارِكًا شَيْئًا كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْمَلُ بِهٖ اِلَّا عَمِلْتُ بِهٖ فَاِنِّيْ اَخْشٰى اِنْ تَرَكْتُ شَيْئًا مِنْ اَمْرِهٖ اَنْ اَزِيْغَ فَاَمَّا صَدَقَتُهٗ بِالْمَدِيْنَةِ فَدَفَعَهَا عُمَرُ اِلٰى عَلِيٍّ وَ عَبَّاسٍ وَ اَمَّا خَيْبَرُ وَفَدَكُ فَاَمْسَكَهَا عُمَرُ وَ قَالَ هُمَا صَدَقَةُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَتَا لِحُقُوْقِهِ الَّتِيْ تَعْرُوْهُ وَ نَوَائِبِهٖ وَ اَمْرُهُمَا اِلٰى مَنْ وَلِيَ الْاَمْرَ قَالَ فَهُمَا عَلٰى ذٰلِكَ اِلَى الْيَوْمِ.

د ورکولو نه انکار اوکړو. اووے ونيل چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم دے کښے څه تصرف فرمائيلے دے. زهٔ دے کښے دَ حضورٌ هيڅ يو عمل پريښودے نشم. زهٔ ويريږم که د حضورٌ د عمل نه څه هم پريږدم، نو گمراه به شم. دَ سرور عالم صلعم مال موقوفه حضرت عمرؓ، حضرت عليّ او حضرت عباسؓ له ورکړے شوے وو. ليکن خيبر او فدک ئے خپلے نگرانئ کښے ساتلے وو اووئيلے وو چه دا دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم وقف دے او حضورٌ دا دواړه هغے مصارفو او ضرورياتو دَ پاره ساتلے وو چه وخت په وخت به پښيدل او دَ هغے د انتظام اختيار ئے خليفه وخت ته ورکړے وو. امام بخاريؒ اووے چه دا دواړه د نن تاريخ پورے خپل هغے حالت او کيفيت کښے په طور د وقف موجود دي.

ف: "فے" هغه مال غنيمت چه بغير د جنگ نه مسلمانانوته په لاس راشي.

۳۳۶: حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْفَرَوِيُّ حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ اَنَسٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ مَالِكِ ابْنِ اَوْسِ بْنِ الْحَدَثَانِ وَ كَانَ مُحَمَّدُ بْنُ جُبَيْرٍ ذَكَرَ لِيْ ذِكْرًا مِنْ حَدِيْثِهٖ ذٰلِكَ فَانْطَلَقْتُ حَتّٰى اَدْخُلَ عَلٰى مَالِكِ بْنِ اَوْسٍ فَسَاَلْتُهٗ عَنْ ذٰلِكَ الْحَدِيْثِ فَقَالَ مَالِكٌ بَيْنَا اَنَا جَالِسٌ فِيْ اَهْلِيْ حِيْنَ مَتَعَ النَّهَارُ اِذَا رَسُوْلُ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ يَاْتِيْنِيْ

۳۳۶: اسحاق. مالک بن انسؓ. ابن شهاب. مالک بن اوس نه روايت کوي محمد بن جبير ماته دا حديث بيان کړيدے زهٔ روام شوم، مالک بن اوس ته اورسيدم او دَ هغه نه مِ ددے حديث باره کښے پښتنه اوکړه. مالک اووے. زهٔ خپل اهل و عيال سره ناست ووم، او ورځ راختلے وه چه دَ حضرت عمرؓ قاصد راغے. وئيلے، چه فاروق اعظم دِ غواړي. زهٔ هغه سره روان شوم او فاروق اعظم لره ورغلو، هغه د قجورو د پوستکو نه جوړ شوي کټ باندے د څرمنے يو تکيه سره ډډه وهلے ناست وه. ما ورته سلام اوکه، کيناستم، هغه راته اوفرمائيل. اے مالکه، ما ته ستا د قوم ځنے کورواله

فَقَالَ اَجِبْ اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ فَانْطَلَقْتُ مَعَهُ حَتّٰى اَدْخُلَ عَلٰى عُمَرَ فَاِذَا هُوَ جَالِسٌ عَلٰى رِمَالِ سَرِيْرٍ لَيْسَ بَيْنَهُ وَ بَيْنَهُ فِرَاشٌ مُتَّكِىءٌ عَلٰى وِسَادَةٍ مِنْ اَدَمٍ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ ثُمَّ جَلَسْتُ قَالَ يَا مَالِكُ اِنَّهُ قَدِمَ عَلَيْنَا مِنْ قَوْمِكَ اَهْلُ اَبْيَاتٍ وَقَدْ اَمَرْتُ فِيْهِمْ بِرَضْخٍ فَاَقْبِضْهُ فَاَقْسِمْهُ بَيْنَهُمْ فَقُلْتُ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ لَوْ اَمَرْتَ بِهٖ غَيْرِيْ قَالَ اَقْبِضْهُ اَيُّهَا الْمَرْءُ فَبَيْنَا اَنَا جَالِسٌ عِنْدَهٗ اَتَاهُ حَاجِبُهٗ يَرْفَا قَالَ هَلْ لَكَ فِيْ عُثْمَانَ وَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ ابْنِ عَوْفٍ وَالزُّبَيْرِ وَ سَعْدِ بْنِ اَبِيْ وَقَّاصٍ يَسْتَاْذِنُوْنَ قَالَ نَعَمْ فَاَذِنَ لَهُمْ فَدَخَلُوْا فَسَلَّمُوْا وَ جَلَسُوْا ثُمَّ جَلَسَ يَرْفَا يَسِيْرًا ثُمَّ قَالَ هَلْ لَكَ فِيْ عَلِيٍّ وَ عَبَّاسٍ قَالَ نَعَمْ فَاَذِنَ لَهُمَا فَدَخَلَا فَسَلَّمَا فَجَلَسَا فَقَالَ عَبَّاسٌ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ اِقْضِ بَيْنِيْ وَ بَيْنَ هٰذَا وَهُمَا يَخْتَصِمَانِ فِيْمَا اَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ مَّالِ بَنِي النَّضِيْرِ فَقَالَ الرَّهْطُ عُثْمَانُ وَ اَصْحَابُهٗ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ

راغلل. او ما هغوئ ته د څه ورکولو حکم کړیدے. ته هغه مال واخله' او په هغوئ ئے تقسیم کړه. په دے خبره مالک عرض اوکه. اے امیر المؤمنین. که تاسو څمانه علاوه بل چاته حکم ورکړے وے نو دا به زیات مناسب وو. هغهٔ ورته اوفرمائیل. اے د خدائے بنده' هغوئ له څه ورکړه. دے دوران کښے چه زهٔ هغه سره ناست ووم. یرفا دربان عرض اوکه چه عثمان' عبدالرحمٰن بن عوف. زبیر او سعد بن وقاص تاسو سره ملاقات غواړي. جواب ئے ورکه' شوق سره دِ راشي. هغه خلق دننه راغلل سلام ئے واچولو او کیناستل. دے نه لږ ساعت پس چه یرفا په دروازه ناست وو دننه راغے اووئیلے عليؓ او عباسؓ تاسو سره لیدل غواړي' هغه ورته اوفرمائیل چه ډیره ښه ده راځي دِ. هغوئ دواړه هم دننه راغلل' سلام ئے پس کیناستل. بیا حضرت عباسؓ اووے اے امیر المؤمنین تاسو څما او د عليؓ په مینځ کښے فیصله اوکړئ. او دواړو دَ هغے څیز باره کښے جګړه کوله چه اللّٰه پاک حضورؐ ته د بني نضیر د مال په طور د ''فے'' ورکړے وو. په دے خبره حضرت عثمانؓ او دَ هغهٔ ملګرو اووے. اے امیر المؤمنین تاسو دِدے دواړو د جګړے فیصله اوکړئ او یو د بل نه خلاص کړئ. دے اوریدو سره حضرت عمرؓ اووے لږ صبر اوکړئ زهٔ تاسو له په اللّٰه قسم درکوم چه دَ هغهٔ په حکم آسمان او زمکه ولاړ دي' تاسو ټولو ته معلومه ده چه حضورؐ فرمائیلي دي' څمونږ څوک وارث نشته څه چه مونږ پریږدو هغه ټول صدقه دے. او حضورؐ به دَ خپل مال دَ پاره دا فرمائیل. په دے خلقو اووے' جي او. حضورؐ دغسے فرمائیلي دي دے نه پس حضرت

اقْضِ بَيْنَهُمَا وَ اَرِحْ اَحَدَهُمَا مِنَ الْاٰخَرِ قَالَ عُمَرُ تَئِيْدَكُمْ اَنْشُدُكُمْ بِاللّٰهِ الَّذِیْ بِاِذْنِهٖ تَقُوْمُ السَّمَاءُ وَالْاَرْضُ هَلْ تَعْلَمُوْنَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا نُوْرِثُ مَا تَرَكْنَاهُ صَدَقَةٌ يُرِيْدُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَفْسَهٗ قَالَ الرَّهْطُ قَدْ قَالَ ذٰلِكَ فَاَقْبَلَ عُمَرُ عَلٰى عَلِيٍّ وَ عَبَّاسٍ فَقَالَ اَنْشُدُكُمَا اللّٰهَ اَتَعْلَمَانِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ قَالَ ذٰلِكَ قَالَا قَدْ قَالَ ذٰلِكَ قَالَ عُمَرُ فَاِنِّیْ اُحَدِّثُكُمْ عَنْ هٰذَا الْاَمْرِ اِنَّ اللّٰهَ قَدْ خَصَّ رَسُوْلَهٗ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِیْ هٰذَا الْفَیْءِ بِشَیْءٍ لَمْ يُعْطِهٖ اَحَدًا غَيْرَهٗ ثُمَّ قَرَاَ وَمَا اَفَاءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ مِنْهُمْ اِلٰى قَوْلِهٖ قَدِيْرٌ فَكَانَتْ هٰذِهٖ خَالِصَةً لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاللّٰهِ مَا احْتَازَهَا دُوْنَكُمْ وَلَا اسْتَاْثَرَ بِهَا عَلَيْكُمْ قَدْ اَعْطَاكُمُوْهُ وَ بَثَّهَا فِيْكُمْ حَتّٰى بَقِیَ مِنْهَا هٰذَا الْمَالُ فَكَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُنْفِقُ عَلٰى اَهْلِهٖ نَفَقَةَ سَنَتِهِمْ مِنْ هٰذَا الْمَالِ ثُمَّ يَاْخُذُ مَا بَقِیَ فَيَجْعَلُ مَجْعَلَ مَالِ اللّٰهِ فَعَمِلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ

عمرؓ، حضرت عليؓ او حضرت عباسؓ ته مخ کړه وړ ته ئے اووے. زهٔ تاسو دواړوله په الله قسم درکوم. آیا تاسو ته معلومه ده چه حضورؐ داسے فرمائیلي دي نو دواړو اووے جي او. رسول الله صلي الله علیه وسلم دغسے فرمائیلي دي. بیا فاروق اعظمؓ اووے اوس زهٔ تاسو سره پوه معامله کښے خبرے اترے کول غواړم بیشکه الله تعالي حضورؐ ددے مال غنیمت (فے) نه یو څیز سره مخصوص کړے وو چه د حضورؐ نه علاوه بل چا ته نه دے ورکړے شوے او بیائے دا آیت اووے. او کوم مال غنیمت چه په طور د "فے" الله پاک حضورؐ له ورکړیدے په هغے تاسونه اسونه زغلولي دي او نه سوارهٔ او الله تعالي چه خپل رسولان په چا غواړي مسلط کوي. او الله تعالي په هر کار قادر دے نو دا مال خالص د حضورؐ د پاره وو په الله. م دِ قسم وي ستاسونه بغیر حضورؐ دا مال نه دے اخستے او نه دا مال ئے صرف ستاسو ذات له ورکړے دے بلکه ددے مال نه ئے تاسو ټولوله ورکړه کړیده او دے مال کښے چه په څه باقي کیدلو نو حضورؐ به د اهل و عیال د پاره ذ کالو سر په ضروریاتو خرچ کولو. او دے نه پس به چه څهٔ بچ شو حضورؐ به په هغه مال خرچ کولو چه په کومو صدقه خرچ کیږي. حضورؐ ټول عمر دغه عمل کولو. اے خلقو زهٔ تاسو ته ذ الله واسطه درکوم او تپوس درنه کوم. آیا تاسو ته دا معلومه ده، خلقو جواب ورکه جي او. بیا حضرت عليؓ او حضرت عباسؓ ته متوجه شو وئیلے زهٔ تاسو دواړوله د الله قسم درکوم او تپوس درنه کوم چه تاسو دواړه هم ددے نه واقف یئ هغوئ جواب ورکهٔ "جي او" بیا فاروق اعظمؓ اووے الله حضورؐ وفات

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِذٰلِكَ حَيَاتَهُ
اَنْشُدُكُمْ بِاللّٰهِ هَلْ تَعْلَمُوْنَ ذٰلِكَ قَالُوْا
نَعَمْ ثُمَّ قَالَ لِعَلِيٍّ وَ عَبَّاسٍ اَنْشُدُكُمَا
بِاللّٰهِ هَلْ تَعْلَمَانِ ذٰلِكَ قَالَ عُمَرُ ثُمَّ
تَوَفَّى اللّٰهُ نَبِيَّهٗ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ فَقَالَ اَبُوْ بَكْرٍ اَنَا وَلِيُّ رَسُوْلِ
اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَبَضَهَا
اَبُوْ بَكْرٍ فَعَمِلَ فِيْهَا بِمَا عَمِلَ رَسُوْلُ
اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاللّٰهُ
يَعْلَمُ اِنَّهٗ فِيْهَا لَصَادِقٌ بَارٌّ رَاشِدٌ تَابِعٌ
لِلْحَقِّ ثُمَّ تَوَفَّى اللّٰهُ اَبَا بَكْرٍ فَكُنْتُ
اَنَا وَلِيُّ اَبِيْ بَكْرٍ فَقَبَضْتُهَا سَنَتَيْنِ
مِنْ اِمَارَتِيْ اَعْمَلُ فِيْهَا بِمَا عَمِلَ
رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
وَمَا عَمِلَ فِيْهَا اَبُوْبَكْرٍ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ
اِنِّيْ فِيْهَا لَصَادِقٌ بَارٌّ رَاشِدٌ تَابِعٌ لِلْحَقِّ
ثُمَّ جِئْتُمَانِيْ تُكَلِّمَانِيْ وَ كَلِمَتُكُمَا
وَاحِدَةٌ وَ اَمْرُكُمَا وَاحِدٌ جِئْتَنِيْ يَا
عَبَّاسُ تَسْاَلُنِيْ نَصِيْبَكَ مِنِ ابْنِ اَخِيْكَ
وَ جَاءَنِيْ هٰذَا يُرِيْدُ عَلِيًّا يُرِيْدُ
نَصِيْبَ اِمْرَاَتِهٖ مِنْ اَبِيْهَا فَقُلْتُ لَكُمَا
اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ قَالَ لَا نُوْرَثُ مَا تَرَكْنَا صَدَقَةٌ
فَلَمَّا بَدَالِيْ اَنْ اَدْفَعَهٗ اِلَيْكُمَا قُلْتُ اِنْ
شِئْتُمَا دَفَعْتُهَا اِلَيْكُمَا عَلٰى اَنَّ
عَلَيْكُمَا عَهْدَ اللّٰهِ وَ مِيْثَاقَهٗ لَتَعْمَلَانِ

کړلو نو ذ هغوئ په خائے صدیق اکبرؓ دا اووے چه زهٔ د حضورؐ جانشین یم او دا مال موقوفه ئے خپلے نگرانئ کښے واخست او دے کښے هغهٔ هغه کار او که کوم چه د حضورؐ عمل وو او اللّٰه پوهیږي چه هغه دے معامله کښے ریښتونے، نیکو کار، هدایت یافته او ذ حق پابند وو. د صدیقؓ د وفات نه پس زهٔ ذ هغهٔ جانشین یم، ما د خپل خلافت دوه کاله کښے هغه کار کړیدے کوم چه د رسول صلي اللّٰه علیه وسلّم او صدیق اکبر عمل وو. او اللّٰه پوهیږي چه زهٔ دے معامله کښے ریښتونے، نیکو کار هدایت یافته او ذ حق پیرو کار یم نن تاسو دواړه ماله راغلي یئ او خبرے اترے کوئ او ستاسو د دواړو مقصد یو دے، او خبره هم یوه ده اے عباسؓ ته خپله حصه د خپل وراره ذ مال نه طلب کوے. او دا عليؓ خپله حصه د خپل سخر (خسر) د مال نه غواړي. او ما هغه ټول احکام تاسوته ښودلي دي چه هغه تاسو ټول پیژنئ چه حضورؐ فرمائیلي دي خمونږ هیڅوک وارث نشته او مونږ چه څهٔ پریږدو هغه ټول صدقه ده، او بیا چه ماته دا مناسب ښکاره شوه چه هغه ستاسو تحویل کښے درکړم نو ما تاسوته وئیلي وو که تاسو غواړئ نو دا زهٔ په دے شرط تاسوته حواله کوم چه تاسو اللّٰه تعالیٰ سره قول و اقرار او عهد و پیمان اوکړئ چه تاسو به دے کښے هغه کوئ کوم چه رسول اللّٰه صلعم صدیق اکبرؓ او ما د خپل ابتدائي خلافت نه اوسه پورے کوم عمل کړیدے. او تاسو دواړو وئیلے وو چه په دے شرط دا مال مونږ ته حواله کړے. نو ما هغه مال تاسوته اوسپارلو. اوس زهٔ تاسوته د اللّٰه واسطه درکوم او تپوس درنه کوم چه دغه

فِيهَا بِمَا عَمِلَ فِيهَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ بِمَا عَمِلَ فِيهَا اَبُوْبَكْرٍ وَ بِمَا عَمِلْتُ فِيهَا مُنْذُوُلِيتُهَا فَقُلْتُمَا ادْفَعْهَا اِلَيْنَا فَبِذَالِكَ دَفَعْتُهَا اِلَيْكُمَا فَاَنْشُدُكُمْ بِاللّٰهِ هَلْ دَفَعْتُهَا اِلَيْهِمَا بِذٰلِكَ قَالَ الرَّهْطُ نَعَمْ ثُمَّ اَقْبَلَ عَلٰى عَلِيٍّ وَ عَبَّاسٍ فَقَالَ اَنْشُدُكُمَا بِاللّٰهِ هَلْ دَفَعْتُهَا اِلَيْكُمَا بِذٰلِكَ قَالَا نَعَمْ قَالَ فَتَلْتَمِسَانِ مِنِّيْ قَضَاءً غَيْرَ ذٰلِكَ فَوَاللّٰهِ الَّذِيْ بِاِذْنِهٖ تَقُوْمُ السَّمَآءُ وَالْاَرْضُ لَا اَقْضِيْ فِيهَا قَضَاءً غَيْرَ ذٰلِكَ فَاِنْ عَجَزْتُمَا عَنْهَا فَادْفَعَاهَا اِلَيَّ فَاِنِّيْ اَكْفِيْكُمَاهَا.

مال م په ذکر شوي شرط در کړې وو که نه. نو هغوئ اووې جي بس، په دغسې شرط کوم چه د سرور عالم صلعم عمل وو. دې نه پس فاروق اعظمؓ حضرت عليؓ او حضرت عباسؓ ته متوجه شو، وئيلې ما په دې شرط مال تاسو ته سپارلې وو، که نه، نو هغوئ په يو آواز اووې جي او، دې نه پس فاروق اعظمؓ اووې نو اوس تاسو مانه ددې فيصله شوې امر خلاف د تصفيې کولو خواهش ولې ساتئ په اللّٰه م دِ قسم وي چه د هغه حکم سره زمکه او اسمان قائم دي زه به دې معامله کښې د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم د احکامو عمل خلاف هيڅ فيصله اونکړم او که اوس تاسو ددې د انتظام نه عاجز راغلي يئ نو ددې انتظام ماته واپس کړئ. زه ددې د انتظام د پاره کافي يم[۱].

۱. په دې او کډ روايت کښې دا خبره ملحوظ ساتل پکار دي چه د حضرت فاطمې رضي اللّٰه عنه ناراضګي ابوبکر صديق رضي اللّٰه عنه سره د وراثت په سلسله کښې نه وه شوې، ولې چه دا ټولو ته معلومه شوې وه چه پخپله حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ددې نفي ذ مخکښ نه کړې وه چه د پيغمبرانو وراثت نه تقسيميږي او تمامو اصحابو دا خبره منلې هم وه. پخپله ذ حضرت فاطمې، حضرت علي، حضرت عباس رضي اللّٰه عنهم نه هم په کومه موقعه باندې ددې نفي منقوله نه ده بلکه نزاع صرف ددغه مال د انتظام او انصرام په معامله باندې شوې وه. همدا وجه وه چه حضرت عمر رضي اللّٰه عنه د هغې انتظام د اهل بيتو رضوان اللّٰه عليهم په لاس کښې هم ور کړې وو. په دې حديث کښې دا هم دي چه د حضور اکرم صلي اللّٰه عليه وسلّم د وفات نه پس بي بي فاطمې رضي اللّٰه عنها د ابوبکر صديق رضي اللّٰه عنه نه قطع تعلق کړې وو او تر خپل وفاته پورې ترې ناراضه وه. په مشهورو روايتونو کښې همدغه شان دي ليکن د بعضو روايتونو نه ثابته ده چه کله فاطمه رضي اللّٰه عنها ناراضه شوه نو حضرت ابوبکر رضي اللّٰه عنه د هغې خدمت کښې حاضر شو او تر هغه وخته پورې پانسيدو تر څو پورې چه هغه راضي نشوه، معتبرو مصنفينو ددې توثيق هم کړې دې او واقعه داده چه د صحابهؤ ژوند خاصکر د حضرت ابوبکر رضي اللّٰه عنه سيرت سره همدا طرز عمل زيات جوړ هم خوري.

## باب ۲۴۴: اَدَاءِ الْخُمُسِ مِنَ الدِّيْنِ.

## باب ۲۴۴: د خمس ادائيګي خير او مذهب دې.

۳۳۷: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ عَنْ اَبِيْ حَمْزَةَ الضَّبُعِيِّ قَالَ سَمِعْتُ بْنُ عَبَّاسٍ يَقُوْلُ قَدِمَ وَفْدُ عَبْدِ الْقَيْسِ فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّا هٰذَا الْحَيَّ مِنْ رَّبِيْعَةَ بَيْنَنَا وَ بَيْنَكَ كُفَّارُ مُضَرَ فَلَسْنَا نَصِلُ اِلَيْكَ اِلَّا فِي الشَّهْرِ الْحَرَامِ فَمُرْنَا بِاَمْرٍ نَاْخُذُ بِهٖ وَ نَدْعُوْا اِلَيْهِ مَنْ وَّرَاءَ نَا قَالَ اٰمُرُكُمْ بِاَرْبَعٍ وَ اَنْهَاكُمْ عَنْ اَرْبَعٍ اَلْاِيْمَانُ بِاللّٰهِ شَهَادَةُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ عَقَدَ بِيَدِهٖ وَ اِقَامِ الصَّلٰوةِ وَ اِيْتَاءِ الزَّكٰوةِ وَ صِيَامِ رَمَضَانَ وَ اَنْ تُوَدُّوْا لِلّٰهِ خُمُسَ مَا غَنِمْتُمْ وَ اَنْهَاكُمْ عَنِ الدُّبَّاءِ وَالنَّقِيْرِ وَالْحَنْتَمِ وَالْمُزَفَّتِ.

۳۳۷: ابو نعمان. حماد. حمزه. ضبعي. ابن عباسؓ نه روايت كوي د عبدالقيس ځنې خلق د حضور صلعم خدمت كښې حاضر شو عرض ئې او كه يا رسول اللّٰهؐ مونږ خلق د ربيعه قبيله كښې اوسو. ځمونږ او ستاسو مينځ كښې كفار مضر سكونت پذير دي مونږ خلق دَ ماهِ حرام نه سِوا ستاسو خدمت كښې حاضريدے نه شو نو تاسو مونږ ته څه داسې تركيب اوښايئ چه مونږ هغه تركيب تاسونه زده كړو او خپل ورستو خلق هغې طرف ته اوبلو حضورؐ اوفرمائيل زۀ تاسوته د څلورو خبرو د كولو او د څلور خبرونه د بچ كيدو حكم دركوم. په اللّٰه ايمان راوړل او شهادت كول چه د اللّٰه نه سِوا دويم معبود نشته او حضورؐ خپلې ګوتې يوځائے كړے. مونځ كول زكوٰة وركول د رمضان د مياشتې روژے نيول او مال غنيمت كښې پنځمه حصه ادا كول. او دَ نه كولو امور دا دي د باء' نقير' حنتم' مزفت نه.

باب ۲۴۵: نَفَقَةِ نِسَآءِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ وَفَاتِهٖ.

باب ۲۴۵: د رسالتمآب صلّي اللّٰه عليه وسلّم د رحلت نه پس دَ ازواج مطهرات د نفقې بيان.

۳۳۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَقْتَسِمُ وَرَثَتِيْ دِيْنَارًا مَا تَرَكْتُ بَعْدَ نَفْقَةِ نِسَائِيْ وَ مُؤْنَةِ عَامِلِيْ فَهُوَ صَدَقَةٌ.

۳۳۸: عبداللّٰه. مالک. ابوالزناد. اعرج. ابوهريرهؓ نه روايت كوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. ځما ورثاء له پكار دي چه هغوئ ځما نه پس روپئ' پيسے' دَ حصے په طور وانخلي. او زۀ چه څه پريږدم نو هغه د ازواج مطهرات د نان و نفقې د پاره او دَ كاركنانو د خدمت د اخراجاتو د پاره دي او دے نه چه زيات څه پاتے شي هغه صدقه دهٔ[۱].

۱. يعني څرنګ چه د اسلامي حكومت د عاملانو تنخواه ګانے وركولے شي' همدغه شان د ازواج مطهراتو نفقه به هم د بيت المال نه وركولے شي.

۹ ۳۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ تُوُفِّيَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَا فِيْ بَيْتِيْ مِنْ شَيْءٍ يَّاكُلُهُ ذُوْ كَبِدٍ اِلَّا شَطْرُ شَعِيْرٍ فِيْ رَفٍّ لِيْ فَاَكَلْتُ مِنْهُ حَتّٰى طَالَ عَلَيَّ فَكِلْتُهُ فَفَنِيَ.

۹ ۳۳: عبداللّٰه بن ابي شيبه. ابو اسامه. هشام. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي. په کومه ورځ چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم وفات شو. په هغه ورځ خما کور کښې هيڅ نه وو چه هغه ځه جاندار خوړلے وے. البته لږے شان وربشے چه يو تاخ کښے پرتے وے. چه هغه ما ډيرے اوږدے مودے پورے اوخوړلے. ما چه په کومه ورځ هغه ناپ کړے نو هغه ختمے شوے.

۰ ۳۴: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ سُفْيَانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ اِسْحَاقَ قَالَ سَمِعْتُ عَمْرَو بْنَ الْحَارِثِ قَالَ مَا تَرَكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَّا سَلَاحَهُ وَ بَغْلَتَهُ الْبَيْضَاءَ وَ اَرْضًا تَرَكَهَا صَدَقَةً.

۰ ۳۴: مسدد. يحيٰي. سفيان. ابو اسحٰق. عمرو بن حارث نه روايت کوي حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ډ وسلے، يو سپين قچر، نه سوا نور هيڅ نه وو پريښے. او هغه زمکه ئے حين حيات کښے صدقه کړے وه.

## باب ۲۴۶: مَا جَاءَ فِيْ بُيُوْتِ اَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَا نُسِبَ مِنَ الْبُيُوْتِ اِلَيْهِنَّ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ قَرْنَ فِيْ بُيُوْتِكُنَّ وَلَا تَدْخُلُوْا بُيُوْتَ النَّبِيِّ اِلَّا اَنْ يُّؤْذَنَ لَكُمْ.

## باب ۲۴۶: د ازواج مطهرات د مکاناتو او د هغے مکاناتو هغوی ته د منسوب کولو بيان او فرمان الهي دے چه اے ازواج مطهرات د رسالت مآب صلعم تاسو خپلو خپلو کورونو کښے په قلار کينئ. مؤمنانو تاسو ډ حضور صلعم کورته د هغه د اجازت نه بغير مه داخليږئ.

۱ ۳۴: حَدَّثَنَا حِبَّانُ بْنُ مُوْسٰى وَ مُحَمَّدٌ قَالَا اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ وَ يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ ابْنِ مَسْعُوْدٍ اَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ

۱ ۳۴: حبان بن موسٰي او محمد عبداللّٰه. معمر او يونس. زهري. عبيداللّٰه بي بي عائشے نه روايت کوي. کوم وخت چه د حضورؐ مرض زيات شو. نو حضورؐ د خپلو بيبيانو نه ددے خبرے اجازت واخست چه د حضور علاج معالجه د بي بي عائشےؓ په

لَمَّا ثَقُلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِسْتَأْذَنَ اَزْوَاجَهُ اَنْ يُمَرَّضَ فِيْ بَيْتِيْ فَاَذِنَّ لَهُ.

کور کښې اوشي. په دې خبره ټولو بيبيانوؓ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته اجازت ورکړلو.

۲۴۴۲: حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ حَدَّثَنَا نَافِعٌ سَمِعْتُ ابْنَ اَبِيْ مُلَيْكَةَ قَالَ قَالَتْ عَائِشَةُؓ تُوُفِّيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ بَيْتِيْ وَ فِيْ نَوْبَتِيْ وَ بَيْنَ سَحْرِيْ وَ نَحْرِيْ وَ جَمَعَ اللّٰهُ بَيْنَ رِيْقِيْ وَ رِيْقِهٖ قَالَتْ دَخَلَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بِسِوَاكٍ فَضَعُفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْهُ فَاَخَذْتُهُ فَمَضَغْتُهُ ثُمَّ سَنَنْتُهُ بِهٖ.

۲۴۴۲: ابن ابي مريم. نافع. ابن ابي مليکه. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي چه خما (عائشےؓ) کور کښې خما دَ وار په ورځ خما د سينے او ګردن په مينځ کښې حضورؐ وفات شولو او اللّٰه تعالٰي خما او د حضورؐ د خولے مبارکے لاړے سره يوځائے کړلے (واقعه دا وه چه) عبدالرحمٰن يو مسواک راوړلو هغه رسول اللّٰه صلعم جويلے نه شو نو ما هغه اوجويلو (چه پوست شي) او هغے سره حضورؐ مسواک اوکړلو.

۲۴۴۳: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ خَالِدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَلِيِّ بْنِ حُسَيْنٍ اَنَّ صَفِيَّةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَخْبَرَتْهُ اَنَّهَا جَاءَتْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَزُوْرُهُ وَهُوَ مُعْتَكِفٌ فِي الْمَسْجِدِ فِي الْعَشْرِ الْاَوَاخِرِ مِنْ رَمَضَانَ ثُمَّ قَامَتْ تَنْقَلِبُ فَقَامَ مَعَهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى اِذَا بَلَغَ قَرِيْبًا مِنْ بَابِ الْمَسْجِدِ عِنْدَ بَابِ اُمِّ سَلَمَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِهِمَا رَجُلَانِ مِنَ الْاَنْصَارِ فَسَلَّمَا

۲۴۴۳: سعيد بن عفير. ليث. عبدالرحمٰن. ابن شهاب. علي بن حسينؓ نه روايت کوي. بي بي صفيےؓ يعني د رسول اللّٰه صلعم ټبر، هغه ته اووے چه هغه، هغه وخت د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ملاقات له راغلله، کوم وخت چه حضورؐ د رمضان شريف آخري عشره کښې معتکف وو، او څه وخت چه واپس تلله، نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم هغے سره راپاسيدو د جمات دروازے سره د بي بي اُم سلمهؓ مکان ته راورسيدلو نو د هغے طرف نه دوه انصاري سړي تيريدل حضورؐ ته ئے سلام اوکړه. او تادئ سره روان شو، نو حضور

عَلٰی رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ نَفَذَا فَقَالَ لَهُمَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰی رِسْلِكُمَا قَالَا سُبْحَانَ اللّٰهِ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَ كَبُرَ عَلَيْهِمَا ذٰلِكَ فَقَالَ اِنَّ الشَّيْطَانَ يَبْلُغُ مِنَ الْاِنْسَانِ مَبْلَغَ الدَّمِ وَ اِنِّيْ خَشِيْتُ اَنْ يَقْذِفَ فِيْ قُلُوْبِكُمَا شَيْئًا.

صلي اللّٰه عليه وسلم ورته اوفرمائيل لږ اودرېږئ. او واؤرئ، دا خـمـا ښـخـه ده، دا خبره په هغوئ سخته اولګيده، نو هغوئ اووے يا رسول اللّٰه، سبحان اللّٰه. په دے حضورؐ اوفرمائيل. د انسان رګونو کښے شيطان ذوينے په شان ګرځي، او مـاسره دا خوف پيدا شو، چه چرته دا امر ستاسو زړه کښے څه شبه پيدا نکړي.

۳۴۴: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ عِيَاضٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيٰى بْنِ حِبَّانَ عَنْ وَاسِعِ بْنِ حِبَّانَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَؓ قَالَ ارْتَقَيْتُ فَوْقَ بَيْتِ حَفْصَةَ فَرَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْضِيْ حَاجَتَهٗ مُسْتَدْبِرَ الْقِبْلَةِ مُسْتَقْبِلَ الشَّامِ.

۳۴۴: ابراهيم. انس بن عياض. عبيداللّٰه. محمد بن يحيٰي بن حبان. واسع بن حبان. عبداللّٰه بن عمرؓ نه روايت کوي. چه زۀ يو ځل د بي بي حفصےؓ په کوټه اوختم، نو ناساپه مِ اوليدل چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم قبلے ته شا کړے او شام طرف ته مخ کړے رفع حاجت کوي.

۳۴۵: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ عِيَاضٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الْعَصْرَ وَالشَّمْسُ لَمْ تَخْرُجْ مِنْ حُجْرَتِهَا.

۳۴۵: ابراهيم بن منذر. انس بن عياض. هشام. عروه بي بي عائشےؓ نه روايت کوي رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم به د مازيګر مونځ په داسے وخته کولو چه نمر به لا، د هغې په کوټه کښے دننه وو.

۳۴۶: حَدَّثَنَا مُوْسَی بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِؓ قَالَ قَامَ النَّبِيُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۳۴۶: موسي. جويريه. نافع. عبداللّٰه بن عمرؓ نه روايت کوي، چه حضورؐ خطبه لوسته. د بي بي عائشےؓ مکان ته ئے اشاره اوکړه. درے ځله ئے اوفرمائيل دغه طرفنه به فتنے راؤځي چه

خَطِيبًا فَأَشَارَ نَحْوَ مَسْكَنِ عَائِشَةَ فَقَالَ هُنَا الْفِتْنَةُ ثَلَاثًا مِنْ حَيْثُ يَطْلُعُ قَرْنُ الشَّيْطَانِ.

د هغې ځائې نه قرن شيطان طلوع کيږي (قرن شيطان معنې نمر ده مطلب دا دې چه د مشرق نه به ډيرې فتنې راپرسيره شي.

۳۴۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ يُوسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ عَنْ عَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ أَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخْبَرَتْهَا أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ عِنْدَهَا وَأَنَّهَا سَمِعَتْ صَوْتَ إِنْسَانٍ يَسْتَأْذِنُ فِي بَيْتِ حَفْصَةَ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ هٰذَا رَجُلٌ يَسْتَأْذِنُ فِي بَيْتِكَ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُرَاهُ فُلَانًا لِعَمِّ حَفْصَةَ مِنَ الرَّضَاعَةِ إِنَّ الرَّضَاعَةَ تُحَرِّمُ مَا تُحَرِّمُ الْوِلَادَةُ.

۳۴۷: عبدالله بن يوسف. مالک. عبدالله بن ابوبكر. عمره بنت عبدالرحمان بي بي عائشې نه روايت کوي. رسول الله صلعم بي بي عائشې سره وو. دې کښې هغې د يو سړي آواز واوريدلو چه د بي بي حفصې مکان ته تلل ئې غوښتل. نو ما (عائشه وائي) عرض اوکړه يا رسول الله دا سړې چه ستاسو کور ته تلل غواړي دا څوک دې. حضور اوفرمائيل دا د حفصې فلانې پيئې شريک تره دې او رضاعت هم هغه رشتې حراموي. چه ولادت سره حرام کيږي.

ف: رضاعت: د مور پيئې څښل، رضاعي ورور، پيئې شريک ورور، رضاعي خور، پيئې شريکه خور، بيل بيل هلكان او جينكۍ چه هغوئ د پردو خلقو ځامن لونړه وي، خو چه د يوې زنانه پيئې وڅښي، نو هغوئ خپلو کښې وررونړه خويندې شي دوئ ته د پيو شريک ورور يا خور ونيلې شي.

باب ۲۴۷: مَا ذُكِرَ مِنْ دِرْعِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَصَاهُ وَسَيْفِهِ وَقَدَحِهِ وَخَاتَمِهِ وَمَا اسْتَعْمَلَ الْخُلَفَاءُ بَعْدَهُ مِنْ ذٰلِكَ وَمِمَّا لَمْ تُذْكَرْ قِسْمَتُهُ وَمِنْ شَعْرِهِ وَنَعْلِهِ وَآنِيَتِهِ مِمَّا يَتَبَرَّكُ أَصْحَابُهُ وَغَيْرُهُمْ بَعْدَ وَفَاتِهِ.

باب ۲۴۷: د رسالتمآبؐ د زغرې او عصاه او ګوتې وغيره بيان او د حضورؐ نه پس د خلفاؤ عهد کښې غير تقسيم شده اشياء او ويښته مبارک نعلين شريف او د هغې لوښو د استعمال بيان چه د هغې نه د حضور اصحابو او نورو حضراتو د وفات نه پس برکت حاصلولو.

۳۴۸: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ

۳۴۸: محمد بن عبدالله انصاري. ثمامه. انسؓ نه روايت

بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الْاَنْصَارِیُّ قَالَ حَدَّثَنِیْ اَبِیْ عَنْ ثُمَامَةَ عَنْ اَنَسٍ اَنَّ اَبَا بَكْرٍؓ لَمَّا اسْتُخْلِفَ بَعَثَهُ اِلَی الْبَحْرَیْنِ فَكَتَبَ لَهُ هٰذَا الْكِتَابَ وَ خَتَمَهُ وَ كَانَ نَقْشُ الْخَاتَمِ ثَلٰثَةَ اَسْطُرٍ مُحَمَّدٌ سَطْرٌ وَ رَسُوْلُ سَطْرٌ وَ اللّٰهُ سَطْرٌ.

کوي چه صدیق اکبرؓ خلیفه شو. نو هغه زه انسؓ بحرین طرف ته اولیږلم. او یو تحریر ئے اولیکه. په هغے ئے د رسول الله صلعم مهر اولګولو. د حضورؐ مهر کښے درے کرښے کندہ وے ورومبئ کرښه کښے محمد، دویم کښے رسول او دریمه کښے لفظ الله کنده وو، هغه داسے

الله

رسول

**محمد**

۳۴۹: حَدَّثَنِیْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ الْاَسَدِیُّ حَدَّثَنَا عِیْسَی بْنُ طَهْمَانَ قَالَ اَخْرَجَ اِلَیْنَا اَنَسٌ نَعْلَیْنِ جَرْدَ اوَیْنِ لَهُمَا قِبَالَانِ فَحَدَّثَنِیْ ثَابِتُ نِ الْبُنَانِیُّ بَعْدُ عَنْ اَنَسٍ اَنَّهُمَا نَعْلَا النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ.

۳۴۹: عبدالله بن محمد. محمد بن عبدالله اسدي. عیسٰي بن طهمان نه روایت کوي. حضرت انسؓ دوه پنړے (چپل) د هغه مخکښے د بے ویښتو څرمنے راوښکلے، چه هغے کښے دوه تسمے لږیدلے وے. بیا ثابت د انسؓ نه آوریدو سره ماته اووے چه هغه د حضورؐ نعلین مبارک وے.

۳۵۰: حَدَّثَنِیْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا اَیُّوْبُ عَنْ حُمَیْدِ بْنِ هِلَالٍ عَنْ اَبِیْ بُرْدَةَ قَالَ اَخْرَجَتْ اِلَیْنَا عَائِشَةُؓ كِسَاءً مُلَبَّدًا وَ قَالَتْ فِیْ هٰذَا نُزِعَ رُوْحُ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وَ زَادَ سُلَیْمَانُ عَنْ حُمَیْدٍ عَنْ اَبِیْ بُرْدَةَ قَالَ اَخْرَجَتْ اِلَیْنَا عَائِشَةُ اِزَارًا غَلِیْظًا مِمَّا یُصْنَعُ بِالْیَمَنِ وَ كِسَاءً مِنْ هٰذِهِ الَّتِیْ تَدْعُوْنَهَا الْمُلَبَّدَةَ.

۳۵۰: محمد بن بشار. عبدالوهاب. ایوب. حمید بن هلال. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي، بي بي عائشےؓ مونږ ته یو غټ څادر چه هغه اهل یمن جوړوي راوښکلو، وئیلے دَ حضور صلي الله علیه وسلّم وفات دے کپړه کښے شویدے. سلیمان. حمید. ابو برده واسطے سره دومره زیات بیان کوي چه بي بي عائشےؓ یو غټ اِزار (پرتوګ لنګ) او یو څادر چه هغے ته ملبده وائي. څمونږ په مخکښے دَ حضور صلي الله علیه وسلّم راوښکلو.

۳۵۱: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ عَنْ اَبِیْ حَمْزَةَ عَنْ عَاصِمٍ عَنِ ابْنِ سِیْرِیْنَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ قَدَحَ

۳۵۱: عبدان. ابو حمزه. عاصم. ابن سیرین. حضرت انسؓ نه روایت کوي، کوم وخت چه د سرور عالم صلي الله علیه وسلّم پیالئ ماته

النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انْكَسَرَ فَاتَّخَذَ مَكَانَ الشَّعْبِ سِلْسِلَةً مِنْ فِضَّةٍ قَالَ عَاصِمٌ رَأَيْتُ الْقَدَحَ وَ شَرِبْتُ فِيْهِ.

شوه، نو حضورﷺ په هغې مات ځائے د چاندئ تکړه اولګوله. د عاصم بيان دے چه ما قدح پيالئ مبارکه ليدلے وه. او هغې کښې م اوبه څکلے دي.

۳۵۲: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْجَرْمِيُّ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا اَبِيْ اَنَّ الْوَلِيْدَ بْنَ كَثِيْرٍ حَدَّثَهُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَلْحَلَةَ الدُّؤَلِيِّ حَدَّثَهُ اِنَّ ابْنَ شِهَابٍ حَدَّثَهُ اِنَّ عَلِيَّ ابْنَ حُسَيْنٍ حَدَّثَهُ اَنَّهُمْ حِيْنَ قَدِمُوْا الْمَدِيْنَةَ مِنْ عِنْدِ يَزِيْدَ بْنِ مُعَاوِيَةَ مَقْتَلَ حُسَيْنِ بْنِ عَلِيٍّ لَقِيَهُ الْمِسْوَرُ بْنُ مَخْرَمَةَ فَقَالَ لَهُ هَلْ لَكَ اِلَيَّ مِنْ حَاجَةٍ تَأْمُرُنِيْ بِهَا فَقُلْتُ لَا فَقَالَ لَهُ هَلْ اَنْتَ مُعْطِيَّ سَيْفَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاِنِّيْ اَخَافُ اَنْ يَغْلِبَكَ الْقَوْمُ عَلَيْهِ وَ اَيْمُ اللّٰهِ لَئِنْ اَعْطَيْتَنِيْهِ لَا يُخْلَصُ اِلَيْهِ اَبَدًا حَتّٰى تُبْلَغَ نَفْسِيْ اَنَّ عَلِيَّ بْنَ اَبِيْ طَالِبٍ خَطَبَ ابْنَةَ اَبِيْ جَهْلٍ عَلٰى فَاطِمَةَ (عَلَيْهَا السَّلَامُ) فَسَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ النَّاسَ فِيْ ذٰلِكَ عَلٰى مِنْبَرِهٖ هٰذَا وَ اَنَا يَوْمَئِذٍ مُحْتَلِمٌ فَقَالَ اِنَّ فَاطِمَةَ مِنِّيْ وَ اَنَا اَتَخَوَّفُ اَنْ تُفْتَنَ فِيْ دِيْنِهَا ثُمَّ ذَكَرَ صِهْرًا لَهُ مِنْ بَنِيْ

۳۵۲: سعيد بن محمد. الجرمي. يعقوب. ابراهيم. وليد. محمد. ابن شهاب. علي بن حسينؓ نه روايت کوي. زۀ يعني امام زين العابدينؓ چه د امام حسينؓ د شهادت نه پس يزيد بن معاويه نه کوم وخت مدينے ته راغلم. نو مسور بن مخرمه ما سره د ملاقات کولو نه پس اوفرمائيل، که څۀ ضرورت دِ وي نو اوښايه ما جواب ورکه، ماته څه ضرورت نشته. بيا هغۀ اووے، آيا تاسو به ماته د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم توره مبارکه راکړئ؟ ماسره ويره وه. چه خلق به په دے حقله په تا زبردستي کوي. او په اللّٰه م د قسم وي که هغه توره ماته راکړئ نو بيا هغه توره زما ژوند کښے مانه هيڅوک نشي اخستے. حضرت عليؓ چه د بي بي فاطمےؓ په موجودګئ کښے د ابوجهل لور سره د کوژدنے اراده اوکړه نو ما د رسول صلعم نه د خلقو مخکښے دے باره کښے خطبه کښے واوريدل. زه هغه وخت بالغ ووم. حضورﷺ اوفرمائيل، فاطمهؓ څما نه ده. او ما سره ويره ده چه د هغے د دين باره کښے به د هغے ازمائش کيږي. دے نه پس حضورﷺ د بنو عبد شمس واله خپل زوم (عاص بن ربيع) تعريف

عَبْدِ شَمْسٍ فَأَثْنٰى عَلَيْهِ فِي مُصَاهَرَتِهِ إِيَّاهُ قَالَ حَدَّثَنِي فَصَدَّقَنِي وَ وَعَدَنِي فَوَفٰى لِي وَ إِنِّي لَسْتُ أُحَرِّمُ حَلَالًا وَلَا أُحِلُّ حَرَامًا وَلٰكِنْ وَاللّٰهِ لَا تَجْتَمِعُ بِنْتُ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ بِنْتُ عَدُوِّ اللّٰهِ أَبَدًا.

او کـه وړے فرمـائیل چـه کومـه خبره هغه کړے وه' هغـه نـے بـالـکل ریښتیا کـړے وه. او کومه وعده چه هغهٔ ماسره کړے وه' هغه ئے همیشه پوره کړه. او زهٔ خپلـه حـلال څیـز حرام او حـرام څیـز حلال کـول نـه غـواړم' خو پـه اللّٰـه مِ قسم وي چـه د رسـول اللّٰـه لـور او د عِـدوَ الـلّٰـه لور هیڅ کله یوځائے کیدے نشي.

۳۵۳: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سُوقَةَ عَنْ مُنْذِرٍ عَنِ ابْنِ الْحَنَفِيَّةِ قَالَ لَوْ كَانَ عَلِيٌّ ذَاكِرًا عُثْمَانَؓ ذَكَرَهُ يَوْمَ جَاءَهُ نَاسٌ فَشَكَوْا سُعَاةَ عُثْمَانَ فَقَالَ لِي عَلِيٌّ اذْهَبْ إِلٰى عُثْمَانَ فَأَخْبِرْهُ أَنَّهَا صَدَقَةُ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمُرْ سُعَاتَكَ يَعْمَلُونَ بِهَا فَأَتَيْتُهُ بِهَا فَقَالَ أَغْنِهَا عَنَّا فَأَتَيْتُ بِهَا عَلِيًّا فَأَخْبَرْتُهُ فَقَالَ ضَعْهَا حَيْثُ أَخَذْتَهَا قَالَ الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُوقَةَ قَالَ سَمِعْتُ مُنْذِرًا الثَّوْرِيَّ عَنِ ابْنِ الْحَنَفِيَّةِ قَالَ أَرْسَلَنِي أَبِي خُذْ هٰذَا الْكِتَابَ فَاذْهَبْ بِهِ إِلٰى عُثْمَانَ فَإِنَّ فِيهِ أَمْرَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي

۳۵۳: قتیبه. سفیان. محمد. منذر. محمد بن حنیفه نه روایت کوي. که دَ حضرت عليؓ دَ حضرت عثمانؓ څه بدي کول مقصود وے' نو په هغه ورځ به ئے دَ حضرت عثمانؓ بدي بیان کړے وه په کومه ورځ چه هغه ته څنے خلق راغلل او دَ حضرت عثمانؓ د ګورنرانو شکایت ئے ورته اوکه. دے دوران کښے ما (محمد بن حنیفه' فرزند عليؓ ته) خپل پلار بزرګوار ته اووے' حضرت عثمانؓ ته لاړ شه او ورته اووایه' د رسول اللّٰه صلعم دا دستور ملاحظه کړه. او خپل ماتحت حاکمانو ته حکم ورکړه چه په دے عمل اوکړي. نو دے کتابچے "دستور العمل" سره زهٔ حضرت عثمانؓ ته اورسیدم نو حضرت عثمانؓ اوفرمائیل ماته ددے د کتلو دا وخت فرصت نشته. ما حضرت عليؓ ته هغه دستور العمل واپس راوړلو او پوره قصه مِ ورته بیان کړه. هغه اووے دا چه د کوم ځائے نه دِ اوچت کړے وو هلته ئے کیږده' حمیدي اووے مونږ ته سفیان' محمد بن سوقه' منذر ثوري' ابن حنیفه بیان اوکه. ځما پلار ماته حکم اوکه چه دا کتاب واخله عثمانؓ له لاړ شه. ځکه چه دے کتاب کښے د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم د جانب

لِلصَّدَقَةِ. په د صدقې تفصيلي احکام ليکلي دي.

١. دا يوه صحيفه وه چه پکښې د صدقې تفصيلات همغه شان ليکلي شوي وو څرنګ چه حضور صلي الله عليه وسلّم فرمائيلي وو. د صدقاتو سره متعلق د حضورؐ حديث په مکتوب صورت کښې حضرت علي رضي الله عنه سره موجود وو.

حضرت عثمان رضي الله عنه د حضرت علي رضي الله عنه ليکلي شوي تفصيلات دې د پاره واپس کړي وو چه پخپله هغوئ سره هم په دې سلسله کښې تفصيلات موجود وو.

بَابُ ٢٤٨: الدَّلِيلُ عَلَى أَنَّ الْخُمُسَ لِنَوَائِبِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْمَسَاكِينِ وَإِيثَارِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَهْلَ الصُّفَّةِ وَالْأَرَامِلِ حِينَ سَأَلَتْهُ فَاطِمَةُ وَشَكَتْ إِلَيْهِ الطَّحْنَ وَالرَّحَى أَنْ يُخْدِمَهَا مِنَ السَّبْيِ فَوَكَلَهَا إِلَى اللهِ.

باب ٢٤٨: رسول الله صلي الله عليه وسلّم او دَ مسکينانو دَ ضروریاتو پوره کولو دَ پاره د ادائې خمس د دلائيلو، او دَ سرور عالم صلي الله عليه وسلّم د بي بي فاطمې د ميچنې کولو شکايت باندې هغې ته وينزه نه ورکول. او دَ هغې ضروريات الله تعالیٰ ته حواله کول، او دَ اهل صفه او کنډو ښځو دَ پاره دَ ايثار کولو د حکم دَ وضاحت بيان.

ف: اهل صفه (صفه: دالان) هغې غريب او بې وطنه مسلمانانو ته وائي چه زمانه رسالت کښې دَ هغوئ د اوسيدو دَ پاره کور نه وو او دالان کښې به اوسيدهٔ.

٣٥٤: حَدَّثَنَا بَدَلُ بْنُ الْمُحَبَّرِ أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ قَالَ أَخْبَرَنِي الْحَكَمُ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ أَبِي لَيْلَى حَدَّثَنَا عَلِيٌّ أَنَّ فَاطِمَةَ (عَلَيْهَا السَّلَامُ) اشْتَكَتْ مَا تَلْقَى مِنَ الرَّحَى مِمَّا تَطْحَنُ فَبَلَغَهَا أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُتِيَ بِسَبْيٍ فَأَتَتْهُ تَسْأَلُهُ خَادِمًا فَلَمْ تُوَافِقْهُ فَذَكَرَتْ لِعَائِشَةَ فَجَاءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَتْ ذَلِكَ عَائِشَةُ لَهُ فَأَتَانَا وَقَدْ دَخَلْنَا مَضَاجِعَنَا فَذَهَبْنَا لِنَقُومَ فَقَالَ عَلَى مَكَانِكُمَا حَتَّى وَجَدْتُ بَرْدَ

٣٥٤: بدل بن محبر. شعبه. حکم. بن ابي ليلٰي. حضرت عليؓ نه روايت کوي، چه بي بي فاطمة الزهراؓ دَ ميچنې کولو د تکليف رسول الله صلعم ته هغه وخت شکايت او که چه حضورؐ ته څو وينزې ګرفتارې شوې راغلې دې. چه بي بي فاطمهؓ سرور عالمؐ ته اووائي چه ماته د يوې خادمې (خدمتګارې) ضرورت دې ليکن ملاقات اونه شو، د رسول اللهؐ په واپسئ بي بي عائشېؓ د بي بي فاطمېؓ مطالبه حضورؐ ته واؤروله. نو سرور عالمؐ هغه وخت زمونږ کورته راغې، چه حضورؐ اوليدلو نو راپاسيدلو، حضورؐ اوفرمائيل (د پاسيدو ضرورت نشته) په خپل خپل ځائې کښينئ. دې نه پس حضورؐ کيناستلو او ما (عليؓ) د رسول الله صلعم د پښو يخ والې په خپله

فَنَعَتْهُ عَلٰى صَدْرِي فَقَالَ أَلَا أَدُلُّكُمَا عَلٰى خَيْرٍ مِمَّا سَأَلْتُمَاهُ إِذَا أَخَذْتُمَا مَضَاجِعَكُمَا فَكَبِّرَا اللّٰهَ أَرْبَعًا وَ ثَلٰثِيْنَ وَ احْمِدَا ثَلٰثًا وَّ ثَلٰثِيْنَ وَ سَبِّحَا ثَلٰثًا وَ ثَلٰثِيْنَ فَإِنَّ ذٰلِكَ خَيْرٌ لَكُمَا مِمَّا سَأَلْتُمَاهُ.

سینه محسوس که اووے فرمائیل' تاسو چه کوم څیز مانه طلب کړیدے. ذ هغے نه بهٔ څیز درته او بنایم او هغه دا دے چه کوم وخت د خپل خوب ځایونو ته ورځئے نو څلور دیرش ځله الله اکبر درے دیرش ځله الحمدلله او درے دیرش ځله سبحان الله وایئ. او دا عمل د هغے تولو څیزونو نه زیاته بهٔ دے چه تاسو ئے خواهش کوئ.

بَابُ ۲۴۹: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى فَإِنَّ لِلّٰهِ خُمُسَهُ يَعْنِيْ لِلرَّسُوْلِ قَسْمُ ذٰلِكَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّمَا أَنَا قَاسِمٌ وَ خَازِنٌ وَاللّٰهُ يُعْطِيْ.

باب ۲۴۹: د الله تعالٰی حکم چه د مال غنیمت پنځمه حصه د الله او د هغه د رسول د پاره ده. حضورؐ اوفرمائیل زه خو صرف خزانچي او تقسیمونکے یم او د هر څیز ورکونکے الله تعالي دے.

۳۵۵: حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سُلَيْمَانَ وَ مَنْصُوْرٍ وَقَتَادَةَ أَنَّهُمْ سَمِعُوْا سَالِمَ بْنَ أَبِي الْجَعْدِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ وُلِدَ لِرَجُلٍ مِنَّا مِنَ الْأَنْصَارِ غُلَامٌ فَأَرَادَ أَنْ يُسَمِّيَهُ مُحَمَّدًا قَالَ شُعْبَةُ فِيْ حَدِيْثِ مَنْصُوْرٍ إِنَّ الْأَنْصَارِيَّ قَالَ حَمَلْتُهُ عَلٰى عُنُقِيْ فَأَتَيْتُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ فِيْ حَدِيْثِ سُلَيْمَانَ وُلِدَ لَهُ غُلَامٌ فَأَرَادَ أَنْ يُسَمِّيَهُ مُحَمَّدًا قَالَ سَمُّوْا بِاسْمِيْ وَلَا تَكَنَّوْا بِكُنْيَتِيْ فَإِنِّيْ إِنَّمَا جُعِلْتُ قَاسِمًا أَقْسِمُ بَيْنَكُمْ وَ قَالَ حُصَيْنٌ بُعِثْتُ قَاسِمًا أَقْسِمُ بَيْنَكُمْ وَ قَالَ عَمْرٌو أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ قَالَ سَمِعْتُ

۳۵۵: ابوالولید. شعبه. سلیمان او منصور او قتاده. سالم بن ابي جعد. حضرت جابر بن عبدالله نه روایت کوي چه مونږ انصارو کښے هلک پیدا شو. او دا اراده اوشوه چه ددهٔ نوم د محمد کیښودلے شي. شعبه اووے ذ منصور انصاري حدیث کښے دا بیان شویدے شعبه اووے ما هغه هلک د سرور عالم صلي الله علیه وسلّم خدمت کښے پیش کړلو. او ذ سلیمان په حدیث کښے دا وئیلے شویدي چه خپله د هغه هلک پیدا شو د هغه نوم ئے محمد ایښودل غوښتل نو سرور عالمؐ ارشاد اوفرمائیلو ځما نوم اږدئے لیکن ځما کنیت مه اږدئ ځکه چه صرف زهٔ قاسم (تقسیمونکے) جوړ کړے شوے یم. او تاسو کښے تقسیمول ځما کار دے د حصین بیان دے چه حضورؐ ارشاد اوفرمائیلو زهٔ خو قاسم (ویشونکے) رالیږلے شوے یم چه په تاسو تقسیمول کوم. عمرو وائي' شعبه د قتاده

سَالِمًا عَنْ جَابِرٍ اَرَادَ اَنْ يُسَمِّيَهُ الْقَاسِمَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمُّوْا بِاِسْمِيْ وَلَا تَكْنُوْ بِكُنْيَتِيْ.

نه په ذريعه دَ سالم او حضرت جابرؓ اوريدلي دي هغه انصاري د خپل ځوئ نوم قاسم ايښودل غوښتل نو حضورؐ ارشاد اوفرمائيلو زما نوم اږدئے خو ځما نوم سره ځما کنيت مه اږدئے.

۳۵۶: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ سَالِمِ بْنِ اَبِي الْجَعْدِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ الْاَنْصَارِيِّ قَالَ وُلِدَ لِرَجُلٍ مِنَّا غُلَامٌ فَسَمَّاهُ الْقَاسِمَ فَقَالَتِ الْاَنْصَارُ لَا نَكْنِيْكَ اَبُو الْقَاسِمِ وَلَا نُنْعِمُكَ عَيْنًا فَاَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وُلِدَ لِيْ غُلَامٌ فَسَمَّيْتُهُ الْقَاسِمَ فَقَالَتِ الْاَنْصَارُ لَا نَكْنِيْكَ اَبَا الْقَاسِمِ وَلَا نُنْعِمُكَ عَيْنًا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَحْسَنَتِ الْاَنْصَارُ سَمُّوْا بِاِسْمِيْ وَلَا تَكَنَّوْا بِكُنْيَتِيْ فَاِنَّمَا اَنَا قَاسِمٌ.

۳۵۶: محمد. سفيان. اعمش. سالم ابو جعد. جابر بن عبدالله انصاري نه روايت کوي. مونږ انصارو کښې د چا ځوئے پيدا شو او هغه د هغې بچي نوم قاسم کيښودلو. په دې خبره انصارو هغې انصاري ته اووې چه مونږ به تاته ابو القاسم نه وايو. او دې مبارک کنيت سره ستا سترګې خنګه يخولې شو' هغې انصاري د حضورؐ خدمت کښې عرض اوکه يا رسول اللّٰهؐ ځما ځوئے پيدا شويدې او ما دَ هغه نوم قاسم ايښې دې خو نور ټول انصار وائي چه مونږ به تاته ابو القاسم نه وايو او ستا سترګې به دې مبارک کنيت سره نه يخوو. دې اوريدو سره حضورؐ اوفرمائيل. انصارو ښه نه اووې تاسو ځما نوم خو ايښودې شئے خو ځما نوم سره ځما کنيت قاسم مه اږدئے.

۳۵۷: حَدَّثَنَا حِبَّانُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّهُ سَمِعَ مُعَاوِيَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يُرِدِ اللّٰهُ بِهِ خَيْرًا يُفَقِّهْهُ فِي الدِّيْنِ وَاللّٰهُ الْمُعْطِيْ وَ اَنَا الْقَاسِمُ وَلَا تَزَالُ هٰذِهِ الْاُمَّةُ ظَاهِرِيْنَ عَلٰى مَنْ

۳۵۷: حبان. عبداللّٰه. يونس. زهري. حميد بن عبدالرحمٰن. حضرت معاويه نه روايت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو اللّٰه تعالٰي چه چا سره ښه کول غواړي نو هغهٔ ته دَ دين پوهه عطا کړي او اللّٰه تعالٰي ورکونکې دې او زهٔ تقسيمونکې يم. او دا امت به هميشه په مخالفينو غالب وي

خَالَفَهُمْ حَتّٰى يَأْتِيَ اَمْرُ اللّٰهِ وَهُمْ ظَاهِرُوْنَ.

او دَ قيامت راتلو پورې به غالب وي.

ف: یا اللّٰه خمونږ هم دین کښې پوهه نصیب کړې. اَللّٰهُمَّ امین.

۳۵۸: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ حَدَّثَنَا هِلَالٌ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِيْ عَمْرَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا اُعْطِيْكُمْ وَلَا اَمْنَعُكُمْ اَنَا قَاسِمٌ اَضَعُ حَيْثُ اُمِرْتُ.

۳۵۸: محمد بن سنان. فليح. هلال. عبدالرحمٰن بن ابي عمره. حضرت ابوهريرةؓ نه روايت كوي. چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد فرمائيلې دې چه زهٔ نه تاسوته څه دركوم او نه تاسو نه څه منع كوم بلكه زهٔ خو تقسيمونكې يم. كوم ځائې چه دَ تقسيم كولو ماته حكم راكولې شي هلته زهٔ تقسيم كوم.

۳۵۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يَزِيْدَ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ اَيُّوْبَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُو الْاَسْوَدِ عَنِ ابْنِ اَبِيْ عَيَّاشٍ وَ اِسْمُهُ نُعْمَانُ عَنْ خَوْلَةَ الْاَنْصَارِيَّةِ قَالَتْ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنَّ رِجَالًا يَتَخَوَّضُوْنَ فِيْ مَالِ اللّٰهِ بِغَيْرِ حَقٍّ فَلَهُمُ النَّارُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ.

۳۵۹: عبداللّٰه بن يزيد. سعيد بن ابي ايوب. ابوالاسود ابن عياش يعني نعمان. خوله انصاريهؓ نه روايت كوي، هغه وائي، ما حضورؐ نه اوريدلي دي، ځنې خلق دَ اللّٰه تعالٰي مال كښې ناجائز تصرف كوي. هغوئ دَ پاره به په قيامت كښې دَ دوزخ اور وي.

## باب ۲۵۰: قَوْلُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُحِلَّتْ لَكُمُ الْغَنَآئِمُ وَ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى وَعَدَكُمُ اللّٰهُ مَغَانِمَ كَثِيْرَةً تَأْخُذُوْنَهَا فَعَجَّلَ لَكُمْ هٰذِهٖ وَهِيَ لِلْعَامَّةِ حَتّٰى يُبَيِّنَهُ الرَّسُوْلُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۲۵۰: دَ رسالتمآب صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمان. مال غنيمت تاسو دَ پاره حلال كړې شويدې. او دَ پروردګار عالم حكم، چه اللّٰه تعالٰي تاسو سره دَ ډيرو غنيمتونو وعده كړيده هغه به تاسو حاصل كړئ او منجمله د هغې غنيمتونو نه بعضې ئې تاسوته زر دركړي هم دي او دا غنيمتونه د ټولو هغه خلقو د پاره عام دي چه هغه حضورؐ بيان فرمائيلي دي.

۳۶۰: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا خَالِدٌ حَدَّثَنَا حُصَيْنٌ عَنْ عَامِرٍ عَنْ

۳۶۰: مسدد. خالد. حصين. عامر. عروه بارقي نه روايت كوي. رسول

عُرْوَةَ الْبَارِقِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْخَيْلُ مَعْقُوْدٌ فِيْ نَوَاصِيْهَا الْخَيْرُ الْاَجْرُ وَالْمَغْنَمُ اِلٰى يَوْمِ الْقِيَامَةِ.

اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو دَ اسونو د تندو سره د قيامته پورې ثواب خير و بركت او مال غنيمت تړلے شوے دے.

۱ ۳۶: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا هَلَكَ كِسْرٰى فَلَا كِسْرٰى بَعْدَهٗ وَ اِذَا هَلَكَ قَيْصَرُ فَلَا قَيْصَرَ بَعْدَهٗ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَتُنْفِقُنَّ كُنُوْزَهُمَا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ.

۱ ۳۶: ابو اليمان. شعيب. ابو الزناد. اعرج. ابوهريرةؓ نه روايت كوي. رسول اللّٰه صلعم اوفرمائيل چه كسريٰ مړشي نو دَ هغه نه پس به بل كسريٰ نه وي او چه قيصر هلاک شي نو د هغه نه پس به بل قيصر نه راځي او په هغه ذات مِ دے قسم وي دَ چا په لاس كښے چه څما ژوندونے، تاسو خلق به د قيصر و كسريٰ خزانے د اللّٰه په لار كښے صرف كوئ.

۳۶۲: حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ سَمِعَ جَرِيْرًا عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا هَلَكَ كِسْرٰى فَلَا كِسْرٰى بَعْدَهٗ وَ اِذَا هَلَكَ قَيْصَرُ فَلَا قَيْصَرَ بَعْدَهٗ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَتُنْفِقُنَّ كُنُوْزَهُمَا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ.

۳۶۲: اسحاق. جرير. عبدالملك. حضرت جابرؓ نه روايت كوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل هر كله چه كسريٰ هلاک شي. نو هغه نه پس به كسريٰ پاتے نشي. او چه قيصر هلاک شي، نو هغه نه پس بل قيصر نه راځي او په هغه ذات مِ دِ قسم وي چه دَ هغه قبضه كښے څما ساه ده تاسو خلق به دَ دے دواړو خزانے د اللّٰه نوم د اوچتولو په لار كښے خرڅ كوئ.

۳۶۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ اَخْبَرَنَا سَيَّارٌ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ الْفَقِيْرُ حَدَّثَنَا جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُحِلَّتْ لِيَ الْغَنَائِمُ.

۳۶۳: محمد بن سنان. هشيم. سيار. يزيد الفقير. حضرت جابرؓ نه روايت كوي چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد فرمائيلے دے۱. چه دَ غنيمت مال ما د پاره حلال كړے شوے دے.

۱. يعني په آيت كښے چه كوم تعميم او په دے وجے سره يو اجمال وو هغه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم واضح كړلو چه دغنيمت مستحق هر سړے نه دے بلكه څه خاص خلق دي. گويا په آيت كښے چه

کوم اجمال وو د هغې تفصيل او وضاحت سنت اوکړو.

۳۶۴: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ تَكَفَّلَ اللّٰهُ لِمَنْ جَاهَدَ فِيْ سَبِيْلِهٖ لَا يُخْرِجُهُ اِلَّا الْجِهَادُ فِيْ سَبِيْلِهٖ وَ تَصْدِيْقُ كَلِمَاتِهٖ بِاَنْ يُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ اَوْ يُرْجِعَهُ اِلٰى مَسْكَنِهِ الَّذِيْ خَرَجَ مِنْهُ مَعَ مَا نَالَ مِنْ اَجْرٍ اَوْ غَنِيْمَةٍ.

۳۶۴: اسماعيل. مالک. ابوالزناد. اعرج. حضرت ابوهريرةؓ نه روايت کوي. رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. اللّٰه تعالٰي ذمه اخستې ده. کوم سړې چه د الله په لار کښې جهاد کوي. او څوک چه جهاد في سبيل الله او دَ الله دَ وعدو تصديق نه علاوه څه بل څيز د کور نه بهر اونه بنکلو، نو اللّٰه تعالٰي به هغه جنت کښې داخل کړي. يا هغه به هغې مکان ته د کوم ځائې نه چه روان شوې وو ثواب او مال غنيمت سره په عافيت واپس اورسوي.

۳۶۵: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَزَا نَبِيٌّ مِنَ الْاَنْبِيَاءِ فَقَالَ لِقَوْمِهٖ لَا يَتْبَعْنِيْ رَجُلٌ مَلَكَ بُضْعَ امْرَاَةٍ وَهُوَ يُرِيْدُ اَنْ يَبْنِيَ بِهَا وَلَمَّا يَبْنِ بِهَا وَلَا اَحَدٌ بَنٰى بُيُوْتًا وَلَمْ يَرْفَعْ سُقُوْفَهَا وَلَا اَحَدٌ اشْتَرٰى غَنَمًا اَوْ خَلِفَاتٍ وَهُوَ يَنْتَظِرُ وِلَادَهَا فَغَزَا فَدَنَا مِنَ الْقَرْيَةِ صَلَاةَ الْعَصْرِ اَوْ قَرِيْبًا مِنْ ذٰلِكَ فَقَالَ لِلشَّمْسِ اِنَّكِ مَاْمُوْرَةٌ وَ اَنَا مَاْمُوْرٌ اَللّٰهُمَّ احْبِسْهَا عَلَيْنَا فَحُبِسَتْ

۳۶۵: محمد بن العلاء. ابن مبارک. معمر. همام بن منبه حضرت ابوهريرةؓ نه روايت کوي. چه رسول اللّٰه صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل پخوا زمانه کښې يو نبي جهاد اوکه او خپل قوم ته ئې اووې ما سره دِ هغه څوک نه ځي چه دَ هغه ښځه موجوده وي. او هغه دا غواړي چه هغې سره شپه تيره کړي او هغهٔ اوسه پورې همبستري نه وي کړي. او کوم سړي چه کور جوړ کړې وي او دَ هغې چت ئې نه وي برابر کړې. او هغه سړې هم چه هغه اوښې او چيلئ اخستې وي او د هغې څناورو د بچو راوړلو انتظار کښې وي لنډه دا چه هغې نبي د جهاد رُخ اوکه او بيا د مازيګر مونځ وخت يو کلي ته نزدې شو، نو هغه نمر ته مخ کړې اووئيلې. اې نمره ته دَ اللّٰه محکوم ئې. او زهٔ هم دَ هغه محکوم يم. اې پروردګاره ته دا نمر حِصار کړې نو هغه نمر د ډوبيدونه منع کړې شو. او بيا اللّٰه تعالٰي هغه خپل نبي فتح ياب کړلو. دې جنګ کښې چه مال غنيمت جمع

حَتّٰى فَتَحَ اللّٰهُ عَلَيْهِ فَجَمَعَ الْغَنَائِمَ فَجَاءَتْ يَعْنِي النَّارَ لِتَأْكُلَهَا فَلَمْ تَطْعَمْهَا فَقَالَ اِنَّ فِيْكُمْ غُلُوْلًا فَلْيُبَايِعْنِيْ مِنْ كُلِّ قَبِيْلَةٍ رَجُلٌ فَلَزِقَتْ يَدُ رَجُلٍ بِيَدِهٖ فَقَالَ فِيْكُمُ الْغُلُوْلُ فَلْيُبَايِعْنِيْ قَبِيْلَتُكَ فَلَزِقَتْ يَدُ رَجُلَيْنِ اَوْ ثَلٰثَةٍ بِيَدِهٖ فَقَالَ فِيْكُمُ الْغُلُوْلُ فَجَاؤُا بِرَأْسٍ مِثْلِ رَأْسِ بَقَرَةٍ مِنَ الذَّهَبِ فَوَضَعُوْهَا فَجَاءَتِ النَّارُ فَاَكَلَتْهَا ثُمَّ اَحَلَّ اللّٰهُ لَنَا الْغَنَائِمَ رَاٰى ضُعْفَنَا وَ عِجْزَنَا فَاَحَلَّهَا لَنَا.

کړے شو، نو يو اُور راغے او هغه مال غنيمت ئے خوړل غوښتل. ليکن وے نه خوړلے شو هغے نبي اوفرمائيل: خلقو تاسو کښے خيانت کونکي موجود دي، ذهرے قبيلے يو يو سړے دِ راشي، ما نه دِ بيعت اوکړي نو د بيعت په وخت يو سړي لاس ذ هغه لاس سره اونښتلو. نو هغه نبي اوفرمائيل هغه خيانت گر تاسو کښے موجود دے نو ستا د قبيلے هر سړے دِ راشي مانه دِ بيعت اوکړي نو د دوو يا درے سړو لاس د هغے نبي لاس سره اونښتل نو هغے نبي اووے. خيانت کونکے تاسو کښے موجود دے بيا د سرو زرو يو سر د غوا د سر په شان ئے راوړلو او هغه ئے کيښودلو نو اور راغے او هغه سر ئے اوخوړلو. هغے نه پس الله تعالٰي زمونږ د پاره مال غنيمت حلال کړلو او الله تعالٰي زمونږ کمزورئ او عاجزئ ته اوکتل نو مال غنيمت ئے خمونږد پاره حلال کړلو.

## باب ۲۵۱: الْغَنِيْمَةِ لِمَنْ شَهِدَ الْوَقْعَةَ.

## باب ۲۵۱: جنگ کښے شرکت کونکو ذ پاره ذ مال غنيمت بيان.

۳۶۶: حَدَّثَنَا صَدَقَةُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ عَنْ مَالِكٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ قَالَ عُمَرُ لَوْلَا اٰخِرُ الْمُسْلِمِيْنَ مَا فُتِحَتْ قَرْيَةٌ اِلَّا قَسَمْتُهَا بَيْنَ اَهْلِهَا كَمَا قَسَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْبَرَ.

۳۶۶: صدقه. عبدالرحمان. مالک. زيد. اسلم. حضرت عمرؓ نه روايت کوي هغه اوفرمائيل که ذ ورستنو مسلمانانو راسره خيال نه وے نو کوم مقام چه به ما فتح کولو هغه به م هم هغے خلقو کښے تقسيمولو. څنګه چه حضورؐ خيبر تقسيم کړے وو.

## باب ۲۵۲: مَنْ قَاتَلَ لِلْمَغْنَمِ هَلْ يَنْقُصُ مِنْ اَجْرِهٖ.

## باب ۲۵۲: ذ مال غنيمت په خاطر جنگ کونکو د پاره ثواب کښے ذ کمئ بيان.

۳۶۷: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ

۳۶۷: محمد بن بشار. غندر. شعبه. عمرو. ابو وائل. حضرت ابو موسٰي اشعري نه

عَمْرو قَالَ سَمِعْتُ اَبَا وَائِلٍ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ مُوْسَى الْاَشْعَرِيُّ قَالَ قَالَ اَعْرَابِيٌّ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرَّجُلُ يُقَاتِلُ لِلْمَغْنَمِ وَالرَّجُلُ يُقَاتِلُ لِيُذْكَرَ وَ يُقَاتِلُ لِيُرٰى مَكَانُهُ مَنْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَقَالَ مَنْ قَاتَلَ لِتَكُوْنَ كَلِمَةُ اللّٰهِ هِيَ الْعُلْيَا فَهُوَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ.

روايت كوي. يو بانديسي د حضور صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوكه چه يو سړے دَ مال غنيمت دَ پاره جنګيږي او يو سړے د خپلے ناموریٔ د پاره جنګ كوي. او يو سړے دَ خپلے بهادریٔ دَ پاره جنګ كوي دا راته اوښايئ چه مجاهد في سبيل الله څوك دے حضورؐ جواب وركه څوك چه صرف د الله دَ نوم اوچتولو د پاره جنګ كویٔ هغه مجاهد في سبيل الله دے.

**باب ۲۵۳: قِسْمَةِ الْاِمَامِ مَا يَقْدَمُ عَلَيْهِ وَ يَخْبَأُ لِمَنْ لَّمْ يَحْضُرْهُ اَوْ غَابَ عَنْهُ.**

**باب ۲۵۳:** امام له چه څه مال غنيمت راشي دَ هغے دَ ويشلو او غير حاضر خلقو دَ پاره د حصے ايښودلو بيان.

**۳۶۸:** حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُهْدِيَتْ لَهُ اَقْبِيَةٌ مِّنْ دِيْبَاجٍ مُزَرَّرَةٍ بِالذَّهَبِ فَقَسَمَهَا فِيْ نَاسٍ مِنْ اَصْحَابِهٖ وَ عَزَلَ مِنْهَا وَاحِدًا لِمَخْرَمَةَ بْنِ نَوْفَلٍ فَجَاءَ وَ مَعَهُ ابْنُهُ الْمِسْوَرُ بْنُ الْمَخْرَمَةِ فَقَامَ عَلَى الْبَابِ فَقَالَ اُدْعُهُ لِيْ فَسَمِعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَوْتَهُ فَاَخَذَ قَبَاءً فَتَلَقَّاهُ بِهٖ وَاسْتَقْبَلَهُ بِاَزْرَارِهٖ فَقَالَ يَا اَبَا الْمِسْوَرِ خَبَأْتُ هٰذَا لَكَ يَا اَبَا الْمِسْوَرِ خَبَأْتُ هٰذَا لَكَ وَ كَانَ فِيْ خُلُقِهٖ شِدَّةٌ وَ رَوَاهُ ابْنُ عُلَيَّةَ عَنْ

**۳۶۸:** عبدالله بن عبدالوهاب. حماد. ايوب. عبدالله بن ابي مليكه نه روايت كوي حضورؐ ته څه ريښميني قبا ګانے چه هغے كښے د سرو تنړیٔ لګيدلے وے، د هدئ په طور راوړے شوے. حضورؐ خپله صحابه ؤ كښے تقسيم كړے او مخرمه بن نوفل د پاره ئے يوه جدا كيښوده. كوم وخت چه هغه راغے او هغه سره دَ هغه ځوئے مسور بن مخرمه هم وو. هغه په دروازه اووے چه رسول الله صلي الله عليه وسلم ته لږ آواز اوكړیٔ، حضورؐ چه دَ هغهٔ آواز واوريد نو هغه قبا ئے ورله راواخسته او مخے ته ئے ورته كيښوده، او ارشاد ئے اوفرمائيلو اے ابو المسور دا ما تا د پاره ايښے وه او ستا د پاره ده. او مخرمه

اَيُّوبَ قَالَ حَاتِمُ بْنُ وَرْدَانَ حَدَّثَنَا اَيُّوبَ عَنِ ابْنِ وَرْدَانَ حَدَّثَنَا اَيُّوبُ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنِ الْمِسْوَرِ قَدِمَتْ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَقْبِيَةٌ تَابَعَهُ اللَّيْثُ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ.

د طبيعت نه لږ تيز وو. ابن عليه د ايوب نه حاتم دَ ايوب، ابو مليكه، مسور نه نقل كړيدي. چه دا قباګانې رسول الله صلي الله عليه وسلّم خاتم المرسلين دَ پاره پيش كړې شوې وې. او دا حديث ليث هم ابو مليكه نه بيان كړې دې.

باب ۲۵۴: كَيْفَ قَسَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُرَيْظَةَ وَالنَّضِيْرَ وَمَا اَعْطٰى مِنْ ذٰلِكَ فِيْ نَوَائِبِهٖ.

باب ۲۵۴: د بنو قريظه او بنو نضير مال چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم تقسيم كړلو او د خپل اسلامي ضرورتونو د پاره ئې دَ هغې مال نه څومره ور كړلو.

۳۶۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِي الْاَسْوَدِ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَّقُوْلُ كَانَ الرَّجُلُ يَجْعَلُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّخَلَاتِ حَتّٰى افْتَتَحَ قُرَيْظَةَ وَالنَّضِيْرَ فَكَانَ بَعْدَ ذٰلِكَ يَرُدُّ عَلَيْهِمْ.

۳۶۹: عبدالله بن ابي الاسود. معمر د خپل پلار نه حضرت انسؓ نه روايت كوي، يو سړي رسول الله صلي الله عليه وسلّم ته د خپلو قجورو څه اونې وركړې او كوم وخت چه بنو قريظه او بنو نضير حضور صلي الله عليه وسلّم فتح كړل نو حضورؐ د هغوي (انصارو) اونې هغوئ ته واپس كړې.

باب ۲۵۵: بَرَكَةِ الْغَازِيْ فِيْ مَالِهٖ حَيًّا وَّ مَيِّتًا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ وُلَاةِ الْاَمْرِ.

باب ۲۵۵: رسالتمآب صلي الله عليه وسلّم او صحابهؓ وُ سره همركاب كيدل او د جهاد كونكو په مال كښې دَ ژوند او مرګ په حالت كښې د بركت بيان.

۳۷۰: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ قُلْتُ لِاَبِيْ اُسَامَةَ اَحَدَّثَكُمْ هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الزُّبَيْرِ قَالَ لَمَّا وَقَفَ الزُّبَيْرُ يَوْمَ الْجَمَلِ دَعَانِيْ فَقُمْتُ اِلٰى جَنْبِهٖ فَقَالَ يَا بُنَيَّ اِنَّهٗ لَا يُقْتَلُ الْيَوْمَ اِلَّا ظَالِمٌ اَوْ مَظْلُوْمٌ وَ اِنِّيْ لَا اُرَانِيْ اِلَّا

۳۷۰: اسحاق. ابو اسامه. هشام. عروه. عبدالله بن زبيرؓ نه روايت كوي، څما پلار حضرت زبيرؓ چه ميدان جمل كښې اودريدلو، نو زهٔ ئې اوغبنتلم، زهٔ راغلم دَ هغهٔ خوا كښې اودريدم، هغهٔ اووې. اے خويه نن به يا ظالم قتل كړې شي، يا به يو مظلوم د توري لاندې شي. او ماته په نظر راځي چه زهٔ به د مظلوم په حيثيت او وژلے شم. او ما سره لوئې فكر د خپلې قرضې لګيدلې

سَيُقْتَلُ الْيَوْمَ مَظْلُوْمًا وَ إِنَّ مِنْ أَكْبَرِ
هَمِّيْ لَدَيْنِيْ أَفَتُرٰى يُبْقِيْ دَيْنُنَا مِنْ
مَالِنَا شَيْئًا فَقَالَ يُبُنَيَّ بِعْ مِنْ مَالِنَا
فَاقْضِ دَيْنِيْ وَ أَوْصٰى بِالثُّلُثِ وَ ثُلُثِهٖ
لِبَنِيْهِ يَعْنِيْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ الزُّبَيْرِ
يَقُوْلُ ثُلُثُ الثُّلُثِ فَإِنْ فَضَلَ مِنْ
مَالِنَا فَضْلٌ بَعْدَ قَضَاءِ الدَّيْنِ فَثُلُثُهٗ
لِوَلَدِكَ قَالَ هِشَامٌ وَ كَانَ بَعْضُ وَلَدِ
عَبْدِ اللّٰهِ قَدْ وَازٰى بَعْضَ بَنِي الزُّبَيْرِ
خُبَيْبٌ وَ عَبَّادٌ وَلَهٗ يَوْمَئِذٍ تِسْعَةُ بَنِيْنَ
وَ تِسْعُ بَنَاتٍ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ فَجَعَلَ
يُوْصِيْنِيْ بِدَيْنِهٖ وَ يَقُوْلُ يُبُنَيَّ إِنْ
عَجَزْتَ عَنْهُ فَاسْتَعِنْ عَلَيْهِ مَوْلَايَ
قَالَ فَوَاللّٰهِ مَا دَرَيْتُ مَا أَرَادَ حَتّٰى
قُلْتُ يَا أَبَتِ مَنْ مَوْلَاكَ قَالَ اللّٰهُ قَالَ
فَوَاللّٰهِ مَا وَقَعْتُ فِيْ كُرْبَةٍ مِنْ دَيْنِهٖ
إِلَّا قُلْتُ يَا مَوْلَى الزُّبَيْرِ اقْضِ عَنْهُ
دَيْنَهٗ فَيَقْضِيْهِ فَقُتِلَ الزُّبَيْرُ وَلَمْ يَدَعْ
دِيْنَارًا وَّلَا دِرْهَمًا إِلَّا أَرْضِيْنَ مِنْهَا
الْغَابَةُ وَ إِحْدٰى عَشَرَةَ دَارًا بِالْمَدِيْنَةِ وَ
دَارَيْنِ بِالْبَصْرَةِ وَ دَارًا بِالْكُوْفَةِ وَ دَارًا
بِمِصْرَ قَالَ وَ إِنَّمَا كَانَ دَيْنُهُ الَّذِيْ
عَلَيْهِ أَنَّ الرَّجُلَ كَانَ يَأْتِيْهِ بِالْمَالِ
فَيَسْتَوْدِعُهٗ إِيَّاهُ فَيَقُوْلُ الزُّبَيْرُ لَا
وَلٰكِنَّهٗ سَلَفٌ فَإِنِّيْ أَخْشٰى عَلَيْهِ
الضَّيْعَةَ وَمَا وَلِيَ إِمَارَةً عَلَيْهِ إِنَّ

دے (زۀ قرضدارے يم) چه خما قرض ادا کړے. نو خما
دولت باقي بچ پاتے کيدے شي. او اے خما خويه اوس
ته خما مال خرڅ که او خما قرض ادا که. او د هغه د
دريمے حصے د مال ما د پاره وصيت کړے وو. او خما
دے دريمه حصه مال کښے ئے خما د اولاد د پاره
وصيت اوکه. هغۀ اووے د دريمے حصے مال درے
حصے جوړے کړه عبدالله بن زبيرؓ وائي چه تهائي کښے
ئے ذَ يو تهائي د تقسيم وئيلے وو، ځکه چه ذَ قرض د ادا
کولو نه پس خمونږ د مال نه چه څه زياتي بچ شي نو د
هغے دريمه حصه ستا د اولاد ذَ پاره ده. د هشام بيان دے
د عبدالله بعضے ځامن د حضرت زبيرؓ د بعضے ځامنو
همعمر وو لکه خبيب او عباد. او ددے دواړو نهه ځامن
او نهه لونړه وے. د عبدالله بيان دے. بيا هغه ماته ذَ خپل
قرض زر ذَ ادا کولو وصيت اوکه. او وئيلے ائے ځويه که
ته څه امر کښے عاجز شے نو هغے کښے خما د مولا نه
امداد حاصلوه. د عبدالله بيان دے په الله م دے قسم وي
زه پوهه نه شوم چه ددے جملے نه د هغه څه مراد وو، ما
ترے تپوس اوکه بابا جانه، ستا مولا څوک دے جواب
ئے راکۀ، الله تعالیٰ. عبدالله وائي. په الله م دِ قسم وي ذَ
هغۀ قرض ادا کولو باندے چه ما باندے څه مصيبت
راغلے دے. نو ما وئيلے اے ذَ زبيرؓ مولا ته د هغه قرض
ادا کړے. نو الله د هغه د ذمے قرض ادا کړيدے.
حضرت زبيرؓ شهيد شولو. او څه درهم و دينار ئے نه وو
پريښے. البته دوه زمکے ئے ورثه کښے پريښودے. د يو
نوم "غابه" دے. ددے نه علاوه مدينه منوره کښے
يوولس مکانات، بصره کوفه او مصر کښے ئے يو يو

الرَّجُلَ كَانَ يَأْتِيهِ بِالْمَالِ
فَيَسْتَوْدِعُهُ إِيَّاهُ فَيَقُولُ الزُّبَيْرُ
لَا وَلٰكِنَّهُ سَلَفٌ فَإِنِّيْ أَخْشٰى
عَلَيْهِ الضَّيْعَةَ وَمَا وَلِيَ اَمَارَةً قَطُّ وَلَا
جِبَايَةَ خَرَاجٍ وَلَا شَيْئًا إِلَّا أَنْ
يَكُوْنَ فِيْ غَزْوَةٍ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْ مَعَ أَبِيْ بَكْرٍ وَعُمَرَ
وَعُثْمَانَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ
الزُّبَيْرِ فَحَسِبْتُ مَا عَلَيْهِ مِنَ
الدَّيْنِ فَوَجَدْتُّهُ أَلْفَيْ أَلْفٍ وَ
مِائَتَيْ أَلْفٍ قَالَ فَلَقِيَ حَكِيْمُ
بْنُ حِزَامٍ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ الزُّبَيْرِ فَقَالَ
يَا ابْنَ أَخِيْ كَمْ عَلٰى أَخِيْ
مِنَ الدَّيْنِ فَكَتَمَهُ فَقَالَ مِائَةُ
أَلْفٍ فَقَالَ حَكِيْمٌ وَاللّٰهِ مَا
أُرٰى أَمْوَالَكُمْ تَسَعُ بِهٰذِهٖ فَقَالَ لَهُ
عَبْدُ اللّٰهِ أَفَرَأَيْتَكَ إِنْ كَانَتْ
أَلْفَيْ أَلْفٍ وَمِائَتَيْ أَلْفٍ قَالَ
مَا أُرَاكُمْ تُطِيْقُوْنَ هٰذَا فَإِنْ
عَجَزْتُمْ عَنْ شَيْءٍ مِّنْهُ
فَاسْتَعِيْنُوْا بِيْ قَالَ وَكَانَ
الزُّبَيْرُ اشْتَرَى الْغَابَةَ بِسَبْعِيْنَ وَ
مِائَةِ أَلْفٍ فَبَاعَهَا عَبْدُ اللّٰهِ بِأَلْفِ
أَلْفٍ وَسِتِّ مِائَةِ أَلْفٍ ثُمَّ قَامَ
فَقَالَ مَنْ كَانَ لَهٗ عَلَى الزُّبَيْرِ
حَقٌّ فَلْيُوَافِنَا بِالْغَابَةِ فَأَتَاهُ عَبْدُ

مکان پریښودلے وو. د عبدالله بیان دے. د هغه په ذمه د قرض حالت دا وه. که چا به هغه سره خپل مال په طور د امانت کیښودلو نو هغه به جواب ورکولو. چه زهٔ دا مال دَ امانت په طور نه ږدم، البته دَ قرض په طور ئے اخلم، ا خکه چه ماسره ددے د ورک کیدلو ویره ده. او هغه هیڅ کله حاکم اعلٰي کیدل خراج حاصلول. او دَ څهٔ څیز تول کول ئې نه خوښول. د هغه محبوب مشغله دا وه چه هغه به حضورؐ یا صدیق اکبرؓ، فاروق اعظمؓ او حضرت عثمان غنيؓ سره د جهاد میدان ته تللو. د عبدالله بن زبیرؓ بیان دے کوم وخت چه ما دَ هغه په ذمه د قرض حساب اوکه نو هغه دوه کروړه او دوه لکه وو. بیا حکیم بن حزام ماسره یوځائے شو. او هغه اووے اے وراره، اوښایه خما د ورور په ذمه څومره قرض دے، نو ما اصل رقم ظاهر نه که او اُوم وے یو لاکهه، نو حکیم بن حزام اووے. په خدائے چه زهٔ پوهیږم چه تا کښے دَ هغے د ادائیگئ طاقت نشته. نو ما هغه ته اووے که تاته زهٔ ظاهره کړم. نو د هغهٔ په ذمه دَ قرض مقدار دوه کروړه او دوه لکهه دے. نو حکیم بن حزام اووے چه تا کښے ددے د ادائیگئ طاقت نشته. او که ددے د ادائیگئ نه تهٔ عاجزه شئے نو ما نه مدد واخله. او حضرت زبیرؓ د غابه زمکه په یو لاکهه اویا زره اغستے وه چه هغه ما (عبدالله) په شپاړس لاکهه خرڅ کړه او خلقو ته م اووے چه دَ حضرت زبیرؓ په ذمه د چا څه قرض وي نو هغه دِ مونږ ته غابه له راشي نو عبدالله بن جعفر اووے چه زبیرؓ خما څلور لاکهه قرضدار دے که تهٔ غواړے نو زهٔ دا رقم تاته پریږدم. نو ما جواب ورکه چي نه، زه رقم معاف کول نه

اللّٰهِ بْنُ جَعْفَرٍ وَ كَانَ عَلَى
الزُّبَيْرِ اَرْبَعُ مِائَةِ اَلْفٍ فَقَالَ لِعَبْدِ
اللّٰهِ اِنْ شِئْتُمْ تَرَكْتُهَا لَكُمْ قَالَ
عَبْدُ اللّٰهِ لَا قَالَ فَاِنْ شِئْتُمْ
جَعَلْتُمُوْهَا فِيْمَا تُؤَخِّرُوْنَ اِنْ
اَخَّرْتُمْ فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ لَا قَالَ قَالَ
فَاقْطَعُوْا لِيْ قِطْعَةً فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ لَكَ
مِنْ هٰهُنَا اِلٰى هٰهُنَا قَالَ فَبَاعَ مِنْهَا
فَقَضٰى دَيْنَهُ فَاَوْفَاهُ وَ بَقِيَ مِنْهَا اَرْبَعَةُ
اَسْهُمٍ وَ نِصْفٌ فَقَدِمَ عَلٰى مُعَاوِيَةَ وَ
عِنْدَهُ عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ وَالْمُنْذِرُ بْنُ
الزُّبَيْرِ وَابْنُ زَمْعَةَ فَقَالَ لَهُ مُعَاوِيَةُ كَمْ
قُوِّمَتِ الْغَابَةُ قَالَ كُلُّ سَهْمٍ مِائَةَ اَلْفٍ
قَالَ كَمْ بَقِيَ قَالَ اَرْبَعَةُ اَسْهُمٍ وَ
نِصْفٌ قَالَ الْمُنْذِرُ ابْنُ الزُّبَيْرِ قَدْ
اَخَذْتُ سَهْمًا بِمِائَةِ اَلْفٍ قَالَ عَمْرُو
بْنُ عُثْمَانَ قَدْ اَخَذْتُ سَهْمًا بِمِائَةِ
اَلْفٍ وَ قَالَ بْنُ زَمْعَةَ قَدْ اَخَذْتُ سَهْمًا
بِمِائَةِ اَلْفٍ فَقَالَ مُعَاوِيَةُ كَمْ بَقِيَ
فَقَالَ سَهْمٌ وَ نِصْفٌ قَالَ اَخَذْتُهُ
بِخَمْسِيْنَ وَ مِائَةِ اَلْفٍ قَالَ وَ بَاعَ عَبْدُ
اللّٰهِ بْنُ جَعْفَرٍ نَصِيْبَهُ مِنْ مُعَاوِيَةَ
بِسِتِّ مِائَةِ اَلْفٍ فَلَمَّا فَرَغَ ابْنُ الزُّبَيْرِ
مِنْ قَضَاءِ دَيْنِهِ قَالَ بَنُو الزُّبَيْرِ اقْسِمْ
بَيْنَنَا مِيْرَاثَنَا قَالَ لَا وَاللّٰهِ لَا اَقْسِمُ
بَيْنَكُمْ حَتّٰى اُنَادِيَ بِالْمَوْسِمِ اَرْبَعَ

غوارم. نو عبدالله بن جعفر اووے بنه ده دغسے او کړه. چه خما قرض د ټولونه آخر ته کړه ما جواب ور که. داسے هم نشي کيدے. بيا عبدالله اووے د دے زمکے يوه حصه ماته راکړه. نو ما ورته اووے چه دے خائے نه دغے خائے پورے درکولے شي. د راوي بيان دے چه د زمکے هغه حصه هغه په هغه خرڅه کړه او د هغه د قرض ادا کولو نه پس هم دَ هغے زمکے څلور نيمے حصے باقي پاتے شوے. دے نه پس حضرت عبدالله بن زبير معاويه سره ملاقات او که چه هلته عمرو بن عثمان، منذر بن زبير، ابن زمعه ناست وو نو معاويه تپوس او که. د غابه دَ زمکے څه قيمت دے. نو عبدالله بن زبير اووے، د هرے حصے قيمت يو لا کهه پورے راغلے دے. نو امير معاويه تپوس او که، اوس څو حصے باقي دي، جواب ور کړے شو، څلور نيمے حصے، منذر بن زبير اووے يوه حصه خو په يو لا کهه زهٔ اخلم عمرو بن عثمان اووے. د يو لا کهه يوه حصه خما شوه بيا امير معاويه تپوس او که اوس څو حصے پاتے شوے. ما جواب ور که. يوه نيمه حصه نو هغه اووے دا زهٔ په يو نيم لا کهه اخلم. د راوي بيان دے بيا عبدالله بن جعفر خپله اخستے شوے حصه په امير معاويه په شپږ لاکهه خرڅه کړه دے نه پس چه ابن زبير د خپل پلار د قرض د ادائيګئ نه فارغ شو نو د هغه نورو ورونړو اووے. خمونږ ميراث مونږ کښے اوويشه، نو عبدالله بن زبير ورته اووے، زهٔ ستاسو حصے هغه وخته پورے نشم درکولے څو پورے چه څلور کاله مسلسل د حج زمانه کښے زهٔ دا اعلان اونکړم چه دَ چا په زبير څه قرض وي هغه دِ مونږ له راشي چه هغه قرض ورته ادا

سِنِيْنَ اَلَا مَنْ كَانَ لَهُ عَلَى الزُّبَيْرِ دَيْنٌ فَلْيَأْتِنَا فَلْنَقْضِهِ قَالَ فَجَعَلَ كُلَّ سَنَةٍ يُنَادِي بِالْمَوْسِمِ فَلَمَّا مَضٰى اَرْبَعُ سِنِيْنَ قَسَّمَ بَيْنَهُمْ قَالَ فَكَانَ لِلزُّبَيْرِ اَرْبَعُ نِسْوَةٍ وَ رَفَعَ الثُّلُثَ فَاَصَابَ كُلَّ امْرَاَةٍ اَلْفُ اَلْفٍ وَ مِائَتَا اَلْفٍ فَجَمِيْعُ مَالِهٖ خَمْسُوْنَ اَلْفَ اَلْفٍ وَ مِائَتَا اَلْفٍ.

كړو د راوي بيان دے چه عبدالله بن زبيرؓ بيا څلور كاله پورے د حج زمانه كښے دَ خپل پلار د قرضے د ادائيګۍ د پاره خلقو كښے اعلان كولو او څلور كاله نه پس خپل ورونړو كښے ئے تركه يعني ميراث تقسيم كړلو. د حضرت زبير څلور بيبيانے وے. عبدالله بن زبير د مال دريمه حصه اخستے وه، نو هرے بي بي ته دوه لاكهه او لس لس زره درهمه رقم وركړے شو. لنډه دا چه دَ زبيرؓ ټول مال پنځه كروړه او دوه لاكهه وو.

١. د حضرت زبير رضي الله عنه مقصد به دا وو چه همداسے د امانت په طور ئے ماسره كيدے نو بے كاره به پروت وي او د ضائع كيدو خطره به ئے هم وي كه چرے ضائع شو نو ستا مال به ضائع لاړ شي او زه به هم ترے هيڅ نفع وانخستے شم ليكن كه چرے د قرض په صورت كښے ئے خپل ځان سره جمع كړم نو ددے دَ ضائع كيدلو په صورت كښے به هم بهرحال ددے ادا كول ما د پاره ضروري وي او بل فائده منـد اړخ به ددے دا وي چه ستا مال به ماسره بيكاره پروت نه وي بلكه زه به ئے په تجارتي كاروبار كښے هم لګولے شم او ددے نه به نفع حاصلولے شم.

نن صبا ډير خلق وائي چه د هر قسمه سودي كاروبار حراملو سره اسلام دَ تجارتي ترقۍ ډيرے لارے بندے كړے دي او دَ بينكنګ خو څه صورت دَ سره په اسلام كښے شته دے نه. تاسو به غور كړے وي چه زبير رضي الله عنه د سودي لين دين نه بغير چه په كوم صورت باندے عمل كولو هغه دَ بغير سوده بينكنګ شكل وو. دا قسمه مثالونه د صحابه ؤ په زمانه كښے متعدد شته دے، او بعضو نورو اكابرو صحابه ؤ هم خپل تجارتي كاروبار له دغه شان ترقي وركړے وه، يعني د سودي لين دين د لعنت نه به هم محفوظ يئ، د كوم بعضے جُزوي افاديت تسليمولونه پس چه دَ هغے دَ هولناكو ټولوته اعتراف دے. او د تجارتي كاروبار اجتماعي لائن باندے د ترقو صورتونه د اوس نه پيدا كړئ.

بَابٌ ٢٥٦: اِذَا بَعَثَ الْاِمَامُ رَسُوْلًا فِيْ حَاجَةٍ اَوْ اَمَرَهُ بِالْمُقَامِ هَلْ يُسْهَمُ لَهُ.

باب ٢٥٦: هر كله چه امام څوك دَ څهٔ ضرورت په بنا چرته اوليږي، نو دَ هغهٔ دَ حصه رسدي بيان.

٣٧١: حَدَّثَنَا مُوْسٰى حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ مَوْهَبٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ اِنَّمَا تَغَيَّبَ عُثْمَانُ عَنْ بَدْرٍ فَاِنَّهُ كَانَتْ تَحْتَهُ بِنْتُ

٣٧١: موسٰي. ابو عوانه. عثمان بن موهب. حضرت عبدالله بن عمرؓ نه روايت كوي. حضرت عثمانؓ جنګ بدر كښے ځكه شريک نه شو چه دَ رسول الله صلي الله عليه وسلم يوه لور

رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ كَانَتْ مَرِيْضَةً فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ لَكَ اَجْرَ رَجُلٍ مِمَّنْ شَهِدَ بَدْرًا وَ سَهْمَهُ.

چه ذَ هغهٔ تبـر وو، سخته ناروغه وه، نو حضورؐ هغه تـه ارشـاد فـرمـانيلـے وو چـه جنگ بـدر كښـے د شـريـك كيـدونكـي سـړي بـرابـر بـه تـاتـه هم حصه او ثواب حاصليږي.

باب ۲۵۷ : وَمِنَ الدَّلِيْلِ عَلٰى اَنَّ الْخُمُسَ لِنَوَائِبِ الْمُسْلِمِيْنَ مَا سَأَلَ هَوَازِنُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِرِضَاعِهِ فِيْهِمْ فَتَحَلَّلَ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ وَمَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعِدُ النَّاسَ اَنْ يُعْطِيَهُمْ مِنَ الْفَيْءِ وَالْاَنْفَالِ مِنَ الْخُمُسِ وَمَا اَعْطَى الْاَنْصَارَ وَمَا اَعْطٰى جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ تَمْرَ خَيْبَرَ.

باب ۲۵۷ : د مسلمانانو ذَ ضرورت د پاره د خمس د ثابت كيدو يو دليل دا دے چه بنو هوازن رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ته د خپل اسباب او سامان د واپسئ خواست كړيدے د هغے سبب دا دے چه ذ حضورؐ رضاعت بنو هوازن كښے شوے وو او حضور د نورو مسلمانانو برابر د هغوئ هم حصے لګولے وے او حضورؐ به وعده كوله چه فئے او د انفال پنځمے حصے نه به هغوئ له هم وركوي او حضورؐ انصارو له وركړل او حضرت جابرؓ ته ئے د خيبر چوهارے عطا كړے.

۲۷۲: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِي اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ وَ زَعَمَ عُرْوَةُ اَنَّ مَرْوَانَ ابْنَ الْحَكَمِ وَ مِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ اَخْبَرَاهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ حِيْنَ جَاءَهُ وَفْدُ هَوَازِنَ مُسْلِمِيْنَ فَسَأَلُوْهُ اَنْ يَرُدَّ اِلَيْهِمْ اَمْوَالَهُمْ وَ سَبْيَهُمْ فَقَالَ لَهُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَحَبُّ الْحَدِيْثِ اِلَيَّ اَصْدَقُهُ فَاخْتَارُوْا اِحْدَى الطَّائِفَتَيْنِ اِمَّا السَّبْيَ وَ اِمَّا الْمَالَ وَقَدْ كُنْتُ اِسْتَأْنَيْتُ بِهِمْ وَقَدْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ

۲۷۲: سعيد بن عفير. ليث. عقيل. ابن شهاب. عروه. مروان بن حكم ومسور بن مخرمهؓ نه روايت كوي. رسول صلي اللّٰه عليه وسلّم ته بنو هوازن مسلمانان راغلل، او حضورؐ ته ئے خواست اوكه چه د هغوئ قيديان او مال و اسباب هغوئ ته واپس كړئ، حضورؐ ورتـه اوفـرمـائيل خـما هغه خبـره خوښـه وي چـه بـالكل رښتيا وي. تاسو يو څيز اختيار كړئ مال يا قيديان. او ما صرف ستاسو په وجه تقسيم كښے تاخير كړے دے. او حضورؐ د طائف نه په واپسئ څه د پاسه لس شپو پورے د هغوئ د آخري جواب انتظار اوكه. څهٔ وخت چه هغے خلقوته يقين اوشو چه رسول اللّٰه صلعم هغوئ ته صرف يو څيز واپس كوي، نو هغوئ

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنْتَظَرَ اٰخِرَهُمْ بِضْعَ عَشْرَةَ لَيْلَةً حِيْنَ قَفَلَ مِنَ الطَّائِفِ فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُمْ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَيْرُ رَادٍّ اِلَيْهِمْ اِلَّا اِحْدَى الطَّائِفَتَيْنِ قَالُوْا فَاِنَّا نَخْتَارُ سَبْيَنَا فَقَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمُسْلِمِيْنَ فَاَثْنٰى عَلَى اللّٰهِ بِمَا هُوَ اَهْلُهُ ثُمَّ قَالَ اَمَّا بَعْدُ فَاِخْوَانُكُمْ هٰؤُلَاءِ قَدْ جَاؤُنَا تَائِبِيْنَ وَ اِنِّيْ قَدْ رَاَيْتُ اَنْ اَرُدَّ اِلَيْهِمْ سَبْيَهُمْ مَنْ اَحَبَّ اَنْ يُطَيِّبَ فَلْيَفْعَلْ وَمَنْ اَحَبَّ مِنْكُمْ اَنْ يَكُوْنَ عَلٰى حَظِّهٖ حَتّٰى نُعْطِيَهٗ اِيَّاهُ مِنْ اَوَّلِ مَا يَفِيْءُ اللّٰهُ عَلَيْنَا فَلْيَفْعَلْ فَقَالَ النَّاسُ قَدْ طَيَّبْنَا ذٰلِكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَقَالَ لَهُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّا لَا نَدْرِيْ مَنْ اَذِنَ مِنْكُمْ فِيْ ذٰلِكَ مِمَّنْ لَمْ يَأْذَنْ فَارْجِعُوْا حَتّٰى يَرْفَعَ اِلَيْنَا عُرَفَاءُ كُمْ اَمْرَكُمْ فَرَجَعَ النَّاسُ فَكَلَّمَهُمْ عُرَفَاءُ هُمْ ثُمَّ رَجَعُوْا اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرُوْهُ اَنَّهُمْ قَدْ طَيَّبُوْا فَاَذِنُوْا فَهٰذَا الَّذِيْ بَلَغَنَا عَنْ سَبْيِ هَوَازِنَ.

اووې، مونږ خپل قيديان غواړو. نو حضورَ د مسلمانانو مجمع كښې د اللّٰه تعالىٰ تعريف اوكه چه دَ هغې هغه لائق دې او هغې نه پس ئې اوفرمائيل، اې مسلمانانو ستاسو دا وروڼړه دَ شرك نه توبه گار شوې دي او مونږ ته راغلي دي. او زهٔ دا مناسب گنړم چه دَ هغوئ قيديان ورته واپس كړم، نو كوم سړې چه پاكيزگي دوست گنړي هغه له دا كار كول پكار دي. او كوم سړې چه پخپله حصه قائم اوسيدل غواړي، نو هغه دِ هم دَ خپلې حصې قيدي هغوئ ته واپس كړي. او داسې سړي ته به مونږ د هغې د حصې په بدله كښې د ټولونه وړومبې چه اللّٰه تعالىٰ مونږ ته د فئې (غنيمت) مال راكړي د هغه حصه ادا كړو دې اوريدو سره ټولو خلقو اووې، يا رسول اللّٰه صلعم مونږ دې خلقوته د هغوئ قيديان خپله خپله حصه اخستونه بغير واپس كول خوښوو، نو رسول اللّٰهؐ ارشاد اوفرمائيلو تاسو كښې چا ددې اجازت اوكه او چا اجازت اونه كه. مناسب دا دي چه تاسو ټول واپس لاړ شئ او ستاسو سرداران دِ ستاسو د امور و نيابت اوكړي. نو ټول خلق واپس شو، خپلو سردارانو سره ئې خبرې اترې اوكړې، بيا د سردارانو مندوب رسول اللّٰه صلعم خبر كړلو چه ټول خلق په خوشحالئ قيديان واپس وركوي. او د هوازن د قيديانو په حقله دا حديث مونږ ته رسيدلې دې.

۳۷۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ حَدَّثَنَا

۳۷۳: عبداللّٰه. حماد. ايوب. ابو قلابه. قاسم. زهدمؒ نه روايت كوي مونږ ابو موسٰي اشعري سره ناست

أَيُّوْبُ عَنْ أَبِيْ قِلَابَةَ قَالَ وَ حَدَّثَنِيْ الْقَاسِمُ بْنُ عَاصِمٍ الْكَلْبِيُّ وَ أَنَا لِحَدِيْثِ الْقَاسِمِ أَحْفَظُ عَنْ زَهْدَمٍ قَالَ كُنَّا عِنْدَ أَبِيْ مُوْسٰى فَأُتِيَ ذِكْرُ دَجَاجَةٍ وَ عِنْدَهُ رَجُلٌ مِنْ بَنِيْ تَيْمِ اللّٰهِ أَحْمَرُ كَأَنَّهُ مِنَ الْمَوَالِيْ فَدَعَاهُ لِلطَّعَامِ فَقَالَ إِنِّيْ رَأَيْتُهُ يَأْكُلُ شَيْئًا فَقَذِرْتُهُ فَحَلَفْتُ أَنْ لَا اٰكُلَ فَقَالَ هَلُمَّ فَلْأُحَدِّثْكُمْ عَنْ ذَاكَ إِنِّيْ أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ نَفَرٍ مِنَ الْأَشْعَرِيِّيْنَ نَسْتَحْمِلُهُ فَقَالَ وَاللّٰهِ لَا أَحْمِلُكُمْ وَمَا عِنْدِيْ مَا أَحْمِلُكُمْ وَ أُتِيَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِنَهْبِ إِبِلٍ فَسَأَلَ عَنَّا فَقَالَ أَيْنَ النَّفَرُ الْأَشْعَرِيُّوْنَ فَأَمَرَ لَنَا بِخَمْسِ ذَوْدٍ غُرِّ الذُّرٰى فَلَمَّا انْطَلَقْنَا قُلْنَا مَا صَنَعْنَا لَا يُبَارَكُ لَنَا فَرَجَعْنَا إِلَيْهِ فَقُلْنَا إِنَّا سَأَلْنَاكَ أَنْ تَحْمِلَنَا فَحَلَفْتَ أَنْ لَا تَحْمِلَنَا أَفَنَسِيْتَ قَالَ لَسْتُ أَنَا حَمَلْتُكُمْ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ حَمَلَكُمْ وَ إِنِّيْ وَاللّٰهِ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ لَا أَحْلِفُ عَلٰى يَمِيْنٍ فَأَرٰى غَيْرَهَا خَيْرًا مِنْهَا إِلَّا أَتَيْتُ الَّذِيْ هُوَ خَيْرٌ وَ تَحَلَّلْتُهَا.

وو چه هغه ته د چرګ یو تالے راغے، او هغه سره ذَ یو سُر سپین رنګ سړے د بنو تیم ناست وو، او هغه غلام معلومیدهٔ، هغے ته ئے هم بلنه ورکړه ذَ خوراک، نو هغه اووے ما دا خناور په نجاست خوړلو لیدلے دے زهٔ دا مکروه ګنړم، او ما قسم خوړلے دے چه دا به نه خورم. ابو موسٰي اشعري ورته اووے. راځه زهٔ تاته ددے بابت کښے یوه خبره کوم. د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم خدمت کښے یو څو اشعریانو سره ما حاضري اوکړه او سورلي مو طلب کړه. نو حضورؐ اوفرمائیل په اللّٰه مِ دِے قسم وي، زه به تاسوته سورلي درنکړم، او ما سره څه سورلي نشته، بیا رسول اللّٰه صلعم ته د مال غنیمت نه څه اوښان راغلل، نو حضورؐ اوفرمائیل هغه اشعریان چرته دي. بیا حضورؐ مونږ ته پنځه اوښان سپین قب واله راکړل. نو د تلو په وخت مونږ خپل زړهٔ کښے اووے چه دا مونږ څه حرکت اوکه، دے کښے به څمونږ هیڅ برکت نصیب نشي نو مونږ حضورؐ له واپس ورغلو، ورته مو اووے زمونږ په مطالبه تاسوؐ قسم خوړلے وو چه زهٔ به تاسوته سورلي نه درکوم، آیا د سورلئ نه راکولو هغه قسم ستاسوؐ هیر شو؟ نو حضورؐ اوفرمائیل تاسوله ما سورلي نه ده درکړے بلکه اللّٰه تعالٰي تاسوله سورلئ مُهیا کړلے او په اللّٰه مِ دِے قسم وي انشاء اللّٰه کله چه زهٔ په یوهٔ خبره قسم اوخورم[1]، او ذَ هغے خلاف بهتره خبره بیامومم نو کومه چه بهتره خبره وي هغے باندے به عمل کوم او قسم به مات کړم.

[1]. په عربئ کښے واللّٰه وغیره قسم د پاره ډیر الفاظ استعمالیږي او مقصود صرف تاکید وي دلته کښے مراد همدا قسمه قسم دے کوم چه د خبرو اترو په مینځ کښے د عربئ یوه عامه محاوره شان جوړه شوے ده.

۳۷۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ سَرِيَّةً فِيْهَا عَبْدُ اللّٰهِ قِبَلَ نَجْدٍ فَغَنِمُوْا اِبِلًا كَثِيْرًا فَكَانَتْ سِهَامُهُمْ اِثْنَيْ عَشَرَ بَعِيْرًا اَوْ اَحَدَ عَشَرَ بَعِيْرًا اَوْ نُفِّلُوْا بَعِيْرًا بَعِيْرًا.

۳۷۴: عبداللّٰه. مالک. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روايت كوي حضورؑ نجد طرف ته يو ټولے اوليږلو، هغے كښے عبداللّٰه هم وو او هغه خلقو ته مال غنيمت كښے سرې يوولس. دولس دولس اوښان حصه كښے راغلل. او يو يو اوښ هغوئ ته د حصے نه زيات عطا كړے شو.

۳۷۵: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ اَخْبَرَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُنَفِّلُ بَعْضَ مَنْ يَبْعَثُ مِنَ السَّرَايَا لِاَنْفُسِهِمْ خَاصَّةً سِوٰى قَسْمِ عَامَّةِ الْجَيْشِ.

۳۷۵: يحيي. ليث. عقيل. ابن شهاب. سالم. حضرت عبداللّٰه بن عمرؓ نه روايت كوي. حضورؑ چه به كوم سريه ليږله نو هغے كښے بعضے خاص سړو ته به ئے د عام لښكر د حصو نه زياته حصه عطا كوله.

ف: سريه د پنځو سړو نه واخله د څلورو سوو سړو پورے د فوج دسته. هغه لښكر چه هغے كښے به حضور صلعم خپله نه وو شريک شوے بل د يو صحابي ماتحتي كښے به ئے ليږلو.

۳۷۶: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ حَدَّثَنَا بُرَيْدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ بَلَغَنَا مَخْرَجُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ بِالْيَمَنِ فَخَرَجْنَا مُهَاجِرِيْنَ اِلَيْهِ اَنَا وَ اَخَوَانِ لِيْ اَنَا اَصْغَرُهُمْ اَحَدُهُمَا اَبُوْ بُرْدَةَ وَالْاٰخَرُ اَبُوْ رُهْمٍ اِمَّا قَالَ فِيْ بِضْعٍ وَ اِمَّا قَالَ فِيْ ثَلٰثَةٍ وَّ خَمْسِيْنَ اَوْ اِثْنَيْنِ وَ خَمْسِيْنَ رَجُلًا مِنْ قَوْمِيْ فَرَكِبْنَا

۳۷۶: محمد. ابو اسامه. ابو برده. حضرت ابو موسٰي اشعري نه روايت كوي، د حضورؑ دَ هجرت مونږ ته هغه وخت پته اولګيده چه مونږ خلق يمن كښے وو، نو زمونږ دوه وروڼه چه هغے كښے ابو برده وړوكے وو او خما مشر ورور ابو رهم د قوم څو سړو سره دغه دوه پنځوس، درے پنځوس سړي حضور ته په حيثيت د مهاجر روانيدو د پاره يو كشتئ كښے سوارۀ شو. ليكن خمونږ كشتئ مونږ حبشو ته نجاشي طرف ته اورسولو، هلته مونږ

سَفِيْنَةً فَأَلْقَتْنَا سَفِيْنَتُنَا اِلَى النَّجَاشِيِّ بِالْحَبْشَةِ وَ وَافَقْنَا جَعْفَرَ بْنَ اَبِيْ طَالِبٍ وَ اَصْحَابُهُ عِنْدَهُ فَقَالَ جَعْفَرُ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَنَا هٰهُنَا وَ اَمَرَنَا بِالْاِقَامَةِ فَاَقِيْمُوْا مَعَنَا فَاَقَمْنَا مَعَهُ حَتّٰى قَدِمْنَا جَمِيْعًا فَوَافَقْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ افْتَتَحَ خَيْبَرَ فَاَسْهَمَ لَنَا اَوْ قَالَ فَاَعْطَانَا مِنْهَا وَمَا قَسَمَ لِاَحَدٍ غَابَ عَنْ فَتْحِ خَيْبَرَ مِنْهَا شَيْئًا اِلَّا لِمَنْ شَهِدَ مَعَهُ اِلَّا اَصْحَابَ سَفِيْنَتِنَا مَعَ جَعْفَرٍ وَ اَصْحَابِهٖ قَسَمَ لَهُمْ مَعَهُمْ.

جعفر بن ابو طالبؓ او د هغه ملګرو سره یو ځائے شو نو جعفرؓ اووے چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم مونږ دلته رالیږلے یو' او دلته دَ ایساریدو حکم ئے راکړیدے تاسو هم مونږ سره ایسار شئ. نو مونږ دَ هغوئ روانګئ پورے هغوئ سره وو. او مونږ ټولو د هغه ځائے نه کوچ اوکه. او د حضورؐ خدمت کښے حاضر شو' حضورؐ خیبر فتح کړے وو. او حضورؐ مونږ باندے حصه رسدي تقسیم کړله. او حضورؐ هیڅ داسے سړي ته چه فتح خیبر کښے شریک شوے نه وو سوا دَ هغے خلقو نه چه خپله حضورؐ سره وُو او زمونږ کشتئ واله' چه حضرت جعفر او د هغهٔ ملګرو سره وو. دَ مقرره حصے نه زیات هیڅ څیز ورنکړلو.

۳۷۷: حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُنْكَدِرِ سَمِعَ جَابِرًاؓ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ قَدْ جَاءَ نِيْ مَالُ الْبَحْرَيْنِ لَقَدْ اَعْطَيْتُكَ هٰكَذَا وَ هٰكَذَا وَ هٰكَذَا فَلَمْ يَجِيْءُ حَتّٰى قُبِضَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا جَاءَ مَالُ الْبَحْرَيْنِ اَمَرَ اَبُوْ بَكْرٍ مُنَادِيًا فَنَادٰى مَنْ كَانَ لَهٗ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَيْنٌ اَوْ عِدَةٌ فَلْيَأْتِنَا فَاَتَيْتُهٗ فَقُلْتُ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِيْ كَذَا وَ كَذَا فَحَثَالِيْ ثَلٰثًا وَ جَعَلَ

۳۷۷: علي. سفیان. محمد. حضرت جابرؓ نه روایت کوي' حضورؐ ما (جابر) ته اوفرمائیل که دَ بحرین نه مال راشي نو زه به تاله دومره دومره درکړم. خو دَ بحرین د مال راتلو نه مخکښے مخکښے حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم رحلت اوکه. او دَ بحرین د مال غنیمت راتلو نه پس خلیفهٔ وخت صدیق اکبرؓ اعلان اوکه' د چا چه په رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم څه قرض وي یا حضورؐ هغه سره څه وعده کړي وي نو هغه دِ مونږ ته راشي. نو زه (جابر) هغه له ورغلم' ورته مِ اووے' رسول اللّٰه صلعم ماته داسے داسے فرمائیلي وو. نو صدیق اکبرؓ ماله درے ډکے لپے راکړے. او سفیان ددے حدیث بیانولو په وخت د خپل دواړو لاسونو تلي یو ځائے کړل وے بنودل چه ابن منکدر مونږ ټولو ته دا معني ښودلے

سُفۡيَانُ يَحۡثُوۡ بِكَفَّيۡهِ جَمِيۡعًا ثُمَّ قَالَ لَنَا هٰكَذَا قَالَ لَنَا ابۡنُ الۡمُنۡكَدِرِ وَ قَالَ مَرَّةً فَاتَيۡتُ اَبَا بَكۡرٍ فَسَاَلۡتُ فَلَمۡ يُعۡطِنِيۡ ثُمَّ اَتَيۡتُهٗ فَلَمۡ يُعۡطِنِيۡ ثُمَّ اَتَيۡتُهُ الثَّالِثَةَ فَقُلۡتُ سَاَلۡتُكَ فَلَمۡ تُعۡطِنِيۡ ثُمَّ سَاَلۡتُكَ فَلَمۡ تُعۡطِنِيۡ ثُمَّ سَاَلۡتُكَ فَلَمۡ تُعۡطِنِيۡ فَاِمَّا اَنۡ تُعۡطِيَنِيۡ وَ اِمَّا اَنۡ تُبۡخِلَ عَنِّيۡ قَالَ قُلۡتَ تَبۡخَلُ عَلَيَّ مَا مَنَعۡتُكَ مِنۡ مَرَّةٍ اِلَّا وَ اَنَا اُرِيۡدُ اَنۡ اُعۡطِيَكَ قَالَ سُفۡيَانُ وَ حَدَّثَنَا عَمۡرُو عَنۡ مُحَمَّدِ بۡنِ عَلِيٍّ عَنۡ جَابِرٍ فَحَثَالِيۡ حَثۡيَةً وَّ قَالَ عُدَّهَا فَوَجَدۡتُهَا خَمۡسَ مِائَةٍ قَالَ فَخُذۡ مِثۡلَهَا مَرَّتَيۡنِ وَ قَالَ يَعۡنِيۡ ابۡنُ الۡمُنۡكَدِرِ وَ اَيُّ دَاءٍ اَدۡوَءُ مِنَ الۡبُخۡلِ.

دي او دَ مُرّه بيان دا دے چه زه (جابر) حضرت صديق اكبرؓ له ورغلم اوغوښتنه مِ ترے اوكړله نو هغه رانكړل او دغه شان ما درے ځله اوغوښتل، او درے واړه ځله هغهٔ څهٔ رانه كړل. آخر ما (جابر) صديق اكبرؓ ته اوويل چه ما تاسونه درے ځله غوښتنه اوكړله، او درے واړه ځله تاسو رانهٔ كړل، نو اوس تاسو راكړئ يا انكار اوكړئ. حضرت صديقؓ جواب راكړهٔ. تهٔ وائے چه ما انكار اوكه حالانكه ما يو ځل هم منع نه ده كړے. او خما اراده تاته د دركولو ده. سفيان وائي، مونږ ته عمرو د محمّد نه د جابر زباني بيان اوكه چه ما (جابر) ته صديق اكبرؓ ډكه لپه راكړه اووئيلے دا اوشماره، چه ما اوشمارلے نو پنځه سوه وے، بيا صديق اكبرؓ اووے چه دومره دوه ځله نو رواخله. او د ابن منكدر قول دے چه كوم مرض د بخل نه زيات خطرناك دے. (يعني بخل د ټولو مرضونونه زيات خطرناك دے).

۳۷۸: حَدَّثَنَا مُسۡلِمُ ابۡنُ اِبۡرَاهِيۡمَ حَدَّثَنَا قُرَّةُ حَدَّثَنَا عَمۡرُو بۡنُ دِيۡنَارٍ عَنۡ جَابِرِ بۡنِ عَبۡدِ اللّٰهِ قَالَ بَيۡنَمَا رَسُوۡلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ يَقۡسِمُ غَنِيۡمَةً بِالۡجِعِرَّانَةِ اِذۡ قَالَ لَهٗ رَجُلٌ اَعۡدِلۡ فَقَالَ لَهٗ شَقَيۡتَ اِنۡ لَمۡ اَعۡدِلۡ.

۳۷۸: مسلم. قرة. عمرو بن دينار. حضرت جابر بن عبداللّٰهؓ نه روايت كوي. كوم وخت چه حضورؐ جعرانه كښے مال غنيمت تقسيمولو. نو يو سړي اووے، لږ انصاف اوكړے، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، اے بدبخته خما نه سِوا انصاف كوونكے بل څوک نشته.

## بَاب ۲۵۸: مَا مَنَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ عَلَى الۡاُسَارٰى مِنۡ غَيۡرِ اَنۡ يُخَمِّسَ.

## باب ۲۵۸: د خمس اخستو نه بغير د رسالت مآب صلي اللّٰه عليه وسلّم په قيديانو د احسان كولو بيان.

۳۷۹: حَدَّثَنَا اِسۡحٰقُ بۡنُ

۳۷۹: اسحاق بن منصور. عبدالرزاق.

مَنْصُوْرٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنْ اَبِيْهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِيْ اُسَارٰى بَدْرٍ لَوْ كَانَ مُطْعِمُ بْنُ عَدِيٍّ حَيًّا ثُمَّ كَلَّمَنِيْ فِيْ هٰؤُلَاءِ النَّتْنٰى لَتَرَكْتُهُمْ لَهٗ.

معمر. زهري. محمد بن جبير. حضرت جبير نه روايت كوي، ذ بدر ذ قيديانو په حقله حضورؐ ارشاد اوفرمائيلو كه مطعم بن عدي ژوندي وے. او هغه ماته ددے كافرو باره كښے سفارش كړے وے نو ما به دا خلق ذ هغه په خاطر پريښي وو.

## باب ۲۵۹ : وَمِنَ الدَّلِيْلِ عَلٰى اَنَّ الْخُمُسَ لِلْاِمَامِ وَ اَنَّهٗ يُعْطِيْ بَعْضَ قَرَابَتِهٖ دُوْنَ بَعْضٍ مَا قَسَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِبَنِي الْمُطَّلِبِ وَ بَنِيْ هَاشِمٍ مِنْ خُمُسِ خَيْبَرَ قَالَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيْزِ لَمْ يَعُمَّهُمْ بِذٰلِكَ وَلَمْ يَخُصَّ قَرِيْبًا دُوْنَ مَنْ اَحْوَجَ اِلَيْهِ وَ اِنْ كَانَ الَّذِيْ اَعْطٰى لِمَا يَشْكُوْا اِلَيْهِ مِنَ الْحَاجَةِ وَلِمَا مَسَّتْهُمْ فِيْ جَنْبِهٖ مِنْ قَوْمِهِمْ وَ حُلَفَائِهِمْ.

## باب ۲۵۹ : امام ته حق حاصل دے چه هغه

خمس خپلو بعضو عزيزانوله ورکړي. ذ هغهٔ ددے اختيار دليل دا دے چه حضورؐ ذ خيبر د خمس نه بنو مطلب او بنو هاشم ته ورکړل. او عمر بن عبدالعزيز بيان کوي چه حضورؐ تولو قريشوته د خيبر د خمس نه دے ورکړے او حضور صلي الله عليه وسلّم د چا محتاج نه علاوه دا خمس چا عزيز رشته دار ته خاص طور سره نه دے ورکړے او حضورؐ به د هر فرد د حاجت لحاظ ساتلو او د خمس ورکولو په وخت به ئے د قرابت او قومي حليف کيدو خيال پورے هم ملحوظ نه دے ساتلے.

۳۸۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ قَالَ مَشَيْتُ اَنَا وَ عُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَعْطَيْتَ بَنِي الْمُطَّلِبِ وَ تَرَكْتَنَا وَ نَحْنُ وَهُمْ مِنْكَ بِمَنْزِلَةٍ

۳۸۰: عبدالله. ليث. عقيل. ابن شهاب. ابن مسيب. حضرت جبير بن مطعم نه روايت کوي. د حضورؐ خدمت کښے عثمان بن عفانؓ او ما حاضري اوکړه، او ونيلے مو يا رسول اللّٰهؐ تاسو خو بنو مطلب له ورکړل او مونږ مو پريښے يو. حالانکه هغوئ او مونږ ستاسو نظر کښے يوه درجه لرو، نو حضورؐ ارشاد اوفرمائيلو بيشکه بنو

وَاحِدَةٍ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّمَا بَنُو الْمُطَّلِبِ وَ هَاشِمٌ شَيْءٌ وَاحِدٌ قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ يُوْنُسُ وَ زَادَ قَالَ جُبَيْرٌ وَلَمْ يُقْسِمِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِبَنِيْ عَبْدِ شَمْسٍ وَلَا لِبَنِيْ نَوْفَلٍ وَ قَالَ ابْنُ اِسْحَاقَ عَبْدُ شَمْسٍ وَ هَاشِمٌ وَالْمُطَّلِبُ اِخْوَةٌ لِاُمٍّ وَ اُمُّهُمْ عَاتِكَةُ بِنْتُ مُرَّةَ وَ كَانَ نَوْفَلٌ اَخَاهُمْ لِاَبِيْهِمْ.

مطلب او بنو هاشم يو درجه كښې دي. دلين بيان دے. ماته يونس او جبير دومره لفظ زيات وئيلے دے چه حضورؐ ذَ بنو عبد شمس او بنو نفل باندے هيڅ څيز نه دے تقسيم كړے. ابن اسحاق وائي، چه بنو عبد شمس، بنو هاشم او بنو مطلب اخيافي وروڼه دي. او ذَ هغوئ ذَ مور نوم عاتكه بنت مره دے. او بنو نوفل د هغوئ ذَ پلار ذَ طرف نه علاتي ورور دے.

ف: اخيافي: ماں جائے، هغه ورور چه ذَ هغوئ مور يوه او پلار جدا جدا وي.

## بَابٌ ۲۶۰: مَنْ لَمْ يُخَمِّسِ الْاَسْلَابَ وَمَنْ قَتَلَ قَتِيْلًا فَلَهٗ سَلَبُهٗ مِنْ غَيْرِ اَنْ يُخَمَّسَ وَ حُكْمِ الْاِمَامِ فِيْهِ.

## باب ۲۶۰: كوم سړے چه د مقتول كافرو ساز و سامان كښې خمس وانخلي، او څوك چه يو كافر قتل كړي نو د مقتول كافرانو سازوسامان ذ هغه دے بغير ددے خبرے نه چه هغه خمس او كاړي يا د امام حكم حاصل كړي.

۱۳۸۱: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يُوْسُفُ بْنُ الْمَاجِشُوْنَ عَنْ صَالِحِ بْنِ اِبْرَاهِيْمَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ جَدِّهٖ قَالَ بَيْنَا اَنَا وَاقِفٌ فِي الصَّفِّ يَوْمَ بَدْرٍ فَنَظَرْتُ عَنْ يَمِيْنِيْ وَ شِمَالِيْ فَاِذَا اَنَا بِغُلَامَيْنِ مِنَ الْاَنْصَارِ حَدِيْثَةٍ اَسْنَانُهُمَا تَمَنَّيْتُ اَنْ اَكُوْنَ بَيْنَ اَضْلَعَ مِنْهُمَا فَغَمَزَنِيْ اَحَدُهُمَا فَقَالَ يَا عَمِّ هَلْ

۱۳۸۱: مسدد. يوسف بن ماجشون. صالح بن ابراهيم. عبدالرحمٰن بن عوف نه روايت كوي چه زه عبدالرحمٰن بن عوف ذَ بدر په ورځ په يو صف كښې ووم. او ښما ښي او ګس اړخ ته دوه كم عمره انصاري هلكان ولاړ وو. ښما زړهٔ كښې هغه وخت دا راغلل چه كاش زهٔ ذَ دوو طاقتورو سړو په مينځ كښې وے. دے دوران كښې هغے دواړو كښې يو هلك مانه تپوس اوكه چه كاكا جي آيا تاسو ابوجهل پيژنئ، ما جواب وركه، او، ليكن اے وراره تاته د هغهٔ څه ضرورت دے نو هغے كم عمره انصاري اووے ماته دا خبر رارسيدلے دے

تَعْرِفُ اَبَا جَهْلٍ قُلْتُ نَعَمْ مَا حَاجَتُكَ اِلَيْهِ يَا ابْنَ اَخِيْ قَالَ اُخْبِرْتُ اَنَّهُ يَسُبُّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَئِنْ رَاَيْتُهُ لَا يُفَارِقُ سَوَادِيْ سَوَادَهُ حَتّٰى يَمُوْتَ الْاَعْجَلُ مِنَّا فَتَعَجَّبْتُ لِذٰلِكَ فَغَمَزَنِيْ الْاٰخَرُ فَقَالَ لِيْ مِثْلَهَا فَلَمْ اَنْشَبْ اَنْ نَظَرْتُ اِلٰى اَبِيْ جَهْلٍ يَجُوْلُ فِي النَّاسِ قُلْتُ اَلَا اِنَّ هٰذَا صَاحِبُكُمَا الَّذِيْ سَاَلْتُمَانِيْ فَابْتَدَرَاهُ بِسَيْفَيْهِمَا فَضَرَبَاهُ حَتّٰى قَتَلَاهُ ثُمَّ انْصَرَفَا اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرَاهُ فَقَالَ اَيُّكُمَا قَتَلَهُ قَالَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا اَنَا قَتَلْتُهُ فَقَالَ هَلْ مَسَحْتُمَا سَيْفَيْكُمَا قَالَا لَا فَنَظَرَ فِي السَّيْفَيْنِ فَقَالَ كِلَاكُمَا قَتَلَهُ وَ سَلَبُهُ لِمُعَاذِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْجَمُوْحِ وَ كَانَا مُعَاذُ بْنُ عَفْرَاءَ وَ مُعَاذُ بْنُ عَمْرِو بْنِ الْجَمُوْحِ.

چه هغهٔ رسول اللّٰهؐ ته کنځل کوي، او قسم دے په هغه ذات چه د هغه لاس کښې څما ساه ده که ما هغه اوليدلو، نو بيا زما جسم د هغه د جسم نه جدا کيدے نشي حتّٰي چه مونږ دواړو کښې يو له مرګ راشي. دے خبر آوريدو سره زهٔ حيران شوم. بيا هغے دويم هم ماته دَ ورومبني په شان خبره اوکړه. بيا لږ ساعت کښې ابوجهل په منډه په نظر راغے نو ما هغوئ ته اووے داهغه سړے دے چه دَ هغه متعلق تاسو تپوس کوئ نو هغے دواړو خپلو تورو سره په هغه حمله اوکړه او په وهلو وهلو ئے قتل که، بيا هغه دواړه واپس راغلل او حضورؐ ته ئے د ابوجهل دَ قتل اطلاع ورکړله، حضورؐ اوفرمائيل، تاسو کښې کوم يو هغه قتل که، نو هغوئ کښې هر يو وئيلے چه ما قتل کړيدے. حضورؐ تپوس اوکه، آيا تاسو خپله د وينو ډکه توره صفا کړيده، هغوي دواړو په يو آواز اووے جي نه، نو حضورؐ هغه دواړه تورے اوکتلے، وے فرمائيل تاسو دواړو هغه قتل کړيدے. ليکن دَ هغهٔ ساز و سامان او مال و سباب به معاذ بن عمرو بن جموح ته ورکيږي او هغه دواړه هلکان حقيقت کښې معاذ بن عفراؓ او معاذ بن عمرو بن جموح اوختل.

۳۸۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ يَحْيٰى ابْنِ سَعِيْدٍ عَنِ ابْنِ اَفْلَحَ عَنْ اَبِيْ مُحَمَّدٍ مَوْلٰى اَبِيْ قَتَادَةَ عَنْ اَبِيْ قَتَادَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ حُنَيْنٍ فَلَمَّا الْتَقَيْنَا كَانَتْ لِلْمُسْلِمِيْنَ جَوْلَةٌ

۳۸۲: عبداللّٰه. مالک. يحيي. ابن افلح. ابو محمد. ابو قتاده نه روايت کوي. دَ حنين په ورځ مونږ د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم همرکاب وو چه زمونږ دے مقابله کښې مونږ مسلمانانو ته څه شکست شان ښکاره شو ما يو مشرک اوليد چه په يو مسلمان ئے حمله کړے ده نو زهٔ راتاؤ شوم دَ هغهٔ شا طرف ته راغلم او دَ هغه په اوږه م په

فَرَأَيْتُ رَجُلًا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ عَلَا رَجُلًا مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ فَاسْتَدَرْتُ حَتّٰى اَتَيْتُهُ مِنْ وَّرَائِهِ حَتّٰى ضَرَبْتُهُ بِالسَّيْفِ عَلٰى حَبْلِ عَاتِقِهِ فَاَقْبَلَ عَلَيَّ فَضَمَّنِيْ ضَمَّةً وَجَدْتُ مِنْهَا رِيْحَ الْمَوْتِ ثُمَّ اَدْرَكَهُ الْمَوْتُ فَاَرْسَلَنِيْ فَلَحِقْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ فَقُلْتُ مَا بَالُ النَّاسِ قَالَ اَمْرُ اللّٰهِ ثُمَّ اِنَّ النَّاسَ رَجَعُوْا وَ جَلَسَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَنْ قَتَلَ قَتِيْلًا لَهُ عَلَيْهِ بَيِّنَةٌ فَلَهُ سَلَبُهُ فَقُمْتُ فَقُلْتُ مَنْ يَّشْهَدُ لِيْ ثُمَّ جَلَسْتُ ثُمَّ قَالَ مَنْ قَتَلَ قَتِيْلًا لَهُ عَلَيْهِ بَيِّنَةٌ فَلَهُ سَلَبُهُ فَقُلْتُ مَنْ يَّشْهَدُ لِيْ ثُمَّ جَلَسْتُ ثُمَّ قَالَ الثَّالِثَةَ مِثْلَهُ فَقُمْتُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَالَكَ يَا اَبَا قَتَادَةَ فَقَصَصْتُ عَلَيْهِ الْقِصَّةَ فَقَالَ رَجُلٌ صَدَقَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَ سَلَبُهُ عِنْدِيْ فَاَرْضِهِ عَنِّيْ فَقَالَ اَبُوْبَكْرِ الصِّدِّيْقُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ لَا هَا اللّٰهُ اِذًا لَّا يَعْمَدُ اِلٰى اَسَدٍ مِّنْ اُسُدِ اللّٰهِ يُقَاتِلُ عَنِ اللّٰهِ وَ رَسُوْلِهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعْطِيْكَ سَلَبَهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَدَقَ فَاَعْطَاهُ فَبِعْتُ الدِّرْعَ فَابْتَعْتُ بِهٖ

توره حمله اوکړه، نو هغه زما مقابلے ته اودرید او ماله ئے دومره زور راکړو چه ساه مِ په وتو شوه. بیا هغه مړ شولو نو زهٔ دَ هغهٔ نه خلاص شومه بیا مانه حضرت فاروق اعظمؓ نه تپوس اوکه چه دَ خلقو څه حال دے، هغه جواب راکه، د اللّٰه حکم دے. دے نه پس هغه ټول خلق واپس شو. او رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم کیناست وے فرمائیل چا چه کوم کافر قتل کړے وي، او هغهٔ سره ثبوت وي نو د هغے مقتول کافر مال او اسباب به هغے مسلمان مجاهد ته ورکیږي. نو زهٔ (ابو قتاده) اودریدم وئیلے مِ، څما ګواهي به څوک اوکړي، او بیا کیناستم. دے نه پس په دویم ځل حضورؐ اوفرمائیل چا سره چه د یو قتل ثبوت وي نو هغه ته به د هغه مال او اسباب ورکیږي. زهٔ اودریدم او ومِ وے څوک دے چه څما شهادت به اوکړي. او دے وئیلو سره کیناستم. دے نه پس حضورؐ د مخکښے په شان په دریم ځل بیا اوفرمائیل. نو زه اودریدم حضورؐ ماته اُفرمائیل چه قتاده په تا څه شوي دي، نو ما ورته ټوله قصه تیره کړه نو یو سړے اودرید، عرض ئے اوکه، یا رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم دا ابو قتاده ریښتینے دے او دَ هغے مقتول کافر ساز و سامان ماسره دے، او دے ما نه راضي کړئے، نو صدیق اکبرؓ اووے، نه، په اللّٰه مِ دِ قسم وي حضورؐ به د اللّٰه د امزرو ته یو امزري سره چه اللّٰه او دَ هغه دَ رسولؐ د طرف نه جنګ کوي داسے نه کوي چه دَ هغهٔ ساز و سامان تاله درکړي په دے خبره حضورؐ اوفرمائیل، دے ریښتیا وائي، نو هغه ساز و سامان هغه ماته راکړلو او ما دَ هغهٔ زغره خرڅه کړه. او د بنو سلمه یو باغ مِ پړے

فَرَأَيْتُ رَجُلًا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ عَلَا رَجُلًا مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ فَاسْتَدَرْتُ حَتّٰى اَتَيْتُهُ مِنْ وَرَائِهٖ حَتّٰى ضَرَبْتُهُ بِالسَّيْفِ عَلٰى حَبْلِ عَاتِقِهٖ فَاَقْبَلَ عَلَيَّ فَضَمَّنِيْ ضَمَّةً وَجَدْتُ مِنْهَا رِيْحَ الْمَوْتِ ثُمَّ اَدْرَكَهُ الْمَوْتُ فَاَرْسَلَنِيْ فَلَحِقْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ فَقُلْتُ مَا بَالُ النَّاسِ قَالَ اَمْرُ اللّٰهِ ثُمَّ اِنَّ النَّاسَ رَجَعُوْا وَ جَلَسَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَنْ قَتَلَ قَتِيْلًا لَهُ عَلَيْهِ بَيِّنَةٌ فَلَهُ سَلَبُهُ فَقُمْتُ فَقُلْتُ مَنْ يَشْهَدُ لِيْ ثُمَّ جَلَسْتُ ثُمَّ قَالَ مَنْ قَتَلَ قَتِيْلًا لَهُ عَلَيْهِ بَيِّنَةٌ فَلَهُ سَلَبُهُ فَقُلْتُ مَنْ يَّشْهَدُ لِيْ ثُمَّ جَلَسْتُ ثُمَّ قَالَ الثَّالِثَةَ مِثْلَهُ فَقُمْتُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَالَكَ يَا اَبَا قَتَادَةَ فَقَصَصْتُ عَلَيْهِ الْقِصَّةَ فَقَالَ رَجُلٌ صَدَقَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَ سَلَبُهُ عِنْدِيْ فَاَرْضِهٖ عَنِّيْ فَقَالَ اَبُوْبَكْرِ الصِّدِّيْقُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ لَا هَا اللّٰهُ اِذًا لَّا يَعْمَدُ اِلٰى اَسَدٍ مِّنْ اُسُدِ اللّٰهِ يُقَاتِلُ عَنِ اللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعْطِيْكَ سَلَبَهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَدَقَ فَاَعْطَاهُ فَبِعْتُ الدِّرْعَ فَابْتَعْتُ بِهٖ

توره حمله اوکړه، نو هغه زما مقابلے ته اودرید او مالہ ئے دومره زور راکړو چه ساه مِ په وَتو شوه. بیا هغه مړ شولو نو زهٔ دَ هغهٔ نه خلاص شومه بیا ما دَ حضرت فاروق اعظمؓ نه تپوس اوکه چه دَ خلقو څه حال دے، هغه جواب راکه، د اللّٰه حکم دے. دے نه پس هغه ټول خلق واپس شو. او رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلَم کیناست وے فرمائیل چا چه کوم کافر قتل کړے وي، او هغهٔ سره ثبوت وي نو د هغے مقتول کافر مال او اسباب به هغے مسلمان مجاهد ته ورکیږي. نو زهٔ (ابو قتاده) اودریدم وئیلے مِ، څما ګواهي به څوک اوکړي، او بیا کیناستم. دے نه پس په دویم ځل حضورؐ اوفرمائیل چا سره چه د یو قتل ثبوت وي نو هغه ته به د هغه مال او اسباب ورکیږي. زهٔ اودریدم او وم وے څوک دے چه څما شهادت به اوکړي. او دے وئیلو سره کیناستم. دے نه پس حضورؐ د مخکښے په شان په دریم ځل بیا اوفرمائیل. نو زه اودریدم حضورؐ ماته اُفرمائیل چه قتاده په تا څه شوي دي، نو ما ورته ټوله قصه تیره کړه نو یو سړے اودرید، عرض ئے اوکه، یا رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلَم دا ابو قتاده ریښتینے دے او دَ هغے مقتول کافر ساز و سامان ماسره دے، او دے ما نه راضي کړئے، نو صدیق اکبرؓ اووے، نه، په اللّٰه مِ دِ قسم وي حضورؐ به د اللّٰه د امزرو نه یو امزري سره چه اللّٰه او دَ هغه دَ رسولؐ د طرف نه جنګ کوي داسے نه کوي چه دَ هغهٔ ساز و سامان تاله درکړي په دے خبره حضورؐ اوفرمائیل، دے ریښتیا وائي، نو هغه ساز و سامان هغه ماته راکړلو او ما دَ هغهٔ زغره خرڅه کړه. او د بنو سلمه یو باغ مِ پېرے

مَعْرُوْفًا فِيْ بَنِيْ سَلَمَةَ فَإِنَّهُ لَاَوَّلُ مَالٍ تَأَثَّلْتُهُ فِي الْإِسْلَامِ.

واخست، او د اسلام زمانه كښې دا ذ تپولونه وړومبې دور وو چه هغې كښې ماته دا مال حاصل شوے وو.

بَاب ۱۲۶۱: مَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعْطِي الْمُؤَلَّفَةَ قُلُوْبُهُمْ وَ غَيْرَهُمْ مِنَ الْخُمُسِ وَ نَحْوِهِ رَوَاهُ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ زَيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۱۲۶۱: د رسالتمآب صلي اللّٰه عليه وسلّم مؤلفة القلوب وغيره د خمس يا دا شان د بل مال نه د وركولو بيان. دا حديث حضرت عبداللّٰه بن زيد ذ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كړيدے.

۳۸۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا الْاَوْزَاعِيُّ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ وَ عُرْوَةَ ابْنِ الزُّبَيْرِ اَنَّ حَكِيْمَ ابْنَ حِزَامٍ قَالَ سَأَلْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَعْطَانِيْ ثُمَّ سَأَلْتُهُ فَاَعْطَانِيْ ثُمَّ قَالَ لِيْ يَا حَكِيْمُ اِنَّ هٰذَا الْمَالَ خَضِرٌ حُلْوٌ فَمَنْ اَخَذَهُ بِسَخَاوَةِ نَفْسٍ بُوْرِكَ لَهُ فِيْهِ وَمَنْ اَخَذَهُ بِاِشْرَافِ نَفْسٍ لَمْ يُبَارَكْ لَهُ فِيْهِ وَ كَانَ كَالَّذِيْ يَأْكُلُ وَلَا يَشْبَعُ وَالْيَدُ الْعُلْيَا خَيْرٌ مِنَ الْيَدِ السُّفْلٰى قَالَ حَكِيْمٌ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَالَّذِيْ بَعَثَكَ بِالْحَقِّ لَا اَرْزَأُ اَحَدًا بَعْدَكَ شَيْئًا حَتّٰى اُفَارِقَ الدُّنْيَا فَكَانَ اَبُوْبَكْرٍ يَدْعُوْ حَكِيْمًا لِيُعْطِيَهُ الْعَطَاءَ فَيَأْبٰى اَنْ يَقْبَلَ مِنْهُ

۳۸۳: محمد. اوزاعي. زهري. سعيد بن مسيب او عروه بن زبيرؓ. حكيم بن حزامؓ نه روايت كوي. حضورؐ نه ما څه طلب كړل، نو حضورؐ راكړل، بيا په دويم ځل مِ اوغوښتل، نو حضورؐ بيا راكړل اووے فرمائيل. اے حكيم، دا مال سرسبز اوخوږ دے. څوک چه دا ذ لالچ نه بغير اخلي نو ذ هغه مال كښې به بركت وي، او څوک چه دا ذ خپل نفس او خواهش د سيرابئ ذ پاره حاصلوي، نو د هغه مال كښې هيڅ بركت نه وي. او ددے مثال داسے دے، چه خوري ئے، خو مړيږي پرے نه. او (واوره) وركونكے لاس ذ اخستونكي لاس نه زيات ښهٔ دے. او ما (حكيم بن حزامؓ) عرض اوكه. يا رسول اللّٰهؐ قسم دے په هغه ذات چه تاسوؐ ئے حق سره راليږلي يئ. زه به ستاسو نه پس د مرګه پورے د چا مخكښې د سوال لاس اوږد نه كړم. حضرت ابوبكر صديقؓ د خپل خلافت زمانه كښې حكيم بن حزام رابللو چه هغهٔ له څه مال وركړي خو هغه ددے ذ اخستو نه انكار اوكړلو. بيا حضرت عمر فاروقؓ د خپل خلافت زمانه كښې هغه د رقم وركولو د پاره طلب كهٔ خو هغه،

شَيْئًا ثُمَّ اِنَّ عُمَرَ دَعَاهُ لِيُعْطِيَهُ فَاَبٰى اَنْ يَقْبَلَهُ فَقَالَ يَا مَعْشَرَ الْمُسْلِمِيْنَ اِنِّيْ اَعْرِضُ عَلَيْهِ حَقَّهُ الَّذِيْ قَسَمَ اللّٰهُ لَهُ مِنْ هٰذَا الْفَيْءِ فَيَاْبٰى اَنْ يَاْخُذَهُ فَلَمْ يَرْزَاْ حَكِيْمٌ اَحَدًا مِنَ النَّاسِ بَعْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى تُوُفِّيَ.

هغه ته د ورتلو نه انکار اوکه، نو فاروق اعظمؓ د مسلمانانو په مجمع کښې اووے. اے مسلمانانو، حکیم بن حزام ته دَ هغه، هغه حق چه د فې نه اللّٰه تعالیٰ هغه د پاره مقرر کړیدے هغه ته ورکول غواړم، خو هغه ددے د اخستلو نه انکار کوي. او حکیم بن حزام د حضورؐ د وفات نه پس هیڅکله د خپلے آخري ساه پورے دَ چا نه څه څیز اونه غوښتلو.

۳۸۴: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ نَافِعٍ اَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّهُ كَانَ عَلَيَّ اِعْتِكَافُ يَوْمٍ فِي الْجَاهِلِيَّةِ فَاَمَرَهُ اَنْ يَفِيَ بِهٖ قَالَ وَ اَصَابَ عُمَرُ جَارِيَتَيْنِ مِنْ سَبْيِ حُنَيْنٍ فَوَضَعَهُمَا فِيْ بَعْضِ بُيُوْتِ مَكَّةَ قَالَ فَمَنَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى سَبْيِ حُنَيْنٍ فَجَعَلُوْا يَسْعَوْنَ فِي السِّكَكِ فَقَالَ عُمَرُ يَا عَبْدَ اللّٰهِ اُنْظُرْ مَا هٰذَا فَقَالَ مَنَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى السَّبْيِ قَالَ اذْهَبْ فَاَرْسِلِ الْجَارِيَتَيْنِ قَالَ نَافِعٌ وَلَمْ يَعْتَمِرْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْجِعِرَّانَةِ وَلَوْ اِعْتَمَرَ لَمْ يَخْفَ عَلٰى عَبْدِ اللّٰهِ وَ زَادَ جَرِيْرُ بْنُ حَازِمٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ مِنَ الْخُمُسِ وَ رَوَاهُ مَعْمَرٌ

۳۸۴: ابو نعمان. حماد. ایوب. نافع نه روایت کوي، حضرت فاروق اعظمؓ اووے یا رسول اللّٰه صلعم دَ زمانه جاهلیت خما په ذمه دَ یوے ورځے اعتکاف باي دے، نو حضورؐ دَ هغے د پوره کولو حکم ورکړلو. دَ نافع بیان دے دَ فاروق اعظمؓ حصه کښے د حنین د قیدیانو نه دوه وینزے راغلے چه هغه مکه معظمه کښې چاسره پریښې وے. نافع وائي. حضورؐ چه د حنین په قیدیانو احسان اوکه نو خلقو په کوسو کښې منډے وهلے. فاروق اعظمؓ د خپل ځوئ عبداللّٰهؓ نه تپوس اوکه، اوګوره چه څه خبره ده، هغه جواب ورکه، چه حضورؐ په قیدیانو احسان اوکه، هغوئ ئے آزاد کړي دي. نو حضرت عمرؓ اووے لاړ شه، ته هم هغه دوه وینزے آزادے کړه. د نافع بیان دے حضورؐ دَ مقام جعرانه نه عمره اونکړه، اوکه حضورؐ عمره کولے، نو دا امر به دَ حضرت عبداللّٰه نه پټ نه وو. جریر بن حازم دَ ایوب، نافع او ابن عمرؓ په ذریعه دا اضافه کړیدهچه د خمس نه او معمر، د ایوب، نافع او حضرت ابن عمرؓ په وسیله دا بیان کړے دئ، چه

عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ فِي النَّذْرِ وَلَمْ يَقُلْ يَوْمٍ.

حضورؐ دَ نـذرونـو پوره کولو باره کښې لفظ يوم نه دے فرمائيلے.

۳۸۵: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا جَرِيْرُ بْنُ حَازِمٍ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَمْرُو بْنُ تَغْلِبَ قَالَ اَعْطٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَوْمًا وَ مَنَعَ اٰخَرِيْنَ فَكَاَنَّهُمْ عَتِبُوْا عَلَيْهِ فَقَالَ اِنِّيْ اُعْطِيْ قَوْمًا اَخَافُ ظَلْعَهُمْ وَ جَزْعَهُمْ وَ اَكِلُ اَقْوَامًا اِلٰى مَا جَعَلَ اللّٰهُ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مِنَ الْخَيْرِ وَالْغِنٰى مِنْهُمْ عَمْرُو بْنُ تَغْلِبَ فَقَالَ عَمْرُو بْنُ تَغْلِبَ مَا اُحِبُّ اَنَّ لِيْ بِكَلِمَةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُمْرَ النَّعَمِ وَ زَادَ اَبُوْ عَاصِمٍ عَنْ جَرِيْرٍ قَالَ سَمِعْتُ الْحَسَنَ يَقُوْلُ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ تَغْلِبَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُتِيَ بِمَالٍ اَوْ بِسَبْيٍ فَقَسَمَهُ بِهٰذَا.

۳۸۵: موسي. جرير. حسن. عمرو بن تغلبؓ نه روايت کوي، چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم (د مال يا د قيديانو) نه بعضے خلقوله ورکړل. او بعضو لـه ئے ورنکړل او چـالـه چه ئے چه نه وو ورکړي، نو هغوئ خشمګين شو، نو حضورؐ اوفرمائيل. زهٔ بعضے خلقونه دَ هغوئ دَ کجروئ او بے صبرئ په وجه ورکوم، او بعضے خلق دَ هغوئ په نيکئ او استغنائے نفس پريږدم، چه الله تعالٰي د هغوئ په زړونو کښے ايښے دي. او هغے خلقو کښے عمرو بن تغلب هم دے، او عمرو بن تغلب به وئيلے. زهٔ دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم ددے فرمان په عوض دا مناسب نه ګنړم چه ماته دے سرهٔ (سرهٔ) اوښان په لاس راشي (او ماته د رسول الله صلعم قول ډير کافي دے) ابو عاصم دَ جرير، حسن په توسط بيان کړيدے عمرو بن تغلب به وئيلے چه رسالتمآب صلعم ته مال و زر او قيديان به راغلل نو حضورؐ به هغه د مخکښے په شان تقسيم کړل.

۳۸۶: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنِّيْ اُعْطِيْ قُرَيْشًا اَتَاَلَّفُهُمْ لِاَنَّهُمْ حَدِيْثُ عَهْدٍ بِجَاهِلِيَّةٍ.

۳۸۶: ابوالوليد. شعبه. قتاده. حضرت انسؓ نه روايت کوي حضرت ارشاد اوفرمائيلو. زهٔ قريشو ته ځکه ورکوم چه دَ هغوئ زړونه اسلام ته مائل شي، ځکه چه دوئ زمانهٔ جاهليت ته زيات قريب وي.

۳۸۷: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ قَالَ

۳۸۷: ابواليمان. شعيب. زهري. حضرت انسؓ بن مالک نه روايت کوي. حضورؐ ته بعضے

اَخْبَرَنِيْ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ اَنَّ نَاسًا مِنَ الْاَنْصَارِ قَالُوْا لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ اَفَاءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ اَمْوَالِ هَوَازِنَ مَا اَفَاءَ فَطَفِقَ يُعْطِيْ رِجَالًا مِنْ قُرَيْشٍ الْمِائَةَ مِنَ الْاِبِلِ فَقَالُوْا يَغْفِرُ اللّٰهُ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعْطِيْ قُرَيْشًا وَ يَدَعُنَا وَ سُيُوْفُنَا تَقْطُرُ مِنْ دِمَائِهِمْ قَالَ اَنَسٌ فَحُدِّثَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَقَالَتِهِمْ فَاَرْسَلَ اِلَى الْاَنْصَارِ فَجَمَعَهُمْ فِيْ قُبَّةٍ مِنْ اَدَمٍ وَلَمْ يَدْعُ مَعَهُمْ اَحَدًا غَيْرَهُمْ فَلَمَّا اجْتَمَعُوْا جَاءَهُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا كَانَ حَدِيْثٌ بَلَغَنِيْ عَنْكُمْ قَالَ لَهٗ فُقَهَاؤُهُمْ اَمَّا ذَوُوْا رَاْيِنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَلَمْ يَقُوْلُوْا شَيْئًا وَ اَمَّا اُنَاسٌ مِنَّا حَدِيْثَةٌ اَسْنَانُهُمْ فَقَالُوْا يَغْفِرُ اللّٰهُ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعْطِيْ قُرَيْشًا وَ يَتْرُكُ الْاَنْصَارَ وَ سُيُوْفُنَا تَقْطُرُ مِنْ دِمَائِهِمْ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنِّيْ اُعْطِيْ رِجَالًا حَدِيْثٌ عَهْدُهُمْ بِكُفْرٍ اَمَا تَرْضَوْنَ اَنْ يَذْهَبَ النَّاسُ بِالْاَمْوَالِ وَ تَرْجِعُوْنَ اِلٰى رِحَالِكُمْ

انصارو اووے، چه اللّٰه خپل رسولؐ ته دَ بنو هوازن مال و زر، ویړیا (مفت) د خپل مشیت موافق ورکړل نو حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم د قریشو بعضے خلقوله سل سل اوښان ورکړل. نو هغوئ اووے چه اللّٰه دِ خپل رسول معاف کړي، حضورؐ قریشوته خو ورکوي او مونږ په خائے پریږدي حالانکه زمونږ د تُورو نه لا د کافرو وینه څڅیږي د حضرت انسؓ بیان دے. دَ انصارو دا خبرے چه حضورؐ ته اورسولے شوے، نو حضورؐ هغوئ راوغوښتل او دَ څرمنے یوه خیمه کښے ئے راجمع کړل. او دَ هغوئ نه علاوه بل څوک ئے راونه غوښتل. کوم وخت چه انصار هغے خیمه کښے راغونډ شو. نو حضورؐ هغوئ ته تشریف راوړلو. او ارشاد ئے اوفرمائیلو دا څنګه خبره ده چه ماته ستاسو دَ طرف نه معلومه شویده؟ نو هغوئ کښے بعضے پوهه خلقو عرض اوکه، یا رسول اللّٰهؐ. مونږ کښے چه کوم دَ پوهے خاوندان دي، هغوئ خو هیڅ نه دي وئیلي. لیکن بعضے کم عمره خلقو وئیلے دي. چه اللّٰه تعالي دِ خپل رسولؐ معاف کړي. قریشو له ورکوي او انصارو له نهٔ ورکوي. حالانکه زمونږ دَ تورونه لا وینه څاڅي. په دے خبره حضورؐ ارشاد اوفرمائیلو، ما داسے خلقوله ورکړل چه دَ هغوئ زمانه تاحال کفر سره نزدے ده. آیا تاسو دا خبره نهٔ خوښوئ چه دغه خلق خو مال و دولت سره لاړ شي او تاسو خپلو کورونو طرف ته رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم سره لاړ شئ. او په اللّٰه مِ دِ قسم وي کوم څیز چه تاسو ځان سره اوړئ، دا دَ هغے څیز نه بدرجها بهتر دے،

بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَاللّٰهِ مَا تَنْقَلِبُوْنَ بِهٖ خَيْرٌ مِمَّا يَنْقَلِبُوْنَ بِهٖ قَالُوْا بَلٰى يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَدْ رَضِيْنَا فَقَالَ لَهُمْ اِنَّكُمْ سَتَرَوْنَ بَعْدِيْ اُثْرَةً شَدِيْدَةً فَاصْبِرُوْا حَتّٰى تَلْقَوُا اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْحَوْضِ قَالَ اَنَسٌ فَلَمْ نَصْبِرْ.

کوم چه هغه خلق څان سره اوړي. بیا انصارو اووے یا رسول اللّٰه مونږ دا خبره خوښوو (چه اللّٰه او د هغه رسولؐ زمونږ شي) دے نه پس حضورؐ اوفرمائیل تاسو خلق به خما نه پس عنقریب څان د پاسه خلق ترجیح بیامندونکي اووینئ هغه وخت صبر کوئ څکه چه حوض کوثر باندِ به تاسو اللّٰه او رسول صلعم سره ملاقات کوئ. د حضرت انسؓ بیان دے چه مونږ صبر اونه که.

۳۸۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الْاُوَيْسِيُّ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُمَرُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ اَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ جُبَيْرٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ جُبَيْرُ بْنُ مُطْعِمٍ اَنَّهٗ بَيْنَا هُوَ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ مَعَهُ النَّاسُ مُقْبِلًا مِنْ حُنَيْنٍ عَلِقَتْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْاَعْرَابُ يَسْاَلُوْنَهٗ حَتّٰى اضْطَرُّوْهُ اِلٰى سَمُرَةٍ فَخَطِفَتْ رِدَاءَهٗ فَوَقَفَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَعْطُوْنِيْ رِدَآءِيْ فَلَوْ كَانَ عَدَدُ هٰذِهِ الْعِضَاهِ نَعَمًا لَقَسَمْتُهٗ بَيْنَكُمْ ثُمَّ لَا تَجِدُوْنِيْ بَخِيْلًا وَلَا كَذُوْبًا وَلَا جَبَانًا.

۳۸۸: عبدالعزیز بن عبداللّٰه اویسي. ابراهیم بن سعد. صالح. ابن شهاب. عمرو بن محمد. بن جبیر بن مطعمؓ. حضرت جبیر بن مطعمؓ نه روایت کوي' مونږ حضور صلعم سره همرکاب دَ حنین نه واپس راتلو چه بدوانو د حضورؐ نه اصرار سره غوښتل شروع کړل او حضورؐ ئے د کیکر د اونے لاندے بوتللو. او حضورؐ نه ئے څادر مبارک راښکلو حضورؐ ورته اوفرمائیل ماله خپل څادر راکړئ که ماسره ددے اونو برابر هم چیلئ وے' نو هغه ټولے به ما تاسو کښے تقسیم کړے وے او تاسو به ما کنجوس (شوم) دروغژن او ویریدونکے (بزدل) بیا نه مومئے.

۳۸۹: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ اِسْحٰقَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ

۳۸۹: یحیی بن بکیر. مالک. اسحاق بن عبداللّٰه. حضرت انس بن مالکؓ نه روایت کوي'

عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ اَمْشِيْ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ عَلَيْهِ بُرْدٌ نَجْرَانِيٌّ غَلِيْظُ الْحَاشِيَةِ فَاَدْرَكَهُ اَعْرَابِيٌّ فَجَذَبَهُ جَذْبَةً شَدِيْدَةً حَتّٰى نَظَرْتُ اِلٰى صَفْحَةِ عَاتِقِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ اَثَّرَتْ بِهِ حَاشِيَةُ الرِّدَاءِ مِنْ شِدَّةِ جَذْبَتِهِ ثُمَّ قَالَ مُرْلِيْ مِنْ مَّالِ اللّٰهِ الَّذِيْ عِنْدَكَ فَالْتَفَتَ اِلَيْهِ فَضَحِكَ ثُمَّ اَمَرَ لَهٗ بِعَطَاءٍ.

زه (انس) حضورؐ سره روان ووم او هغه وخت حضورؐ د پلنې حاشئې يو نجراني څادر په سر کړے وو يو اعرابي (بانډيسے) حضورؐ سره يو ځائے شو. او هغه ئے تر ے زور سره راښكلو، ما اوليدل چه ‌ﺫ هغې اعرابي زور سره ‌ﺫ راښكلو په وجه ‌ﺫ حضورؐ په ګردن مبارک د څادر د غاړې نښه پريوتے وه او هغې بدو اووے ماله هم تاسوؐ د اللّٰه د هغې مال نه چه تاسو سره دے څه راكړئ. نو حضورؐ هغه ته اوكتل ورته مسكے شولو او ‌ﺫ څه وركولو حكم ئے اوكړلو.

**۳۹۰**: حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ لَمَّا كَانَ يَوْمُ حُنَيْنٍ اٰثَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُنَاسًا فِي الْقِسْمَةِ فَاَعْطَى الْاَقْرَعَ بْنَ حَابِسٍ مِّائَةً مِّنَ الْاِبِلِ وَ اَعْطٰى عُيَيْنَةَ مِثْلَ ذٰلِكَ وَ اَعْطٰى اُنَاسًا مِنْ اَشْرَافِ الْعَرَبِ فَاٰثَرَهُمْ يَوْمَئِذٍ فِي الْقِسْمَةِ قَالَ رَجُلٌ وَاللّٰهِ اِنَّ هٰذِهِ الْقِسْمَةَ مَا عُدِلَ فِيْهَا وَمَا اُرِيْدَ بِهَا وَجْهُ اللّٰهِ فَقُلْتُ وَاللّٰهِ لَاُخْبِرَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَتَيْتُهٗ فَاَخْبَرْتُهٗ فَقَالَ فَمَنْ يَعْدِلُ اِذَا لَمْ يَعْدِلِ اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهٗ رَحِمَ اللّٰهُ مُوْسٰى قَدْ اُوْذِيَ بِاَكْثَرَ مِنْ هٰذَا فَصَبَرَ.

**۳۹۰**: عثمان. جرير. منصور. ابو وائل. حضرت عبداللّٰهؓ نه روايت كوي. يوم حنين كښې حضور صلعم خلقو كښې حصے تقسيم كړے. اقرع بن حابس ته ئے سل اوښان وركړل او عيينه ته ئے هم دغه هومره وركړل. نورو معززين عرب ته ئے هم حصے وركړے، او حضو وركولو كښې ئے هغوئ ته ترجيح وركړه. نو يو سړي اووے. په اللّٰه مِ دے قسم وي، دے تقسيم كښې انصاف نه كار نه دے اخستے شوے. او دے كښې د اللّٰه تعالٰي رضامندي مقصود نظر شوے نه ده. ما اووے. په اللّٰه مِ دے قسم وي، حضورؐ ته به ددے اطلاع وركوم، زهٔ لاړم او حضورؐ مِ خبر كړو حضورؐ اوفرمائيل. اللّٰه تعالٰي او ‌ﺫ هغهٔ رسولؐ كه انصاف اونكړي نو بل څوک دے چه انصاف به اوكړي. اللّٰه تعالٰي دِ په موسٰي عليه السلام رحم (مهرباني) اوكړي. هغه ته خو ددے نه هم زيات تكليف وركړے شوے وو او هغهٔ ‌ﺫ صبر نه كار واخست.

۳۰۹۱: حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ غَيْلَانَ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبِي عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ قَالَتْ كُنْتُ أَنْقُلُ النَّوَى مِنْ أَرْضِ الزُّبَيْرِ الَّتِي أَقْطَعَهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى رَأْسِي وَهِيَ مِنِّي عَلٰى ثُلُثَيْ فَرْسَخٍ وَ قَالَ أَبُو ضَمْرَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَقْطَعَ الزُّبَيْرَ أَرْضًا مِنْ أَمْوَالِ بَنِي النَّضِيرِ.

۳۰۹۱: محمود. ابو اسامه. اسماء بنت ابوبکر صدیقؓ نه روایت کوي. رسول اللّٰه صلعم چه زبیرؓ ته کومه زمکه ورکړې وه. ما (اسماء) به د هغې نه د قجورو هډوکي په خپل سر راوړل، او هغه زمکه خما د کور نه درې فرسخ لرې وه. ابو ضمره د هشام او د هغه د پلار زباني بیان کړیدې چه حضورؐ د بنو نضیر د مال نه حضرت زبیرؓ ته د زمکې یوه حصه عطا کړیوه.

**ف:** فرسخ د درېو میلونو مسافت او هر میل څلور زره ګزه وي او هر ګز څلوېښت ګوتې یعني شپږ متې وي.

۳۰۹۲: حَدَّثَنِي أَحْمَدُ بْنُ الْمِقْدَامِ حَدَّثَنَا الْفُضَيْلُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا مُوسَى ابْنُ عُقْبَةَ قَالَ أَخْبَرَنِي نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ أَجْلَى الْيَهُودَ وَالنَّصَارٰى مِنْ أَرْضِ الْحِجَازِ وَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا ظَهَرَ عَلٰى أَهْلِ خَيْبَرَ أَرَادَ يُخْرِجَ الْيَهُودَ مِنْهَا وَ كَانَتِ الْأَرْضُ لَمَّا ظَهَرَ عَلَيْهَا لِلْيَهُودِ وَلِلرَّسُولِ وَلِلْمُسْلِمِينَ فَسَأَلَ الْيَهُودُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَتْرُكَهُمْ عَلٰى أَنْ يَكْفُوا الْعَمَلَ وَلَهُمْ نِصْفُ الثَّمَرِ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۳۰۹۲: احمد. بن مقدام. فضیل بن سلیمان. موسٰي بن عقبه. نافع. حضرت عبداللّٰه بن عمرؓ نه روایت کوي فاروق اعظمؓ یهودیان او عیسایان د ملک حجاز نه اوښکل. او څۀ وخت چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم خیبر فتح کړه نو حضورؐ هم اراده اوکړه چه یهودیان د هغې نه اوکاږي. او یهودي مملکت باندې د قبضې کولو نه پس هغه ټول مملکت د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم او مسلمانانو ملکیت شوې وو. نو یهودیانو حضورؐ ته ددې خبرې خواست اوکه، چه تاسو مونږ په دې شرط دلته پریږدئ چه مونږ به کار کوو. او مسلمانانوته به دَ پیداوار نه په نیم کاره میوه ورکیږي (یعني کرکیله به په نیمه کیږي) حضورؐ ورته اوفرمائیل. مونږ تاسو په دې شرط ساتو څو پورې چه مونږ غواړو نو هغه یهود

نُقِرُّكُمْ عَلَىٰ ذٰلِكَ مَا شِئْنَا فَأُقِرُّوا حَتّٰى أَجْلَاهُمْ عُمَرُ فِيْ أَمَارَتِهِ إِلَى تَيْمَاءَ أَوْ أَرِيْحَاءَ.

پریښودے شو. بیا فاروق اعظمؓ د خپل خلافت زمانه کښې هغه ټول یهودیان مقام تیماء او اریحاء جانب ته بهر اوشړل.

## بَابُ ۲۶۲: مَا يُصِيْبُ مِنَ الطَّعَامِ فِيْ أَرْضِ الْحَرْبِ.

## باب ۲۶۲: دارالحرب کښې د خوراکې څکاک دَ څیزونو بیامندلو بیان.

۳۹۳: حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ هِلَالٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مُغَفَّلٍ قَالَ كُنَّا مُحَاصِرِيْنَ قَصْرَ خَيْبَرَ فَرَمٰى إِنْسَانٌ بِجِرَابٍ فِيْهِ شَحْمٌ فَنَزَوْتُ لِآخُذَهُ فَالْتَفَتُّ فَإِذَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَحْيَيْتُ مِنْهُ.

۳۹۳: ابوالولید. شعبه. حمید بن هلال. حضرت عبداللّٰه بن مغفل نه روایت کوي. مونږ د قلعه خیبر محاصره کړے وه. دے کښې یو سړي یوه کوپۍ راوویشته چه دَ چربۍ نه ډکه وه، ما د هغے اخستو ورټوپ کړو. خو چه اَخوا مې اوکتل نو حضورؐ تشریف فرما وو، نو زۀ دَ شرم نه اوبۀ اوبۀ شوم.

۳۹۴: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ أَيُّوْبَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ قَالَ كُنَّا نُصِيْبُ فِيْ مَغَازِيْنَا الْعَسَلَ وَالْعِنَبَ فَنَأْكُلُهُ وَلَا نَرْفَعُهُ.

۳۹۴: مسدد. حماد. ایوب. نافع. حضرت عبداللّٰه بن عمرؓ نه روایت کوي. مونږ ته به میدان جنګ کښې شات او انګور راکولے شو، چه هغه به مونږ خوړل او هغه به مونه ذخیره کول.

۳۹۵: حَدَّثَنَا مُوْسَى ابْنُ إِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا الشَّيْبَانِيُّ قَالَ سَمِعْتُ بْنُ أَبِيْ أَوْفٰى يَقُوْلُ أَصَابَتْنَا مَجَاعَةٌ لَيَالِيَ خَيْبَرَ فَلَمَّا كَانَ يَوْمُ خَيْبَرَ وَقَعْنَا فِي الْحُمُرِ الْأَهْلِيَّةِ فَانْتَحَرْنَاهَا فَلَمَّا غَلَتِ الْقُدُوْرُ نَادٰى مُنَادِيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَكْفِئُوا الْقُدُوْرَ فَلَا تَطْعَمُوْا مِنْ لُحُوْمِ الْحُمُرِ

۳۹۵: موسٰي بن اسماعیل. عبدالواحد. شیباني. ابن ابي اوفٰي نه روایت کوي. ایام خیبر کښې مونږ د لوږے نه تنګ شو. او خاص د خیبر په ورځ مونږ ساتلے خرونوته ورمخکښې شو او هغه مو ذبح کړل (او د هغے غوښے پخول مو شروع کړل) کوم وخت چه کټوۍ په جوش راغلے نو د حضورؐ (منادي) اعلان او که چه کټوۍ واړوۍ او دَ خر د غوښے یوه ریزه چه هم اونۀ خورۍ د عبداللّٰه بیان دے مونږ خلقو خپلو کښې اووے. حضورؐ د خر د غوښے خوراکے نه په دے وجه منع اوفرمائیله چه

شَيْئًا قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ فَقُلْنَا اِنَّمَا نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِاَنَّهَا لَمْ تُخَمَّسْ قَالَ وَ قَالَ اٰخَرُوْنَ حَرَّمَهَا اَلْبَتَّةَ وَ سَاَلْتُ سَعِيْدَ بْنَ جُبَيْرٍ فَقَالَ حَرَّمَهَا اَلْبَتَّةَ.

اوسه پورے د هغے خمس نه دے اوبنکلے شوے او تقسیم نه وو شوے او د نورو خلقو بیان دے چه حضورؐ د خر غوښه خوړل بالکل حرام اوګرځول ما د سعید بن جبیر نه تپوس اوکه نو هغه اووے چه حضورؐ د خر غوښه خوړل بالکل حرام کړے ده.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِؕ

باب ۲۶۳ : اَلْجِزْيَةِ وَالْمَوَادَعَةِ مَعَ اَهْلِ الْحَرْبِ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى قَاتِلُوا الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَلَا يُحَرِّمُوْنَ مَا حَرَّمَ اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهٗ وَلَا يَدِيْنُوْنَ دِيْنَ الْحَقِّ مِنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتَابَ حَتّٰى يُعْطُوا الْجِزْيَةَ عَنْ يَّدٍ وَّهُمْ صَاغِرُوْنَ اَذِلَّاءُ وَمَا جَاءَ فِيْ اَخْذِ الْجِزْيَةِ مِنَ الْيَهُوْدِ وَ النَّصَارٰى وَالْمَجُوْسِ وَالْعَجَمِ وَ قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنِ ابْنِ اَبِيْ نَجِيْحٍ قُلْتُ لِمُجَاهِدٍ مَا شَاْنُ اَهْلِ الشَّامِ عَلَيْهِمْ اَرْبَعَةُ دَنَانِيْرَ وَ اَهْلُ الْيَمَنِ عَلَيْهِمْ دِيْنَارٌ قَالَ جُعِلَ ذٰلِكَ مِنْ قِبَلِ الْيَسَارِ.

باب ۲۶۳ : ذي کافرونه دَ جزيه اخستلو او د قول و قرار کولو بيان. اللّٰه تعالیٰ فرمائيلي دي' تاسو خلق هغوئ سره جنګ اوکړئ چه په اللّٰه تعالیٰ او د آخرت ورځ باندے ايمان نه راوړي. او کوم څيز چه اللّٰه او دَ هغهٔ رسولؐ حرام کړے دے هغه حرام نه ګنړي او د دين حق پيروي نه کوي او دا خلق اهل کتاب دي. هغوئ سره تاسو هغه وقته پورے جنګيږئ څو پورے چه دوئ جزيه ورنکړي او دا خلق ډير ذليل اوشرميدلي دي "صاغرون" په معنٰي د نګون سَر او ذليل' او دا حکم يهوديانو' عيسايانو' مجوسيانو او عجميانو باندے د جزيه اخستلو په حقله نافذ ګرځولے شوے دے او ابن عيينه په توسط د ابن نجيح او مجاهد وئيلے دي چه شاميانو نه په حساب د في کس څلور ديناره او يمنيانو نه في کس په حساب يو دينار د جزيے اخستلو دستور څنګه دے؟ نو وئيلے دا اصول د سرمائے د اسانتيا مدّ نظر دے.

۲۹۶۳: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ سَمِعْتُ عُمَرَ قَالَ كُنْتُ جَالِسًا مَعَ جَابِرِ بْنِ زَيْدٍ وَ عَمْرِو بْنِ اَوْسٍ فَحَدَّثَهُمَا بَجَالَةُ سَنَةَ سَبْعِيْنَ عَامَ حَجَّ مُصْعَبُ بْنُ الزُّبَيْرِ

۲۹۶۳: علي. سفيان. عمرو بن دينارؒ نه روايت کوي' زهٔ جابر بن زيد او عمرو بن اوس سره ناست ووم' چه هغوئ ته بجاله دَ زمزم دَ کوهي سيرو (سیڑھیوں) سره ۷۰ھ کښے په کوم کال چه مصعب بن زبيرؓ اهل بصره سره حج کړے وو. دا اووے چه د احنف وراره جزء بن

بِاَهْلِ الْبَصْرَةِ عِنْدَ دَرَجِ زَمْزَمَ قَالَ كُنْتُ كَاتِبًا لِجَزْءِ بْنِ مُعَاوِيَةَ عَمِّ الْاَحْنَفِ فَاَتَانَا كِتَابُ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَبْلَ مَوْتِهِ بِسَنَةٍ فَرِّقُوْا بَيْنَ كُلِّ ذِيْ مَحْرَمٍ مِّنَ الْمَجُوْسِ وَلَمْ يَكُنْ عُمَرُ اَخَذَ الْجِزْيَةَ مِنَ الْمَجُوْسِ حَتّٰى شَهِدَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَوْفٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَخَذَهَا مِنْ مَجُوْسِ هَجَرَ.

۳۹۷: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ اَنَّهُ اَخْبَرَهُ اَنَّ عَمْرَو بْنَ عَوْفٍ الْاَنْصَارِيَّ وَهُوَ حَلِيْفٌ لِبَنِيْ عَامِرِ بْنِ لُؤَيٍّ وَ كَانَ شَهِدَ بَدْرًا اَخْبَرَنَا اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ اَبَا عُبَيْدَةَ بْنَ الْجَرَّاحِ اِلَى الْبَحْرَيْنِ يَأْتِيْ بِجِزْيَتِهَا وَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هُوَ صَالَحَ اَهْلَ الْبَحْرَيْنِ وَ اَمَّرَ عَلَيْهِمُ الْعَلَاءَ بْنَ الْحَضْرَمِيِّ فَقَدِمَ اَبُوْ عُبَيْدَةَ بِمَالٍ مِّنَ الْبَحْرَيْنِ فَسَمِعَتِ الْاَنْصَارُ بِقُدُوْمِ اَبِيْ عُبَيْدَةَ فَوَافَقَتْ صَلٰوةَ الصُّبْحِ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا صَلّٰى بِهِمُ الْفَجْرَ انْصَرَفَ فَتَعَرَّضُوْا لَهُ

معاویه سره زهٔ په حیثیت د منشي مامور ووم. چه مونږ ته ذَ حضرت عمر بن خطاب تحریر مبارک د هغه د وفات نه یو کال مخکښې راغے (هغے کښې لیکلے وو) د مجوسیانو د هر ذي رحم محرم مینځ کښې جدائي اوکړئ. هغه وخت فاروق اعظمؓ ذَ مجوسیانو نه جزیه نه وه اخستے. او ددے امر عبدالرحمٰن بن عوف شهادت کړیدے چه حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم د مقام هجر د مجوسیانو (پارسیانو) نه جزیه وصول کړے وه.

۳۹۷: ابو الیمان. شعیب. زهري. عروه. حضرت مسور نه روایت کوي. هغه ته عمرو بن عوف انصاري چه ذَ بنو عامر بن لوئي حلیف او بدري وو، بیان اوکه. چه حضور صلعم ابو عبیده جراح جزیے راوړلو د پاره بحرین ته اولیږلو. او حضورؐ د بحرین باشندګانو سره صلح اوکړه. او په هغوئ ئے علاء بن حضرمي حاکم اعلٰي مقرر کړلو انصارو چه دا واوریدل، چه ابو عبیده ذَ بحرین نه مال راوړیدے نو هغوئ یوه ورځ د سحر مونځ حضورؐ سره اوکړلو. بیا چه حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم د سحر د نمونځ نه پس واپس کیدلو نو انصار حضورؐ ته مخے ته جمع شو. دے لیدو سره حضورؐ مُسکے شو، اووے فرمائیل، زهٔ پوهیږم تاسو اوریدلي دي چه ابو عبیده څه مال راوړے دے. هغوئ عرض اوکه، جي او، یا رسول اللّٰهؐ. هغے نه پس حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، خوشحاله شئ او ددے امر امید ساتئ

فَتَبَسَّمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ رَاٰهُمْ وَ قَالَ اَظُنُّكُمْ قَدْ سَمِعْتُمْ اَنَّ اَبَا عُبَيْدَةَ قَدْ جَاءَ بِشَيْءٍ قَالُوْا اَجَلْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ فَاَبْشِرُوْا وَ اَمِّلُوْا مَا يَسُرُّكُمْ فَوَاللّٰهِ لَا الْفَقْرَ اَخْشٰى عَلَيْكُمْ وَلٰكِنْ اَخْشٰى عَلَيْكُمْ اَنْ تُبْسَطَ عَلَيْكُمُ الدُّنْيَا كَمَا بُسِطَتْ عَلٰى مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ فَتَنَافَسُوْهَا كَمَا تَنَافَسُوْهَا وَ تُهْلِكَكُمْ كَمَا اَهْلَكَتْهُمْ.

چه تاسو به خوشحاله کړي، په الله مِ دِ قسم وي، ما سره ستاسو د ناداریٔ ویره نشته البته ددے امر راسره ویره ده چه ستاسو د پاره به دُنیا داسے وسیعه شي څنګه چه ستاسونه مخکښے خلقو باندے کشاده او فراخه شوے وه. او هغه وخت به تاسو جګړے کوئ څنګه چه پخوانو قومونو جګړے جوړے کړے وے، او دا فراخي او کشادګي به تاسو هلاکت کښے اوغرځوي څنګه چه تیر خلق دے هلاک کړیدي.

۳۹۸: حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ يَعْقُوْبَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنِ جَعْفَرٍ الرَّقِّيُّ حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُبَيْدِ اللّٰهِ الثَّقَفِيُّ حَدَّثَنَا بَكْرُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الْمُزَنِيُّ وَ زِيَادُ بْنُ جُبَيْرٍ عَنْ جُبَيْرِ بْنِ حَيَّةَ قَالَ بَعَثَ عُمَرُ النَّاسَ فِيْ اَفْنَاءِ الْاَمْصَارِ يُقَاتِلُوْنَ الْمُشْرِكِيْنَ فَاَسْلَمَ الْهُرْمُزَانُ فَقَالَ اِنِّيْ مُسْتَشِيْرُكَ فِيْ مَغَازِيَّ هٰذِهٖ قَالَ نَعَمْ مَثَلُهَا وَ مَثَلُ مَنْ فِيْهَا مِنَ النَّاسِ مِنْ عَدُوِّ الْمُسْلِمِيْنَ مَثَلُ طَائِرٍ لَهٗ رَأْسٌ وَلَهٗ جَنَاحَانِ وَلَهٗ رِجْلَانِ فَاِنْ كُسِرَ اَحَدُ الْجَنَاحَيْنِ نَهَضَتِ الرِّجْلَانِ بِجَنَاحٍ وَالرَّاْسِ

۳۹۸: فضل بن یعقوب. عبدالله بن جعفر. معتمر بن سلیمان. سعید بن عبیدالله ثقفي. بکر بن عبدالله المزني او زیاد بن جبیر. جبیر بن حیه نه روایت کوي. حضرت عمرؓ لویو لویو ښارونو کښے مشرکانو سره جنګ کولو دَ پاره مسلمانان اولیږل. او د هرمزان د اسلام راوړلو نه پس حضرت عمرؓ هغهٔ ته اووے. ددے جنګونو په حقله زهٔ تانه مشوره طلب کول غواړم، هرمزان جواب ورکه. جي او. ددے جنګ مثال او دَ هغے خلقو مثال چه دے میدان کښے د مسلمانانو دشمنان دي. بالکل د یو مارغه په شان دي چه دَ هغه یو سر دوه وزرے او دوه پښے وي که د هغهٔ وزر مات شي، نو هغه په دوه پښو یو وزر او یو سر اودریږي. او که دویم وزر ئے هم مات شي. نو دواړو پښو او یو سر باندِ به اودریږي. او که دَ هغه سر چوري چوري شي نو هغه دواړه پښے، دواړه وزرے او سر هر څه بیکاره شي. موجوده حالت کښے کسریٰ سر دے او قیصر دویم وزر

فَـاِنْ كُسِـرَ الْجَنَـاحُ الْاٰخَـرُ نَهَضَتِ
الـرِّجْلَانِ وَالـرَّأْسُ وَ اِنْ شُـدِخَ
الرَّأْسُ ذَهَبَتِ الرِّجْلَانِ وَالْجَنَاحَانِ
وَالرَّأْسُ فَـالرَّأْسُ كِسْرٰى وَالْجَنَاحُ
قَيْصَـرُ وَالْـجَنَـاحُ الْاٰخَرُ فَـارِسُ
فَمُـرِ الْمُسْلِمِيْنَ فَلْيَنْفِرُوْا اِلٰى
كِسْرٰى وَ قَـالَ بَـكْـرٌ وَ زِيَـادٌ جَمِيْعًا
عَنْ جُبَيْـرِ بْـنِ حَيَّةَ قَـالَ فَـنَدَبَنَـا
عُـمَرُ وَاسْتَعْمَلَ عَلَيْنَـا النُّعْمَانَ
بْـنَ مُـقَرِّنٍ حَتّٰـى اِذَا كُـنَّـا بِـاَرْضِ
الْعَدُوِّ وَ خَرَجَ عَلَيْنَا عَامِلُ كِسْرٰى
فِيْ اَرْبَعِيْنَ اَلْفًـا فَقَامَ تَرْجَمَانٌ
لَهٗ فَقَالَ لِيُكَلِّمَنِيْ رَجُلٌ مِنْكُمْ فَقَالَ
الْمُغِيْرَةُ سَلْ عَمَّا شِئْتَ قَالَ مَا اَنْتُمْ
قَالَ نَحْنُ اُنَاسٌ مِنَ الْعَرَبِ كُنَّا فِيْ
شِقَاءٍ شَدِيْدٍ وَ بَلَاءٍ شَدِيْدٍ نَمُصُّ
الْجِلْدَ وَالنَّوٰى مِنَ الْجُوْعِ وَ نَلْبَسُ
الْوَبَرَ وَالشَّعْرَ وَ نَعْبُدُ الشَّجَرَ وَالْحَجَرَ
فَبَيْنَمَا نَحْنُ كَذٰلِكَ اِذْ بَعَثَ رَبُّ
السَّمٰوٰتِ وَ رَبُّ الْاَرَضِيْنَ تَعَالٰى ذِكْرُهٗ
وَ جَلَّتْ عَظَمَتُهٗ اِلَيْنَا نَبِيًّا مِّنْ اَنْفُسِنَا
نَعْرِفُ اَبَاهُ وَ اُمَّهٗ فَاَمَرَنَا نَبِيُّنَا رَسُوْلُ
رَبِّنَا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ
نُقَاتِلَكُمْ حَتّٰى تَعْبُدُوا اللّٰهَ وَحْدَهٗ
اَوْ تُؤَدُّوا الْجِزْيَةَ وَ اَخْبَرَنَا نَبِيُّنَا صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ رِسَالَةِ رَبِّنَا اَنَّهٗ

دے. مناسب دا دي چه تاسو مسلمانان کسریٰ طرف ته ذَ لیږلو حکم اوکړئ. بکر او زیاد دواړه د جبیر بن حیه په ذریعه بیان کړیدے چه بیا فاروق اعظمؓ مونږ طلب کړو. او نعمان بن مقرن ئے ځمونږ د فوځ امیر مقرر کړلو او مونږ ئے اولیږلو. کوم وخت چه مونږ د دشمن مملکت کښے داخل شو نو د کسریٰ فوجي ګورنر څلویښت زره لښکر سره ځمونږ مقابلے له راغے. او ذَ هغه ترجمان اووے، چه تاسو مسلمانانو کښے دے څوک ماسره خبرے اترے اوکړي. نو حضرت مغیرهؓ جواب ورکهٔ، وایه څه چه دِ زړهٔ غواړي. هغے ترجمان اووے تاسو څوک یئ. حضرت مغیرهؓ جواب ورکهٔ مونږ د عربو باشندګان یو. مونږ خلق سختے بدبختئ او سخت مصیبت کښے ګرفتار وو د لوږے د وجے نه به مونږ خلقو څرمن او د چوهارے، هډوکي جول. ذَ څرمنے او ویښتو پوشاک به مو اغوستلو د اونو او کاڼړو عبادت به مو کولو، هغه وخت چه زمونږ دا حالت وو، نو د اسمانونو او زمکو مالک چه ذَ هغه بیان ډیر اوچت دے او ذَ هغه د عظمت کناره (غاړه) نشته. هغه ځمونږ د قوم نه یو نبي مونږ د پاره پیدا کړلو چه ذَ هغه مور پلار هم مونږ پیژنو نو مونږ ته ځمونږ نبي او د الله رسولؐ حکم راکړے دے، چه مونږ تاسو سره هغه وخته پورے جنګ کوو، څو پورے چه تاسو د یو خدائے عبادت شروع نه کړئ یا جزیه قبوله کړئ. او حضورؐ د الله ذَ جانب نه مونږ ته دا اطلاع هم راکړے ده چه تاسو مسلمانانو کښے چه څوک مړ شي، نو هغه به نیغ آرام ده جنت کښے داخلیږي، چه د هغے څه مثال اوسه پورے نه

مَنْ قُتِلَ مِنَّا صَارَ اِلَى الْجَنَّةِ فِيْ نَعِيْمٍ لَمْ يُرَمِثْلُهَا قَطُّ وَمَنْ بَقِيَ مِنَّا مَلَكَ رِقَابَكُمْ فَقَالَ النُّعْمَانُ رُبَّمَا اَشْهَدَكَ اللّٰهُ مِثْلَهَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يُنْدِمْكَ وَلَمْ يُخْزِكَ وَلٰكِنِّيْ شَهِدْتُّ الْقِتَالَ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا لَمْ يُقَاتِلْ فِيْ اَوَّلِ النَّهَارِ اِنْتَظَرَ حَتّٰى تَهُبَّ الْاَرْوَاحُ تَحْضُرَ الصَّلَوَاتُ.

دے لیدلے شوے. او مونږ کښے چه څوک ژوندے پاتے شي نو هغه به ستاسو د ګردنونو مالک وي (د مغيرهؓ اراده وه چه سمدستي جنګ شروع کړي) ليکن نعمان بن ثابتؓ امير فوج اووے. اے مغيرهؓ ته څو خله حضور صلي الله عليه وسلّم سره جنګ کښے شريک شوے ئے، چه هلته تا څه ندامت او رسوائي نه ده اوچته کړے. او زۀ اکثر جنګونو کښے حضورؐ سره تلے يم او دَ جنګ دَ قاعدے نه واقف يم، هر کله چه حضور به د ورځ د شروع په حصه کښے جنګ نه کولو نو د مونځ کولو نه پس لا مناسب هوا ګانو د چليدو انتظار به ئے کولو.

بَاب ۲۶۴: اِذَا وَادَعَ الْاِمَامُ مَلِكَ الْقَرْيَةِ هَلْ يَكُوْنُ ذٰلِكَ لِبَقِيَّتِهِمْ.

باب ۲۶۴: امام که بادشاه مملکت سره څه عهد و پيمان اوکړي نو د هغے معاهدے پابندي د هغے ملک په ټولو باشندګانو دَ حاوي کيدو بيان.

۳۹۹: حَدَّثَنَا سَهْلُ بْنُ بَكَّارٍ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ عَمْرِو بْنِ يَحْيٰى عَنْ عَبَّاسٍ السَّاعِدِيِّ عَنْ اَبِيْ حُمَيْدٍ السَّاعِدِيِّ قَالَ غَزَوْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَبُوْكَ وَ اَهْدٰى مَلِكُ اَيْلَةَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَغْلَةً بَيْضَاءَ وَ كَسَاهُ بُرْدًا وَ كَتَبَ بِبَحْرِهِمْ.

۳۹۹: سهل بن بكار. وهيب عمرو بن يحيٰي. عباس ساعدي. حضرت ابو حميد ساعديؓ نه روايت کوي. مونږ غزوۀ تبوک کښے حضور صلي الله عليه وسلّم سره شريک وو چه شاه ايله د حضورؐ خدمت کښے يو سپين قچر او يو څادر په طور د هدئے راوليږلو. او حضور صلي الله عليه وسلّم د يو دستاويز په ذريعه هغۀ په خپل ملک حاکم باقي اولرلو.

بَاب ۲۶۵: اَلْوَصَايَا بِاَهْلِ ذِمَّةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالذِّمَّةُ الْعَهْدُ وَالْاِلُّ الْقَرَابَةُ.

باب ۲۶۵: د سرکار رحمة للعالمين امان کښے راغلي خلقو سره د حسن سلوک بيان ذمه په معنٰي د عهد و پيمان، اِل په معنٰي دَ رشته داري.

۴۰۰: حَدَّثَنَا اٰدَمُ بْنُ اَبِيْ اَيَاسٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا اَبُوْ حَمْزَةَ

۴۰۰: آدم بن ابي اياس. شعبه. ابو جمره. جويريه بن قدام تيمي نه روايت کوي. مونږ فاروق اعظمؓ

قَالَ سَمِعْتُ جُوَيْرِيَةَ بْنَ قُدَامَةَ التَّمِيْمِيَّ قَالَ سَمِعْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ قُلْنَا اَوْصِنَا يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ قَالَ اُوْصِيْكُمْ بِذِمَّةِ اللّٰهِ فَاِنَّهٗ ذِمَّةُ نَبِيِّكُمْ وَ رِزْقُ عِيَالِكُمْ.

ته عرض اوکه، اے امیر المؤمنین، مونږ ته نصیحت اوفرمائے. نو هغه ارشاد اوفرمائیلو زۀ تاسوته د الله تعالیٰ د عهد و پیمان د تکمیل نصیحت کوم، ځکه چه هغه ستاسو د پیغمبرؐ قول و اقرار دے. او ستاسو دَ اهل و عیال د روزئ ذریعه ده.

باب ۲۶۶ : مَا اَقْطَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْبَحْرَيْنِ وَمَا وَعَدَ مِنْ مَالِ الْبَحْرَيْنِ وَالْجِزْيَةِ وَلِمَنْ يُقْسَمُ الْفَيْءُ وَالْجِزْيَةُ.

باب ۲۶۶ : دَ رسالتمآبؐ بحرین کښې جاګیرونه ورکول او د بحرین مال و دولت او جزیې نه اُمت مسلمه ته د ورکولو وعدے او دَ "فے" او جزیې دَ تقسیم بیان.

۴۰۱: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسًا قَالَ دَعَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْاَنْصَارَ لِيَكْتُبَ لَهُمْ بِالْبَحْرَيْنِ فَقَالُوْا لَا وَاللّٰهِ حَتّٰى تَكْتُبَ لِاِخْوَانِنَا مِنْ قُرَيْشٍ بِمِثْلِهَا فَقَالَ ذَاكَ لَهُمْ مَاشَاءَ اللّٰهُ عَلٰى ذٰلِكَ يَقُوْلُوْنَ لَهٗ قَالَ فَاِنَّكُمْ سَتَرَوْنَ بَعْدِيْ اُثْرَةً فَاصْبِرُوْا حَتّٰى تَلْقَوْنِيْ.

۴۰۱: احمد. زهیر. حضرت انسؓ نه روایت کوي. رسول الله صلي الله علیه وسلّم انصار طلب کړل چه بحرین کښې هغوئ دَ پاره جاګیر اولیکي، نو انصارو اووے په الله مو دے قسم وي داسے هیڅکله نشي کیدے. اول تاسو ځمونږ دَ قریشي ورونړو دَ پاره هم دومره اولیکئ، نو حضورؐ جواب ورکه، انشاء الله هغه وخت به هم راشي او انصار به دے خبره ټینګ وو نو حضورؐ ورته اوفرمائیل تاسو به عنقریب ځما نه پس غیر معقول ترجیح بیامندنګے اووینئ نو هغه وخت صبر کوئ تردے چه حوض کوثر باندے ماسره ملاقات اوکړئے.

۴۰۲: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ اَخْبَرَنِيْ رَوْحُ بْنُ الْقَاسِمِ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

۴۰۲: علي بن عبدالله. اسمٰعیل بن ابراهیم. روح بن قاسم. محمد بن منکدر. حضرت جابرؓ نه روایت کوي. حضورؐ ما (جابر) ته ارشاد اوفرمائیلو که ماله دَ بحرین نه مال راغے، نو زۀ به تاله ډیر څه درکړم، او د حضورؐ نه پس دَ بحرین

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِيْ لَوْ قَدْ جَاءَ نَا مَالُ الْبَحْرَيْنِ قَدْ اَعْطَيْتُكَ هٰكَذَا وَ هٰكَذَا وَ هٰكَذَا فَلَمَّا قُبِضَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ جَاءَ مَالُ الْبَحْرَيْنِ قَالَ اَبُوْبَكْرٍ مَنْ كَانَتْ لَهٗ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِدَةٌ فَلْيَأْتِنِيْ فَاَتَيْتُهٗ فَقُلْتُ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ كَانَ قَالَ لِيْ لَوْ قَدْ جَاءَ مَالُ الْبَحْرَيْنِ لَاَعْطَيْتُكَ هٰكَذَا وَ هٰكَذَا وَ هٰكَذَا فَقَالَ لِيْ اِحْثِهِ فَحَثَوْتُ حَثْيَةً فَقَالَ لِيْ عُدَّهَا وَ عَدَدْتُهَا فَاِذَا هِيَ خَمْسُمِائَةٍ فَاَعْطَانِيْ اَلْفًا وَ خَمْسَمِائَةٍ وَ قَالَ اِبْرَاهِيْمُ بْنُ طَهْمَانَ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيْزِ بْنِ صُهَيْبٍ عَنْ اَنَسٍ اُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَالٍ مِنَ الْبَحْرَيْنِ فَقَالَ انْثُرُوْهُ فِي الْمَسْجِدِ فَكَانَ اَكْثَرَ مَالٍ اُتِيَ بِهٖ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذْ جَاءَهُ الْعَبَّاسُ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَعْطِنِيْ اِنِّيْ فَادَيْتُ نَفْسِيْ وَ فَادَيْتُ عَقِيْلًا قَالَ خُذْ فَحَثَا فِيْ ثَوْبِهٖ ثُمَّ ذَهَبَ يُقِلُّهٗ فَلَمْ يَسْتَطِعْ فَقَالَ اُؤْمُرْ بَعْضَهُمْ يَرْفَعْهُ اِلَيَّ قَالَ لَا فَنَثَرَ مِنْهُ ثُمَّ ذَهَبَ يُقِلُّهٗ فَلَمْ يَرْفَعْهُ فَقَالَ اُؤْمُرْ بَعْضَهُمْ يَرْفَعْهُ عَلَيَّ قَالَ لَا قَالَ

مال غنيمت راتلو بانديے حضرت ابوبكر صديقؓ خپل زمانهٔ خلافت كښې اعلان اوكه. چه حضورؐ چاسره څه وعده كړي وي، هغه دِ راشي. زه صديق اكبرؓ له ورغلم، چه حضورؐ ماته فرمائيلي وو كه د بحرين مال راغے، زهٔ به تاله ډير څه دركړم، صديق اكبرؓ ماته حكم اوكهٔ، چه تهٔ دوه لپے ډكے واخله. نو ما يوه لپه ډكه كړه. نو هغه راته اووے. دا اوشميره، چه ما شمير كړے. نو هغه پنځه سوه وے. بيا هغه ماله يو نيم زر (اشرفئ) نورے راكړے ابراهيم په ذريعه د عبدالعزيز او حضرت انس بيان كړے دے، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم له د بحرين مال راغے، نو حضورؐ اوفرمائيل، دا په جمات كښې خور كړئ. او اوسه پورے چه دَ حضورؐ خدمت كښے كوم مال راغلے وو دَ هغے نه موجوده دولت ډير زيات وو. دے كښے حضرت عباسؓ راغے، وئيلے يا رسول اللّٰه صلعم ماته هم څهٔ راكړئ ځكه چه په ما خپله او د عقيل فديه راغلے ده. نو حضورؐ اوفرمائيل، واخله، نو هغهٔ دواړو لاسونو سره مال و دولت راغند كه، خپلے كپړه كښے ئے واچولو، او كوم وخت چه ئے اوچتولو، نو هغه پنډ ئے اوچت نكړے شو. هغهٔ حضورؐ ته عرض اوكه، چه ماته اووايئ چه دا پنډ راوچت كړي. او په مائے د پاسه راواچوي. حضورؐ ورته اوفرمائيل. دا هم مناسب نه دي دے نه پس حضرت عباسؓ د هغے نه څهٔ كم كړل. او اوچتول ئے اوغوښتل، خو هغه ئے هم اوچت نكړے شو. او هغه د هغے نه كمولو.

فَارْفَعْهُ اَنْتَ عَلَيَّ قَالَ لَا فَنَثَرَ ثُمَّ اِحْتَمَلَهُ عَلٰى كَاهِلِهٖ ثُمَّ انْطَلَقَ فَمَا زَالَ يُتْبِعُهُ بَصَرَهُ حَتّٰى خَفِيَ عَلَيْنَا عَجَبًا مِنْ حِرْصِهٖ فَمَا قَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ ثَمَّ مِنْهَا دِرْهَمٌ.

تردې چه هغه پنړ هغه خپله اوچتولے شو نو هغه ئے اوچت که. يوئے ړلو. او حضورؐ ورته هغه پورې کتل چه د ستر گو نه غائب شولو. او ددې ټول مال و زر د تقسيمولو پورې حضورؐ په نفس نفيس هلته تشريف فرما وو حتي چه يو درهم هم هلته باقي پاتے نۀ شو.

بَاب ۲۶۷: اِثْمِ مَنْ قَتَلَ مُعَاهِدًا بِغَيْرِ جُرْمٍ.

باب ۲۶۷: قول و قرار کړے شوے سړے بغير د څه جرم نه د قتل کولو د گناه بيان.

۳۰۴: حَدَّثَنَا قَيْسُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا الْحَسَنُ ابْنُ عَمْرٍو حَدَّثَنَا مُجَاهِدٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ قَتَلَ مُعَاهِدًا لَمْ يَرَحْ رَائِحَةَ الْجَنَّةِ وَ اِنَّ رِيْحَهَا تُوْجَدُ مِنْ مَسِيْرَةِ اَرْبَعِيْنَ عَامًا.

۳۰۴: قيس بن حفص. عبدالواحد. حسن بن عمرو. مجاهد. حضرت عبدالله بن عمرؓ نه روايت کوي. حضورؐ او فرمائيل څوک چه داسے سړے قتل کړي چه هغه سره د مخکښې نه عهد و پيمان شوے وي. نو هغه قاتل به دَ جنت خوشبوئ قدرے هم نه وينـي، حالانکه دَ جنت خوشبوئ د څلويښت کاله د مسافت نه معلوميږي.

بَاب ۲۶۸: اِخْرَاجُ الْيَهُوْدِ مِنْ جَزِيْرَةِ الْعَرَبِ وَ قَالَ عُمَرُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُقِرُّكُمْ مَا اَقَرَّكُمُ اللّٰهُ بِهٖ.

باب ۲۶۸: يهوديان د جزيره عرب نه بهر د اوښکلو بيان او د حضرت عمرؓ بيان دے چه رسول الله صلي الله عليه وسلم يهوديانو ته فرمائيلي وو چه زۀ به دَ هغه وخته پورے تاسو پريږدم څو پورے چه الله تعالىٰ تاسو برقرار ساتي.

۴۰۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ سَعِيْدُ الْمَقْبُرِيُّ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ قَالَ بَيْنَمَا نَحْنُ فِي الْمَسْجِدِ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۴۰۴: عبدالله بن يوسف. ليث. سعيد مقبري. د هغۀ پلار. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي. مونږ خلق په جمات کښے وو. حضورؐ بهر تشريف راوړلو، چه يهودو له لاړ شي، او کوم وخت چه مونږ خلق بيت مدراس ته اورسيدو، نو

فَقَالَ انْطَلِقُوْا اِلٰى يَهُوْدَ فَخَرَجْنَا حَتّٰى جِئْنَا بَيْتَ الْمِدْرَاسِ فَقَالَ اَسْلِمُوْا تَسْلَمُوْا وَاعْلَمُوْا اَنَّ الْاَرْضَ لِلّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ وَ اِنِّيْ اُرِيْدُ اَنْ اُجْلِيَكُمْ مِنْ هٰذَا الْاَرْضِ فَمَنْ يَجِدُ مِنْكُمْ بِمَالِهٖ شَيْئًا فَلْيَبِعْهُ وَ اِلَّا فَاعْلَمُوْا اَنَّ الْاَرْضَ لِلّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ.

حضورؐ يهوديانو ته اوفرمائيل. اسلام راؤړئ چه محفوظ شئ او په ښۀ شان پوهه شئ چه دا زمکه د الله او دَ هغۀ د رسول ده. او زۀ دا غواړم چه تاسو ددې زمکې نه بهر اوکاړم. واؤرئ چه تاسو کښې چا سره مال وي، هغه دِ خرڅ کړي. کني دا خبره په ښۀ شان ذهن کښې کینوئ چه زمکه صرف د الله او دَ هغۀ دَ رسولؐ ده.

۳۰۵: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ سُلَيْمَانَ الْاَحْوَلِ سَمِعَ سَعِيْدَ بْنَ جُبَيْرٍ سَمِعَ ابْنَ عَبَّاسٍ يَقُوْلُ يَوْمُ الْخَمِيْسِ وَمَا يَوْمُ الْخَمِيْسِ ثُمَّ بَكٰى حَتّٰى بَلَّ دَمْعُهُ الْحَصٰى قُلْتُ يَا ابْنَ عَبَّاسٍ مَا يَوْمُ الْخَمِيْسِ قَالَ اشْتَدَّ بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجَعُهُ فَقَالَ ائْتُوْنِيْ بِكَتِفٍ اَكْتُبْ لَكُمْ كِتَابًا لَا تَضِلُّوْا بَعْدَهٗ اَبَدًا فَتَنَازَعُوْا وَلَا يَنْبَغِيْ عِنْدَ نَبِيٍّ تَنَازُعٌ فَقَالُوْا مَالَهٗ اَهَجَرَ اسْتَفْهِمُوْهُ فَقَالَ ذَرُوْنِيْ فَالَّذِيْ اَنَا فِيْهِ خَيْرٌ مِمَّا تَدْعُوْنِيْ اِلَيْهِ فَاَمَرَهُمْ بِثَلٰثٍ قَالَ اَخْرِجُوا الْمُشْرِكِيْنَ مِنْ جَزِيْرَةِ الْعَرَبِ وَ اَجِيْزُوا الْوَفْدَ بِنَحْوِ مَا كُنْتُ اُجِيْزُهُمْ وَالثَّالِثَةُ خَيْرٌ اِمَّا اَنْ سَكَتَ عَنْهَا وَ اِمَّا اَنْ قَالَهَا فَنَسِيْتُهَا قَالَ

۳۰۵: محمد. ابن عيينه. سليمان الاحول. سعيد بن جبيرؓ نه روايت کوي، حضرت عبدالله بن عباسؓ وئيلې دَ زيارت (جمعرات) ورځ، او آه دَ زيارت ورځ، بيا هغه داسې ژړا او زاري اوکړه چه هغې سره کنکرلوانده شو، ما (ابن جبير) تپوس اوکه، اے ابو العباس د زيارت ورځ څنګه ده، هغۀ جواب راکۀ، په هغه ورځ د نبي صلعم مرض سخت شولو، حضورؐ اوفرمائيل، د پټون څه هډوکي راؤړئ چه زۀ تاسوته يو تحرير اوليکم چه تاسو مانه پس ګمراه نه شئ. ليکن خلقو اختلاف اوکه، حالانکه د رسول الله صلعم خوا کښې جګړانه وه پکار، بيا هغې خلقو څه پوهې نه پس تپوس اوکه، آيا رسول الله صلي الله عليه وسلّم دنيا نه سفر کوي نو حضورؐ ارشاد اوفرمائيلو. تاسو ما پريږدئ، کوم حال کښې چه يم هغه دَ دغې کيفيت او حالت نه ښه دې چه هغې طرف ته تاسو ما بلئ. بيا حضورؐ د دريو خبرو حکم اوکه وې فرمائيل (۱) جزيره عرب نه مشرکان اوکاړئ. (۲) وفد له داسې انعام ورکوئ څنګه چه زۀ انعام او اکرام ورکوم. (۳) دريمه خبره ښه شان ده چه هغه مانه هيره شوه. د سفيان بيان دې چه دا قول د

سُفْيَانُ هٰذَا مِنْ قَوْلِ سُلَيْمَانَ.

بَابٌ ۲۶۹: إِذَا غَدَرَ الْمُشْرِكُونَ بِالْمُسْلِمِينَ هَلْ يُعْفَى عَنْهُمْ.

۴۰۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي سَعِيدٌ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ لَمَّا فُتِحَتْ خَيْبَرُ أُهْدِيَتْ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَاةٌ فِيهَا سَمٌّ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اجْمَعُوا إِلَيَّ مَنْ كَانَ هٰهُنَا مِنْ يَهُودَ فَجُمِعُوا لَهُ فَقَالَ إِنِّي سَائِلُكُمْ عَنْ شَيْءٍ فَهَلْ أَنْتُمْ صَادِقِيَّ عَنْهُ فَقَالُوا نَعَمْ قَالَ لَهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَبُوكُمْ قَالُوا فُلَانٌ فَقَالَ كَذَبْتُمْ بَلْ أَبُوكُمْ فُلَانٌ قَالُوا صَدَقْتَ قَالَ فَهَلْ أَنْتُمْ صَادِقِيَّ عَنْ شَيْءٍ إِنْ سَأَلْتُ عَنْهُ فَقَالُوا نَعَمْ يَا أَبَا الْقَاسِمِ وَإِنْ كَذَبْنَا عَرَفْتَ كَذِبَنَا كَمَا عَرَفْتَهُ فِي أَبِينَا فَقَالَ لَهُمْ مَنْ أَهْلُ النَّارِ قَالُوا نَكُونُ فِيهَا يَسِيرًا ثُمَّ تَخْلُفُونَا فِيهَا فَقَالَ

سليمان دے.

باب ۲۶۹: آيا مسلمانانو سره بيوفائي كـزنكي مشركان دے معاف كړيشي؟

۴۰۶: عبدالله بن يوسف. ليث. سعيد. حضرت ابوهريرةؓ نه روايت كوي. كوم وخت چه خيبر فتح شو نو يو زهر لړلے پخكړے چيلئے د رسول الله صلي الله عليه وسلّم په خدمت كښے په طور دَ هديه پيش كړے شوه. رسالتمآب ارشاد اوفرمائيلو، دلته چه څومره يهوديان دي، هغه ټول راجمع كړئ. كوم وخت چه هغوئ ټول دَ حضورؐ مخكښے راجمع كړے شو نو حضور صلعم اوفرمائيل. زهٔ تاسو نه يو تپوس كوم، آيا تاسو به رښتيا رښتيا اووايئ، بيا دَ هغے خلقو "جي او" وئيلو سره حضورؐ تپوس اوكړلو چه ستاسو دَ پلار څه نوم دے، هغوئ اووے فلانے، نو حضورؐ اوفرمائيل تاسو دروغ وايئ. بلكه ستاسو پلار خو فلانے سړے دے. په دے هغوئ جواب وركه. چه تاسو رښتيا فرمايئ. هغے نه پس حضورؐ اوفرمائيل كهٔ زهٔ تاسو نه څهٔ تپوس اوكړم، نو تاسو به رښتيا رښتيا اووايئ، هغه خلقو اووے. جي او، اے ابوالقاسم كه مونږ دروغ اووايو نو تاسو به خمونږ دروغ اوپيژنئ. لكه چه اوس تاسو خمونږ د پلار د نوم په حقله پيژندګلو اوكړله. حضورؐ اوفرمائيل، اوښايئ دوزخيان كوم خلق دي، هغوئ اووے مونږ خلق به لږے ورځے دوزخ كښے پاتے شو او خمونږ نه پس به تاسو دے كښے خمونږ جانشيني كوئ، سرور عالم صلعم ورته اوفرمائيل تاسو به دے كښے ذليل او خوار اوسيږئ. او

النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اِخْسَئُوْا فِیْهَا وَاللّٰهِ لَا نَخْلُفُکُمْ فِیْهَا اَبَدًا ثُمَّ قَالَ هَلْ اَنْتُمْ صَادِقِیَّ عَنْ شَیْءٍ اِنْ سَاَلْتُکُمْ عَنْهُ فَقَالُوْا نَعَمْ یَا اَبَا الْقَاسِمِ قَالَ هَلْ جَعَلْتُمْ فِیْ هٰذِهِ الشَّاةِ سَمًّا قَالُوْا نَعَمْ قَالَ مَا حَمَلَکُمْ عَلٰی ذٰلِكَ قَالُوْا اَرَدْنَا اِنْ کُنْتَ کَاذِبًا نَسْتَرِیْحُ وَ اِنْ کُنْتَ نَبِیًّا لَمْ یَضُرُّكَ.

په اللّٰه مِ دے قسم وي مونږ به هیڅکله دوزخ کښے ستاسو جانشینان نه یو. دے نه پس بیا حضورؐ اوفرمائیل که زهٔ تاسو نه د یوے بلے خبرے تپوس اوکړم نو آیا تاسو به رښتیا رښتیا اووایئ. هغوئ اووے جي او' اے ابو قاسم' حضورؐ اوفرمائیل آیا تاسو دے چیلئ کښے زهر اچولي وو. هغوئ اووے جي او. نو حضورؐ اوفرمائیل تاسو دے خبرے ته څهٔ خیز آماده (جوت) کړئ. هغوئ جواب ورکه مونږ دا غوښتل که چرے تاسو دروغژن یئ. نو مونږ به در نه خلاص شو او مونږ به په آرام اوسیږو او که تاسو واقعي د اللّٰه نبي او رسول یئ نو زهر تاسو ته هیڅکله نقصان نشي رسولے.

باب ۲۷۰: دُعَاءِ الْاِمَامِ عَلٰی مَنْ نَکَثَ عَهْدًا.

باب ۲۷۰: بیوفائي او عهد شکني کونکي دَ پاره دَ امام د بددعا بیان.

۴۰۵: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا ثَابِتُ بْنُ یَزِیْدَ حَدَّثَنَا عَاصِمٌ قَالَ سَاَلْتُ اَنَسًا عَنِ الْقُنُوْتِ قَالَ قَبْلَ الرُّکُوْعِ فَقُلْتُ اِنَّ فُلَانًا یَزْعَمُ اَنَّكَ قُلْتَ بَعْدَ الرُّکُوْعِ فَقَالَ کَذَبَ ثُمَّ حَدَّثَنَا عَنِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ قَنَتَ شَهْرًا بَعْدَ الرُّکُوْعِ یَدْعُوْ عَلٰی اَحْیَاءٍ مِنْ بَنِیْ سُلَیْمٍ قَالَ بَعَثَ اَرْبَعِیْنَ اَوْ سَبْعِیْنَ یَشُكُّ فِیْهِ مِنَ الْقُرَّاۤ اِلٰی اُنَاسٍ مِنَ الْمُشْرِکِیْنَ فَعَرَضَ لَهُمْ هٰۤؤُلَاءِ فَقَتَلُوْهُمْ وَ کَانَ بَیْنَهُمْ وَ بَیْنَ

۴۰۵: ابوالنعمان. ثابت بن یزید. عاصم نه روایت کوي. ما د انسؓ نه د قنوت د لوستلو په حقله تپوس اوکه' هغه اووے د رکوع نه مخکښے دعائے قنوت لوستل پکار دي. ما اوے' فلانے سړے خو دا بیانوي چه تاسو د رکوع نه پس د دعائے قنوت د لوستلو د پاره ونیلے دي. په دے حضرت انسؓ جواب ورکه' هغه سړے دروغژن دے او بیا هغه دَ حضور صلعم نه حدیث بیان که چه حضورؐ یو میاشت پورے د رکوع نه پس دعائے قنوت لوستے دے او د بنو سلیم د قبیلو دَ پاره حضورؐ بددعا کړیده. دَ حضرت انسؓ نه دا هم بیان دے چه حضور صلعم دغسے مشرکینو طرف ته څلویښت یا اویا قاریان لیږلے وو. هغوئ دَ قاریانو سره مزاحمت اوکه او ټول ئے اووژل حالانکه د هغوئ او دَ حضورؐ

النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَهْدٌ فَمَا رَأَيْتُهُ وَجَدَ عَلٰى اَحَدٍ مَا وَجَدَ عَلَيْهِمْ.

مينځ كښې يوه معاهده شوې وه ددې قتل نه پس ما حضورﷺ اوليدلو چه هغوئ باندې بې كچه غمژن شوې وو. چه دومره په بله معامله نه وو غمژن شوې.

باب ۱۷۱: اَمَانِ النِّسَآءِ وَ جِوَارِهِنَّ.

باب ۱۷۱: د ښځو چاته د پناه، امان وركولو بيان.

۴۰۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ اَبِي النَّضْرِ مَوْلٰى عُمَرَ بْنِ عُبَيْدِ اللّٰهِ اَنَّ اَبَا مُرَّةَ مَوْلٰى اُمِّ هَانِيءٍ بِنْتِ اَبِيْ طَالِبٍ تَقُوْلُ ذَهَبْتُ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الْفَتْحِ فَوَجَدْتُهُ يَغْتَسِلُ وَ فَاطِمَةُ بِنْتُهُ تَسْتُرُهُ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَقَالَ مَنْ هٰذِهٖ فَقُلْتُ اَنَا اُمُّ هَانِيءٍ بِنْتُ اَبِيْ طَالِبٍ فَقَالَ مَرْحَبًا بِاُمِّ هَانِيءٍ فَلَمَّا فَرَغَ مِنْ غُسْلِهٖ قَامَ فَصَلّٰى ثَمَانَ رَكَعَاتٍ مُلْتَحِفًا فِيْ ثَوْبٍ وَاحِدٍ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ زَعَمَ ابْنُ اُمِّيْ عَلِيٌّ اَنَّهٗ قَاتِلٌ رَجُلًا قَدْ اَجَرْتُهٗ فُلَانُ بْنُ هُبَيْرَةَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ اَجَرْنَا مَنْ اَجَرْتِ يَا اُمَّ هَانِيءٍ قَالَتْ اُمُّ هَانِيءٍ وَ ذٰلِكَ ضُحًى.

ف: دختر: بنت دَ دواړو معنٰي دَ لور ده.

۴۰۶: عبدالله بن يوسف. مالک. ابوالنضر (چه د عمر بن عبيدالله آزاد كرده غلام وو) نه روايت كوي، چه اُم هاني دختر ابو طالب اووې د مكې د فتح په كال زهٔ د حضور صلي الله عليه وسلّم خدمت كښې حاضره شوم او حضورﷺ غسل كولو او بي بي فاطمې پرې پرده نيولې وه. ما حضورﷺ ته السّلام عليكم اووې، نو حضورﷺ اوفرمائيل څوک دي، ما عرض اوكه. زهٔ يم اُم هاني بنت ابي طالب، نو حضورﷺ اوفرمائيل خوشحاله اوسې، په خيره راغلې، اُم هاني په خيره راغلې. بيا حضورﷺ دغسل كولو نه پس يوه كپړه چاپيره كړې اودريدلو او اته ركعاته مونځ ئې اوكه. نو ما (اُم هاني) اووې، يا رسول اللّٰهﷺ ما فلاني ابن هبيره له پناه وركړې ده. او خما وروړ حضرت عليؓ هغه وژل غواړي نو رسالت مآب صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل اې ام هاني چاله چه تا پناه وركړې ده. هغه له مونږ هم پناه وركړې ده. او دا دَ چاشت وخت وو.

باب ۱۷۲: ذِمَّةُ الْمُسْلِمِيْنَ وَ جِوَارُهُمْ وَاحِدَةٌ يَّسْعٰى بِهَا اَدْنَاهُمْ.

باب ۱۷۲: د مسلمانانو ذمه واري او پناه دهي باندې دَ پناه دهنده د هر فرد عمل آورئ كښې دَ يكسانيت بيان.

۳۰۷: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا وَكِيْعٌ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ التَّيْمِيِّ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ خَطَبَنَا عَلِيٌّ فَقَالَ مَا عِنْدَنَا كِتَابٌ نَقْرَءُهُ اِلَّا كِتَابُ اللّٰهِ وَمَا فِيْ هٰذِهِ الصَّحِيْفَةِ فَقَالَ فِيْهَا الْجِرَاحَاتُ وَ اَسْنَانُ الْاِبِلِ وَالْمَدِيْنَةُ حَرَمٌ مَا بَيْنَ عَيْرٍ اِلٰى كَذَا فَمَنْ اَحْدَثَ فِيْهَا حَدَثًا اَوْ اٰوٰى فِيْهَا مُحْدِثًا فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللّٰهِ وَالْمَلٰئِكَةِ وَالنَّاسِ اَجْمَعِيْنَ لَا يُقْبَلُ مِنْهَا صَرْفٌ وَلَا عَدْلٌ وَمَنْ تَوَلّٰى غَيْرَ مَوَالِيْهِ فَعَلَيْهِ مِثْلُ ذٰلِكَ وَ ذِمَّةُ الْمُسْلِمِيْنَ وَاحِدَةٌ فَمَنْ اَخْفَرَ مُسْلِمًا فَعَلَيْهِ مِثْلُ ذٰلِكَ.

۳۰۷: محمد. وكيع. اعمش. ابراهيم تيمي د خپل پلار نه روايت كوي حضرت عليؓ مونږ مخاطب كړو اووے فرمائيل مونږ سره صرف قرآن شريف دے، هغه مونږ لولو، دے صحيفه رباني كښے د زخمونو احكام او د اوښانو ديت، غير مقام نه فلاني مقام پورے د مدينے منورے د حرم كيدو بيان دے. دلته چه څوك ظلم اوكړي يا څه نوے خبره كونكي له ځائے وركړي نو په هغه د الله تعالىٰ فرښتو او ټولو خلقو لعنت كيږي او د داسے سړي هيڅ نفلي عبادت او فرض عبادت نه منظوريږي او څوک چه د خپل آقا او مالک د اجازت او مرضئ خلاف چا بل سره ولاء او دوستي كوي نو د داسے سړي باندے هم لعنت كيږي، او د ټولو مسلمانانو ذمه واري واحد ذمه واري ده او څوک چه د يو مسلمان بے عزتي كوي نو په هغه هم دغسے لعنت كيږي.

باب ۲۷۳: اِذَا قَالُوْا صَبَانَا وَلَمْ يُحْسِنُوْا اَسْلَمْنَا وَ قَالَ ابْنُ عُمَرَ فَجَعَلَ خَالِدٌ يَقْتُلُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَبْرَءُ اِلَيْكَ مِمَّا صَنَعَ خَالِدٌ وَ قَالَ عُمَرُ اِذَا قَالَ مَتَرْسْ فَقَدْ اٰمَنَهُ اِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ الْاَلْسِنَةَ كُلَّهَا وَ قَالَ تَكَلَّمْ لَا بَأْسَ.

باب ۲۷۳: د كافرو لفظ اَسْلَمْنَا نه وئيل او دَ لفظ صَبَانَا دَ وئيلو بيان[۱]. دَ ابن عمرؓ بيان دے چه خالد دَ صبانا والو وژل شروع كړل نو رسالتمآب صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. دَ خالد دَ افعالونه زهٔ خپل برأت (بيزاره كيدل) پيش كوم او د عمرؓ بيان دے چه هر كله چا "مترس" اووے. نو گويا هغه امان وركه ځكه چه الله تعالىٰ د ټولو ژبونه واقف دے او كه څوک تكلم اووائي، نو دے كښے هم څه حرج نشته.

۱. دَ "صابي" معني ده بے دينه. يا د خپل آبائي دين نه وتل. مطلب دا دے چه غير مسلم په اسلام كښے داخليدلو د پاره صرف دا وائي چه ما خپل آبائي دين پريښو ولے چه هغه ته د اسلام متعلق څه زيات معلومات نه وي، په دے وجه هغهٔ دومره هم نشي وئيلے چه اسلام مِ راوړو. نو آيا هغهٔ به مسلمان گڼړلے كيږي هر كله چه قرينه هم موجوده وي چه ددے مراد په اسلام كښے داخليدل دي. ددے قسمه احكامو ضرورت په اصل كښے د هنگامي حالاتو متعلق پيښيږي، په دا شان كومه واقعه چه بيان شوه هغه هم د

همدے نوعیت ده. د مشرکینو قبیله په دے وینا نۀ پوهیده چه مونږه اسلام راوړے دے. په دے وجه هغوئ صرف په دے بـاندے بَسوالے اوکړو چه مونږه صابیان (بے دینه) شُو. یا ده دِ وي چه مسلمانانو ته ابتداءً په عربو کښے صابیان ویلے کیدل.

بـــــاب ۲۷۴: الْـمُـوَادَعَةِ وَالْمُصَالَحَةِ مَعَ الْمُشْرِكِيْنَ بِالْمَالِ وَ غَيْرِهِ وَ اِثْمِ مَنْ لَمْ يَفِ بِالْعَهْدِ وَ قَوْلِهٖ وَ اِنْ جَنَحُوْا لِلسَّلْمِ فَاجْنَحْ لَهَا (الاية).

باب ۲۷۴: مشرکانو سره په مال وغیره باندے دَ صلح او قول و قرار کولو بیان او چا چه وعده شکني اوکړه نو هغه گنهګار دے او فرمان الٰهي' که کافر تاسو سره صلح کولو ته مائل شي نو تاسو هم صلح ته مائل شئ (آخر آیت پورے).

۴۰۸: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا بِشْرٌ هُوَ ابْنُ الْمُفَضَّلِ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ بُشَيْرِ ابْنِ يَسَارٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ اَبِيْ حَثْمَةَ قَالَ انْطَلَقَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَهْلٍ وَ مُحَيِّصَةُ بْنُ مَسْعُوْدِ بْنِ زَيْدٍ اِلٰى خَيْبَرَ وَ هِيَ يَوْمَئِذٍ صُلْحٌ فَتَفَرَّقَا فَاَتٰى مُحَيِّصَةُ اِلٰى عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَهْلٍ وَ هُوَ يَتَشَحَّطُ فِيْ دَمٍ قَتِيْلًا فَدَفَنَهُ ثُمَّ قَدِمَ الْمَدِيْنَةَ فَانْطَلَقَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ سَهْلٍ وَ مُحَيِّصَةُ وَ حُوَيِّصَةُ ابْنَا مَسْعُوْدٍ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَهَبَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ يَتَكَلَّمُ فَقَالَ كَبِّرْ كَبِّرْ وَهُوَ اَحْدَثُ الْقَوْمِ فَسَكَتَ فَتَكَلَّمَا فَقَالَ اَتَحْلِفُوْنَ وَ تَسْتَحِقُّوْنَ قَاتِلَكُمْ اَوْ صَاحِبَكُمْ قَالُوْا وَ كَيْفَ نَحْلِفُ وَلَمْ نَشْهَدْ وَلَمْ نَرَ قَالَ

۴۰۸: مسدد. بشر یعني ابن مفضل. یحيٰی. بشیر. سهل بن ابي حثمه نه روایت کوي چه عبداللّٰه بن سهل او محیصه ابن مسعود بن زید دا دواړه خیبر طرف ته روان شو' او دا خیبر والو سره د صلح زمانه وه. یو ځل دا دواړه لږ شان جدا شوي وو. چه عبداللّٰه بن سهل ته محیصه په وینو کښے لړلے راوړے شو چه هغۀ دفن کۀ او بیا د هغے نه پس هغه مدینے ته واپس راغے. یو ځل د سهل ځوئے عبد الرحمٰن او د مسعود دوه ځامن محیصه او حویصه دا درے واړه یوځائے د رسول اللّٰه صلعم خدمت کښے حاضر شو او د عبداللّٰه بن سهل شهید بابت کښے عبدالرحمٰن حضورؐ سره خبرے اترے کولے نو حضورؐ اوفرمائیل مشر ته د خبرو کولو موقع ورکړه' او هغه عمر کښے د ټولونه وړوکے وو. هغه خاموش شو نو حضورؐ حویصه او محیصه ته اوفرمائیل آیا تاسو په قسم خوړلو سره دَ قاتل نه د خپل عزیز مقتول د خون استحقاق ثابت کړئ هغوئ عرض اوکه مونږ قسم څنګه خوړلے شو نه مونږ هلته وو او نه مونږ خپلو سترګو سره لیدلے دے. حضورؐ اوفرمائیل آیا تاسو

فَتُبَرِّئُكُمْ يَهُوْدُ بِخَمْسِيْنَ يَمِيْنًا فَقَالُوْا كَيْفَ نَأْخُذُ اَيْمَانَ قَوْمٍ كُفَّارٍ فَعَقَلَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ عِنْدِهٖ.

دا خبره خوښوئ چه يهوديان پنځوس قسمونه او خوري خپل بريت ظاهري کړي. هغوئ جواب ورکه مونږ به دے کافرو څنګه اعتماد کولے شو آخر چه حضورؐ هغے درے مدعيانو نه د خپل طرف نه ديت عطا کړلو.

باب ۲۷۵: فَضْلِ الْوَفَآءِ بِالْعَهْدِ.

باب ۲۷۵: د ايفائے عهد ذَ برترئ بيان.

۴۰۹: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ اَخْبَرَهٗ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبَّاسٍ اَخْبَرَهٗ اَنَّ اَبَا سُفْيَانَ بْنَ حَرْبٍ اَخْبَرَهٗ اَنَّ هِرَقْلَ اَرْسَلَ اِلَيْهِ فِيْ رَكْبٍ مِنْ قُرَيْشٍ كَانُوْا تُجَّارًا بِالشَّامِ فِي الْمُدَّةِ الَّتِيْ مَادَّ فِيْهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَبَا سُفْيَانَ فِيْ كُفَّارِ قُرَيْشٍ.

۴۰۹: يحيي بن بكير. ليث. يونس. ابن شهاب. عبيداللّٰه بن عبداللّٰه بن عتبه. حضرت عبداللّٰه بن عباسؓ نه روايت كوي. ابو سفيان بن حرب هغه ته وئيلے دي چه هرقل بادشاه روم زه ذَ قريشو قافلے سره ليګلے اوم دوئ شام ته سوداګرئ له تلي وو. دا واقعه ذَ هغے زمانے ده چه هغے کښے د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ابوسفيان سره او كفاران قريش سره صلح وه.

باب ۲۷۶: هَلْ يُعْفٰى عَنِ الذِّمِّيِ اِذَا سَحَرَ. وَ قَالَ ابْنُ وَهْبٍ اَخْبَرَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ سُئِلَ اَعَلٰى مَنْ سَحَرَ مِنْ اَهْلِ الْعَهْدِ قَتْلٌ قَالَ بَلَغَنَا اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ صُنِعَ لَهٗ ذٰلِكَ فَلَمْ يَقْتُلْ مَنْ صَنَعَهٗ وَ كَانَ مِنْ اَهْلِ الْكِتَابِ.

باب ۲۷۶: څوک ذمي كه جادو اوكړي نو آيا هغه معاف كيديشي. ابن وهب وائي ما ته يونس د ابن شهاب په ذريعه بيان اوكه چه تپوس اوشو چه يو ذمي په چا جادو اوكړي نو آيا داسے ذمي قتل كيديشي. ما جواب وركه، د حضورؐ په ذات بابركات دغسے اوشو، خو جادوګر اهل كتاب حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د هغے جادو په وجه قتل نه كړلو.

۴۱۰: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا هِشَامٌ

۴۱۰: محمد. يحيي. هشام. ذَ هغه پلار بي بي عائشےؓ نه روايت كوي. حضورؐ باندے

قَالَ حَدَّثَنِيُ اَبِيُ عَنُ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُحِرَ حَتّٰى كَانَ يُخَيَّلُ اِلَيْهِ اَنَّهُ صَنَعَ شَيْئًا وَلَمْ يَصْنَعْهُ.

جادو شوے وو. دَ هغے اثر دا شوے وو چه حضورؐ به خيال كولو چه فلانے كار ئے كړيدے، حالانكه هغه كار به حضورؐ نه وو كړے دا.

۱. علامه انور شاه كشميري رحمة الله عليه ليكلي دي چه په حضور صلي الله عليه وسلّم باندے د بنځو په معامله كښے جادو كړے شوے وو، يعني هغوئ به محسوسوله چه په جماع باندے قدرت لري حالانكه داسے به نه وه. شاه صاحبؒ ليكلي دي چه د جادو دا قسم په عوامو كښے مشهور او معروف دے او په اُردو كښے دے د پاره وائي چه ''فلاں مرد کو باندھ دیا'' (فلانے سړے ئے اوتړلو) په حضور صلي الله عليه وسلّم باندے چه كوم جادو شوے وو هغۀ تر همدے حده پورے وو. ظاهره ده چه دے سره په وحي او شريعت باندے هيڅ اثر نه پروځي. نبي په خپل ژوند كښے بهرحال انسان وي او د انسان پشان نفع او نقصان هم ورته رسي البته د وحي او شريعت ټولے طريقے محفوظ اوسي، ولے چه ددے تعلق براه راست اللّٰه تعالٰي سره دے، هغۀ قادر او توانا دے، دے د پاره هغۀ پخپله د خپل پيغام او وحي حفاظت كولے شي.

ددے بحث نه قطع نظر چه دَ جادو حقيقت څه دے، مونږ سره دومره خبره منلے شوے ده چه په حضور صلي الله عليه وسلّم باندے چه د كوم قسم جادو شوے وي او چه هغوئ په كومه درجه كښے هم د هغے نه متاثر شوے وي. بهرحال د هغوئ دعوت، د خدائے پيغام او وحي باندے ددے هيڅ اثر نه وو شوے، ولے چه نبوت سره متعلق هره معامله كښے او د وحي د حفاظت هره طريقه كښے حضورؐ باندے چرے ذهول يا نسيان نه وو راغلے.

دا خبره دِ ملحوظه وي چه د جادو اثر په هر څومره درجه كښے چه په هغوئ شوے وو هغه تر يوے معمولي مودے پورے وو، بيا هغه اثر ختم شوے وو، څنگه چه د رواياتو نه ثابت دي.

بَابُ ۲۷۷: مَا يُحْذَرُ مِنَ الْغَدْرِ وَ قَوْلِهٖ تَعَالٰى وَ اِنْ يُّرِيْدُوْا اَنْ يَّخْدَعُوْكَ فَاِنَّ حَسْبَكَ اللّٰهُ (الاية).

باب ۲۷۷: د بيوفائي دَ ممانعت بيان. او فرمانِ الٰهي، چه اے د اللّٰه نبيّ كه دا خلق تاله دهوكه دركول غواړي نو بياهم بيشكه اللّٰه تعالٰي ستا د مدد د پاره كافي دے.

۱۱۴۱: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا الْوَلِيْدُ بْنُ مُسْلِمٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ الْعَلَاءِ ابْنِ زَيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ بُسْرَ بْنَ عُبَيْدِ اللّٰهِ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَا اِدْرِيْسَ قَالَ سَمِعْتُ عَوْفَ ابْنَ مَالِكٍ قَالَ اَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۱۱۴۱: حميدي. وليد. عبداللّٰه. بسر. ابو ادريس. عوف بن مالک نه روايت كوي. ما (عوف بن مالک) غزوهٔ تبوک كښے حضورؐ ته حاضري وركړه. او حضور د څرمنے يوه خيمه كښے تشريف فرما وو. ارشاد ئے اوفرمائيلو ياد كړئ چه دَ قيامت راتلو نه مخكښے به شپږ خبرے معرض

وَسَلَّمَ فِيْ غَزْوَةِ تَبُوْكٍ وَهُوَ فِيْ قُبَّةٍ مِنْ اَدَمٍ فَقَالَ اُعْدُدْ سِتًّا بَيْنَ يَدَيِ السَّاعَةِ مَوْتِيْ ثُمَّ فَتْحُ بَيْتِ الْمَقْدِسِ ثُمَّ مُوْتَانٌ يَأْخُذُ فِيْكُمْ كَقُعَاصِ الْغَنَمِ ثُمَّ اسْتِفَاضَةُ الْمَالِ حَتّٰى يُعْطَى الرَّجُلُ مِائَةَ دِيْنَارٍ فَيَظَلُّ سَاخِطًا ثُمَّ فِتْنَةٌ لَا يَبْقٰى بَيْتٌ مِنَ الْعَرَبِ اِلَّا دَخَلَتْهُ ثُمَّ هُدْنَةٌ تَكُوْنُ بَيْنَكُمْ وَ بَيْنَ بَنِي الْاَصْفَرِ فَيَغْدِرُوْنَ فَيَأْتُوْنَكُمْ تَحْتَ ثَمَانِيْنَ غَايَةً تَحْتَ كُلِّ غَايَةٍ اِثْنَا عَشَرَ اَلْفًا.

وجود کښې راځي. څما رحلت د بيت المقدس فتحه. يکدم مرۀ کيدل دي. د اوباء به تاسو کښې داسې خوره شي څنګه چه چيلو کښې ناساپه دَ مرګ بيماري خوره شي. د سرمايه دارئ کثرت يعني که چاته سل اشرفۍ ورکړيشي نو بيا به هم هغه خوشحاله نه وي. د فتنې بيماري چه د عربو هر کور کښې داخله شي. او بيا صلح نامه چه ستاسو مسلمانانو او بنو اصفر روميانو په مينځکښې به اوشي. بيا به هغویٔ د صلح نامې نه اوګرځي او ستاسو مقابلې دَ پاره به اتيا جنډې اخستې راځي. او دا چه دَ هغویٔ دَ هرې جنډې لاندې به دَ دولس زره سړو فوځ وي.

بَابُ ۲۷۸ : كَيْفَ يُنْبَذُ اِلٰى اَهْلِ الْعَهْدِ وَ قَوْلِهٖ وَ اِمَّا تَخَافَنَّ مِنْ قَوْمٍ خِيَانَةً فَانْبِذْ اِلَيْهِمْ عَلٰى سَوَآءٍ (الْاٰيَةَ).

باب ۲۷۸ : د قول و قرار د فسخ کولو بيان. او د اللّٰه تعالٰي فرمان' اې مسلمانانو که تاسو ته د يو قوم نه د خيانت انديښنه ږي' نو د هغویٔ عهد و پيمان هغویٔ ته برابر واپس کړئ.

۴۱۲ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَنَا حُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ بَعَثَنِيْ اَبُوْ بَكْرٍ فِيْمَنْ يُؤَذِّنَ يَوْمَ النَّحْرِ بِمِنٰى لَا يَحُجُّ بَعْدَ الْعَامِ مُشْرِكٌ وَلَا يَطُوْفُ بِالْبَيْتِ عُرْيَانٌ وَ يَوْمُ الْحَجِّ الْاَكْبَرِ يَوْمُ النَّحْرِ وَ اِنَّمَا قِيْلَ الْاَكْبَرُ مِنْ اَجْلِ قَوْلِ النَّاسِ الْحَجُّ الْاَصْغَرُ فَنَبَذَ اَبُوْ بَكْرٍ اِلَى النَّاسِ فِيْ ذٰلِكَ الْعَامِ فَلَمْ يَحُجَّ عَامَ حَجَّةِ الْوِدَاعِ الَّذِيْ حَجَّ فِيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى

۴۱۲ : ابو اليمان. شعب. زهري. حميد. ابوهريرهؓ نه روايت کوي. صديق اکبرؓ زۀ هغه خلقو سره روان کړم چه د قربانۍ په ورځ مقام منٰي کښې ئې ددې خبرې اعلان کولو' چه دې کال نه پس دې هيڅ مشرک حج نه کوي او د کعبې طواف دې هيڅوک په بربنډه نه کوي. او دَ حج اکبر ورځ دَ قربانۍ ورځ ده. او دې ته ئې حج اکبر په دې وجه اووې چه عمره به بعضې خلقو د حج اصغر په نوم موسوم کوله او صديق اکبرؓ په هغې کال خلقو ته دَ هغوي عهد و پيمان واپس کړلو نو د حجة الوداع کال کښې چه هغې کښې حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم حج کړې وو' هيڅ يو

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُشْرِكٌ.

مشرک حج او نه که.

بَاب ۲۷۹: اِثْمِ مَنْ عَاهَدَ ثُمَّ غَدَرَ وَ قَوْلِهِ الَّذِيْنَ عَاهَدْتَّ مِنْهُمْ ثُمَّ يَنْقُضُوْنَ عَهْدَهُمْ فِيْ كُلِّ مَرَّةٍ وَهُمْ لَا يَتَّقُوْنَ.

باب ۲۷۹: معاهده کولو سره دَ غداري کونکي د جرم بيان او فرمان الٰهي، چه کومو خلقو تاسو سره عهد و پيمان اوکه او بيا هر ځل خپل عهد و پيمان ماتوي او ويريږي نه.

۴۱۳: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ ابْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مُرَّةَ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرْبَعُ خِصَالٍ مَنْ كُنَّ فِيْهِ كَانَ مُنَافِقًا خَالِصًا مَنْ اِذَا حَدَّثَ كَذَبَ وَ اِذَا وَعَدَ اَخْلَفَ وَ اِذَا عَاهَدَ غَدَرَ وَ اِذَا خَاصَمَ فَجَرَ وَمَنْ كَانَتْ فِيْهِ خَصْلَةٌ مِنْهُنَّ كَانَتْ فِيْهِ خَصْلَةٌ مِنَ النِّفَاقِ حَتّٰى يَدَعَهَا.

۴۱۳: قتيبه. جرير. اعمش. عبدالله. مسروق. عبدالله بن عمرؓ نه روايت کوي، حضورؐ اوفرمائيل چا کښې چه دا څلور عادتونه وي، هغه پوخ منافق دے، چه خبرے کوي نو دروغ وائي. چه وعده اوکړي نو پيمان شکنئ اوکړي، چه څهٔ معاهده اوکړي نو دَ هغے معاهدے خلاف ورزي کولو سره غداري اوکړي او هر کله چه جګړي کوي نو کنځل شروع کړي هر کله چه دے خصلتونو کښے چا کښے يو خصلت هم وي نو هغه کښے د منافقت يوه نښه ده څو پورے چه هغه عادت ترک نکړي.

۴۱۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ التَّيْمِيِّ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَلِيٍّؓ قَالَ مَا كَتَبْنَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَّا الْقُرْاٰنَ وَمَا فِيْ هٰذِهِ الصَّحِيْفَةِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةُ حَرَامٌ مَا بَيْنَ عَائِرٍ اِلٰى كَذَا فَمَنْ اَحْدَثَ حَدَثًا اَوْ اٰوٰى مُحْدِثًا فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللّٰهِ وَالْمَلٰئِكَةِ

۴۱۴: محمد. سليمان. اعمش. ابراهيم تيمي. خپل پلار نه روايت کوي، دَ حضرت عليؓ بيان دے. مونږ قرآن کريم او څه چه دے صحيفه رباني کښے دي. ددے نه علاوه سرور عالم صلي الله عليه وسلّم هيڅ نه دي ليکلي. حضورؐ اوفرمائيل. د عائر غر نه فلاني مقام پورے مدينه منوره حرم دے څوک چه دلته ظلم اوکړي يا څه نوے خبره پيدا کونکي ته ځائے ورکړي، نو په هغهٔ د الله تعالي، فرښتو او ټولو بني آدمو لعنت وريږي دَ هغهٔ هيڅ نفل او فرض عبادت نه قبليږي او دَ ټولو مسلمانانو ذمه واري يوه ده چه هغے کښے ټول وارهٔ لوئے داخل

وَالنَّـاسِ اَجْمَعِيْنَ لَا يُقْبَلُ مِنْهُ عَدْلٌ وَلَا صَرْفٌ وَ ذِمَّةُ الْمُسْلِمِيْنَ وَاحِدَةٌ يَسْعٰى بِهَا اَدْنَاهُمْ فَمَنْ اَخْفَرَ مُسْلِمًا فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللّٰهِ وَالْمَلٰئِكَةِ وَالنَّاسِ اَجْمَعِيْنَ لَا يُقْبَلُ مِنْهُ صَرْفٌ وَلَا عَدْلٌ وَمَنْ وَّالٰى قَوْمًا بِغَيْرِ اِذْنِ مَوَالِيْهِ فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللّٰهِ وَالْمَلٰئِكَةِ وَالنَّاسِ اَجْمَعِيْنَ لَا يُقْبَلُ مِنْهُ صَرْفٌ وَلَا عَدْلٌ قَالَ اَبُوْ مُوْسٰى حَدَّثَنَا هَاشِمُ بْنُ الْقَاسِمِ حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ كَيْفَ اَنْتُمْ اِذَا لَمْ تَجْتَبُوْا دِيْنَارًا وَلَا دِرْهَمًا فَقِيْلَ لَهٗ وَ كَيْفَ تَرٰى ذٰلِكَ كَائِنًا يَا اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ اِيْ وَالَّذِيْ نَفْسُ اَبِيْ هُرَيْرَةَ بِيَدِهٖ عَنْ قَوْلِ الصَّادِقِ الْمَصْدُوْقِ قَالُوْا عَمَّ ذٰلِكَ قَالَ تُنْهَكُ ذِمَّةُ اللّٰهِ وَ ذِمَّةُ رَسُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَشُدُّ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ قُلُوْبَ اَهْلِ الذِّمَّةِ فَيَمْنَعُوْنَ مَا فِيْ اَيْدِيْهِمْ.

دي. څوک چه د يو مسلمان بے عزتي کوي. په هغهٔ دَ اللّٰه تعالٰي فرښتو او ټولو خلقو لعنت کيږي دَ هغه نفل او فرض عبادت نه منظوريږي او څوک چه د خپل آقا او والي د اجازت نه بغير چاسره دوستي او موالات کوي نو په هغه هم د اللّٰه تعالٰي، فرښتو او ټولو خلقو لعنت وريږي او د داسے سړي هم نفل بندګي او فرض عبادت بارګاه الٰهي کښے نه منظوريږي د ابو موسٰي بيان دے. مونږ ته هاشم، اسحٰق حضرت ابوهريرهؓ اووے. خلقو هغه وخت به ستاسو څه کيفيت وي چه تاسو ته نه اشرفئ حاصليږي، نه روپئ، پيسے. هغه نه تپوس اوشو. تاته آئنده کيدونکے دا خبره څنګه معلومه شوه. په دے هغهٔ اووے. قسم دے په هغه ذات چه د هغهٔ په قبضه کښے د ابوهريرهؓ ساه ده ما د حضورؐ صادق و مصدوق د ژبے نه دا خبره معلومه کړے ده. خلقو تپوس اوکه د معاشي بدحالي دا کيفيت او ددے وجه به څه وي. ابوهريره جواب ورکه اللّٰه تعالٰي او د حضور صلعم د عهد و پيمان او د ضمانت بيعزتي او بے حرمتي به کيږي او هغه وخت به اللّٰه تعالٰي دَ ذميانو زړونه سخت کړي، او څه چه د دغے کافرو او مشرکانو په لاس کښے دي د هغے نه به مسلمانان منع کوي. او دَ مسلمانانو به هيڅوک امداد نکوي.

## باب ۲۸۰:

## باب ۲۸۰: (دا باب بے عنوانه دے).

۴۱۵: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا اَبُوْ حَمْزَةَ قَالَ الْاَعْمَشُ قَالَ سَاَلْتُ اَبَا وَائِلٍ شَهِدْتَ صِفِّيْنَ قَالَ نَعَمْ فَسَمِعْتُ سَهْلَ بْنَ حُنَيْفٍ يَقُوْلُ

۴۱۵: عبدان د حمزهؓ نه روايت کوي اعمش د ابو وائل نه تپوس اوکه، آيا ته جنګ صفين کښے شريک وے. هغه جواب ورکه، جي او، او ما د سهل بن حنيف نه واوريدل تاسو خلق خپلے رائے ته تهمت اولګوئ. ما خو

اتَّهِمُوْا رَأْيَكُمْ رَأَيْتُنِيْ يَوْمَ اَبِيْ جَنْدَلٍ وَلَوْ اَسْتَطِيْعُ اَنْ اَرُدَّ اَمْرَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَرَدَدْتُهُ وَمَا وَضَعْنَا اَسْيَافَنَا عَلٰى عَوَاتِقِنَا لِاَمْرٍ يُفْظِعُنَا اِلَّا اَسْهَلْنَ بِنَا اِلٰى اَمْرٍ نَعْرِفُهُ غَيْرَ اَمْرِنَا هٰذَا.

خپل خان دَ ابوجندل واله ورځ بساندې اولید کۀ د رسالتمآب صلي اللّٰه علیه وسلّم حکم ما ټیله کولی نو آسانئ سره مِ ګریز کولے شو. او کوم وخت چه مونږ خپلے تورے یو هولناک کار دَ پاره په خپلو اوږو کیښودې، نو کوم کار چه مو غوښتلو، هغه آسان شولو. البته دا کار مشکل شو (چه مسلمانان پخپلو کښې انختي دي).

۲۱۴۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ اٰدَمَ حَدَّثَنَا حَبِيْبُ بْنُ اَبِيْ ثَابِتٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ وَائِلٍ قَالَ كُنَّا بِصِفِّيْنَ فَقَالَ سَهْلُ ابْنُ حُنَيْفٍ فَقَالَ اَيُّهَا النَّاسُ اتَّهِمُوْا اَنْفُسَكُمْ فَاِنَّا كُنَّا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْحُدَيْبِيَّةِ وَلَوْ نَرٰى قِتَالًا لَقَاتَلْنَا فَجَاءَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَلَسْنَا عَلَى الْحَقِّ وَهُمْ عَلَى الْبَاطِلِ فَقَالَ بَلٰى فَقَالَ اَلَيْسَ قَتْلَانَا فِي الْجَنَّةِ وَ قَتْلَاهُمْ فِي النَّارِ قَالَ بَلٰى قَالَ فَعَلٰى مَا نُعْطِي الدَّنِيَّةَ فِيْ دِيْنِنَا اَنَرْجِعُ وَلَمَّا يَحْكُمِ اللّٰهُ بَيْنَنَا وَ بَيْنَهُمْ فَقَالَ يَابْنَ الْخَطَّابِ اِنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ وَلَنْ يُضَيِّعَنِيَ اللّٰهُ اَبَدًا فَانْطَلَقَ عُمَرُ اِلٰى اَبِيْ بَكْرٍ فَقَالَ لَهُ مِثْلَ مَا قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اِنَّهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَنْ يُضَيِّعَهُ

۲۱۴۲: عبداللّٰه. یحيٰي. حبیب بن ابو ثابت. ابو وائل نه روایت کوي. مونږ خلق جنګ صفین کښے شریک او موجود وو، چه سهل بن حنیف اودرید، وئیلے خلقو تاسو د خپلے رائے قصور اوګنړئ، مونږ خلق خو جنګ حدیبیه کښے حضورؐ سره شریک وو، که مونږه جنګیدلے نو دغه وخت به جنګیدلي وے نو ضرور به جنګیدے. کوم ځائے چه فاروق اعظمؓ سرور عالم صلعم ته وئیلے وو. یا رسول اللّٰهؐ! آیا مونږ په حقه او دا خلق په باطل نه دي. ارشاد اوشو، او. دے نه پس هغهٔ اووے. آیا خمونږ مقتول جنت کښے او دَ هغوئ مړهٔ شوي خلق دوزخ کښے نه دي. ارشاد اوشو او د هغے نه پس هغه بیا تپوس اوکه نو بیا مونږ د خپل مذهب باره کښے ددے خلقونه کمزورئ ولے قبوله کړو. او دین کښے دے د هغوئ نه ولے دباؤ شو او قبل ددے نه چه اللّٰه تعالیٰ زمونږ او د هغوئ مینځ کښے فیصله اوکړي، آیا مونږ واپس شو. حضورؐ اوفرمائیل. اے ابن خطاب، زهٔ د اللّٰه رسولؐ یم او اللّٰه تعالیٰ به ما هیڅکله رسوا او ذلیل نکړي. دے نه پس فاروق اعظم صدیق اکبرؓ له ورغے. او دغه خبرے ورته اوکړے، کومے چه ئے حضورؐ سره کړے وے. صدیق اکبرؓ اووے حضورؐ بیشکه د اللّٰه

اللّٰهُ اَبَدًا فَنَزَلَتْ سُوْرَةُ الْفَتْحِ فَقَرَأَهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى عُمَرَ اِلٰى اٰخِرِهَا فَقَالَ عُمَرُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَوَ فَتْحٌ هُوَ قَالَ نَعَمْ.

رسولٌ دے هغه به الله هیڅکله رسوا او برباد نکړي او کوم وخت چه سوره فتح نازل شو نو دا د حضرت عمرؓ مخکښے حضورؐ پوره پوره اولوستلو د هغے اوریدو سره فاروق اعظم اووے یا رسول الله صلعم (صلح حدیبیه) آیا دا فتحه ده. ارشاد اوشو. بے شکه دا فتحه ده.

۱. سهل بن حنیف رضي الله عنه په جنګ کښے د هیچا د طرفنه شریک نه وو، په دے وجه دواړو فریقو په هغوئ باندے الزام لګولو، ددے جواب هغوئ دا ورکړے وو چه رسول الله صلي الله علیه وسلّم مونږ ته مسلمانانو سره د جنګ کولو حکم نه وو راکړے، دا خو پخپله ستاسو غلطي ده چه په خپلو تورو سره د خپلو مسلمانانو رونړو وینه بهیوئ، نور ډیر صحابه هم د حضرت معاویهؓ او حضرت علي رضي الله عنهما په جهګړه کښے شریک نه وو.

صفین فرات سره نزدے د یو ځائے نوم دے. هر چاته معلومه ده چه ددے جنګ هلاکتونو سره د مسلمانانو قوت خومره زیات متاثر شوے وو.

۴۱۷: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ ابْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا حَاتِمٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَسْمَاءَ بِنْتِ اَبِيْ بَكْرٍؓ قَالَتْ قَدِمَتْ عَلَيَّ اُمِّيْ وَهِيَ مُشْرِكَةٌ فِيْ عَهْدِ قُرَيْشٍ اِذْ عَاهَدُوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمُدَّتَهُمْ مَعَ اَبِيْهَا فَاسْتَفْتَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ اُمِّيْ قَدِمَتْ عَلَيَّ وَهِيَ رَاغِبَةٌ اَفَاَصِلُهَا قَالَ نَعَمْ صِلِيْهَا.

۴۱۷: قتیبه بن سعید. حاتم. هشام بن عروه. عروه. بي بي اسماء بنت ابوبکرؓ نه روایت کوي. څما مور څما نیکه (نانا) سره ماله راغلله او هغه مشرکه وه او رسول الله صلعم سره قریشو معاهده کړے وه. ما عرض اوکه یا رسول الله څما مور ماله راغلے ده، او هغه ما طرف ته راغبه ده، نو آیا زهٔ هغے سره څه صله رحمي کولے شم، حضور صلعم اوفرمائیل، هغے سره نیک سلوک کوه.

بَاب ۲۸۱: اَلْمُصَالَحَةِ عَلٰى ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ اَوْ وَقْتٍ مَعْلُوْمٍ.

باب ۲۸۱: درے ورځے یا وخت مقرره پورے د صلح کولو بیان.

۴۱۸: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ عُثْمَانَ بْنِ حَكِيْمٍ حَدَّثَنَا شُرَيْحُ ابْنُ

۴۱۸: احمد. شریح. ابراهیم. یوسف. ابو اسحاق. حضرت براء بن عازبؓ نه روایت کوي، چه

مُسْلِمَةَ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ يُوْسُفَ بْنِ اَبِيْ اِسْحَاقَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ قَالَ حَدَّثَنِي الْبَرَاءُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا اَرَادَ اَنْ يَعْتَمِرَ اَرْسَلَ اِلٰى اَهْلِ مَكَّةَ يَسْتَأْذِنُهُمْ لِيَدْخُلَ مَكَّةَ فَاشْتَرَطُوْا عَلَيْهِ اَنْ لَّا يُقِيْمَ بِهَا اِلَّا ثَلٰثَ لَيَالٍ وَلَا يَدْخُلَهَا اِلَّا بِجُلُبَّانِ السِّلَاحِ وَلَا يَدْعُوَ مِنْهُمْ اَحَدًا قَالَ فَاَخَذَ يَكْتُبُ الشَّرْطَ بَيْنَهُمْ عَلِيُّ بْنُ اَبِيْ طَالِبٍ فَكَتَبَ هٰذَا مَا قَاضٰى عَلَيْهِ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ فَقَالُوْا لَوْ عَلِمْنَا اَنَّكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ لَمْ نَمْنَعْكَ وَلَبَايَعْنٰكَ وَلٰكِنِ اكْتُبْ هٰذَا مَا قَاضٰى عَلَيْهِ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ فَقَالَ اَنَا وَاللّٰهِ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ وَ اَنَا وَاللّٰهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ قَالَ وَ كَانَ لَا يَكْتُبُ قَالَ فَقَالَ لِعَلِيٍّ اُمْحُ رَسُوْلَ اللّٰهِ فَقَالَ عَلِيٌّ وَاللّٰهِ لَا اَمْحَاهُ اَبَدًا قَالَ فَاَرِنِيْهِ قَالَ فَاَرَاهُ اِيَّاهُ فَمَحَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهٖ فَلَمَّا دَخَلَ وَ مَضَتِ الْاَيَّامُ اَتَوْا عَلِيًّا فَقَالُوْا مُرْ صَاحِبَكَ فَلْيَرْتَحِلْ فَذَكَرَ ذٰلِكَ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ نَعَمْ ثُمَّ ارْتَحَلَ.

## بَـــابٌ ۲۸۲ : اَلْــمُــوَادَعَةِ

رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ذَ عمرے اراده اوکړو. اهل مکه ته ئے سړي اوليږهٔ. او مکے کښے د داخليدو اجازت ئے طلب که خو هغوئ دا شرط اوليږلو. چه مکې کښے به د درے ورځو نه زيات نه ايساريږي، او د غلاف پوش وسلونه بغير به هلته نه داخليږي (يعني توره وغيره به ئے په تيکو کښے دننه وي) او چاته به ذَ دين اسلام دعوت نه ورکوي. دا معاهده علي بن طالب ليکله. دا هغه معاهده ده چه ددے په ذريعه محمد رسول اللّٰه صلعم صلح کړے ده، نو هغے مشرکانو اووے که مونږ دا منلے چه ته د اللّٰه رسولؐ ئے نو ته به مو هيڅکله نه منع کولے. بلکه ستا بيعت به مو هم کړے وے، نو داسے عبارت اوليکلے چه دا هغه تحرير دے چه ذَ هغے په ذريعه محمد بن عبداللّٰه صلح کړے ده. حضور صلعم اوفرمائيل په اللّٰه م دے قسم وي. زهٔ محمد بن عبداللّٰه يم ليکن د اللّٰه رسولؐ هم يم، د براء بن عازبؓ بيان دے. حضورؐ پخپله نه ليکله حضرت عليؓ ته ئے اوفرمائيل چه لفظ رسول کټ کړه. حضرت عليؓ جواب ورکه په خدائے چه زه خو دا هيڅکله نه ورانوم. حضورؐ ورته اوفرمائيل، ښه ده ماته ئے اوښايه. حضورؐ ته اوښودلے شو. نو حضورؐ خپل لاس مبارک سره هغه کټ کړلو، بيا حضورؐ مکے ته تشريف يوړلو. څه وخت چه هلته درے ورځے پوره شوے نو هغه مشرکين حضرت عليؓ له راغلل ورته ئے وئيلے اوس ته خپل آقا ته اووايه چه هغه تشريف يوسي مؐا سرور عالمؐ ته ددے ذکر اوکه نو حضورؐ اوفرمائيل او ټيک ده. او حضورؐ تشريف يوړلو.

## باب ۲۸۲ : غير معين وخت د پاره ذَ معاهدے

مِنْ غَمَرٍ وَقُتٍ وَقَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَقِرُّكُمْ مَا أَقَرَّكُمُ اللّٰهُ بِهِ.

کولو بيان. ددې متعلق حضور صلي الله عليه وسلم ارشاد فرمائيلې دې (اې يهوديانو) دې سرزمين کښې چه څو پورې الله تعالیٰ ته ستاسو ايساريدل منظور وي هغه وخته پورې به زۀ تاسو پريږدم.

بَابُ ۲۸۳ : طَرْحِ جِيَفِ الْمُشْرِكِينَ فِي الْبِئْرِ وَلَا يُؤْخَذُ لَهُمْ ثَمَنٌ.

باب ۲۸۳ : د مشرکانو لاشونه کوهي کښې د غرځولو د اُجرت نه اخستلو بيان.

۴۱۹ : حَدَّثَنَا عَبْدَانُ ابْنُ عُثْمَانَ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبِيْ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنْ عَمْرِو ابْنِ مَيْمُوْنٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ بَيْنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَاجِدٌ وَ حَوْلَهٗ نَاسٌ مِنْ قُرَيْشٍ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ اِذْ جَاءَ عُقْبَةُ بْنُ اَبِيْ مُعَيْطٍ بِسَلٰى جَزُوْرٍ فَقَذَفَهٗ عَلٰى ظَهْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يَرْفَعْ رَاْسَهٗ حَتّٰى جَآءَتْ فَاطِمَةُ عَلَيْهَا السَّلَامُ فَاَخَذَتْ مِنْ ظَهْرِهٖ وَدَعَتْ عَلٰى مَنْ صَنَعَ ذٰلِكَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَللّٰهُمَّ عَلَيْكَ الْمَلَاَ مِنْ قُرَيْشٍ اَللّٰهُمَّ عَلَيْكَ اَبَا جَهْلِ ابْنَ هِشَامٍ وَ عُتْبَةَ ابْنَ رَبِيْعَةَ وَ شَيْبَةَ ابْنَ رَبِيْعَةَ وَ عُقْبَةَ ابْنَ اَبِيْ مُعَيْطٍ وَ اُمَيَّةَ بْنَ خَلَفٍ اَوْ اُبَيَّ ابْنَ ابْنَ خَلَفٍ فَلَقَدْ رَاَيْتُهُمْ قُتِلُوْا يَوْمَ بَدْرٍ فَاُلْقُوْا فِيْ بِئْرٍ غَيْرَ اُمَيَّةَ اَوْ

۴۱۹ : عبدان. عثمان. شعبه. ابو اسحاق. عمرو بن ميمون. حضرت عبداللّٰه بن مسعودؓ نه روايت کوي. حضورؐ په سجده پروت وو او چاپيره ترې قريش مشرکانو کښېنا اچولې وه. چه عقبه بن ابي معيط (د يوې اوښې) لرې کولمې د حضورؐ په شا مبارکه اوغرځول. او حضورؐ هغه شان سر ښکته کړې سجده کښې پروت وو چه بي بي فاطمة الزهراؓ راغله او دَ حضورؐ د شا مبارکې نه ئې هغه گند بلا لرې کړل. او چا چه دا حرکت کړې وو. هغۀ ته ئې بددعا اوکړه. سرور عالمؐ اوفرمائيل اې اللّٰه. ددې جماعت قريش ابوجهل عتبه. شيبه. عقبه. اميه يا ابي بن خلف په سخت گرفت کښې گرفتار کړې. نو ما (عبداللّٰه بن مسعود) اوليدل، چه دا ټول جنگ بدر کښې او وژلې شو. او يو کوهي کښې اوغرځولې شو. بغير دَ اميه يا ابي خلف نه، دې ډير لحيم و شحيم (سرب) وو، څۀ وخت چه صحابه ؤ

أَبِيْ فَلِأَنَّهُ كَانَ رَجُلًا ضَخْمًا فَلَمَّا جَرُّوْهُ تَقَطَّعَتْ اَوْصَالُهُ قَبْلَ اَنْ يُلْقٰى فِي الْبِئْرِ.

دده لاش راښکلو، نو کوهي کښې د غرخولو نه مخکښې دَ هغه د جسم جوړ جوړ جدا شوي وو.

## بَابٌ ۲۸۴: اِثْمِ الْغَادِرِ لِلْبَرِّ وَالْفَاجِرِ.

## باب ۲۸۴: نیک او بدکار سره غداري کونکې بانديے د ګناه بیان.

۴۲۰: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سُلَيْمَانَ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ وَ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِكُلِّ غَادِرٍ لِوَاءٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ قَالَ اَحَدُهُمَا يُنْصَبُ وَ قَالَ الْاٰخَرُ يُرٰى يَوْمَ الْقِيَامَةِ يُعْرَفُ بِهٖ.

۴۲۰: ابوالولید. شعبه. سلیمان. اعمش. ابووائل. عبدالله. ثابت. انسؓ نه روایت کوي، چه حضورؐ فرمائیلي دي. د قیامت په ورځ به د هر غدار دَ پاره یوه جنډه وي، عبدالله بن مسعود او ثابت کښې یو کس وائي چه هغه جنډه به ښخه کړے شي. او نور فرمائي چه هغه جنډه به دَ هغے غدار د پیژندګلو د پاره اوچته کړے شي.

۴۲۱: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لِكُلِّ غَادِرٍ لِوَاءٌ يُنْصَبُ لِغَدْرَتِهٖ.

۴۲۱: سلیمان. حماد. ایوب. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روایت کوي. ما (ابن عمرؓ) دَ نبي صلعم نه اوریدلي دي، د هر غدار د پاره به یوه جنډه نصب کولے شي چه دَ هغه د بیوفایۍ نښه به وي.

۴۲۲: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ طَاؤُسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ لَا هِجْرَةَ وَلٰكِنْ جِهَادٌ وَّ نِيَّةٌ اِذَا اسْتُنْفِرْتُمْ فَانْفِرُوْا وَ قَالَ يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ اِنَّ هٰذَا الْبَلَدَ

۴۲۲: علي بن عبدالله. جریر. منصور. مجاهد. طاؤس. ابن عباسؓ نه روایت کوي. حضور صلعم د مکے د فتح په ورځ اوفرمائیل، اوس هجرت باقي پاتے نه شو البته د جهاد او نیک نیتۍ ثواب به ورکولے شي. او کوم وخت چه تاسو جهاد د پاره طلب کړئ شئ، نو سمدستي ورے ورځے فوځي دستے جوړے کړئ، جهاد د پاره روان شئ او د مکے د فتح په ورځ حضورؐ ارشاد اوفرمائیلو الله تعالیٰ د آسمان او زمکے د پیدائش په ورځ د مکے معظمے دا ښار حرمت واله پیدا کړے دے

حَرَّمَهُ اللّٰهُ يَوْمَ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ فَهُوَ حَرَامٌ بِحُرْمَةِ اللّٰهِ اِلٰى يَوْمِ الْقِيَامَةِ وَاِنَّهُ لَمْ يَحِلَّ الْقِتَالُ فِيْهِ لِاَحَدٍ قَبْلِيْ وَلَمْ يَحِلَّ لِيْ اِلَّا سَاعَةً مِنْ نَهَارٍ فَهُوَ حَرَامٌ بِحُرْمَةِ اللّٰهِ اِلٰى يَوْمِ الْقِيَامَةِ لَا يُعْضَدُ شَوْكُهُ وَلَا يُنَفَّرُ صَيْدُهُ وَلَا يُلْتَقَطُ لُقَطَتُهُ اِلَّا مَنْ عَرَّفَهَا وَلَا يُخْتَلٰى خَلَاهُ فَقَالَ الْعَبَّاسُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِلَّا الْاِذْخَرُ فَاِنَّهُ لِقَيْنِهِمْ وَلِبُيُوْتِهِمْ قَالَ اِلَّا الْاِذْخَرَ.

او انشاء اللّٰه د قيامته پورې به باحرمته وي. او دلته جنګ و جدل كول څما نه مخكښې هيچا د پاره حلال شوې نه دې البته يوه ورځ لږ ساعت ذ پاره څما د پاره قتال جائز شولو او دا مكه د الله باحرمت كولو سره ذ قيامته پورې باحرمته شوې ده. ددې ځائې ازغې دې نشي وهلې او نه دې يو څناور شړلې شي او نه دې تښتولې شي او پريوتې څيز دې نشي اوچتولې البته د شناخت په خاطر دې اوچت كړي او په يو خالي مقام د پاتې كيدونكي نه دې هغه ځائې هم خالي نكړې شي او څوک دې اوچ وابنه نه ريبي نو حضرت عباسؓ اووې يا يا رسول اللّٰه سوا د اذخر نه څكه چه هغۀ څمونږ په كورونو كښې او د زرګرانو په كار راځي نو ارشاد اوشو، او، سوا د اذخر (سَركړي) نه (هيڅ وابنه دې نشي ريبلې).

## اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ وَالشكر لِلّٰهِ چه ذَ صحيح بخاري دولسمه پاره ختمه شوه



تاج

# تاج البخاریؒ

## پښتو شرح صحیح البخاری

پاره ۱۳


شارح: مولانا ظهور الباری اعظمی فاضل دار العلوم دیوبند

پښتو ترجمه: مولانا محمد امین درانی

نظر ثانی: حافظ قاری فضل کریم

اهتمام: دکتور محمد دین البشاوری



تاج کتب خانه رجسټرډ

قصه خوانی پشاور
فون: 214454

C-22

# تاج البخاري پاره ۱۳ دمضامینو فهرست

# دیارلسمه پاره

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ ط

## كِتَابُ بَدْءِ الْخَلْقِ

## دَ مخلوقاتو دَ ابتداء بیان

باب ۲۸۵: مَا جَاءَ فِيْ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَهُوَ الَّذِيْ يَبْدَأُ الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيْدُهٗ قَالَ الرَّبِيْعُ ابْنُ خُيَثْمَ وَالْحَسَنُ كُلُّ عَلَيْهِ هَيِّنٌ و هَيْنٌ مِثْلُ لِيْنٍ وَ لَيِّنٍ وَ مَيْتٍ وَ مَيِّتٍ وَ ضَيْقٍ وَ ضَيِّقٍ اَفَعَيِيْنَا اَفَاَعْيَا عَلَيْنَا حِيْنَ اَنْشَاكُمْ وَ اَنْشَا خَلْقَكُمْ لُغُوْبُ النَّصَبُ اَطْوَارًا طَوْرًا كَذَا وَ طَوْرًا كَذَا عَدَا طَوْرَهٗ اَيْ قَدْرَهٗ.

باب ۲۸۵: دَ الله تعالي قول چه هغه په اول خل پیدا کول کوي، بیا دوباره به ئے ژوندے کړي ددے بیان. ربیع بن خیثم او حسن اوفرمائیل. هر څیز الله تعالي د پاره آسان دے. هَیْنٌ او هَیِّنٌ، لَیْنٍ او لَیِّنٌ او مَیْتٌ او مَیِّتٌ، ضَیْقٍ او ضَیِّقٍ په شان دي (یعني مشدد او مخفف کښے هیڅ فرق نشته) اَفَعَیِیْنَا معني دي ستړے والے اَطْوَارًا کله یو حالت کښے او کله بل حالت کښے اوساتلو عَدَا طَوْرَهٗ هغه دَ خپلے مرتبے او قدر نه تیر شولو.

۴۲۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ جَامِعِ بْنِ شَدَّادٍ عَنْ صَفْوَانَ ابْنِ مُحْرِزٍ عَنْ عِمْرَانَ ابْنِ حُصَيْنٍ قَالَ جَاءَ نَفَرٌ مِّنْ بَنِيْ تَمِيْمٍ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا بَنِيْ تَمِيْمٍ اَبْشِرُوْا قَالُوْا بَشَّرْتَنَا فَاَعْطِنَا فَتَغَيَّرَ وَجْهُهٗ فَجَاءَهٗ اَهْلُ الْيَمَنِ فَقَالَ يَا اَهْلَ الْيَمَنِ اِقْبَلُوا الْبُشْرٰى اِذْ لَمْ يَقْبَلْهَا بَنُوْ تَمِيْمٍ قَالُوْا قَبِلْنَا فَاَخَذَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحَدِّثُ بَدْءَ الْخَلْقِ وَالْعَرْشِ فَجَاءَ رَجُلٌ فَقَالَ يَا

۴۲۳: محمد بن کثیر. سفیان. جامع بن شداد. صفوان بن محرز. عمران بن حصینؓ نه روایت کوي. د بنو تمیم یو جماعت د رسالت مآب صلي الله علیه وسلّم په خدمت کښے حاضر شو. حضورؐ اوفرمائیل، اے بنو تمیم، خوشخبري حاصله کړئ. هغوئ جواب ورکه (یا رسول اللّٰهؐ) تاسو خو خوشخبري مونږ ته راکړه. خو اوس څه را عطا کړئے، نو دَ حضورؐ د مخ مبارک رنګ بدل شو. بیا اهل یمن د حضورؐ خدمت کښے راغلل، حضورؐ هغوئ ته اوفرمائیل اے اهل یمن بشارت قبول کړئ ځکه چه بنو تمیمو خو دا قبول نکړو. هغوئ اووے مونږ ته قبول دے. بیا حضورؐ د ابتدائے افرینش او عرش باره کښے بیان فرمائیلو نو یو سړے راغے او هغه اووے اے عمرانَ ستا

عِمْرَانُ رَاحِلَتُكَ تَفَلَّتَتْ لَيْتَنِيْ لَمْ اَقُمْ.

۴۲۴: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ حَدَّثَنَا جَامِعُ بْنُ شَدَّادٍ عَنْ صَفْوَانَ ابْنِ مُحْرِزٍ اَنَّهٗ حَدَّثَهٗ عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ دَخَلْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ عَقَلْتُ نَاقَتِيْ عَلَى الْبَابِ فَاَتَاهُ نَاسٌ مِنْ بَنِيْ تَمِيْمٍ فَقَالَ اقْبَلُوا الْبُشْرٰى يَا بَنِيْ تَمِيْمٍ قَالُوْا قَدْ بَشَّرْتَنَا فَاَعْطِنَا مَرَّتَيْنِ ثُمَّ دَخَلَ عَلَيْهِ نَاسٌ مِنْ اَهْلِ الْيَمَنِ فَقَالَ اقْبَلُوا الْبُشْرٰى يَا اَهْلَ الْيَمَنِ اِذْ لَمْ يَقْبَلْهَا بَنُوْ تَمِيْمٍ قَالُوْا قَدْ قَبِلْنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالُوْا جِئْنَاكَ نَسْاَلُكَ عَنْ هٰذَا الْاَمْرِ قَالَ كَانَ اللّٰهُ وَلَمْ يَكُنْ شَيْءٌ غَيْرُهٗ وَ كَانَ عَرْشُهٗ عَلَى الْمَاءِ وَ كَتَبَ فِي الذِّكْرِ كُلَّ شَيْءٍ وَ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ فَنَادٰى مُنَادٍ ذَهَبَتْ نَاقَتُكَ يَا ابْنَ الْحُصَيْنِ فَانْطَلَقْتُ فَاِذَا هِيَ يَقْطَعُ دُوْنَهَا السَّرَابُ فَوَاللّٰهِ لَوَدِدْتُّ اَنِّيْ كُنْتُ تَرَكْتُهَا وَ رَوٰى عِيْسٰى عَنْ رَقَبَةَ عَنْ قَيْسِ ابْنِ مُسْلِمٍ عَنْ طَارِقِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ سَمِعْتُ عُمَرَؓ يَقُوْلُ قَامَ فِيْنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَقَامًا فَاَخْبَرَنَا عَنْ بَدْءِ الْخَلْقِ حَتّٰى

سورلي اوتښتيده (عمران واښې) کاش چه ما د حضورﷺ نه خبرې او د حضورﷺ د وعظ دا مجلس نه وې پرېښې.

۴۲۴: عمر بن حفص بن غياث د هغهٔ پلار اعمش جامع بن شداد. صفوان بن محرز. عمران بن حصينؓ نه روايت کوي زهٔ د رسول الله صلي الله عليه وسلّم خدمت کښې حاضر شوم او خپله اوښه مِ دروازې سره اوتړله. نو حضورﷺ ته د بنو تميم څه خلق راغلل. حضورﷺ ورته اوفرمائيل بشارت قبول کړئ. هغوئ اووې چې کله تاسو مونږ له دو څله مال راکړی بيا د يمن څو کسان د حضورﷺ خدمت کښې حاضر شول. حضورﷺ هغوئ ته هم داسې اووې چې بشارت قبول کړی اے د يمن خلقو څکه چه بنو تميم خو دا رد کړلو. هغوئ اووے، يا رسول الله، مونږ قبول کړلو. مونږ ستاسو خدمت کښې ددې امر دين باره کښې څه دريافت کولو د پاره حاضر شوي وو، حضورﷺ ورته اوفرمائيل. ابتداء کښې د الله تعالي وجود وو، بل هيڅ څيز موجود نه وو. د هغهٔ عرش په اوبو وو او هغه هر کيدونکې څيز لوح محفوظ کښې ليکلې وو. او هغه زمکه او اسمان پيدا کړل. (حضورﷺ صلعم نه ما دومره خبره اوريدلې وه) يو منادي آواز اوکه اے ابن حصين، ستا اوښه اوتښتيده، زهٔ پاسيدم لاړم، هغه دومره لرې تلې وه چه سراب مينځ کښې حائل شولو. په خدائې مِ دې قسم وي ما ارمان اوکه چه ما دا پرېښې وے. عيسي، رقبه، قيس بن مسلم، طارق بن شهاب نه روايت کوي. ما د حضرت عمرؓ نه واوريدل. حضور صلعم زمونږ مينځکښې په يو مقام اودريدلو. او حضورﷺ د ابتدائے آفرينش په حقله مونږ ته بيان اوفرمائيلو، حتي چه (دائے هم اوښودل) اهل جنت خپلو منزلونو کښې

دَعَلَ اَهْلُ الْجَنَّةِ مَنَازِلَهُمْ وَ اَهْلُ النَّارِ مَنْزِلَهُمْ حَفِظَ ذٰلِكَ مَنْ حَفِظَهُ وَ نَسِيَهُ مَنْ نَسِيَهُ.

او اهل دوزخ خپلو ځايونو کښې داخل شولو نو دا خبره ئې يـاده اوسـاتـلـه، چا چه ياده اوساتله او هيره ئې کړه چا چه هيره کړه.

ځنه سـراب: د پيـريـانو اوبه دَ شکلنې زمکې بريښ يا ځليدنه، چه څه وخت د نمر رنړا وي نو د لرې نه په دسې ځائې د اوبو ګمان کيږي. دوکه. هغه شيره (ريت) چه سړي ته د لرې نه اوبه ښکاري.

۴۲۵: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ عَنْ اَبِيْ اَحْمَدَ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُرَاهُ يَقُوْلُ اللّٰهُ شَتَمَنِي ابْنُ اٰدَمَ وَمَا يَنْبَغِيْ لَهُ اَنْ يَشْتِمَنِيْ وَ يُكَذِّبُنِيْ وَمَا يَنْبَغِيْ لَهُ اَمَّا شَتْمُهُ اِيَّايَ فَقَوْلُهُ اِنَّ لِيْ وَلَدًا وَ اَمَّا تَكْذِيْبُهُ فَقَوْلُهُ لَيْسَ يُعِيْدُنِيْ كَمَا بَدَاَنِيْ.

۴۲۵: عبدالله بن ابي شيبه. ابو احمد. سفيان. ابـو الـزناد. اعرج. ابوهريرهؓ نه روايت کوي. رسول الله صـلـعم اوفرمائيل چه، الله تعالىٰ فرمائي. چه ابن آدم ماته کـنـځل کوي، حالانکه هغه دَ پاره مناسب نه دي چه ماته کـنـځـل اوکـړي او ما دروغژن ګنړي حالانکه هغه له دا مـنـاسـب نه دي. کنځل کول خو دادي چه هغه وائي چه ځـمـا اولاد شتـه (يعني شرک کوي) او دروغژن ګنړل دادي چـه هـغـه وائي چه الله به ما دوباره ژوندې نکړي. خنګه چه هغه ورمبنې هغه پيدا کړلو.

۴۲۶: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَـدَّثَـنَا مُغِيْرَةُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ الْقُرَشِيِّ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا قَضَى اللّٰهُ الْخَلْقَ كَتَبَ فِيْ كِتَابِهٖ فَهُوَ عِنْدَهُ فَوْقَ الْعَرْشِ اِنَّ رَحْمَتِيْ غَلَبَتْ غَضَبِيْ.

۴۲۶: قتيبـه بـن سـعيـد. مغيـره بن عبدالرحمٰن قـرشـي. ابـو زنـاد. اعـرج. حـضـرت ابوهـريـرهؓ نـه روايـت کـوي، حـضـورؐ ارشـاد اوفـرمـائيـلـو کـوم وخـت چـه الـلّٰـه تـعـالىٰ مـخـلـوق پيـدا کـړلـو، نـو هـغـهٔ لـوحِ مـحـفـوظ کـښـې اوليـکـل، نـو هـغـهٔ هـغـه سـره د عـرش د پـاسـه مـوجـود دې چـه ځـمـا رحـمـت ځـمـا پـه غـضـب غـالـب راغـې دا[1].

[1] . تـاسوته معلومه ده چه دا قسمه ټول الفاظ او جُملې د الله تعالىٰ په شان کښې زمونږ د فهم او ذهن مـنـاسـبـت سره استعمالولې شي ګنې الله تعالىٰ چه چرته هم دې او څرنګ چه دې دَ خپل شانِ حقيقي سره دې او د هغه حقيقت پيژندلونه زمونږ د فاني او کمزورو انسانانو ذهنونه عاجز دي.

باب ۲۸۶: مَا جَاءَ فِيْ سَبْعِ

باب ۲۸۶: د اووهٔ زمـکـو بـاره کـښې چـه کوم

اَرْضِيْنَ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى اَللّٰهُ الَّذِىْ خَلَقَ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ وَمِنَ الْاَرْضِ مِثْلَهُنَّ يَتَنَزَّلُ الْاَمْرُ بَيْنَهُنَّ لِتَعْلَمُوْا اَنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ وَ اَنَّ اللّٰهَ قَدْ اَحَاطَ بِكُلِّ شَيْءٍ عِلْمًا وَالسَّقْفُ الْمَرْفُوْعُ السَّمَاءُ سَمْكَهَا بِنَاءَ هَا اَلْحُبُكَ اِسْتَوَاءُ هَا وَ حُسْنُهَا وَ اَذِنَتْ سَمِعَتْ وَ اَطَاعَتْ وَ اَلْقَتْ اَخْرَجَتْ مَا فِيْهَا مِنَ الْمَوْتٰى وَ تَخَلَّتْ عَنْهُمْ طَحَاهَا دَحَاهَا اَلسَّاهِرَةُ وَجْهُ الْاَرْضِ كَانَ فِيْهَا الْحَيَوَانُ نَوْمُهُمْ وَ سَهْرُهُمْ.

روايات راغلي دي. او آيت كريمه: اللّٰه هغه دے چه هغهٔ اوهٔ آسمانونه پيدا كړل. او دغه شان زمكه هم، دے ټولو كښے د اللّٰه احكام نازليږي (دا څكه اوښودلے شو) چه تاسوته معلومه شي چه اللّٰه تعالٰي په هر څيز قادر دے. او اللّٰه هر څيز خپل احاطه علمي كښے اخستے دے. ددے بيان. السقف المرفوع يعني آسمان سَمْكَهَا يعني د هغے بنا چه هغے كښے حيوانات وو. اَلْحُبُكَ يعني د هغے هموار او خوبصورت كيدل. و اَذِنت يعني واوريدل او اطاعت ئے اوكه وَ اَلْقَتْ يعني خومره مړي وغيره چه زمكه كښے دي هغه به بهر راوغورځوي او خالي به شي. طحاها. يعني خوره ئے كړه دا. الساهره يعني سطح زمين چه هغے كښے د جاندارو اودهٔ كيدل او ويښيدل وي.

۴۲۷: حَدَّثَنَا عَلِيُّ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا ابْنُ عُلَيَّةَ عَنْ عَلِيِّ ابْنِ الْمُبَارَكِ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ كَثِيْرٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اِبْرَاهِيْمَ بْنِ الْحَارِثِ عَنْ اَبِىْ سَلَمَةَ ابْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ وَ كَانَتْ بَيْنَهٗ وَ بَيْنَ اُنَاسٍ خُصُوْمَةٌ فِىْ اَرْضٍ فَدَخَلَ عَلٰى عَائِشَةَ فَذَكَرَ لَهَا ذٰلِكَ فَقَالَتْ يَا اَبَا سَلَمَةَ اِجْتَنِبِ الْاَرْضَ فَاِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ ظَلَمَ قِيْدَ شِبْرٍ طُوِّقَهٗ مِنْ سَبْعِ اَرْضِيْنَ.

۴۲۷: علي بن عبداللّٰه ابن عليه. علي بن مبارك. يحيٰي بن ابي كثيرؒ. محمد بن ابراهيم بن حارث. ابو سلمهؓ بن عبدالرحمٰن نه روايت كوي. چه دَ هغه او د څنے خلقو مينځكښے د يوے زمكے باره كښے جګړه وه، نو ابو سلمه بي بي عائشےؓ له راغے او هغے ته ئے دا واقعه بيان كړه. بي بي عائشےؓ ورته اوفرمائيل. اے ابو سلمهؓ د زمكے نه ځان بچ كړه. څكه چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلي دي چا چه د يو ليشت برابر زمكه بانډِ په ناحقه قبضه اوكړه نو د قيامت په ورځ د هغه په ګردن به د اوو زمكو طوق واچولے شي.

۴۲۸: حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ عَنْ مُوْسَى ابْنِ عُقْبَةَ عَنْ سَالِمٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ قَالَ

۴۲۸: بشر بن محمد. عبداللّٰه بن موسٰي بن عقبه. سالم دَ خپل پلار نه روايت كوي. رسالت مآب صلي اللّٰه

النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ اَخَذَ شَيْئًا مِنَ الْاَرْضِ بِغَيْرِ حَقِّهٖ خُسِفَ بِهٖ يَوْمَ الْقِيَامَةِ اِلٰى سَبْعِ اَرْضِيْنَ.

علیه وسلّم اوفرمائیل چا چه ذره قدرې زمکه په ناحقه واخسته نو هغه به د قیامت په ورځ د اوو زمکو پورې په ښکته ښخولې شي (دھنسایا جائے گا).

۴۲۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيْرِيْنَ عَنِ ابْنِ اَبِيْ بَكْرَةَ عَنْ اَبِيْ بَكْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ الزَّمَانَ قَدِ اسْتَدَارَ كَهَيْئَتِهٖ يَوْمَ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ اَلسَّنَةُ اثْنَا عَشَرَ شَهْرًا مِّنْهَا اَرْبَعَةٌ حُرُمٌ ثَلٰثَةٌ مُّتَوَالِيَاتٌ ذُو الْقَعْدَةِ وَ ذُو الْحِجَّةِ وَالْمُحَرَّمُ وَ رَجَبُ مُضَرَ الَّذِيْ بَيْنَ جُمَادٰى وَ شَعْبَانَ.

۴۲۹: محمد بن مثنٰي. عبدالوهاب. ایوب. محمد بن سیرین. ابن ابي بکره. ابوبکرهؓ نه روایت کوي، حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل. د زمانې هغه رفتار دې چه د اسمان او زمکې دَ تخلیق په وخت وو (یعني د هغې په ورځو او میاشتو کښې کمې زیاتې نه دې شوې، نو) کال د دولس میاشتو دې، چه هغې کښې څلور حرمت والا دي، درې خو پرله پسې. یعني ذوالقعده، ذوالحجه، محرم او د قبیلې مضر هغه رجب چه دَ جمادي الاخره او شعبان په مینځ کښې دے.

۴۳۰: حَدَّثَنِيْ عُبَيْدُ بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ زَيْدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ نُفَيْلٍ اَنَّهٗ خَاصَمَتْهُ اَرْوٰى فِيْ حَقٍّ زَعَمَتْ اَنَّهُ انْتَقَصَهٗ لَهَا اِلٰى مَرْوَانَ فَقَالَ سَعِيْدٌ اَنَا اَنْتَقِصُ مِنْ حَقِّهَا شَيْئًا اَشْهَدُ لَسَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنْ اَخَذَ شِبْرًا مِنَ الْاَرْضِ ظُلْمًا فَاِنَّهٗ يُطَوَّقُهٗ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنْ سَبْعِ اَرْضِيْنَ. قَالَ ابْنُ اَبِي الزِّنَادِ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ قَالَ لِيْ سَعِيْدٌ

۴۳۰: عبید بن اسمٰعیل. ابو اسامه. هشام. دَ هغهٔ پلار، سعید بن زید بن عمرو بن نفیلؓ نه روایت کوي. چه اروی نومې ښځې مروان سره په حضرت سعید یو حق (جائیداد) کښې دعوي اوکړله. نو حضرت سعید اوفرمائیل زهٔ ددې ښځې په حق (جائیداد) کښې څهٔ کمې کولې شم؟ حالانکه زهٔ شهادت کوم چه ما یقیناً د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم نه دا اوریدلي دي، که چا یو لیشت قدرې زمکه هم ظلمًا ګیره کړه نو د هغهٔ ګردن کښې به د قیامت په ورځ د اوو زمکو طوق واچولې شي. ابن ابي الزناد، هشام او دَ هغهٔ پلار نه روایت سره دا الفاظ وائي. سعید داسې اوفرمائیل چه زهٔ

بْنُ زَيْدٍ دَخَلْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت كښې حاضر شوم.

**باب۲۸۷: فِي النُّجُوْمِ.** وَ قَالَ قَتَادَةُ وَلَقَدْ زَيَّنَّا السَّمَاءَ الدُّنْيَا بِمَصَابِيْحَ خُلِقَ هٰذِهِ النُّجُوْمُ لِثَلٰثٍ جَعَلَهَا زِيْنَةً لِّلسَّمَآءِ وَ رُجُوْمًا لِّلشَّيَاطِيْنَ وَ عَلَامَاتٍ يُهْتَدٰى بِهَا فَمَنْ تَأَوَّلَ فِيْهَا بِغَيْرِ ذٰلِكَ اَخْطَأَ وَ اَضَاعَ نَصِيْبَهُ وَ تَكَلَّفَ مَا لَا عِلْمَ لَهُ بِهٖ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ هَشِيْمًا مُتَغَيِّرًا وَالْاَبُّ مَا يَأْكُلُ الْاَنْعَامُ وَ الْاَنَامُ الْخَلْقُ بَرْزَخٌ حَاجِبٌ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ اَلْفَافًا مُلْتَفَّةٌ وَالْغُلْبُ الْمُلْتَفَّةُ فِرَاشًا مِهٰدًا كَقَوْلِهٖ وَلَكُمْ فِي الْاَرْضِ مُسْتَقَرٌّ نَكِدًا قَلِيْلًا.

**باب۲۸۷: دَ ستورو بيان.** قتاده د آيت كريمه ”او مونږ د دنيا اسمان ډيوو سره مزين كه. اووې فرمائيل ددې ستورو دَ تخليق درې مقصوده دي. (۱) د اسمان زينت جوړول. (۲) شيطانان ويشتل (۳) د رهنمائي ذريعه چا چه ددې دريو نه علاوه د ستورو باره كښې بل څه تاويل اوكه، نو هغهٔ غلطي اوكړه او خپله حصه ئې ضائع كړله او داسې څيز كښې ئې سر اووهلو چه دَ هغې ورته هيڅ علم نشته. ابن عباسؓ اوفرمائيل ”هشيمًا. يعني متغير ”آلابّ“ يعني هغه وابنه چه ډنګر ئې خوري ”الانام“ يعني مخلوق ”برزخ“ يعني پناه او د حاجب او مجاهد اوفرمائيل ”الفافا“ يعني انغښتې ”الغلب“ يعني انغښتې ”فراشا“ يعني بچونړه څنګه چه اللّٰه تعالٰي اوفرمائيل ستاسو د پاره په زمكه كښې د ايساريدو ځائې دې ”نكدا“ يعني لږ او كم.

**باب۲۸۸: صِفَةُ الشَّمْسِ وَالْقَمَرِ بِحُسْبَانٍ.** قَالَ مُجَاهِدٌ كَحُسْبَانِ الرَّحٰى وَ قَالَ غَيْرُهٗ بِحِسَابٍ وَ مَنَازِلَ لَا يَعْدُوْنَهَا حُسْبَانٌ جَمَاعَةُ حِسَابٍ مِثْلُ شِهَابٍ وَ شُهْبَانٍ ضُحَاهَا ضَوْءُهَا اَنْ تُدْرِكَ الْقَمَرَ لَا يَسْتُرُ ضَوْءُ اَحَدِهِمَا ضَوْءَ الْاٰخَرِ وَلَا يَنْبَغِيْ لَهُمَا ذٰلِكَ سَابِقُ النَّهَارِ يَتَطَالَبَانِ حَثِيْثَانِ نَسْلَخُ نُخْرِجُ اَحَدَهُمَا مِنَ الْاٰخَرِ وَ نُجْرِيْ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا وَاهِيَةٌ وَهْيُهَا

**باب۲۸۸: آيت الشَّمْسِ وَالْقَمَرِ بِحُسْبَانٍ** (نمر او سپوږمئ يو خاص حساب سره ګردش كښې دي) ددې د كيفيت بيان مجاهد او فرمائيل (حسبان مطلب دا دې) دَ ژرندې د ګرځش مطابق. نورو خلقو اووې داسې حساب او منزلونو سره چه هغه ددې نه بهر كيدې نشي، حُسْبَان جمع د حساب ده څنګه چه شهبان جمع د شهاب ده. ضحاها يعني دَ هغې رڼا ان تدرك القمر يعني د يو رڼا د بل رڼا پټولې نشي. حالانكه هر يو ددې دواړونه ګردش كوي. وَاهِيَةٌ وَهْيُهَا يعني د هغې چودل اَرْجَائِهَا يعني د هغا هغه حصه

تَشَقُّقُهَا اَرْجَائِهَا مَالَمْ يَنْشَقَّ مِنْهَا فَهِيَ عَلٰى حَافَتَيْهِ كَقَوْلِكَ عَلٰى اَرْجَاءِ الْبِيْرِ اَغْطَشَ وَ جَنَّ اَظْلَمَ وَ قَالَ الْحَسَنُ كُوِّرَتْ تَكَوَّرَ حَتّٰى يَذْهَبَ ضُوْءُ هَا وَاللَّيْلِ وَمَا وَسَقَ جَمَعَ مِنْ دَابَّةٍ اِتَّسَقَ اِسْتَوٰى بُرُوْجًا مَنَازِلَ الشَّمْسِ وَالْقَمَرِ الْحَرُوْرُ بِالنَّهَارِ مَعَ الشَّمْسِ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ الْحَرُوْرُ بِاللَّيْلِ وَالسَّمُوْرُ بِالنَّهَارِ يُقَالُ يُوْلِجُ يُكَوِّرُ وَلِيْجَةً كُلُّ شَيْءٍ اَدْخَلْتَهُ فِيْ شَيْءٍ.

چه چودلے نه ده نو دا به د هغے په دوارو غاړو وي څنګه چه تاسو وايئ. عَلٰى اَرْجَاءِ الْبِيْرِ (د کوهي په غاړه) اَغْطَشَ وَ جَنَّ يعني تاريک شو. او حسن اوفرمائيل كُوِّرَتْ يعني اوبه انغښتلے شي حتي چه د هغے رنړا به ختمه شي وَاللَّيْلِ وَمَا وَسَقَ جَمَعَ مِنْ دَابَّةٍ يعني کوم څناور چه جمع کړي. اِتَّسَقَ يعني برابر شو بُرُوْجًا يعني شمس و قمر منزلونه الْحَرُوْر ورځ کښے نمر سره وي. ابن عباسؓ اوفرمائيل. حرور شپه کښے او سموم ورځ کښے وي، ته وئيلے شي. يُوْلِجُ يعني رانغاړي وَلِيْجَه يعني هر هغه څيز چه هغه تابل څيز کښے داخل که.

۱۴۳۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ التَّيْمِيِّ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ ذَرٍّ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ غَرَبَتِ الشَّمْسُ اَتَدْرِيْ اَيْنَ تَذْهَبُ قُلْتُ اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهُ اَعْلَمُ قَالَ فَاِنَّهَا تَذْهَبُ حَتّٰى تَسْجُدَ تَحْتَ الْعَرْشِ فَتَسْتَاْذِنُ فَيُؤْذَنُ لَهَا وَ يُوْشِكُ اَنْ تَسْجُدَ فَلَا يُقْبَلُ مِنْهَا وَ تَسْتَاْذِنُ فَلَا يُؤْذَنُ لَهَا يُقَالُ لَهَا ارْجِعِيْ مِنْ حَيْثُ جِئْتِ فَتَطْلُعُ مِنْ مَغْرِبِهَا فَذٰلِكَ قَوْلُهُ تَعَالٰى وَالشَّمْسُ تَجْرِيْ لِمُسْتَقَرٍّ لَهَا ذٰلِكَ تَقْدِيْرُ الْعَزِيْزِ الْعَلِيْمِ.

۱۴۳۱: محمد بن يوسف. سفيان. اعمش. ابراهيم تيمي. دَ هغهٔ پلار حضرت ابو ذرؓ نه روايت کوي چه نمر ډوب شو نو رسول الله صلي الله عليه وسلّم ابوذرؓ ته اوفرمائيل آيا تاته معلومه ده چه نمر چرته ځي. ما عرض او که، الله او د هغهٔ رسولؐ ښهٔ پوهيږي حضور صلعم اوفرمائيل نمر ځي حتٰي چه دَ عرش لاندِ سجده کوي. بيا د طلوع کيدو اجازت غواړي. نو هغه ته اجازت ورکړے شي. او عنقريب هغه وخت به راشي چه دے به سجده اوکړي نو هغه به قبوله نشي او د طلوع کيدو اجازت به غواړي نو اجازت به ورنکړے شي بلکه ورته به حکم اوشي چه کوم ځائے نه راغلے ئے هلته واپس لاړ شه هغه وخت به دے د مغرب نه طلوع شي او دا ددے آيت کريمه مطلب دے. او نمر خپلے ټيکاڼړے طرف ته ځي. دا اندازه ترلے شويده د هغه چه زبردست او علم واله دے.

۴۳۲: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ الْمُخْتَارِ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ الدَّانَاجُ قَالَ حَدَّثَنِيُ اَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيُ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الشَّمْسُ وَالْقَمَرُ مُكَوَّرَانِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ.

۴۳۲: مسدد. عبدالعزيز بن مختار. عبداللّٰه داناج. ابو سلمه بن عبدالرحمٰن. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل چه سپوږمئ او نمر به دَ قيامت په ورځ راونغښتلے شي.

۴۳۳: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِيُ ابْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِيُ عَمْرٌو اَنَّ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ الْقَاسِمِ حَدَّثَهُ عَنْ اَبِيْهِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّهُ كَانَ يُخْبِرُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ اٰيَتَانِ مِنْ اٰيَاتِ اللّٰهِ لَا يَخْسِفَانِ لِمَوْتِ اَحَدٍ وَّلَا لِحَيَاتِهٖ وَلٰكِنَّهُمَا اٰيَتَانِ مِنْ اٰيَاتِ اللّٰهِ فَاِذَا رَاَيْتُمُوْهُمَا فَصَلُّوْا.

۴۳۳: يحيٰي بن سليمان. ابن وهب. عمرو. عبدالرحمٰن بن قاسم. د هغهٔ پلار حضرت عبداللّٰه بن عمرؓ نه روايت كوي، حضورؐ اوفرمائيل سپوږمئ او نمر د چا د مرګ يا ژوند په وجه تندر نه نيسي، بلكه دا دواړه د خدائے دَ نښو نه دوه نښے دي، كله چه تاسو دا دواړه اووينئ چه تندر نيولي دي، نو مونځ كوئ.

۴۳۴: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ بْنُ اُوَيْسٍ قَالَ حَدَّثَنِيُ مَالِكٌ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ اٰيَتَانِ مِنْ اٰيَاتِ اللّٰهِ لَا يَخْسِفَانِ لِمَوْتِ اَحَدٍ وَّلَا لِحَيَاتِهٖ فَاِذَا رَاَيْتُمْ ذٰلِكَ فَاذْكُرُو اللّٰهَ.

۴۳۴: اسماعيل بن ابي اويس. مالک. زيد بن اسلم. عطاء بن يسار. حضرت عبداللّٰه بن عباسؓ نه روايت كوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل سپوږمئ او نمر د اللّٰه د نښو نه دوه نښے دي. دَ چا د مرګ يا ژوند په وجه ئے تندر نه نيسي كله چه تاسوئے دغسے اووينئ. نو اللّٰه پاک يادوئ يعني مونځ كوئ.

۴۳۵: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ

۴۳۵: يحيٰي بن بكير. ليث. عقيل. ابن

حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ اَنَّ عَائِشَةَ اَخْبَرَتْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ خَسَفَتِ الشَّمْسُ قَامَ فَكَبَّرَ وَ قَرَاَ قِرْأَةً طَوِيْلَةً ثُمَّ رَكَعَ رُكُوْعًا طَوِيْلًا ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهٗ فَقَالَ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ وَ قَامَ كَمَا هُوَ فَقَرَاَ قِرْأَةً طَوِيْلَةً وَ هِيَ اَدْنٰى مِنَ الْقِرْأَةِ الْاُوْلٰى ثُمَّ رَكَعَ رُكُوْعًا طَوِيْلًا وَ هِيَ اَدْنٰى مِنَ الرَّكْعَةِ الْاُوْلٰى ثُمَّ سَجَدَ سُجُوْدًا طَوِيْلًا ثُمَّ فَعَلَ فِي الرَّكْعَةِ الْاٰخِرَةِ مِثْلَ ذٰلِكَ ثُمَّ سَلَّمَ وَقَدْ تَجَلَّتِ الشَّمْسُ فَخَطَبَ النَّاسَ فَقَالَ فِيْ كُسُوْفِ الشَّمْسِ وَالْقَمَرِ اِنَّهُمَا اٰيَتَانِ مِنْ اٰيَاتِ اللّٰهِ لَا يَخْسِفَانِ لِمَوْتِ اَحَدٍ وَّلَا لِحَيَاتِهٖ فَاِذَا رَاَيْتُمُوْهَا فَافْزَعُوْا اِلَى الصَّلٰوةِ.

شهاب. عروه بي بي عائشې نه روایت کوي په کومه ورځ چه نمر تندر اونیولو. نو حضورؐ به مانځه د پاره اودریدلو، حضورؐ تکبیر تحریمه اوکړه او ډیر اوږد قرأت ئې اوکه. بیائې ډیره اوږده رکوع اوکړله. بیائې ذ رکوع نه سر اوچت کړلو، سمع الله لمن حمده ئې اووے او دغه شان ولاړ وو بیا حضورؐ اوږد قرأت اوکړلو چه د وړمبني قرات نه لږ کم وو. بیا حضورؐ اوږده رکوع اوکړله. چه د وړومبنئ رکوع نه لږه کمه وه، بیا حضورؐ ډیره اوږده سجده اوکه بیا حضورؐ دویم رکعت کښې هم دغسې اوکړل دے نه پس ئې سلام اوګرځولو، هغه وخت نمر صاف شوے وو. بیا حضورؐ د خلقو مخکښې خطبه اووئیله. د سپوږمئ او نمر متعلق ئې اوفرمائیل. دا د الله د نښو نه دوه نښې دي. د چا د مرګ او ژوند په وجه ئې تندر نه نیسي کله چه تاسو دا دواړه تندر نیولي اووینئ. نو مونځ کوئ.

۴۳۶: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ اِسْمَاعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنِيْ قَيْسٌ عَنْ اَبِيْ مَسْعُوْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الشَّمْسُ وَالْقَمَرُ لَا يَنْكَسِفَانِ لِمَوْتِ اَحَدٍ وَّلَا لِحَيَاتِهٖ وَلٰكِنَّهُمَا اٰيَتَانِ مِنْ اٰيَاتِ اللّٰهِ فَاِذَا رَاَيْتُمُوْهُمَا فَصَلُّوْا.

۴۳۶: محمد بن مثنٰي. یحیٰي. اسماعیل. قیس. حضرت ابو مسعودؓ نه روایت کوي. رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل، سپوږمئ او نمر د چا د مرګ او ژوند په وجه تندر نه نیسي بلکه دا د الله تعالٰي د نښو نه دوه نښې دي. کله چه تاسو دا اوینئ چه تندر نیولے دي، نو مونځ کوئ.

باب ۲۸۹: مَا جَاءَ فِيْ قَوْلِهٖ

باب ۲۸۹: آیت کریمه او هغه دے چه د

وَهُوَ الَّذِیْ اَرْسَلَ الرِّیَاحَ بُشْرًا بَیْنَ یَدَیْ رَحْمَتِهٖ قَاصِفًا تَقْصِفُ كُلَّ شَيْءٍ لَوَاقِحَ مَلَاقِحَ مُلْقِحَةٌ اِعْصَارٌ رِیْحٌ عَاصِفٌ تَهُبُّ مِنَ الْاَرْضِ اِلَی السَّمَاءِ كَعَمُوْدٍ فِیْهِ نَارٌ صِرٌّ بَرْدًا نُشُرًا مُتَفَرِّقَةٌ.

رحمت باران نه مخکښې متفرق هوا ګانې رالیږي. قاصفًا یعني هر څیز ماتونکې، لَوَاقِحَ په معني د ملاقح چه د ملقحه جمع ده چه دَ هغې معني ده: ډکه، اعصار: هغه تیزه هوا چه د ستن په شان د زمکې نه اسمانه پورې اوچتیږي. چه هغې کښې اُور وي (ګولا، بورړ بوکې) صِرٌّ: یخ، نُشُرًا متفرق او جدا جدا.

۴۳۷: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْحَكَمِ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ نُصِرْتُ بِالصَّبَا وَ اُهْلِكَتْ عَادٌ بِالدَّبُوْرِ.

۴۳۷: آدم. شعبه. مجاهد. ابن عباسؓ نه روایت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم اوفرمائیل څما مدد پُروا هوا سره شوې دې او قوم عاد پچهوا هوا سره هلاک کړې شو.

ف: پُروا هوا. یعني د جنوب یا سهیل د غاړې هوا. پچهوا هوا: د پچهم یعني د قبلې ډ ډې هوا.

۴۳۸: حَدَّثَنَا مَكِّيُّ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ عَنْ عَطَاءٍ عَنْ عَائِشَةَؓ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا رَاٰى مَخِيْلَةً فِي السَّمَاءِ اَقْبَلَ وَ اَدْبَرَ وَ دَخَلَ وَ خَرَجَ وَ تَغَيَّرَ وَجْهُهٗ فَاِذَا اُمْطِرَتِ السَّمَاءُ سُرِّيَ عَنْهُ فَعَرَّفَتْهُ عَائِشَةُ ذٰلِكَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا اَدْرِيْ لَعَلَّهٗ كَمَا قَالَ قَوْمٌ رَاَوْهُ عَارِضًا مُسْتَقْبِلَ اَوْدِيَتِهِمْ. (الآیه)

۴۳۸: مکي بن ابراهیم. ابن جریج. عطاء. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي. هغې اوفرمائیل رسول اللّٰه صلعم چه به په آسمان د وریځې ټکړه اولیده نو کله به په مخکښې تلو او کله به په ورستو، کله به دننه تلو او کله بهر. او دَ حضورؐ د مخ مبارک رنګ به بدل شو. بیا چه باران به شروع شر، نو د حضورؐ دا حالت به ختم شو. بي بي عائشےؓ ترینه دې باره کښې تپوس اوکړو نو حضور صلعم ورته اوفرمائیل ماته معلومه نه ده: شاید چه دا هغه وریځ وي څنګه چه یو قوم (عاد) وئیلې وو. کوم وخت چه هغوئ وریځ اولیده چه دَ هغوئ وادیانو طرف ته ئې مخه وه آخره پورې.

## باب ۲۹۰: ذِكْرِ الْمَلَائِكَةِ.

وَ قَالَ اَنَسٌ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَلَامٍ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ

باب ۲۹۰: دَ فرښتو بیان. حضرت انسؓ فرمائي عبداللّٰه بن سلام رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم ته اووې. تولو فرښتو

جِبْرِئِيلَ عَلَيْهِ السَّلَامُ عَدُوُّ الْيَهُوْدِ مِنَ الْمَلَائِكَةِ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لَنَحْنُ الصَّافُّوْنَ الْمَلَائِكَةُ.

کښې جبرائیلؑ د یهودیانو دشمن دې. ابن عباسؓ اوفرمائیل لَنَحْنُ الصَّافُّوْن یعني فرښتې.

۴۳۹: حَدَّثَنَا هُدْبَةُ بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ حَدَّثَنَا أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ عَنْ مَالِكِ بْنِ صَعْصَعَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَا أَنَا عِنْدَ الْبَيْتِ بَيْنَ النَّائِمِ وَالْيَقْظَانِ وَ ذَكَرَ يَعْنِيْ رَجُلًا بَيْنَ الرَّجُلَيْنِ فَأُتِيْتُ بِطَسْتٍ مِنْ ذَهَبٍ مُلِيءَ حِكْمَةً وَّ إِيْمَانًا فَشُقَّ صَدْرِيْ مِنَ النَّحْرِ إِلَى مَرَاقِّ الْبَطْنِ ثُمَّ غُسِلَ الْبَطْنُ بِمَاءِ زَمْزَمَ ثُمَّ مُلِيءَ حِكْمَةً وَّ إِيْمَانًا وَّ أُتِيْتُ بِدَابَّةٍ أَبْيَضَ دُوْنَ الْبَغْلِ وَ فَوْقَ الْحِمَارِ الْبُرَاقُ فَانْطَلَقْتُ مَعَ جِبْرِيْلَ حَتّٰى أَتَيْنَا السَّمَاءَ الدُّنْيَا قِيْلَ مَنْ هٰذَا قَالَ جِبْرِيْلُ قِيْلَ مَنْ مَعَكَ قِيْلَ مُحَمَّدٌ قِيْلَ وَ قَدْ أُرْسِلَ إِلَيْهِ قَالَ نَعَمْ قِيْلَ مَرْحَبًا وَلَنِعْمَ الْمَجِيْءُ جَاءَ فَأَتَيْتُ عَلٰى آدَمَ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَقَالَ مَرْحَبًا بِكَ مِنِ ابْنٍ وَ نَبِيٍّ فَأَتَيْنَا السَّمَاءَ الثَّانِيَةَ قِيْلَ مَنْ هٰذَا قَالَ جِبْرِيْلُ قِيْلَ مَنْ مَعَكَ

۴۳۹: هدبه بن خالد. همام. قتاده (دونم سند) خلیفه یزید بن زریع. سعید او هشام. قتاده. حضرت انسؓ بن مالک. مالک بن صعصعهؓ نه روایت کوي. رسول اللّٰه صلعم اوفرمائیل زهٔ کعبې سره د خوب او بیدارئ حالت کښې ووم او حضورؐ خپل خان د دوؤ سړوؤ منځکښې ذکر که. ماته دَ سرو زرو تالې راوړې شو. چه د حکمت او ایمان نه ډک وو. خما د سینې نه دَ خیټې لاندې پورې ئې اوخیرله، بیا خیټه د زمزم د اوبو نه ډکه کړې شوه. بیا د حکمت او ایمان نه ډکه کړې شوه او یو سپین چوپایه چه د قچر نه وړوکې او د خر نه لوئې وو، ماته راوستې شو، یعني براق. بیا زهٔ جبرئیل امینؑ سره لاړم. حتي چه مونږ د دنیا اسمان ته اورسیدو. تپوس اوشو، څوک دې جواب ورکړې شو. زهٔ جبرئیلؑ یم. تپوس اوشو. تاسره څوک دې. هغهٔ جواب ورکه محمد صلعم دې. تپوس اوشو آیا دې راغوښتلې شویدې جواب اوشو، او، اوونیلې شو. مرحبا (پخیره راغلې) ستا تشریف آوري څومره بهترینه ده. نو زهٔ هغې آسمان کښې حضرت آدم علیه السلام له راغلم او هغه ته م سلام اوکه. هغه جواب راکه اې څویه، اې نبي مرحبا، بیا مونږ دویم اسمان ته اورسیدو. تپوس اوشو څوک دې جواب ئې ورکه، جبرئیل. تپوس اوشو تاسره څوک دې هغه ورته اووې محمد (صلعم) دې. تپوس اوشو. آیا دې راغوښتلې شوې دې، هغه ورته

قَالَ مُحَمَّدٌ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِيْلَ أُرْسِلَ إِلَيْهِ قَالَ نَعَمْ قِيْلَ مَرْحَبًا بِهٖ وَلَنِعْمَ الْمَجِيْءُ جَاءَ فَأَتَيْتُ عَلٰى عِيْسٰى وَ يَحْيٰى فَقَالَا مَرْحَبًا بِكَ مِنْ أَخٍ وَ نَبِيٍّ فَأَتَيْنَا السَّمَاءَ الثَّالِثَةَ قِيْلَ مَنْ هٰذَا قِيْلَ جِبْرِيْلُ قِيْلَ مَنْ مَّعَكَ قِيْلَ مُحَمَّدٌ قِيْلَ وَقَدْ أُرْسِلَ إِلَيْهِ قَالَ نَعَمْ قِيْلَ مَرْحَبًا بِهٖ وَلَنِعْمَ الْمَجِيْءُ جَاءَ فَأَتَيْتُ يُوْسُفَ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ قَالَ مَرْحَبًا بِكَ مِنْ أَخٍ وَ نَبِيٍّ فَأَتَيْنَا السَّمَاءَ الرَّابِعَةَ قِيْلَ مَنْ هٰذَا قِيْلَ جِبْرِيْلُ قِيْلَ مَنْ مَّعَكَ قِيْلَ مُحَمَّدٌ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِيْلَ وَقَدْ أُرْسِلَ إِلَيْهِ قِيْلَ نَعَمْ قِيْلَ مَرْحَبًا بِهٖ وَلَنِعْمَ الْمَجِيْءُ جَاءَ فَأَتَيْتُ عَلٰى إِدْرِيْسَ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَقَالَ مَرْحَبًا مِّنْ أَخٍ وَّ نَبِيٍّ فَأَتَيْتُ السَّمَاءَ الْخَامِسَةَ قِيْلَ مَنْ هٰذَا قَالَ جِبْرِيْلُ قِيْلَ وَ مَنْ مَعَكَ قِيْلَ مُحَمَّدٌ قِيْلَ وَقَدْ أُرْسِلَ إِلَيْهِ قَالَ نَعَمْ قِيْلَ مَرْحَبًا بِهٖ وَلَنِعْمَ الْمَجِيْءُ جَاءَ فَأَتَيْنَا عَلٰى هَارُوْنَ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَقَالَ مَرْحَبًا بِكَ مِنْ أَخٍ وَ نَبِيٍّ فَأَتَيْنَا

اووے. او، اووئيلے شو مرحبا ستا تشريف آوري څومره بهترينـه ده، نو زهٔ دويم آسمان كښے عيسیٰ، يحيٰ عليهما السلام له راغلم، هغوئ اووے اے وروره او نبي مرحبا. بيا مونږ دريم اسمان ته اورسيدو، تپوس اوشو. څوک دے. جبرئيلؑ جواب ورکه چه جبرئيلؑ تپوس اوشو تاسره څوک دے هغه جواب ورکه محمد (صلعم) دے. تپوس اوشو آيا دے راغوښتلے شويدے. هغه ورته اووے او. وئيلے مرحبا. ستا تشريف آوري څومره بهترينه ده. نو زهٔ دريم اسمان كښے حضرت يوسف عليه السلام سره يوځائے شوم، هغه ته مِ سلام اوکه، هغه اووے اے وروره اے نبي مرحبا. بيا مونږ څلورم اسمان ته اورسيدو. تپوس اوشو. څوک دے جبرئيلؑ اووے چه جبرئيل تپوس اوشو تاسره څوک دے هغه جواب ورکه محمد صلعم دے تپوس اوشو. آيا دے راغوښتلے شويدے. هغه ورته اووے. او، اووئيلے شو مرحبا ستا تشريف راوړل څومره بهترين دي نو زهٔ هغے آسمان كښے حضرت ادريسؑ له ورغلم هغه ته مِ سلام اوکه، هغه اووے اے وروره او نبي مرحبا بيا مونږ پنځم اسمان ته اورسيدو هلته هم تپوس اوشو. څوک دے جبرئيلؑ اووے جبرئيلؑ. تپوس اوشو تاسره څوک دے هغه اووے محمد صلعم دے. تپوس اوشو آيا دے راغوښتلے شويدے هغه ورته اووے. او، اووئيلے شو، مرحبا، ستا راتله څومره بهترين دي. دے اسمان كښے مونږ هارون عليه السلام له راغلو، او ما ورته سلام اوکه، هغهٔ او فرمائيل اے وروره اے نبي مرحبا. بيا مونږ شپږم اسمان ته اورسيدو نو تپوس اوشو څوک دے جواب ئے

السَّمَاءَ السَّادِسَةَ قِيلَ مَنْ هٰذَا
قِيلَ جِبْرِيلُ قِيلَ مَنْ مَّعَكَ قِيلَ
مُحَمَّدٌ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ قِيلَ وَقَدْ اُرْسِلَ اِلَيْهِ
قَالَ نَعَمْ قِيلَ مَرْحَبًا بِهٖ وَلَنِعْمَ
الْمَجِئُ جَاءَ فَاَتَيْتُ عَلٰى مُوْسٰى
فَسَلَّمْتُ فَقَالَ مَرْحَبًا بِكَ مِنْ اَخٍ وَ
نَبِيٍّ فَلَمَّا جَاوَزْتُ بَكٰى فَقِيْلَ مَنْ
اَبْكَاكَ قَالَ يَا رَبِّ هٰذَا الْغُلَامُ الَّذِيْ
بُعِثَ بَعْدِيْ يَدْخُلُ مِنْ اُمَّتِهٖ اَفْضَلُ
مِمَّا يَدْخُلُ مِنْ اُمَّتِيْ فَاَتَيْنَا السَّمَاءَ
السَّابِعَةَ قِيلَ مَنْ هٰذَا قِيلَ جِبْرِيْلُ
قِيلَ مَنْ مَّعَكَ قِيلَ مُحَمَّدٌ قِيلَ وَقَدْ
اُرْسِلَ اِلَيْهِ قَالَ نَعَمْ قِيلَ مَرْحَبًا بِهٖ
وَلَنِعْمَ الْمَجِئُ جَاءَ فَاَتَيْتُ عَلٰى
اِبْرَاهِيْمَ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَقَالَ مَرْحَبًا
بِكَ مِنِ ابْنٍ وَ نَبِيٍّ فَرُفِعَ لِيَ الْبَيْتُ
الْمَعْمُوْرُ فَسَاَلْتُ جِبْرِيْلَ فَقَالَ هٰذَا
الْبَيْتُ الْمَعْمُوْرُ يُصَلِّيْ فِيْهِ كُلَّ يَوْمٍ
سَبْعُوْنَ اَلْفَ مَلَكٍ اِذَا خَرَجُوْا لَمْ
يَعُوْدُوْا اِلَيْهِ اٰخِرَ مَا عَلَيْهِمْ وَ رُفِعَتْ
لِيْ سِدْرَةُ الْمُنْتَهٰى فَاِذَا نَبِقُهَا كَاَنَّهٗ
قِلَالُ هَجَرَ وَ وَرَقُهَا كَاَنَّهٗ اٰذَانُ الْفُيُوْلِ
فِيْ اَصْلِهَا اَرْبَعَةُ اَنْهَارٍ نَهْرَانِ بَاطِنَانِ
وَ نَهْرَانِ ظَاهِرَانِ فَسَاَلْتُ جِبْرِيْلَ فَقَالَ
اَمَّا الْبَاطِنَانِ فَفِي الْجَنَّةِ وَ اَمَّا

ورکه محمد صلعم دے. تپوس اوشو. آیا دے راغوښتلے
شویدے وئیلے او. وئیلے مرحبا، ستا راتلل ځومره ښه
دي. دے اسمان کښے زهٔ حضرت موسٰي علیه السلام
سره یوځائے شوم. او ما هغه ته سلام اوکه. هغه
اوفرمائیل اے وروره او نبي مرحبا کوم وخت چه زهٔ
وړاندے شوم. نو موسٰي علیه السلام په ژړا شو. تپوس
اوشو، ته ولے ژاړے هغهٔ اووے اے خدایه دا هلک چه
ځما نه روستو نبي جوړ کړے شویدے دَدهٔ د امت خلق
ځما د امت د خلقونه زیات جنت کښے داخل دي. بیا
مونږ اووم اسمان ته اورسیدو. نو تپوس اوشو څوک
دے، جواب ورکړے شو محمد صلعم دے اوونیلے شو.
دے راغوښتلے شویدے. اوونیلے شو او. وئیلے مرحبا
ستا راتلل ځومره ښه دي. دے اسمان کښے زهٔ ابراهیمؑ
سره یوځائے شوم، هغه ته مِ سلام اوکه هغهٔ اووے مرحبا
اے ځویه او نبي. بیا ځما مخکښے بیت المعمور ظاهر
کړے شو. ما د حضرت جبرئیلؑ نه تپوس اوکه. هغه
جواب راکه دا بیت المعمور دے دلته هره ورځ اویا زره
فرښتے مونځ کوي څه وخت چه هغوئ مونځ اوکړي او
خي نو بیا د دوئ نمبر د قیامته پورے په سبب دَ زیاتوالي
نهٔ راځي. او ماته سدرة المنتهٰي هم اوښودلے شوه. او
د هغے میوه (بیرے) دومره غټے دي څنګه چه د هجر
مقام منګئ (چاټئ). او دَ هغے پاڼړے داسے دي، لکه دَ
هاتي غوږونه. دَ هغے په جړ کښے څلور نهرونه دي دوه
دننه او دوه بهر ما د حضرت جبرئیلؑ نه تپوس اوکه، هغه
اووے دننه نهرونه خو جنت کښے دي، او د بهر نهرونه
نیل او فرات دي. بیا ما (او ځما امت باندے) پنځوس

الظَّاهِرَانِ فَالنِّيْلُ وَالْفُرَاتُ ثُمَّ فُرِضَتْ عَلَيَّ خَمْسُوْنَ صَلٰوةً فَاَقْبَلْتُ حَتّٰى جِئْتُ مُوْسٰى فَقَالَ مَا صَنَعْتَ قُلْتُ فُرِضَتْ عَلَيَّ خَمْسُوْنَ صَلٰوةً قَالَ اَنَا اَعْلَمُ بِالنَّاسِ مِنْكَ عَالَجْتُ بَنِيْ اِسْرَائِيْلَ اَشَدَّ الْمُعَالَجَةِ وَ اِنَّ اُمَّتَكَ لَا تُطِيْقُ فَارْجِعْ اِلٰى رَبِّكَ فَسَلْهُ فَرَجَعْتُ فَسَاَلْتُهُ فَجَعَلَهَا اَرْبَعِيْنَ ثُمَّ مِثْلَهُ ثُمَّ ثَلٰثِيْنَ ثُمَّ مِثْلَهُ فَجَعَلَ عِشْرِيْنَ ثُمَّ مِثْلَهُ فَجَعَلَ عَشْرًا فَاَتَيْتُ مُوْسٰى فَقَالَ مِثْلَهُ فَجَعَلَهَا خَمْسًا فَاَتَيْتُ مُوْسٰى فَقَالَ مَا صَنَعْتَ قُلْتُ جَعَلَهَا خَمْسًا فَقَالَ مِثْلَهُ قُلْتُ سَلَّمْتُ بِخَيْرٍ فَنُوْدِيَ اِنِّيْ قَدْ اَمْضَيْتُ فَرِيْضَتِيْ وَ خَفَّفْتُ عَنْ عِبَادِيْ وَ اَجْزِي الْحَسَنَةَ عَشْرًا وَ قَالَ هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنِ الْحَسَنِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْبَيْتِ الْمَعْمُوْرِ.

مونخونه (د وخت) فرض شو. زه واپس شوم او حضرت موسیٰ له راغلم، هغه تپوس او که. تا څه اوکړل. ما اووے په ما پنځوس مونځونه فرض شو هغه اووے زه ستاسو په نسبت د خلقو حال زيات پيژنم. ما بني اسرائيل بنه شان سره آزمائيلي دي. ستا امت به دے طاقت اونهٔ لرلے شي. اللّٰه تعالیٰ ته واپس لاړ شه او عرض معروض اوکړه زه واپس لاړم. او ما عرض اوکه نو اللّٰه څلويښت مونځونه کړل. بيا دغسے اوشول، نو لس مونځونه شو. بيا زهٔ موسیٰ له راغلم نو هغهٔ اووے (څه چه ئے مخکښے وئيلے وو) نو اللّٰه تعالیٰ پنځه مونځونه کړل. بيا زه موسیٰ له راغلم نو هغهٔ اووے څه چل اوشو. ما ورته اووے. اللّٰه تعالیٰ پنځه مونځونه کړل. حضرت موسیٰ بيا هغه ته اووے (چه مخکښے ئے وئيلے وو) ما ورته اووے ما خو نيکئ سره قبول کړيدي. ندائے الٰهي راغله، چه ما خپله فريضه جاري او نافذ کړله او ما خپلو بنديانو سره تخفيف اوکه. او زه به دَ يوے نيکئ لس چنده ثواب درکوم (يعني پنځه د پنځوسو نمونځونو برابر دي). همام. قتاده. حسن. ابوهريرهؓ د حضور صلعم نه فِي الْبَيْتِ الْمَعْمُوْرِ الفاظ روايت کوي.

۱. دا د معراج د واقعے بيانِ کيږي. حضور اکرم صلي اللّٰه عليه وسلّم بيت اللّٰه ته نزدے دَ دوؤ نورو حضراتو سره آرام فرمائيلو، د هغوئ يو طرفته حمزه رضي اللّٰه عنه وو او بل طرفته جعفر رضي اللّٰه عنه او په مينځ کښے حضورؐ ملاست وو، ملائکے چه کله هلته راغلے نو هغوئ پخپلو کښے تپوس اوکړو چه په دے درے واړو کښے حضور اکرم صلي اللّٰه عليه وسلّم کوم يو دے، د همدے واقعے طرفته اشاره په دے جمله کښے شوے ده.

۳۳۰: حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ الرَّبِيْعِ حَدَّثَنَا اَبُو الْاَحْوَصِ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ زَيْدِ بْنِ وَهْبٍ قَالَ عَبْدُ

۳۳۰: حسن بن ربيع. ابوالاحوص. اعمش. زيد بن وهب. حضرت عبداللّٰه نه روايت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل او هغه

اللّٰهِ حَدَّثَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ الصَّادِقُ الْمَصْدُوْقُ قَالَ اِنَّ اَحَدَكُمْ يُجْمَعُ خَلْقُهٗ فِيْ بَطْنِ اُمِّهٖ اَرْبَعِيْنَ يَوْمًا ثُمَّ يَكُوْنُ عَلَقَةً مِثْلَ ذٰلِكَ ثُمَّ يَكُوْنُ مُضْغَةً مِثْلَ ذٰلِكَ ثُمَّ يَبْعَثُ اللّٰهُ مَلَكًا فَيُؤْمَرُ بِاَرْبَعِ كَلِمَاتٍ وَ يُقَالُ لَهٗ اُكْتُبْ عَمَلَهٗ وَ رِزْقَهٗ وَ اَجَلَهٗ وَ شَقِيٌّ اَوْ سَعِيْدٌ ثُمَّ يُنْفَخُ فِيْهِ الرُّوْحُ فَاِنَّ الرَّجُلَ مِنْكُمْ لَيَعْمَلُ حَتّٰى مَا يَكُوْنُ بَيْنَهٗ وَ بَيْنَ الْجَنَّةِ اِلَّا ذِرَاعٌ فَيَسْبِقُ عَلَيْهِ كِتَابُهٗ فَيَعْمَلُ بِعَمَلِ اَهْلِ النَّارِ وَ يَعْمَلُ حَتّٰى مَا يَكُوْنُ بَيْنَهٗ وَ بَيْنَ النَّارِ اِلَّا ذِرَاعٌ فَيَسْبِقُ عَلَيْهِ الْكِتَابُ فَيَعْمَلُ بِعَمَلِ اَهْلِ الْجَنَّةِ.

صادق او مصدوق وو چه تاسو کښې د هر یو پیدائش د مور په خیټه کښې پوره کیږي. څلویښت ورځو پورې (نطفه وي) بیا دغه هومره ورځو پورې د غوښې یو ټکړه وي. بیا اللّٰه تعالیٰ یوې فرښتې ته د څلورو خبرو حکم ورکوي. او ورته وئیلې شي چه دَدهٔ عمل، دده رزق او دَدهٔ عمر اولیکه. او دا هم اولیکه چه دې بدبخت (دوزخي) دې یا نیک بخت (جنتي) دې. بیا هغه کښې روح پوکلې شي. بیشکه تاسو کښې یو سړې داسې عمل کوي چه دَ هغهٔ او دَ جنت مینځکښې صرف یو گز فاصله پاتې شي. چه د هغه نوشتهٔ تقدیر غالب راشي او هغه د دوزخیانو عمل شروع کړي او یو سړې داسې عمل کوي چه دَ هغه او دوزخ مینځکښې صرف یو گز فاصله پاتې شي چه دې کښې تقدیر الٰهي پرې غالب شي او هغه دَ اهل جنت کار شروع کړي.

۱۴۴۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ اَخْبَرَنَا مُخَلَّدٌ اَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ قَالَ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ تَابَعَهٗ اَبُوْ عَاصِمٍ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ مُوْسَى ابْنُ عُقْبَةَ عَنْ نَافِعٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا اَحَبَّ اللّٰهُ الْعَبْدَ نَادٰى جِبْرِيْلَ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ فُلَانًا فَاَحْبِبْهُ فَيُحِبُّهٗ جِبْرِيْلُ فَيُنَادِيْ

۱۴۴۱: محمد بن سلام. مخلد. ابن جریج. موسیٰ بن عقبه. نافع. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل او ددې متابع حدیث ابو عاصم. ابن جریج. موسیٰ بن عقبه. نافع. حضرت ابوهریرهؓ بیان کړیدې. چه نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل. هر کله چه اللّٰه تعالیٰ خپل بنده سره محبت کوي، نو جبرئیلؑ ته ندا (آواز) ورکړي چه اللّٰه تعالیٰ فلاني سره محبت کوي نو تهٔ هم هغه سره محبت کوه، نو جبرئیلؑ هغه سره محبت شروع کړي. بیا حضرت جبرئیلؑ ټول اهل اسلام ته ندا ورکړي چه اللّٰه تعالیٰ فلانې دوست

جِبْرِيْلُ فِيْ اَهْلِ السَّمَاءِ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ فُلَانًا فَاَحِبُّوْهُ فَيُحِبُّهُ اَهْلُ السَّمَاءِ ثُمَّ يُوْضَعُ لَهُ الْقَبُوْلُ فِي الْاَرْضِ.

ساتي، نو تاسوئے هم دوست ساتئ نو اسمان واله هم هغه سره محبت شروع کړي. بيا دنيا کښے هم د هغه مقبوليت پيدا کړے شي.

۴۴۲: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ اَخْبَرَنَا اللَّيْثُ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ جَعْفَرٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عُرْوَةَ ابْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهَا سَمِعَتْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنَّ الْمَلَائِكَةَ تَنْزِلُ فِي الْعَنَانِ وَهُوَ السَّحَابُ فَتَذْكُرُ الْاَمْرَ قُضِيَ فِي السَّمَاءِ فَتَسْتَرِقُ الشَّيَاطِيْنُ السَّمْعَ فَتَسْتَمِعُهُ فَتُوْحِيْهِ اِلَى الْكُهَّانِ فَيَكْذِبُوْنَ مَعَهَا مِائَةَ كَذِبَةٍ مِنْ عِنْدِ اَنْفُسِهِمْ.

۴۴۲: محمد. ابن ابي مريم. ليث. ابو جعفر. محمد بن عبدالرحمٰن. عروه بن زبير. بي بي عائشے نه روايت کوي. بي بي عائشے د رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه آوريدلي دي چه فرښتے وريځ کښے راځي او د هغے کار ذکر کوي. چه د هغے فيصله په آسمان کښے شوے وي، نو هغه شيطانان په پته آوري. او کاهنانوله راشي او هغوئ ته ئے بيان کوي. نو کاهن د خپل طرف نه هغے کښے سل دروغ نور يوځائے کړي.

۴۴۳: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ وَالْاَغَرِّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا كَانَ يَوْمُ الْجُمُعَةِ كَانَ عَلٰى كُلِّ بَابٍ مِنْ اَبْوَابِ الْمَسْجِدِ الْمَلٰئِكَةُ يَكْتُبُوْنَ الْاَوَّلَ فَالْاَوَّلَ فَاِذَا جَلَسَ الْاِمَامُ طَوَوُا الصُّحُفَ وَجَاءُوْا يَسْتَمِعُوْنَ الذِّكْرَ.

۴۴۳: احمد بن يونس. ابراهيم بن سعد. ابن شهاب. ابو سلمة او اغر، حضرت ابوهريرة نه روايت کوي رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل کله چه د جمعے ورځ شي، نو فرښتے په هره دروازه مقرر شي. د ټولونه ورمبنے بيا هغه پسے (بيا هغه پسے دغه شان) د هر راتلونکي راتلل جماعت ته ليکي. کوم وخت چه امام (خطبے د پاره) په منبر کيني نو هغوئ خپلے صحيفے اونغاړي، او خطبے آوريدو د پاره راشي.

۴۴۴: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ

۴۴۴: علي بن عبدالله. سفيان. زهري. سعيد بن مسيب نه روايت کوي. حضرت عمر په يو جماعت تير

عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ قَالَ مَرَّ عُمَرُ فِي الْمَسْجِدِ وَ حَسَّانُ يُنْشِدُ فَقَالَ كُنْتُ اُنْشِدُ فِيْهِ وَ فِيْهِ مَنْ هُوَ خَيْرٌ مِّنْكَ ثُمَّ الْتَفَتَ اِلٰى اَبِيْ هُرَيْرَةَ فَقَالَ اَنْشُدُكَ بِاللّٰهِ اَسَمِعْتَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اَجِبْ عَنِّيْ اَللّٰهُمَّ اَيِّدْهُ بِرُوْحِ الْقُدُسِ قَالَ نَعَمْ.

شو. نو حضرت حسان شعر وئيلې (حضرت عمرٌ منع كه) نو هغهٔ اوويې. ما جماعت كښې د داسې سړي مخكښې چه ستا نه بهتر وو، (يعني رسول الله صلعم) شعر وئيلو. (او حضورٌ منع كړې نه يم) بيا حسان حضرت ابوهريرهٔ طرف ته متوجه شو. اوويې فرمائيل زهٔ تاله قسم دركوم. آيا تا د حضورٌ نه اوريدلي نه دي. تهٔ خما د طرف نه جواب وركه، او اې الله ددهٔ تائيد روح القدس سره اوكړې نو هغه اوويې. او.

۴۴۵: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ عَنِ الْبَرَآءِ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِحَسَّانَ اُهْجُهُمْ اَوْ هَاجِهِمْ وَ جِبْرِيْلُ مَعَكَ.

۴۴۵: حفص بن عمر. شعبه. عدي بن ثابت. حضرت براء بن عازبٌ نه روايت كوي چه رسالتمآب صلعم حضرت حسان ته اوفرمائيل. چه تهٔ دَ مشركانو هجوه كوه. او جبرئيلٌ تاسره دې.

ف: هجو: بدوالې. مذمت بدګوئي. بده وينا په شعرونو يا نظم كښې چا ته بد وئيل.

۴۴۶: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ اَخْبَرَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيْرٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ قَالَ سَمِعْتُ حُمَيْدَ بْنَ هِلَالٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَاَنِّيْ اَنْظُرُ اِلٰى غُبَارٍ سَاطِعٍ فِيْ سِكَّةِ بَنِيْ غَنْمٍ وَ زَادَ مُوْسٰى مَوْكِبُ جِبْرِيْلَ.

۴۴۶: اسحٰق. وهب بن جرير دَ هغه پلار، حميد بن هلال. حضرت انس بن مالكٌ نه روايت كوي. ګويا هغه غبار خما د نظر د وړاندې دې چه دَ بني غنم په كوڅه كښې اوچتيدلو موسٰي دومره زيات روايت كړې دې چه د جبرئيلٌ د لښكر په وجه.

۴۴۷: حَدَّثَنَا فَرْوَةُ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ الْحَارِثَ بْنَ هِشَامٍ سَاَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَيْفَ يَأْتِيْكَ الْوَحْيُ قَالَ كُلُّ ذَاكَ يَأْتِيْ الْمَلَكُ اَحْيَانًا فِيْ مِثْلِ

۴۴۷: فروه. علي بن مسهر. هشام بن عروه د هغه پلار بي بي عائشې نه روايت كوي، هغې اوويې حارث بن هشام د رسول الله صلعم نه تپوس اوكه، په تاسو وحي څنګه راځي، حضورٌ ورته اوفرمائيل، هر وحي كښې فرښته راځي كله د جرس شان آواز كښې. چه هغه ختم شي

صَلْصَلَةِ الْجَرَسِ فَيَفْصِمُ عَنِّيْ وَقَدْ وَعَيْتُ مَا قَالَ وَهُوَ اَشَدُّهُ عَلَيَّ وَ يَتَمَثَّلُ لِيَ الْمَلَكُ اَحْيَانًا رَجُلًا فَيُكَلِّمُنِيْ فَاَعِيْ مَا يَقُوْلُ.

نو فرښتې چه څه وئیلي وي زه هغه یاد کړم او دا وحي په ما ډیره سخته وي. او کله فرښته را انسان په شکل کښې راځي. ما سره خبرې کوي او زه ئې یادوم.

۳۴۴۸: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ اَبِيْ كَثِيْرٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنْ اَنْفَقَ زَوْجَيْنِ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ دَعَتْهُ خَزَنَةُ الْجَنَّةِ اَيْ فُلَانُ هَلُمَّ فَقَالَ اَبُوْبَكْرٍ ذَاكَ الَّذِيْ لَا تَوٰى عَلَيْهِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرْجُوْ اَنْ تَكُوْنَ مِنْهُمْ.

۳۴۴۸: آدم. شیبان. یحیٰي. بن ابي کثیر. ابو سلمه. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي. ما د رسول الله صلي الله علیه وسلّم نه واوریدل څوک چه د یو شان څیزونو جوړه جوړه د الله په لار کښې خرچ کړي نو هغه ډ جنت خازن (خزانچي) د هر طرف نه بلي چه اې فلانیه دلته راځه حضرت ابوبکرؓ عرض اوکه یا داسې سړي خو بیا هیڅ خوف او اندیشه نشته. رسول الله صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل امید دې چه ته به د هغوئ نه ئې.

۳۴۴۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هِشَامٌ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهَا يَا عَائِشَةُ هٰذَا جِبْرِيْلُ يَقْرَأُ عَلَيْكِ السَّلَامَ فَقَالَتْ وَ عَلَيْهِ السَّلَامُ وَ رَحْمَةُ اللّٰهِ وَ بَرَكَاتُهُ تَرٰى مَا لَا اَرٰى تُرِيْدُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۳۴۴۹: عبدالله بن محمد. هشام. معمر. زهري. ابو سلمه. بي بي عائشېؓ نه روایت کوي. رسول الله صلي الله علیه وسلّم هغې ته اووې، اې عائشېؓ، دا جبرئیلؑ دې په تا سلام وائي. هغې جواب ورکړهٔ وعلیه السلام و رحمة الله و برکاته، او رسول الله صلعم ته ئې اووې، تاسو هغه وینئ چه زه ئې نشم لیدلې.

۳۴۵۰: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ ذَرٍّ ح قَالَ حَدَّثَنِيْ يَحْيَى بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا وَكِيْعٌ عَنْ عُمَرَ بْنِ ذَرٍّ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ

۳۴۵۰: ابو نعیم. عمرو بن ذرح (دویم سند) یحیٰي بن جعفر. وکیع. عمر بن ذر. د هغهٔ پلار سعید بن جبیر. ابن عباسؓ نه روایت کوي. رسول الله صلعم حضرت جبرئیلؑ ته اوفرمائیل خومره چه ته اوس ماته راځې، ددې نه زیات

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِجِبْرِيْلَ اَلَا تَزُوْرُنَا اَكْثَرَ مِمَّا تَزُوْرُنَا قَالَ فَنَزَلَتْ وَمَا نَتَنَزَّلُ اِلَّا بِاَمْرِ رَبِّكَ لَهٗ مَا بَيْنَ اَيْدِيْنَا وَمَا خَلْفَنَا الاية.

ولے نهٔ راځے. نو دا آیت کریمه نازل شو: او مونږ ستا د پروردګار حکم نه بغیر نه راکوزیږو. د هغه دي څه چه زمونږ مخے ته دي' او ورستو دي.

۴۵۱: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ سُلَيْمَانُ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُوْدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَقْرَاَنِيْ جِبْرِيْلُ عَلٰى حَرْفٍ فَلَمْ اَزَلْ اَسْتَزِيْدُهٗ حَتّٰى انْتَهٰى اِلٰى سَبْعَةِ اَحْرُفٍ.

۴۵۱: اسماعیل. سلیمان. یونس. ابن شهاب. عبیدالله بن عبدالله بن عتبه بن مسعود حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي رسول الله صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل ماته جبرئیلؑ یو قرأت کښے قران لوستے وو. نو ما به ذَ هغه نه برابر زیات طلب کولو. حتٰي چه اُوهٔ قرأتو ته اورسیدلو[۱].

۱. د قرآن مجید اوو قرأتونو طرفته اشاره ده د کوم تفصیلي ثبوت چه په صحیح روایتونو او حدیثونو کښے دے' څنګه چه په هره ژبه کښے د مختلفو علاقو ژبه کښے اختلاف وي (لکه روتېئ' ډوډئ' مړئ وغیره) اُردو د خپلے محدود دائرے باوجود د خپلو محاورو او ژبے لوئے اختلاف لري' د لکهنؤ او دهلي په ټکسالي خبرو کښے د زمکے او اَسمان فرق دے (دغه حال د صوبه سرحد ذَ غرنیزے او میداني علاقے د پښتو ژبے هم دے) په عربو کښے خو دا حال وو چه هره قبیله په یو ځانله دنیا کښے اوسیده او ذَ محاورے بلکه د زوَر زیر فرق هم په انتهائي درجے کښے ملحوظ لرلے کیږي. مقصد دا دے چه قرآن مجید د خپلے معنے او مقصد په اعتبار سره اګرچه یو دے لیکن په قرأت کښے د نزول په اعتبار سره پخپله خدائے تعالٰي ددهٔ اوه قرأتونه د عربو فصیح او بلیغ قبیلو په اعتبار سره جائز کړخولي دي.

۴۵۲: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَجْوَدَ النَّاسِ وَ كَانَ اَجْوَدَ مَا يَكُوْنُ فِيْ رَمَضَانَ حِيْنَ يَلْقَاهُ

۴۵۲: محمد بن مقاتل. عبدالله. یونس. زهري. عبیدالله. ابن عباسؓ نه روایت کوي. رسول الله صلي الله علیه وسلّم د ټولونه زیات سخي وو. او ذَ همیشه نه زیات به حضورؐ رمضان کښے چه جبرئیلؑ به حضورؐ سره یوځائے کیدلو. سخي کیدلو. جبرئیلؑ به رمضان کښے حضورؐ

جِبْرِيْلُ وَ كَانَ جِبْرِيْلُ يَلْقَاهُ كُلَّ لَيْلَةٍ مِّنْ رَمَضَانَ فَيُدَارِسُهُ الْقُرْاٰنَ فَلَرَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ يَلْقَاهُ جِبْرِيْلُ اَجْوَدُ بِالْخَيْرِ مِنَ الرِّيْحِ الْمُرْسَلَةِ وَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ بِهٰذَا الْاَسْنَادِ نَحْوَهٗ وَ رَوٰى اَبُوْ هُرَيْرَةَ وَ فَاطِمَةُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ جِبْرِيْلَ كَانَ يُعَارِضُهُ الْقُرْاٰنَ.

سره هره شپه يوځائے كيدلو، نو حضور به فائده رسولو كښے د تيزے هوا نه هم زيات سخي كيدلو، عبدالله او معمر هم دے سند سره دغسے روايت كړے دے. او حضرت ابو هريرهؓ او بي بي فاطمےؓ د رسول الله صلعم نه ذكر د سُهُ الْقُرْآن، په ځائے دا الفاظ روايت كړيدے چه "اَنَّ جِبْرِيْلَ كَانَ يُعَارِضُه الْقُرْآن".

۴۵۳: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا لَيْثٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَنَّ عُمَرَ بْنَ عَبْدِ الْعَزِيْزِ اَخَّرَ الْعَصْرَ شَيْئًا فَقَالَ لَهٗ عُرْوَةُ اَمَا اِنَّ جِبْرِيْلَ قَدْ نَزَلَ فَصَلّٰى اَمَامَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ عُمَرُ اِعْلَمْ مَا تَقُوْلُ يَا عُرْوَةُ قَالَ سَمِعْتُ بَشِيْرَ ابْنَ اَبِيْ مَسْعُوْدٍ يَقُوْلُ سَمِعْتُ اَبَا مَسْعُوْدٍ يَقُوْلُ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ نَزَلَ جِبْرِيْلُ فَاَمَّنِيْ فَصَلَّيْتُ مَعَهٗ ثُمَّ صَلَّيْتُ مَعَهٗ ثُمَّ صَلَّيْتُ مَعَهٗ ثُمَّ صَلَّيْتُ مَعَهٗ يَحْسُبُ بِاَصَابِعِهٖ خَمْسَ صَلَوَاتٍ.

۴۵۳: قتیبه. لیث. ابن شهاب. نه روایت کوي. يو ورځ عمر بن عبدالعزيز د نمازيګر مونځ كښے څه تاخير اوكه. هغۀ ته عروه اووے. جبرئيلؑ راغے او د حضور صلي الله عليه وسلم امام جوړ شو، مونځ ئے وركه. عمر بن عبدالعزيز اووے عروه سوچ اوكه. دا څه وائے، (آيا دا ممكنه ده چه جبرئيلؑ د حضورؐ امام جوړ شي. حالانكه د حضورؐ نه افضل نه دے). عروه اووے. ما د بشير بن ابي مسعود نه هغه د ابو مسعود نه. او هغه د رسول الله صلعم نه واوريدل. حضورؐ فرمائيل. جبرئيلؑ راغے او ځما امام جوړ شو. ما هغه سره مونځ اوكه. بيا م هغه سره مونځ اوكه. بيا مِ هغه سره مونځ اوكه. بيا م هغه سره مونځ اوكه. بيا مِ هغه سره مونځ اوكه، حضورؐ په خپلو ګوتو مباركو د پنځو مونځونو شمير كولو.

۴۵۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ عَدِيٍّ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ حَبِيْبِ بْنِ اَبِيْ ثَابِتٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ وَهْبٍ عَنْ اَبِيْ ذَرٍّؓ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ

۴۵۴: محمد بن بشار. ابن ابي عدي. شعبه. حبيب بن ابي ثابت. زيد بن وهب. حضرت ابو ذرؓ نه روايت كوي. رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل. ماته جبرئيلؑ اووے، ستاسو امت كښے كوم

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِيُ جِبْرِيْلُ مَنْ مَّاتَ مِنْ اُمَّتِكَ لَا يُشْرِكُ بِاللّٰهِ شَيْئًا دَخَلَ الْجَنَّةَ اَوْلَمْ يَدْخُلِ النَّارَ قَالَ وَ اِنْ زَنٰى وَ اِنْ سَرَقَ وَ اِنْ زَنٰى وَ اِنْ سَرَقَ.

سړے چه دے حالت کښے مړ شي چه هغه اللّٰه سره شریک نه وي جوړ کړے نو هغه به جنت کښے داخلیږي. یا وے فرمائیل' دوزخ ته به نۀ ځي. ابوذرؓ عرض اوکه. خواه هغه زنا او غلا کړیوي. نو حضورؐ اوفرمائیل' خواه (هغه زنا او غلا کړے وي).

۴۵۵: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْمَلَائِكَةُ يَتَعَاقَبُوْنَ مَلَائِكَةٌ بِاللَّيْلِ وَ مَلٰئِكَةٌ بِالنَّهَارِ وَ يَجْتَمِعُوْنَ فِيْ صَلٰوةِ الْفَجْرِ وَالْعَصْرِ ثُمَّ يَعْرُجُ اِلَيْهِ الَّذِيْنَ بَاتُوْا فِيْكُمْ فَيَسْاَلُهُمْ وَهُوَ اَعْلَمُ فَيَقُوْلُ كَيْفَ تَرَكْتُمْ فَيَقُوْلُوْنَ تَرَكْنَاهُمْ يُصَلُّوْنَ وَ اَتَيْنَاهُمْ يُصَلُّوْنَ.

۴۵۵: ابوالیمان. شعیب. ابوالزناد. اعرج. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل فرښتے یو بل پسے راځي ځه فرښتے د شپے او ځه د ورځے' او دا ټولے جمع کیږي د سحر او مازیگر مونځ کښے. بیا هغے فرښتے چه دَ شپے تاسو سره وي. آسمان ته لاړے شي نو اللّٰه تعالیٰ د هغوئ نه تپوس کوي. حالانکه هغه د هغوئ نه زیات پوهیږي. چه تاسو څما بندیان کوم حالت کښے پریښودل. هغوئ وائي چه مونږ هغوئ په مونځ کولو پریښے دي او کوم وخت چه هغوئ ته رسیدلے وو' نو هغه وخت هم هغوئ مونځ کولو.

بَاب ۱۹۱: اِذَا قَالَ اَحَدُكُمْ اٰمِيْنَ وَالْمَلٰئِكَةُ فِي السَّمَاءِ فَوَافَقَتْ اِحْدٰهُمَا الْاُخْرٰى غُفِرَ لَهٗ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهٖ.

باب ۱۹۱: کله چه تاسو کښے څوک آمین وائي او آسمان کښے فرښتے هم آمین وائي کله چه ددے دواړو آمین یوځائے شي نو دَ هغے ویونکي سړي ټول مخکښي گناهونه معاف شي.

۴۵۶: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا مُخَلَّدٌ اَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ عَنْ اِسْمَاعِيْلَ بْنِ اُمَيَّةَ اَنَّ نَافِعًا حَدَّثَهٗ اَنَّ الْقَاسِمَ بْنَ مُحَمَّدٍ حَدَّثَهٗ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ حَشَوْتُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وِسَادَةً فِيْهَا

۴۵۶: محمد. مخلد. ابن جریج. اسماعیل بن امیه. نافع. قاسم بن محمد. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي هغے اوو ے. ما د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم د پاره یو وړوکے تکیه ډکه کړه هغے کښے تصویرونه وو. حضور صلعم چه تشریف راوړلو نو د دواړو دروازو مینځکښے اودریدلو او دَ حضورؐ دَ مخ رنگ بدل شولو.

تَمَاثِيلُ كَأَنَّهَا نُمْرِقَةٌ فَجَاءَ فَقَامَ بَيْنَ الْبَابَيْنِ وَ جَعَلَ يَتَغَيَّرُ وَجْهُهُ قُلْتُ مَا لَنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ مَا بَالُ هٰذِهِ الْوِسَادَةِ قَالَتْ وِسَادَةٌ جَعَلْتُهَا لَكَ لِتَضْطَجِعَ عَلَيْهَا قَالَ اَمَا عَلِمْتِ اَنَّ الْمَلٰئِكَةَ لَا تَدْخُلُ بَيْتًا فِيْهِ صُوْرَةٌ وَ اَنَّ مَنْ صَنَعَ الصُّوْرَةَ يُعَذَّبُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يَقُوْلُ اَحْيُوْا مَا خَلَقْتُمْ.

ما عرض اوکه' یا رسول اللّٰه صلعم مونږ نه څه خطا شویده. حضورؐ اوفرمائیل. دا تکیه څنګه ده. ما اووے دا تکیه ما تاسوؐ د پاره جوړه کړے ده چه تاسو پرے سر کیږدئ' څملئ. نو وے فرمائیل آیا تاته نه ده معلومه چه د رحمت فرښتے داسے کور کښے نه داخلیږي چه هغے کښے تصویر وي. او څوک چه تصویرونه جوړوي نو د قیامت په ورځ به هغه ته سخت عذاب وي. اللّٰه تعالٰي به حکم ورکړي چه کوم تصویر تاسو جوړ کړیدے دا ژوندے کړئ.

۴۵۷: حَدَّثَنَا ابْنُ مُقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّهُ سَمِعَ ابْنَ عَبَّاسٍ يَقُوْلُ سَمِعْتُ اَبَا طَلْحَةَ يَقُوْلُ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَا تَدْخُلُ الْمَلَائِكَةُ بَيْتًا فِيْهِ كَلْبٌ وَلَا صُوْرَةُ تَمَاثِيْلَ.

۴۵۷: ابن مقاتل. عبداللّٰه. معمر. زهري. عبیداللّٰه بن عبداللّٰه حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي' هغه د ابو طلحهؓ نه او هغه د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم نه واوریدل. چه فرښتے په هغه کور کښے نه داخلیږي' چه هغے کښے سپے او دَ جاندار تصویر وي.

۴۵۸: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ اَخْبَرَنَا عَمْرٌو اَنَّ بُكَيْرَ ابْنَ الْاَشَجِّ حَدَّثَهُ اَنَّ بُسْرَ بْنَ سَعِيْدٍ حَدَّثَهُ اَنَّ زَيْدَ بْنَ خَالِدِ الْجُهَنِيِّ حَدَّثَهُ وَ مَعَ بُسْرِ بْنِ سَعِيْدٍ عُبَيْدِ اللّٰهِ الْخَوْلَانِيُّ الَّذِيْ كَانَ فِيْ حَجْرِ مَيْمُوْنَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدَّثَهُمَا زَيْدُ بْنُ خَالِدٍ اَنَّ اَبَا طَلْحَةَ حَدَّثَهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۴۵۸: احمد. ابن وهب. عمرو. بکیر بن اشج. بسر بن سعید. زید بن خالد جهنيؓ نه روایت کوي. بسر سره (هغه وخت) هغه هم وو چه دَ حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم تبر دَ بي بي میمونےؓ په تربیت کښے وو' زید بن خالد هغے دواړوته بیان اوکه. ابو طلحهؓ وائي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل. فرښتے هغے کور کښے نه داخلیږي چه هغے کښے تصویر وي بسر وائي. بیا زید بن خالد ناروغه شو مونږ دَ هغهٔ تپوس

وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَدْخُلُ الْمَلَائِكَةُ بَيْتًا فِيْهِ صُوْرَةٌ قَالَ بُسْرٌ فَمَرِضَ زَيْدُ بْنُ خَالِدٍ فَعُدْنَاهُ فَإِذَا نَحْنُ فِيْ بَيْتِهِ بِسِتْرٍ فِيْهِ تَصَاوِيْرُ فَقُلْتُ لِعُبَيْدِ اللّٰهِ الْخَوْلَانِيِّ أَلَمْ يُحَدِّثْنَا فِي التَّصَاوِيْرِ فَقَالَ إِنَّهُ قَالَ إِلَّا رَقْمٌ فِيْ ثَوْبٍ أَلَا سَمِعْتَهُ قُلْتُ لَا قَالَ بَلٰى قَدْ ذَكَرَهُ.

له ورغلو. مونږ د هغهٔ کور کښې تصویرونو واله یوه پرده اولیده. ما عبداللّٰه خولاني ته اووے آیا هغهٔ مونږ ته د تصویرونو باره کښې حدیث نه وو بیان کړے. عبیداللّٰه جواب راکه هغه دا هم وئیلے وو چه د کپړے نقوش (چه د بے زبانه څیز وي) ددے نه مستثني دي آیا تا دانه وو اوریدلي هغه اووے او دائے هم وئیلے وو.

۴۵۹: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ وَهْبٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَمْرٌو عَنْ سَالِمٍ عَنْ أَبِيْهِ قَالَ وَعَدَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جِبْرِيْلُ فَقَالَ إِنَّا لَا نَدْخُلُ بَيْتًا فِيْهِ صُوْرَةٌ وَلَا كَلْبٌ.

۴۵۹: یحیي بن سلیمان. ابن وهب. عمرو. سالم د خپل پلار نه روایت حضرت جبرئیلؑ حضورؐ سره د راتللو وعده اوکړه خو په وعده رانغے، حضورؐ د هغے د وجے تپوس اوکه. نو هغهٔ اووے مونږ داسے کور ته نه ځو چه هغے کښې تصویر یا سپے وي.

۴۶۰: حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ سُمَيٍّ عَنْ أَبِيْ صَالِحٍ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا قَالَ الْإِمَامُ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ فَقُوْلُوْا اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ فَإِنَّهُ مَنْ وَّافَقَ قَوْلُهُ قَوْلَ الْمَلَائِكَةِ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ.

۴۶۰: اسماعیل. مالک. سمّي. ابو صالح. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل چه امام "سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ" اووائي. نو تاسو "اللّٰهم ربنا لک الحمد" وایئ. ځکه چه د چا دا قول د فرښتو قول سره یوځائے شي، نو د هغه ټول ورستني ګناهونه معاف شي.

۴۶۱: حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُلَيْحٍ حَدَّثَنَا أَبِيْ عَنْ هِلَالِ بْنِ عَلِيٍّ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِيْ عَمْرَةَ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۴۶۱: ابراهیم بن منذر. محمد بن فلیح. د هغهٔ پلار، هلال بن علي. عبدالرحمٰن بن ابي عمره. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل. تاسو کښې هر سړے ګویا مانځه کښې دے څو پورے

وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ اَحَدَكُمْ فِيْ صَلٰوةٍ مَا دَامَتِ الصَّلٰوةُ تَحْبِسُهُ وَالْمَلَائِكَةُ تَقُوْلُ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلَهُ وَارْحَمْهُ مَالَمْ يَقُمْ مِنْ صَلٰوتِهِ اَوْ يُحْدِثْ.

چه هغه مانځه کښې ايسار وي او فرښتې وائي اې اللّٰه دے اوبښې په دۀ رحم اوکړے، څو پورې چه هغه د خپل دَ مانځه د ځائے نه پانسي، يا دَ هغۀ اودس مات نشي.

۴۶۲: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ عَطَاءٍ عَنْ صَفْوَانَ بْنِ يَعْلٰى عَنْ اَبِيْهِ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ عَلَى الْمِنْبَرِ وَ نَادَوْا يَا مَالِكُ قَالَ سُفْيَانُ فِيْ قِرَاْةِ عَبْدِ اللّٰهِ وَ نَادَوْا يَا مَالِ.

۴۶۲: علي بن عبداللّٰه. سفيان. عمرو. عطاء. صفوان بن يعلٰي. د خپل پلار يعلٰي نه روايت کوي. ما د رسول اللّٰه صلي الله عليه وسلّم نه په منبر وريدلي دي، او هغوئ به چغې وهي چه اې مالک (د جهنم داروغه) سفيان وائي، دَ عبداللّٰه بن مسعود په قرأت کښې دي وَ نَادَوْا يَا مَالِ.

۴۶۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُرْوَةُ اَنَّ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدَّثَتْهُ اَنَّهَا قَالَتْ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلْ اُتِيَ عَلَيْكَ يَوْمٌ كَانَ اَشَدَّ مِنْ يَوْمِ اُحُدٍ قَالَ لَقَدْ لَقِيْتُ مِنْ قَوْمِكِ مَا لَقِيْتُ وَ كَانَ اَشَدُّ مَا لَقِيْتُ مِنْهُمْ يَوْمَ الْعَقَبَةِ اِذْ عَرَضْتُ نَفْسِيْ عَلَى ابْنِ عَبْدِ يَا لِيْلِ بْنِ عَبْدِ كُلَالٍ فَلَمْ يُجِبْنِيْ اِلٰى مَا اَرَدْتُ فَانْطَلَقْتُ وَ اَنَا مَهْمُوْمٌ عَلٰى وَجْهِيْ فَلَمْ اَسْتَفِقْ اِلَّا وَ اَنَا بِقَرْنِ الثَّعَالِبِ فَرَفَعْتُ رَاْسِيْ فَاِذَا اَنَا بِسَحَابَةٍ قَدْ اَظَلَّتْنِيْ فَنَظَرْتُ فَاِذَا

۴۶۳: عبداللّٰه بن يوسف. ابن وهب. يونس. ابن شهاب. عروه دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم تېر بي بي عائشه رضي الله عنها نه روايت کوي. هغې رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ته عرض اوکه، آيا د اُحد دَ ورځې نه هم سخته ورځ په تاسوّ چرته راغلې ده، حضور صلعم اوفرمائيل. ما ستا د قوم کوم کوم تکليفونه چه اوچت کړيدي هغه مِ اوچت کړيدي، هغه دَ عقبه په ورځ وو. چه زۀ ابن عبد يا ليل بن عبد کلال ته ورغلم، نو هغۀ ځما خواهش پوره نه که. بيا زه خفګان سره نيغ لاړم. اوس لا زۀ هوش کښې نه ووم راغلې چه قرن الثعالب ته اورسيدم ما خپل سر اوچت که، نو د وريځې يوه ټکړه مِ د سر د پاسه سورے کونکې اوليده. ما چه اوليدل، نو هغې کښې جبرائيل وو هغۀ ما ته آواز راکه اووئيلې چه اللّٰه تعالٰي تاسره ستاد قوم خبرې اترې او دَ هغوئ جواب واوريدلو. اوس الله

فِيْهَا جِبْرِيْلُ فَنَادَانِيْ فَقَالَ اِنَّ اللّٰهَ قَدْ سَمِعَ قَوْلَ قَوْمِكَ لَكَ وَمَا رَدُّوْا عَلَيْكَ وَقَدْ بَعَثَ اِلَيْكَ مَلَكَ الْجِبَالِ لِتَاْمُرَهٗ بِمَا شِئْتَ فِيْهِمْ فَنَادَانِيْ مَلَكُ الْجِبَالِ فَسَلَّمَ عَلَيَّ ثُمَّ قَالَ يَا مُحَمَّدُ فَقَالَ ذٰلِكَ فِيْمَا شِئْتَ اَنْ اُطْبِقَ عَلَيْهِمُ الْاَخْشَبَيْنِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَلْ اَرْجُوْ اَنْ يُّخْرِجَ اللّٰهُ مِنْ اَصْلَابِهِمْ مَنْ يَّعْبُدُ اللّٰهَ وَحْدَهٗ لَا يُشْرِكُ بِهٖ شَيْئًا.

تعالٰي دَ غرونو فرښته تاسو ته رالیږلے ده چه ستاسو د داسے کافرو باره کښے څۀ خوښه وي دَ هغے حکم اوکړئ. بیا د غرونو فرښتے ما ته آواز راکه او سلام ئے اوکه، بیانئے اووے اے محمد (صلعم) دا هر څۀ اوس ستا په مرضئ منحصر دي. کۀ تاسو غواړئ نو زۀ اخشبین نومے دوه غرونه په دے کافرو د پاسه اړدم[۲]، رسول اللّٰه صلعم جواب ورکه (نه) بلکه ځما امید دے چه اللّٰه تعالٰي به ددے کافرو د نسل نه یو داسے قوم پیدا کړي چه صرف د هغه عبادت به کوي او هغه سره به بل شریک نه کوي.

۱. دا دَ طائف هغه واقعه ده کله چه دَ هغه ځائے د سردارانو په اشارے سره حضورؐ باندے کاڼړي وولے شوي وو. کله چه ابو طالب صیب وفات شو نو حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم په دے اُمید باندے طائف ته تلے وو چه ممکنه ده د هغے ځائے خلق اسلام طرفته متوجه شي او حضورؐ سره همدردي اوکړي، حضورؐ چه هلته اورسیدو نو د هغه ځائے سردارانو له ئے د اسلام دعوت ورکړو او د خپل قوم دَ کَج روئ، اسلام بیزارئ او حضورؐ سره د غلط طرز عمل داستان ئے هغوئ ته واورولو، لیکن هغوئ ټولو دَ هغوئ دعوت په ډیرے بدتمیزئ سره رد کړو. او چه کله حضورؐ راتللو نو دَ نور اَزار رسولو د پاره ظالمانو په هغوئ باندے کاڼړي اوورول، همدغه واقعے طرفته اشاره ده.

۲. د مکے دوه مشهور غرونه مراد دي، جَبل ابو قُبیس او قعیقعان. محدّثینو ددے نه علاوه د نورو غرونو نومونه هم اخستي دي.

۳۶۴: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اِسْحٰقَ الشَّيْبَانِيُّ قَالَ سَاَلْتُ زِرَّ بْنَ حُبَيْشٍ عَنْ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ اَوْ اَدْنٰى فَاَوْحٰى اِلٰى عَبْدِهٖ مَا اَوْحٰى قَالَ حَدَّثَنَا ابْنُ مَسْعُوْدٍ اَنَّهٗ رَاٰى جِبْرِيْلَ لَهٗ سِتُّمِائَةِ جَنَاحٍ.

۳۶۴: قتیبه. ابو عوانه. ابو اسحٰق. شیباني اووے ما زر بن جیش نه دا آیت کریمه: نو د دوو لیندو مقدار یا ددے نه هم کمه فاصله وه. بیا اللّٰه خپل بنده ته وحي اولیږلے. څه چه ئے اولیږلے باره کښے دریافت اوکه نو هغه اووے مونږ ته ابن مسعود بیان اوکه چه حضور صلعم جبرائیلؑ اولید د هغه شپږ سوه وزرے وے.

۳۶۵: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ

۳۶۵: حفص بن عمر. شعبه. اعمش. ابراهیم. علقمه. حضرت عبداللّٰه نه روایت کوي چه آیت کریمه

اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِؓ لَقَدْ رَاٰى مِنْ اٰيَاتِ رَبِّهِ الْكُبْرٰى قَالَ رَاٰى رَفْرَفًا اَخْضَرَ سَدَّ اُفُقَ السَّمَاءِ.

بے شک هغه د خپل رب لوئے لوئے نښے اولیدلے (مطلب دا چه) حضورؐ یوه شنه بچهونا اولیده چه هغے د اسمان غاړے پټے کړے وے.

۴۶۶: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الْاَنْصَارِيُّ عَنِ ابْنِ عَوْنٍ اَنْبَاَنَا الْقَاسِمُ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ مَنْ زَعَمَ اَنَّ مُحَمَّدًا رَاٰى رَبَّهُ فَقَدْ اَعْظَمَ وَلٰكِنْ قَدْ رَاٰى جِبْرِيْلَ فِيْ صُوْرَتِهٖ وَ خَلْقِهٖ سَادًّا مَا بَيْنَ الْاُفُقِ.

۴۶۶: محمد بن عبدالله بن اسمٰعیل. محمد بن عبدالله انصاري. ابن عون. قاسم. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي، هغه اووے کوم سړے چه دا خیال کوي. چه محمد صلعم خپل پروردګار اولید، نو هغهٔ سخته غلطي اوکړه. بلکه حضورؐ جبرائیلؑ د هغهٔ اصلي صورت و خلقت کښے اولید چه هغهٔ د اسمان غاړے پټے کړے وے.

۴۶۷: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ حَدَّثَنَا زَكَرِيَّاءُ بْنُ اَبِيْ زَائِدَةَ عَنِ ابْنِ الْاَشْوَعِ عَنِ الشَّعْبِيِّ عَنْ مَسْرُوْقٍ قَالَ قُلْتُ لِعَائِشَةَؓ فَاَيْنَ قَوْلُهٗ ثُمَّ دَنَا فَتَدَلّٰى فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ اَوْ اَدْنٰى قَالَتْ ذَاكَ جِبْرِيْلُ كَانَ يَاْتِيْهِ فِيْ صُوْرَةِ الرَّجُلِ وَ اِنَّهٗ اَتٰى هٰذِهِ الْمَرَّةَ فِيْ صُوْرَتِهِ الَّتِيْ هِيَ صُوْرَتُهٗ فَسَدَّ الْاُفُقَ.

۴۶۷: محمد بن یوسف. ابو اسامه. زکریا بن ابي زائده. ابن الاشوع. شعبي. مسروق نه روایت کوي. مسروق وائي، ما بي بي عائشےؓ ته اووے. د الله تعالیٰ فرمان "بیا قریب شو. بیا نور لاندے راغے بیا د هغوئ مینځکښے دَ دوو لیندو یا ددے نه هم کم فاصله پاتے شوه" څهٔ مطلب دے. هغه جواب راکه هغه جبرئیل وو. هسے خو به جبرائیلؑ حضور ته د انسان په صورت کښے راتلو، لیکن دے ځل خپل اصلي صورت کښے راغلے وو او هغه د اسمان غاړے پټے کړے وے.

۴۶۸: حَدَّثَنَا مُوْسٰى حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ حَدَّثَنَا اَبُوْ رَجَاءٍ عَنْ سَمُرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاَيْتُ اللَّيْلَةَ رَجُلَيْنِ اَتَيَانِيْ قَالَ الَّذِيْ يُوْقِدُ النَّارَ مَالِكٌ خَازِنُ النَّارِ وَ اَنَا جِبْرِيْلُ وَ هٰذَا مِيْكَائِيْلُ.

۴۶۸: موسٰي. جریر. ابو رجاء. حضرت سمرهؓ نه روایت کوي. حضور صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل نن شپه ماته دوه سړي راغلل، هغوئ اووے چه کوم سړے اُور بلوي (روښانه کوي) هغه مالک د دوزخ داروغه دے او زهٔ جبرئیل یم او دا میکائیلؑ دے.

۴۶۹: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا

۴۶۹: مسدد. ابو عوانه. اعمش. ابو حازم.

اَبُوْ عَوَانَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِیْ حَازِمٍ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اِذَا دَعَا الرَّجُلُ اِمْرَأَتَهُ اِلٰی فِرَاشِهِ فَاَبَتْ فَبَاتَ غَضْبَانَ عَلَیْهَا لَعَنَتْهَا الْمَلٰئِکَةُ حَتّٰی تُصْبِحَ تَابَعَهُ اَبُوْ حَمْزَةَ وَ ابْنُ دَاوٗدَ وَ اَبُوْ مُعَاوِیَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ.

حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي. رسول الله صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل کله چه خاوند خپله ښځه خپلے بسترے ته (هم بستریٔ د پاره) اوغواړي او هغه انکار اوکړي. بیا خاوند خفه اوده شي، نو په هغه ښځے د صبا پورے فرښتے لعنت وائي. ابو حمزه. ابن داؤد، او ابو معاویه د اعمش نه ددے متابع حدیث اوریدلے دے.

۳۰۷۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ یُوْسُفَ اَخْبَرَنَا اللَّیْثُ قَالَ حَدَّثَنِیْ عُقَیْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا سَلَمَةَ قَالَ اَخْبَرَنِیْ جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّهُ سَمِعَ النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یَقُوْلُ ثُمَّ فَتَرَعَنِّی الْوَحْیُ فَتْرَةً فَبَیْنَا اَنَا اَمْشِیْ سَمِعْتُ صَوْتًا مِنَ السَّمَاءِ فَرَفَعْتُ بَصَرِیْ قِبَلَ السَّمَاءِ فَاِذَا الْمَلَکُ الَّذِیْ جَاءَ نِیْ بِحِرَآءَ قَاعِدٌ عَلٰی کُرْسِیٍّ بَیْنَ السَّمَاءِ وَالْاَرْضِ فَجُئِثْتُ حَتّٰی هَوَیْتُ اِلَی الْاَرْضِ فَجِئْتُ اَهْلِیْ فَقُلْتُ زَمِّلُوْنِیْ زَمِّلُوْنِیْ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰی یٰۤاَیُّهَا الْمُدَّثِّرُ اِلٰی فَاهْجُرْ قَالَ اَبُوْ اُسَامَةَ وَالرُّجْزَ الْاَوْثَانُ.

۳۰۷۰: عبدالله بن یوسف. لیث. عقیل. ابن شهاب. ابو سلمه. حضرت جابر بن عبداللهؓ نه روایت کوي. هغهٔ دَ رسول الله صلي الله علیه وسلّم نه واوریدل چه دے نه پس وحي منقطع شوه، نو (یوه ورځ) زهٔ روان وُم. چه ما یو آسماني آواز واوریدلو. ما آسمان ته اوکتل، څهٔ ګورم چه هغه فرښته چه ماته غارِ حرا ته راغلے وه، د آسمان او زمکے مینځ کښے یوے کرسئ باندے ناسته ده زهٔ د هغے نه اُویریدم، حتّٰي چه په زمکه باندِ راوغرځیدم. بیا زهٔ کورواله راغلم، ما ورته اووے. په ما کمبل واچوئ. په ما کمبل واچوئ نو الله تعالٰي دا آیت نازل کړلو، اے کمبل اغوستونکیه، پاسه او دا کافر د عذاب نه اویروه او د خپل رب لوئي بیان کړه او خپلے کپړے پاکے کړه او بتان پریږده ابو اسامه اووے د رجز معنٰي ده بت.

۳۰۷۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ وَ قَالَ لِیْ خَلِیْفَةُ حَدَّثَنَا یَزِیْدُ بْنُ زُرَیْعٍ حَدَّثَنَا سَعِیْدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ

۳۰۷۱: محمد بن بشار. غندر. شعبه. قتاده. (دویم سند) خلیفه. یزید بن زریع. سعید. قتاده. ابو العالیه. حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي. رسول الله صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل په کومه

أَبِى الْعَالِيَةِ حَدَّثَنَا ابْنُ عَمِّ نَبِيِّكُمْ يَعْنِي ابْنَ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ رَأَيْتُ لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِيْ مُوْسٰى رَجُلًا آدَمَ طُوَالًا جَعْدًا كَأَنَّهُ مِنْ رِّجَالِ شَنُوْءَةَ وَ رَأَيْتُ عِيْسٰى رَجُلًا مَّرْبُوْعَ الْخَلْقِ إِلَى الْحُمْرَةِ وَالْبَيَاضِ سَبْطَ الرَّأْسِ وَ رَأَيْتُ مَالِكًا خَازِنَ النَّارِ وَالدَّجَّالُ فِي اٰيَاتٍ أَرَاهُنَّ اللّٰهُ إِيَّاهُ فَلَا تَكُنْ فِيْ مِرْيَةٍ مِنْ لِّقَائِهِ قَالَ أَنَسٌ وَ أَبُوْ بَكْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَحْرُسُ الْمَلٰئِكَةُ الْمَدِيْنَةَ مِنَ الدَّجَّالِ.

شپه چه معراج وو. ما حضرت موسیٰ اوليد' هغه غنم رنګے' دراز قد او ولول ويښتو واله دے' ګويا چه هغه د قبيلهٔ شنوءه يو سړے دے او ما حضرت عيسیٰ اوليد چه ميانه قد' درميانه اعضاء' سُر سپين رنګ واله. د سمو ويښتو خاوند دے. او ما مالک يعني د جهنم داروغه او دجال اوليد. دا نبيے منجمله د هغے نښونه وے چه اللّٰه تعالیٰ حضورؐ ته په هغه شپه ښودلے وے' نو دَ اللّٰه تعالیٰ مخکښے خاضريدو کښے تاسو له قطعاً شک کول نه دي پکار. ابن عباسؓ ابوبکرؓ د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت کړيدے چه دَ دجال نه به دَ مدينے حفاظت فرښتے کوي.

## باب ۲۹۲: مَا جَاءَ فِي صِفَةِ الْجَنَّةِ وَ اَنَّهَا مَخْلُوْقَةٌ.

## باب ۲۹۲: دَ جنت بيان او دا ثابته ده چه هغه پيدا شويدے.

قَالَ أَبُو الْعَالِيَةِ مُطَهَّرَةٌ مِنَ الْحَيْضِ وَالْبَوْلِ وَالْبُزَاقِ كُلَّمَا رُزِقُوْا أُتُوْا بِشَيْءٍ ثُمَّ أُوْتُوْا بِاٰخَرَ قَالُوْا هٰذَا الَّذِيْ رُزِقْنَا مِنْ قَبْلُ أُتِيْنَا مِنْ قَبْلُ وَ أُتُوْا بِهٖ مُتَشَابِهًا يُشْبِهُ بَعْضُهُ بَعْضًا وَ يَخْتَلِفُ فِي الطَّعْمِ قُطُوْفُهَا يَقْطِعُوْنَ كَيْفَ شَاءُوْا دَانِيَةٌ قَرِيْبَةٌ اَلْأَرَائِكُ السُّرُوْرُ وَ قَالَ الْحَسَنُ النَّضْرَةُ فِي الْوُجُوْهِ السُّرُوْرُ فِي الْقَلْبِ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ سَلْسَبِيْلًا حَدِيْدَةَ الْجِرْيَةِ غَوْلٌ وَجَعُ الْبَطْنِ يُنْزَفُوْنَ لَا تَذْهَبُ عُقُوْلُهُمْ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ دِهَاقًا

ابو العاليه اووے هغه دَ حيض' متيازو او توکانړونه پاکے دي. "كُلَّمَا رُزِقُوْا" يعني هغوئ له يو څيز ورکړے شي بيا به بل څيز ورکړيشي' نو هغوئ به وائي چه دا خو هغه څيز دے چه مونږ ته مخکښے راکړے شوے وو. "وَ أُتُوْا بِهٖ مُتَشَابِهًا" يعني د يو بل مشابه به وي. ليکن مزه (خوند) کښے به ئے اختلاف وي. "قُطُوْفُهَا" يعني د هغے ميوے چه څنګه غواړي شوکوي به ئے "دانيه" د قريب په معنٰي کښے راځي "الارائک" يعني تخت او مسهري. حسن اووے "نضرة" يعني د مخ تروتازګي او دَ زړهٔ خوشحالئ ته وائي مجاهد اووے "سَلْسَبِيْلًا" يعني تيز (نهر) "غول" د خيټے درد "ينزفون" معنٰي ده دَ هغوئ عقلونه به نه زائل کيږي. ابن عباسؓ اوفرمائيل "دِهَاقًا" يعني ډک

مُمْتَلِئًا كَوَاعِبَ نَوَاهِدَ الرَّحِيقُ الْخَمْرُ التَّسْنِيمُ يَعْلُوْ شَرَابَ اَهْلِ الْجَنَّةِ خِتَامُهُ طِيْنُهُ مِسْكٌ نَضَّاخَتَانِ فَيَّاضَتَانِ يُقَالُ مَوْضُوْنَةٌ مَنْسُوْجَةٌ مِنْهُ وَضِيْنُ النَّاقَةِ وَالْكُوْبُ مَا لَا اُذُنَ لَهُ وَلَا عُرْوَةَ وَالْاَبَارِيْقُ ذَوَاتُ الْاٰذَانِ وَالْعُرُبُ عُرُبًا مُثَقَّلَةٌ وَاحِدَتُهَا عَرُوْبٌ مِثْلُ صَبُوْرٍ وَ صُبُرٍ يُسَمِّيْهَا اَهْلُ مَكَّةَ الْعَرِبَةَ وَ اَهْلُ الْمَدِيْنَةِ الْغَنِجَةَ وَ اَهْلُ الْعِرَاقِ الشَّكِلَةَ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ رَوْحٌ جَنَّةٌ وَ رَخَاءٌ وَالرَّيْحَانُ الرِّزْقُ وَالْمَنْضُوْدُ وَالْمَوْزُ وَالْمَخْضُوْدُ الْمُوْقَرُ حَمْلًا وَ يُقَالُ اَيْضًا الَّذِيْ لَا شَوْكَ لَهُ وَالْعُرُبُ الْمُحَبَّبَاتُ اِلٰى اَزْوَاجِهِنَّ وَ يُقَالُ مَسْكُوْبٌ جَارٍ وَ فُرُشٍ مَرْفُوْعَةٍ بَعْضُهَا فَوْقَ بَعْضٍ لَغْوًا بَاطِلًا تَأْثِيْمًا كَذِبًا اَفْنَانٍ اَغْصَانٍ وَ جَنَا الْجَنَّتَيْنِ دَانٍ مَا يُجْتَنٰى قَرِيْبٌ مُدْهَامَّتَانِ سُوْدَاوَانِ مِنَ الرِّيِّ.

"کواعب" هغه ښځې چه د هغوئ سینې راوچتې وي "رحیق" معني مشروب "تسنیم" د اهل جنت د شرابو د پاسه وي[۱]. "ختامه" يعني د هغې مهر به د مشک وي. "نضاختان" معنى بهيدونکې. ونيلې شي چه د "موضونة" معنى دي جوړيشوې. او دې نه ماخوذ دې "وضين الناقة" "کوب" هغه لوښې چه د هغې سوخړ يا دسته نه وي "عربا" دروند. ددې مفرد عروب دې لکه د صبور جمع چه صبر دې اهل مکه دې ته عربه. اهل مدينه غنجه او اهل عراق شکله وائي. مجاهد وائي چه روح معنى جنت او خوش عيشي ده. "ريحان" يعني رزق "منضود" معني کيله او مخضود معني ډک د بوج نه او دا هم ونيلې شي دې وائي چه ازغې پکښې نه وي. "العرب" هغه ښځې چه د خپلو خاوندانو خوښې وي ونيلې شي چه د مسکوب معنى دي جاري او "فرش مرفوعه" يعني لاندې باندې غوړيدلې فرش "لغوا" معنى دي بې کاره او باطل "تاثيما" يعني دروغ "افنان" يعني ښاخونه "وجنا الجنتين دان" يعني د هغې ميوې د ډير قريب قريب نه شوکيدې شي "مُدهامّتان" يعني د سرسبزي د وجې نه به تور معلوميږي.

۱. علامه انور شاه صاحب کشميري رحمة الله عليه ليکلي دي: مزاج لخمر اهل الجنة يلقى فيها لطيب رائحتبه (ملوني کومې چه شرابو باندې خوشبوئي د پاره اچوي) (فيض الباري).

۴۷۲: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا مَاتَ اَحَدُكُمْ فَاِنَّهُ يُعْرَضُ عَلَيْهِ

۴۷۲: احمد بن يونس. ليث بن سعد. نافع. حضرت عبدالله بن عمرؓ نه روايت کوي: رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل. کله چه تاسو کښې څوک مړشي نو هغه ته سحر مابنام د

مَقْعَدُهُ بِالْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ فَإِنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَمِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ وَإِنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ النَّارِ فَمِنْ أَهْلِ النَّارِ.

هغه ځائے ښودلے شي که جنتي وي نو جنت او که دوزخي وي نو هغه ته دوزخ ښودلے شي.

۴۷۳: حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا سَلْمُ بْنُ زَرِيرٍ حَدَّثَنَا أَبُو رَجَاءٍ عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اطَّلَعْتُ فِي الْجَنَّةِ فَرَأَيْتُ أَكْثَرَ أَهْلِهَا الْفُقَرَاءَ وَاطَّلَعْتُ فِي النَّارِ فَرَأَيْتُ أَكْثَرَ أَهْلِهَا النِّسَاءَ.

۴۷۳: ابوالولید. سلم بن زریر. ابو رجاء. حضرت عمران بن حصینؓ نه روایت کوي. رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل، ما جنت اولید، جنت کښې اکثر تعداد د فقراؤ وو، او ما دوزخ اولید نو دوزخیانو کښې زیات تعداد د ښځو وو[۱].

[۱]. دا د ملحوظ وي چه دا د هغه وخت د نبي کریم صلي الله علیه وسلم صرف مشاهده ده. ممکنه ده چه هغه وخت به د ښځو شمار په جهنم کښې زیات وو. بهرحال په حدیث کښې د جنس ښځې څه حکم بیان شوے نه دے. او نه د هرے زمانے د کیفیت مشاهده وه، په ښځو کښې څه عیبونه داسے وي کوم چه عام طور سره په سړو کښې نه وي. په بعضو احادیثو کښې د ښځو په جهنم کښې د کثرت وجه د دغه عیبونو موندے کیدل ښودلے شوي دي. بهرحال په حدیث کښې د ښځو تنقیص نه دے کړے شوے بلکه ځنګه چه په بعضو نورو حدیثونو کښې اشاره ده ښځو ته د خپلو مخصوص عیبونو نه د لمنے بچ کولو ترغیب ورکړے شوے دے.

۴۷۴: حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيِّبِ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ بَيْنَمَا نَحْنُ عِنْدَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْ قَالَ بَيْنَا أَنَا نَائِمٌ رَأَيْتُنِي فِي الْجَنَّةِ فَإِذَا امْرَأَةٌ تَتَوَضَّأُ إِلَى جَانِبِ قَصْرٍ فَقُلْتُ لِمَنْ هٰذَا الْقَصْرُ فَقَالُوا لِعُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ فَذَكَرْتُ غَيْرَتَهُ فَوَلَّيْتُ مُدْبِرًا فَبَكَى

۴۷۴: سعید بن ابي مریم. لیث. عقیل. ابن شهاب. سعید بن مسیب. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي، هغه اووے. مونږ حضور صلي الله علیه وسلم سره ناست وو. حضور اوفرمائیل، ما خپل ځان جنت کښې اولید هلته یوے ښځے د یو محل جانب ته اودس کولو. ما تپوس اوکه. دا محل د چا دے، فرښتو اووے د عمر بن خطابؓ. ماته سمدستي د عمرؓ د غیرت خیال راغے. زهٔ ترے واپس شوم. دے آوریدو سره حضرت عمرؓ په ژړا شو، او عرض ئے

عُمَرُ وَقَالَ اَعَلَيْكَ اَغَارُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ.

او کړه یا رسول اللّٰه زۀ تا سره غیرت کولے شم.

۴۷۵: حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا عِمْرَانَ الْجَوْنِيَّ يُحَدِّثُ عَنْ اَبِيْ بَكْرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ قَيْسٍ الْاَشْعَرِيِّ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْخَيْمَةُ دُرَّةٌ مُجَوَّفَةٌ طُوْلُهَا فِي السَّمَاءِ ثَلٰثُوْنَ مِيْلًا فِيْ كُلِّ زَاوِيَةٍ مِنْهَا لِلْمُؤْمِنِ اَهْلٌ لَّا يَرَاهُمُ الْاٰخَرُوْنَ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ الصَّمَدِ وَالْحٰرِثُ بْنُ عُبَيْدٍ عَنْ اَبِيْ عِمْرَانَ سِتُّوْنَ مِيْلًا.

۴۷۵: حجاج بن منهال. همام. ابو عمران جوني. ابوبکر بن عبدالله. بن قیس اشعري د خپل پلار عبدالله بن قیس نه روایت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل: جنت کښې مؤمنانو د پاره د تراشلے ملغلرے یوه خیمه ده چه د هغے اونچائي آسمان کښے دیرش میله ده. د هغے په هر کټ کښے مؤمنانو د پاره داسے ښځے دي چه هغه بل چا نه دي لیدلي. ابو عبدالصمد او حارث بن عبید، ابو عمران نه شپیته میله روایت کړیدے.

۴۷۶: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اللّٰهُ اَعْدَدْتُ لِعِبَادِيَ الصَّالِحِيْنَ مَالَا عَيْنٌ رَاَتْ وَلَا اُذُنٌ سَمِعَتْ وَلَا خَطَرَ عَلٰى قَلْبِ بَشَرٍ فَاقْرَءُوْا اِنْ شِئْتُمْ فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّا اُخْفِيَ لَهُمْ مِنْ قُرَّةِ اَعْيُنٍ.

۴۷۶: حمیدي. سفیان. ابوالزناد. اعرج. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کړیدے. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل. اللّٰه تعالیٰ فرمائي ما د خپل نیک بندیانو د پاره داسے داسے نعمتونه تیار کړیدي چه نۀ یوے سترګے لیدلے دي. نه یو غوږ اوریدلے دي او نه د یو انسان زړۀ کښے د هغے خیال قدرے راغلي دي که تاسو غواړئ نو دا آیت کریمه په استدلال کښے اولولئ هیچا ته معلومه نه ده چه د سترګے د یخیدو کوم سامان هغوئ د پاره پټ پروت دے. (اللّٰه پاک دے زمونږ د ټولو نصیب کړي اٰمین).

۴۷۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۴۷۷: محمد بن مقاتل. عبدالله. معمر. همام بن منبه. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي جنت کښے د داخلیدونکو د اولے ډلے مخونه به داسے وي. لکه د څوارلسمے سپوږمۍ نه به جنت کښے هغوئ

وَسَلَّمَ اَوَّلُ زُمْرَةٍ تَلِجُ الْجَنَّةَ صُوْرَتُهُمْ عَلٰى صُوْرَةِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ لَا يَبْصُقُوْنَ فِيْهَا وَلَا يَمْتَخِطُوْنَ وَلَا يَتَغَوَّطُوْنَ اٰنِيَتُهُمْ فِيْهَا الذَّهَبُ اَمْشَاطُهُمْ مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَ مَجَامِرُهُمُ الْاَلُوَّةُ وَ رَشْحُهُمُ الْمِسْكُ وَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ زَوْجَتَانِ يُرٰى مُخُّ سُوْقِهِمَا مِنْ وَّرَآءِ اللَّحْمِ مِنَ الْحُسْنِ لَا اِخْتِلَافَ بَيْنَهُمْ وَلَا تَبَاغُضَ قُلُوْبُهُمْ قَلْبٌ وَّاحِدٌ يُسَبِّحُوْنَ اللّٰهَ بُكْرَةً وَّ عَشِيًّا.

۴۷۸: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَوَّلُ زُمْرَةٍ تَدْخُلُ الْجَنَّةَ عَلٰى صُوْرَةِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ وَالَّذِيْنَ عَلٰى اٰثْرِهِمْ كَاَشَدِّ كَوْكَبٍ اِضَاءَةً قُلُوْبُهُمْ عَلٰى قَلْبِ رَجُلٍ وَّاحِدٍ لَا اِخْتِلَافَ بَيْنَهُمْ وَلَا تَبَاغُضَ لِكُلِّ امْرِئٍ مِنْهُمْ زَوْجَتَانِ كُلُّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا يُرٰى مُخُّ سَاقِهِمَا مِنْ وَّرَآءِ لَحْمِهَا مِنَ الْحُسْنِ يُسَبِّحُوْنَ اللّٰهَ بُكْرَةً وَّ عَشِيًّا لَا يَسْقَمُوْنَ وَلَا يَمْتَخِطُوْنَ وَلَا يَبْصُقُوْنَ اٰنِيَتُهُمُ الذَّهَبُ وَالْفِضَّةُ وَ اَمْشَاطُهُمُ الذَّهَبُ وَقُوْدُ مَجَامِرِهِمُ الْاَلُوَّةُ قَالَ اَبُو الْيَمَانِ

له تو کانړے راځي. نه به ئے د پوزے ريزش وي. نه بول، د هغوئ لوښي به د سرو زرو وي. د هغوئ گومنزے به د سرو سپينو وي، او د هغوئ په انگيټو کښے به عُود سوزي. د هغوئ خوله (پسينه) به د مشک (په شان خوشبو داره) وي، او د هر يو به دوه دوه بيبيانے وي. د حسن د لطافت په وجه به د هغوئ د پنډو نلے (گودا) د غوښے د پاسه په نظر راځي. نه به د اهل جنت خپلو کښے اختلاف وي نه بغض او کدورت د ټولو زړونه به يو شان (پاک) وي سحر ماښام به د الله پاکي بيانوي.

۴۷۸: ابواليمان. شعيب. ابو الزناد. اعرج. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي. رسول الله صلی الله عليه وسلّم اوفرمائيل جنت کښے د داخليدونکے ورمبنئ ډلے مخونه به داسے چمک کوي. لکه د څوارلسمے سپوږمئ، او څوک چه هغوئ پسے داخليږي، د هغوئ مخونه به داسے وي لکه ډير زيات ځلا نده ستورے، ټول به يو شان صاف زړي وي. نه به هغوئ کښے څه اختلاف وي. نه بغض او حسد. د هر سړي به دوه بيبيانے وي. د حسن د نزاکت په وجه به د پنډئ نلے (گودا) د غوښے د پاسه نه ښکاري. هر سحر ماښام به د الله تسبيح کوي. نه به هغوئ ناروغه کيږي، نه به ئے په پوزه ريزش راځي. نه به تو کانړي ورځي، د هغوئ لوښي به د سرو سپينو او گومنزے به د سرو وي. د هغوئ انگيټو کښے به عود سوزي. او د هغوئ خوله (پسينه) به د مشک په شان

يَعْنِي الْعُوْدُ وَ رَشْحُهُمُ الْمِسْكُ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ اَلْاِبْكَارُ اَوَّلُ الْفَجْرِ وَالْعَشِيُّ مَيْلُ الشَّمْسِ اَنْ تَرَاهُ تَغْرُبُ.

خوشبوناكه وي. مجاهد اووي ذ ابكار معني اول سحر او د "عشى" معني د نمر د غروب كيدو د پاره ښكته كيدل دي.

۳۷۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ اَبِيْ بَكْرِ الْمُقَدَّمِيُّ حَدَّثَنَا فُضَيْلُ بْنُ سُلَيْمَانَ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَيَدْخُلَنَّ مِنْ اُمَّتِيْ سَبْعُوْنَ اَلْفًا اَوْ سَبْعُمِائَةِ اَلْفٍ لَا يَدْخُلُ اَوَّلُهُمْ حَتّٰى يَدْخُلَ اٰخِرُهُمْ وُجُوْهُهُمْ عَلٰى صُوْرَةِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ.

۳۷۹: محمد بن ابوبكر مقدمي. فضيل بن سليمان. ابو حازم. حضرت سهل بن سعدؓ نه روايت كوي. حضورؐ اوفرمائيل خما د امت اويا زره (يا وي فرمائيل) اوه لاكهه سړي به جنت ته يوځائي داخليږي (يعني مخكښي ورستو نه) د هغوئ مخونه به د څوار لسمي سپوږمۍ په شان (روښانه) وي. (يا اللّٰه مونږ هم ذ دوئ نه كړي. اللّٰهم آمين).

۳۸۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ الْجُعْفِيُّ حَدَّثَنَا يُوْنُسُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ قَتَادَةَ حَدَّثَنَا اَنَسٌ قَالَ اُهْدِيَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جُبَّةُ سُنْدُسٍ وَ كَانَ يَنْهٰى عَنِ الْحَرِيْرِ فَعَجِبَ النَّاسُ مِنْهَا فَقَالَ وَالَّذِيْ نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهٖ لَمَنَادِيْلُ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ فِي الْجَنَّةِ اَحْسَنُ مِنْ هٰذَا.

۳۸۰: عبداللّٰه بن محمد جعفي. يونس بن محمد. شيبان. قتاده. حضرت انسؓ نه روايت كوي رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ته يوه ريښمينه جُبه هديه كښي راوړلے شوه. حضورؐ به ذ ريښمينے كپړے د استعمال نه منع فرمائيله او ذ خلقو خوښه شوه. نو حضورؐ اوفرمائيل قسم دے په هغه ذات چه ذ هغهٔ په قبضه كښي خما ساه ده ذ سعد بن معاذ رومالُونه جنت كښي ددے نه زيات ښهٔ دي.

۳۸۱: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ سَعِيْدٍ عَنْ سُفْيَانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ اِسْحٰقَ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ بْنَ عَازِبٍ قَالَ اُتِيَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِثَوْبٍ مِنْ حَرِيْرٍ فَجَعَلُوْا يَعْجَبُوْنَ مِنْ حُسْنِهٖ وَلِيْنِهٖ

۳۸۱: مسدد. يحيٰي بن سعيد. سفيان. ابو اسحاق. حضرت براء بن عازبؓ نه روايت كوي. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته ذ ريښمو يوه كپړه راوړے شوه خلقو ذ هغے خوبصورتي او نرم والے ډير خوښ كړلو. نو

فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَنَادِيْلُ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ فِي الْجَنَّةِ اَفْضَلُ مِنْ هٰذَا.

حضورؐ اوفرمائیل، جنت کښې د سعد بن معاذ رومالونه ددې نه زیات بهتر دي.

۴۸۲: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدِ السَّاعِدِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَوْضِعُ سَوْطٍ فِي الْجَنَّةِ خَيْرٌ مِّنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيْهَا.

۴۸۲: علي بن عبدالله. سفیان. ابو حازم. حضرت سهل بن سعد ساعدي نه روایت کوي. حضور صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل. په جنت کښې د یوې کوړې برابر ځائې د دنیا او مافیها نه بهتر دې.

۴۸۳: حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عَبْدِ الْمُؤْمِنِ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ عَنْ قَتَادَةَ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ فِي الْجَنَّةِ لَشَجَرَةً يَسِيْرُ الرَّاكِبُ فِيْ ظِلِّهَا مِائَةَ عَامٍ لَا يَقْطَعُهَا.

۴۸۳: روح بن عبدالمؤمن. یزید بن زریع. سعید. قتاده. حضرت انس بن مالکؓ نه روایت کوي نبي صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل جنت کښې یوه اونه داسې ده چه یو سور (سوار) د هغې په سوري کښې سل کاله مزل اوکړي نو هم به ئې طې نکړي. (پوره به ئې نکړي).

۴۸۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ حَدَّثَنَا فُلَيْحُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا هِلَالُ بْنُ عَلِيٍّ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِيْ عَمْرَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ فِي الْجَنَّةِ لَشَجَرَةً يَسِيْرُ الرَّاكِبُ فِيْ ظِلِّهَا مِائَةَ سَنَةٍ وَاقْرَأُوْا اِنْ شِئْتُمْ وَظِلٍّ مَّمْدُوْدٍ وَلَقَابُ قَوْسِ اَحَدِكُمْ فِي الْجَنَّةِ خَيْرٌ مِّمَّا طَلَعَتْ عَلَيْهِ الشَّمْسُ اَوْ تَغْرُبُ.

۴۸۴: محمد بن سنان. فلیح. سلیمان. هلال بن علي. عبدالرحمان ابن ابي عمره. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي. حضورؐ اوفرمائیل. جنت کښې یوه اونه داسې ده چه دَ هغې په سوري کښې یو سور (سوار) سل کاله مزل کوي. که تاسو غواړئ نو دَ سورة واقعې دا آیت وَ ظِلٍّ مَّمْدُوْدٍ اُولولئ. (او اوږد سورې) او بیشکه ستاسو دَ لیندې برابر ځائې جنت کښې د هغې خیز نه بهتر دې، چه په هغې نمر خیژي او ډوبیږي.

۴۸۵: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُلَيْحٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ عَنْ هِلَالٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِيْ عَمْرَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوَّلُ زُمْرَةٍ تَدْخُلُ الْجَنَّةَ عَلٰى صُوْرَةِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ وَالَّذِيْنَ عَلٰى اٰثَارِهِمْ كَاَحْسَنِ كَوْكَبٍ دُرِّيٍّ فِي السَّمَاءِ اِضَاءَةً قُلُوْبُهُمْ عَلٰى قَلْبِ رَجُلٍ وَّاحِدٍ لَا تَبَاغُضَ بَيْنَهُمْ وَلَا تَحَاسُدَ لِكُلِّ امْرِئٍ زَوْجَتَانِ مِنَ الْحُوْرِ الْعِيْنِ يُرٰى مُخُّ سُوْقِهِنَّ مِنْ وَّرَآءِ الْعَظْمِ وَاللَّحْمِ.

۴۸۵: ابراهیم بن منذر. محمد بن فلیح. د هغهٔ پلار هلال. عبدالرحمن بن ابو عمره. حضرت ابوهریرهٔ نه روایت کوي. جنت کښې داخلیدونکې ذ ټولونه د ړومبئ ډلې مخونه به د څوارلسمې شپې د سپوږمئ په شان وي. او څوک چه ذ هغوئ نه پس داخلیږي ذ هغوئ مخونه به آسمان کښې ذ ملغلرو په شان ذ ځلانده ستورو نه هم زیات چمکدار وي. ټول به یو زړي (صاف دله) وي. نه به هغوئ کښې بغض وي نه حسد، ذ هر سړي به دوه ذ غټو غټو تورو سترګو دوه بیبیانې وي. د هغوئ ذ پنډونلې (ګودا) به ذ هډوکي او غوښې د پاسه نه په نظر راځي.

۴۸۶: حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ عَدِيُّ بْنُ ثَابِتٍ اَخْبَرَنِيْ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَمَّا مَاتَ اِبْرَاهِيْمُ قَالَ اِنَّ لَهٗ مُرْضِعًا فِي الْجَنَّةِ.

۴۸۶: حجاج بن منهال. شعبه. عدي بن ثابت. حضرت براء بن عازبؓ نه روایت کوي، کوم وخت چه (د حضورؐ ځوئ) ابراهیم وفات شو. نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل. دهٔ له پئې ورکونکې جنت کښې موجوده ده.

۴۸۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكُ بْنُ اَنَسٍ عَنْ صَفْوَانَ ابْنِ سُلَيْمٍ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ اَهْلَ الْجَنَّةِ يَتَرَاءَ وْنَ اَهْلَ الْغُرَفِ مِنْ فَوْقِهِمْ كَمَا تَتَرَاءَ وْنَ الْكَوْكَبَ الدُّرِّيَّ الْغَابِرَ فِي الْاُفُقِ مِنَ الْمَشْرِقِ

۴۸۷: عبدالعزیز بن عبداللّٰه. مالک بن انس. صفوان بن سلیم. عطاء بن یسار. حضرت ابو سعید خدريؓ نه روایت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل اهل جنت به د ځان د پاسه بالاخانو واله داسېویني څنګه چه مغربي یا مشرقي کټ ته قریب یو روښانه ستورې وینئ. ددې تفاوت په وجه چه ذ هغوئ مینځ کښې دې، صحابهؓ عرض اوکه. یا رسول اللّٰه صلعم هغه

اَوِ الْمَغْرِبِ لِتَفَاضُلِ مَا بَيْنَهُمْ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ تِلْكَ مَنَازِلُ الْاَنْبِيَاءِ لَا يَبْلُغُهَا غَيْرُهُمْ قَالَ بَلٰى وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ رِجَالٌ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ وَ صَدَّقُوا الْمُرْسَلِيْنَ.

**بَاب ٢٩٣ : صِفَةِ اَبْوَابِ الْجَنَّةِ**
وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ اَنْفَقَ زَوْجَيْنِ دُعِيَ مِنْ بَابِ الْجَنَّةِ فِيْهِ عُبَادَةُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**٤٨٨:** حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُطَرِّفٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِي الْجَنَّةِ ثَمَانِيَةُ اَبْوَابٍ فِيْهَا بَابٌ يُسَمَّى الرَّيَّانُ لَا يَدْخُلُهُ اِلَّا الصَّائِمُوْنَ.

**بَاب ٢٩٤ : صِفَةِ النَّارِ وَ اَنَّهَا مَخْلُوْقَةٌ.**
غَسَّاقًا يُقَالُ غَسَقَتْ عَيْنُهُ وَ يَغْسُقُ الْجَرْحُ وَ كَانَ الْغَسَّاقَ وَالْغَسِيْقَ وَاحِدٌ غِسْلِيْنُ كُلُّ شَيْءٍ غَسَلْتَهُ فَخَرَجَ مِنْهُ شَيْءٌ فَهُوَ غِسْلِيْنٌ فِعْلِيْنٌ مِنَ الْغَسْلِ مِنَ الْجُرْحِ وَالدَّبَرِ وَ قَالَ عِكْرِمَةُ حَصَبُ جَهَنَّمَ حَطَبٌ بِالْحَبْشِيَّةِ وَ قَالَ غَيْرُهُ حَاصِبًا الرِّيْحُ الْعَاصِفُ وَالْحَاصِبُ مَا تَرْمِيْ بِهِ الرِّيْحُ

خو د انبیاء علیهم السلام مقامات دي. هلته بل څوک نشي رسیدلے. حضورؐ ورته اوفرمائیل قسم دے په هغه ذات چه ذَ هغهٔ په قبضه کښې د محمدؐ ساه ده کوم خلق چه په اللّٰه ایمان راوړي او ذَ رسولانو تصدیق او کړي، هغوئ هلته رسیدے شي.

**باب ٢٩٣ :** ذَ جنت ذَ دروازو بیان. حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل څوک چه د هر څیز جوړه جوړه د اللّٰه په لار کښې خرڅ کړي، هغه به د جنت د هرے دروازے نه بللے شي. عباده د حضورؐ نه روایت کړیدے.

**٤٨٨:** سعید بن ابي مریم. محمد بن مطرف. ابو حازم. سهل بن سعد ساعدي نه روایت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل ذ جنت اتهٔ دروازے دي هغے کښې د یوے نوم ریان دے. په دے به صرف روژه دار جنت کښې داخلیږي.

**باب ٢٩٤ :** ذ دوزخ بیان، او دا ثابته ده، چه هغه پیدا شویده. د غساق معني ده ذَ دوزخیانو د جسم نه وتونکے بدبوداره ماده وئیلے شي غسقت عینه و یغسق الجرح او شاید غساق او غسق یو څیز وي غسلین ذَ څه څیز وینزلو سره چه (وینزونے) اوخي هغے ته غسلین وائي. دا په وزن د فِعْلِين دے. ماخوذ دے د غسل نه، هغه ماده چه ذَ رحم او ذَ خناورو ذَ زخمونو نه اوخي. عکرمه اووے چه "حَصَبَ جهنم" حصب معني حبشي ژبه کښې دلرګو ده. او نورو خلقو اووے چه حاصبًا معني تیزه

وَ مِنْهُ حَصَبُ جَهَنَّمَ مَا يُرْمٰى بِهٖ فِيْ جَهَنَّمَ هُمْ حَصَبُهَا وَ يُقَالُ حَصَبَ فِي الْاَرْضِ ذَهَبَ وَالْحَصَبُ مُشْتَقٌّ مِنَ الْحَصْبَاءِ الْحِجَارَةِ صَدِيْدٌ قَيْحٌ وَّ دَمٌ خَبَتْ طَفِئَتْ تُوْرُوْنَ تَسْتَخْرِجُوْنَ اَوْرَيْتُ اَوْ قَدْتُ لِلْمُقْوِيْنَ لِلْمُسَافِرِيْنَ وَالْقِيُّ الْقَفَرُ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ صِرَاطُ الْجَحِيْمِ سَوَآءُ الْجَحِيْمِ وَ وَسَطُ الْجَحِيْمِ لَشَوْبًا مِّنْ حَمِيْمٍ يَخْلُطُ طَعَامُهُمْ وَ يُسَاطُ بِالْحَمِيْمِ زَفِيْرٌ وَ شَهِيْقٌ صَوْتٌ شَدِيْدَةٌ وَ صَوْتٌ ضَعِيْفٌ وِرْدًا عِطَاشًا غَيًّا خُسْرَانًا وَ قَالَ مُجَاهِدٌ يُسْجَرُوْنَ تُوْقَدُ بِهِمُ النَّارُ وَ نُحَاسٌ الصُّفْرُ يُصَبُّ عَلٰى رُؤُوْسِهِمْ يُقَالُ ذُوْقُوْا بَاشِرُوْا وَ جَرِّبُوْا وَ لَيْسَ هٰذَا مِنْ ذَوْقِ الْفَمِ مَارِجٌ خَالِصٌ مِنَ النَّارِ مَرَجَ الْاَمِيْرُ رَعِيَّتَهٗ اِذَا خَلَّاهُمْ يَعْدُوْ بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ مَرِيْجٍ مُلْتَبِسٍ مَرَجَ اَمْرُ النَّاسِ اِخْتَلَطَ مَرَجَ الْبَحْرَيْنِ مَرَجْتَ دَآبَّتَكَ تَرَكْتَهَا.

هوا. او حاصب هغه خيز دے چه هوانے اوغرځوي او ددے نه ماخوذ دے. حصب جهنم، يعني كوم خيز چه جهنم كښې اوغرځولے شي. كافر به جهنم كښې غرځولے شي محاوره ده چه حصب في الارض يعني لاړ او حصب حصباء الحجارة په معنې د سنګريزو ماخوذ دے د صديد معني دے نو، اووينه د خبت معني دي مړه شوه (بجهګئ) تورون معني دي تاسو او كاږئ، او ديت معني دي ما اور روښانه (بل) كه للمقوين يعني مسافرو د پاره د "قي" معنې ميدان ابن عباسؓ اووے د صراط الجحيم معني د دوزخ مينځ لشوبًا من حميم: يعني د هغوئ خوراک كښې به ګرمے اوبۀ يوځائے كړيشي زفر و شهيق يعني تيز آواز او معمولي (سپک) آواز. وردًا: يعني تږي غيًّا: معني نقصان، مجاهد اووے يسجرون: يعني په هغوئ به اور بل كړے شي، نحاس: معني ټانبه (ګرمه ګرمه به) د هغوئ په سرونو اچولے شي، وئيلے شي ذوقوا: يعني اواز مانيے، او دا لفظ د ذوق الفم نه ماخوذ نه دے مارج معني خالص اور مرج الامير رعيته هر كله چه هغوئ دوئ يو بل باندِ ظلم كولو ته پريږدي مريج معني مخلوط، مرج امر الناس يعني د خلقو كار خلط ملط شو مرج البحرين مرجت دابتک يعني تا خپل چوپايه (ورشو كښې) پريښودل.

۴۸۹: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُهَاجِرٍ اَبِي الْحَسَنِ قَالَ سَمِعْتُ زَيْدَ بْنَ وَهْبٍ يَقُوْلُ سَمِعْتُ اَبَا ذَرٍّ يَقُوْلُ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ سَفَرٍ فَقَالَ اَبْرِدْ

۴۸۹: ابو الوليد. شعبه. مهاجر. ابوالحسن. زيد بن وهب. حضرت ابوذرؓ نه روايت كوي. رسول الله صلي الله عليه وسلم سفر كښې وو. نو حضورؐ اوفرمائيل (اوس لا د ماسپښين مونځ مه كوئ) پريږده چه لږه يخني شي پريږده چه لږه

ثُمَّ قَالَ اَبْرِدْ ثُمَّ قَالَ اَبْرِدْ حَتّٰى فَاءَ الْفَيْءُ يَعْنِي التُّلُوْلَ ثُمَّ قَالَ اَبْرِدُوْا بِالصَّلٰوةِ فَاِنَّ شِدَّةَ الْحَرِّ مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ.

یخني شي. تر دے چه دغنډو نه سورے را ښکته شي بیا حضورؐ اوفرمائیل دَ ماسپخین مونځ لږ یخ وخت کښې کوئ. د ګرمئ سختي د جهنم د تیزئ نه ده[1].

[1] د دے نه مخکښې هم مونږه لیکلي دي چه د څیزونو د وجود د پاره ظاهري اسبابو سره څه باطني اسباب هم وي.

۴۹۰: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ ذَكْوَانَ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَبْرِدُوْا بِالصَّلٰوةِ فَاِنَّ شِدَّةَ الْحَرِّ مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ.

۴۹۰: محمد بن یوسف. سفیان. اعمش. ذکوان حضرت ابوسعیدؓ نه راویت کوي حضور صلي اللّٰه علیه وسلم اوفرمائیل. مونځ یخ وخت کښې کوئ ځکه چه د ګرمئ شدت د جهنم د تیزئ نه دے.

۴۹۱: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ ابْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّهٗ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اشْتَكَتِ النَّارُ اِلٰى رَبِّهَا فَقَالَتْ رَبِّ اَكَلَ بَعْضِيْ بَعْضًا فَاَذِنَ لَهَا بِنَفَسَيْنِ نَفَسٌ فِي الشِّتَاءِ وَ نَفَسٌ فِي الصَّيْفِ فَاَشَدُّ مَا تَجِدُوْنَ فِي الْحَرِّ وَ اَشَدُّ مَا تَجِدُوْنَ فِي الزَّمْهَرِيْرِ.

۴۹۱: ابوالیمان. شعیب. زهري. ابو سلمه بن عبدالرحمٰن. حضرت ابوهریرةؓ نه روایت کوي. رسالتمآب صلي اللّٰه علیه وسلم اوفرمائیل دوزخ خپل پروردګار ته شکایت اوکه، وئیلے اے خدایه څما یوے حصے بله حصه اوخوړله. نو اللّٰه تعالیٰ ورله د دوه ساګانو اخستو اجازت ورکه، یوه ساه اخستل یخنئ کښې او دویمي ګرمئ نو تاسو چه د ګرمئ او یخنئ کوم شدت وینئ هغه دَ دے دوو ساګانو اثر دے.

۴۹۲: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَامِرٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ اَبِيْ حَمْزَةَ الضُّبَعِيِّ قَالَ كُنْتُ اُجَالِسُ ابْنَ عَبَّاسٍ بِمَكَّةَ فَاَخَذَتْنِيْ

۴۹۲: عبداللّٰه بن محمد. ابو عامر. همام. ابو حمزه ضبعيؒ نه روایت کوي هغه وائي زهٔ مکه کښې حضرت ابن عباسؓ سره ناست ووم بیا ماته تبه راغله نو ابن عباسؓ

نُخْتٰى فَقَالَ اَبْرِدُهَا عَنْكَ بِمَآءِ زَمْزَمَ فَإِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْحُمّٰى مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ فَاَبْرِدُوْهَا بِالْمَاءِ اَوْ قَالَ بِمَاءِ زَمْزَمَ شَكَّ هَمَّامٌ.

اوفرمائيل چه آب زمزم سره دا يخه كړه ځكه چه رسول اللّٰه صلعم فرمائيلي دي چه تبه د جهنم د تيزئ نه ده نو دا اوبو يا آب زمزم سره يخه كړئ، همام ته شك شويدے دے۱.

۱. ابن سينا ددے حديث متعلق ليكلي دي چه صفراوي تبه به ورته وه، ولے چه په صفراوي تبه كښے لامبل طبعي حيثيت سره فائده مند كيدے شي، بهرحال په موسم او آب و هوا باندے دا موقوف ده.

۴۹۳: حَدَّثَنِيْ عَمْرُوْ بْنُ عَبَّاسٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَبَايَةَ بْنِ رِفَاعَةَ قَالَ اَخْبَرَنِيْ رَافِعُ بْنُ خَدِيْجٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ الْحُمّٰى مِنْ فَوْرِ جَهَنَّمَ فَاَبْرِدُوْهَا عَنْكُمْ بِالْمَاءِ.

۴۹۳: عمرو بن عباسؓ. عبدالرحمان. سفيان. دَ هغهٔ پلار. عبايه بن رفاعه. حضرت رافع بن خديجؓ نه روايت كوي. ما د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل. چه تبه د جهنم د جوش نه ده، نو دا اوبو سره يخه كړئ.

۴۹۴: حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْحُمّٰى مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ فَاَبْرِدُوْهَا بِالْمَاءِ.

۴۹۴: مالک بن اسمٰعيل. زهير. هشام. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو. تبه د جهنم د تيزئ نه ده نو دا اوبو سره يخه كړئ.

۴۹۵: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ عَنْ يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْحُمّٰى مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ فَاَبْرِدُوْهَا بِالْمَاءِ.

۴۹۵: مسدد. يحيي. عبيداللّٰه. نافع. حضرت ابن عمر نه روايت كوي حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو تبه د جهنم دَ تيزئ نه ده نو دا اوبو سره يخه كړئ.

۴۹۶: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ ابْنُ اَبِيْ اُوَيْسٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ

۴۹۶: اسمٰعيل بن ابي اويس. مالک. ابوالزناد. اعرج. حضرت ابوهريرهؓ

اَبِیْ الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ نَارُکُمْ جُزْءٌ مِنْ سَبْعِیْنَ جُزْءًا مِنْ نَارِ جَهَنَّمَ قِیْلَ یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنْ کَانَتْ لَکَافِیَةً قَالَ فُضِّلَتْ عَلَیْهِنَّ بِتِسْعَةٍ وَ سِتِّیْنَ جُزْءًا کُلُّهُنَّ مِثْلُ حَرِّهَا.

نه روایت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل. ستاسو د اُور حرارت د جهنم د اور حرارت نه اویا حصو کښې یوه حصه ده. عرض اوشو، یا رسول اللّٰه صلعم زمونږ دَ اور حرارت خو کافي دے. وے فرمائیل هغه په دے ۶۹ حصه زیات کړے شویدے[1]. هره حصه .

۱. ددے حدیث په بعضو روایتونو کښې د شمار کمے زیاتے هم شته. مقصد صرف انتهائي شدت بیانول دي، عام طور سره دا اعداد به دَ عربو په محاوره کښې د مبالغې او د څه څیز انتهائي زیاتوالي بیانولو د پاره ویلے کیدل، مراد به په دے اعدادو کښې منحصر نه وو.

۴۹۷: حَدَّثَنَا قُتَیْبَةُ بْنُ سَعِیْدٍ حَدَّثَنَا سُفْیَانُ عَنْ عَمْرٍو سَمِعَ عَطَاءً یُخْبِرُ عَنْ صَفْوَانَ بْنِ یَعْلٰی عَنْ اَبِیْهِ اَنَّهُ سَمِعَ النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یَقْرَءُ عَلَی الْمِنْبَرِ وَ نَادَوْا یَا مَالِكُ.

۴۹۷: قتیبه بن سعد. سفیان. عمرو. عطاء. صفوان بن یعلٰي نه روایت کوي، هغهٔ د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم نه په منبر دا واوریدل، او هغوئ به چغې وهي چه اے (د جهنم داروغه).

۴۹۸: حَدَّثَنَا عَلِیٌّ حَدَّثَنَا سُفْیَانُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِیْ وَائِلٍ قَالَ قِیْلَ لِاُسَامَةَ لَوْ اَتَیْتَ فُلَانًا فَکَلَّمْتَهُ قَالَ اِنَّکُمْ لَتَرَوْنَ اِنِّیْ لَا اُکَلِّمُهُ اِلَّا اُسْمِعُکُمْ اِنِّیْ اُکَلِّمُهُ فِی السِّرِّ دُوْنَ اَنْ اَفْتَحَ بَابًا اَکُوْنَ اَوَّلَ مَنْ فَتَحَهُ وَلَا اَقُوْلُ لِرَجُلٍ اِنْ کَانَ عَلَیَّ اَمِیْرًا اِنَّهُ خَیْرُ النَّاسِ بَعْدَ شَیْءٍ سَمِعْتُهُ مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ

۴۹۸: علي. سفیان. اعمش. ابو وائل نه روایت کوي اسامه ته اووئیلے شو چه کاش ته فلاني سړي له تلے وے او هغه سره دِ خبرې اترې کړے وے نو اسامه اووے ستاسو څهٔ خیال دے چه څه هغهٔ سره صرف ستاسو اورولو دَ پاره خبرې اترې کوم زهٔ خو بغیر ددے نه چه د فتنې د نوے باب شروع او کړم. هغهٔ سره خلوت کښې خبرې اترې کوم. زهٔ فتنه پیدا کونکے د ټولونه وړمبنے سړے نشم جوړیدے اونه به زه هغې سړي ته چه خما حاکم دے دا اووایم چه هغه د ټولو خلقو نه بهتر دے. د کله نه چه ما د حضورؐ نه دا خبره آوریدلے ده چه

وَسَلَّمَ قَالُوْا وَمَا سَمِعْتَهُ يَقُوْلُ قَالَ سَمِعْتُهُ يَقُوْلُ يُجَاءُ بِالرَّجُلِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَيُلْقَى فِي النَّارِ فَتَنْدَلِقُ اَقْتَابُهُ فِي النَّارِ فَيَدُوْرُ كَمَا يَدُوْرُ الْحِمَارُ بِرَحَاهُ فَيَجْتَمِعُ اَهْلُ النَّارِ عَلَيْهِ فَيَقُوْلُوْنَ اَيْ فُلَانُ مَا شَأْنُكَ اَلَيْسَ كُنْتَ تَأْمُرُنَا بِالْمَعْرُوْفِ وَ تَنْهٰى عَنِ الْمُنْكَرِ قَالَ كُنْتُ اٰمُرُكُمْ بِالْمَعْرُوْفِ وَلَا اٰتِيْهِ وَ اَنْهَاكُمْ عَنِ الْمُنْكَرِ وَ اٰتِيْهِ رَوَاهُ غُنْدُرٌ عَنْ شُعْبَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ.

خلقو اووے تا څه خبره اوریدلے ده نو هغه اوفرمائيل ما د حضورﷺ نه اوريدلي دي د قيامت په ورځ به يو سړے راوستے شي بيا به هغه جهنم كښے اوغرځولے شي د هغه كولمے به اُور كښے راوځي. بيا به هغه داسے ګردش كوي ځنګه چه خر په ژرنده تاويږي بيا به دوزخيان هغه ته راجمع شي او هغه ته به وائي اے فلانيه دا ستا څه حال دے آيا تا به ذ ښو خبرو مونږ ته حكم نه كولو او د بدونه به دے نه منع كولو. هغه به ورته وائي او ما به تاسو ته د ښو خبرو حكم دركولو خو خپله به م په ښو خبرو عمل نه كولو. او تاسو به م د بدو خبرو نه منع كولې. خو خپله په خرابو كښے آخته ووم.

## باب ۲۹۵: صِفَةِ اِبْلِيْسَ وَ جُنُوْدِهٖ

وَ قَالَ مُجَاهِدٌ يُقْذَفُوْنَ يُرْمَوْنَ دُحُوْرًا مَطْرُوْدِيْنَ وَاصِبٌ دَائِمٌ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ مَدْحُوْرًا مَطْرُوْدًا يُقَالُ مَرِيْدًا مُتَمَرِّدًا بَتَّكَهُ قَطَّعَهُ وَاسْتَفْزِزْ اِسْتَخِفَّ بِخَيْلِكَ الْفُرْسَانِ وَالرَّجْلُ الرَّجَالَةُ وَاحِدُهَا رَاجِلٌ مِثْلُ صَاحِبٍ وَ صَحْبٍ وَ تَاجِرٍ وَ تَجْرٍ لَاَحْتَنِكَنَّ لَاَسْتَأْصِلَنَّ قَرِيْنٌ شَيْطَانٌ.

باب ۲۹۵: ابليس او ذ هغه د لښكرو بيان.

مجاهد وائي يقذفون يعني هغوئ ويشتلے شي دُحُورًا يعني دهتكار لے وَاصِبٌ معني دائمي حضرت ابن عباسؓ وائي مدحورًا يعني سترے شوے، مريدًا يعني سر كش. قطعه: يعني هغه ئے پريكړلو، اِستفزز معني خفيف او معمولي كنړلو سره دهوكه شو، بخيلك يعني خپل سوارهٔ رجل: معني پياده د هغے مفرد راجل دے. لكه د صاحب جمع صحب او د تاجر جمع تجر ده لَاَحْتَنِكَنَّ يعني د جرړے نه به ئے ارتاؤ كړم قَرِيْن معني شيطان.

۲۹۹۴: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا عِيْسٰى عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سُحِرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ اللَّيْثُ كَتَبَ اِلَيَّ هِشَامٌ اَنَّهُ سَمِعَهُ وَ وَعَاهُ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ

۲۹۹۴: ابراهيم بن موسٰی. عيسٰی. هشام. ذ هغهٔ پلار بي بي عائشےؓ نه روايت كوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم باندے جادو شوے وو. ليث اووے. ماته هشام يو خط اوليكه هغے كښے ليكلے وو ما د خپل پلار هغهٔ د بي بي عائشےؓ نه اوريدلي دي. او ما هغه ښه ياد ساتلي دي چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم باندے جادو شوے

عَـائِشَةَ قَـالَتْ سُحِـرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰـهُ عَلَيْـهِ وَسَلَّـمَ حَتّٰى كَانَ يُـخَيَّـلُ اِلَيْـهِ اَنَّـهُ يَـفْعَلُ الشَّيْءَ وَمَـا يَفْعَلُـهُ حَتّٰى كَانَ ذَاتَ يَوْمٍ دَعَـا وَ دَعَـا ثُـمَّ قَـالَ اَشَعَرْتِ اَنَّ اللّٰـهَ اَفْتَـانِـيْ فِيْمَا فِيْـهِ شِفَائِـيْ اَتَـانِـيْ رَجُلَانِ فَـقَـعَدَ اَحَـدُهُـمَـا عِنْـدَ رَاْسِـيْ وَالْاٰخَـرُ عِنْدَ رِجْلَـيَّ فَـقَـالَ اَحَـدُهُـمَـا لِلْاٰخَـرِ مَا وَجَـعُ الـرَّجُـلِ قَـالَ مَطْبُـوْبٌ قَـالَ وَمَـنْ طَبَّـهُ قَـالَ لَبِيْدُ بْنُ الْاَعْصَمِ قَالَ فِيْمَا ذَا قَـالَ فِـيْ مُشْطٍ وَ مُشَـاقَةٍ وَّ جُفِّ طَلْـعَةٍ ذَكَرٍ قَالَ فَاَيْنَ هُوَ قَالَ فِيْ بِئْرِ ذَرْوَانَ فَـخَرَجَ اِلَيْهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْـهِ وَسَـلَّمَ ثُمَّ رَجَعَ فَقَالَ لِعَائِشَةَ رَجَـعَ نَـخْـلُهَا كَاَنَّهَا رُؤُسُ الشَّيَاطِيْنِ فَقُلْتُ اِسْتَخْرَجْتَهُ فَقَالَ لَا اَمَّا اَنَا فَقَدْ شَـفَـانِـيَ اللّٰـهُ وَ خَشِيْـتُ اَنْ يُثِيْـرَ ذٰلِكَ عَـلَـى الـنَّـاسِ شَـرًّا ثُـمَّ دُفِنَتِ الْبِئْرُ.

وو، دَ هغې دا اثر اوشو چه حضورؐ ته به دَ يو نه کړې شوي کـار متـعلق دا خيال وو، چه کړې دې. حتي چه يو ورځې حـضـورؐ د اللّٰه تعالیٰ نه د خپلې شفاء د پاره ښه دعا اوکړه بيـا حضورؐ ماته اوفرمائيل. آيا تاته معلومه ده چه اللّٰه تعالیٰ مـاتـه هـغه څيز اوښودلو. چه هغې کښې زما شفا وه. ماته دوه سړي راغـلـل يو څما سرته کيناست او بل څما پښو طـرف تـه. نـو يـو کـس بـل تـه اووې چه دې سړي ته څه بيماري ده، دويم کس اووې په دهٔ جادو شويدې. وړمبني سړي اووې. جـادو چـا کـړيـدې، دويم اووې، لبيد بن اعـصم وړمبني اووې، څه څيز کښې. دويم اووې، ګومنز او دَ مـالـوچـو پـاغنده کښې. او د قجورې د کلي د پاسهٔ پوستکي کښې وړمبني سړي اووې. دا څيزونه کوم ځائې دي. دويـم سـړي جـواب ورکـه، د ذروان کوهي کښې. حضورؐ هلته تشريف يوړلو. بيا واپس راغې بي بي عائشې تـه ئې اوفرمائيل. ددې کوهي قريب د قجورو اونې داسې معـلـوميدې لکه دَ شيطانانو سر يا کپړئ ما عرض اوکه. هغه د جادو څيزونه راوښکل؟ حضورؐ اوفرمائيل، نه، ليکن اللّٰه ماله شفاء راکړه او راسره دا انديښنه شوه چه ددې په اوښـکـلـو کښې بـه خلقو کښې شر او فساد خور شي بيا هغه کوهې بند کړې شو.

۵۰۰: حَـدَّثَـنَـا اِسْمَاعِيْلُ بْنُ اَبِيْ اُوَيْـسٍ قَـالَ حَـدَّثَنِيْ اَخِيْ عَنْ سُـلَيْـمَـانَ بْـنِ بِلَالٍ عَـنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيْـدٍ عَـنْ سَعِيْـدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَـلَيْـهِ وَسَـلَّـمَ قَـالَ يَعْقِدُ الشَّيْطَانُ

۵۰۰: اسـمٰعيـل بـن ابـي اويـس. سـليمـان بن بـلال. يـحيـي ابـن سـعيـد. سـعيـد بـن مسيـب. حـضـرت ابـوهـريـرهؓ نـه روايت کوي. چـه رسول اللّٰه صـلـي اللّٰـه عـليـه وسـلّم اوفرمائيل تاسو کښې د هر يو خـتـب تـه د اودو کيـدو پـه وخـت شيـطـان درې غـوټـې ورکوي او پـه هـره غـوټـه پوکي. چـه اوس لا

عَلٰى قَافِيَةِ رَأْسِ اَحَدِكُمْ اِذَا هُوَ نَامَ ثَلٰثَ عُقَدٍ يَضْرِبُ عَلٰى كُلِّ عُقْدَةٍ مَكَانَهَا عَلَيْكَ لَيْلٌ طَوِيْلٌ فَارْقُدْ فَاِنِ اسْتَيْقَظَ فَذَكَرَ اللّٰهَ انْحَلَّتْ عُقْدَةٌ فَاِنْ تَوَضَّأَ انْحَلَّتْ عُقْدَةٌ فَاِنْ صَلّٰى انْحَلَّتْ عُقْدَةٌ كُلُّهَا فَاَصْبَحَ نَشِيْطًا طَيِّبَ النَّفْسِ وَ اِلَّا اَصْبَحَ خَبِيْثَ النَّفْسِ كَسْلَانَ.

شپه لويه ده. اوس اوده شه كوم وخت چه هغه سرے بيدار شي. اللّٰه ياد كړي. نو يوه غوټه پرانستے شي. بيا هغه اودس اوكړي. نو دويمه غوټه هم پرانستے شي. اوكه هغه مونځ اوكړي. نو ټولے غوټے پرانستے شي. او د هغه سحر خوشحالي او شگفته خاطري سره شروع شي. او ټوله ورځ دغه كيفيت وي. كني درونند خاطرے او سست وجو دے وي.

۵۰۱: حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ ذُكِرَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ نَامَ لَيْلَهُ حَتّٰى اَصْبَحَ قَالَ ذَاكَ رَجُلٌ بَالَ الشَّيْطَانُ فِيْ اُذُنَيْهِ اَوْ قَالَ فِيْ اُذُنِهِ.

۵۰۱: عثمان بن ابي شيبه. جرير. منصور. ابو وائل. حضرت عبداللّٰه نه روايت كړي. د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم مخكښے د يو داسے سړي ذكر اوشو چه د سحر پورے ټوله شپه اوده وو. حضور صلعم اوفرمائيل. ددے سړي غوږونو (يا غوږ) كښے شيطان متيازے كړيدي.

۵۰۲: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ سَالِمِ بْنِ اَبِي الْجَعْدِ عَنْ كُرَيْبٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَمَا اَنَّ اَحَدَكُمْ اِذَا اَتٰى اَهْلَهُ وَ قَالَ بِسْمِ اللّٰهِ اَللّٰهُمَّ جَنِّبْنَا الشَّيْطٰنَ وَ جَنِّبِ الشَّيْطَانَ مَا رَزَقْتَنَا فَرُزِقَا وَلَدًا لَمْ يَضُرَّهُ الشَّيْطَانُ.

۵۰۲: موسي بن اسمعيل. همام. منصور. سالم بن ابوالجعد. كريب. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي. حضور صلعم اوفرمائيل. كله چه تاسو كښے څوک خپل كوروالے ته (كور والي د پاره) ورځي او دا اووايي دَ اللّٰه نوم سره شروع كوم. اے اللّٰه مونږ د شيطان د اثر نه بچ كړے او كوم اولاد چه مونږ ته راكړے هغه هم د شيطان نه بچ كړے. بيا چه ذ هغوئ نه كوم بچے پيدا شي نو شيطان هغه ته څۀ ضرر نشي رسولے. (اللّٰه پاک د دا فيض زمونږ هم نصيب كړي. اللّٰهم آمين)

۵۰۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا عَبْدَةُ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ

۵۰۳: محمد. عبده. هشام بن عروه. عروه. حضرت ابن عمرؓ نه روايت كوي.

عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا طَلَعَ حَاجِبُ الشَّمْسِ فَدَعُوا الصَّلٰوةَ حَتّٰى تَبْرُزَ وَ اِذَا غَابَ حَاجِبُ الشَّمْسِ فَدَعُوا الصَّلٰوةَ حَتّٰى تَغِيْبَ وَلَا تَحَيَّنُوْا بِصَلَاتِكُمْ طُلُوْعَ الشَّمْسِ وَلَا غُرُوْبَهَا فَاِنَّهَا تَطْلُعُ بَيْنَ قَرْنَيْ شَيْطَانٍ اَوِ الشَّيْطَانِ لَا اَدْرِيْ اَيَّ ذٰلِكَ قَالَ هِشَامٌ.

حضور ارشاد اوفرمائیلو او کوریٔ کوم وخت چه د نمر څنډه (کناره) طلوع شي نو مونځ ترک کړئ. تردے چه هغه پوره طلوع شي. او کوم وخت چه د نمر څنډه غروب شي، نو مونځ ترک کړئ. تردے چه پوره غروب شي. او تاسو دَ نمر ختو او پریوتو په وخت مونځ مهٔ کوئ. ځکه چه هغه دَ شیطان د دوو ښکرونو په مینځ کښے راخیژي.

۵۰۴: حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا يُوْنُسُ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ هِلَالٍ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا مَرَّ بَيْنَ يَدَيْ اَحَدِكُمْ شَيْءٌ وَهُوَ يُصَلِّيْ فَلْيَمْنَعْهُ فَاِنْ اَبٰى فَلْيَمْنَعْهُ فَاِنْ اَبٰى فَلْيُقَاتِلْهُ فَاِنَّمَا هُوَ شَيْطَانٌ وَ قَالَ عُثْمَانُ ابْنُ الْهَيْثَمِ حَدَّثَنَا عَوْفٌ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيْرِيْنَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ وَ كَّلَنِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِحِفْظِ زَكَاةِ رَمَضَانَ فَاَتَانِيْ اٰتٍ فَجَعَلَ يَحْثُوْ مِنَ الطَّعَامِ فَاَخَذْتُهُ فَقُلْتُ لَاَرْفَعَنَّكَ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ الْحَدِيْثَ فَقَالَ اِذَا اَوَيْتَ اِلٰى فِرَاشِكَ فَاقْرَأْ اٰيَةَ الْكُرْسِيِّ لَنْ يَزَالَ مِنَ اللّٰهِ حَافِظٌ وَّلَا يَقْرَبُكَ

۵۰۴: ابو معمر. ابومعمر. عبدالوارث. یونس. حمید بن هلال. ابو صالح. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي، هر کله چه تاسو کښے څوک د چا مونځ کذار مخکښے تیر شي، نو هغه دِ منع کړي. که هغه اونه مني، نو بیا دِ منع کړي، او که بیا هم اونه مني. نو هغه سره دِ جنګ اوکړي (په زور دِ منع کړي) ځکه چه هغه شیطان دے. او عثمان بن هیثم، عوف، محمد بن سیرین حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي. هغه فرمائي. رسول اللّٰه صلعم زهٔ د صدقه فطر د حفاظت دَ پاره مقرر کړم. یو راتلونکے ماله راغے. او دِکه لپه غله اخستل ئے شروع کړل. ما هغه اونیولو ورته مِ ونیلے زهٔ تا رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم له بوځم. بیا هغه پوره حدیث بیان کهٔ هغهٔ اووے کوم وخت چه ته خپلے بسترے ته ځے. او آیت کرسي اولولے. نو اللّٰه تعالي به برابر ستا حفاظت کوي. او شیطان به سحر پورے تاله نشي راتلے. رسول

شَیْطَانُ حَتّٰی تُصْبِحَ فَقَالَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ صَدَقَكَ وَهُوَ كَذُوبٌ ذَاكَ شَیْطَانٌ.

اللّٰه صلعم اوفرمائیل. خپله خو هغه دروغژن دے خو دا خبره ئے رښتیا کړیده. او هغه شیطان وو.

۵۰۵: حَدَّثَنَا یَحْیَی بْنُ بُكَیْرٍ حَدَّثَنَا اللَّیْثُ عَنْ عُقَیْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِی عُرْوَةُ قَالَ أَبُو هُرَیْرَةَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یَأْتِی الشَّیْطَانُ أَحَدَكُمْ فَیَقُولُ مَنْ خَلَقَ كَذَا مَنْ خَلَقَ كَذَا حَتّٰی یَقُولَ مَنْ خَلَقَ رَبَّكَ فَإِذَا بَلَغَهُ فَلْیَسْتَعِذْ بِاللّٰهِ وَلْیَنْتَهِ.

۵۰۵: یحیی بن بکیر. لیث. عقیل. ابن شهاب. عروه. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، شیطان تاسو کښے چاله راشي، او ورته اووائي، فلانے څیز چا پیدا کړو، او فلانے چا پیدا کړو. حتي چه دا وائي (اوښایه) ستا رب چا پیدا کړو. دے حدته چه معامله اورسي. نو اللّٰه نه پناه غواړئ او خاموش کیدل پکار دي.

۵۰۶: حَدَّثَنَا یَحْیَی بْنُ بُكَیْرٍ حَدَّثَنَا اللَّیْثُ قَالَ حَدَّثَنِی عُقَیْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ حَدَّثَنِی ابْنُ أَبِی أَنَسٍ مَوْلَی التَّیْمِیِّینَ أَنَّ أَبَاهُ حَدَّثَهُ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَیْرَةَ یَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ رَمَضَانُ فُتِحَتْ أَبْوَابُ الْجَنَّةِ وَغُلِّقَتْ أَبْوَابُ جَهَنَّمَ وَسُلْسِلَتِ الشَّیَاطِینُ.

۵۰۶: یحیي بن بکیر. لیث. عقیل. ابن شهاب د تیمیین آزاد کړده غلام ابن ابو یونس. د هغهٔ پلار. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل. د رمضان میاشت چه شروع شي، نو د جنت دروازے پرانستے شي. او د جهنم دروازے بندے کړے شي. او شیطانان زنځیرونو کښے اوتړلے شي.

۵۰۷: حَدَّثَنَا الْحُمَیْدِیُّ حَدَّثَنَا سُفْیَانُ حَدَّثَنَا عَمْرٌو قَالَ أَخْبَرَنِی سَعِیدُ بْنُ جُبَیْرٍ قَالَ قُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ فَقَالَ حَدَّثَنَا أُبَیُّ بْنُ كَعْبٍ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یَقُولُ إِنَّ مُوسٰی قَالَ

۵۰۷: حمیدي. سفیان. عمرو. سعید بن جبیر. حضرت ابن عباسؓ. حضرت أُبي بن کعبؓ نه روایت کوي. هغه د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم نه واوریدل. موسٰي علیه السلام خپل خادم ته اوفرمائیل، زمونږ طعام راوړه، خادم ورته عرض اوکړو. تاسو ته دِ معلوم وي چه کوم

لِفَتَاهُ اٰتِنَا غَدَائَنَا قَالَ اَرَاَيْتَ اِذْ اَوَيْنَا اِلَى الصَّخْرَةِ فَاِنِّيْ نَسِيْتُ الْحُوْتَ وَمَا اَنْسَانِيْهُ اِلَّا الشَّيْطَانُ اَنْ اَذْكُرَهٗ وَلَمْ يَجِدْ مُوْسٰى النَّصَبَ حَتّٰى جَاوَزَ الْمَكَانَ الَّذِيْ اَمَرَ اللّٰهُ بِهٖ.

وخت مونږ هغې كټ ته رسيدلے وو، نو ما نه كب (مچھلی) هير شو او ذ هغې يا د ما نه شيطان هېر كړو او موسٰي عليه السلام ته هغې سفر كښې ستوماني محسوس نه شوه تردے چه هغه د الله مقرر كړے ځائے نه په وړاندِ لاړے.

۵۰۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُشِيْرُ اِلَى الْمَشْرِقِ فَقَالَ هَا اِنَّ الْفِتْنَةَ هٰهُنَا اِنَّ الْفِتْنَةَ هٰهُنَا مِنْ حَيْثُ يَطْلُعُ قَرْنُ الشَّيْطَانِ.

۵۰۸: عبدالله بن مسلمه. مالک. عبدالله بن دينار. حضرت عبدالله بن عمرؓ نه روايت كوي. ما حضور صلعم مشرق ته اشاره كولو بانډِ اوليد، نو حضورؐ اوفرمائيل، فتنه دلته ده، فتنه دلته ده دے ځائے نه به د شيطان ښكر را اوخي.

۵۰۹: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الْاَنْصَارِيُّ حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَطَاءٌ عَنْ جَابِرٍؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا اسْتَجْنَحَ اللَّيْلُ اَوْ كَانَ جُنْحُ اللَّيْلِ فَكُفُّوْا صِبْيَانَكُمْ فَاِنَّ الشَّيَاطِيْنَ تَنْتَشِرُوْنَ حِيْنَئِذٍ فَاِذَا ذَهَبَ سَاعَةٌ مِّنَ الْعَشَاءِ فَخَلُّوْهُمْ وَ اَغْلِقْ بَابَكَ وَاذْكُرِ اسْمَ اللّٰهِ وَ اَطْفِيْءْ مِصْبَاحَكَ وَاذْكُرِ اسْمَ اللّٰهِ وَ اَوْكِ سِقَاءَ كَ وَاذْكُرِ اسْمَ اللّٰهِ وَ خَمِّرْ اِنَائَكَ وَاذْكُرِ اسْمَ اللّٰهِ وَلَوْ تَعْرِضُ عَلَيْهِ شَيْئًا.

۵۰۹: يحيٰي بن جعفر. محمد بن عبدالله انصاري. ابن جريج. عطاء ذ حضرت جابرؓ نه روايت كوي حضور صلي الله عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو. كوم وخت چه ذ شپے تيارهٔ (تاريكي) خوره شي، نو خپل بچي (د كورونونه) بهر مهٔ پريږدئ. ځكه چه دغه وخت شيطانان خوارهٔ شي، څه وخت چه ذ شپے څه حصه تيره شي. نو هغوئ پريږدئ، د الله نوم واخلئ. خپله دروازه بنده كړئ. او ذ الله نوم واخلئ، ډيوه مړهٔ كړئ. او ذ الله نوم واخلئ. د خپلو اوبو لوښے بند كړئ او ذ الله نوم واخلئ. خپل لوښے پټ كړئ كه د پټولو څهٔ څيز بيانه مومئ نو عرضًا څه څيز په هغې كيږدي.

۵۱۰: حَدَّثَنِيْ مَحْمُوْدُ بْنُ

۵۱۰: محمد بن غيلان. عبدالرزاق. معمر.

غَيْلَانَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عَلِيِّ ابْنِ حُسَيْنٍ عَنْ صَفِيَّةَ بِنْتِ حُيَيٍّ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُعْتَكِفًا فَاَتَيْتُهُ اَزُوْرُهُ لَيْلًا فَحَدَّثْتُهُ ثُمَّ قُمْتُ فَانْقَلَبْتُ فَقَامَ مَعِيَ لِيَقْلِبَنِيْ وَكَانَ مَسْكَنُهَا فِيْ دَارِ اُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ فَمَرَّ رَجُلَانِ مِنَ الْاَنْصَارِ فَلَمَّا رَاَيَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَسْرَعَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى رِسْلِكُمَا اِنَّهَا صَفِيَّةُ بِنْتُ حُيَيٍّ فَقَالَا سُبْحَانَ اللّٰهِ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ اِنَّ الشَّيْطَانَ يَجْرِيْ مِنَ الْاِنْسَانِ مَجْرَى الدَّمِ وَ اِنِّيْ خَشِيْتُ اَنْ يَّقْذِفَ فِيْ قُلُوْبِكُمَا سُوْءًا اَوْ قَالَ شَيْئًا.

زهري. علي بن حسين. بي بي صفيه بنت حي نه روايت كوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم يو خلے حالت اعتكاف (جماعت كښې) وو. نو زۀ حضورؐ له ملاقات دَ پاره دَ شپې راغلم. ما حضورؐ سره څه خبرې اترې اوكړې. بيا زۀ واپسئ د پاره راپاسيدم نو حضورؐ هم ماسره څما د رسولو دَ پاره اودريدلو. او دَ بي بي صفيې قيام د اسامه بن زيد په مكان كښې وو. دے كښې دوه انصار اخوا تيريدل. هغوئ چه حضورؐ (دغے حال كښے) اوليدلو، نو تيزئ سره روان شو. حضورؐ ورته اوفرمائيل. اودريږئ. دا ښځه صفيهؓ بنت حي (څما ښځه) ده (زړۀ كښے څۀ بل خيال مۀ راولئ) هغوئ اووے يا رسول اللّٰه صلعم سبحان اللّٰه (آيا مونږ ستاسوؐ متعلق څه بل قسم خيالات كولے شو) حضورؐ ورته اوفرمائيل شيطان د انسان جسم كښے د وينے په شان ژغل كوي. ما سره انديښنه پيدا شوه چه ځرته ستاسوؐ زړۀ كښے (څما متعلق) څه بدګماني پيدا نكړي.

۵۱۱: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ عَنْ اَبِيْ حَمْزَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ صُرَدٍ قَالَ كُنْتُ جَالِسًا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ رَجُلَانِ يَسْتَبَّانِ فَاَحَدُهُمَا احْمَرَّ وَجْهُهُ وَانْتَفَخَتْ اَوْدَاجُهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنِّيْ لَاَعْلَمُ كَلِمَةً لَوْ قَالَهَا ذَهَبَ عَنْهُ مَا يَجِدُ لَوْ قَالَ اَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطَانِ ذَهَبَ عَنْهُ مَا يَجِدُ فَقَالُوْا

۵۱۱: عبدان. ابو حمزه. اعمش. عدي بن ثابت. سليمان بن صرد اوئيل چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم سره ناست ووم. او دوو سړو خپلو كښے كنځل كول، هغوئ كښے د يو مخ د غصے نه سُر شولو او رګونه ئے اوپړسيدل. نو حضورؐ اوفرمائيل ماته يوه داسے خبره معلومه ده كه دا سړے هغه خبره اوكړي نو غصه به ئے لاړه شي كه دے اعوذ باللّٰه من الشيطان الرجيم اووائي نو دده غصه به ختمه شي. خلقو هغه ته اووے چه حضور دغسے فرمائي چه اعوذ باللّٰه

لَهُ اِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ تَعَوَّذْ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطَانِ فَقَالَ وَهَلْ بِيْ جُنُوْنٌ.

من الشيطان الرجيم او وايه نو هغه جواب ورکه ولے زه څه ليونے شوے يم (چه د شيطان نه پناه غوارم).

۵۱۲: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا مَنْصُوْرٌ عَنْ سَالِمِ ابْنِ اَبِي الْجَعْدِ عَنْ كُرَيْبٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ اَنَّ اَحَدَكُمْ اِذَا اَتٰى اَهْلَهُ قَالَ جَنِّبْنِي الشَّيْطَانَ وَ جَنِّبِ الشَّيْطَانَ مَا رَزَقْتَنِيْ فَاِنْ كَانَ بَيْنَهُمَا وَلَدٌ لَمْ يَضُرَّهُ الشَّيْطَانُ وَلَمْ يُسَلَّطْ عَلَيْهِ قَالَ وَ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ سَالِمٍ عَنْ كُرَيْبٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ مِثْلَهُ.

۵۱۲: آدم. شعبه. منصور. سالم بن ابوالجعد. کريب. حضرت عباسؓ نه روايت کوي. رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل کله چه تاسو کښے څوک سرے خپلے بي بي له (کوروالي د پاره) راشي او دا دعا اولولي. اَللّٰهُمَّ جَنِّبِي الشَّيْطٰنَ و جنب الشيطان ما رَزَقْتَنِي. که د هغوئ څه بچے پيدا شي. نو شيطان نه هغه ته څه ضرر رسولے شي او نه په هغه قابو بياموندے شي. اعمش، سالم، کريب هم حضرت ابن عباسؓ نه دا روايت کړيدے.

۵۱۳: حَدَّثَنَا مَحْمُوْدٌ حَدَّثَنَا شَبَابَةُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ زِيَادٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ صَلّٰى صَلٰوةً فَقَالَ اِنَّ الشَّيْطَانَ عَرَضَ لِيْ فَشَدَّ عَلَيَّ يَقْطَعُ الصَّلٰوةَ عَلَيَّ فَاَمْكَنَنِيَ اللّٰهُ مِنْهُ فَذَكَرَهُ.

۵۱۳: محمود. شبابه. شعبه. محمد بن زياد. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي. رسول الله صلي الله عليه وسلّم يو ځلے مونځ اوکه. وے فرمائيل، شيطان ځما مخے ته راغے. او (ځما د مونځ ماتولو پوره کوشش ئے اوکړو خو الله تعالٰي ماله په هغه قابو راکړلو بيائے پوره حديث بيان که.

۵۱۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا الْاَوْزَاعِيُّ عَنْ اَبِيْ كَثِيْرٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا نُوْدِيَ بِالصَّلٰوةِ اَدْبَرَ الشَّيْطَانُ وَلَهُ ضُرَاطٌ فَاِذَا قُضِيَ اَقْبَلَ

۵۱۴: محمد بن يوسف. اوزاعي. يحيٰي بن ابي کثير. ابو سلمه. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، چه رسول الله صلعم اوفرمائيل. کوم وخت چه مونځ د پاره اذان کيږي نو شيطان را تيزونه اچوي، تښتي. کوم وخت چه آذان ختم شي نو مخے ته راشي. بيا چه اقامت شروع

فَاِذَا ثُوِّبَ بِهَا اَدْبَرَ فَاِذَا قُضِيَ اَقْبَلَ فَاِذَا ثُوِّبَ بِهَا اَدْبَرَ فَاِذَا قُضِيَ اَقْبَلَ حَتّٰي يَخْطُرَ بَيْنَ الْاِنْسَانِ وَ قَلْبِهٖ فَيَقُوْلُ اُذْكُرْ كَذَا وَ كَذَا حَتّٰي لَا يَدْرِيْ اَثَلٰثًا صَلّٰي اَمْ اَرْبَعًا فَاِذَا لَمْ يَدْرِ ثَلٰثًا صَلّٰي اَوْ اَرْبَعًا سَجَدَ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ.

شي نو تختي. او کوم وخت چه اقامت پوره شي نو مخے ته راشي او د انسان زړهٔ کښے وسوسے غرخوي اووائي. فلانئ خبره رایاده کړه او فلانے کار راياد کړه. حتي چه هغه سړي ته دا ياد پاتے نشي چه درے رکعاته ئے اوکړل يا څلور رکعاته نو د سهوے دوه سجدے دِ اوکړي.

۱. دا دَ "وَلَهٗ ضُرَاط" ترجمه ده. دَ سختے ويرے او انتهائي پريشانئ د پاره به هم ددے اسعمال کيدلو اوغالبًا په حديث کښے هم د همدے مفهوم د پاره راغلے دے په حقيقي معنٰي باندے هم محمول کيدے شي. ليکن بهرحال مفهوم به ئے همغه وي چه په انتهائي پريشانه حالئ کښے تښتي چه د روستو کتلو ورته فرصت نه وي. دا تعبير دے د پاره اختيار کړے شوے دے چه دَ اَذان اوريدلو سره په شيطان باندے کوم د پريشانئ او د ويرے کيفيت طاري کيږي د هغے تصوير مخے ته راشي.

۵۱۵: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّ بَنِيْ اٰدَمَ يَطْعُنُ الشَّيْطَانُ فِيْ جَنْبَيْهِ بِاِصْبَعِهٖ حِيْنَ يُوْلَدُ غَيْرَ عِيْسَى ابْنِ مَرْيَمَ ذَهَبَ يَطْعُنُ فَطَعَنَ فِي الْحِجَابِ.

۵۱۵: ابواليمان. شعيب. ابو الزناد. اعرج. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي. رسول اللّٰه صلعم اوفرمائيل د هر بني آدم د پيدا کيدو په وخت شيطان په هغهٔ ټونکي وهي، سِوا دَ حضرت عيسٰيؑ نه چه هغه خو ټونکے ورکولو له ورغلے وو نو هغه دَ پاسه پردے باندِ ټونګه ورکړه.

۵۱۶: حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا اِسْرَائِيْلُ عَنِ الْمُغِيْرَةِ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ قَالَ قَدِمْتُ الشَّامَ قَالُوْا اَبُو الدَّرْدَاءِ قَالَ اَفِيْكُمُ الَّذِيْ اَجَارَهُ اللّٰهُ مِنَ الشَّيْطَانِ عَلٰى لِسَانِ نَبِيِّهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۵۱۶: مالک بن اسمٰعيل. اسرائيل. مغيره. ابراهيم. علقمه نه روايت کوي. هغه وائي. زهٔ ملک شام ته لاړم. ما د خلقو نه تپوس اوکه، دلته څوک (صحابيؓ) شته هغوئ اووے ابوالدرداء شته. هغه اووے آيا تاسو کښے هغه سړے هم شته چه هغه اللّٰه تعالٰي د خپل نبيؐ په ژبه د شيطٰن نه محفوظ کړيدے.

۵۱۷: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُغِيْرَةَ وَ قَالَ الَّذِيْ اَجَارَهُ اللّٰهُ عَلٰى لِسَانِ نَبِيِّهٖ

۵۱۷: سليمان بن حرب. شعبه. مغيره نه روايت کوي. هغه سړے چه هغه اللّٰه تعالٰي د خپل رسول په ژبه د شيطان نه محفوظ کړيدے. عمار بن

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْنِيُ عَمَّارًا قَالَ وَ قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيُ خَالِدُ بُنُ يَزِيُدَ عَنُ سَعِيُدِ بُنِ اَبِيُ هِلَالٍ اَنَّ اَبَا الْاَسُوَدِ اَخُبَرَهُ عُرُوَةُ عَنُ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْمَلَائِكَةُ تَتَحَدَّثُ فِي الْعَنَانِ وَالْعَنَانُ الْغَمَامُ بِالْاَمُرِ يَكُوْنُ فِي الْاَرُضِ فَتَسُمَعُ الشَّيٰطِيُنُ الْكَلِمَةَ فَتَقُرُّهَا فِيُ اُذُنِ الْكَاهِنِ كَمَا تُقَرُّ الْقَارُوَرَةُ فَيَزِيُدُوُنَ مَعَهَا مِائَةَ كَذِبَةٍ.

ياسر دے. ليث خالد بن يزيد. سعيد بن ابي هلال ابو الاسود. عروه. بي بي عائشے نه روايت كوي، رسالت مآب صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل فرښتے وريځ كښے راشي او د هغے خبرو تذكره كوي چه دنيا كښے به كيږي نو شيطانان هغے كښے څۀ خبره نيمه واوري او تښتي. او هغه د كاهنانو په غوږ كښے داسے اوغرغوي، لكه شيشه كښے (چه اوبه وغيره) غرغولے شي نو هغه كاهن هغے كښے سل دروغ خبرے زياتے شي (او خلقوته ئے بيانوي).

۵۱۸: حَدَّثَنَا عَاصِمُ بُنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا ابُنُ اَبِيُ ذِئْبٍ عَنُ سَعِيُدِ الْمُقُبَرِيِّ عَنُ اَبِيُهِ عَنُ اَبِيُ هُرَيُرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ التَّثَاؤُبُ مِنَ الشَّيُطَانِ فَاِذَا تَثَاءَ بَ اَحَدُكُمُ فَلْيَرُدَّهُ مَا اسْتَطَاعَ فَاِنَّ اَحَدَكُمُ اِذَا قَالَ هَاضَحِكَ الشَّيُطَانُ.

۵۱۸: عاصم بن علي. ابن ابي ذهب. سعيد مقبري. د هغۀ پلار حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي. رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل اسويلے كول د شيطان د طرف نه دي، تاسو كښے چه چاته اسويلے راشي. نو د خپله وسه پورے دِ هغه بندوي. ځكه چه اسويلي كولو په وخت څوك "ها" كوي نو شيطان خاندي[1].

[1]. څرنګ چه دَ اسويلي نسبت شيطان طرفته شوے دے، د اينګي (پرنجي) اِسناد په نورو احاديثو كښے رحمان طرفته شوے دے، وجه داده چه اسويلے د سستئ او ناراستئ علامت دے كوم سره چه شيطان خوشحاليږي دے د پاره ددے نسبت شيطان طرفته كړے شوے دے، ولے چه د خبائثو او بدو نسبت شيطان طرفته كيږي. بل طرفته كه چرے د څه بيمارئ نتيجه نه وي نو په عامو حالاتو كښے اينګي سره طبيعت كښے چُستي او جَوذت پيدا كيږي په دے وجه ددے نسبت رحمان طرفته اوكړے شو، ولے چه طَيّبات او ښول ښه والي الله طرفته منسوب دي.

۵۱۹: حَدَّثَنَا زَكَرِيَّاءُ بُنُ يَحُيٰى حَدَّثَنَا اَبُوُ اُسَامَةَ قَالَ هِشَامٌ اَخُبَرَنَا عَنُ اَبِيُهِ عَنُ عَائِشَةَ قَالَتُ لَمَّا كَانَ يَوُمُ اُحُدٍ هُزِمَ

۵۱۹: زكريا بن يحيٰي. ابو اسامه. هشام. دَ هغۀ پلار. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، هغے اوفرمائيل دَ اُحد په ورځ چه كفار په تيښته شو، نو ابليس چغے كړے. ونيلے اے مسلمانانو، خپل ورستو واله وهئ (چه

الْمُشْرِكُونَ فَصَاحَ اِبْلِيْسُ اَىْ عَبَادَ اللّٰهِ اُخْرٰكُمْ فَرَجَعَتْ اُوْلَاهُمْ فَاجْتَلَدَتْ هِيَ وَ اُخْرٰهُمْ فَنَظَرَ حُذَيْفَةُ فَاِذَا هُوَ بِاَبِيْهِ الْيَمَانِ فَقَالَ اَىْ عِبَادَ اللّٰهِ اَبِيْ اَبِيْ فَوَاللّٰهِ مَا احْتَجَزُوْا حَتّٰى قَتَلُوْهُ فَقَالَ حُذَيْفَةُ غَفَرَ اللّٰهُ لَكُمْ قَالَ عُرْوَةُ فَمَا زَالَتْ فِيْ حُذَيْفَةَ مِنْهُ بَقِيَّةُ خَيْرٍ حَتّٰى لَحِقَ اللّٰهَ.

كافر دي، حالانكه ورستو هم مسلمانان وو) نو مخكښي واله ورستوته رامات شو. او خپلو كښي په جګړه شو، حذيفه خپل پلار "اليمان" اوليدلو (چه مسلمانان په هغه حمله كول غوارې حالانكه هغه مسلمان وو) نو هغهٔ ونيلے، اے مسلمانانو خما پلار (مسلمان دے) خو قسم په خدائے هغوئ منع نه شولو. حتٰي چه دَ هغهٔ پلار ئے قتل كه حذيفه اووے. اللّٰه دِ تاسو معاف كړي. عروه وائي. حذيفه ته برابر ددے خبرے خفګان وو تردے چه په حق اورسيدلو.

۵۲۰: حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ الرَّبِيْعِ حَدَّثَنَا اَبُو الْاَحْوَصِ عَنْ اَشْعَثَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ مَسْرُوْقٍ قَالَ قَالَتْ عَائِشَةُ سَاَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْتِفَاتِ الرَّجُلِ فِي الصَّلٰوةِ فَقَالَ هُوَ اخْتِلَاسٌ يَّخْتَلِسُ الشَّيْطَانُ مِنْ صَلٰوةِ اَحَدِكُمْ.

۵۲۰: حسن بن ربيع. ابوالاحوص. اشعث. دَ هغهٔ پلار. مسروق. بي بي عائشے رضي الله عنها نه روايت كوي. هغه فرمائي. ما د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه مونځ كښے دَ اخوا ديخوا كتلو باره كښے تپوس اوكهٔ. نو حضور ﷺ اوفرمائيل، دا يو څوكه ده چه شيطان تاسو كښے چاسره په مانځهٔ كښے كوي.

۵۲۱: حَدَّثَنَا اَبُو الْمُغِيْرَةِ حَدَّثَنَا الْاَوْزَاعِيُّ قَالَ حَدَّثَنِيْ يَحْيٰى عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ قَتَادَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۵۲۱: ابوالمغيره. اوزاعي. يحيٰي. حضرت عبداللّٰه. ابو قتادة رضي الله عنه نه روايت كوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل (سند اول).

۵۲۲: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ حَدَّثَنَا الْوَلِيْدُ حَدَّثَنَا الْاَوْزَاعِيُّ قَالَ حَدَّثَنِيْ يَحْيٰى بْنُ اَبِيْ كَثِيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِيْ قَتَادَةَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرُّؤْيَا

۵۲۲: سليمان بن عبدالرحمٰن. وليد. اوزاعي. يحيٰي بن ابي كثير. عبداللّٰه بن ابو قتاده دَ خپل پلار ابو قتاده نه روايت كوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل ښهٔ خوب دَ اللّٰه دَ جانب نه دے او خراب د شيطان دَ طرف نه، هر كله چه تاسو كښے څوك داسے خوب اووينى چه ويريدونكے

الصَّالِحَةُ مِنَ اللّٰهِ وَالْحُلْمُ مِنَ الشَّيْطَانِ فَإِذَا حَلَمَ اَحَدُكُمْ حُلُمًا يَخَافُهُ فَلْيَبْصُقْ عَنْ يَسَارِهِ وَلْيَتَعَوَّذْ بِاللّٰهِ مِنْ شَرِّهَا فَإِنَّهَا لَا تَضُرُّهُ.

وي. نو هغه دې خپل كس طرف ته اوتوكي. او دَ اللّٰه په ذريعه دې د هغې خوب د شر نه پناه اوغواړي، نو هغه خوب هغه ته هيڅ ضرر نشي رسولې (سند دوم).

۵۲۳ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ سُمَيٍّ مَوْلٰى اَبِيْ بَكْرٍ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ قَالَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيْكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ فِيْ يَوْمٍ مِائَةَ مَرَّةٍ كَانَتْ لَهُ عَدْلُ عَشْرِ رِقَابٍ وَ كُتِبَتْ لَهُ مِائَةُ حَسَنَةٍ وَ مُحِيَتْ عَنْهُ مِائَةُ سَيِّئَةٍ وَّ كَانَتْ لَهُ حِرْزًا مِنَ الشَّيْطَانِ يَوْمَهُ ذٰلِكَ حَتّٰى يُمْسِيَ وَلَمْ يَأْتِ اَحَدٌ بِاَفْضَلَ مِمَّا جَاءَ بِهِ اِلَّا اَحَدٌ عَمِلَ اَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ.

۵۲۳ : عبداللّٰه بن يوسف. مالك د ابوبكر آزاد كړده غلام سمي. ابو صالح. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. چا چه روزانه سل ځله دا دعا اولوسته (ترجمه) دَ اللّٰه نه سِوا هيڅوك معبود نشته، هغه يو دې. دَ هغهٔ هيڅوك شريك نشته. دَ هغهٔ حكومت دې او ټول تعريف هغه له دې. او هغه په هر څيز قادر دې نو هغه ته به دَ لسُ غلامانو د آزادولو برابر ثواب حاصليږي. سل نيكئ به د هغه د پاره ليكلې شي او سل بدئ به ترې لرې كولې شي او هغه به په هغه ورځ د ماښام پورې د شيطان نه محفوظ وي او هيڅوك به ددې نه د بهتر ثواب عمل پيش نه كړې شي خو هغه سړې چه هغه دا دعا ددې نه زياته اولولي.

۵۲۴ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا اَبِيْ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَبْدُ الْحَمِيْدِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ زَيْدٍ اَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ سَعْدِ بْنِ وَقَّاصٍ اَخْبَرَهُ اَنَّ اَبَاهُ سَعْدَ بْنَ اَبِيْ وَقَّاصٍ قَالَ اسْتَأْذَنَ عُمَرُ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ عِنْدَهُ نِسَاءٌ مِنْ قُرَيْشٍ يُكَلِّمْنَهُ وَ

۵۲۴ : علي بن عبداللّٰه. يعقوب بن ابراهيم. دَ هغهٔ پلار. صالح. ابن شهاب. عبدالحميد بن عبدالرحمٰن بن زيد. محمد بن سعد بن ابي وقاص. حضرت سعد بن ابي وقاصؓ نه روايت كوي، هغه وائي يو ځلې حضرت عمرؓ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه د راتلو اجازت طلب كه. او هغه وخت حضورؐ سره د قريشو ځنې ښځې خبرو اترو كښې وې. او اوچت آوازونو سره ئې په زوره خبرې كولې. حضرت عمرؓ چه اجازت اوغوښتلو، نو هغوئ

يَسْتَكْثِرُنَهُ عَالِيَةً اَصْوَاتُهُنَّ فَلَمَّا اسْتَأْذَنَ عُمَرُقُمْنَ يَبْتَدِرْنَ الْحِجَابَ فَاذِنَ لَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَضْحَكُ فَقَالَ عُمَرُ اَضْحَكَ اللّٰهُ سِنَّكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَقَالَ عَجِبْتُ مِنْ هٰؤُلَاءِ الَّتِيْ كُنَّ عِنْدِيْ فَلَمَّا سَمِعْنَ صَوْتَكَ ابْتَدَرْنَ الْحِجَابَ قَالَ عُمَرُ فَاَنْتَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُنْتَ اَحَقَّ اَنْ يَّهَبْنَ ثُمَّ قَالَ اَيْ عَدُوَّاتِ اَنْفُسِهِنَّ اَتَهَبْنَنِيْ وَلَا تَهَبْنَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْنَ نَعَمْ اَنْتَ اَفَظُّ وَ اَغْلَظُ مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ مَا لَقِيَكَ الشَّيْطَانُ قَطُّ سَالِكًا فَجًّا اِلَّا سَلَكَ فَجًّا غَيْرَ فَجِّكَ.

پاسیدلې. په تادئ پرده کښې شولې. رسول اللّٰه صلعم په خندا سره حضرت عمرؓ ته دَ راتلو اجازت ورکه. حضرت عمرؓ عرض اوکه یا رسول اللّٰهَ خدائې دِ کړي چه تاسو هر وخت په خندائ دې وخت دَ مُسکې کیدو باعث څهٔ څیز دې. حضورؐ ورته اوفرمائیل ماته په دې ښځو تعجب راځي چه ماسره ناستې وې هغوئ چه ستا آواز واوریدلو. نو تادئ سره پرده کښې ننوتلې. حضرت عمرؓ عرض اوکه یا رسول اللّٰهؐ (څما په نسبت) تاسونه دَ ویریدو حق زیات دې. بیا حضرت عمرؓ (هغې ښځو ته خطاب اوکه) وئیلې. اې د خپل ځان دښمنانو تاسو څما نه ویریږئ. او رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم نه' نهٔ ویریږئ. هغوئ اووې' او (ته د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم په نسبت زیات سخت طبیعته ئې. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل. قسم دې په هغه ذات چه دَ هغهٔ په قبضه کښې څما ساه ده. کله چه شیطان په یوه لاره کښې تا په تلو اووینې نو ستا لار پریږدي په بله لار روان شي).

۵۲۵ : حَدَّثَنِيْ اِبْرَاهِيْمُ بْنُ حَمْزَةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ يَزِيْدَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عِيْسَى ابْنِ طَلْحَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا اسْتَيْقَظَ اُرَاهُ اَحَدُكُمْ مِنْ مَنَامِهٖ فَتَوَضَّاَ فَلْيَسْتَنْثِرْ ثَلٰثًا فَاِنَّ الشَّيْطَانَ يَبِيْتُ عَلٰى خَيْشُوْمِهٖ.

۵۲۵ : ابراهیم بن حمزه. ابن ابي حازم. یزید. محمد بن ابراهیم. عیسٰي بن طلحه. حضرت ابوهریرهٔ نه روایت کوي. حضور صلعم اوفرمائیل. کله چه څوک د خوب نه بیدار شي او اودس اوکړي نو درې ځله دې پوزه کښې اوبهٔ واچوي' سونړ دې کړي. ځکه چه شیطان شپه دَ هغهٔ دَ پوزې په سپیږمه کښې تیروي.

## بَابٌ ۲۹۶ : ذِكْرِ الْجِنِّ وَ

## باب ۲۹۶ : پیریان (جن) او دَ هغوئ دَ ثواب او

ثَوَابِهِمْ وَ عِقَابِهِمْ. لِقَوْلِهٖ يَا مَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْإِنْسِ اَلَمْ يَأْتِكُمْ رُسُلٌ مِنْكُمْ يَقُصُّوْنَ عَلَيْكُمْ اٰيَاتِيْ اِلٰى قَوْلِهٖ عَمَّا يَعْمَلُوْنَ بَخْسًا نَقْصًا قَالَ مُجَاهِدٌ وَ جَعَلُوْا بَيْنَهٗ وَ بَيْنَ الْجِنَّةِ نَسَبًا قَالَ كُفَّارُ قُرَيْشٍ الْمَلٰٓئِكَةُ بَنَاتُ اللّٰهِ وَ اُمَّهَاتُهُمْ بَنَاتُ سَرَاوَاتِ الْجِنِّ قَالَ اللّٰهُ وَلَقَدْ عَلِمَتِ الْجِنَّةُ اِنَّهُمْ لَمُحْضَرُوْنَ سَتُحْضَرُ لِلْحِسَابِ جُنْدٌ مُحْضَرُوْنَ عِنْدَ الْحِسَابِ.

عذاب بیان. ددے دلیل د اللّٰه تعالٰي دا قول دے چه اے د جن و انس ډلے، آیا خما پیغمبران تاسوته خما آیتونه بیانولو سره او ذَ قیامت ذَ ورځے ذَ پیښئ نه ویرولو سره نه وو راغلي، عما یعملون پورے بخسًا معني نقصان مجاهد اوفرمائیل چه آیت کریمه او دے کافرانو د خدائے او پیریانو مینځ کښے رشته قایمه کړیده. ددے تشریح دا کړیده. کفارِ قریش به داسے وئیل چه فرښتے ذَ خدائے لونړه دي او ذَ پیریانو، د سردارانو لونړه ددے فرښتو میندے دي، نو اللّٰه تعالٰي ددے په تردید کښے اوفرمائیل بیشکه پیریان (جنات) پوهیږي چه هغوئ به حساب د پاره حاضرولے شي جند محضرون یعني عند الحساب.

۵۲۶: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ عَنْ مَالِكٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِيْ صَعْصَعَةَ الْاَنْصَارِيِّ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّهٗ اَخْبَرَهٗ اَنَّ اَبَا سَعِيْدِ الْخُدْرِيَّ قَالَ لَهٗ اِنِّيْ اَرَاكَ تُحِبُّ الْغَنَمَ وَالْبَادِيَةَ فَاِذَا كُنْتَ فِيْ غَنَمِكَ وَ بَادِيَتِكَ فَاَذَّنْتَ بِالصَّلٰوةِ فَارْفَعْ صَوْتَكَ بِالنِّدَآءِ فَاِنَّهٗ لَا يَسْمَعُ مَدٰى صَوْتِ الْمُؤَذِّنِ جِنٌّ وَلَا اِنْسٌ وَلَا شَيْءٌ اِلَّا شَهِدَ لَهٗ يَوْمَ الْقِيَامَةِ قَالَ اَبُوْ سَعِيْدٍ سَمِعْتُهٗ مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَوْلُ اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ وَ اِذْ صَرَفْنَا

۵۲۶: قتیبه. مالک. عبدالرحمٰن بن عبداللّٰه بن عبدالرحمٰن بن ابي صعصعه انصاري ذَ خپل پلار نه روایت کوي. هغه وائي هغه ته یوه ورځ ابو سعید خدريؓ اوفرمائیل زۀ تا وینم چه تۀ چیلئ اوځنګل خوښه وے. کله چه تۀ خپلو چیلو سره ځنګل کښے ئے بیا ذَ مونځ آذان کوے، نو خپل آواز آذان کښے اوچتوه، ځکه چه د مؤذن آواز کوم جن و انس یا بل څه څیز واوري، هغه ذَ قیامت په ورځ به ذَ هغۀ ذَ پاره ګواهي ورکوي. ابو سعید وائي ما دا خبره د رسول اللّٰه صلعم نه اوریدلے ده، او فرمان الٰهي! او هغه وخت را یاد کړه چه مونږ تا پله ذَ جناتو (پیریانو) ذَ یوے ډلے رُخ کړلو چه قرآن پاک ئے اوریدلو. کوم وخت چه هغوئ د قرآن تلاوت ته اورسیدل نو وئیلے خاموش شئ څه وخت چه تلاوت ختم شو نو هغوئ د خپل قوم ذَ ویرولو ذَ پاره واپس

اِلَيْكَ نَفَرًا مِّنَ الْجِنِّ اِلٰى قَوْلِهٖ فِيْ ضَلَالٍ مُّبِيْنٍ مَصْرِفًا مَعْدِلًا صَرَفْنَا اَيْ وَجَّهْنَا.

راغلـل' في ضلال مبين پورے. دے نه دَ جناتو مکلف کيدل معلوم شولو. مصرفا. د واپس کيدو ځائے. صرفنا يعني مونږ متوجه کړل. رُخ مو ورله او ګرځولو.

باب ۲۹۷: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ بَثَّ فِيْهَا مِنْ كُلِّ دَابَّةٍ. قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ الثُّعْبَانُ الْحَيَّةُ الذَّكَرُ مِنْهَا يُقَالُ الْحَيَّاتُ اَجْنَاسٌ الْجَانُّ وَالْاَفَاعِيُّ وَالْاَسَاوِدُ اٰخِذٌ بِنَاصِيَتِهَا فِيْ مُلْكِهٖ وَ سُلْطَانِهٖ يُقَالُ صَافَّاتٍ بُسُطٍ اَجْنِحَتَهُنَّ يَقْبِضْنَ يَضْرِبْنَ بِاَجْنِحَتِهِنَّ.

باب ۲۹۷: دَ اللّٰه تعالٰي قول چه اللّٰه زمکه کښے هر قسم خناور پيدا کړل او خوارهٔ کړل. ابن عباسؓ اوفرمائيل ثعبان نر مارته وائي ونيلے شي چه دَ مار مختلف قسمونه دي لکه جَانٌ باريک مار. افاعي. اژدها. اساود: تور ناګ اٰخذ بناصيتها: يعني ټول دهغه حکومت او سلطنت کښے دي د صافات معني وزر خوارهٔ کړي يقبضن يعني خپل پر خوزَوي.

۵۲۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ اَنَّهٗ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ عَلَى الْمِنْبَرِ يَقُوْلُ اقْتُلُوا الْحَيَّاتِ وَاقْتُلُوْا ذَالطُّفْيَتَيْنِ وَالْاَبْتَرَ فَاِنَّهُمَا يَطْمِسَانِ الْبَصَرَ وَ يَسْتَسْقِطَانِ الْحَبْلَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ فَبَيْنَا اَنَا اُطَارِدُ حَيَّةً لِاَقْتُلَهَا فَنَادَانِيْ اَبُوْ لُبَابَةَ لَا تَقْتُلْهَا فَقُلْتُ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ اَمَرَ بِقَتْلِ الْحَيَّاتِ قَالَ اِنَّهٗ نَهٰى بَعْدَ ذٰلِكَ عَنْ ذَوَاتِ الْبُيُوْتِ وَ هِيَ الْعَوَامِرُ وَ قَالَ عَبْدُ الرَّزَّاقِ عَنْ مَعْمَرٍ فَرَاٰنِيْ اَبُوْ لُبَابَةَ اَوْ زَيْدُ بْنُ الْخَطَّابِ وَ

۵۲۷: عبداللّٰه بن محمد. هشام بن يوسف. معمر. زهري. سالم. حضرت ابن عمرؓ نه روايت کوي. هغهٔ د حضورؐ نه په منبر دَ خطبے په دوران کښے واوريدل' چه ماران وژنئ خاص طور سره هغه ماران چه دَ هغے په سر دوه نقطے وي يوه توره او بله سپينه' يا په جسم ئے دوه کرښے وي. او وړوکے لکئ واله ماران هم وژنئ. ځکه چه دا دواړه د سترګو رنړا ختموي او حمل غورځوي. حضرت عبداللّٰه بن عمرؓ فرمائي يو ورځے ما يو مار وژلو دَ پاره د سوړے نه راوښکلو چه ماته ابو لبابه آواز راکه اوونيلے دا مهٔ وژنه' ما اووے رسول اللّٰه صلعم دَ مارانو د وژلو حکم فرمائيلے دے' هغه اووے هغے نه پس حضورؐ کورونو کښے د اوسيدونکو مارانو د وژلو نه' هغے ته عوامر وائي منع فرمائيلے ده عبدالرزاق د معمر نه دا الفاظ زيات روايت کړيدي چه ماته ابو لبابه يا زيد بن

تَابَعَهُ يُونُسُ وَابْنُ عُيَيْنَةَ وَ إِسْحَاقُ الْكَلْبِيُّ وَالزُّبَيْدِيُّ وَ قَالَ صَالِحٌ وَابْنُ أَبِيْ حَفْصَةَ وَابْنُ مُجَمِّعٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَأَنِيْ أَبُوْ لُبَابَةَ وَ زَيْدُ بْنُ الْخَطَّابِ.

الخطاب اوويے، او ددے متابع حديث يونس او ابن عيينه او اسحاق كلبي او زبيدي روايت كړيدے او صالح او ابن ابي حفصه او ابن مجمع دَ زهري سالمؒ ابن عمرؓ نه دا الفاظ روايت كړيدي چه زهٔ ابو لبابه او زيد بن خطاب اوليدم.

۱. د حديث ظاهري الفاظو نه تعميم مفهوميږي. ليكن امام مالك رحمة الله عليه نه مروي دي چه منع والے خاص د مدينے منورے د كورونو مارانو نه راغلے دے. بعضو حضراتو د ښارونو په مكانانو كښے دَ اوسيدونكو مارانو دَ وژلو حده پورے د منع والي تعميم كړے دے. بهرحال د منع والي وجه داده چه عموماً د كورونو ماران جنات وي كوم چه كله كله د مار په شكل كښے متشكل كيږي، دَ ابو سعيد خدري رضي الله عنه په يو حديث كښے منقول دي چه حضور صلي الله عليه وسلّم فرمائيلي دي چه په دے كورونو كښے اوسيدونكي ماران عوامر وي، دے د پاره كله چه تاسو هغوئ اووينئ نو درے (خلے يا ورځے) هغوئ ته خبردارے اوكړئ، كه چرے ددے نه پس هم هغوئ منع نه شو نو بيائے اووژنئ.

## بَاب ۲۹۸ : خَيْرُ مَالِ الْمُسْلِمِ غَنَمٌ يَتْبَعُ شَعَفَ الْجِبَالَ.

باب ۲۹۸ : دَ مسلمان بهترين مال چيلئ (بكرياں) دي. چه دَ ځزيدو دَ پاره غرونو، درو ته ئے بوځي.

۵۲۸ : حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ أَبِيْ أُوَيْسٍ قَالَ حَدَّثَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِيْ صَعْصَعَةَ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ أَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوْشِكُ أَنْ يَكُوْنَ خَيْرَ مَالِ الرَّجُلِ غَنَمٌ يَتْبَعُ بِهَا شَعَفَ الْجِبَالِ وَ مَوَاقِعَ الْقَطْرِ يَفِرُّ بِدِيْنِهِ مِنَ الْفِتَنِ.

۵۲۸ : اسمعيل بن ابي اويس. مالك. عبدالرحمن بن عبدالله بن عبدالرحمن بن ابي صعصعه، د هغه پلار حضرت ابو سعيد خدريؓ نه روايت كوي. حضورؐ ارشاد اوفرمائيلو، هغه زمانه ډيره قريب ده چه د مسلمان بهترين مال به چيلئ وي چه هغه به د غرونو، درو ته او ځنګلونو ته بوځي. او خپل دين به د فتنو نه تحفظ ساتي.

۵۲۹ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ أَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

۵۲۹ : عبدالله بن يوسف. مالك. ابوالزناد. اعرج. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي. حضور صلي الله عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو دَ كفر سر، مشرق

رَأْسُ الْكُفْرِ نَحْوَ الْمَشْرِقِ وَالْفَخْرُ وَالْخُيَلَاءُ فِي أَهْلِ الْخَيْلِ وَالْإِبِلِ وَالْفَدَّادِينَ أَهْلِ الْوَبَرِ وَالسَّكِينَةُ فِي أَهْلِ الْغَنَمِ.

طرف ته دے فخر او تكبر اوښ او اس والو كښې دے او كاشتكار كلي والو كښې دے. او سكون چيلو والو كښې دے.

۵۳۰: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ إِسْمَاعِيلَ قَالَ حَدَّثَنِي قَيْسٌ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَمْرٍو أَبِي مَسْعُودٍ قَالَ أَشَارَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ الْيَمَنِ فَقَالَ الْإِيْمَانُ يَمَانٍ هٰهُنَا أَلَا إِنَّ الْقَسْوَةَ وَغِلَظَ الْقُلُوبِ فِي الْفَدَّادِينَ عِنْدَ أُصُولِ أَذْنَابِ الْإِبِلِ حَيْثُ يَطْلُعُ قَرْنَا الشَّيْطَانِ فِي رَبِيعَةَ وَمُضَرَ.

۵۳۰: مسدد. يحيى. اسمعيل. قيس. حضرت عقبه بن عمرو. ابو مسعودؓ نه روايت كوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خپل لاس سره يمن طرف ته اشاره اوكړه وے فرمائيل، چه ايمان خو دغلته دے، سختي او سنگدلي كاشتكارانو كښې ده چه دَ اوښانو لكو سره اودريږي چغې وهي چه دَ هغے ځائے نه د شيطان دواړه ښكر اوخي يعني قبائل ربيعه او مضر كښې.

۵۳۱: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ جَعْفَرِ بْنِ رَبِيعَةَ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا سَمِعْتُمْ صِيَاحَ الدِّيَكَةِ فَاسْأَلُوا اللّٰهَ مِنْ فَضْلِهِ فَإِنَّهَا رَأَتْ مَلَكًا وَإِذَا سَمِعْتُمْ نَهِيقَ الْحِمَارِ فَتَعَوَّذُوا بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطَانِ فَإِنَّهُ رَأَى شَيْطَانًا.

۵۳۱: قتيبه. ليث. جعفر بن ربيعه. اعرج. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي. رسول صلعم اوفرمائيل كله چه تاسو دَ چرګ آذان واورئ نو اللّٰه نه دَ هغهٔ دَ رحمت او فضل دُعا غواړئ، ځكه چه هغې چرګ فرښته اوليدله، او كله چه تاسو دَ خر آواز واورئ نو دَ شيطان نه د خدائے پناه غواړئ ځكه چه هغه شيطان ليدلے دے.

۵۳۲: حَدَّثَنَا إِسْحٰقُ أَخْبَرَنَا رَوْحٌ أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ أَخْبَرَنِي عَطَاءٌ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِؓ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَانَ جُنْحُ اللَّيْلِ أَوْ أَمْسَيْتُمْ

۵۳۲: اسحاق. روح. ابن جريج. عطاء. حضرت جابر بن عبداللّٰه نه روايت كوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. كله چه دَ شپے تياره (تاريكي) راشي، يا وے فرمائيل كله چه مابنام شي نو تاسو خپل بچي

فَكُفُّوا صِبْيَانَكُمْ فَإِنَّ الشَّيَاطِينَ تَنْتَشِرُ حِينَئِذٍ فَإِذَا ذَهَبَ سَاعَةٌ مِنَ اللَّيْلِ فَخَلُّوهُمْ وَ اَغْلِقُوا الْاَبْوَابَ وَاذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ لَا يَفْتَحُ بَابًا مُغْلَقًا قَالَ وَ اَخْبَرَنِيْ عَمْرُو بْنُ دِيْنَارٍ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ نَحْوَ مَا اَخْبَرَنِيْ عَطَاءٌ وَلَمْ يَذْكُرْ وَاذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ.

بهر ته د تللو نه منع کړئ ځکه چه دے وخت کښې شیطانان خوریږي او څه وخت چه لږه شپه تیره شي، نو هغوئ پریښودې شي. او دَ اللّٰه نوم واخلئ، دروازے بندے کړئ، ځکه چه شیطانان بندے دروازے نه پرانزي او عمرو بن دینار، جابر بن عبداللّٰه نه دغسے روایت کوي. لیکن هغه د اللّٰه نوم اخستو الفاظ نه روایت کوي.

۵۳۳ : حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ خَالِدٍ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فُقِدَتْ اُمَّةٌ مِنْ بَنِيْ اِسْرَائِيْلَ لَا يُدْرٰى مَا فَعَلَتْ وَ اِنِّيْ لَا اُرَاهَا اِلَّا الْفَارَ اِذَا وُضِعَ لَهَا اَلْبَانُ الْاِبِلِ لَمْ تَشْرَبْ وَ اِذَا وُضِعَ لَهَا اَلْبَانُ الشَّاءِ شَرِبَتْ فَحَدَّثْتُ كَعْبًا فَقَالَ اَنْتَ سَمِعْتَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُهُ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ لِيْ مِرَارًا فَقُلْتُ اَفَاَقْرَأُ التَّوْرَاةَ.

۵۳۳ : موسیٰ بن اسمٰعیل. وهیب. خالد. محمد. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل دَ بني اسرائیلو یوه ډله ورکه شوه، معلومه نه ده چه څه شوه ځما خیال دے. چه دا مږے (مسخ شوے صورت کښې) هغه ورکه شوے ډله ده، دغه وجه ده چه دَ مږو مخکښې دَ اوښو پئے کیښودے شي، نو هغوئ ئے نه څکي. او دَ چیلو وغیره پئے چه ورته کیښودے شي، نو هغه څکي. بیا ما کعب ته دا حدیث بیان که نو هغه اووے، تا خپله دا د حضورؐ نه اوریدلي دي، ما اووے، او هغه څو ځله ما ته اووے، نو ما اووے چه نور څه آیا ما تورات لوستے دے (چه د هغے نه ئے درته بیانوم؟)

۵۳۴ : حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ عَنِ ابْنِ وَهْبٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ يُحَدِّثُ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِلْوَزَغِ الْفُوَيْسِقُ

۵۳۴ : سعید بن عفیر. ابن وهب. یونس. ابن شهاب. عروه. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم کرکټه ته فُوَيْسِقُ (شرارتي) اووے، او ما د حضورؐ نه ددے د وژلو حکم نه دے آوریدلے او د سعد

وَلَمْ اَسْمَعْهُ اَمَرَ بِقَتْلِهٖ وَ زَعَمَ سَعْدُ بْنُ اَبِيْ وَقَّاصٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمَرَ بِقَتْلِهٖ.

بن ابي وقاص دا دعوي ده چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ددے د وژلو حکم فرمائيلے دے.

ف: کرکټ د کر بوړي يا د چرمخکښيے په شان يو ځناور چه په نمر کښيے د خپل سر رنګ بدلوي کله ښن کله سور کله زيړ يا سپين خو دا شے په ځنګل يا د غرونو په لمنو کښيے زيات وي. آبادئ نه لرے اوسي.

۵۳۵: حَدَّثَنَا صَدَقَةُ اَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْحَمِيْدِ بْنُ جُبَيْرِ بْنِ شَيْبَةَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ اَنَّ اُمَّ شَرِيْكٍ اَخْبَرَتْهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمَرَهَا بِقَتْلِ الْاَوْزَاغِ.

۵۳۵: صدقه. ابن عيينه. عبدالحميد بن جبير. ابن شيبه. سعيد بن مسيب. بي بي اُم شريکؓ نه روايت کوي چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم د کرکټ د وژلو حکم فرمائيلے دے.

۵۳۶: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُقْتُلُوْا ذَا الطُّفْيَتَيْنِ فَاِنَّهٗ يَلْتَمِسُ الْبَصَرَ وَ يُصِيْبُ الْحَبَلَ تَابَعَ حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ اَبَا اُسَامَةَ.

۵۳۶: عبيد بن اسمٰعيل. ابو اسامه. هشام. دَ هغه پلار بي بي عائشےؓ نه روايت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل دوه تاکيز مار وژنئ. ځکه چه هغه سړے ړندوي او حمل غورځوي. دا حديث ابو اسامه سره حماد بن سلمه هم روايت کړے دے.

۵۳۷: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ هِشَامٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ اَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَتْلِ الْاَبْتَرِ وَ قَالَ اِنَّهٗ يُصِيْبُ الْبَصَرَ وَ يُذْهِبُ الْحَبَلَ.

۵۳۷: مسدد. يحيٰي. هشام. دَ هغه پلار. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ دم بريده (لنډئ) مار د وژلو حکم کړيدے او فرمائيلي دي چه هغه ړندوي' او حمل غورځوي.

۵۳۸: حَدَّثَنِيْ عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ عَدِيٍّ عَنْ اَبِيْ

۵۳۸: عمرو بن علي. ابن ابي عدي. ابو يونس قشيري. ابن ابي مليکه نه روايت کوي.

يُوْنُسَ الْقُشَيْرِيِّ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ اَنَّ ابْنَ عُمَرَ كَانَ يَقْتُلُ الْحَيَّاتِ ثُمَّ نَهٰى قَالَ اِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَدَمَ حَائِطًا لَّهٗ فَوَجَدَ فِيْهِ سَلْخَ حَيَّةٍ فَقَالَ انْظُرُوْا اَيْنَ هُوَ فَنَظَرُوْا فَقَالَ اقْتُلُوْهُ فَكُنْتُ اَقْتُلُهَا لِذٰلِكَ فَلَقِيْتُ اَبَا لُبَابَةَ فَاَخْبَرَنِيْ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَقْتُلُوا الْجِنَّانَ اِلَّا كُلَّ اَبْتَرٍ ذِيْ طُفْيَتَيْنِ فَاِنَّهٗ يُسْقِطُ الْوَلَدَ وَ يُذْهِبُ الْبَصَرَ فَاقْتُلُوْهُ.

چه ابن عمرؓ به ماران وژل مخکښې، بیائې منع کوله، او فرمائیل ئې. یو ځلې رسول الله صلي الله علیه وسلّم خپل یو دیوال اوغورځولو، هغې کښې ئې د مار یوه تخه (جلئ) اولیده. نو حضورؐ اوفرمائیل، اوګورئ چه مار کوم ځائې دې خلقو اولید. او حضورؐ ته ئې اوښودلو. حضورؐ اوفرمائیل، دا مړ کړئ. نو زهٔ به دې وجه مار وژنم. بیا ابو لبابه سره ځما ملاقات اوشو هغهٔ اووې، حضورؐ اوفرمائیل تاسو سوا د دم بریده او دوه تاکیز مار نه نور مهٔ وژنئ ځکه چه دا حمل غورځوي، او بینائي ختموي نو دا وژنئ.

ف: تخه د مار جلئ. چه د ژمي نه پس اوباسي یا غرځوي.

۵۳۹: حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا جَرِيْرُ بْنُ حَازِمٍ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّهٗ كَانَ يَقْتُلُ الْحَيَّاتِ فَحَدَّثَهٗ اَبُوْ لُبَابَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنْ قَتْلِ جِنَّانِ الْبُيُوْتِ فَاَمْسَكَ عَنْهَا.

۵۳۹: مالک بن اسمٰعیل. جریر بن حازم. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روایت کوي چه هغه به وړومبې ماران وژل، بیا هغه ته ابولبابه حدیث بیان که چه حضور د کوز مارانو وژلو نه منع فرمائیلې ده. نو هغه د مارانو وژلو نه منع شو.

## بَاب ۲۹۹: خَمْسٌ مِّنَ الدَّوَابِّ فَوَاسِقُ يُقْتَلْنَ فِي الْحَرَمِ.

## باب ۲۹۹: د پنځه موذي ځناورو، حرم کښې د وژلو د اجازت بیان.

۵۴۰: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ خَمْسٌ فَوَاسِقُ يُقْتَلْنَ فِي الْحَرَمِ الْفَارَةُ وَالْعَقْرَبُ وَالْحُدَيَّا وَالْغُرَابُ

۵۴۰: مسدد. یزید بن زریع. معمر. زهري. عروه. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي. حضور صلي الله علیه وسلّم ارشاد اوفرمائیلو. پنځه ځناور فاسق (موذي) دي هغه حرم کښې هم وژلې شي. (۱) مږه (۲) لړم (۳) تپس (۴) قارغه (۵) او

وَالْكَلْبُ الْعَقُوْرُ.

۱۵۴۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ خَمْسٌ مِّنَ الدَّوَابِّ مَنْ قَتَلَهُنَّ وَهُوَ مُحْرِمٌ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ الْعَقْرَبُ وَالْفَارَةُ وَالْكَلْبُ الْعَقُوْرُ وَالْغُرَابُ وَالْحِدَاءَةُ.

۱۵۴۲: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ كَثِيْرٍ عَنْ عَطَاءٍ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِؓ رَفَعَهُ قَالَ خَمِّرُوا الْاٰنِيَةَ وَ اَوْكُوا الْاَسْقِيَةَ وَ اَجِيْفُوا الْاَبْوَابَ وَاكْفِتُوْا صِبْيَانَكُمْ عِنْدَ الْعِشَاءِ فَاِنَّ لِلْجِنِّ انْتِشَارًا وَ خَطْفَةً وَاطْفِئُوا الْمَصَابِيْحَ عِنْدَ الرُّقَادِ فَاِنَّ الْفُوَيْسِقَةَ رُبَّمَا اجْتَرَّتِ الْفَتِيْلَةَ فَاَحْرَقَتْ اَهْلَ الْبَيْتِ قَالَ ابْنُ جُرَيْجٍ وَ حَبِيْبٌ عَنْ عَطَاءٍ فَاِنَّ لِلشَّيَاطِيْنِ.

۱۵۴۳: حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ اٰدَمَ عَنْ اِسْرَائِيْلَ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ كُنَّا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ غَارٍ فَنَزَلَتْ وَالْمُرْسَلَاتِ عُرْفًا فَاِنَّا

چیچونکے سپے.

۱۵۴۱: عبداللّٰه بن مسلمه. مالک. عبداللّٰه بن دینار. حضرت عبداللّٰه بن عمرؓ نه روایت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل. پنځه خناور فاسق (موذي) دي. که څوک هغه حالت احرام کښې اووژني نو هیڅ ګناه پرے نشته. (هغه دادي) لړم، مږه، چیچونکے سپے، قارغه او تپس.

۱۵۴۲: مسددٌ. حماد بن زید. کثیر. عطاء. حضرت جابر بن عبداللّٰهؓ نه مرفوعًا روایت دے. رسول اللّٰه صلعم اوفرمائیل، ماښام وخت کښې لوښو باندے سرونه کیږدئ. او د اوبو د لوښو خوله بنده کړئ او دروازے بندے کړئ. او خپل بچي ماسختن وخت بهر ته د تلو نه منع کړئ، ځکه چه دے وخت کښې پیریان خوارۀ شي. او د هغوئ دست برد (یے خایه تصرف لوټ مار، شوکه) وي او د اودۀ کیدو په وخت ډیوه مړه کوئ ځکه چه مږه کله کله بله باتې راکاږي چه هغے سره کورواله اوسوزي، او ابن جریج او حبیب د عطاء نه د "فان الشیطٰن" الفاظ روایت کړے دي.

۱۵۴۳: عبده بن عبداللّٰه. یحیٰی بن آدم. اسرائیل. منصور. ابراهیم. علقمه. حضرت عبداللّٰه بن مسعودؓ نه روایت کوي مونږ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم سره یو غار کښے وو، چه سورۀ مرسلات نازل شولو مونږ دا د حضورؐ د ژبے مبارکے نه زده کولو. چه یو مار د خپلے

لَنَتَلَقَّاهَا مِنْ فِيْهِ اِذْ خَرَجَتْ حَيَّةٌ مِنْ جُحْرِهَا فَابْتَدَرْنَا لِنَقْتُلَهَا فَسَبَقَتْنَا فَدَخَلَتْ جُحْرَهَا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وُقِيَتْ شَرَّكُمْ كَمَا وُقِيْتُمْ شَرَّهَا وَ عَنْ اِسْرَائِيْلَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ مِثْلَهٗ قَالَ وَ اِنَّا لَنَتَلَقَّاهَا مِنْ فِيْهِ رَطْبَةً وَّ تَابَعَهٗ اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ مُغِيْرَةَ وَ قَالَ حَفْصٌ وَّ اَبُوْ مُعَاوِيَةَ وَ سُلَيْمَانُ بْنُ قَرْمٍ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنِ الْاَسْوَدِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ.

سورې نه راووتلو. مونږ ذ هغه وژلو د پاره ورمنډې کړې. لیکن هغه څمونږ نه مخکښې اوتښتیدلو. او خپلې سوړې کښې ننوتلو. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل هغه ستاسو د ضرر نه داسې محفوظ شو، څنګه چه تاسو د هغه د ضرر نه. ابراهیم. اسرائیل. اعمش. علقمه. عبداللّٰه نه دغسې روایت کوي چه عبداللّٰه اووې، مونږ د حضور صلعم د ژبې مبارکې نه تروتازګي سره زده کولو. او دَدې متابع روایت کړې دے ابو عوانه د مغیره نه او حفص او ابو معاویه او سلیمان بن قرم د اعمش. ابراهیم. اسود. عبداللّٰه نه روایت کړیدے.

۵۴۴ : حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الْاَعْلٰى حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ دَخَلَتْ امْرَأَةٌ فِى النَّارِ فِيْ هِرَّةٍ رَبَطَتْهَا فَلَمْ تُطْعِمْهَا وَلَمْ تَدَعْهَا تَاْكُلُ مِنْ خُشَاشِ الْاَرْضِ قَالَ وَ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ سَعِيْدِ الْمُقْبُرِيِّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهٗ.

۵۴۴ : نصر بن علي. عبدالاعلٰي. عبیداللّٰه بن عمر. نافع. حضرت عمرؓ نه روایت کوي. رسالت مآب صلعم اوفرمائیل یوه ښځه دَ یوې پشو (بلي) په وجه جهنم کښې داخله کړې شوه، هغې پشو تړلې وه، نه ئې خوراک دَ پاره څۀ ورکول، نه ئې پرېښودله چه چینجي مینجي ئې خوړلې. عبیداللّٰه، سعید مقبري حضرت ابوهریرهؓ نه دغسې روایت کوي.

۵۴۵ : حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ بْنُ اَبِيْ اُوَيْسٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۵۴۵ : اسمٰعیل بن ابي اویس. مالک. ابوالزناد. اعرج. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، پخوا زمانه کښې یو نبي دیوې

وَسَلَّمَ قَالَ نَزَلَ نَبِيٌّ مِنَ الْاَنْبِيَاءِ تَحْتَ شَجَرَةٍ فَلَدَغَتْهُ نَمْلَةٌ فَاَمَرَ بِجَهَازِهٖ فَاُخْرِجَ عَنْ تَحْتِهَا ثُمَّ بِبَيْتِهَا فَاُحْرِقَ بِالنَّارِ فَاَوْحَى اللّٰهُ اِلَيْهِ فَهَلَّا نَمْلَةً وَاحِدَةً.

اونے لاندِ تیر شو نو یو میږي اوخوړلو. نو هغه دَ هغې میږي د کور (سوړے) متعلق حکم اوکړلو. نو هغه په اُور کښې اوسوزولے شوه نو اللّٰه تعالیٰ هغه ته وحي اولیږلے، چه تا یو میږي له ولے سزا ورنکړله.

**بَاب ۳۰۰: اِذَا وَقَعَ الذُّبَابُ فِيْ شَرَابِ اَحَدِكُمْ فَلْيَغْمِسْهُ فَاِنَّ فِيْ اِحْدٰى جَنَاحَيْهِ دَاءٌ وَ فِي الْاُخْرٰى شِفَآءٌ.**

**باب ۳۰۰:** هر کله چه د چا دَ څښکلو څیز کښې مچ (مکھی) اوغرځیږي، نو هغې له غوپه ورکول پکار دي، ځکه چه دَ هغهٔ یو وزر کښې بیماري او بل وزر کښې شفا وي.

۵۴۶: حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مُخَلَّدٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُتْبَةُ بْنُ مُسْلِمٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ بْنُ حُنَيْنٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَ يَقُوْلُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا وَقَعَ الذُّبَابُ فِيْ شَرَابِ اَحَدِكُمْ فَلْيَغْمِسْهُ ثُمَّ لِيَنْزِعْهُ فَاِنَّ فِيْ اِحْدٰى جَنَاحَيْهِ دَآءٌ وَالْاُخْرٰى شِفَآءٌ.

۵۴۶: خالد بن مخلد. سلیمان بن بلال. عتبه بن مسلم. عبید بن حنین. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي. رسالت مآب صلي اللّٰه علیه وسلّم ارشاد اوفرمائیلو کله چه ستاسو دَ څښکلو څیز کښې مچ اوغرځیږي، نو هغه له غوپه ورکول پکار دي، بیا دِ راؤ کاږي، او اودې غرځوي ځکه چه د هغهٔ یو وزر کښې بیماري او بله کښې شفاء ده.

۵۴۷: حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ الصَّبَاحِ حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ الْاَزْرَقُ حَدَّثَنَا عَوْفٌ عَنِ الْحَسَنِ بْنِ سِيْرِيْنَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ غُفِرَ لِامْرَاَةٍ مُوْمِسَةٍ مَرَّتْ بِكَلْبٍ عَلٰى رَاْسِ رَكِيٍّ يَلْهَثُ قَالَ كَادَ يَقْتُلُهُ الْعَطَشُ فَنَزَعَتْ خُفَّهَا فَاَوْثَقَتْهُ بِخِمَارِهَا

۵۴۷: حسن بن صباح. اسحٰق ارزق. عوف. حسن. ابن سیرین. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم فرمائیلي دي یوه بد چلنه (فاحشه) ښځه صرف په دې وجه او بخښلے شوه، چه هغه په یو سپي تیریده چه دَ یو کوهي په غاړه دَ تندې نه مړ کیدلو، هغې ښځې خپله موزه راوښکله، هغه ئې لوپټې سره اوتړله او بیا ئې راوښکلے او په سپي ئې اوڅښکولے، نو په دې خبره (عمل) هغه او بخښلے

فَنَزَعَتْ لَهُ مِنَ الْمَاءِ فَغُفِرَ لَهَا بِذٰلِكَ.

شوه.

۵۴۸ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ حَفِظْتُهُ مِنَ الزُّهْرِيِّ كَمَا اَنَّكَ هٰهُنَا اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ اَبِيْ طَلْحَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَدْخُلُ الْمَلَائِكَةُ بَيْتًا فِيْهِ كَلْبٌ وَلَا صُوْرَةٌ.

۵۴۸ : علي بن عبداللّٰه. سفیان. زهري. عبیداللّٰه. ابن عباسؓ. حضرت ابو طلحهؓ نه روایت کوي رسالت مآب صلي اللّٰه علیه وسلّم ارشاد اوفرمائیلو چه فرښتے هغے کور کښے نهٔ داخلیږي چه هغے کښے سپے یا تصویر وي.

۵۴۹ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمَرَ بِقَتْلِ الْكِلَابِ.

۵۴۹ : عبداللّٰه بن یوسف. مالک. نافع. حضرت عبداللّٰه بن عمرؓ نه روایت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم د سپو د وژلو حکم اوفرمائیلو[۱].

۱ . حضور صلي الله علیه وسلّم د ښکار د پاره یا د کور حفاظت د پاره د سپي ساتلو اجازت ورکړے وو . محدّثینو لیکلي دي چه دَ لیونو سپو یا کوم سپي چه د انسان دشمنان وي او د چیچلو د پاره ورپسے منډه وهي د هغے د وژلو حضورؐ حکم ورکړے وو . د هغوئ مراد ټول سپي نه وو . اصل خبره داده چه د اسلام په نظر کښے سپے یو بدترین مخلوق دے او صرف د مجبورئ په صورت کښے دے برداشت کړے شوے دے' په دے وجه حتي الامکان دده دَ لرے ساتلو تاکید کړے شوے دے .

۵۵۰ : حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ يَحْيٰى قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ حَدَّثَهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ اَمْسَكَ كَلْبًا يَنْقُصُ مِنْ عَمَلِهٖ كُلَّ يَوْمٍ قِيْرَاطٌ اِلَّا كَلْبُ حَرْثٍ اَوْ كَلْبُ مَاشِيَةٍ.

۵۵۰ : موسي بن اسمٰعیل. همام. یحیٰي. ابو سلمه. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل چا چه سپے اوساتلو نو دَ هغهٔ د عمل نه روزانه یو قیراط کمیږي' البته د کر کیلے او څاروو دَ حفاظت دَ پاره دَ سپي دا حکم نه دے.

۵۵۱ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ

۵۵۱ : عبداللّٰه بن مسلمه. سلیمان. یزید بن حفصه. سائب بن یزید. حضرت

يَزِيْدُ بْنُ خُصَيْفَةَ قَالَ اَخْبَرَنِيْ السَّائِبُ بْنُ يَزِيْدَ سَمِعَ سُفْيَانَ بْنَ اَبِيْ زُهَيْرِ الشَّنَئِيَّ اَنَّهُ سَمِعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنِ اقْتَنٰى كَلْبًا لَا يُغْنِيْ زَرْعًا وَلَا ضَرْعًا نَقَصَ مِنْ عَمَلِهٖ كُلَّ يَوْمٍ قِيْرَاطٌ فَقَالَ السَّائِبُ اَنْتَ سَمِعْتَ هٰذَا مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِيْ وَ رَبِّ هٰذِهِ الْقِبْلَةِ.

سفیان بن ابي زهیر شنوئ نه روایت کوي. هغهٔ د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم نه واوریدل څوک چه سپے ساتي. نه د هغهٔ نه زراعت ته څهٔ فائده وي او نه څاروو ته (چه دَ هغے حفاظت اوکړي) نو د هغهٔ عمل نه روزانه یو قیراط کمیږي سائب اووے، آیا تا د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم نه دا اوریدلے دي هغهٔ اووے ددے کعبے په پروردګار مِ قسم وي، او.

ف: قیراط یو وزن چه نیم دانګ یعني د څلورو اوربشو برابر وي. ګرین چه دَ نیمے رَتئ برابر وي.

# كِتَابُ اَحَادِيْثِ الْاَنْبِيَآءِ

# د انبیاء علیهم السلام بیان

**بَاب ۱ ۰ ۳ :** خَلْقِ اٰدَمَ صَلَوٰتُ اللّٰهِ عَلَيْهِ وَ ذُرِّيَّتِهٖ صَلْصَالٌ طِيْنٌ خُلِطَ بِرَمْلٍ فَصَلْصَلَ كَمَا يُصَلْصِلُ الْفَخَّارُ وَ يُقَالُ مُنْتِنٌ يُرِيْدُوْنَ بِهٖ صَلَّ كَمَا يُقَالُ صَرَّا الْبَابُ وَ صَرْصَرَ عِنْدَ الْاِغْلَاقِ وَ مِثْلُ كَبْكَبْتُهُ يَعْنِيْ كَبَبْتُهُ فَمَرَّتْ بِهٖ اسْتَمَرَّ بِهَا الْحَمْلُ فَاَتَمَّتْهُ اَنْ لَّا تَسْجُدَ اَنْ تَسْجُدَ.

**باب ۱ ۰ ۳:** حضرت آدم علیه السلام او د هغهٔ دَ ذریت د پیدائش بیان. صلصال یعني خاوره هغه چه هغے کښے دَ شګو (ریت) آمیزش وي او بیا هغه داسے ټنګ کوي څنګه چه ټیکرے ټنګیږي. دا هم وئیلے شي چه ددے معنٰی ده خمیره کړے شوے بدبودار، ددے خلقو په نزد دا ماخوذ دے د صل نه (په معنٰي د بدبودار کیدو خمیره کیدو، صل او صلصال یو معني ده).

**بَاب ۲ ۰ ۳ :** قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ اِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلٰٓئِكَةِ اِنِّيْ جَاعِلٌ فِي الْاَرْضِ خَلِيْفَةً قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ لَمَّا عَلَيْهَا حَافِظٌ اِلَّا عَلَيْهَا حَافِظٌ فِيْ كَبَدٍ فِيْ شِدَّةِ خَلْقٍ وَ رِيَاشًا الْمَالُ وَ قَالَ غَيْرُهُ الرِّيَاشُ وَالرِّيْشُ وَاحِدٌ وَّهُوَ مَا

**باب ۲ ۰ ۳:** فرمان الٰهي کوم وخت چه ستا رب فرښتو ته اووے، زهٔ دنیا کښے خپل یو خلیفه جوړونکے یم، ابن عباسؓ اوفرمائیل "لَمَّا عَلَيْهَا حَافِظٌ" څو دهغے حفاظت کونکے دے "في کبد" معني سخت پیدائش دي. ریاشًا معني مال نورو خلقو وئیلے دي ریاش او ریش یو څیز دے یعني ظاهري لباس. ما تمنون چه تاسو مني د

بْــنُ عَــلِــيٍّ عَــنْ زَائِــدَةَ عَــنْ مَيْسَرَةَ الْاَشْجَعِيِّ عَــنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ اَبِيْ هُــرَيْــرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِسْتَوْصُوْا بِالنِّسَآءِ خَيْرًا فَاِنَّ الْمَرْاَةَ خُلِقَتْ مِنْ ضِلَعٍ وَ اِنَّ اَعْوَجَ شَيْءٍ فِي الضِّلَعِ اَعْلَاهُ فَاِنْ ذَهَبْتَ تُقِيْمُهُ كَسَرْتَهُ وَ اِنْ تَرَكْتَهُ لَمْ يَزَلْ اَعْوَجَ فَاسْتَوْصُوْا بِالنِّسَاءِ.

ابــو حــازم. حــضــرت ابــوهــريــره نــه روايــت كــوي. رســالــت مــآب صلي اللّٰـه عليـه وسلّم ارشــاد فــرمــائيلــې دې "ښځـو سره ښـهٔ سلوک كـوئ ځکـه چـه ښځـه دَ پښتئ نـه پيدا شويده او پښتئ كښې دَ ټولونـه زيـاتـه كجي د هغې د پاسه حصـه كښې وي. كه تـهٔ هـغـه نيغول غواړې نو هغه به ماتـه شي او كـه پـريـږدئې نو كږه به وي نو تاسو ښځو سره ښهٔ سلوک كوئ.

۵۵۸: حَــدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَــدَّثَــنَــا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ وَهْبٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ حَدَّثَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُـوَ الصَّادِقُ الْمَصْدُوْقُ اِنَّ اَحَدَكُمْ يَجْمَعُ فِيْ بَطْنِ اُمِّهٖ اَرْبَعِيْنَ يَوْمًا ثُمَّ يَــكُــوْنَ عَــلَــقَةً مِثْــلَ ذٰلِكَ ثُمَّ يَكُوْنُ مُضْغَةً مِثْــلَ ذٰلِكَ ثُمَّ يَبْعَثُ اللّٰهُ اِلَيْهِ مَــلَكًا بِاَرْبَعِ كَلِمَاتٍ فَيَكْتُبُ عَمَلَهُ وَ اَجَــلَــهُ وَ رِزْقَــهُ وَ شَقِــيٌّ وَ سَعِيْدٌ ثُمَّ يُــنْــفَــخُ فِيْــهِ الرُّوْحُ فَاِنَّ الرَّجُلَ لَيَعْمَلُ بِــعَــمَلِ اَهْلِ النَّارِ حَتّٰى مَا يَكُوْنَ بَيْنَهُ وَ بَيْــنَــهَــا اِلَّا ذِرَاعٌ فَيَسْبَقُ عَــلَــيْــهِ الْــكِــتَــابُ فَيَــعْــمَــلُ بِعَمَلِ اَهْلِ الْجَنَّةِ فَيَــدْخُــلُ الْــجَــنَّــةَ وَ اِنَّ الرَّجُلُ لَيَعْمَلُ بِعَمَلِ اَهْلِ الْجَنَّةِ حَتّٰى مَا يَكُوْنُ بَيْنَهُ وَ بَيْــنَــهَــا اِلَّا ذِرَاعٌ فَيَسْبَــقُ عَــلَــيْــهِ الْــكِــتَــابُ فَيَــعْــمَــلُ بِــعَمَلِ اَهْلِ النَّارِ

۵۵۸: عـمر بن حفص. دَ هغهٔ پلار. اعمش. زيد بـن وهـب. حـضـرت عـبدالـلّٰه نـه روايت كوي، رسول الـلّٰـه صـلي الـلّٰـه عـلـيـه وسـلّم اوفرمائيل حضورؐ صادق او مـصـدوق دې. چــه تــاسـو كـښـې دَ هـر يو پيدائش خـلـويښـت ورځـې د مـور پــه خيټـه كښې پوره كيږي بيـا څـلـويښـت ورځـو كښـې نـطـفـه چكه وينه شي. بيا دومره موده كښې هغـه دَ غـوښـې ټكړه شي بيا اللّٰه تـعـالٰي يـوې فـرښتـې تـه د څلورو خبرو حكم وركوي او راليږي ئې. نـو هـغـه د هـغـهٔ عـمـل، دَ هغهٔ مرګ، دَ هغـه رزق او بـدبـختـي يـا نيـک بـخـتـي ليكي. بيا هغه كښې روح پـوكـلـې شي، او يو سړې دَ دوزخيانو پـه شـان عـمـل كـوي حتٰي چــه د هـغـه او دوزخ پـه مينـځ كښې يـو ګـز فـاصـلـه پـاتې شي. نو سمدستي دَ هغهٔ نوشتهٔ تـقـدير رامخكښې شي او هغه دَ جنتيانو په شان عـمـل كـوي او يو سړې دَ اهل جنت په شان عمل كـوي. حتٰي چه دَ هغه او جـنـت مينـځكښې صرف يو ګـز فـاصـلـه پاتې شي چه دَ هغهٔ نوشتهٔ الٰهي رامخكښې شي او هغـه د دوزخيـانو پـه شـان عمل شروع كړي

فَيَدْخُلُ النَّارَ.

او دوزخ ته لاړ شي.

۵۵۹: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ بَكْرِ بْنِ اَنَسٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ وَ كَّلَ فِي الرَّحْمِ مَلَكًا فَيَقُوْلُ يَا رَبِّ نُطْفَةٌ يَا رَبِّ عَلَقَةٌ يَا رَبِّ مُضْغَةٌ فَاِذَا اَرَادَ اَنْ يَخْلُقَهَا قَالَ يَا رَبِّ اَذَكَرٌ اَمْ اُنْثٰى يَا رَبِّ شَقِيٌّ اَمْ سَعِيْدٌ فَمَا الرِّزْقُ فَمَا الْاَجَلُ فَيُكْتَبُ كَذَالِكَ فِيْ بَطْنِ اُمِّهٖ.

۵۵۹: ابو النعمان. حماد بن زيد. عبيداللّٰه بن ابوبكر بن انس. حضرت انس نه روايت كوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. اللّٰه تعالي ذ مور په رحم يوه فرښته مقرر كړې ده، هغه فرښته وائي اې پروردګاره، اوس خو نطفه ده. اې پروردګاره اوس چكه وينه شوه. اې پروردګاره اوس ذ غوښې ټكړه شوه. كه هغه اللّٰه تعالٰي پيدا كول غواړي نو وائي اې پروردګاره هلک دِوي كه جينئ. اې پروردګاره نيک بخت دِ وي يا بدبخت. ذ ده رزق دِ څنګه وي. ددهٔ عمر دې څومره وي نو دغه شان هر څه د مور په خېټه كښې اوليكلې شي.

۵۶۰: حَدَّثَنَا قَيْسُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا خَالِدُ ابْنُ الْحَارِثِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ عِمْرَانَ الْجَوْنِيِّ عَنْ اَنَسٍ يَّرْفَعُهٗ اِنَّ اللّٰهَ تَعَالٰى يَقُوْلُ لِاَهْوَنِ اَهْلِ النَّارِ عَذَابًا لَوْ اَنَّ لَكَ مَا فِي الْاَرْضِ مِنْ شَيْءٍ كُنْتَ تَفْتَدِيْ بِهٖ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَقَدْ سَاَلْتُكَ مَاهُوَ اَهْوَنُ مِنْ هٰذَا وَ اَنْتَ فِيْ صُلْبِ اٰدَمَ اَنْ لَّا تُشْرِكَ بِيْ فَاَبَيْتَ اِلَّا الشِّرْكَ.

۵۶۰: قيس بن حفص. خالد بن حارث. شعبه. ابو عمران جوني. حضرت انسؓ نه مرفوعًا روايت كوي. اللّٰه تعالٰي به هغې دوزخي ته چه هغه ته به د ټولونه كم عذابوي فرمائي، كهٔ تاته د دنيا ټول څيزونه حاصل شي نو تهٔ به نې ددې عذاب په فديهٖ كښې وركړې هغه به وائي او اللّٰه تعالٰي به ورته فرمائي ما تانه چه تهٔ د پلار په شا (پشت) كښې وې، ددې نه هم كم طلب كړې وو. چه ته ماسره شرک مه كوه خو تهٔ بغير شرک نه پاتې نهٔ شوې.

۵۶۱: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُرَّةَ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۵۶۱: عمر بن حفص بن غياث. ذ هغهٔ پلار. اعمش. عبداللّٰه بن مره. مسروق. حضرت عبداللّٰهؓ نه روايت كوي رسالت مآب صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل كله چه دنيا كښې څوک ناحق قتل كوي، نو ذ هغهٔ

وَسَلَّمَ لَا تُقْتَلُ نَفْسٌ ظُلْمًا اِلَّا كَانَ عَلٰى ابْنِ اٰدَمَ الْاَوَّلِ كِفْلٌ مِّنْ دَمِهَا لِاَنَّهٗ اَوَّلُ مَنْ سَنَّ الْقَتْلَ.

د ګناه یوه حصه د آدمؑ په خوئ (قابیل) باندې ضرور وي. ځکه چه هغه د قتل طریقه ایجاد کړه.

**باب ۳۰۳: اَلْاَرْوَاحُ جُنُوْدٌ مُّجَنَّدَةٌ.** قَالَ قَالَ اللَّيْثُ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ عَنْ عَمْرَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ الْاَرْوَاحُ جُنُوْدٌ مُّجَنَّدَةٌ فَمَا تَعَارَفَ مِنْهَا ائْتَلَفَ وَمَا تَنَاكَرَ مِنْهَا اخْتَلَفَ وَ قَالَ يَحْيَى بْنُ اَيُّوْبَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ بِهٰذَا.

**باب ۳۰۳: د ټولو روحونو (روز ازل کښې) داسې لښکر وو چه یوځائې جمع وو.** لیث. یحیی بن سعید. عمره. بي بي عائشې نه روایت کوي ما رسول اللّٰه صلعم نه واوریدل. د ټولو ارواحو لښکر یو ځائې کښې جمع وو. د کوم کوم روح چه هلته پیژندګلو او شو، دلته هم د هغوئ خپلو کښې دوستي شوه او د کومو چه هلته پیژندګلو او نه شوه نو دلته هم هغوئ ډیر بل نه بیګانه پاتې شو یحیی بن ایوب د یحیی بن سعید نه دغسې روایت کړیدې.

**باب ۳۰۴: قَوْلِ اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا نُوْحًا اِلٰى قَوْمِهٖ.** قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ بَادِيَ الرَّاْيِ مَا ظَهَرَ لَنَا اَقْلِعِيْ اَمْسِكِيْ وَ فَارَ التَّنُّوْرُ نَبَعَ الْمَاءُ وَ قَالَ عِكْرَمَةُ وَجْهُ الْاَرْضِ وَ قَالَ مُجَاهِدُ الْجُوْدِيُّ جَبَلٌ بِالْجَزِيْرَةِ. دَاْبُ مِثْلُ حَالٌ.

**باب ۳۰۴: فرمان الٰهي او مونږ نوحؑ د هغهٔ قوم ته رسول اولیږلو.** ابن عباسؓ فرمائي بَادِیَ الرَّاْیِ معني هغه جزیره کومه چه مونږ ته ظاهره شوه اَقْلِعِیْ یعني بندي کړه فَارَ التَّنُّوْرُ یعني اوبه راوقلیدې او عکرمه اوفرمائیل تنور نه مراد روئې زمین دې او مجاهد وائي جودي چه دې جزیره کښې یو غر دې داب معني حالت.

**باب ۳۰۵: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى اِنَّا اَرْسَلْنَا نُوْحًا اِلٰى قَوْمِهٖ اَنْ اَنْذِرْ قَوْمَكَ مِنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ اِلٰى اٰخِرِ السُّوْرَةِ وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَاَ نُوْحٍ اِذْ قَالَ لِقَوْمِهٖ يٰقَوْمِ اِنْ كَانَ كَبُرَ عَلَيْكُمْ مَّقَامِيْ وَ تَذْكِيْرِيْ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ اِلٰى قَوْلِهٖ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ.**

**باب ۳۰۵: فرمان الٰهي بیشکه مونږ نوحؑ د هغهٔ قوم ته دې پیغام سره اولیږلو چه خپل قوم په هغوئ د دردناک عذاب راتلو نه مخکښې او ویره وه.** آخر سورت پورې او آیت کریمه او هغوئ ته د نوحؑ قصه واوروه هغه خپل قوم ته اووې. اې زما قومه که تاسو باندې زما اوسیدل او په احکام الٰهي تاسو ته نصیحت کول سخت لږي. مسلمین پورې بیان.

۵۶۲: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ سَالِمٌ وَ قَالَ ابْنُ عُمَرَ قَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي النَّاسِ فَاَثْنٰى عَلَى اللّٰهِ بِمَا هُوَ اَهْلُهُ ثُمَّ ذَكَرَ الدَّجَّالَ فَقَالَ اِنِّيْ لَاُنْذِرُكُمُوْهُ وَمَا مِنْ نَّبِيٍّ اِلَّا اَنْذَرَ قَوْمَهُ لَقَدْ اَنْذَرَ نُوْحٌ قَوْمَهُ وَلٰكِنِّيْ اَقُوْلُ لَكُمْ فِيْهِ قَوْلًا لَمْ يَقُلْهُ نَبِيٌّ لِقَوْمِهٖ تَعْلَمُوْنَ اَنَّهُ اَعْوَرُ وَ اِنَّ اللّٰهَ لَيْسَ بِاَعْوَرَ.

۵۶۲: عبدان. عبدالله. يونس. زهري. سالم. حضرت ابن عمرؓ نه روايت كوي. رسالت مآب صلي الله عليه وسلم خلقو كښې اودريدلو. اول ئې د الله داسې تعريف اوكه چه د هغې هغه مستحق دې بيائې د دجال ذكر اوكه وې فرمائيل: زۀ تاسو د هغۀ نه ويروم. او هر نبي خپل قوم د هغه نه ويرولې دې او نوحؑ هم خپل قوم ويرولې وو. ليكن زۀ تاسوته يوه داسې خبره ښايم چه يو نبي خپل قوم ته نه ده ښودلې. او هغه دا چه بيشكه دجال كانړا دې (كانړې) او الله كانړا نه دې.

۵۶۳: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ يَحْيٰى عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَؓ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلَا اُحَدِّثُكُمْ حَدِيْثًا عَنِ الدَّجَّالِ مَا حَدَّثَ بِهٖ نَبِيٌّ قَوْمَهُ اِنَّهُ اَعْوَرُ وَ اِنَّهُ يَجِيْءُ مَعَهُ بِمِثَالِ الْجَنَّةِ وَالنَّارِ فَالَّتِيْ يَقُوْلُ اِنَّهَا الْجَنَّةُ هِيَ النَّارُ وَالَّتِيْ يَقُوْلُ اِنَّهَا النَّارُ هُوَ الْجَنَّةُ وَ اِنِّيْ اُنْذِرُكُمْ كَمَا اَنْذَرَ بِهٖ نُوْحٌ قَوْمَهُ.

۵۶۳: ابونعيم. شيبان. يحيي. ابوسلمه. حضرت ابوهريرةؓ نه روايت كوي. رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل زۀ تاسوته د دجال متعلق داسې خبره اونۀ ښايم چه يو نبي خپل قوم ته نه ده ښودلې بيشكه دجال كانړې دې او هغه به خان سره د جنت او دوزخ يو شبيه راوړي. نو څۀ ته چه هغه جنت وائي، درحقيقت هغه به دوزخ وي. او زۀ تاسو د دجال نه داسې ويرم، څنګه چه نوحؑ خپل قوم ويرولې وو.

ف: شبيه: تصوير، شكل، خيره. مخ بشره، كرۀ ورۀ.

۵۶۴: حَدَّثَنَا مُوْسَى ابْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ اَبِيْ صَالِحٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَجِيْءُ نُوْحٌ وَّ اُمَّتُهُ

۵۶۴: موسي بن اسمٰعيل. عبدالواحد بن زياد. اعمش. ابو صالح. حضرت ابوسعيد نه روايت كوي. رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل (د قيامت په ورځ) نوحؑ به خپل امت سره تشريف راوړي. الله تعالي به ترې تپوس اوكړي. تا خما پيغام رسولې وو هغه به

فَیَقُوْلُ اللّٰهُ تَعَالٰی هَلْ بَلَّغْتَ فَیَقُوْلُ نَعَمْ اَیْ رَبِّ فَیَقُوْلُ لِاُمَّتِهٖ هَلْ بَلَّغَکُمْ فَیَقُوْلُوْنَ لَا مَا جَاءَ نَا مِنْ نَّبِیٍّ فَیَقُوْلُ لِنُوْحٍ مَّنْ یَّشْهَدُ لَكَ فَیَقُوْلُ مُحَمَّدٌ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وَ اُمَّتُهٗ فَنَشْهَدُ اَنَّهٗ قَدْ بَلَّغَ وَهُوَ قَوْلُهٗ جَلَّ ذِکْرُهٗ وَ کَذٰلِكَ جَعَلْنٰکُمْ اُمَّةً وَّسَطًا لِّتَکُوْنُوْا شُهَدَآءَ عَلَی النَّاسِ وَالْوَسَطُ الْعَدْلُ.

وائي، او، اے پروردګاره بیا به اللّٰه تعالٰي دَ هغهٔ د امت نه تپوس اوکړي. آیا دهٔ تاسو ته پیغام رسولے وو. هغه به وائي، نه مونږ ته هیڅوک نبيٍ نه وو راغلے. اللّٰه تعالٰي به حضرت نوح علیه السلام ته اوفرمائي، ستا ګواه څوک دے، هغه به وائي محمد صلعم او دَ هغويٌ اُمت، نو مونږ به ګواهي ورکړو چه اودهٔ حکم رسولے دے دا مطلب دے ددے آیت چه او مونږ دغه شان تاسو متوسط امت جوړ کړلئ. چه تاسو په خلقو ګواه اوسئ. وسط: معني د مینځ ده.

۵۶۵ : حَدَّثَنِيْ اِسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَیْدٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ حَیَّانَ عَنْ اَبِیْ زُرْعَةَ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَؓ قَالَ کُنَّا مَعَ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فِیْ دَعْوَةٍ فَرُفِعَ اِلَیْهِ الذِّرَاعُ وَ کَانَتْ تُعْجِبُهٗ فَنَهَسَ مِنْهَا نَهْسَةً وَّ قَالَ اَنَا سَیِّدُ النَّاسِ یَوْمَ الْقِیَامَةِ هَلْ تَدْرُوْنَ بِمَنْ یَّجْمَعُ اللّٰهُ الْاَوَّلِیْنَ وَالْاٰخِرِیْنَ فِیْ صَعِیْدٍ وَاحِدٍ فَیُبْصِرُهُمُ النَّاظِرُ وَ یُسْمِعُهُمُ الدَّاعِیْ وَ تَدْنُوْ مِنْهُمُ الشَّمْسُ فَیَقُوْلُ بَعْضُ النَّاسِ اَلَا تَرَوْنَ اِلٰی مَا اَنْتُمْ فِیْهِ اِلٰی مَا بَلَغَکُمْ اَلَا تَنْظُرُوْنَ اِلٰی مَنْ یَّشْفَعُ لَکُمْ اِلٰی رَبِّکُمْ فَیَقُوْلُ بَعْضُ النَّاسِ اَبُوْکُمْ اٰدَمُ فَیَاْتُوْنَهٗ

۵۶۵ : اسحٰق بن نصر. محمد بن عبید. ابو حیان. ابو زرعه. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي. مونږ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم سره یو دعوت کښے وو. حضورؐ ته پتون پیس کړے شو، دَ حضورؐ د پتون غوښه ډیره خوښه وه، حضور د هغه نه راشوکوله او خوړله اووے فرمائیل زهٔ به دَ قیامت په ورځ دَ ټولو بني آدمو سردار یم او تاسوته معلومه ده چه ولے، وجه داده چه اللّٰه تعالٰي به تمام وړمبني او روستني خلق آوار میدان کښے جمع کړي دا شان چه لیدونکي به ټول لیدے شي او بلونکي به هغوئ ته خپل آواز آورولے شي، او نمر به هغوئ ته ډیر نزدے راشي نو بعضے خلق به وائي تاسو نه وینئ چه ستاسو څه حالت دے او تاسو څومره مشقت کښے یئ. آیا تاسو داسے سړے نه وینئ چه اللّٰه ته ستاسو سفارش اوکړي. نو خلق به وائي خپل پلار آدمؑ له لاړ شئ نو هغهٔ له به ورشي ورته به وائي، اے آدمؑ تاسو دَ ټولو انسانو پلار یئ تاسو اللّٰه خپل لاس سره پیدا کړي یئ او خپل روح ئے درکښے پوکلے دے او فرښتو ته ئے

فَيَقُوْلُوْنَ يَا اٰدَمُ اَنْتَ اَبُو الْبَشَرِ خَلَقَكَ اللّٰهُ بِيَدِهٖ وَ نَفَخَ فِيْكَ مِنْ رُوْحِهٖ وَ اَمَرَ الْمَلٰئِكَةَ فَسَجَدُوْا لَكَ وَ اَسْكَنَكَ الْجَنَّةَ اَلَا تَشْفَعُ لَنَا اِلٰى رَبِّكَ اَلَا تَرٰى مَا نَحْنُ فِيْهِ وَمَا بَلَغَنَا فَيَقُوْلُ رَبِّيْ غَضِبَ الْيَوْمَ غَضَبًا لَمْ يَغْضَبْ قَبْلَهٗ مِثْلَهٗ وَلَا يَغْضَبُ بَعْدَهٗ مِثْلَهٗ وَ نَهَانِيْ عَنِ الشَّجَرَةِ فَعَصَيْتُهٗ نَفْسِيْ نَفْسِيْ اذْهَبُوْا اِلٰى غَيْرِيْ اِذْهَبُوْا اِلٰى نُوْحٍ فَيَأْتُوْنَ نُوْحًا فَيَقُوْلُوْنَ يَا نُوْحُ اَنْتَ اَوَّلُ الرُّسُلِ اِلٰى اَهْلِ الْاَرْضِ وَ سَمَّاكَ اللّٰهُ عَبْدًا شَكُوْرًا مَا تَرٰى اِلٰى مَا نَحْنُ فِيْهِ اَلَا تَرٰى اِلٰى مَا بَلَغَنَا اَلَا تَشْفَعُ لَنَا اِلٰى رَبِّكَ فَيَقُوْلُ رَبِّيْ غَضِبَ الْيَوْمَ غَضَبًا لَمْ يَغْضَبْ قَبْلَهٗ مِثْلَهٗ وَلَا يَغْضَبُ بَعْدَهٗ مِثْلَهٗ نَفْسِيْ نَفْسِيْ ائْتُوا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَأْتُوْنِيْ فَاَسْجُدُ تَحْتَ الْعَرْشِ فَيُقَالُ يَا مُحَمَّدُ اِرْفَعْ رَأْسَكَ وَاشْفَعْ تُشَفَّعْ وَسَلْ تُعْطَهْ قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ لَا اَحْفَظُ سَائِرَهٗ.

حکم او کـه نـو هغوئ تاسو ته سجده او کړله او تاسو ئے جنت کښې تېکاؤ کړلې. نو آیا خپل پروردګار ته به زمونږ سفارش اونکړئ. آیا تاسو زمونږ حالت او مشقت نه مشاهده کوئ؛ هغه به اوفرمائي. نن اللّٰه تعالىٰ دومره غضبناک دے چه نه دومره مخکښې غضبناک شوے وو، او نه به آئنده شي، او هغهٔ زهٔ د اُونې ذ میوے خوړلو نه منع کړے ووم، خو ما نه نافرماني اوشوه ماسره خو اوس دَ خپل ځان فکر دے، بل چاله لاړ شئ (او) نوحٔ له ورشئ، هغوئ به نوحٔ له ورشي، ورته به وائي، اے نوحٔ تاسو دنیا کښې د ټولونه وړمبنے (تشریعي) رسول يئ او اللّٰه تاسوته د شکر ګزار بنده خطاب درکړیدے آیا تاسو زمونږ دا حالت نه وینئ. آیا تاسو به خپل رب ته خمونږ سفارش اونکړئ. هغه به اوفرمائي. نن زمونږ اللّٰه دومره غضبناک دے چه نه ددے نه مخکښې دومره غضبناک شوے وو او نه به آئنده شي ماسره خو د خپل ځان فکر دے. تردے چه هغوئ ته به اوونیلے شي چه رسول اللّٰه صلعم له لاړ شئ. نو هغوئ به ماله راشي. زهٔ به دَ عرش د لاندِ په سجده پریوځم ماته به اوونیلے شي اے زما محبوب، خپل سر اوچت کړه، او سفارش کوه. ستا سفارش به قبول وي. او غواړه تاته به درکولے شي. محمد بن عبید اووے چه ماته پوره حدیث محفوظ یاد نه دے.

**۵۶۲**: حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيِّ بْنِ نَصْرٍ اَخْبَرَنَا اَبُوْ اَحْمَدَ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ اَبِيْ اِسْحَاقَ عَنِ الْاَسْوَدِ بْنِ يَزِيْدَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى

۵۶۲: نصر بن علي بن نصر. ابو احمد. سفیان. ابو اسحاق. اسود بن یزید. حضرت عبداللّٰه نه روایت کوي. چه رسالت مآب صلعم فهل من مدّکر (یعني څوک نصیحت

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ مِثْلَ قِرَاءَةِ الْعَامَّةِ.

حاصلولو نکے شته) د مشهور قرأت موافق او لوستلو.

بَابٌ ٣٠٦: وَ اِنَّ اِلْيَاسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ. اِذْ قَالَ لِقَوْمِهٖ اَلَا تَتَّقُوْنَ اَتَدْعُوْنَ بَعْلًا وَ تَذَرُوْنَ اَحْسَنَ الْخَالِقِيْنَ اللّٰهَ رَبَّكُمْ وَ رَبَّ اٰبَآئِكُمُ الْاَوَّلِيْنَ فَكَذَّبُوْهُ فَاِنَّهُمْ لَمُحْضَرُوْنَ اِلَّا عِبَادَ اللّٰهِ الْمُخْلَصِيْنَ وَ تَرَكْنَا عَلَيْهِ فِي الْاٰخِرِيْنَ قَالَ بْنُ عَبَّاسٍ يُذْكَرُ بِخَيْرٍ سَلَامٌ عَلٰى اِلْ يَاسِيْنَ اِنَّا كَذَالِكَ نَجْزِى الْمُحْسِنِيْنَ اِنَّهٗ مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِيْنَ يُذْكَرُ عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ وَّابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ اِلْيَاسَ هُوَ اِدْرِيْسُ.

باب ۳۰۶: او بیشکه الیاسؑ د پیغمبرانو نه دے (یاد کړه) کوم وخت چه هغهٔ خپل قوم ته اووے چه تاسو ذَ خدائے نه خوف ولے نه کوئ آیا تاسو عبادت کوئ د "بعل" (چه یو بُت دے) او پریږدئ اللّٰه چه د ټولو نه ښهٔ پیدا کونکے دے چه ستاسو او ستاسو د ټولو ورستنو پلرونو نیکونو پروردګار دے نو هغوئ الیاسؑ دروغژن اوګنړلو. بیشکه هغوئ به جهنم ته راوستے شي خو د اللّٰه نیک او خالص بندیان وَ تَرَكْنَا عَلَيْهِ فِي الْاٰخِرِيْنَ مطلب ابن عباسؓ دا فرمائیلے دے چه ذَ هغوئ ذکر به نیکئ او خیر سره کیږي، سلام دِ وي اِلْ یاسین باندے، مونږ نیکو کاروته دغسے بدله ورکوو بیشکه هغه زمونږ ذَ نیکو کارو بندیانو نه وو. ابنِ مسعود او ابن عباسؓ اوفرمائیل چه الیاس ذَ حضرت ادریسؑ نوم دے.

بَابٌ ٣٠٧: ذِكْرِ اِدْرِيْسَ عَلَيْهِ السَّلَامُ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ رَفَعْنَاهُ مَكَانًا عَلِيًّا. قَالَ عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ ح حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ حَدَّثَنَا يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ قَالَ اَنَسٌ كَانَ اَبُوْ ذَرٍ يُحَدِّثُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فُرِجَ سَقْفُ بَيْتِيْ وَ اَنَا بِمَكَّةَ فَنَزَلَ

باب ۳۰۷: ذَ حضرت ادریس علیه السلام بیان. او ذَ اللّٰه تعالىٰ فرمان. مونږ ادریسؑ ته اوچته مرتبه عطا کړه. عبدان. عبداللّٰه. یونس. زهري. (دویم سند) احمد بن صالح. عنبسه. یونس. ابن شهاب. انس. حضرت ابوذرؓ نه روایت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم اوفرمائیل (د معراج په شپه) زما ذَ کور چهت پرانستے شو او زهٔ (هغه وخت) مکه کښې ووم. نو جبرائیلؑ راغے او هغه زما سینه اوخیرله. بیائے په آب زمزم او وینزله بیائے ذَ سرو زرو یو تالے چه د حکمت او ایمان نه ډک وو راوړلو او هغه ئے زما په سینه کښے راتوئے کړلو. زما سینه ئے ذَ خیرلو نه پس برابره کړه او بیائے زهٔ د لاس نه

جبریلُ فَفَرَجَ صَدْرِیُ ثُمَّ غَسَلَهُ
ماءِ زَمْزَمَ ثُمَّ جَاءَ بِطَسْتٍ مِّنْ
ذهبٍ مُمْتَلِیءٍ حِکْمَةً وَّ اِیْمَانًا
فَافْرَغَهَا فِیْ صَدْرِیُ ثُمَّ اَطْبَقَهُ
ثُمَّ اَخَذَ بِیَدِیْ فَعَرِجَ بِیْ اِلَی
السَّمَاءِ فَلَمَّا جَاءَ اِلَی السَّمَاءِ
الدُّنْیَا قَالَ جِبْرِیْلُ لِخَازِنِ السَّمَاءِ
افْتَحْ قَالَ مَنْ هٰذَا قَالَ هٰذَا جِبْرِیْلُ
قَالَ هَلْ مَعَكَ اَحَدٌ قَالَ مَعِیَ مُحَمَّدٌ قَالَ
اُرْسِلَ اِلَیْهِ قَالَ نَعَمْ فَفَتَحَ فَلَمَّا عَلَوْنَا
السَّمَاءَ اِذَا رَجُلٌ عَنْ یَمِیْنِهٖ اَسْوِدَةٌ وَ
عَنْ یَسَارِهٖ اَسْوِدَةٌ فَاِذَا نَظَرَ قِبَلَ یَمِیْنِهٖ
ضَحِكَ وَ اِذَا نَظَرَ قِبَلَ شِمَالِهٖ بَکٰی
فَقَالَ مَرْحَبًا بِالنَّبِیِّ الصَّالِحِ وَالْاِبْنِ
الصَّالِحِ قُلْتُ مَنْ هٰذَا یَا جِبْرِیْلُ قَالَ
هٰذَا اٰدَمُ وَ هٰذِهِ الْاَسْوِدَةُ عَنْ یَمِیْنِهٖ وَ
عَنْ شِمَالِهٖ نَسَمُ بَنِیْهِ فَاَهْلُ الْیَمِیْنِ
مِنْهُمْ اَهْلُ الْجَنَّةِ وَالْاَسْوِدَةُ الَّتِیْ
عَنْ شِمَالِهٖ اَهْلُ النَّارِ فَاِذَا نَظَرَ قِبَلَ
یَمِیْنِهٖ ضَحِكَ وَ اِذَا نَظَرَ قِبَلَ شِمَالِهٖ
بَکٰی ثُمَّ عَرَجَ بِیْ جِبْرِیْلُ حَتّٰی اَتٰی
السَّمَاءَ الثَّانِیَةَ فَقَالَ لِخَازِنِهَا اِفْتَحْ
فَقَالَ لَهُ خَازِنُهَا مِثْلَ مَا قَالَ الْاَوَّلُ
فَفَتَحَ قَالَ اَنَسٌ فَذَکَرَ اَنَّهُ وَجَدَ فِی
السَّمٰوٰتِ اِدْرِیْسَ وَ مُوْسٰی وَ عِیْسٰی
وَاِبْرَاهِیْمَ وَلَمْ یُثْبِتْ لِیْ کَیْفَ

اونیولم او اسمان طرف ته ئے اوخیژولم. کوم وخت چه د دنیا اسمان ته ورسیدو نو جبرئیلؑ د اسمان ته اورسیدو نو جبرئیلؑ د اسمان دربان ته اووے دروازه پرانزه. هغه تپوس اوکه څوک دي. هغه ورته اووے جبرئیلؑ دے. هغه تپوس اوکه تاسره بل څوک هم شته. ورته ئے اووے ماسره محمد صلعم دے. هغه تپوس اوکه آیا دے رابللے شوے دے هغه ورته اووے او دروازه پرانزه. کوم وخت چه مونږ اسمان ته ورغلو یو سړے مو اولیدلو چه څهٔ خلق ذ هغهٔ ښي طرف ته وو او څه ګس طرف ته کوم وخت چه هغه به ښي طرف ته اوکتل، نو خاندل به ئے او چه ګس طرف ته به ئے اوکتل، نو ژړل به ئے. هغه چه زهٔ اولیدم نو وے وئیل اے صالح نبي، او، اے صالح خویه مرحبا، (په خیره راغے، ستړے مهٔ شے) ما تپوس اوکهٔ دا څوک دے. جبرئیل جواب راکه. دا آدم علیه السلام دے او کوم خلق چه دَ هغه ښي او ګس طرف ته دي. دا د هغه د اولاد روحونه دي ښي طرف ته اهل جنت او ګس طرف ته اهل دوزخ دي. کوم وخت چه هغه خپل ښي طرف ته اوګوري نو په خندا شي او کله چه ګس طرف ته اوګوري نو په ژړا شي. بیا جبرنیل زهٔ نور پورته اوخیژولم حتٰي چه دویم اسمان ته اورسیدو نو جبرئیلؑ د هغې دربان ته هغه اووے کوم چه وړومبي ته ئے وئیلے وو، هغه دروازه پرانستله انسؓ وائي، ابوذرؓ دا بیان اوکه چه حضور صلعم اسمانونو کښې ادریسؑ، موسیٰؑ، عیسیٰؑ او ابراهیم علیه السلام اولیدلو. ابوذرؓ دَ هغوئ مقامات او مراتب ماته بیان نه کړل. سِوا ددے نه چه ابوذرؓ دا بیان ضرور اوکه چه حضورؐ آدم علیه السلام کښې او ابراهیم

مَنَازِلُهُمْ غَيْرَ اَنَّهُ قَدْ ذَكَرَ اَنَّهُ وَجَدَ اٰدَمَ فِي السَّمَاءِ الدُّنْيَا وَ اِبْرَاهِيْمَ فِي السَّادِسَةِ وَ قَالَ اَنَسٌ فَلَمَّا مَرَّ جِبْرِيْلُ بِاِدْرِيْسَ قَالَ مَرْحَبًا بِالنَّبِيِّ الصَّالِحِ وَالْاَخِ الصَّالِحِ قُلْتُ مَنْ هٰذَا قَالَ هٰذَا اِدْرِيْسُ ثُمَّ مَرَرْتُ بِمُوْسٰى فَقَالَ مَرْحَبًا بِالنَّبِيِّ الصَّالِحِ وَالْاَخِ الصَّالِحِ قُلْتُ مَنْ هٰذَا قَالَ هٰذَا مُوْسٰى ثُمَّ مَرَرْتُ بِعِيْسٰى فَقَالَ مَرْحَبًا بِالنَّبِيِّ الصَّالِحِ وَالْاَخِ الصَّالِحِ قُلْتُ مَنْ هٰذَا قَالَ عِيْسٰى ثُمَّ مَرَرْتُ بِاِبْرَاهِيْمَ فَقَالَ مَرْحَبًا بِالنَّبِيِّ الصَّالِحِ وَالْاِبْنِ الصَّالِحِ قُلْتُ مَنْ هٰذَا قَالَ هٰذَا اِبْرَاهِيْمُ قَالَ وَ اَخْبَرَنِيْ ابْنُ الْحَزْمِ اَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ وَ اَبَا حَيَّةَ الْاَنْصَارِيَّ كَانَا يَقُوْلَانِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ عُرِجَ بِيْ حَتّٰى ظَهَرْتُ لِمُسْتَوًى اَسْمَعُ صَرِيْفَ الْاَقْلَامِ قَالَ ابْنُ حَزْمٍ وَ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَفَرَضَ اللّٰهُ عَلَيَّ خَمْسِيْنَ صَلٰوةً فَرَجَعْتُ بِذٰلِكَ حَتّٰى اَمُرَّ بِمُوْسٰى فَقَالَ مُوْسٰى مَا الَّذِيْ فَرَضَ عَلٰى اُمَّتِكَ قُلْتُ فَرَضَ عَلَيْهِمْ خَمْسِيْنَ صَلٰوةً فَقَالَ رَاجِعْ رَبَّكَ فَاِنَّ اُمَّتَكَ لَا تُطِيْقُ ذٰلِكَ فَرَجَعْتُ فَرَاجَعْتُ رَبِّيْ فَوَضَعَ شَطْرَهَا فَرَجَعْتُ

علیه السلام شپږم اسمان کښې اولید. انسؓ وائي کوم وخت چه جبرئیلؑ د حضورؐ په ملګرتیا کښې په ادریسؑ تیریدلو نو هغهٔ اووے' اے صالح نبي' اے صالح وروره په خیره راغلے (هر کله راشے) ما تپوس او که دا څوک دے نو جبرئیلؑ اووے دا ادریس علیه السلام دے بیا زهٔ په موسٰیؑ تیر شوم' هغهٔ اووے اے صالح نبي او اے صالح وروره هر کله راشے ما تپوس او که دا څوک دے. جبرئیلؑ اووے دا موسٰیؑ دے. بیا زهٔ په عیسٰیؑ تیر شوم. هغهٔ اووے اے صالح نبي او اے صالح وروره هر کله راشے. ما تپوس او که دا څوک دے نو جبرئیلؑ اووے دا عیسٰیؑ دے بیا په ابراهیم علیه السلام څما تیریدهٔ اوشو' هغهٔ اووے اے صالح نبي او اے صالح ځویه په خیره راغلے. ما تپوس او که دا څوک دے' نو جبرئیلؑ اووے دا ابراهیمؑ دے. ابن شهاب وائي دَ ابن حزم بیان دے چه ابن عباسؓ اوابوحیه انصاري به وئیلے. رسول الله صلعم اوفرمائیل. بیا زهٔ پورته اوخیژولے شوم' حتٰي چه یو اوچت مقام ته اورسیدم چه دَ هغې ځائے نه د قلمونو دَ کش کش آواز راتلو. ابن حزم او انس بن مالکؓ اووے. رسول الله صلعم اوفرمائیل. بیا الله تعالٰي په ما پنځوس مونځونه فرض کړل. نو زهٔ دے حکم سره واپس راغلم. حتٰي چه زهٔ په موسٰي علیه السلام تیریدم. موسٰي تپوس او که. الله تعالٰي ستا په اُمت څه فرض کړل. ما ورته اووے پنځوس مونځونه. موسٰیؑ اووے. تاسو خپل پروردګار ته دوباره اووائے. ځکه چه ستاسو امت کښې دومره طاقت نشته. زهٔ واپس لاړم خپل پروردګار ته م عرض او که' الله تعالٰي د هغې یوه حصه معاف کړله. بیا

مُوْسٰى فَقَالَ رَاجِعْ رَبَّكَ فَذَكَرَ مِنْهُ فَوَضَعَ شَطْرَهَا فَرَجَعْتُ اِلٰى مُوْسٰى فَاَخْبَرْتُهُ فَقَالَ رَاجِعْ رَبَّكَ فَاِنَّ اُمَّتَكَ لَا تَطِيْقُ ذٰلِكَ فَرَجَعْتُ فَرَاجَعْتُ رَبِّيْ فَقَالَ هِيَ خَمْسٌ وَهِيَ خَمْسُوْنَ لَا يُبَدَّلُ الْقَوْلُ لَدَيَّ فَرَجَعْتُ اِلٰى مُوْسٰى فَقَالَ رَاجِعْ رَبَّكَ فَقُلْتُ قَدِ اسْتَحْيَيْتُ مِنْ رَبِّيْ ثُمَّ انْطَلَقَ حَتّٰى اَتٰى بِي السِّدْرَةَ الْمُنْتَهٰى فَغَشِيَهَا اَلْوَانٌ لَّا اَدْرِيْ مَاهِيَ ثُمَّ اُدْخِلْتُ فَاِذَا فِيْهَا جَنَابِذُ اللُّؤْلُوءِ وَ اِذَا تُرَابُهَا الْمِسْكُ.

زهٔ موسیٰ له واپس راغلم ما هغه ته حال اووے هغه اووے خپل پروردګار ته بیا عرض اوکړه خکه چه ستاسو امت کښې ددے طاقت نشته زهٔ واپس راغلم بیا م پروردګار ته اووے نو هغه اوفرمائيل دا پنځه مونځونه (باقي پاتې شويدي) او دا ثواب کښې د پنځوسو مونځونو برابر دي بیا زه موسیٰ له واپس راغلم هغه اووے خپل پروردګار ته بیا عرض اوکه. ما ورته اووے. اوس خو ماله د خپل پروردګار نه شرم راځي. بیا زه جبرئيلؑ سدرة المنتهٰي ته اورسولم. په هغې کښې څه عجیبه قسم داسے رنګونه په نظر راتلل، چه هغه زه بیانولے نشم. بیا زهٔ جنت کښې داخل کړے شوم نو د هغے کنکر موتیان وو او ذ هغې خاورهٔ مشک وه.

## باب۳۰۸: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ اِلٰى عَادٍ اَخَاهُمْ هُوْدًا قَالَ يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ وَ قَوْلِهٖ اِذْ اَنْذَرَ قَوْمَهٗ بِالْاَحْقَافِ اِلٰى قَوْلِهٖ كَذٰلِكَ نَجْزِى الْقَوْمَ الْمُجْرِمِيْنَ فِيْهِ عَنْ عَطَاءٍ وَ سُلَيْمَانَ عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب۳۰۸: آیت کریمه او مونږ عاد قوم ته ذ هغوئ ورور هود علیه السلام رسول اولیږلو. هغهٔ اووے اے خما قومه ذ الله عبادت کوئ او آیت کریمه او کوم وخت چه هغهٔ خپل قوم احقاف کښې (د الله تعالي د عذاب نه) اویرولو. مُجْرِمِيْن پورے. دے کښې عطاء او سلیمان عائشهؓ ذ رسالت مآب صلي الله علیه وسلّم نه روایت کوي.

## بَاب۳۰۹: قَوْلِ اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ وَ اَمَّا عَادٌ فَاُهْلِكُوْا بِرِيْحٍ صَرْصَرٍ شَدِيْدَةٍ عَاتِيَةٍ. قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنِ الْخُزَّانِ سَخَّرَهَا عَلَيْهِمْ سَبْعَ لَيَالٍ وَ ثَمَانِيَةَ اَيَّامٍ حُسُوْمًا مُتَتَابِعَةً فَتَرَى الْقَوْمَ فِيْهَا صَرْعٰى كَاَنَّهُمْ اَعْجَازُ نَخْلٍ خَاوِيَةٍ

باب۳۰۹: آیت او پاتے شو عاد نو هغوي ډیرے تیزے او سختے هوا سره برباد کړے شو صرصر: معني تیزه هوا. ابن عیینه وائي چه عاتیه دے هوا ته خکه وئيلے شي چه دا خپلو پاسبانو سره سرکشي کوي دا هوا، اوه شپے او اتهٔ ورځے مسلسل مسلط وه، حسومًا یعني مسلسل لګاتار نو تهٔ خلق هلته غرځیدلے وینے. ګویا چه هغه لکه د قجورو جرړے (او، تنے) دي. اعجاز

اُصُوْلُهَا فَهَلْ تَرٰى لَهُمْ مِنْ بَاقِيَةٍ بَقِيَّةٍ.

يعني د هغې جوړې خو څه چه ته د هغې نښې باقي وينې. باقيه معني دي بقيه، بچ شوې، پاتې شوې.

۵٦٧: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ عَرْعَرَةَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْحَكَمِ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ نُصِرْتُ بِالصَّبَا وَ اُهْلِكَتْ عَادٌ بِالدَّبُوْرِ قَالَ وَ قَالَ ابْنُ كَثِيْرٍ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ ابْنِ اَبِيْ نُعْمٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍؓ قَالَ بَعَثَ عَلِيٌّ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِذُهَيْبَةٍ فَقَسَمَهَا بَيْنَ الْاَرْبَعَةِ الْاَقْرَعِ بْنِ حَابِسٍ الْحَنْظَلِيِّ ثُمَّ الْمَجَاشِعِيِّ وَ عُيَيْنَةَ بْنِ بَدْرٍ الْفَزَارِيِّ وَ زَيْدَ الطَّائِيِّ ثُمَّ اَحَدِ بَنِيْ نَبْهَانَ وَ عَلْقَمَةَ بْنِ عَلَاثَةَ الْعَامِرِيِّ ثُمَّ اَحَدِ بَنِيْ كِلَابٍ فَغَضِبَتْ قُرَيْشٌ وَالْاَنْصَارُ قَالُوْا يُعْطِي صَنَادِيْدَ اَهْلِ نَجْدٍ وَ يَدَعُنَا قَالَ اِنَّمَا اَتَاَلَّفُهُمْ فَاَقْبَلَ رَجُلٌ غَائِرُ الْعَيْنَيْنِ مُشْرِفُ الْوَجْنَتَيْنِ نَاتِئُ الْجَبِيْنِ كَثُّ اللِّحْيَةِ مَحْلُوْقٌ فَقَالَ اتَّقِ اللّٰهَ يَا مُحَمَّدُ فَقَالَ مَنْ يُطِيْعِ اللّٰهَ اِذَا عَصَيْتُ اَيَاْمَنُنِيَ اللّٰهُ عَلٰى اَهْلِ الْاَرْضِ فَلَا تَاْمَنُوْنِيْ فَسَاَلَهُ رَجُلٌ قَتْلَهُ اَحْسِبُهُ خَالِدَ بْنَ الْوَلِيْدِ فَمَنَعَهُ فَلَمَّا وَلّٰى قَالَ اِنَّ مِنْ ضِئْضِئِ هٰذَا اَوْفِيْ عَقِبِ هٰذَا قَوْمٌ يَقْرَاُوْنَ

۵٦٧: محمد بن عرعره. شعبه. حكم. مجاهد. حضرت عباسؓ نه روايت كوي. رسول الله صلعم اوفرمائيل، صبا (هوا) سره خما مدد اوكړې شو او د بور (هوا) سره عاد قوم هلاک شولو. ابن كثير. سفيان. د هغهٔ پلار ابن ابو نعم. حضرت ابو سعيد خدريؓ نه روايت دې. حضرت علي رسول الله صلعم ته څهٔ سرهٔ زر اوليږل. نو حضورؐ هغه څلورو سړو كښې تقسيم كړل. اقرع بن حابس حنظلي ثم المجاشعي، عيينه بن بدر فزاري، زيد طائي چه ورستو بنو بنهان كښې شامل شو؛ او علقمه بن علاثه عامري چه ورستو بني كلاب سره متعلق شو، نو قريش او انصار په دې ناراض شو اووئيلے چه حضورؐ د اهل نجد سردارانو له ورکوي. او مونږ له نه راكوي. حضور صلعم اوفرمائيل. زهٔ دَ هغوئ تاليف (دَ زړونو مائل كولو دَ پاره) كوم. بيا يو سړے مخے ته راغے. دَ هغهٔ سترګے دننه ننوتلے، اننګي ئے بهر راوتلي وو. تندے ئے اوچت ږيره ئے ګنړه او سر ئے خريلے وو. هغهٔ اووے اے محمد صلعم د خدائے نه اُويريږه. حضورؐ ورته اوفرمائيل كه زهٔ دَ خدائے نافرماني شروع كړم نو بيا د هغهٔ اطاعت به څوک كوي. الله پاک خو زهٔ په زمكه اوسيدونكو امين جوړ كړے يم او ته ما امين نه ګڼړې، بيا د حضورؐ نه يو سړي چه شايد خالد بن وليد وو د هغهٔ دَ قتل اجازت اوغوښتلو خو حضورؐ منع كړلو. څهٔ وخت چه هغه سړے واپس لاړ حضورؐ اوفرمائيل ددهٔ نسل كښې يا وے فرمائيل ددهٔ نه پس به څهٔ داسے

الْقُرْآنَ لَا يُجَاوِزُ حَنَاجِرَهُمْ يَمْرُقُوْنَ مِنَ الدِّيْنِ مُرُوْقَ السَّهْمِ مِنَ الرَّمِيَّةِ يَقْتُلُوْنَ اَهْلَ الْاِسْلَامِ وَ يَدَعُوْنَ اَهْلَ الْاَوْثَانِ لَئِنْ اَنَا اَدْرَكْتُهُمْ لَاَقْتُلَنَّهُمْ قَتْلَ عَادٍ.

خلق وي چه قرآن به لولي خو هغه به د هغوي د حلق نه لاندې نه کوزيږي، هغوئ به د دين نه داسې اوځي څنګه تير د کمان نه اوځي. اهل اسلام به قتل کړي ليکن بت پرستو ته به لاس هم نه وراوړي که ما هغوئ بيامونده نو د عاد په شان به م قتل کړې وې.

**٥٢٨: حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ يَزِيْدَ** حَدَّثَنَا اِسْرَائِيْلُ عَنْ اَبِيْ اِسْحَاقَ عَنِ الْاَسْوَدِ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ.

**٥٢٨:** خالد بن يزيد. اسرائيل. ابو اسحاق. اسود. عبدالله بن مسعودؓ نه روايت کوي، هغه وائي، ما د رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ ط (د مشهور قرأت مطابق) اوريدلې دې.

**بَابٌ ١٠٣١: قِصَّةِ يَاجُوْجَ وَمَاجُوْجَ.** وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى قَالُوْا يٰذَا الْقَرْنَيْنِ اِنَّ يَاجُوْجَ وَ مَاجُوْجَ مُفْسِدُوْنَ فِي الْاَرْضِ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ يَسْئَلُوْنَكَ عَنْ ذِي الْقَرْنَيْنِ قُلْ سَاَتْلُوْ عَلَيْكُمْ مِنْهُ ذِكْرًا اِنَّا مَكَّنَّا لَهٗ فِي الْاَرْضِ وَاٰتَيْنَاهُ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ سَبَبًا اِلٰى قَوْلِهٖ اٰتُوْنِيْ زُبَرَ الْحَدِيْدِ وَاحِدُهَا زُبْرَةٌ وَّ هِيَ الْقِطَعُ حَتّٰى اِذَا سَاوٰى بَيْنَ الصَّدَفَيْنِ يُقَالُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ الْجَبَلَيْنِ وَالسَّدَّيْنِ الْجَبَلَيْنِ خَرْجًا اَجْرًا قَالَ انْفُخُوْا حَتّٰى اِذَا جَعَلَهٗ نَارًا قَالَ اٰتُوْنِيْ اُفْرِغْ عَلَيْهِ قِطْرًا اَصُبُّ عَلَيْهِ رَصَاصًا وَّ يُقَالُ الْحَدِيْدُ وَ يُقَالُ الصُّفْرُ

**باب ١٠٣١:** د ياجوج ماجوج د واقعې بيان. او فرمانٌ خداوندي، هغوئ اووې. اې ذوالقرنين بيشکه ياجوج او ماجوج زمکه کښې فساد پيدا کوي باب فرمان الٰهي او دا خلق تا نه د ذوالقرنين باره کښې تپوس کوي، ورته اووايه. زۀ د هغۀ لږه شان قصه تاسو ته کوم. مونږ هغه له د زمکې په مخ حکومت ورکړې وو او مونږ هغه ته د هر قسم سامان ورکړې وو نو هغه په يوه لاره روان شو. ماله د اوسپنې ځادرونه راوړئ، پورې، د زبر: مفرد، زبرة معني ټکړې، تردې چه هغه سره ئې د دوو غرونو مينځ برابر که. ابن عباسؓ نه منقول دي، صَدَفَيْنِ معني دوه غرونه او سدين معني هم دوه غرونه، خرجًا معني اُجرت. ذوالقرنين اووې، دا اوپوکئ حتي چه هغه ئې د اُور په شان سُر (سرخ) کړلو. ذوالقرنين اووې ماله راشئ چه زۀ په دې قطر واچوم يعني سيکه (سيسه) بعضې وائي چه اوسپنه او بعضې وائي چه پيتل او ابن عباسؓ اووې چه تانبه، نه هغوي په دې د ختلو طاقت

وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ النُّحَاسُ فَمَا اسْطَاعُوْا اَنْ يَّظْهَرُوْهُ يَعْلُوْهُ اسْتَطَاعَ اسْتَفْعَلَ مِنْ اَطَعْتُ لَهٗ فَلِذٰلِكَ فُتِحَ اَسْطَاعَ يَسْطِيْعُ وَ قَالَ بَعْضُهُمْ اسْتَطَاعَ يَسْتَطِيْعُ وَمَا اسْتَطَاعُوْا لَهٗ نَقْبًا قَالَ هٰذَا رَحْمَةٌ مِّنْ رَّبِّيْ فَاِذَا جَآءَ وَعْدُ رَبِّيْ جَعَلَهٗ دَكًّا اَلْزَقَهٗ بِالْاَرْضِ وَ نَاقَةٌ دَكَّاءَ لَاسَنَامَ لَهَا وَالدَّكْدَاكُ مِنَ الْاَرْضِ مِثْلُهٗ حَتّٰى صَلُبَ مِنَ الْاَرْضِ وَ تَلَبَّدَ وَ كَانَ وَعْدُ رَبِّيْ حَقًّا وَ تَرَكْنَا بَعْضَهُمْ يَوْمَئِذٍ يَّمُوْجُ فِيْ بَعْضٍ حَتّٰى اِذَا فُتِحَتْ يَاجُوْجُ وَ مَاجُوْجُ وَهُمْ مِّنْ كُلِّ حَدَبٍ يَّنْسِلُوْنَ قَالَ قَتَادَةُ حَدَبٍ اَكَمَةٌ قَالَ رَجُلٌ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاَيْتُ السَّدَّ مِثْلَ الْبُرْدِ الْمُحَبَّرِ قَالَ رَاَيْتَهٗ.

۵۶۹: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ اَنَّ زَيْنَبَ بِنْتَ اَبِيْ سَلَمَةَ حَدَّثَتْهُ عَنْ اُمِّ حَبِيْبَةَ بِنْتِ اَبِيْ سُفْيَانَ عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلَيْهَا فَزِعًا يَقُوْلُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَيْلٌ لِّلْعَرَبِ مِنْ شَرٍّ قَدِ اقْتَرَبَ فُتِحَ الْيَوْمَ مِنْ رَّدْمِ يَاجُوْجَ وَ

لري. يَظْهَرُوْهُ معني چه هغوي په دے اوخيژي. استطاع دَ اَطعتُ له باب استفعال دے. په دے وجه مفتوح لوستے شوے دے. اسطاع يسطيع او بعضے وائي' استطاع يستطيع' او نه هغوئ دے کښے سورے (سوراخ) کولے شي. ذوالقرنين اووے' دا خما د پروردګار مهرباني ده. او کوم وخت چه خما دَ رب وعده راشي نو هغه به دا ريزه ريزه کړي دَ کاء: معني دا به زمکے سره يوخائے کړي. ناقة دکاء: هغے اوښے ته وائي چه دَ هغے قب نه وي او د کداک هغه زمکه ده چه دَ هموار کيدو په وجه دومره سخته شوي وي لکه چه په هغے تختے جم شوے وي او زما د رب وعده رېښتنے ده او مونږ به په هغه ورځ دَ هغوئ دا حالت کړو چه يو بل کښے به ګډ وډه شي حتٰي چه ياجوج ماجوج به راپرانستے شي او هغوئ به په هرے بلندئ اوخيژي. قتاده وائي د حدب معني ده ټيله (ډهيرئ) يو سړي نبي صلعم ته اووے ما يو نقشدار ديوال د څادر په شان ليدلے دے (آيا دا سد سکندري دے) حضورؐ ورته اوفرمائيل او تا هغه ليدلے دے.

۵۶۹: يحيٰي بن بکير. ليث. عقيل. ابن شهاب. عروه بن زبير. زينب بنت ابو اسلمه. اُم حبيبه بنت ابوسفيان. بي بي بنت جحشؓ نه روايت کوي. رسالت مآب صلي اللّٰه عليه وسلّم يوه ورځ خوفزده هغے کره تشريف راوړلو. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ دَ عربو دِ خرابي وي. هغے شر سره چه قريب راغے. حضورؐ د قتمے ګوتے او دَ شهادت د ګوتے حلقه جوړه کړه' هغے طرف ته ئے اشاره اوکړه وے فرمائيل' نن

يَأْجُوجَ مِثْلُ هٰذِهٖ وَ حَلَّقَ بِاَصْبَعِهٖ الْاِبْهَامِ وَالَّتِیْ تَلِيْهَا قَالَتْ زَيْنَبُ بِنْتُ جَحْشٍ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَنَهْلِكُ وَ فِيْنَا الصَّالِحُوْنَ قَالَ نَعَمْ اِذَا كَثُرَ الْخُبْثُ.

ددې برابر یاجوج ماجوج دیوال کښې سُورے او کړلو بي بي زینبؓ عرض او کړه یا رسول اللّٰهؐ آیا مونږ به هلاک شو حالانکه مونږ کښې نیک خلق هم شته حضورؐ ورته اوفرمائیل، او، هغه وخت چه فسق و فجور به زیات شي.

۵۷۰: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا ابْنُ طَاؤُسٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِیْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَتَحَ اللّٰهُ مِنْ رَّدْمِ يَاجُوْجَ وَ مَاجُوْجَ مِثْلَ هٰذَا وَ عَقَدَ بِيَدِهٖ تِسْعِيْنَ.

۵۷۰: مسلم بن ابراهیم. وهیب. ابن طاؤس ذ هغهٔ پلار حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي. نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم ارشاد اوفرمائیلو اللّٰه تعالیٰ د "یاجوج ماجوج" دومره دیوال پرانستلو. او د حضورؐ د خپل لاس نه ذ نوے (۹۰) هندسے حلقه جوړه کړله.

۵۷۱: حَدَّثَنِیْ اِسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ حَدَّثَنَا اَبُوْ صَالِحٍ عَنْ اَبِیْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَقُوْلُ اللّٰهُ تَعَالٰى يَا اٰدَمُ فَيَقُوْلُ لَبَّيْكَ وَ سَعْدَيْكَ وَالْخَيْرُ فِیْ يَدَيْكَ فَيَقُوْلُ اَخْرِجْ بَعْثَ النَّارِ قَالَ وَمَا بَعْثُ النَّارِ قَالَ مِنْ كُلِّ اَلْفٍ تِسْعَمِائَةٍ تِسْعَةً وَّ تِسْعِيْنَ فَعِنْدَهٗ يَشِيْبُ الصَّغِيْرُ وَتَضَعُ كُلُّ ذَاتِ حَمْلٍ حَمْلَهَا وَتَرَى النَّاسَ سُكَارٰى وَمَا هُمْ بِسُكَارٰى وَلٰكِنَّ عَذَابَ اللّٰهِ شَدِيْدٌ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ

۵۷۱: اسحاق بن نصر. ابو اسامه. اعمش. ابو صالح. حضرت ابو سعید خدريؓ نه روایت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل. اللّٰه تعالیٰ به ذ قیامت په ورځ اوفرمائي اے آدم، هغه به عرض او کړي. زهٔ حاضر یم او شرف یاب یم. او هر قسم خیر ستا په لاس کښې دے. اللّٰه تعالیٰ به اوفرمائي دوزخ کښې تلونکے لښکر اوکاږه. هغه به عرض او کړي د دوزخ خومره لښکر دے. اللّٰه پاک به فرمائي په زرو کښې یو کم زر به دوزخ ته ځي او یو به جنت ته ځي، او هغه به داسے وخت وي، چه (د ډیرے ویرے نه) بچي به بوډاګان شي او ذ هرے حاملے ښځے حمل به اوغورځیږي. او تاته به خلق ذ نشے په حالت کښې (پریشانه او سرګردانه) په نظر راځي حالانکه هغوئ به نشه کښې نه وي بلکه د خدائے عذاب به سخت وي. صحابهؓ عرض او کړه یا رسول اللّٰهؐ (جنت کښې زرو

وَ اَيُّنَا ذٰلِكَ الْوَاحِدُ قَالَ اَبْشِرُوْا فَاِنَّ مِنْكُمْ رَجُلٌ وَمِنْ يَّاجُوْجَ وَ مَاجُوْجَ اَلْفٌ ثُمَّ قَالَ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ اِنِّيْ اَرْجُوْ اَنْ تَكُوْنُوْا رُبُعَ اَهْلِ الْجَنَّةِ فَكَبَّرْنَا فَقَالَ اَرْجُوْ اَنْ تَكُوْنُوْا ثُلُثَ اَهْلِ الْجَنَّةِ فَكَبَّرْنَا فَقَالَ اَرْجُوْ اَنْ تَكُوْنُوْا نِصْفَ اَهْلِ الْجَنَّةِ فَكَبَّرْنَا فَقَالَ مَا اَنْتُمْ فِي النَّاسِ اِلَّا كَالشَّعْرَةِ السَّوْدَاءِ فِيْ جِلْدِ ثَوْرٍ اَبْيَضَ اَوْ كَشَعْرَةٍ بَيْضَاءَ فِيْ جِلْدِ ثَوْرٍ اَسْوَدَ.

کښې) يو تلونکے به مونږ کښې څوک وي. حضور ورته اوفرمائيل، خوشحاله شئ چه تاسو کښې به يو سړے وي او ياجوج ماجوج کښې يو زر. بيا حضور اوفرمائيل قسم دے په هغه ذات چه د هغه قبضه کښې خما ساه ده، زه اُميد کوم چه تاسو به د اهل جنت څلورمه حصه يئ، مونږ خلقو تکبير (اللّٰه اکبر) اووے. بيا حضور صلعم اوفرمائيل زه اميد کوم تاسو به د اهل جنت دريمه حصه يئ. مونږ بيا تکبير اوکه حضورﷺ بيا اوفرمائيل زهٔ اميد کوم تاسو به د اهل جنت نيمه حصه يئ مونږ بيا تکبير اوکه. حضورﷺ اوفرمائيل تاسو خو د نورو خلقو مقابله کښې داسے يئ لکه تور ويښته چه د سپين غوئے په بدن وي. يا سپين ويښته د تور غوئے په بدن وي.

باب ۳۱۱: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَاتَّخَذَ اللّٰهُ اِبْرَاهِيْمَ خَلِيْلًا وَ قَوْلُهٗ اِنَّ اِبْرَاهِيْمَ كَانَ اُمَّةً قَانِتًا وَّ قَوْلُهٗ اِنَّ اِبْرَاهِيْمَ لَاَوَّاهٌ حَلِيْمٌ وَ قَالَ اَبُوْ مَيْسَرَةَ الرَّحِيْمُ بِلِسَانِ الْحَبْشَةِ.

باب ۳۱۱: آيت کريم. او اللّٰه ابراهيمؑ خپل دوست جوړ کړلو. او بيشکه ابراهيم عليه السلام د خدائے عبادت کوونکے وو او بيشکه ابراهيم عليه السلام نرم زړے او بردبار وو ابوميسره وائي دَ اواه معني حبشي ژبه کښې رحيم دے.

۲۷۵: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا الْمُغِيْرَةُ ابْنُ النُّعْمَانِ قَالَ حَدَّثَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّكُمْ مَحْشُوْرُوْنَ حُفَاةً عُرَاةً غُرْلًا ثُمَّ قَرَاَ كَمَا بَدَاْنَا اَوَّلَ خَلْقٍ نُعِيْدُهٗ وَعْدًا عَلَيْنَا اِنَّا كُنَّا فَاعِلِيْنَ وَ

۲۷۵: محمد بن کثير. سفيان. مغيره بن نعمان. سعيد بن جبير. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل ستاسو حشر (پاسيدل) به پښے ابلے پښے، بربنډ بدن او بغير ختنے (سنت) وي. بيا حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دا آيت اولوست: مونږ چه څنګه ابتدا کښې پيدا کړي وو. دغه شان به ئے مونږ دوباره را پيدا کړو دا زمونږ وعده زمونږ په ذمه ده او مونږ به دا ضرور پوره کوو او دَ قيامت په

اَوَّلُ مَنْ يُكْسٰى يَوْمَ الْقِيَامَةِ اِبْرَاهِيْمُ وَ اِنَّ اُنَاسًا مِنْ اَصْحَابِيْ يُؤْخَذُ بِهِمْ ذَاتَ الشِّمَالِ فَاَقُوْلُ اَصْحَابِيْ اَصْحَابِيْ فَيَقُوْلُ اِنَّهُمْ لَمْ يَزَالُوْا مُرْتَدِّيْنَ عَلٰى اَعْقَابِهِمْ مُنْذُ فَارَقْتَهُمْ فَاَقُوْلُ كَمَا قَالَ الْعَبْدُ الصَّالِحُ وَ كُنْتُ عَلَيْهِمْ شَهِيْدًا مَّا دُمْتُ فِيْهِمْ اِلٰى قَوْلِهٖ الْحَكِيْمُ.

ورځ به دَ ټولونه وړمبنے حضرت ابراهیمؑ ته جامے واغستولے شي او په دغه ورځ به خما خو اصحاب ګس جانب ته بوتلے شي نو زه به وایم دا خو خما اصحاب دي نو اللّٰه تعالٰي به اوفرماني. ستا د جدايئ نه پس دا خلق خپل زوړ دين ته اوګرځيدل۱. نو زه به هغه وخت داسے اووايم ځنګه چه د اللّٰه تعالٰي نيک‌بنده (عيسیٰ) وئيلے وو او زهٔ پـه هغوئ ګواه ووم. څو پورے چه زهٔ هغوئ کښے ووم، او کوم وخت چه دے زهٔ پورته کړم نو تهٔ دَ هغوئ نګران وے العزيز الحکيم: پورے.

۱. دا بـه دَ کلو هغه سخت زړي او نيغکي بدوان وي کوم چه برائے نام اسلام کښے داخل شوي وو او دَحضورؐ د وفات سره سَم بيا مرتد شوي وو او د اسلام خلاف مقابلے ته راوتي وو. ځنګه چه د داسے ډيرو عربو بدوانو ذکر په تاريخ کښے موجود دے کوم چه يا خو منافقان وو او د اسلام غلبے نه دَباويدلو سره په اسلام کښے داخل شوي وو يا بيا برائے نام اسلام کښے داخليدلو سره مسلمان شوي وو او هغوئ چرے هم اسلام سره څه دلچسپي ښکاره کړے نه وه. د داسے کمزوري ايمان والا مسلمانانو يوه طبقه هغه وه کومه چه د پاک حضرت صلي اللّٰه عليه وسلّم وفات سره مرتده شوه او دَ اسلامي خلافت خلاف ئے جنګ اوکړلو، بيائے شکست اوخوړو يا اووژلے شُو. په معتمدو او مشهورو اصحابو کښے څوک هم ددے حديث مصداق نيشته، او بحمداللّٰه په هغوئ کښے د هر يو د ژوند اوراق د آئينے پشان صفا او واضح دي.

۳۵۷ : حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَخِيْ عَبْدُ الْحَمِيْدِ عَنِ ابْنِ اَبِيْ ذِئْبٍ عَنْ سَعِيْدِ الْمَقْبُرِيْ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَلْقٰى اِبْرَاهِيْمُ اَبَاهُ اٰزَرَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَ عَلٰى وَجْهِ اٰزَرَ قَتَرَةٌ وَ غَبَرَةٌ فَيَقُوْلُ لَهٗ اِبْرَاهِيْمُ اَلَمْ اَقُلْ لَّكَ لَا تَعْصِنِيْ فَيَقُوْلُ اَبُوْهُ فَالْيَوْمَ لَا اَعْصِيْكَ فَيَقُوْلُ اِبْرَاهِيْمُ يَا رَبِّ اِنَّكَ وَعَدْتَّنِيْ اَنْ لَّا

۳۵۷ : اسمٰعيل بن عبداللّٰه. دَ هغهٔ ورور عبدالحميد. ابن ابي ذئب. سعيد مقبري. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، رسول اللّٰه صلعم اوفرمائيل. ابراهيمؑ بـه خپل پلار آزر سره د قيامت په ورځ يوځائے شي دَ آزر پـه مخ بـه (هغه وخت) تورواله او غبار ښور وي هغه تـه به حضرت ابراهيم فرمائي. آيا ما تاته نه وو وئيلے چه خما نافرماني مه کوه. دَ هغه پلار به ورته وائي اوس بـه زهٔ ستا نافرماني نه کوم، نو ابراهيمؑ به وائي اے زما پروردګاره تا ماسره د حشر په ورځ دَ نهٔ رسوا کولو وعده کړے وه نو کومه رسوائي به دَ خپل کمبخت پلار

تُخْزِيْنِي يَوْمَ يُبْعَثُوْنَ فَاَيُّ خِزْيٍ اَخْزٰى مِنْ اَبِيْ الْاَبْعَدِ فَيَقُوْلُ اللّٰهُ تَعَالٰى اِنِّيْ حَرَّمْتُ الْجَنَّةَ عَلَى الْكَافِرِيْنَ ثُمَّ يُقَالُ يَا اِبْرَاهِيْمُ مَاتَحْتَ رِجْلَيْكَ فَيَنْظُرُ فَاِذَا هُوَ بِذِبْحٍ مُتَلَطِّخٍ فَيُؤْخَذُ بِقَوَائِمِهٖ فَيُلْقٰى فِي النَّارِ.

د رسوائي نه زياته وي. الله پاک به ورته اوفرمائي: ما په كافرو جنت حرام كړيدے. بيا به ابراهيمؑ ته اوونيلے شي اے ابراهيمؑ كوره ستا د پښو لاندے څۀ دي: هغه چه اوګوري نو يو مذبوح (ذبح شوے) څناور به وينو كښے لړلے بياموسي. دَ هغے څناور پښے به اونيسي دوزخ كښے به اوغرځولے شي.

۵۷۴: حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَمْرٌو اَنَّ بُكَيْرًا حَدَّثَهٗ عَنْ كُرَيْبٍ مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْبَيْتَ وَجَدَ فِيْهِ صُوْرَةَ اِبْرَاهِيْمَ وَ صُوْرَةَ مَرْيَمَ فَقَالَ اَمَا لَهُمْ فَقَدْ سَمِعُوْا اَنَّ الْمَلَائِكَةَ لَا تَدْخُلُ بَيْتًا فِيْهِ صُوْرَةٌ هٰذَا اِبْرَاهِيْمُ مُصَوَّرٌ فَمَالَهٗ يَسْتَقْسِمُ.

۵۷۴: يحيٰي بن سليمان. ابن وهب. عمرو. بكير دَ ابن عباس آزاد كرده غلام، حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي رسول اللّٰه صلي الله عليه وسلّم چه كعبه كښے داخل شو هلته ئے د حضرت ابراهيمؑ او بي بي مريمؑ تصويرونه اوليد. حضور صلعم اوفرمائيل. قريشوته څۀ اوشو، حالانكه هغوئ اوريدلي وو چه فرښتے داسے كور كښے نه داخليږي كوم ځائے چه تصوير وي دا دَ ابراهيم تصوير جوړ شويدے بيا هغه هم غشي ويشتونكے.

۵۷۵: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ عِكْرَمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا رَاَى الصُّوَرَ فِي الْبَيْتِ لَمْ يَدْخُلْ حَتّٰى اَمَرَ بِهَا فَمُحِيَتْ فَرَاٰى اِبْرَاهِيْمَ وَ اِسْمَاعِيْلَ عَلَيْهِمَا السَّلَامُ بِاَيْدِيْهِمَا الْاَزْلَامُ فَقَالَ قَاتَلَهُمُ اللّٰهُ وَاللّٰهِ اِنِ اسْتَقْسَمَا بِالْاَزْلَامِ قَطُّ.

۵۷۵: ابراهيم بن موسٰي. هشام. معمر. ايوب. عكرمه. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي. رسول اللّٰه صلعم چه كعبه كښے تصويرونه اوليدل نو داخل نه شو. حتي چه هغه د حضورؐ حكم سره لرے كړے شو. او حضورؐ د ابراهيمؑ او اسمٰعيلؑ تصويرونه اوليدل. چه د هغوئ په لاس د فال غشي وو نو حضورؐ ارشاد اوفرمائيلو اللّٰه دِ په قريشو لعنت كړي په خدائے چه دے دواړو بزرګانو هيڅ كله تير نه وو ويشتلے.

۵۷۶: حَدَّثَنَا عَلِيُّ ابْنُ عَبْدِ

۵۷۶: علي بن عبداللّٰه. يحيٰي بن سعيد.

اللّٰهِ حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ سَعِيدُ بْنُ اَبِيْ سَعِيدٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قِيْلَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَنْ اَكْرَمُ النَّاسِ قَالَ اَتْقٰهُمْ فَقَالُوْا لَيْسَ عَنْ هٰذَا نَسْأَلُكَ قَالَ فَيُوْسُفُ نَبِيُّ اللّٰهِ بْنُ نَبِيِّ اللّٰهِ بْنِ نَبِيِّ اللّٰهِ ابْنِ خَلِيْلِ اللّٰهِ قَالُوْا لَيْسَ عَنْ هٰذَا نَسْأَلُكَ قَالَ فَعَنْ مَعَادِنِ الْعَرَبِ تَسْأَلُوْنَ خِيَارُهُمْ فِي الْجَاهِلِيَّةِ خِيَارُهُمْ فِي الْاِسْلَامِ اِذَا فَقُهُوْا قَالَ اَبُوْ اُسَامَةَ وَ مُعْتَمِرٌ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

عبيدالله. سعيد بن ابو سعيد دَ هغهٔ پلار. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي. رسول الله صلعم نه تپوس اوشو دَ تپولونه زيات معزز او بزرګ څوک دے. حضور ورته اوفرمائيل چه د تپولو نه زيات د خدائے خوف لري. خلقو ورته اووے مونږ دا تپوس نه کوو حضور ورته اوفرمائيل د تپولونه زيات معزز يوسف نبي الله ابن ابن نبي الله ابن خليل الله دے. خلقو اووے مونږ دا تپوس هم نه کوو نو حضورؐ اوفرمائيل آيا تاسو د عربو د خاندانونو متعلق تپوس کوئ. هغوئ کښې چه څوک د جاهليت زمانه کښې بهتر وو هغوئ اسلام کښې هم بهتر دي په شرط ددے چه علم دين حاصل کړي ابو اسامه. معتمر. عبيدالله. سعيد. ابوهريرهؓ دَ رسول الله صلعم نه روايت کوي.

۵۷۷: حَدَّثَنَا مُؤَمَّلٌ حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ حَدَّثَنَا عَوْفٌ حَدَّثَنَا اَبُوْ رَجَاءٍ حَدَّثَنَا سَمُرَةُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَتَانِي اللَّيْلَةَ اٰتِيَانِ فَاَتَيْنَا عَلٰى رَجُلٍ طَوِيْلٍ لَا اَكَادُ اَرٰى رَاْسَهٗ طُوْلًا وَ اِنَّهٗ اِبْرَاهِيْمُ عَلَيْهِ السَّلَامُ.

۵۷۷: مومل. اسمٰعيل. عوف. ابو رجاء. حضرت سمرهؓ نه روايت کوي، رسول الله صلعم اوفرمائيل نن شپه په (خوب کښې) ماته دوه سړي راغلل او مونږ تول يو طويل القامت سړي ته اورسيدو چه دَ هغه لمبائي په سبب ما د هغه سر نه شو ليدلے، هغه ابراهيم عليه السلام وو.

۵۷۸: حَدَّثَنِيْ بَيَانُ ابْنُ عَمْرٍو حَدَّثَنَا النَّضْرُ اَخْبَرَنَا ابْنُ عَوْنٍ عَنْ مُجَاهِدٍ اَنَّهٗ سَمِعَ ابْنَ عَبَّاسٍ وَ ذَكَرُوْا لَهُ الدَّجَّالَ بَيْنَ عَيْنَيْهِ مَكْتُوْبٌ كَافِرٌ اَوْكَ فَارَ قَالَ لَمْ اَسْمَعْهُ وَلٰكِنَّهٗ قَالَ اَمَّا اِبْرَاهِيْمُ فَانْظُرُوْا اِلٰى

۵۷۸: بيان بن عمرو. نضر ابن عون. مجاهد. ابن عباسؓ نه روايت کوي. دَ هغه مخکښې خلقو د دجال ذکر کولو چه دَ هغهٔ په تندي "کافر" يا "ک ف ر" ليکلي دي. ابن عباسؓ اووے ما دا نه دي اوريدلي. بلکه ما دا اوريدلي دي چه نبي صلعم اوفرمائيل که تاسو ابراهيم ليدل غواړئ نو ما اووينئ

صَاحِبِکُمْ وَ اَمَّا مُوْسٰی فَجَعْدٌ اٰدَمُ عَلٰی جَمَلٍ اَحْمَرَ مَخْطُوْمٍ بِخُلْبَةٍ کَاَنِّیْ اَنْظُرُ اِلَیْهِ اِنْحَدَرَ فِی الْوَادِیْ یُکَبِّرُ.

پاتې شو موسیٰ نو هغه الوول ویښتو واله او غنم رنګې یو سُـر اوښ باندې دې چه د قجورې د پوستکي مهار ورته لګیدلې دې ګویا زه هغه طرف ته ګورم چه هغه ژورې ته راکوزیږي.

۱. په صَاحِبُکُم لفظ سره اشاره پاک حضرتؐ خپل ذات مبارک طرفته کړې وه ولې چه پاک حضرتؐ ابراهیم علیه السلام سره ډیر زیات مشابه وو.

۵۷۹: حَدَّثَنَا قُتَیْبَةُ بْنُ سَعِیْدٍ حَدَّثَنَا مُغِیْرَةُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ الْقُرَشِیُّ عَنْ اَبِی الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَؓ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اِخْتَتَنَ اِبْرَاهِیْمُ عَلَیْهِ السَّلَامُ وَهُوَ ابْنُ ثَمَانِیْنَ سَنَةً بِالْقَدُّوْمِ.

۵۷۹: قتیبه بن سعید. مغیره بن عبدالرحمٰن قرشي. ابوالزناد. اعرج. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ارشاد اوفرمائیلو حضرت ابراهیم علیه السلام خپل سنت (ختنه قدوم[۱] سره ذَ اتیاؤ کالو په عمر کښې اوکړلو.

ف: بسولې، تر ښخ. تیشې. بعضې وائي چه قدوم د یو کلي نوم دې شام کښې. هلته ئې سنت اوکړلو. قدوم تشدید دال دې چه موضع ته ویلې شي.

۱. په روایتونو کښې اختلاف دې بعضو روایتونو کښې "قَدُّوم" د دال په شد سره راغلې دې او په بعضو روایتونو کښې د دال تخفیف سره. که چرې د دال تخفیف سره اولوستې شي نو د ترکانړ آله (ترخز) هم مرادیدې شي، هسې دا ذَ مختلفو مقاماتو نوم هم دې. او کچرې تشدید سره اولوستې شي نو یقیني طور سره به د یو مقام نوم وي.

۵۸۰: حَدَّثَنَا اَبُو الْیَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَیْبٌ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ بِالْقَدُوْمِ مُخَفَّفَةً تَابَعَهُ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ اِسْحَاقَ عَنْ اَبِیْ الزِّنَادِ تَابَعَهُ عَجْلَانُ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ وَ رَوَاهُ مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو عَنْ اَبِیْ سَلَمَةَ.

۵۸۰: ابوالیمان. شعیب. ابوالزناد. لفظ قدوم تخفیف دال سره روایت کړیدې. ددې متابع حدیث عبدالرحمان بن اسحاق د ابوالزناد او ددې متابع عجلان د ابوهریرهؓ نه روایت کړیدې. او دا محمد بن عمرو، ذَ ابو سلمه نه روایت کړې دې.

۵۸۱: حَدَّثَنَا سَعِیْدُ بْنُ تَلِیْدٍ الرُّعَیْنِیُّ اَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ

۵۸۱: سعید بن تلید رعیني. ابن وهب. جریر بن حازم. ایوب. محمد. ابوهریرهؓ نه روایت کوي. رسولْ

قَالَ اَخْبَرَنِيْ جَرِيْرُ بْنُ حَازِمٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَكْذِبْ اِبْرَاهِيْمُ اِلَّا ثَلَاثًا.

الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل ابراهيمؑ (حقيقة هيڅكله دروغ نه دي ونيلي' البته) د درے ځلے نه سوا[1]. ظاهري طور سره هم دروغ نه دي ونيلي (او درے ظاهري دروغوته توريه وائي. چه د هغے په جواز كښے قطعاً شبه نشته. بالخصوص د حاجت په موقعو كښے).

۱. د توريے مفهوم دا دے چه واقعه څه بله وي' ليكن يو سړے د څه خاص مصلحت په وجه سره هغے ته په ذو معنين الفاظو سره په داسے انداز كښے بيانه كړي چه مخاطب په اصل واقعه باندے پوهے نشي بلكه د هغهٔ ذهن خلاف واقعه څيز طرفته منتقل شي. شريعت په بعضو حالاتو كښے ددے اجازت وركړے دے. چونكه د حقيقت په اعتبار سره دا يو قسمه مغالطه وركول دي په دے وجه حديث ددے د پاره د كذب (يعني دروغو) لفظ استعمال كړے شو. حديث په تفصيل سره راروان دے.

۵۸۲: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَحْبُوْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ ابْنُ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ لَمْ يَكْذِبْ اِبْرَاهِيْمُ عَلَيْهِ السَّلَامُ اِلَّا ثَلٰثَ كَذَبَاتٍ ثِنْتَيْنِ مِنْهُنَّ فِيْ ذَاتِ اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ قَوْلُهُ اِنِّيْ سَقِيْمٌ وَّ قَوْلُهُ بَلْ فَعَلَهُ كَبِيْرُهُمْ هٰذَا وَ قَالَ بَيْنَا هُوَ ذَاتَ يَوْمٍ وَ سَارَةُ اِذْ اَتٰى عَلٰى جَبَّارٍ مِنَ الْجَبَابِرَةِ فَقِيْلَ لَهُ اِنَّ هٰهُنَا رَجُلًا مَعَهُ امْرَاَةٌ مِنْ اَحْسَنِ النَّاسِ فَاَرْسَلَ اِلَيْهِ فَسَاَلَهُ عَنْهَا فَقَالَ مَنْ هٰذِهٖ قَالَ اُخْتِيْ فَاَتٰى سَارَةَ قَالَ يَا سَارَةُ لَيْسَ عَلٰى وَجْهِ الْاَرْضِ مُؤْمِنٌ غَيْرِيْ وَ غَيْرُكِ وَ اَنَّ هٰذَا سَاَلَنِيْ فَاَخْبَرْتُهٗ اَنَّكِ اُخْتِيْ فَلَا تُكَذِّبِيْنِيْ فَاَرْسَلَ اِلَيْهَا

۵۸۲: محمد بن محبوب. حماد بن زيد. ايوب. محمد. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي' هغه فرمائي. ابراهيم عليه السلام صرف درے ځله (ظاهري) دروغ وئيلي دي. دوه ذَ خدائے ذَ پاره' د هغه دا قول چه زهٔ ناروغه يم[1]. او دا خو ذَ دوئ دے لوئے بُت كړيدي (دا خوئے د خدائے د پاره او يو ئے ځان ذَ پاره اووے دا چه) يو ورځ ابراهيمؑ او ذَ هغو ښځه بي بي سارهؓ روان وو چه د يو ظالم بادشاه په ملک تيريدل چا بادشاه ته اووے دلته يو داسے سړے راغلے دے' چه هغه سره بے انتها خوبصورته ښځه ده. هغے ظالم هغه ته سړي اوليګل او ذَ بي بي سارهؓ متعلق ئے تر تپوس اوكه چه دا څوک ده. ابراهيمؑ ورته اووے دا خما (ديني) خور ده. بيا ابراهيمؑ بي بي سارهؓ له راغے او ورته ئے اووے' اے سارهؓ د زمكے په مخ زما او ستا نه علاوه څوک مومن نشته. هغے ظالم مانه تپوس اوكه. ما ورته اووے دا زما خور ده' چه ما دروغژن نكړے. هغے ظالم بي بي سارهؓ اوغوښتله كوم وخت چه سارهؓ هغه ته اورسيده' نو هغے طرف ته ئے

فَلَمَّا دَخَلَتْ عَلَيْهِ ذَهَبَ يَتَنَاوَلُهَا بِيَدِهِ فَأُخِذَ فَقَالَ ادْعِي اللّٰهَ لِيْ وَلَا أَضُرُّكِ فَدَعَتِ اللّٰهَ فَأُطْلِقَ ثُمَّ تَنَاوَلَهَا الثَّانِيَةَ فَأُخِذَ مِثْلَهَا أَوْ أَشَدَّ فَقَالَ ادْعِي اللّٰهَ لِيْ وَلَا أَضُرُّكِ فَدَعَتْ فَأُطْلِقَ فَدَعَا بَعْضَ حَجَبَتِهِ فَقَالَ إِنَّكُمْ لَمْ تَأْتُونِيْ بِإِنْسَانٍ إِنَّمَا أَتَيْتُمُونِيْ بِشَيْطَانٍ فَأَخْدَمَهَا هَاجَرَ فَأَتَتْهُ وَهُوَ قَائِمٌ يُصَلِّيْ فَأَوْمَأَ بِيَدِهِ مَهْيَا قَالَتْ رَدَّ اللّٰهُ كَيْدَ الْكَافِرِ أَوِ الْفَاجِرِ فِيْ نَحْرِهِ وَأَخْدَمَ هَاجَرَ فَقَالَ أَبُوْ هُرَيْرَةَؓ تِلْكَ أُمُّكُمْ يَا بَنِيْ مَآءِ السَّمَاءِ.

لاس وروړانـدې کړلو. سمدستي منجانب اللّٰه هغه اونیولې شو. بیا هغهٔ سارهؓ ته اووې ما د پاره د اللّٰه نه دُعا اوغواړه. بیا به زهٔ تاته هیڅ ضرر نه رسوم هغې دعا او کړه، هغه بنهٔ شولو. بیا په دویم ځل هغهٔ هغې طرف ته لاس ورمخکښې کړو بیا هغه شان اونیولې شو بلکه د هغې نه هم سخت. بیا هغه اووې ما دَ پاره اللّٰه نه دُعا اوغواړه. زه به بالکل تاته ضرر نه رسوم، هغې دعا اوکړه نو هغه بنهٔ شولو. بیا هغه خپل یو دربان ته اووې چه تاسو ماله څه انسان نه دې راوستې بلکه شیطان مو راوستې دې. بیا هغه د سارهؓ دَ خدمت دَ پاره هاجره ورکړله. سارهؓ ابراهیمؑ له راغله نو هغه ولاړ وو.مونځ ئې کولو. هغه دَ لاس اشارې سره تپوس او که څه چل اوشو. ساره ورته اووې. اللّٰه تعالیٰ د کافر فریب د هغه سینې ته واپس کړلو او هاجره ئې خدمت دَ پاره راکړله. ابوهریرهؓ وائي اې دمَاءَ السماء ځامنو دا ستاسو مور ده.

۱. د حضرت ابراهیم علیه السلام د کورنۍ خلقو غوښتله چه دې خپلې قومي میلې ته بوځو، ددې نه علاوه چه هلته مشرکانه رسمونه پخپله د ذهني تکلیف سبب وو، حضرت ابراهیم علیه السلام د هغوئ د بُت خانې بُتان هم ماتول غوښتل، د یو خاص مقصد تر مخه، دې د پاره ابراهیم علیه السلام هغوئ سره تللو نه پاتې شو او وې فرمائیل چه زهٔ بیمار یم، واقعةً هغه بیمار نه وو لیکن زړه ماتې ضرور وو انتهائي درجه کبنې، او ددې زړه ماتي د پاره هغوئ د بیمار لفظ استعمال کړو کوم چه په یو حیثیت کښې صحیح هم دې، اګر چه د مخاطب ذهن یقیني طور باندې صرف عام قسم بیمارۍ طرفته منتقل کیدې شي. بیا چه کله هغه خلقو هغهٔ پریښو او لاړل نو ابراهیم علیه السلام د بُت خانې ټول بُتان مات کړل او په کوم تبر سره ئې چه مات کړي وو هغه ئې د ټولو نه لوئې بُت په اوګه باندې کېښودو کوم چه ئې د مصلحت په وجه نه وو مات کړې بیا چه کله د قوم خلق واپس راغلل او هغوئ نه ئې تپوس اوکړو نو هغوئ وزته طنزًا اووې چه "دا ټول کار دې لوئې بُت کړې دې" واقعي تبر هم د هغهٔ په اوګه باندې وو. مقصد د هغوئ د بُت پرستۍ نامعقول والي طرفته توجه ورکول وو چه تاسو د چا عبادت کوئ د هغوئ حیثیت صرف دومره دې. تاسو پخپله پوهیدې شئ چه د واقعي او حقیقي دروغو دې دواړو خبرو سره هیڅ تعلق نیشته.

۵۸۳: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ

۵۸۳: عبیدالله بن موسٰي. یا عبیدالله

مُوْسٰی اَوِ ابْنُ سَلَامٍ عَنْهُ اَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَیْجٍ عَنْ عَبْدِ الْحَمِیْدِ بْنِ جُرَیْجٍ عَنْ سَعِیْدِ بْنِ الْمُسَیِّبِ عَنْ اُمِّ شَرِیْكٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَمَرَ بِقَتْلِ الْوَزَغِ وَ قَالَ كَانَ یَنْفُخُ عَلٰی اِبْرَاهِیْمَ عَلَیْهِ السَّلَامُ.

بن سلام. ابن جریج. عبدالحمید بن جبیر. سعید بن مسیب. ام شریک نه روایت کوي رسول الله صلي الله علیه وسلّم د کرکټ د وژلو حکم کړے دے او ارشاد ئے فرمائیلے دے چه هغے به حضرت ابراهیمؑ اور ورپو کلو.

ف: کرکټ ذ کربوړي یا چرمخکئ په شان یو خناور چه نمر کښے د خپل سر رنګ بدلوي کله شین، سور، زیر او کله سپین شي خو دے ذ آبادئ نه لرے ځنګل یا د غرونو په لمنو کښے وي.

۵۸۴: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصِ بْنِ غِیَاثٍ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِیْ اِبْرَاهِیْمُ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِؓ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ اَلَّذِیْنَ اٰمَنُوْا وَلَمْ یَلْبِسُوْا اِیْمَانَهُمْ بِظُلْمٍ قُلْنَا یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَیُّنَا لَا یَظْلِمُ نَفْسَهُ قَالَ لَیْسَ كَمَا تَقُوْلُوْنَ لَمْ یَلْبِسُوْا اِیْمَانَهُمْ بِظُلْمٍ بِشِرْكٍ اَوَلَمْ تَسْمَعُوْا اِلٰی قَوْلِ لُقْمَانَ لِابْنِهٖ یَا بُنَیَّ لَا تُشْرِكْ بِاللّٰهِ اِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِیْمٌ.

۵۸۴: عمر بن حفص بن غیاث د هغهٔ پلار. اعمش. ابراهیم. علقمه. حضرت عبداللهؓ نه روایت کوي کوم وخت چه آیت کریمه: کومو خلقو چه ایمان راوړلو او هغوئ خپل ایمان ظلم سره مخلوط نه کړلو نازل شولو نو مونږ اووے یا رسول الله، مونږ کښے داسے څوک دے، چه هغه په خپل خان (د ګناه په وجه) ظلم نه وي کړے وے فرمائیل دا خبره ستاسو ذ خیال مطابق نه ده بلکه لم یلبسوا ایمانهم بظلم نه مراد شرک دے آیا تاسو د لقمان خبره چه هغه خپل ځوئ ته کړے وه نه ده اوریدلے چه اے ځما خویه الله سره شرک مه کوه ځکه چه شرک ډیر لوئے ظلم دے.

## باب ۱۲۱۳: یَزِفُّوْنَ النَّسَلَانُ فِی الْمَشْیِ.

## باب ۱۲۱۳: یَزِفُّوْنَ یعني ذ تیر چلیدو بیان.

۵۸۵: حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ بْنُ اِبْرَاهِیْمَ بْنِ نَصْرٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ اَبِیْ حَیَّانَ عَنْ اَبِیْ زُرْعَةَ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَؓ قَالَ اُتِیَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یَوْمًا بِلَحْمٍ فَقَالَ اِنَّ

۵۸۵: اسحٰق بن ابراهیم. نصر. ابو اسامه. ابو حیان. ابو زرعه. حضرت ابوهریره نه روایت کوي یوه ورځ رسول الله صلي الله علیه وسلّم ته غوښه پیش کړے شوه. حضورؐ اوفرمائیل الله تعالٰي به (د قیامت په ورځ) ټول مخکیني ورستني خلق یو اوار میدان کښے

اللّٰـهُ یَجْمَعُ یَوْمَ الْقِیَامَةِ الْاَوَّلِیْنَ وَالْاٰخِرِیْنَ فِیْ صَعِیْدٍ وَاحِدٍ فَیُسْمِعُهُمُ الدَّاعِیْ وَ یَنْفُذُهُمُ الْبَصَرُ وَ تَدْنُو الشَّمْسُ مِنْهُمْ فَذَكَرَ حَدِیْثَ الشَّفَاعَةِ فَیَأْتُوْنَ اِبْرَاهِیْمَ فَیَقُوْلُوْنَ اَنْتَ نَبِیُّ اللّٰهِ وَ خَلِیْلُهٗ مِنَ الْاَرْضِ اِشْفَعْ لَنَا اِلٰی رَبِّكَ فَیَقُوْلُ فَذَكَرَ كَذَبَاتِهٖ نَفْسِیْ نَفْسِیْ اِذْهَبُوْا اِلٰی مُوْسٰی تَابَعَهٗ اَنَسٌ عَنِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ.

جمع کړي چه هغوئ بلونکي به خپل آواز اورولے شي او په هغوئ به نظر هم غرخیدلے شي. نمر به هغوئ ته قریب راشي. بیا هغهٔ د شفاعت حدیث بیان که، چه خلق به ابراهیمؑ له لاړ شي، اووائي به ورته. دنیا کښے تاسو د اللّٰه نبي او دَ هغهٔ دوست وئ. خپل پروردګار ته زمونږ سفارش او کړئ. هغه به دَ خپلو دروغو ذکر او کړي. او به فرمائي. ما سره خو د ځان غم دے. موسیٰؑ له ورشئ. ددے متابع حدیث حضرت انسؓ رسول اللّٰه صلعم نه روایت کړیدے.

۵۸۶: حَدَّثَنِیْ اَحْمَدُ بْنُ سَعِیْدٍ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِیْرٍ عَنْ اَبِیْهِ عَنْ اَیُّوْبَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَعِیْدِ بْنِ جُبَیْرٍ عَنْ اَبِیْهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ عَنِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ یَرْحَمُ اللّٰهُ اُمَّ اِسْمَاعِیْلَ لَوْلَا اَنَّهَا عَجِلَتْ لَكَانَ زَمْزَمُ عَیْنًا مَّعِیْنًا قَالَ الْاَنْصَارِیُّ حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَیْجٍ اَمَّا كَثِیْرُ ابْنُ كَثِیْرٍ فَحَدَّثَنِیْ قَالَ اِنِّیْ وَ عُثْمَانُ بْنُ اَبِیْ سُلَیْمَانَ جُلُوْسٌ مَعَ سَعِیْدِ بْنِ جُبَیْرٍ فَقَالَ مَا هٰكَذَا حَدَّثَنِی ابْنُ عَبَّاسٍ قَالَ اَقْبَلَ اِبْرَاهِیْمُ بِاِسْمَاعِیْلَ وَ اُمِّهٖ عَلَیْهِمُ السَّلَامُ وَ هِیَ تُرْضِعُهٗ مَعَهَا شَنَّةٌ لَمْ یَرْفَعْهُ ثُمَّ جَاءَ بِهَا اِبْرَاهِیْمُ وَ بِابْنِهَا اِسْمَاعِیْلَ.

۵۸۶: احمد بن سعید. ابو عبیداللّٰه. وهب بن جریر. دَ هغه پلار. ایوب. عبداللّٰه بن سعید بن جبیر د هغه پلار. حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل. اللّٰه تعالیٰ دِ دَ اسماعیلؑ په مور رحم او کړي که هغے تادي نه وے کړے، نو زمزم به یوه جاري چینه (چشمه) وے انصاري وائي مونږ ته ابن جریج بیان او که، پاتے شو کثیر بن کثیر. هغهٔ دا بیان او که. چه زهٔ او عثمان بن سلیمان. سعید بن جبیر سره ناست وو. هغهٔ اووے. ابن عباسؓ ما ته داسے بیان نه دے کړے، بلکه دائے فرمائیلي دي چه ابراهیمؑ، اسمٰعیل او دَ هغهٔ مور راوسته، او هغے هغه له تے ورکولو، او هغے سره یو وړوکے شان مشک هم وو، دا حدیث هغهٔ مرفوعًا نه دے بیان کړے، بیا هاجرهؓ او اسمٰعیلؑ حضرت ابراهیم علیه السلام راوستل.

۵۸۷: وَ حَدَّثَنِیْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ

۵۸۷: عبداللّٰه بن محمد. عبدالرزاق. معمر.

مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ اَيُّوْبَ السَّخْتِيَانِيِّ وَ كَثِيْرِ بْنِ كَثِيْرِ بْنِ الْمُطَّلِبِ ابْنِ اَبِيْ وَدَاعَةَ يَزِيْدُ اَحَدُهُمَا عَلَى الْاٰخَرِ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ اَوَّلُ مَا اتَّخَذَ النِّسَآءُ الْمِنْطَقَ مِنْ قِبَلِ اُمِّ اِسْمَاعِيْلَ اتَّخَذَتْ مِنْطَقًا لِتُعَفِّيَ اَثَرَهَا عَلٰى سَارَةَ ثُمَّ جَاءَ بِهَا اِبْرَاهِيْمُ وَبِابْنِهَا اِسْمَاعِيْلَ وَ هِيَ تُرْضِعُهُ حَتّٰى وَضَعَهُمَا عِنْدَ الْبَيْتِ عِنْدَ دَوْحَةٍ فَوْقَ زَمْزَمَ فِيْ اَعْلَى الْمَسْجِدِ وَ لَيْسَ بِمَكَّةَ يَوْمَئِذٍ اَحَدٌ وَّ لَيْسَ بِهَا مَاءٌ فَوَضَعَهُمَا هُنَالِكَ وَ وَضَعَ عِنْدَهُمَا جِرَابًا فِيْهِ تَمْرٌ وَّ سِقَآءً فِيْهِ مَآءٌ ثُمَّ قَفّٰى اِبْرَاهِيْمُ مُنْطَلِقًا فَتَبِعَتْهُ اُمُّ اِسْمَاعِيْلَ فَقَالَتْ يَا اِبْرَاهِيْمُ اَيْنَ تَذْهَبُ وَ تَتْرُكُنَا بِهٰذَا الْوَادِي الَّذِيْ لَيْسَ فِيْهِ اِنْسٌ وَّلَا شَيْءٌ فَقَالَتْ لَهٗ ذٰلِكَ مِرَارًا وَّ جَعَلَ لَا يَلْتَفِتُ اِلَيْهَا فَقَالَتْ لَهٗ آللّٰهُ الَّذِيْ اَمَرَكَ بِهٰذَا قَالَ نَعَمْ قَالَتْ اِذَنْ لَّا يُضَيِّعُنَا ثُمَّ رَجَعَتْ فَانْطَلَقَ اِبْرَاهِيْمُ حَتّٰى كَانَ عِنْدَ الثَّنِيَّةِ حَيْثُ لَا يَرَوْنَهٗ اسْتَقْبَلَ بِوَجْهِهِ الْبَيْتَ ثُمَّ دَعَا بِهٰؤُلَاءِ الْكَلِمَاتِ وَ رَفَعَ يَدَيْهِ فَقَالَ رَبِّ اِنِّيْ اَسْكَنْتُ مِنْ ذُرِّيَّتِيْ بِوَادٍ غَيْرِ ذِيْ زَرْعٍ حَتّٰى بَلَغَ

ایوب سختیاني. کثیر بن کثیر بن مطلب بن ابو وداعه به یو بل نه زیات بیان کوي. سعید بن جبیر. ابن عباسؓ نه روایت کوي چه ښځو د ټولو نه مخکښې پرتوغاښ (ازار بند) جوړول ذ اسماعیلؑ دَ مور نه ازده کړه هغې پرتوغاښ جوړ کړلو چه خپلې نښې (نشانات) د سارهؓ نه پټې کړي. حضرت ابراهیمؑ هاجرهؓ او دَ هغې ماشوم خوئې اسمٰعیل علیه السلام مکې ته راوستل. او هغې هغه له پئې ورکول. هغه دواړه ئې دَ جماعت په اوچت ځائې آب زمزم سره کعبې ته نزدې دَ یوې اونې لاندِ کښېنول هغه وخت مکه کښې نه اوبۀ او نه بني آدم وو او یو خشک بیابان وو. ابراهیمؑ هغوئ هلته کینول. او هغوئ سره ئې یو دَ خرمنې د کجهورو تیله او دَ اوبو یو مشکیزه کیښوده. دې نه پس ابراهیمؑ واپس شو. دَ اسمٰعیلؑ مور ورپسې منډه کړه او ورته ئې اووې اې ابراهیم تۀ چرته ځې او مونږ داسې ځنګل کښې چه دلته نه بني آدم او نه څۀ ملاویږي (د چا په اسره) پریږدې ته را نه ځې. دَ اسمٰعیلؑ مور څو ځله دغسې اووې خو ابراهیمؑ ورته بیا اونۀ کتل. د اسمٰعیل مور اووې آیا اللّٰه تعالیٰ تاته دغسې حکم درکړیدې هغه اووې. او، نو هاجرېؓ اووې اوس به اللّٰه هم مونږه برباد نکړي، بیا هغه واپس شوه او ابراهیمؑ لاړلو حتیٰ چه هغه ثنیه ته اورسید چه دَ هغې ځائې نه هغې خلقو دوئ لیدلې نه شو. نو هغه خپل مخ کعبې طرف ته کړو دواړه لاسه ئې اوچت کړل او دعائې اوکړله اې زمونږ ربه زۀ خپل اولاد ستا عزتمند کور سره نزدې یو اوچ میدان چه دَ زراعت قابل نه دې پریږدم ابادوم، یشکرون پورې. او د اسمٰعیلؑ.

يَشْكُرُوْنَ وَ جَعَلَتْ اُمُّ اِسْمَاعِيْلَ تُرْضِعُ اِسْمَاعِيْلَ وَ تَشْرَبُ مِنْ ذٰلِكَ الْمَاءِ حَتّٰى اِذَا نَفِدَ مَا فِي السِّقَاءِ عَطِشَتْ وَ عَطِشَ اِبْنُهَا وَ جَعَلَتْ تَنْظُرُ اِلَيْهِ يَتَلَوّٰى اَوْ قَالَ يَتَلَبَّطُ فَانْطَلَقَتْ كَرَاهِيَةَ اَنْ تَنْظُرَ اِلَيْهِ فَوَجَدَتِ الصَّفَا اَقْرَبَ جَبَلٍ فِي الْاَرْضِ يَلِيْهَا فَقَامَتْ عَلَيْهِ ثُمَّ اسْتَقْبَلَتِ الْوَادِيَ تَنْظُرُ هَلْ تَرٰى اَحَدًا فَلَمْ تَرَ اَحَدًا فَهَبَطَتْ مِنَ الصَّفَا حَتّٰى اِذَا بَلَغَتِ الْوَادِيَ رَفَعَتْ طَرَفَ دِرْعِهَا ثُمَّ سَعَتْ سَعْيَ الْاِنْسَانِ الْمَجْهُوْدِ حَتّٰى جَاوَزَتِ الْوَادِيَ ثُمَّ اَتَتِ الْمَرْوَةَ فَقَامَتْ عَلَيْهَا وَ نَظَرَتْ هَلْ تَرٰى اَحَدًا فَلَمْ تَرَ اَحَدًا فَفَعَلَتْ ذٰلِكَ سَبْعَ مَرَّاتٍ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذٰلِكَ سَعْيُ النَّاسِ بَيْنَهُمَا فَلَمَّا اَشْرَفَتْ عَلَى الْمَرْوَةِ سَمِعَتْ صَوْتًا فَقَالَتْ صَهٍ تُرِيْدُ نَفْسَهَا ثُمَّ تَسَمَّعَتْ فَسَمِعَتْ اَيْضًا فَقَالَتْ قَدْ اَسْمَعْتَ اِنْ كَانَ عِنْدَكَ غَوَاثٌ فَاِذَا هِيَ بِالْمَلَكِ عِنْدَ مَوْضِعِ زَمْزَمَ فَبَحَثَ بِعَقِبِهٖ اَوْ قَالَ بِجَنَاحِهٖ حَتّٰى ظَهَرَ الْمَآءُ فَجَعَلَتْ تُحَوِّضُهٗ وَ تَقُوْلُ بِيَدِهَا هٰكَذَا وَ جَعَلَتْ تَغْرِفُ مِنَ الْمَاءِ فِيْ سِقَائِهَا وَهُوَ يَفُوْرُ بَعْدَ مَا تَغْرِفُ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ قَالَ النَّبِيُّ

مور، هغه له پئے ورکول. او ذ مشک نه اوبه به ئے څکلے. حتي چه کوم وخت هغه اوبه ختمے شوے هغه او د هغے خوئے سختے تندے واخستل هغے خپل بچے لیدو چه له تندے نه بدحاله وو یا وے فرمائیل چه پوندے ئے مبږلے. مور ئے ددۀ دا حال نه لیدو په وجه کوهِ صفا ته اوخته او خنګل طرف ته ئے کتل چه څوک په نظر راځي یا نه خو هیڅوک په نظر رانغلل چه اوبه ئے تر غوښتلے وے. بیا هغه د کوه صفا نه راکوزه شوه او کوه مروه ته او ختله اخوا دیخوا ئے اوکتل چه که څوک په نظر راشي. دغه شان هغه اووه ځلے اوختله خو څوک په نظر رانغلو. ابن عباسؓ اووے چه حضور صلي الله علیه وسلّم فرمائیلي دي چه ذ هغه راسے خلق ذ صفا، مروه په مینځکښے سعي کوي. هر کله چه هغه په آخري ځل کوه مروه ته اوختله نو هغے یو آواز واوریدلو ځان سره ئے اووے، اودریږه چه واؤرم غوږ ئے کیښود نو بیائے هم آواز واوریدلو خپله ئے اووے (اے سړیه) تاخو آواز واؤرولو. کاش چه تاسره فریاد رس هم وي نو ناساپه ئے فرښته مقام زمزم سره اولیده. هغے فرښتے خپله پونده اووهله یا وے فرمائیل چه خپل وزر ئے اووهلو. حتي چه اوبه راوځلیدے، او هاجرے هغه د حوض په شکل کښے راګیرے کړے او لاس سره ئے اخوا دیخوا کړے په چونګ چونګ به ئے ترے خپل مشک ډکولو. ذ هغے د چونګ ډکولو نه پس اوبۀ د زمکے نه ختکیدے. ابن عباسؓ وائي، رسول الله صلعم اوفرمائیل الله دِ د اسمعیلؑ په مور رحم اوکړي کۀ هغے زمزم راګیر کړے نه وے بلکه پریښے وے نو زمزم به جاري چینه وه، بیائے

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْحَمُ اللّٰهُ
اُمَّ اِسْمَاعِيْلَ لَوْ تَرَكَتْ زَمْزَمَ اَوْ قَالَ
لَوْلَمْ تَغْرِفْ مِنَ الْمَاءِ لَكَانَتْ زَمْزَمُ
عَيْنًا مَعِيْنًا قَالَ فَشَرِبَتْ وَ اَرْضَعَتْ
وَلَدَهَا فَقَالَ لَهَا الْمَلَكُ لَا تَخَافُوا
الضَّيْعَةَ فَاِنَّ هٰهُنَا بَيْتُ اللّٰهِ يَبْنِيْ هٰذَا
الْغُلَامُ وَ اَبُوْهُ فَاِنَّ اللّٰهَ لَا يُضِيْعُ اَهْلَهٗ
وَ كَانَ الْبَيْتُ مُرْتَفِعًا مِّنَ الْاَرْضِ
كَالرَّابِيَةِ تَاْتِيْهِ السُّيُوْلُ فَتَاْخُذُ عَنْ
يَمِيْنِهٖ وَ شِمَالِهٖ فَكَانَتْ كَذٰلِكَ حَتّٰى
مَرَّتْ بِهِمْ رُفْقَةٌ مِّنْ جُرْهُمَ اَوْ اَهْلُ
بَيْتٍ مِّنْ جُرْهُمَ مُقْبِلِيْنَ مِنْ طَرِيْقِ
كَدَاءَ فَنَزَلُوْا فِيْ اَسْفَلِ مَكَّةَ فَرَاَوْا
طَائِرًا عَائِفًا فَقَالُوْا اِنَّ هٰذَا الطَّائِرَ
لَيَدُوْرُ عَلٰى مَاءٍ لَعَهْدُنَا بِهٰذَا الْوَادِيْ
وَمَا فِيْهِ مَآءٌ فَاَرْسَلُوْا جَرِيًّا اَوْ جَرِيَّيْنِ
فَاِذَا هُمْ بِالْمَاءِ فَرَجَعُوْا فَاَخْبَرُوْهُمْ
بِالْمَآءِ فَاَقْبَلُوْا قَالَ وَ اُمُّ اِسْمٰعِيْلَ
عِنْدَ الْمَآءِ فَقَالُوْا اَتَاْذَنِيْنَ لَنَا اَنْ نَّنْزِلَ
عِنْدَكِ فَقَالَتْ نَعَمْ وَلٰكِنْ لَّا حَقَّ لَكُمْ
فِي الْمَاءِ قَالُوْا نَعَمْ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ
قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
فَاَلْفٰى ذٰلِكَ اُمَّ اِسْمَاعِيْلَ وَ هِيَ تُحِبُّ
الْاُنْسَ فَنَزَلُوْا وَ اَرْسَلُوْا اِلٰى اَهْلِيْهِمْ
فَنَزَلُوْا مَعَهُمْ حَتّٰى اِذَا كَانَ بِهَا اَهْلُ
اَبْيَاتٍ مِّنْهُمْ وَ شَبَّ الْغُلَامُ وَ تَعَلَّمَ

اوفرمائيل هغې اوبۀ اوڅکلې او بچي له ئې هم ورکړے
يا هغې ته فرښتے اووے ته د خپل هلاکت انديښنه مه
کوه څکه چه دلته بيت الله دے چه هغه به دا هلک او
دده پلار تعمير کوي او الله خپل بنديان نه هلاکوي او نه
ئے بربادوي. (هغه وخت) بيت الله د زمکے نه د ډهيرۍ
په شان اوچت وو. سيلاب به راتلو د هغې ښي او ګس
طرف ته به کټ شولو. هاجرهؑ دغه شان اوسيدله، تردے
چه د قبيلۀ بنو جرهم څنے خلق په هغې طرف تير شول.
يا دائے اوفرمائيل چه د بنو جرهم څه خلق د كدا په لار
واپس راتلل نو هغوئ د مکے په نشيب کښے کوز شولو
هغوئ مارغان اوليدل چه چکر ئے وهلو. هغوئ اووے
بيشکه دا مارغان په اوبو چکر وهي (حالانکه) زمونږ
زمانه په دے وادئ کښے تيره شوه چه دے کښے اوبۀ نه
وے هغوئ يو يا دوه سړي راوليږل نو هغوئ اوبۀ
اوليدے چه واپس راغلل نو ټولو ته ئے د اوبو اطلاع
ورکړه هغه ټول خلق دے طرف ته راغلل. وئيلے چه د
اسمٰعيل مور اوبو سره ناسته وه نو هغې خلقو ورته
اووے. آيا ته اجازت راکوے چه مونږ تاسره قيام اوکړو
هغې ورته اووے اجازت دے خو په اوبو به ستاسو څه
حق نه وي. هغوئ دا شرط منظور کړلو ابن عباسؓ اووے
رسول اللّٰه صلعم اوفرمائيل د اسمٰعيلؑ مور دا غنيمت
اوګڼړلو د هغې انسانانو سره محبت وو نو هغه خلق مقيم
شول او خپل اهل و عيال ته ئے هم پيغام اوليږلو هلته ئے
راوغښتل، هغوئ هم هلته مقيم شولو حتي چه هغوئ
سره څو خاندانونه آباد شول او اوس اسمٰعيلؑ لوئے
شوے وو او هغه د بنو جرهم نه عربي زده کړه او خپله د

الْعَرَبِيَّةَ مِنْهُمْ وَ اَنْفُسَهُمْ وَ اَعْجَبَهُمْ حِيْنَ شَبَّ فَلَمَّا اَدْرَكَ زَوَّجُوْهُ امْرَأَةً مِنْهُمْ وَمَاتَتْ اُمُّ اِسْمَاعِيْلَ فَجَاءَ اِبْرَاهِيْمُ بَعْدَ مَا تَزَوَّجَ اِسْمَاعِيْلُ يُطَالِعُ تَرِكَتَهُ فَلَمْ يَجِدْ اِسْمَاعِيْلَ فَسَأَلَ امْرَأَتَهُ عَنْهُ فَقَالَتْ خَرَجَ يَبْتَغِيْ لَنَا ثُمَّ سَأَلَهَا عَنْ عَيْشِهِمْ وَ هَيْئَتِهِمْ فَقَالَتْ نَحْنُ بِشَرٍّ نَحْنُ فِيْ ضَيْقٍ وَ شِدَّةٍ فَشَكَتْ اِلَيْهِ قَالَ فَاِذَا جَاءَ زَوْجُكِ فَاقْرَئِيْ عَلَيْهِ السَّلَامَ وَ قُوْلِيْ لَهُ يُغَيِّرْ عَتَبَةَ بَابِهٖ فَلَمَّا جَاءَ اِسْمٰعِيْلُ كَاَنَّهُ اٰنَسَ شَيْئًا فَقَالَ هَلْ جَاءَكُمْ مِنْ اَحَدٍ قَالَتْ نَعَمْ جَاءَنَا شَيْخٌ كَذَا وَ كَذَا فَسَأَلَنَا عَنْكَ فَاَخْبَرْتُهُ وَسَأَلَنِيْ كَيْفَ عَيْشُنَا فَاَخْبَرْتُهُ اَنَّا فِيْ جَهْدٍ وَ شِدَّةٍ قَالَ فَهَلْ اَوْصَاكِ بِشَيْءٍ قَالَتْ نَعَمْ اَمَرَنِيْ اَنْ اَقْرَأَ عَلَيْكَ السَّلَامَ وَ يَقُوْلُ غَيِّرْ عَتَبَةَ بَابِكَ قَالَ ذَاكِ اَبِيْ وَقَدْ اَمَرَنِيْ اَنْ اُفَارِقَكِ اِلْحَقِيْ بِاَهْلِكِ فَطَلَّقَهَا وَ تَزَوَّجَ مِنْهُمْ اُخْرٰى فَلَبِثَ عَنْهُمْ اِبْرَاهِيْمُ مَاشَاءَ اللّٰهُ ثُمَّ اَتَاهُمْ بَعْدُ فَلَمْ يَجِدْهُ فَدَخَلَ عَلٰى امْرَأَتِهٖ فَسَأَلَهَا عَنْهُ فَقَالَتْ خَرَجَ يَبْتَغِيْ لَنَا قَالَ كَيْفَ اَنْتُمْ

هغوئ حالت نے هم معلوم که. اسمٰعیلؑ چه خلمے شو نو هغوئ ته ډیر ښهٔ ښکاره شولو. کوم وخت چه اسمٰعیلؑ بالغ شو نو هغوئ دَ خپلے قبیلے یوے ښځے سره دَ هغهٔ نکاح اوکړلو او دَ اسماعیلؑ مور وفات شوه. حضرت ابراهیمؑ د خپل بال بچ دَ لیدو دَ پاره دَ اسمٰعیلؑ د نکاح نه پس تشریف راوړلو نو اسماعیل ئے بیانه موند. دَ هغهٔ د ښځے نه ئے معلومه کړه نو هغے اووے چه هغه زمونږ دَ رزق تلاش دَ پاره وتلے دے بیا ابراهیمؑ دَ هغے نه د بسر اوقات او حالت معلوم کهٔ. نو هغے ښځے ورته اووے خمونږ حالت ډیر خراب دے او مونږ ډیرے سختئ او پریشانئ کښے اخته یو. هغے ابراهیمؑ ته شکایت اوکه. ابراهیمؑ ورته اووے کله چه ستا خاوند راشي نو هغه ته خما سلام اووایه او دا ورته اووایه چه دَ خپلے دروازے چوکاټ (درشل) بدل کړه. اسمٰعیلؑ چه واپس راغے نو هغهٔ دَ خپل پلار دَ تشریف آورئ آثار اولیدل نو وے وئیل آیا تاله څوک راغلي وو، ښځے ورته اووے. او داسے رنګ یو بوډا سړے راغلے وو، هغهٔ ستا متعلق تپوس اوکهٔ نو ما ورته اووے چه مونږ تکلیف او سختئ کښے یو. اسمٰعیلؑ ورته اووے آیا هغهٔ څهٔ پیغام پریښے دے. وئیلے، او ماته ئے حکم راکړیدے چه تاته دَ هغهٔ سلام اورسوم او هغهٔ وے چه تهٔ دَ خپلے دروازے چوکاټ بدل که. اسمٰعیلؑ ورته اووے، هغه څما پلار وو او هغهٔ ما ته ستا دَ جدائ حکم راکړو. تهٔ اوس خپل مور پلار کره لاړه شه او هغے له ئے طلاق ورکه او دَ بنو جرهم یوے بلے ښځے سره ئے نکاح اوکړلو. څهٔ موده پس ابراهیمؑ راغے. اسمٰعیل ئے بیانه موند نو دَ هغهٔ د

وَسَأَلَهَا عَنْ عَيْشِهِمْ وَ هَيْئَتِهِمْ فَقَالَتْ نَحْنُ بِخَيْرٍ وَّ سَعَةٍ وَ أَثْنَتْ عَلَى اللّٰهِ فَقَالَ مَا طَعَامُكُمْ قَالَتِ اللَّحْمُ قَالَ فَمَا شَرَابُكُمْ قَالَتِ الْمَآءُ قَالَ اَللّٰهُمَّ بَارِكْ لَهُمْ فِي اللَّحْمِ وَالْمَاءِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ يَكُنْ لَّهُمْ يَوْمَئِذٍ حَبٌّ وَّلَوْ كَانَ لَهُمْ دَعَالَهُمْ فِيْهِ قَالَ فَهُمَا لَا يَخْلُوْ عَلَيْهِمَا أَحَدٌ بِغَيْرِ مَكَّةَ إِلَّا لَمْ يُوَافِقَاهُ قَالَ فَاِذَا جَاءَ زَوْجُكِ فَاقْرَئِيْ عَلَيْهِ السَّلَامَ وَ مُرِيْهِ يُثْبِتُ عَتَبَةَ بَابِهٖ فَلَمَّا جَاءَ اِسْمَاعِيْلُ قَالَ هَلْ أَتَاكُمْ مِّنْ أَحَدٍ قَالَتْ نَعَمْ أَتَانَا شَيْخٌ حَسَنُ الْهَيْئَةِ وَ أَثْنَتْ عَلَيْهِ فَسَأَلَنِيْ عَنْكَ فَأَخْبَرْتُهُ فَسَأَلَنِيْ كَيْفَ عَيْشُنَا فَأَخْبَرْتُهُ أَنَّا بِخَيْرٍ قَالَ فَأَوْصَاكِ بِشَيْءٍ قَالَتْ نَعَمْ هُوَ يَقْرَأُ عَلَيْكَ السَّلَامَ وَ يَأْمُرُكَ أَنْ تُثْبِتَ عَتَبَةَ بَابِكَ قَالَ ذَاكِ أَبِيْ وَ أَنْتِ الْعَتَبَةُ أَمَرَنِيْ أَنْ أُمْسِكَكِ ثُمَّ لَبِثَ عَنْهُمْ مَاشَاءَ اللّٰهُ ثُمَّ جَاءَ بَعْدَ ذٰلِكَ وَ اِسْمَاعِيْلُ يَبْرِيْ نَبْلًا لَّهٗ تَحْتَ دَوْحَةٍ قَرِيْبًا مِنْ زَمْزَمَ فَلَمَّا رَاٰهُ قَامَ اِلَيْهِ فَصَنَعَا كَمَا يَصْنَعُ الْوَالِدُ بِالْوَلَدِ وَلْوَلَدُ بِالْوَالِدِ ثُمَّ قَالَ يَا

ښځې نه ئې تپوس اوکه' هغې ورته اووې' هغه خمونږ د رزق تلاش پسې وتلے دے. ابراهیمؑ ترې تپوس اوکه. ستاسو څۀ حال دے او دَ هغوئ ګزر اوقات ئې معلوم کړه. هغې ورته اووې مونږ ښه حالت او فراخئ کښې يو او دَ الله تعريف ئې اوکه' ابراهيمؑ ترې تپوس اوکه. ستاسو خوراک څۀ دے. هغې ورته اووې' غوښه ابراهيمؑ ترنه پوښتنه اوکړه' ستاسو دَ څښکلو څه څيز شته هغې اووې اوبه شته. ابراهيمؑ ورته دُعا اوکړه چه اے الله دوئ دَ پاره غوښه او اوبو کښې برکت واچوے. حضور صلعم اوفرمائيل دَ مکے نه سوا څوک بل ځائے په غوښه او په اوبو ګزاره نشي کولے. او هغلته غله نه وه که هغلته غله وے نو دَ غلے د پاره به ئې دعا کړيوه. صرف غوښه او اوبۀ د مزاج مطابق نشي راتلے. ابراهيمؑ ورته اووې کوم وخت چه ستا خاوند راشي نو هغه ته ځما سلام اوکه. او هغه ته دا هم اووايه چه دَ خپلے دروازے چوکاټ باقي اوساته. کوم وخت چه اسمٰعيلؑ راغے نو تپوس ئې اوکه آيا دلته څوک راغلي وو. ښځې ورته اووې او يو خوبصورته پاکيزه سيرته بزرګ راغلے وو' او دَ هغه تعريف ئې اوکه !و ما نه ئې ستا تپوس اوکه نو ما ورته اوښودلو چه مونږ ډير ښه حالت کښې يو. اسمٰعيلؑ ورته اووے. تاته هغه څۀ حکم درکړيدے. هغې ورته اووے هغه تاته سلام پريښے دے اوونيلے چه دَ خپلے دروازے چوکاټ باقي اوساته. اسماعيلؑ ورته اووے هغه ځما پلار وو او چوکاټ نه تۀ مراد يئے. هغه ما ته اووے چه تا خپل زوجيت کښے باقي اوساتم. بيا ابراهيمؑ څه موده پس بيا راغے او اسمٰعيلؑ ئې زمزم سره نزدے د يوے

اِسْمَاعِيْلُ اِنَّ اللّٰهَ اَمَرَنِيْ بِاَمْرٍ قَالَ فَاصْنَعْ مَا اَمَرَكَ رَبُّكَ قَالَ وَ تُعِيْنُنِيْ قَالَ وَ اُعِيْنُكَ قَالَ فَاِنَّ اللّٰهَ اَمَرَنِيْ اَنْ اَبْنِيَ هٰهُنَا بَيْتًا وَ اَشَارَ اِلٰى اَكَمَةٍ مُرْتَفِعَةٍ عَلٰى مَا حَوْلَهَا قَالَ فَعِنْدَ ذٰلِكَ رَفَعَا الْقَوَاعِدَ مِنَ الْبَيْتِ فَجَعَلَ اِسْمَاعِيْلُ يَاْتِيْ بِالْحِجَارَةِ وَ اِبْرَاهِيْمُ يَبْنِيْ حَتّٰى اِذَا ارْتَفَعَ الْبِنَاءُ جَاءَ بِهٰذَا الْحَجَرِ فَوَضَعَهُ لَهُ فَقَامَ عَلَيْهِ وَهُوَ يَبْنِيْ وَ اِسْمَاعِيْلُ يُنَاوِلُهُ الْحِجَارَةَ وَهُمَا يَقُوْلَانِ رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا اِنَّكَ اَنْتَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ قَالَ فَجَعَلَا يَبْنِيَانِ حَتّٰى يَدُوْرَا حَوْلَ الْبَيْتِ وَهُمَا يَقُوْلَانِ رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا اِنَّكَ اَنْتَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ.

اونے سوري لاندې ناست اوليد چه خپل غشے ئے جوړولو. اسمٰعيل چه هغه اوليدلو. ورته پاسيدو او پلار خوئے سره او خوئ پلار سره چه څه معامله کول پکار دي هغه ئے اوکړه ابراهيمؑ اووے اسماعيله اللّٰه ماته ديو کار حکم راکړيدے. هغه عرض اوکه. چه د هغے حکم مطابق به عمل اوکړيشي. ابراهيمؑ ورته اووے چه ته ماسره امداد اوکړه اللّٰه ماته د بيت اللّٰه د جوړولو حکم راکړيدے او هغه هغے اوچتے ډهيرئ ته اشاره اوکړه. نو هغے دواړو د کعبے ديوالونه اوچت کړل اسماعيلٔ به کانړي راوړل. او ابراهيمؑ به تعمير کول او دواړو به دا دعا کوله چه اے پروردګاره زمونږ دا خدمت قبول کړے بيشکه ته اوريدونکے او پوهيدونکے ئے. دواړو به تعمير کولو او د کعبے نه به ئے چکر وهلو اووئيل به ئے اے زمونږ پروردګاره زمونږ دا خدمت قبول کړے. ته اوريدونکے او پوهيدونکے يئے.

۵۸۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَامِرٍ عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ عَمْرٍو قَالَ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ نَافِعٍ عَنْ كَثِيْرِ بْنِ كَثِيْرٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَمَّا كَانَ بَيْنَ اِبْرَاهِيْمَ وَ بَيْنَ اَهْلِهٖ مَا كَانَ خَرَجَ بِاِسْمَاعِيْلَ وَ اُمِّ اِسْمَاعِيْلَ وَ مَعَهُمْ شَنَّةٌ فِيْهَا مَاءٌ فَجَعَلَتْ اُمُّ اِسْمَاعِيْلَ تَشْرَبُ مِنَ الشَّنَّةِ فَيَدِرُّ لَبَنُهَا عَلٰى صَبِيِّهَا حَتّٰى

۵۸۸: عبداللّٰه بن محمد. ابو عامر. عبدالملک بن عمرو. ابراهيم بن نافع. کثير بن کثير. سعيد بن جبير. ابن عباسؓ نه روايت کوي. کوم وخت چه د ابراهيمؑ او د هغهٔ د بي بي مينځ کښے لږ خفګان پيدا شو نو هغه اسمٰعيلٔ او د هغهٔ مور سره اووتلو. او هغوئ سره مشکيزه کښے اوبهٔ وے. د اسمٰعيلٔ مور به د هغے نه اوبهٔ څکلے. او د هغے پئو به د خپل بچي د پاره جوش وهلو. حتٰي چه هغه مکے ته اورسيدله ابراهيمؑ هغه د يوے اونے لاندې کينښنوله بيا ابراهيمؑ خپل کوروالو (بي بي سارهؓ) طرف ته واپس شولو. نو د اسمٰعيلٔ مور هغه پسے ورداؤ کړلو حتٰي چه هغه مقام کداء ته اورسيد. نو د اسمٰعيلٔ

نَلِهِمْ مَكَّةَ فَوَضَعَهَا تَحْتَ دَوْحَةٍ ثُمَّ رَجَعَ إِبْرَاهِيمُ إِلَى أَهْلِهِ فَاتَّبَعَتْهُ أُمُّ إِسْمَاعِيلَ حَتَّى لَمَّا بَلَغُوا كَدَاءَ نَادَتْهُ مِنْ وَرَائِهِ يَا إِبْرَاهِيمُ إِلَى مَنْ تَتْرُكُنَا قَالَ إِلَى اللّٰهِ قَالَتْ رَضِيتُ بِاللّٰهِ قَالَ فَرَجَعَتْ فَجَعَلَتْ تَشْرَبُ مِنَ الشَّنَّةِ وَيَدِرُّ لَبَنُهَا عَلَى صَبِيِّهَا حَتَّى لَمَّا فَنِيَ الْمَاءُ قَالَتْ لَوْ ذَهَبْتُ فَنَظَرْتُ لَعَلِّي أُحِسُّ أَحَدًا قَالَ فَذَهَبَتْ فَصَعِدَتِ الصَّفَا فَنَظَرَتْ وَنَظَرَتْ هَلْ تُحِسُّ أَحَدًا فَلَمْ تُحِسَّ أَحَدًا فَلَمَّا بَلَغَتِ الْوَادِيَ سَعَتْ وَأَتَتِ الْمَرْوَةَ فَفَعَلَتْ ذٰلِكَ أَشْوَاطًا ثُمَّ قَالَتْ لَوْ ذَهَبْتُ فَنَظَرْتُ مَا فَعَلَ تَعْنِي الصَّبِيَّ فَذَهَبَتْ فَنَظَرَتْ فَإِذَا هُوَ عَلَى حَالِهِ كَأَنَّهُ يَنْشَغُ لِلْمَوْتِ فَلَمْ تُقِرَّهَا نَفْسُهَا فَقَالَتْ لَوْ ذَهَبْتُ فَنَظَرْتُ لَعَلِّي أُحِسُّ أَحَدًا فَذَهَبَتْ فَصَعِدَتِ الصَّفَا فَنَظَرَتْ وَنَظَرَتْ فَلَمْ تُحِسَّ أَحَدًا حَتَّى أَتَمَّتْ سَبْعًا ثُمَّ قَالَتْ لَوْ ذَهَبْتُ فَنَظَرْتُ مَا فَعَلَ فَإِذَا هِيَ بِصَوْتٍ فَقَالَتْ أَغِثْ إِنْ كَانَ عِنْدَكَ خَيْرٌ فَإِذَا جِبْرِيلُ

مور دَ ورستو نه ورته آواز اوكهٔ. مونږ دِ چا په آسره دلته پريښودلو. ابراهيمؑ ورته اووے دَ اللّٰه په آسره. د اسمٰعيل مور اووے، زهٔ دَ اللّٰه په آسره راضي يم، ابن عباسؓ اووے، بيا هغه واپس راغله او د خپلے مشكيزے اوبه به ئے څښكلے او دَ هغے پئے دَ خپل بچي د پاره څڅيدل. حتٰي چه اوبهٔ ختمے شوے. نو د اسمٰعيلؑ مور اووے كاش چه ما اخوا ديخوا كتلے وے، شايد چه ما څوک ليدلے وے. ابن عباسؓ وائي. هغه لاړه او كوه صفا ته اوختله هغے اخوا ديخوا ښه اوكتل چه څوک سړے به ورته په نظر راشي خو هيڅوک ئے اونهٔ ليدل بيا چه هغه نشيب ته اورسيده. نو په منډه شوه او كوه مروه ته راغله، دغه شان هغے څو چكرے اووهلے. بيائے اووے. كاش چه زهٔ ورشم، خپل بچے اووينم چه څهٔ حال كښے دے، چه ورغله نو وے ليدل. چه اسمٰعيلؑ خپل زوړ حال كښے دے. گويا چه (د تندے نه) ساه ئے په ختو وه. بيا د هغے زړهٔ په قلار نه شو. وے ويل كاش چه زهٔ لاړه شم. ايخوا ديخوا اوگورم، شايد چه څوک پيدا شي. نو هغه لاړه. كوه صفا ته اوختله، اخوا ديخوا ئے ښه اوكتل خو هيڅوک ئے اونه ليدل حتٰي په دے طريقه هغے پوره اووهٔ چكره اووهل، بيائے اووے كاش چه زهٔ لاړے او خپل بچے مِ اوليدلے چه څه حال كښے دے ناساپه يو آواز راغے نو دے اووے، فرياد رسي اوكړه كه څهٔ ښيگړه كولے شے، نو ناساپه جبرائيلؑ ئے اوليدلو، ابن عباسؓ وائي. بيا جبرائيلؑ زمكه په خپله پونده اووهله نو سمدستي اوبهٔ ختكيدے د اسمٰعيلؑ مور حيرانه شوه. كندهٔ ئے اوكنستله. حضورؐ اوفرمائيل كهٔ هغے اوبه په

قَالَ فَقَالَ بِعَقِبِهٖ هٰكَذَا وَ غَمَزَ
عَقِبَهٗ عَلَى الْاَرْضِ قَالَ فَانْبَثَقَ
الْمَاءُ فَدَهَشَتْ اُمُّ اِسْمَاعِيْلَ
فَجَعَلَتْ تَحْفِرُ قَالَ فَقَالَ اَبُو
الْقَاسِمِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
لَوْ تَرَكَتْهُ كَانَ الْمَاءُ ظَاهِرًا قَالَ
فَجَعَلَتْ تَشْرَبُ مِنَ الْمَاءِ وَ يَدِرُّ
لَبَنُهَا عَلٰى صَبِيِّهَا قَالَ فَمَرَّ نَاسٌ
مِنْ جُرْهُمَ بِبَطْنِ الْوَادِيْ فَاِذَاهُمْ
بِطَيْرٍ كَاَنَّهُمْ اَنْكَرُوْا ذَاكَ وَ قَالُوْا
مَا يَكُوْنُ الطَّيْرُ اِلَّا عَلٰى مَاءٍ
فَبَعَثُوْا رَسُوْلَهُمْ فَنَظَرَ فَاِذَاهُمْ
بِالْمَاءِ فَاَتَاهُمْ فَاَخْبَرَهُمْ فَاَتَوْا
اِلَيْهَا فَقَالُوْا يَا اُمَّ اِسْمَاعِيْلَ
اَتَاْذَنِيْنَ لَنَا اَنْ نَّكُوْنَ مَعَكِ اَوْ نَسْكُنَ
مَعَكِ فَبَلَغَ اِبْنُهَا فَنَكَحَ فِيْهِمُ امْرَاَةً
قَالَ ثُمَّ اِنَّهٗ بَدَا لِاِبْرٰهِيْمَ فَقَالَ
لِاَهْلِهٖ اِنِّيْ مُطَّلِعٌ تَرِكَتِيْ قَالَ
فَجَاءَ فَسَلَّمَ فَقَالَ اَيْنَ اِسْمَاعِيْلُ
فَقَالَتْ امْرَاَتُهٗ ذَهَبَ يَصِيْدُ قَالَ
قُوْلِيْ لَهٗ اِذَا جَاءَ غَيِّرْ عَتَبَةَ بَابِكَ
فَلَمَّا جَاءَ اَخْبَرَتْهُ قَالَ اَنْتِ
ذَاكِ فَاذْهَبِيْ اِلٰى اَهْلِكِ قَالَ ثُمَّ
اِنَّهٗ بَدَا لِاِبْرَاهِيْمَ فَقَالَ لِاَهْلِهٖ اِنِّيْ
مُطَّلِعٌ تَرِكَتِيْ قَالَ فَجَاءَ فَقَالَ اَيْنَ
اِسْمَاعِيْلُ فَقَالَتْ امْرَاَتُهٗ ذَهَبَ يَصِيْدُ

حال پریښنې وې نو اوبه به نې زیاتې شوې وې. ابن عباسؓ اووې هغې به دا اوبهٔ څښکلې او ذ هغې دپېو دهارې به ذ خپل بچي د پاره بهیدلې. ذ قبیله جرهم خنې خلق د وادي په مینځ تیر شو. هغوئ چه مارغان اولیدل نو حیران شو اووئیل ئې دا مارغان خو صرف د اوبو د پاسه وي. هغوئ خپل یو سړې اولیږلو هغه چه ورغې نو اوبه ئې اولیدلې هغه بیا راغې او ټولو خلقوته ئې حال اووې نو هغه خلق د حضرت اسمٰعیلؑ مور له راغلل. ورته ئې اووئیل اې د اسمٰعیلؑ مورې: آیا ته مونږ ته اجازت راکوې چه مونږ تاسره قیام اوکړو. اسمٰعیلؑ چه بالغ شو، نو ذ جرهم قبیلې یوې ښځې سره ئې نکاح اوکړلو. بیا ذ ابراهیمؑ زړهٔ کښې راغلل. او هغه خپلې ښځې (بي بي سارهؓ) ته اووې چه زهٔ د خپل بال بچ د حال نه واقف کیدل غواړم. ابراهیمؑ راغې سلام ئې اوکه، بیائې تپوس اوکه. اسمٰعیلؑ چرته دې. ذ اسمٰعیلؑ ښځې ورته اووې. هغه ښکار ذ پاره وتلې دې. ابراهیمؑ وړته اووې څه وخت چه هغه راشي نو ورته اووایه چه ذ خپلې دروازې چوکاټ بدل که. اسمٰعیلؑ چه راغې نو ښځې ورته ټوله واقعه بیانه کړه. اسمٰعیلؑ ورته اووې: د چوکاټ نه مراد ته ئې. نو ته (د خپل پلار) کور کښې کښینه. ابن عباسؓ وائي. بیا ذ ابراهیمؑ زړهٔ کښې راغلل نو هغه بي بي سارهؓ ته اووې چه زهٔ ذ خپل بال بچ د حال احوال نه واقف کیدل غواړم ابراهیمؑ راغې او تپوس ئې اوکه. اسمٰعیلؑ چرته دې. د اسمٰعیلؑ ښځې ورته اووې. ښکار له تلې دې. او تاسو ایساریږئ ولې نه څه څهٔ اوخورئ او څښکئ. ابراهیمؑ ورته اووې تاسو څهٔ خورئ

فَقُلْتُ اَلَا تَنْزِلُ فَتَطْعَمَ وَ تَشْرَبَ
فَقَالَ وَمَا طَعَامُكُمْ وَمَا شَرَابُكُمْ قَالَتْ
طَعَامُنَا اللَّحْمُ وَ شَرَابُنَا الْمَاءُ قَالَ
اَللّٰهُمَّ بَارِكْ لَهُمْ فِيْ طَعَامِهِمْ وَ
شَرَابِهِمْ قَالَ فَقَالَ اَبُو الْقَاسِمِ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَرَكَةٌ بِدَعْوَةِ
اِبْرَاهِيْمَ قَالَ ثُمَّ اِنَّهُ بَدَا لِاِبْرَاهِيْمَ
فَقَالَ لِاَهْلِهٖ اِنِّيْ مُطَّلِعٌ تَرِكَتِيْ فَجَاءَ
فَوَافَقَ اِسْمٰعِيْلَ مِنْ وَّرَآءِ زَمْزَمَ
يُصْلِحُ نَبْلًا لَهُ فَقَالَ يَا اِسْمَاعِيْلُ اِنَّ
رَبَّكَ اَمَرَنِيْ اَنْ اَبْنِيَ لَهُ بَيْتًا قَالَ اَطِعْ
رَبَّكَ قَالَ اِنَّهُ قَدْ اَمَرَنِيْ اَنْ تُعِيْنَنِيْ
عَلَيْهِ قَالَ اِذَنْ اَفْعَلُ اَوْ كَمَا قَالَ قَالَ
فَقَامَا فَجَعَلَ اِبْرَاهِيْمُ يَبْنِيْ وَ
اِسْمَاعِيْلُ يُنَاوِلُهُ الْحِجَارَةَ وَ يَقُوْلَانِ
رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا اِنَّكَ اَنْتَ السَّمِيْعُ
الْعَلِيْمُ قَالَ حَتّٰى ارْتَفَعَ الْبِنَاءُ وَ
ضَعُفَ الشَّيْخُ عَلٰى نَقْلِ الْحِجَارَةِ
فَقَامَ عَلٰى حَجَرِ الْمَقَامِ فَجَعَلَ
يُنَاوِلُهُ الْحِجَارَةَ وَ يَقُوْلَانِ رَبَّنَا تَقَبَّلْ
مِنَّا اِنَّكَ اَنْتَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ.

۵۸۹ : حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ
اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا
الْاَعْمَشُ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ التَّيْمِيُّ عَنْ
اَبِيْهِ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا ذَرٍّ قَالَ قُلْتُ يَا
رَسُوْلَ اللّٰهِ اَيُّ مَسْجِدٍ وُّضِعَ فِيْ

خبنېكي. هغې ورته اووې. غوښه او اوبه ابراهيمؑ ورته
دعا اوكړه چه اے الله ددوئ په خوراك څكاك كښې
بركت واچوے. ابن عباسؓ اووے حضورؐ اوفرمائيل د
حضرت ابراهيمؑ د دعا په وجه بركت دے ابن عباسؓ
اووے. بيا څو ورځے پس د ابراهيمؑ په زړه كښې راغلل
او خپلے بي بي (سارهؓ) ته ئے اووے چه زهٔ خپل اهل و
عيال ليدلو غواړم. هغه راغے او اسمعيلؑ ئے د زمزم شاته
د غشو سمولو باندے اوليدو. ابراهيمؑ ورته اووے اے
اسمعيله الله تعالى ماته حكم كړيدے چه زهٔ د هغهٔ يو
كور جوړ كړم. اسمعيلؑ ورته اووے. بيا د الله د حكم
تعميل كښې تادي كوه. ابراهيمؑ اووے هغهٔ دا حكم هم
كړيدے چه تهٔ دے كار كښې ماسرهٔ مدد اوكړے.
اسمعيلؑ ورته اووے. زهٔ حاضر خدمت يم. بيا دواړه
اودريدل. ابراهيمؑ به تعمير كولو اسمعيلؑ به كاڼړي
وركول او دعا به ئے كوله اے زمونږ پروردګاره زمونږ
دا خدمت قبول كړے. بيشكه ته اوريدونكے
پوهيدونكے ئے. حتى چه ديوالونه اوچت شو. او ابراهيمؑ
د بوډا توب په وجه د كاڼړو اوچتولو نه عاجز پاتے شو نو
هغه د مقام ابراهيمؑ په كاڼړي اودريدلو. اسمعيلؑ به
كاڼړي وركول او دواړو به وئيل ربنا تقبل منا انك انت
السميع العليم.

۵۸۹ : موسى بن اسمعيل. عبد الواحد. اعمش.
ابراهيم تيمي. د هغهٔ پلار حضرت ابوذرؓ نه روايت
كوي. ما عرض اوكه يا رسول الله صلى الله عليه وسلم
دنيا كښې د ټولو نه وړمبے كوم جماعت جوړ شو.
حضورؐ ورته اوفرمائيل (د مكے) مسجد حرام. ما عرض

الْاَرْضِ اَوَّلُ قَالَ الْمَسْجِدُ الْحَرَامُ قَالَ قُلْتُ ثُمَّ اَيُّ قَالَ الْمَسْجِدُ الْاَقْصٰى قُلْتُ كَمْ كَانَ بَيْنَهُمَا قَالَ اَرْبَعُوْنَ سَنَةً ثُمَّ اَيْنَمَا اَدْرَكَتْكَ الصَّلٰوةُ بَعْدُ فَصَلِّهِ فَاِنَّ الْفَضْلَ فِيْهِ.

او كه، بيا كوم يو، حضورؐ اوفرمائيل (د بيت المقدس) مسجد اقصٰي ما عرض او كه. د دوئ مينځ كښې څومره فاصله ده. حضورؐ اوفرمائيل، څلويښت كاله بيا كوم ځائے چه په تا د مونځ وخت راشي هلته مونځ كوه ځكه چه فضيلت او برتري په دے كښې ده.

۵۹۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ اَبِيْ عَمْرٍو مَوْلَى الْمُطَّلِبِ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَلَعَ لَهٗ اُحُدٌ فَقَالَ هٰذَا جَبَلٌ يُحِبُّنَا وَ نُحِبُّهٗ اَللّٰهُمَّ اِنَّ اِبْرَاهِيْمَ حَرَّمَ مَكَّةَ وَ اِنِّيْ اُحَرِّمُ مَا بَيْنَ لَابَتَيْهَا رَوَاهُ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ زَيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۵۹۰: عبداللّٰه بن مسلمه. مالك. (د مطلب آزاد غلام) عمرو بن ابو عمرو. انس بن مالكؓ نه روايت كوي. رسول اللّٰه صلعم ته د احد غر اوښودلے شو. نو حضورؐ اوفرمائيل دا غر مونږ سره محبت ساتي او مونږ ده سره اے خدايه، ابراهيمؑ خو مكه حرم جوړ كه، او زهٔ ددے دوو غرونو په مينځ كښې (مدينه) حرم جوړوم. دا عبداللّٰه بن يزيد د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كړيدے.

۵۹۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ ابْنَ اَبِيْ بَكْرٍ اَخْبَرَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَلَمْ تَرِيْ اَنَّ قَوْمَكِ لَمَّا بَنَوُا الْكَعْبَةَ اقْتَصَرُوْا عَنْ قَوَاعِدِ اِبْرَاهِيْمَ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَلَا تَرُدُّهَا عَلٰى قَوَاعِدِ اِبْرَاهِيْمَ فَقَالَ لَوْلَا حِدْثَانُ قَوْمِكِ بِالْكُفْرِ فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ لَئِنْ كَانَتْ عَائِشَةُ

۵۹۱: عبداللّٰه بن يوسف. مالك. ابن شهاب. سالم بن عبداللّٰه بن ابوبكر. عبداللّٰه بن عمر. بي بي عائشےؓ د نبي صلعم نه روايت كوي. رسول اللّٰه صلعم اوفرمائيل (اے عائشےؓ) آيا تهٔ نه وينے چه ستا قوم د كعبے تعمير اوكه. نو هغوئ د ابراهيمؑ بنياد نه كم تعمير اوكه. ما عرض اوكه يا رسول اللّٰه تاسوئے په ابراهيمي بنياد باندے ولے نه كوئ. حضورؐ ارشاد اوفرمائيلو كه ستا د قوم زمانه كفر سره نزدے نهٔ وے نو ما به داسے كړي وو، عبداللّٰه بن عمر اووے كه بي بي عائشےؓ حقيقت كښې دا حديث

سمِعْتُ هٰذَا مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا أُرٰى أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَرَكَ اسْتِلَامَ الرُّكْنَيْنِ الَّذَيْنِ يَلِيَانِ الْحِجْرَ إِلَّا أَنَّ الْبَيْتَ لَمْ يُتَمَّمْ عَلٰى قَوَاعِدِ إِبْرَاهِيْمَ وَ قَالَ إِسْمَاعِيْلُ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِيْ بَكْرٍ.

دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه اوريدلے وي. نو زۀ په دے پوهيږم چه رسول اللّٰه صلعم حطيم ته قريب دواړه رکنونه په دے وجه ښکل نه کړل. چه کعبه ابراهيمي بنياد باندے پوره نه وه جوړه شوے. او اسمٰعيل، عبداللّٰه بن محمد بن ابوبکر وئيلے دے.

۵۹۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِيْ بَكْرِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ عَمْرِو بْنِ سُلَيْمٍ الزُّرَقِيِّ أَخْبَرَنِيْ أَبُوْ حُمَيْدٍ السَّاعِدِيُّ أَنَّهُمْ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ كَيْفَ نُصَلِّيْ عَلَيْكَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُوْلُوْا اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّ أَزْوَاجِهٖ وَ ذُرِّيَّتِهٖ كَمَا صَلَّيْتَ عَلٰى اٰلِ إِبْرَاهِيْمَ وَ بَارِكْ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّ أَزْوَاجِهٖ وَ ذُرِّيَّتِهٖ كَمَا بَارَكْتَ عَلٰى إِبْرَاهِيْمَ إِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ.

۵۹۲: عبداللّٰه بن يوسف. مالک بن انس. عبداللّٰه بن ابوبکر بن ابوبکر بن محمد بن عمرو بن حزم. دَ هغه پلار عمرو بن سليم زرقي. حضرت ابو سعيد ساعديؓ نه روايت کوي، صحابهؓ عرض اوکه يا رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم مونږ په تاسو درود څنګه اووايو. حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، داسے وايئ اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّ اَزْوَاجِهٖ وَ ذُرِّيَّتِهٖ كَمَا صَلَّيْتَ عَلٰى اٰلِ اِبْرٰهِيْمَ وَ بَارِكْ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّ اَزْوَاجِهٖ وَ ذُرِّيَّتِهٖ كَمَا بَارَكْتَ عَلٰى اِبْرٰهِيْمَ اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ.

۵۹۳: حَدَّثَنَا قَيْسُ بْنُ حَفْصٍ وَ مُوْسَى ابْنُ إِسْمَاعِيْلَ قَالَا حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ حَدَّثَنَا أَبُوْ قُرَّةَ مُسْلِمُ بْنُ سَالِمٍ الْهَمْدَانِيُّ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عِيْسٰى سَمِعَ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِيْ لَيْلٰى قَالَ

۵۹۳: قيس بن حفص او موسٰي بن اسمٰعيل. عبدالواحد بن زياد. ابو قره مسلم بن سالم همداني. عبداللّٰه بن عيسٰي. عبدالرحمٰن بن ابي ليلٰي نه روايت کوي. عبدالرحمان وائي ماسره کعب بن عجره يوځائے شو نو وے فرمائيل، آيا زۀ تاله داسے تحفه درنکړم چه هغه ما د

لَقِيَنِيْ كَعْبُ بْنُ عُجْرَةَ فَقَالَ اَلَا اُهْدِيْ لَكَ هَدِيَّةً سَمِعْتُهَا مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ لَهَا بَلٰى فَاَهْدِهَا لِيْ فَقَالَ سَاَلْنَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ كَيْفَ الصَّلٰوةُ عَلَيْكُمْ اَهْلَ الْبَيْتِ فَاِنَّ اللّٰهَ قَدْ عَلَّمَنَا كَيْفَ نُسَلِّمُ قَالَ قُوْلُوْا اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّ عَلٰى اٰلِ مُحَمَّدٍ كَمَا صَلَّيْتَ عَلٰى اِبْرَاهِيْمَ وَ عَلٰى اٰلِ اِبْرَاهِيْمَ اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ اَللّٰهُمَّ بَارِكْ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّ عَلٰى اٰلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ عَلٰى اِبْرَاهِيْمَ وَ عَلٰى اٰلِ اِبْرَاهِيْمَ اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ.

رسول اللّٰه صلعم نه حاصله کړيده ما عرض او کـه، ضرور راکړه هغه اوې مونږ عرض او کـه. يا رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم په تاسو يعني اهل بيت باندې مونږ څنګه درود وايو. څکه چه اللّٰه تعالٰي خو مونږ ته دا ښودلي دي چه په تاسو څنګه سلام اوليږو (اوس اهل بيت باندې د درود ليږلو طريقه تاسو اوښايئ) نو حضور ورته اوفرمائيل، داسې وايئ چه اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّ عَلٰى اٰلِ مُحَمَّدٍ كَمَا صَلَّيْتَ عَلٰى اِبْرَاهِيْمَ وَ عَلٰى اٰلِ اِبْرَاهِيْمَ اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ ط اَللّٰهُمَّ بَارِكْ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّ عَلٰى اٰلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ عَلٰى اِبْرٰهِيْمَ وَ عَلٰى اٰلِ اِبْرٰهِيْمَ اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ ط.

۵۹۴ : حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنِ الْمِنْهَالِ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعَوِّذُ الْحَسَنَ وَالْحُسَيْنَ وَ يَقُوْلُ اِنَّ اَبَاكُمَا كَانَ يُعَوِّذُ بِهَا اِسْمَاعِيْلَ وَ اِسْحَاقَ اَعُوْذُ بِكَلِمَاتِ اللّٰهِ التَّامَّةِ مِنْ كُلِّ شَيْطَانٍ وَّ هَامَّةٍ وَمِنْ كُلِّ عَيْنٍ لَامَّةٍ.

۵۹۴ : عثمان بن ابي شيبه. جرير. منصور. منهال. سعيد بن جبير. ابن عباس نه روايت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم به په حسن او حسين دا کلمات څف کول، او فرمائيل به ئې چه ستاسو پلار ابراهيمؑ به اسماعيلؑ او اسحاقؑ به هم دا کلمات څف کول. (ترجمه) زه د اللّٰه تعالٰي د مکمل کلماتو په ذريعه د هر شيطان او جاندار او هر ضرر رسان نظر د شر نه پناه غواړم.

## باب ۳۱۳: قَوْلُهٗ عَزَّ وَ جَلَّ وَ نَبِّئْهُمْ عَنْ ضَيْفِ اِبْرَاهِيْمَ وَ قَوْلُهٗ وَلٰكِنْ لِّيَطْمَئِنَّ قَلْبِيْ.

## باب ۳۱۳: آيات كريمهٔ او دوئ ته د ابراهيمؑ د ميلمنو قصه واوروه او د هغهٔ قول چه ليکن څما د زړهٔ اطمينان د پاره.

۵۹۵: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ وَ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ نَحْنُ اَحَقُّ بِالشَّكِّ مِنْ اِبْرَاهِيْمَ اِذْ قَالَ رَبِّ اَرِنِيْ كَيْفَ تُحْيِي الْمَوْتٰى قَالَ اَوَلَمْ تُؤْمِنْ قَالَ بَلٰى وَلٰكِنْ لِّيَطْمَئِنَّ قَلْبِيْ وَ يَرْحَمُ اللّٰهُ لُوْطًا لَقَدْ كَانَ يَأْوِيْ اِلٰى رُكْنٍ شَدِيْدٍ وَلَوْ لَبِثْتُ فِي السِّجْنِ طُوْلَ مَا لَبِثَ يُوْسُفُ لَاَجَبْتُ الدَّاعِيَ.

۵۹۵: احمد بن صالح. ابن ابي وهب. يونس. ابن شهاب. ابو سلمه بن عبدالرحمن او سعيد بن مسيب. حضرت ابوهريرةؓ نه روايت كوي. رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل مونږ ذ ابراهيمؑ په نسبت ذ شک كولو زيات مستحق يو، كوم وخت چه هغهٔ اووے اے پروردګاره ماته اوښائيے چه تهٔ مړي څنګه ژوندي كوے الله ورته اوفرمائيل آيا تا ايمان نه دے راوړے هغهٔ اووے ايمان خوئې بے شكه راوړيدے ليكن زه دا غواړم چه زړهٔ م مطمئن شي او الله تعالٰي د لوطؑ په رحم اوكړي چه هغه يو مضبوط ركن سره پناه اخستے وه او كه زهٔ جيل خانه كښې دومره ورځې پاتے وے څومره چه يوسفؑ جيل كښې پاتے وو نو ما به د هغے بلنه وركوكې خبره منلے وه.

باب ۳۱۴: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَاذْكُرْ فِي الْكِتٰبِ اِسْمَاعِيْلَ اِنَّهٗ كَانَ صَادِقَ الْوَعْدِ.

باب ۳۱۴: آيت كريمه او كتاب كښې د اسمعيلؑ ذكر اوكه، بے شكه هغه د وعدے ريښتونے وو.

۵۹۶: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا حَاتِمٌ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ اَبِيْ عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْاَكْوَعِ قَالَ مَرَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى نَفَرٍ مِنْ اَسْلَمَ يَنْتَضِلُوْنَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِرْمُوْا بَنِيْ اِسْمَاعِيْلَ فَاِنَّ اَبَاكُمْ كَانَ رَامِيًا وَ اَنَا مَعَ بَنِيْ فُلَانٍ قَالَ فَاَمْسَكَ اَحَدُ الْفَرِيْقَيْنِ بِاَيْدِيْهِمْ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَالَكُمْ لَا

۵۹۶: قتيبه بن سعيد. حاتم يزيد بن ابي عبيد. حضرت سلمه بن اكوعؓ نه روايت كوي. رسول الله صلي الله عليه وسلم د بنو اسلم په څو افرادو تير شو هغوئ هغه وخت تير اندازي كوله. نو رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل چه اے بنو اسمعيل تير اندازي كوئ، ځكه چه ستاسو پلار (اسمعيلؑ) لوئے تير انداز وو. او زهٔ (دے تير اندازئ كښے) د فلانو خلقو طرف ته يم. سلمهؓ وائي (دے اوريدو سره) دويم فريق سمدستي لاس اونيولو. حضورؐ ورته اوفرمائيل. تاسو تير اندازي ولے نهٔ كوئ، هغوئ عرض اوكه يا رسول الله صلعم مونږ څنګه

تـرْمُـوْنَ فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ نَرْمِيْ وَ اَنْتَ مَعَهُمْ قَالَ ارْمُوْا وَ اَنَا مَعَكُمْ كُلِّكُمْ.

تیر اندازي کولئ تئ؟ هر کله چه تاسو هغوی سره يئ حضور صلعم ورته اوفرمائيل تاسو تیر اندازی کوئ زه تاسو ټولو سره یم.

**باب ۳۱۵:** قِصَّةُ اِسْحٰقَ بْنِ اِبْرٰهِيْمَ عَلَيْهِمَا السَّلَامُ فِيْهِ ابْنُ عُمَرَ وَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**باب ۳۱۵:** د اسحاق بن ابراهیمؑ د قصے بیان. دا واقعه حضرت ابن عمرؓ او حضرت ابوهريرةؓ د رسول الله صلي الله علية وسلم نه بيان کړے ده.

**باب ۳۱۶:** اَمْ كُنْتُمْ شُهَدَآءَ اِذْ حَضَرَ يَعْقُوْبَ الْمَوْتُ اِلٰى قَوْلِهٖ وَ نَحْنُ لَهٗ مُسْلِمُوْنَ.

**باب ۳۱۶:** (د حضرت يعقوبؑ بيان) آيت کريمه هر کله چه حضرت يعقوبؑ وفات کيدلو نو تاسو موجود وئ آخر آيت و نَحْنُ لَهٗ مُسْلِمُوْنَ پورے.

۵۹۷: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ سَمِعَ الْمُعْتَمِرَ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ اَبِيْ سَعِيْدِ الْمُقْبَرِيِّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قِيْلَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ اَكْرَمُ النَّاسِ قَالَ اَكْرَمُهُمْ اَتْقَاهُمْ قَالُوْا يَا نَبِيَّ اللّٰهِ لَيْسَ عَنْ هٰذَا نَسْأَلُكَ قَالَ فَاَكْرَمُ النَّاسِ يُوْسُفُ نَبِيُّ اللّٰهِ ابْنُ نَبِيِّ اللّٰهِ ابْنِ خَلِيْلِ اللّٰهِ قَالُوْا لَيْسَ عَنْ هٰذَا نَسْأَلُكَ قَالَ فَعَنْ مَعَادِنِ الْعَرَبِ تَسْأَلُوْنِيْ قَالُوْا نَعَمْ قَالَ فَخِيَارُكُمْ فِي الْجَاهِلِيَّةِ خِيَارُكُمْ فِي الْاِسْلَامِ اِذَا فَقِهُوْا.

۵۹۷: اسحاق بن ابراهیم. معتمر. عبیدالله. سعید بن ابو سعید مقبري. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي. چه رسول الله صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوشو، د ټولونه زيات معزز بزرګ خوک دے حضور ورته اوفرمائيل خوک چه د الله نه زيات ويريږي. خلقو ورته اوئيل. مونږ دا تپوس نه کوو. حضور اوفرمائيل د ټولو نه زيات معزز يوسف نبي الله بن نبي الله بن خليل الله دے خلقو اووے. مونږ دا تپوس هم نه کوو: حضور ورته اوفرمائيل آيا تاسو د عربو د خاندانونو متعلق تپوس کوئ، هغوی اووے او: حضور ورته اوفرمائيل: د جاهليت زمانه کښے چه کوم خلق ښه وو هغوی اسلام کښے هم ښه دي په شرط د دے چه د دين علم حاصل کړي.

**باب ۳۱۷:** وَ لُوْطًا اِذْ قَالَ لِقَوْمِهٖ اَتَأْتُوْنَ الْفَاحِشَةَ وَ اَنْتُمْ تُبْصِرُوْنَ اَئِنَّكُمْ لَتَأْتُوْنَ الرِّجَالَ شَهْوَةً مِنْ دُوْنِ

**باب ۳۱۷:** آيت کريمه او مونږ لوطؑ رسول اوليږلو. چه هغه خپل قوم ته اووے، تاسو ولے د بيحيائ کار کوئ حالانکه تاسو وينئ. تاسو ولے ښځے پريږدئ

الْخَبَائِثَ بَلْ أَنْتُمْ قَوْمٌ تَجْهَلُونَ فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهِ إِلَّا أَنْ قَالُوا أَخْرِجُوا آلَ لُوطٍ مِنْ قَرْيَتِكُمْ إِنَّهُمْ أُنَاسٌ يَتَطَهَّرُونَ فَأَنْجَيْنَاهُ وَأَهْلَهُ إِلَّا امْرَأَتَهُ قَدَّرْنَاهَا مِنَ الْغَابِرِينَ وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهِمْ مَطَرًا فَسَاءَ مَطَرُ الْمُنْذَرِينَ.

او سرو له خئ. نور شه نه خو تاسو جاهل خلق يئ نو د هغه قوم جواب صرف دا وو چه د لوطؑ د كور خلق د خپل كلي نه اوباسئ دا خلق خو په مونږ خپله پاكي ښئ. نو مونږ هغه ته او د هغه كوروالو ته د هغه د ښځې نه علاوه نجات وركه. مونږ د هغه ښځه د پاتې شوونه مقرر كړې وه. او په هغوئ مو د كاڼو باران اوكه.

۵۹۸: حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَغْفِرُ اللّٰهُ لِلُوطٍ إِنْ كَانَ لَيَأْوِي إِلَى رُكْنٍ شَدِيدٍ.

۵۹۸: ابواليمان. شعيب. ابوالزناد. اعرج. حضرت ابوهريرةؓ نه روايت كوي رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم اوفرمائيل اللّٰه تعالي د دَ لوطؑ مغفرت نصيب كړي هغه دَ يو مضبوط ركن پناه اخستل غوښتل.

باب ۳۱۸: فَلَمَّا جَاءَ آلَ لُوطٍ الْمُرْسَلُونَ قَالَ إِنَّكُمْ قَوْمٌ مُنْكَرُونَ بِرُكْنِهِ بِمَنْ مَعَهُ لِأَنَّهُمْ قُوَّتُهُ تَرْكَنُوا تَمِيلُوا فَأَنْكَرَهُمْ وَنَكِرَهُمْ وَاسْتَنْكَرَهُمْ وَاحِدٌ يُهْرَعُونَ يُسْرِعُونَ دَابِرُ آخِرُ صَيْحَةً هَلَكَةً لِلْمُتَوَسِّمِينَ لِلنَّاظِرِينَ لَبِسَبِيلٍ لَبِطَرِيقٍ.

باب ۳۱۸: آيت كريمه كوم وخت چه لوطؑ ته فرښتې راغلې نو هغوئ ته ئې اووې تاسو خو نا اشنا خلق يئ. بِرُكْنِهِ نه مراد هغه خلق دي كوم چه هغه سره وو. ځكه چه هغه دَ هغهٔ قوت (بازو) وو. تَرْكَنُوا معني تاسو مائل كيږئ فَأَنْكَرَهُمْ نَكِرَهُمْ او اسْتَنْكَرَهُمْ د ټولو يو معني دي يُهْرَعُونَ هغوئ ويريدل. دا بر معني آخر. صَيْحَة هلاك كونكې آواز لِلْمُتَوَسِّمِينَ ليدونكو زغليدل.

۵۹۹: حَدَّثَنَا مَحْمُودٌ حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنِ الْأَسْوَدِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَرَأَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ.

۵۹۹: محمود. ابو احمد. سفيان. ابو اسحاق. اسود. حضرت عبداللّٰه بن مسعودؓ نه روايت كوي حضور صلي اللّٰه عليه وسلم فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ (دال سره) لوستې دي.

باب ۳۱۹: قَوْلُ اللّٰهِ تَعَالَى وَ

باب ۳۱۹: آيت كريمه او مونږ ثمود قوم ته د

الى ثَمُوْدَ اَخَاهُمْ صَالِحًا كَذَّبَ اَصْحَابُ الْحِجْرِ مَوْضِعُ ثَمُوْدَ وَ اَمَّا حَرْثٌ حِجْرٌ حَرَامٌ وَ كُلُّ مَمْنُوْعٍ فَهُوَ حِجْرٌ مَحْجُوْرٌ وَالْحِجْرُ كُلُّ بِنَاءٍ بَنَيْتَهُ وَمَا حَجَرْتَ عَلَيْهِ مِنَ الْاَرْضِ فَهُوَ حِجْرٌ وَ مِنْهُمْ سُمِّيَ حَطِيْمُ الْبَيْتِ حِجْرًا كَاَنَّهُ مُشْتَقٌّ مِّنْ مَّحْطُوْمٍ مِثْلُ قَتِيْلٍ مِنْ مَّقْتُوْلٍ وَ يُقَالُ لِلْاُنْثٰى مِنَ الْخَيْلِ الْحِجْرُ وَ يُقَالُ لِلْعَقْلِ حِجْرٌ وَ حِجًى وَ اَمَّا حِجْرُ الْيَمَامَةِ فَهُوَ مَنْزِلٌ.

هغوي ورور صالحؑ رسول او لیږلو حجر والو رسولان دروغژن او ګڼل، حجر د ثمود قوم د ځائے نوم دے. پاتے شو حرث حجر، دلته د حجر معني د حرام او ممنوع ځیز ده نو هغه فصل حجر محجور شو او حجر هر هغه عمارت چه هغه تاسو جوړ کړی او کومه زمکه چه تاسو (عمارت د پاره) ګیره کړي نو هغه هم حجر ده، په دے وجه حطیم کعبے ته حجر وائي ګویا حطیم د محطوم په معني کښے دے لکه قتیل چه د مقتول په معني کښے دے، او اسپے ته حجر وئیلے شي. او عقل ته حجر او حجي وئیلے شي. پاتے شو حجر الیمامه، نو هغه د یو منزل نوم دے.

۲۰۰: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ زَمْعَةَ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ ذَكَرَ الَّذِيْ عَقَرَ النَّاقَةَ قَالَ انْتَدَبَ لَهَا رَجُلٌ ذُوْ عِزَّةٍ وَّ مَنَعَةٍ فِيْ قُوَّةٍ كَاَبِيْ زَمْعَةَ.

۲۰۰: حمیدي. سفیان. هشام بن عروه. د هغه پلار. عبدالله بن زمعةؓ نه روایت کوي. ما د رسول الله صلي الله علیه وسلم نه د صالحؑ د اوښے د پښو پریکولو تذکره واوریده، حضورؐ اوفرمائیل د دے اوښے وژلو د پاره هغه سړے تیار شولو چه عزت واله او د قوت د لحاظ نه د لوئے ډلے سړے وو چه د ابو زمعه په شان وو.

۲۰۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مِسْكِيْنٍ اَبُو الْحَسَنِ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَسَّانَ بْنِ حَيَّانَ اَبُوْ زَكَرِيَّاءَ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا نَزَلَ الْحِجْرَ فِيْ غَزْوَةِ تَبُوْكَ اَمَرَهُمْ اَنْ لَّا يَشْرَبُوْا مِنْ بِئْرِهَا وَلَا يَسْتَقُوْا مِنْهَا فَقَالُوْا قَدْ

۲۰۱: محمد بن مسکین. ابو الحسن. یحیي بن حسان بن حیان. ابو زکریا. سلیمان. عبدالله بن دینار. حضرت ابن عمرؓ نه روایت کوي. رسول الله صلي الله علیه وسلم چه غزوه تبوک له تلو او مقام حجر کښے کوز شولو. نو حضورؐ صحابه و ته حکم ورکړلو چه د دے ځائے د کوهیانو اوبه د نه پخپله څښکي او نه د ترے مشکونه ډکوي. صحابه و عرض او کړه چه مونږ خو د دے اوبو نه اوړه اخښلي

عَجَنَّا مِنْهَا وَاسْتَقَيْنَا فَاَمَرَهُمْ اَنْ يَّطْرَحُوْا ذٰلِكَ الْعَجِيْنَ وَ يُهْرِقُوْا ذٰلِكَ الْمَاءَ وَ يُرْوٰى عَنْ سَبْرَةَ بْنِ مَعْبَدٍ وَ اَبِيْ الشُّمُوْسِ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَمَرَ بِاِلْقَاءِ الطَّعَامِ وَ قَالَ اَبُوْ ذَرٍّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنِ اعْتَجَنَ بِمَائِهٖ.

دي او لوښي مو ترې هم ډک کړي دي. حضور صلعم د هغې اوړو د غرځولو او د اوبو د تويولو حکم اوکړ. سبره بن معبد او ابو الشموس دا الفاظ روايت کړيدي. چه حضورؐ هغوئ ته د خوراک د غرځولو حکم اوکړ. ابو ذرؓ دا الفاظ روايت کړيدي، چا چه دې اوبو سره اوړه اخلي دې هغه د اوغرځوي.

۲۰۲ : حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا اَنَسُ ابْنُ عَيَاضٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَّافِعٍ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَؓ اَخْبَرَهٗ اَنَّ النَّاسَ نَزَلُوْا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرْضَ ثَمُوْدَ الْحِجْرَ فَاسْتَقَوْا مِنْ بِئْرِهَا وَاعْتَجَنُوْا بِهٖ فَاَمَرَهُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يُّهْرِقُوْا مَا اسْتَقَوْا مِنْ بِئْرِهَا وَ اَنْ يَّعْلِفُوْا الْاِبِلَ الْعَجِيْنَ وَ اَمَرَهُمْ اَنْ يَّسْتَقُوْا مِنَ الْبِئْرِ الَّتِيْ كَانَ تَرِدُهَا النَّاقَةُ تَابَعَهٗ اُسَامَةُ عَنْ نَافِعٍ.

۲۰۲ : ابراهيم بن منذر. انس بن عياض. عبيداللّٰه. نافع. عبداللّٰه بن عمرؓ نه روايت کوي، خلق د حضورؐ سره د ثمود قوم خائې مقام حجر کښې کوز شولو، نو د هغې خائې د کوهيانونه ئې اوبۀ ډکې کړلې. او هغې اوبو سره ئې اُوړه هم واغږل، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم هغوئ ته حکم اوکړ. چه ددې کوهيانو اوبۀ چا ډکې کړې وي. هغه وارړوئ، او اخلي اوړۀ په اوښانو او خورروئ، او هغوئ ته ئې حکم ورکه چه د هغې کوهي نه اوبۀ ډکې کړئ، چه د هغې نه د صالح عليه السلام اوبۀ څښکلې.

۲۰۳ : حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ عَنْ مَعْمَرٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْهِؓ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا مَرَّ بِالْحِجْرِ قَالَ لَا تَدْخُلُوْا مَسَاكِنَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا اِلَّا اَنْ تَكُوْنُوْا بَاكِيْنَ اَنْ يُصِيْبَكُمْ مَا اَصَابَهُمْ ثُمَّ تَقَنَّعَ

۲۰۳ : محمد. عبداللّٰه. معمر. زهري. سالم بن عبداللّٰه. د خپل پلار عبداللّٰه نه روايت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم چه په مقام حجر تيريدلو نو وې فرمائيل، تاسو د هغې خلقو په خايونو کښې چه هغوی په خان ظلم کړې وو، ژړا سره داخليږي. داسې نه چه تاسو بانډ هغه عذاب راشي کوم چه په هغوئ راغلې وو بيا حضورؐ په سورلۍ په ناسته ناسته خپل څادر په مخ

بِرِدَائِهٖ وَهُوَ عَلَى الرَّحْلِ.

مبارک واچولو (او تیر شولو).

۴ ۰ ٦ : حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ حَدَّثَنَا وَهْبٌ حَدَّثَنَا اَبِيْ سَمِعْتُ يُوْنُسَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمٍ اَنَّ ابْنَ عُمَرَؓ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَدْخُلُوْا مَسَاكِنَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا اَنْفُسَهُمْ اِلَّا اَنْ تَكُوْنُوْا بَاكِيْنَ اَنْ يُّصِيْبَكُمْ مِثْلَ مَا اَصَابَهُمْ.

۴ ۰ ٦ : عبداللّٰه. وهب. د هغهٔ پلار. يونس. زهري. سالم. حضرت عبداللّٰه بن عمرؓ نه روايت كوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل تاسو ذ هغې خلقو په خايونو كښې چه هغوئ په خان ظلم كړيدې، ژړا سره داخليږئ چرته داسې نه وي چه هغه شان مصيبت په تاسو باندې راشي.

**باب ۰ ۳۲ ۱:** اَمْ كُنْتُمْ شُهَدَآءَ اِذْ حَضَرَ يَعْقُوْبَ الْمَوْتُ.

**باب ۰ ۳۲ ۱:** آيت كريمه، آيا ذ يعقوبؑ ذ وفات په وخت تاسو موجود وئې.

۵ ۰ ٦ : حَدَّثَنَا اِسْحَاقُ بْنُ مَنْصُوْرٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ قَالَ الْكَرِيْمُ بْنُ الْكَرِيْمِ بْنِ الْكَرِيْمِ ابْنِ الْكَرِيْمِ يُوْسُفُ بْنُ يَعْقُوْبَ بْنِ اِسْحَاقَ بْنِ اِبْرَاهِيْمَ عَلَيْهِمُ السَّلَامُ.

۵ ۰ ٦ : اسحاق بن منصور. عبدالصمد. عبدالرحمٰن بن عبداللّٰه. ذ هغهٔ پلار حضرت ابن عمرؓ نه روايت كوي، هغهٔ ذ رسالت مېب صلي اللّٰه عليه وسلّم نه واؤريدل چه يوسفؑ بن يعقوبؑ بن اسحاق بن ابراهيم (عليهم السلام) كريم بن كريم بن كريم بن كريم دې.

**باب ۱ ۳۲:** قَوْلُ اللّٰهِ تَعَالٰى لَقَدْ كَانَ فِيْ يُوْسُفَ وَاِخْوَتِهٖ اٰيَاتٌ لِّلسَّآئِلِيْنَ.

**باب ۱ ۳۲:** آيت كريمه بيشكه يوسفؑ او ذ هغهٔ دورونړو قصه كښې تپوس كونكو ذ پاره نخښې دي.

٦ ۰ ٦ : حَدَّثَنِيْ عُبَيْدُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ عَنْ اَبِيْ اُسَامَةَ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ قَالَ سُئِلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

٦ ۰ ٦ : عبيد بن اسمٰعيل. ابو اسامه. عبيداللّٰه. سعيد بن ابو سعيد. ابوهريرةؓ نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه تپوس اوشو. چه خلقو كښې زيات معزز او بزرګ څوک دې حضورؐ ورته اوفرمائيل څوک چه د اللّٰه نه زيات خوف كوي، صحابه ؤ عرض

مَنْ اَكْرَمُ النَّاسِ قَالَ اَتْقَاهُمْ لِلّٰهِ قَالُوْا لَيْسَ عَنْ هٰذَا نَسْأَلُكَ قَالَ فَاَكْرَمُ النَّاسِ يُوْسُفُ نَبِيُّ اللّٰهِ بْنُ نَبِيِّ اللّٰهِ بْنِ نَبِيِّ اللّٰهِ ابْنِ خَلِيْلِ اللّٰهِ قَالُوْا لَيْسَ عَنْ هٰذَا نَسْأَلُكَ قَالَ فَعَنْ مَعَادِنِ الْعَرَبِ تَسْأَلُوْنِيْ النَّاسُ مَعَادِنُ خِيَارُهُمْ فِي الْجَاهِلِيَّةِ خِيَارُهُمْ فِي الْإِسْلَامِ اِذَا فَقِهُوْا.

او کـه، مونږ دا تپوس نه کوو، حضورؐ اوفرمائیل د ټولو نه زیات معزز او بزرګ یوسف نبي الله بن نبي الله ابن خلیل الله دے، صحابه ؤ عرض او که مونږ دا هم تپوس نه کوو حضورؐ ورته اوفرمائیل: آیا ستاسو تپوس د عربو دَ خاندانونو باره کښې دے هغوئ عرض او کـه: او، حضورؐ ورته اوفرمائیل، څوک چه دَ جاهلیت زمانه کښې ښۀ وو، هغوئ اسلام کښې هم ښه دي: په شرط ددے چه ددین علم حاصل کړي.

۶۰۷ : حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا عَبْدَةُ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهٰذَا.

۶۰۷ : محمد. عبدة. عبیدالله. سعید. حضرت ابوهریرهؓ د رسالت مـاب صلعم نه دغسے روایت کوي.

۶۰۸ : حَدَّثَنَا بَدَلُ بْنُ الْمُحَبَّرِ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ سَمِعْتُ عُرْوَةَ ابْنَ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهَا مُرِيْ اَبَا بَكْرٍ يُصَلِّيْ بِالنَّاسِ قَالَتْ اِنَّهُ رَجُلٌ اَسِيْفٌ مَتٰى يَقُمْ مَقَامَكَ رَقَّ فَعَادَ فَعَادَتْ قَالَ شُعْبَةُ فَقَالَ فِي الثَّالِثَةِ اَوِ الرَّابِعَةِ اِنَّكُنَّ صَوَاحِبُ يُوْسُفَ مُرُوْا اَبَا بَكْرٍ.

۶۰۸ : بدل بن محبر. شعبه. سعید بن ابراهیم. عروه بن زبیر. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي: رسول الله صلي الله علیه وسلم بي بي عائشےؓ ته اوفرمائیل ابوبکرؓ ته اووایه چه خلقو ته مونځ ورکړي هغے عرض او که، هغه نرم زړے انسان دے چه ستاسو په ځائے اودریږي نو کمزوري به پرے خوره شي (او مونځ به ورنکړے شي) بیا حضورؐ دغسے اوفرمائیل، نو بي بي عائشےؓ هغه جواب ورکړلو. شعبه وائي په دریم یا په څلورم ځل حضورؐ اوفرمائیل تاسو د یوسفؑ د همنشین ښځو په شان یئ، ابوبکرؓ ته دَ مونځ ورکولو اُووایئ.

۶۰۹ : حَدَّثَنَا الرَّبِيْعُ ابْنُ يَحْيَى الْبَصْرِيُّ حَدَّثَنَا زَائِدَةُ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ بْنِ اَبِيْ مُوْسٰى عَنْ اَبِيْهِ قَالَ مَرِضَ

۶۰۹ : ربیع بن یحیی بصري. زائده. عبدالملک بن عمیر. ابو برده بن موسي د خپل پلار نه روایت کوي. کوم وخت چه رسول الله صلعم ناروغه شو نو وے فرمائیل ابوبکرؓ ته اووایئ

النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مُرُوْا اَبَا بَكْرٍ فَلْيُصَلِّ بِالنَّاسِ فَقَالَتْ عَائِشَةُ اِنَّ اَبَا بَكْرٍ رَّجُلٌ كَذَا فَقَالَ مِثْلَهُ فَقَالَتْ مِثْلَهُ فَقَالَ مُرُوْهُ فَاِنَّكُنَّ صَوَاحِبُ يُوْسُفَ فَاَمَّ اَبُوْبَكْرٍ فِيْ حَيَاةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ حُسَيْنٌ عَنْ زَائِدَةَ رَجُلٌ رَقِيْقٌ.

چه خلقوته مونځ ورکړي بي بي عائشےؓ عرض اوکه ابوبکرؓ خو نرم زړے سړے دے. حضورؐ بیا اوفرمائيل. نو عائشےؓ ورته هغسے اووے. بیا حضورؐ اوفرمائیل هغهٔ ته اووایئ، او تاسو خو دَ یوسف دَ همنشین ښځو په شان یئ. حضرت ابوبکرؓ دَ حضورؐ په ژوند کښے امامت اوکه، حسین دَ زائده نه دَ رجل رقیق الفاظ روایت کړیدي.

۲۱۱۰: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَللّٰهُمَّ اَنْجِ عَيَّاشَ بْنَ اَبِيْ رَبِيْعَةَ اَللّٰهُمَّ اَنْجِ سَلَمَةَ بْنَ هِشَامٍ اَللّٰهُمَّ اَنْجِ الْوَلِيْدَ بْنَ الْوَلِيْدِ اَللّٰهُمَّ اَنْجِ الْمُسْتَضْعَفِيْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ اَللّٰهُمَّ اشْدُدْ وَطْاَتَكَ عَلٰى مُضَرَ اَللّٰهُمَّ اجْعَلْهَا سِنِيْنَ كَسِنِيْ يُوْسُفَ.

۲۱۱۰: ابوالیمان. شعیب. ابو الزناد. اعرج. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي. رسول اللّٰه صلعم (د دعا په طور) اوفرمائیل. اے اللّٰه عیاش بن ابو ربیعه له (د کفارو د ظلم نه) خلاصے ورکړے. اے اللّٰه سلمه بن هشام له هم نجات ورکړے، اے اللّٰه ولید بن الولید له نجات ورکړے. اے اللّٰه په (قبیلهٔ) مضر خپل ګرفت سخت کړے اے اللّٰه په دے ظالمانو دَ یوسفؑ د زمانے په شان قحط سالي راولے.

۲۱۱۱: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ اَسْمَاءَ ابْنِ اَخِيْ جُوَيْرِيَةَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ بْنُ اَسْمَاءَ عَنْ مَالِكٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَنَّ سَعِيْدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ وَ اَبَا عُبَيْدٍ اَخْبَرَاهُ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْحَمُ اللّٰهُ لُوْطًا لَقَدْ كَانَ يَاْوِيْ اِلٰى رُكْنٍ شَدِيْدٍ وَلَوْ لَبِثْتُ فِي السِّجْنِ مَا لَبِثَ يُوْسُفُ ثُمَّ اَتَانِي

۲۱۱۱: عبدالله بن محمد. بن اسماء. مالک. زهري. سعید بن مسیب او ابو عبید حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي. رسالت مےب صلي اللّٰه علیه وسلم ارشاد اوفرمائیلو. اللّٰه تعالي دِ په لوطؑ رحم اوکړي، هغه یو مضبوط رکن سره پناه اخستل غوښتل، او که زهٔ قید خانه کښے دومره زمانه پاتے شوے وے څومره چه یوسفؑ وو. نو دَ هغے بلونکي خبره به مِ سمدستي منلے

الدَّاعِيْ لَاَجَبْتُهُ.

۲۱۲: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَامٍ اَخْبَرَنَا ابْنُ فُضَيْلٍ حَدَّثَنَا حُصَيْنُ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ مَسْرُوْقٍ قَالَ سَأَلْتُ أُمَّ رُوْمَانَ وَ هِيَ أُمُّ عَائِشَةَ عَمَّا قِيْلَ فِيْهَا مَا قِيْلَ قَالَتْ بَيْنَمَا اَنَا مَعَ عَائِشَةَ جَالِسَتَانِ اِذْ وَلَجَتْ عَلَيْنَا اِمْرَأَةٌ مِنَ الْاَنْصَارِ وَ هِيَ تَقُوْلُ فَعَلَ اللّٰهُ بِفُلَانٍ وَ فَعَلَ قَالَتْ فَقُلْتُ لِمَ قَالَتْ اِنَّهُ نَمٰى ذِكْرَ الْحَدِيْثِ فَقَالَتْ عَائِشَةُ اَيُّ حَدِيْثٍ فَاَخْبَرْتُهَا قَالَتْ فَسَمِعَهُ اَبُوْبَكْرٍ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ نَعَمْ فَخَرَّتْ مَغْشِيًّا عَلَيْهَا فَمَا اَفَاقَتْ اِلَّا وَ عَلَيْهَا حُمّٰى يُنَافِضُ فَجَاءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا لِهٰذِهٖ قُلْتُ حُمّٰى اَخَذَتْهَا مِنْ اَجْلِ حَدِيْثٍ تُحُدِّثَ بِهٖ فَقَعَدَتْ فَقَالَتْ وَاللّٰهِ لَئِنْ حَلَفْتُ لَا تُصَدِّقُوْنِيْ وَلَئِنِ اعْتَذَرْتُ لَا تَعْذِرُوْنِيْ فَمَثَلِيْ وَ مَثَلُكُمْ كَمَثَلِ يَعْقُوْبَ وَ بَنِيْهِ فَاللّٰهُ الْمُسْتَعَانُ عَلٰى مَا تَصِفُوْنَ فَانْصَرَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ مَا اَنْزَلَ فَاَخْبَرَهَا فَقَالَتْ بِحَمْدِ اللّٰهِ لَا بِحَمْدِ اَحَدٍ.

وه.

۲۱۲: محمد بن سلام. ابن فضيل. حصين. سفيان. مسروق نه روايت كوي، هغه وائي ما د بي بي عائشےؓ د مور اُم رومان نه دا فكب د واقعے په باره كښے تپوس اوكه، نو هغے اووے: زهٔ او عائشہؓ دواړه ناست وو چه يو انصاري ښځه مونږ ته راغله، وئيلے چه فلاني لـه دِ اللّٰه بدله وركړي او بدله ئے وركړے هم ده. اُم رومان وائي، ما تپوس اوكه دا ولې، نو هغے انصاريه ښځے اووے، خكه چه هغه دا خبره خوره كړے او زياته كړے ده. بي بي عائشےؓ اووے كومه خبره، نو هغے ورته د افك واقعه اوښودله عائشےؓ تپوس اوكه، آيا رسول اللّٰه صلعم او ابوبكرؓ هم دا خبره اوريدلے ده. انصاريه اووے، او، نو عائشہؓ ددے صدمے نه بيهوشه راوغرزيده كوم وخت چه هوش كښے راغله، نو دَ يخنئ تبے نيولے وه. بيا رسول اللّٰه صلعم تشريف راوړلو، او تپوس ئے اوكه، په دے څهٔ چل شوے دے، ما ورته اووے، كومه خبره چه تاسو ته بيان شويده دَ هغے دَ صدمے په وجه دا تبے نيولے ده، بيا عائشہؓ راپاسيده، كيناستله اووئيلے، په خدائے كه زهٔ قسم اوخورم نو ته به يقين اونكړے اوكه عذر بيان كړم، نو اوبه ئے نه منے، ځما او ستا مثال دَ يعقوبؑ او دَ هغهٔ دَ ځامنو په شان دے نو دَ اللّٰه نه دَ مدد خواست دے په هغا چه تاسوئے بيانوئ نو حضورؐ واپس شولو او دے باره كښے چه اللّٰه څهٔ نازلول هغه ئے نازل كړلو. حضورؐ دَ هغے بي بي عائشےؓ ته اطلاع وركړه نو هغے اووے زهٔ د اللّٰه شكر ادا كوم، د بل چا نه.

۳۱۲: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ اِنَّهُ سَاَلَ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرَاَيْتِ قَوْلَهُ حَتّٰى اِذَا اسْتَيْاَسَ الرُّسُلُ وَظَنُّوْا اَنَّهُمْ قَدْ كُذِبُوْا اَوْ كُذِّبُوْا قَالَتْ بَلْ كَذَّبَهُمْ قَوْمُهُمْ فَقُلْتُ وَاللّٰهِ لَقَدِ اسْتَيْقَنُوْا اَنَّ قَوْمَهُمْ كَذَّبُوْهُمْ وَمَا هُوَ بِالظَّنِّ فَقَالَتْ يَا عُرَيَّةُ لَقَدِ اسْتَيْقَنُوْا بِذٰلِكَ قُلْتُ فَلَعَلَّهَا اَوْ كُذِبُوْا قَالَتْ مَعَاذَ اللّٰهِ لَمْ تَكُنِ الرُّسُلُ تَظُنُّ ذٰلِكَ بِرَبِّهَا وَ اَمَّا هٰذِهِ الْاٰيَةُ قَالَتْ هُمْ اَتْبَاعُ الرُّسُلِ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِرَبِّهِمْ وَ صَدَّقُوْهُمْ وَ طَالَ عَلَيْهِمُ الْبَلَاءُ وَاسْتَاْخَرَ عَنْهُمُ النَّصْرُ حَتّٰى اِذَا اسْتَيْاَسَتْ مِمَّنْ كَذَّبَهُمْ مِّنْ قَوْمِهِمْ وَ ظَنُّوْا اَنَّ اَتْبَاعَهُمْ كَذَّبُوْهُمْ جَاءَهُمْ نَصْرُ اللّٰهِ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ اِسْتَيْاَسُوْا اِفْتَعَلُوْا مِنْ يَئِسْتُ مِنْهُ مِنْ يُوْسُفَ لَا تَيْاَسُوْا مِنْ رَّوْحِ اللّٰهِ مَعْنَاهُ الرَّجَاءُ اَخْبَرَنِيْ عَبْدَةُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْكَرِيْمُ بْنُ الْكَرِيْمِ بْنِ الْكَرِيْمِ

۳۱۲: یحیي بن بکیر. لیث. عقیل ابن شهاب عروه نه روایت کوي' هغهٔ ذ نبي صلعم د ټبر بي بي عائشې رض نه تپوس اوکهٔ چه فرمان خداوندي کوم وخت چه رسولان نااُمیده شو' او هغوئ ته دا ګمان اوشو چه د هغوئ قوم به هغوئ دروغژن کړي. دې کښې ذ کُذِبُوا په ذال تشدید شته یا نه یعني کذِّبوا دې یا کُذبوا. نو هغې اوفرمائیل کذّبوا دې' ځکه چه ذ هغوئ قوم تکذیب کولو. ما عرض اوکهٔ په خدائې چه رسولانوته خو د خپل قوم د تکذیب یقین وو (بیا ظنوا څنګه صادق راتلې شي) نو عائشې رض اوفرمائیل اې عریه بیشکه هغوئ ته ددې خبرې یقین وو' ما عرض اوکهٔ چه شاید دا کُذِبُوا دې. عائشې رض اوفرمائیل معاذ الله انبیاء الله سره داسې ګمان نشي کولې ځکه چه دغه شان به بیا معني دا وي چه هغوئ ته دا ګمان اوشو چه هغوئ ته دروغ اووئیلې شو' یعني معاذ الله خدائې د فتح وعده پوره نه کړله. لیکن ذکر شوې آیت کښې د هغې رسولانو هغه متبعین (پیروکار) مراد دي چه خپل پروردګار باندې ئې ایمان راوړې وو. او ذ پیغمبرانو تصدیق ئې کړې وو. بیا د هغوئ ازمائښ لږ شان اوږد شو او مدد راتلو کښې تاخیر اوشو. حتي چه کوم وخت پیغمبران ذ خپل قوم ذ تکذیب کونکو د ایمان نه مایوسه شو' او ذ هغوئ دا ګمان کیدو چه ذ هغوئ متبعین به هم ذ هغوئ تکذیب اوکړي نو د الله مدد راغې. امام بخاري فرمائي چه اسْتَيْاَسُوا د یست منه نه باب افتعال نه دې یعني د یوسف نه مایوسه شوې "لا تَيْئَسُوا من روح الله معني ده د الله د رحمت نه امیدوار اوسی. عبده. عبدالصمد.

بْنِ الْكَرِيْمِ يُوْسُفُ بْنُ يَعْقُوْبَ بْنِ اِسْحَاقَ ابْنِ اِبْرَاهِيْمَ عَلَيْهِمُ السَّلَامُ.

عبدالرحمٰن دَ هغه پلار ابن عمر نه روایت کوي. رسول اللّٰه صلعم اوفرمائيل یوسف بن یعقوب بن اسحاق بن ابراهیمؑ کریم بن کریم بن کریم دے.

باب ۱۳۲۲: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ اَيُّوْبَ اِذْ نَادٰى رَبَّهُ اَنِّيْ مَسَّنِيَ الضُّرُّ وَ اَنْتَ اَرْحَمُ الرَّاحِمِيْنَ' اُرْكُضْ اِضْرِبْ يَرْكُضُوْنَ يَعْدُوْنَ.

باب ۱۳۲۲: فرمان الٰهي او مونږ ایوب ته خلاصي ورکه' کوم وخت چه هغهٔ خپل رب ته خواست اوکه چه اے پروردګاره ماته تکلیف رسي اوته ارحم الراحمین یئ دَ ارکض معني دي ته اووهه' یرکضون: معني دي منډے وهي (دوڑتے ہیں).

۳۱۴: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ الْجُعْفِيُّ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَمَا اَيُّوْبُ يَغْتَسِلُ عُرْيَانًا خَرَّ عَلَيْهِ رِجْلُ جَرَادٍ مِّنْ ذَهَبٍ فَجَعَلَ يَحْثِيْ فِيْ ثَوْبِهٖ فَنَادٰى رَبُّهٗ يَا اَيُّوْبُ اَلَمْ اَكُنْ اَغْنَيْتُكَ عَمَّا تَرٰى قَالَ بَلٰى يَا رَبِّ وَلٰكِنْ لَا غِنٰى لِيْ عَنْ بَرْكَتِكَ.

۳۱۴: عبداللّٰه بن محمد جعفي. عبدالرزاق. معمر. همام. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل یوه ورځ داسے حالت کښے چه ایوبؑ په بربنډه غسل کولو. هغه دَ پاسه د سرو زرو ډیر ملخان راوغرځیدل. نو هغهٔ ئے راغُنډول او خپلو کپړو کښے ئے ایښودل. پروردګار ورته (خپل شان لائقه سره) آواز اوکه ورته ئے وئيلے' اے ایوب آیا ته ما ددے نه بے نیازه کړے نه ئے' هغه عرض اوکه بیشکه اے پروردګاره' خو ستا د برکت نه بے نیازي نشي کیدے.

باب ۱۳۲۳: وَاذْكُرْ فِي الْكِتٰبِ مُوْسٰى اِنَّهٗ كَانَ مُخْلَصًا وَّ كَانَ رَسُوْلًا نَّبِيًّا وَ نَادَيْنَاهُ مِنْ جَانِبِ الطُّوْرِ الْاَيْمَنِ وَ قَرَّبْنَاهُ نَجِيًّا كَلَّمَهٗ وَ وَهَبْنَا لَهٗ مِنْ رَحْمَتِنَا اَخَاهُ هٰرُوْنَ نَبِيًّا يُقَالُ لِلْوَاحِدِ وَ لِلْاِثْنَيْنِ وَالْجَمِيْعِ نَجِيٌّ وَّ يُقَالُ خَلَصُوْا نَجِيًّا

باب ۱۳۲۳: آیت کریمه او کتاب کښے دَ موسیٰؑ ذکر اوکه' بیشکه هغه خالص (دوست) پیغمبر او نبي وو' او مونږ هغه ته د طور د ښي طرف نه آواز اوکه' او هغه مو خبرو کولو دَ پاره خپل مقرب جوړ کړلو. او مونږ هغه ته محض خپل رحمت سره دَ هغهٔ ورور هارون نبي جوړ کړ او هغه ته مو عطاء کړلو "قربناه نجیا" معني: هغه سره ئے خبرے اوکړے مفرد' تثنیه او جمع ټولو د پاره نجي وئيلے شي' محاوره ده خلصوا نجیا: یعني

اِعْتَزَلُوْا نَجِيًّا وَالْجَمِيْعُ اَنْجِيَةٌ يَتَنَاجَوْنَ.

هغوش مشورے دَ پاره جدا شولو او ددے جمع انجیه راځي یعني هغوئ مشوره کوي.

بَابٌ ۳۲۴: وَ قَالَ رَجُلٌ مُّؤْمِنٌ مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ اِلٰى قَوْلِهٖ مُسْرِفٌ كَذَّابٌ.

باب ۳۲۴: آیت کریمه او د فرعون خاندان کښے مؤمن سړي اووے چه خپل ایمان ئے اوسه پورے پټ ساتلے وو آیا تاسو داسے سړے قتلوئ چه دا وائي چه ځما پروردګار اللّٰه دے. آخر آیت پورے بیان.

۳۱۶۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ سَمِعْتُ عُرْوَةَ قَالَ قَالَتْ عَائِشَةُ فَرَجَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى خَدِيْجَةَ يَرْجُفُ فُؤَادُهٗ فَانْطَلَقَتْ بِهٖ اِلٰى وَرَقَةَ ابْنِ نَوْفَلٍ وَ كَانَ رَجُلًا تَنَصَّرَ يَقْرَأُ الْاِنْجِيْلَ بِالْعَرَبِيَّةِ فَقَالَ وَرَقَةُ مَاذَا تَرٰى فَاَخْبَرَهٗ فَقَالَ وَرَقَةُ هٰذَا النَّامُوْسُ الَّذِيْ اَنْزَلَ اللّٰهُ عَلٰى مُوْسٰى وَ اِنْ اَدْرَكَنِيْ يَوْمُكَ اَنْصُرْكَ نَصْرًا مُؤَزَّرًا النَّامُوْسُ صَاحِبُ السِّرِّ الَّذِيْ يُطْلِعُهٗ بِمَا يَسْتُرُهٗ عَنْ غَيْرِهٖ.

۳۱۶۵: عبداللّٰه بن یوسف. لیث. عقیل. ابن شهاب. عروه. دَ بي بي عائشے رض نه روایت کوي، هغه فرمائي دَ رسول اللّٰه صلعم زړۀ درزیدو سره بي بي خدیجے رض له واپس راغے، هغے حضور ورقه بن نوفل له بوتلو، او ورقه نصراني شوے وو، انجیل به ئے عربئ کښے لوستو، ورقه تپوس اوکړو، تاسو څه لیدل، حضور ورته هر څه بیان کړل. ورقه اووے دا هغه ناموس (فرښته) وه چه اللّٰه تعالٰی به موسٰی علیه السلام نازله کړے وه. او که زۀ ستاسو زمانے ته پاتے شوم، نو زۀ به ستا زبردست مدد اوکړم. الناموس: یعني هغه رازدار چه هغه ته سړے خپل داسے راز اوښائي چه هغه هر چا ته نه ظاهروي.

بَابٌ ۳۲۵: قَوْلِ اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ وَ هَلْ اَتَاكَ حَدِيْثُ مُوْسٰى اِذْ رَاٰى نَارًا اِلٰى قَوْلِهٖ بِالْوَادِ الْمُقَدَّسِ طُوًى اٰنَسْتُ اَبْصَرْتُ نَارًا لَعَلِّيْ اٰتِيْكُمْ مِنْهَا بِقَبَسٍ اَلْاٰيَةَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ الْمُقَدَّسُ الْمُبَارَكُ طُوًى اِسْمُ الْوَادِي

باب ۳۲۵: آیات کریمه او آیا تاته دَ موسٰی قصه رارسیدلے ده، کوم وخت چه هغهٔ اُور اولیدلو طوي پورے بیان. انست یعني ما اُور لیدلے دے چه دَ هغے نه زۀ څۀ څروټکه راوړم، ابن عباس رض فرمائي. مقدس معنٰي برکت ناک، طوي دَ یو وادي نوم دے، سیرتها یعني د هغے حالت النّهٰی یعني پرهیزګاري، بملکنا په خپل اختیار کښے هوی یعني بدبخت فارغا سوا. د موسٰیٰ د

بِيُـرَتُهَـا حَـالَتُهَـا وَالنُّهٰى التُّقٰى بِمَلْكِنَا بِأَمْرِنَا هَوٰى شَقِىَ فَارِغًا إِلَّا مِنْ ذِكْرِ مُوْسٰى رِدًا كَيْ يُصَدِّقُنِيْ وَ يُقَالُ مُغِيْثًا اَوْ مُعِيْنًا يَبْطُشُ وَ يَبْطِشُ يَأْتَمِرُوْنَ يَتَشَاوَرُوْنَ وَالْجَذْوَةُ قِطْعَةٌ غَلِيْظَةٌ مِنَ الْخَشَبِ لَيْسَ فِيْهَا لَهَبٌ سَنَشُدُّ سَنُعِيْنُكَ كُلَّمَا عَزَّزْتَ شَيْئًا فَقَدْ جَعَلْتَ لَهٗ عَضُدًا وَ قَالَ غَيْرُهٗ كُلَّمَا لَمْ يَنْطِقْ بِحَرْفٍ اَوْفِيْهِ تَمْتَمَةٌ اَوْ فَأْفَاۃٌ فَهِيَ عُقْدَةٌ اَزْرِىْ ظَهْرِىْ فَيُسْحِتَكُمْ فَيُهْلِكَكُمْ اَلْمُثْلٰى تَانِيْثُ الْاَمْثَلِ يَقُوْلُ بِدِيْنِكُمْ يُقَالُ خُذِ الْمُثْلٰى خُذِ الْاَمْثَلَ ثُمَّ ائْتُوْا صَفًّا يُقَالُ هَلْ اَتَيْتَ الصَّفَّ الْيَوْمَ يَعْنِى الْمُصَلّٰى الَّذِىْ يُصَلّٰى فِيْهِ فَاَوْجَسَ اَضْمَرَ خَوْفًا فَذَهَبَتِ الْوَاوُ مِنْ خِيْفَةٍ لِكَسْرَةِ الْخَاءِ فِىْ جُذُوْعِ النَّخْلِ عَلٰى جُذُوْعِ خَطْبُكَ بَالُكَ مِسَاسُ مَصْدَرُ مَاسَّهٗ مِسَاسًا لَنَنْسِفَنَّهٗ لَنُذْرِيَنَّهٗ اَلضَّحَآءُ الْحَرُّ قُصِّيْهِ اِتَّبِعِىْ اَثَرَهٗ وَقَدْ يَكُوْنُ اَنْ نَّقُصَّ الْكَلَامَ نَحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ عَنْ جُنُبٍ عَنْ بُعْدٍ وَ عَنْ جَنَابَةٍ وَ عَنْ اِجْتِنَابٍ وَاحِدٌ قَالَ مُجَاهِدٌ عَلٰى قَدَرٍ مَوْعِدٍ لَا تَنِيَا لَا

یاد نه هر څیز نه خالي دے ردأ فریاد رس یا مددګار، یَبْطُشُ او یَبْطِشُ دواړه شان راځي، یاتمرون یعني هغوئ مشوره کوي. جذوة یعني د سوخته لرګي هغه غټه ټکړه چه په هغے شغله نه وي او اُور وي. سَنَشُدُّ مونږ به عنقریب ستاسو مدد اوکړو. هر کله چه ته د چا مددګار شے، نو ګویا ته د هغے متے شوے. نور حضرات فرمائي هر کله چه څوک سرے حرف ادا کولے شي. یا ذ هغهٔ ژبه کښے لکنت (تتوالے) وي یا هغه "ف" زیاته وي نو هغه عقده (غوټه) ده. ازري څما پشت (شا) فسیحتکم یعني تاسو به تباه و برباد کړي. المُثلٰی ذ امثل مؤنث دے (یعني افضل او بهتر ګویا) هغه وائي چه (بطریقتکم المثلٰی یعني) ستاسو دین به ختم کړي. وئیلے شي خذ المثلٰی. خذ الامثل (یعني بهتر څیز واخله) ثم ائتوا صفًا محاوره ده. هل اتیت الصّف الیوم یعني کوم ځائے چه مونځ کیږي آیا ته هغے ځائے ته راغلے ئے. فاوجس: یعني زړهٔ کښے خوف اوکه. خیفه (اصل کښے خِوفة وو) دواو ما قبل ذ خا کسره کیدو په وجه واو ختم شو، او 'یا' راغے فی جذوة النخل کښے فی د علٰی په معني کښے دے. خطبک: یعني ستا حالت مساس مصدر دے د ماسه لَنَنْسِفَنَّهٗ یعني مونږ به هغه ضرور خواره کړو، والوځوو. الضحاء یعني ګرمي. قصیه یعني هغے پسے خه او کله د خبرو کولو په معني کښے هم راځي، لکه نحن نقص علیک، علٰی جنب معني دي د لرے نه عن جنابة او عن اجتناب: د ټولو معني یو دي. مجاهد وائي چه علٰی قدرِ معني د وعدے په ځائے. لاتنیا (سست کیږئ مه) یبسًا: یعني خشک من زینة القوم نه مراد ذ فرعونیانو

تَضْعُفَا مَكَانًا سُوًى مُنْصِفٌ بَيْنَهُمْ يَبْسًا يَابِسًا مِنْ زِيْنَةِ الْقَوْمِ الْحُلِيِّ الَّذِيْ اسْتَعَارُوْا مِنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ فَقَذَفْتُهَا اَلْقَيْتُهَا اَلْقٰى صَنَعَ فَنَسِيَ هُمْ يَقُوْلُوْنَهُ اَخْطَاَ الرَّبُّ اَنْ لَّا يَرْجِعَ اِلَيْهِمْ قَوْلًا فِي الْعِجْلِ.

هغه کالي چه هغوي مستعار اخستے وو (څو ورځو له ئے اخستے وو چه بیا به ئے واپس کوو) فقذفتها یعني ما هغه اوغرځولو. القٰی معني جوړه کړه فَنَسِیَ موسٰی مطلب دا دے هغوئ داسے وئیلے. چه موسیٰ خپل پروردګار پریښیے دے او بل چرته تلے دے. ان لا یرجع الیهم قولا: دَ سخي (ګوساله) باره کښے نازل شویدے.

٦١٦: حَدَّثَنَا هُدْبَةُ بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ بْنِ صَعْصَعَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدَّثَهُمْ عَنْ لَيْلَةِ اُسْرِيَ بِهٖ حَتّٰى اَتَى السَّمَاءَ الْخَامِسَةَ فَاِذَا هَارُوْنُ قَالَ هٰذَا هَارُوْنُ فَسَلِّمْ عَلَيْهِ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَرَدَّ ثُمَّ قَالَ مَرْحَبًا بِالْاَخِ الصَّالِحِ وَالنَّبِيِّ الصَّالِحِ تَابَعَهُ ثَابِتٌ وَ عَبَّادُ بْنُ اَبِيْ عَلِيٍّ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

٦١٦: هدبه بن خالد. همام. قتاده. حضرت انس بن مالکؓ. حضرت مالک بن صعصعہؓ نه روایت کوي. رسالتمیٔب صلي الله علیه وسلم دَ شب معراج دا حال هم بیان کړلو چه کوم وخت پنځم اسمان ته ورغے نو هلته هارون علیه السلام سره یوځائے شولو، نو جبرائیلؑ اوویے دا هارونؑ دے دهٔ ته سلام اوکړے، ما هغه ته سلام اوکه، هغه جواب راکړهٔ اے برادر صالح او نبي صالح مرحبا. ددے متابع حدیث ثابت او عباد بن ابو علي حضرت انسؓ د رسول الله صلي الله علیه وسلم نه روایت کوي.

بَابٌ ٦٢٣: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ هَلْ اَتَاكَ حَدِيْثُ مُوْسٰى وَ كَلَّمَ اللّٰهُ مُوْسٰى تَكْلِيْمًا.

باب ٦٢٣: د الله تعالي قول او آیا تاته دَ موسیٰؑ قصه رارسیدلے ده او الله تعالي موسیٰؑ خپل کلام سره سرفراز کهٔ.

٦١٧: حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةَ اُسْرِيَ بِهٖ رَاَيْتُ مُوْسٰى وَ اِذَا

٦١٧: ابراهیم بن موسٰي. هشام بن یوسف. معمر. زهري. سعید بن مسیب. حضرت ابوهریرهٔ نه روایت کوي رسول الله صلي الله علیه وسلم د شب معراج په بیان کښے اوفرمائیل: ما موسیٰؑ اولید چه هغه د یو کوټلي بدن والا سړے وو. د هغه ریښتهٔ زیات پیچدار نه وو. داسے معلومیدهٔ چه ګویا هغه

رَجُلٌ ضَرْبٌ رَجِلٌ كَأَنَّهُ مِنْ رِّجَالِ شَنُوءَةَ وَ رَأَيْتُ عِيْسٰى فَإِذَا هُوَ رَجُلٌ رَبْعَةٌ اَحْمَرُ كَأَنَّمَا خَرَجَ مِنْ دِيْمَاسٍ وَ اَنَا اَشْبَهُ وُلْدِ اِبْرَاهِيْمَ بِهٖ ثُمَّ اُتِيْتُ بِإِنَائَيْنِ فِيْ اَحَدِهِمَا لَبَنٌ وَّ فِي الْاٰخَرِ خَمْرٌ فَقَالَ اشْرَبْ اَيَّهُمَا شِئْتَ فَأَخَذْتُ اللَّبَنَ فَشَرِبْتُهُ فَقِيْلَ اَخَذْتَ الْفِطْرَةَ اَمَا اِنَّكَ لَوْ اَخَذْتَ الْخَمْرَ غَوَتْ اُمَّتُكَ.

ذ قبيلۀ شنوءة يو فرد دے' او ما عيسیٰ اوليد چه هغه ميانه قد سُور رنګے وو' داسے معلوميدۀ لکه چه هغه اوس د حمام نه راوتلے وي. او زۀ د ابراهيمؑ په اولاد کښے زيات ذ هغۀ مشابه يم. بيا ماته دوه پيالئ راکړے شوے يو کښے پئے او بلے کښے شراب وو' جبرئيلؑ اووے' دواړو کښے چه کوم غواړے' او څښکه' ما پئے او څښکل' نو ماته اوونيلے شو چه تا فطرت اختيار کړلو' که تاسو شراب اخستے وے نو ستاسو اُمت به ګمراه شوے وو.

۶۱۸ : حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا الْعَالِيَةِ حَدَّثَنَا اِبْنُ عَمِّ نَبِيِّكُمْ يَعْنِي ابْنَ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَنْبَغِيْ لِعَبْدٍ اَنْ يَّقُوْلَ اَنَا خَيْرٌ مِنْ يُوْنُسَ بْنِ مَتّٰى وَ نَسَبَهُ اِلٰى اَبِيْهِ وَ ذَكَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةَ اُسْرِيَ بِهٖ فَقَالَ مُوْسٰى اٰدَمُ طُوَالٌ كَأَنَّهُ مِنْ رِّجَالِ شَنُوءَةَ وَ قَالَ عِيْسٰى جَعْدٌ مَّرْبُوْعٌ وَ ذَكَرَ مَالِكًا خَازِنَ النَّارِ وَ ذَكَرَ الدَّجَّالَ.

۶۱۸ : محمد بن بشار. غندر. شعبه. قتاده. ابو العاليه. ذ حضورؐ ذ ترۀ خوئ ابن عباسؓ نه روايت کوي' رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل چاله دا وئيل مناسب نۀ دي چه زۀ ذ يونس بن متي نه بهتريم يم' او حضورؐ هغه د هغۀ پلار طرف ته منسوب کړلو. او رسول الله صلي الله عليه وسلّم ذ شب معراج په ذکر کښے اوفرمائيل چه موسیٰ يو دراز قد غنم رنګے سړے وو ګويا چه هغه ذ قبيلۀ شنؤه يو فرد دے. اووے فرمائيل چه عيسیٰ پيچيده (ولول) ويښتو واله ميانه قد انسان وو او حضورؐ د جهنم د داروغه مالک او دجال هم ذکر اوفرمائيلو.

۶۱۹ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ السَّخْتِيَانِيُّ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا قَدِمَ الْمَدِيْنَةَ وَجَدَهُمْ يَصُوْمُوْنَ يَوْمًا

۶۱۹ : علي بن عبدالله. سفيان. ايوب سختياني. ابن سعيد بن جبير. ذ هغۀ پلار ابن عباسؓ نه روايت کوي. رسول الله صلي الله عليه وسلّم چه مدينے ته تشريف راوړلو نه يهوديان ئے اوليدل چه ذ عاشورے روژه ئے نيولے ده. يهوديانو اووے چه دا ډيره لويه ورځ

يَعْنِيُ عَاشُوُرَآءَ فَقَالُوْا هٰذَا يَوْمٌ عَظِيْمٌ وَهُوَ يَوْمٌ نَجَّى اللّٰهُ فِيْهِ مُوْسٰى وَ اَغْرَقَ اٰلَ فِرْعَوْنَ فَصَامَ مُوْسٰى شُكْرًا لِلّٰهِ فَقَالَ اَنَا اَوْلٰى بِمُوْسٰى مِنْهُمْ فَصَامَهُ وَ اَمَرَ بِصِيَامِهٖ.

ده' په دې ورځ اللّٰه تعالٰي موسیٰ له نجات ورکه او فرعونیان ئې غرق کړل. دَ شکرانې په طور موسیٰ په دې ورځ روژه نیولې وه. حضورؐ اوفرمائیل زهٔ دوئ نهٔ ولو کښې د موسیٰ زیات قریب یم' نو حضورؐ په هغه ورځ روژه اونیوله او نوروته ئې دَ نیولو حکم ورکړلو.

**باب ۳۲۷: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى** وَ وٰعَدْنَا مُوْسٰى ثَلٰثِيْنَ لَيْلَةً وَ اَتْمَمْنَاهَا بِعَشْرٍ فَتَمَّ مِيْقَاتُ رَبِّهٖ اَرْبَعِيْنَ لَيْلَةً وَ قَالَ مُوْسٰى لِاَخِيْهِ هَارُوْنَ اخْلُفْنِيْ فِيْ قَوْمِيْ وَ اَصْلِحْ وَلَا تَتَّبِعْ سَبِيْلَ الْمُفْسِدِيْنَ وَلَمَّا جَاءَ مُوْسٰى لِمِيْقَاتِنَا وَ كَلَّمَهٗ رَبُّهٗ قَالَ رَبِّ اَرِنِيْ اَنْظُرْ اِلَيْكَ قَالَ لَنْ تَرَانِيْ اِلٰى قَوْلِهٖ وَ اَنَا اَوَّلُ الْمُؤْمِنِيْنَ يُقَالُ دَكَّهٗ زَلْزَلَهٗ فَدُكَّتَا فَدُكِكْنَ جَعَلَ الْجِبَالَ كَالْوَاحِدَةِ كَمَا قَالَ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ اَنَّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ كَانَتَا رَتْقًا وَلَمْ يَقُلْ كُنَّ رَتْقًا مُلْتَصِقَتَيْنِ اُشْرِبُوْا ثَوْبٌ مُشَرَّبٌ مَصْبُوْغٌ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ انْبَجَسَتْ اى انْفَجَرَتْ وَ اِذْ نَتَقْنَا الْجَبَلَ رَفَعْنَا.

**باب ۳۲۷:** آیت کریمه او مونږ موسیٰ سره دَ دیرشو شپو وعده اوکړه' او هغه مونږ زیاتي لس شپو سره پوره کړه' نو دَ هغوئ دَ پروردګار وخت څلویښت شپې پوره شوې' او موسیٰ خپل ورور هارونؑ ته اووې' تهٔ څما قوم کښې څما نائب شه' دَ دوئ اصلاح کوه' او دَ فسادیانو د طریقې پیروي مهٔ کوه. او کوم وخت چه موسیٰ څمونږ دَ وخت مطابق راغې او خپل رب ورسره کلام اوکړو' نو هغه خواست اوکه' اې پروردګاره ماته خپل دیدار اوښایئ چه زهٔ تا اووینم. اللّٰه ورته اوفرمائیل. تهٔ ما هیڅ کله نشې لیدلې. اول المؤمنین پورې' دَكَّهٗ یعني هغه ئې زلزله کښې اوغرځولو' فَدُكَّتَا' دلته فَدُكِكْنَ دې یعني ټول غرونه یو کړلې شویدې' څنګه چه بل آیت کښې دي چه اسمان او زمکه انښتې وو. دلته كُنَّ رَتْقًا نې اونه وې. رتقا په معني د انښتې یو بل سره اُشْرِبُوْا دَ هغوئ په زړونو کښې ئې ځائې کړې وو ثَوْبٌ مُشَرَّب یعني رنګ کړې کپړه. ابن عباسؓ اووې اَنْبَجَسَتْ معني راوقلیدې وَ اذ نتقنا الجبل یعني کوم وخت چه مونږ غر اوچت کړلو.

**۶۲۰ :** حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرِو بْنِ يَحْيٰى عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍؓ عَنِ

**۶۲۰ :** محمد بن یوسف. سفیان. عمرو بن یحیٰي. دَ هغهٔ پلار. حضرت ابو سعیدؓ نه روایت کوي. رسالتمـآب صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل دَ قیامت په

النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ النَّاسُ يَصْعَقُوْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَاَكُوْنُ اَوَّلَ مَنْ يُّفِيْقُ فَاِذَا اَنَا بِمُوْسٰى اٰخِذٌ بِقَائِمَةٍ مِنْ قَوَائِمِ الْعَرْشِ فَلَا اَدْرِيْ اَفَاقَ قَبْلِيْ اَمْ جُوْزِيَ بِصَعْقَةِ الطُّوْرِ.

ورځ بــه ټـول خـلق بیهوشـه شي او زهٔ بـه د ټولو نـه مخکښې هوش کښې راشم، زهٔ به موسیٰ اووینم. چه هغه به دَ عـرش پـایـه نیولې وي. ماته معلومه نه ده چه هغه به دَ عـرش پـایـه نیولې وي. خـمـا نه مخکښې هوش کښې راشي یا هغه ته به د طور د بیهوشـئ مـعاوضـه ورکولې شي چه هغه به دلته بیهوشه کیږي نه.

۱۲۱: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ الْجُعْفِيُّ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْلَا بَنُوْ اِسْرَائِيْلَ لَمْ يَخْنِزِ اللَّحْمُ وَلَوْلَا حَوَّاءُ لَمْ تَخُنْ اُنْثٰى زَوْجَهَا الدَّهْرَ.

۱۲۱: عـبـدالـلّٰــه بـن مـحـمـد جـعـفـي. عبـدالـرزاق. مـعـمـر. هـمـام. حـضـرت ابـوهـریـرهٔؓ نـــه روایـــت کـوي. رسـول الـلّٰـــه صـلـي الـلّٰـه عـلـیــه وسـلّـم اوفـرمـائیـل کـه بـنـي اسـرائیـل نـه وے نـو غـوښـه بــه هیـڅکـلـه نــه سـخـا کیده، او کـهٔ حـواؑ نــهٔ وے نـو هیـڅ ښـځـے بـه خپـل خـاونـد سـره خیانت نهٔ کولو.

باب ۳۲۸: طُوْفَانٍ مِنَ السَّيْلِ يُقَالُ لِلْمَوْتِ الْكَثِيْرِ طُوْفَانٌ اَلْقُمَّلُ الْحُمْنَانُ يُشْبِهُ صِغَارَ الْحَلَمِ حَقِيْقٌ حَقٌّ كُلُّ مَنْ نَدِمَ فَقَدْ سُقِطَ فِيْ يَدِهٖ.

باب ۳۲۸: دَ طوفان بیان، طوفان کله دَ سیلاب وي او دَ خـلقو زیات مړ کیدو ته هم طوفان وائي. القمل معني شپږئ. حقیق معني ده لائق او حق، سقط یعني نادم شو، کـوم سړے چـه نـادم شـي، نـو منـهٔ پـه خپـل لاس راغرځیږي.

حَدِيْثُ الْخَضِرِ مَعَ مُوْسٰى عَلَيْهِمَا السَّلَامُ

دَ خضر او موسیٰ علیهم السلام واقعه

۱۲۲: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَنَّ عُبَيْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ اَخْبَرَهٗ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّهٗ تَمَارٰى هُوَ وَالْحُرُّ بْنُ قَيْسٍ الْفَزَارِيُّ فِيْ صَاحِبِ

۱۲۲: عـمـرو بـن محمد. یعقوب بن ابراهیم. د هغهٔ پـلار. صـالـح. ابـن شهـاب. عبیـدالله بن عبدالله. حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي، دَ هغه او حر بن قیس مینـځـکښې دَ موسیٰ دَ ملګري باره کښې اختلاف پیدا شـو، ابـن عبـاسؓ اوفـرمـائیـل، هـغه خضرؑ دے، بیا ابي بن کعب اخـوا تیر شو، ابن عباسؓ ورته نعرے کړے خما او

مُوْسٰى قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ هُوَ خَضِرٌ فَمَرَّ بِهِمَا اُبَيُّ ابْنُ كَعْبٍ فَدَعَاهُ ابْنُ عَبَّاسٍ فَقَالَ اِنِّيْ تَمَارَيْتُ اَنَا وَ صَاحِبِيْ هٰذَا فِيْ صَاحِبِ مُوْسٰى الَّذِيْ سَاَلَ السَّبِيْلَ اِلٰى لُقِيِّهٖ هَلْ سَمِعْتَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَذْكُرُ شَانَهٗ قَالَ نَعَمْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ بَيْنَمَا مُوْسٰى فِيْ مَلَإٍ مِّنْ بَنِيْ اِسْرَائِيْلَ جَاءَهٗ رَجُلٌ فَقَالَ هَلْ تَعْلَمُ اَحَدًا اَعْلَمُ مِنْكَ قَالَ لَا فَاَوْحَى اللّٰهُ اِلٰى مُوْسٰى بَلٰى عَبْدُنَا خَضِرٌ فَسَاَلَ مُوْسَى السَّبِيْلَ اِلَيْهِ فَجُعِلَ لَهُ الْحُوْتُ اٰيَةً وَّ قِيْلَ لَهٗ اِذَا فَقَدْتَّ الْحُوْتَ فَارْجِعْ فَاِنَّكَ سَتَلْقَاهُ فَكَانَ يَتْبَعُ الْحُوْتَ فِي الْبَحْرِ فَقَالَ لِمُوْسٰى فَتَاهُ اَرَاَيْتَ اِذْ اَوَيْنَا اِلَى الصَّخْرَةِ فَاِنِّيْ نَسِيْتُ الْحُوْتَ وَمَا اَنْسَانِيْهُ اِلَّا الشَّيْطَانُ اَنْ اَذْكُرَهٗ فَقَالَ مُوْسٰى ذٰلِكَ مَا كُنَّا نَبْغِ فَارْتَدَّا عَلٰى اٰثَارِهِمَا قَصَصًا فَوَجَدَا خِضْرًا فَكَانَ مِنْ شَانِهِمَا الَّذِيْ قَصَّ اللّٰهُ فِيْ كِتَابِهٖ.

خما ددے دوست دَ موسیٰؑ دَ ملګري باره کښې اختلاف پيداشوے دے چه هغهٔ سره دَ ملاقات دَ پاره موسیٰؑ دَ لارے تپوس کړے وو، آيا تا د رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه د هغه څهٔ حال اوريدلے دے. ابي اووے، او ما د رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه اوريدلي دي چه موسیٰؑ دَ بني اسرائيلو يو جماعت کښې وو، دے کښې يو سړے راغے، او هغهٔ اووے، آيا تاسو داسے سړے پيژنئ چه ستاسو نه زيات عالم وي. موسیٰؑ ورته اووے، نه نو الله تعالیٰ هغه ته وحي اوليږله، چه، او (ستانه زيات عالم) خما يو بنده خضرؑ موجود دے. موسیٰؑ هغهٔ سره د ملاقات دَ پاره د لارے پښتنه اوکړه، نو دَ هغهٔ نښنه کَب (مچهلي)اوګرځولے شوه او هغهٔ ته اووئيلے شو، کوم وخت چه تهٔ کب بيانه مومے (يعني درنه ورک شي) واپس راوګرځه. خضرؑ سره به يوځائے شے موسیٰؑ درياب کښې دَ کب نښنه سهي کوله (کتله) بيا موسیٰؑ ته دَ هغهٔ خادم اووے، تاسوته به ياد وي کوم وخت چه مونږ هغے ګټ سره ناست وو نو مانه کب هير شولو او زهٔ دَ هغه د ذکر نه شيطان غافل کړمه. موسیٰؑ ورته اووے، مونږ خو دَ هغے کب په تلاش کښې يو، نو دواړه واپس راوګرځيدل او خضرؑ سره ئے ملاقات اوشو. بيا دَ هغوئ کيفيت الله تعالیٰ خپل کتاب کښې بيان فرمائيلے دے.

۶۲۳ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ دِيْنَارٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ جُبَيْرٍ

۶۲۳ : علي بن عبدالله. سفيان. عمرو بن دينار. سعيد بن جبير نه روايت کوي ما ابن عباسؓ ته اووے. نوفابکالي وائي چه خضرؑ سره ملاقات کونکے موسیٰ هغه نه دے کوم چه دَ بني اسرائيلو پيغمبر وو، بلکه هغه

قَالَ قُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ نَوْفَا نِ الْبَكَالِيَّ يَزْعَمُ اَنَّ مُوْسٰى صَاحِبَ الْخَضِرِ لَيْسَ هُوَ مُوْسٰى بَنِيْ اِسْرَآئِيْلَ اِنَّمَا هُوَ مُوْسٰى اٰخَرُ فَقَالَ كَذَبَ عَدُوُّ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ مُوْسٰى قَامَ خَطِيْبًا فِيْ بَنِيْ اِسْرَائِيْلَ فَسُئِلَ اَيُّ النَّاسِ اَعْلَمُ فَقَالَ اَنَا فَعَتَبَ اللّٰهُ عَلَيْهِ اِذْ لَمْ يَرُدَّ الْعِلْمَ اِلَيْهِ فَقَالَ لَهٗ بَلٰى لِيْ عَبْدٌ بِمَجْمَعِ الْبَحْرَيْنِ هُوَ اَعْلَمُ مِنْكَ قَالَ اَيْ رَبِّ وَمَنْ لِّيْ بِهٖ وَ رُبَّمَا قَالَ سُفْيَانُ اَيْ رَبِّ وَ كَيْفَ لِيْ بِهٖ قَالَ تَاْخُذُ حُوْتًا فَتَجْعَلُهٗ فِيْ مِكْتَلٍ حَيْثُمَا فَقَدْتَّ الْحُوْتَ فَهُوَ ثَمَّهٗ وَ اَخَذَ حُوْتًا فَجَعَلَهٗ فِيْ مِكْتَلٍ ثُمَّ انْطَلَقَ هُوَ وَ فَتَاهُ يُوْشَعُ بْنُ نُوْنٍ حَتّٰى اِذَا اَتَيَا الصَّخْرَةَ وَضَعَا رُؤُسَهُمَا فَرَقَدَ مُوْسٰى وَاضْطَرَبَ الْحُوْتُ فَخَرَجَ فَسَقَطَ فِي الْبَحْرِ فَاتَّخَذَ

بل څوک دے. ابن عباسؓ اووے، هغه د خدائے دښمن دروغ وائي، ماته د ابي بن کعب په واسطه د رسول الله صلي اللّٰه عليه وسلّم دا حديث رارسيدلے دے چه يو ورځے موسٰیؑ بني اسرائيلو ته د وعظ کولو د پاره اودريدلو نو ده هغهٔ نه تپوس اوشو چه د ټولو نه لوئے عالم څوک دے. موسٰیؑ ورته اووے، چه زهٔ، نو د اللّٰه تعالي دا خبره خوښه نه شوه ځکه چه موسٰیؑ دا خدائے طرف ته منسوب نکړه (يعني چه لوئے عالم اللّٰه پاک دے) نو اللّٰه تعالٰی هغه ته اوفرمائيل چه مجمع البحرين کښے ځما يو بنده دے چه ستانه زيات عالم دے موسٰیؑ عرض اوکه، اے پروردګاره، ما به هغه ته څوک اورسوي. او کله به سفيان دا الفاظ روايت کول چه اے پروردګار ما هغه ته څوک اورسوي اللّٰه تعالٰی ورته اوفرمائيل ته يو کب واخله او هغه زنبيل (تهيلئ) کښے واچوه، کوم ځائے چه هغه کب غائب شي نو ځما هغه بنده به هلته وي، کله به سفيان د ثم په ځائے "ثمه" روايت کولو، بيا هغهٔ او د هغه خادم يوشع بن نون روان شو، حتي چه يو غټ کاڼړي (ګټ) ته اورسيدل. دواړه په هغے (دمے کولو د پاره) سر کيښودلو، موسٰیؑ له خوب ورغے. دے کښے کب اودانګل او درياب کښے ډوب شو هغه درياب کښے خپله لار د سُرنګ په شان جوړه کړه يعني اللّٰه د کب د تلو د لارے نه د اوبو بهيدل بند کړل نو هغه د طاق (تاخ) په شان شوه. او حضورؐ اشارے سره اوښودل چه د طاق په شان شوه، بيا دواړه باقي شپه او پوره ورځ په مخکښے لاړل چه دويمه ورځ شوه نو موسٰیؑ خپل خادم ته اووے، خمونږ هغه طعام خو لږ راوړه، دے سفر کښے خو مونږ

سَبِيۡلَهٗ فِي الۡبَحۡرِ سَرَبًا
فَاَمۡسَكَ اللّٰهُ عَنِ الۡحُوۡتِ
جِرۡيَةَ الۡمَاۤءِ فَصَارَ مِثۡلَ
الطَّاقِ فَانۡطَلَقَا يَمۡشِيَانِ
بَقِيَّةَ لَيۡلَتِهِمَا وَ يَوۡمَهُمَا حَتّٰى
اِذَا كَانَ مِنَ الۡغَدِ قَالَ لِفَتَاهُ اٰتِنَا
غَدَاءَنَا لَقَدۡ لَقِيۡنَا مِنۡ
سَفَرِنَا هٰذَا نَصَبًا وَلَمۡ
يَجِدۡ مُوۡسٰى النَّصَبَ حَتّٰى
جَاوَزَ حَيۡثُ اَمَرَهُ اللّٰهُ قَالَ
لَهٗ فَتَاهُ اَرَاَيۡتَ اِذۡ اَوَيۡنَا اِلَى الصَّخۡرَةِ
فَاِنِّيۡ نَسِيۡتُ الۡحُوۡتَ وَمَا
اَنۡسَانِيۡهُ اِلَّا الشَّيۡطَانُ اَنۡ
اَذۡكُرَهٗ وَاتَّخَذَ سَبِيۡلَهٗ فِي
الۡبَحۡرِ عَجَبًا فَكَانَ لِلۡحُوۡتِ
سَرَبًا وَّلَهُمَا عَجَبًا قَالَ لَهٗ
مُوۡسٰى ذٰلِكَ مَا كُنَّا نَبۡغِ
فَارۡتَدَّا عَلٰى اٰثَارِهِمَا قَصَصًا
رَجَعَا يَقُصَّانِ اٰثَارَهُمَا حَتّٰى
انۡتَهَيَا اِلَى الصَّخۡرَةِ فَاِذَا رَجُلٌ مُسَجًّى
بِثَوۡبٍ فَسَلَّمَ مُوۡسٰى فَرَدَّ
عَلَيۡهِ فَقَالَ وَ اَنّٰى بِاَرۡضِكَ
السَّلَامُ قَالَ اَنَا مُوۡسٰى قَالَ
مُوۡسٰى بَنِيۡ اِسۡرَآئِيۡلَ قَالَ
نَعَمۡ اَتَيۡتُكَ لِتُعَلِّمَنِيۡ مِمَّا
عُلِّمۡتَ رُشۡدًا قَالَ يَا مُوۡسٰى

ډیر تکلیف اوچت که او موسیٰ ته سفر کښې تکلیف
هغه وخته پورې محسوس نه شو څو پورې چه هغه ذ الله
ذ حکم کړده لارې نه وړاندې تلې نه وو، ذ هغهٔ خادم ورته
اووې. تاسوته به یاد وي چه کوم وخت مونږ هغه کاڼړي
سره ناست وو نو کب ځما نه هیر شولو او زهٔ خو صرف
شیطان ذ هغهٔ د یادولونه غافل کړمه او هغې کب دریاب
کښې عجیبه طریقې سره خپله لاره جوړه کړه. نو د کب
هغه سرنګ نما لار، ذ هغه ذ پاره ذ تعجب باعث وو.
موسیٰ اووې، مونږ خو همدغه غوښتل. بیا هغوئ دواړه
ذ خپل قدم په نښه واپس راوګرځیدل، تردې چه دواړه
هغې کاڼړي ته راورسیدل، نو یو سړې ئې اولید چه کپړه
ئې اغُستې ده ملاست دې. موسیٰ هغه ته سلام اوکه، هغه
ورته جواب ورکهٔ اووئیلې دې سرزمین کښې خو د
سلام رواج نشته، هغهٔ ورته اووې، زهٔ موسیٰ یم، هغه
سړي ورته اووې، آیا ذ بني اسرائیلو موسیٰ، موسیٰ
اووې او، زهٔ تاسوته ذ هدایت هغې خبرو زده کولو ذ پاره
راغلې یم، چه تاسوته ښودلې شویدي، هغهٔ ورته اووې،
اې موسیٰ، ما سره څهٔ خداداد علم دې چه الله ماته عطا
کړیدې، ته په هغې نه پوهیږې او تاسره څهٔ خداداد علم
دې چه الله تاته عطا کړې دې. زهٔ په هغې نه پوهیږم.
موسیٰ ورته اووې، آیا زهٔ تاسره پاتې کیدې شم. خضرؑ
ورته اووې که تهٔ ماسره پاتې شې نو صبر به اونکړې
شې. اوته څنګه په داسې خبره صبر کولې شې چه ذ هغې
ذ حقیقت نه تهٔ خبر نهٔ ئې. موسیٰ ورته بیا اووې، انشاء
الله تهٔ به ما صبرناک بیامومې، او زه به ستا هیڅ معامله
کښې نافرماني نه کوم، بیا دوئ دواړه ذ دریاب په غاړه

نِيُ عَلٰى عِلْمٍ مِّنْ عِلْمِ
اللّٰهِ عَلَّمَنِيْهِ اللّٰهُ لَا تَعْلَمُهُ
وَاَنْتَ عَلٰى عِلْمٍ مِّنْ عِلْمِ
اللّٰهِ عَلَّمَكَهُ اللّٰهُ لَا اَعْلَمُهُ قَالَ
هَلْ اَتَّبِعُكَ قَالَ اِنَّكَ لَنْ تَسْتَطِيْعَ
مَعِيَ صَبْرًا وَ كَيْفَ تَصْبِرُ عَلٰى
مَالَمْ تُحِطْ بِهٖ خُبْرًا اِلٰى قَوْلِهٖ اِمْرًا
فَانْطَلَقَا يَمْشِيَانِ عَلٰى سَاحِلِ الْبَحْرِ
فَمَرَّتْ بِهِمَا سَفِيْنَةٌ كَلَّمُوْهُمْ اَنْ
يَحْمِلُوْهُمْ فَعَرَفُوا الْخَضِرَ فَحَمَلُوْهُ
بِغَيْرِ نَوْلٍ فَلَمَّا رَكِبَا فِي السَّفِيْنَةِ جَاءَ
عُصْفُوْرٌ فَوَقَعَ عَلٰى حَرْفِ السَّفِيْنَةِ
فَنَقَرَ فِي الْبَحْرِ نَقْرَةً اَوْ نَقْرَتَيْنِ قَالَ لَهُ
الْخَضِرُ يَا مُوْسٰى مَا نَقَصَ عِلْمِيْ وَ
عِلْمُكَ مِنْ عِلْمِ اللّٰهِ اِلَّا مِثْلَ مَا
نَقَصَ هٰذَا الْعُصْفُوْرُ بِمِنْقَارِهٖ مِنَ
الْبَحْرِ اِذْ اَخَذَ الْفَأْسَ فَنَزَعَ لَوْحًا قَالَ
فَلَمْ يَفْجَأْ مُوْسٰى اِلَّا وَقَدْ قَلَعَ لَوْحًا
بِالْقَدُّوْمِ فَقَالَ لَهُ مُوْسٰى مَا صَنَعْتَ
قَوْمٌ حَمَلُوْنَا بِغَيْرِ نَوْلٍ عَمَدْتَ اِلٰى
سَفِيْنَتِهِمْ فَخَرَقْتَهَا لِتُغْرِقَ اَهْلَهَا لَقَدْ
جِئْتَ شَيْئًا اِمْرًا قَالَ اَلَمْ اَقُلْ اِنَّكَ لَنْ
تَسْتَطِيْعَ مَعِيَ صَبْرًا قَالَ لَا تُؤَاخِذْنِيْ
بِمَا نَسِيْتُ وَلَا تُرْهِقْنِيْ مِنْ اَمْرِيْ
عُسْرًا فَكَانَتِ الْاُوْلٰى مِنْ مُّوْسٰى
نِسْيَانًا فَلَمَّا خَرَجَ مِنَ الْبَحْرِ مَرُّوْا

غاړه تلل، يوه كشتئ ذَ هغوئ طرف ته تيره شوه، نو كشتئ والو ته ئے اووے. مونږ خان سره كينوه. كشتئ والو خضرً اوپيژندلو نو بغير ذَ څهٔ اُجرت نه ئے هغوئ كښينول. دے كښے يو مرغئ راغله، ذَ كشتئ يو طرف ته كيناسته، او هغے درياب كښے يو يا دوه ټونكے اووهلے. خضرً اووے اے موسيٰ ځما او ستا علم سره د خدائے په علم كښے دومره كمے هم نه دے شوے څومره چه دے مرغئ خپلے مخوكے سره ذَ درياب اوبهٔ كمے كړي وي. بيا ناساپه خضرً يو تبر اوچت كه او ذَ كشتئ يوه تخته ئے اوښكله. موسيٰ ورته اوكتل چه هغه تبر سره ذَ كشتئ تخته راوښكله نو ورته ئے اووے، دا دِ څهٔ اوكړل، دے خلقو خو مونږ بے اُجرته كشتئ كښے كينولو او تا ذَ هغوئ كشتئ ماته كړه چه ذَ هغوئ سورلئ غرقے شي، بيشكه دا خو دِ ډير بد كار اوكړو، خضرً ورته اووے، آيا ما درته نه وو وئيلے چه تهٔ صبر نشے كولے. موسيٰ ورته اووے ما نه هيره اوشوه په دے مِ مهٔ نيسه، او ځما كار كښے ماسره سختي مه كوه. په ورمبني ځل خو ذَ موسيٰ نه هيره اوشوه، بيا دوئ دواړه درياب نه اووتل. په يو هلك ورغلل چه نورو هلكانو سره ئے لوبے كولے، خضرً هغه هلك د سر نه اونيولو او خپل لاس سره ئے د هغهٔ سر ذَ گردن نه جدا كړلو. سفيان خپلو گوتو سره داسے اشاره اوكړه لكه چه هغه يو څيز پريكوي. موسيٰ هغهٔ ته اووے، تا يو پاكيزه او بے گناه انسان بغير جرم نه قتل كه. بيشكه دا خو دِ ډير خراب كار اوكه. خضرً ورته اووے. آيا ماتاته نه وو وئيلے چه تهٔ ماسره صبر نشے كولے. موسيٰ ورته اووے كهٔ ددے نه پس ماتانه تپوس

بِغُلَامٍ يَلْعَبُ مَعَ الصِّبْيَانِ فَأَخَذَ
الْخَضِرُ بِرَأْسِهِ فَقَلَعَهُ بِيَدِهِ هٰكَذَا وَ اَوْ
مَأَ سُفْيَانُ بِأَطْرَافِ اَصَابِعِهِ كَأَنَّهُ
يَقْطِفُ شَيْئًا فَقَالَ لَهُ مُوْسٰى اَقَتَلْتَ
نَفْسًا زَكِيَّةً بِغَيْرِ نَفْسٍ لَقَدْجِئْتَ شَيْئًا
نُكْرًا قَالَ اَلَمْ اَقُلْ لَّكَ اِنَّكَ لَنْ تَسْتَطِيْعَ
مَعِيَ صَبْرًا قَالَ اِنْ سَأَلْتُكَ عَنْ شَيْءٍ
بَعْدَهَا فَلَا تُصَاحِبْنِيْ قَدْ بَلَغْتَ مِنْ
لَّدُنِّيْ عُذْرًا فَانْطَلَقَا حَتّٰى اِذَا اَتَيَا
اَهْلَ قَرْيَةِ ن اسْتَطْعَمَا اَهْلَهَا فَاَبَوْا اَنْ
يُّضَيِّفُوْهُمَا فَوَجَدَا فِيْهَا جِدَارًا يُّرِيْدُ
اَنْ يَّنْقَضَّ مَائِلًا اَوْ مَآ بِيَدِهِ هٰكَذَا وَ
اَشَارَ سُفْيَانُ كَاَنَّهُ يَمْسَحُ شَيْئًا اِلٰى
فَوْقٍ فَلَمْ اَسْمَعْ سُفْيَانَ يَذْكُرُ مَائِلًا
اِلَّا مَرَّةً قَالَ قَوْمٌ اَتَيْنٰهُمْ فَلَمْ
يُطْعِمُوْنَا وَلَمْ يُضَيِّفُوْنَا عَمَدْتَّ اِلٰى
حَائِطِهِمْ لَوْ شِئْتَ لَا تَّخَذْتَ عَلَيْهِ
اَجْرًا قَالَ هٰذَا فِرَاقُ بَيْنِيْ وَ بَيْنِكَ
سَاُنَبِّئُكَ بِتَاْوِيْلِ مَالَمْ تَسْتَطِعْ عَلَيْهِ
صَبْرًا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ وَدِدْنَا اَنَّ مُوْسٰى كَانَ صَبَرَ
فَقَصَّ اللّٰهُ عَلَيْنَا مِنْ خَبَرِهِمَا قَالَ
سُفْيَانُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ يَرْحَمُ اللّٰهُ مُوْسٰى لَوْ كَانَ
صَبَرَ يُقَصُّ عَلَيْنَا مِنْ اَمْرِهِمَا وَ قَرَءَ
اِبْنُ عَبَّاسٍ اَمَامَهُمْ مَلِكٌ يَّاْخُذُ كُلَّ

اوکۀ' نو ما دَ ځان نه جدا کړه. بیشکه تهٔ ځما د طرف نه
دَ معذورئ حد ته اورسیدلې' بیا دواړه روان شو. حتیٰ
چه یو کلي ته اورسیدل. دَ هغې خلقو نه ئې طعام
اوغوښتلو' هغوئ دَ ډوډئ ورکولو نه انکار اوکړو' او هلته
ئې یو دیوال اولید چه غورځیدونکې وو' او کوږ شوې
وو' خضرؑ خپل لاس سره دَ هغې طرف ته اشاره اوکړه.
او سفیان دا شان اشاره اوکړه لکه چه هغه دَ یو څیز د
پاسه طرف بانډ لاس راکاږي. او ما دَ سفیان نه دا
واوریدل چه هغه دیوال راتیټ شوې وو' صرف یو ځل مِ
اوریدلي دي. موسیٰؑ اووې دا خلق داسې دي چه مونږ
دوئ له راغلو نو نه ئې مونږ له ډوډئ راکړه اونه ئې
ځمونږ میلمستیا اوکړه او بیا هم تا دَ هغوئ دیوال
درست کۀ. که تا غوښتلې' نو دَ هغوئ نه دِ اُجرت
اخستلې شو. خضر علیه السلام ورته اووې دلته ستا او
ځما مینځ کښې جدائي راغله. اوس زهٔ تا ددې خبرو دَ
حقیقت نه آګاه کوم' چه په هغې کښې تا صبر نه شو
کولې. رسول الله صلعم اوفرمائیل کاش چه موسیٰؑ صبر
کړې وې' او اللّٰه مونږ ته دَ هغوئ نوره زیاته قصه
فرمائیلې وې. سفیان وائي رسول الله صلعم اوفرمائیل'
اللّٰه دِ په موسیٰؑ رحم اوکړي' که هغه صبر کړې وې نو
مونږ ته به دَ هغوئ زیاته قصه بیان شوې وې. او ابن
عباسؓ (وکان وَرَائهم مَلِکٌ یاخذُ کلَّ سَفِینَة غَصْبا) په
ځائې (کان اَمامهم مِلِک یَأخذُ کلّ سفینةٍ صالحة غصبا)
لوستلو یعني د هغوئ مخکښې یو بادشا وو. چه هره بې
عیبه کشتئ په زبردستئ (بیګار دَ پاره) نیسي. او ابن
عباسؓ داسې اولوستلو وَ اما الغلام فکان کافرا و کان

سَفِيْنَةٍ صَالِحَةٍ غَصْبًا وَ اَمَّا الْغُلَامُ فَكَانَ كَافِرًا وَ كَانَ اَبَوَاهُ مُؤْمِنِيْنَ ثُمَّ قَالَ لِيْ سُفْيَانُ سَمِعْتُهُ مِنْهُ مَرَّتَيْنِ وَ حَفِظْتُهُ مِنْهُ قِيْلَ لِسُفْيَانَ حَفِظْتَهُ قَبْلَ اَنْ تَسْمَعَهُ مِنْ عَمْرٍو اَوْ تَحَفَّظْتَهُ مِنْ اِنْسَانٍ فَقَالَ مِمَّنْ اَتَحَفَّظُهُ وَ رَوَاهُ اَحَدٌ عَنْ عَمْرٍو غَيْرِيْ سَمِعْتُهُ مِنْهُ مَرَّتَيْنِ اَوْ ثَلٰثًا وَّ حَفِظْتُهُ مِنْهُ.

ابواه مؤمنين (يعني هغه هلک کافر وو او ذ هغه مور پلار مؤمنان وو) بیا سفیان ماته اووے ما دا حدیث د عمرو بن دینار نه دوه خله اوریدلے دے او ذ هغهٔ نه م یاد کړیدے سفیان نه تپوس اوشو آیا تا د عمرو نه د اوریدونه مخکښې دا حدیث یاد کړیدے یا تا د بل چا نه دا حدیث یاد کړیدے سفیان اووے ما به د چا نه یاد کړے وے آیا خما نه علاوه دا حدیث د عمرو نه بل چا روایت کړیدے ما دا حدیث د عمرو نه دوه یا درے خله آوریدلے دے. او هم دهغه نه (نه چه د بل چا نه) م یاد کړیدے.

۴۲۴ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَعِيْدٍ الْاَصْبَهَانِيُّ اَخْبَرَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّمَا سُمِّيَ الْخَضِرُ اِنَّهُ جَلَسَ عَلٰى فَرْوَةٍ بَيْضَاءَ فَاِذَا هِيَ تَهْتَزُّ مِنْ خَلْفِهِ خَضْرَاءَ.

۴۲۴ : محمد بن سعید اصبهاني. ابن مبارک. معمر. همام بن منبه. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل ذ خضر علیه السلام وجه تسمیه داده چه هر کله به هغه په یوه صافه او خشکه زمکه کیناستلو، نو ذ هغهٔ پاسیدو سره به په هغه خائے بیا شینکے تو کیدلے وو.

## باب ۳۲۹:

## باب ۳۲۹:

۴۲۵ : حَدَّثَنِيْ اِسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِيْلَ لِبَنِيْ اِسْرَآئِيْلَ ادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا وَّ قُوْلُوْا حِطَّةٌ فَبَدَّلُوْا فَدَخَلُوْا يَزْحَفُوْنَ عَلٰى اَسْتَاهِهِمْ وَ قَالُوْا حَبَّةٌ فِيْ شَعْرَةٍ.

۴۲۵ : اسحاق بن نصر. عبدالرزاق. معمر. همام بن منبه. ابوهریرهؓ نه روایت کوي. رسالتمیٓب صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل بني اسرائیلو ته حکم اوشو چه دروازه کښې سجده کولو سره داخل شي او ژبے سره حطّة (مونږ اوبښے اوبښے) وائے، هغوئ دا حکم بدل که، یعني هغوئ په خپلو کوناتو رابنکلو سره داخل شو او ژبے سره حبة فی شعرة (وړي کښې دانه) ونیلو سره داخل شو.

۴۲۶ : حَدَّثَنِيْ اِسْحَاقُ بْنُ

۴۲۶ : اسحاق بن ابراهیم. روح بن عباده.

إِبْـرَاهِيـمَ حَـدَّثَـنَـا رَوْحُ ابْنُ عُبَـادَةَ حَـدَّثَـنَـا عَـوْفٌ عَنِ الْحَسَنِ وَ مُحَمَّدٍ وَّ خِلَاسٍ عَـنْ أَبِـيْ هُـرَيْـرَةَ قَـالَ قَـالَ رَسُوْلُ اللّٰـهِ صَلَّـى اللّٰـهُ عَلَيْـهِ وَسَـلَّـمَ إِنَّ مُـوْسٰـى كَـانَ رَجُلًا حَيِيًّـا سِتِّيـرًا لَا يُرٰى مِنْ جِلْـدِهٖ شَـيْءٌ اسْتِـحْيَـاءٌ مِـنْـهُ فَـآذَاهُ مَنْ آذَاهُ مِنْ بَـنِـيْ إِسْـرَائِيْـلَ فَـقَـالُوْا مَـا يَسْتَتِـرُ هٰـذَا التَّسَتُّـرَ إِلَّا مِـنْ عَيْـبٍ بِـجِـلْـدِهٖ إِمَّـا بَـرَصٌ وَّ إِمَّـا أُدْرَةٌ وَ إِمَّـا آفَةٌ وَ إِنَّ اللّٰـهَ أَرَادَ أَنْ يُّبَرِّئَهُ مِمَّا قَالُوْا لِمُـوْسٰـى فَـخَلَا يَـوْمًـا وَحْدَهُ فَوَضَعَ ثِيَـابَـهُ عَـلَـى الْحَجَـرِ ثُمَّ اغْتَسَلَ فَـلَـمَّـا فَـرَغَ أَقْـبَـلَ إِلٰى ثِيَابِهٖ لِيَأْخُذَهَا وَ إِنَّ الْـحَـجَـرَ عَـدَا بِثَـوْبِـهٖ فَأَخَـذَ مُـوْسٰـى عَـصَـاهُ وَ طَـلَـبَ الْحَـجَـرَ فَـجَـعَـلَ يَـقُـوْلُ ثَـوْبِـيْ حَجَـرُ ثَوْبِـيْ حَـجَـرُ حَتّٰـى انْتَهٰى إِلٰى مَلَإٍ مِّنْ بَـنِـيْ إِسْـرَائِيْـلَ فَـرَأَوْهُ عُرْيَانًا أَحْسَنَ مَـا خَـلَـقَ اللّٰـهُ وَ أَبْـرَأَهُ مِمَّا يَقُوْلُوْنَ وَ قَـامَ الْـحَـجَـرُ فَـأَخَذَ ثَوْبَـهُ فَلَبِسَهُ وَ طَـفِـقَ بِـالْـحَـجَـرِ ضَـرْبًـا بِعَصَاهُ فَـوَاللّٰـهِ إِنَّ بِـالْـحَـجَـرِ لَنَدَبًا مِّنْ أَثَرِ ضَـرْبِـهٖ ثَـلٰثًـا أَوْ أَرْبَـعًـا أَوْ خَـمْسًـا فَـذٰلِكَ قَـوْلُـهُ يَـا أَيُّهَـا الَّـذِيْـنَ آمَنُوْا لَا تَـكُـوْنُوْا كَالَّذِيْنَ آذَوْا مُوْسٰى فَبَرَّأَهُ

عوف. حسن. محمد او خلاس حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي. رسول الله صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل موسیٰ ډیر حیاناک او ستر پوش سړے وو دَ هغه د جسم ذره قدرے حصه به هم نه ظاهریدله. بني اسرائیلو هغه ته تکلیف اورسولو، او هغوئ اووے چه دے دا دومره پرده پوشي کوي نو صرف دے دَ پاره چه دَ هغهٔ جسم عیبدار دے، یا خو دهٔ ته برص (برګے مرض) دے، یا انتفاخ خصیتین (د خواګو پړسیدو) مرض دے یا ورته بله څهٔ بیماري ده. اللّٰه تعالیٰ اوغوښتل چه موسیٰ ددے تهُولو بهتانونو نه پاک او صاف کړي. نو یوه ورځ موسیٰ تنهایئ کښے کپړے اوښکلے، په کاڼړي ئے کیښودلے بیائے غسل اوکهٔ دَ غسل نه چه فارغ شو، نو کپړو اغوستلو له ورغے، خو هغے کاڼړي دَ هغهٔ کپړے واخستے او اوتښتیدلو (دا یوه معجزه وه) موسیٰ خپله همسا راواخسته او کاڼړي پسے روان شولو اووئیل ئے اے کاڼړیه څما کپړے راکړه، اے کاڼړیه څما کپړے راکړه. حتیٰ چه هغه کاڼړے دَ بني اسرائیلو یو ډلے ته اورسیدلو. هغوئ بربنډ حالت کښے موسیٰ اولیدلو نو د اللّٰه مخلوقاتو کښے د ټولو نه ښه او د هغے ټولو عیبونونه چه هغوئ ورته منسوب کول هغه پاک او صاف وو، نو هغه کاڼړے اودریدلو، موسیٰ تر خپلے کپړے واخستے اووائے غُستے بیا موسیٰ خپلے همسا سره هغه کاڼړے وهل شروع کړلو نو په خدائے چه د موسیٰ د وهلو په وجه هغے کاڼړي کښے درے یا څلور یا پنځه نښے جوړے شوے. دا دَ دے آیت کریمه مطلب دے، چه اے ایمان والو د هغے خلقو په شان مه کیږئ چه هغوئ

اللّٰهُ مِمَّا قَالُوْا وَ كَانَ عِنْدَ اللّٰهِ وَجِيْهًا.

موسیٰ ته تکلیف اورسولو نو الله هغه ددے خبرے نه بري ثابت کړلو او هغه د الله په نزد عزتمند وو.

۶۲۷: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْاَعْمَشِ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا وَائِلٍ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ قَالَ قَسَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَسْمًا فَقَالَ رَجُلٌ اِنَّ هٰذِهٖ لَقِسْمَةٌ مَا اُرِيْدَ بِهَا وَجْهُ اللّٰهِ فَاَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرْتُهُ فَغَضِبَ حَتّٰى رَاَيْتُ الْغَضَبَ فِيْ وَجْهِهٖ ثُمَّ قَالَ يَرْحَمُ اللّٰهُ مُوْسٰى قَدْ اُوْذِيَ بِاَكْثَرَ مِنْ هٰذَا فَصَبَرَ.

۶۲۷: ابوالوليد. شعبه. اعمش. ابووائل. حضرت عبدالله نه روایت کوي رسول الله صلعم څه تقسیم کړل نو یو سړي اووے دا څو داسے تقسیم دے چه دے نه د الله رضاجوئي مقصود نه ده. ما دا خبره رسول الله صلعم ته اوکړه، نو حضورؐ دومره غصه شولو چه ما ددے غصے اثر د حضورؐ په مخ مبارک اولید، بیا حضورؐ اوفرمائیل الله تعالیٰ دِ په موسیٰ علیه السلام رحم اوکړي، هغه ته ددے نه زیات تکلیف هم ورکړے شو لیکن هغهٔ صبر اوکهٔ.

باب ۳۳۰: يَعْكُفُوْنَ عَلٰى اَصْنَامٍ لَّهُمْ مُتَبَّرٌ خُسْرَانٌ وَ لِيُتَبِّرُوْا يُدَمِّرُوْا مَا عَلَوْا مَا غَلَبُوْا.

باب ۳۳۰: فرمان خداوندي، هغوئ خپلو بُتانو سره ناست وو، متبر یعني نقصان رسیده وَلِيُتَبِّرُوْا یعني هغوي به هلاک کړي مَا عَلَوْا یعني څیز چه په هغے به دَ هغوئ قبضه راشي.

۶۲۸: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِؓ قَالَ كُنَّا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَجْنِي الْكِبَاثَ وَ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ عَلَيْكُمْ بِالْاَسْوَدِ مِنْهُ فَاِنَّهٗ اَطْيَبُهٗ قَالُوْا اَكُنْتَ تَرْعَى الْغَنَمَ قَالَ وَ هَلْ مِنْ نَبِيٍّ اِلَّا قَدْ رَعَاهَا.

۶۲۸: يحيٰي بن بكير. ليث. يونس. ابن شهاب. ابو سلمه بن عبدالرحمٰن. حضرت جابر بن عبدالله نه روایت کوي، هغه فرمائي، مونږ رسول الله صلعم سره د پیلو (مسواک والا) اونے میوه راټولوله او رسول الله صلعم اوفرمائیل دے کښے توره میوه اخلئ څکه چه هغه ښهٔ وي نو صحابهٔ عرض اوکه آیا تاسو چیلئ څرولي دي. حضور صلعم ورته اوفرمائیل هر یو نبي چیلئ څرولي دي.

ف: پيلو. يوه اونه چه دَ جررو او څانګو ئے مِسواکونه جوړولے شي ميوه ئے سره او خوږ لاړي وي او خلق ئے خوري.

باب ۱ ۳۳۱: وَ اِذْ قَالَ مُوْسٰى لِقَوْمِهٖۤ اِنَّ اللّٰهَ يَاْمُرُكُمْ اَنْ تَذْبَحُوْا بَقَرَةً الْاٰيَةَ قَالَ اَبُو الْعَالِيَةِ الْعَوَانُ النِّصْفُ بَيْنَ الْبِكْرِ وَالْهَرِمَةِ فَاقِعٌ صَافٍ لَا ذَلُوْلٌ لَمْ يُذِلَّهَا الْعَمَلُ تُثِيْرُ الْاَرْضَ لَيْسَتْ بِذَلُوْلٍ تُثِيْرُ الْاَرْضَ وَلَا تَعْمَلُ فِي الْحَرْثِ مُسَلَّمَةٌ مِنَ الْعُيُوْبِ لَا شِيَةَ بَيَاضٌ صَفْرَآءُ اِنْ شِئْتَ سَوْدَاءَ وَ يُقَالُ صَفْرَاءُ كَقَوْلِهٖ جِمَالَةٌ صُفْرٌ فَادّٰرَءْتُمْ اِخْتَلَفْتُمْ.

باب ۱ ۳۳۱: آيت كريمه كوم وخت چه موسٰيؑ خپل قوم ته اووے، اللّٰه تعالٰي تاسوته د يوے غوا د ذبح كولو حكم دركوي ابوالعاليه اووے العوان يعني د ځوانے او زړے مينځ كښے فاقع: صاف. لاذلول كار كمزورے كړے نه وي تثير الارض هغه دومره كمزورے نه وي چه نه زمكه يوے كولے شي او نه د زراعت په كار راتلے شي. مسلمه يعني د عيبونو نه پاكه وي. لَاشِيَةَ يعني سپيدي نه وي. صفراء يعني كه تاسو غواړئ، نو توره معنٰي ئے اوكړئ. او صفراء تورے ته هم وئيلے شي. لكه قول خداوندي، جِمَالَات صُفْر (يعني د تور رنګ اوښان) فَادّٰرَءْتُمْ يعني تاسو اختلاف اوكړه.

بـاب ۲ ۳۳۲: وَفَاةِ مُوْسٰى وَ ذِكْرِهٖ بَعْدُ.

باب ۲ ۳۳۲: د موسٰيؑ وفات او دَ هغهٔ نه پس د حالاتو بيان.

۶۲۹: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُوْسٰى حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ ابْنِ طَاؤُسٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ اُرْسِلَ مَلَكُ الْمَوْتِ اِلٰى مُوْسٰى عَلَيْهِ السَّلَامُ فَلَمَّا جَاءَهٗ صَكَّهٗ فَرَجَعَ اِلٰى رَبِّهٖ فَقَالَ اَرْسَلْتَنِيْ اِلٰى عَبْدٍ لَّا يُرِيْدُ الْمَوْتَ قَالَ ارْجِعْ اِلَيْهِ فَقُلْ يَضَعُ يَدَهٗ عَلٰى مَتْنِ ثَوْرٍ فَلَهٗ بِمَا غَطَّتْ يَدُهٗ بِكُلِّ شَعْرَةٍ سَنَةٌ قَالَ اَيْ رَبِّ ثُمَّ مَاذَا قَالَ ثُمَّ الْمَوْتُ قَالَ فَالْاٰنَ قَالَ فَسَاَلَ اللّٰهَ اَنْ يُّدْنِيَهٗ

۶۲۹: يحيٰي بن موسٰي. عبدالرزاق. معمر. ابن طاؤس. دَ هغهٔ پلار حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي. هغه فرمائي، ملك الموت موسٰيؑ ته اوليږلے شوه، كوم وخت چه هغه له ورغله موسٰيؑ هغه يو سُک (څپيړه) اووهله. هغه اللّٰه تعالٰي له واپس لاړه، او عرض ئے اوكړ چه تا داسے بنده له اوليږلم چه مرګ نه غواړي. اللّٰه تعالٰي ورته اوفرمائيل، ته واپس لاړ شه او هغهٔ ته اووايه چه تهٔ دَ يو غوئے (بيل) په شا خپل لاس كيږده نو څومره ويښتهٔ چه دَ هغهٔ دَ لاس دَ لاندِ راشي. دَ هر ويښتهٔ په بدله كښے به ورته يو كال عمر وركړے شي. موسٰيؑ اووے اے پروردګاره. بيا به څهٔ كيږي. اللّٰه

مِنَ الْاَرْضِ الْمُقَدَّسَةِ رَمْيَةً بِحَجَرٍ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ كُنْتُ ثَمَّ لَاَرَيْتُكُمْ قَبْرَهُ اِلٰى جَانِبِ الطَّرِيْقِ تَحْتَ الْكَثِيْبِ الْاَحْمَرِ قَالَ وَ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَهُ.

ورته اوفرمائیل بیا به درله مرګ راځي. موسیٰ اووے نو اوس دِ راشي، حضرت ابوهریرهؓ اووے. موسیٰ خواست اوکړو چه هغه د ارض مقدس نه د یو کاڼرې ویشتو په فاصله قریب کړي. ابوهریرهؓ اووے. رسول الله صلعم اوفرمائیل، که زهٔ هلته وے نو تاسوته به مِ دَ هغهٔ قبر دَ لارے په غاړه د سرے (سُرخ) ډهیرئ لاندے ښودلے وے.

۶۳۰: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ وَ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ اسْتَبَّ رَجُلٌ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ وَ رَجُلٌ مِنَ الْيَهُوْدِ فَقَالَ الْمُسْلِمُ وَالَّذِىْ اصْطَفٰى مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْعَالَمِيْنَ فِيْ قَسَمٍ يُقْسِمُ بِهٖ فَقَالَ الْيَهُوْدِيُّ وَالَّذِىْ اصْطَفٰى مُوْسٰى عَلَى الْعَالَمِيْنَ فَرَفَعَ الْمُسْلِمُ عِنْدَ ذٰلِكَ يَدَهُ فَلَطَمَ الْيَهُوْدِيَّ فَذَهَبَ الْيَهُوْدِيُّ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرَهُ الَّذِىْ كَانَ مِنْ اَمْرِهٖ وَ اَمْرِ الْمُسْلِمِ فَقَالَ لَا تُخَيِّرُوْنِىْ عَلٰى مُوْسٰى فَاِنَّ النَّاسَ يُصْعَقُوْنَ فَاَكُوْنُ اَوَّلَ مَنْ يُفِيْقُ فَاِذَا مُوْسٰى بَاطِشٌ بِجَانِبِ الْعَرْشِ فَلَا اَدْرِىْ اَكَانَ فِيْمَنْ صَعِقَ فَاَفَاقَ قَبْلِىْ اَوْ كَانَ مِمَّنِ اسْتَثْنٰى

۶۳۰: ابوالیمان. شعیب. زهري. ابو سلمه بن عبدالرحمٰن او سعید بن مسیب. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي. هغه وائي یو مسلمان او یهودي خپلو کښے جګړه اوکړه مسلمان دا قسم اوخوړ، په هغه ذات مِ دِ قسم وي چه هغه محمد مصطفیٰ صلعم په ټول عالم برګزیده کړیدے. یهودي اووے. په هغه ذات مِ دِ قسم وي چه هغه موسیٰ په ټول عالم برګزیده کړیدے، په دے موقعه هغے مسلمان لاس اوچت که، او هغه یهودي ئے یوه څپیړه اووهلو. یهودي سمدستي رسول اللّٰه صلعم له ورغے، او خپله او دَ مسلمان واقعه ئے ورته بیان کړه. حضورؐ ورته اوفرمائیل. تاسو ماله په موسیٰ فضیلت مه راکوئي، ځکه چه دَ قیامت په ورځ به خلق بیهوشه شي، زهٔ به دَ ټولو نه مخکښے هوش کښے راشم، نو زهٔ به موسیٰ اووینم چه هغه به دَ عرش لمن نیولي وي، ماته معلومه نه ده چه آیا هغه د هغے کسانو نه وو چه بیهوشه شوے وو او خما نه مخکښے هوش کښے راغلل یا د هغے کسانونه وو چه هغوئ اللّٰه تعالیٰ د بیهوشه

اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ.

كيدونه مستثنٰى كړيدي.

۳۱ ۶ : حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ احْتَجَّ اٰدَمُ وَ مُوْسٰى اَخْرَجَتْكَ خَطِيْئَتُكَ مِنَ الْجَنَّةِ فَقَالَ لَهٗ اٰدَمُ اَنْتَ مُوْسَى الَّذِيْ اصْطَفَاكَ اللّٰهُ بِرِسَالَتِهٖ وَ بِكَلَامِهٖ ثُمَّ تَلُوْمُنِيْ عَلٰى اَمْرٍ قُدِّرَ عَلَيَّ قَبْلَ اَنْ اُخْلَقَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَجَّ اٰدَمُ مُوْسٰى مَرَّتَيْنِ.

۳۱ ۶ : عبدالعزيز بن عبداللّٰه. ابراهيم بن سعد. ابن شهاب. حميد بن عبدالرحمان. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي. رسالت مٓب صلعم اوفرمائيل موسىٰؑ آدمؑ سره مباحثه اوكړه. موسىٰؑ اووے، ته هغه آدمؑ يې چه ذ هغه لغزش هغه د جنت نه راوښكلو. آدمؑ اووے ته هغه موسىٰ يې چه هغه اللّٰه خپل رسالت او كلام سره بركزيده كه. بيا هم ته ما په يوه داسے خبره چه څما ذ پيدائش نه مخكښے مقدر شوے وه. ملامته كوے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم دوه ځله اوفرمائيل، چه آدمؑ په موسىٰؑ دے مباحثه كښے غالب راغے.

۶۳۲ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا حُصَيْنُ بْنُ نُمَيْرٍ عَنْ حُصَيْنِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ خَرَجَ عَلَيْنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا قَالَ عُرِضَتْ عَلَيَّ الْاُمَمُ وَرَاَيْتُ سَوَادًا كَثِيْرًا سَدَّ الْاُفُقَ فَقِيْلَ هٰذَا مُوْسٰى فِيْ قَوْمِهٖ.

۶۳۲ : مسدد. حصين بن نمير. حصين بن عبدالرحمٰن. سعيد بن جبير. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي، هغه وائي، يوه ورځ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم راووتلو، مونږ پله ئې تشريف راوړو اووے فرمائيل څما مخكښے (ذ انبياؤ) ټول اُمتونه راوستے شو ما يو ډير لوئے ټولے اوليد چه هغه د اسمان غاړه پټه كړے وه، نو اووئيلے شو دا موسىٰؑ دے خپل قوم كښے.

باب ۳۳۳ : قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا امْرَاَةَ فِرْعَوْنَ اِلٰى قَوْلِهٖ وَ كَانَتْ مِنَ الْقَانِتِيْنَ.

باب ۳۳۳ : فرمان الٰهي او اللّٰه تعالٰي ذ ايمانداارو مخكښے ذ فرعون د ښځے مثال بيانوي. آخر آيت پورے.

۶۳۳ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا وَكِيْعٌ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ عَمْرِو بْنِ

۶۳۳ : يحيٰي بن جعفر. وكيع. شعبه. عمرو بن مره. مره همداني. حضرت ابو موسىٰؑ نه روايت كوي.

مُرَّةَ عَنْ مُرَّةَ الْهَمْدَانِيِّ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰىؓ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَمُلَ مِنَ الرِّجَالِ كَثِيْرٌ وَلَمْ يَكْمُلْ مِنَ النِّسَآءِ اِلَّا اٰسِيَةُ امْرَاَةُ فِرْعَوْنَ وَ مَرْيَمُ بِنْتُ عِمْرَانَ وَ اِنَّ فَضْلَ عَائِشَةَ عَلَى النِّسَاءِ كَفَضْلِ الثَّرِيْدِ عَلٰى سَائِرِ الطَّعَامِ.

رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. نارينه ؤ كښې ډير كامل شوي دي' ليكن زنانه ؤ كښې سوا دَ فرعون دَ ښځې بي بي آسيې نه او بي بي مريم بنت عمران نه څوك كاملې شوې نه دي' او دَ بي بي عائشېؓ فضيلت په ټولو زنانه ؤ داسې دې' لكه خوروا كښې ماته ډوډۍ چه په ټولو طعامونو فضيلت لري (هغه زمانه كښې دا خوراك په ټولو خوراكونو بهتر ګڼړلې شو).

بَاب ۳۳۴: اِنَّ قَارُوْنَ كَانَ مِنْ قَوْمِ مُوْسٰى الْاٰيَةَ لَتَنُوْءُ لَتُثْقِلُ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ اُوْلِى الْقُوَّةِ لَا يَرْفَعُهَا الْعُصْبَةُ مِنَ الرِّجَالِ يُقَالُ الْفَرِحِيْنَ الْمَرِحِيْنَ وَيْكَاَنَّ اللّٰهَ مِثْلُ اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَاءُ وَ يَقْدِرَ وَ يُوَسِّعُ عَلَيْهِ وَ يُضَيِّقُ.

باب ۳۳۴: آيت كريمه' بيشكه قارون د موسىٰؑ دَ قوم نه وو. لتنوء يعني هغه به درنې وې. ابن عباسؓ اوفرمائيل. اولي القوة: يعني چه هغه دَ نارينه ؤ طاقتور جماعت هم اوچتولې نهٔ شوې. وئيلې شي' فرحين يعني كبر كونكي وَيْكَاَنَّ اللّٰه' په مثل د اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ: دې يعني آيا تا اونه ليدل چه اللّٰه څوك غواړي روزي ئې فراخه كړي او چاته چه غواړي' روزي ئې تنګوي.

بَاب ۳۳۵: وَ اِلٰى مَدْيَنَ اَخَاهُمْ شُعَيْبًا اِلٰى اَهْلِ مَدْيَنَ لِاَنَّ مَدْيَنَ بَلَدٌ وَّ مِثْلُهُ وَاسْاَلِ الْقَرْيَةَ وَاسْاَلِ الْعِيْرَ يَعْنِيْ اَهْلَ الْقَرْيَةِ وَ اَهْلَ الْعِيْرِ وَرَاءَ كُمْ ظِهْرِيًّا لَمْ يَلْتَفِتُوْا اِلَيْهِ يُقَالُ اِذَا لَمْ يَقْضِ حَاجَتَهُ ظَهَرْتَ حَاجَتِيْ وَ جَعَلْتَنِيْ ظِهْرِيًّا قَالَ الظِّهْرِيُّ اَنْ تَأْخُذَ مَعَكَ دَابَّةً اَوْ وِعَاءً تَسْتَظْهِرُ بِهٖ مَكَانَتُهُمْ وَ مَكَانُهُمْ وَاحِدٌ يَغْنَوْا يَعِيْشُوْا تَأْسَ تَحْزَنَ اٰسٰى اَحْزَنُ وَقَالَ الْحَسَنُ اِنَّكَ لَاَنْتَ الْحَلِيْمُ

باب ۳۳۵: وَ اِلٰى مَدْيَنَ اَخَاهُمْ شُعَيْبًا يعني اهل مدين جانب نه مونږ شعيبؑ اوليږلو مدين نه مراد اهل مدين دي ځكه چه مدين خو دَ ښار نوم دې او دغه شان واسئل القرية او واسئل العير دې يعني كلي والو او قافلې والو نه تپوس اوكړې' وَرَاءَ كُمْ ظِهْرِيًّا يعني هغه پله هغوئ توجه اونكړه' هر كله چه تاسو دَ چا حاجت روائي اونكړئ نو په هغه موقعه ظَهَرْتَ حَاجَتِيْ' او جعلتني ظهريا وئيلې شي. او ظهري' دا چه تاسو ځان سره سورلي يا لوښي واخلئ چه دَ هغې نه مدد واخلئ مكانتهم او مكانهم يو معنىٰ دي. يغنوا يعني ژوندي پاتې شي يَا يْئَسَ خفه شو اسٰي يعني زه خفه (رنجيده) يم حسن اوفرمائيل بيشكه ته بردبار او هدايت يافته ئې. د مذاق

يَسْتَهْزِؤُنَ بِهٖ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ لَيْكَةُ الْاَيْكَةُ يَوْمُ الظُّلَّةِ اِظْلَالُ غَمَامِ الْعَذَابِ عَلَيْهِمْ.

او استهزا په طور وئیلے شي' مجاهد اووے لیکه اصل کښے الایکه وو یوم الظله ځکه وئیلے شي چه په دے ورځ د عذاب وریځو په هغوئ سورے کړے وو.

**باب ۳۳۶: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى** وَ اِنَّ يُوْنُسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ اِلٰى قَوْلِهٖ وَهُوَ مُلِيْمٌ قَالَ مُجَاهِدٌ مُذْنِبٌ اَلْمَشْحُوْنُ اَلْمُوْقَرُ فَلَوْلَا اَنَّهٗ كَانَ مِنَ الْمُسَبِّحِيْنَ الْاٰيَةَ فَنَبَذْنٰهُ بِالْعَرَاءِ بِوَجْهِ الْاَرْضِ وَهُوَ سَقِيْمٌ وَ اَنْۢبَتْنَا عَلَيْهِ شَجَرَةً مِّنْ يَّقْطِيْنٍ مِنْ غَيْرِ ذَاتِ اَصْلِ الدُّبَّاءُ وَ نَحْوِهٖ وَ اَرْسَلْنٰهُ اِلٰى مِائَةِ اَلْفٍ اَوْ يَزِيْدُوْنَ فَاٰمَنُوْا فَمَتَّعْنٰهُمْ وَلَا تَكُنْ كَصَاحِبِ الْحُوْتِ اِذْ نَادٰى وَهُوَ مَكْظُوْمٌ كَظِيْمٌ مَغْمُوْمٌ.

**باب ۳۳۶:** فرمان خداوندي او بیشکه یونسؑ دَ پیغمبرانو نه دے' مُلِیْمٌ پورے' مجاهد اووے ملیم یعني ګنهګار المشحون یعني ډک' نو که هغه تسبیح کونکے نه وے الأیة فنبذنٰه بِالْعَرَاءِ یعني مونږ هغه په زمکه اوغرځولو او هغه ناروغه وو او مونږ هغهٔ سره خوا کښے یوه بے تنے اُونه (یا بوټے) لکه کدو وغیره پیدا که یقطین بے تنے بوټے لکه کدو او مونږ یونسؑ یو لاکھ یا ددے نه زیاتو خلقوته اولیږلو بیا هغوئ ایمان راوړلو' نو مونږ هغوئ یوے مودے د پاره نفع مند کړل او (اے محمد صلعم) ته دَ کب واله په شان مه کیږه چه هغهٔ خدائے ته فریاد اوکه او هغه سخت غمژپلے وو مکظوم' کظیم یعني غم زپلے.

**۶۳۴:** حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ سُفْيَانَ قَالَ حَدَّثَنِي الْاَعْمَشُ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَقُوْلَنَّ اَحَدُكُمْ اِنِّيْ خَيْرٌ مِّنْ يُّوْنُسَ زَادَ مُسَدَّدٌ يُوْنُسَ بْنِ مَتّٰى.

**۶۳۴:** مسدد. یحیٰي. سفیان. اعمش (دویم سند) ابو نعیم. سفیان. اعمش. ابو وائل. حضرت عبداللّٰه نه روایت کوي. رسالتمآب صلعم اوفرمائیل تاسو کښے دِ څوک داله وائي چه زهٔ یونسؑ نه بهتریم. مسدد دا الفاظ نور زیات روایت کړي دي. چه یونسؑ بن متي.

**۶۳۵:** حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَبِي الْعَالِيَةِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا يَنْبَغِيْ لِعَبْدٍ اَنْ يَّقُوْلَ اِنِّيْ خَيْرٌ مِنْ

**۶۳۵:** حفص. شعبه. قتاده. ابو العالیه. ابن عباسؓ نه روایت کوي' رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل هیڅ بنده (مؤمن) له دا وئیل مناسب نه دي چه زهٔ دَ یونسؑ بن متي نه بهتر یم او حضورؐ هغه دَ هغهٔ پلار طرف ته

يُوْنُسَ ابْنِ مَتّٰى وَ نَسَبَهُ اِلٰى اَبِيْهِ.

۶۳۶ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ عَنِ اللَّيْثِ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيْزِ بْنِ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الْفَضْلِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ بَيْنَمَا يَهُوْدِيٌّ يَعْرِضُ سِلْعَتَهُ اُعْطِيَ بِهَا شَيْئًا كَرِهَهُ فَقَالَ لَا وَالَّذِيْ اصْطَفٰى مُوْسٰى عَلَى الْبَشَرِ فَسَمِعَهُ رَجُلٌ مِّنَ الْاَنْصَارِ فَقَامَ فَلَطَمَ وَجْهَهُ وَ قَالَ تَقُوْلُ وَالَّذِيْ اصْطَفٰى مُوْسٰى عَلَى الْبَشَرِ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ اَظْهُرِنَا فَذَهَبَ اِلَيْهِ فَقَالَ اَبَا الْقَاسِمِ اِنَّ لِيْ ذِمَّةً وَّ عَهْدًا فَمَا بَالُ فُلَانٍ لَطَمَ وَجْهِيْ فَقَالَ لِمَ لَطَمْتَ وَجْهَهُ فَذَكَرَهُ فَغَضِبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى رُؤِيَ فِيْ وَجْهِهِ ثُمَّ قَالَ لَا تُفَضِّلُوْا بَيْنَ اَنْبِيَآءِ اللّٰهِ فَاِنَّهُ يُنْفَخُ فِي الصُّوْرِ فَيَصْعَقُ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَمَنْ فِي الْاَرْضِ اِلَّا مَنْ شَآءَ اللّٰهُ ثُمَّ يُنْفَخُ فِيْهِ اُخْرٰى فَاَكُوْنُ اَوَّلَ مَنْ بُعِثَ فَاِذَا مُوْسٰى اٰخِذٌ بِالْعَرْشِ فَلَا اَدْرِيْ اَحُوْسِبَ بِصَعْقَتِهِ يَوْمَ الطُّوْرِ اَمْ بُعِثَ قَبْلِيْ وَلَا اَقُوْلُ اِنَّ اَحَدًا اَفْضَلُ مِنْ يُوْنُسَ بْنِ مَتّٰى.

منسوب کړلو.

۶۳۶ : يحيي بن بكير. ليث. عبدالعزيز بن ابو سلمه. عبدالله بن الفضل. اعرج. حضرت ابوهريرةؓ نه روايت کوي' هغه فرمائي' يو يهودي خپل سامان خرخولو' هغه ته دَ هغې په عوض کښې دومره قيمت ورکولے شو چه په هغې هغه راضي نه وو هغهٔ اووے' نه' په هغه ذات مِ دِ قسم وي چه هغهٔ موسٰي په نوع بشر برگزيده کهٔ' دا خبره يو انصاري واؤريده' هغه اودريدلو او هغه يهودي ته په مخ يو پرق اووهلو' او ورته ئے اووے' ته وائے' قسم دے په هغه ذات چه هغهٔ موسٰیٔ په نوع بشر برگزيده که حالانکه حضور صلعم مونږ کښې موجود دے (شکايت د پاره) هغه يهودي حضور صلعم له راغے' اووئيلے اے ابوالقاسم' ماته آمان او عهد راکړے شويدے (يعني زه ذمي يم) بيا څه وجه ده چه فلاني سړي زهٔ په څپيړه اووهلم. بيا هغه پوره واقعه بيان کړه نو حضورؐ ته دومره غصه ورغله چه د مخ مبارک نه ئے ظاهريدله' بيا حضورؐ اوفرمائيل دَ خدائے په پيغمبرانو کښې يو له په بل فضيلت مه ورکوئ څکه چه څه وخت شپيلئ اوپوکلے شي نو د اسمان او زمکے اوسيدونکي به ټول بيهوشه شي' سِوا د هغې چا نه چه اللّٰه ئے غواړي' زه به د ټولو نه مخکښې راپاسولے شم زه به اووينم چه موسٰیٔ به عرش نيولے وي. زهٔ نشم وئيلے چه آيا هغه ته دَ طور دَ ورځے د بيهوشئ دا معاوضه حاصله شويده (چه هغه نن بيهوشه نه شو) يا هغه زما نه مخکښې پاسولے شويدے او زهٔ دا نه وايم چه څوک سړے دَ يونس بن متي نه افضل دے.

۶۳۷ : حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَعْدِ بْنِ اِبْرَاهِيْمَ سَمِعْتُ حُمَيْدَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَنْبَغِيْ لِعَبْدٍ اَنْ يَقُوْلَ اَنَا خَيْرٌ مِنْ يُوْنُسَ بْنِ مَتّٰى.

۶۳۷ : ابوالولید. شعبه. سعد بن ابراهیم. حمید بن عبدالرحمٰن. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي. حضور صلي اللّٰه علیه وسلم ارشاد فرمائیلے دے هیڅ (مؤمن) بنده لره دا مناسب نه دي چه اووائي، زهٔ دَ یونسؑ بن متي نه بهتر یم.

باب ۳۳۷: وَاسْأَلْهُمْ عَنِ الْقَرْيَةِ الَّتِيْ كَانَتْ حَاضِرَةَ الْبَحْرِ اِذْ يَعْدُوْنَ فِي السَّبْتِ يَتَعَدُّوْنَ يُجَاوِزُوْنَ فِي السَّبْتِ اِذْ تَاْتِيْهِمْ حِيْتَانُهُمْ يَوْمَ سَبْتِهِمْ شُرَّعًا شَوَارِعَ اِلَى قَوْلِهٖ كُوْنُوْا قِرَدَةً خَاسِئِيْنَ.

باب ۳۳۷: آیت کریمه او هغوئ نه دَ هغے کلي حالت اوپښتنه چه دَ دریاب په غاړه وو اِذْ يَعْدُوْنَ فِي السَّبْتِ کوم وخت چه هغوئ دَ خالي ورځے (دَ حرمت او عظمت په باره) کښے د حد نه زیاتے اوکه چه دَ خالي په ورځ به د هغوئ کبان هغوئ ته (د اوبو) دَ پاسه راتلل شُرَّعًا یعني ښکاره او دَ پاسه به راتلل، آخر آیت خَاسِئِيْنَ. پورے.

باب ۳۳۸: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ اٰتَيْنَا دَاوٗدَ زَبُوْرًا اَلزُّبُرُ الْكُتُبُ وَاحِدُهَا زَبُوْرٌ زَبَرْتُ كَتَبْتُ وَلَقَدْ اٰتَيْنَا دَاوٗدَ مِنَّا فَضْلًا يَا جِبَالُ اَوِّبِيْ مَعَهٗ قَالَ مُجَاهِدٌ سَبِّحِيْ مَعَهٗ وَالطَّيْرُ وَ اَلَنَّا لَهُ الْحَدِيْدَ اَنِ اعْمَلْ سَابِغَاتِ الدُّرُوْعَ وَ قَدِّرْ فِي السَّرْدِ اَلْمَسَامِيْرِ وَالْحَلَقِ وَلَا تُرِقَّ الْمِسْمَارَ فَيَتَسَلْسَلُ وَلَا تُعَظِّمَ فَيَنْفَصِمُ وَاعْمَلُوْا صَالِحًا اِنِّيْ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ.

باب ۳۳۸: آیت کریمه او مونږ داؤدٗ ته زبور عطا کړلو. زبر یعني کتابونه ددے مفرد زبور دے زبرت یعني ما اولیکل. او مونږ دَ خپل طرف نه داؤدٗ ته بزرګي عطا کړله او مونږ غرونو ته حکم ورکه، اے غرونو دهٔ سره تسبیح وایئ. مجاهد وائي اَوِّبِيْ مَعَهٗ یعني دهٔ سره تسبیح کوئ او مارغانو ته ئے حکم ورکړلو، او مونږ دَ هغهٔ دَ پاره اوسپنه نرمه کړه چه زغرے جوړوه. سَابِغَات یعني زغرے اوجوړولو کښے خاص انداز ساته سرد معني دَ زغرے میخونه اوکړئ یعني مهٔ خو میخونه باریک کوه، چه هغه سست شي او مه ئے غټه وه چه مات شي، او ښهٔ عمل کوه، بیشکه زهٔ ستا عمل وینم.

۶۳۸ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا

۶۳۸ : عبداللّٰه بن محمد. عبدالرزاق. معمر. همام. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت

مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ خُفِّفَ عَلٰى دَاوُدَ عَلَيْهِ السَّلَامُ الْقُرْاٰنُ فَكَانَ يَأْمُرُ بِدَوَابِّهِ فَتُسْرَجُ فَيَقْرَأُ الْقُرْاٰنَ قَبْلَ اَنْ تُسْرَجَ دَوَابُّهُ وَلَا يَاْكُلُ اِلَّا مِنْ عَمَلِ يَدِهٖ رَوَاهُ مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ صَفْوَانَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

کوي، حضورؐ اوفرمائیل، حضرت داؤد ذ پاره (ذ زبور) تلاوت ډیر آسان کړے شوے وو حتي چه هغه به په خپلے سورلئ (ذ زین کس کولو) حکم کولو، په هغے به زین کس کولے شو، نو هغه به ذ زین کس کولو نه مخکښے لوستلے وو. او ذ خپل لاس ګټه به ئے خوړله. دا موسيٰ بن عقبه. صفوان، عطاء بن یسار. حضرت ابوهریرةؓ ذ رسالت مےب صلي اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کړیدے.

۶۳۹ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَنَّ سَعِيْدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ اَخْبَرَهُ وَ اَبَا سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَمْرٍو قَالَ اُخْبِرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنِّيْ اَقُوْلُ وَاللّٰهِ لَاَصُوْمَنَّ النَّهَارَ وَلَا قُوْمَنَّ اللَّيْلَ مَا عِشْتُ فَقَالَ لَهٗ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْتَ الَّذِيْ تَقُوْلُ وَاللّٰهِ لَاَصُوْمَنَّ النَّهَارَ وَلَاَقُوْمَنَّ اللَّيْلَ مَا عِشْتُ قُلْتُ قَدْ قُلْتُهٗ قَالَ اِنَّكَ لَا تَسْتَطِيْعُ ذٰلِكَ فَصُمْ وَ اَفْطِرْ وَ قُمْ وَ نَمْ وَ صُمْ مِنَ الشَّهْرِ ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ فَاِنَّ الْحَسَنَةَ بِعَشْرِ اَمْثَالِهَا وَ ذٰلِكَ مِثْلُ صِيَامِ الدَّهْرِ فَقُلْتُ اِنِّيْ اُطِيْقُ اَفْضَلَ مِنْ ذٰلِكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ فَصُمْ يَوْمًا وَ اَفْطِرْ يَوْمَيْنِ قَالَ قُلْتُ اِنِّيْ

۶۳۹ : یحيٰي بن بکیر. لیث. عقیل. ابن شهاب. سعید بن مسیب او ابو سلمه بن عبدالرحمٰن. حضرت عبداللّٰه بن عمرؓ نه روایت کوي. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم خما باره کښے دا اوبنودل، ما قسم خوړلے دے چه ټول عمر به ذ ورځے روژه نیسم او ذ شپے به عبادت کوم نو رسول اللّٰه صلعم اوفرمائیل ماته، چه آیا ته وائے خدائیګو ټول عمر به روژه نیسم او ذ شپے به عبادت کوم. ما عرض اوکهٔ، جي او، ما داسے وئیلي دي. حضورؐ اوفرمائیل، تا کښے ددے طاقت نشته، نو کله روژه نیسه او کله مه نیسه، او کله ذ شپے عبادت کوه او کله (آرام سره) اودهٔ شه. او هره میاشت کښے درے روژے نیسه ځکه چه ذ هرے نیکئ لس دوچنده ثواب حاصلیږي (نو میاشت کښے درے روژے ذ دیرشو برابر شوے) او دا به د کالو سرد روژو برابر شي. ما عرض اوکه یا رسول اللّٰه صلعم زه ذ دے نه هم زیات طاقت لرم. حضورؐ ارشاد اوفرمائیلو یوه ورځ روژه کوه او دوه ورځے پریږده، ما عرض اوکه زهٔ ددے نه هم زیات طاقت

اُطِيْقُ اَفْضَلَ مِنْ ذٰلِكَ قَالَ فَصُمْ يَوْمًا وَ اَفْطِرْ يَوْمًا وَ ذٰلِكَ صِيَامُ دَاوُدَ وَهُوَ عَدْلُ الصِّيَامِ قُلْتُ اِنِّيْ اُطِيْقُ اَفْضَلَ مِنْهُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ لَا اَفْضَلَ مِنْ ذٰلِكَ.

لرم. حضور صلعم اوفرمائیل. یوه ورځ کوژه او یوه ورځ روژه ساته او دا صوم داؤدي دے دا د ټولونه د معتدل قسم روژه ده، ما عرض اوکه، زۀ ددے نه زیات طاقت لرم، حضورؐ اوفرمائیل، بس ددے نه زیات هیڅ نشته.

● ۶۴۰: حَدَّثَنَا خَلَّادُ بْنُ يَحْيٰى حَدَّثَنَا مِسْعَرٌ حَدَّثَنَا حَبِيْبُ بْنُ اَبِيْ ثَابِتٍ عَنْ اَبِي الْعَبَّاسِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ قَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلَمْ اُنَبَّاْ اَنَّكَ تَقُوْمُ اللَّيْلَ وَ تَصُوْمُ النَّهَارَ فَقُلْتُ نَعَمْ فَقَالَ فَاِنَّكَ اِذَا فَعَلْتَ ذٰلِكَ هَجَمَتِ الْعَيْنُ وَ نَفِهَتِ النَّفْسُ صُمْ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ فَذٰلِكَ صَوْمُ الدَّهْرِ اَوْ كَصَوْمِ الدَّهْرِ قُلْتُ اِنِّيْ اَجِدُ بِيْ قَالَ مِسْعَرٌ يَعْنِيْ قُوَّةً قَالَ فَصُمْ صَوْمَ دَاوُدَ عَلَيْهِ السَّلَامُ وَ كَانَ يَصُوْمُ يَوْمًا وَ يُفْطِرُ يَوْمًا وَلَا يَفِرُّ اِذَا لَاقٰى.

● ۶۴۰: خلاد بن یحیٰی. مسعر. حبیب بن ابي ثابت. ابو العباس. حضرت عبدالله بن عمرو بن العاصؓ نه روایت کوي، هغه وائي، ماته رسول الله صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، آیا ماته دا اطلاع (صحیح) نۀ ده رارسیدلے، چه تۀ ټوله شپه مونځ کوے، او دَ ورځے دِ روژه وي، ما عرض اوکۀ، جي او (صحیح ده) حضورؐ اوفرمائیل، چه داسے کوے، نو سترګے به دے کمزورے شي، او طبیعت به دے ستړے شي، هره میاشت کښې درے روژے ساته. دا به دے دَ ټول عمر روژے شي، یا داسے ئے اوفرمائیل، چه دَ ټول عمر دَ روژو په شان به دے شي. ما عرض اوکۀ، زۀ خپل ځان کښې محسوسوم، مسعر اووے، یعنې قوت، حضورؐ اوفرمائیل، بیا دَ داؤد علیه السلام په شان روژه ساته، دَ هغۀ به یوه ورځ کوژه وه، او یوه ورځ روژه، او دشمن سره دَ مقابلے په وخت به هیڅ کله نۀ تښتیدلو.

باب ۹ ۳۳: اَحَبُّ الصَّلٰوةِ اِلَى اللّٰهِ صَلٰوةُ دَاوُدَ وَ اَحَبُّ الصِّيَامِ اِلَى اللّٰهِ صِيَامُ دَاوُدَ كَانَ يَنَامُ نِصْفَ اللَّيْلِ وَ يَقُوْمُ ثُلُثَهُ وَ يَنَامُ سُدُسَهُ وَ يَصُوْمُ يَوْمًا وَّ يُفْطِرُ يَوْمًا قَالَ عَلِيٌّ وَهُوَ قَوْلُ عَائِشَةَ مَا اَلْفَاهُ السَّحَرُ

باب ۹ ۳۳: دَ داؤد علیه السلام مونځ او روژه الله ته دَ ټولو نه زیات دَ خوښیدو بیان. داؤد علیه السلام به دَ نیمے شپے پورے اُوده کیدلو. دَ شپے دریمه حصه دَ شپے به ئے عبادت کولو، بیا دَ شپے شپږمه حصه کښې به اُوده کیدلو، او یوه ورځ به ئے کوژه او یوه ورځ به ئے روژه وه. علي وائي، او عائشه هم دا فرمائي، چه د سحر

عَيْنِيْ اِلَّا نَائِمًا.

۱۲۴۱ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ اَوْسٍ الثَّقَفِيِّ سَمِعَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ وَ قَالَ قَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَحَبُّ الصِّيَامِ اِلَى اللّٰهِ صِيَامُ دَاوُدَ كَانَ يَصُوْمُ يَوْمًا وَ يُفْطِرُ يَوْمًا وَ اَحَبُّ الصَّلٰوةِ اِلَى اللّٰهِ صَلٰوةُ دَاوُدَ كَانَ يَنَامُ نِصْفَ اللَّيْلِ وَ يَقُوْمُ ثُلُثَهُ وَ يَنَامُ سُدُسَهُ.

باب ۳۴۰: وَاذْكُرْ عَبْدَنَا دَاوُدَ ذَا الْاَيْدِ اِنَّهُ اَوَّابٌ اِلَى قَوْلِهِ وَ فَصْلَ الْخِطَابِ قَالَ مُجَاهِدٌ الْفَهْمُ فِى الْقَضَاءِ وَلَا تُشْطِطْ لَا تُسْرِفْ وَاهْدِنَا اِلَى سَوَآءِ الصِّرَاطِ اِنَّ هٰذَا اَخِيْ لَهُ تِسْعٌ وَّ تِسْعُوْنَ نَعْجَةً يُقَالُ لِلْمَرْاَةِ نَعْجَةٌ وَ يُقَالُ لَهَا اَيْضًا شَاةٌ وَلِيَ نَعْجَةٌ وَاحِدَةٌ فَقَالَ اَكْفِلْنِيْهَا مِثْلُ وَ كَفَّلَهَا زَكَرِيَّاءُ ضَمَّهَا وَ عَزَّنِيْ غَلَبَنِيْ صَارَ اَعَزَّ مِنِّيْ اَعْزَزْتُهُ فَجَعَلْتُهُ عَزِيْزًا فِى الْخِطَابِ يُقَالُ الْمُحَاوَرَةُ قَالَ لَقَدْ ظَلَمَكَ بِسُؤَالِ نَعْجَتِكَ اِلٰى نِعَاجِهِ وَ اِنَّ كَثِيْرًا مِنَ الْخُلَطَاءِ الشُّرَكَاءِ لَيَبْغِيْ اِلَى قَوْلِهِ اِنَّمَا فَتَنَّاهُ قَالَ ابْنُ

وخت کښې حضورؐ همیشه ماسره اُوده پاتې شوې دې.

۱۲۴۱ : قتیبه بن سعید. سفیان. عمرو بن دینار. عمرو بن اوس ثقفي. حضرت عبدالله بن عمروؓ نه روایت کوي، هغه وائي، ماته رسالتمآب صلي الله علیه وسلّم ارشاد اوفرمائیلو دَ ټولونه زیاته غوره روژه الله تعالٰی ته دَ داؤد علیه السلام روژه وه، دَ هغهٔ به یو ورځ کوژه او بله ورځ روژه وه، او دَ ټولونه زیات غوره مونځ الله تعالٰی ته دَ داؤد علیه السلام مونځ وو، هغهٔ به نیمې شپې پورې اُودهٔ وو، دریمه حصه دَ شپې به ئې عبادت کولو، او دَ شپې شپږمه حصه کښې به ئې آرام کولو.

باب ۳۴۰: آیت کریمه، او خمونږ بنده داؤدؑ یاد کړه، چه قوت واله وو، بیشکه هغه الله طرف ته ډیر رجوع کونکې وو، و فصل الخطاب پورې. مجاهد وائي، چه فصل الخطاب نه مراد فیصله کښې سوچ سمجهه دې. لا تشطط: یعني زیاتې مه کوه. او خمونږ نیغې لارې ته هدایت اوکړې. دهٔ سره یو کم سل نعجه دي. نعجه ښځې ته هم وائي. او دا دَ شاة (چیلې) په معني کښې راځي. او ماسره یو نعجه (ښځه) یا چیلې ده، نو دې وائي، چه دا هم ماته راکړه. اکفلنیها، کفلها په شان یوه معني لري، یعني هغه ئې خان سره یوځائې کړه. وعزنی: او هغه په ما غالب راغې. اعززته: معني دي، ما هغه غالب کړلو. فی الخطاب: یعني خبرو اترو کښې. بیشکه هغه ستا نعجه خپلو نعجو سره دَ یوځائې کولو خواست کښې په تا ظلم اوکړ. او اکثر شریکان خپلو کښې په یو بل ظلم کوي. انما فتناه پورې. ابن عباسؓ اوفرمائیل، فتناه: معني دي،

عَبَّاسٍؓ اِخْتَبَرْنَاهُ وَقَرَءَ عُمَرُ فَتَنَّاهُ بِتَشْدِيْدِ التَّاءِ فَاسْتَغْفَرَ رَبَّهٗ وَ خَرَّ رَاكِعًا وَّ اَنَابَ.

مونږ هغه او آزمائیلو' او حضرت عمر فتناه په تشدید وئیلے دے' نو هغهٔ خپل پروردګار ته استغفار اوکړهٔ' او په سجده پریوتلو' او هغه طرف ته متوجه شولو.

۲۴۴۲: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا سَهْلُ بْنُ يُوسُفَ قَالَ سَمِعْتُ الْعَوَّامَ عَنْ مُجَاهِدٍ قَالَ قُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ اَسْجُدُ فِيْ صٓ فَقَرَأَ وَمِنْ ذُرِّيَّتِهٖ دَاوٗدَ وَ سُلَيْمَانَ حَتّٰى اَتٰى فَبِهُدٰهُمُ اقْتَدِهْ فَقَالَ نَبِيُّكُمْ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِمَّنْ اُمِرَ اَنْ يَّقْتَدِيَ بِهِمْ.

۲۴۴۲: محمد. سهل. عوام. مجاهد نه روایت کوي' هغه وائي' ما ابن عباسؓ ته اووے' آیا زهٔ سورهٔ صٓ کښې سجده اوکړم' نو هغه دا آیت اولوست: وَمِنْ ذُرِّيَّتِهٖ دَاوٗدَ وَ سُلَيْمَانَ فَبِهُدٰهُمُ اقْتَدِهْ پورے. بیائے اوفرمائیل' ستاسو پیغمبر دَ هغې خلقونه دے' چه هغهٔ ته دَ مخکنو پیغمبرانو دَ پیروي حکم شوے دے (او سورهٔ صٓ کښې دَ داؤد سجده کول مذکور دي' نو هغه اقتدا کښې سجده کول پکار دي).

۲۴۴۳: حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ عِكْرَمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَيْسَ صٓ مِنْ عَزَائِمِ السُّجُوْدِ وَ رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْجُدُ فِيْهَا.

۲۴۴۳: موسي بن اسماعیل. وهیب. ایوب. عکرمه. حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي' هغه فرمائي' دَ سورهٔ صٓ سجده ضرور نهٔ ده' او ما رسالتمآب صلي اللّٰه علیه وسلم دے سورت کښې په سجده کولو لیدلے دے.

باب ۱۳۴۱: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَ وَهَبْنَا لِدَاوٗدَ سُلَيْمٰنَ نِعْمَ الْعَبْدُ اِنَّهٗ اَوَّابٌ الرَّاجِعُ الْمُنِيْبُ وَ قَوْلُهٗ هَبْ لِيْ مُلْكًا لَّا يَنْبَغِيْ لِاَحَدٍ مِّنْ بَعْدِيْ وَ قَوْلُهٗ وَاتَّبَعُوْا مَا تَتْلُوا الشَّيٰطِيْنُ عَلٰى مُلْكِ سُلَيْمٰنَ وَلِسُلَيْمٰنَ الرِّيْحَ غُدُوُّهَا شَهْرٌ وَ رَوَاحُهَا شَهْرٌ وَ اَسَلْنَا لَهٗ عَيْنَ الْقِطْرِ اَذَبْنَا لَهٗ

باب ۱۳۴۱: آیت کریمه: او مونږ په داؤد دَ سلیمان شان دَ خوئ پیرزونه اوکړه هغه خومره بهترین بنده وو' بیشکه هغه اللّٰه طرف ته ډیر رجوع کونکے وو. اوّاب: معني رجوع کونکے' دَ منیب په معني کښې راځي' او فرمان خداوندي' او ماله داسے حکومت راکړے' چه ځما نه پس هغسے دَ هیچا نهٔ وي' او آیت کریمه' او هغې خلقو دَ هغه څیز پیروي اوکړه' چه دَ سلیمان زمانه کښې شیطانانو به لوستلو' او هَوا مونږ دَ سلیمان تابع کړله' چه سحر به ئے دَ یو میاشت او ماښام به ئے یو میاشت مزل

يْنَ الْحَدِيْدِ وَمِنَ الْجِنِّ مَنْ يَعْمَلُ بَيْنَ يَدَيْهِ اِلٰى قَوْلِهٖ مِنْ مَحَارِيْبَ قَالَ مُجَاهِدٌ بُنْيَانٌ مَا دُوْنَ الْقُصُوْرِ وَ تَمَاثِيْلَ وَ جِفَانٍ كَالْجَوَابِ كَالْحِيَاضِ لِلْاِبِلِ وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ كَالْجَوْبَةِ مِنَ الْاَرْضِ وَ قُدُوْرٍ الرَّاسِيَاتِ اِلٰى قَوْلِهٖ الشَّكُوْرُ فَلَمَّا قَضَيْنَا عَلَيْهِ الْمَوْتَ مَا دَلَّهُمْ عَلٰى مَوْتِهٖ اِلَّا دَآبَّةُ الْاَرْضِ الْاَرَضَةُ تَاْكُلُ مِنْسَاَتَهٗ عَصَاهُ فَلَمَّا خَرَّ اِلٰى قَوْلِهِ الْمُهِيْنِ حُبَّ الْخَيْرِ عَنْ ذِكْرِ رَبِّيْ فَطَفِقَ مَسْحًا بِالسُّوْقِ وَالْاَعْنَاقِ يَمْسَحُ اَعْرَافَ الْخَيْلِ وَ عَرَاقِيْبَهَا الْاَصْفَادُ الْوَثَاقُ قَالَ مُجَاهِدٌ الصَّافِنَاتُ صَفَنَ الْفَرَسُ رَفَعَ اِحْدٰى رِجْلَيْهِ حَتّٰى تَكُوْنَ عَلٰى طَرَفِ الْحَافِرِ الْجِيَادُ السِّرَاعُ جَسَدًا شَيْطَانًا رُخَاءً طَيِّبَةً حَيْثُ اَصَابَ حَيْثُ شَآءَ فَامْنُنْ اَعْطِ بِغَيْرِ حِسَابٍ بِغَيْرِ حَرَجٍ.

٦٤٤: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ زِيَادٍ

كولو. او مونږ د هغه د پاره د اوسپنې چينه او بهيږله. اسلنا له عين القطر: معني دا: مونږ د هغه د پاره د اوسپنې چينه اوبهيوله. او څه پيريان مو د هغه تابع كړي وو، چه د الله په حكم ئې د هغه كار كولو. محاريب پورې: مجاهد اووې: محاريب: يعني هغه عمارت چه د محل نه كم وي او مورتونه او داسې لګنونه لكه حوض. يعني څنګه چه د اوښانو حوض وي. ابن عباسؓ اووې: هغه لګنونه داسې وو، لكه د زمكې (لوئې لوئې) كندې. او په يو ځائې جم شوې لوئې لوئې ديګونه: الشكور پورې. نو كوم وخت چه مونږ په هغهٔ د مرګ حكم جاري كړ، نو هيڅ څيز د هغهٔ مرګ اونهٔ ښودلو، خو وينهٔ (يو قسم چينجې چه دننه نه لرګې خوري) چه د هغه همسائې خوړله. منساته: يعني د هغهٔ عصا (همسا) كوم وخت چه هغه راوغرځيد، المهين پورې: د الله د ذكر مقابله كښې د مال محبت ما خوښ كړلو، نو هغه د هغوي ګردنونه او پنډئ اووهلې. الاصفاد: يعني بندهن (ونډنې. پړې. دوه څيزونه يوځائې كونكې او تړونكې پړې) مجاهد واني، چه صافات مشتق دې، صفن الفرس نه: هر كله چه آس يوه پښه اوچته كړي او د سُم په نوك اودريږي. الجياد: يعني تيز رفتار، جسدا: يعني شيطان، رخاء: يعني ښهٔ او اعلي. حيث اصاب يعني كوم ځائې چه غواړي. فامنن: يعني ته راكړه. بغير حساب: يعني بغير د څه تكليف او مضائقې.

٦٤٤: محمد بن بشار. محمد بن جعفر. شعبه. محمد بن زياد. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كړي: رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل: يو سركش

عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ عِفْرِيْتًا مِنَ الْجِنِّ تَفَلَّتَ الْبَارِحَةَ لِيَقْطَعَ عَلَيَّ صَلٰوتِيْ فَاَمْكَنَنِيَ اللّٰهُ مِنْهُ فَاَخَذْتُهُ فَاَرَدْتُ اَنْ اَرْبِطَهُ عَلٰى سَارِيَةٍ مِنْ سَوَارِي الْمَسْجِدِ حَتّٰى تَنْظُرُوْا اِلَيْهِ كُلُّكُمْ فَذَكَرْتُ دَعْوَةَ اَخِيْ سُلَيْمَانَ رَبِّ هَبْ لِيْ مُلْكًا لَّا يَنْبَغِيْ لِاَحَدٍ مِنْ بَعْدِيْ فَرَدَدْتُهُ خَاسِئًا عِفْرِيْتٌ مُتَمَرِّدٌ مِنْ اِنْسٍ اَوْ جَانٍ مِثْلُ زِبْنِيَةٍ جَمَاعَتُهَا الزَّبَانِيَةُ.

جن (پيري) ناساپه د شپې ماته راغې چه خما مونځ مات کړي. خو الله ماله په هغه قابو راکه. ما هغه اونيولو. او ما سوچ اوکه. چه دې د جمات يوې ستنې سره اوتړم. چه سحر ته تاسو ټول خلق ئې اووينئ. نو ماته خما د ورور سليمانؑ دعا رايادده شوه. چه اے خما پروردګاره. دلته داسې حکومت راکړې. چه خما نه پس هغې هيچا ته حاصل نشي. نو ما هغه نامراد او ناکام واپس کړلو. د عفريت: معني سرکش. خواه انسان وي يا جن (پيرى) بعضې قراء تونو کښې عفرية دې. دې باره کښې امام بخاريؒ واني. که دا عفرية وي. نو د زبينة په شان به وي چه د هغې جمع زبانيه راځي.

٦٤٥ : حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ حَدَّثَنَا مُغِيْرَةُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قَالَ سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوٗدَ لَاَطُوْفَنَّ اللَّيْلَةَ عَلٰى سَبْعِيْنَ اِمْرَاَةً تَحْمِلُ كُلُّ امْرَاَةٍ فَارِسًا يُجَاهِدُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَقَالَ لَهٗ صَاحِبُهٗ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ فَلَمْ يَقُلْ وَلَمْ تَحْمِلْ شَيْئًا اِلَّا وَاحِدًا سَاقِطًا اِحْدٰى شِقَّيْهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ قَالَهَا لَجَاهَدُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ قَالَ شُعَيْبٌ وَابْنُ اَبِي الزِّنَادِ تِسْعِيْنَ وَهُوَ اَصَحُّ.

٦٤٥ : خالد بن مخلد. مغيره بن عبدالرحمن. اعرج. ابوالزناد. حضرت ابوهريرةؓ نه روايت کوي. رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل. يوه ورځ سليمان عليه السلام قسم اوخوړلو. چه زهٔ به نن شپه اويا ښځو له ورځم. او د هرې ښځې به د يو شهسوار او مجاهد في سبيل الله حمل شي. د هغهٔ يو هم مجلس ورته اووې. چه انشاء الله اووايه. خو سليمانؑ اونهٔ وې. نو هيڅ ښځه ئې هم حامله (اميدواره) نهٔ شوه. سوا د يوې نه. خو د هغې هم يو داسې بچې پيدا شو. چه د هغهٔ يو اړخ غورځيدلے وو. رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل. که هغه انشاء الله وئيلے وې. نو ټول بچي به ئې پيدا شوې وو. او د الله تعالي په لار کښې به ئې جهاد کولو. شعيب او ابوالزناد د نوې (لس کم سل) روايت کړې دې. او دا زيات صحيح دې.

٦٤٦ : حَدَّثَنِيْ عُمَرُ

٦٤٦ : عمرو بن حفص. د هغهٔ پلار. اعمش.

...ن حفص حدثنا أبي حدثنا الأعمش حدثنا ...براهيم التيمي عن أبيه عن ...بي ذر قال قلت يا رسول الله ...ي مسجد وضع أول قال ...لمسجد الحرام قلت ثم أي قال ...ثم المسجد الأقصى قلت كم كان بينهما قال أربعون ثم قال حيثما ...د ركت.

٦٤٧ : حدثنا أبو اليمان ...خبرنا شعيب حدثنا أبو الزناد ...عن عبد الرحمن حدثه أنه سمع ...با هريرة أنه سمع رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول ...مثلي و مثل الناس كمثل ...رجل استوقد نارا فجعل الفراش ...وهذه الدواب تقع في النار و ...قال كانت امرأتان معهما ابناهما ...جاء الذئب فذهب بابن ...احدهما فقالت صاحبتها انما ...ذهب بابنك و قالت الأخرى انما ...ذهب بابنك فتحاكمتا الى ...داود فقضى به الكبرى فخرجتا على سليمان بن داود ...فأخبرتاه فقال ائتوني بالسكين ...أشقه بينكما فقالت الصغرى لا

ابراهیم تیمي. د هغه پلار. ابوذرؓ نه روایت کوي: هغه اووې: ما عرض اوکه: یا رسول الله: د ټولو نه محکښې کوم جمات جوړ شولو حضورؐ اوفرمایل: مسجد حرام. ما اووې: بیا کوم: حضورؐ اوفرمایل: مسجد اقصی. ما اووې ددې دواړو مینځ کښې څومره موده ده: حضورؐ اوفرمائیل: څلویښت کاله. بیائې اوفرمائیل: کوم ځائې چه د مونځ وخت راشي: مونځ کوئې: ځکه چه ټول له زمکه ستاسو د پاره د سجدې ځائې جوړ شوې دې. (یعني هر پاک ځائې کښې مونځ کولې شې).

٦٤٧ : ابوالیمان. شعیب. ابوالزناد. عبدالرحمن. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي: هغه فرمائي: ما پیغمبر صلي الله علیه وسلم نه واوریدل: خما او د خلقو مثال داسې دې: لکه چه یو سړې اور بل کړي: بیا پتنګان او چینجي هغې اور کښې ورغورځیږي. حضور صلي الله علیه وسلم (تذکرة بیائې دا) اوفرمائیل: دوه ښځې وې: هغوي دواړو سره بچي وو: دې کښې یو شرمخ راغې: او د یوې بچې ئې اوتښتولو: یو ښځې اووې: شرمخ ستا بچې اوتښتولو. بلې اووې: نه ستا بچې ئې تښتولې دې. دې دواړو داود علیه السلام ته خپله مقدمه پیش کړه. هغه د مشرې ښځې په حق کښې د هغې بچي فیصله اوکړه: بیا دواړه د هغې ځائې نه اووتلې: او سلیمان بن داود (یعني د داؤد علیه السلام خوئې سلیمان علیه السلام) له راغلې: او دا واقعه ئې هغه ته بیان کړه: سلیمان علیه السلام اووې: یوه چاړه راوړئې: زه دا بچې دوه ټکړې کوم: او په دواړو ئې تقسیموم: هغې کشرې ښځې اووې: داسې مه کوه

تَفْعَلْ يَرْحَمُكَ اللّٰهُ هُوَ ابْنُهَا فَقَضٰى بِهٖ لِلصُّغْرٰى قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَؓ وَاللّٰهِ اِنْ سَمِعْتُ بِالسِّكِّيْنِ اِلَّا يَوْمَئِذٍ وَمَا كُنَّا نَقُوْلُ اِلَّا الْمُدْيَةَ.

خدائے دے تاسره بنه اوکړي، دا د دے بچے سهي (يعني خير دے دے لـه ئے ورکړه، خو په مينځ ئے مه نيسره) نو سليمان هغه بچے کشرے ښځے ته ورکړه. ابوهريرهؓ وائي، په خدائے م دے قسم وي، ما د سکين لفظ په دغه ورځ واوريدلو، کني مونږ خو به چاړے ته "مديه" وئيلے.

ف: (۱) که يو مشر حاکم يوه غلطه فيصله اوکړي، او يو کشر حاکم هغه فيصله صحيح کړي، نو دے کښ څه حرج نشته. د مشر حاکم په لمن په دے څه داغ نه راځي، ځکه چه د هغه فيصله د هغه د اجتهاد پوره صحيح ده.

(۲) دا قسم احاديث حاکمان وخت له مطالعه کول ډير ضروري دي.

**باب ۳۴۲: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَلَقَدْ اٰتَيْنَا لُقْمَانَ الْحِكْمَةَ اَنِ اشْكُرْ لِلّٰهِ اِلٰى قَوْلِهٖ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُوْرٍ وَلَا تُصَعِّرْ الْاِعْرَاضُ.**

**باب ۳۴۲:** آيت کريمه، او بيشکه مونږ لقمان ته حکمت عطا کړلو، چه د اللّٰه شکر کوه، فخور پورے. ولا تصعر: يعني مخ مه آړوه.

۶۴۸: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَلَمْ يَلْبِسُوْا اِيْمَانَهُمْ بِظُلْمٍ قَالَ اَصْحَابُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَيُّنَا لَمْ يَلْبِسْ اِيْمَانَهٗ بِظُلْمٍ فَنَزَلَتْ لَا تُشْرِكْ بِاللّٰهِ اِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيْمٌ.

۶۴۸: ابوالوليد. شعبه. اعمش. ابراهيم. علقمه. حضرت عبداللّٰهؓ نه روايت کوي، کوم وخت چه دا آيت نازل شو: کومو خلقو چه ايمان راوړلو، او هغوي خپل ايمان سره د ظلم آميزش اونه که، نو په مسلمانانو دا گرانه تيره شوه، هغوي اووے، يا رسول اللّٰه، مونږ کښ داسے څوک دے، چه هغه په ځان ظلم نه وي کړے، نو دا آيت نازل شو: اللّٰه سره شرک مه کوه، ځکه چه شرک ډير لوئے ظلم دے.

۶۴۹: حَدَّثَنِيْ اِسْحٰقُ اَخْبَرَنَا عِيْسَى بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِؓ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَلَمْ يَلْبِسُوْا اِيْمَانَهُمْ بِظُلْمٍ

۶۴۹: اسحٰق. عيسٰي بن يونس. اعمش. علقمه. حضرت عبداللّٰه نه روايت کوي، کوم وخت چه دا آيت نازل شو، کومو خلقو چه ايمان راوړلو، او هغوي خپل ايمان سره د ظلم آميزش اونه کړ، نو په مسلمانانو دا گرانه تيره شوه، هغوي اووے، يا رسول اللّٰه، مونږ کښ

...ذٰلِكَ عَلَى الْمُسْلِمِيْنَ فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَيُّنَا لَا يَظْلِمُ نَفْسَهُ قَالَ لَيْسَ ذٰلِكَ اِنَّمَا هُوَ الشِّرْكُ اَلَمْ تَسْمَعُوْا مَا قَالَ لُقْمَانُ لِابْنِهِ وَهُوَ يَعِظُهُ يَا بُنَيَّ لَا تُشْرِكْ بِاللّٰهِ اِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيْمٌ.

داسے څوک دے چه هغهٔ په خان ظلم نهٔ وي کړے حضورﷺ اوفرمائيل ذ ظلم نه دا ګناه مقصود نهٔ ده بلکه د دے نه مراد شرک دے آيا تاسو د لقمان قول خپل خوي ته نهٔ دے آوريدلے چه هغهٔ ورته نصيحت کولو اے خما خويه اللّٰه سره شرک مهٔ کوه څکه چه شرک ډير لوئے ظلم دے.

بَابُ ۳۴۳: وَاضْرِبْ لَهُمْ مَثَلًا اَصْحٰبَ الْقَرْيَةِ الْاٰيَةَ فَعَزَّزْنَا قَالَ مُجَاهِدٌ شَدَّدْنَا وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ طَآئِرُكُمْ مَصَائِبُكُمْ.

باب ۳۴۳: د فرمان خداوندي بيان او د هغوي مخکښې د کلي والو مثال بيان کړه چه هغوي ته پيغمبران راغلل مجاهد فرمائي ذ فعززنا معني دي مونږ مضبوط کړه ابن عباسؓ اوفرمائيل طائركم يعني ستاسو مصيبتونه.

بَابُ ۳۴۴: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى ذِكْرُ رَحْمَةِ رَبِّكَ عَبْدَهُ زَكَرِيَّا اِذْ نَادٰى رَبَّهُ نِدَآءً خَفِيًّا قَالَ رَبِّ اِنِّيْ وَهَنَ الْعَظْمُ مِنِّيْ وَاشْتَعَلَ الرَّاْسُ شَيْبًا اِلٰى قَوْلِهٖ لَمْ نَجْعَلْ لَّهُ مِنْ قَبْلُ سَمِيًّا قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍؓ مَثَلًا يُقَالُ رَضِيًّا مَرْضِيًّا عَتِيًّا عَصِيًّا يَعْتُوْ قَالَ رَبِّ اَنّٰى يَكُوْنُ لِيْ غُلَامٌ اِلٰى قَوْلِهٖ ثَلٰثَ لَيَالٍ سَوِيًّا وَ يُقَالُ صَحِيْحًا فَخَرَجَ عَلٰى قَوْمِهٖ مِنَ الْمِحْرَابِ فَاَوْحٰى اِلَيْهِمْ اَنْ سَبِّحُوْا بُكْرَةً وَّ عَشِيًّا فَاَوْحٰى فَاَشَارَ يَا يَحْيٰى خُذِ الْكِتَابَ بِقُوَّةٍ اِلٰى قَوْلِهٖ وَ يَوْمَ يُبْعَثُ حَيًّا حَفِيًّا لَطِيْفًا عَاقِرًا الذَّكَرُ وَالْاُنْثٰى سَوَاءٌ.

باب ۳۴۴: آيت کريمه ستا د رب د مهرباني ذکر ذ هغه بنده زکريا باندے کوم وخت چه هغهٔ خپل رب ته په پټه سوال اوکهٔ هغهٔ اووے اے ربه خما هډوکي کمزورے شوے دي او خما ويښته ذ بوډا توب نه سپين شولو سميًا پورے: ابن عباس اوفرمائيل سميا: معني ده په مثل د رضيا غوره. عتيا: يعني نافرمان. عتا يعتو ذ دے باب دے. زکريا اووے اے خما ربه خما خوئے څنګه کيدے شي. ليال سويا: پورے. سويًا: معني دي صحيح. بيا زکريا خپل قوم ته ذ عبادت خانے نه بهر راغے او هغوي ته ئے اشارے سره اووے سحر ماښام د خپل پروردګار پاکي بيانوئے اوحٰى: يعني اشاره ئے اوکړه. اے يحيي کتاب مضبوطي سره اونيسه. يبعث حيًا پورے: حفيا: يعني لطيف او مهربان. عاقرًا: کښې مذکر او مؤنث برابر دي.

۳۲۵۰: حَدَّثَنَا هُدْبَةُ بْنُ خَالِدٍ

۳۲۵۰: هدبه بن خالد. همام بن يحيي. قتاده.

حَدَّثَنَا هَمَّامُ ابْنُ يَحْيٰى حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ مَالِكِ بْنِ صَعْصَعَةَ اَنَّ نَبِيَّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدَّثَهُمْ عَنْ لَيْلَةِ اُسْرِيَ ثُمَّ صَعِدَ حَتّٰى اَتَى السَّمَآءَ الثَّانِيَةَ فَاسْتَفْتَحَ قِيْلَ مَنْ هٰذَا قَالَ جِبْرِئِيْلُ قِيْلَ وَمَنْ مَّعَكَ قَالَ مُحَمَّدٌ قِيْلَ وَقَدْ اُرْسِلَ اِلَيْهِ قَالَ نَعَمْ فَلَمَّا خَلَصْتُ فَاِذَا يَحْيٰى وَ عِيْسٰى وَهُمَا اِبْنَا خَالَةٍ قَالَ هٰذَا يَحْيٰى وَ عِيْسٰى فَسَلِّمْ عَلَيْهِمَا فَسَلَّمْتُ فَرَدَّا ثُمَّ قَالَ مَرْحَبًا بِالْاَخِ الصَّالِحِ وَالنَّبِيِّ الصَّالِحِ.

حضرت انس بن مالک. حضرت مالک صعصعه نه روایت کوي، رسول الله صلی الله علیه وسلم د شپ معراج کیفیت صحابه ؓ ته بیانولو، وې فرمائیل: جبرئیل پورته بوتلم، حتي چه دویم آسمان ته اورسیدو، هغه پرانستل غوښتل، تپوس ترې اوشو، څوک دي: هغه اووې، جبرئیل، تپوس ترې اوشو، تاسره څوک دي: هغه ورته اووې محمد صلي الله علیه وسلم دے. تپوس اوشو، آیا دے راغوښتلے شوے دے، هغه ورته اووې، او چه هلته اورسیدو، نو یحیٰی او عیسیٰ م اولیدل، او دا دواړه سره د ترور خامن (خاله‌زاد بھائی) وو. جبرئیل اووې، دا یحیٰی او عیسیٰ دي. دوي ته سلام اوکړه، ما ورته سلام اوکه. هغوي جواب راکړ، او، وئیلې اے برادر صالح، او نبي صالح مرحبا (په خیره راغلې).

ف: خاله: د مور خور. خاله‌زاد بھائی: د ترور خوئے.

بَاب ۳۴۵: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ مَرْيَمَ اِذِ انْتَبَذَتْ مِنْ اَهْلِهَا مَكَانًا شَرْقِيًّا اِذْ قَالَتِ الْمَلَائِكَةُ يٰمَرْيَمُ اِنَّ اللّٰهَ يُبَشِّرُكِ بِكَلِمَةٍ اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰى اٰدَمَ وَ نُوْحًا وَ اٰلَ اِبْرٰهِيْمَ وَ اٰلَ عِمْرٰنَ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ اِلٰى قَوْلِهٖ يَرْزُقُ مَنْ يَّشَاءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ وَ اٰلُ عِمْرٰنَ وَ اٰلُ يٰاسِيْنَ وَ اٰلُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنَّ اَوْلَى النَّاسِ بِاِبْرٰهِيْمَ لَلَّذِيْنَ اتَّبَعُوْهُ وَهُمُ الْمُؤْمِنُوْنَ وَ يُقَالُ اٰلُ يَعْقُوْبَ

باب ۳۴۵: آیت کریمه، او کتاب کښې د مریم ذکر اوکړه: هر کله چه هغه د خپل کور والو نه مشرقي مکان کښې جدا شوه: چه فرښتو اووې، اے مریم، الله تعالي تا ته د یوے خبرے خوشخبري درکوي، بیشکه الله تعالي آدمؑ او نوحؑ او آل ابراهیمؑ او آل عمران په تمام جهان والو برگزیده کړل، بغیر حساب: پورې ابن عباسؓ اوفرمائیل: چه آل عمران نه آل ابراهیم، آل عمران، آل یاسین او د آل محمد صلي الله علیه وسلم مؤمنان مراد دي: الله تعالي فرمائي تمام خلقو کښې د ابراهیمؑ د ټولو نه زیات قریب د هغهٔ متبعین (پیروي کونکي) دي، او دا مسلمانان دي: وئیلے شي چه آل یعقوب نه اهل یعقوب مراد دي چه:

أَهْلُ يَعْقُوبَ فَإِذَا صَغَّرُوا رَدُّوهُ إِلَى الْأَصْلِ قَالُوا أُهَيْلُ.

آل تصغير اوشي او اهل ته بوتلے شي، نو اهيل به وئيلے شي.

۱۵۱ : حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ قَالَ قَالَ أَبُوْ هُرَيْرَةَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَا مِنْ بَنِيْ اٰدَمَ مَوْلُوْدٌ إِلَّا يَمَسُّهُ الشَّيْطَانُ حِيْنَ يُوْلَدُ فَيَسْتَهِلُّ صَارِخًا مِنْ مَسِّ الشَّيْطَانِ غَيْرَ مَرْيَمَ وَابْنِهَا ثُمَّ يَقُوْلُ أَبُوْ هُرَيْرَةَ وَ إِنِّيْ أُعِيْذُهَا بِكَ وَ ذُرِّيَّتَهَا مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ.

۱۵۱ : ابواليمان. شعيب. زهري. سعيد بن مسيب. حضرت ابوهريرةؓ نه روايت كوي، ما دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل، چه بني آدمو كښې څوك بچے پيدا شي شيطان هغه مَس كوي، نو هغه چغه كړي، آواز اوچت كړي، دَ شيطان دَ مس كولو په وجه، خو مريم او دَ هغې څوي (بانديے دَ شيطان دا اثر اونهٔ شولو) بيا ابوهريرةؓ فرمائي (چه دَدے وجه دَ مريم دَ مور دا دُعا ده) چه زهٔ دا، او دَدے اولاد دَ شيطان مردود نه ستا پناه كښې دركوم.

باب ۳۴۶: وَ إِذْ قَالَتِ الْمَلٰٓئِكَةُ يٰمَرْيَمُ إِنَّ اللّٰهَ اصْطَفَاكِ وَ طَهَّرَكِ وَاصْطَفَاكِ عَلٰى نِسَآءِ الْعٰلَمِيْنَ يَا مَرْيَمُ اقْنُتِيْ لِرَبِّكِ وَاسْجُدِيْ وَارْكَعِيْ مَعَ الرّٰكِعِيْنَ ذٰلِكَ مِنْ أَنْبَاءِ الْغَيْبِ نُوْحِيْهِ إِلَيْكَ وَمَا كُنْتَ لَدَيْهِمْ إِذْ يُلْقُوْنَ أَقْلَامَهُمْ أَيُّهُمْ يَكْفُلُ مَرْيَمَ وَمَا كُنْتَ لَدَيْهِمْ إِذْ يَخْتَصِمُوْنَ يُقَالُ يَكْفُلُ يَضُمُّ كَفَلَهَا ضَمَّهَا مُخَفَّفَةٌ لَيْسَ مِنْ كَفَالَةِ الدُّيُوْنِ وَ شِبْهِهَا.

باب ۳۴۶: آيت كريمه، او كوم وخت چه فريښتو اووے، اے مريم، اللّٰه تهٔ بر گزيده كړے، او تهٔ ئے پاكه كړے، او دَ دنيائے جهان په ښځو ئے تهٔ بر گزيده كړے، اے مريم، دَ خپل رب عبادت كوه، او سجده كوه او ركوع كونكو سره ركوع كوه. دا دَ غيب خبرونه دي، چه د هغے مونږ تاته وحي كوو، او تهٔ هغه وخت هغوي سره نهٔ وے، چه هغوي خپل قلمونه (دَ قرعے په طور) غرځول، چه څوک به دَ مريم پرورش كوي، او تهٔ هغه وخت هغوي سره نهٔ وے، چه هغوي (دَدے پرورش متعلق) جگړه كوله. وئيلے شي، يكفل: يعني يوځائے كوي. كفلها: يعني هغه ئے يوځائے كهٔ. دا بغير تشديد نه دے، او كفالت ديون سره دَ دے هيڅ تعلق نشته.

۱۵۲ : حَدَّثَنِيْ أَحْمَدُ بْنُ أَبِيْ رَجَاءَ حَدَّثَنَا النَّضْرُ عَنْ هِشَامٍ قَالَ

۱۵۲ : احمد بن ابو رجاء. نضر. هشام. دَ هغهٔ پلار. عبداللّٰه بن جعفر. حضرت عليؓ

اَخْبَرَنِي اَبِيْ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ جَعْفَرٍ قَالَ سَمِعْتُ عَلِيًّا يَقُوْلُ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ خَيْرُ نِسَائِهَا مَرْيَمُ ابْنَةُ عِمْرَانَ وَ خَيْرُ نِسَائِهَا خَدِيْجَةُ.

نه روايت کوي، ما ذَ رسالت مآب صلي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل، مخکني اُمت کښې ذَ ټولو نه بهتره مريمؑ بنت عمران ده او دے اُمت کښې ذَ ټولو نه بهتر خديجهؓ ده.

باب ۲۴۷: قَوْلِهٖ تَعَالٰى اِذْ قَالَتِ الْمَلٰٓئِكَةُ يَا مَرْيَمُ اِلٰى قَوْلِهٖ فَاِنَّمَا يَقُوْلُ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنُ يَبْشُرُكِ وَ يُبَشِّرُكِ وَاحِدٌ وجِيْهًا شَرِيْفًا وَّ قَالَ اِبْرَاهِيْمُ الْمَسِيْحُ الصِّدِّيْقُ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ الْكَهْلُ الْحَلِيْمُ وَالْاَكْمَهُ مَنْ يُّبْصِرُ بِالنَّهَارِ وَلَا يُبْصِرُ بِاللَّيْلِ وَ قَالَ غَيْرُهٗ مَنْ يُّوْلَدُ اَعْمٰى.

باب ۲۴۷: فرمان خداوندي، او کوم وخت چه فريښتو اووے، اے مريم، کن فيکون پورے. يَبْشُرُکِ او يُبَشِّرُکِ يو معني لري. وجيهًا يعني شريف او معزز ابراهيم اوفرمائيل، المسيح يعني صديق. مجاهد اوفرمائيل، الكهل يعني بردبار. الاکمه: چه ذَ ورځے ئے نظر لري او ذَ شپے ئے نظر نهٔ لري. نورو خلقو اووے، چه ذَ اکمه: معني ذَ مور نه پيدا ړوند (مادر زاد نابينا).

۲۵۳: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ قَالَ سَمِعْتُ مُرَّةَ الْهَمْدَانِيَّ يُحَدِّثُ عَنْ اَبِيْ مُوْسَى الْاَشْعَرِيِّ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَضْلُ عَائِشَةَ عَلَى النِّسَآءِ كَفَضْلِ الثَّرِيْدِ عَلٰى سَائِرِ الطَّعَامِ كَمُلَ مِنَ الرِّجَالِ كَثِيْرٌ وَلَمْ يَكْمُلْ مِنَ النِّسَآءِ اِلَّا مَرْيَمُ بُنَتُ عِمْرَانَ وَ اٰسِيَةُ امْرَاَةُ فِرْعَوْنَ وَ قَالَ ابْنُ وَهْبٍ اَخْبَرَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ سَعِيْدُ الْمُسَيَّبِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ نِسَآءُ

۲۵۳: آدم. شعبه. عمرو بن مره. مره. ابو موسٰي اشعري نه روايت کوي، نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، ذَ عائشےؓ فضيلت په ټولو ښځو داسے دے لکه خوروا کښې ذَ ماتے ډوډي فضيلت چه په نورو طعامونو دے، نارينه ؤ کښې خو ډير کامل شوے دي، خو زنانه ؤ کښې سِوا ذَ مريم بنت عمران او آسيے (ښځے ذَ فرعون) نه څوک کاملے شوے نهٔ دي، ابن وهب، يونس، ابن شهاب، سعيد بن مسيب، حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، ما ذَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل، ذَ قريشو ښځے په اُوښانو ذَ سوريدونکو ټولو ښځو (يعني ذَ عربو ذَ ښځو) نه بهترے دي. ذَ ټولو نه زيات بچي سره محبت لرونکي او ذَ خاوند ذَ مال حفاظت کونکي دي. دے نه پس ابو هريرهؓ فرمائي، مريم بنت عمران هيڅ کله

قُرَيْشٍ خَيْرُ نِسَآءٍ رَّكِبْنَ الْإِبِلَ اَحْنَاهُ عَلٰى طِفْلٍ وَ اَرْعَاهُ عَلٰى زَوْجٍ فِيْ ذَاتِ يَدِهٖ يَقُوْلُ اَبُوْ هُرَيْرَةَ عَلٰى اِثْرِ ذٰلِكَ وَلَمْ تَرْكَبْ مَرْيَمُ بِنْتُ عِمْرَانَ بَعِيْرًا قَطُّ تَابَعَهُ ابْنُ اَخِيْ الزُّهْرِيِّ وَ اِسْحٰقُ الْكَلْبِيُّ عَنِ الزُّهْرِيِّ. قَوْلُهٗ يَا اَهْلَ الْكِتَابِ لَا تَغْلُوْا فِيْ دِيْنِكُمْ وَلَا تَقُوْلُوْا عَلَى اللّٰهِ اِلَّا الْحَقَّ اِنَّمَا الْمَسِيْحُ عِيْسَى بْنُ مَرْيَمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ وَ كَلِمَتُهٗ اَلْقَاهَا اِلٰى مَرْيَمَ وَ رُوْحٌ مِّنْهُ فَاٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَ رُسُلِهٖ وَلَا تَقُوْلُوْا ثَلٰثَةٌ اِنْتَهُوْا خَيْرًا لَّكُمْ اِنَّمَا اللّٰهُ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ سُبْحَانَهٗ اَنْ يَّكُوْنَ لَهٗ وَلَدٌ لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ وَ كَفٰى بِاللّٰهِ وَكِيْلًا قَالَ اَبُوْ عُبَيْدٍ كَلِمَتُهٗ كُنْ فَكَانَ وَ قَالَ غَيْرُهٗ وَ رُوْحٌ مِّنْهُ اَحْيَاهُ فَجَعَلَهٗ رُوْحًا وَلَا تَقُوْلُوْا ثَلٰثَةٌ.

په اُوښ سوره شوې نه ده. ددې متابع حديث د زهري وراره او اسحٰق کلبي ذ زهري نه روايت کړې دې. او قول خداوندي اې اهل کتابو خپل دين کښې زياتې مه کوئې، او ذ خدائې شان کښې غلطه خبره مه کوئې. مسيح عيسٰي بن مريم خو نور څۀ نۀ دې، البته ذ الله رسول او ذ هغۀ کلمه ده، چه هغه الله مريم ته رسولې ده، او ذ هغه ذ طرف نه يو روح دې، نو تاسو په الله او ذ هغۀ په رسولانو ايمان راوړئې، او داسې مۀ وائې، چه (خدايان) درې دي، دې خبرې نه منع شئې، دا تاسو ذ پاره بهتره ده، معبود حقيقي خو صرف يو دې، هغه ذ صاحب اولاد کيدونه پاک دې، څۀ چه آسمانونو او زمکه کښې دي، ټول ذ هغۀ ملکيت دې، او الله تعالٰي کارساز کيدو ذ پاره کافي دې. ابو عبيد وائي، ذ کلمې نه مراد (ذ الله دا فرمائيل دي) کُن (اوشه) نو هغه کار اوشي. نور خلق وائي، چه روح منه دا معني دي، چه الله هغه ژوندې کۀ، او روح ئې ورکۀ، او دا مۀ وائې، چه (خدايان) درې دي.

۳۲۵۴ : حَدَّثَنَا صَدَقَةُ الْفَضْلِ حَدَّثَنَا الْوَلِيْدُ عَنِ الْاَوْزَاعِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُمَيْرُ بْنُ هَانِئٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ جُنَادَةُ بْنُ اَبِيْ اُمَيَّةَ عَنْ عُبَادَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ شَهِدَ اَنْ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَا شَرِيْكَ لَهٗ وَ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَ رَسُوْلُهٗ وَ اَنَّ عِيْسٰى عَبْدُ اللّٰهِ وَرَسُوْلُهٗ وَ كَلِمَتُهٗ اَلْقَاهَا اِلٰى مَرْيَمَ وَ

۳۲۵۴ : صدقه بن فضل. وليد. اوزاعي. عمير بن هاني. جناده بن ابو اميه. عبادهؓ روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، چا چه ذ دې خبرې کواهي ورکړه چه ذ الله نه سِوا بل څوک معبود نشته. هغه يو دې، ذ هغه هيڅوک شريک نشته، او محمد صلي الله عليه وسلم ذ هغۀ بنده او رسول دې، او عيسٰي عليه السلام ذ هغۀ بنده او رسول دې، او هغه ذ هغۀ کلمه ده، چه هغه مريم ته رسولې ده، او ذ هغه ذ طرف نه يو روح دې. او جنت حق دې. او دوزخ حق دې، نو الله

رُوْحٌ مِّنْهُ وَالْجَنَّةُ حَقٌّ وَالنَّارُ حَقٌّ اَدْخَلَهُ اللّٰهُ الْجَنَّةَ عَلٰى مَا كَانَ مِنَ الْعَمَلِ قَالَ الْوَلِيْدُ حَدَّثَنِيْ ابْنُ جَابِرٍ عَنْ عُمَيْرٍ عَنْ جُنَادَةَ وَ زَادَ مِنْ اَبْوَابِ الْجَنَّةِ الثَّمَانِيَةِ اَيَّهَا شَآءَ.

تعالٰي به هغه جنت کښې داخل کړي، څنګه چه عمل کوي. ولید دَ ابن جابر، عمیر، جناده په واسطه دا الفاظ زیات کړے دي، دَ جنت د اتو دروازو نه په کومه (دروازه) غواړئ اللّٰه به ئے جنت کښې داخل کړي (اللّٰه پاک دے خمونږ هم نصیب کړي. اللّٰهم آمین).

بَابُ ۳۴۸: وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ مَرْيَمَ اِذَا نْتَبَذَتْ مِنْ اَهْلِهَا نَبَذْنَاهُ اَلْقَيْنَا اِعْتَزَلَتْ شَرْقِيًّا مِمَّا يَلِي الشَّرْقَ فَاَجَآءَهَا اَفْعَلْتُ مِنْ جِئْتُ وَ يُقَالُ اَلْجَاَهَا اِضْطَرَّهَا تُسَاقِطْ تَسْقُطْ قَصِيًّا قَاصِيًا فَرِيًّا عَظِيْمًا قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ نَسِيًّا لَمْ اَكُنْ شَيْئًا وَّ قَالَ غَيْرُهُ النَّسِيُّ الْحَقِيْرُ وَ قَالَ اَبُوْ وَائِلٍ عَلِمَتْ مَرْيَمُ اَنَّ التَّقِيَّ ذُوْ نُهْيَةٍ حِيْنَ! قَالَتْ اِنْ كُنْتَ تَقِيًّا قَالَ وَكِيْعٌ عَنْ اِسْرَائِيْلَ عَنْ اَبِيْ اِسْحَاقَ عَنِ الْبَرَاءِ سَرِيًّا نَهْرٌ صَغِيْرٌ بِالسُّرْيَانِيَّةِ.

باب ۳۴۸: دَ دے فرمان الٰهي بیان چه کتاب کښې دَ مریم ذکر اوکړه، کوم وخت چه هغه دَ خپل کوروالو نه جُدا شوه. نبذناه: یعني مونږ هغه اُوغرځوله، هغه جُدا شوله. شرقیًا: یعني هغه ګُټ چه مشرق طرف ته وو. فاجاء ها: دا دَ جئتُ باب افعال دے. اووئیلے شوے دي چه دَ دے معنی الجاها: یعني مجبوره او مضطره ئے کړه. تساقط: یعني اوبه غرځوي. قصیًا: یعني لرے، فریًا: یعني لویه خبره. ابن عباسؓ وائي نسیًا: معني دي، چه زۀ هیڅ څیز نۀ وے، نورو خلقو اووے، چه نسي: حقیر ته وائي. ابو وائل فرمائي، مریم په دے خبره پوهیدله، چه متقي عقل مند وي، یعني دَ خرابو خبرو نه بچ کیږي، څکه خو هغے اووے، که تۀ پرهیزګار ئے. وکیع، اسرائیل، ابو اسحاق دَ براء نه نقل کړے دے، چه سَریا: سریاني ژبه کښې وړو کي نهر ته وائي.

۶۵۵: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا جَرِيْرُ بْنُ حَازِمٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيْرِيْنَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَمْ يَتَكَلَّمْ فِي الْمَهْدِ اِلَّا ثَلٰثَةٌ عِيْسٰى وَ كَانَ فِيْ بَنِيْ

۶۵۵: مسلم بن ابراهیم. جریر بن حازم. محمد بن سیرین. ابوهریرهؓ نه روایت کوي، نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، زانګو کښې صرف درے بچو خبرے کړے دي. عیسٰیؑ او بني اسرائیلو کښې یو سړے وو، چه دَ هغهٔ نوم جریج وو. هغه مونځ کولو، نو دَ هغهٔ مور هغهٔ ته آواز ورکړهٔ، هغه (خپل زړهٔ کښې) اووے، آیا زۀ دے له جواب ورکړم، که مونځ جاري اوساتم، دَ هغهٔ مور ورته

إِسْرَائِيلَ رَجُلٌ يُقَالُ لَهُ جُرَيْجٌ كَانَ يُصَلِّيْ جَاءَتْهُ أُمُّهُ فَدَعَتْهُ فَقَالَ أُجِيْبُهَا أَوْ أُصَلِّيْ فَقَالَ اللّٰهُمَّ لَا تُمِتْهُ حَتّٰى تُرِيَهُ وُجُوْهَ الْمُوْمِسَاتِ وَ كَانَ جُرَيْجٌ فِيْ صَوْمَعَتِهٖ فَتَعَرَّضَتْ لَهُ امْرَأَةٌ وَ كَلَّمَتْهُ فَأَبٰى فَأَتَتْ رَاعِيًا فَأَمْكَنَتْهُ مِنْ نَفْسِهَا فَوَلَدَتْ غُلَامًا فَقَالَتْ مِنْ جُرَيْجٍ فَأَتَوْهُ فَكَسَرُوْا صَوْمَعَتَهُ وَ أَنْزَلُوْهُ وَ سَبُّوْهُ فَتَوَضَّأَ وَ صَلّٰى ثُمَّ أَتَى الْغُلَامَ فَقَالَ مَنْ أَبُوْكَ يَا غُلَامُ فَقَالَ الرَّاعِيْ قَالُوْا نَبْنِيْ صَوْمَعَتَكَ مِنْ ذَهَبٍ قَالَ لَا إِلَّا مِنْ طِيْنٍ وَ كَانَتِ امْرَأَةٌ تُرْضِعُ ابْنًا لَهَا مِنْ بَنِيْ إِسْرَائِيْلَ فَمَرَّ بِهَا رَجُلٌ رَاكِبٌ ذُوْ شَارَةٍ فَقَالَتِ اللّٰهُمَّ اجْعَلِ ابْنِيْ مِثْلَهُ فَتَرَكَ ثَدْيَهَا وَ أَقْبَلَ عَلَى الرَّاكِبِ فَقَالَ اللّٰهُمَّ لَا تَجْعَلْنِيْ مِثْلَهُ ثُمَّ أَقْبَلَ عَلٰى ثَدْيِهَا يَمُصُّهُ قَالَ أَبُوْ هُرَيْرَةَ كَأَنِّيْ أَنْظُرُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمُصُّ إِصْبَعَهُ ثُمَّ مُرَّ بِأَمَةٍ فَقَالَتِ اللّٰهُمَّ لَا تَجْعَلِ ابْنِيْ مِثْلَ هٰذِهٖ فَتَرَكَ ثَدْيَهَا فَقَالَ اللّٰهُمَّ اجْعَلْنِيْ مِثْلَهَا فَقَالَتْ

بددُعا اوکړه، چه اے الله څو پورے چه دے د زانیه ښځو صورت اونه وینـي، دۀ لـه دے مرګ رانشي. نو جریج خپلے عبادت خانه کښ وو، یوه ورځ یوه ښځه هغه له راغله، او څۀ خبرے ئے ورسره اوکړے، خو هغۀ ذ هغے د خواهش پوره کولو نه انکار اوکۀ، بیا هغه یو ګډبه له ورغله، او هغۀ له ئے په ځان قابو ورکۀ. بیا ذ هغے نه یو هلک پیدا شو، نو هغے اووے، دا ذ جریج خونے دے. خلق جریج له راغلل، او ذ هغۀ عبادت خانه ئے ماته کړه، هغه ئے خکته راکوز کړلو، اووے کنځلو، جریج اودس اوکه، او مونځ ئے اوکه، او هغے بچي له راغے، ورته ئے اووے. اے بچے، ستا پلار څوک دے، هغے بچي اووے، ګډبه (چړواها). اوس ورتـه خلقو اووے چه مونږ ستا عبادت خانه ذ سرو زرو جوړ وو، هغۀ ورته اووے، نه، ذ خاورونے جوړه کړئے. او ذ بني اسرائیلو یوے ښځے بچي له پئے ورکول ذ هغے خوا کښ یو خوبصورته سور تیر شولو، هغه ښځے اووے، اے خدایه، څما دا بچے ذدۀ په شان کړے، نو هغے بچي ذ مور تے پریښودلو هغے سور طرف تـه متوجه شو، وئیلے، اے خدایه، ما ذدۀ په شان مۀ کړے، بیا هغه بچے تي طرف ته متوجه شو، او رَوَل ئے شروع کړل، ابوهریرهؓ فرمائي، ګویا زۀ اوس رسول الله صلي الله علیه وسلّم وینم، چه حضورؐ خپله ګوته رَوي، او ذ هغے بچي ذ پیۆ څکلو حالت ښائي بیا ذ هغے ښځے خوا کښ یوه وینزه تیره شوه، نو هغے اووے، اے خدایه، څما خونے ذدے وینزے په شان مۀ کړے، نو هغے بچي تے پریښودلو، او وے وئیل، اے خدایه، ما ذدے په شان کړے. مور ترے تپوس اوکۀ، دا ولے، بچي

لِمَ ذَاكَ فَقَالَ الرَّاكِبُ جَبَّارٌ مِنَ الْجَبَابِرَةِ وَ هٰذِهِ الْاَمَةُ يَقُوْلُوْنَ سَرَقْتِ زَنَيْتِ وَلَمْ تَفْعَلْ.

ورته اووې، هغه سور خو دَ ظالمانو له يو ظالم وو، او ددې وينزې متعلق خلق وائي، چه تا غلا كړې ده، تا زِنا كړې ده. حالانكه هغې هيڅ نهٔ دي كړې.

**ف:** كهواره (ځانګو) كښې صرف درې بچو خبرې كړې دي (۱) عيسٰي عليه السلام (۲) دويم بني اسرائيلو كښې جريج نومې يو عابد، چه هغهٔ باندې يوې ښځې په دروغه دَ زنا الزام اولګولو، چه هغې بچې دَ جريج نه راوړې دې، حالانكه هغه ئې دَ يو ګډبه نه (زنا سره) راوړې وو، نو هغې بچي خپله ګواهي اوكړه چه زهٔ دَ ګډبه خوي يم، نه چه دَ جريج عابد. (۳) دريم دَ بني اسرائيلو دَ يوې ښځې بچئ دَ مور د دُعا برعكس خبرې اوكړې، چه خدايه ما دَ هغې ظالم سور په شانتې مهٔ كړې، بلكه ما دَ هغې بې ګناه وينزې په شان كړې، چه خلقو پرې دَ زنا تهمت لګوي. حالانكه هغه بيخي بې ګناه ده.

۲۵۶ : حَدَّثَنِيْ اِبْرٰهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنْ مَعْمَرٍ ح وَ حَدَّثَنِيْ مَحْمُوْدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةَ اُسْرِيَ بِهٖ لَقِيْتُ مُوْسٰى قَالَ فَنَعَتَهُ فَاِذَا رَجُلٌ حَسِبْتُهُ قَالَ مُضْطَرِبٌ رَجِلُ الرَّأْسِ كَاَنَّهُ مِنْ رِجَالِ شَنُوْءَةَ قَالَ وَلَقِيْتُ عِيْسٰى فَنَعَتَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ رَبْعَةٌ اَحْمَرُ كَاَنَّمَا خَرَجَ مِنْ دِيْمَاسٍ يَعْنِي الْحَمَّامَ وَ رَاَيْتُ اِبْرٰهِيْمَ وَ اَنَا اَشْبَهُ وُلْدِهٖ بِهٖ قَالَ وَ اُتِيْتُ بِاِنَاءَيْنِ اَحَدُهُمَا لَبَنٌ وَالْاٰخَرُ فِيْهِ خَمْرٌ فَقِيْلَ لِيْ خُذْ اَيَّهُمَا شِئْتَ فَاَخَذْتُ اللَّبَنَ فَشَرِبْتُهُ فَقِيْلَ لِيْ هُدِيْتَ الْفِطْرَةَ اَوْ اَصَبْتَ الْفِطْرَةَ اَمَا

۲۵۶ : ابراهيم بن موسٰي. هشام. معمر. (دويم سند) محمود. عبدالرزاق. معمر. زهري. سعيد بن مسيب. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ شب معراج سلسله كښې اوفرمائيل، چه زهٔ موسٰيؑ سره يو ځائې شوم، ابوهريرهؓ وائي، حضورؐ دَ هغهٔ حليه بيان كړه، چه هغه (عبدالرزاق وائي، زهٔ ګومان كوم) دراز قامت، نيغ ويښتو واله وو، ګويا هغه دَ (قبيله) شنوهٔ يو سړې دې. حضورؐ اوفرمائيل، او زهٔ عيسٰيؑ سره يو ځائې شوم، نو دَ هغهٔ حُليه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم داسې بيان كړه، چه دَ متوسط قد دَ سُر رنګ سړې دې، ګويا دَ حمام نه اُوس راوتلې دې. او ما ابراهيم عليه السلام اوليد، او زهٔ دَ هغهٔ اولاد كښې دَ ټولو نه زيات دَ هغهٔ مشابه يم. حضورؐ اوفرمائيل. بيا ماته دوه پيالې راوړې شوې. يو كښې پئې او دويم كښې شراب وو، ماته اووئيلې شو، دې كښې چه كومه يوه غواړې، هغه واخله. م[illegible] پياله اوڅكله نو ماته اووئيلې شو [illegible] دَ فط[illegible] لاره [illegible]ده [illegible] دائې اوفرمائيل، چه ته فطرت ته [illegible] تا سراب اخستې وې نو

اِنَّكَ لَوْ اَخَذْتَ الْخَمْرَ غَوَتْ اُمَّتُكَ.

۲۵۷ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ اَخْبَرَنَا عُثْمَانُ ابْنُ الْمُغِيْرَةَ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاَيْتُ عِيْسٰى وَ مُوْسٰى وَ اِبْرٰهِيْمَ فَاَمَّا عِيْسٰى فَاَحْمَرُ جَعْدٌ عَرِيْضُ الصَّدْرِ وَ اَمَّا مُوْسٰى فَاٰدَمُ جَسِيْمٌ سَبْطٌ كَاَنَّهٗ مِنْ رِّجَالِ الزُّطِّ.

۲۵۸ : حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا اَبُوْ ضَمْرَةَ حَدَّثَنَا مُوْسٰى عَنْ نَّافِعٍ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ ذَكَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا بَيْنَ ظَهْرِيْ اِلَى النَّاسِ الْمَسِيْحَ الدَّجَّالَ فَقَالَ اِنَّ اللّٰهَ لَيْسَ بِاَعْوَرَ اَلَا اِنَّ الْمَسِيْحَ الدَّجَّالَ اَعْوَرُ الْعَيْنِ الْيُمْنٰى كَاَنَّ عَيْنَهٗ عِنَبَةٌ طَافِيَةٌ وَ اَرَانِي اللَّيْلَةَ عِنْدَ الْكَعْبَةِ فِي الْمَنَامِ فَاِذَا رَجُلٌ اٰدَمُ كَاَحْسَنِ مَا يُرٰى مِنْ اُدْمِ الرِّجَالِ تَضْرِبُ لِمَّتُهٗ بَيْنَ مَنْكِبَيْهِ رَجِلُ الشَّعْرِ يَقْطُرُ رَاْسُهٗ مَآءً وَاضِعًا يَدَيْهِ عَلٰى مَنْكِبَيْ رَجُلَيْنِ وَهُوَ يَطُوْفُ بِالْبَيْتِ فَقُلْتُ مَنْ هٰذَا فَقَالُوْا هٰذَا الْمَسِيْحُ بْنُ مَرْيَمَ ثُمَّ رَاَيْتُ رَجُلًا وَرَآءَهٗ جَعْدًا قَطِطًا اَعْوَرَ عَيْنِ الْيُمْنٰى كَاَشْبَهِ مَنْ رَّاَيْتُ بِابْنِ

ستا اُمت به گمراه شوے وے.

۲۵۷ : محمد بن کثیر. اسرائیل. عثمان بن مغیره. مجاهد. حضرت ابن عمرؓ نه روایت کوي' نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل' ما عیسیٰؑ' موسیٰؑ او ابراهیمؑ (شب معراج کښې) اولیدل' عیسیٰؑ د سُرِ رنګ' پیچیده (ولول) ویښتو او دَ پلنې سینې سړے وو. پاتې شو موسیٰؑ' نو هغه غنم رنګے او د غټو تازه نیغو ویښتو سړے وو. ګویا هغه دَ (قبیلهٔ) زط یو سړے دے.

۲۵۸ : ابراهیم بن منذر. ابو ضمره. موسیٰ. نافع. عبداللّٰهؓ نه روایت کوي' نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم خلقو مخکښې دَ مسیح دجّال ذکر اوکړ' نو حضورؐ اوفرمائیل' اللّٰه تعالیٰ کانړا نهٔ دے' ګورے دَ مسیح دجّال ښئے سترګه کانړې (ړنده) ده. دَ هغهٔ سترګه دَ پړسیدلے انګور په شان پورته راختلے ده. او دَ شپے ما خپل ځان خوب کښې کعبې سره اولید' نو یو غنم رنګے سړے مې اولید' څنګه چه تاسو به دَ بهترین رنګ غنم رنګے سړي لیدلے وي' دَ هغے نه هم ښهٔ وو' دَ هغهٔ ویښتهٔ دواړو اوږو پورے نیغ را آویزاند وو. دَ هغهٔ دَ سر نه اُوبه څڅیدلے. دَ دوو سړو په اوږونے لاس ایښے وو' او دَ بیت اللّٰه طواف ئے کولو' ما تپوس اوکهٔ' دا څوک دے' جواب راکړے شو' چه عیسيٰ بن مریم دے' بیا ما هغهٔ پسے یو سړے اولید' چه دَ سخت وَلْوَلْ ویښتو خاوند وو' چه په ښئے سترګه کانړے وو' چه ابن قطن (کافر) سره زیات مشابه وو دَ یو سړي په دواړو

قَطَنٍ وَّاضِعًا يَدَيْهِ عَلٰى مَنْكِبَيْ رَجُلٍ يَطُوْفُ بِالْبَيْتِ فَقُلْتُ مَنْ هٰذَا قَالُوا الْمَسِيْحُ الدَّجَّالُ تَابَعَهُ عُبَيْدُ اللّٰهِ عَنْ نَّافِعٍ.

اوږدوئے لاس ایښے دَ بیت اللّٰه نه چاپیره چورلیدلو. ما تپوس اوکـهٔ، دا څوک دے، جواب اوشو، دا مسیح دجّال دے. دَ دے متابع حدیث عبیدالله دَ نافع نه ذکر کړے دے.

۶۵۹ : حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْمَكِّيُّ قَالَ سَمِعْتُ اِبْرٰهِيْمَ ابْنَ سَعْدٍ قَالَ حَدَّثَنِي الزُّهْرِيُّ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ لَا وَاللّٰهِ مَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِعِيْسٰى اَحْمَرُ وَلٰكِنْ قَالَ بَيْنَمَا اَنَا نَائِمٌ اَطُوْفُ بِالْكَعْبَةِ فَاِذَا رَجُلٌ اٰدَمُ سَبْطُ الشَّعْرِ يُهَادِيْ بَيْنَ رَجُلَيْنِ يَنْطُفُ رَاْسُهُ مَآءً اَوْ يُهْرَاقُ رَاْسُهُ مَاءً فَقُلْتُ مَنْ هٰذَا قَالُوا ابْنُ مَرْيَمَ فَذَهَبْتُ اَلْتَفِتُ فَاِذَا رَجُلٌ اَحْمَرُ جَسِيْمٌ جَعْدُ الرَّاْسِ اَعْوَرُ عَيْنِ الْيُمْنٰى كَاَنَّ عَيْنَهُ عِنَبَةٌ طَافِيَةٌ قُلْتُ مَنْ هٰذَا قَالُوا هٰذَا الدَّجَّالُ وَ اَقْرَبُ النَّاسِ بِهٖ شَبْهًا ابْنُ قَطَنٍ قَالَ الزُّهْرِيُّ رَجُلٌ مِّنْ خُزَاعَةَ هَلَكَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ.

۶۵۹ : احمد بن محمد مكي. ابراهيم بن سعد. زهري. سالم دَ خپل پلار نه روايت کوي هغه فرمائي په خدائے چه نبي صلي الله عليه وسلّم عيسٰي ته دَ سُر رنګ نهٔ وو وئيلے. ليکن حضورؐ دا اوفرمائيل، چه يو ورځ ما خوب کښ دَ کعبے طواف کولو، نو اووم ليدل، چه يو غنم رنګے دَ نيغو ويښتو سړے دَ دوو سړو په مينځ کښ روان دے، دَ خپل سر نه ئے اُوبه نچوړي کولے يا دَ خپل سر نه ئے اُوبه تويولے. ما اووے، دا څوک دے. خلقو اووے. دا ابن مريم دے. ما اخوا ديخوا اوکتل، نو څهٔ ګورم، چه دَ سُر رنګ يو غټ سړے پيڅيده ويښتو واله په ښئے ستر ګه کانړے، چه دَ هغهٔ ستر ګه دَ پړسيدلے انګور په شان وه، موجود دے. ما اووے، دا څوک دے، خلقو اووے، دا دجّال دے، او هغهٔ سره دَ ټولو نه زيات مشابه ابن قطن دے. زهري اووے. ابن قطن دَ قبيلهٔ خزاعه يو سړے وو، چه دَ جاهليت زمانه کښ مړ شوے وو.

۶۶۰ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اَنَا اَوْلَى النَّاسِ بِابْنِ مَرْيَمَ وَالْاَنْبِيَاءُ

۶۶۰ : ابواليمان. شعيب. زهري. ابو سلمه. ابوهريرةؓ نه روايت کوي، ما رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه واوريدل، چه زهٔ ابن مريم ته دَ ټولو نه زيات قريب يم، او ټول انبياءُ خپلو کښ (ګويا) علاتي وروڼړه دي، چه پلار يو او مور جُدا جُدا، نو دا شان انبياء دَ دين په اُصولو کښ متحد او فروع کښ دَ زمانے دَ لحاظ نه

اَوْلَادُ عَلَّاتٍ لَيْسَ بَيْنِي وَ بَيْنَهُ نَبِيٌّ. مختلف دي، او څما او د عيسیٰ په مينځ کښ څوک نبي نشته.

ف: علاتي ورور: چه پلار ئے يو، او ميندے جُدا جُدا وي.

۲۶۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ حَدَّثَنَا فُلَيْحُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا هِلَالُ بْنُ عَلِيٍّ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِي عَمْرَةَ عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَا اَوْلَى النَّاسِ بِعِيْسَى بْنِ مَرْيَمَ فِي الدُّنْيَا وَ الْاٰخِرَةِ وَالْاَنْبِيَاءُ اِخْوَةٌ لِعَلَّاتٍ اُمَّهَاتُهُمْ شَتّٰى وَ دِيْنُهُمْ وَاحِدٌ وَ قَالَ اِبْرَاهِيْمُ بْنُ طَهْمَانَ عَنْ مُوْسَى بْنِ عُقْبَةَ عَنْ صَفْوَانَ بْنِ سُلَيْمٍ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۲۶۱: محمد بن سنان. فليح بن سليمان. هلال بن علي. عبدالرحمٰن بن ابي عمره. ابوهريرهؓ نه روايت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، زهٔ ابن مريم ته دُنيا او آخرت کښ زيات قريب يم، او ټول انبياءٔ خپلو کښ علاتي وروڼړه دي، چه د هغوي ميندے جُدا جُدا دي او دين (چه په مثل د پلار دے) يو دے او ابراهيم بن طهمان، موسٰي بن عقبه، صفوان بن سليم، عطاء بن يسار، حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم دغسے اوفرمائيل (دويم سند).

۲۶۲: وَ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ رَاٰى عِيْسَى بْنُ مَرْيَمَ رَجُلًا يَّسْرِقُ فَقَالَ لَهٗ اَسَرَقْتَ قَالَ كَلَّا وَاللّٰهِ الَّذِيْ لَا اِلٰهَ اِلَّا هُوَ فَقَالَ عِيْسَى اٰمَنْتُ بِاللّٰهِ وَ كَذَّبْتُ عَيْنَيَّ.

۲۶۲: عبداللّٰه بن محمد. عبدالرزاق. معمر. همام. ابوهريرهؓ نه روايت کوي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل. حضرت عيسٰي عليه السلام يو سړے اوليد، چه غلائي کوله، نو هغه ته ئے اووے، ته غلا کوے، هغهٔ ورته اووے، نه په هغه ذات مِ دے قسم وي، چه د هغهٔ نه سِوا بل معبود نشته، عيسٰیؑ اوفرمائيل، ما په اللّٰه ايمان راوړے دے، او خپله ستر که دهوکے طرف ته منسوب کوم.

۲۶۳: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ سَمِعْتُ الزُّهْرِيَّ

۲۶۳: حميدي. سفيان. زهري. عبيداللّٰه بن عبداللّٰه بن عباسؓ نه روايت کوي، هغهٔ اوفرمائيل،

يَقُوْلُ اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ سَمِعَ عُمَرَ يَقُوْلُ عَلَى الْمِنْبَرِ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَا تُطْرُوْنِيْ كَمَا اَطْرَتِ النَّصَارٰى بْنَ مَرْيَمَ فَاِنَّمَا اَنَا عَبْدُهٗ فَقُوْلُوْا عَبْدُ اللّٰهِ وَ رَسُوْلُهٗ.

ما دَ حضرت عمرؓ نه په منبر دا آوریدلے دي، چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلے دي، ما دومره مه اوچتوئے، څومره چه نصارا ؤ عيسٰي بن مريم اوچت (زيات) کړے دے، زۀ خو محض دَ اللّٰه بنده يم، نو تاسو هم داسے وائيئ، چه دَ اللّٰه بنده او دَ هغه رسول دے.

۲٦۴ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا صَالِحُ بْنُ حَيٍّ اَنَّ رَجُلًا مِنْ اَهْلِ خُرَاسَانَ قَالَ لِلشَّعْبِيِّ فَقَالَ الشَّعْبِيُّ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسَى الْاَشْعَرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَدَّبَ الرَّجُلُ اَمَتَهٗ فَاَحْسَنَ تَادِيْبَهَا وَ عَلَّمَهَا وَ اَحْسَنَ تَعْلِيْمَهَا ثُمَّ اَعْتَقَهَا فَتَزَوَّجَهَا كَانَ لَهٗ اَجْرَانِ وَ اِذَا اٰمَنَ بِعِيْسٰى ثُمَّ اٰمَنَ بِيْ فَلَهٗ اَجْرَانِ وَالْعَبْدُ اِذَا اتَّقٰى رَبَّهٗ وَ اَطَاعَ مَوَالِيَهٗ فَلَهٗ اَجْرَانِ.

۲٦۴ : محمد بن مقاتل. عبداللّٰه. صالح بن حي وائي. يو خراساني شعبي ته څۀ اوويے نو شعبي اوويے، مونږ ته په واسطه دَ ابوبرده ابو موسٰي اشعري دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم دا حديث رارسيدلے دے، حضورؐ اوفرمائيل، هر کله چه يو سړے خپلے وينزے ته ادب اوښائي، او په ښۀ طريقه دَ هغے تاديب او تعليم اوکړي. بيا هغه آزاده کړي او نکاح ورسره اوکړي نو هغۀ ته به دوچند ثواب حاصليږي. او کوم سړي چه په عيسٰيؑ ايمان راوړلو. بيائے په ما ايمان راوړلو، نو هغۀ ته به دوچند ثواب رسي. او غلام چه دَ خپل رب نه ويريږي، او دَ خپل آقا (مالک) اطاعت کوي، نو هغه ته به هم دوچند ثواب رسي.

۲٦۵ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْمُغِيْرَةِ ابْنِ النُّعْمَانِ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُحْشَرُوْنَ حُفَاةً عُرَاةً غُرْلًا ثُمَّ قَرَاَ كَمَا بَدَاْنَا اَوَّلَ خَلْقٍ نُعِيْدُهٗ وَعْدًا عَلَيْنَا اِنَّا كُنَّا فَاعِلِيْنَ وَ اَوَّلُ مَنْ يُكْسٰى اِبْرٰهِيْمُ

۲٦۵ : محمد بن يوسف. سفيان. مغيره بن نعمان. سعيد بن جبير. ابن عباسؓ نه روايت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، تاسو خلق به بربنډے پښے، بربنډ بدن او ناسنت (بغير ختنے) شوے دَ قيامت په ورځ پورته کولے شئے. بيا حضورؐ دا آيت اولوست: څنګه چه مونږ په ابتدا کښې په ورمبني ځل پيدا کړي وو، دغه شان په دوئيم ځل به ئے هم کړو، دا وعده څمونږ په ذمه ده، مونږ به دا ضرور پوره کوو، نو دَ

ثُمَّ يُؤْخَذُ بِرِجَالٍ مِّنْ اَصْحَابِيْ ذَاتَ الْيَمِيْنِ وَ ذَاتَ الشِّمَالِ فَاَقُوْلُ اَصْحَابِيْ فَيُقَالُ اِنَّهُمْ لَمْ يَزَالُوْا مُرْتَدِّيْنَ عَلٰى اَعْقَابِهِمْ مُنْذُ فَارَقْتَهُمْ فَاَقُوْلُ كَمَا قَالَ الْعَبْدُ الصَّالِحُ عِيْسَى بْنُ مَرْيَمَ وَ كُنْتُ عَلَيْهِمْ شَهِيْدًا مَّا دُمْتُ فِيْهِمْ فَلَمَّا تَوَفَّيْتَنِيْ كُنْتَ اَنْتَ الرَّقِيْبَ عَلَيْهِمْ وَ اَنْتَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدٌ اِلٰى قَوْلِهِ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ ذُكِرَ عَنْ اَبِيْ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ قَبِيْصَةَ قَالَ هُمُ الْمُرْتَدُّوْنَ الَّذِيْنَ ارْتَدُّوْا عَلٰى عَهْدِ اَبِيْ بَكْرٍ فَقَاتَلَهُمْ اَبُوْبَكْرٍ.

تړلونه مخکښ چه چاته به کپړے واغستولے شي، هغه به ابراهیمؑ وي، بیا به خما څو اصحاب ښي طرف ته جنت ته او ګس طرف ته دوزخ ته بوتلے شي، زهٔ به وایم دا خو خما اصحاب دي، نو راته به اووئیلے شي، دَ کوم وخت نه چه تهٔ دَ دوي نه جُدا شوے، نو دوي مرتد شو، نو زهٔ به هغه وایم، څهٔ چه دَ الله نیک بنده عیسٰي بن مریمؑ وائي (دا چه) او زهٔ په دوي ګواه ووم، څو پورے چه دوي کښې ووم. بیا چه تا زهٔ اوچت کړم، نو تهٔ دَ دوي نګهبان وے او تهٔ په هر څهٔ ګواه ئے، الحکیم پورے: محمد بن یوسف وائي، چه ابو عبید اللّٰه دَ قبیصه نه نقل کوي، دا هغه مرتد دي، چه دَ ابوبکرؓ زمانه کښې مرتد شو، او ابوبکرؓ هغوي سره جهاد اوکه.

## بَاب ۱۳۴۹: نُزُوْلِ عِيْسَى بْنَ مَرْيَمَ عَلَيْهِمَا السَّلَامُ.

## باب ۱۳۴۹: عیسٰي بن مریم علیهما السلام دَ راکوزیدو بیان.

**۱۷۷:** حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ اَخْبَرَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا اَبِيْ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَنَّ سَعِيْدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَيُوْشِكَنَّ اَنْ يَّنْزِلَ فِيْكُمْ ابْنُ مَرْيَمَ حَكَمًا عَدْلًا فَيَكْسِرُ الصَّلِيْبَ وَ يَقْتُلُ الْخِنْزِيْرَ وَ يَضَعُ الْجِزْيَةَ وَ يَفِيْضُ الْمَالُ حَتّٰى لَا يَقْبَلُهُ اَحَدٌ حَتّٰى تَكُوْنَ السَّجْدَةُ الْوَاحِدَةُ خَيْرًا مِّنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيْهَا ثُمَّ

**۱۷۷:** اسحٰق. یعقوب بن ابراهیم. دَ هغهٔ پلار. صالح. ابن شهاب. سعید بن مسیب. ابو هریرهؓ نه روایت کوي، رسول الله صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، په هغه ذات مِ دے قسم وي، چه دَ هغهٔ په قبضه کښې خما ساه ده چه عنقریب عیسٰي بن مریم به تاسو کښې نازل شي، انصاف سره به فیصله کونکے وي، صلیب به مات کړي، خنزیر به قتل کړي. جزیه به ختم کړي (ځکه چه هغه وخت به ټول مسلمانان وي) او مال به بهیږي (یعني ډیر زیات به وي) حتٰي چه هیڅوک به دَ هغے آخستونکے نهٔ وي، هغه وخت به یوه سجده دَ دُنیا او مافیها نه بهتره ګنړلے شي. بیا ابوهریرهؓ وائي (دَ دے په تائید کښې) که

يَقُوْلُ اَبُوْ هُرَيْرَةَ وَاقْرَءُوْا اِنْ شِئْتُمْ وَ اِنْ مِنْ اَهْلِ الْكِتَابِ اِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهٖ قَبْلَ مَوْتِهٖ وَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يَكُوْنُ عَلَيْهِمْ شَهِيْدًا.

تاسو غواړئ، نو دا آيت اولولئ، او هيڅ اهل كتاب به داسې نۀ وي، چه دَ عيسٰي دَ وفات نه مخکښې په هغۀ ايمان راونۀ ړي، او دَ قيامت په ورځ به عيسٰي په هغوي گواه وي.

ف: صليب: سُولي. مكرك. په دې شكل + مضبوطه ستن دَ لرگي په زمكه ښخه كړي. چاله چه سزا وركوي. په دې ستن ئې په مينخ ټک وهي، په دې شان مصلوب سړے آخر مړشي. دَ عيسايانو دا خيال دے، چه عيسٰي عليه السلام په سُولي خيژولے شوے وو. په دې وجه دَ رومن كيتهولک عيسايان دَ مختلفو دهاتونو واړه واړه صليبونه جوړوي. او خان سره ئې غاړه كښې اويزانده ساتي.

۲۶۷: حَدَّثَنَا ابْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ نَافِعٍ مَوْلٰى اَبِيْ قَتَادَةَ الْاَنْصَارِيِّ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَيْفَ اَنْتُمْ اِذَا نَزَلَ ابْنُ مَرْيَمَ فِيْكُمْ وَ اِمَامُكُمْ مِنْكُمْ تَابَعَهُ عُقَيْلٌ وَالْاَوْزَاعِيُّ.

۲۶۷: ابن بكير. ليث. يونس. ابن شهاب. نافع چه دَ ابو قتاده انصاري آزاد كرده غلام دے، حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل ستاسو به هغه وخت څۀ حال وي، چه ابن مريم تاسو كښې نازل شي، او ستاسو امام به ستاسو نه وي ددې متابع حديث عقيل او اوزاعي روايت كړے دے.

## بَاب ۳۵۰: مَا ذُكِرَ عَنْ اِسْرَائِيْلَ.

## باب ۳۵۰: دَ بني اسرائيلو دَ واقعاتو بيان.

۲۶۸: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ عَنْ رِبْعِيِّ بْنِ حِرَاشٍ قَالَ قَالَ عُقْبَةُ بْنُ عَمْرٍو لِحُذَيْفَةَ اَلَا تُحَدِّثُنَا مَا سَمِعْتَ مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنِّيْ سَمِعْتُهُ يَقُوْلُ اِنَّ مَعَ الدَّجَّالِ اِذَا خَرَجَ مَاءً وَ نَارًا فَاَمَّا الَّذِيْ يَرَى النَّاسُ اَنَّهَا النَّارُ فَمَاءٌ بَارِدٌ وَ اَمَّا

۲۶۸: موسٰي بن اسماعيل. ابو عوانه. عبدالملک. ربعي بن حراش نه روايت كوي. چه عقبه بن عمرو. حديفه ته اووے، تۀ مونږ ته هغه خبرې ولې نۀ آوروے كومې چه تا دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه آوريدلې دي، هغۀ اووے، ما د حضورؐ نه آوريدلې دي، كله چه دجال راوځي، هغه سره به اُوبه او اُور وي، كوم څيز چه خلق اُور گنړي، هغه به حقيقت كښې يخې اُوبه وي، او كوم چه اُوبه گنړي، هغه به سوزونكے اُور وي، كوم سړے چه تاسو كښې دجال بيامومي، هغه له هغې كښې غُرخيدل پكار دي، څۀ چه هغه اُور گنړي، ځكه چه هغه به حقيقت

الَّذِیْ یَرَی النَّاسُ اَنَّهُ مَاءٌ بَارِدٌ فَنَارٌ تُحْرِقُ فَمَنْ اَدْرَكَ مِنْكُمْ فَلْيَقَعْ فِي الَّذِيْ يَرٰی اَنَّهَا نَارٌ فَاِنَّهُ عَذْبٌ بَارِدٌ قَالَ حُذَيْفَةُ وَ سَمِعْتُهُ يَقُوْلُ اِنَّ رَجُلًا كَانَ فِيْمَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ اَتَاهُ الْمَلَكُ لِيَقْبِضَ رُوْحَهُ فَقِيْلَ لَهُ هَلْ عَمِلْتَ مِنْ خَيْرٍ قَالَ مَا اَعْلَمُ قِيْلَ لَهُ انْظُرْ قَالَ مَا اَعْلَمُ شَيْئًا غَيْرَ اِنِّيْ كُنْتُ اُبَايِعُ النَّاسَ فِي الدُّنْيَا وَ اُجَازِيْهِمْ فَاُنْظِرُ الْمُوْسِرَ وَ اَتَجَاوَزُ عَنِ الْمُعْسِرِ فَاَدْخَلَهُ اللّٰهُ الْجَنَّةَ فَقَالَ وَ سَمِعْتُهُ يَقُوْلُ اِنَّ رَجُلًا حَضَرَهُ الْمَوْتُ فَلَمَّا يَئِسَ مِنَ الْحَيَاةِ اَوْصٰی اَهْلَهُ اِذَا اَنَامِتُّ فَاَجْمِعُوْا لِيْ حَطَبًا كَثِيْرًا وَ اَوْقِدُوْا فِيْهِ نَارًا حَتّٰى اِذَا اَكَلَتْ لَحْمِيْ وَ خَلَصَتْ اِلٰى عَظْمِيْ فَامْتُحِشَتْ فَخُذُوْهَا فَاطْحَنُوْهَا ثُمَّ انْظُرُوْا يَوْمًا رَاحًا فَاذْرُوْهُ فِي الْيَمِّ فَفَعَلُوْا فَجَمَعَهُ فَقَالَ لَهُ لِمَ فَعَلْتَ ذٰلِكَ قَالَ مِنْ خَشْيَتِكَ فَغَفَرَ اللّٰهُ لَهُ قَالَ عُقْبَةُ بْنُ عَمْرٍو وَ اَنَا سَمِعْتُهُ يَقُوْلُ ذٰلِكَ وَ كَانَ نَبَّاشًا.

کښې یخې او خوږې اوبه وي. حذیفه اووې، ما دَ حضورؐ نه آوریدلے دي، پخوانو خلقو کښې یو سړي ته دَ هغهٔ روح قبض کولو دَ پاره دَ مرګ ملائکه راغله (چه هغه مړشو) نو دَ هغهٔ نه تپوس اوشو، آیا تا څهٔ نیکي کړې ده، هغه اووې. ماته معلومه نهٔ ده، ورته اوونیلے شو (ښه) سوچ اوکړه، هغهٔ اووې، دې نه سِوا ماته هیڅ معلوم نهٔ دي، چه ما به دُنیا کښې په خلقو په قرض څیز خرڅولو. او دَ هغوي نه به مِ تقاضا کوله، نو مالدار ته به مِ مهلت ورکولو، او تنګدست به مِ معاف کولو، نو اللّٰه هغه جنت کښې داخل کړلو حذیفه اووې، ما دَ حضورؐ نه آوریدلے دي دَ یو سړي دَ مرګ وخت قریب راغې، او هغه دَ خپل ژوند نه نااُمیده شو، نو هغه خپل کوروالوته وصیت اوکه، چه کوم وخت زهٔ مړشم، نو ډیر لرګي راجمع کړئې، اُور پرې اولګوئې، او ما هغې کښې اوغرځوئې، حتي چه اُور خما غوښه ختم کړي او هډو کوته اورسي، او هغه هم اوسوزوئ سکارهٔ ئې کړئ، نو هغه ښکارهٔ میده کړئې. بیا په کومه ورځ چه تیزه هوا وي، نو هغه اِیرې دریاب کښې اوغرځوئې، دَ هغه کور والو هم دغسې اوکړل. نو اللّٰه تعالیٰ دَ هغه ذرات راجمع کړل (دَ جسم حالت کښې ئې کهٔ) او تپوس ئې ترې اوکهٔ، چه تا ولې داسې اوکړل، هغه اووې، ستا دَ ویرې نه (مِ دغسې اوکړل) نو اللّٰه هغه اوبښلو. عقبه بن عمرو وائي، ما دَ حذیفه نه دا واوریدل، چه هغې سړي به دَ کفنونو غلا کوله (کفن چور وو).

۲۶۹ : حَدَّثَنِیْ بِشْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنِیْ مَعْمَرٌ وَ يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ

۲۶۹ : بشر بن محمد. عبداللّٰه. معمر. او یونس. زهري. عبیداللّٰه بن عبداللّٰه. حضرت ابن عباسؓ او بي بي عائشےؓ نه روایت کوي. کوم وخت

عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ عَائِشَةَ وَابْنَ عَبَّاسٍ قَالَ لَمَّا نَزَلَ بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَفِقَ يَطْرَحُ خَمِيْصَةً عَلٰى وَجْهِهٖ فَاِذَا اغْتَمَّ كَشَفَهَا عَنْ وَجْهِهٖ فَقَالَ وَهُوَ كَذٰلِكَ لَعْنَةُ اللّٰهِ عَلَى الْيَهُوْدِ وَالنَّصَارٰى اِتَّخَذُوْا قُبُوْرَ اَنْبِيَائِهِمْ مَسَاجِدَ يُحَذِّرُ مَا صَنَعُوْا.

چه ذَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ذَ زنكدن حالت شروع شو، نو حضورٌ يو څادر په مخ واچولو، بيا چه ورته بد ښكاره شو، نو هغه ئے ذَ مخ مبارك نه لرے كه، حضورٌ هغے حالت كښ اوفرمائيل، په يهودو او نصاريٰ دے ذَ اللّٰه تعاليٰ لعنت وي، چه هغوي ذَ خپلو انبياؤ ذَ قبرونو نه جماتونه جوړ كړل. حضورٌ ذَ هغوي ذَ دے فعل نه (مسلمانان) بچ كول غوښتل.

۶۷۰: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ فُرَاتِ الْقَزَّازِ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا حَازِمٍ قَالَ قَاعَدْتُ اَبَا هُرَيْرَةَ خَمْسَ سِنِيْنَ فَسَمِعْتُهٗ يُحَدِّثُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كَانَتْ بَنُوْ اِسْرَائِيْلَ تَسُوْسُهُمُ الْاَنْبِيَاءُ كُلَّمَا هَلَكَ نَبِيٌّ خَلَفَهٗ نَبِيٌّ وَ اِنَّهٗ لَا نَبِيَّ بَعْدِيْ وَ سَيَكُوْنُ خُلَفَاءُ فَيَكْثُرُوْنَ قَالُوْا فَمَا تَأْمُرُنَا قَالَ فُوْا بِبَيْعَةِ الْاَوَّلِ فَالْاَوَّلِ اَعْطُوْهُمْ حَقَّهُمْ فَاِنَّ اللّٰهَ سَائِلُهُمْ عَمَّا اسْتَرْعَاهُمْ.

۶۷۰: محمد بن بشار. محمد بن جعفر. شعبه. فرات قزاز. ابو حازم نه روايت كوي زهٔ ابوهريرهٌ سره پنځه كاله كيناستم (يعني ناسته پاسته مِ ورسره اوكړله) ما ذَ هغهٔ نه ذَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دا حديث واوريدلو چه حضورٌ اوفرمائيل. بني اسرائيلو كښ به انبياؤ حكومت كولو، كله چه به يو نبي وفات كيدلو، نو بل به ذَ هغهٔ جانشين كيدلو، او ځما نه پس به هيڅ نبي نهٔ وي، البته خلفاء به وي او ډير به وي. صحابهؤ عرض اوكهٔ، بيا تاسو مونږ ته څهٔ حكم راكوئے، حضورٌ ورته اوفرمائيل، يو بل پسے ذَ هر يو بيعت پوره كوئے او هغوي له ذَ هغوي حق چه په تاسو دے، وركوئے، او اللّٰه چه هغوي په چا حكمران جوړ كړي دي، دے باره كښ به هغه ذَ هغوي نه باز پرس (تپوس) كوي.

۶۷۱: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ مَرْيَمَ حَدَّثَنَا ابو غَسَّانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ زَيْدُ بْنُ اَسْلَمَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَتَتَّبِعُنَّ سُنَنَ مَنْ

۶۷۱: سعيد بن ابو مريم. ابو غسان. زيد بن اسلم. عطاء بن يسار. ابو سعيدٌ نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، تاسو خلق به ذَ خان نه ذَ مخكښ خلقو داسے زبردسته پيروي كوے (حتي چه) ذَ يو يو ليشت او يو يو گز (يعني ذره فرق به په كښ

قَبْلَكُمْ شِبْرًا بِشِبْرٍ وَ ذِرَاعًا بِذِرَاعٍ حَتّٰى لَوْ سَلَكُوْا جُحْرَضَبٍّ لَسَلَكْتُمُوْهُ قُلْنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ الْيَهُوْدَ وَالنَّصَارٰى قَالَ فَمَنْ.

هم نهٔ وي) حتي که هغه خلق دَ يو سمسرے سوړه کښې داخل شوے دي، نو تاسو به هم داخل شئے. مونږ عرض اوکړ، يا رسول اللّٰه، يهود، او نصارٰي مراد دي، حضورؐ اوفرمائيل، بيا نور څوک مراد کيدے شي.

۳۲۷۲ : حَدَّثَنَا عِمْرَانُ بْنُ مَيْسَرَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ اَبِيْ قِلَابَةَ عَنْ اَنَسٍؓ قَالَ ذَكَرُوا النَّارَ وَالنَّاقُوْسَ فَذَكَرُوا الْيَهُوْدَ وَالنَّصَارٰى فَاُمِرَ بِلَالٌ اَنْ يَشْفَعَ الْاَذَانَ وَ يُوْتِرَ الْاِقَامَةَ.

۳۲۷۲ : عمران بن ميسره. عبدالوارث. خالد. ابو قلابه. حضرت انسؓ نه روايت کوي، جماعت دَ پاره جمع کيدو باره کښې صحابهؓ وُ دَ اُور بلولو او ناقوس غږولو اووے، نورو خلقو دَ يهود و نصارٰي ذکر اوکړ. نو حضرت بلالؓ ته حکم اوشو، چه آذان اوکړي دوه خله، او قامت يو يو خل.

ف: ناقوس: لوئے کوجے چه بامبران دَ پوجا (عبادت) په وخت هغه غږوي. دَ هغے نه لکه دَ بگل يا دَ ملنگانو دَ بنکر په شان آواز راوځي (۲) دَ گرجے هغه لويه گنټي چه دَ عبادت په وخت غږولے شي. (۳) بنکر چه هندوان ئے دَ عبادت په وخت غږوي.

۳۲۷۳ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِي الضُّحٰى عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَائِشَةَ كَانَتْ تَكْرَهُ اَنْ يَجْعَلَ يَدَهُ فِيْ خَاصِرَتِهٖ وَ تَقُوْلُ اِنَّ الْيَهُوْدَ تَفْعَلُهُ تَابَعَهُ شُعْبَةُ عَنِ الْاَعْمَشِ.

۳۲۷۳ : محمد بن يوسف. سفيان. اعمش. ابوالضحي. مسروق. بي بي عائشے صديقےؓ نه روايت کوي، چه هغے په تشي لاس ايښودل نه خوښول، او ونيلے، چه يهوديان داسے کوي، دَ دے متابع حديث شعبه دَ اعمش نه روايت کړے دے.

۳۲۷۴ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا لَيْثٌ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّمَا اَجَلُكُمْ فِيْ اَجَلِ مَنْ خَلَا مِنَ الْاُمَمِ مَا بَيْنَ صَلٰوةِ الْعَصْرِ اِلٰى مَغْرِبِ الشَّمْسِ وَ اِنَّمَا مَثَلُكُمْ وَ مَثَلُ الْيَهُوْدِ وَالنَّصَارٰى كَرَجُلٍ

۳۲۷۴ : قتيبه بن سعيد. ليث. نافع. ابن عمرؓ نه روايت کوي، رسالتمآب صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، ستاسو دَ تيرو اُمتونو دَ زمانے مقابله کښې داسے زمانه ده، لکه هغه وخت چه دَ مازيگر او مابنام مينځ کښې دے، او ستاسو او دَ يهود او نصارٰي مثال دَ هغے سړي دے چه هغه څو سړي په کار اولږول،

اِسْتَعْمَلَ عُمَّالًا فَقَالَ مَنْ يَعْمَلُ لِيُ مِنْ نِصْفِ النَّهَارِ عَلٰى قِيْرَاطٍ قِيْرَاطٍ فَعَمِلَتِ الْيَهُوْدُ اِلٰى نِصْفِ النَّهَارِ عَلٰى قِيْرَاطٍ ثُمَّ قَالَ مَنْ يَعْمَلُ لِيُ مِنْ نِصْفِ النَّهَارِ اِلٰى صَلٰوةِ الْعَصْرِ عَلٰى قِيْرَاطٍ قِيْرَاطٍ فَعَمِلَتِ النَّصَارٰى مِنْ نِصْفِ النَّهَارِ اِلٰى صَلٰوةِ الْعَصْرِ عَلٰى قِيْرَاطٍ قِيْرَاطٍ ثُمَّ قَالَ مَنْ يَعْمَلُ لِيُ مِنْ صَلٰوةِ الْعَصْرِ اِلٰى مَغْرِبِ الشَّمْسِ عَلٰى قِيْرَاطَيْنِ اَلَا فَاَنْتُمُ الَّذِيْنَ يَعْمَلُوْنَ مِنْ صَلٰوةِ الْعَصْرِ اِلٰى مَغْرِبِ الشَّمْسِ عَلٰى قِيْرَاطَيْنِ قِيْرَاطَيْنِ اَلَا لَكُمُ الْاَجْرُ مَرَّتَيْنِ فَغَضِبَتِ الْيَهُوْدُ وَالنَّصَارٰى فَقَالُوْا نَحْنُ اَكْثَرُ عَمَلًا وَ اَقَلُّ عَطَاءً قَالَ اللّٰهُ هَلْ ظَلَمْتُكُمْ مِنْ حَقِّكُمْ شَيْئًا قَالُوْا لَا قَالَ فَاِنَّهُ فَضْلِيُ وَ اُعْطِيْهِ مَنْ شِئْتُ.

او هغه اووې څوک دې چه د يو قيراط په بدله کښې څما کار د غرمې پورې اوکړي؛ نو يهودو غرمې پورې د يو قيراط په عوض کار اوکړه بيا هغهٔ اووې څوک دې، چه څما کار د يو قيراط په عوض کښې د غرمې نه مازيګره پورې اوکړي نو نصارٰي ؤ د يو قيراط بدله کښې د غرمې نه مازيګره پورې کار اوکړ؛ بيا هغهٔ اووې څوک دې، چه څما کار د دوو قيراط معاوضه کښې د مازيګر نه نمر پريواته (ماښام) پورې اوکړي. ګورې تاسو هغه خلق ئې چه هغوي مازيګر نه ماښامه پورې د دوه قيراطٔ بدله کښې کار اوکه، ګورې تاسو ته دوچند اجر حاصل شو، نو يهود او نصارٰي ناراضه شو او هغوي اووې، چه مونږ خو کار زيات اوکه، او عطيه کمه راکړې شوه، نو اللّٰه تعالٰي ورته اوفرمائيل آيا ستاسو په حق کښې ما څه کمې کړې دې؟ هغوئ اووې چه نهٔ وې فرمائيل چه دا خو څما انعام دې، چا ته چه غواړم، ورکوم (الحمد للّٰه والشکر للّٰه).

**ف**: قيراط: يو تول يا وزن. د سرو زرو او د جواهراتو د تللو يو تول. د درهم د دولسمې برخې همره. انګريزي کښې "کيرټ" وائي (اُردو پښتو لغت).

۶۷۵ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ طَاوٗسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ سَمِعْتُ عُمَرَؓ يَقُوْلُ قَاتَلَ اللّٰهُ فُلَانًا اَلَمْ يَعْلَمْ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَعَنَ اللّٰهُ الْيَهُوْدَ حُرِّمَتْ عَلَيْهِمُ الشُّحُوْمُ فَجَمَلُوْهَا فَبَاعُوْهَا تَابَعَهٗ

۶۷۵ : علي بن عبداللّٰه. سفيان. عمرو. طاؤس.
حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي، ما د حضرت عمرؓ نه دا خبره واوريده، چه اللّٰه دې فلانې (جندب بن سمره) تباه کړي، آيا هغهٔ ته معلومه نهٔ ده، چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلم فرمائيلې دي، اللّٰه تعالٰي دې په يهوديانو لعنت اوکړي. په هغوي وازده (چربي) حرامه شوه. نو هغوي هغه ويلې کړه، خرڅه ئې کړه، د دې متابع حديث جابر

جَابِرٌ وَ اَبُـوْ هُـرَيْرَةَؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

و ابوهريرهؓ دَ نبي صلى اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كړيدے.

٦٧٦: حَـدَّثَـنَـا اَبُـوْ عَـاصِمٍ الضَّحَاكُ بْنُ مَخْلَدٍ اَخْبَرَنَا الْاَوْزَاعِيُّ حَدَّثَنَـا حَسَّـانُ بْنُ عَطِيَّةَ عَنْ اَبِيْ كَبْشَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰـهِ بْنِ عَمْرٍو اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَلِّغُوْا عَنِّيْ وَلَوْ اٰيَةً وَ حَدِّثُوْا عَنْ بَنِيْ اِسْرَائِيْلَ وَلَا حَرَجَ وَمَنْ كَذَبَ عَلَيَّ مُتَعَمِّدًا فَلْيَتَبَوَّاْ مَقْعَدَهٗ مِنَ النَّارِ.

٦٧٦: ابو عاصم ضحاك بن مخلد. اوزاعي. حسان بن عطيه. ابو كبشه. حضرت عبداللّٰه بن عمرؓ نه روايت كوي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، خما خبره نورو خلقوته اورسوئے، اګر كه هغه يو آيت وي، او دَ بني اسرائيلو واقعات (كه تاسو غواړئے، نو) بيان كړئے. دے كښې هيڅ حرج نشته، او كوم سړي چه په ما قصدًا دروغ اووے، نو هغهٔ له خپله ټيكاؤنړه دوزخ كښې جوړول پكار دي.

٦٧٧: حَـدَّثَـنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰـهِ قَـالَ حَدَّثَنِيْ اِبْرٰهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ قَالَ اَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰـهُ عَلَيْـهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ الْيَهُوْدَ وَالنَّصَارٰى لَا يَصْبِغُوْنَ فَخَالِفُوْهُمْ.

٦٧٧: عبدالعزيز بن عبداللّٰه. ابراهيم بن سعد. صالح. ابن شهاب. ابو سلمه بن عبدالرحمٰن. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، رسالتمآب صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، يهود و نصاري خپلو ويښتو له دَ نكريزو، رنګ نه وركوي، نو تاسو رنګ وركوئے، دَ هغوي مخالفت كوے.

٦٧٨: حَـدَّثَـنِـيْ مُـحَمَّدٌ قَـالَ حَدَّثَنِيْ حَجَّاجٌ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنِ الْحَسَنِ حَدَّثَنَا جُنْدُبُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ فِيْ هٰذَا الْمَسْجِدِ وَمَا نَسِيْنَـا مُنْذُ حَدَّثَنَا وَمَا نَخْشٰى اَنْ يَّكُوْنَ جُنْدُبٌ كَذَبَ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ فِيْمَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ رَجُلٌ بِهٖ جُرْحٌ فَاَخَذَ

٦٧٨: محمد. حجاج. جرير. حسن نه روايت كوي. جندب بن عبداللّٰه مونږ ته هغے جمات كښې بيان اوكړو، او دَ هغے وخت نه مونږ نه هيره اوشوه، اونه مونږ ته دا خيال راغلے، چه جندب په رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم دروغ وئيلي دي هغه اوفرمائيل، ستاسو نه مخكښې خلقو كښې په يو سړي زخمونه راغلل، دَ هغے دَ تكليف نه هغه ناقلاره شو، لاس كښې ئے چاړهٔ واخسته، او هغے سره ئے خپل لاس پريكړلو، بيا دَ هغه وينه بنده نه شوه، حتي

سَكِّيْنًا فَحَزَّ بِهَا يَدَهٗ فَمَا رَقَأَ الدَّمُ حَتّٰى مَاتَ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى بَادَرَنِيْ عَبْدِيْ بِنَفْسِهٖ حَرَّمْتُ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ.

## باب ۱۳۵۱: حَدِيْثُ اَبْرَصَ وَ اَعْمٰى وَ اَقْرَعَ.

۶۷۹: حَدَّثَنِيْ اَحْمَدُ بْنُ اِسْحَاقَ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَاصِمٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ اَبِيْ عُمْرَةَ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ حَدَّثَهٗ اَنَّهٗ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ رَجَاءٍ اَخْبَرَنَا هَمَّامٌ عَنْ اِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ اَبِيْ عُمْرَةَ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَؓ حَدَّثَهٗ اَنَّهٗ سَمِعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنَّ ثَلٰثَةً فِيْ بَنِيْ اِسْرَآئِيْلَ اَبْرَصَ وَ اَقْرَعَ وَ اَعْمٰى بَدَا اللّٰهُ اَنْ يَّبْتَلِيَهُمْ فَبَعَثَ اِلَيْهِمْ مَلَكًا فَاَتَى الْاَبْرَصَ فَقَالَ اَيُّ شَيْءٍ اَحَبُّ اِلَيْكَ قَالَ لَوْنٌ حَسَنٌ وَ جِلْدٌ حَسَنٌ قَدْ قَذِرَنِيَ النَّاسُ قَالَ فَمَسَحَهٗ فَذَهَبَ عَنْهُ فَاُعْطِيَ لَوْنًا حَسَنًا وَ جِلْدًا حَسَنًا فَقَالَ اَيُّ الْمَالِ اَحَبُّ اِلَيْكَ قَالَ الْاِبِلُ اَوْ قَالَ الْبَقَرُ هُوَ شَكَّ فِيْ ذٰلِكَ اَنَّ الْاَبْرَصَ وَ الْاَقْرَعَ قَالَ اَحَدُهُمَا الْاِبِلُ وَ

چه مړ شولو، نو اللّٰه تعالٰي اوفرمائيل څما بنده ساه ورکولو کښې څما نه مخکښې شو، نو ما په هغه جنت حرام کړلو.

## باب ۱۳۵۱: بني اسرائيلو کښې ډ يو ابرص، نابينا او ګنجي بيان.

۶۷۹: احمد بن اسحاق. عمرو بن عاصم. همام. اسحاق بن عبداللّٰه. عبدالرحمٰن بن ابو عمره. حضرت ابوهريرهؓ نه بيان کوي، هغهٔ ډ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل (دوئيم سند) محمد. عبداللّٰه بن رجاء. همام. اسحاق بن عبداللّٰه. عبدالرحمٰن بن ابو عمرهؓ. ابوهريرهؓ نه روايت کوي، هغهٔ ډ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل، ډ بني اسرائيلو درے سړي يو ابرص (برګے) دوئيم نابينا او دريم ګنجے اللّٰه تعالٰي آزمائيل اوغوښتل (يعني په هغوي ئے آزميښت کول اوغوښتل) نو هغوي ته ئے يو فريښته اوليږله. هغه فريښته هغے برګي له راغله، ورته ئے وئيلے. کوم څيز ستا زيات خوښ دے، هغه ورته اووے، ښهٔ رنګ او ښکلے څرمن که راکړے شي، چه بيا خلق ما خان سره کينوي، او کرکه رانه نهٔ کوي. فريښتے خپل لاس ډ هغهٔ په بدن راښکلو، نو هغه سمدستي ښهٔ شولو، ښکلے رنګ او څرمن ئے په بدن راوختله، بيا ډ هغهٔ نه تپوس اوشو، ستا کوم مال خوښ دے، هغهٔ اووے، اُوښه يا غوا (ډ راوي په دے کښې شک دے) چه برګي او ګنجي کښې يو اُوښه اُوغوښتله او بل غوا، نو يوه بلاربه اُوښه ئے هغهٔ ته ورکړه. فريښتے ورته اووے، اللّٰه تعالٰي دے په کښې برکت واچوي. بيا هغه فريښته ګنجي له راغله او ورته ئے اووے، ستا کوم څيز خوښ دے، هغهٔ

قَالَ الْاٰخَرُ الْبَقَرُ وَاُعْطِیَ نَاقَةً عُشَرَاءَ فَقَالَ يُبَارَكُ لَكَ فِيْهَا وَاَتَى الْاَقْرَعَ فَقَالَ اَیُّ شَیْءٍ اَحَبُّ اِلَيْكَ قَالَ شَعْرٌ حَسَنٌ وَ يَذْهَبُ عَنِّیْ هٰذَا قَدْ قَذِرَنِیَ النَّاسُ قَالَ فَمَسَحَهٗ فَذَهَبَ وَ اُعْطِیَ شَعْرًا حَسَنًا قَالَ فَاَیُّ الْمَالِ اَحَبُّ اِلَيْكَ قَالَ الْبَقَرُ قَالَ فَاَعْطَاهُ بَقَرَةً حَامِلًا وَ قَالَ يُبَارَكُ لَكَ فِيْهَا وَ اَتَى الْاَعْمٰى فَقَالَ اَیُّ شَیْءٍ اَحَبُّ اِلَيْكَ قَالَ يَرُدُّ اللّٰهُ اِلَیَّ بَصَرِیْ فَاُبْصِرُ بِهِ النَّاسَ قَالَ فَمَسَحَهٗ فَرَدَّ اللّٰهُ اِلَيْهِ بَصَرَهٗ قَالَ فَاَیُّ الْمَالِ اَحَبُّ اِلَيْكَ قَالَ الْغَنَمُ فَاَعْطَاهُ شَاةً وَّالِدًا فَاُنْتِجَ هٰذَانِ وَ وَلَّدَ هٰذَا فَكَانَ لِهٰذَا وَادٍ مِنْ اِبِلٍ وَلِهٰذَا وَادٍ مِنْ بَقَرٍ وَلِهٰذَا وَادٍ مِنَ الْغَنَمِ ثُمَّ اِنَّهٗ اَتَى الْاَبْرَصَ فِیْ صُوْرَتِهٖ وَ هَيْئَتِهٖ فَقَالَ رَجُلٌ مِسْكِيْنٌ تَقَطَّعَتْ بِیَ الْجِبَالُ فِیْ سَفَرِیْ فَلَا بَلَاغَ الْيَوْمَ اِلَّا بِاللّٰهِ ثُمَّ بِكَ اَسْاَلُكَ بِالَّذِیْ اَعْطَاكَ اللَّوْنَ الْحَسَنَ وَالْجِلْدَ الْحَسَنَ وَالْمَالَ بَعِيْرًا اَتَبَلَّغُ عَلَيْهِ فِیْ سَفَرِیْ فَقَالَ لَهٗ اِنَّ الْحُقُوْقَ كَثِيْرَةٌ فَقَالَ لَهٗ

اووے' چه خما ښکلے ویښته اوشي' او دا بلا (ګنجي توب) خما نه لرے شي' چه خلق په دے وجه مانه نفرت کوي' بیائے ترے تپوس او کۀ' ستا کوم مال خوښ دے' هغه اووے' غوا' نو یوه بلاربه غوا' ئے هغه ته ور کړله' چه خدائے دے' دے کښ درله برکت واچوي' بیا نابینا (ړوند) له هغه فریښته راغله' ذَ هغۀ نه ئے تپوس او کۀ' ستا څۀ خوښ دي' هغۀ ورته اووے' خما سترګے درست کړه' چه ټول خلق پرے لیدے شم' فریښتے ذَ هغۀ په سترګو لاس راښکل' نو خدائے تعالیٰ ذَ هغه نظر درست کړلو' بیائے ترے تپوس او کۀ' ستا کوم مال خوښ دے' هغه اووے' چیلئے' نو هغه ته یوه بلاربه چیلئے ور کړے شوه. ذَ دے دواړو څناورو بچي راوړل' لږو ورځو کښ ذَ یو ذَ اوښانو نه ذَ بل ذَ غواګانو نه او ذَ دریم ذَ چیلونه ځنګل ډک شولو' بیا ذَ خدائے په حکم فریښته په هغے وړمبني صورت کښ برګي له راغله' او ورته ئے اووے' زۀ یو مسکین سړے یم' خما ذَ سفر ټول سامان ختم شوے دے' او ذَ خدائے ذَ آسرے نه ﻣِ بله څۀ ذریعه نشته' بیا زۀ ذَ خدائے په نوم' چه تاته ئے ښکلے رنګ او څرمن در کړے ده' ستا نه ذَ یو اُوښ سوال کوم' چه په هغے سور شم' او خپل کور ته لاړ شم' هغۀ ورته اووے' څه مخه کوه' لرے شه' خما په ذمه نور ډیر حقوق ادا کول دي' ما سره تاله ذَ در کولو څۀ ګنجائش نشته' فریښتے ورته اووے' شاید چه زه تا پیژنم' آیا تۀ برګے نه وے' چه خلقو درنه کرکه (نفرت) کولو' آیا تۀ خوار نۀ وے. بیا تاله خدائے تعالیٰ دومره مال در کۀ' هغۀ اووے' واه دا څۀ وائے دا مال خو ذَ څو پیړو نه ذَ پلار نیکه ذَ وخت نه دا

كَأَنِّي أَعْرِفُكَ أَلَمْ تَكُنْ أَبْرَصَ يَقْذَرُكَ النَّاسُ فَقِيرًا فَأَعْطَاكَ اللّٰهُ فَقَالَ لَقَدْ وَرِثْتُ لِكَابِرٍ عَنْ كَابِرٍ فَقَالَ إِنْ كُنْتَ كَاذِبًا فَصَيَّرَكَ اللّٰهُ إِلَى مَا كُنْتَ وَ أَتَى الْأَقْرَعَ فِي صُورَتِهِ وَ هَيْئَتِهِ فَقَالَ لَهُ مِثْلَ مَا قَالَ لِهٰذَا فَرَدَّ عَلَيْهِ مِثْلَ مَا رَدَّ عَلَيْهِ فَقَالَ إِنْ كُنْتَ كَاذِبًا فَصَيَّرَكَ اللّٰهُ إِلَى مَا كُنْتَ وَ أَتَى الْأَعْمَى فِي صُورَتِهِ فَقَالَ رَجُلٌ مِسْكِينٌ وَابْنُ سَبِيلٍ وَ تَقَطَّعَتْ بِيَ الْحِبَالُ فِي سَفَرِي فَلَا بَلَاغَ الْيَوْمَ إِلَّا بِاللّٰهِ ثُمَّ بِكَ أَسْأَلُكَ بِالَّذِي رَدَّ عَلَيْكَ بَصَرَكَ شَاةً أَتَبَلَّغُ بِهَا فِي سَفَرِي فَقَالَ قَدْ كُنْتُ أَعْمٰى فَرَدَّ اللّٰهُ بَصَرِي وَ فَقِيرًا قَدْ أَغْنَانِي فَخُذْ مَا شِئْتَ فَوَاللّٰهِ لَا أَجْهَدُ الْيَوْمَ بِشَيْءٍ أَخَذْتَهُ لِلّٰهِ فَقَالَ أَمْسِكْ مَالَكَ فَإِنَّمَا ابْتُلِيتُمْ فَقَدْ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْكَ وَ سَخِطَ عَلٰى صَاحِبَيْكَ.

روان دے، فریښتې ورته اووے، كه تهٔ دروغجن ئے نو خدائے تعالیٰ دې تا هغسې كړي، څنګه چه مخکښې وې بیا فریښته هغه ګنجي له په هغې ورمبني صورت کښې راغله، او هغه شان ئې دَ هغهٔ نه سوال اوکهٔ، هغهٔ هم هغسې جواب ورکهٔ، فریښتې ورته اووے، که تهٔ دروغ وائې، نو خدائے دې په مخکني حال کړه، بیا هغه فریښته هغې ړوند له په وړومبني صورت کښې راغله او ورته ئې اووے، زهٔ یو مسافر یم، بے سامانه شوے یم، نن دَ خدائے او بیا ستا نه سِوا بله ذریعه مِ نشته، چه خپل مکان ته اورسیږم، زهٔ دَ هغه په نوم چه هغهٔ دوباره تاته بینائي ببنلې ده، تا نه یوه چیلئې غواړم چه هغې سره دَ خپل سفر کاروائي پوره کړم، هغې ړوند ورته اووے، بیشکه زهٔ ړوند ووم، اللّٰه تعالیٰ محض خپل فضل او کرم سره ماته بینائي عطا کړه، څومره چه دے زړهٔ غواړي، هغومره چیلئې واخله، او څومره چه پریږدے، هغه پریږده، په خدائے چه زهٔ تا دَ هیڅ څیز نه، نه منع کوم، فریښتې ورته اووے تهٔ خپل مال ځان سره ساته، ځما څهٔ نهٔ دي پکار، ځما خو په ستاسو درے واړو آزمیښت کول وو، نو اوشوه، خدائے تعالیٰ تا نه راضي شو، او دَ هغې دواړو (برګي او ګنجي) نه ناراضه شو.

## بَاب ۳۵۲: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى

أَمْ حَسِبْتَ أَنَّ أَصْحٰبَ الْكَهْفِ وَالرَّقِيمِ الْكَهْفُ الْفَتْحُ فِي الْجَبَلِ وَالرَّقِيمُ الْكِتَابُ الْمَرْقُومُ مَكْتُوبٌ مِنَ الرَّقْمِ رَبَطْنَا عَلٰى قُلُوبِهِمْ وَ

## باب ۳۵۲: دَ اصحاف کهف بیان

(سورهٔ کهف کښې) دَ اللّٰه تعالیٰ قول: اے ګمان کوے تهٔ چه بیشکه یاران دَ غار چه دي او دَ تختې چه دي، دي دوي له نښو دَ قدر ته خمونږه نه ډیره عجیبه. کهف غر کښې چه کومه درّه وي، رقیم: لیکلے شوے کتاب. تخته. مرقوم معني هم لیکلے شوے، ربطنا علی قلوبهم، مونږ دَ هغوي په

أَلْهَمْنَاهُمْ صَبْرًا شَطَطًا إِفْرَاطًا الْوَصِيْدُ الْفِنَاءُ وَ جَمْعُهُ وَ صَائِدُ وَ وُصُدٌ وَ يُقَالُ الْوَصِيْدُ الْبَابُ مُؤْصَدَةٌ مُطْبَقَةٌ آصَدَ الْبَابَ وَ أَوْصَدَ بَعَثْنَاهُمْ أَحْيَيْنَاهُمْ أَزْكٰى أَكْثَرُ رَيْعًا فَضَرَبَ اللّٰهُ عَلٰى أذَانِهِمْ فَنَامُوْا رَجْمًا بِالْغَيْبِ لَمْ يَسْتَبِنْ وَ قَالَ مُجَاهِدٌ تَقْرِضُهُمْ تَتْرُكُهُمْ.

زړونو باندې محکم والې راوستې وو. شططًا ظلم او زیات والې. وَصِید معنې انګنړ. صحن. د دې جمع وصائد او وصد راځي. وَصِید دروازې ته هم وئیلې شي. مُوْصَدَةٌ (چه سورة همزه کښې دې) یعني دروازه بند کړې شوې. د عربو خلق وائي اَصَدَ الباب او اوْصد الْبَاب یعني دروازه ئې بند کړه. بعثنا مونږ ژوندي کړهٔ اَزْکٰی معنې پاکیزه. فضرب اللّٰه علٰی آذانهم یعني اللّٰه تعالٰی هغوي اُودهٔ کړه. رَجمًا بالغیب یعني ویشتل په غیبو سره. او مجاهد وائي تقرضهم یعني پریږدي.

## الحمد للّٰه والشکر للّٰه دیارلسمه پاره ختمه شوه



تاج
تاج البخاری
پښتو شرح صحیح البخاری
پاره
۱۴
شارح: مولانا ظهور الباری اعظمی فاضل دارالعلوم دیوبند
پښتو ترجمه: مولانا محمد امین درانی
نظرثانی: حافظ قاری فضل کریم
اهتمام: دکتور محمد دین البشاوری
تاج کتب خانه رجسٹرڈ
قصه خوانی پشاور
فون: 214454

# تاج البخاري پاره ۱۴ د مضامینو فهرست

# څوارلسمه پاره

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

## باب ۳۵۳: حَدِيْثُ الْغَارِ.

۶۸۰: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ خَلِيْلٍ اَخْبَرَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ ابْنِ عُمَرَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَمَا ثَلٰثَةُ نَفَرٍ مِمَّنْ كَانَ قَبْلَكُمْ يَمْشُوْنَ اِذْ اَصَابَهُمْ مَطَرٌ فَاَوَوْا اِلٰى غَارٍ فَانْطَبَقَ عَلَيْهِمْ فَقَالَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ اِنَّهُ وَاللّٰهِ يَا هٰؤُلَاءِ لَا يُنْجِيْكُمْ اِلَّا الصِّدْقُ فَلْيَدْعُ كُلُّ رَجُلٍ مِنْكُمْ بِمَا يَعْلَمُ اَنَّهُ قَدْ صَدَقَ فِيْهِ فَقَالَ وَاحِدٌ مِنْهُمْ اَللّٰهُمَّ اِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ اَنَّهُ كَانَ لِيْ اَجِيْرٌ عَمِلَ لِيْ عَلٰى فَرَقٍ مِنْ اَرُزٍّ فَذَهَبَ وَتَرَكَهُ وَاِنِّيْ عَمَدْتُ اِلٰى ذٰلِكَ الْفَرَقِ فَزَرَعْتُهُ فَصَارَ مِنْ اَمْرِهِ اَنِّيْ اشْتَرَيْتُ مِنْهُ بَقَرًا وَاَنَّهُ اَتَانِيْ يَطْلُبُ اَجْرَهُ فَقُلْتُ لَهُ اعْمَدْ اِلٰى تِلْكَ الْبَقَرِ فَسُقْهَا فَقَالَ لِيْ عِنْدَكَ فَرَقٌ مِنْ اَرُزٍّ فَقُلْتُ لَهُ

## باب ۳۵۳: دَ غار والو قصه.

۶۸۰: اسمٰعیل. علي بن مسهر. عبیدالله.
حضرت ابن عمرؓ نه روایت کوي، رسول الله صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، تاسونه مخکښې خلقو کښې درې سړي روان وو، ناساپه پرې باران شو، هغوي ټول په یو غار کښې پناه ګیر شو، او دَ هغې غار خوله په هغوي بنده شوه یو بل ته اووې، ملګرو، په خدائے چه بغیر دَ رېښتیاؤ نه هیڅ څیز تاسو خلاصولې نشي، تاسو کښې هر یو له پکار دي، چه دَ هغې څیز په وسیله دُعا اوغواړي، چه دَ هغې په نسبت هغه ته معلومه وي، چه هغهٔ په دغې عمل دَ رېښتیاؤ نه کار آخستې دې. دې کښې یو کس اووې، اې خدایه، تاته ښه معلومه ده، څما یو مزدور وو، چه هغه دَ یو فرق (تقریبًا دَ اوو سیرو دَ پیمانې نوم دې) روجو (چاول) په بدله کښې څما کار کړې وو، خو هغه لاړ، او مزدوري ئې پرېښوده، ما په هغې یو فرق زراعت شروع کۀ. بیا دَ هغې په پیداوار م یوه غوا واخسته. (څه موده پس) هغه مزدور دَ خپلې مزدوري اخستو دَ پاره ماله راغې، ما هغهٔ ته اووې، دا غوا بوځه، هغه اووې (ټوقې راسره مهٔ کوه) څما خو ستا په ذمه یو فرق رُوجې دي (دا غوا څنګه اخستې شم) ما ورته اووې، دا غوا بوځه، ځکه، چه دا غوا ما په هغې فرق روجو آخستې ده، هغهٔ هغه غوا روانه کړه، اې الله، تاته معلومه ده دا کار ما ستا دَ خوف نه کړې دې، اوس مونږ نه دا کاڼړې (ګټ)

اِعْمَدُ اِلٰی تِلْكَ الْبَقَرِ فَاِنَّهَا مِنْ ذٰلِكَ الْفَرَقِ فَسَاقَهَا فَاِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ اَنِّیْ فَعَلْتُ، ذٰلِكَ مِنْ خَشْيَتِكَ فَفَرِّجْ عَنَّا فَانْسَاحَتْ عَنْهُمُ الصَّخْرَةُ فَقَالَ الْاٰخَرُ اَللّٰهُمَّ اِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ اَنَّهٗ كَانَ لِیْ اَبَوَانِ شَيْخَانِ كَبِيْرَانِ فَكُنْتُ اٰتِيْهِمَا كُلَّ لَيْلَةٍ بِلَبَنِ غَنَمٍ لِّیْ فَاَبْطَاْتُ عَلَيْهِمَا لَيْلَةً فَجِئْتُ وَقَدْ رَقَدَا وَ اَهْلِیْ وَ عِيَالِیْ يَتَضَاغَوْنَ مِنَ الْجُوْعِ فَكُنْتُ، لَا اَسْقِيْهِمْ حَتّٰی يَشْرَبَ اَبَوَایَ فَكَرِهْتُ اَنْ اُوْقِظَهُمَا وَ كَرِهْتُ اَنْ اَدَعَهُمَا فَيَسْتَكِنَّا لِشَرْبَتِهِمَا فَلَمْ اَزَلْ اَنْتَظِرُ حَتّٰی طَلَعَ الْفَجْرُ فَاِنْ كُنْتَ، تَعْلَمُ اَنِّیْ فَعَلْتُ ذٰلِكَ مِنْ خَشْيَتِكَ فَفَرِّجْ عَنَّا فَانْسَاحَتْ عَنْهُمُ الصَّخْرَةُ حَتّٰی نَظَرُوْا اِلَی السَّمَآءِ فَقَالَ الْاٰخَرُ اَللّٰهُمَّ اِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ اَنَّهٗ كَانَ لِیْ اِبْنَةُ عَمٍّ مِنْ اَحَبِّ النَّاسِ اِلَیَّ وَ اِنِّیْ رَاوَدْتُّهَا عَنْ نَّفْسِهَا فَاَبَتْ اِلَّا اَنْ اٰتِيَهَا بِمِائَةِ دِيْنَارٍ فَطَلَبْتُهَا حَتّٰی قَدَرْتُ فَاَتَيْتُهَا بِهَا فَدَفَعْتُهَا اِلَيْهَا فَاَمْكَنَتْنِیْ مِنْ نَفْسِهَا فَلَمَّا قَعَدْتُ بَيْنَ رِجْلَيْهَا فَقَالَتْ اِتَّقِ اللّٰهَ وَلَا تَفُضَّ الْخَاتَمَ اِلَّا بِحَقِّهٖ

لرے کړے، نو هغه کاڼړے څهٔ قدرے لرے شو. بیا دویم سړي (خلوص سره) دُعا اوکړه. اے خدایه، تهٔ ښهٔ پوهیږے، چه څما مور پلار ډیر بُوډاګان شوي وو. روزانه به مِ هغوي دَ پاره دَ شپے دَ چیلو پئے اُوړل. یوه شپه اتفاق سره هغوي ته، دومره ناوخته اورسیدم چه هغوي اُوده شوے وو، او څما بال بچ دَ لوږے نه ژړیدل. ما دَ مور پلار نه مخکښ هغوي له پئے نهٔ ورکول. څو هغوي اُودهٔ شوے وو، او دَ هغوي بیدارول مِ مناسب اونهٔ ګڼړل، اونهٔ هغوي پریښودل مِ غوښتل، چه هغوي دَ دے پیو دَ نهٔ څکلو په وجه کمزوري شي، نو ما ټوله شپه انتظار کښ تیره کړ، حتّٰي چه سحر شولو، اے خدایه، تاته معلومه ده، چه دا کار ما صرف ستا دَ خوف نه کړے دے. اوس مونږ نه دا کاڼړے لرے کړے، نو هغه کاڼړے دَ هغوي نه لږ نور لرے شو، او دومره لرے شو. چه هغوي آسمان اولیدو، دے نه پس هغے دریم سړي دُعا کړه. اے خدایه، تاته ښهٔ معلومه ده څما دَ ترهٔ (چچا) یو لور وَه، چه څما دَ ټولو خلقونه زیاته خوښه وه، ما هغے سره دَ هم بسترۍ خواهش اوکهٔ، خو هغهٔ بغیر دَ سل اشرفو نه رضا کیده نه، ما دَ هغے اشرفو حاصلولو دَ پاره منډے تړے اووهلے، چه هغه مِ پیدا کړے، نو ما هغه اشرفے هغے له ورکړے، او هغے ماله په ځان قابو راکړلو، کوم وخت چه زهٔ دَ هغے دَ دواړو خپو په مینځ کښ کیناستم، نو هغے اووے، دَ اللّٰه نه ویره اوکړه، او (دَ مروجه قانوني اختیار اتو حاصلولو نه بغیر) دَ پیغلتوب یا جینکتوب مُهر (مهر بکارت) په ناحقه مهٔ ماتوه، زهٔ تړے اوچت پاسیدم، او هغه سل اشرفئے مِ هم پریښودے، اے خدایه، تهٔ ښهٔ

نَقْمْتُ وَ تَرَكْتُ مِائَةَ دِيْنَارٍ فَاِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ اَنِّيْ فَعَلْتُ ذٰلِكَ مِنْ خَشْيَتِكَ فَفَرِّجْ عَنَّا فَفَرَّجَ اللّٰهُ عَنْهُمْ فَخَرَجُوْا.

پوهيږے، چه ما ستا د ويرے نه دا كار پريښے دے، او س دا كانړے خمونږ نه لرے كړے، نو خدايتعالي هغه كانړے د هغوي نه لرے كړ، او هغوي (درے واړه) بهر راووتل.

باب ۳۵۴:

باب ۳۵۴: دا باب بے عنوانه دے.

۱۶۸۱ : حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ حَدَّثَهُ اَنَّهُ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَؓ اَنَّهُ سَمِعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ بَيْنَا امْرَأَةٌ تُرْضِعُ ابْنَهَا اِذْ مَرَّ بِهَا رَاكِبٌ وَهِيَ تُرْضِعُهُ فَقَالَتْ اَللّٰهُمَّ لَا تُمِتْ ابْنِيْ حَتّٰى يَكُوْنَ مِثْلَ هٰذَا فَقَالَ اَللّٰهُمَّ لَا تَجْعَلْنِيْ مِثْلَهُ ثُمَّ رَجَعَ فِي الثَّدْيِ وَ مُرَّ بِامْرَأَةٍ تُجَرُّ وَ يُلْعَبُ بِهَا فَقَالَتْ اَللّٰهُمَّ لَا تَجْعَلِ ابْنِيْ مِثْلَهَا فَقَالَ اَللّٰهُمَّ اجْعَلْنِيْ مِثْلَهَا فَقَالَ اَمَّا الرَّاكِبُ فَاِنَّهُ كَافِرٌ وَ اَمَّا الْمَرْأَةُ فَاِنَّهُمْ يَقُوْلُوْنَ لَهَا تَزْنِيْ وَ تَقُوْلُ حَسْبِيَ اللّٰهُ وَ يَقُوْلُوْنَ تَسْرِقُ وَ تَقُوْلُ حَسْبِيَ اللّٰهُ.

۱۶۸۱ : ابواليمان. شعيب. ابوالزناد. عبدالرحمٰن. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، هغهٔ د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل، يوے ښځے خپل بچي لـه پئے وركول، هغے اووے، اے خدايه، خما خوئے د مرګ نه مخكښ د دے سور (سوار) په شان كړے. هغے بچي اووے، اے خدايه، ما دۀ په شان مۀ كړے، دے نه پس هغه بچے بياتي طرف ته متوجه شو، بيا څۀ ساعت پس د هغے طرف نه يوه ښځه خلقو راكښله، او خنو خلقو ورپورے خاندل، د بچي مور اووے. اے خدايه، خما خوئے د دے ښځے په شان مۀ كړے. بچي اووے، اے خدايه، ما د دے په شان كړے، او هغۀ (د خپلے دے وينا) دا وجه بيان كړه، چه دا سور خو كافر دے. ليكن دا ښځه داسے ده، خلق د دے په نسبت وائي، چه زنا كوي، او هغه وائي، چه خدائے تعالٰي خما د حمايت د پاره كافي دے، او خلق د هغے په نسبت وائي، چه دا غلا كوي، او هغه وائي چه اللّٰه تعالٰي خما د حمايت د پاره كافي دے.

۱۶۸۲ : حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ تَلِيْدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ جَرِيْرُ ابْنُ حَازِمٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيْرِيْنَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ قَالَ قَالَ

۱۶۸۲ : سعيد. ابن وهب. جرير. ايوب. ابن سيرين. حضرت ابوهريرهؓ نه، روايت كوي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، يو سپے د يو كوهي نه چورليدۀ، داسے ښكاريدۀ چه د تندے

النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَمَا كَلْبٌ يَطِيْفُ بِرَكِيَّةٍ كَادَ يَقْتُلُهُ الْعَطَشُ اِذْ رَأَتْهُ بَغِيٌّ مِنْ بَغَايَا بَنِيْ اِسْرَاءِيْلَ فَنَزَعَتْ مُوْقَهَا فَسَقَتْهُ فَغُفِرَ لَهَا بِهٖ.

نه مري، اتفاقًا يوے بدکارے اسرائيلي ښځے هغه سپے اوليد، نو هغے زنا کارے ښځے خپله پنړه اوښکله، دَ کوهي نه ئے پرے اُوبه راوښکلے، او هغے سپي له ئے ورکړے، نو خدائے تعالٰي په دے عمل هغه اُوبښله.

۲۸۳ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّهُ سَمِعَ مُعَاوِيَةَ بْنَ اَبِيْ سُفْيَانَ عَامَ حَجَّ عَلَى الْمِنْبَرِ فَتَنَاوَلَ قُصَّةً مِّنْ شَعْرٍ وَ كَانَ فِيْ يَدِ حَرَسِيٍّ فَقَالَ يَا اَهْلَ الْمَدِيْنَةِ اَيْنَ عُلَمَاؤُكُمْ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْهٰى عَنْ مِثْلِ هٰذِهٖ وَ يَقُوْلُ اِنَّمَا هَلَكَتْ بَنُوْا اِسْرَآءِيْلَ حِيْنَ اتَّخَذَ هٰذِهٖ نِسَآؤُهُمْ.

۲۸۳ : عبداللّٰه. مالک. ابن شهاب. حضرت حميد بن عبدالرحمٰن نه بيان کوي، هغه دَ حضرت معاويه بن ابي سفيان نه په کوم کال چه حج اوکړ، په منبر دا واوريدل، او هغه دَ ويښتو يوه ګونجئ دَ يو پاسبان دَ لاس نه واخسته، اووے وئيل، اے اهل مدينه، ستاسو علماء چرته دي، ما دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه دَ دے (مصنوعي ويښتو خپلو ويښتو سره دَ انښلولو نه) منع آوريدلے ده. حضورؐ اوفرمائيل، چه بني اسرائيل هغه وخت هلاک شو، کوم وخت چه دَ هغوئ ښځو دا (مصنوعي ويښته) جوړ کړل.

۲۸۴ : حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّهُ قَدْ كَانَ فِيْمَا مَضٰى قَبْلَكُمْ مِنَ الْاُمَمِ مُحَدَّثُوْنَ وَ اِنَّهُ اِنْ كَانَ فِيْ اُمَّتِيْ هٰذِهٖ مِنْهُمْ فَاِنَّهُ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِؓ.

۲۸۴ : عبدالعزيز ابراهيم. ابراهيم. سعد. ابي سلمه. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، تاسو نه مخکښ دَ اُمتونو څهٔ خلق محدّث ووځ (يعني دَ حق تعالٰي همکلامي هغوي ته حاصله وه) خو ما اُمت کښ که څوک داسے دے. نو يقينًا هغه عمرؓ بن خطاب دے.

ف : محدَّث: هغه سړے چه دَ هغهٔ زړهٔ کښ څنے خبرے دَ اللّٰه دَ طرف نه اچولے شي، چه هغے ته الهام هم وئيلے شي.

۱. مُحَدَّث (د دال فتحے سره) هغه حضراتو ته وائي د چا په زړه باندے چه بغیر ذ وحي او نبوت نه رښتینے او حق خبره جاري کیږي. دا مرتبه د اولیاؤ صدیقینو ده' او د حضرت عمر رضي الله عنه په زوند کښے دا قسمه واقعات ملاویږي.

٦٨٥ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ أَبِيْ عَدِيٍّ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَبِيْ الصِّدِّيْقِ النَّاجِيِّ عَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كَانَ فِيْ بَنِيْ إِسْرَآءِيْلَ رَجُلٌ قَتَلَ تِسْعَةً وَّ تِسْعِيْنَ إِنْسَانًا ثُمَّ خَرَجَ يَسْأَلُ فَأَتَى رَاهِبًا فَسَأَلَهُ فَقَالَ لَهُ هَلْ مِنْ تَوْبَةٍ قَالَ لَا فَقَتَلَهُ فَجَعَلَ يَسْأَلُ فَقَالَ لَهُ رَجُلٌ ائْتِ قَرْيَةَ كَذَا وَ كَذَا فَأَدْرَكَهُ الْمَوْتُ فَنَاءَ بِصَدْرِهِ نَحْوَهَا فَاخْتَصَمَتْ فِيْهِ مَلٰئِكَةُ الرَّحْمَةِ وَ مَلٰئِكَةُ الْعَذَابِ فَأَوْحَى اللّٰهُ إِلَى هٰذِهِ أَنْ تَقَرَّبِيْ وَ أَوْحَى اللّٰهُ إِلَى هٰذِهِ أَنْ تَبَاعَدِيْ وَقَالَ قِيْسُوْا مَا بَيْنَهُمَا فَوَجَدَ إِلَى

٦٨٥ : محمد بن بشار. محمد بن ابي عدي. شعبه. قتاده. ابو صديق. ابو سعيد. نبي صلي الله عليه وسلّم نه روايت کوي' حضورؐ اوفرمائيل ذَ بني اسرائيلو يو سړي يو کم سل سړي قتل کړل. بيا ذَدے باهت کښې ذَ مسئلے تپوس کولو ذَ پاره اووتلو. اول يو درويش له راغے' ذَ هغهٔ نه ئے تپوس اوکړو' چه آيا خما توبه قبوله ده. درويش ورته اووے' نه' نو هغهٔ' هغه درويش هم قتل کړلو' دے نه پس هغه ذَ دے مسئلے تپوس کولو پسے اولړيدلو. چا ورته اووے' فلانئي کلي کښې (يو عالم دے) هغهٔ نه تپوس اوکه' هغه روان شو' ليکن لار کښې ورله مرګ راغے. ذَ مرګ په وخت هغهٔ خپله سينه هغے کلي طرف ته ورمخکښې کړه (کوم خائے چه هغه ذ مسئلے پښتنه کول غوښتل) ذَ رحمت ذَ فريښتو او ذَ عذاب ذَ فريښتو دے باره کښې تکرار اوشو. ذَ رحمت فريښتو وئيلے' ذَدهٔ روح مونږ اوړو' ځکه چه دهٔ ذ توبے پخه اراده کړے ده. ذَ عذاب فريښتو وئيلے' چه ذَدهٔ روح مونږ اوړو' ځکه چه دے سخت ګنهګار وو' دے دوران کښې خدائے تعالیٰ هغے کلي ته (کوم خائے چه هغه توبه کول غوښتل) دا حکم ورکړلو' چه اے کليه (اے بستي) دهٔ ته ورنزدے شه' او هغے کلي ته (کوم خائے چه هغهٔ ګناه کړے ده) دا حکم اوکه' چه تهٔ ددهٔ نه لرے شه. او فريښتو ته ئے حکم اوکهٔ' چه د دواړو کلو مسافت ناپ کړئے' او اوګورئے' چه دا مړے کوم کلي ته نزدے دے

هٰذِهٖ اَقْرَبَ بِشِبْرٍ فَغُفِرَ لَهٗ.

دا مُرده (دَ هغې کلي نه (کوم ځائې چه توبې د پاره تلو) يو ليشت قدرې نزدې وو، نو خدائې تعالٰي هغه اوبښلو.

۶۸۶: حَدَّثَنَا عَلِيُّ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ قَالَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلٰوةَ الصُّبْحِ ثُمَّ اَقْبَلَ عَلَى النَّاسِ فَقَالَ بَيْنَا رَجُلٌ يَّسُوْقُ بَقَرَةً اِذْ رَكِبَهَا فَضَرَبَهَا فَقَالَتْ اِنَّا لَمْ نُخْلَقْ لِهٰذَا اِنَّمَا خُلِقْنَا لِلْحَرْثِ فَقَالَ النَّاسُ سُبْحَانَ اللّٰهِ بَقَرَةٌ تُكَلِّمُ فَقَالَ فَاِنِّيْ اُوْمِنُ بِهٰذَا اَنَا وَ اَبُوْبَكْرٍ وَّ عُمَرُ وَمَا هُمَا ثَمَّ وَ بَيْنَمَا رَجُلٌ فِيْ غَنَمِهٖ اِذْ عَدَا الذِّئْبُ فَذَهَبَ مِنْهَا بِشَاةٍ فَطَلَبَ حَتّٰى كَاَنَّهُ اسْتَنْقَذَهَا مِنْهُ فَقَالَ لَهُ الذِّئْبُ هٰذَا اسْتَنْقَذْتَهَا مِنِّيْ فَمَنْ لَهَا يَوْمَ السَّبُعِ يَوْمَ لَا رَاعِيَ لَهَا غَيْرِيْ فَقَالَ النَّاسُ سُبْحَانَ اللّٰهِ ذِئْبٌ يَّتَكَلَّمُ قَالَ فَاِنِّيْ اُوْمِنُ بِهٰذَا اَنَا وَ اَبُوْبَكْرٍ وَّ عُمَرُؓ وَمَا هُمَا ثَمَّ وَ حَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مِسْعَرٍ عَنْ سَعْدِ بْنِ اِبْرٰهِيْمَ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِثْلِهٖ.

۶۸۶: علي بن عبدالله. سفيان. ابوالزناد. اعرج. ابوسلمه. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي: د هغهٔ بيان دې، يوه ورځ رسول الله صلي الله عليه وسلّم د سحر دَ مونځ نه پس خلقو ته متوجه شو، اووې فرمائيل: يو سړي غوې (بيل) شړلو شړلو کښې په هغهٔ سُور شو او وهلو ئې، غوي ورته اووې. مونږ سورلي دَ پاره نه يُو پيدا شوي، مونږ دَ کرکيلې دَ پاره پيدا شوې يو، خلقو اووې. سبحان الله، غوې خبرې کوي، حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، زهٔ، ابوبکرؓ او عمرؓ په دې واقعه ايمان راوړو، حالانکه ابوبکرؓ او عمرؓ دغلته موجود نهٔ وو. (ليکن حضورؐ په هغوي پوره اعتماد لرلو. په دې وجه دَ هغوي دَ طرف نه ئې شهادت اوکړ). او يو ځلې دَ يو سړي په چيلو يو شر مخ حمله اوکړه، او يوه چيلۍ ئې اوتښتوله ګډبه ورپسې شو، او چيلۍ ئې ترې خلاصه کړه، نو هغې شرمخ ورته اووې. دا چيلئې خو تا ځما نه خلاصه کړه، ليکن يوم السبع (ځناورو واله ورځ) باندې به دَ چيلئې محافظ څوک دي چه په هغه ورځ به ځما نه سِوا دَدې ګډبه نهٔ وي. خلقو تعجب سره اووې، سبحان الله، شرمخ هم خبرې کوي، حضورؐ اوفرمائيل، خو زهٔ، ابوبکرؓ او عمرؓ په دې ايمان لرو، حالانکه دا دواړه حضرات هلته موجود نهٔ وو، او دَ يو بل سند په ذريعه حضرت ابوهريرهؓ دَ رسالت مېب صلي الله عليه وسلّم نه دغسې يو بل حديث روايت کړې دې.

ف: يوم السبع: دَ ځناورو واله ورځ. دې نه مراد دَ قرب قيامت زمانه ده، چه دَ هر طرف نه به دَ ځناورو

عليه وي. وَ اِذَا لو حوش حشرت، يعني وحشي خناور به (ذ ويرے نه) تول راجمع شي

۶۸۷ : حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بُنُ نَصْرٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِشْتَرٰى رَجُلٌ مِنْ رَجُلٍ عِقَارًا لَهُ فَوَجَدَ الرَّجُلُ الَّذِيْ اشْتَرَى الْعِقَارَ فِيْ عِقَارِهٖ جَرَّةً فِيْهَا ذَهَبٌ فَقَالَ لَهُ الَّذِى اشْتَرَى الْعِقَارَ خُذْ ذَهَبَكَ مِنِّيْ اِنَّمَا اشْتَرَيْتُ مِنْكَ الْاَرْضَ وَلَمْ اَبْتَعِ مِنْكَ الذَّهَبَ وَ قَالَ الَّذِيْ لَهُ الْاَرْضُ اِنَّمَا بِعْتُكَ الْاَرْضَ وَمَا فِيْهَا فَتَحَاكَمَا اِلٰى رَجُلٍ فَقَالَ الَّذِيْ تَحَاكَمَا اِلَيْهِ اَلَكُمَا وَلَدٌ قَالَ اَحَدُهُمَا لِيْ غُلَامٌ وَ قَالَ الْاٰخَرُ لِيْ جَارِيَةٌ قَالَ اَنْكِحُوا الْغُلَامَ الْجَارِيَةَ وَ اَنْفِقُوْا عَلٰى اَنْفُسِهِمَا مِنْهُ وَ تَصَدَّقَا.

۶۸۷ : اسحٰق. عبدالرزاق. معمر. همام. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، د هغه بيان دے رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، پخوا زمانه كښې يو سړي ذ بل سړي نه څهٔ زمكه په بيع واخسته، او دغے اخستلے زمكه كښې خريدار د سرو زرو يو ډک منگے بيامند، بيائے ذ زمكے خرخونكي ته اووے، ته خپل سرهٔ زر (سونا) مانه واخله، ځكه ما تانه صرف زمكه اخستے ده، "سرهٔ زر" م در نه نهٔ وو آخستلے. بائع (خرخونكي) ورته اووے، چه ما خو زمكه او څه چه په دے كښې وو تول خرڅ كړے دي، بيا هغے دواړو يو سړے پنځ (ثالث) مقرر كړلو. هغے ثالث چه ذ مقدمے روئيداد واوريدلو، نو تپوس ئے اوكهٔ، آيا ستاسو ذ دواړو څهٔ اولاد شته، يو اووے. ځما يو ځوئے دے، او بل اووے ځما يو لور ده، پنځ ورته اووے. ذ هغے هلک هغے جينئ سره نكاح اوكړئے، او دا روپے د هغو په كار خير كښې اولګوئے.

۶۸۸ : حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ عَنْ اَبِي النَّضْرِ مَوْلٰى عُمَرَ بْنِ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدِ بْنِ اَبِيْ وَقَّاصٍ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّهُ سَمِعَهُ يَسْاَلُ اُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ مَاذَا سَمِعْتَ مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلطَّاعُوْنُ رِجْسٌ

۶۸۸ : عبدالعزيز. مالک. محمد بن منكدر. ابو نضر (ذ عمر بن عبيدالله، آزاد كرده غلام) عامر بن سعد بن ابي وقاص نه، او هغه ذ خپل پلار نه روايت كوي، هغه ذ خپل پلار حضرت اسامه بن زيد نه تپوس اوكهٔ آيا تا د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه ذ طاعون باره كښې څهٔ آوريدلے دي. حضرت اسامه ورته اووے، رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلے دي، طاعون يو عذاب دے چه ذ بني اسرائيلو په يو جماعت راغے، يا حضورؐ دا اوفرمائيل، چه په هغه خلقو چه ستاسو نه مخكښې وو،

اُرۡسِلَ عَلٰى طَآئِفَةٍ مِنۡ بَنِیۡ اِسۡرَآءِيۡلَ اَوۡ عَلٰى مَنۡ كَانَ قَبۡلَكُمۡ فَاِذَا سَمِعۡتُمۡ بِهٖ بِاَرۡضٍ فَلَا تَقۡدَمُوۡا عَلَيۡهِ وَ اِذَا وَقَعَ بِاَرۡضٍ وَ اَنۡتُمۡ بِهَا فَلَا تَخۡرُجُوۡا فِرَارًا مِنۡهُ قَالَ اَبُو النَّضۡرِ لَا يُخۡرِجُكُمۡ اِلَّا فِرَارًا مِنۡهُ.

نازل کړے شوے وو. هر کله چه تاسو واورئ، چه پۀ یو مقام کښې طاعون دے، نو تاسو هلته مۀ ځئ. او هر کله چه هغے ځائے کښې طاعون خور شي، کوم ځائے چه تاسو اوسیږئ، نو دَ هغے ځائے نه بل ځائے ته مۀ تښتئ. ابوالنضر فرمائي. دَ دے مطلب دا دے، چه خاص دَ تښتیدو پۀ نیت، (بل ځائے ته) مۀ ځئ. او که څۀ ضرورت پیښ شي، نو دَ هغے ځائے نه بل ځائے ته تلو کښې څۀ حرج نشته.

۶۸۹ : حَدَّثَنَا مُوۡسَى بۡنُ اِسۡمٰعِيۡلَ حَدَّثَنَا دَاوُدُ بۡنُ اَبِي الۡفُرَاتِ حَدَّثَنَا عَبۡدُ اللّٰهِ بۡنُ بُرَيۡدَةَ عَنۡ يَحۡيَى بۡنِ يَعۡمُرَ عَنۡ عَآئِشَةَ زَوۡجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ قَالَتۡ سَاَلۡتُ رَسُوۡلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ عَنِ الطَّاعُوۡنِ فَاَخۡبَرَنِيۡ اَنَّهٗ عَذَابٌ يَبۡعَثُهُ اللّٰهُ عَلٰى مَنۡ يَّشَآءُ وَ اَنَّ اللّٰهَ جَعَلَهٗ رَحۡمَةً لِّلۡمُؤۡمِنِيۡنَ لَيۡسَ مِنۡ اَحَدٍ يَّقَعُ الطَّاعُوۡنُ فَيَمۡكُثُ فِيۡ بَلَدِهٖ صَابِرًا مُّحۡتَسِبًا يَعۡلَمُ اَنَّهٗ لَا يُصِيۡبُهٗ اِلَّا مَا كَتَبَ اللّٰهُ لَهٗ اِلَّا كَانَ لَهٗ مِثۡلُ اَجۡرِ شَهِيۡدٍ.

۶۸۹ : موسٰي. داؤد. عبداللّٰه. یحیٰي. یحیٰي بن یعمر. بي بي عائشةؓ نبي کریم صلي اللّٰه علیه وسلّم نه روایت کوي، هغے اوویے، ما یو ځلے رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم نه دَ طاعون دَ حقیقت تپوس اوکۀ، حضورؐ اوفرمائیل، طاعون یو عذاب دے، چه اللّٰه تعالٰي خپلو بندیانو کښے پۀ چا غواړي، پۀ هغوي ئے نازلوي، او خدائے تعالٰي هغه دَ مؤمنانو دَ پاره رحمت ګرځوي، او کوم ځائے چه طاعون وي، او هلته دَ خدائے څوک مؤمن بنده ایسار شي (یعني آبادي یا ښهر پرے نه ږدي، او صابر اوسي او دَ خدائے نه دَ ثواب طالب اوسي، او دا اعتقاد لري، چه هغۀ ته به څه مصیبت نۀ رسي، لیکن صرف هغه چه خدائے تعالٰي هغه دَ پاره مقرر کړے دے، نو هغه ته دَ شهید ثواب رسي.

۶۹۰ : حَدَّثَنَا قُتَيۡبَةُ بۡنُ سَعِيۡدٍ حَدَّثَنَا لَيۡثٌ عَنِ ابۡنِ شِهَابٍ عَنۡ عُرۡوَةَ عَنۡ عَآئِشَةَ اَنَّ قُرَيۡشًا اَهَمَّهُمۡ شَاۡنُ الۡمَرۡاَةِ الۡمَخۡزُوۡمِيَّةِ الَّتِيۡ سَرَقَتۡ فَقَالُوۡا وَمَنۡ

۶۹۰ : قتیبه. لیث. ابن شهاب. عروه. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي، هغه فرمائي چه (امرائے) قریش دَ یو مخزومي ښځے معامله کښې ډیر فکرمند وو، هغے غلا کړے وه (او حضورؐ دَ هغے دَ لاس پریکولو حکم کړے وو) هغے خلقو اوویے، دَدے غلا ګر کړے ښځے متعلق به

يُكَلِّمُ فِيهَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوا وَمَنْ يَجْتَرِئُ عَلَيْهِ إِلَّا أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ حِبُّ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَلَّمَهُ أُسَامَةُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَشْفَعُ فِي حَدٍّ مِنْ حُدُودِ اللَّهِ ثُمَّ قَامَ فَاخْتَطَبَ ثُمَّ قَالَ إِنَّمَا أَهْلَكَ الَّذِينَ قَبْلَكُمْ أَنَّهُمْ كَانُوا إِذَا سَرَقَ فِيهِمُ الشَّرِيفُ تَرَكُوهُ وَ إِذَا سَرَقَ فِيهِمُ الضَّعِيفُ أَقَامُوا عَلَيْهِ الْحَدَّ وَ أَيْمُ اللَّهِ لَوْ أَنَّ فَاطِمَةَ بِنْتَ مُحَمَّدٍ سَرَقَتْ لَقَطَعْتُ يَدَهَا.

خبرې رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره خبرې اترې اوكړي (چه د لاس پريكولو نه بچ شي) بعضې خلقو اووې، اسامه بن زيد د رسول الله صلي الله عليه وسلّم ډير خوښ (زړه پورې) دې، كه څۀ خبره كولې شي، نو بس دې ورسره كولې شي. هغې خلقو مشوره اوكړه، او اسامه بن زيد ئې په دې خبره مجبور كه، نو اسامه جرأت اوكه، دا واقعه ئې د رسول الله صلي الله عليه وسلّم په خدمت كښې پيش كړه. په دې حضورؐ (خپل زړه پورې) اسامه ته اووې، تۀ د خدائې قائم كړې سزا كانو كښې د يو حد د نۀ قائمولو سفارشي ئې. دې وئيلو سره حضورؐ اودريدلو، او خلقوته ئې خطبه وركړه، چه ستاسو نه مخكښې اُمتونه په دې هلاک شو، چه هغوي كښې به يو شريف سړي غلا اوكړه، نو هغه به ئې پريښودلو، او سزا به ئې ورنۀ كړه، او كه يو كمزوري سړي به غلا اوكړه، نو هغه له به ئې سزا وركوله. په خدائې م دې قسم وي، كه فاطمهؓ د محمدؐ لور هم غلا اوكړي، نو زۀ به د هغې لاس هم پريكړم.

۱۹۱ : حَدَّثَنَا آدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ مَيْسَرَةَ قَالَ سَمِعْتُ النَّزَّالَ بْنَ سَبْرَةَ الْهِلَالِيَّ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍؓ قَالَ سَمِعْتُ رَجُلًا قَرَأَ آيَةً وَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ خِلَافَهَا فَجِئْتُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرْتُهُ فَعَرَفْتُ فِي وَجْهِهِ الْكَرَاهِيَةَ وَ قَالَ كِلَا كُمَا مُحْسِنٌ وَلَا تَخْتَلِفُوا فَإِنَّ مَنْ

۱۹۱ : آدم. شعبه. عبدالملک. نزال بن سبرة الهلالي. حضرت ابن مسعودؓ نه روايت كوي، هغه وائي، ما د يو سړي نه د نبي صلي الله عليه وسلّم د قرأت خلاف يو آيت لوستل واوريدل، نو ما هغه سړې نبي كريم صلي الله عليه وسلّم له راُوستلو، او ما حضورؐ ته دا واقعه بيان كړه، نو ما د حضورؐ په مخ مبارک د ناگوارئ (ناخوښئ) اثر محسوس كړلو، حضورؐ اوفرمائيل، تاسو دواړه صحيح وائې اختلاف مۀ كوئې، كوم خلق چه ستاسو نه مخكښې وو هغوي اختلاف كړې وو، په دې

كَانَ قَبْلَكُمْ اِخْتَلَفُوْا فَهَلَكُوْا.

وجه هغوي هلاک شولو.

۲۹۲ : حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ قَالَ حَدَّثَنِيْ شَقِيْقٌ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ كَاَنِّيْ اَنْظُرُ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحْكِيْ نَبِيًّا مِنَ الْاَنْبِيَآءِ ضَرَبَهٗ قَوْمُهٗ فَاَدْمُوْهُ وَهُوَ يَمْسَحُ الدَّمَ عَنْ وَجْهِهٖ وَ يَقُوْلُ اللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِقَوْمِيْ فَاِنَّهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ.

۲۹۲ : عمر بن حفص. اعمش. شقيق بيان اوكړ. حضرت عبدالله (بن مسعودؓ) فرمائيل، ګويا دا وخت هم زهٔ رسول الله صلي الله عليه وسلّم وينم، چه دَ پخوانو انبياؤ دَ يو نبي كيفيت بيانوي، چه دَ هغهٔ قوم هغه اووهلو او په وينوئے ليت پيت كړهٔ، هغهٔ به دَ خپل مخ نه وينے اوچولے، او وئيل به ئے "اے خدايه، خما دا قوم اوبښے، ځكه چه دوي خما دَ قدر، او منزلت نه واقف نهٔ دي.

۲۹۳ : حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَبْدِ الْغَافِرِ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ رَجُلًا كَانَ قَبْلَكُمْ رَغَسَهُ اللّٰهُ مَالًا فَقَالَ لِبَنِيْهِ لَمَّا حُضِرَ اَيَّ اَبٍ كُنْتُ لَكُمْ قَالُوْا خَيْرَ اَبٍ قَالَ فَاِنِّيْ لَمْ اَعْمَلْ خَيْرًا قَطُّ فَاِذَا مِتُّ فَاَحْرِقُوْنِيْ ثُمَّ اسْحَقُوْنِيْ ثُمَّ ذَرُوْنِيْ فِيْ يَوْمٍ عَاصِفٍ فَفَعَلُوْا فَجَمَعَهُ اللّٰهُ عَزَّ وَ جَلَّ فَقَالَ مَا حَمَلَكَ قَالَ مَخَافَتُكَ فَتَلَقَّاهُ بِرَحْمَتِهٖ وَ قَالَ مَعَاذٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ سَمِعْتُ عُقْبَةَ ابْنَ عَبْدِ الْغَافِرِ سَمِعْتُ اَبَا سَعِيْدِ الْخُدْرِيَّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۲۹۳ : ابوالوليد. ابو عوانه. عقبه. بيان اوكړ. حضرت ابوسعيد خدريؓ رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه روايت كوي، ستاسونه مخکښ يو سړے وو. د هغهٔ دَ مرګ وخت چه راغے، هغهٔ دَ خپلو خامنو نه تپوس اوكړهٔ، زهٔ ستاسو كوم قسم پلار ووم، هغوي ورته اووے، تهٔ خمونږ ډير ښهٔ پلار وے. بيا ورته، هغه اووے (ښهٔ ده خما په وصيت عمل اوكړئے) ما هيڅ كله څهٔ نيكي نهٔ ده كړے، چه زهٔ مړشم، ما اوسوزوئے، او ميده مِ كړئے. بيا دَ تيزے هوا په ورځ مِ درياب كښې (ايرے) اوغرځوئے نو دَ هغه دَ وصيت مطابق دَ هغه خامنو دغسے اوكړل، الله پاک دَ هغه (دَ جسم) ذرات راجمع كړل او تپوس ئے ترے اوكهٔ، چه دے حركت ته ته څهٔ څيز جوت كړلے، هغهٔ عرض اوكهٔ، ستانه خوف، نو الله تعالي هغه خپل رحمت كښې راونغښتلو (يعني ورے ښنلو).

۲۹۴ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ عَبْدِ

۲۹۴ : مسدد. ابو عوانه. عبدالملک. ربعي بن حراش نه روايت كوي، عقبه حضرت حذيفه ته اووے، تهٔ

عبدُ الملكِ بنِ عُمَيرٍ عَنْ رِبْعِيِّ بنِ حِرَاشٍ قَالَ قَالَ عُقْبَةُ لِحُذَيْفَةَ اَلَا تُحَدِّثُنَا مَا سَمِعْتَ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ سَمِعْتُهُ يَقُوْلُ اِنَّ رَجُلًا حَضَرَهُ الْمَوْتُ لَمَّا اَيِسَ مِنَ الْحَيٰوةِ اَوْصٰى اَهْلَهُ اِذَا مِتُّ فَاَجْمَعُوْا لِيْ حَطَبًا كَثِيْرًا ثُمَّ اَوْرُوْا نَارًا حَتّٰى اِذَا اَكَلَتْ لَحْمِيْ وَ خَلَصَتْ اِلٰى عَظْمِيْ فَخُذُوْهَا وَ فَاطْحَنُوْهَا فَذَرُوْنِيْ فِي الْيَمِّ فِيْ يَوْمٍ حَارٍّ اَوْ رَاحٍ فَجَمَعَهُ اللّٰهُ فَقَالَ لِمَ فَعَلْتَ قَالَ خَشْيَتَكَ فَغَفَرَ لَهُ قَالَ عُقْبَةُ وَ اَنَا سَمِعْتُهُ يَقُوْلُ.

۲۹۵: حَدَّثَنَا مُوْسٰى حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ وَ قَالَ فِيْ يَوْمٍ رَاحٍ.

۲۹۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كَانَ رَجُلٌ يُدَايِنُ النَّاسَ فَكَانَ يَقُوْلُ لِفَتَاهُ اِذَا اَتَيْتَ مُعْسِرًا فَتَجَاوَزْ عَنْهُ لَعَلَّ اللّٰهَ اَنْ يَتَجَاوَزَ عَنَّا قَالَ

مونږ ته هغه خبرے ولے نه کوے، چه تا د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه آوريدلے دي. هغهٔ ورته اووے، ما د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه واوريدل. يو سړے له مرګ راغے، ذ هغهٔ ذ ژوند هيڅ اُميد پاتے نه شو، نو هغهٔ خپل کور والو ته وصيت اوکهٔ، چه کوم وخت زهٔ مړشم نو ما ذ پاره ډير لرګي راجمع کړے، هغے ته اُور ورته کړے، او هغے کښې م اوغرځوئے، تر دے چه اُور خما غوښه اوخوري، او خما هډوکو ته اورسي، نو هغه هډوکي ميده کړئے بيا خما هغه ميده شوے هډوکي د ګرمے هوا يا (دائے اووے) ذ تيزے هوا په ورځ درياب کښې اوغرځوئے، (نو دغسے ئے اوکړلو) بيا الله تعالٰي هغه راجمع کړلو، او ورته ئے اوفرمائيل، تا داسے ولے اوکړل، هغهٔ ورته عرض اوکهٔ، ستا د ويرے نه م دغسے اوکړل، نو الله تعالٰي هغه اوبښلو.

۲۹۵: موسي. ابو عوانه. عبدالملک. ابن شهاب نه روايت کوي، چه دغے ذکر شوي سړي اووے، چه ذ تيزے هوا په ورځ (خما ميده شوے هډوکي درياب کښے اوغرځوئے).

۲۹۶: عبدالعزيز بن ابراهيم. ابن شهاب. عبيدالله. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، يو سړي به خلقو له قرض ورکولو او خپل غلام ته به ئے وئيلے. کله چه تهٔ تقاضا کولو ذ پاره يو تنګدست له ورشے، نو هغهٔ ته معافي کوه، شايد چه الله تعالٰي مونږ ته معافي اوکړي، حضورؐ اوفرمائيل، بيا هغه (ذ مرګ نه پس) چه هغه خدائےتعالٰي سره يوځائے شو، نو خدائے تعالٰي

فَلَقِيَ اللّٰهَ فَتَجَاوَزَ عَنْهُ.

هغه اوبښلو.

۶۹۷ : حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هِشَامٌ اَخْبَرَنِيْ مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كَانَ رَجُلٌ يُسْرِفُ عَلٰى نَفْسِهِ فَلَمَّا حَضَرَهُ الْمَوْتُ قَالَ لِبَنِيْهِ اِذَا اَنَا مِتُّ فَاحْرِقُوْنِيْ ثُمَّ اطْحَنُوْنِيْ ثُمَّ ذَرُّوْنِيْ فِي الرِّيْحِ فَوَاللّٰهِ لَئِنْ قَدَرَ عَلَيَّ رَبِّيْ لَيُعَذِّبَنِّيْ عَذَابًا مَّا عَذَّبَهُ اَحَدًا فَلَمَّا مَاتَ فُعِلَ بِهٖ ذٰلِكَ فَاَمَرَ اللّٰهُ الْاَرْضَ فَقَالَ اجْمَعِيْ مَا فِيْكِ مِنْهُ فَفَعَلَتْ فَاِذَا هُوَ قَائِمٌ فَقَالَ مَا حَمَلَكَ عَلٰى مَا صَنَعْتَ قَالَ يَا رَبِّ خَشْيَتُكَ فَغَفَرَ لَهٗ وَ قَالَ غَيْرُهٗ مَخَافَتُكَ يَا رَبِّ.

۶۹۷ : عبدالله. هشام. معمر. زهري. حميد.

حضرت ابوهريرةؓ رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه روايت كوي، حضورؐ اوفرمائيل، يو سړي به ډيره ګناه كوله، دَ هغهٔ دَ مرګ وخت چه راغے، نو خپلو خامنو ته اووے كله چه زهٔ مړشم، نو ما اوسوزوئے، ميده مِ كړئے، بيا ما (يعني څما ايرے) هوا كښې والوځوئے، ځكه چه قسم په خدائے، كه خدائے په ما قابو بياموي، نو داسے عذاب به راكړي، چه هيچا ته به ئے نهٔ وي وركړے، چه هغه مړشو، نو هغه سره دَ هغهٔ دَ وصيت مطابق عمل اوكړے شو، نو خدائے تعالٰي زمكے ته حكم اوكهٔ، چه دَ دے سړي ځومره ذرات تا كښې پراتهٔ وي، هغه راجمع كړه، زمكے راجمع كړل، نو يكدم هغه سړے صحيح سالم اودريدلو، الله تعالٰي ورته اوفرمائيل، تهٔ په دے حركت څهٔ څيز آماده كړلے، هغهٔ عرض اوكهٔ، پروردګاره، ستا خوف نو خدائے تعالٰي هغه اوبښلو.

۶۹۸ : حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ اَسْمَاءَ حَدَّثَنَا جُوَيْرِيَةُ بْنُ اَسْمَاءَ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ عُذِّبَتْ امْرَاَةٌ فِيْ هِرَّةٍ سَجَنَتْهَا حَتّٰى مَاتَتْ فَدَخَلَتْ فِيْهَا النَّارَ لَا هِيَ اَطْعَمَتْهَا وَلَا سَقَتْهَا اِذْ حَبَسَتْهَا وَلَا هِيَ تَرَكَتْهَا تَاْكُلُ مِنْ خُشَاشِ الْاَرْضِ.

۶۹۸ : عبدالله. جويريه. نافع. حضرت عبدالله بن عمر نه روايت كوي، رسالت مآب صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، په يوه ښځه دَ يوے پيشو (بلّي) په وجه عذاب اوكړے شو، هغے پيشو ترلے وه، او خوراك څكاك ئے نهٔ وركولو، تردے چه هغه مړه شوله، په دے وجه هغه دوزخ ته لاړه. نه ئے هغه پريښوده نه هغے پيشو له خوراك وركهٔ، نه څكاك، او نه ئے هغه پريښوده، چه هغے حشرات الارض (يعني مږے، چرچڼړے وغيره) خوړلے.

۶۹۹ : حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ

۶۹۹ : احمد. زهير. منصور. ربعي بن حراش.

يُونُسَ عَنْ زُهَيْرٍ حَدَّثَنَا مَنْصُوْرٌ عَنْ رِبْعِيِّ بْنِ حِرَاشٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ مَسْعُوْدٍ عُقْبَةُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ مِمَّا اَدْرَكَ النَّاسُ مِنْ كَلَامِ النُّبُوَّةِ اِذَا لَمْ تَسْتَحْيِ فَافْعَلْ مَا شِئْتَ.

حضرت ابو مسعودؓ نه، چه د عقبه په نوم ياديږي، بيان كوي، هغه اووې، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، كلمات نبوت نه، چه خلقوته رسيدلے دي، دا جمله هم ده. اذلم تستحى فاصنع: يعني هر كله چه تا كښې حيا پاتې نشي، نو څه چه غواړې، هغه كوه.

۷۰۰: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مَنْصُوْرٍ قَالَ سَمِعْتُ رِبْعِيَّ بْنَ حِرَاشٍ يُحَدِّثُ عَنْ اَبِيْ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ مِمَّا اَدْرَكَ النَّاسُ مِنْ كَلَامِ النُّبُوَّةِ اِذَا لَمْ تَسْتَحْيِ فَاصْنَعْ مَا شِئْتَ.

۷۰۰: آدم. شعبه. منصور نه روايت كوي، هغه اووې ما د ربعي بن حراش په ذريعه ابو مسعودؓ نه دا بيان واوريدلو، رسول الله صلي الله عليه وسلّم فرمائيلي دي. د (مخكني) نبوت د كلماتو نه چه خلقوته رسيدلے دي، دا جمله هم وه، چه هر كله تا كښې حيا پاتې نشي، نو بيا چه څه غواړې، هغه كوه.

۷۰۱: حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ مُحَمَّدٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَنِيْ سَالِمٌ اَنَّ ابْنَ عُمَرَ حَدَّثَهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَمَا رَجُلٌ يُجُرُّ اِزَارَهُ مِنَ الْخُيَلَاءِ خُسِفَ بِهٖ فَهُوَ يَتَجَلْجَلُ فِي الْاَرْضِ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ تَابَعَهُ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ خَالِدٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ.

۷۰۱: بشر. عبدالله. يونس. زهري. سالم. حضرت ابن عمرؓ نه روايت كوي، رسول الله صلے الله عليه وسلّم اوفرمائيل، يو سړي خپل پرتوګ د تكبر نه خكته كړے روان وو، چه زمكه كښې په خكته لاړ، او هغه به قيامته پورې زمكه كښې په خكته ځي، عبدالرحمٰن بن خالد د زهري نه دده متابع حديث روايت كړے دے.

۷۰۲: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ طَاوُسٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ نَحْنُ

۷۰۲: موسي. وهيب. ابن طاوس. حضرت ابوهريرهؓ بيان كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، مونږ (د ظهور د اعتبار نه د ټولونه) ورستو يو، ليكن د قيامت په ورځ (مرتبه كښې) به د ټولونه مخكښې يو، مابسوا ددے چه نه بله خبره نشته، چه نورو امتونو ته

اَلْاٰخِرُوْنَ السَّابِقُوْنَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ بَيْدَ كُلِّ اُمَّةٍ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِنَا وَ اُوْتِيْنَاهُ مِنْ بَعْدِهِمْ فَهٰذَا الْيَوْمُ الَّذِيْ اخْتَلَفُوْا فِيْهِ فَغَدًا لِلْيَهُوْدِ وَ بَعْدَ غَدٍ لِلنَّصَارٰى عَلٰى كُلِّ مُسْلِمٍ فِيْ كُلِّ سَبْعَةِ اَيَّامٍ يَوْمٌ يَّغْسِلُ رَاْسَهٗ وَ جَسَدَهٗ.

خمونږ نه مخکښ کتاب ورکړے شوے دے او مونږ ته ذ هغوي نه پس کتاب را کړے شوے دے. بیا دا ورځ (د جمعې) هغه ورځ ده، چه دے کښ خلقو اختلاف اوکړ دے نو صبا لـه راتلونکے ورځ (یعني ذ خالي ورځ) یهودیانو ذ پاره مقرر شوه، او بل صبا ورځ (یعني د اتوار ورځ) نصاري د پاره. هر مسلمان باندے اوو ورځو کښ یوه داسے ورځ (یعني ذ جمعې ورځ) مقرر شوے ده چه هغې کښ هغه خپل سر، او بدن اووینزي.

۷۰۳: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مُرَّةَ سَمِعْتُ سَعِيْدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ قَالَ قَدِمَ مُعَاوِيَةُ بْنُ اَبِيْ سُفْيَانَ الْمَدِيْنَةَ اٰخِرَ قَدْمَةٍ قَدِمَهَا فَخَطَبَنَا فَاَخْرَجَ كُبَّةً مِنْ شَعْرٍ فَقَالَ مَا كُنْتُ اَرٰى اَنَّ اَحَدًا يَفْعَلُ هٰذَا غَيْرَ الْيَهُوْدِ وَ اِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمَّاهُ الزُّوْرَ يَعْنِي الْوِصَالَ فِي الشَّعْرِ تَابَعَهٗ غُنْدَرٌ عَنْ شُعْبَةَ.

۷۰۳: آدم. شعبه. عمرو بیان کوي سعید بن مسیب وائي، حضرت معاویه بن ابي سفیان په آخري ځل مدینے منورے ته راغے، خمونږ مخکښ ئے خطبه اولوسته، او ذ یو مصنوعي ویښتو ګونجۍ ئے راوښکله، او وے وئیل، خما دا خیال نۀ راتلو، چه سوا ذ یهودو نه به بل څوک داسے کوي، او یقینًا رسالت مےب صلي اللّه علیه وسلّم ددے نوم "زور" ایښے دے. یعني ویښتو کښ جوړ لړولوته[۱] ئے زور (دروغ) فرمائیلے دي. غندر ذ شعبه نه ددے متابع حدیث روایت کړے دے.

۱. یعني د سر په قدرتي ویښتو کښے مصنوعي ویښته لګولو سره بودۍ جوړول.

# كِتَابُ الْمُنَاقِبِ — دَ بزرګي او فخر دَ خبرو بیان کښ

## باب ۳۵۵: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى — باب ۳۵۵: دَ اللّٰه تعالٰي ارشاد دے: یا ایها الناس

يَا اَيُّهَا النَّاسُ اِنَّا خَلَقْنٰكُمْ مِنْ ذَكَرٍ وَّ اُنْثٰى وَ جَعَلْنٰكُمْ شُعُوْبًا وَ قَبَائِلَ لِتَعَارَفُوْا اِنَّ اَكْرَمَكُمْ عِنْدَ اللّٰهِ اَتْقٰكُمْ وَ

انا خلقناکم من ذکر و انثی وجعلناکم شعوبا و قبائل لتعارفوا ان اکرمکم عندالله اتقاکم (اے خلقو مونږ تاسو ذ یو سړي او یوے ښځے نه پیدا کړے ئے، او تاسو مو مختلف قومونه او خاندانونه جوړ کړے چه ذ یو بل

قوله واتقوا الله الذى تساء لون به والارحام ان الله كان عليكم رقيبا وما ينهى عن دعوى الجاهلية الشعوب النسب البعيد والقبائل دون ذلك.

شناخت اوکړے شي. او د الله په نزد تاسو کښې زيات شريف يعني عزت مند هغه دے چه د ټولو نه زيات پرهيزګار دے) واتقوا الله الذى تساء لون به والارحام ان الله كان عليكم رقيبا (او د هغے الله نه اوويريږئ چه د هغهٔ ذريعے سره تاسو خپلو کښې سوال کوئے او د رشته دارانو خيال ساتئے).

۴۰۷: حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ يَزِيدَ الْكَاهِلِيُّ حَدَّثَنَا أَبُوبَكْرٍ عَنْ أَبِي حُصَيْنٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ وَ جَعَلْنَاكُمْ شُعُوبًا وَ قَبَائِلَ قَالَ الشُّعُوبُ اَلْقَبَائِلُ الْعِظَامُ وَالْقَبَائِلُ الْبُطُونُ.

۴۰۷: خالد. ابوبكر. ابو حصين. سعيد نه بيان كوي، حضرت ابن عباسؓ نه: و جعلناكم شعوبا و قبائل لتعارفوا: تفسير كولو كښې روايت دے، هغهٔ اوفرمائيل، شعوب معني لوئے قبيلے او قبائل معني د (وړو وړو) بطن دي.

۴۰۵: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ قَالَ حَدَّثَنِي سَعِيدُ بْنُ أَبِي سَعِيدٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قِيلَ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَنْ أَكْرَمُ النَّاسِ قَالَ أَتْقَاهُمْ قَالُوا لَيْسَ عَنْ هٰذَا نَسْأَلُكَ قَالَ فَيُوسُفُ نَبِيُّ اللَّهِ.

۴۰۵: محمد. يحيى. عبيدالله. سعيد. ابو سعيد. حضرت ابوهريرةؓ نه روايت كوي، هغهٔ اووے يو خل رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه تپوس اوشو، يا رسول الله، د ټولونه زيات بزرګ څوک دے، وے فرمائيل، څوک چه د الله نه زيات ويريږي، صحابه ؤ عرض اوکړ، مونږ دا تپوس نهٔ کوو، وے فرمائيل، يوسف د الله نبي (د ټولونه زيات بزرګ دے).

۴۰۶: حَدَّثَنَا قَيْسُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا كُلَيْبُ بْنُ وَائِلٍ قَالَ حَدَّثَتْنِي رَبِيبَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَيْنَبُ بِنْتُ أَبِي سَلَمَةَ قَالَ قُلْتُ لَهَا أَرَءَيْتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَكَانَ مِنْ مُضَرَ قَالَتْ فَمِمَّنْ كَانَ إِلَّا مِنْ

۴۰۶: قيس. عبدالواحد. كليب. بيان كوي، ماته زينب بنت ابي سلمه بيان اوکړهٔ، ما د هغے نه تپوس کړے وو، آيا تاته معلومه ده، چه نبي صلي الله عليه وسلّم د مضر قبيلے نه وو. يا د څهٔ بلے قبيلے نه، هغے اووے، او د قبيلهٔ مضر (د نضر بن كنانه د اولاد)

مُضَرَ مِنْ بَنِي النَّضْرِ بْنِ كِنَانَةَ.

نه وو.

ف: ربیبه: ذَ ربیب مؤنث. ذَ ورمېښې خاوند لور، چه هغه ښځه خان سره ذَ دویم خاوند کورته راولې.

۷۰۷: حَدَّثَنَا مُوسٰى حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ حَدَّثَنَا كُلَيْبٌ حَدَّثَتْنِيْ رَبِيْبَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَظُنُّهَا زَيْنَبَ قَالَتْ نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الدُّبَّآءِ وَالْحَنْتَمِ وَالْمُقَيَّرِ وَالْمُزَفَّتِ وَ قُلْتُ لَهَا اَخْبِرِيْنِي النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِمَّنْ كَانَ مِنْ مُضَرَ كَانَ قَالَتْ فَمِمَّنْ كَانَ اِلَّا مِنْ مُضَرَ كَانَ مِنْ وُلْدِ النَّضْرِ بْنِ كِنَانَةَ.

۷۰۷: موسٰي. عبدالواحد. کلیب. بیان کوي، ماته ذَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم ربیبه اووے، او خما خیال دے چه ذَ هغې نوم زینب وو. ذَ هغې بیان دے چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم، دبـاء، حنتم، نقیر او مزفت! ذَ استعمال نه منع فرمائیلے ده، او ما ذَ هغې نه تپوس اوکه، چه ماته اوښایه، چه نبي کریم صلي اللّٰه علیه وسلّم د مضر قبیلے نه وو (یا ذَ څه بلې قبیلې نه) نو هغې اووے، حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ذَ مضري قبیلے نه وو چه ذَ نضر بن کنانه ذَ اولاد نه وو.

ف: دبـاء، حنتم، نقیر، مزفت: دا یو قسم ذَ لوښو نومونه دي، چه هغې کښې ذَ جاهلیت زمانه کښې شراب څکلې سو.

۱. دا څلور واړه د شرابو لوښي وو کومو کښې به چه عربو شراب جوړول او استعمالول به ئې. د هغې جوړ ښت څه داسې وو چه شراب به په هغې کښې زر تیاریدل. کله چه ذَ شرابو ممانعت نازل شو نو احتیاطاً د دغه لوښو په استعمال باندې هم څو ورځو د پاره بندیز اولګولې شو. په دې باندې نوټ مخکښې تیر شوے دے.

۷۰۸: حَدَّثَنِيْ اِسْحٰقُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ اَخْبَرَنَا عُمَارَةُ عَنْ اَبِيْ زُرْعَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ تَجِدُوْنَ النَّاسَ مَعَادِنَ خِيَارُهُمْ فِي الْجَاهِلِيَّةِ خِيَارُهُمْ فِي الْاِسْلَامِ اِذَا فَقِهُوْا وَ تَجِدُوْنَ خَيْرَ النَّاسِ فِيْ هٰذَا الشَّاْنِ اَشَدَّهُمْ لَهٗ كَرَاهِيَةً وَ تَجِدُوْنَ شَرَّ النَّاسِ ذَا الْوَجْهَيْنِ الَّذِيْ يَاْتِيْ هٰؤُلَاءِ

۷۰۸: اسحاق. جریر. عماره. ابو زرعه. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اورمائیل تاسو به خلق د، کان (معادن) په شان (مختلف الطبائع) بیامومئے، دوي کښې چه څوک د جاهلیت زمانه کښې ښهٔ وو، هغوي اسلام کښې هم ښهٔ دي، په شرط ذدې چه ذَ ټولونه زیات د دین پوهه حاصله کړي، او تاسو به د ټولونه ښه هغه بیامومئ چه هغه ذَ دې (امارت) نهٔ خوښونکے وي. او تاسو به ذَ ټولونه زیات هغه دوزخي (منافق) بیامومئے چه هغه خلقوته په یو مخ

بِوَجْهٍ وَ يَأْتِيْ هٰؤُلَآءِ بِوَجْهٍ.

راخي او هغوي ته په بل مخ ځي.

۹ ۰ ۷: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا الْمُغِيْرَةُ عَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ النَّاسُ تَبَعٌ لِقُرَيْشٍ فِيْ هٰذَا الشَّانِ مُسْلِمُهُمْ تَبَعٌ لِمُسْلِمِهِمْ وَ كَافِرُهُمْ تَبَعٌ لِكَافِرِهِمْ وَالنَّاسُ مُعَادِنُ خِيَارُهُمْ فِي الْجَاهِلِيَّةِ خِيَارُهُمْ فِي الْاِسْلَامِ اِذَا فَقِهُوْا تَجِدُوْنَ مِنْ خَيْرِ النَّاسِ اَشَدَّ النَّاسِ كَرَاهِيَةً لِهٰذَا الشَّاْنِ حَتّٰى يَقَعَ فِيْهِ.

۹ ۰ ۷: قتيبه. مغيره. ابوالزناد. اعرج. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل. دے كار كښې خلق ډ قريشو تابع دي، د هغوي مسلمان دَ هغوي ذ مسلمان تابع دے، او دَ هغوي كافر دَ هغوي دَ كافر تابع دے. او خلقو د كانونو په شان دَ مختلف طبائعو دي، دوي كښې چه څوک دَ جاهليت زمانه كښې بهتر وو، هغوي دَ اسلام زمانه كښې هم بهتر دي په شرط دَ دے چه دَ دين علم حاصل كړي. تاسو به دَ ټولونه ښه هغه سړے بيامومے چه دَ اسلام دَ ټولونه لوئے دښمن وو، او بيا اسلام كښې داخل شولو.

## باب ۳۵۶:

## باب ۳۵۶: دَ دے باب څۀ سرخي نشته.

۱۰ ۷: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ شُعْبَةَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ الْمَلِكِ عَنْ طَاوُسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ اِلَّا الْمَوَدَّةَ فِي الْقُرْبٰى قَالَ فَقَالَ سَعِيْدُ بْنُ جُبَيْرٍ قُرْبٰى مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَكُنْ بَطْنٌ مِنْ قُرَيْشٍ اِلَّا وَلَهُ فِيْهِ قَرَابَةٌ فَنَزَلَتْ عَلَيْهِ اِلَّا اَنْ تَصِلُوْا قَرَابَةً بَيْنِيْ وَ بَيْنَكُمْ.

۱۰ ۷: مسدد. يحيٰي. شعبه. عبدالملک. طاؤس بيان كوي. حضرت ابن عباسؓ نه دَ، الا المودة فى القربٰى: په تفسير كښې منقول دي، هغه فرمائي، سعيد بن جبيرؓ وئيلے، "قربٰى" نه دَ محمد صلي الله عليه وسلّم قرابت مراد دے، دَ هغۀ بيان دے، چه قريش كښې هيڅ بطن داسے نۀ وو، چه هغوي سره دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم قرابت نۀ وي دے باره كښې دا آيت نازل شو، چه څما او خپل مينځ كښې دَ قرابت خيال ساتئے.

ف: بطن: خيټه. ګېډه، نس، لرمون، رحم، موروثي، پشت په پشت.

۱۱ ۷: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اِسْمٰعِيْلَ عَنْ قَيْسٍ عَنْ اَبِيْ مَسْعُوْدٍ يَبْلُغُ بِهِ النَّبِيَّ

۱۱ ۷: علي. سفيان. اسمٰعيل. قيس. حضرت ابو مسعودؓ نه روايت كوي ما دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مِنْ هٰهُنَا جَآءَتِ الْفِتَنُ نَحْوُ الْمَشْرِقِ وَالْجَفَآءُ وَ غِلَظُ الْقُلُوْبِ فِي الْفَدَّادِيْنَ اَهْلِ الْوَبَرِ عِنْدَ اُصُوْلِ اَذْنَابِ الْاِبِلِ وَالْبَقَرِ فِيْ رَبِيْعَةَ وَ مُضَرَ.

واوریدل، چه ذ دې طرف یعنې مشرق طرف نه به فتنې رابرسیره کیږي. ظلم او سنګدلي شتربانانو کښې وي. یعنې اوني (وړینو) خیمو واله کښې. ذ اوښ او غوالګو کښې، یعنې ربیعه او ذ مضر قبیله کښې وي.

۲۱۷: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ الْفَخْرُ وَالْخُيَلَآءُ فِي الْفَدَّادِيْنَ اَهْلِ الْوَبَرِ وَالسَّكِيْنَةُ فِيْ اَهْلِ الْغَنَمِ وَالْاِيْمَانُ يَمَانٍ وَالْحِكْمَةُ يَمَانِيَّةٌ سُمِّيَتِ الْيَمَنُ لِاَنَّهَا عَنْ يَمِيْنَ الْكَعْبَةِ وَالشَّامُ عَنْ يَسَارِ الْكَعْبَةِ وَالْمَشْئَمَةُ الْمَيْسَرَةُ وَالْيَدُ الْيُسْرٰى الشُّوْمٰى وَالْجَانِبُ الْاَيْسَرُ الْاَشْاَمُ.

۲۱۷: ابوالیمان. شعیب. زهري. ابو سلمه. حضرت ابوهریرة نه روایت کوي، هغهٔ اوویل: ما ذ رسول الله صلي الله علیه وسلّم نه آوریدلې دي: چه فخر او تکبر شتربانانو (ساربانانو) یعني اوني خیمو والو کښې وي. او سکون چیلو والو کښې وي. ایمان یماني. ذ یمن نوم په دې وجه یمن کیښودې شو، چه هغه ذ کعبې شریفې نه ښي طرف ته دې. او ذ شام نوم په دې وجه شام ایښودې شوې دې، چه هغه ذ کعبې شریفې نه ګس طرف ته دې مشامه (چه ذ هغې نه شام ماخوذ دې) ګس جانب ته وائي، او ګس لاس ته الید الشومی وائي، او ګس جانب ته الاشام وائي.

## باب ۳۵۷: مَنَاقِبِ قُرَيْشٍ.

## باب ۳۵۷: ذ قریش ذ مناقب بیان.

۳۱۷: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ كَانَ مُحَمَّدُ بْنُ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ يُحَدِّثُ اَنَّهُ بَلَغَ مُعَاوِيَةَ وَهُوَ عِنْدَهٗ فِيْ وَفْدٍ مِّنْ قُرَيْشٍ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ يُحَدِّثُ اَنَّهُ سَيَكُوْنُ مَلِكٌ مِّنْ قَحْطَانَ فَغَضِبَ مُعَاوِيَةُ فَقَامَ فَاَثْنٰى

۳۱۷: ابوالیمان. شعیب. زهري. محمد بن جبیر مطعم نه روایت دې، حضرت معاویه ته دا خبر اورسید (او هغه وخت محمد بن جبیر ذ قریشو یو جماعت سره حضرت معاویه سره وو). عبدالله بن عمر بن عاص وائي، ذ قحطان قبیلې نه به څوک بادشاه وي، نو حضرت معاویه غضبناک شو، اودرید. بیائې ذ خدائې تعالي تعریف او که،

عَلَى اللّٰهِ بِمَا هُوَ اَهْلُهٗ ثُمَّ قَالَ اَمَّا بَعْدُ فَاِنَّهٗ بَلَغَنِيْ اَنَّ رِجَالًا مِّنْكُمْ يَتَحَدَّثُوْنَ اَحَادِيْثَ لَيْسَتْ فِيْ كِتَابِ اللّٰهِ وَلَا تُؤْثَرُ عَنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاُوْلٰٓئِكَ جُهَّالُكُمْ فَاِيَّاكُمْ وَالْاَمَانِيَّ الَّتِيْ تُضِلُّ اَهْلَهَا فَاِنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنَّ هٰذَا الْاَمْرَ فِيْ قُرَيْشٍ لَا يُعَادِيْهِمْ اَحَدٌ اِلَّا اَكَبَّهُ اللّٰهُ عَلٰى وَجْهِهٖ مَا اَقَامُوا الدِّيْنَ.

ثنـکـه چـه د هـغـه لائق دے. دے نه پس ئے اوفرمائيل: مـاتـه دا خبـر رارسيـدلے دے، چـه تـاسو کښې ځينې خلق داسے خبرے کوي، چه کتاب اللّٰه کښې نشته. او نهٔ د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه منقول دي. دا خلق ستاسو جهّال (جاهلان) دي، خبردار تاسو گمراه کن خيال پيدا نهٔ کړئ، ما د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه آوريدلے دي، حضورؐ اوفرمائيل: خلافت به قريشو کښې وي، ځو پورے چه هغوي دين درست ساتي، کوم سړے چه هغوي سره دشمني کوي، خدائيتعالي به هغه پرمخے راوغرځوي.

۱. عبـداللّٰـه بـن عـمـرو بن عاص رضي اللّٰه عنه د تورات مطالعه کړے وه، دا خبره به د حضرت امير معاويه رضي اللّٰه عنه په علم کښې هم وه. د پخوا د هغوئ د بيان کرده حديث کوم چه محمد بن جبير نقل کړے وو، هغوئ ته ئے علم نه وو، په دے وجه د هغوئ شک راغے چه يقيناً دا حديث دوئ د تورات نه نقل کولو سره همداسے بے سنده بيان کړے دے. همدا وجه ده چه معاويه رضي اللّٰه عنهٔ ئے آوريدو سره په غصه شو، او کوم چه د هغوئ په علم کښې حقيقت حال وو خلق ئے د هغے نه خبرول ضروري اوگنړل. عبداللّٰه بن عمر رضي اللّٰـه عنـه د حديث بيانولو وخت کښې د نبي کريم صلي اللّٰه عليه وسلّم حواله هم نه وه ورکړے، په دے وجه د معاويه رضي اللّٰه عنه شُبه په يقين بدله شوه. کنے واقعه داده چه د ابن عمر رضي اللّٰه عنه بيان کرده حديث هم صحيح وو او د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه ثابت وو. پخپله صحيح بخاري کښې د ابوهريره رضي اللّٰه عنه په واسطے سره هم دا حديث منقول دے. د بني قحطان د کوم حکمران ذکر چه په حديث کښې دے، د هغه متعلق رواياتونه پته لګي چه هغهٔ به د عيسي عليه السلام نه روستو وي او غالبًا د اسلام آخري حکمران به وي.

۳۲۱۷: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا عَاصِمُ مُحَمَّدٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبِيْ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضی اللہ عنہ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَزَالُ هٰذَا الْاَمْرُ فِيْ قُرَيْشٍ مَا بَقِيَ مِنْهُمُ اثْنَانِ.

۳۲۱۷: ابوالوليد. عاصم. محمد. حضرت ابن عمرؓ نه بيان کوي، هغهٔ اوفرمائيل، ما رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه آوريدلے دي ځو پورے چه قريشو کښې دوه سړي هم ديندار وي، هغه وخته پورے دا امر يعني خلافت به هم قريشو کښې وي.

۳۲۱۵: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ

۳۲۱۵: يحيي. ليث. عقيل. ابن شهاب. ابن مسيب. حضرت جبير بن مطعمؓ نه بيان کوي، هغهٔ

شِهَابٍ عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ قَالَ مَشَيْتُ اَنَا وَ عُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَعْطَيْتَ بَنِي الْمُطَّلِبِ وَ تَرَكْتَنَا وَ اِنَّمَا نَحْنُ وَهُمْ مِنْكَ بِمَنْزِلَةٍ وَاحِدَةٍ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّمَا بَنُوْ هَاشِمٍ وَ بَنُو الْمُطَّلِبِ شَيْءٌ وَاحِدٌ وَ قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ اَبُو الْاَسْوَدِ مُحَمَّدٌ عَنْ عُرْوَةَ ابْنِ الزُّبَيْرِ قَالَ ذَهَبَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ الزُّبَيْرِ مَعَ اُنَاسٍ مِنْ بَنِيْ زُهْرَةَ اِلٰى عَائِشَةَؓ وَ كَانَتْ اَرَقَّ شَيْءٍ عَلَيْهِمْ لِقَرَابَتِهِمْ مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

اووې، زۀ او عثمان بن عفان دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم خدمت کښې حاضر شو. بیا حضرت عثمان عرض او کۀ یا رسول اللّٰه! تاسو بني مطلب ته مال عطا کۀ، او مونږ ته مو رانۀ کۀ، حالانکه ستاسو په نزد مونږ او هغوي په یوه درجه کښې یو. حضورؐ ورته اوفرمائیل، چه صرف بني هاشم او بني مطلب یو دي، او لیث بیان کوي، ماته ابو الاسود یعني محمد دَ عروه بن زبیر نه نقل کولو سره بیان او کۀ، هغۀ وئیلې، عبداللّٰه بن زبیر دَ قبیلۀ زهره څو سړو سره بي بي عائشےؓ له ورغې، او بي بي عائشہؓ هغې خلقو سره ډېرې نرمي سره پیش راتله، ځکه چه هغوي دَ حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم قرابت دار وو.

۱۶ ۷ : حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ سَعْدٍ ح قَالَ يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا اَبِيْ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ هُرْمُزَ الْاَعْرَجُ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُرَيْشٌ وَالْاَنْصَارُ وَ جُهَيْنَةُ وَ مُزَيْنَةُ وَ اَسْلَمُ وَ اَشْجَعُ وَ غِفَارُ وَ مَوَالِيَّ لَيْسَ لَهُمْ مَوْلٰى دُوْنَ اللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ.

۱۶ ۷ : ابو نعیم. سفیان. سعد. (دویم سند) یعقوب بن ابراهیم دَ خپل پلار نه، عبدالرحمٰن بن هرمز الاعرج. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي رسالت مےب صلي اللّٰه علیه وسلّم ارشاد اوفرمائیلو ۀ قریشو، انصارو او قبائل جهینه، مزینه، اسلم، اشجع او غفار بغیر دَ اللّٰه تعالي او دَ هغه دَ رسول نه بل څوک نشته.

۱۷ ۷ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُو الْاَسْوَدِ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ قَالَ كَانَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ الزُّبَيْرِ اَحَبَّ

۱۷ ۷ : عبداللّٰه. لیث. ابوالاسود. عروه بن زبیر بیان کوي، عبداللّٰه بن زبیر دَ بي بي عائشےؓ په نزدۀ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم او حضرت ابوبکرؓ نه پس دَ ټولو خلقونه زیات محبوب وو، و هغۀ به دَ بي بي

الْبِشْرِ اِلٰى عَائِشَةَ بَعْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَبِيْ بَكْرٍ وَ كَانَ اَبَرَّ النَّاسِ بِهَا وَ كَانَتْ لَا تُمْسِكُ شَيْئًا مِمَّا جَاءَهَا مِنْ رِزْقِ اللّٰهِ اِلَّا تَصَدَّقَتْ فَقَالَ ابْنُ الزُّبَيْرِ يَنْبَغِيْ اَنْ يُؤْخَذَ عَلٰى يَدَيْهَا فَقَالَتْ اَيُؤْخَذُ عَلٰى يَدَيَّ عَلَيَّ نَذْرٌ اِنْ كَلَّمْتُهُ فَاسْتَشْفَعَ اِلَيْهَا بِرِجَالٍ مِنْ قُرَيْشٍ وَ بِاَخْوَالِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَاصَّةً فَامْتَنَعَتْ فَقَالَ لَهُ الزُّهْرِيُّوْنَ اَخْوَالُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْهُمْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ الْاَسْوَدِ بْنِ عَبْدِ يَغُوْثَ وَالْمِسْوَرُ بْنُ مَخْرَمَةَ اِذَا اسْتَاْذَنَّا فَاقْتَحِمِ الْحِجَابَ فَفَعَلَ فَاَرْسَلَ اِلَيْهَا بِعَشْرِ رِقَابٍ فَاَعْتَقَتْهُمْ ثُمَّ لَمْ تَزَلْ تُعْتِقُهُمْ حَتّٰى بَلَغَتْ اَرْبَعِيْنَ فَقَالَتْ وَدِدْتُ اَنِّيْ جَعَلْتُ حِيْنَ حَلَفْتُ عَمَلًا اَعْمَلُهُ فَاَفْرُغَ مِنْهُ.

عائشےؓ ډیر خدمت کولو، او د بي بي عائشےؓ دا عادت وو، د الله تعالٰی د ورکړو، نه چه څومره څۀ هغے له راتلل، هغه به ئے نۀ جمع کول، بلکه خيرات کول به ئے. عبدالله بن زبيرؓ اووے، د هغے لاس منع کول پکار دي بي بي عائشےؓ اوفرمائيل آيا ځما لاس منع کوي، او نذر ئے اومنلو چه زۀ به دۀ سره هيڅ کله خبرے اونۀ کړم نو هغه د قريشو څو سړو سره خاص طور سره د حضور صلي الله عليه وسلّم نانهيالي (د مور د مخے د نيا يا د نيکۀ کور يا کورني) په ذريعه سفارش اوکۀ، خو هغے اونۀ منله، نو ابن زبيرؓ ته زهريا نو چه د حضور صلي الله عليه وسلّم نانهيالي خپلوان وو، هغوي کښې عبدالرحمٰن بن الاسود بن عبد يغوث او مسور بن مخرمه هم وو، اووئيل، کوم وخت چه مونږ بي بي عائشےؓ نه اجازت اخستو له ورشو، نو تۀ پرده کښې دننه شه، بيا به مونږ هغے ته صفائي اوکړو، نو ابن زبيرؓ دغسے اوکړل، بي بي عائشےؓ ته ئے لس غلامان اوليږل، عائشےؓ هغه آزاد کړل، او پرله پسے غلامان ئے آزادول، حتي چه د هغوي تعداد څلويښتو ته اورسيدلو، اووے فرمائيل، ما غوښتل چه د خپل قسم نه پس څۀ داسے خبره اوکړم چه د دے قسم نه بهر شم.

## بَابٌ ۳۵۸: نَزَلَ الْقُرْاٰنُ بِلِسَانِ قُرَيْشٍ.

## باب ۳۵۸: د قريشو ژبه کښې د قرآن مجيد د نازليدو بيان.

۸۱۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَنَسٍ اَنَّ عُثْمَانَ دَعَا زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ وَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ

۸۱۷: عبدالعزيز. ابراهيم. ابن شهاب. حضرت انسؓ روايت کوي، حضرت عثمانؓ زيد بن ثابت او عبدالله بن زبيرؓ او سعيد بن عاص او عبدالرحمٰن بن حارث بن هشام

الزُّبَيْرِ وَ سَعِيدَ بْنَ الْعَاصِ وَ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ الْحَارِثِ بْنِ هِشَامٍ فَنَسَخُوهَا فِي الْمَصَاحِفِ وَ قَالَ عُثْمَانُ لِلرَّهْطِ الْقُرَشِيِّيْنَ الثَّلٰثَةِ إِذَا اخْتَلَفْتُمْ أَنْتُمْ وَ زَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ فِي شَيْءٍ مِنَ الْقُرْاٰنِ فَاكْتُبُوهُ بِلِسَانِ قُرَيْشٍ فَإِنَّمَا نَزَلَ بِلِسَانِهِمْ فَفَعَلُوا ذٰلِكَ.

راوغبنتلو بیا دے خلقو قرآن کتابي شکل کښې اولیکلو او حضرت عثمانؓ ذ قریشو درے سړوته وئیلي وو، هر کله چه تاسو خلقو او ذ زید بن ثابت ذ قرآن په څهٔ خائے اختلاف پیدا شي نو هغه د قریش په ژبه کښې لیکئ ځکه چه قرآن ذ قریشو په ژبه کښې نازل شوے دے، نو هغے خلقو دغسے اوکړل.

باب ۳۵۹: نِسْبَةِ الْيَمَنِ إِلٰى إِسْمٰعِيْلَ مِنْهُمْ أَسْلَمَ بْنُ أَفْصٰى ابْنِ حَارِثَةَ بْنِ عَمْرِو بْنِ عَامِرٍ مِنْ خُزَاعَةَ.

باب ۳۵۹: اهل یمن سره ذ اسماعیل علیه السلام ذ خپلولي بیان. قبائل یمن نه اسلم بن افصي بن حارثه بن عمرو بن عامر دي، چه ذ قبیلهٔ خزاعه په نوم مشهور دي.

۷۱۹: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ يَزِيْدَ بْنِ أَبِي عُبَيْدٍ حَدَّثَنَا سَلَمَةُؓ قَالَ خَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى قَوْمٍ مِنْ أَسْلَمَ يَتَنَاضَلُوْنَ بِالسُّوْقِ فَقَالَ ارْمُوْا بَنِيْ إِسْمٰعِيْلَ فَإِنَّ أَبَاكُمْ كَانَ رَامِيًا وَ أَنَا مَعَ بَنِيْ فُلَانٍ لِأَحَدِ الْفَرِيْقَيْنِ فَأَمْسَكُوْا بِأَيْدِيْهِمْ فَقَالَ مَا لَهُمْ قَالُوْا كَيْفَ نَرْمِيْ وَ أَنْتَ مَعَ بَنِيْ فُلَانٍ قَالَ ارْمُوْا وَ أَنَا مَعَكُمْ كُلِّكُمْ.

۷۱۹: مسدد. یحیٰي. یزید. حضرت سلمهٔ نه بیان کوي، رسول الله صلي الله علیه وسلّم ذ قبیله اسلم خنو خلقو ته تشریف یوړلو، هغوي بازار کښې تیر اندازي کوله، حضور صلي الله علیه وسلّم ورته اوفرمائیل، اے ذ اسماعیل اولاده، تیر اندازي کوئے، ځکه چه ستاسو پلار (اسماعیلؑ) تیر انداز وو، او زهٔ فلانو سړو سره یم. ذ یو فریق په باره کښې حضورؐ داسے اوفرمائیل، نو ذ بل فریق خلقو لاس اونیول، حضورؐ اوفرمائیل، دوي ولے منع شو، خلقو اووے، مونږ څنګه تیر اندازي اوکړو، هر کله چه تاسوؐ فلاني فریق سره یے، نو حضورؐ ورته اوفرمائیل، تیر اندازي کوے، زهٔ تولو سره یم.

باب ۳۶۰:

باب ۳۶۰: داباب هم بے عنوانه (بے سرخي) دے.

۷۲۰: حَدَّثَنَا أَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنِ الْحُسَيْنِ عَنْ عَبْدِ

۷۲۰: ابو معمر. عبدالوارث. حسین. عبدالله. یحیٰي. ابوالاسود. حضرت ابوذرؓ نه روایت کوي، هغهٔ ذ

اللهِ بْنِ بُرِيْدَةَ قَالَ حَدَّثَنِيُ يَحْيَى بْنُ يَعْمَرُ أَنَّ أَبَا الْأَسْوَدِ الدَّيْلِيَّ حَدَّثَهُ عَنْ أَبِيُ ذَرٍّ أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَيْسَ مِنْ رَجُلٍ ادَّعِىَ لِغَيْرِ أَبِيْهِ وَهُوَ يَعْلَمُهُ إِلَّا كَفَرَ بِاللّٰهِ وَمَنِ ادَّعٰى قَوْمًا لَيْسَ لَهُ فِيْهِمْ نَسَبٌ فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ.

رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه واوريدل' كوم سړے چه خپل خان ذ خپل پلار نه علاوه بل چاته منسوب كړي' او هغه په دے خبره پوهيږي هم' نو هغه حقيقت كښ خدائے تعالي سره كفر كوي' او كوم سړے چه ذ يو داسے قوم نه ذ كيدو دعوي كووي' چه هغے كښ ذ هغهٔ هيڅ خپلوان نهٔ وي نو ذ هغهٔ ټيكاؤنړي دوزخ دے.

۱۲۷: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَيَّاشٍ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ قَالَ حَدَّثَنِيُ عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ النَّصْرِيُّ قَالَ سَمِعْتُ وَاثِلَةَ بْنَ الْأَسْقَعِ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ مِنْ أَعْظَمِ الْفِرٰى أَنْ يَّدَّعِيَ الرَّجُلُ إِلٰى غَيْرِ أَبِيْهِ أَوْ يُرِىَ عَيْنَهُ مَالَمْ تَرَى أَوْ يَقُوْلَ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَالَمْ يَقُلْ.

۱۲۷: علي. جرير. عبدالواحد بيان كوي' هغهٔ اووے' ما ذ واثله بن اسقع نه دا واوريدل' رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' حقيقتاً ذ ټولو نه لوئے بهتان دا دے چه يو سړے ذ خپل پلار نه علاوه خپل خان بل چاته منسوب كړي' يا خپلے ستر گے طرف ته ذ څهٔ داسے خبرے ليدل منسوب كړي' چه هغه ئے نهٔ وي ليدلے' يا رسول الله صلي الله عليه وسلّم جانب ته داسے خبره منسوب كړي' چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم نهٔ وے فرمائيلے.

۲۲۷: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ أَبِيُ جَمْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ ابْنُ عَبَّاسٍ يَقُوْلُ قَدِمَ وَفْدُ عَبْدِ الْقَيْسِ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ إِنَّا مِنْ هٰذَا الْحَيِّ مِنْ رَبِيْعَةَ قَدْ حَالَتْ بَيْنَنَا وَبَيْنَكَ كُفَّارُ مُضَرَ فَلَسْنَا نَخْلُصُ إِلَيْكَ إِلَّا فِيْ كُلِّ شَهْرٍ حَرَامٍ فَلَوْ أَمَرْتَنَا بِأَمْرٍ نَأْخُذُهُ عَنْكَ وَ نُبَلِّغُهُ مَنْ وَرَآئَنَا قَالَ آمُرُكُمْ بِأَرْبَعٍ وَ أَنْهَاكُمْ عَنْ

۲۲۷: مسدد. حماد. ابي جمره نه روايت كوي' حماد ابن عباسؓ نه واوريدل' ذ قبيله عبدالقيس څنے خلقو ذ حضورؐ خدمت كښ عرض اوكهٔ' يا رسول الله' مونږ ذ ربيعه قبيلے يو' خمونږ او ستاسو مينځ كښ ذ مضر قبيلے كفار حائل دي' په دے وجه مونږ ذ حرمت ذ مياشتو نه علاوه بل وخت ستاسو خدمت كښ نهٔ شو حاضريدے' نو تاسوٌ مونږ ته ذ داسے خبرے حكم راكړئے' چه هغه مونږه ياده كړو' او پاتے خلق پرے آگاه كړو. حضورؐ اوفرمائيل' زهٔ تاسو ته ذ څلورو خبرو ذ كولو حكم دركوم' او ذ څلورو خبرو نه مو منع كوم' په

اَرْبَعٍ اَلْاِيْمَانُ بِاللّٰهِ شَهَادَةِ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ اِقَامُ الصَّلٰوةِ وَ اِيْتَاءُ الزَّكٰوةِ وَ اَنْ تُؤَدُّوْا اِلَى اللّٰهِ خُمُسَ مَا غَنِمْتُمْ وَ اَنْهَاكُمْ عَنِ الدُّبَّاءِ وَالْحَنْتَمِ وَالنَّقِيْرِ وَالْمُزَفَّتِ.

خدائے ايمان راوړل او ددے امر شهادت كول چه د الله نه سِوا بل معبود نشته، او د مونځ ادا كولو، او د زكوة وركولو، او مال غنيمت كښې ذ پنځمے حصے وركولو حكم دركوم، او ذ څلورو خبرونه مو منع كوم. دباء، حنتم، نقير او مزفت ذ استعمال نه مو منع كوم.

ف: دباء: ذ كدو تونبے، يعني كدو چه اُوچ شي او دننه نه ئے تش كړي. حنتم: لاكهي مرتبان يا منګوټے. نقير: د اُونو جرړے چه دوے كړے شي او لوښي ترے جوړ كړے شي. مزفت: روغن كړے لوښے. دے څلور قسمه لوښو كښې به شراب څكلے شو، نو ذ دے استعمال منع كړے شو.

۳۴۲۳: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ اَلَا اِنَّ الْفِتْنَةَ هٰهُنَا يُشِيْرُ اِلَى الْمَشْرِقِ مِنْ حَيْثُ يَطْلَعُ قَرْنُ الشَّيْطٰنِ.

۳۴۲۳: ابواليمان. شعيب. زهري. سالم. حضرت عبدالله بن عمرؓ نه روايت كوي، هغهٔ اووے، ما ذ رسالت مىٓب صلي الله عليه وسلم نه ذ منبر ذ پاسه آوريدلے دي، آګاه شئے، فتنه به دے ځائے نه پورته كيږي، حضور صلي الله عليه وسلم مشرق طرف ته اشاره كوله، او ذدے ځائے نه ذ شيطان ښكر ظاهريږي.

باب ۱۳۶۱: ذِكْرِ اَسْلَمَ وَ غِفَارَ وَ مُزَيْنَةَ وَجُهَيْنَةَ وَ اَشْجَعَ.

باب ۱۳۶۱: ذ قبيلهٔ اسلم. غفار. مزينه. جهينه. او اشجع ذ تذكرو بيان.

۳۴۲۴: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ سَعْدٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ هُرْمُزَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُرَيْشٌ وَ اَنْصَارُ وَ جُهَيْنَةُ وَ مُزَيْنَةُ وَ اَسْلَمُ وَ غِفَارُ وَ اَشْجَعَ مَوَالِيَّ لَيْسَ لَهُمْ مَوْلَى دُوْنَ اللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ.

۳۴۲۴: ابو نعيم. سفيان. سعيد. عبدالرحمٰن بن هرمز. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، رسالت مىٓب صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، قريش، انصار، جهينه، مزينه، اسلم، غفار او اشجع (قبائل) ځما دوستان دي، او هغوي ته ذ الله تعالي او ذ هغهٔ ذ رسول دوستي حاصله ده.

۳۴۲۵: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ غُرَيْرٍ الزُّهْرِيُّ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ

۳۴۲۵: محمد. يعقوب. ابراهيم ذ هغهٔ پلار. صالح. نافع نه روايت كوي، حضرت عبدالله

إِبْرٰهِيْمَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ صَالِحٍ حَدَّثَنَا نَافِعٌ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ اَخْبَرَهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ عَلَى الْمِنْبَرِ غِفَارٌ غَفَرَ اللّٰهُ لَهَا وَ اَسْلَمُ سَالَمَهَا اللّٰهُ وَ عُصَيَّةُ عَصَتِ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهُ.

بن عمر اوورے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم د منبر ذ پاسه اوفرمائيل، د غفار قبيلے خلق دے اللّٰه اوبښي، او اسلم قبيله دے اللّٰه سلامت لري، عصيّه قبيلے ذ خدائے او ذ هغه ذ رسول مخالفت اوكړ، او ذ نافرماني تهمت ئے په خپل سر آخستلے دے.

۴۲۶: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ الثَّقَفِيُّ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَسْلَمُ سَالَمَهَا اللّٰهُ وَ غِفَارٌ غَفَرَ اللّٰهُ لَهَا.

۴۲۶: محمد. عبدالوهاب. ايوب. محمد. عبدالملک. عبدالرحمٰن. حضرت ابوبکرؓ نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليهٔ وسلّم ارشاد اوفرمائيل قبيلهٔ اسلم دے خدائے سلامت لري، او ذ قبيلهٔ غفار دے مغفرت نصيب كړي.

۴۲۷: حَدَّثَنَا قَبِيْصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا ابْنُ مَهْدِيٍّ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِيْ بَكْرَةَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرَءَيْتُمْ اِنْ كَانَ جُهَيْنَةُ وَ مُزَيْنَةُ وَ اَسْلَمُ وَ غِفَارُ خَيْرًا مِنْ تَمِيْمٍ وَ بَنِيْ اَسَدٍ وَ بَنِيْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ غَطْفَانَ وَمِنْ بَنِيْ عَامِرِ بْنِ صَعْصَعَةَ فَقَالَ رَجُلٌ خَابُوْا وَ خَسِرُوْا فَقَالَ هُمْ خَيْرٌ مِنْ بَنِيْ تَمِيْمٍ وَ مِنْ بَنِيْ اَسَدٍ وَمِنْ بَنِيْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ غَطْفَانَ وَمِنْ بَنِيْ عَامِرِ بْنِ صَعْصَعَةَ.

۴۲۷: قبيصه. سفيان. محمد. عبدالملک. عبدالرحمٰن. حضرت ابوبكرؓ نه روايت كوي رسول صلي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو تاسو ته معلومه ده، جهينه، مزينه، اسلم او ذ غفار قبيلے، ذ بني اسد، بني عبداللّٰه بن غطفان او بني عامر بن صعصعهؓ ډيرے ښے دي. نو يو سړي عرض اوكړ چه بني تميم وغيره نامراد او ناكام شول، ارشاد ئے اوفرمائيلو، او جهينه وغيره قبيلے ذ بني تميم، بني اسد، بني عبداللّٰه بن غطفان، بني عامر بن صعصعه نه ډيرے ښے دي[1].

[1]. د جاهليت پهٔدور كښے جُهينه، مُزينه، اسلم او غفار قبيلے د بني تميم، بني اسد وغيره نه كمه

درجه کښې ګنړلې یدې. بیا چه کله اسلام راغې نو هغوئ ددې په قبلولو کښې سبقت اوکړو او په اسلام کښې ئې نمایان کارونه تر سره کړل، په دې وجه شرف او فضیلت کښې د بنو تمیم وغیره قبائلو نه وړاندې شو. په حدیث کښې همدا ارشاد شوې دې.

۷۲۸: حَدَّثَنِیْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدُرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اَبِیْ یَعْقُوْبَ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ اَبِیْ بَكْرَةَ عَنْ اَبِیْهِ اَنَّ الْاَقْرَعَ بْنَ حَابِسٍ قَالَ لِلنَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اِنَّمَا بَایَعَكَ سُرَّاقُ الْحَجِیْجِ مِنْ اَسْلَمَ وَ غِفَارَ وَ مُزَیْنَةَ وَ اَحْسِبُهٗ وَ جُهَیْنَةَ ابْنُ اَبِیْ یَعْقُوْبَ شَكَّ قَالَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَرَءَیْتَ اِنْ كَانَ اَسْلَمُ وَ غِفَارُ وَ مُزَیْنَةُ وَ اَحْسِبُهٗ وَ جُهَیْنَةُ خَیْرًا مِنْ بَنِیْ تَمِیْمٍ وَ بَنِیْ عَامِرٍ وَ اَسَدٍ وَ غَطْفَانَ خَابُوْا وَ خَسِرُوْا قَالَ نَعَمْ قَالَ وَالَّذِیْ نَفْسِیْ بِیَدِهٖ اِنَّهُمْ لَخَیْرٌ مِنْهُمْ.

۷۲۸: محمد بن بشار. غندر. شعبه. محمد بن ابو یعقوب. عبدالرحمن بن ابوبکره. حضرت ابوبکره نه روایت کوي، اقرع بن حابس رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم نه عرض اوکړ، چه سراق الحجیج چه د اسلم (قبیلې، نه دي، او غفار، مزینه، جهینه تاسو نه بیعت کړې دې، نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم اوفرمائیل، تاسو بوهیږئ، چه اسلم، مزینه او جهینه دا ټول د بني تمیم، بن عامر او غطفان ناکام او نامراد نه بهتر دي. اقرع بن حابس عرض اوکړ، جي او، حضور اوفرمائیل په هغه ذات م دې قسم وي، د چا قبضه کښ چه خما ساه ده، چه اسلم او غفار وغیره د بني تمیم وغیره نه ډیر ښه دي.

۷۲۹: حَدَّثَنَا سُلَیْمَانُ بْنُ حَرْبٍ قَالَ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَیْدٍ عَنْ اَیُّوْبَ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ قَالَ قَالَ اَسْلَمُ وَ غِفَارُ وَ شَیْءٌ مِنْ مُزَیْنَةَ وَ جُهَیْنَةَ اَوْ قَالَ شَیْءٌ مِنْ جُهَیْنَةَ اَوْ مُزَیْنَةَ خَیْرٌ عِنْدَ اللّٰهِ اَوْ قَالَ یَوْمَ الْقِیَامَةِ مِنْ اَسَدٍ وَّ تَمِیْمٍ وَ هَوَازِنَ وَ غَطْفَانَ.

۷۲۹: سلیمان بن حرب. حماد بن زید. ایوب. محمد. حضرت ابي هریره نه روایت کوي، هغوي اووئیلې، اسلم او غفار او څه خلق د مزینه او جهینه، یا داسې اووئیل څه خلق د جهینه یا مزینه د اللّٰه په نزد یا داسې اوئیل، د قیامت په ورځ اسد او تمیم او هوازن او غطفان نه ډیرې ښې وي.

باب ۳۶۲: اِبْنُ اُخْتِ الْقَوْمِ وَ مَوْلَى الْقَوْمِ مِنْهُمْ.

۷۳۰: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ قَالَ دَعَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْاَنْصَارَ فَقَالَ هَلْ فِيْكُمْ اَحَدٌ مِنْ غَيْرِكُمْ قَالُوْا لَا اِلَّا ابْنُ اُخْتٍ لَنَا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِبْنُ اُخْتِ الْقَوْمِ مِنْهُمْ.

باب ۳۶۳: قِصَّةِ زَمْزَمَ.

۷۳۱: حَدَّثَنَا زَيْدٌ هُوَ ابْنُ اَخْزَمَ قَالَ اَبُوْ قُتَيْبَةَ سَلْمُ بْنُ قُتَيْبَةَ حَدَّثَنِيْ مُثَنَّى ابْنُ سَعِيْدِ الْقَصِيْرُ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ جَمْرَةَ قَالَ قَالَ لَنَا ابْنُ عَبَّاسٍ اَلَا اُخْبِرُكُمْ بِاِسْلَامِ اَبِيْ ذَرٍّ قَالَ قُلْنَا بَلٰى قَالَ قَالَ اَبُوْ ذَرٍّ كُنْتُ رَجُلًا مِنْ غِفَارٍ فَبَلَغَنَا اَنَّ رَجُلًا قَدْ خَرَجَ بِمَكَّةَ يَزْعَمُ اَنَّهُ نَبِيٌّ فَقُلْتُ لِاَخِيْ اِنْطَلِقْ اِلٰى هٰذَا الرَّجُلِ كَلِّمْهُ وَاْتِنِيْ بِخَبَرِهِ فَانْطَلَقَ فَلَقِيَهُ ثُمَّ رَجَعَ فَقُلْتُ مَا عِنْدَكَ فَقَالَ وَاللّٰهِ لَقَدْ رَاَيْتُ رَجُلًا يَاْمُرُ بِالْخَيْرِ وَ يَنْهٰى عَنِ الشَّرِّ فَقُلْتُ لَهُ لَمْ تَشْفِنِيْ مِنَ الْخَبَرِ فَاَخَذْتُ جِرَابًا وَ عَصًا

باب ۳۶۲: دَ قوم دَ خوریٔ (بهانجا) او غلام هغے قوم کښې دَ شمیرلو بیان.

۷۳۰: سلیمان. شعبه. قتاده. حضرت انسؓ نه روایت کوي: رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم د انصارو مجلس کښې اووے: آیا ن دے مجلس کښې ستاسو نه علاوه دَ بل قوم سړے هم موجود دے: ټولو په یو آواز عرض او کۀ، سِوا خمونږ دَ خوریٔ نه بل څوک شریک نۀ دے. په دے رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمایل: خوري هم دَ خپلو ماماګانو دَ قوم نه دے.

باب ۳۶۳: دَ آب زمزم بیان.

۷۳۱: زید. ابو قتیبه. سلم. مثني. ابو جمره نه روایت کوي: حضرت ابن عباسؓ مونږ ته اووے: زۀ تاسو ته دَ ابو ذر دَ اسلام راوړلو واقعه بیانوم. مونږ ورته اووے، ضرور بیان کړه حضرت ابن عباسؓ اوفرمائیل: ابوذرؓ وئیلے: زۀ دَ قبیلۀ غفار، یو سړے یم، مونږ ته خبر راورسید: چه مکه کښې یو سړے ظاهر شوے دے: چه دَ نبوت دعوي کوي: ما خپل وروړته اووے ته لاړ شه: هغے سړي سره خبرے اترے او کړه او ما پرے خبر کړه، هغه لاړ، او حضورؐ سره دَ ملاقات نه پس واپس راغے. ما دَ هغه نه دریافت او کۀ، څۀ خبر دے راوړے دے: جواب ئے راکۀ، په خدائے چه ما داسے ځوان مرد اولید، چه دَ نیکي حکم کوي، او بدیٔ نه منع کوي. ما اووے: دومره خبر سره خما تسلي اونۀ شوه. ما خپله ناشته او همسا واخسته، او مکے ته روان شوم، مکه کښې چه داخل شوم، نو سخت پریشانه شوم: ځکه چه حضور اکرم صلي اللّٰه علیه وسلّم م نۀ پیژندلو، او نۀ م دا مناسب کنړله، چه د

ثُمَّ اَقْبَلْتُ اِلَى مَكَّةَ فَجَعَلْتُ لَا اَعْرِفُهُ وَ اَكْرَهُ اَنْ اَسْاَلَ عَنْهُ وَ اَشْرَبُ مِنْ مَاءِ زَمْزَمَ وَ اَكُوْنُ فِي الْمَسْجِدِ قَالَ فَمَرَّ بِيْ عَلِيٌّ فَقَالَ كَاَنَّ الرَّجُلَ غَرِيْبٌ قَالَ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ فَانْطَلِقْ اِلَى الْمَنْزِلِ قَالَ فَانْطَلَقْتُ مَعَهُ لَا يَسْاَلُنِيْ عَنْ شَيْءٍ وَلَا اُخْبِرُهُ فَلَمَّا اَصْبَحْتُ غَدَوْتُ اِلَى الْمَسْجِدِ لِاَسْاَلَ عَنْهُ وَلَيْسَ اَحَدٌ يُخْبِرُنِيْ عَنْهُ بِشَيْءٍ قَالَ فَمَرَّ بِيْ عَلِيٌّ فَقَالَ اَمَا نَالَ لِلرَّجُلِ يَعْرِفُ مَنْزِلَهُ بَعْدُ قَالَ قُلْتُ لَا قَالَ انْطَلِقْ مَعِيَ قَالَ فَقَالَ مَا اَمْرُكَ وَمَا اَقْدَمَكَ هٰذِهِ الْبَلْدَةَ قَالَ قُلْتُ لَهُ اِنْ كَتَمْتَ عَلَيَّ اَخْبَرْتُكَ قَالَ فَاِنِّيْ اَفْعَلُ قَالَ قُلْتُ لَهُ بَلَغَنَا اَنَّهُ قَدْ خَرَجَ هٰهُنَا رَجُلٌ يَزْعَمُ اَنَّهُ نَبِيٌّ فَاَرْسَلْتُ اَخِيْ لِيُكَلِّمَهُ فَرَجَعَ وَلَمْ يَشْفِنِيْ مِنَ الْخَبَرِ فَاَرَدْتُ اَنْ اَلْقَاهُ فَقَالَ لَهُ اَمَا اِنَّكَ قَدْ رَشَدْتَ هٰذَا وَجْهِيْ اِلَيْهِ فَاتَّبِعْنِيْ اُدْخُلْ حَيْثُ اَدْخُلُ فَاِنِّيْ اِنْ رَاَيْتُ اَحَدًا اَخَافُهُ عَلَيْكَ قُمْتُ اِلَى الْحَائِطِ كَاَنِّيْ اُصْلِحُ نَعْلِيْ وَامْضِ اَنْتَ فَمَضٰى وَ مَضَيْتُ مَعَهُ

حضورؐ باره کښې دَ چا نه تپوس اوکړم، ما دا معمول کړے وو، چه دَ زمزم اوبه مې څکلے، او جمات کښې اوسیدم. یو ځل څما اړخ ته حضرت عليؓ تیر شولو، او هغهٔ اووے، دا سړے مسافر دے، ما اووے، او، نو هغهٔ ماته اووے، څه چه څمونږ ځائے ته څو. زهٔ هغهٔ سره لاړم. توله لار کښې نهٔ هغهٔ ما سره خبرے اوکړے، او نهٔ ما ورسره خبرے اوکړے چه سحر شو، زهٔ جمات ته لاړم، چه دَ چا نه دَ حضورؐ تپوس اوکړم، او څوک ماته دَ هغوي حالات بیان کړي. دوباره ما پله عليؓ تیر شو، هغهٔ اووے، اوسه پورے ستا دَ پاره هغه وخت رانغے، چه تهٔ دَ خپل قیام ځائے اوپیژنې، ما ورته اووے، نه. نو حضرت عليؓ اووے، ماسره راځه. بیا عليؓ (ماته) اووے، دلته مکې ته تهٔ څهٔ دَ پاره راغلے ئې؟ ما ورته اووے، که تهٔ څما راز نهٔ ظاهروې، نو تاته ئې وایم عليؓ اووے، زهٔ به دے راز داریم. ما هغهٔ ته اووے، مونږ ته خبر رارسیدلے دے چه دلته یو داسے سړے ظاهر شوے دے، چه دَ نبوت مدعي دے، اګرچه ما خپل وروړ رالیږلے وو، چه هغه هغويّ سره خبرے اترے اوکړي، او دَ امر واقعي ماته اطلاع راکړي، خو هغه په واپسي ماته تسلي بخش جواب رانهٔ کړلو، نو څکه زهٔ خپله هغويّ سره لیدل غواړم، عليؓ اووے، بس دومره خبره ده، نو خوشحاله شه، چه تهٔ خپل مقصد کښې کامیاب شولے، زهٔ خپله هغوي لره ورځم، تهٔ هم ماسره څه، چرته چه زهٔ څم، هلته ته هم څه، که زهٔ یو داسے سړے اووینم چه دَ هغهٔ نه تاته اندیښنه وي، نو زهٔ به یو دیوال سره اودریږم، او داسے به ظاهروم، چه زهٔ خپله پنړه (څپلۍ) درست کوم، نو خبردار چه تهٔ ماسره

حَتّٰی دَخَلَ وَ دَخَلْتُ مَعَهُ عَلَی النَّبِيِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ لَهُ اَعْرِضْ عَلَيَّ الْإِسْلَامَ فَعَرَضَهُ فَأَسْلَمْتُ مَكَانِيْ فَقَالَ لِيْ يَا اَبَا ذَرٍّ اُكْتُمْ هٰذَا الْأَمْرَ وَارْجِعْ اِلٰی بَلَدِكَ فَإِذَا بَلَغَكَ ظُهُوْرُنَا فَأَقْبِلْ فَقُلْتُ وَالَّذِيْ بَعَثَكَ بِالْحَقِّ لَأَصْرِخَنَّ بِهَا بَيْنَ اَظْهُرِهِمْ فَجَاءَ اِلَی الْمَسْجِدِ وَ قُرَيْشٌ فِيْهِ فَقَالَ يَا مَعْشَرَ قُرَيْشٍ اِنِّيْ اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَ رَسُوْلُهُ فَقَالُوْا قُوْمُوْا اِلٰی هٰذَا الصَّابِيِّ فَقَامُوْا فَضُرِبْتُ لِاَمُوْتَ فَاَدْرَكَنِي الْعَبَّاسُ فَأَكَبَّ عَلَيَّ ثُمَّ اَقْبَلَ عَلَيْهِمْ فَقَالَ وَيْلَكُمْ تَقْتُلُوْنَ رَجُلًا مِّنْ غِفَارَ وَمَتْجَرُكُمْ وَ مَمَرُّكُمْ عَلٰی غِفَارَ فَأَقْلَعُوْا عَنِّيْ فَلَمَّا اَنْ اَصْبَحْتُ الْغَدَ رَجَعْتُ فَقُلْتُ مِثْلَ مَا قُلْتُ بِالْأَمْسِ فَقَالُوْا قُوْمُوْا اِلٰی هٰذَا الصَّابِيِّ فَصُنِعَ بِيْ مِثْلَ مَا صُنِعَ بِالْأَمْسِ وَ اَدْرَكَنِي الْعَبَّاسُ فَأَكَبَّ عَلَيَّ وَ قَالَ مِثْلَ مَقَالَتِهِ بِالْأَمْسِ قَالَ فَكَانَ هٰذَا اَوَّلَ اِسْلَامِ اَبِيْ ذَرٍّ رَحِمَهُ اللّٰهُ.

اونه دريږي بلکه مخ په وړاندې ځي نو زه علي سره روان شوم او هغه سره د حضور خدمت کښې حاضر شوم او عرض م اوکړ چه ما په اسلام مشرف کړئ نو سرور عالَم زه مسلمان کړلم اووې فرمائیل ابوذره دا خبره پټه ساته او خپل ښار ته واپس لاړ شه بیا چه خمونږ د غلبې تاته خبر در اُورسي نو راشه. ما عرض اوکړ په هغه ذات م دې قسم وي چه تاسوئې په حقه رسول رالیږلې ئې زۀ به دا خبره خلقو ته په ډاګه اووایم نو ابو ذر جمات (کعبه) کښې قریشو ته اووې اې قریشو زۀ ګواهي کوم چه د الله نه سوا بل څوک د عبادت لائق نشته او محمدﷺ د هغه بنده او رسول دې. قریشو اووې د دې بې دینه په ولاړه خبر واخلئ او هغوي خما وهلو ته تیار شو او په وهلو وهلو ئې مرګ ته نزدې کړم حضرت عباس زۀ اولیدم. خان ئې خما ډهال جوړ کړ او کافروته ئې اووې ستاسو دې خرابي وي د قبیلهٔ غفار سړې قتلوئې حالانکه ستاسو تجارتي منډئ او لار غفار طرف ته ده. دې آوریدو سره هغوي منع شو. بیا چه سحر شو نو زۀ کعبې ته لاړم هغسې م اووئیل څنګه چه م پرون وئیلې یو بیا هغوي اووې د دې بې دین په ولاړه خبر واخلئ نو ما سره هغه اوشو څه چه پرون شوې وو (یعني په وهلو وهلوئې مرګ ته نزدې کړم) بیا عباس اولیدل زۀ ئې د هغوي نه بچ کړم او د پرون شان خبرې اترې ئې ورسره اوکړې عباس فرمائي د ابوذر د اسلام راوړلو دا وړمبئ منزل دې.

## بَابٌ ۳۶۴: ذِكْرِ قَحْطَانَ.

باب ۳۶۴: د قحطانیانو (ذ قبیلې) بیان.

۷۳۲: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ

۷۳۲: عبدالعزیز بن عبدالله. سلیمان بن

عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ عَنْ ثَوْرِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ اَبِي الْغَيْثِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰى يَخْرُجَ رَجُلٌ مِّنْ قَحْطَانَ يَسُوْقُ النَّاسَ بِعَصَاهُ.

بلال. ثور بن زید. ابوالغیث. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي، نبي اکرم صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، ذ قیامت راتلو نه مخکښ به د قحطان (قبیلې) نه یو سړے ظاهر شي، چه خپله همسا سره به خلق شړي (یعني جبر او استبداد سره به په خلقو حکومت کوي).

## بَابُ ۳٦۵: مَا يُنْهٰى مِنْ دَعْوَةِ الْجَاهِلِيَّةِ.

باب ۳٦۵: ذ جاهلیت په شان ذ خبرو اترو کولو ممانعت.

۷۳۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا مَخْلَدُ بْنُ يَزِيْدَ اَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَمْرُو بْنُ دِيْنَارٍ اَنَّهُ سَمِعَ جَابِرًا يَقُوْلُ غَزَوْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ ثَابَ مَعَهُ نَاسٌ مِّنَ الْمُهَاجِرِيْنَ حَتّٰى كَثُرُوْا وَ كَانَ مِنَ الْمُهَاجِرِيْنَ رَجُلٌ لَعَّابٌ فَكَسَعَ اَنْصَارِيًّا فَغَضِبَ الْاَنْصَارِيُّ غَضَبًا شَدِيْدًا حَتّٰى تَدَاعَوْا وَقَالَ الْاَنْصَارِيُّ يَا لَلْاَنْصَارِ وَ قَالَ الْمُهَاجِرِيُّ يَا لَلْمُهَاجِرِيْنَ فَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا بَالُ دَعْوَى اَهْلِ الْجَاهِلِيَّةِ ثُمَّ قَالَ مَا شَأْنُهُمْ فَاُخْبِرَ بِكَسْعَةِ الْمُهَاجِرِيِّ الْاَنْصَارِيَّ قَالَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعُوْهَا فَاِنَّهَا خَبِيْثَةٌ وَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اُبَيِّ ابْنِ سَلُوْلٍ اَقَدْ تَدَاعَوْا عَلَيْنَا لَئِنْ رَّجَعْنَا اِلَى الْمَدِيْنَةِ

۷۳۳: محمد. مخلد. ابن جریج. عمرو بن دینار. حضرت جابرؓ نه روایت کوي، یو ځل مونږ رسول الله صلي الله علیه وسلّم سره جهاد کښ وو. اتفاقًا مهاجرینو کښ څۀ خلق غصه شو، ذ هغې وجه دا وه، چه مهاجرینو کښ یو سړے خوش طبع وو، یو انصاري له ئې په شا (ذ تڼوقې نه) یو ډب ورکړۀ، هغې سره هغه انصاري غصه شو، تردې چه هغې خلقو خپل خپل خلق راوغښتل، انصاري اووے، اے انصارو مدد له راورسئې، او مهاجر اووے، اے مهاجرینو، مدد له راشئې، (دے آوریدو سره) حضورؐ بهر تشریف راوړلو. حضورؐ اوفرمائیل ذ جاهلیت په شان ولې نعرې اوشوې، بیائې اوفرمائیل، د دې خلقو دا حالت ولې شو، نو حضورؐ ته د مهاجر، انصاري په څپیړه وهلو کیفیت بیان کړے شو. جابر وائي، نبي صلے الله علیه وسلّم اوفرمائیل، دا قسم نعرې پریږدئې. دا بدې خبره ده. او عبدالله بن ابي سلول منافق اووے، دے مهاجرینو زمونږ خلاف فریاد رسي غوښتلے ده، که مونږ مدینې ته واپس لاړو، نو خوک چه مونږ کښ زیات عزت واله وي، هغه به کمزورے (ذلیل)

يُخْرِجَنَّ الْاَعَزُّ مِنْهَا الْاَذَلَّ فَقَالَ عُمَرُ اَلَا تَقْتُلُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هٰذَا الْخَبِيْثَ لِعَبْدِ اللّٰهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَتَحَدَّثُ النَّاسُ اِنَّهُ كَانَ يَقْتُلُ اَصْحَابَهُ.

بهر اوکاږي. په دې حضرت عمر حضور ته عرض اوکړه، چه مونږ دې دا خبيث قتل ولې نه کړو. نبي صلی الله علیه وسلم ورته اوفرمائيل: داسې مه کوه. کني دا خلق به چرچا جوړه کړي چه محمد (صلي الله عليه وسلم) خپل ملګري قتلوي.

۷۳۴: حَدَّثَنِیْ ثَابِتُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مُرَّةَ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ عَنْ سُفْيَانَ عَنْ زُبَيْدٍ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَيْسَ مِنَّا مَنْ ضَرَبَ الْخُدُوْدَ وَ شَقَّ الْجُيُوْبَ وَ دَعَا بِدَعْوَى الْجَاهِلِيَّةِ.

۷۳۴: ثابت بن محمد. سفيان. اعمش. عبدالله بن مره. مسروق. حضرت عبدالله بن مسعودؓ نه روايت کوي، حضورﷺ ارشاد اوفرمائيلو. کوم سړے چه (غم او ماتم کښې) خپل انګي اووهي، او ګريوان اوشلوي او د جاهليت د خلقو په شان خبرې اوکړي، نو هغه خمونږ نه، نه دے.

## باب ۳۶۶: قِصَّةِ خُزَاعَةَ.

## باب ۳۶۶: د قبيلهٔ خزاعه بيان.

۷۳۵: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ اٰدَمَ اَخْبَرَنَا اِسْرَائِيْلُ عَنْ اَبِیْ حُصَيْنٍ عَنْ اَبِیْ صَالِحٍ عَنْ اَبِیْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ عَمْرُو بْنُ لُحَيِّ بْنِ قَمْعَةَ بْنِ خِنْدَفٍ اَبُوْ خُزَاعَةَ.

۷۳۵: اسحاق بن ابراهيم. يحيي بن آدم. اسرائيل. ابو حصين. ابي صالح. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، رسالت مآب صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل: عمرو بن لُحي بن قمعه بن خندف د خزاعه قبيلې پلار وو.

۷۳۶: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ سَمِعْتُ سَعِيْدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ قَالَ

۷۳۶: ابواليمان. شعيب. زهري نه روايت کوي، هغه اووے، ما د سعيد بن مسيب نه واوريدل، "بحيره" هغه خناور دے چه د هغې پئے بُتانو د پاره نذر

الْبَحِيْرَةُ الَّتِيْ يُمْنَعُ دَرُّهَا لِلطَّوَاغِيْتِ وَلَا يَحْلِبُهَا اَحَدٌ مِّنَ النَّاسِ وَالسَّائِبَةُ الَّتِيْ كَانُوْا يُسَيِّبُوْنَهَا لِاٰلِهَتِهِمْ فَلَا يُحْمَلُ عَلَيْهَا شَيْءٌ قَالَ وَ قَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاَيْتُ عَمْرَو بْنَ عَامِرِ بْنِ لُحَيِّ الْخُزَاعِيَّ يَجُرُّ قُصْبَهٗ فِي النَّارِ وَ كَانَ اَوَّلُ مَنْ سَيَّبَ السَّوَآئِبَ.

كښې مخصوص شي او د سرو د استعمال نه منع شي او سرو كښې به نې هيڅوک نه لشي. او "سائبه" هغه خناور دے چه هغه به كفارو د خپل معبود په نوم پريښودلو. بيا به په هغے ئے هيڅ بوج نه اوړلو. او د سعيد بن مسيب بيان دے ابوهريرهؓ وائي رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل عمرو بن عامر بن لحي اوليدلو چه هغه په اور كښې كولمے راكاږي او دے د تولونه وړمبنے سړے دے چه هغهٔ د "سائبه" ايجاد اوكه.

## بَابٌ ۳۶۷: جَهْلِ الْعَرَبِ.

## باب ۳۶۷: د عربو د جهالت بيان.

۷۳۷: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ اَبِيْ بِشْرٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ اِذَا سَرَّكَ اَنْ تَعْلَمَ جَهْلَ الْعَرَبِ فَاقْرَأْ مَا فَوْقَ الثَّلٰثِيْنَ وَ مِائَةٍ فِيْ سُوْرَةِ الْاَنْعَامِ قَدْ خَسِرَ الَّذِيْنَ قَتَلُوْا اَوْلَادَهُمْ سَفَهًا بِغَيْرِ عِلْمٍ اِلٰى قَوْلِهٖ قَدْ ضَلُّوْا وَمَا كَانُوْا مُهْتَدِيْنَ.

۷۳۷: ابواليمان. ابو عوانه. ابو بشر. سعيد بن جبير. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي كه د عربو د جهالت معلومولو تاسو خواهش لرئے نو سورۀ انعام كښې د يو سل ديرشو نه د پاسه آيتونه اولولئے (ترجمه) واقعي خرابي كښې پريوتل هغه خلق چه هغوي خپل اولاد محض په بے وقوفي بے سنده قتل كړل او كوم حلال خيزونه چه الله تعالي هغوي ته حلال ور كړے وو هغه ئے حرام كړل محض الله تعالي باندے دروغ تړلو. سره بيشكه دا خلق گمراهي كښې پريوتل او هيڅ كله په لار د تلو نه شو.

## بَابٌ ۳۶۸: مَنِ انْتَسَبَ اِلٰى اٰبَائِهٖ فِي الْاِسْلَامِ وَالْجَاهِلِيَّةِ.

وَ قَالَ ابْنُ عُمَرَ وَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ الْكَرِيْمَ ابْنَ الْكَرِيْمِ ابْنِ الْكَرِيْمِ يُوْسُفُ بْنُ يَعْقُوْبَ ابْنِ اِسْحٰقَ ابْنِ اِبْرٰهِيْمَ

## باب ۳۶۸: خپله خپل خان پلار نيكهٔ طرف ته اسلام يا زمانه جاهليت كښې د منسوب كولو بيان.

حضرت ابن عمر او حضرت ابوهريرهؓ نبي كريم صلي الله عليه وسلم نه روايت كوي چه كريم ابن كريم ابن كريم يوسف بن يعقوب بن اسحاق بن ابراهيم خليل الله دے. او حضرت براءؓ د رسول الله صلي الله عليه وسلم

خَلِيْلِ اللّٰهِ وَ قَالَ الْبَرَآءُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَا ابْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ.

نه بیان او کۀ' حضورؐ اوفرمائیل' زۀ د عبدالمطلب فرزند یم (دا شان انتساب که د فخر په طور نه وي' نو جائز دے).

ف: دلته فرزند نه مطلب نمسے یا اولاد دے.

۷۳۸: حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مُرَّةَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ وَ اَنْذِرْ عَشِيْرَتَكَ الْاَقْرَبِيْنَ جَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُنَادِيْ يَا بَنِيْ فِهْرٍ يَابَنِيْ عَدِيٍّ لِبُطُوْنِ قُرَيْشٍ وَ قَالَ لَنَا قَبِيْصَةُ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ حَبِيْبِ ابْنِ اَبِيْ ثَابِتٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ وَ اَنْذِرْ عَشِيْرَتَكَ الْاَقْرَبِيْنَ جَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْعُوْهُمْ قَبَائِلَ قَبَائِلَ.

۷۳۸: عمر بن حفص. اعمش. عمرو بن مره. سعید بن جبیر. حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي' کوم وخت چه دا آیت نازل شو: وَ اَنْذِرْ عَشِيْرَتَكَ الْاَقْرَبِيْنَ: (یعني خپل رشته داران دَ الله دَ عذاب نه اویروه) نو حضور صلي الله علیه وسلم آواز اوکۀ' چه اے بني فهر' اے بني عدي (او) قبیصه. سفیان. حبیب بن ابي ثابت. سعید بن جبیر نه روایت دے. حضرت ابن عباسؓ وائي' چه آیت: وانذر عشیرتک الاقربین: نازلیدو نه پس نبي کریم صلي الله علیه وسلمؐ د اهل عرب ټولو قبائلوته آواز اوکۀ (نغرے نے کړے).

۷۳۹: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ اَخْبَرَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَا بَنِيْ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ اشْتَرُوْا اَنْفُسَكُمْ مِنَ اللّٰهِ يَا اُمَّ الزُّبَيْرِ ابْنِ الْعَوَامِ عَمَّةَ رَسُوْلِ اللّٰهِ يَا فَاطِمَةُ بِنْتُ مُحَمَّدٍ اشْتَرِيَا اَنْفُسَكُمَا مِنَ اللّٰهِ

۷۳۹: ابوالیمان. شعیب. ابوالزناد. اعرج. حضرت ابوهریرهؓ بیان کوي' رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل' اے بني عبدمناف' تاسو خپل خانونه دَ الله (دَ عذاب) نه بچ کړئ. او اے بني عبدالمطلب' تاسو خپل خانونه دَ خدائے (دَ عذاب) نه بچ کړئ. او اے دَ زبیر ابن العوام مورے' د رسول اللهؐ ترور' او اے فاطمے د محمدؐ لورے' تاسو دواړه خپل نفسونه د خدائے (د عذاب نه بچ کړئ' دَ الله د عذاب نه ستاسو د بچ کولو' اګر که څۀ اختیار نۀ لرم' لیکن څۀ چه درته

لَا اَمْلِكُ لَكُمَا مِنَ اللّٰهِ شَيْئًا سَلَانِي مِنْ مَالِيْ مَا شِئْتُمَا.

ف : عَمَّة: پھوپھی: ترور (دَ پلار خور).

وائيم، دا، واورئے، او په دے عمل او کړئے، دا بيله خبره ده، چه تاسو مانه ځما مال څومره چه غواړئے، غوښتلے شئ.

## بَاب ۳۶۹: قِصَّةِ الْحَبَشِ وَ قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا بَنِيْ اَرْفِدَةَ.

## بـاب ۳۶۹: دَ حبشيانو قصه، او د نبي صلے اللّٰه عليه وسلم فرمان، اے بني ارفده.

۷۴۰: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْر حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ اَبَا بَكْرٍ دَخَلَ عَلَيْهَا وَ عِنْدَهَا جَارِيَتَانِ فِيْ اَيَّامِ مِنًى تُدَفِّفَانِ وَ تَضْرِبَانِ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُتَغَشٍّ بِثَوْبِهٖ فَانْتَهَرَهُمَا اَبُوْبَكْرٍ فَكَشَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ وَجْهِهٖ فَقَالَ دَعْهُمَا يَا اَبَابَكْرٍ فَاِنَّهَا اَيَّامُ عِيْدٍ وَّ تِلْكَ الْاَيَّامُ اَيَّامُ مِنًى وَ قَالَتْ عَائِشَةُ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتُرُنِيْ وَ اَنَا اَنْظُرُ اِلَى الْحَبَشَةِ وَهُمْ يَلْعَبُوْنَ فِي الْمَسْجِدِ فَزَجَرَهُمْ عُمَرُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعْهُمْ اَمْنًا بَنِيْ اَرْفِدَةَ يَعْنِيْ مِنَ الْاَمْنِ.

۷۴۰: يحيي. ليث. عقيل. ابن شهاب. عروه. بي بي عائشےؓ نه بيان کوي چه مني يعني دَ حج زمانه کښې ماسره دوه جينکئے ناستے وے سندرے ئے وئيلے، اوتمبل ئے وهلو، او رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلم څادر اغوستے وو، آرام ئے کولو. دے کښې ابوبکرؓ راغے، دواړه ئے اورټلے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم خپل مخ مبارک څرګند کړلو، وے فرمائيل، اے ابوبکر، دوي پريږده ځکه چه دا دَ اختر ورځے دي، او د منے ورځے دي. بي بي عائشهؓ فرمائي، ما نبي صلے اللّٰه عليه وسلم اوليدلو، چه حضورؐ زهٔ پټه کړے ووم، او ما حبشيانو طرف ته کتل (تماشه م کوله) چه هغے خلقو جمات کښې (د ويشتلو) کرتب ښودلو، وے فرمائيل چه تاسو ښهٔ اطمينان سره فن سپه کري کښې مشغول اوسئے.

## بَاب ۳۷۰: مَنْ اَحَبَّ اَنْ لَّا يُسَبَّ نَسَبَهٗ.

## باب ۳۷۰: خپل نسب د کنځلو ډيدو، نه د بچ کولو بيان.

۷۴۱: حَدَّثَنِيْ عُثْمَانُ بْنُ

۷۴۱: عثمان. عبده. هشام. عروه. بي بي

شَيْبَةَ حَدَّثَنَا عَبْدَةُ عَنْ هِشَامِ بْنِ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ اسْتَأْذَنَ حَسَّانُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هِجَاءِ الْمُشْرِكِيْنَ قَالَ كَيْفَ بِنَسَبِيْ فَقَالَ حَسَّانُ لَأَسُلَّنَّكَ مِنْهُمْ كَمَا تُسَلُّ الشَّعْرَةُ مِنَ الْعَجِيْنِ وَ عَنْ أَبِيْهِ قَالَ ذَهَبْتُ أَسُبُّ حَسَّانَ عِنْدَ عَائِشَةَ فَقَالَتْ لَا تَسُبَّهُ فَإِنَّهُ كَانَ يُدَافِعُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

عائشے نه روايت كوي حسان د رسول كريم صلي اللّه عليه وسلّم نه د مشركانو د هجو كولو اجازت اوغوښتلو نو حضور اوفرمائيل حما نسب به څنگه يادوې (زه خو هم د هغوي نه يم) نو حسان اووې چه تاسو به ترې داسې اوكاږم څنګه چه خميرې نه ويښته اوښكلې شي. او عروه د خپل پلار نه بيان كوي ما حسان ته د بي بي عائشے مخكښې بد رد اوويل نو هغې اوفرمائيل حسان ته بد مه وايه، ځكه دهٔ به د حضور د طرف نه د دشمنانو دفاع كوله.

بَابُ ١٣٧١: مَا جَاءَ فِيْ أَسْمَاءِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ وَالَّذِيْنَ مَعَهٗ أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ وَ قَوْلِهٖ مِنْ بَعْدِي اسْمُهٗ أَحْمَدُ.

باب ١٣٧١: د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم د اسمائے كرامي بيان، او فرمان الٰهي چه "محمد د اللّٰه رسول دې" او كوم خلق چه د حضور صحبت يافته دي هغه د كافرو مقابله كښې تيز دي، او د اللّٰه فرمان (چه عيسىٰ اووې) مانه پس به يو نبي راځي چه د هغهٔ نوم به احمد وي.

٢٤٢: حَدَّثَنِيْ إِبْرٰهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَعْنٌ عَنْ مَالِكٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ عَنْ أَبِيْهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيْ خَمْسَةُ أَسْمَاءٍ أَنَا مُحَمَّدٌ وَ أَحْمَدُ وَ أَنَا الْمَاحِيْ الَّذِيْ يَمْحُوا اللّٰهُ بِيَ الْكُفْرَ وَ أَنَا الْحَاشِرُ الَّذِيْ يُحْشَرُ النَّاسُ عَلٰى قَدَمِيْ وَ أَنَا الْعَاقِبُ.

٢٤٢: ابراهيم بن منذر. معن. مالك. ابن شهاب. محمد بن جبير بن مطعم. حضرت جبير نه راويت كوي رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل خما پنځه نومونه دي (١) زهٔ محمد يم (٢) او زهٔ احمد يم (٣) زهٔ محو كونكے ماحي چه خدائے تعالىٰ خما په ذريعه كفر بيرته كوي (٤) او زهٔ حاشر يم چه د قيامت په ورځ به ټول خلق خما په قدمونو اوچتولے شي (٥) او زهٔ عاقب يم چه خما نه پس به هيڅ نبي نهٔ راځي.

٢٤٣: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ

٢٤٣: علي بن عبداللّه. سفيان. ابوالزناد.

عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اَبِی الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِیْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلَا تَعْجَبُوْنَ كَيْفَ يَصْرِفُ اللّٰهُ عَنِّیْ شَتْمَ قُرَيْشٍ وَ لَعْنَهُمْ يَشْتِمُوْنَ مُذَمَّمًا وَ يَلْعَنُوْنَ مُذَمَّمًا وَ اَنَا مُحَمَّدٌ.

اعرج. حضرت ابوهريرةؓ نه روايت كويْ' رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل تاسو. په دې تعجب ولې نۀ كوئې' چه الله تعالٰي زۀ دَ قريشو دَ كنځلو او لعنتونو څخه بچ كړم. هغوي مذمم ته كنځل كوي او مذمم باندې لعنت كوي' او زۀ خو محمدؐ يم (مشركين مكه د حضورؐ نوم دَ محمد په ځائې مذمم ايښې وو' او هغوي به مذمم ته كنځل كول' په دې وجه هغه كنځل په محمدؐ نه' بلكه په مذمم پريوتل.

باب ۲۷۳: خَاتِمُ النَّبِيِّيْنَ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۲۷۳: دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم دَ خاتم النبيين كيدو بيان.

۷۴۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَنَانٍ حَدَّثَنَا سَلِيْمٌ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ مِيْنَآءَ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلِیْ وَ مَثَلُ الْاَنْبِيَاءِ كَرَجُلٍ بَنٰی دَارً فَاَكْمَلَهَا وَ اَحْسَنَهَا اِلَّا مَوْضِعَ لَبِنَةٍ فَجَعَلَ النَّاسُ يَدْخُلُوْنَ بِهَا وَ يَتَعَجَّبُوْنَ وَ يَقُوْلُوْنَ لَوْلَا مَوْضَعُ اللَّبِنَةِ.

۷۴۴: محمد بن سنان. سليم. سعيد بن ميناء. حضرت جابر بن عبدالله نه روايت كوي' رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل. ځما مثال داسې دې' لكه چه يو سړي يو مكان جوړ كړلو' او هغه ئې تكميل ته اورسولو او (ډير) ښه ئې جوړ كړلو. ليكن صرف دَ يوې ښختې ځائې ئې خالي پريښودلو. خلق به هغې مكان ته تلل او (دَ هغې په ښۀ والي) تعجب به ئې كولو' او وئيل به ئې' كاش چه دَ دې يوې ښختې ځائې خالي نۀ وې پريښې شوې.

۷۴۵: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ اَبِیْ صَالِحٍ عَنْ اَبِیْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ مَثَلِیْ وَ مَثَلَ الْاَنْبِيَآءِ مِنْ قَبْلِیْ كَمَثَلِ رَجُلٍ بَنٰی بَيْتًا فَاَحْسَنَهُ وَ اَجْمَلَهُ اِلَّا مَوْضِعَ لَبِنَةٍ

۷۴۵: قتيبه. اسمٰعيل. عبدالله. ابو صالح. حضرت ابوهريرةؓ نه روايت كوي' رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' ځما مثال او دَ هغې پيغمبرانو مثال' كوم چه ځما نه مخكښ تير شوې دي' داسې دې لكه چه يو سړي يو مكان جوړ كړلو' او ډير ښۀ او خوشنمائې جوړ كړلو. دَ هغې په يو كُټ كښې ئې صرف دَ يوې ښختې ځائې خالي پريښودلو خلق چه

مِنْ زَاوِيَةٍ فَجَعَلَ النَّاسُ يَطُوفُوْنَ بِهٖ وَ يَعْجَبُوْنَ وَ يَقُوْلُوْنَ هَلَّا وُضِعَتْ هٰذِهِ اللَّبِنَةُ قَالَ فَاَنَا اللَّبِنَةُ وَ اَنَا خَاتَمُ النَّبِيّٖنَ.

به دے مکان ته ورتلل' نو تعجب به ئے کولو؛ او وئیل به ئے' چه دا یوه ښخته ولے نه ده ایښودلے شوے. حضورؐ به فرمائیل' هغه ښخته زهٔ یم' او زهٔ خاتم النبیین یم.

۷۴۶: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ ابْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُوُفِّيَ وَهُوَ ابْنُ ثَلٰثٍ وَّ سِتِّيْنَ وَ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ وَ اَخْبَرَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ مِثْلَهٗ.

۷۴۶: عبدالله بن یوسف. لیث. عقیل. ابن شهاب. عروه بن زبیر. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي' کوم وخت چه رسالتِ مےب صلي الله علیه وسلّم وفات شولو' نو دغه وخت دَ حضور صلي الله علیه وسلّم عمر مبارَک درۓ شپیته کاله وو. ابن شهاب دَ سعید بن مسیب نه دغه شان روایت کړے دے:

## باب ۳۷۳: كُنْيَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

## باب ۳۷۳: دَ حضور صلي الله علیه وسلّم دَ کنیت بیان.

ف: کنیت: هغه نوم چه پلار مور یا دَ خوي سرهٔ منسوب وي' لکه ابو سعید (دَ سعید پلار) ام جمیله (د جمیله مور) ابن منصور (دَ منصور ځوئے) دَ صفیے مور' دَ عبدالقادر پلارٓ وغیره.

۷۴۷: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ اَنَسٍؓ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي السُّوْقِ فَقَالَ رَجُلٌ يَّا اَبَا الْقَاسِمِ فَالْتَفَتَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ سَمُّوْا بِاِسْمِيْ وَلَا تَكْتَنُوْا بِكُنْيَتِيْ.

۷۴۷: حفص. شعبه. حمید. حضرت انسؓ نه روایت کوي' نبي صلے الله علیه وسلّم بازار کښ وو' چه یو سړي اووے' اے ابو القاسمؐ (اے دَ قاسم پلاره) نو رسول الله صلے الله علیه وسلّم هغهٔ ته او کتل' خو معلومه شوه' چه هغه بل چاته آواز کوي' نو حضورؐ اوفرمائیل' ځما نوم اږدئے' لیکن ځما کنیت مهٔ اږدئے.

۷۴۸: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ سَالِمٍ عَنْ جَابِرٍؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ تَسَمَّوْا بِاِسْمِيْ وَلَا تَكْتَنُوْا

۷۴۸: محمد بن کثیر. کثیر. شعبه. منصور. سالم. حضرت جابرؓ نه روایت کوي' نبي صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل' تاسو ځما نوم خو ایښودے شئے. لیکن ځما کنیت مهٔ

بِكُنْيَتِي.

اوړدئے.

۷۴۹: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اَيُّوْبَ عَنِ ابْنِ سِيْرِيْنَ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا هُرَيْرَةَ يَقُوْلُ قَالَ اَبُو الْقَاسِمِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمُّوْا بِاسْمِيْ وَلَا تَكْتَنُوْا بِكُنْيَتِيْ.

۷۴۹: علي. سفيان. ايوب. ابن سيرين. حضرت ابو هريرةؓ نه روايت كوي هغه اووے ابو القاسم صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمائي خما نوم خو اږدلے ليكن خما كنيت مه اږدئے.

باب ۳۷۴:

باب ۳۷۴: (دَ دے باب څهٔ سُرخي نشته).

۷۵۰: حَدَّثَنِيُ اِسْحَاقُ اَخْبَرَنَا الْفَضْلُ بْنُ مُوْسٰى عَنِ الْجُعَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ رَاَيْتُ السَّائِبَ بْنَ يَزِيْدَ ابْنَ اَرْبَعٍ وَّ تِسْعِيْنَ جَلْدًا مُّعْتَدِلًا فَقَالَ لَقَدْ عَلِمْتُ مَا مُتِّعْتُ بِهٖ سَمْعِيْ وَ بَصَرِيْ اِلَّا بِدُعَاءِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ خَالَتِيْ ذَهَبَتْ بِيْ اِلَيْهِ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ ابْنَ اُخْتِيْ شَاكٍ فَادْعُ اللّٰهَ قَالَ فَدَعَالِيْ.

۷۵۰: اسحاق. فضل. جعيد نه بيان كوي هغه اووے سائب بن يزيد مِ دَ څورانوے كالو په عمر كښ ډير توانا او تندرست اوليد. سائب اووے زهٔ دَ خپل غوږ او سترګے نه صرف دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ دُعا په وجه فائده اخلم خما ترور زهٔ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم له بوتلم او هغے عرض اوكهٔ يا رسول اللّٰه خما دا خورئے (بهانجه) مريض دے ستاسو (دہ دَ پاره) دَ خدائے تعالٰي نه (دَ صحت) دُعا اوغواړئے نو خضورؐ ما دَ پاره دُعا كړے ده.

ف: يا اللّٰه دَ دے دُعا په خاطر مونږ هم صحيح او تندرست لرے اللّٰهم آمين.

بَابٌ ۳۷۵: خَاتَمِ النُّبُوَّةِ.

باب ۳۷۵: دَ مُهر نبوّت بيان (مهر نبوّت كوم خائے وو).

۷۵۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا حَاتِمٌ عَنِ الْجُعَيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ قَالَ سَمِعْتُ السَّائِبَ بْنَ يَزِيْدَ قَالَ ذَهَبَتْ بِيْ خَالَتِيْ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ ابْنَ اُخْتِيْ

۷۵۱: محمد بن عبداللّٰه. حاتم. جعيد بن عبدالرحمٰن. حضرت سائب بن يزيدؓ نه روايت كوي خما ترور زهٔ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم له بوتلم او عرض ئے اوكهٔ يا رسول اللّٰه خما دا خورئے (بهانجه) ناروغه دے نو حضورؐ خما په

وَقَعَ فَمَسَحَ رَأْسِيْ وَ دَعَا لِيْ بِالْبَرَكَةِ وَ تَوَضَّأَ فَشَرِبْتُ مِنْ وَضُوْئِهٖ ثُمَّ قُمْتُ خَلْفَ ظَهْرِهٖ فَنَظَرْتُ اِلٰى خَاتَمٍ بَيْنَ كَتِفَيْهِ مِثْلَ زِرِّ الْحَجَلَةِ قَالَ ابْنُ عُبَيْدِ اللّٰهِ الْحَجْلَةُ مِنْ حُجَلِ الْفَرَسِ الَّذِيْ بَيْنَ عَيْنَيْهِ قَالَ اِبْرٰهِيْمُ بْنُ حَمْزَةَ مِثْلُ زِرِّ الْحَجَلَةِ.

سر لاس راښکلو، او ما ذ پاره ئے د برکت دُعا اوکړله. او حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اودس اوکړلو. بيا ما ذ حضورؐ پاتے شوے اوبه اوڅکلے. دے نه پس ذ حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم شاته اودريدم، او ما ذ حضورؐ ذ اوږو تر مينځه يو مُهر په مثل ذ پردے ذ زونډې اوليد.

باب ۳۷۶: صِفَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۳۷۶: ذ رسول اللّٰه صليٰ اللّٰه عليه وسلّم ذ اوصاف بيان.

۷۵۲: حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ عَنْ عُمَرَ بْنِ سَعِيْدِ بْنِ اَبِيْ حُسَيْنٍ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ الْحَارِثِ قَالَ صَلَّى اَبُوْبَكْرٍ الْعَصْرَ ثُمَّ خَرَجَ يَمْشِيْ فَرَاَى الْحَسَنَ يَلْعَبُ مَعَ الصِّبْيَانِ فَحَمَلَهُ عَلٰى عَاتِقِهٖ وَ قَالَ بِاَبِيْ شَبِيْهٌ بِالنَّبِيِّ لَا شَبِيْهٌ بِعَلِيٍّ وَ عَلِيٌّ يَضْحَكُ.

۷۵۲: ابو عاصم. عمر. ابن ابي مليكه. حضرت عقبه بن حارث نه روايت كوي، حضرت ابوبكرؓ يوه ورځ ذ ماښګر مونځ اوكۀ. بيا ذَ جمات نه اووتلو، نو حسنؓ ئے اوليد، چه هلكانو سره ئے لوبے كولے. حضرت ابوبكر هغه په اوږه كه، او، وئيلے، خما مور پلار دے په تا قربان وي، ته ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم په شان ئے. او ذ عليؓ په شان نه ئے. حضرت عليؓ ولاړ وو، خاندل ئے.

ف: اوصاف: جمع ذ وصف، خوبئ، كمالات؛ جوهرونه، هُنرونه، صفتونه، حالات، عادتونه، اخلاق.

۷۵۳: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ عَنْ اَبِيْ جُحَيْفَةَ قَالَ رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ كَانَ الْحَسَنُ يُشْبِهُهٗ.

۷۵۳: احمد. زهير. اسمٰعيل. حضرت ابي جحيفةؓ نه روايت كوي، هغۀ اوفرمائيل، ما رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ليدلے دے، حضرت حسنؓ ذ حضورؐ مشابه (په شان) وو.

۷۵۴: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا ابْنُ فُضَيْلٍ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ اَبِيْ خَالِدٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا جُحَيْفَةَ

۷۵۴: عمرو بن علي. ابن فضيل. اسمٰعيل بن ابي خالد. حضرت ابو جحيفه نه روايت كوي، هغۀ اووے، ما رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ليدلے دے.

قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ كَانَ الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ عَلَيْهِمَا السَّلَامُ يُشْبِهُهُ قُلْتُ لِأَبِيْ جُحَيْفَةَ صِفْهُ لِيْ قَالَ كَانَ أَبْيَضَ قَدْ شَمِطَ وَ أَمَرَ لَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِثَلٰثَ عَشْرَةَ قَلُوْصًا قَالَ فَقُبِضَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَبْلَ أَنْ نَّقْبِضَهَا.

حضرت حسن علیؓ د حضور صلي الله عليه وسلّم په شان وو، اسمٰعیل وائي، ما ابو جحیفه ته اووے ماته د حضور صلي الله عليه وسلّم صفت بیان کره، هغهٔ اووے. د حضور صلي الله عليه وسلّم رنګ سپین وو. دَ حضورؐ ویښته نیم پاخه شوے وو، او رسول الله صلي الله عليه وسلّم مونږ ته دَ دیارلس اوښو راکولو حکم اوکهٔ خو مونږ دَ حضورؐ دَ وفات نه مخکښ په هغے قبضه اونهٔ کړے شوه.

۷۵۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ رَجَاءٍ حَدَّثَنَا إِسْرَآءِيْلُ عَنْ أَبِيْ إِسْحٰقَ عَنْ وَهْبٍ أَبِيْ جُحَيْفَةَ السَّوَائِيِّ قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرَأَيْتُ بَيَاضًا مِنْ تَحْتِ شَفَتِهِ السُّفْلٰى الْعَنْفَقَةَ.

۷۵۵: عبدالله. اسرائیل. ابو اسحٰق. حضرت ابو جحیفه سوائي نه روایت کوي، هغهٔ اووے، ما رسول الله صلي الله عليه وسلّم لیدلے وو. او څهٔ سپین والے ما دَ حضور صلي الله عليه وسلّم د لاندے شونډے دَ لاندے دَ زنے (ٹھوڑی) په ویښتو کښ لیدلے وو.

۷۵۶: حَدَّثَنَا عِصَامُ بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا جَرِيْرُ بْنُ عُثْمَانَ أَنَّهُ سَأَلَ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ بُسْرٍ صَاحِبَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ شَيْخًا قَالَ كَانَ فِيْ عَنْفَقَتِهِ شَعَرَاتٌ بِيْضٌ.

۷۵۶: عصام. جریر بن عثمان نه روایت کوي، هغهٔ اووے، ما د رسول الله صلي الله عليه وسلّم په حقله د حضرت عبدالله بن بسر نه تپوس اوکهٔ، چه اوښایه، آیا رسول الله صلي الله عليه وسلّم بوډا وو، هغهٔ اووے نه. صرف دِ حضورؐ دَ زنے څهٔ ویښتهٔ سپین شوے وو.

۷۵۷: حَدَّثَنِيْ ابْنُ بُكَيْرٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اللَّيْثُ عَنْ خَالِدٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ أَبِيْ هِلَالٍ عَنْ أَبِيْ رَبِيْعَةَ بْنِ أَبِيْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَصِفُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كَانَ رَبْعَةً مِّنَ الْقَوْمِ لَيْسَ بِالطَّوِيْلِ وَلَا بِالْقَصِيْرِ أَزْهَرَ

۷۵۷: ابن بکیر. لیث. خالد. سعید. حضرت ربیعه بن ابي عبدالرحمٰن نه روایت کوي، هغهٔ اووے ما دَ انس بن مالکؓ نه دَ سرور عالم صلي الله عليه وسلّم د صفت بیان آوریدلے دے، هغه فرمائي، چه حضورؐ نهٔ خو (دَ اعتدال نه) زیات اوږود وو، او نهٔ پست قد. رنګ ئے نهٔ بیخي سپین وو، نهٔ بیخي غنم رنګے. دَ سر ویښتهٔ نهٔ زیات ولول، نهٔ بالکل نیغ (بلکه دَ دے دواړو مینځ کښ

بِالْلَوْنِ لَيْسَ بِأَبْيَضَ اَمْهَقَ وَلَا اٰدَمَ لَيْسَ بِجَعْدٍ قَطَطٍ وَلَا سَبْطٍ رَجِلٍ اُنْزِلَ عَلَيْهِ وَهُوَ اِبْنُ اَرْبَعِيْنَ فَلَبِثَ بِمَكَّةَ عَشَرَ سِنِيْنَ يُنْزَلُ عَلَيْهِ وَ بِالْمَدِيْنَةِ عَشَرَ سِنِيْنَ وَ لَيْسَ فِيْ رَأْسِهٖ وَلِحْيَتِهٖ عِشْرُوْنَ شَعْرَةً بَيْضَاءَ قَالَ رَبِيْعَةُ فَرَاَيْتُ شَعْرًا مِنْ شَعْرِهٖ فَاِذَا اَحْمَرُ فَسَاَلْتُ فَقِيْلَ اِحْمَرَّ مِنَ الطِّيْبِ.

وو) ذ څلویښت کالو په عمر کښې په حضور صلي الله علیه وسلّم وحي نازلیدل شروع شو. دے نه پس لس کاله حضور صلي الله علیه وسلّم مکه معظمه[1] کښې وو او لس کاله مدینه منوره کښې[2] او د وفات په وخت د حضورؐ سر او ګیره مبارکه کښې شل ویښته هم سپین نه وو. ربیعه فرمائي، ما د حضورؐ ویښتو کښې یو ویښته اولیدٔ، نو هغه سُر (سُرخ) وو. ما دریافت او کهٔ، چه دا ویښتهٔ ولې سُر دے، نو راته اوونیلے شو. چه خوشبو لږولو سره سُر شویدے.

۱. په مکه کښې د وحي نازلیدلو سلسله شروع کیدلو نه پس د حضور اکرم صلي الله علیه وسلّم د قیام موده دیارلس کاله ده، په روایت کښې صرف د لسو کالو ذکر دے. عالمانو ددے مختلف توجیهات کړي دي. بعضے وخت چه کله راوي مختصر طور باندے حدیث بیانول غواړي نو تفصیلاتونه د ګریز کولو په خیال سره واقعے نه ډیر څیزونه حذف کړي. حضور اکرمؐ باندے د وحي سلسله شروع کیدلونه پس تقریباً دری کاله داسے تیر شوي دي کومو کښے چه په هغوئ باندے ذ وحي سلسله بنده شوے وه، دے ته ذ "فترة" زمانه وائي. د راوي مقصد چونکه د هغوئ پوره عمر بیانول بلکه زمانه ذ وحي او موده ذ وحي بیانول دي په دے وجه هغهٔ د مینځ والا هغه کالونه حذف کړل کومو کښے چه د وحي سلسله شروع کیدلو نه پس وحي نه وه راغلے، ددے نه علاوه په لسو یا ددے نه زیاتو په عدد کښے ذ کسر اعداد حذف کولو هم په عربو کښے عام رواج وو.

۷۵۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكُ ابْنُ اَنَسٍ عَنْ رَبِيْعَةَ بْنِ اَبِيْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّهٗ سَمِعَهٗ يَقُوْلُ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ بِالطَّوِيْلِ الْبَائِنِ وَلَا بِالْقَصِيْرِ وَلَا بِالْاَبْيَضِ الْاَمْهَقِ وَلَيْسَ بِالْاٰدَمِ وَ لَيْسَ بِالْجَعْدِ الْقَطَطِ وَلَا بِالسَّبْطِ بَعَثَهُ اللّٰهُ عَلٰى رَاْسِ اَرْبَعِيْنَ سَنَةً فَاَقَامَ

۷۵۸: عبدالله. مالک. ربیعه بن ابي عبدالرحمٰن نه روایت دے، هغه وائي، ما ذ انس بن مالک نه اوریدل، چه رسول الله صلي الله علیه وسلّم نه خو ډیر ذ اوږود قد وو، او نهٔ پست قد وو. (بلکه ذ درمیانه قد وو) او نه بالکل ذ سپین رنګ وو، او نه بالکل غنم رنګے، نهٔ خو ئے ویښتهٔ ولول وو، نهٔ بالکل نیغ (بلکه ددے دواړو مینځ کښې وو) ذ څلویښتو کالو په عمر کښې الله تعالي په نبوت سرفراز کهٔ. نبوت حاصلیدو نه پس لس کاله مکه کښې مقیم وو، او لس کاله

بِمَكَّةَ عَشْرَ سِنِيْنَ وَ بِالْمَدِيْنَةِ عَشْرَ سِنِيْنَ فَتَوَفَّاهُ اللّٰهُ وَ لَيْسَ فِيْ رَأْسِهٖ وَلِحْيَتِهٖ عِشْرُوْنَ شَعْرَةً بَيْضَاءَ.

مدینه کښ، الله پاک چه حضورؐ وفات کولو، نو دَ حضورؐ سر او ږیره مبارکه کښ شل ویښته هم سپین نهٔ وو.

۷۵۹: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ سَعِيْدٍ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ مَنْصُوْرٍ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ يُوْسُفَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَآءَ يَقُوْلُ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَحْسَنَ النَّاسِ وَجْهًا وَ اَحْسَنَهُمْ خُلُقًا لَيْسَ بِالطَّوِيْلِ الْبَائِنِ وَلَا بِالْقَصِيْرِ.

۷۵۹: احمد. اسحاق. ابراهیم بن یوسف دَ اسحاق نه بیان کړے دے. هغه اووے ما دَ حضرت براء نه واوریدل، چه رسالت مےب صلي الله علیه وسلم دَ ټولو سړو نه زیات خوب صورته او دَ ټولو نه زیات خلیق وو، نه خضورؐ ډیر دراز قد او نه پست قد وو. (یعني میانه قد وو).

۷۶۰: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ قَتَادَةَ قَالَ سَاَلْتُ اَنَسًا هَلْ خَضَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا اِنَّمَا كَانَ شَيْءٌ فِيْ صُدْغَيْهِ.

۷۶۰: ابو نعیم. همام دَ قتاده نه روایت کړے دے، هغه اووے. ما دَ حضرت انسؓ نه تپوس اوکه، چه رسول الله صلي الله علیه وسلم خضاب استعمال کړے وو. وے فرمائیل، نه، صرف څهٔ سپین والے دَ حضورؐ دوو کنپټو کښ وو.

ف: کن د کان مخفف: غوږ، کنپټي: ټور سپین. دَ غوږ او تندي تر مینځ ځائے.

۷۶۱: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنِ الْبَرَآءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرْبُوْعًا بَعِيْدَ مَا بَيْنَ الْمَنْكِبَيْنِ لَهٗ شَعْرٌ يَبْلُغُ شَحْمَةَ اُذُنَيْهِ رَاَيْتُهٗ فِيْ حُلَّةٍ حَمْرَآءَ لَمْ اَرَ شَيْئًا قَطُّ اَحْسَنَ مِنْهُ قَالَ يُوْسُفُ بْنُ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنْ اَبِيْهِ مَنْكِبَيْهِ.

۷۶۱: حفص. شعبه. ابو اسحٰق. حضرت براء بن عازب نه روایت کوي، حضور صلي الله علیه وسلم میانه قد وو. دَ حضورؐ دَ دواړو اوږو تر مینځه ډیره کشادګي وه. دَ حضورؐ دَ سر مبارک ویښته دَ غوږونو دَ پونرمو پورے وو، یو ځلے ما حضورؐ سُر لکیزدار لباس کښ لیدلے وو. ما هیڅوک دَ حضورؐ نه زیات ښکلے نه دے لیدلے. یوسف بن ابي اسحٰق دَ خپل پلار نه بیان کوي، دَ حضورؐ دَ سر مبارک ویښته دَ حضورؐ اوږو ته رسیدل.

۲۶۲۷: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ عَنْ اَبِي اِسْحٰقَ قَالَ سُئِلَ الْبَرَآءُ اَكَانَ وَجْهُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَ السَّيْفِ قَالَ لَا بَلْ مِثْلُ الْقَمَرِ.

۲۶۲۷: ابو نعیم. زهیر. ابو اسحٰق. سبیعي نه روایت کوي. هغهٔ اووې، حضرت براءٔ نه تپوس اوشو، آیا د رسول الله صلي الله علیه وسلّم مخ مبارک د تورې په شان وو، نو وې فرمائیل نه، بلکه د سپوږمۍ په شان.

۲۶۳۷: حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ مَنْصُوْرٍ اَبُوْ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْاَعْوَرُ بِالْمِصِّيْصَةِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْحَكَمِ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا جُحَيْفَةَ قَالَ خَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْهَاجِرَةِ اِلَى الْبَطْحَاءِ فَتَوَضَّأَ ثُمَّ صَلَّى الظُّهْرَ رَكْعَتَيْنِ وَ بَيْنَ يَدَيْهِ عَنَزَةٌ وَ زَادَ فِيْهِ عَوْنٌ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ جُحَيْفَةَ قَالَ كَانَ تَمُرُّ مِنْ وَّرَائِهَا الْمَرْاَةُ وَ قَامَ النَّاسُ فَجَعَلُوْا يَاْخُذُوْنَ يَدَيْهِ فَيَمْسَحُوْنَ بِهَا وُجُوْهَهُمْ قَالَ فَاَخَذْتُ بِيَدِهٖ فَوَضَعْتُهَا عَلٰى وَجْهِيْ فَاِذَا هِيَ اَبْرَدُ مِنَ الثَّلْجِ وَ اَطْيَبُ رَائِحَةً مِنَ الْمِسْكِ.

۲۶۳۷: حسن بن منصور ابو علي. حجاج بن محمد الاعور. شعبه. حکم نه روایت کوي، هغهٔ اووې، ما د ابو جحیفه نه واوریدل، یوه ورځ رسول الله صلي الله علیه وسلّم د غرمې وخت بطحا جانب ته تشریف یوړلو. بیا حضورٌ اودس اوکهٔ، د ماسپخین دوه رکعاته او د مازیگر دوه رکعاته ئې ادا کړل، او د حضورٌ مخې ته وړه شان نیزه ښخه کړې شوې وه، د دې نیزې مخې ته به ښځې تیریدلې (د مونخ نه پس) خلق اودریدل او د حضورٌ دواړه لاسونه ئې په خپلو مخونو مږل. ما هم د حضورٌ لاس مبارک واخست او هغه مې په خپل مخ کینښودلو، نو هغه د واورې نه زیات یخ او د مُشک نه زیات خوشبودار وو.

۲۶۴۷: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَجْوَدَ النَّاسِ وَ اَجْوَدُ مَا يَكُوْنُ فِيْ رَمَضَانَ حِيْنَ يَلْقَاهُ جِبْرَئِيْلُ وَ كَانَ جِبْرِيْلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ يَلْقَاهُ فِيْ كُلِّ

۲۶۴۷: عبدان. عبدالله. یونس. زهري. عبیدالله بن عبدالله. حضرت ابن عباسٌ نه روایت کوي، رسول الله صلي الله علیه وسلّم د ټولو خلقو نه زیات سخي وو، او ټولو ورځو کښې به رمضان المبارک کښې زیات سخي وو. هر کله چه جبرئیلٌ به برابر حضورٌ سره یوځائې کیدلو، او

لَيْلَةٍ مِنْ رَمَضَانَ فَيُدَارِسُهُ الْقُرْآنَ فَلَرَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَجْوَدُ بِالْخَيْرِ مِنَ الرِّيْحِ الْمُرْسَلَةِ.

حضور سره به ئې د قرآن شريف دوره كوله، رسول الله صلي الله عليه وسلم فيض رسانئ كښې د بادِ نسيم نه هم مخ په وړاندې وو.

۷۶۵: حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ حَدَّثَنَا بْنُ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِي ابْنُ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلَيْهَا مَسْرُوْرًا تَبْرُقُ اَسَارِيْرُ وَجْهِهٖ فَقَالَ: اَلَمْ تَسْمَعِيْ مَا قَالَ الْمُدْلِجِيُّ لِزَيْدٍ وَ اُسَامَةَ وَرَاٰي اَقْدَامَهُمَا اِنَّ بَعْضَ هٰذِهِ الْاَقْدَامِ مِنْ بَعْضٍ.

۷۶۵: يحيي. عبدالرزاق. ابن جريج. ابن شهاب. عروه بي بي عائشې نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم ډېرې خوشحالئ سره ما پله تشريف راوړلو، مخ مبارك ئې پرقيدلو، وې فرمائيل آيا تا نۀ دي آوريدلې، چه يو قيافه شناس د زيد او آسامه باره كښې څۀ اووې (اسامه د زيد ځوئې وو، خلقو د هغۀ د نسب نه انكار كولو) هغه د دواړو پښې اوكتلې، او وئيلې. دوي كښې يو قدم د پلار دې، او دويم قدم د ځوئې دې ما.

ا. أسامه رضي الله عنه ځوئې وو او زيد رضي الله عنه د هغوئ والد، ليكن د اسامه رضي الله عنه رنګ ډېر تور وو، ديخوا زيد رضي الله عنه سُور سپين وو. په دې وجه څنګه په عوامو كښې كيږي. بعضې خلقو د هغوئ په نسبت باندې شبه شروع كړه چه د يو سُور سپين پلار ځوئې دومره تور څنګه كيدې شي. حضور اكرم صلي الله عليه وسلّم ته دا خبره ډېره ناګواره وه. اتفاق سره يو قيافه شناس راغې، هغه وخت دغه دواړه حضرات په يو څادر كښې ملاست وو او صرف قدمونه ئې بهر ښكاريدل، قيافه شناس چه صرف قدم ته اوكتل نو وې وئيل چه معلوميږي په دوئ كښې يو پلار دې او بل ځوئې دې. د إسلام په نظر كښې د قيافې هيڅ اهميت نيشته او نۀ د نسب په ثابتولو يا په څۀ معامله كښې ددې نه څۀ مدد اخستې كيدې شي ليكن چونكه د جاهليت عربو به په دې باندې اعتماد كولو او كومو خلقو چه ددغه دواړو حضراتو د نسب په سلسله كښې شبه كوله هغوئ لره همدې قسمه څيزونو مطمئن كولې هم شو، په دې وجه حضور صلي الله عليه وسلّم په هغې غيبي تائيد باندې ډېر مسرت او خوشالي محسوسوله.

۷۶۶: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ كَعْبٍ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ كَعْبٍ قَالَ سَمِعْتُ كَعْبَ ابْنَ مَالِكٍ يُحَدِّثُ

۷۶۶: يحيي بن بكير. ليث. عقيل. ابن شهاب. عبدالرحمن بن كعب اووې، ما د كعب بن مالك نه واوريدل، د غزوه تبوك په موقعه هر كله چه زۀ ورستو پاتې شوې وم يو ځلې ما رسول الله صلي الله عليه وسلّم ته سلام

حِيْنَ تَخَلَّفَ عَنْ تَبُوْكَ قَالَ فَلَمَّا سَلَّمْتُ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَبْرُقُ وَجْهُهُ مِنَ السُّرُوْرِ وَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا سَرَّاسْتَنَارَ وَجْهُهُ حَتّٰى كَاَنَّهُ قِطْعَةُ قَمَرٍ وَ كُنَّا نَعْرِفُ ذٰلِكَ مِنْهُ.

اوکهٔ (هغه وخت) دَ حضورٌ مخ مبارک دَ (ډیرې) خوشحالي نه پړقیدلو' او دَ حضورٌ عادت شریف دا وو' چه کله به خوشحاله وو' نو مخ مبارک به ئې چمک کولو' ګویا هغه دَ سپوږمئ یوه ټکړه معلومیده' او دا خبره به موږ دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ روښانه مخ مبارک نه معلوموله.

۷۶۷: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عَمْرٍو عَنْ سَعِيْدِ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بُعِثْتُ مِنْ خَيْرِ قُرُوْنِ بَنِيْ اٰدَمَ قَرْنًا فَقَرْنًا حَتّٰى كُنْتُ مِنَ الْقَرْنِ الَّذِيْ كُنْتُ فِيْهِ.

۷۶۷: قتيبه بن سعيد. يعقوب بن عبدالرحمٰن. عمرو. سعيد المقبري. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي' رسالت مېب صلے اللّٰه عليه وسلّم ارشاد فرمائيلے دے' چه زهٔ دَ بني آدم بهترين طبقو کښې دَ قرن نه پس قرن (يعني هر قرن) کښې پيدا کړے شوے يم' تردې چه زهٔ دے قرن کښې پيداۓ شوم.

۱. مطلب دا دے چه د آدم عليه السلام نه پس چه دَ حضورٌ د نسب ځومره سلسلے دي هغوئ ټولے د آدم عليه السلام په اولاد کښې بهترينے کورنئ وے. د حضورٌ په نيکونو کښې ابراهيم عليه السلام' بيا اسماعيل عليه السلام دے ځوک چه ابوالعرب دے. ددئ نه پس چه د عربو ځومره سلسلے دي په هغه ټولو کښې د حضور خانواده د ټولو نه زياته اوچته او رفيع المنزلت وه د هغوئ تعلق دَ اسماعيل عليه السلام د اولاد شاخ کنانه سره' بيا قريش سره او بيا بني هاشم سره دے.

۷۶۸: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَسْدُلُ شَعْرَهٗ وَ كَانَ الْمُشْرِكُوْنَ يَفْرُقُوْنَ رُؤُسَهُمْ فَكَانَ اَهْلُ الْكِتَابِ يَسْدِلُوْنَ رُءُ وْسَهُمْ وَ كَانَ رَسُوْلُ

۷۶۸: يحيٰي. ليث. يونس. ابن شهاب. عبيداللّٰه. حضرت ابن عباسٌ نه روايت کوي' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم به خپل ويښته مبارک دغسې پريښودل' او مشرکينو به دَ خپل سر ويښته دوه حصے کول' او نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم به هغے خبرو کښې چه هغے کښې به حضورٌ ته څهٔ حکم نهٔ وو شوے نو دَ اهل کتابو موافقت

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحِبُّ مُوَافَقَةَ اَهْلِ الْكِتَابِ فِيْمَالَمْ يُؤْمَرْ فِيْهِ بِشَيْءٍ ثُمَّ فَرَقَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأْسَهُ.

به ئې خوښولو. دے نه پس حضور صلي الله عليه وسلّم دَ سر ويښتهٔ دوه حصے کړے وو (يعني دَ سر دَ ويښتو مينځ کښې به ئې کرښه (مانګ) اوښکله).

۷۶۹: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ عَنْ اَبِيْ حَمْزَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍوؓ قَالَ لَمْ يَكُنِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاحِشًا وَلَا مُتَفَحِّشًا وَ كَانَ يَقُوْلُ اِنَّ مِنْ خِيَارِكُمْ اَحْسَنَكُمْ اَخْلَاقًا.

۷۶۹: عبدان. ابو حمزه. اعمش. ابو وائل. مسروق. حضرت عبداللّٰه بن عمرؓ نه روايت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نهٔ فحش کو، او نهٔ تکلف سره فحش کو جوړيدونکے وو، او فرمائيل به ئې، تاسو کښې بهتر سړے هغه دے، چه ټولو کښې زيات خليق وي.

ف: اللّٰه پاک دے دا صفت مونږ کښې هم پيدا کړي. اللّٰهم آمين.

۷۷۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَؓ اَنَّهَا قَالَتْ مَا خُيِّرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ اَمْرَيْنِ اِلَّا اَخَذَ اَيْسَرَهُمَا مَالَمْ يَكُنْ اِثْمًا فَاِنْ كَانَ اِثْمًا كَانَ اَبْعَدَ النَّاسِ مِنْهُ وَمَا انْتَقَمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِنَفْسِهِ اِلَّا اَنْ تُنْتَهَكَ حُرْمَةُ اللّٰهِ فَيَنْتَقِمُ لِلّٰهِ بِهَا.

۷۷۰: عبداللّٰه بن يوسف. مالک. ابن شهاب. عروه بن زبير. بي بي عائشےؓ نه بيان کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ته چه به دوو کارونو کښې اختيار ورکړے شو، نو حضورؐ به هغے کښې آسان کار اختيارولو، چه دَ هغے به ګناه نهٔ وه، او که هغه کار دَ ګناه سبب وو، نو حضورؐ به دَ ټولونه زيات دَ هغے نه لرے اوسيدلو او رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ خپل ذات دَ پاره (هيڅ کله خبره کښې) دَ چانه بدله نهٔ ده اخستے. او که دَ اللّٰه تعالىٰ دَ حرمت خلاف به څهٔ کار کيدلو، نو حضورؐ به ضرور، خدائے دَ پاره دَ هغے بدله اخستله.

۷۷۱: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ اَنَسٍؓ قَالَ مَا مَسِسْتُ حَرِيْرًا وَلَا دِيْبَاجًا اَلْيَنَ مِنْ كَفِّ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۷۷۱: سليمان بن حرب. حماد. ثابت. حضرت انسؓ نه روايت کوي، هغهٔ اورے ما ديباج او هيڅ قسم ريښمينه کپړه دَ حضور دَ تلو (ہتھیلیوں) نه زياته نرمه نهٔ ده بيامنلے،

وَسَلَّمَ وَلَا شَمِمْتُ رِيْحًا قَطُّ اَوْ عَرْفًا قَطُّ اَطْيَبَ مِنْ رِيْحِ اَوْ عَرْفِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

او نه ما څه خوشبوي يا عطر دَ حضورؐ دَ خولې (پسينې) دَ خوشبوي نه زياته خوشبويه بيامندلې ده.

۷۷۲: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ شُعْبَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ عُتْبَةَ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَشَدَّ حَيَاءً مِنَ الْعَذْرَاءِ فِيْ خِدْرِهَا.

۷۷۲: مسدد. يحيٰي. شعبه. قتاده. عبداللّٰه بن ابي عتبه. حضرت ابو سعيد خدري نه روايت کوي، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ پرده نشين پيغلو جينکو نه هم زيات شرمګين وو.

۷۷۳: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا يَحْيٰى وَابْنُ مَهْدِيٍّ قَالَا حَدَّثَنَا شُعْبَةُ مِثْلَهُ وَ اِذَا كَرِهَ شَيْئًا عُرِفَ فِيْ وَجْهِهٖ.

۷۷۳: محمد بن بشار. يحيٰي. ابن مهدي په روايت کښې دا الفاظ زيات دي، چه کله به حضورؐ ته څۀ ناخوښه خبره پيښه شوه نو دَ هغې اثر به دَ حضورؐ په مخ مبارک معلوميدلو.

۷۷۴: حَدَّثَنِيْ عَلِيُّ بْنُ الْجَعْدِ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ مَاعَابَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَعَامًا قَطُّ اِنِ اشْتَهَاهُ اَكَلَهُ وَ اِلَّا تَرَكَهُ.

۷۷۴: علي. شعبه. اعمش. ابو حازم. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم هيڅ کله يو طعام کښې عيب نه راوبنکلو، که هغه به ئې خوښ وو، نو خوړلو به ئې، کنې پريښودلو به ئې.

۷۷۵: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا بَكْرُ بْنُ مُضَرَ عَنْ جَعْفَرِ بْنِ رَبِيْعَةَ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَالِكِ ابْنِ بُحَيْنَةَ الْاَسَدِيِّ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا سَجَدَ فَرَّجَ بَيْنَ يَدَيْهِ حَتّٰى نَرٰى اِبْطَيْهِ قَالَ وَ قَالَ ابْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا

۷۷۵: قتيبه بن سعيد. بکر بن مضر. جعفر بن ربيعه. اعرج. حضرت عبداللّٰه بن مالک اسديؓ نه چه دَ هغۀ مور بحينه وه، روايت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم چه به سجده کوله، نو خپل دواړه لاسونه به ئې کشاده ايښودل، چه مونږ به دَ حضورؐ دواړه ترخونه

بَكْرُ بَيَاضَ اِبْطَيْهِ.

لیدل.

۶۷۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْاَعْلٰى بْنُ حَمَّادٍ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ عَنْ قَتَادَةَ اَنَّ اَنَسًا حَدَّثَهُمْ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ لَا يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِيْ شَيْءٍ مِنْ دُعَآئِهِ اِلَّا فِي الْاِسْتِسْقَاءِ فَاِنَّهُ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ حَتّٰى يُرٰى بَيَاضُ اِبْطَيْهِ.

۶۷۷: عبدالاعلٰي. يزيد بن زريع. سعيد. قتاده. حضرت انسؓ نه بيان كوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم به خپل دواړه لاسونه څۀ دُعا كښې بغير دَ استسقاء دَ مونځ نه، نۀ اوچتول، دَ استسقاء مونځ كښې به حضورؐ خپل لاسونه مبارك دومره اوچت كړل، چه دَ حضورؐ دَ ترخونو سپيدي به ښكاريدله، ابو موسٰي فرمائي، حضورؐ دُعا اوكړه، او خپل دواړه لاسونه ئے اوچت كړل، نو ما دَ حضورؐ دَ ترخونو سپيدي اوليده.

۷۷۷: حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ الصَّبَّاحِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَابِقٍ حَدَّثَنَا مَالِكُ ابْنُ مِغْوَلٍ قَالَ سَمِعْتُ عَوْنَ ابْنَ اَبِيْ جُحَيْفَةَ ذَكَرَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ دُفِعْتُ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ بِالْاَبْطَحِ فِيْ قُبَّةٍ كَانَ بِالْهَاجِرَةِ خَرَجَ بِلَالٌ فَنَادٰى بِالصَّلٰوةِ ثُمَّ دَخَلَ فَاَخْرَجَ فَضْلَ وَضُوْءِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَقَعَ النَّاسُ عَلَيْهِ يَأْخُذُوْنَ مِنْهُ ثُمَّ دَخَلَ فَاَخْرَجَ الْعَنَزَةَ وَ خَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَاَنِّيْ اَنْظُرُ اِلٰى وَ بِيْصِ سَاقَيْهِ فَرَكَزَ الْعَنَزَةَ ثُمَّ صَلَّى الظُّهْرَ رَكْعَتَيْنِ وَالْعَصْرَ رَكْعَتَيْنِ يَمُرُّ بَيْنَ يَدَيْهِ الْحِمَارُ وَالْمَرْاَةُ.

۷۷۷: حسن. محمد. مالک بن مغول. عون. حضرت ابو جحيفهؓ نه روايت كوي، هغه وائي، زۀ اتفاقًا رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ته اورسيدم. دَ غرمے نه پس وخت وو، حضورؐ ابطح كښې خيمه كښې دننه وو، بلالؓ بهر راووت آذان ئے اوكه، بيا هغه دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ اودس نه بچ شوے اوبه راوښكلے. خلق په هغے ورمات شو. دے نه پس بلالؓ دننه ورغے. نيزه ئے راوښكله، او رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم بهر ته تشريف راوړلو، گويا زۀ اوس هم دَ حضورؐ دَ پنډيِ چمک وينم، بيا بلالؓ نيزه ښخه كړه. دے نه پس حضورؐ دَ ماسپخين دوه ركعاته او دَ مازيگر دوه ركعاته اوكړل. دَ حضورؐ مخكښې خرے او ښځے تيريدلے (دَ هغے حضورؐ څۀ پروا نۀ كوله).

۷۷۸: حَدَّثَنِي الْحَسَنُ بْنُ

۷۷۸: حسن بن صباح البزار. سفيان.

مِنْهَالِ الْبَزَّارُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُحَدِّثُ حَدِيْثًا لَوْ عَدَّهُ الْعَادُّ لَاَحْصَاهُ وَ قَالَ اللَّيْثُ حَدَّثَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ اَنَّهُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ ابْنُ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّهَا قَالَتْ اَلَا يُعْجِبُكَ اَبُوْ فُلَانٍ جَآءَ فَجَلَسَ اِلٰى جَانِبِ حُجْرَتِيْ يُحَدِّثُ عَنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسْمِعُنِيْ ذٰلِكَ وَ كُنْتُ اُسَبِّحُ فَقَامَ قَبْلَ اَنْ اَقْضِيَ سُبْحَتِيْ وَلَوْ اَدْرَكْتُهُ لَرَدَدْتُ عَلَيْهِ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَكُنْ يَسْرُدُ الْحَدِيْثَ كَسَرْدِكُمْ.

زهري. عروه. بي بي عائشے نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم به داسے په مزه مزه خبرے كولے، كه شمار كونكي به (حرفونه) شميرل غوښتل، نو شميرلے ئے شو، ليث، يونس، ابن شهاب، عروه بن زبير، بي بي عائشے نه يو بل روايت دے، هغے اووے، دَ فلاني سړي په حال تاسو له تعجب نهٔ راځي، هغه راغے، او ځما دَ حجرے (كوټے) طرف ته كيناست، هغه دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم حالات ماته آورول او زهٔ مانځه كښې مشغوله ووم، قبل دَ دے نه چه زهٔ مونځ ختم كړم، هغه لاړلو، كه ما هغه بيامندے وے، نو ضرور به م په هغه ردّ كړے وو، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ستا په شان دومره زر، زر خبرے نهٔ كولے.

بَاب ۷۷۳: كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَنَامُ عَيْنُهُ وَلَا يَنَامُ قَلْبُهُ رَوَاهُ سَعِيْدُ بْنُ مِيْنَآءَ عَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۷۷۳: دَ خوب حالت كښې به دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ستركے اُودے او زړهٔ بيدار وو. سعيد بن ميناء دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه دا حديث بيان كړے دے.

۷۷۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ سَعِيْدِ الْمُقْبُرِيِّ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ اَنَّهُ سَاَلَ عَائِشَةَ كَيْفَ كَانَتْ صَلٰوةُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ رَمَضَانَ قَالَتْ مَا كَانَ يَزِيْدُ فِيْ

۷۷۹: عبداللّٰه. مالک. سعيد. حضرت ابو سلمه بن عبدالرحمٰن نه روايت كوي هغه دَ بي بي عائشے نه تپوس اوكهٔ، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم به رمضان المبارک كښې څو ركعاته مونځ كولو، بي بي عائشے اووے حضورؐ به دَ يولس ركعاتونه زيات نهٔ كول نهٔ رمضان كښې، نهٔ غير

رَمَضَانَ وَلَا غَيْرِهِ عَلٰى اِحْدٰى عَشَرَةَ رَكْعَةً يُصَلِّيْ اَرْبَعَ رَكْعَاتٍ فَلَا تَسْأَلْ عَنْ حُسْنِهِنَّ وَ طُوْلِهِنَّ ثُمَّ يُصَلِّيْ اَرْبَعًا فَلَا تَسْأَلْ عَنْ حُسْنِهِنَّ وَ طُوْلِهِنَّ ثُمَّ يُصَلِّيْ ثَلٰثًا فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ تَنَامُ قَبْلَ اَنْ تُوْتِرَ قَالَ تَنَامُ عَيْنِيْ وَلَا يَنَامُ قَلْبِيْ.

رمضان کښې. حضورؐ به څلور رکعاته کول، ذَ هغې ذَ خوبي او درازي ذَ کيفيت تپوس مۀ کوه. بيا به ئې څلور رکعاته کول. تاته ذَ هغې ذَ خوبئ او درازئ کيفيت مۀ پُښته. دے نه پس به ئې درے رکعاته کول. ما عرض اوکۀ، يا رسول اللّٰه، تاسو ذَ وتر کولو نه مخکښې آرام کوئې: وے فرمائيل، څما سترګے اودے وي، ليکن زړۀ مِ بيدار وي.

۷۸۰: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَخِيْ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ شَرِيْكِ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ نَمِرٍ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يُحَدِّثُنَا عَنْ لَيْلَةِ اُسْرِيَ بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ مَسْجِدِ الْكَعْبَةِ جَآءَهٗ ثَلٰثَةُ نَفَرٍ قَبْلَ اَنْ يُّوْحٰى اِلَيْهِ وَهُوَ نَائِمٌ فِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ فَقَالَ اَوَّلُهُمْ اَيُّهُمْ هُوَ فَقَالَ اَوْسَطُهُمْ هُوَ خَيْرُهُمْ فَكَانَتْ تِلْكَ فَلَمْ يَرَهُمْ حَتّٰى جَآءُوْا لَيْلَةً اُخْرٰى فِيْمَا يَرٰى قَلْبُهٗ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَائِمَةٌ عَيْنَاهُ وَلَا يَنَامُ قَلْبُهٗ وَ كَذٰلِكَ الْاَنْبِيَآءُ تَنَامُ اَعْيُنُهُمْ وَلَا تَنَامُ قُلُوْبُهُمْ فَتَوَلَّاهُ جِبْرِيْلُ ثُمَّ عَرَجَ بِهٖ اِلَى السَّمَآءِ.

۷۸۰: اسماعيل. برادر اسماعيل. سليمان. شريک. حضرت انس بن مالکؓ نه روايت کوي، هغۀ مونږ ته ذَ هغے شپے کيفيت بيان کۀ، چه هغې کښې ذَ حضور صلى اللّٰه عليه وسلّم ذَ کعبے ذَ جمات نه معراج اوشو. ذَ وحي نازليدونه مخکښې درے سړي حضورؐ له راغلل (دغه وخت) حضورؐ مسجد حرام کښې اُودۀ وو، نو هغے درے سړو کښې يو سړي اووے، هغه سړے کوم يو دے، دويم اووے چه مينځ کښې دے، هغه ذَ ټولونه بهتر دے. او دريم اووے چه دے ټولو کښې بهتر وي هغه واخلئے، بس دومره خبرے شوے وے چه هغوي غائب شو، حضورؐ هغوي اونه ليدل بيا په دويمه شپه هغوي راغلل، دے حالت کښې ذَ حضورؐ زړۀ مبارک بيدار وو، د حضورؐ ظاهري سترګے به اودے وے، او ذَ حضورؐ زړۀ مبارک به نۀ اودۀ کيدلو. ذَ ټولو انبياؤ دغه حال دے، چه ذَ هغوي سترګے اُودے وي او ذَ هغوي زړۀ اودۀ نۀ وي. بيا جبرئيلؑ پوره انتظام او اهتمام په خپله ذمه واخست، دے نه پس هغه حضورؐ آسمان طرف ته اوچت کړلو.

## بَابٌ ۳۷۸: عَلَامَاتِ النُّبُوَّةِ

## باب ۳۷۸: اسلام کښې ذَ نبوّت ذَ علامتونو

فِي الْإِسْلَامِ.

۷۸۱: حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا سَلْمُ بْنُ زَرِيرٍ سَمِعْتُ أَبَا رَجَاءٍ قَالَ حَدَّثَنَا عِمْرَانُ بْنُ حُصَيْنٍ أَنَّهُمْ كَانُوا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي مَسِيرٍ فَأَدْلَجُوا لَيْلَتَهُمْ حَتَّى إِذَا كَانَ وَجْهُ الصُّبْحِ عَرَّسُوا فَغَلَبَتْهُمْ أَعْيُنُهُمْ حَتَّى ارْتَفَعَتِ الشَّمْسُ فَكَانَ أَوَّلَ مَنِ اسْتَيْقَظَ مِنْ مَنَامِهِ أَبُوبَكْرٍ وَكَانَ لَا يُوقَظُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ مَنَامِهِ حَتَّى يَسْتَيْقِظَ فَاسْتَيْقَظَ عُمَرُ فَقَعَدَ أَبُوبَكْرٍ عِنْدَ رَأْسِهِ فَجَعَلَ يُكَبِّرُ وَيَرْفَعُ صَوْتَهُ حَتَّى اسْتَيْقَظَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَزَلَ فَصَلَّى بِنَا الْغَدَاةَ فَاعْتَزَلَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ لَمْ يُصَلِّ مَعَنَا فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ يَا فُلَانُ مَا يَمْنَعُكَ أَنْ تُصَلِّيَ مَعَنَا قَالَ أَصَابَتْنِي جَنَابَةٌ فَأَمَرَهُ أَنْ يَتَيَمَّمَ بِالصَّعِيدِ ثُمَّ صَلَّى وَجَعَلَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي رَكُوبٍ بَيْنَ يَدَيْهِ وَقَدْ عَطِشْنَا عَطَشًا شَدِيدًا فَبَيْنَمَا نَحْنُ نَسِيرُ إِذَا نَحْنُ بِامْرَأَةٍ سَادِلَةٍ

بيان.

۷۸۱: ابوالوليد. سلم. ابو رجاء. حضرت عمران بن حصينؓ نه بيان كوي، هغهٔ اووے، يو سفر كښې مونږ (صحابهؓ) رسول الله صلے الله عليه وسلّم سره وو. ټوله شپه روان وو، چه سحر نزدے شو، نو ټولو قيام اوكړ، بيا په هغوي خوب غالب شو، چه نمر راوختلو، دَ ټولو نه مخكښې چه كوم سړے بيدار شو، هغه ابوبكرؓ وو، او رسول الله صلي الله عليه وسلّم دَ خوب نه بيدارولے نه شو، تردے چه حضورؐ به خپله بيدار شولو نو حضرت عمرؓ راويخ شو دے نه پس حضرت ابوبكرؓ دَ حضور صلي الله عليه وسلّم سر مبارك سره كيناستلو، او اوچت آواز سره ئے تكبير وئيل شروع كړل، تردے چه نبي صلي الله عليه وسلّم بيدار شولو، بيا حضورؐ مونږ ته دَ سحر مونځ راكړلو. قوم كښې يو سړے جدا پاتے شو. هغه مونږ سره مونځ اونهٔ كهٔ. څهٔ وخت چه حضورؐ فارغ شو، نو حضورؐ ورته اوفرمائيل اے فلانيه، تا مونږ سره مونځ ولے اونهٔ كهٔ. هغهٔ عرض اوكهٔ، زهٔ جنابت (لوئے بے اودسي) كښې ووم، حضورؐ ورته حكم اوكهٔ، خاورے سره تيمم اوكړه. بيا هغهٔ مونځ ادا كهٔ. او زهٔ رسول الله صلي الله عليه وسلّم څو سورو سره مخكښې اوليږلم مونږ خلق سخت تږے وو، ليكن روان وو، ناساپه مونږ سره يوه ښځه يو ځائے شوه، چه خپلے دواړه پښے ئے دَ لويو مشكونو مينځ كښې آويزانلے كړے وے. مونږ دَ هغے ښځے نه تپوس اوكهٔ، اوبه كوم ځائے دي. هغے اووے، اُوبه نشته، مونږ تپوس اوكهٔ، ستا دَ كور او اوبو مينځ كښې څومره فاصله ده، هغے اووے، دَ يو ورځے شپے

رِجْلَيْهَا بِمُنَ مَزَادَتَيْنِ فَقُلْنَا لَهَا أَيْنَ الْمَآءُ فَقَالَتْ اِنَّهُ لَامَآءَ فَقُلْنَا كَمْ بَيْنَ اَهْلِكِ وَ بَيْنَ الْمَآءِ قَالَتْ يَوْمٌ وَ لَيْلَةٌ فَقُلْنَا انْطَلِقِيْ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ وَمَا رَسُوْلُ اللّٰهِ فَلَمْ نُمَلِّكْهَا مِنْ اَمْرِهَا حَتّٰى اسْتَقْبَلْنَا بِهَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَدَّثَتْهُ بِمِثْلِ الَّذِيْ حَدَّثَتْنَا غَيْرَ اَنَّهَا حَدَّثَتْهُ اَنَّهَا مُؤْتِمَةٌ فَاَمَرَ بِمَزَادَتَيْهَا فَمَسَحَ فِي الْعَزْلَاوَيْنِ فَشَرِبْنَا عِطَاشًا اَرْبَعِيْنَ رَجُلًا حَتّٰى رَوِيْنَا فَمَلَاْنَا كُلَّ قِرْبَةٍ مَعَنَا وَ اِدَاوَةٍ غَيْرَ اَنَّهُ لَمْ نَسْقِ بَعِيْرًا وَ هِيَ تَكَادُ تُنِضُّ مِنَ الْمِلْءِ ثُمَّ قَالَ هَاتُوْا مَا عِنْدَكُمْ فَجَمَعَ لَهَا مِنَ الْكِسَرِ وَالتَّمْرِ حَتّٰى اَتَتْ اَهْلَهَا قَالَتْ لَقِيْتُ اَسْحَرَ النَّاسِ اَوْ هُوَ نَبِيٌّ كَمَا زَعَمُوْا فَهَدَى اللّٰهُ ذَاكَ الصِّرْمَ بِتِلْكَ الْمَرْاَةِ فَاَسْلَمَتْ وَ اَسْلَمُوْا.

(يعني يو شواروز) بيا مونږ ورته اووے' رسول الله صلي الله عليه وسلّم له راځه' چه ځو' هغے اووے' رسول الله صلي الله عليه وسلّم څوک دے. مونږ هغه مجبوره کړه' او رسول الله صلي الله عليه وسلّم له مو بوتله' حضورؐ ته ئے هم هغے دغسے اووے' څنګه چه ئے مونږ ته وئيلے وو' او هغے حضورؐ ته دا بيان هم اوکه' چه هغه دَ دوو يتيمانو بچو مور ده. حضورؐ دَ هغے دَ دواړو مشکونو دَ پرانستلو حکم اوکۀ. او دَ هغے په خولے (دهانے) ئے لاس مبارک رابنکلو' بيا مونږ څلويښت تږو شرو اُوبه ښے اوڅکلے' او څمونږ دَ ټولو تنده ښۀ ماته شوه. او مونږ سره چه څومره مشکونه او لوښي وو' هغه ټول مو ډک کړل. صرف مونږ اُوښانوله اوبه ورنۀ کړلے بيا هم دَ هغے مشک دَ زيات ډکيدو په وجه شليدونکے وو. دے نه پس حضورؐ اوفرمائيل' څۀ چه درسره دي' هغه راوړئے' نو هغے دَ پاره دَ روټي ټکړے او چوهارے جمع کړے شوے' حتي چه هغه خپل کوروالوته اورسيده او هغے اووے. ما يو لوئے جادوګر ليدلے دے' دَ خلقو خيال دے' چه هغه نبي دے' الله دَ هغے په ذريعه دَ هغے کلي خلقوته هدايت اوکۀ' هغه هم مسلمانه شوه' او هغوي ټول هم مسلمانان شو.

۷۸۲: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ عَدِيٍّ عَنْ سَعِيْدٍ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍؓ قَالَ اُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاِنَآءٍ وَهُوَ بِالزَّوْرَآءِ فَوَضَعَ يَدَهُ فِي الْاِنَآءِ فَجَعَلَ الْمَآءُ يَنْبَعُ مِنْ بَيْنِ اَصَابِعِهٖ

۷۸۲: محمد. ابو عدي. سعيد. قتاده. حضرت انسؓ نه روايت کوي' هغۀ اووے' رسول الله صلي الله عليه وسلّم ته دَ اُوبو يو لوښے راوړے شو. او هغه وخت حضورؐ (دَ مدينے بازار ته نزدے) مقام زوراء کښ تشريف فرما وو' هغے لوښي کښ حضورؐ خپل لاس مبارک کيښودلو' او اُوبه دَ حضورؐ دَ ګوتو مُبارکونه

تَوَضَّأَ الْقَوْمُ قَالَ قَتَادَةُ قُلْتُ لِاَنَسٍ كَمْ كُنْتُمْ قَالَ ثَلٰثَ مِائَةٍ اَوْ زُهَآءَ ثَلٰثِ مِائَةٍ.

قلهدل شروع شو، چه هغې سره ټولو خلقو اودس او كړ، قتاده وائي. ما د حضرت انسؓ نه تپوس او كړ، تاسو خلق څومره وئې. هغه اووې، درې سوه يا درې سوو ته قريب.

۷۸۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ اِسْحٰقَ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ طَلْحَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّهُ قَالَ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ حَانَتْ صَلٰوةُ الْعَصْرِ فَالْتُمِسَ الْوَضُوْٓءُ فَلَمْ يَجِدُوْهُ فَاُتِيَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِوَضُوْءٍ فَوَضَعَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَهٗ فِيْ ذٰلِكَ الْاِنَآءِ فَاَمَرَ النَّاسَ اَنْ يَّتَوَضَّئُوْا مِنْهُ فَرَاَيْتُ الْمَآءَ يَنْبَعُ مِنْ تَحْتِ اَصَابِعِهٖ فَتَوَضَّاَ النَّاسُ حَتّٰى تَوَضَّئُوْا مِنْ عِنْدِ اٰخِرِهِمْ.

۷۸۳: عبدالله بن مسلمه. مالک. اسحاق. حضرت انس بن مالکؓ نه روايت کوي، هغه اووې، ما نبي اکرم صلي الله عليه وسلّم اوليد، او د ماز يګر د مونځ وخت وو، خلقو د غسل د پاره اُوبه تلاش کړې، خو اُوبه بيا نهٔ موندې شوې، رسول الله صلي الله عليه وسلّم ته لږې شان اُوبه راوړلې شوې، نو رسول اکرم صلي الله عليه وسلّم هغې لوښي کښې خپل لاس مبارک کېښودلو، او خلقو ته ئې حکم ورکړلو، چه هغې سره اودس اوکړي، ما اُوبه اوليدې، چه د حضور صلي الله عليه وسلّم د ګوتو مبارکو لاندې بهېدلې، خلقو اودس کول شروع کړل، تردې چه ټولو خلقو اودس اوکړ.

۷۸۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ مُبَارَكٍ حَدَّثَنَا حَزْمٌ قَالَ سَمِعْتُ الْحَسَنَ قَالَ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ قَالَ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ بَعْضِ مَخَارِجِهٖ وَ مَعَهٗ نَاسٌ مِّنْ اَصْحَابِهٖ فَانْطَلَقُوْا يَسِيْرُوْنَ فَحَضَرَتِ الصَّلٰوةُ فَلَمْ يَجِدُوْا مَآءً يَتَوَضَّئُوْنَ فَانْطَلَقَ رَجُلٌ مِّنَ الْقَوْمِ فَجَآءَ بِقَدَحٍ مِّنْ مَّآءٍ يَسِيْرٍ فَاَخَذَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَوَضَّاَ ثُمَّ مَدَّ

۷۸۴: عبدالرحمٰن بن مبارک. حزم. حسن. حضرت انس بن مالکؓ نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم خپل يو سفر کښې بهر تشريف يوړلو، حضورؐ سره څنې اصحابؓ هم وو، تلو تلو کښې د مانځه وخت راغې، خو اودس کولو د پاره اُوبه نهٔ وې هغوي کښې يو سړے لاړ، او يوې پيالې کښې ئې لږې شان اوبه راوړلې، هغه رسول الله صلي الله عليه وسلّم واخستې. بيا حضورؐ خپلې خلور ګوتې مبارکې د هغې پيالې د

اَصَابِعَهُ الْاَرْبَعَ عَلَى الْقَدَحِ ثُمَّ قَالَ قُوْمُوْا فَتَوَضَّأَ الْقَوْمُ حَتّٰى بَلَغُوْا فِيْمَا يُرِيْدُوْنَ مِنَ الْوَضُوْءِ وَ كَانُوْا سَبْعِيْنَ اَوْ نَحْوَهُ.

پاسه کیښودې او وې فرمائيل، اودریږئ، (پاسیږئ) او اودس اوکړئ نو خلقو اودس کول شروع کړل، او هغه ټول اویا یا خواوشا اویا پورې سړي وو.

۷۸۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُنِيْرٍ سَمِعَ يَزِيْدَ اَخْبَرَنَا حُمَيْدٌ عَنْ اَنَسٍ قَالَ حَضَرَتِ الصَّلٰوةُ فَقَامَ مَنْ كَانَ قَرِيْبَ الدَّارِ مِنَ الْمَسْجِدِ يَتَوَضَّأُ وَ بَقِيَ قَوْمٌ فَأُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِخْضَبٍ مِنْ حِجَارَةٍ فِيْهِ مَاءٌ فَوَضَعَ كَفَّهُ فَصَغُرَ الْمِخْضَبُ اَنْ يَبْسُطَ فِيْهِ كَفَّهُ فَضَمَّ اَصَابِعَهُ فَوَضَعَهَا فِيْ مِخْضَبٍ فَتَوَضَّأَ الْقَوْمُ كُلُّهُمْ جَمِيْعًا قُلْتُ كَمْ كَانُوْا قَالَ ثَمَانُوْنَ رَجُلًا.

۷۸۵: عبدالله. یزید. حمید. حضرت انسؓ نه روایت کوي، هغه اووې، یو ځل دَ مانځه وخت راغئ، اُوبه نه وې، نو دَ کوم سړي کور، چه جمات سره نزدې وو، هغه اودس له لاړلو، او څه سړي باقي پاتې شو، رسول الله صلی الله علیه وسلّم ته دَ کاڼړي یو لوښے راوړلے شو، هغے کښې لږې شان اُوبه وې، حضورؐ هغے کښې خپل لاس مبارک خوروِل غوښتل، لیکن هغه لوښے وړوکے وو. حضورؐ هغے کښې خپل لاس مبارک خور نه کړے شو، نو حضورؐ خپلے ګوتے مبارکے یو ځائے کړے، او هغے لوښي کښې ئے دننه کیښودلے، نو ټولو سړو اودس اوکړو، ما تپوس اوکړو هغه خلق څومره وو، حضرت انسؓ اوفرمائیل، اتیا سړي وو.

۷۸۶: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ مُسْلِمٍ حَدَّثَنَا حُصَيْنٌ عَنْ سَالِمِ بْنِ اَبِي الْجَعْدِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ عَطِشَ النَّاسُ يَوْمَ الْحُدَيْبِيَّةِ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ يَدَيْهِ رَكْوَةٌ فَتَوَضَّأَ فَجَهَشَ النَّاسُ نَحْوَهُ فَقَالَ مَا لَكُمْ قَالُوْا لَيْسَ عِنْدَنَا مَاءٌ نَتَوَضَّأُ وَلَا نَشْرَبُ اِلَّا مَا بَيْنَ يَدَيْكَ فَوَضَعَ يَدَهُ

۷۸۶: موسٰي. عبدالعزیز. حصین. سالم بن ابي جعد. حضرت جابر بن عبداللهؓ نه بیان کوي، دَ حدیبیے واقعه خلق تږي وو، او دَ رسول الله صلي الله علیه وسلّم یو بَتکے (چھاګل) وو، دَ هغے نه حضورؐ اودس اوکړ، کوم وخت چه اودس ئے اوکړ، نو خلق د هغے طرف ته ورمات شو، حضورؐ اوفرمائیل، ستاسو څۀ حال دے، هغوي عرض اوکړ، مونږ سره اودس او څکلو دَ پاره اوبه نشته. صرف دغه اُوبه دي، چه ستاسو بتکي کښې دي چه کافي کیدے نشي. دے آوریدو سره حضورؐ خپل لاس مبارک په بتکي کیښودلو، او اُوبه دَ ګوتو مبارکو د

بِي الرَّكْوَةِ فَجَعَلَ الْمَاءُ يَثُوْرُ بَيْنَ أَصَابِعِهِ كَأَمْثَالِ الْعُيُوْنِ فَشَرِبْنَا وَ تَوَضَّأْنَا قُلْتُ كَمْ كُنْتُمْ قَالَ لَوْ كُنَّا مِائَةَ أَلْفٍ لَكَفَانَا كُنَّا خَمْسَ عَشْرَةَ مِائَةً.

مينځ نه ګويا دَ اُوبو چينې جاري شوې، نو مونږ ټولو اوڅښکلې، او اودس مو اوکړلو ما دريافت اوکړ تاسو ټول څومره سړي وې، حضرت انسؓ اووې، که مونږ يو لاکھ وې، نو بيا به هم هغه اُوبه کافي وې (دغه وخت) مونږ پنځلس سوه وو.

۷۸۷: حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ إِسْمٰعِيلَ حَدَّثَنَا إِسْرَآئِيلُ عَنْ أَبِي إِسْحٰقَ عَنِ الْبَرَآءِ قَالَ كُنَّا يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ أَرْبَعَ عَشْرَةَ مِائَةً وَالْحُدَيْبِيَةُ بِئْرٌ فَنَزَحْنَاهَا حَتّٰى لَمْ نَتْرُكْ فِيْهَا قَطْرَةً فَجَلَسَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى شَفِيْرِ الْبِئْرِ فَدَعَا بِمَآءٍ فَمَضْمَضَ وَ مَجَّ فِي الْبِئْرِ فَمَكَثْنَا غَيْرَ بَعِيْدٍ ثُمَّ اسْتَقَيْنَا حَتّٰى رَوِيْنَا وَ رَوَتْ أَوْ صَدَرَتْ رِكَابُنَا.

۷۸۷: مالک. اسرائيل. ابو اسحٰق. حضرت براءؓ نه روايت کوي، هغه اووې، دَ حديبيه واقعه کښې خمونږ تعداد څوارلس سوه وو. حديبيه يو کوهے دے. مونږ دَ هغې نه اُوبه راوښکلې، ترديے چه هغې کښې يوه قطره اُوبه پاتې نۀ شوې رسول الله صلي الله عليه وسلّم ته چه دَ دې خبر اورسيد؛ نو حضورؐ کوهي پله تشريف راوړلو، دَ کوهي په غاړه کيناست. دَ اُوبو لوښے ئې اوغوښتلو، خوله کښې ئې اُوبه واچولې، او هغه ئې کوهي کښې اُوغرغړولې، لږ ساعت کښې مونږ کوهے دَ اُوبو نه ډک اوليد، مونږ اوبه ښې اوڅښکلې، او خمونږ ډنګر هم په اُوبو ماړه شو.

۷۸۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ أَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ إِسْحٰقَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِي طَلْحَةَ أَنَّهُ سَمِعَ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَقُوْلُ قَالَ أَبُوْطَلْحَةَ لِأُمِّ سُلَيْمٍ لَقَدْ سَمِعْتُ صَوْتَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَعِيْفًا أَعْرِفُ فِيْهِ الْجُوْعَ فَهَلْ عِنْدَكِ مِنْ شَيْءٍ قَالَتْ نَعَمْ فَأَخْرَجَتْ أَقْرَاصًا مِنْ شَعِيْرٍ ثُمَّ أَخْرَجَتْ خِمَارًا لَهَا فَلَفَّتِ الْخُبْزَ بِبَعْضِهِ ثُمَّ دَسَّتْهُ تَحْتَ يَدِيْ

۷۸۸: عبداللّٰه. مالک. اسحٰق بن ابي طلحه نه روايت کوي، هغه دَ حضرت انس بن مالکؓ نه واوريدل، ابو طلحهؓ (دَ انسؓ دَ مور دويم خاوند) اُم سليم (دَ انس مور) ته اووې، ما نن دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم آواز کمزورے او سست شان بيامندے دے. خما خيال کښې حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوږے دے، آيا تاکره دَ خوراک څکاک څۀ شته، اُم سليم ورته اووې، او، شته، دے ونيلو سره اُم سليم دَ وربشو څو روټئ راوښکلې. بيائے خپل پړونے راواخست، او هغې کښې ئې هغه

وَلَاثَتْنِيْ بِبَعْضِهٖ ثُمَّ اَرْسَلَتْنِيْ اِلٰى
رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
قَالَ فَذَهَبْتُ بِهٖ فَوَجَدْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَسْجِدِ
وَ مَعَهُ النَّاسُ فَقُمْتُ عَلَيْهِمْ فَقَالَ لِيْ
رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
اَرْسَلَكَ اَبُوْ طَلْحَةَ فَقُلْتُ نَعَمْ فَقَالَ
رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
لِمَنْ مَّعَهُ قُوْمُوْا فَانْطَلَقَ وَانْطَلَقْتُ
بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ حَتّٰى جِئْتُ اَبَا طَلْحَةَ
فَاَخْبَرْتُهُ فَقَالَ اَبُوْ طَلْحَةَ لِاُمِّ سُلَيْمٍ
قَدْ جَآءَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ بِالنَّاسِ وَ لَيْسَ عِنْدَنَا مَا
نُطْعِمُهُمْ فَقَالَتْ اَللّٰهُ وَ رَسُوْلُهٗ اَعْلَمُ
فَانْطَلَقَ اَبُوْ طَلْحَةَ حَتّٰى لَقِيَ رَسُوْلَ
اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَقْبَلَ
رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
وَ اَبُوْ طَلْحَةَ مَعَهٗ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلُمِّيْ يَا اُمَّ
سُلَيْمٍ مَا عِنْدَكِ فَاَتَتْ بِذٰلِكَ الْخُبْزِ
فَاَمَرَ بِهٖ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ فَفُتَّ وَ عَصَرَتْ اُمُّ سُلَيْمٍ
عُكَّةً فَاَدَمَتْهُ ثُمَّ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْهِ مَاشَآءَ
اللّٰهُ اَنْ يَّقُوْلَ ثُمَّ قَالَ ائْذَنْ لِعَشَرَةٍ
فَاَذِنَ لَهُمْ فَاَكَلُوْا حَتّٰى شَبِعُوْا ثُمَّ

روټۍ اونغښتلې، پټې ئې کړې، او څه لاس کښې ئې کېښودې، او څه سر پټونکې ئې زما د پاسه واچولو. دې نه پس ئې زهٔ رسول الله صلي الله عليه وسلّم له اوليږلم. حضرت انسؓ وائي، زهٔ لاړم، نو ما رسول الله صلي الله عليه وسلّم جمات کښې اوليد، حضورؐ سره نور ملګري هم وو، زهٔ (خاموش) ولاړ ووم، رسول الله صلي الله عليه وسلّم ماته اوفرمائيل، آيا تهٔ ابو طلحهؓ راليږلې ئې. ما عرض اوکهٔ، جي، او، بيائې تپوس اوکهٔ. ډوډۍ د پاره ئې راليږلې ئې، ما عرض اوکهٔ، جي، او، حضور خلقو ته چه موجود وو، اوفرمائيل، ځئ چه ځو، دې فرمائيلو سره حضورؐ (سره د خلقو) روان شو. زهٔ هم مخکښې مخکښې تلم، ابو طلحه ته چه ورغلم، نو د حضورؐ د تشريف آورئ خبر م ورکړلو. ابو طلحه، اُم سليم ته اووې، چه نبي صلے الله عليه وسلّم سره د ملګرو مونږ پله تشريف راوړي، او سامان دومره نهٔ دې، چه مونږ په هغوي ټولو اوخورو، اُم سليم اووې، الله او د هغهٔ رسول ښهٔ پوهيږي. ابو طلحهؓ (د استقبال د پاره) د کور نه بهر اووتلو، او رسول الله صلے الله عليه وسلّم سره ئې ملاقات اوکړه. بيا رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره ئې تشريف راوړلو اووې فرمائيل، اُم سليم، چه څهٔ موجود وي، هغه راوړه، اُم سليم، هغه روټئ چه هغې سره وې، راوئې ړلې، او رسول الله صلي الله عليه وسلّم ابو طلحهؓ ته حکم اوکهٔ، چه هغه روټۍ ټکړې ټکړې کړي، نو هغه ريزه ريزه کړې شوې، او اُم سُليم د کُپۍ نه غوړي نچوړ کړل، چه اينګولې شو، بيا رسول الله

خَرَجُوْا ثُمَّ قَالَ ائْذَنْ لِعَشَرَةٍ فَأَذِنَ لَهُمْ فَأَكَلُوْا حَتّٰى شَبِعُوْا ثُمَّ خَرَجُوْا ثُمَّ قَالَ ائْذَنْ لِعَشَرَةٍ فَأَكَلَ الْقَوْمُ كُلُّهُمْ وَشَبِعُوْا وَالْقَوْمُ سَبْعُوْنَ أَوْ ثَمَانُوْنَ رَجُلًا.

صلي الله عليه وسلّم په هغې څۀ ذم چُف او کۀ' بيا حضورؐ حکم اوکۀ' چه لس لس سړي راځي' نو لس سړوته دَ طعام خوړلو اجازت ورکړے شو' هغوي په مړي خيټه ډوډي اوخوړله' تردے چه ټولو سړو په مړه خيټه ډوډي اوخوړه. دا ټول اويا يا اتيا سړي وو.

۷۸۹: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا أَبُوْ أَحْمَدَ الزُّبَيْرِيُّ حَدَّثَنَا إِسْرَائِيْلُ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ إِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ كُنَّا نَعُدُّ الْآيَاتِ بَرَكَةً وَأَنْتُمْ تَعُدُّوْنَهَا تَخْوِيْفًا كُنَّا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ سَفَرٍ فَقَلَّ الْمَاءُ فَقَالَ اطْلُبُوْا فَضْلَةً مِنْ مَاءٍ فَجَاءُوْا بِإِنَاءٍ فِيْهِ مَاءٌ قَلِيْلٌ فَأَدْخَلَ يَدَهُ فِي الْإِنَاءِ ثُمَّ قَالَ حَيَّ عَلَى الطَّهُوْرِ الْمُبَارَكِ وَالْبَرَكَةُ مِنَ اللّٰهِ فَلَقَدْ رَأَيْتُ الْمَاءَ يَنْبَعُ مِنْ بَيْنِ أَصَابِعِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَقَدْ كُنَّا نَسْمَعُ تَسْبِيْحَ الطَّعَامِ وَهُوَ يُؤْكَلُ.

۷۸۹: محمد. ابو احمد. اسرائيل. منصور. ابراهيم. علقمه. حضرت عبدالله بن مسعود. ابراهيم. علقمه. حضرت عبدالله بن مسعودؓ نه روايت کوي' هغۀ اووے' مونږ خلقو (يعني صحابه ؤ) آيات قرآني يا معجزات نبوي دَ برکت باعث گنړلو' او تاسو خلق ئے باعث خوف (يعني دَ کافرو دَ ويرولو سبب) گنړئے' يو ځل مونږ رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره سفر کښ وو' چه اوبه کمے شوے' رسول الله صلي الله عليه وسلّم حکم اوکۀ' چرته نه لږ بچ شوے اوبه راوړئے' نو صحابهؓ ؤ يو لوښے چه هغے کښ لږے شان اُوبه بچ شوے وے' راوړلو' حضورؐ هغے لوښي کښ خپل لاس مبارک دننۀ کړلو' اووے فرمائيل' پاکونکے او برکت ناکے اُوبو له راځے. او برکت دَ الله دَ طرف نه دے. ما اوليدل' چه دَ حضورؐ دَ گوتو مبارکونه اُوبه جاري وے' او مونږ دَ هغوي دَ طعام تسبيح هم (په طور دَ معجزے کله کله آوريدلو' چه خوړلے شو).

۷۹۰: حَدَّثَنَا أَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا زَكَرِيَّاءُ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَامِرٌ قَالَ حَدَّثَنِيْ جَابِرٌؓ أَنَّ أَبَاهُ تُوُفِّيَ وَعَلَيْهِ دَيْنٌ فَأَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ إِنَّ أَبِيْ

۷۹۰: ابو نعيم. زکريا. عامر. حضرت جابرؓ نه روايت کوي' خما پلار وفات شو' او په هغۀ څۀ قرض وو' ما دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم په خدمت کښ عرض اوکۀ' چه خما پلار په خان څۀ قرضه پريښے "ده" او ما سره سِوا دَ دے نه چه دَ هغۀ دَ قجورو دَ اُونو نه څۀ

تَرَكَ عَلَيْهِ دَيْنًا وَّ لَيْسَ عِنْدِيْ إِلَّا مَا يُخْرِجُ نَخْلُهُ وَلَا يَبْلُغُ مَا يُخْرِجُ سِنِيْنَ مَا عَلَيْهِ فَانْطَلِقْ مَعِيَ لِكَيْ لَا يَفْحَشَ عَلَيَّ الْغُرَمَآءُ فَمَشَى حَوْلَ بَيْدَرٍ مِّنْ بَيَادِرِ التَّمَرِ فَدَعَا ثُمَّ اٰخَرَ ثُمَّ جَلَسَ عَلَيْهِ فَقَالَ انْزِعُوْهُ فَأَوْفَاهُمُ الَّذِيْ لَهُمْ وَ بَقِيَ مِثْلُ مَا أَعْطَاهُمْ.

پيداوار اوشي نور څۀ نشته. او دَ هغې پيداوار هم څو كاله پورې دَ هغۀ دَ قرضې دَ ادائيګي دَ پاره كافي نۀ دې، نو تاسو ماسره تشريف يوسئې، چه قرض خواه په ما بانديې سختي اونۀ كړي نو حضورؐ تشريف يوړلو، او دَ هغې قجورو دَ ډهيرونو نه دَ يو ډهيرئ نه چاپيره تاؤ شولو او دُعائې اوكړه. بيائې دويم ډهيرئ سره هم دغسې اوكړل، بيا په يو ډهيرئ كيناستلو اووې فرمائيل، چوهارې راوكاږه، نو حضورؐ دَ هغوي قرضه ادا كړله، او څومره ئې چه هغوي له وركړې وه، هغومره چوهارې بچ هم شوې.

۱۹۷: حَدَّثَنَا مُوْسَى ابْنُ إِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ عَنْ أَبِيْهِ حَدَّثَنَا أَبُوْ عُثْمَانَ أَنَّهُ حَدَّثَهُ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ أَبِيْ بَكْرٍؓ أَنَّ أَصْحَابَ الصُّفَّةِ كَانُوْا أُنَاسًا فُقَرَآءَ وَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَرَّةً مَنْ كَانَ عِنْدَهُ طَعَامُ اثْنَيْنِ فَلْيَذْهَبْ بِثَالِثٍ وَمَنْ كَانَ عِنْدَهُ طَعَامُ أَرْبَعَةٍ فَلْيَذْهَبْ بِخَامِسٍ أَوْ سَادِسٍ أَوْ كَمَا قَالَ وَ أَنَّ أَبَا بَكْرٍ جَآءَ بِثَلٰثَةٍ وَانْطَلَقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعَشَرَةٍ وَ أَبُوْبَكْرٍ ثَلٰثَةٌ قَالَ فَهُوَ أَنَا وَ أَبِيْ وَ أُمِّيْ وَلَا أَدْرِيْ هَلْ قَالَ امْرَأَتِيْ وَ خَادِمِيْ بَيْنَ بَيْتِنَا وَ بَيْنَ بَيْتِ أَبِيْ بَكْرٍ وَ أَنَّ أَبَا بَكْرٍؓ تَعَشّٰى

۱۹۷: موسٰي. معتمر. ابو عثمان. حضرت عبدالرحمٰن بن ابي بكرؓ نه روايت دې، چه اصحاب صُفّه مفلس او فقير خلق وو، يوه ورځ رسول الله صلي الله عليه وسلّم صحابهؓ ؤ ته اوفرمائيل، چا سره چه دَ دوو سړو طعام وي، نو هغه يو دريم سړې (دَ دوي نه) بوځي. او چاسره چه دَ څلورو سړو طعام وي، نو هغه دې پنځم او دَ دې نه زيات وي، شپږم دې بوځي، حضرت ابوبكرؓ درې سړي راوستل، او رسول الله صلي الله عليه وسلّم لس سړي بوتلل، دَ حضرت ابوبكرؓ كور كښ درې سړي وو، څما پلار، څما مور او يو خادم، چه څمونږ او دَ ابوبكرؓ مشترک وو (په دغه شپه) ابوبكرؓ دَ شپې ډوډي رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره اوخوړه، بيا هلته ايسار شولو، او دَ ماسخوتن مونځ ئې هم هلته اوكړلو، او حضورؐ سره پاتې شو، بيا ډيره شپه تيره شوې وه، چه كورته راغې، نو خپلې بي بي ورته اووې؛ تاسره دَ خپلو ميلمنو خيال نه وو، ابوبكرؓ اووې، آيا تا هغوي بانديې

عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ لَبِثَ حَتّٰى صَلَّى الْعِشَاءَ ثُمَّ رَجَعَ فَلَبِثَ حَتّٰى تَعَشّٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَآءَ بَعْدَ مَا مَضٰى مِنَ اللَّيْلِ مَا حَبَسَكَ عَنْ اَضْيَافِكَ اَوْ ضَيْفِكَ قَالَ اَوَ عَشَّيْتِهِمْ قَالَتْ اَبَوْا حَتّٰى تَجِيْءَ قَدْ عَرَضُوْا عَلَيْهِمْ فَغَلَبُوْهُمْ فَذَهَبْتُ فَاخْتَبَأْتُ فَقَالَ يَا غُنْثَرُ فَجَدَّعَ وَ سَبَّ وَقَالَ كُلُوْا وَ قَالَ لَا اَطْعَمُهٗ اَبَدًا قَالَ وَ اَيْمُ اللّٰهِ مَا كُنَّا نَاْخُذُ مِنَ اللُّقْمَةِ اِلَّا رَبَا مِنْ اَسْفَلِهَا اَكْثَرَ مِنْهَا شَبِعُوْا وَ صَارَتْ اَكْثَرَ مِمَّا كَانَتْ قَبْلُ فَنَظَرَ اَبُوْبَكْرٍ فَاِذَا شَيْءٌ اَوْ اَكْثَرُ قَالَ لِامْرَاَتِهٖ يَا اُخْتَ بَنِيْ فِرَاسٍ قَالَتْ لَا وَقُرَّةِ عَيْنِيْ لَهِيَ الْاٰنَ اَكْثَرُ مِمَّا قَبْلُ بِثَلٰثِ مَرَّاتٍ فَاَكَلَ مِنْهَا اَبُوْبَكْرٍ وَ قَالَ اِنَّمَا كَانَ مِنَ الشَّيْطٰنِ يَعْنِيْ يَمِيْنَهٗ ثُمَّ اَكَلَ مِنْهَا لُقْمَةً ثُمَّ حَمَلَهَا اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَصْبَحَتْ عِنْدَهٗ وَ كَانَ بَيْنَنَا وَ بَيْنَ قَوْمٍ عَهْدٌ فَمَضَى الْاَجَلُ فَتَفَرَّقْنَا اثْنَا عَشَرَ رَجُلًا مَعَ كُلِّ رَجُلٍ مِنْهُمْ اُنَاسٌ اَللّٰهُ اَعْلَمُ كَمْ مَعَ كُلِّ رَجُلٍ غَيْرَ اَنَّهٗ بَعَثَ مَعَهُمْ قَالَ اَكَلُوْا مِنْهَا اَجْمَعُوْنَ اَوْ كَمَا قَالَ.

ډوډي نۀ ده خوړلے ښځے ورته اووے، هغوي هغه وخته پورے دَ ډوډي خوړلو نه انکار اوکۀ، خو پورے چه تۀ نه يے راغلے، هغوي ته ډوډي مخکښ کړے شوه. خو هغوي اونۀ خوړله (عبدالرحمٰن وائي) زۀ خو دَ ويرے نه پټ شوم. ابوبکرؓ اووے، اے غنثر (دا يو سخته کلمه، چه دَ رټلو په وخت وئيلے شي) بيا هغه ماته ډيرے سختے خبرے اوکړے، اووئيلے، تاسو خورئے، زۀ دا طعام هيڅ کله نۀ خورم. عبدالرحمٰن وائي، قسم په خدائے، کومه نوړئے چه به مونږ اوچتوله دَ هغے لاندے به دَ هغے نه زياتيده (يعني دَ کوم ځائے نه چه به خوراک اوچتولے شو، هغه به دَ خالي کيدو په ځائے دَ خوراک نه ډکيدلو، او خوراک کښ به زياتے راتلو (يعني زياتيدلو به) تر دے چه ټول په خيټه ماړه شو، او هغه طعام دَ هغے نه هم درے چنده شو. ابوبکرؓ خپلے ښځے ته اووے، اے دَ بني فراس خور، دا خوراک خو دَ مخکښ نه هم زيات دے، هغے اووے، دَ خپلے يخے سترګے قسم دے، بيشکه دا خوراک دَ ورمبني نه درے چنده دے. بيا ابوبکرؓ دَ هغے نه اوخوړلو، اووئيلے، هغه قسم دَ شيطان دَ وجے نه وو، دے نه پس يے هغه (طعام) رسول الله صلي الله عليه وسلّم له يوړلو، سحر پورے هغه طعام حضورؐ سره وو. خمونږ او خه خلقو مينځ کښ معاهده وه، چه دَ معاهدے ميعاد تير شو، نو مونږ دولس سړي حکم او جج جوړ کړل، هغوي کښ هر سړي سره څو سړي وو، خدائے ته معلومه ده، چه هر سړي سره څومره خلق وو. بهرحال پنځ والو سره هغه خلق اوليږلے شو. عبدالرحمٰن وائي، دَ هغے طعام نه ټولو خوراک اوکه.

۷۹۲: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيْزِ عَنْ اَنَسٍ وَ عَنْ يُوْنُسَ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ اَنَسٍؓ قَالَ اَصَابَ اَهْلَ الْمَدِيْنَةِ قَحْطٌ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبَيْنَا هُوَ يَخْطُبُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ اِذْ قَامَ رَجُلٌ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هَلَكَتِ الْكُرَاعُ هَلَكَتِ الشَّآءُ فَادْعُ اللّٰهَ يَسْقِيْنَا فَمَدَّ يَدَيْهِ وَ دَعَا قَالَ اَنَسٌ وَ اِنَّ السَّمَآءَ كَمِثْلِ الزُّجَاجَةِ فَهَاجَتْ رِيْحٌ اَنْشَاَتْ سَحَابًا ثُمَّ اَرْسَلَتِ السَّمَاءُ عَزَالِيَهَا فَخَرَجْنَا نَخُوْضُ الْمَآءَ حَتّٰى اَتَيْنَا مَنَازِلَنَا فَلَمْ نَزَلْ نُمْطَرُ اِلَى الْجُمُعَةِ الْاُخْرٰى فَقَامَ اِلَيْهِ ذٰلِكَ الرَّجُلُ اَوْ غَيْرُهٗ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ تَهَدَّمَتِ الْبُيُوْتُ فَادْعُ اللّٰهَ يَحْبِسُهٗ فَتَبَسَّمَ ثُمَّ قَالَ حَوَالَيْنَا وَلَا عَلَيْنَا فَنَظَرْتُ اِلَى السَّحَابِ تَصَدَّعَ حَوْلَ الْمَدِيْنَةِ كَاَنَّهَا اِكْلِيْلٌ.

۷۹۲: مسدد. عبدالعزیز. انس. یونس. ثابت.
حضرت انسؓ نه روایت کوي، دَ رسول الله صلي الله علیه وسلّم زمانه کښې یو ځلې قحط راغے. دغې ورځو کښې حضورؐ دَ جمعې خطبه ورکوله، یو سړے اودریدلو، عرض ئې اوکهٔ، آسونه مړه شو، چیلئې هلاکې شوې، خدائے تعالیٰ نه مونږ دَ پاره دُعا اوغواړئې، چه دَ رحمت باران اوکړي، حضورؐ دُعا دَ پاره دواړه لاسونه اوچت کړل، او دُعا، ئې اوکړه، حضرت انسؓ وائي هغه وخت آسمان بالکل دَ شیشې په شان صاف وو (په هغې دَ وریځې یوه ټکړه هم نهٔ وه) نو یوه هَوا اوچلیده. وریځ راغله، او آسمان خپله خوله (مُنه) پرانسته. دومره باران اوشو، چه مونږ اُوبو کښې خپل کورته اورسیدو، او بلې جمعې پورې برابر باران وریدلو، په دوئمه جمعه هغه سړے یا بل اودریدلو، اووے وئیل، یا رسول اللّٰه، مکانات اوغرځیدل، تاسو اللّٰه تعالیٰ ته سوال اوکړئې، چه باران بند شي، حضورؐ مُسکې شو، وے فرمائیل، څمونږ په خوا اوشا دې وریږي، او مونږ دَ پاسه دې نهٔ وریږي، نو ما وریځ ته کتل، چه هغه دَ مدینې خواوشاته خوره شوه داسې معلومیده، چه ګویا هغه دَ وریځو په مینځ کښې دَ تاج په شان په نظر راځي.

۷۹۳: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ كَثِيْرٍ اَبُوْ غَسَّانَ حَدَّثَنَا اَبُوْ حَفْصٍ وَ اِسْمُهٗ عُمَرُ بْنُ الْعَلَآءِ اَخُوْ اَبِيْ عَمْرِو بْنِ الْعُلَاءِ قَالَ سَمِعْتُ نَافِعًا عَنِ ابْنِ عُمَرَؓ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۷۹۳: محمد بن مثنی. یحیٰي بن کثیر. ابو غسان. ابو حفص. عمر بن العلاء. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روایت کوي، رسالت مآب صلي اللّٰه علیه وسلّم دَ قجورې لرګي سره تکیه وهلې خطبه ئې لوسته. څه وخت چه منبر جوړ شو، نو حضورؐ

يخطب الى جذع فلما اتخذ المنبر تحول اليه فحن الجذع فاتاه فمسح بيده عليه و قال عبد الحميد اخبرنا عثمان بن عمر اخبرنا معاذ بن العلاء عن نافع بهذا و رواه ابو عاصم عن ابن ابي رواد عن نافع عن ابن عمر عن النبي صلى الله عليه وسلم.

منبر ته تشريف يوړلو' نو هغه ستن په چغو چغو په ژړا شوه' حضور هغې له راغې' او خپل لاس مبارک ئې په هغې راښکلو' عبدالحميد' عثمان بن عمر' معاذ بن العلاء' نافع نه دغه شان روايت کوي' او ابو عاصم' ابن ابي رواد' نافع' ابن عمر' نبي صلى الله عليه وسلم نه دغه شان بيان کوي.

۳۴۹۴: حدثنا ابو نعيم حدثنا عبد الواحد بن ايمن قال سمعت ابي عن جابر بن عبد الله ان النبي صلى الله عليه وسلم كان يقوم يوم الجمعة الى شجرة او نخلة فقالت امرأة من الانصار او رجل يا رسول الله الا نجعل لك منبرا قال ان شئتم فجعلوا له منبرا فلما كان يوم الجمعة دفع الى المنبر فصاحت النخلة صياح الصبي ثم نزل النبي صلى الله عليه وسلم فضمه اليه تئن انين الصبي الذي يسكن قال كانت تبكي على ما كانت تسمع من الذكر عندها.

۳۴۹۴: ابو نعيم. عبدالواحد بن ايمن. حضرت جابر بن عبدالله نه روايت کوي' رسول الله صلي الله عليه وسلم د جمعې د خطبې په وخت د قجورې تنې سره ډډه وهله' نو يوې انصاري ښځې يا يو سړي عرض اوکړ' يا رسول الله' مونږ تاسو د پاره منبر جوړ نه کړو' وې فرمائيل' که غواړې' نو جوړ کړئ نو هغوي حضور د پاره منبر جوړ کړلو' د جمعې ورځ چه راغله' حضور منبر ته اوختلو' نو د قجورې د لرگي هغه ټکره د ماشومانو په شان په ژړا شوه' چغې ئې وهلې' رسول الله صلي الله عليه وسلم د منبر نه راکوز شو' هغه لرگے ئې سينې سره اولږولو' نو هغې لرگي داسې آواز سره اوژړل' څنګه چه هغه بچې ژاړي' چه چپ کولے شي. حضرت جابر وائي' هغه لرگے د هغې ذکر په ياد کښې په ژړا شو' چه هغه سره به کيدلو.

۳۴۹۵: حدثنا اسمعيل قال حدثني اخي عن سليمان بن بلال عن يحيى بن سعيد قال اخبرني حفص بن عبيد الله بن انس بن مالك انه سمع جابر بن عبد الله

۳۴۹۵: اسمعيل. سليمان. يحيي. حفص. حضرت انس بن مالک نه روايت کوي' هغه د حضرت جابر نه واوريدل' چه (ابتدا کښې) مسجد نبوي د قجورو د څانګو نه جوړ شوې وو. رسول الله صلي الله عليه وسلم چه به خطبه لوسته'

يَقُوْلُ كَانَ الْمَسْجِدُ مَسْقُوْفًا عَلٰى جُذُوْعٍ مِّنْ نَخْلٍ فَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا خَطَبَ يَقُوْمُ اِلٰى جِذْعٍ مِنْهَا فَلَمَّا صُنِعَ لَهُ الْمِنْبَرُ وَ كَانَ عَلَيْهِ فَسَمِعْنَا لِذٰلِكَ الْجِذْعِ صَوْتًا كَصَوْتِ الْعِشَارِ حَتّٰى جَآءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَضَعَ يَدَهٗ عَلَيْهَا فَسَكَنَتْ.

نو دَ قجورے يوے ستنے سره تكيه به ئے وهله. څه وخت چه حضورؐ د پاره منبر جوړ كړے شو، نو حضورؐ په هغے كيناستلو، په دے وجه مونږ دَ هغے قجورے دَ ستنے نه يو آواز واوريدلو، دَ اوښے دَ بچي په مثل آواز وو، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم هغے له تشريف راوړلو، او خپل لاس مبارك ئے پرے كيښودلو، نو هغه ستنه چپ شوه.

۷۹۶: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا اَبِيُّ عَدِيٍ عَنْ شُعْبَةَ ح وَ حَدَّثَنِيْ بِشْرُ بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ سُلَيْمَانَ سَمِعْتُ اَبَا وَآئِلٍ يُحَدِّثُ عَنْ حُذَيْفَةَ اَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ قَالَ اَيُّكُمْ يَحْفَظُ قَوْلَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْفِتْنَةِ فَقَالَ حُذَيْفَةُ اَنَا اَحْفَظُ كَمَا قَالَ قَالَ هَاتِ اِنَّكَ لَجَرِيْءٌ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِتْنَةُ الرَّجُلِ فِيْ اَهْلِهٖ وَمَالِهٖ وَ جَارِهٖ تُكَفِّرُهَا الصَّلٰوةُ وَالصَّدَقَةُ وَالْاَمْرُ بِالْمَعْرُوْفِ وَالنَّهْيُ عَنِ الْمُنْكَرِ قَالَ لَيْسَتْ هٰذِهٖ وَلٰكِنَّ الَّتِيْ تَمُوْجُ كَمَوْجِ الْبَحْرِ قَالَ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ لَا بَأْسَ عَلَيْكَ مِنْهَا

۷۹۶: محمد. ابن عدي. شعبه. سليمان نه روايت كوي، ما دَ ابو وائل نه هغه دَ حذيفه نه واوريدل، حضرت عمرؓ يوه ورځ اووے، دَ فتنے باره كښ دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم قول تاسو كښ دَ ټولو نه زيات چاته ياد دے. حذيفه اووے، ماته داسے ياد دے، څنګه چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلے وو. حضرت عمرؓ اووے. بيان كړه، بے شكه چه ته ډير جري (تكړه) ئے. حضرت حذيفه اووے رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، دَ سړي فتنه دَ هغه اهل خانه او مال او د هغهٔ ګوانډي كښ ده. چه هغه دَ مانځه، صدقے، خيرات، ښهٔ كار كولو او دَ خرابے خبرے دَ منع كيدو نه منع كوي. حضرت عمرؓ اوفرمائيل، زهٔ دا تپوس نه كوم، بلكه هغه فتنه چه د درياب په شان موجونه وهي. حذيفه اووے، اے امير المؤمنين تاسو ته دَ هغے فتنے نه هيڅ خوف نشته، بيشكه ستا او دَ هغے فتنے مينځ كښ يوه بنده دروازه ده. حضرت عمرؓ اوفرمائيل، هغه دروازه به پرانستے شي يا ماته به كړے شي. حذيفه اووے، جي او، ماته به كړے شي. حضرت عمرؓ اووے. بيا به هغه دَ دے

إِنَّ بَيْنَكَ وَ بَيْنَهَا بَابًا مُغْلَقًا قَالَ يُفْتَحُ الْبَابُ اَوْ يُكْسَرُ قَالَ لَا بَلْ يُكْسَرُ قَالَ ذَاكَ اَحْرٰى اَنْ لَا يُغْلَقَ قُلْنَا عَلِمَ عُمَرُ الْبَابُ قَالَ نَعَمْ كَمَا اَنَّ دُوْنَ غَدٍ اللَّيْلَةُ اِنِّیْ حَدَّثْتُهُ حَدِيْثًا لَيْسَ بِالْاَغَالِيْطِ فَهِبْنَا اَنْ نَّسْأَلَهُ وَ اَمَرْنَا مَسْرُوْقًا فَسَاَلَهُ مَنِ الْبَابُ قَالَ عُمَرُ.

قابله وي، چه هيڅ کله به بنده نهٔ کړے شي، مونږ خلقو (دَ حذيفه نه) تپوس او کهٔ، آيا حضرت عمرؓ هغه دروازه پيژندله، هغه اووے، او داسے ئے پيژندله، څنګه چه تاسو دَ صبا نه پس دَ شپے يقين لرئے، ما هغهٔ ته يو داسے حديث بيان کړے وو، چه هغے کښ شک نهٔ وو، بيا مونږ ته دَ هغهٔ نه زيات تپوس کولو سره خوف معلوم شو او مونږ مسروق ته اووے، هغه تپوس او کهٔ، هغه دروازے نه څوک مطلب وو، حذيفه اووے، هغه دَ حضرت عمرؓ ذات وو.

۷۹۷: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِیْ هُرَيْرَةَؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰى تُقَاتِلُوْا قَوْمًا نِعَالُهُمُ الشَّعْرُ وَ حَتّٰى تُقَاتِلُوْا التُّرْكَ صِغَارَ الْاَعْيُنِ حُمْرَ الْوُجُوْهِ ذُلْفَ الْاُنُوْفِ كَاَنَّ وُجُوْهَهُمُ الْمَجَانُّ الْمُطْرَقَةُ وَ تَجِدُوْنَ مِنْ خَيْرِ النَّاسِ اَشَدَّهُمْ كِرَاهِيَةً لِهٰذَا الْاَمْرِ حَتّٰى يَقَعَ فِيْهِ وَالنَّاسُ مَعَادِنُ خِيَارُهُمْ فِي الْجَاهِلِيَّةِ خِيَارُهُمْ فِي الْاِسْلَامِ وَلَيَاْتِيَنَّ عَلٰى اَحَدِكُمْ زَمَانٌ لَاَنْ يَّرَانِیْ اَحَبُّ اِلَيْهِ مِنْ اَنْ يَّكُوْنَ لَهُ مِثْلُ اَهْلِهِ وَ مَالِهِ.

۷۹۷: ابو اليمان. شعيب. ابو الزناد. اعرج. حضرت ابوهريرةؓ نه روايت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، هغه وخته پورے به قيامت نهٔ قائميږي، څو پورے چه تاسو تُرکو سره جنګ اُونهٔ کړئے، چه دَ هغوي سترګے به وړے وي مخونه به ئے سره (سُرخ) وي. پوزے به ئے پلنے وي، ګويا دَ هغوي مخونه نسکور ډهالونه دي، او تاسو به دَ ټولو نه زيات ښهٔ سړے هغه بيا مومئے، چه دَ ټولونه زيات دَ هغے خلافت نه نفرت کونکے وي، ترڅو چه هغه به مجبور کړے شي، دَ خلقو مثال د معدن او کان په شان دے. دوي کښ چه کوم خلق زمانهٔ جاهليت کښ ښهٔ وو، هغوي اسلام کښ هم ښه دي، او تاسو کښ به په چا داسے زمانه راشي، چه هغهٔ ته به خما ليدل دَ هغهٔ دَ کور والونه زيات خوښ او مرغوب وي.

۷۹۸: حَدَّثَنِیْ يَحْيٰى حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ عَنْ مَعْمَرٍ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ اَبِیْ هُرَيْرَةَؓ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۷۹۸: يحيي. عبدالرزاق. معمر. همام. حضرت ابوهريرةؓ نه روايت کوي، قيامت به هغے پورے نه راځي، څو پورے چه تاسو خوز او کرمان

وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰى تُقَاتِلُوْا خُوْزًا وَ كِرْمَانًا مِنَ الْاَعَاجِمِ حُمْرَ الْوُجُوْهِ فُطْسَ الْاُنُوْفِ صِغَارُ الْاَعْيُنِ وُجُوْهُهُمُ الْمَجَّانُ الْمُطْرَقَةُ نِعَالُهُمُ الشَّعْرُ تَابَعَهُ غَيْرُهُ عَنْ عَبْدِ الرَّزَّاقِ.

سره جنګ اونه کړئ' دا عجمي دي. د هغوي مخونه سره (سُرخ) پوزې پلنې او سترګې وړې وي، ګويا دَ هغوي مخونه نسکور ډهالونه وي. او دَ هغوي پیزار به دَ ویښتو وي. د یحیٰي نه علاوه نورو دَ عبدالرزاق نه ددې متابعت کښې روایت کړې دې.

۷۹۹: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ قَالَ اِسْمٰعِيْلُ اَخْبَرَنِيْ قَيْسٌ قَالَ اَتَيْنَا اَبَا هُرَيْرَةَ فَقَالَ صَحِبْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلٰثَ سِنِيْنَ لَمْ اَكُنْ فِيْ سِنِيَّ اَحْرَصَ عَلٰى اَنْ اَعِيَ الْحَدِيْثَ مِنِّيْ فِيْهِنَّ سَمِعْتُهُ يَقُوْلُ وَ قَالَ هٰكَذَا بِيَدِهٖ وَ بَيْنَ يَدَيِ السَّاعَةِ تُقَاتِلُوْنَ قَوْمًا نِعَالُهُمُ الشَّعْرُ وَهُوَ هٰذَا الْبَارِزُ وَ قَالَ سُفْيَانُ مَرَّةً وَهُمْ اَهْلُ الْبَارِزِ.

۷۹۹: علي بن عبداللّٰه. سفیان. اسمٰعیل. قیس نه روایت دې' هغهٔ اووې' مونږ یو ځل حضرت ابوهریرهؓ له راغلو' هغه اووې' ما د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم صحبت کښې درې کاله صرف کړل. خپل ټول عمر کښې دَ حدیث یادولو خما دومره شوق نه وو' څومره چه دې درې کالو کښې خما شوق زیات شو' ما دَ حضورؐ نه دَ لاس اشارې سره دا واوریدل' دَ قیامت نه مخکښې به تاسو یو داسې قوم سره جنګ کوئې' چه دَ هغوي پیزار به دَ ویښتو وي' او هغه اهل عجم دي.

۸۰۰: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا جَرِيْرُ بْنُ حَازِمٍ سَمِعْتُ الْحَسَنَ يَقُوْلُ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ تَغْلِبَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ بَيْنَ يَدَيِ السَّاعَةِ تُقَاتِلُوْنَ قَوْمًا يَنْتَعِلُوْنَ الشَّعْرَ وَ تُقَاتِلُوْنَ قَوْمًا كَاَنَّ وُجُوْهَهُمُ الْمَجَانُّ الْمُطْرَقَةُ.

۸۰۰: سلیمان بن حرب. جریر بن حازم. حسن. حضرت عمرو بن تغلب نه روایت کوي' هغه اووې' ما رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم نه آوریدلې دي. دَ قیامت نه مخکښې به تاسو یو داسې قوم سره جنګ کوئې' چه دَ هغوي پیزار به دَ ویښتو وي' او داسې قوم سره به هم جنګ اوکړئې' چه دَ هغوي مخونه ګویا ته در ته (د څرمنې) ډهالونه دي.

۱ ۸۰: حَدَّثَنَا الْحَكَمُ بْنُ نَافِعٍ

۸۰۱: حکم. شعیب. زهري. سالم بن عبداللّٰه

اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَؓ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ تُقَاتِلُكُمُ الْيَهُوْدُ فَتُسَلَّطُوْنَ عَلَيْهِمْ ثُمَّ يَقُوْلُ الْحَجَرُ يَا مُسْلِمُ هٰذَا يَهُوْدِيٌّ وَرَآئِيْ فَاقْتُلْهُ.

بن عمرؓ نه بيان كوي، هغه اووے حضرت عبدالله بن عمرؓ وائي، ما رسول الله صلے الله عليه وسلّم نه واوريدل، چه يهوديان به تاسو سره جنګ كوي، بيا به تاسو په هغوي غالب راشئے، تردے چه يهودي به د كانړئ شاته پټيږي، او كانړے به هم تاسو ته حال وائي چه اے مسلمانه، دلته راشه، دا دے خما شاته يو يهودي پټ شوے دے، د مرګ په ګودرئے كوز كړه.

۲ • ۸: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ جَابِرٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَأْتِيْ عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ يَغْزُوْنَ فَيُقَالُ هَلْ فِيْكُمْ مَنْ صَحِبَ الرَّسُوْلَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَقُوْلُوْنَ نَعَمْ فَيُفْتَحُ عَلَيْهِمْ ثُمَّ يَغْزُوْنَ فَيُقَالُ لَهُمْ هَلْ فِيْكُمْ مَنْ صَحِبَ مِنْ اَصْحَابِ الرَّسُوْلِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَقُوْلُوْنَ نَعَمْ فَيُفْتَحُ لَهُمْ.

۲ • ۸: قتيبه. سفيان. عمرو. جابر. حضرت ابوسعيد خدريؓ نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، په خلقو به يوه داسے زمانه راشي، چه هغوي به جهاد كوي، د هغوي نه به تپوس اوشي، آيا تاسو كښې داسے سړے موجود دے، چه هغه د رسول الله صلے الله عليه وسلّم صحبت بيامندے وي هغوي به وائي، او، نو هغوي لره به فتح وركړے شي. بيا به هغوي جهاد كوي، نو هغوي نه به تپوس اوشي، آيا تاسو كښې داسے څوک سړے موجود دے، چه د نبي صلي الله عليه وسلّم د صحابي د صحبت نه فيض ياب شوے وي، هغوي به وائي، او موجود دي، نو هغوي به فتح بياموميِ.

۸۰۳: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْحَكَمِ اَخْبَرَنَا النَّضْرُ اَخْبَرَنَا اِسْرَائِيْلُ اَخْبَرَنَا سَعْدُ الطَّائِيُّ اَخْبَرَنَا مُحَلُّ بْنُ خَلِيْفَةَ عَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ قَالَ بَيْنَا اَنَا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذْ اَتَاهُ رَجُلٌ فَشَكَا اِلَيْهِ الْفَاقَةَ ثُمَّ اَتَاهُ اٰخَرُ فَشَكَا

۸۰۳: محمد بن حكم. نضر. سعد. مُحل. حضرت عدي بن حاتم نه روايت كوي هغهٔ اووے مونږ رسول الله صلے الله عليه وسلّم سره وو، چه يو سړے راغے، او حضورؐ ته ئے د لوږے شكايت اوكهٔ، بيا بل راغے، هغه لارو ښوكيدو شكايت اوكهٔ، حضورؐ اوفرمائيل، عدي، تاحيره ليدلے ده، ما عرض اوكهٔ، ما هغه ځائے خو نهٔ دے ليدلے، ليكن د هغے محل وقوع ماته معلوم دے ور فرمائيل، كه ستا ژوند زيات شو، نو يقينا

قَطْعَ السَّبِيْلِ فَقَالَ يَا عَدِيُّ
هَلْ رَأَيْتَ الْحِيْرَةَ قُلْتُ لَمْ اَرَهَا
وَقَدْ اُنْبِئْتُ عَنْهَا قَالَ فَاِنْ طَالَتْ
بِكَ حَيَاةٌ لَتَرَيَنَّ الظَّعِيْنَةَ تَرْتَحِلُ
مِنَ الْحِيْرَةِ حَتّٰى تَطُوْفَ بِالْكَعْبَةِ
لَا تَخَافُ اَحَدًا اِلَّا اللّٰهَ قُلْتُ
فِيْمَا بَيْنِيْ وَبَيْنَ نَفْسِيْ فَاَيْنَ
دُعَّارُ طَيِّئٍ الَّذِيْنَ قَدْ سَعَّرُوْا
الْبِلَادَ وَلَئِنْ طَالَتْ بِكَ حَيَاةٌ
لَتُفْتَحَنَّ كُنُوْزُ كِسْرٰى قُلْتُ
كِسْرَى بْنُ هُرْمُزَ قَالَ كِسْرَى
بْنُ هُرْمُزَ وَلَئِنْ طَالَتْ بِكَ حَيَاةٌ
لَتَرَيَنَّ الرَّجُلَ يُخْرِجُ مِلْءَ
كَفِّهٖ مِنْ ذَهَبٍ اَوْ فِضَّةٍ
يَطْلُبُ مَنْ يَّقْبَلُهُ مِنْهُ فَلَا
يَجِدُ اَحَدًا يَّقْبَلُهُ مِنْهُ
وَلَيَلْقَيَنَّ اللّٰهَ اَحَدُكُمْ يَوْمَ
يَلْقَاهُ وَلَيْسَ بَيْنَهُ وَبَيْنَهُ
تَرْجُمَانٌ يُتَرْجِمُ لَهُ فَيَقُوْلَنَّ
اَلَمْ اَبْعَثْ اِلَيْكَ رَسُوْلًا
فَيُبَلِّغَكَ فَيَقُوْلُ بَلٰى فَيَقُوْلُ
اَلَمْ اُعْطِكَ مَالًا وَّ اُفْضِلْ
عَلَيْكَ فَيَقُوْلُ بَلٰى فَيَنْظُرُ
عَنْ يَّمِيْنِهٖ فَلَا يَرٰى اِلَّا جَهَنَّمَ
وَيَنْظُرُ عَنْ يَسَارِهٖ فَلَا يَرٰى
اِلَّا جَهَنَّمَ قَالَ عَدِيٌّ سَمِعْتُ

او به ئې وينې، چه يوه بوډئ ښځه به د حيره نه روانه شي او مکې ته چه اُوسي، د کعبې طواف به او کړي، دے سره به سِوا د الله نه د هيچا ويره نه وي، (د صحابهٔ ؤ په وخت کښې هم داسې اوشو). ما خپل زړهٔ کښې اوونيل چه د بنې طے ډاکوان به چرته ځي چاچه ښهزونه تباه کړل. حضورؐ اوفرمائيل که تهٔ ژوندے وې نو او به ګورې. تاسو مسلمانان به د کسرٰي خزانې فتح کړئ. ما تپوس او کړو، کسرٰي څوک دے، د هرمز ځوئے، حضورؐ اوفرمائيل، او، د هرمز ځوئے (چه هغه وخت د ايران بادشاه وو) که تهٔ ژوندے پاتې شوې، نو دا به هم او ګورې، چه يو سړے به د يو موټي همره سرهٔ يا سپين زر اوباسي، هغه به داغواړي چه دا څوک واخلي خو هيڅوک به ئې هم نهٔ آخلي. خلق به دومره مالدار وي، او تاسو نه هر څوک به په قيامت په ورځ الله تعالٰي سره ملاويږي. د دهٔ او د الله تعالٰي مينځ کښې به څوک ترجمان نهٔ وي. بلکه الله تعالٰي به براه راست هغه سره خبرے او کړي او ورته به اوفرمائي چه آيا ما تاته د خپل حکم آورولو د پاره رسول نهٔ وو راليږلے. هغه به عرض او کړي، بيشک چه تا راليږلے وو. الله تعالٰي به اوفرمائي، چه ما تاله مال او دولت نهٔ وو درکړے او ډير م نهٔ وو درکړے، هغه به عرض او کړي، چه بيشک راکړے دے وو. بيا به (هغه سړے) ښې طرف ته او ګوري نو دوزخ به اووينې، چه کس طرف ته او ګوري، نو هم به دوزخ اووينې (يعني نزر به هيڅ نهٔ وينې خو هر طرف ته به دوزخ ورته په نظر ښکاري) عدي اوونيل، ما د رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه واوريدل، حضورؐ

النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اتَّقُوا النَّارَ وَلَوْ بِشِقَّةِ تَمْرَةٍ فَمَنْ لَمْ يَجِدْ شِقَّةَ تَمْرَةٍ فَبِكَلِمَةٍ طَيِّبَةٍ قَالَ عَدِيٌّ فَرَأَيْتُ الظَّعِيْنَةَ تَرْتَحِلُ مِنَ الْحِيْرَةِ حَتّٰى تَطُوْفَ بِالْكَعْبَةِ لَا تَخَافُ اِلَّا اللّٰهَ وَ كُنْتُ فِيْمَنِ افْتَتَحَ كُنُوْزَ كِسْرٰى بْنِ هُرْمُزَ وَلَئِنْ طَالَتْ بِكُمْ حَيَاةٌ لَتَرَوُنَّ مَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُخْرِجُ مِلْءَ كَفِّهٖ.

فرمائيلے دي چه د دوزخ د اور نه خان بچ کړئ اګر که د کهجورے يو ټکړه وي، د الله تعالي په لاره کښې ورکړي. که دا هم چاته په ګوتو ورنشي نو ښهٔ نرمه خبره دے اوکړي. عدي اووئيل، چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم څنګه فرمائيلے وو، هغه خو ما اوليدل: چه يو ښځه يوازے په اوښ سوره ډَ حيرے نه راځي او د کعبے طواف کوي، چه ددے په زړهٔ کښې به د الله تعالي نه سوا ډَ بل چا ويره نهٔ وي، او په هغه خلقو کښې هم شريک ووم، چا چه ډَ کسرٰي خزانے فتح کړے. اوس به تاسو خلق نور هم ژوندي پاتے کيږئ، نو دا خبره به هم اووينئ چه سړے به يو موټے سرهٔ زر اوباسي او هيڅوک به ئے نهٔ آخلي.

۸۰۴: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَاصِمٍ اَخْبَرَنَا سَعْدَانُ بْنُ بِشْرٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ مُجَاهِدٍ حَدَّثَنَا مُحِلُّ بْنُ خَلِيْفَةَ سَمِعْتُ عَدِيًّا كُنْتُ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۸۰۴: عبدالله. ابو عاصم. سعدان بن بشر. ابو مجاهد. محل بن خليفه اووئيل، چه ما ډَ عدي نه واوريدل، بيائے دا حديث نقل کړ (چه پاس ذکر شو).

۸۰۵: حَدَّثَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ شُرَحْبِيْلَ حَدَّثَنَا لَيْثٌ عَنْ يَزِيْدَ عَنْ اَبِي الْخَيْرِ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ يَوْمًا فَصَلّٰى عَلٰى اَهْلِ اُحُدٍ صَلٰوتَهٗ عَلَى الْمَيِّتِ ثُمَّ انْصَرَفَ اِلَى الْمِنْبَرِ فَقَالَ اِنِّيْ فَرَطُكُمْ وَ اَنَا شَهِيْدٌ عَلَيْكُمْ اِنِّيْ وَاللّٰهِ لَاَنْظُرُ اِلٰى حَوْضِي الْاٰنَ وَ اِنِّيْ قَدْ اُعْطِيْتُ خَزَائِنَ

۸۰۵: سعيد بن شرحبيل. ليث. يزيد بن حبيب. ابوالخير. عقبه بن عامر نه روايت کوي، چه حضور صلي الله عليه وسلّم يو ورځ (ډَ مدينے نه) بهر اووتو، او د اُحد په شهيدانو باندے ئے مونځ اوکړ، څنګه چه په مړي باندے کيږي (يعني دُعائے اوکړه) بيا ډَ جُمات په منبر اُوختو، او وے فرمائيل، چه زهٔ به ستاسو ډَ قيامت په ورځ پيش کيمنه يم او په تاسو به ګواهي ورکوم، قسم په خدائے، زهٔ اُوس دے وخت خپل حوض (حوض کوثر) وينم او الله تعالي ماته ډَ زمکے د خزانو کُنجيانے

مَفَاتِيحِ الْاَرْضِ وَ اِنِّيْ وَاللّٰهِ مَا اَخَافُ بَعْدِيْ اَنْ تُشْرِكُوْا وَلٰكِنْ اَخَافُ اَنْ تَنَافَسُوْا فِيْهَا.

راکړے' او قسم په خدائے ماته په تاسو دا ويره نشته' چه تاسو به بيا شرک او کړئ' ليکن ماته دا ويره ده چه چرته د دُنيا پرستئ دَ وجے نه يو بل سره حسد اونهٔ کړے.

۶ ۰ ۸: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ اُسَامَةَ قَالَ اَشْرَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى اُطُمٍ مِنَ الْاٰطَامِ فَقَالَ هَلْ تَرَوْنَ مَا اَرٰى اِنِّيْ اَرَى الْفِتَنَ تَقَعُ خِلَالَ بُيُوْتِكُمْ مَوَاقِعَ الْقَطْرِ.

۶ ۰ ۸: ابو نعيم. سفيان بن عيينه. عروه بن زبير. اسامه بن زيد' هغهٔ اووئيلے چه رسول اکرم صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ مدينے په يو اوچت خائے باندے اوختو' اووے فرمائيل آيا تاسو هغه فساد او فتنه گورئے چه زهٔ ئے گورم. د باران دَ خاخکو پشان ستاسو په کورونو کښې دننه غورځيږي.

۷ ۰ ۸: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّ زَيْنَبَ بِنْتَ اَبِيْ سَلَمَةَ حَدَّثَتْهُ اَنَّ اُمَّ حَبِيْبَةَ بِنْتَ اَبِيْ سُفْيَانَ حَدَّثَتْهَا عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلَيْهَا فَزِعًا يَقُوْلُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَيْلٌ لِّلْعَرَبِ مِنْ شَرٍّ قَدِ اقْتَرَبَ فُتِحَ الْيَوْمَ مِنْ رَدْمِ يَاْجُوْجَ وَ مَاْجُوْجَ مِثْلَ هٰذَا وَ حَلَّقَ بِاِصْبَعِهٖ وَ بِالَّتِيْ تَلِيْهَا فَقَالَتْ زَيْنَبُ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَنَهْلَكُ وَ فِيْنَا الصَّالِحُوْنَ قَالَ نَعَمْ اِذَا كَثُرَ الْخَبَثُ وَ عَنِ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَتْنِيْ هِنْدُ بِنْتُ الْحٰرِثِ اَنَّ اُمَّ سَلَمَةَ قَالَتْ اِسْتَيْقَظَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ فَقَالَ سُبْحَانَ اللّٰهِ

۷ ۰ ۸: ابو اليمان. شعيب. زهري. عروه بن زبير. زينب. اُم حبيبه. بي بي زينب بنت جحش نه روايت کوي' رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم يوه ورځ دَ خوف حالت کښې دے وئيلو سره تشريف يوړلو' چه: لا اله الا اللّٰه: دَ عربو به خرابي وي' هغے شر سره چه نزدے راروان دے. ياجوج ماجوج ديوال کښې دومره سورے (سوراخ) کړے دے چه هغه حضورؐ دَ خپلو دوو گوتو حلقه جوړه کړه' وے ښودله. بي بي زينب فرمائي' ما عرض اوکړهٔ' يا رسول اللّٰه' آيا مونږ به هلاک شو' مونږ کښې نيک خلق هم موجود دي. حضورؐ اوفرمائيل' او' څهٔ وخت چه خرابي زياته خوره شي. يو بل روايت کښې دَ بي بي اُم سلمهؓ نه بيان دے' چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم بيدار شو' نو وے فرمائيل سبحان اللّٰه' خومره

مَاذَا أُنْزِلَ مِنَ الْخَزَآئِنِ وَمَا ذَا أُنْزِلَ مِنَ الْفِتَنِ.

خزانې نازلې شوې دي، او څومره فتنې راولېږلې شوې دي.

٨٠٨: حَدَّثَنَا أَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ أَبِيْ سَلَمَةَ بْنِ الْمَاجِشُوْنَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِيْ صَعْصَعَةَ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ أَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ لِيْ إِنِّيْ أَرَاكَ تُحِبُّ الْغَنَمَ وَ تَتَّخِذُهَا فَأَصْلِحْهَا وَ أَصْلِحْ رُعَامَهَا فَإِنِّيْ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ يَأْتِيْ عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ تَكُوْنُ الْغَنَمُ فِيْهِ خَيْرُ مَالِ الْمُسْلِمِ يَتْبَعُ بِهَا شَعَفَ الْجِبَالِ فِيْ مَوَاقِعِ الْقَطْرِ يَفِرُّ بِدِيْنِهٖ مِنَ الْفِتَنِ.

٨٠٨: ابو نعیم. عبدالعزیز بن ابي سلمه. عبدالرحمٰن بن صعصعه. ذ هغهٔ پلار، حضرت ابو سعید خدريؓ نه روایت کوي، هغهٔ اووې، زهٔ تا وینم چه ته چیلئې خوښوې، او هغه ساتې، نو د هغوي هر شان حفاظت کوې، ذ هغوي ذ بیماري خیال ساتې، ځکه چه ما ذ پیغمبر علیه السلام نه آوریدلې دي، حضورؐ فرمائیل په خلقو به یوه داسې زمانه راشي، چه هغې کښې به ذ مسلمان بهترین مال چیلئې وي چه هغې سره به ذ غرونو درو (دروں) ته ذ اوبو وریدو ځایونو ته لاړ شي، او فتنونه به اوتښتي، خپل دین به بچ کوي.

٨٠٩: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ الْأُوَيْسِيُّ حَدَّثَنَا إِبْرٰهِيْمُ عَنْ صَالِحِ بْنِ كَيْسَانَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ وَ أَبِيْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَؓ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَتَكُوْنُ فِتَنٌ الْقَاعِدُ فِيْهَا خَيْرٌ مِّنَ الْقَآئِمِ وَالْقَآئِمُ فِيْهَا خَيْرٌ مِنَ الْمَاشِيْ وَالْمَاشِيْ فِيْهَا خَيْرٌ مِّنَ السَّاعِيْ وَمَنْ يُّشْرِفْ لَهَا تَسْتَشْرِفْهُ وَمَنْ وَّجَدَ مَلْجَأً أَوْ مَعَاذًا فَلْيَعُذْ بِهٖ وَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ حَدَّثَنِيْ أَبُوْبَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْحَارِثِ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ مُطِيْعِ

٨٠٩: عبدالعزیز الاویسي. ابراهیم. صالح بن کیسان. ابن شهاب. ابن المسیب او ابوسلمه. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل عنقریب ذ فتنو به ظهور کیږي، ذدې فتنو زمانه کښې ناست به ډیر ښه وي، ذ ولاړو نه او ولاړ به بهتر وي، ذ تلونکي نه، او تلونکې به بهتر وي، ذ منډې وهونکي نه. کوم سړې چه دې فتنو ته تا (کتل) کوي، فتنه به هغه خان ته راکاږي (هغې زمانه کښې به) که څوک ذ پناه ځائې بیاموسي، نو هلته دې لاړ شي، پناه دې حاصله کړي. ابن شهاب، ابوبکر بن عبدالرحمٰن ابن الحارث، عبدالرحمٰن بن مطیع بن الاسوذ، نوفل بن معاویه، حضرت ابوهریرهؓ نه یو روایت

بْنِ الْاَسْوَدِ عَنْ نَوْفَلِ ابْنِ مُعَاوِيَةَ مِثْلَ حَدِيْثِ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ هٰذَا اِلَّا اَنَّ اَبَابَكْرٍ يَزِيْدُ مِنَ الصَّلٰوةِ صَلٰوةٌ مَّنْ فَاتَتْهُ فَكَاَنَّمَا وُتِرَ اَهْلَهُ وَمَالَهُ.

کښې دومره الفاظ زیات دي، مونځونو کښې یو مونځ داسې دے، چه ذ کوم سړي نه هغه فوت شي نو ګویا ذ هغه کور بار او مال و متاع ذ هغهٔ نه اُوترووړلے شو.

ف: یا الله دا مونځ خمونږ نه فوت مه کړې. اللّٰهم آمین.

۸۱۰: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ زَيْدِ بْنِ وَهْبٍ عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ سَتَكُوْنُ اُثْرَةٌ وَّ اُمُوْرٌ تُنْكِرُوْنَهَا قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَمَا تَاْمُرُنَا قَالَ تُؤَدُّوْنَ الْحَقَّ الَّذِيْ عَلَيْكُمْ وَ تَسْاَلُوْنَ اللّٰهَ الَّذِيْ لَكُمْ.

۸۱۰: محمد بن کثیر. سفیان. اعمش. زید بن وهب. حضرت ابن مسعودؓ نه روایت کوي، رسول الله صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، عنقریب په تاسو به نورو له ترجیح ورکړې شي، او څو خبرې به داسې وي چه هغه به تاسو بدې ګڼړئ. صحابهؓ ؤ عرض اوکهٔ، تاسو دې معامله کښې مونږ ته څهٔ حکم راکوئې، وې فرمائیل، په تاسو چه ذ هغوي کوم حق وي، هغه ادا کړئ، او خپل حق ذ خدائے تعالٰي نه غواړئ.

۸۱۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيْمِ حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ اِسْمٰعِيْلُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِي التَّيَّاحِ عَنْ اَبِيْ زُرْعَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُهْلِكُ النَّاسَ هٰذَا الْحَيُّ مِنْ قُرَيْشٍ قَالُوْا فَمَا تَاْمُرُنَا قَالَ لَوْ اَنَّ النَّاسَ اعْتَزَلُوْهُمْ قَالَ مَحْمُوْدٌ حَدَّثَنَا اَبُوْ دَاوٗدَ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِي التَّيَّاحِ سَمِعْتُ اَبَا زُرْعَةَ.

۸۱۱: محمد بن عبدالرحیم. ابو معمر. اسمٰعیل بن ابراهیم. ابو اسامه. شعبه. ابو تیاح. ابو زرعه. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي، حضورؐ اوفرمائیل، دا قبیلهٔ قریش به عام خلق هلاک کړي، صحابه کرامو عرض اوکهٔ، بیا تاسو مونږ ته څه حکم راکوئې، حضورؐ اوفرمائیل، کاش چه خلق ذ هغوي نه جدا اوسیدې. محمود اووې، په ذریعه ذ ابو داؤد، شعبه، ابو تیاح، ابو زرعه نه ما دا، واوریدلو.

۸۱۲: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ الْمَكِّيُّ حَدَّثَنَا عَمْرُو يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ الْاُمَوِيُّ عَنْ جَدِّهٖ قَالَ كُنْتُ مَعَ

۸۱۲: احمد بن محمد المکي. عمرو بن یحیٰي بن سعید الاموي، ذ هغهٔ نیکه (دادا) حضرت ابوهریرهؓ نه روایت اوکه، او صادق

مَرْوَانَ وَ اَبِیُ هُرَیْرَةَ فَسَمِعْتُ اَبَا هُرَیْرَةَ یَقُوْلُ سَمِعْتُ الصَّادِقَ الْمَصْدُوْقَ یَقُوْلُ هَلَاكُ اُمَّتِیُ عَلٰی یَدَیُ غِلْمَةٍ مِنْ قُرَیْشٍ فَقَالَ مَرْوَانُ غِلْمَةٌ قَالَ اَبُوْ هُرَیْرَةَ اِنْ شِئْتَ اَنْ اُسَمِّیَهُمْ بَنِیُ فُلَانٍ وَّ بَنِیُ فُلَانٍ.

۸۱۳: حَدَّثَنَا یَحْیَی ابْنُ مُوْسٰی حَدَّثَنَا الْوَلِیْدُ قَالَ حَدَّثَنِی ابْنُ جَابِرٍ قَالَ حَدَّثَنِیُ بُسْرُ بْنُ عُبَیْدِ اللّٰهِ الْحَضْرَمِیُّ قَالَ حَدَّثَنِیُ اَبُوْ اِدْرِیْسَ الْخَوْلَانِیُّ اَنَّهُ سَمِعَ حُذَیْفَةَ بْنَ الْیَمَانِ یَقُوْلُ كَانَ النَّاسُ یَسْاَلُوْنَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْخَیْرِ وَ كُنْتُ اَسْاَلُهُ عَنِ الشَّرِّ مَخَافَةَ اَنْ یُّدْرِكَنِیُ فَقُلْتُ یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّا كُنَّا فِیُ جَاهِلِیَّةٍ وَ شَرٍّ فَجَآءَ نَا اللّٰهُ بِهٰذَا الْخَیْرِ فَهَلْ بَعْدَ هٰذَا الْخَیْرِ مِنْ شَرٍّ قَالَ نَعَمْ قُلْتُ وَهَلْ بَعْدَ ذٰلِكَ الشَّرِّ مِنْ خَیْرٍ قَالَ نَعَمْ وَ فِیْهِ دَخَنٌ قُلْتُ وَمَا دَخَنُهُ قَالَ قَوْمٌ یَهْدُوْنَ بِغَیْرِ هَدْیِیُ تَعْرِفُ مِنْهُمْ وَ تُنْكِرُ قُلْتُ فَهَلْ بَعْدَ ذٰلِكَ الْخَیْرِ مِنْ شَرٍّ قَالَ نَعَمْ دُعَاةٌ اِلٰی اَبْوَابِ جَهَنَّمَ مَنْ اَجَابَهُمْ اِلَیْهَا قَذَفُوْهُ فِیْهَا

د مصدوق حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم نه واوریدل چه خما د اُمت هلاکت د قریشو د څو کسانو لاس کښې دے. مروان اووے د څو خوانانو په لاس کښې. حضرت ابوهریرهؓ اووے، که ته ئې غوارې، نو د هغوي زور به زه تاته اوښایم.

۸۱۳: یحیٰي. ولید. ابن جابر. بسر. ابو ادریس نه بیان کوي، هغه وائي، ما حذیفه بن یمان نه واوریدل چه خلقو به (اکثر) د رسول الله صلي الله علیه وسلم نه د خیر بابت کښې تپوس کولو، او ما به د حضورؐ نه د شر او فتنو په حقله پښتنه کوله، په دے خیال چه چرته شر او فتنه کښې آخته نۀ شو یوه ورځ ما عرض اوکۀ، یا رسول الله، مونږ جاهلیت او شر کښې گرفتار وو، بیا خدائے تعالٰی دے نیکئ (یعني اسلام) سره سرفراز کړو، آیا د دے نیکي نه پس هم څۀ بدي پیښیدونکے ده، وے فرمائیل، او، ما عرض اوکۀ، د دے بدي نه پس به هم څۀ نیکي وي، وے فرمائیل، او، لیکن هغے کښې به څۀ کدورتونه وي، ما عرض اوکۀ، هغه کدورت به څۀ وي، وے فرمائیل، کدورت نه مُراد هغه خلق دي، چه خما د طریقے نه خلاف طریقه اختیار کړي، او خلقو ته خما د لارے خلاف لاره اوښائي، ته به په هغوي کښې دین هم اووینے او د دین خلاف اُمور هم، ما عرض اوکۀ، آیا د دے نیکي نه پس به هم بدي وي، وے فرمائیل او، څۀ خلق به داسے وي، چه د دوزخ په دروازه به ولاړ وي، خلق به بلي، چه د هغوي خبره به مني، نو هغوي به ئے دوزخ ته وردیکه کړي، ما عرض اوکۀ، یا رسول اللهؐ، د

قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صِفْهُمْ لَنَا فَقَالَ هُمْ مِنْ جِلْدَتِنَا وَ يَتَكَلَّمُوْنَ بِأَلْسِنَتِنَا قُلْتُ فَمَا تَأْمُرُنِيْ اِنْ أَدْرَكَنِيْ ذٰلِكَ قَالَ تَلْزَمُ جَمَاعَةَ الْمُسْلِمِيْنَ وَ اِمَامَهُمْ قُلْتُ فَاِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُمْ جَمَاعَةٌ وَلَا اِمَامٌ قَالَ فَاعْتَزِلْ تِلْكَ الْفِرَقَ كُلَّهَا وَلَوْ اَنْ تَعُضَّ بِاَصْلِ شَجَرَةٍ حَتّٰى يُدْرِكَكَ الْمَوْتُ وَ اَنْتَ عَلٰى ذٰلِكَ.

هغوي حال ماته بيان اوفرمائې، وې فرمائيل، هغوي به خمونږ دَ قوم نه وي، او خمونږ ژبه کښې به خبرې کوي ما عرض او کۀ، که زۀ هغه زمانه بياموم، نو تاسو ماته څۀ حکم راکوئې، وې فرمائيل، دَ مسلمانانو جماعت لازم اونيسه، او دَ هغوي دَ امام اطاعت کوئې، ما عرض او کۀ که هغه وخت دَ مسلمانانو جماعت نۀ وي، او امام هم نۀ وي (نو څۀ به کوم) وې فرمائيل، دَ هغې ټولو فرقو نه جُدا شه، اګر که دَ يوې اُونې په جرړه کښې پناه اخستل وي، تر دې چه دغه حالت کښې تاله مرګ راشي.

۸۱۴: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى قَالَ حَدَّثَنِيْ يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنِيْ قَيْسٌ عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ تَعَلَّمَ اَصْحَابِي الْخَيْرَ وَ تَعَلَّمْتُ الشَّرَّ.

۸۱۴: محمد بن مثنى. يحيي بن سعيد. اسمٰعيل. قيس. هغوي اووئيل، خما ملګرو (او صحابهؓ و) خو دَ حضورﷺ نه دَ ښو حالاتو پښتنه اُوکړه، او ما دَ خرابو حالاتو پُښتنه اوکړه.

۸۱۵: حَدَّثَنَا الْحَكَمُ بْنُ نَافِعٍ حَدَّثَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰى يَقْتَتِلَ فِئَتَانِ دَعْوَاهُمَا وَاحِدَةٌ.

۸۱۵: حکم بن نافع. شعيب. زهري. ابو سلمه. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي هغه وائي، رسالت مےب صلي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو، قيامت به نۀ قائميږي، تر دې چه دوو ډلو کښې به جنګ شي، او دَ هغې دواړو ډلو دعوې به يو وي.

۸۱۶: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنْ هَمَّامٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ حَتّٰى يَقْتَتِلَ فِئَتَانِ فَيَكُوْنُ بَيْنَهُمَا مَقْتَلَةٌ عَظِيْمَةٌ

۸۱۶: عبداللّٰه بن محمد. عبدالرزاق. معمر. همام. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، قيامت به نۀ راځي، څو پورې چه دوه ډلې خپلو کښې په جنګ شي. دَ هغوي مينځ کښې به جنګ عظيم وي، او دَ هغوي دواړو دعوې به يوه وي، او هغه

يَدْعُوَاهُمَا وَاحِدَةٌ وَلَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ
حَتّٰى يُبْعَثَ دَجَّالُوْنَ كَذَّابُوْنَ قَرِيْبًا
مِنْ ثَلٰثِيْنَ كُلُّهُمْ يَزْعَمُ اَنَّهٗ رَسُوْلُ
اللّٰهِ.

۷۱۸: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ
اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ
اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ
اَنَّ اَبَا سَعِيْدِ الْخُدْرِيَّ قَالَ بَيْنَمَا
نَحْنُ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَقْسِمُ
قَسْمًا اَتَاهُ ذُو الْخُوَيْصَرَةِ وَهُوَ رَجُلٌ
مِنْ بَنِيْ تَمِيْمٍ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ
اللّٰهِ اعْدِلْ فَقَالَ وَيْلَكَ وَمَنْ
يَعْدِلُ اِذَا لَمْ اَعْدِلْ قَدْ خِبْتُ
وَخَسِرْتُ اِنْ لَمْ اَكُنْ اَعْدِلُ
فَقَالَ عُمَرُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ائْذَنْ
لِيْ فِيْهِ فَاَضْرِبَ عُنُقَهٗ فَقَالَ دَعْهُ
فَاِنَّ لَهٗ اَصْحَابًا يَحْقِرُ اَحَدُكُمْ
صَلَاتَهٗ مَعَ صَلَاتِهِمْ وَ صِيَامَهٗ مَعَ
صِيَامِهِمْ يَقْرَءُوْنَ الْقُرْاٰنَ لَا
يُجَاوِزُ تَرَاقِيَهُمْ يَمْرُقُوْنَ مِنَ
الدِّيْنِ كَمَا يَمْرُقُ السَّهْمُ مِنَ
الرَّمِيَّةِ يُنْظَرُ اِلٰى نَصْلِهٖ فَلَا يُوْجَدُ فِيْهِ
شَيْءٌ ثُمَّ يُنْظَرُ اِلٰى رِصَافِهٖ فَمَا يُوْجَدُ
فِيْهِ شَيْءٌ ثُمَّ يُنْظَرُ اِلٰى قَذَذِهٖ فَلَا
يُوْجَدُ فِيْهِ شَيْءٌ وَقَدْ سَبَقَ الْفَرْثَ

وختـه پورې بـه قيامت نـه راځي څو پورې چه تقريبًا ديرش دروغجن دجالان پيدا نشي. او هغوي ټول به هر يو دا دعوې کوي چه زۀ د اللّٰه رسول او پيغمبر يم.

۷۱۸: ابواليمان. شعيب. زهري. ابو سلمه.
حضرت ابوسعيد خدريؓ نه روايت کوي، هغۀ اووې، مونږ دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم په خدمت کښې حاضر وو، هغۀ څۀ مال تقسيمولو، چه حضورؐ ته ذوالخويصره، چه دَ قبيلۀ بني تميم يو سړے وو، حاضر شو، هغۀ اووې يا رسول اللّٰه، انصاف اوکړه، حضورؐ وَرته اوفرمائيل ستا دې خرابي وي، که زۀ انصاف اونۀ کړم نو څوک دے، چه انصاف به اوکړي، که زۀ انصاف اونه کړم، نو ډير ناکام او نامراد به يم، حضرت عمرؓ عرض اوکۀ، يا رسول اللّٰه، ماته اجازت راکړې چه زۀ دَدۀ گردن والوځوم. وې فرمائيل، دے پريږده، دَدۀ څو ملگري داسې دي، چه د هغوي مونځونه اووينې، نو خپل مونځونه به درنه هير شي، او دَ هغوي دَ روژو مخکښې به خپلې روژې کمې اوګڼې، هغوي به دَ قرآن تلاوت کوي، خو د هغوي دَ حلق نه به لاندې نۀ کوزيږي، دوي به دين نه داسې اوځي، څنګه چه د ليندې (کمان) نه غشې اوځي، که دَ هغې دَ نيولو ځائې اوکتلې شي، نو هغې کښې به هيڅ څيز معلوم نشي، که دَ هغې د پاسه څوکه اوکتلې شي، نو هغې کښې به هيڅ څيز معلوم نشي، که دَ هغې دَ پاسه دَ څوکې او د نيولو دَ ځائې درمياني مقام اوکتلې شي، نو هغې کښې به هيڅ څيز اونۀ ليدې شي حالانکه هغه دَ کندګي او وينې نه تير شوے دے، د

وَالسَّلَامُ اٰيَتُهُمْ رَجُلٌ اَسْوَدُ اِحْدٰى عَضُدَيْهِ مِثْلُ ثَدْيِ الْمَرْاَةِ اَوْ مِثْلُ الْبَضْعَةِ تَدَرْدَرُ وَ يَخْرُجُوْنَ عَلٰى حِيْنِ فُرْقَةٍ مِّنَ النَّاسِ قَالَ اَبُوْ سَعِيْدٍ فَاَشْهَدُ اَنِّيْ سَمِعْتُ هٰذَا الْحَدِيْثَ مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَشْهَدُ اَنَّ عَلِيَّ بْنَ اَبِيْ طَالِبٍ قَاتَلَهُمْ وَ اَنَا مَعَهٗ فَاَمَرَ بِذٰلِكَ الرَّجُلِ فَالْتُمِسَ فَاُتِيَ بِهٖ حَتّٰى نَظَرْنَا اِلَيْهِ عَلٰى نَعْتِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّذِيْ نَعَتَهٗ.

هغوي نښه داده، چه هغوي کښې به يو تور رنګې سړې وي، د هغهٔ يو مټ (بازو) به د ښځې د تي (پستان) يا راپورته شوې د غوښې د ټکړې په شان وي، چه خلقو کښې اختلاف پيدا شي، نو دوي به ظاهر شي. حضرت ابو سعيد خدريؓ وائي• زهٔ د دې امر شهادت کوم، چه ما دا حديث د نبي صلي الله عليه وسلّم نه آوريدلې دې، او دا چه حضرت علي بن ابي طالب دې خلقو سره جنګ کړې دې، زهٔ هغهٔ سره ووم، هغه حکم او که، هغه سړې تلاش کړې شو، راوستې شو، ما هغهٔ کښې هغه خصوصيات بيامندل، کوم چه نبي صلي الله عليه وسلّم د هغهٔ په باره کښې بيان فرمائيلې وو.

١ يعني خرنګ چه يو غشې د ليندې نه وتلو نه پس ښکار نه ښوټ اوځي او تير شي او کله چه غشې او کتې شي نو بالکل صفا په نظر راځي حالانکه هغه سره ښکار زخمي شوې وي او په خاورو وينو کښې پرېکښې وهي• غشې د ښکار د بدن ټولو ګنډګو او وينې نه تير شوې دې او چرته لړې پريوتې دې ليکن څونکه ډير په تيزئ سره هغهٔ خپله فاصله وهلې وه، په دې وجه د وينې وغيره اثر د هغهٔ په هيڅ حصه باندې نه ښکاريږي، همدغه شان دغه خلق به هم ددين نه ډير لرې وي ليکن په ظاهره به ددين نه د انحراف اثرات په دوئ کښې چرته په نظر نه راځي.

٨١٨: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ خَيْثَمَةَ عَنْ سُوَيْدِ بْنِ غَفْلَةَ قَالَ قَالَ عَلِيٌّ اِذَا حَدَّثْتُكُمْ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَاَنْ اَخِرَّ مِنَ السَّمَآءِ اَحَبُّ اِلَيَّ مِنْ اَنْ اَكْذِبَ عَلَيْهِ وَ اِذَا حَدَّثْتُكُمْ فِيْمَا بَيْنِيْ وَ بَيْنَكُمْ فَاِنَّ الْحَرْبَ خَدْعَةٌ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ يَاْتِيْ فِيْ اٰخِرِ الزَّمَانِ قَوْمٌ

٨١٨: محمد بن كثير. سفيان. اعمش. خيثمه. حضرت سويد بن غفلةؓ نه روايت کوي، هغه وائي، حضرت عليؓ اوفرمائيل، کله چه زهٔ د رسالت مېب صلي الله عليه وسلّم حديث ستاسو مخکښې بيانوم، نو بيشکه دا خبره چه زهٔ د آسمانه راغورځيږم خما زياته خوښه ده په نسبت ددې، چه زهٔ په حضور صلي الله عليه وسلّم په دروغه تهمت اوتړم، او هر کله چه زهٔ تاسو ته هغه خبرې بيان کړم، چه خما او ستاسو تر مينځه دي، نو بيشکه جنګ يو فريب دې، ما رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه آوريدلې دي، آخري

حُدَثَاءُ الْاَسْنَانِ سُفَهَاءُ الْاَحْلَامِ يَقُوْلُوْنَ مِنْ خَيْرِ قَوْلِ الْبَرِيَّةِ يَمْرُقُوْنَ مِنَ الْاِسْلَامِ كَمَا يَمْرُقُ السَّهْمُ مِنَ الرَّمِيَّةِ لَا يُجَاوِزُ اِيْمَانُهُمْ حَنَاجِرَهُمْ فَاَيْنَمَا لَقِيْتُمُوْهُمْ فَاقْتُلُوْهُمْ فَاِنَّ قَتْلَهُمْ اَجْرٌ لِمَنْ قَتَلَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ.

زمانه کښې به څه خلق نو عمر بیوقوفان وي چه د ټول مخلوق نه به بهترینې خبرې کوي هغوي به د اسلام نه داسې اوځي څنګه چه د لیندې (کمان) نه تیر اوځي. ایمان به د هغوي د حلق نه لاندې نه کوزیږي تاسو چه هغوي سره یو ځائې شئ نو هغوي قتل کړئ د قیامت په ورځ د هغې سړي د پاره لوئې اجر دې چه دوي قتل کړي.

۸۱۹: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا قَيْسٌ عَنْ خَبَّابِ بْنِ الْاَرَتِّ قَالَ شَكَوْنَا اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مُتَوَسِّدٌ بُرْدَةً لَّهُ فِيْ ظِلِّ الْكَعْبَةِ قُلْنَا لَهُ اَلَا تَسْتَنْصِرُ اَلَا تَدْعُو اللّٰهَ لَنَا قَالَ كَانَ الرَّجُلُ فِيْمَنْ قَبْلَكُمْ يُحْفَرُ لَهُ فِي الْاَرْضِ فَيُجْعَلُ فِيْهِ فَيُجَآءُ بِالْمِنْشَارِ فَيُوْضَعُ عَلٰى رَاْسِهٖ فَيُشَقُّ بِاثْنَتَيْنِ وَمَا يَصُدُّهٗ ذٰلِكَ عَنْ دِيْنِهٖ وَيُمْشَطُ بِاَمْشَاطِ الْحَدِيْدِ مَا دُوْنَ لَحْمِهٖ مِنْ عَظْمٍ اَوْ عَصَبٍ وَمَا يَصُدُّهٗ ذٰلِكَ عَنْ دِيْنِهٖ وَاللّٰهِ لَيُتِمَّنَّ هٰذَا الْاَمْرَ حَتّٰى يَسِيْرَ الرَّاكِبُ مِنْ صَنْعَآءَ اِلٰى حَضْرَمَوْتَ لَا يَخَافُ اِلَّا اللّٰهَ اَوِ الذِّئْبَ عَلٰى غَنَمِهٖ وَلٰكِنَّكُمْ تَسْتَعْجِلُوْنَ.

۸۱۹: محمد. یحیٰی. اسمٰعیل. قیس. حضرت خباب بن ارتؓ نه روایت کوي هغهٔ اووې مونږ رسول الله صلي الله علیه وسلّم ته هغه وخت په طور د شکایت غرض اوکړ، کوم وخت چه حضورؐ خپل څادر په سر کړې وو. د کعبې په سوري کښې ئې تکیه لګولې وه ناست وو، چه تاسو مونږ د پاره مدد ولې نهٔ غواړئ، وې فرمائیل ستاسو نه مخکښې بعضې خلق داسې وو، چه هغه د پاره به په زمکه کښې کنده اوښکلې شوه هغوي به په هغې کښې اودرولې شو. بیا به پرې آره چلولې شوه او د هغوي په سر به کیښودې شوه دوه ټکړې به کړې شو. او دې عمل به هغوي د خپل دین نه منع کولې نهٔ شو. او د اوسپنې ګومنزې به د هغوي د غوښې د لاندې او پلو د پاسه راکښلې شوې، او دې خبرې هغوي د خپل دین نه اړولې نهٔ شو. په خدائې م دې قسم وي دا دې اسلام به کامل شي حتي چه یو سور (سوار) به د صنعاء نه حضر موت پورې ځي نو هغه ته به د خدائې تعالي نه سوا د بل چا نه خوف نه وي. او نهٔ به څوک سړې د خپلو چیلو په حقله د شرمخ نه خوف کوي. لیکن دې معامله کښې تاسو تادي کول غواړئ.

**۸۲۰:** حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اَزْهَرُ بْنُ سَعْدٍ حَدَّثَنَا ابْنُ عَوْنٍ قَالَ اَنْبَأَنِيْ مُوْسَى بْنُ اَنَسٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ افْتَقَدَ ثَابِتَ بْنَ قَيْسٍ فَقَالَ رَجُلٌ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَنَا اَعْلَمُ لَكَ عِلْمَهُ فَاَتَاهُ فَوَجَدَهُ جَالِسًا فِيْ بَيْتِهِ مُنَكِّسًا رَأْسَهُ فَقَالَ مَا شَأْنُكَ فَقَالَ شَرٌّ كَانَ يَرْفَعُ صَوْتَهُ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَدْ حَبِطَ عَمَلُهُ وَهُوَ مِنْ اَهْلِ النَّارِ فَاَتَى الرَّجُلُ فَاَخْبَرَهُ اَنَّهُ قَالَ كَذَا وَ كَذَا فَقَالَ مُوْسَى بْنُ اَنَسٍ فَرَجَعَ الْمَرَّةَ الْاٰخِرَةَ بِبِشَارَةٍ عَظِيْمَةٍ فَقَالَ اذْهَبْ اِلَيْهِ فَقُلْ لَهُ اِنَّكَ لَسْتَ مِنْ اَهْلِ النَّارِ وَلٰكِنْ مِّنْ اَهْلِ الْجَنَّةِ.

**۸۲۰:** علي. ازهر. ابن عون. موسٰي بن انس. حضرت انس بن مالکؓ نه بيان کوي، رسول الله صلے الله عليه وسلّم چه يوه ورځ ثابت بن قيس اونهٔ ليدلو، نو وے فرمائيل، څوک شته، چه دَ ثابت خبر راوړي. يو سړي عرض اوکهٔ، يا رسول اللّٰه، زهٔ دَ هغهٔ خبر راوړم. نو هغه (خوانمرد) ثابت بن قيس له ورغے، او هغه ئے خپل کور کښ، سر خکته کړے ناست بيامند. هغهٔ ترے تپوس اوکهٔ، ستا څهٔ حال دے، ثابت ورته اووے، بدحال م دے. دے نالائقه به خپل آواز دَ حضور صلي الله عليه وسلّم د آواز نه پورته کولو، په دے وجه دَ هغهٔ نيک عمل برباد شو، او دوزخي شو (استغفر الله) نو هغه سړے واپس راغے، حضور صلي الله عليه وسلّم ئے خبر کړلو، چه ثابت داسے داسے وئيلے دي. موسٰي بن انس وائي، بيا هغه سړے دوباره يو لوئے بشارت (خوشخبری) سره ثابت له راغے. حضور اکرمؐ ورته اوفرمائيل، تهٔ ثابت له ورشه، او ورته اووايه، چه تهٔ دَ دوزخيانو نه ئے، بلکه جنتي ئے (الحمد لله).

**۸۲۱:** حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ بْنَ عَازِبٍ فَقَرَأَ رَجُلٌ الْكَهْفَ وَ فِي الدَّارِ الدَّابَّةُ فَجَعَلَتْ تَنْفِرُ فَسَلَّمَ فَاِذَا ضَبَابَةٌ اَوْ سَحَابَةٌ غَشِيَتْهُ فَذَكَرَهُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اقْرَأْ فُلَانُ فَاِنَّهَا السَّكِيْنَةُ نَزَلَتْ لِلْقُرْاٰنِ اَوْ تَنَزَّلَتْ لِلْقُرْاٰنِ.

**۸۲۱:** محمد بن بشار. غندر. شعبه. ابو اسحاق نه روايت کوي، ما دَ براء بن عازب نه دا واوريدل. يو سړي مانخه کښ سورهٔ کهف اولوست، او دَ هغهٔ په کور کښ يو اَس تړلے وو، نو اَس په تهوپونو شو. کوم وخت چه هغهٔ سلام اوګرځولو، نو وے ليدل، چه دَ وريځے يوے ټکړے په هغهٔ سورے کړے دے. رسول الله صلي الله عليه وسلّم ته دَ دے ذکر اوشو، نو حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، اے فلانيه لوله (پڑھے جا) ځکه چه دا سکينه دَ قرآن پاک په وجه نازله شوے وه.

ف: سکینه: بعضے وائي چه دَ سکینه نه مراد رحمت الٰهي دے، او بعضے وائي چه سکینه یوه فریښته ده، چه دَ هغے سر دَ سړي په شان او باقي اعضاء ټول دَ هَوا په شان او نوراني وي. سکینه چه دَ قرآن په لوستونکو باندے دَ آسمان نه نازلیږي خنے وائي چه سکینه دَ رحمت نه سوا دویم څیز دے، طیبي اووے سکینه دَ زړهٔ اطمینان، عبادت خداوندي کښې ذوق و شوق ته وائي، خنے وائي، سکینه دَ زړهٔ پریشاني لرے کیدل او عبادت الٰهي کښې مزه راتلل، او دَ ګناهونو نه نفرت، دا دَ اللّٰه لوئے نعمت دے، چه خپلو نیکانو بندیانو ته ئے عطا کوي یو بزرګ نه نقل دے، هغه دَ مړ کیدو په وخت په ژړا شو. خلقو ترے سبب اوپښتنهٔ نو وے وئیل، اوس دَ عمل خاتمه ده، یعني دَ عمل زمانه ختمیږي. خما مزه فوت کیږي، هغه داسے چه دَ شپے بیداریدل، یخني کښې طهارت (پاکي) کول، ګرمي کښې دَ روژے تنده او لوږه، اوس دا مزے به زهٔ کوم ځائے کوم.

**۸۲۲: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يَزِيدَ بْنِ إِبْرَاهِيمَ أَبُو الْحَسَنِ الْحَرَّانِيُّ حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ مُعَاوِيَةَ حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحٰقَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ بْنَ عَازِبٍ يَقُولُ جَاءَ أَبُو بَكْرٍؓ إِلٰى أَبِي فِي مَنْزِلِهِ فَاشْتَرٰى مِنْهُ رَحْلًا فَقَالَ لِعَازِبٍ ابْعَثْ ابْنَكَ يَحْمِلْهُ مَعِي قَالَ فَحَمَلْتُهُ مَعَهُ وَ خَرَجَ أَبِي يَنْتَقِدُ ثَمَنَهُ فَقَالَ لَهُ أَبِي يَا أَبَا بَكْرٍؓ حَدِّثْنِي كَيْفَ صَنَعْتُمَا حِينَ سَرَيْتَ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ نَعَمْ أَسْرَيْنَا لَيْلَتَنَا وَمِنَ الْغَدِ حَتّٰى قَامَ قَائِمُ الظَّهِيرَةِ وَ خَلَا الطَّرِيقُ لَا يَمُرُّ فِيهِ أَحَدٌ فَرُفِعَتْ لَنَا صَخْرَةٌ طَوِيلَةٌ لَهَا ظِلٌّ لَمْ تَأْتِ عَلَيْهِ الشَّمْسُ فَنَزَلْنَا عِنْدَهُ وَ سَوَّيْتُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ**

**۸۲۲:** محمد. احمد. زهیر. ابو اسحاق. حضرت براء بن عازب نه روایت کوي هغه وائي، یوه ورځ حضرت ابوبکرؓ خما دَ پلار کورته تشریف راوړلو، او دَ هغه نه ئے یوه کجاوه په بیع واخسته، بیائے اوفرمائیل خپل ځوئ ته اووایه، چه دا ماسره یوسي. بیا هغهٔ ته خما پلار اووے، دا راته اووایه، چه کوم وخت تهٔ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم سره په هجرت تلے وے، نو هغه وخت په تاسو دواړو څهٔ تیر شو. حضرت ابوبکرؓ بیان اوکهٔ، (دَ غار نه چه اووتلو) مونږ ټوله شپه مزل کولو، په دوئمه ورځ هم نیمے ورځے پورے مونږ سفر کولو، چه پخه غرمه شوه او لاره بیخي خالي شوه، په هغے څوک تلونکے پاتے نهٔ شو، نو مونږ ته یو غټ کاڼړے په نظر راغے، چه دَ هغے لاندے سورے وو، غارمه نه وو، مونږ هغے سره ګوز شولو، او ما دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم دَ پاره یو ځائے په خپلو لاسونو صاف (آواز) کهٔ، چه حضورؐ په هغے اودهٔ شي، بیام په هغے یو پوستین واچولو، او عرض م اوکړلو، یا رسول اللّٰه، تاسوؐ لږ ساعت دَ پاره آرام اوکړئے، او زهٔ دَ چرته نه پئے راوړم. حضورؐ اودهٔ شولو، او زهٔ دَ پیؤ په تلاش کښې اخوا

وَسَلَّمَ مَكَانًا بِيَدِيْ يَنَامُ عَلَيْهِ وَ بَسَطْتُ فِيْهِ فَرْوَةً وَ قُلْتُ نَمْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَ اَنَا اَنْفُضُ لَكَ مَا حَوْلَكَ فَنَامَ وَ خَرَجْتُ اَنْفُضُ مَا حَوْلَهُ فَاِذَا اَنَا بِرَاعٍ مُقْبِلٍ بِغَنَمِهٖ اِلَى الصَّخْرَةِ يُرِيْدُ مِنْهَا مِثْلَ الَّذِيْ اَرَدْنَا فَقُلْتُ لِمَنْ اَنْتَ يَا غُلَامُ فَقَالَ لِرَجُلٍ مِّنْ اَهْلِ الْمَدِيْنَةِ اَوْ مَكَّةَ قُلْتُ اَفِيْ غَنَمِكَ لَبَنٌ قَالَ نَعَمْ قُلْتُ اَفَتَحْلِبُ قَالَ نَعَمْ فَاَخَذَ شَاةً فَقُلْتُ انْفُضِ الضَّرْعَ مِنَ التُّرَابِ وَالشَّعْرِ وَالْقَذٰى قَالَ فَرَاَيْتُ الْبَرَآءَ يَضْرِبُ اِحْدٰى يَدَيْهِ عَلَى الْاُخْرٰى يَنْفُضُ فَحَلَبَ فِيْ قَعْبٍ كُثْبَةً مِّنْ لَبَنٍ وَ مَعِيَ اِدَاوَةٌ حَمَلْتُهَا لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْتَوِيْ مِنْهَا يَشْرَبُ وَ يَتَوَضَّأُ فَاَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَرِهْتُ اَنْ اُوْقِظَهُ فَوَافَقْتُهُ حِيْنَ اسْتَيْقَظَ فَصَبَبْتُ مِنَ الْمَاءِ عَلَى اللَّبَنِ حَتّٰى بَرَدَ اَسْفَلُهُ فَقُلْتُ اشْرَبْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ فَشَرِبَ حَتّٰى رَضِيْتُ ثُمَّ قَالَ اَلَمْ يَاْنِ لِلرَّحِيْلِ قُلْتُ بَلٰى قَالَ فَارْتَحَلْنَا بَعْدَ مَا مَالَتِ

دیخوا کړخیدم، ناساپه ما یو ګډبه اولیدلو، چه خپلو چیلو سره هغې کانړي (ګټ) طرف ته راروان وو، هغه هم ذ هغې ګټ نه هغه فائده اخستل غوښتل، کومه چه ترې مونږ اخستله (یعني ذ دمې او آرام ځائې وو. دمې د پاره به خلق دلته راتلل) ما ذ هغې ګډبه نه تپوس اوکۀ: ته ذ چا غلام یې، هغه مدینه یا مکه والو کښې ذ چا نوم واخست، ما ترې پُښتنه اوکړه. آیا ستا چیلو کښې پئې شته، هغۀ اووې، او، دې سره هغۀ یوه چیلۍ اونیوله. ما ورته اووې. ددې غُلانزه ذ خاورو او نجاست او ویښتو نه پاکه کړه، اسحاق وائي ما براء اولید، چه خپل یو لاس ئې په بل لاس ځنډلو، چه دا شان هغه غُلانزه صافه کړه. او یوې پیالي کښې ئې پئې اولشل، ماسره یو بتکې وو، ما به هغه ذ نبي صلی الله علیه وسلم ذ پاره ځان سره ساتلو، چه حضورؐ ترې اُوبه اوڅکلې شي او اودس اوکړې شي. زۀ حضورؐ ته واپس راغلم، او ماته دا ښۀ نۀ ښکاریده، چه حضورؐ رابیدار کړم لیکن ما حضورؐ داسې حال کښې بیامند، چه حضورؐ بیدار شوې وو، بیا ما پیؤ کښې لږې شان اُوبه واچولې، حتي چه هغه یخ شو. بیا م عرض اوکۀ، یا رسول الله، دا اوڅکئې، حضورؐ هغه اوڅکل، نو زۀ په دې ډیر خوشحاله شوم، بیا حضورؐ اوفرمائیل، آیا ذ کوچ وخت لا نۀ دې راغلې، ما عرض اوکۀ، او، وخت دې چه کوچ اوکړو، نو ذ نمر ذ زوال نه پس مونږ کوچ اوکۀ، او سراقه بن مالک څمونږ ورستو ورستو راروان وو، هغه ذ مکې کافرو ذ حضور تلاش پسې رالیږلې وو، او سل اوښان ئې ورته انعام منلې وو. ما عرض اوکۀ، یا رسول الله، څوک مونږ پسې راروان

الشَّمْسُ وَاتَّبَعَنَا سُرَاقَةُ بْنُ مَالِكٍ فَقُلْتُ أُتِيْنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَقَالَ لَا تَحْزَنْ اِنَّ اللّٰهَ مَعَنَا فَدَعَا عَلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَارْتَطَمَتْ بِهٖ فَرَسُهُ اِلٰى بَطْنِهَا اُرٰى فِيْ جَلَدٍ مِّنَ الْاَرْضِ شَكَّ زُهَيْرٌ فَقَالَ اِنِّيْ اَرَاكُمَا قَدْ دَعَوْتُمَا عَلَيَّ فَادْعُوَا لِيْ فَاللّٰهُ لَكُمَا اَنْ اَرُدَّ عَنْكُمَا الطَّلَبَ فَدَعَا لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَجَا فَجَعَلَ لَا يَلْقٰى اَحَدًا اِلَّا قَالَ كَفَيْتُكُمْ مَا هُنَا فَلَا يَلْقٰى اَحَدًا اِلَّا رَدَّهُ قَالَ وَ وَفٰى لَنَا.

دي. حضور اوفرمائيل: ته فكر مه كوه، خدائے خمونږ ملګرے دے. بيا حضور سراقه ته بددُعا اوكړله: نو د هغهٔ اَس سره د هغه خيټے پورے زمكه كښې ښخ شولو. د زمكے د سختے او كانړيجنے كيدو زهير شک كړے دے. سراقه اووے: زهٔ پوهيږم، چه تاسو دواړو ماته بددُعا اوكړله، تاسو ماته دُعا اوكړئ، چه د زمكے نه راوځم، په خدائے چه زهٔ به ستاسو تلاش كونكي واپس كړم. نو حضور هغهٔ د پاره دُعا اوكړه، او هغه خلاص شو. بيا چه سراقه به چا سره يوځائے كيدلو، نو وئيل به ئے. ما تلاش كړے دے. غرض چا سره چه به يوځائے كيدلو، هغه به ئے واپس كولو. ابوبكرؓ وئيلے، هغهٔ خپله وعده پوره كړله.

٨٢٣: حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ اَسَدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ مُخْتَارٍ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ عِكْرَمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلٰى اَعْرَابِيٍّ يَعُوْدُهُ قَالَ وَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا دَخَلَ عَلٰى مَرِيْضٍ يَعُوْدُهُ قَالَ لَا بَأْسَ طَهُوْرٌ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ فَقَالَ لَا بَأْسَ طَهُوْرًا اِنْ شَآءَ اللّٰهُ قَالَ قُلْتَ طَهُوْرٌ بَلْ هِيَ حُمّٰى تَفُوْرُ اَوْ تَثُوْرُ عَلٰى شَيْخٍ كَبِيْرٍ تُزِيْرُهُ الْقُبُوْرَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَعَمْ اِذًا.

٨٢٣: معلّٰي بن اسد. عبدالعزيز بن مختار. خالد. عكرمه. حضرت ابن عباسؓ نه بيان كړي، يوه ورځ رسالت ميب صلي اللّٰه عليه وسلّم پُښتنے د پاره يو اعرابي ته تشريف يوړلو، او كله چه به حضورؐ د چا پُښتنے له تلو، نو فرمائيل به ئے، انشاء اللّٰه دے به ښهٔ شي، د دهٔ ګناه اورژيده، حضورؐ هغهٔ ته هم دغسے اووے، انشاء اللّٰه څهٔ حرج نشته دا بيماري د ګناه د معافي سبب دے، هغے اعرابي (بانډيسي) اووے. تاسو وائے، څهٔ حرج نشته، بلكه دا خو وژونكے تبه ده، چه ما بوډا به قبر ته اورسوي. نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، او وس به دغسے كيږي.

ف: دے نه معلومه شوه، كه څوک د چا پښتنے له ورشي، او هغه ورته تسلي وركوي چه خدائے به دے ښهٔ كړي، وار مهٔ خطا كوه، ناروغتيا سره ګناهونه معاف كيږي. نو مريض دے داسے نهٔ وائي، چه دا بيماري

خما د هلاکت باعث ذه' کني هم دغسے به کيږي څنګه چه هغه خپله واني' بلکه داسے دے واني' چه انشاء الله خدائے به م روغ کړي' ستاسو دُعا پکار ده' نو انشاء الله چه خدائے تعالیٰ ئے روغ رمټ کړي.

۸۲۴: حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ عَنْ اَنَسٍؓ قَالَ كَانَ رَجُلٌ نَصْرَانِيًّا فَاَسْلَمَ فَقَرَاَ الْبَقَرَةَ وَ اٰلَ عِمْرَانَ فَكَانَ يَكْتُبُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَادَ نَصْرَانِيًّا فَكَانَ يَقُوْلُ مَا يُدْرِيْ مُحَمَّدٌ اِلَّا مَا كَتَبْتُ لَهٗ فَاَمَاتَهُ اللّٰهُ فَدَفَنُوْهُ فَاَصْبَحَ وَقَدْ لَفِظَتْهُ الْاَرْضُ فَقَالُوْا هٰذَا فِعْلُ مُحَمَّدٍ وَّ اَصْحَابِهٖ لَمَّا هَرَبَ مِنْهُمْ نَبَشُوْا عَنْ صَاحِبِنَا فَاَلْقُوْهُ فَحَفَرُوْا لَهٗ فَاَعْمَقُوْا لَهٗ فِي الْاَرْضِ وَاسْتَطَاعُوْا فَاَصْبَحَ وَقَدْ لَفَظَتْهُ الْاَرْضُ فَقَالُوْا هٰذَا فِعْلُ مُحَمَّدٍ وَّ اَصْحَابِهٖ نَبَشُوْا عَنْ صَاحِبِنَا لَمَّا هَرَبَ مِنْهُمْ فَاَلْقُوْهُ فَحَفَرُوْا لَهٗ وَاَعْمَقُوْا لَهٗ فِي الْاَرْضِ مَا اسْتَطَاعُوْا فَاَصْبَحَ قَدْ لَفَظَتْهُ الْاَرْضُ فَعَلِمُوْا اَنَّهٗ لَيْسَ مِنَ النَّاسِ فَاَلْقَوْهُ.

۸۲۴: ابو معمر. عبدالوارث. عبدالعزيز. حضرت انسؓ نه روايت کوي' يو نصراني اسلام راوړلو' او هغۀ سورۀ بقره او سورۀ آل عمران اولوست' بيا د نبي صلي الله عليه وسلّم کاتب وحي مقرر کړے شو. دے نه پس هغه بيا نصراني شولو. او مشرکانو سره يوځائے شولو' هغه به وئيلے' محمد صرف دومره پوهيږي' څومره چه ما هغه ته ليکلے دي. بيا هغه خدائے تعالیٰ مړ کړلو' نو خلقو هغه دفن کۀ. سحر چه خلقو اوليدل' نو زمکے دَ هغۀ لاش بهر راغرځولے وو' خلقو اووے' دا دَ محمد (صلعم) او دَ هغۀ دَ ملګرو فعل دے (يعني دا کار هغوي کړے دے) دَ هغوي نه تښتيدلے وو' نو دَدۀ قبر ئے اوکنولو' نو هغوي دوباره حتي الامکان ډيرے ژوره کښې ښخ کړلو' په دويمه ورځ چه دَ هغۀ لاش زمکے بهر راوويشتلو' نو خلقو اووے' دا دَ محمد صلي الله عليه وسلّم او دَ اصحابو فعل دے' ځکه چه هغه راتښتيدلے وو' بيا هغوي چه څومره لاندے زمکه کښې ښخولے شو' د هغۀ لاش ئے دفن کۀ. ليکن په دريم سحر هم چه زمکے د هغۀ لاش بهر راوغرځولو' نو خلق پوهه شو' چه دا خبره د سړو دَ طرف نه' نۀ ده' نو بيا ئے دغسے په ډاګه پريښودلو.

۸۲۵: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ وَ اَخْبَرَنِيْ ابْنُ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَؓ اَنَّهٗ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا

۸۲۵: يحيي. ليث. يونس. ابن شهاب. ابن المسيب. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي' رسالت مـٰب صلے اللّٰه عليه وسلم ارشاد اوفرمائيلو' چه کسريٰ هلاک شي' نو دَ هغۀ نه پس به بل کسريٰ نۀ وي' او چه قيصر

هَلَكَ كِسْرٰى فَلَا كِسْرٰى بَعْدَهٗ وَ اِذَا هَلَكَ قَيْصَرُ فَلَا قَيْصَرَ بَعْدَهٗ وَالَّذِيْ نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهٖ لَتُنْفِقُنَّ كُنُوْزَهُمَا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ.

هلاک شي، نو ذ هغهٔ نه پس به څوک قيصر نهٔ وي. او حضورؐ اوفرمائيل، تاسو به عنقريب ذدې دواړو خزانې ذ اللّٰه تعالٰي په لار کښې صرف کړئې.

٨٢٦: حَدَّثَنَا قَبِيْصَةُ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ رَفَعَهٗ قَالَ اِذَا هَلَكَ كِسْرٰى فَلَا كِسْرٰى بَعْدَهٗ وَ اِذَا هَلَكَ قَيْصَرُ فَلَا قَيْصَرَ بَعْدَهٗ وَ ذَكَرَ وَ قَالَ لَتُنْفِقُنَّ كُنُوْزَهُمَا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ.

٨٢٦: قبيصه. سفيان. عبدالملک. حضرت جابر بن سحره نه مرفوعًا روايت کوي وې فرمائيل، چه کسرٰي هلاک شي، نو ذ هغهٔ نه پس به څوک کسرٰي نه وي، او کله چه قيصر هلاک شي، نو ذ هغهٔ نه پس به څوک قيصر نهٔ وي. حضورؐ دا هم اوفرمائيل (عنقريب) تاسو به ذ هغوي خزانې ذ اللّٰه تعالٰي په لار کښې صرف کوئې.

٨٢٧: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ اَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ حُسَيْنٍ حَدَّثَنَا نَافِعُ بْنُ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ قَدِمَ مُسَيْلَمَةُ الْكَذَّابُ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَعَلَ يَقُوْلُ اِنْ جَعَلَ لِيْ مُحَمَّدٌ الْاَمْرَ مِنْ بَعْدِهٖ تَبِعْتُهٗ وَ قَدِمَهَا فِيْ بَشَرٍ كَثِيْرٍ مِّنْ قَوْمِهٖ فَاَقْبَلَ اِلَيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ مَعَهٗ ثَابِتُ بْنُ قَيْسِ بْنِ شَمَّاسٍ وَ فِيْ يَدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِطْعَةُ جَرِيْدٍ وَقَفَ عَلٰى مُسَيْلِمَةَ فِيْ اَصْحَابِهٖ فَقَالَ لَوْ سَاَلْتَنِيْ هٰذِهِ الْقِطْعَةَ مَا اَعْطَيْتُكَهَا وَلَنْ تَعْدُوَ اَمْرَ اللّٰهِ فِيْكَ وَلَئِنْ اَدْبَرْتَ

٨٢٧: ابو اليمان. شعيب. عبداللّٰه بن ابي حسين. نافع بن جبير. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي. ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم عهد مبارک کښې کذاب راغې، عرض ئې اوکه، که محمد صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ ځان نه پس ماته خلافت راکوي، نو زهٔ ذ هغهٔ تابع کيږم، او هغه ذ خپل قوم ډير خلق ځان سره راوستې وو، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم هغه طرف ته ورغې، حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم سره ثابت بن قيس بن شماس هم وو، او ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم لاس مبارک کښې ذ لرګي يوه ټکړه وه، حضورؐ مسيلمه کذاب لره اصحابو سره ورغې ورته اودريدلو. او، وې فرمائيل، که تهٔ مانه په قدر ذ دې لرګي ذ ټکړې طلب کړې، نو زهٔ ئې تاله نهٔ درکوم، او ذ خدائې تعالٰي حکم چه ستا باره کښې شوې دې، تهٔ ذ هغې نه تجاوز نه شې کولې. او که تهٔ څو ورځې ژوندې پاتې شې، نو

لَمُعُقِرَنَّكَ اللّٰهُ وَ اِنِّيْ لَاَرَاكَ الَّذِيْ اُرِيْتُ فِيْكَ مَا رَاَيْتُ فَاَخْبَرَنِيْ اَبُوْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَمَا اَنَا نَائِمٌ رَاَيْتُ فِيْ يَدَيَّ سَوَارَيْنِ مِنْ ذَهَبٍ فَاَهَمَّنِيْ شَانُهُمَا فَاُوْحِيَ اِلَيَّ فِي الْمَنَامِ اَنْ اَنْفُخُهُمَا فَنَفَخْتُهُمَا فَطَارَا فَاَوَّلْتُهُمَا كَذَّابَيْنِ يَخْرُجَانِ بَعْدِيْ فَكَانَ اَحَدُهُمَا الْعَنَسِيُّ وَالْاٰخَرُ مُسَيْلَمَةُ الْكَذَّابُ صَاحِبُ الْيَمَامَةِ.

خدائے تعالٰي به تا هلاک کړي او يقيناً زۀ تا هغه سړے گنړم، چه د هغۀ په نسبت ما خوب ليدلے دے، د حضرت ابوهريرهؓ خبر دے، رسول الله صلي الله عليه وسلم به فرمائيل، زۀ اُودۀ ووم، نو ما خپل لاس کښې د سرو (زرو) دوه کنگڼ اوليدل. ما سره فکر شو، او خوب کښې وحي راغله، چه تۀ دے له پُوکے ورکه، ما هغې له پُوکے ورکۀ نو هغه والوتل، ما د هغې تعبير د دے دوو کذابانو واخست، چه څما نه پس به ظاهر شي، نو هغوي کښې يو عنسي او دويم د يمامه اوسيدونکے مسيلمه کذاب وو.

٨٢٨: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ اُسَامَةَ عَنْ بُرَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ جَدِّهٖ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى اُرَاهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ رَاَيْتُ فِي الْمَنَامِ اَنِّيْ اُهَاجِرُ مِنْ مَكَّةَ اِلٰى اَرْضٍ بِهَا نَخْلٌ فَذَهَبَ وَهْلِيْ اِلٰى اَنَّهَا الْيَمَامَةُ اَوْ هَجَرُ فَاِذَا هِيَ الْمَدِيْنَةُ يَثْرِبُ وَ رَاَيْتُ فِيْ رُؤْيَايَ هٰذِهٖ اَنِّيْ هَزَزْتُ سَيْفًا فَانْقَطَعَ صَدْرُهٗ فَاِذَا مَنْ اُصِيْبَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ يَوْمَ اُحُدٍ ثُمَّ هَزَزْتُهٗ اُخْرٰى فَعَادَ اَحْسَنَ مَا كَانَ فَاِذَا هُوَ مَا جَآءَ اللّٰهُ بِهٖ مِنَ الْفَتْحِ وَ اِجْتِمَاعِ الْمُؤْمِنِيْنَ وَ رَاَيْتُ فِيْهَا بَقَرًا وَّاللّٰهُ خَيْرٌ فَاِذَا هُمُ الْمُؤْمِنُوْنَ يَوْمَ اُحُدٍ وَ اِذَا الْخَيْرُ مَا

٨٢٨: محمد بن العلاء. حماد بن اسامه. بريد بن عبدالله. ابي برده. حضرت ابو موسيٰؓ نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، ما خوب ليدلے دے، چه زۀ د مکے نه په هجرت يو داسے ځائے ته روان يم، چه هلته د قجورو اُونے دي، نو څما خيال شو، چه هغه مقام يمامه دے، يا هجر، ليکن حقيقت کښې هغه (يثرب) مدينه وه. او ما خوب کښې اوليدل، چه ما يوه توره اوخوزوله، نو د هغې دهار (مخ) مات شولو، نو دا هغه مصيبت وو، چه دَ اُحد په ورځ مسلمانانو ته اورسيد. بيا هغه توره مِ دوباره اوخوزوله نو د ورمبي ځل نه زياته ښۀ شوله، او هغه دا وه چه خدائے تعالٰي فتح راکړه، او د مسلمانانو ئے جمعيت نصيب کۀ، او ما خوب کښې يوه غوا ليدلے وه، نو دا غوا د اُحد په ورځ مسلمانان وو، او خير دا دے چه خدائے تعالٰي د صدق

جَاءَ مِنَ الْخَيْرِ وَ ثَوَابِ الصِّدْقِ الَّذِىْ اٰتَانَا اللّٰهُ بَعْدَ يَوْمِ بَدْرٍ.

ثـواب ذَ بـدر نـه پـس پـه مونـږ مرحمت کړے دے.

۸۲۹: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا زَكَرِيَّاءُ عَنْ فِرَاسٍ عَنْ عَامِرٍ عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ اَقْبَلَتْ فَاطِمَةُ تَمْشِىْ كَاَنَّ مِشْيَتَهَا مَشْىُ النَّبِىِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ النَّبِىُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرْحَبًا بِابْنَتِىْ ثُمَّ اَجْلَسَهَا عَنْ يَمِيْنِهٖ اَوْ عَنْ شِمَالِهٖ ثُمَّ اَسَرَّ اِلَيْهَا حَدِيْثًا فَبَكَتْ فَقُلْتُ لَهَا لِمَ تَبْكِيْنَ ثُمَّ اَسَرَّ اِلَيْهَا حَدِيْثًا فَضَحِكَتْ فَقُلْتُ مَا رَاَيْتُ كَالْيَوْمِ فَرَحًا اَقْرَبَ مِنْ حُزْنٍ فَسَاَلْتُهَا عَمَّا قَالَ فَقَالَتْ مَا كُنْتُ لِاُفْشِىَ سِرَّ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَاَلْتُهَا فَقَالَتْ اَسَرَّ اِلَىَّ اَنَّ جِبْرِيْلَ كَانَ يُعَارِضُنِىْ الْقُرْاٰنَ كُلَّ سَنَةٍ مَرَّةً وَ اَنَّهٗ عَارَضَنِىْ الْعَامَ مَرَّتَيْنِ وَلَا اُرَاهُ اِلَّا حَضَرَ اَجَلِىْ وَ اَنَّكِ اَوَّلُ اَهْلِ بَيْتِىْ لِحَاقًا بِىْ فَبَكَيْتُ فَقَالَ اَمَا تَرْضَيْنَ اَنْ تَكُوْنِىْ سَيِّدَةَ نِسَاءِ اَهْلِ الْجَنَّةِ اَوْ نِسَاءِ الْمُؤْمِنِيْنَ فَضَحِكْتُ لِذٰلِكَ.

۸۲۹: ابو نعیم. زکریا. فراس. عامر. مسروق. بي بي عائشے نه روایت کوي: چه (یوه ورځ) بي بي فاطمه راغله، او ذَ هغے چال ذَ رسول الله صلي الله علیه وسلم ذَ چال پشان وو، رسول الله صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل: لورے، په خیره راغلے. دے نه پس حضور هغه خپل ښي یا گس طرف ته کینوله: بیائے رو شان ځه خبره ورسره اوکړله، نو هغه په ژړا شوه. ما ذَ هغے نه تپوس اوکه، ته ولے ژاړے، بیا یوه بله خبره حضور هغے ته رو شان اوکړه، نو هغه په خندا شوه، ما اووے. ذَ نن په شان ما خوشحالي، خفگان سره دومره نزدے نه دي لیدلي. ما تپوس اوکه، چه حضور ځه فرمائیلے وو، فاطمے اووے، زه ذَ رسول الله صلي الله علیه وسلم راز ښکاره کول نه غواړم، چه رسول الله صلي الله علیه وسلم وفات شو، ما ذَ فاطمے نه تپوس اوکه، نو هغے اووے، حضور په وړمبني ځل ماته فرمائیلے وو، چه جبرائیل علیه السلام به هر کال ماسره یو ځل ذَ قرآن دوره کوله او سږکال هغه دوه ځله ما سره دوره اوکړله. دے سره ځما خیال دے، چه ځما ذَ مرگ وخت نزدے راغے، او ته به ځما ذَ ټول کور والونه مخکښې ماسره یوځائے کیږے، نو دے آوریدو سره زه په ژړا شوم. بیا په دویم ځل حضور اوفرمائیل: آیا ته په دے خبره راضي نه ئے، چه ذَ ټولو جنتي ښځو یا ذَ ټولو مؤمنانو ذَ ښځو سرداره ئے، په دے سبب ماته خندا راغله.

۸۳۰: حَدَّثَنِىْ يَحْيَى بْنُ

۸۳۰: یحیٰي بن قزعه. ابراهیم بن سعد. سعد.

قَزَعَةَ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ دَعَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاطِمَةَ ابْنَتَهُ فِيْ شَكْوَاهُ الَّذِيْ قُبِضَ فِيْهِ فَسَارَّهَا بِشَيْءٍ فَبَكَتْ ثُمَّ دَعَاهَا فَسَارَّهَا فَضَحِكَتْ قَالَتْ فَسَأَلْتُهَا عَنْ ذٰلِكَ فَقَالَتْ سَارَّنِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرَنِيْ اَنَّهُ يُقْبَضُ فِيْ وَجْعِهِ الَّذِيْ تُوُفِّيَ فِيْهِ فَبَكَيْتُ ثُمَّ سَارَّنِيْ فَاَخْبَرَنِيْ اَوَّلُ اَهْلِ بَيْتِهٖ اَتْبَعُهُ فَضَحِكْتُ.

عروه. بي بي عائشې نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ذ خپل وفات مرض كښې خپله لور، فاطمهٌ راوغښتله، او هغې ته ئې رو شان څۀ اوفرمائيل. نو هغه په ژړا شوه، بيائې هغې ته ئې رو شان يوه بله خبره اوكړه، نو هغه په خندا شوه، بي بي عائشهٌ فرمائي. ما د هغې نه ذ دې وجه اوپُښتله، نو هغې اووې. رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم ماته رو شان دا خبر راكړې وو. چه حضورٌ به دې مرض كښې وفات شي، نو زۀ په ژړا شوم د هغې نه پس ئې ماته رو شان اوفرمائيل، چه اهل بيت كښې به ذ ټولونه مخكښې زۀ حضورٌ سره يوځائې كيږم. نو زۀ په خندا شوم.

۸۳۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَرْعَرَةَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ بِشْرٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ كَانَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ يُدْنِيْ ابْنَ عَبَّاسٍ فَقَالَ لَهُ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَوْفٍ اَنَّ لَنَا اَبْنَآءً مِثْلَهُ فَقَالَ اِنَّهُ مِنْ حَيْثُ تَعْلَمُ فَسَأَلَ عُمَرُ ابْنَ عَبَّاسٍ عَنْ هٰذِهِ الْاٰيَةِ اِذَا جَآءَ نَصْرُ اللّٰهِ وَالْفَتْحُ فَقَالَ اَجَلُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَعْلَمَهُ اِيَّاهُ قَالَ مَا اَعْلَمُ مِنْهَا اِلَّا مَا تَعْلَمُ.

۸۳۱: محمد بن عرعره. شعبه. ابي بشر. سعيد بن جبير. حضرت ابن عباسٌ نه روايت كوي، هغۀ اووې. حضرت عمر بن خطابٌ به زۀ ځان سره كينولم، حضرت عبدالرحمٰن بن عوف هغۀ ته اووې، څمونږ هلكان ذدۀ برابر دي، او تاسو دۀ له په مونږ ترجيح وركوئې، نو حضرت عمرٌ اوفرمائيل، دې ذ علم او فضل خاوند دې. بيا ابن عباسٌ نه حضرت عمرٌ ذ يو آيت مطلب اوپښتۀ: اذا جاء نصر اللّٰه والفتح: نو هغۀ اووې، رسول اللّٰه صلے اللّٰه عليه وسلّم ذ هغويٌ ذ وفات نه دې كښې خبردار كړې شوې دې. حضرت عمرٌ اوفرمائيل. څنګه چه نۀ پوهيږې، زۀ هم ذدې مطلب دا كنړم.

۸۳۲: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنِ سُلَيْمَانَ بْنِ حَنْظَلَةَ بْنِ الْغَسِيْلِ حَدَّثَنَا عِكْرَمَةُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ خَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ

۸۳۲: ابو نعيم. عبدالرحمٰن بن سليمان. عكرمه. حضرت ابن عباسٌ نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم هغې مرض كښې كوم كښې چه هغه وفات شو، يو څادر په

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ مَرَضِهِ الَّذِيْ مَاتَ فِيْهِ بِمَلْحَفَةٍ قَدْ عَصَبَ بِعَصَابَةٍ دَسْمَاءَ حَتّٰى جَلَسَ عَلَى الْمِنْبَرِ فَحَمِدَ اللّٰهَ وَ اَثْنٰى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ اَمَّا بَعْدُ فَاِنَّ النَّاسَ يَكْثُرُوْنَ وَ يُقِلُّ الْاَنْصَارُ حَتّٰى يَكُوْنُوْا فِي النَّاسِ بِمَنْزِلَةِ الْمِلْحِ فِي الطَّعَامِ فَمَنْ وَّلِيَ مِنْكُمْ شَيْئًا يَضُرُّ فِيْهِ قَوْمًا وَ يَنْفَعُ فِيْهِ اٰخَرِيْنَ فَلْيَقْبَلْ مِنْ مُحْسِنِهِمْ وَ يَتَجَاوَزْ عَنْ مُسِيْئِهِمْ فَكَانَ ذٰلِكَ آخِرَ مَجْلِسٍ جَلَسَ بِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

سر بهرته راووتلو. او حضورؐ خپل سر په یوه توره پټئ تړلے وو، حضورؐ منبر ته راغلو. د خدائے تعالیٰ حمد وثنا نه پس ئے اوفرمائیل خلق به زیاتیږي، لیکن انصار به کمیږي تردے چه نورو خلقو کښې به هغوي خوراک کښې د مالګے برابر پاتے شي، نو کوم سړے چه تاسو کښې داسے صاحب اختیار وي چه خلقو ته څه نفع رسولے شي یا ضرر، هغه له پکار دي چه انصارو کښې د نیکو خلقو نیکي قبوله کړي او د خطا کارو خطا معاف کړي. دا آخري مجلس وو چه هغے کښې رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم ناست وو.

۸۳۳: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ اٰدَمَ حَدَّثَنَا حُسَيْنُ الْجُعْفِيُّ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى عَنِ الْحَسَنِ عَنْ اَبِيْ بَكْرَةَ اَخْرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ الْحَسَنَ فَصَعِدَ بِهٖ عَلَى الْمِنْبَرِ فَقَالَ ابْنِيْ هٰذَا سَيِّدٌ وَ لَعَلَّ اللّٰهَ اَنْ يُّصْلِحَ بِهٖ بَيْنَ فِئَتَيْنِ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ.

۸۳۳: عبداللّٰه بن محمد. یحیٰي بن آدم. حسین جعفي. ابو موسٰي. حضرت ابوبکرؓ نه روایت کوي، رسول اللّٰه صلے اللّٰه علیه وسلّم یوه ورځ حضرت حسنؓ بهر بوتلو، هغه ئے په منبر اوخیژولو، او ارشاد ئے اوفرمائیلو، خما دا خوئے سیّد دے او اُمید دے چه خدائے تعالیٰ به د دهٔ په ذریعه د مسلمانانو دوو ډلو کښې صلح راولي.

۸۳۴: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ هِلَالٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَعٰى جَعْفَرًا وَ زَيْدًا قَبْلَ اَنْ يَّجِيْءَ خَبَرُهُمْ وَ عَيْنَاهُ تَذْرِفَانِ.

۸۳۴: سلیمان بن حرب. حماد. ایوب. حمید بن هلال. حضرت انس بن مالکؓ نه روایت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم د جعفر او زید د وژلو خبر بیان کهٔ، د دے نه مخکښې چه د هغوي د وژلو خبر راشي، او د حضورؐ دواړو سترګو نه اوښکے جاري وے.

٨٣٥: حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ عَبَّاسٍ حَدَّثَنَا ابْنُ مَهْدِيٍّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ عَنْ جَابِرٍؓ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلْ لَكُمْ مِنْ أَنْمَاطٍ قُلْتُ وَأَنَّى يَكُونُ لَنَا الْأَنْمَاطُ قَالَ أَمَا إِنَّهُ سَيَكُونُ لَكُمُ الْأَنْمَاطُ فَأَنَا أَقُولُ لَهَا يَعْنِي امْرَأَتَهُ أَخِّرِي عَنِّي أَنْمَاطَكِ فَتَقُولُ أَلَمْ يَقُلِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّهَا سَتَكُونُ لَكُمُ الْأَنْمَاطُ فَأَدَعُهَا.

٨٣٥: عمرو. ابن مهدي. سفيان. محمد. حضرت جابر نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم (يوه ورځ) اوفرمائيل آيا تاسو خلقو سره فرش (ورين) شته. مونږ عرض اوكه، مونږ سره فرش چرته دے. حضورؐ اوفرمائيل ياد لرے، عنقريب تاسو سره به فرشونه وي حضرت جابرؓ وائي، اوس چه زۀ خپلے ښځے ته وايم چه خپل فرش خما نه لرے كړه، نو هغه وائي، آيا رسول الله صلي الله عليه وسلّم فرمائيلے نۀ وو، چه عنقريب تاسو سره به فرشونه وي، نو ځكه دا ما پريښے دے.

٨٣٦: حَدَّثَنِي أَحْمَدُ بْنُ إِسْحٰقَ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ مُوسَى حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ عَنْ أَبِي إِسْحٰقَ عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُونٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍؓ قَالَ انْطَلَقَ سَعْدُ بْنُ مُعَاذٍ مُعْتَمِرًا قَالَ فَنَزَلَ عَلَى أُمَيَّةَ بْنِ خَلَفٍ أَبِي صَفْوَانَ وَكَانَ أُمَيَّةُ إِذَا انْطَلَقَ إِلَى الشَّامِ فَمَرَّ بِالْمَدِينَةِ نَزَلَ عَلَى سَعْدٍ فَقَالَ أُمَيَّةُ لِسَعْدٍ انْتَظِرْ حَتَّى إِذَا انْتَصَفَ النَّهَارُ وَغَفَلَ النَّاسُ انْطَلَقْتَ فَطُفْتَ فَبَيْنَا سَعْدٌ يَطُوفُ إِذَا أَبُو جَهْلٍ فَقَالَ مَنْ هٰذَا الَّذِي يَطُوفُ بِالْكَعْبَةِ فَقَالَ سَعْدٌ أَنَا سَعْدٌ

٨٣٦: احمد. عبيدالله. اسرائيل. ابو اسحاق. عمرو بن ميمون. حضرت عبدالله بن مسعودؓ نه روايت كوي، هغه اووے، سعد بن معاذؓ دَ عمرے په نيت روان شو، اُميه بن خلف ابي صفوان سره ايسار شو، اُميه چه به شام ته تلو، او مدينے ته به اورسيدو، نو سعد سره به ايساريدلو، اميه سعد ته اووے، لږ ايسار شه، چه پخه غرمه شي، او خلق په كار روزگار كښ مشغول شي غافل شي، نو روان به شو، او طواف به اوكړو، كوم وخت چه سعد طواف كولو، نو ناساپه ابوجهل راغے اووئيلے، دَ كعبے طواف څوك كوي، سعد اووے زۀ سعد يم، ابو جهل اووے، تۀ دَ كعبے طواف دے اطمينان سره كوے، حالانكه تا محمد صلي الله عليه وسلّم او دَ هغه ملګرو له (خپل ښار كښ) رهائش دَ پاره ځائے وركړے دے، سعد اووے او، نو هغوي دواړو خپلو كښ بحث شروع كۀ، اميه، سعد ته اووے، ابوالحكم

فَقَالَ اَبُوْجَهْلٍ تَطُوْفُ بِالْكَعْبَةِ اٰمِنًا وَّقَدْ اٰوَيْتُمْ مُحَمَّدًا وَّ اَصْحَابَهٗ فَقَالَ نَعَمْ فَتَلَا حَيَا بَيْنَهُمَا فَقَالَ اُمَيَّةُ لِسَعْدٍ لَا تَرْفَعْ صَوْتَكَ عَلٰى اَبِي الْحَكَمِ فَاِنَّهٗ سَيِّدُ اَهْلِ الْوَادِيْ ثُمَّ قَالَ سَعْدٌ وَاللّٰهِ لَئِنْ مَنَعْتَنِيْ اَنْ اَطُوْفَ بِالْبَيْتِ لَاَقْطَعَنَّ مَتْجَرَكَ بِالشَّامِ قَالَ فَجَعَلَ اُمَيَّةُ يَقُوْلُ لِسَعْدٍ لَا تَرْفَعْ صَوْتَكَ وَ جَعَلَ يُمْسِكُهٗ فَغَضِبَ سَعْدٌ فَقَالَ دَعْنَا عَنْكَ فَاِنِّيْ سَمِعْتُ مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَزْعَمُ اَنَّهٗ قَاتِلُكَ قَالَ اِيَّايَ قَالَ نَعَمْ قَالَ وَاللّٰهِ مَا يَكْذِبُ مُحَمَّدٌ اِذَا حَدَّثَ فَرَجَعَ اِلٰى اِمْرَأَتِهٖ فَقَالَ اَمَا تَعْلَمِيْنَ مَا قَالَ لِيْ اَخِيَ الْيَثْرِبِيُّ قَالَتْ وَمَا قَالَ قَالَ زَعَمَ اَنَّهٗ سَمِعَ مُحَمَّدًا يَزْعَمُ اَنَّهٗ قَاتِلِيْ قَالَتْ فَوَاللّٰهِ مَا يَكْذِبُ مُحَمَّدٌ قَالَ فَلَمَّا خَرَجُوْا اِلٰى بَدْرٍ وَّ جَآءَ الصَّرِيْخُ قَالَتْ لَهٗ اِمْرَأَتُهٗ اَمَا ذَكَرْتَ مَا قَالَ لَكَ اَخُوْكَ الْيَثْرِبِيُّ قَالَ فَاَرَادَ اَنْ لَّا يَخْرُجَ فَقَالَ لَهٗ اَبُوْ جَهْلٍ اِنَّكَ مِنْ اَشْرَافِ الْوَادِيْ فَسِرْ يَوْمًا اَوْ يَوْمَيْنِ فَسَارَ مَعَهُمْ فَقَتَلَهُ اللّٰهُ.

(ابوجهل) باندے خپل آواز مۀ اوچتوه، خکه چه دَ وادي (يعني دَ مکے) دَ ټولو خلقو سردار دے، سعد اووے، که تۀ ما دَ طواف کولو نه منع کوے، نو په خدائے مِ دے قسم وي، ستا دَ شام تجارت به بند کړم، حضرت عبدالله وائي، سعد ته اُميه دغه ونيلے، او هغه ئے منع کولو. سعد له غصه راغله او ونيلے، تۀ خما دَ مخے نه لرے شه خکه چه ما دَ محمد صلي الله عليه وسلّم نه آوريدلے دي، چه هغه به تا قتل کړي. اُميه اووے، ما به قتل کړي، سعد ورته اووے، او، تا به قتل کړي. اُميه اووے، په الله تعالىٰ مِ دے قسم وي، محمد صلي الله عليه وسلّم چه څۀ خبره کوي، نو دروغ نۀ وائي. اُميه خپلے ښځے له لاړ، او هغے ته ئے اووے، تاته معلومه ده، چه خما يثربي ورور ماته څۀ اووے، هغے تپوس اوکۀ، څه ئے درته اووے، اُميه ورته اووے، هغه وائي ما دَ محمد صلي الله غليه وسلّم نه دا آوريدلے دي، چه هغه به ما قتل کړي، دَ هغۀ ښځے اووے، په خدائے چه، هغه دروغ نۀ وائي، حضرت عبدالله وائي کوم وخت چه، کفار دَ بدر ميدان ته روان شو، او دَ هغے اعلان اوشو، نو اميه ته دَ هغۀ ښځے اووے، آيا تاته ياد نۀ دي، چه ستا يثربي ورور تاته څۀ ونيلے وو، ابن مسعودؓ فرمائي اُميه دَ ښۀ تلو پخه اراده کړے وه. ليکن ابوجهل هغۀ ته اووے، تۀ دَ مکے دَ سردارانو او شرفاؤ نه ئے. يو دوه ورځے ځمونږ ملګرتيا کښې لاړ شه، نو هغۀ سره لاړ، نو خدائے تعالىٰ دَ مرګ په کودر کوز کړلو،

۸۳۷: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ ابْنُ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ

۸۳۷: عبدالرحمٰن بن شيبه. عبدالرحمٰن بن المغيره. مغيره. موسٰي بن عقبه. سالم بن

الْمُغِيرَةِ عَنْ اَبِيهِ عَنْ مُوْسٰى بْنِ عُقْبَةَ عَنْ سَالِمِ ابْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ رَاَيْتُ النَّاسَ مُجْتَمِعِيْنَ فِيْ صَعِيْدٍ فَقَامَ اَبُوْ بَكْرٍ فَنَزَعَ ذَنُوْبًا اَوْ ذَنُوْبَيْنِ وَ فِيْ بَعْضِ نَزْعِهٖ ضُعْفٌ وَاللّٰهُ يَغْفِرُهٗ ثُمَّ اَخَذَهَا عُمَرُ فَاسْتَحَالَتْ بِيَدِهٖ غَرْبًا فَلَمْ اَرَ عَبْقَرِيًّا فِي النَّاسِ يَفْرِيْ فَرِيَّهٗ حَتّٰى ضَرَبَ النَّاسُ بِعَطَنٍ وَ قَالَ هَمَّامٌ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَزَعَ اَبُوْبَكْرٍ ذَنُوْبَيْنِ.

عبدالله. حضرت عبدالله بن عمرؓ نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل: ما خوب كښې خلق په يوه ډهيري اوليدل، ابوبكرؓ پاسيد، او يو يا دوه بالتې اُوبه ئې راوښكلې. دَ هغه بالتې راوښكلو كښې سستي او كمزوري بيامندې شوه، خدائې تعالٰي دې (دَ هغه سستي او كمزوري) معاف كړي، بيا هغه بالتې (بورقه) حضرت عمرؓ واخسته، نو دَ هغه لاس كښې هغه بورقه، چرس جوړه شوه. ما خلقو كښې دومره مضبوط او طاقتور سړې نۀ دې ليدلې. چه دَ عمرؓ په شان زور سره اُوبه راوكاږي، هغۀ دومره اُوبه راوښكلې، چه ټول خلق پرې ماړۀ شو.

**ف**: چرس: دَ څرمنې لوئې ډول (بورقه) چه دَ ارټ په كوهي پرې فصل اُوبه كوي، اوپه غويانو، ئې راوكاږي. نن صبا دَ بجلۍ په مشينونو داسې كارونه كولې شي.

۸۳۸: حَدَّثَنِيْ عَبَّاسُ بْنُ الْوَلِيْدِ النَّرْسِيُّ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ قَالَ سَمِعْتُ اَبِيْ حَدَّثَنَا اَبُوْ عُثْمَانَ قَالَ اُنْبِئْتُ اَنَّ جِبْرِيْلَ عَلَيْهِ السَّلَامُ اَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ عِنْدَهٗ اُمُّ سَلَمَةَ فَجَعَلَ يُحَدِّثُ ثُمَّ قَامَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِاُمِّ سَلَمَةَ مَنْ هٰذَا اَوْ كَمَا قَالَ قَالَتْ هٰذَا دِحْيَةُ قَالَتْ اُمُّ سَلَمَةَ اَيْمُ اللّٰهِ مَا حَسِبْتُهٗ اِلَّا اِيَّاهُ حَتّٰى سَمِعْتُ خُطْبَةَ نَبِيِّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُخْبِرُ عَنْ جِبْرِيْلَ اَوْ

۸۳۸: عباس بن وليد. معتمر. ابو معتمر. حضرت ابو عثمان نه روايت كوي، هغۀ اووې، زۀ خبر شوم، چه جبرائيل عليه السلام دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم په خدمت كښې حاضر شو، چه اُم سلمهؓ دَ حضورؐ ټبر حضورؐ سره ناسته وه، نو جبرائيلؑ حضورؐ سره خبرې كولې، بيا پاسيد، لاړ. رسول الله صلي الله عليه وسلّم اُم سلمهؓ نه تپوس اوكۀ، دا څوك وو، هغې اووې، دحيهؓ (صحابي) وو. بي بي اُم سلمهؓ وائي، په الله م دې قسم وي، ما هغه بس دِحيه اوګنړلو. بيا كوم وخت چه ما دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه دَ خطبې وركولو په وخت د جبرائيلؑ خبر واوريدلو، نو بيا پوهه شوم، چه دحيه خو (حقيقت كښې) جبرائيلؑ وو. راوي اووې، ما د

كَمَا قَالَ فَقُلْتُ لِاَبِيْ عُثْمَانَ مِمَّنْ سَمِعْتَ هٰذَا قَالَ مِنْ اُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ.

ابو عثمان نه تپوس او كړ چه تا دا حديث د چا نه آوريدلے دے نو هغه اوويل ما د اسامه بن زيد نه آوريدلے دے.

**باب ۳۷۹: قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى يَعْرِفُوْنَهٗ كَمَا يَعْرِفُوْنَ اَبْنَآءَ هُمْ وَ اِنَّ فَرِيْقًا مِنْهُمْ لَيَكْتُمُوْنَ الْحَقَّ وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ.**

**باب ۳۷۹:** د الله تعالي قول چه دا اهل كتاب محمد صلي الله عليه وسلم داسے پيژني څنګه چه خپل خامن پيژني ليكن قصدا حق پټوي.

**۸۳۹:** حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكُ بْنُ اَنَسٍ عَنْ نَافِعٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَؓ اَنَّ الْيَهُوْدَ جَآءُوْا اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرُوْا لَهٗ اَنَّ رَجُلًا مِنْهُمْ وَامْرَاَةً زَنَيَا فَقَالَ لَهُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا تَجِدُوْنَ فِيْ شَاْنِ الرَّجْمِ فَقَالُوْا نَفْضَحُهُمْ وَ يُجْلَدُوْنَ فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَلَامٍ كَذَبْتُمْ اِنَّ فِيْهَا الرَّجْمَ فَاَتَوْا بِالتَّوْرٰةِ فَنَشَرُوْهَا فَوَضَعَ اَحَدُهُمْ يَدَهٗ عَلٰى اٰيَةِ الرَّجْمِ فَقَرَاَ مَا قَبْلَهَا وَمَا بَعْدَهَا فَقَالَ لَهٗ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَلَامٍ ارْفَعْ يَدَكَ فَرَفَعَ يَدَهٗ فَاِذَا فِيْهَا اٰيَةُ الرَّجْمِ فَقَالُوْا صَدَقَ مُحَمَّدٌ فِيْهَا اٰيَةُ الرَّجْمِ فَاَمَرَ بِهِمَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرُجِمَا قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ فَرَاَيْتُ الرَّجُلَ يَحْنَاءُ عَلَى الْمَرْاَةِ يَقِيْهَا الْحِجَارَةَ.

**۸۳۹:** عبدالله. مالک. نافع. حضرت عبدالله بن عمرؓ نه روايت دے، ذ يهودو يو جماعت ذ رسول الله صلي الله عليه وسلم خدمت كښ يو ورځ عرض اوكړ، چه ذ هغوي قوم كښ يو سړے او يوے ښځے زنا كړے وه، رسول الله صلي الله عليه وسلم هغوي ته اوفرمائيل تورات كښ ذ رجم (سنګساري) بابت تاسو څه حكم بيامومے، هغوي اوويل مونږ زناكار ذليل او رسوا كوو، او هغه په دُرَو وهو. عبدالله بن سلام اوويل، تاسو دروغ وائے تورات كښ د رجم حكم دے. تورات راوړئے نو هغوي تورات پرانست، هغوي كښ يو سړي ذ تورات د رجم په آيت لاس كيښود او هغه ئے پټ كړ، او مخكښ ورستو مضمون ئے لوستلو، عبدالله بن سلام ورته اوويل لږ خپل لاس لرے كړه، نو هغه خپل لاس لرے كړلو نو هلته ذ رجم آيت موجود وو، رسول الله صلي الله عليه وسلم په هغے دواړو زناكارو ذ رجم حكم او كړلو او هغوي دواړه سنګسار كړے شو. عبدالله بن عمرؓ وائي، ما هغه سړے اوليد، هغه په هغے ښځے وربريوتے وو او هغه ئے ذ كانړو نه بچ كول غوښتل.

باب ۳۸۰: سُوَالِ الْمُشْرِكِيْنَ اَنْ يُّرِيَهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اٰيَةً فَاَرَاهُمُ انْشِقَاقَ الْقَمَرِ.

باب ۳۸۰: دَ مشركانو خواهش چه رسول الله صلي الله عليه وسلم هغوي ته څه معجزه اوښائي' په دے حضورؐ هغوي ته دَ شق القمر (دَ سپوږمئ دوه ټکړے کيدو) معجزه اوښودله.

۸۴۰: حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ الْفَضْلِ اَخْبَرَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنِ ابْنِ اَبِيْ نَجِيْحٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ اَبِيْ مَعْمَرٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍؓ قَالَ انْشَقَّ الْقَمَرُ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شِقَّتَيْنِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اشْهَدُوْا.

۸۴۰: صدقه. ابن عيينه. ابن ابي نجيح. مجاهد. ابو معمر. حضرت عبدالله بن مسعودؓ نه روايت كوي' هغهٔ اووے' دَ رسول الله صلي الله عليه وسلم په زمانه كښ سپوږمئ اُوچوده' يعني دَ مينځ نه دَ هغے دوه ټكړے شوے' نو حضور صلي الله عليه وسلم (كافرو) ته اوفرمائيل' چه گواه اوسئے.

ف: دَ شق القمر باره كښ يو شاعر څهٔ ښهٔ وئيلے دي.

معجزه شق القمر کا ہے مدینہ سے عیاں
مہ نے شق کر ہولیا ہے دین کو آغوش میں

۸۴۱: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا يُوْنُسُ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ وَ قَالَ لِيْ خَلِيْفَةُ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّهُ حَدَّثَهُمْ اَنَّ اَهْلَ مَكَّةَ سَاَلُوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يُّرِيَهُمْ اٰيَةً فَاَرَاهُمُ انْشِقَاقَ الْقَمَرِ.

۸۴۱: عبدالله بن محمد. يونس. شيبان. قتاده. حضرت انس بن مالكؓ نه روايت كوي' دَ مكے كافرو حضور صلي الله عليه وسلم ته اووے' (كه ته نبي ئے' نو) څهٔ معجزه اوښايه' نو حضور صلي الله عليه وسلم هغوي ته سپوږمئ دوه ټكړے اوښودله.

۸۴۲: حَدَّثَنِيْ خَلَفُ بْنُ خَالِدٍ الْقُرَشِيُّ حَدَّثَنَا بَكْرُ بْنُ مُضَرَ عَنْ جَعْفَرِ بْنِ رَبِيْعَةَ عَنْ عِرَاكِ ابْنِ

۸۴۲: خلف بن خالد القرشي. بكر بن مضر. جعفر بن ربيعه. عراک بن مالک بن عبيدالله بن عبدالله بن مسعود. حضرت

مَالِكٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ الْقَمَرَ انْشَقَّ فِيْ زَمَانِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

ابن عباسؓ نه روايت كوي، ذَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم په زمانه كښې سپوږمۍ دوه ټكړے شوے وه.

## باب ۱ ۳۸:

## باب ۱ ۳۸: (دا باب بے سرخي دے)

۸۴۳: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا مُعَاذٌ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ عَنْ قَتَادَةَ حَدَّثَنَا عَنْ اَنَسٍ اَنَّ رَجُلَيْنِ مِنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ لَيْلَةٍ مُظْلِمَةٍ وَ مَعَهُمَا مِثْلُ الْمِصْبَاحَيْنِ يُضِيْئَانِ بَيْنَ اَيْدِيْهِمَا فَلَمَّا افْتَرَقَا صَارَ مَعَ كُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا وَاحِدٌ حَتّٰى اَتٰى اَهْلَهٗ.

۸۴۳: محمد بن مثنيٰ. ابو معاذ. قتاده. حضرت انسؓ نه روايت كوي، ذَ رسالت.مآب صلي الله عليه وسلّم په اصحابو كښې دوه سړي تيارهٔ شپه كښې ذَ نبي صلي الله عليه وسلّم نه روان شو، هغوي سره دوه خيزونه ذَ دوو ډيو په مثل وو، چه ذَ هغوي مخے ته ئے رنړا كوله كوم وخت چه هغوي جُدا شو، نو هغه ډيوه (رنړا) ذَ دواړو نه هر يو سره شوه، تردے چه هر يو سړے خپل كورته (په هغه رنړا كښې) اُورسيد.

۸۴۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِي الْاَسْوَدِ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا قَيْسٌ سَمِعْتُ الْمُغِيْرَةَ بْنَ شُعْبَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَزَالُ اُنَاسٌ مِّنْ اُمَّتِيْ ظَاهِرِيْنَ حَتّٰى يَأْتِيَهُمْ اَمْرُ اللّٰهِ وَهُمْ ظَاهِرُوْنَ.

۸۴۴: عبدالله بن ابي الاسود. يحيٰي. اسمٰعيل. قيس نه روايت كوي، ما ذَ حضرت مغيره بن شعبه نه روايت آوريدلے دے، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، ځما ذَ اُمت ځنے خلق به هميشه غالب وي، تردے چه قيامت به راشي، او هغه خلق به غالب وي.

۸۴۵: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا الْوَلِيْدُ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ جَابِرٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُمَيْرُ ابْنُ هَانِيءٍ اَنَّهٗ سَمِعَ مُعَاوِيَةَ يَقُوْلُ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَا يَزَالُ مِنْ اُمَّتِيْ اُمَّةٌ قَائِمَةٌ بِاَمْرِ اللّٰهِ لَا يَضُرُّهُمْ مَنْ خَذَلَهُمْ وَلَا مَنْ خَالَفَهُمْ

۸۴۵: حميدي. وليد. ابن جابر. عمير بن هاني. حضرت معاويه نه روايت كوي، هغه وائي، ما ذَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه آوريدلے دي، ځما ذَ اُمت يوه ډله به هميشه ذَ الله تعاليٰ په حكم قائمه وي، څوک چه هغوي ذليل كوي، يا ذَ هغوي مخالفت كوي، نو هغه به هغوي ته هيڅ ضرر نشي رسولے، او قيامته پورے به هغوي دغے حالت (يعني احكام الٰهي) باندے

حَتّٰى يَاْتِيَهُمْ اَمْرُ اللّٰهِ وَهُمْ عَلٰى ذٰلِكَ قَالَ عُمَيْرٌ فَقَالَ مَالِكُ ابْنُ يُخَامِرَ قَالَ مُعَاذٌ وَهُمْ بِالشَّامِ فَقَالَ مُعَاوِيَةُ هٰذَا مَالِكٌ يَزْعَمُ اَنَّهُ سَمِعَ مُعَاذًا يَقُوْلُ وَهُمْ بِالشَّامِ.

ثابت قدم وي. عمير دَ مالک بن يخامر په وساطت بيان کوي، حضرت معاذٌ اوفرمائيل: دا خلق به ملک شام کښې وي، نو حضرت معاويهٌ اوفرمائيل، مالک دَ دې خبرې دعوي کوي، هغه دَ معاذ نه واوريدل، چه هغه خلق به شام کښې وي.

۸۴۶: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا شَبِيْبُ بْنُ غَرْقَدَةَ قَالَ سَمِعْتُ الْحَيَّ يُحَدِّثُوْنَ عَنْ عُرْوَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَعْطَاهُ دِيْنَارًا يَشْتَرِيْ لَهُ بِهٖ شَاةً فَاشْتَرٰى لَهُ بِهٖ شَاتَيْنِ فَبَاعَ اِحْدٰهُمَا بِدِيْنَارٍ وَّ جَآءَهُ بِدِيْنَارٍ وَّ شَاةٍ فَدَعَا لَهُ بِالْبَرَكَةِ فِيْ بَيْعِهٖ وَ كَانَ لَوِ اشْتَرَى التُّرَابَ لَرَبِحَ فِيْهِ قَالَ سُفْيَانُ كَانَ الْحَسَنُ ابْنُ عُمَارَةَ جَآءَنَا بِهٰذَا الْحَدِيْثِ عَنْهُ قَالَ سَمِعَهُ شَبِيْبٌ مِنْ عُرْوَةَ فَاَتَيْتُهُ فَقَالَ شَبِيْبٌ اِنِّيْ لَمْ اَسْمَعْهُ مِنْ عُرْوَةَ قَالَ سَمِعْتُ الْحَيَّ يُخْبِرُوْنَهُ عَنْهُ وَلٰكِنْ سَمِعْتُهُ يَقُوْلُ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ الْخَيْرُ مَعْقُوْدٌ بِنَوَاصِي الْخَيْلِ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ قَالَ وَقَدْ رَاَيْتُ فِيْ دَارِهٖ سَبْعِيْنَ فَرَسًا قَالَ سُفْيَانُ يَشْتَرِيْ لَهُ شَاةً كَاَنَّهَا اُضْحِيَّةٌ.

۸۴۶: علي بن عبدالله. سفيان. شبيب بن غرقده. حي. حضرت عروه نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم هغهٔ له يوه اشرفي ورکړه چه يوه چيلے دَ حضورٌ دَ پاره په بيع واخلي، نو هغهٔ په يوه اشرفي حضورٌ دَ پاره دوه چيلئے واخستے. يوه چيلے ئے په يوه اشرفي خرڅه کړه، او يوه اشرفي او يوه چيلے ئے حضورٌ ته پيش کړل، نو حضورٌ هغهٔ ته دَ هغهٔ په جمع کښې دَ برکت دُعا اوکړله، دَ هغې اثر دا اوشو، که هغهٔ به خاوره هم اخستله، نو هغې کښې به هغهٔ ته فائده وه. يو بل روايت کښې حضرت عروه نه راځي، ما رسول الله صلي الله عليه وسلم نه آوريدلے دي دَ آس په تندي (پيشاني) کښې دَ قيامته پورې خير و برکت ايښے شوے دے. دَ راوي بيان دے، ما دَ عروه په کور کښې اويا آسونه اوليدل. سفيان فرمائي. دے حديث کښې چه دَ چيلئے دَ اخستو ذکر دے، نو شايد چه هغه چيلے دَ قرباني دَ پاره وه.

۸۴۷: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنِيْ

۸۴۷: مسدد. يحيي. عبيدالله. نافع. حضرت ابن عمرٌ نه روايت کوي، حضور صلي

نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْخَيْلُ فِيْ نَوَاصِيْهَا الْخَيْرُ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ.

اللّٰه علیه وسلّم فرمائیلي دي: د اس په تندي کښې د قیامته پورې خیر او برکت ایښودې شوې دې.

۸۴۸: حَدَّثَنَا قَيْسُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ الْحَارِثِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِي التَّيَّاحِ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسًا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْخَيْلُ مَعْقُوْدٌ فِيْ نَوَاصِيْهَا الْخَيْرُ.

۸۴۸: قیس بن حفص. خالد بن حارث. شعبه. ابو تیاح. حضرت انس نه روایت کوي، حضور صلی اللّٰه علیه وسلّم ارشاد فرمائیلي دې: د اسونو په تندي کښې خیر او برکت دې.

۸۴۹: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ عَنْ مَالِكٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَسْلَمَ عَنْ اَبِيْ صَالِحِ السَّمَّانِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْخَيْلُ لِثَلٰثَةٍ لِرَجُلٍ اَجْرٌ وَلِرَجُلٍ سِتْرٌ وَّ عَلٰى رَجُلٍ وِزْرٌ فَاَمَّا الَّذِيْ لَهُ اَجْرٌ فَرَجُلٌ رَبَطَهَا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَاَطَالَ لَهَا فِيْ مَرْجٍ اَوْ رَوْضَةٍ وَمَا اَصَابَتْ فِيْ طِيَلِهَا مِنَ الْمَرْجِ اَوِ الرَّوْضَةِ كَانَتْ لَهُ حَسَنَاتٍ وَّلَوْ اَنَّهَا قَطَعَتْ طِيَلَهَا فَاسْتَنَّتْ شَرَفًا اَوْ شَرَفَيْنِ كَانَتْ اَرْوَاثُهَا حَسَنَاتٍ لَّهُ وَلَوْ اَنَّهَا مَرَّتْ بِنَهْرٍ فَشَرِبَتْ وَلَمْ يُرِدْ اَنْ يَّسْقِيَهَا كَانَ ذٰلِكَ لَهُ حَسَنَاتٍ وَّ رَجُلٌ رَّبَطَهَا تَغَنِّيًا وَ

۸۴۹: عبداللّٰه. مالک. زید. ابو صالح. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، د اسونو درې قسمونه دي: بعضې خلقو د پاره موجب ثواب وي، بعضو د پاره باعث د ستر او بعضو د پاره موجب د ګناه وي. لیکن هغه سړې چه هغهٔ د پاره باعث د ثواب وي، هغه دې، چه هغهٔ اس د خدائې په لار کښې جهاد د پاره اوتړلو، او يو ورشو (چراگاه) یا یو باغ کښې د څریدو د پاره یوې لوئې رسئ سره ئې اوتړلو، نو څومره ځمکه چه د هغې ورشو یا باغ دې رسئ کښې راځي هغومره نیکئ (نیکیاں) به هغې سړي ته حاصلیږي؛ او که هغه خپله رسئ اوشلوي او یو منډه دوه اووهي (یا هغه په یوه چړهائي دوه اوخیژي) نو د هغې خاشتړه (متیازې وغیره هر څه) د مالک د پاره موجب د ثواب دي. او که په یو نهر اُوبه اُوڅکي، اګر که مالک ئې د اُوبو ورکولو اراده نه وي کړې، نو بیا به هم د هغهٔ د پاره نیکئ وي. او څوک چه د مالدارئ ظاهرولو او پرده پوشئ د پاره او خیرات د پاره، او د اللّٰه

سِتْرًا وَ تَعَفُّفًا لَمْ يَنْسَ حَقَّ اللّٰهِ فِيْ رِقَابِهَا وَ ظُهُوْرِهَا فَهِيَ لَهُ كَذٰلِكَ سِتْرٌ وَّ رَجُلٌ رَّبَطَهَا فَخْرًا وَّ رِيَآءً وَّ نِوَاءً لِاَهْلِ الْاِسْلَامِ فَهِيَ وِزْرٌ وَّ سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْحُمُرِ فَقَالَ مَا اُنْزِلَ عَلَيَّ فِيْهَا اِلَّا هٰذِهِ الْاٰيَةُ الْجَامِعَةُ الْفَاذَّةُ فَمَنْ يَّعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَّرَهٗ وَمَنْ يَّعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَّرَهٗ.

تعالٰي حق ادا كولو دَ پاره چه دَ هغهٔ په گردن دے، اَس اُوساتي، نو داسے اَس مالک دَ پاره باعث ستر (باعث پرده) وي، او څوک چه دا دَ فخر په طور دَ ښودنے په نيت او مسلمانانو سره دَ دشمني دَ پاره تړي، نو دا اَس دَ هغهٔ دَ پاره دَ گناه باعث دے. نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم نه دَ خرونو (گدھوں) باره کښې تپوس اوشو، نو حضورٌ اوفرمائيل، دے باره کښې ماته هيڅ معلوم نهٔ دي. ليکن دا جامع او بے مثله آيت کوم سړے چه ذره قدرے نيکي اوکړي، هغه به اووينې، او څوک چه ذره قدرے بدي اوکړي، هغه به اووينې.

۸۵۰: حَدَّثَنَا عَلِيُّ ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ مُحَمَّدٍ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَقُوْلُ صَبَّحَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْبَرَ بُكْرَةً وَّقَدْ خَرَجُوْا بِالْمَسَاحِيْ فَلَمَّا رَاَوْهُ قَالُوْا مُحَمَّدٌ وَّالْخَمِيْسُ وَ اَحَالُوْا اِلَى الْحِصْنِ يَسْعَوْنَ فَرَفَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَيْهِ وَ قَالَ اللّٰهُ اَكْبَرُ خَرِبَتْ خَيْبَرُ اِنَّا اِذَا نَزَلْنَا بِسَاحَةِ قَوْمٍ فَسَآءَ صَبَاحُ الْمُنْذَرِيْنَ.

۸۵۰: علي بن عبداللّٰه. سفيان. ايوب. محمد. حضرت انس بن مالکؓ نه روايت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم سحر وخت خيبر ته اورسيدلو، نو هغے خلقو خپلے بيلچے راخستے وے (اوپټوته تلو دَ پاره) وتل. کوم وخت چه هغوي حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم اوليدلو، نو وئيل ئے، محمد صلي اللّٰه عليه وسلّم سره دَ لښکره راغے، دے وئيلو سره هغوي په تيښته شو، او قلعه ته لاړل، بند شو، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم خپل دواړه لاسونه اوچت کړل، اووے فرمائيل، اللّٰه بزرگ او برتر دے اللّٰه بزرگ او برتر دے (يعني ډير لوئے دے) خيبر خراب شولو، مونږ چه دَ يو قوم ميدان ته راکوز شو، نو دَ هغے خوف زده قوم سحر خراب شي.

۸۵۱: حَدَّثَنِيْ اِبْرٰهِيْمُ بْنُ الْمُنْذِرِ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِي الْفُدَيْكِ عَنِ ابْنِ اَبِيْ ذِئْبٍ عَنِ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنِّيْ

۸۵۱: ابراهيم. ابن ابي فديک. ابن ابي ذئب. مقبري. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، ما عرض اوکهٔ، يا رسول اللّٰه، ما ډير حديثونه آوريدلے دي. ليکن مانه هير شولو. وے فرمائيل، تهٔ خپل څادر خور کړه ما

سَمِعْتُ مِنْكَ حَدِيْثًا كَثِيْرًا فَأَنْسَاهُ قَالَ اُبْسُطْ رِدَاءَكَ فَبَسَطْتُّ فَغَرَفَ بِيَدِهٖ فِيْهِ ثُمَّ قَالَ ضُمَّهٗ فَضَمَمْتُهٗ فَمَا نَسِيْتُ حَدِيْثًا بَعْدُ.

(ابوهريرهؓ) خپل څادر خور كړلو، نو حضورؐ خپل دواړه لاسونه هغې كښې كيښودل، اووې فرمائيل چه د خپلې سينې سره اومږه ما دغسې اوكړل. دې نه پس بيا مانه هيڅ كله حديث هير نه شولو.

باب ۳۸۲: فَضَائِلِ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ صَحِبَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوْ رَاٰهُ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ فَهُوَ مِنْ اَصْحَابِهٖ.

باب ۳۸۲: دَ صحابه وُ دَ فضائلو بيان، دَ كوم مسلمان چه دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم صحبت نصيب شو، يا حضورؐ ئې اوليدلو، نو هغه دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ صحابه وُ نه دې.

۸۵۲: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ يَقُوْلُ حَدَّثَنَا اَبُوْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيُّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَاْتِيْ عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ فَيَغْزُوْا فِئَامٌ مِنَ النَّاسِ فَيَقُوْلُوْنَ هَلْ فِيْكُمْ مَّنْ صَاحَبَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَقُوْلُوْنَ نَعَمْ فَيُفْتَحُ لَهُمْ.

۸۵۲: علي. سفيان. عمرو. جابر بن عبداللّٰه نه بيان كوي، هغهٔ اووې، ما ابوسعيد خدريؓ نه واوريدل، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلې دي، يوه داسې زمانه به راشي، چه دَ خلقو يو كثير تعداد جماعت به جهاد كوي، تهٔ به دَ هغوي نه تپوس كوې، آيا تاسو كښې يو سړې داسې هم شته، چه دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم صحبت ئې نصيب شوې وي، هغوي به وائي، او، شته، نو هغوي ته به فتح وركړې شي. بيا به په خلقو يوه داسې زمانه راشي، چه هغه وخت به هم ډير تعداد كښې جهاد كوي، نو تپوس به ترې اوكړې شي، آيا تاسو كښې څوك داسې سړې هم شته، چه دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ صحابه وُ صحبت ئې بيامندې وي، هغوي به وائي، او، شته، نو هغوي ته به هم فتح وركړې شي. بيا به يوه داسې زمانه راشي، چه دَ خلقو كثير تعداد به جهاد كوي، هغوي نه به پښتنه اوشي، آيا تاسو كښې هغه سړې هم شته، چه دَ صحابهٔ رسول صحبت يافته حضراتو سره پاتې شوې وي، هغوي به وائي، او، شته، نو هغوي ته به فتح وركړې شي.

۸۵۳: حَدَّثَنِيْ اِسْحَاقُ حَدَّثَنَا النَّضْرُ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ

۸۵۳: اسحاق. نضر. شعبه. ابو جمره. زهدم بن مضرب. حضرت عمران بن حصين

أَبِيْ حَمْزَةَ سَمِعْتُ زَهْدَمَ بْنَ حُصَيْنٍ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْرُ أُمَّتِيْ قَرْنِيْ ثُمَّ الَّذِيْنَ يَلُوْنَهُمْ ثُمَّ الَّذِيْنَ يَلُوْنَهُمْ قَالَ عِمْرَانُ فَلَا أَدْرِيْ أَذَكَرَ بَعْدَ قَرْنِهِ قَرْنَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا ثُمَّ إِنَّ بَعْدَكُمْ قَوْمًا يَّشْهَدُوْنَ وَلَا يُسْتَشْهَدُوْنَ وَ يَخُوْنُوْنَ وَلَا يُؤْتَمَنُوْنَ وَ يَنْذُرُوْنَ وَلَا يَفُوْنَ وَ يَظْهَرُ فِيْهِمُ السِّمَنُ.

نه روایت کوي، رسول الله صلی الله علیه وسلّم اوفرمائیل، ځما اُمت کښې د ټولو نه بهتره ځما زمانه ده، بیا د هغې خلقو چه هغوي پسې متصل وي، بیا د هغې خلقو، چه هغوي پسې به متصل وي. عمران بیان کوي ماته په دې شان یاد نه دي، چه حضورؐ د خپل قرن (زمانې) نه پس دوه خله قرن اوفرمائیل. یا درې خله. بیائې ارشاد اوفرمائیلو، ستاسو نه پس به څهٔ خلق داسې وي، چه بغیر طلب او خواهش به ګواهي کوي، هغوي به خیانت کوي، او امین به نشي جوړولې، هغوي به نذر مني، او خپل نذر به نهٔ پوره کوي، او دا خلق به ډیر ساربه وي.

۸۵۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَنْصُوْرٍ عَنْ إِبْرَاهِيْمَ عَنْ عُبَيْدَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِؓ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ خَيْرُ النَّاسِ قَرْنِيْ ثُمَّ الَّذِيْنَ يَلُوْنَهُمْ ثُمَّ الَّذِيْنَ يَلُوْنَهُمْ ثُمَّ يَجِيْءُ قَوْمٌ تَسْبِقُ شَهَادَةُ أَحَدِهِمْ يَمِيْنَهُ وَ يَمِيْنُهُ شَهَادَتَهُ قَالَ إِبْرَاهِيْمُ وَ كَانُوْا يَضْرِبُوْنَنَا عَلَى الشَّهَادَةِ وَالْعَهْدِ وَ نَحْنُ صِغَارٌ.

۸۵۴: محمد بن کثیر. سفیان. منصور. ابراهیم. عبیده. حضرت عبدالله بن مسعودؓ نه روایت کوي، رسول الله صلی الله علیه وسلّم اوفرمائیل، د ټولو نه بهتره ځما زمانه ده، بیا د هغې خلقو چه هغوي نه پس متصل دي. دې نه پس به داسې خلق وي، چه د قسم نه اول به ګواهي کوي، او د ګواهي نه مخکښې به قسم خوري. ابراهیم نخعيؒ فرمائي، ځمونږ بزرګانو به قسم خوړلو او وعده کولو باندې مونږه وهلو، هغه زمانه کښې مونږ بچي وو.

باب ۳۸۳: مَنَاقِبُ الْمُهَاجِرِيْنَ وَ فَضْلِهِمْ مِنْهُمْ أَبُوْبَكْرٍ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ أَبِيْ قُحَافَةَ التَّيْمِيُّؓ وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى

باب ۳۸۳: د مهاجرو د منافقت او فضائل بیان، هغوي کښې حضرت ابوبکر عبدالله بن ابي قحافه تیمي هم یو مهاجر دې، د الله تعالیٰ ارشاد، ددې خاجتمنلو

لِلْفُقَرَآءِ الْمُهَاجِرِيْنَ الَّذِيْنَ اُخْرِجُوْا مِنْ دِيَارِهِمْ وَ اَمْوَالِهِمْ يَبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنَ اللّٰهِ وَ رِضْوَانًا وَّ يَنْصُرُوْنَ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهُ اُولٰٓئِكَ هُمُ الصَّادِقُوْنَ وَ قَالَ اِلَّا تَنْصُرُوْهُ فَقَدْ نَصَرَهُ اللّٰهُ اِلٰى قَوْلِهٖ اِنَّ اللّٰهَ مَعَنَا قَالَتْ عَائِشَةُ وَ اَبُوْ سَعِيْدٍ وَابْنُ عَبَّاسٍ وَ كَانَ اَبُوْبَكْرٍ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِى الْغَارِ .

مهاجرينو بالخصوص حق دے، چه د خپلو کورونو او خپو مالونو نه (جبرًا او ظلمًا) جُدا کړے شوے دي. هغوي د اللّٰه تعالي د فضل (يعني جنت) او رضامندي طلبګار دي. هغوي د اللّٰه تعالي او د هغه د رسول (د دين) مدد کوي. او د باري تعالي د ارشاد. يعني که تاسو دده (محمد صلي اللّٰه عليه وسلّم) مدد نه کوئے، نو اللّٰه تعالي به ئے مدد کوي. بي بي عائشهؓ ابو سعيد، او ابن عباسؓ فرمائي چه ابوبکرؓ غار ثور کښې نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم سره ملګرے وو.

۸۵۵: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ ابْنُ اَبِىْ رَجَآءٍ حَدَّثَنَا اِسْرَآئِيْلُ عَنْ اَبِىْ اِسْحٰقَ عَنِ الْبَرَآءِ قَالَ اشْتَرٰى اَبُوْبَكْرٍ مِنْ عَازِبٍ رَحْلًا بِثَلٰثَةَ عَشَرَ دِرْهَمًا فَقَالَ اَبُوْبَكْرٍ لِعَازِبٍ مُرِ الْبَرَآءَ فَلْيَحْمِلْ اِلَىَّ رَحْلِىْ فَقَالَ عَازِبٌ لَا حَتّٰى تُحَدِّثَنَا كَيْفَ صَنَعْتَ اَنْتَ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ خَرَجْتُمَا مِنْ مَّكَّةَ وَالْمُشْرِكُوْنَ يَطْلُبُوْنَكُمْ قَالَ ارْتَحَلْنَا مِنْ مَّكَّةَ فَاَحْيَيْنَا اَوْ سَرَيْنَا لَيْلَتَنَا وَ يَوْمَنَا حَتّٰى اَظْهَرْنَا وَ قَامَ قَائِمُ الظَّهِيْرَةِ فَرَمَيْتُ بِبَصَرِىْ هَلْ اَرٰى مِنْ ظِلٍّ فَاٰوِىْ اِلَيْهِ فَاِذَا صَخْرَةٌ اَتَيْتُهَا فَنَظَرْتُ بَقِيَّةَ ظِلٍّ لَهَا فَسَوَّيْتُهُ ثُمَّ فَرَشْتُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْهِ ثُمَّ قُلْتُ لَهُ اضْطَجِعْ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ

۸۵۵: عبداللّٰه. اسرائيل، ابو اسحٰق. حضرت براء نه روايت کوي. هغه اووے، حضرت ابوبکرؓ (د هغه پلار) عازب نه يوه کجاوه په ديارلس درهمه واخسته، او ونيلے، براء ته حکم ورکه، چه دا کجاوه ماسره يوسي، عازب جواب ورکه: دا نشي کيدے. تردے چه ماته هغه واقعه بيان کړے. چه ستا او د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم څه حال شو، چه تاسو دواړه د مکے نه اووتلے، او مشر کانو ستاسو تلاش کولو. هغه اووے څه وخت چه تيک پخه غرمه شوه. نو ما خپل نظر اوزغلولو، چه چرته ايساريدو د پاره سورے اوګورم. زهٔ يو ګټ ته اورسيدم. چه هلته د هغے سورے اوګورم. نو ما هغه صاف او هموار که. دے نه پس م هلته رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم د پاره فرش اوغوړولو. او حضورؐ ته م اووے، يا رسول اللّٰه، تاسو آرام اوکړئے، نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم سملاستلو، بيا زهٔ اخوا ديخوا ګرځيدم چه څوک اووينم. اتفاقًا يو ګډبه م

فَاضْطَجَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ انْطَلَقْتُ اَنْظُرُ مَا حَوْلِيُ هَلْ اَرٰى مِنَ الطَّلَبِ اَحَدًا فَاِذَا اَنَا بِرَاعِىْ غَنَمٍ يَسُوْقُ غَنَمَهُ اِلَى الصَّخْرَةِ يُرِيْدُ مِنْهَا الَّذِيْ اَرَدْنَا فَسَاَلْتُهُ فَقُلْتُ لَهُ لِمَنْ اَنْتَ يَا غُلَامُ قَالَ لِرَجُلٍ مِنْ قُرَيْشٍ سَمَّاهُ فَعَرَفْتُهُ فَقُلْتُ هَلْ فِيْ غَنَمِكَ مِنْ لَبَنٍ قَالَ نَعَمْ قُلْتُ هَلْ اَنْتَ حَالِبًا قَالَ نَعَمْ فَاَمَرْتُهُ فَاعْتَقَلَ شَاةً مِنْ غَنَمِهِ ثُمَّ اَمَرْتُهُ اَنْ يَّنْفُضَ ضَرْعَهَا مِنَ الْغُبَارِ ثُمَّ اَمَرْتُهُ اَنْ يَّنْفُضَ كَفَّيْهِ فَقَالَ هٰكَذَا ضَرَبَ اِحْدٰى كَفَّيْهِ بِالْاُخْرٰى فَحَلَبَ لِيْ كُثْبَةً مِنْ لَبَنٍ وَقَدْ جَعَلْتُ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكْوَةً عَلٰى فَمِهَا خِرْقَةٌ فَصَبَبْتُ عَلَى اللَّبَنِ حَتّٰى بَرَدَ اَسْفَلُهُ فَانْطَلَقْتُ بِهِ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَافَقْتُهُ قَدِ اسْتَيْقَظَ فَقُلْتُ اشْرَبْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَشَرِبَ حَتّٰى رَضِيْتُ ثُمَّ قُلْتُ قَدْ اٰنَ الرَّحِيْلُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ بَلٰى فَارْتَحَلْنَا وَالْقَوْمُ يَطْلُبُوْنَا فَلَمْ يُدْرِكْنَا اَحَدٌ مِّنْهُمْ غَيْرُ سُرَاقَةَ بْنِ مَالِكِ بْنِ جُعْشُمٍ عَلٰى فَرَسٍ لَهُ فَقُلْتُ هٰذَا الطَّلَبُ قَدْ لَحِقَنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَقَالَ لَا تَحْزَنْ اِنَّ اللّٰهَ مَعَنَا.

په نظر راغې، چه خپلې چيلې ئې هغې ګټ ته راوستلې هغه هم دې ګټ سره خمونږ په شان آرام کول غوښتل، ما د هغه نه تپوس اوکړ، ته د چا غلام ئې. هغه اووې، د فلاني قريشي، هغه راته د هغه نوم اوښودلو، نو ما هغه اوپيژندلو، بيا ما د هغه نه تپوس اوکه، آيا ستاسو چيلو کښې څه پئې شته، هغه اووې او، شته، ما اووې، آيا ته به پئې اُولشې، هغه اووې او، بيا ما ورته اووې، نو هغه د چيلئې پښې اوتړلې. بيا ما هغه ته اووې، چه د دې غولانزې نه ګرد پاک کړه، او خپل لاس صاف کړه. براء فرمائي، هغه خپل يو لاس په بل لاس اووهلو، څنګه چه ګرد صاف کولې شي. بيا هغه ما د پاره يو لوښي کښې پئې اولشل، ما رسول الله صلي الله عليه وسلم د پاره د څرمنې يو لوښې خان سره ساتلې وو چه د هغې په سر م کپړه تړلې وه، ما د هغې نه اُوبه واخستې، پئ کښې م واچولې چه هغې سره هغه د ويخه (لاندې) پورې يخ شولو بيا م د حضورؐ په خدمت کښې پيش کړل، نو، ما اوليدل چه حضورؐ بيدار شوې دې. ما عرض اوکړ، يا رسول الله، دا پئې اوڅکئې، نو حضورؐ اوڅکل، چه هغې سره زه خوشحاله شوم. بيا ما عرض اوکړ، يا رسول الله، د تلو وخت دې. وې فرمائيل، او. نو مونږ روان شو. کفار خمونږ په تلاش پسې وو، خو هغوي کښې هيڅا مونږ بيا نه مندلو، سراقه بن مالک جعشم مو په اس سور اوليدلو. نو ما عرض اوکړ، يا رسول الله، تلاش کونکو مونږ را لاندې کړو. حضورؐ اوفرمائيل، غم مه کوه، الله خمونږ ملګرې دې

۸۵۶: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ ابْنُ سِنَانٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ أَنَسٍ عَنْ أَبِيْ بَكْرٍ قَالَ قُلْتُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَنَا فِي الْغَارِ لَوْ أَنَّ أَحَدَهُمْ نَظَرَ تَحْتَ قَدَمَيْهِ لَأَبْصَرَنَا فَقَالَ مَا ظَنُّكَ يَا اَبَا بَكْرٍ بِاثْنَيْنِ اَللّٰهُ ثَالِثُهُمَا.

۸۵۶: محمد. همام. ثابت. حضرت انسؓ نه روايت كوي، حضرت ابوبكرؓ وائي. ما دَ غار قيام كښې رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ته عرض اوكړ، كه څوك سرے دے تلاش كونكو كښې دَ خپلو قدمونو لاندے نظر اوكړي، نو بيشكه مونږ به اووينې، حضورؐ اوفرمائيل، اے ابوبكر، دَ هغې دوو متعلق ستا څه خيال دے، چه هغوي سره دريم (كس) اللّٰه تعالٰي دے.

باب ۳۸۴: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُدُّوا الْاَبْوَابَ اِلَّا بَابَ اَبِيْ بَكْرٍ قَالَهُ ابْنُ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۳۸۴: دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمان، چه دَ ابوبكر دَ دروازے نه علاوه جمات كښې دَ ټولو دروازے بندے كړئ، چه هغه حضرت ابن عباسؓ دَ نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كړے دے.

۸۵۷: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَامِرٍ حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ قَالَ حَدَّثَنِيْ سَالِمٌ اَبُو النَّضْرِ عَنْ بُسْرِ بْنِ سَعِيْدٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ خَطَبَ رَسُوْلُ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّاسَ وَ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ خَيَّرَ عَبْدًا بَيْنَ الدُّنْيَا وَ بَيْنَ مَا عِنْدَهٗ فَاخْتَارَ ذٰلِكَ الْعَبْدُ مَا عِنْدَ اللّٰهِ قَالَ فَبَكٰى اَبُوْبَكْرٍ فَعَجِبْنَا لِبُكَائِهٖ اَنْ يُّخْبِرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ عَبْدٍ خُيِّرَ فَكَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُخَيَّرُ وَ كَانَ اَبُوْبَكْرٍ اَعْلَمَنَا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ مِنْ اَمَنِّ النَّاسِ عَلَيَّ فِيْ صُحْبَتِهٖ وَمَالِهٖ اَبَا بَكْرٍ وَلَوْ

۸۵۷: عبداللّٰه. ابو عامر. فليح. سالم. بسر بن سعيد. حضرت ابو سعيد خدريؓ نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خطبه اولوسته، اووے فرمائيل، بيشكه خدائے تعالٰي يو بنده ته دَ دُنيا او دَ هغے څيز مينځ كښې چه اللّٰه تعالٰي سره دے، اختيار وركړلو، نو بنده هغه څيز غوره كړ، كوم چه اللّٰه سره دے، ابوسعيد فرمائي، بيا حضرت ابوبكرؓ په ژړا شو، مونږ دَ هغهٔ په ژړا تعجب اوكړ، وئيلے مو، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خو دَ يو بنده حال بيانوي، چه هغهٔ ته اختيار وركړے شو. دے كښې دَ ژړا څهٔ خبره ده، خو ورستو معلومه شوه، هغه اختيار وركړے شوے بنده خپله رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم وو، حضرت ابوبكرؓ مونږ ټولو كښې دَ زيات علم خاوند وو، بيا رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، ټولو خلقو كښې زيات دَ خپل صحبت او خپل مال نه په ما احسان كونكے ابوبكرؓ دے، كه ما دَ

كُنْتُ مُتَّخِذًا خَلِيْلًا غَيْرَ رَبِّي لَا تَّخَذْتُ اَبَا بَكْرٍ وَلٰكِنْ اُخُوَّةُ الْاِسْلَامِ وَ مُوَدَّتُهُ لَا يَبْقَيَنَّ فِي الْمَسْجِدِ بَابٌ اِلَّا سُدَّ اِلَّا بَابُ اَبِيْ بَكْرٍ.

اللّٰه تعالىٰ نه سِوا څوک خليل جوړولے، نو بيشکه. ابوبکرؓ به م جوړ کړے وو. ليکن اخوت اسلامي او مودّت دے، آينده دے جمات کښې ذ ابوبکر ذ دروازے نه علاوه داسے دروازه نهٔ وي، چه بنده نهٔ کړے شي.

ف: مودّت: ذ مساوي درجے برقرارے.

## باب ۳۸۵: فَضْلِ اَبِيْ بَكْرٍ بَعْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۳۸۵: ‌د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه پس په ټولو ذ ابوبکرؓ د فضيلت بيان.

۸۵۸: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كُنَّا نُخَيِّرُ بَيْنَ النَّاسِ فِيْ زَمَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنُخَيِّرُ اَبَا بَكْرٍ ثُمَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ ثُمَّ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ.

۸۵۸: عبدالعزيز بن عبداللّٰه. سليمان. يحيٰي بن سعيد. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روايت کوي: هغه وائي، مونږ به ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم په زمانه کښې ذ خلقو مينځ (يو بل له) ترجيح ورکوله، نو مونږ به ابوبکرؓ له ترجيح ورکوله، بيا عمرؓ بن خطاب ته بيا عثمان بن عفان ته.

## باب ۳۸۶: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ كُنْتُ مُتَّخِذًا خَلِيْلًا قَالَهُ اَبُوْ سَعِيْدٍ.

باب ۳۸۶: ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ارشاد، که ما څوک خليل جوړولے، چه هغه ابو سعيد نقل کړے دے.

۸۵۹: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ عَنْ عِكْرَمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَوْ كُنْتُ مُتَّخِذًا مِنْ اُمَّتِيْ خَلِيْلًا لَا تَّخَذْتُ اَبَا بَكْرٍ وَلٰكِنْ اَخِيْ وَ صَاحِبِيْ.

۸۵۹: مسلم. وهيب. ايوب. عکرمه. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي: نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، که ما خپل اُمت کښې څوک خپل خليل (خالص دوست) جوړولے، نو ابوبکرؓ به م جوړ کړے وو. ليکن هغه خما ورور او خما صحابي دے. (او هم دا اخوتِ اسلامي او مودّت دے).

۸۶۰: حَدَّثَنِيْ مُعَلَّى وَ مُوْسٰى قَالَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ اَيُّوْبَ

۸۶۰: يو بل روايت کښې دي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، که ما څوک خليل

وَقَالَ لَوْ كُنْتُ مُتَّخِذًا خَلِيلًا لَا تَّخَذْتُهُ خَلِيلًا وَلٰكِنْ أُخُوَّةُ الْإِسْلَامِ أَفْضَلُ.

جوړولے، نو بيشکه دے (ابوبکرؓ) به م جوړ کړے وو، ليکن د اسلام وروړ ولي کافي ده.

۸۶۱: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ قَالَ كَتَبَ أَهْلُ الْكُوفَةِ إِلَى ابْنِ الزُّبَيْرِ فِي الْجَدِّ فَقَالَ أَمَّا الَّذِيْ قَالَ فِيهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ كُنْتُ مُتَّخِذًا مِنْ هٰذِهِ الْأُمَّةِ خَلِيلًا لَا تَّخَذْتُهُ أَنْزَلَهُ أَبًا يَعْنِي أَبَا بَكْرٍ.

۸۶۱: قتيبه. عبدالوهاب. ايوب. حضرت عبداللّٰه بن ابي مليكه نه روايت کوي، کوفے والو ابن زبير نه د نيکهٔ (دادا) د ميراث په باره کښې تپوس او کۀ نو وئيلے، هغه سړي چه د هغهٔ باره کښې رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلې وو، که ما دے اُمت کښې څوک خليل جوړولے، نو هغه به م جوړ کړے وو، يعني حضرت ابوبکرؓ، نيکهٔ (دادا) د پلار په درجه کښې اينبے دے.

## بَابٌ ۳۸۷:

باب ۳۸۷: د دے باب څهٔ عنوان يعني سرخي نشته.

۸۶۲: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ وَمُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَا حَدَّثَنَا إِبْرٰهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَتْ أَتَتْ امْرَأَةٌ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَمَرَهَا أَنْ تَرْجِعَ إِلَيْهِ قَالَتْ أَرَأَيْتَ إِنْ جِئْتُ وَلَمْ أَجِدْكَ كَأَنَّهَا تَقُوْلُ الْمَوْتَ قَالَ عَلَيْهِ السَّلَامُ إِنْ لَمْ تَجِدِيْنِي فَأْتِي أَبَا بَكْرٍ.

۸۶۲: حميدي او محمد بن عبداللّٰه. ابراهيم بن سعد. سعد. محمد بن جبيرؓ. حضرت جبير بن مطعمؓ نه روايت کوي، د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښې يوه ښځه حاضره شوه، حضورؐ هغے ته اوفرمائيل، بيا څهٔ وخت راشه، هغے ښځے عرض اوکړ، که زهٔ راشم او تاسو بيانهٔ مومم (يعني تاسوؐ وفات شئے) نو بيا څهٔ اوکړم؟ حضورؐ ورته اوفرمائيل که ما بيانهٔ مومے، نو ابوبکرؓ له ورشه.

۸۶۳: حَدَّثَنِي أَحْمَدُ بْنُ أَبِي الطَّيِّبِ حَدَّثَنَا إِسْمٰعِيلُ بْنُ أَبِي مُجَالِدٍ حَدَّثَنَا بَيَانُ بْنُ بِشْرٍ عَنْ وَبَرَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ هَمَّامٍ قَالَ سَمِعْتُ عَمَّارًا يَقُوْلُ رَأَيْتُ رَسُوْلَ

۸۶۳: احمد. اسمٰعيل. بيان. زبره. همام نه روايت کوي، اهغهٔ اوريے، ما د حضرت عمارؓ نه دا آوريدلے دي، ما رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوليد، حضور صلے اللّٰه عليه وسلّم سره د پنځو غلامانو دوو

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَا مَعَهُ إِلَّا خَمْسَةُ أَعْبُدٍ وَامْرَأَتَانِ وَ أَبُوْبَكْرٍ.

۸۶۴: حَدَّثَنِيْ هِشَامُ بْنُ عَمَّارٍ حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا زَيْدٌ عَنْ بُسْرِ بْنِ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ عَائِذِ اللّٰهِ أَبِيْ إِدْرِيْسَ عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ كُنْتُ جَالِسًا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْ أَقْبَلَ أَبُوْبَكْرٍ آخِذًا بِطَرَفِ ثَوْبِهِ حَتّٰى أَبْدَا عَنْ رُكْبَتِهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَّا صَاحِبُكُمْ فَقَدْ غَامَرَ فَسَلَّمَ وَ قَالَ إِنِّيْ كَانَ بَيْنِيْ وَ بَيْنَ ابْنِ الْخَطَّابِ شَيْءٌ فَأَسْرَعْتُ إِلَيْهِ ثُمَّ نَدِمْتُ فَسَأَلْتُهُ أَنْ يَّغْفِرَلِيْ فَأَبٰى عَلَيَّ فَأَقْبَلْتُ إِلَيْكَ فَقَالَ يَغْفِرُ اللّٰهُ لَكَ يَا أَبَابَكْرٍ ثَلٰثًا ثُمَّ إِنَّ عُمَرَؓ نَدِمَ فَأَتٰى مَنْزِلَ أَبِيْ بَكْرٍؓ فَسَأَلَ أَثَمَّ أَبُوْبَكْرٍؓ قَالُوْا لَا فَأَتٰى إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَعَلَ وَجْهُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَمَعَّرُ حَتّٰى أَشْفَقَ أَبُوْ بَكْرٍ فَجَثَا عَلٰى رُكْبَتَيْهِ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَاللّٰهِ إِنْ كُنْتُ أَظْلَمَ مَرَّتَيْنِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللّٰهَ بَعَثَنِيْ إِلَيْكُمْ فَقُلْتُمْ كَذَبْتَ وَ قَالَ

بنځو او بوبکرؓ نه سِوا نور څوک نۀ وو.

۸۶۴: هشام بن عمار. صدقه بن خالد. زيد بن واقد. بسر بن عبيدالله. عائذ الله ابن ادريس. حضرت ابوالدرداءؓ نه روايت کوي، زۀ رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره ناست ووم، چه ابوبکرؓ دَ خپل څادر څنډه اوچته کړے راغے، دَ هغۀ ګُنډئ ښکاره شوے وه. رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، ستا دے دوست جنګ کړے دے، ابوبکرؓ راغے، سلام ئے اوکۀ، او وئيلے. څما او دَ ابن خطابؓ مينځ کښ څۀ جګړه اوشوه، ما بے اختياره هغۀ ته څۀ اووے، هغے نه پس زۀ شرمنده شوم، او ما هغۀ ته دَ معافي خواست اوکۀ، خو هغۀ دَ معافي کولو نه انکار اوکۀ، نو زۀ تاسو ته خواست دَ پاره راغلے يم. حضورؐ درے خله اوفرمائيل، اے ابوبکرؓ خدائے دے تا معاف کړي، بيا عمرؓ خپيمانه شو، او دَ ابوبکرؓ مکان ته ورغے، او تپوس ئے اوکۀ، نو دَ حضور صلي الله عليه وسلّم مخ مبارک متغير شولو، حتي چه ابوبکرؓ اوويريد، په ګُنډو کيناست او عرض ئے اوکۀ، چه ما ظلم کړے وو، نو نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، خدائے تعالي زۀ تاسو ته راوليږلم، نو تاسو خلقو اووے، دروغجن دے، او ابوبکرؓ اووے، ريښتيا وائي، او هغۀ خپل سر و مال سره څما خدمت اوکۀ، نو آيا تاسو به څما دَ پاره څما دوست

ابوبکر صدق و واسانی بنفسه وماله فهل انتم تارکوا لي صاحبي مرتين فما اوذي بعدها.

پـریـبـردئـے (یـا نــه) درے خـلـه ئـے دغـسـے اوفـرمـائیل. دے نـه پـس ابـوبـکرؓ تـه هیچا تکلیف ورنهٔ کهٔ.

۸۶۵: حدثنا معلى ابن اسد حدثنا عبد العزيز بن المختار قال حدثنا خالد الحذاء عن ابي عثمان قال حدثني عمرو بن العاصؓ ان النبي صلى الله عليه وسلم بعثه على جيش ذات السلاسل فاتيته فقلت اي الناس احب اليك قال عائشة فقلت من الرجال فقال ابوها قلت ثم من قال عمر بن الخطاب فعد رجالا.

۸۶۵: معلي بن اسد. عبدالعزیز بن المختار. خالد الحذاء. ابي عثمان. حضرت عمرو بن العاصؓ نه بیان کوي، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم غزوه ذات السلاسل کښې هغه دَ یو لښکر امیر مقرر کړو، اووے لیږلو، هغه وائي، کوم وخت چه زهٔ دَ دے غزا، نه واپس راغلم، او دَ حضورؐ خدمت کښې حاضر شوم، ما تپوس اوکهٔ، چه ستاسو دَ ټولونه زیات محبت چاسره دے، حضورؐ اوفرمائیل، عائشےؓ سره، ما عرض اوکهٔ، چه نارینه ؤ کښې ستو زیات محبت چاسره دے حضورؐ اوفرمائیل، دَ عائشےؓ پلار سره (یعني ابوبکر صدیقؓ سره) ما عرض اوکهٔ، بیا چا سره، نو وے فرمائیل، عمرؓ سره، بیا حضورؐ دَ څو سړو نوم واخستلو.

۸۶۶: حدثنا ابو اليمان اخبرنا شعيب عن الزهري قال اخبرني ابو سلمة بن عبد الرحمن ان ابا هريرة قال سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول بينما راع في غنمه عدا عليه الذئب فاخذ منها شاة فطلبه الراعي فالتفت اليه الذئب فقال من لها يوم السبع يوم ليس لها راع غيري و بينا رجل يسوق بقرة قد حمل عليها فالتفتت اليه فكلمته فقالت اني لم اخلق

۸۶۶: ابوالیمان. شعیب. زهري. ابو سلمه. حضـرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي، ما خپله دَ رسول اللّٰه صـلي اللّٰه علیه وسلّم نه دا آوریدلے دي، چه یو ګډبه خپلو چیلو کښې وو، یو شرمخ په هغوي حمله اوکړه، او یوه چیلے ئے تـرے یوړله، ګډبه هغه چیلئے دَ شرمخ نه خلاصه کړه، نو شرمخ ورته متوجه شو، ورته ئے اووے، په یوم السبع (دَ درندګانو په ورځ) به دَ چیلے څوک محافظ وي، چه په هغه ورځ به خما نه سِوا چیلے څرونکے څوک په نظر نهٔ راځي، او یو سړي غوے (بیل) شړلو، چه په هغے سور شولو، نو غوے هغهٔ ته متوجه شو، ورته ئے اووے، زهٔ دے دَ پاره نهٔ یم پیدا شوے، چه تهٔ دے

لِهٰذَا وَلٰكِنِّي خُلِقْتُ لِلْحَرْثِ قَالَ النَّاسُ سُبْحَانَ اللّٰهِ بَقَرَةٌ تُكَلِّمُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاِنِّيْ اُوْمِنُ بِذٰلِكَ وَ اَبُوْبَكْرٍ وَّ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ.

په ما سورلي کوي، بلکه زهٔ ځ کاشتکاري (کرکيلې) ذ کارونو ذ پاره پيدا شوې يم. خلقو چه دا واقعه واوريده، سبحان اللّٰه ئې اووې، نو رسالت مېب صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، ما ابوبکرؓ او عمر بن خطابؓ په دې ايمان راوړې دې.

۸۶۷: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِي ابْنُ الْمُسَيَّبِ سَمِعَ اَبَا هُرَيْرَةَؓ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ بَيْنَا اَنَا نَائِمٌ رَأَيْتُنِيْ عَلٰى قَلِيْبٍ عَلَيْهَا دَلْوٌ فَنَزَعْتُ مِنْهَا مَا شَاءَ اللّٰهُ ثُمَّ اَخَذَهَا ابْنُ اَبِيْ قُحَافَةَ فَنَزَعَ مِنْهَا ذَنُوْبًا اَوْ ذَنُوْبَيْنِ وَ فِيْ نَزْعِهٖ ضَعْفٌ وَاللّٰهُ يَغْفِرُ لَهٗ ضَعْفَهٗ ثُمَّ اسْتَحَالَتْ غَرْبًا فَاَخَذَهَا ابْنُ الْخَطَّابِ فَلَمْ اَرَ عَبْقَرِيًّا مِّنَ النَّاسِ يَنْزِعُ نَزْعَ عُمَرَ حَتّٰى ضَرَبَ النَّاسُ بِعَطَنٍ.

۸۶۷: عبدان. عبداللّٰه. يونس. زهري. ابن المسيب. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، هغه خپله ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه آوريدلې دي، چه زهٔ اُوده ووم، نو ما خپل ځان په يو کوهي اوليدلو، چه په هغې يوه بورقه (بالتې) پروت وو، ما ذ هغې کوهي نه څومره چه اللّٰه ته منظور وو، بورقې راوښکلې. بيا ابن ابي قحافه (ابوبکرؓ) هغه بورقه واخسته، هغهٔ ذ اُوبو يو دوه بورقې راوښکلې. خدائې تعالٰي دې ذ هغهٔ کمزوري معاف کړي. دې نه پس هغه څرس (ډيره لويه بورقه چه پتبي پرې اُوبه کوي) جوړه شوه او عمر بن خطاب هغه واخسته، نو ما خلقو کښې هيڅ قوي او مضبوط سړې داسې بيانه مند، چه ذ عمرؓ په شان څرس راوښکلې شي، هغه ډير قوت سره دومره لوئې بورقې راوښکلې، چه ټول خلق ئې په اُوبو ماړهٔ کړل.

۸۶۸: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا مُوْسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَؓ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ جَرَّ ثَوْبَهٗ خُيَلَاءَ لَمْ يَنْظُرِ اللّٰهُ اِلَيْهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَقَالَ اَبُوْبَكْرٍ اِنَّ اَحَدَ

۸۶۸: محمد بن مقاتل. عبداللّٰه. موسي بن عقبه. سالم بن عبداللّٰه. حضرت عبداللّٰه بن عمرؓ نه روايت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، څوک چه تکبر سره خپلې کپړې ښکته کړي، نو ذ قيامت په ورځ به خدائې تعالٰي هغهٔ ته ذ رحمت په نظر اونه ګوري، ابوبکرؓ اووې، خو ذ کپړې يو حصه آويزانه شي،

شِقَّيْ ثَوْبِيْ يَسْتَرْخِيْ اِلَّا اَنْ اَتَجَاهَدَ ذٰلِكَ مِنْهُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّكَ لَسْتَ تَصْنَعُ ذٰلِكَ خُيَلَاءَ قَالَ مُوْسٰى فَقُلْتُ لِسَالِمٍ اَذَكَرَ عَبْدُ اللّٰهِ مَنْ جَرَّ اِزَارَهٗ قَالَ لَمْ اَسْمَعْهُ ذَكَرَ اِلَّا ثَوْبَهٗ.

که زهٔ د هغې خیال ساتم نو بچ کیدې شم. رسول الله صلي الله علیه وسلّم ورته اوفرمائیل: بیشکه تهٔ تکبر نهٔ کوې موسي وائي: ما د سالم نه تپوس اوکهٔ، آیا حضرت عبدالله "من جرّ ازاره" لفظ وئیلې دې. هغه اُوې ما خو د "ثوبه" لفظ آوریدلې دې.

۸۶۹: حَدَّثَنَا اَبُو الْيَمَانِ حَدَّثَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ حُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَؓ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنْ اَنْفَقَ زَوْجَيْنِ مِنْ شَيْءٍ مِّنَ الْاَشْيَآءِ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ دُعِيَ مِنْ اَبْوَابِ يَعْنِي الْجَنَّةَ يَا عَبْدَ اللّٰهِ هٰذَا خَيْرٌ فَمَنْ كَانَ مِنْ اَهْلِ الصَّلٰوةِ دُعِيَ مِنْ بَابِ الصَّلٰوةِ وَمَنْ كَانَ مِنْ اَهْلِ الْجِهَادِ دُعِيَ مِنْ بَابِ الْجِهَادِ وَمَنْ كَانَ مِنْ اَهْلِ الصَّدَقَةِ دُعِيَ مِنْ بَابِ الصَّدَقَةِ وَمَنْ كَانَ مِنْ اَهْلِ الصِّيَامِ دُعِيَ مِنْ بَابِ الصِّيَامِ بَابِ الرَّيَّانِ فَقَالَ اَبُوْبَكْرٍ مَا عَلٰى هٰذَا الَّذِيْ يُدْعٰى مِنْ تِلْكَ الْاَبْوَابِ مِنْ ضَرُوْرَةٍ وَقَالَ هَلْ يُدْعٰى مِنْهَا كُلِّهَا اَحَدٌ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ نَعَمْ وَ اَرْجُوْ اَنْ تَكُوْنَ مِنْهُمْ يَا اَبَا بَكْرٍؓ.

۸۶۹: ابوالیمان. شعیب. زهري. حمید. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي هغهٔ اووې: ما د رسول الله صلي الله علیه وسلّم نه آوریدلې دي: کوم سړې چه دَ الله تعالي په لار کښې د یو قسم دوه څیزونه ورکړي، هغه به دَ جنت دَ دروازونه بللې شي، دَ خدائې بنده خیر دلته دې، نو کوم سړې چه دَ مونځ گزارو نه وي، هغه به دَ مانځه دَ دروازې نه بللې شي، او څوک چه دَ جهاد والونه وي، هغه به دَ جهاد دَ دروازې نه بللې شي. او کوم سړې چه دَ صدقه کونکو نه وي. هغه به دَ صدقې دَ دروازې نه بللې شي، او کوم سړې چه دَ رووژه دارونه وي هغه به دَ روژې دَ دروازې نه بباب الرّیان نه بللې شي. ابوبکرؓ عرض اوکهٔ، او کوم سړې چه دَ دې ټولو دَرازونه بللې شي هغهٔ ته خو به بیا هیڅ اندیښنه نه وي، او تپوس ئې اوکهٔ، یا رسول الله. آیا داسې به هم څوک وي، چه دې ټولو دروازونه به بللې شي حضورؐ ورته اوفرمائیل: او، او زهٔ اُمید لرم: چه اې ابوبکرؓ تهٔ به دَ هغوي نه ئې (چه د ټولو دروازونه به جنت ته بللې شي).

۸۷۰: حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ

۸۷۰: اسمعیل. سلیمان. هشام. عروه بن زبیر.

ابْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ عَنْ هِشَامِ ابْنِ عُرْوَةَ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَاتَ وَ اَبُوْ بَكْرٍ بِالسُّنْحِ قَالَ اِسْمٰعِيْلُ يَعْنِيْ بِالْعَالِيَةِ فَقَامَ عُمَرُ يَقُوْلُ وَاللّٰهِ مَا مَاتَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ وَ قَالَ عُمَرُ وَاللّٰهِ مَا كَانَ يَقَعُ فِيْ نَفْسِيْ اِلَّا ذَاكَ وَلَيَبْعَثَنَّهُ اللّٰهُ فَلَيَقْطَعَنَّ اَيْدِيْ رِجَالٍ وَ اَرْجُلَهُمْ فَجَاءَ اَبُوْ بَكْرٍ فَكَشَفَ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَبَّلَهُ قَالَ بِاَبِيْ اَنْتَ وَ اُمِّيْ طِبْتَ حَيًّا وَّ مَيِّتًا وَّالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَا يُذِيْقُكَ اللّٰهُ الْمَوْتَتَيْنِ اَبَدًا ثُمَّ خَرَجَ فَقَالَ اَيُّهَا الْحَالِفُ عَلٰى رِسْلِكَ فَلَمَّا تَكَلَّمَ اَبُوْ بَكْرٍ جَلَسَ عُمَرُ فَحَمِدَ اللّٰهَ اَبُوْ بَكْرٍ وَ اَثْنٰى عَلَيْهِ وَ قَالَ اَلَا مَنْ كَانَ يَعْبُدُ مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاِنَّ مُحَمَّدًا قَدْ مَاتَ وَمَنْ كَانَ يَعْبُدُ اللّٰهَ فَاِنَّ اللّٰهَ حَيٌّ لَّا يَمُوْتُ وَ قَالَ اِنَّكَ مَيِّتٌ وَّ اِنَّهُمْ مَيِّتُوْنَ وَ قَالَ وَمَا مُحَمَّدٌ اِلَّا رَسُوْلٌ قَدْ

بي بي عائشےؓ تېر ذ رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه روايت كوي، كوم وخت چه حضور صلي الله عليه وسلّم وفات شو، نو ابوبكرؓ مقام سخ كښې وو، (اسمعيل وائي چه، سخ ذ مدينے بالائي حصه كښې يو مقام دے) عمرؓ دے وينا سره اودريدلو، په خدائے چه رسولِ الله صلي الله عليه وسلّم نه دے وفات شوے، بي بي عائشہؓ فرمائي، حضرت عمرؓ فرمائيل، په خدائے چه څما زړۀ كښې داوو، چه يقينًا خدائے تعالٰي به حضورؐ راپورته كړي او هغه به ذ څو خلقو لاس پښے كټ كړي. دے كښې حضرت ابوبكر صديقؓ راغے، هغه د رسول الله صلي الله عليه وسلّم ذ مخ مبارك نه كپړه اخوا كړه، حضورؐ ئے ښكل كړلو، اووے وئيل، څما مور پلار دے په تاسو قربان وي تاسوؐ ژوند او مرګ دواړو كښې پاكيزه ئے، په هغه ذات م دے قسم وي، چه ذ هغۀ قبضه كښې څما ساه ده، الله به په تاسوؐ دوه مرګۀ نۀ راولي. دے وئيلو سره بيا هغه بهر راووتلو او عمرؓ ته ئے اووے، اے قسم خوړونكيه، صبر كوه، څۀ وخت چه حضرت ابوبكرؓ خبرے شروع كړے، نو عمرؓ كيناست. بيا ابوبكرؓ ذ خدائے حمد و ثنا بيان كړه، او وے وئيل، كومو خلقو چه ذ محمد صلي الله عليه وسلّم عبادت كولو، نو هغوي ته دے معلومه وي، چه حضورؐ وفات شولو، او څوك چه ذ الله تعالي عبادت كوي، نو هغوي دے مطمئن اوسي چه ذ هغوي خدائے ژوندے دے، هغۀ له هيڅ كله مرګ نۀ راځي، او د خدائے ارشاد، چه يقينًا اے پيغمبره ته به هم مرے، او دا ټول به هم مري او ارشاد دے، او محمد صلي الله عليه وسلّم خو يو رسول دے، ذ دوي نه

خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ اَفَاِنْ مَّاتَ اَوْ قُتِلَ انْقَلَبْتُمْ عَلٰى اَعْقَابِكُمْ وَمَنْ يَّنْقَلِبْ عَلٰى عَقِبَيْهِ فَلَنْ يَّضُرَّ اللّٰهَ شَيْئًا وَّ سَيَجْزِى اللّٰهُ الشّٰكِرِيْنَ قَالَ فَنَشَجَ النَّاسُ يَبْكُوْنَ قَالَ وَاجْتَمَعَتِ الْاَنْصَارُ اِلٰى سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ فِىْ سَقِيْفَةِ بَنِىْ سَاعِدَةَ فَقَالُوْا مِنَّا اَمِيْرٌ وَّ مِنْكُمْ اَمِيْرٌ فَذَهَبَ اِلَيْهِمْ اَبُوْبَكْرٍؓ وَعُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِؓ وَ اَبُوْ عُبَيْدَةَ ابْنُ الْجَرَّاحِ فَذَهَبَ عُمَرُ يَتَكَلَّمُ فَاَسْكَتَهُ اَبُوْبَكْرٍؓ وَ كَانَ عُمَرُ يَقُوْلُ وَاللّٰهِ مَا اَرَدْتُ بِذٰلِكَ اِلَّا اَنِّىْ قَدْ هَيَّاْتُ كَلَامًا قَدْ اَعْجَبَنِىْ خَشِيْتُ اَنْ لَّا يَبْلُغَهُ اَبُوْبَكْرٍ ثُمَّ تَكَلَّمَ اَبُوْبَكْرٍؓ فَتَكَلَّمَ اَبْلَغَ النَّاسِ فَقَالَ فِىْ كَلَامِهٖ نَحْنُ الْاُمَرَآءُ وَ اَنْتُمُ الْوُزَرَآءُ فَقَالَ حُبَابُ بْنُ الْمُنْذِرِ لَا وَاللّٰهِ لَا نَفْعَلُ مِنَّا اَمِيْرٌ وَّ مِنْكُمْ اَمِيْرٌ فَقَالَ اَبُوْ بَكْرٍؓ لَا وَلٰكِنَّ نَحْنُ الْاُمَرَآءُ وَ اَنْتُمُ الْوُزَرَآءُ هُمْ اَوْسَطُ الْعَرَبِ دَارًا وَّ اَعْرَبُهُمْ اَحْسَابًا فَبَايِعُوْا عُمَرَؓ اَوْ اَبَا عُبَيْدَةَ فَقَالَ عُمَرُ بَلْ نُبَايِعُكَ اَنْتَ فَاَنْتَ سَيِّدُنَا وَ خَيْرُنَا وَ اَحَبُّنَا اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

مخکښې هم ډیر رسولان تیر شوي دي. که هغه مړ شي یا قتل شي، نو آیا تاسو به مرتد کیږئ او کوم سړے چه مرتد شي، نو هغه خدائے تعالٰی ته هیڅ نقصان نشي رسولے، او الله تعالٰی به شکر گزارو بندیانو له (ښه) بدله ورکړي دے آوریدو سره دا خلق بے اختیاره په ژړا شو (دَ راوي بیان دے) چه سقیفه بني ساعده کښې انصار، حضرت سعد بن عبادهؓ سره جمع شو، اوونیلے، یو امیر دے مونږ کښې وي، او یو دے تاسو کښې وي. بیا حضرت ابوبکرؓ او عمرؓ بن خطاب او ابو عبیده بن جراح، حضرت سعد له ورغلل، حضرت عمرؓ خبرے کول غوښتل. لیکن حضرت ابوبکرؓ هغه منع کړلو، حضرت عمرؓ فرمائي، په خدائے چه ما دا اراده کړے وه، ما یوه داسے خبره سوچ کړے وه، چه ځما په نزد ډیره ښهٔ ده. ما سره دَ دے خبرے ویره وه، چه هغے ته ابوبکرؓ اونهٔ رسي، لیکن ابوبکرؓ داسے خبرے اوکړے، لکه چهٔ یو ډیر لوئے فصیح او بلیغ سړے خبرے کوي، هغه خپل تقریر کښې بیان اوکهٔ، مونږ خلق به امیر جوړ شو، او تاسو به وزیران ئے. په دے حباب بن منذر اووے، چه نه په خدائے چه، مونږ داسے نهٔ کوو، بلکه یو امیر ځمونږ نه جوړ کړئے، او یو امیر دے تاسو نه مقرر کړے شي. حضرت ابوبکرؓ اوفرمائیل، نه، بلکه مونږ به امیر او صدر جوړیږو، او تاسو به وزیران، ځکه چه قریش په اعتبار دَ مکان ټولو عربو کښې اعلٰی او برتر او دَ فضائل د لحاظ نه لوئے او بزرگ تر دي، نو تاسو عمرؓ یا ابو عبیده بن جراحؓ نه بیعت اوکړئے، حضرت عمرؓ اووے، جي نه، مونږ خو تاسو نه بیعت کوو، تاسو ځمونږ سردار، مونږ ټولو کښې

عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَأَخَذَ عُمَرُ بِیَدِهٖ فَبَایَعَهٗ وَ بَایَعَهُ النَّاسُ فَقَالَ قَآئِلٌ قَتَلْتُمْ سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ فَقَالَ عُمَرُ قَتَلَهُ اللّٰهُ وَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَالِمٍ عَنِ الزُّبَیْدِیِّ قَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ الْقَاسِمِ اَخْبَرَنِی الْقَاسِمُ اَنَّ عَآئِشَةَ قَالَتْ شَخَصَ بَصَرُ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ فِی الرَّفِیْقِ الْاَعْلٰی ثَلٰثًا وَ قَصَّ الْحَدِیْثَ قَالَتْ فَمَا کَانَتْ مِنْ خُطْبَتِهِمَا مِنْ خُطْبَةٍ اِلَّا نَفَعَ اللّٰهُ بِهَا لَقَدْ خَوَّفَ عُمَرُ النَّاسَ وَ اَنَّ فِیْهِمْ نِفَاقًا فَرَدَّهُمُ اللّٰهُ بِذٰلِكَ ثُمَّ لَقَدْ بَصَّرَ اَبُوْبَکْرٍ النَّاسَ الْهُدٰی وَ عَرَّفَهُمُ الْحَقَّ الَّذِیْ عَلَیْهِمْ وَ خَرَجُوْا بِهٖ یَتْلُوْنَ وَمَا مُحَمَّدٌ اِلَّا رَسُوْلٌ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ اِلَی الشّٰکِرِیْنَ..

بهتر او مونږ ټولو نه زیات د رسول الله صلی الله علیه وسلّم محبوب ئے. حضرت عمرؓ د حضرت ابوبکرؓ لاس اونیولو، او د هغه نه ئے بیعت اوکړه. په دې یو وېونکې اووے، تاسو خو سعد بن عباده قتل که. حضرت عمرؓ اووے، خدائے هغه قتل کړے دے. د عبدالله بن سالم، زبیدي، عبدالرحمن بن قاسم، قاسم، بي بي عائشےؓ یو بل حدیث کښې راځي، هغې اووے، د رسول الله صلی الله علیه وسلّم د رحلت (وفات) پهوخت سترګې پورته اوچتے شوے او حضورؐ درے ځله اوفرمائیل: فی الرفیق الاعلیٰ: یعني رفیق اعلیٰ (خدائے تعالیٰ) سره یوځائے کیدل غواړم، او پوره حدیث ئے بیان که، بي بي عائشهؓ فرمائي، حضرت ابوبکرؓ او حضرت عمرؓ چه کوم تقریر اوکړ، دے سره الله تعالیٰ ډیره نفع اورسوله، حضرت عمرؓ خلق د الله تعالیٰ د نافرماني نه اویرول، هغوي کښې چه کوم نفاق وو، خدائے تعالیٰ د عمرؓ په وجه لرې کړ، بیا حضرت ابوبکرؓ خلقو ته د هدایت لار اوښودله، او کوم حق چه په هغوي وو، هغه ئے هغوي ته اوښودلو، بیا خلق د دے آیت تلاوت سره بهر را اووتل: وَمَا مُحَمَّدٌ اِلَّا رَسُوْلٌ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ: الشاکرین پورے.

۱۷۸: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ کَثِیْرٍ اَخْبَرَنَا سُفْیَانُ حَدَّثَنَا جَامِعُ بْنُ اَبِیْ رَاشِدٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ یَعْلٰی عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْحَنَفِیَّةِ قَالَ قُلْتُ لِاَبِیْ اَیُّ النَّاسِ خَیْرٌ بَعْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَبُوْ بَکْرٍ قُلْتُ ثُمَّ مَنْ قَالَ ثُمَّ عُمَرُ وَ خَشِیْتُ اَنْ یَقُوْلَ

۱۷۸: محمد. سفیان. جامع. ابو یعلیٰ. حضرت محمد بن حنفیهؒ نه روایت کوي، هغهٔ اووے، ما د خپل پلار (حضرت عليؓ) نه تپوس اوکهٔ، رسول الله صلي الله علیه وسلّم نه پس د ټولو نه بهتر څوک دے، هغهٔ اوفرمائیل، ابوبکرؓ. محمد بن حنفیه بیان کوي، بیا ما اووے، د هغهٔ نه پس څوک دے، وے فرمائیل عمرؓ، نو زهٔ اویریدم، چه اوس به د عثمانؓ نوم اخلي، نو ما په دے وجه

عُثْمَانُ قُلْتُ ثُمَّ اَنْتَ قَالَ مَا اَنَا اِلَّا رَجُلٌ مِّنَ الْمُسْلِمِيْنَ.

اووے، چه بيا تاسو، نو هغهٔ اوفرمائيل، زهٔ خو مسلمانانو كښې يو مسلمان يم.

۸۷۲: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ مَالِكٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْقَاسِمِ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَآئِشَةَ اَنَّهَا قَالَتْ خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ بَعْضِ اَسْفَارِهٖ حَتّٰى اِذَا كُنَّا بِالْبَيْدَآءِ اَوْ بِذَاتِ الْجَيْشِ اِنْقَطَعَ عِقْدٌ لِّيْ فَاَقَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى الْتِمَاسِهٖ وَ اَقَامَ النَّاسُ مَعَهٗ وَلَيْسُوْا عَلٰى مَآءٍ وَّ لَيْسَ مَعَهُمْ مَّآءٌ فَاَتَى النَّاسُ اَبَا بَكْرٍ فَقَالُوْا اَلَا تَرٰى مَا صَنَعَتْ عَآئِشَةُ اَقَامَتْ بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ بِالنَّاسِ مَعَهٗ وَلَيْسُوْا عَلٰى مَآءٍ وَّ لَيْسَ مَعَهُمْ مَآءٌ فَجَآءَ اَبُوْبَكْرٍ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاضِعٌ رَاْسَهٗ عَلٰى فَخِذِيْ قَدْ نَامَ فَقَالَ حَبَسْتِ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالنَّاسُ وَلَيْسُوْا عَلٰى مَاءٍ وَّ لَيْسَ مَعَهُمْ مَآءٌ قَالَتْ فَعَاتَبَنِيْ وَ قَالَ مَاشَآءَ اللّٰهُ اَنْ يَّقُوْلَ وَ جَعَلَ يَطْعَنُ بِيَدِهٖ فِيْ خَاصِرَتِيْ فَلَا يَمْنَعُنِيْ مِنَ التَّحَرُّكِ اِلَّا مَكَانُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى فَخِذِيْ فَنَامَ

۸۷۲: قتيبه بن سعيد. مالک. عبدالرحمن بن قاسم. قاسم. بي بي عائشےؓ نه روايت کوي، هغه فرمائي، مونږ يو سفر کښې رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره ملګرے وو. کوم وخت چه مونږ بيداء يا ذات الجيش ته اورسيدو، نو خما يو هار ورک شولو، رسول الله صلي الله عليه وسلّم ذَ هغے ذَ تلاش ذَ پاره هلته قيام اوْفرمائيلو. خلق هم حضور سره ايسار شول. مونږ چه کوم مقام کښې ايسار وو، هغے خائے کښې اُوبه نهٔ وے، او مونږ خلقو کښې چاسره اُوبه نهٔ وے، نو خلق راغلل، او ابوبکرؓ ته ئے اووے، آيا تاسو نه وينئے، عائشےؓ څهٔ څهٔ اوکړل، رسول الله صلي الله عليه وسلّم او خلق ئے ايسار کړل، حالانکه هغه خلق نهٔ اُوبو سره ايسار شولو، او نه هغوي سره اُوبه شته، نو ابوبکرؓ مونږ له راغے، هغه وخت رسول الله صلي الله عليه وسلّم خپل سر مبارک خما (عائشےؓ) په پتون ايښے وو، ذَ آرام خوب ئے کولو، هغهٔ اوفرمائيل: تا رسول الله صلي الله عليه وسلّم او ټول خلق ايسار کړل، هغوي نهٔ ذَ اُوبو خائے سره ايسار شو، اونهٔ ورسره اُوبه شته. بي بي عائشهٔؓ فرمائي، بيا هغهٔ چه ماته څهٔ وئيلے، هغه ئے اووئے، او خپل لاس سره ئے زهٔ په تشي ذَ سوئيے په شان وهلم. زهٔ ذَ حرکت کولو نه صرف دے خبرے منع کړم، چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم خما په پتون اُودهٔ وو، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اُوده وو، تردے

رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى اَصْبَحَ عَلٰى غَيْرِ مَآءٍ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ اٰيَةَ التَّيَمُّمِ فَتَيَمَّمُوْا قَالَ اُسَيْدُ بْنُ الْحُضَيْرِ مَاهِيَ بِاَوَّلِ بَرَكَتِكُمْ يَا اٰلَ اَبِيْ بَكْرٍ فَقَالَتْ عَآئِشَةُ فَبَعَثْنَا الْبَعِيْرَ الَّذِيْ كُنْتُ عَلَيْهِ وَ وَجَدْنَا الْعِقْدَ تَحْتَهُ.

چه صبا شو، او اوبه نه وې، په دې وجه خدائیتعالي د تیمم آیت نازل کړلو. او خلقو تیمم اوکړه، نو اسید بن حضیر اووې، چه اې آل ابي بکر، دا ستاسو ړمبنې برکت نۀ دې (مخکښې هم برکتونه نازل شوې دي) بي بي عائشهؓ فرمائي، بیا مونږ هغه اُوښ چه په هغې زۀ سوره (سوار) ووم، پاسولو، نو هغه هار د هغې لاندې بیامندې شو.

۸۷۳: حَدَّثَنَا اٰدَمُ بْنُ اَبِيْ اِيَاسٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْاَعْمَشِ قَالَ سَمِعْتُ ذَكْوَانَ يُحَدِّثُ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّؓ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَسُبُّوْا اَصْحَابِيْ فَلَوْ اَنَّ اَحَدَكُمْ اَنْفَقَ مِثْلَ اُحُدٍ ذَهَبًا مَا بَلَغَ مُدَّ اَحَدِهِمْ وَلَا نَصِيْفَهُ تَابَعَهُ جَرِيْرٌ وَّ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ دَاوٗدَ وَ اَبُوْ مُعَاوِيَةَ وَ مُحَاضِرٌ عَنِ الْاَعْمَشِ.

۸۷۳: آدم بن ابي ایاس. شعبه. اعمش. ذکوان. حضرت ابو سعید خدريؓ نه روایت کوي، رسالت مـآب صلي اللّٰه علیه وسلّم ارشاد اوفرمائیلو، خما اصحابوؓ ته بد مۀ وائې ځکه که تاسو کښې څوک د اُحد غر برابر سرۀ زر (سونا) د اللّٰه تبارک و تعالٰي په لار کښې خرچ کړي، نو خما د صحابي د یو مُد (سیر قدرې وزن) یا د نیم (د ثواب) برابر هم ثواب ته نشي رسیدې.

۸۷۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مِسْكِيْنٍ اَبُو الْحَسَنِ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَسَّانَ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ عَنْ شَرِيْكِ بْنِ اَبِيْ نَمِرٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ مُوْسَى الْاَشْعَرِيُّ اَنَّهُ تَوَضَّأَ فِيْ بَيْتِهِ ثُمَّ خَرَجَ فَقُلْتُ لَاَلْزَمَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَاَكُوْنَنَّ مَعَهُ يَوْمِيْ هٰذَا قَالَ فَجَآءَ الْمَسْجِدَ فَسَاَلَ عَنِ النَّبِيِّ

۸۷۴: محمد. یحیٰي. سلیمان. شریک. سعید بن مسیب. حضرت ابو موسٰي اشعريؓ نه روایت کوي، هغه خپل کور کښې اودس اوکۀ، بهر راووتلو، او زړۀ کښې ئې اووې نن به زۀ د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم خدمت کښې اوسم، او حضورؐ سره به یم، هغه فرمائي، بیا زۀ جمات ته لاړم، او د رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم تپوس مې اوکه، خلقو راته اووې، چه حضور هغې خائې ته تشریف اُوړې دې، زۀ هم د حضورؐ د قدم مبارک په نښه روان شوم، تردې چه چاهِ (کوهي) اریس

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوْا خَرَجَ وَوَجَّهَ هٰهُنَا خَرَجْتُ عَلٰى اِثْرِهٖ اَسْاَلُ عَنْهُ حَتّٰى دَخَلَ بِئْرَ اَرِيْسٍ فَجَلَسْتُ عِنْدَ الْبَابِ وَ بَابُهَا مِنْ جَرِيْدٍ حَتّٰى قَضٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَاجَتَهٗ فَتَوَضَّاَ فَقُمْتُ اِلَيْهِ فَاِذَا جَالِسٌ عَلٰى بِئْرِ اَرِيْسٍ وَ تَوَسَّطَ قُفَّهَا وَ كَشَفَ عَنْ سَاقَيْهِ وَ دَلَّاهُمَا فِي الْبِئْرِ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ ثُمَّ انْصَرَفْتُ فَجَلَسْتُ عِنْدَ الْبَابِ فَقُلْتُ لَاَكُوْنَنَّ بَوَّابَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْيَوْمَ فَجَاءَ اَبُوْبَكْرٍؓ فَدَفَعَ الْبَابَ فَقُلْتُ مَنْ هٰذَا فَقَالَ اَبُوْ بَكْرٍؓ فَقُلْتُ عَلٰى رِسْلِكَ ثُمَّ ذَهَبْتُ فَقُلْتُ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ هٰذَا اَبُوْ بَكْرٍؓ يَسْتَاْذِنُ فَقَالَ ائْذَنْ لَهٗ وَ بَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ فَاَقْبَلْتُ حَتّٰى قُلْتُ لِاَبِيْ بَكْرٍ اُدْخُلْ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُبَشِّرُكَ بِالْجَنَّةِ فَدَخَلَ اَبُوْ بَكْرٍ فَجَلَسَ عَنْ يَمِيْنِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَهٗ فِي الْقُفِّ وَ دَلّٰى رِجْلَيْهِ فِي الْبِئْرِ كَمَا صَنَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ كَشَفَ عَنْ سَاقَيْهِ ثُمَّ رَجَعْتُ فَجَلَسْتُ وَقَدْ تَرَكْتُ اَخِيْ يَتَوَضَّاُ وَ يَلْحَقُنِيْ فَقُلْتُ اِنْ يُّرِدِ اللّٰهُ بِفُلَانٍ خَيْرًا يُّرِيْدُ اَخَاهُ يَاْتِ بِهٖ فَاِذَا

تـه اورسيـدم، او پـه دروازه كيناستم، او ذ هغې دروازه ذ قـجورو ذ څانګو وه حتې چه نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم ذ قـضـائے حاجت نه فارغ شولو، نو حضورؐ اودس او كړلو، بيـا زهٔ حضورؐ له ورغلم، نو حضورؐ بئر اريس (ذ يو كوهي نـوم دے) بـانـدے تشـريف فـرمـا وو، حضورؐ ذ هغې ذ ډنګـاچـې پـه مينـځ نـاست وو. او خپلې پنډئې (وړې) مبارکې ئې ښكاره كړے وې او كوهي كښې ئې آويزانده كـړے وې. ما سلام اوكهٔ، او زړه كښې م اووے، چه نن به ذ حـضـور صلي اللّٰه عليه وسلّم دربان (څوكيدار) يم، بيا حـضـرت ابوبكرؓ راغے، او هغهٔ دروازه اُوټكوله، ما تپوس اوكـهٔ، څوک دے، هغهٔ اووے، ابوبكر، ما اووے، لږ صبر اوكـه، بيا زهٔ حضورؐ له ورغلم، او عرض م اوكهٔ، يا رسول اللّٰه، ابوبكر اجازت غواړي، وے فرمائيل، هغهٔ له اجازت وركـه، او ذ جـنـت بشـارت (زيـرے) وركړه، زهٔ ورغلم، ابـوبـكـرؓ تـه م اووے، دننه راځه، او رسول اللّٰه صلي اللّٰه عـليـه وسـلّم تـاسوته ذ جنت خوشخبري دركوي (دلته خـان ذ پـاره هم دغه دُعا كوو) نو ابوبكرؓ دننه راغے، او ذ رسـول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ښي طرف ته په ډنګاچه كيـنـاسـتـلـو، او هـغـه هـم خپلې دواړه پښې كوهي كښې آويـزانـدے كـړے، او خپلې پنډئې څرګندے كړے. بيا زهٔ واپـس شـوم، اوبه خپل ځائے كيناستم (كوم ځائے چه يو خـادم يـا دربـان كيني) ما خپل ورور كور كښې په اودس كـولـو پـريـښـے وو، هغه ماسره راتلونكے وو، ما خپل زړهٔ كـښې اووے، اللّٰه دے فلاني سړي (يعني خما ورور) سره ښـهٔ اوكـړي، چـه هـغـه هـم دلتـه راشـي، ناساپه يو سړي دروازهٔ اوو هـلـه، ما اووے، څوک دے، هغهٔ اووے، عمرؓ،

اِنْسَانٌ يُحَرِّكُ الْبَابَ فَقُلْتُ مَنْ هٰذَا فَقَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ فَقُلْتُ عَلٰى رِسْلِكَ ثُمَّ جِئْتُ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَقُلْتُ هٰذَا عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ يَسْتَاْذِنُ فَقَالَ ائْذَنْ لَّهٗ وَ بَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ فَجِئْتُ فَقُلْتُ ادْخُلْ وَ بَشَّرَكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْجَنَّةِ فَدَخَلَ فَجَلَسَ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْقُفِّ عَنْ يَّسَارِهٖ وَ دَلّٰى رِجْلَيْهِ فِي الْبِئْرِ ثُمَّ رَجَعْتُ فَجَلَسْتُ فَقُلْتُ اِنْ يُّرِدِ اللّٰهُ لِفُلَانٍ خَيْرًا يَّاْتِ بِهٖ فَجَآءَ اِنْسَانٌ يُحَرِّكُ الْبَابَ فَقُلْتُ مَنْ هٰذَا فَقَالَ عُثْمَانُ بْنُ عَفَّانٍ فَقُلْتُ عَلٰى رِسْلِكَ فَجِئْتُ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرْتُهٗ فَقَالَ ائْذَنْ لَهٗ وَ بَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ عَلٰى بَلْوٰى تُصِيْبُهٗ فَجِئْتُهٗ فَقُلْتُ لَهٗ اُدْخُلْ وَ بَشَّرَكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى بَلْوٰى تُصِيْبُكَ فَدَخَلَ فَوَجَدَ الْقُفَّ قَدْ مُلِئَ فَجَلَسَ وُجَاهَهٗ مِنَ الشِّقِّ الْاٰخَرِ قَالَ شَرِيْكٌ قَالَ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ فَاَوَّلْتُهَا قُبُوْرَهُمْ.

ما اووے، لږ صبر اوکړه، زۀ دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خدمت کښې حاضر شوم، سلام نه پس مې عرض اوکۀ، عمر بن خطاب راغلے دے، اجازت غواړي حضورؐ اوفرمائيل، اجازت ورکړه، او هغۀ له هم دَ جنت زيرے ورکه. زۀ حضرت عمرؓ له ورغلم، ورته مې اووے، دننه راځه، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم تاسو ته دَ جنت زيرے درکړے دے، هغه دننه راغے، او رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم سره په ډُنکا چه ګس طرف ته کيناستلو، او هغۀ هم خپلے دواړه پښے کوهي کښې آويزانډے کړے. بيا زۀ واپس شوم او په خپل ځائے کيناستم، بيا ما اووے، کاش دے فلاني سړي (يعني خما ورور) سره ښه اوکړه، که هغه هم دلته راشي، نو يو سړے راغے، دروازه ئے اوټکوله، ما تپوس اوکۀ، څوک دے، هغۀ اووے، عثمان بن عفان، ما اووے، لږ صبر اوکړے، زۀ دننه راغلم، رسول اکرم صلي اللّٰه عليه وسلّم له مې اطلاع ورکړه، وے فرمائيل، هغۀ ته دننه دَ راتلو اجازت ورکړه، او دَ جنت خوشخبري ورکړه، يو مصيبت سره چه هغه ته به پيښيږي، زۀ هغۀ له ورغلم، ما ورته اووے، دننه راځه، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم تاسو ته دَ جنت زيرے درکړے دے، يو مصيبت چه تاسو ته به پيښيږي. بيا هغه دننه راغے، او او هغه ډُنکا چه ئے ډکه اُوليده، نو هغے ته مخامخ بل طرف ته کيناستلو (شريک دَ حديث راوي) وائي، چه سعيد بن مسيب وائي، ما دَ دے تاويل دَ هغوي قبرونو سره کړے دے.

۸۷۵: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ سَعِيْدٍ عَنْ

۸۷۵: محمد بن بشار. يحيي. سعيد. قتاده. حضرت انس بن مالکؓ نه روايت کوي، يوه ورځ نبي

قَتَادَةَ اَنَّ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ حَدَّثَهُمْ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَعِدَ اُحُدًا وَ اَبُوْبَكْرٍ وَّ عُمَرُ وَ عُثْمَانُ فَرَجَفَ بِهِمْ فَقَالَ اثْبُتْ اُحُدُ فَاِنَّمَا عَلَيْكَ نَبِيٌّ وَ صِدِّيْقٌ وَ شَهِيْدَانِ.

كريم صلي اللّٰه عليه وسلّم او حضورؐ سره ملګري حضرات ابوبكرؓ، عمرؓ، عثمانؓ كوه اُحد ته اوختل. ناساپه اُحد غر (دَ خوشحالي دَ جوش نه) په زنګيدو شو. حضورؐ ورته اوفرمائيل اُحده اودريږه، ستا دَ پاسه يو نبي دے، يو صديق دے او دوه شهيدان دي.

۸۷۶: حَدَّثَنِيْ اَحْمَدُ بْنُ سَعِيْدٍ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيْرٍ حَدَّثَنَا صَخْرٌ عَنْ نَافِعٍ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ ابْنَ عُمَرَؓ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَمَا اَنَا عَلٰى بِئْرٍ اَنْزِعُ مِنْهَا جَآءَنِيْ اَبُوْبَكْرٍ وَّ عُمَرُ فَاَخَذَ اَبُوْ بَكْرٍ الدَّلْوَ فَنَزَعَ ذَنُوْبًا اَوْ ذَنُوْبَيْنِ وَ فِيْ نَزْعِهٖ ضُعْفٌ وَّاللّٰهُ يَغْفِرُ لَهٗ ثُمَّ اَخَذَهَا ابْنُ الْخَطَّابِ مِنْ يَدِ اَبِيْ بَكْرٍؓ فَاسْتَحَالَتْ فِيْ يَدِهٖ غَرْبًا فَلَمْ اَرَ عَبْقَرِيًّا مِّنَ النَّاسِ يَفْرِيْ فَرِيَهٗ فَنَزَعَ حَتّٰى ضَرَبَ النَّاسُ بِعَطَنٍ قَالَ وَهْبٌ الْعَطَنُ مَبْرَكُ الْاِبِلِ يَقُوْلُ حَتّٰى رُوِيَتِ الْاِبِلُ فَاَنَاخَتْ.

۸۷۶: احمد. وهب. صخر. نافع. حضرت عبداللّٰه بن عمرؓ نه روايت كوي، هغه اووے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل (ما خوب اوليد) چه زهٔ دَ يو كوهي دَ پاسه يم، او دَ هغے نه اوبه راوكاږم، ابوبكرؓ او عمرؓ ماله راغلل، ابوبكرؓ بورقه واخسته، هغهٔ يو دوه بورقے اُوبه راوښكلے، دَ هغه اوبه روښكلو كښې كمزوري ښكاريدله، خدائے تعالٰي دے معاف كړي، بيا عمرؓ بن خطاب دَ ابوبكرؓ دَ لاس نه هغه بورقه واخسته، چه دَ هغهٔ لاس كښې چرس (لويه بورقه چه پتني پرے اُوبه كولے شي) جوړه شوه، نو ما هيڅ ځوان قوي او مضبوط نهٔ دے ليدلے، چه دومره قوت سره كار كوي، هغه دومره اُوبه راوښكلے چه ټول خلق ئے پرے ماړهٔ كړل. دَ اُوبو دَ كافي كيدو په وجه خلقو هغه ځائے دَ اُوښانو دَ ناستے ځائے جوړ كړلو.

۸۷۷: حَدَّثَنِيْ الْوَلِيْدُ بْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا عِيْسَى بْنُ يُوْنُسَ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ سَعِيْدِ بْنِ اَبِي الْحُسَيْنِ الْمَكِّيُّ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ اِنِّيْ لَوَاقِفٌ فِيْ قَوْمٍ فَدَعَوا اللّٰهَ لِعُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ وَقَدْ وُضِعَ عَلٰى سَرِيْرِهٖ اِذَا رَجُلٌ مِّنْ

۸۷۷: وليد بن صالح. عيسٰي بن يونس. عمر بن سعيد بن ابو حسين مكي. ابن ابي مليكه. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي، هغهٔ اووے، زهٔ څهٔ خلقو كښې ولاړ ووم، چه هغوي حضرت عمرؓ دَ پاره دَ خدائے تعالٰي نه دُعا اُوغښتله، او دَ هغهٔ جنازه په تابوت ايښے شوے وه (تابوت: دَ مړي صندوق. جنازه) ناساپه يو سړے شا دَ شا طرف نه راغے، هغهٔ خپل څټ په اوږه لاس كيښودلو،

خَـلْفِيْ قَدْ وَضَعَ مِرْفِقَهُ عَلٰى مَنْكِبِيْ يَـقُـوْلُ رَحِـمَكَ اللّٰهُ اِنْ كُنْتُ لَاَرْجُوْا اَنْ يَّجْـعَـلَكَ الـلّٰهُ مَعَ صَاحِبَيْكَ لِاَنِّيْ كَثِيْـرًا مَـا كُـنْـتُ اَسْـمَعُ رَسُوْلَ اللّٰـهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ كُنْتُ وَ اَبُوْ بَكْرٍ وَ عُمَرُ وَ فَعَلْتُ وَ اَبُوْ بَكْرٍ وَ عُـمَـرُ وَانْطَلَقْتُ وَ اَبُوْ بَكْرٍ وَّ عُمَرُ فَاِنْ كُـنْـتُ لَاَرْجُوَا اَنْ يَّجْعَلَكَ اللّٰهُ مَعَهُمَا فَالْتَفَتُّ فَاِذَا هُوَ عَلِيُّ ابْنُ اَبِيْ طَالِبٍ.

وئيلـے (اے عـمـرؓ) الـلّٰه تعالٰي دے په تا رحم اوكړي' زهٔ اميـد كـوم چه خدائے تعالٰي به تا خپلو ملګرو سره ساتي خـكـه چـه مـا اكثـر دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه آوريـدلے دي' چـه زهٔ' ابـوبـكرؓ او عمرؓ وو' ما ابوبكرؓ او عـمـرؓ فـلانـے كـار اوكۀ. زهٔ' ابوبكر' عمر فلاني خائے ته لاړلـو' بيشـكـه ځـما پوخ اُميد وو' چه خدائے تعالٰي به تا دے دواړو حـضـراتـو سـره يـوځـائـے كـړي. ما چه شاته اوكتـل' نـو هـغـه عـلـيؓ بن ابي طالب وو' چه هغه ځما په اُوږه لاس ايښے وو.

۸۷۸: حَـدَّثَـنِـيْ مُـحَـمَّدُ بْنُ يَـزِيْـدَ الْـكُـوْفِـيُّ حَـدَّثَـنَا الْوَلِيْدُ عَنِ الْاَوْزَاعِيِّ عَـنْ يَّحْيَى بْنِ اَبِيْ كَثِيْرٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اِبْرٰهِيْمَ عَنْ عُرْوَةَ ابْنِ الـزُّبَيْرِ قَالَ سَاَلْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَمْرٍو عَـنْ اَشَدِّ مَا صَنَعَ الْمُشْرِكُوْنَ بِرَسُوْلِ صَـلَّـى الـلّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ رَاَيْتُ عُـقْبَةَ ابْنِ اَبِيْ مُعَيْطٍ جَآءَ اِلَى النَّبِيِّ صَـلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يُصَلِّيْ فَـوَضَـعَ رِدَآءَهُ فِـيْ عُـنُـقِهٖ فَخَنَقَهُ بِهٖ خَـنَـقًـا شَـدِيْـدًا فَجَآءَ اَبُوْ بَكْرٍؓ حَتّٰى دَفَـعَـهُ عَـنْـهُ فَقَالَ اَتَقْتُلُوْنَ رَجُلًا اَنْ يَّـقُـوْلَ رَبِّـيَ الـلّٰـهُ وَقَـدْ جَـآءَكُمْ بِالْبَيِّنٰتِ مِنْ رَّبِّكُمْ.

۸۷۸: مـحـمـد بـن يـزيـد الـكـوفـي. اوزاعي. يـحيٰي بـن ابـي كثيـر. محمّد بن ابراهيم. عروه بن زبير نـه روايـت كـوي' عـروه وائـي' مـا دَ عبـداللّٰه بن عمرو نـه تپـوس اوكـۀ' هـغـه سـخـت تـرينه خبره كومه يوه وه' چـه مشـركـينـو رسـول الـلّٰـه صـلـي الـلّٰـه عليـه وسلّم سـره اوكـړه' هـغـه اوفـرمـائيـل مـا عقبـه بن ابي معيط اوليـد' چـه هـغـه رسـول الـلّٰـه صـلـي الـلّٰه عليه وسلّم له راغـے' حـضـورؐ دغه وخت مونځ كولو' هغۀ خپل څادر دَ حـضـورؐ په ګردن كښې واچولو' او دَ حضورؐ غاړه ئے ډير زور سـره زورل شـروع كړل. دے كښې حضرت ابوبكرؓ راغـے' او هغه ئے دَ حضورؐ نه ډډے ته كړلو' او وئيلے' آيا تـهٔ داسـے سـړے وژنے' چه وائي ځما رب اللّٰه تعالٰي دے' او تـاسـو تـه ئـے سـتـاسـو دَ رب دَ طرف نـه معجزے هم راوړے دي.

باب ۳۸۸: عُمَرُ ابْنَ الْخَطَّابِ اَبِيْ حَـفْـصِ الْقُرَشِيِّ الْعَدَوِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ.

بـــاب ۳۸۸: دَ حـضـــرت عـمـــرؓ بـن خـطـاب (قـرشـي' عـدوي' ابـو حـفـص) دَ فـضـائـلـو بيان.

۸۷۹: حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ الْمَاجِشُوْنَ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُنْكَدِرِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاَيْتُنِيْ دَخَلْتُ الْجَنَّةَ فَاِذَا اَنَا بِالرُّمَيْصَاءِ اِمْرَاَةِ اَبِيْ طَلْحَةَ وَ سَمِعْتُ خَشْفَةً فَقُلْتُ مَنْ هٰذَا فَقَالَ هٰذَا بِلَالٌ وَّ رَاَيْتُ قَصْرًا بِفِنَائِهٖ جَارِيَةٌ تَتَوَضَّأُ فَقُلْتُ لِمَنْ هٰذَا فَقَالُوْا لِعُمَرَ فَاَرَدْتُّ اَنْ اَدْخُلَهٗ فَاَنْظُرَ اِلَيْهِ فَذَكَرْتُ غَيْرَتَكَ فَقَالَ عُمَرُ بِاُمِّيْ وَ اَبِيْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَعَلَيْكَ اَغَارُ.

۸۷۹: حجاج. عبدالعزيز. محمد بن المنكدر. حضرت جابر بن عبداللهؓ نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل (شب معراج كښې) ما خان جنت ته تلونكے اوليد، نو ناساپه دَ ابو طلحه ښځه رميصاء، مِ اوليده. او ما دَ قدمونو آواز واوريدلو، ما تپوس اوكه. دا څوک دے، نو هغه اووے، دا حضرت بلالؓ دے. هلته ما يو محل هم اوليد، چه دَ هغے انګړ (صحن) كښې يوه پيغله ښځه ناسته وه، اودس ئے كولو. ما تپوس اوكه، دا دَ چا محل دے، يو سړي اووے، دَ عمرؓ بن خطاب، ما اوغښتل چه دننه ورشم، محل اوګورم، خو بيا ستا غيرت ماته راياد شو. حضرت عمرؓ عرض اوكه، خما مور پلار دے په تاسو قربان شي يا رسول اللّٰه، آيا زهٔ به ستاسوؓ په داخليدو غيرت كوم.

۸۸۰: حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ مَرْيَمَ اَخْبَرَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ بَيْنَا نَحْنُ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذْ قَالَ بَيْنَا اَنَا نَائِمٌ رَاَيْتُنِيْ فِي الْجَنَّةِ فَاِذَا اِمْرَاَةٌ تَتَوَضَّأُ اِلٰى جَانِبِ قَصْرٍ فَقُلْتُ لِمَنْ هٰذَا الْقَصْرُ قَالُوْا لِعُمَرَ فَذَكَرْتُ غَيْرَتَهٗ فَوَلَّيْتُ مُدْبِرًا فَبَكٰى وَ قَالَ اَعَلَيْكَ اَغَارُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ.

۸۸۰: سعيد بن ابي مريم. ليث. عقيل. ابن شهاب. سعيد بن مسيب. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي، هغهٔ اووے، مونږ رسالت مآب صلي الله عليه وسلّم سره يوځائے وو، حضورؐ اوفرمائيل، ما خوب كښې خان جنت كښې اوليد، هلته يوے ښځے دَ يو محل كُټ كښې اودس كولو، ما تپوس اوكه، دا دَ كوم سړي محل دے، نو دَ جنت خلقو اووے، دا دَ عمرؓ دے، نو دَ هغه غيرت ماته ياد شو، او زهٔ راواپس شوم، نو حضرت عمرؓ په ژړا شو اووے وئيل، يا رسول الله، آيا زهٔ به تاسو سره غيرت كوم.

۸۸۱: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الصَّلْتِ اَبُوْ جَعْفَرِ الْكُوْفِيُّ حَدَّثَنَا ابْنُ

۸۸۱: محمد ابن المبارک. يونس. زهري. حمزه نه بيان كوي، چه حمزه دَ خپل پلار حضرت عمر

الْمُبَارَكِ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ حَمْزَةُ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَا اَنَا نَائِمٌ شَرِبْتُ يَعْنِي اللَّبَنَ حَتّٰى اَنْظُرَ اِلَى الرِّيِّ يَجْرِيْ فِيْ ظُفُرِيْ اَوْ فِيْ اَظْفَارِيْ ثُمَّ نَاوَلْتُ عُمَرَ فَقَالُوْا فَمَا اَوَّلْتَهُ قَالَ الْعِلْمُ.

بن خطاب په ذريعه دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه روايت كوي، نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، زهٔ اُودهٔ ووم، چه ما خوب كښې پئے اوڅکل. بيا ما دَ پيؤ دَ سيرابئ حالت اوليد، چه دَ هغې اثر څما دَ نوكونو نه ظاهريدلو. بيا ما دَ پيالئے بچ شوے پئے عمرؓ له وركړل. خلقو تپوس اوكهٔ، ددے خوب تعبير تاسو څهٔ اوكړلو. وے فرمائيل، علم.

۸۸۲: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ نُمَيْرٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بِشْرٍ حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْبَكْرِ بْنُ سَالِمٍ عَنْ سَالِمٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اُرِيْتُ فِي الْمَنَامِ اَنِّيْ اَنْزِعُ بِدَلْوِ بَكْرَةٍ عَلٰى قَلِيْبٍ فَجَآءَ اَبُوْ بَكْرٍ فَنَزَعَ ذَنُوْبًا اَوْ ذَنُوْبَيْنِ نَزْعًا ضَعِيْفًا وَّاللّٰهُ يَغْفِرُ لَهٗ ثُمَّ جَآءَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ فَاسْتَحَالَتْ غَرْبًا فَلَمْ اَرَ عَبْقَرِيًّا يَفْرِيْ فَرِيَّهٗ حَتّٰى رَوِيَ النَّاسُ وَ ضَرَبُوْا بِعَطَنٍ قَالَ ابْنُ جُبَيْرٍ اَلْعَبْقَرِيُّ عِتَاقُ الزَّرَابِيِّ وَ قَالَ يَحْيَى الزَّرَابِيُّ الطَّنَافِسُ لَهَا خَمْلٌ رَقِيْقٌ مَبْثُوْثَةٌ كَثِيْرَةٌ.

۸۸۲: محمد بن عبدالله بن نمير. محمد بن بشير. عبيدالله. ابوبكر بن سالم. سالم. حضرت عبدالله بن عمرؓ نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل ما خوب كښې اوليدل، چه زهٔ په يو كوهي اودريدم، او دومره اُوبه مِ راوښكلے، څومره چه يوه اُوښه راوښكلے شي. بيا ابوبكر راغے، هغهٔ يوه يا دوه بورقے اُوبه راوښكلے، خو كمزورے طريقے سره، الله تعالٰي دے هغهٔ ته ښښنه اوكړي، دے نه پس عمرؓ بن خطاب راغے، نو دَ بورقے نه چرس (لويه بورقه) جوړه شوه. ما يو طاقتور مضبوط او قوي سړے نهٔ دے ليدلے، چه هغه دَ عمرؓ په شان كار كوي، تردے چه تمامي خلق (په اُوبو ماړهٔ) شو، او كيناستل.

۸۸۳: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، اَخْبَرَنِيْ عَبْدُ الْحَمِيْدِ اَنَّ

۸۸۳: علي. يعقوب. ابراهيم. صالح. ابن شهاب. عبدالحميد. حضرت سعد بن ابي وقاصؓ نه روايت كوي، هغه وائي عمرؓ بن خطاب دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم په

مُحَمَّدَ بْنَ سَعْدٍ اَخْبَرَهُ اَنَّ اَبَاهُ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَبْدِ الْحَمِيْدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اَبِيْ وَقَّاصٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ اسْتَأْذَنَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ عِنْدَهُ نِسْوَةٌ مِنْ قُرَيْشٍ يُكَلِّمْنَهُ وَ يَسْتَكْثِرْنَهُ عَالِيَةٍ اَصْوَاتُهُنَّ عَلٰى صَوْتِهِ فَلَمَّا اسْتَأْذَنَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ قُمْنَ فَبَادَرْنَ الْحِجَابَ فَاَذِنَ لَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَخَلَ عُمَرُ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَضْحَكُ فَقَالَ عُمَرُ اَضْحَكَ اللّٰهُ سِنَّكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَجِبْتُ مِنْ هٰؤُلَآءِ اللَّاتِيْ كُنَّ عِنْدِيْ فَلَمَّا سَمِعْنَ صَوْتَكَ ابْتَدَرْنَ الْحِجَابَ فَقَالَ عُمَرُ فَاَنْتَ اَحَقُّ اَنْ يَّهَبْنَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ثُمَّ قَالَ عُمَرُ يَا عَدُوَّاتِ اَنْفُسِهِنَّ اَتَهَبْنَنِيْ وَلَا تَهَبْنَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْنَ نَعَمْ اَنْتَ اَفَظُّ وَ اَغْلَظُ مِنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَيْهًا يَابْنَ

خدمت کښې حاضري اوکړه (یوه ورځ اجازت ئې طلب کړه) هغه وخت څه ښځې د قریشو رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم سره ناستې وې خبرې ئې کولې' او خبرو کښې د هغوي آوازونه په حضورؐ اوچتیدل. حضرت عمرؓ چه اجازت طلب کړه' او هغې ښځو د هغه آواز واوریدلو' نو پاسیدلې او پرده کښې شوې رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم عمرؓ له اجازت ورکړه هغه دننه راغې' او رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم ئې په مُسکنا اُولید' نو عرض ئې اوکړه یا رسول اللّٰه' خدائې تعالي دې ستاسو غاښونه همیشه اوخاندوي. دې وخت تاسو ولې مُسکا کوئې' حضورؐ ورته اوفرمائیل' دَدې ښځو په حالت تعجب دې ما سره ناستې وې شور ئې کولو' ستا آواز آوریدو سره پرده کښې شوې' (یعني پردې ته ننوتې) حضرت عمرؓ اووې' یا رسول اللّٰه' تاسو ددې خبرې زیات مستحق ئې' چه هغوي تاسوؐ نه اُویریږي' بیا حضرت عمرؓ هغه بیبیانې مخاطب کړې' ورته ئې اووې' اې دَ خپل ځان دشمنانو ښځو' آیا تاسو مانه ویریږې' او رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم نه' نهٔ ویریږې. هغوي اووې' او' تانه ځکه ویریږو' چه تهٔ دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم په نسبت دَ عادت سخت او سخت کو ئې. نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم حضرت عمرؓ ته اوفرمائیل' اې دَ خطاب ځویه' څهٔ بله خبره کوه (دوي پرېږده) خما دې په هغه ذات قسم وي' چه دَ هغه په قبضه

الْخَطَّابِ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ مَا لَقِيَكَ الشَّيْطٰنُ سَالِكًا فَجًّا قَطُّ اِلَّا سَلَكَ فَجًّا غَيْرَ فَجِّكَ.

کښې ځما ساه ده، کله چه یو لار کښې شیطان یو ځائے کیږي، نو هغه ستا لار پریږدي او په بله لار روان شي.

۸۸۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى يَحْيٰى عَنْ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا قَيْسٌ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ مَازِلْنَا اَعِزَّةً مُنْذُ اَسْلَمَ عُمَرُ.

۸۸۴: محمد. یحیي. اسماعیل. قیس. حضرت عبدالله بن مسعودؓ بیان کوي، هغهٔ اووے، ذ کوم وخت نه چه حضرت عمرؓ اسلام راوړے دے، ذ هغے وخت نه مونږ برابر کامیاب او غالب یو.

۸۸۵: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ سَعِيْدٍ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ اَنَّهٗ سَمِعَ ابْنَ عَبَّاسٍؓ يَقُوْلُ وُضِعَ عُمَرُ عَلٰى سَرِيْرِهٖ فَتَكَنَّفَهُ النَّاسُ يَدْعُوْنَ وَ يُصَلُّوْنَ قَبْلَ اَنْ يُّرْفَعَ وَ اَنَا فِيْهِمْ فَلَمْ يَرُعْنِيْ اِلَّا رَجُلٌ اَخَذَ مَنْكِبِيْ فَاِذَا عَلِيٌّ فَتَرَحَّمَ عَلٰى عُمَرَ وَ قَالَ مَا خَلَّفْتَ اَحَدًا اَحَبَّ اِلَيَّ اَنْ اَلْقَى اللّٰهَ بِمِثْلِ عَمَلِهٖ مِنْكَ وَ اَيْمُ اللّٰهِ اِنْ كُنْتُ لَاَظُنُّ اَنْ يَّجْعَلَكَ اللّٰهُ مَعَ صَاحِبَيْكَ وَ حَسِبْتُ اِنِّيْ كُنْتُ كَثِيْرًا اَسْمَعُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ ذَهَبْتُ اَنَا وَ اَبُوْ بَكْرٍ وَ عُمَرُ وَ وَ خَرَجْتُ اَنَا وَ اَبُوْ بَكْرٍ وَّ عُمَرُ.

۸۸۵: عبدان. عبدالله. عمر بن سعید. ابن ابي ملیکه. حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي، کوم وخت چه حضرت عمرؓ خپل تابوت (جنازه) باندے کیښودے شو، نو خلق ترے راچاپیره شو، هغے خلقو به دُعا کوله، او مونځ به ئے کولو، ذ دے نه مخکښې چه جنازه اوچته شي، زهٔ هم هغے خلقو کښې ووم، ناګهانه یو سړي ځما اوږه اونیوله، او هغه حضرت عليؓ وو، بیا هغه حضرت عمرؓ ذ پاره ذ رحمت دُعا اوکړله، او وئیلے، اے عمرؓ تا خان نه پس څوک داسے پرے نهٔ ښودلو، چه ذ عمل ذ اعتبار نه ماته ستا په شان محبوب وي، او په خدائے چه ما خیال کولو، چه خدائے تعالي به تا، ستا دواړو ملګرو سره یو ځائے کړي او زهٔ خیال کوم، چه ما اکثر رسول الله صلي الله علیه وسلم نه دا آوریدلے دي چه زهٔ ووم او ابوبکرؓ او عمرؓ، او زهٔ لاړم او ابوبکرؓ او عمرؓ. او زهٔ داخل شوم او ابوبکرؓ او عمرؓ (یعني حضورؐ به خپل هر کار او فعل کښې هغوي ځان سره شریکول).

۸۸۶: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ وَّ قَالَ لِيْ خَلِيْفَةُ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَوَآءٍ وَ

۸۸۶: مسدد. یزید بن زریع. خلیفه. محمد بن سوار. کهمس بن منهال. سعید. قتاده. حضرت انس بن مالکؓ نه روایت کوي،

كَهْمَسُ ابْنُ الْمِنْهَالِ قَالَا حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍؓ قَالَ صَعِدَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى اُحُدٍ وَّ مَعَهُ اَبُوْبَكْرٍ وَّ عُمَرُ وَ عُثْمَانُ فَرَجَفَ بِهِمْ فَضَرَبَهٗ بِرِجْلِهٖ قَالَ اثْبُتْ اُحُدُ فَمَا عَلَيْكَ اِلَّا نَبِيٌّ اَوْ صِدِّيْقٌ اَوْ شَهِيْدَانِ.

يوه ورځ پيغمبر عليه السلام په اُحد غر اوختلو، حضورؐ سره ابوبكرؓ، عمرؓ او عثمانؓ هم وو، نو اُحد غر په حركت شو (د خوشحالۍ نه په جرقيدو شو) په دے حضورؐ ورله يو ټوكر وركړ، او ورته ئې اوفرمائيل: اے اُحده، او دريږه: ځكه چه ستا د پاسه يو نبي، يو صديق او دوه شهيدان دي.

۸۸۷: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ وَهْبٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُمَرُ هُوَ ابْنُ مُحَمَّدٍ اَنَّ زَيْدَ بْنَ اَسْلَمَ حَدَّثَهٗ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ سَاَلَنِيْ ابْنُ عُمَرَ عَنْ بَعْضِ شَأْنِهٖ يَعْنِيْ عُمَرَ فَاَخْبَرْتُهٗ فَقَالَ مَا رَاَيْتُ اَحَدًا قَطُّ بَعْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ حِيْنَ قُبِضَ كَانَ اَجَدَّ وَ اَجْوَدَ حَتّٰى انْتَهٰى مِنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ.

۸۸۷: يحيى. ابن وهب. عمر. زيد. حضرت اسلم نه بيان كوي، د هغۀ بيان دے: حضرت ابن عمرؓ ما نه بعض حالات د حضرت عمرؓ دريافت كړل، نو ما هغۀ ته اووے د رسول الله صلي الله عليه وسلم د وفات نه پس ما هيڅوک د حضرت عمرؓ نه زيات صالح او سخي تر نن نۀ دے ليدلے، او دا ټولے خوبۍ په حضرت عمرؓ بن خطاب باندے ختمے شولے.

۸۸۸: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ اَنَسٍؓ اَنَّ رَجُلًا سَاَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ السَّاعَةِ فَقَالَ مَتَى السَّاعَةُ قَالَ وَمَا ذَا اَعْدَدْتَ لَهَا قَالَ لَا شَيْءَ اِلَّا اَنِّيْ اُحِبُّ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَنْتَ مَعَ مَنْ اَحْبَبْتَ قَالَ اَنَسٌ

۸۸۸: سليمان. حماد. ثابت. حضرت انسؓ نه روايت كوي، يو سړي د قيامت باره كښې د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه تپوس اوكړ، حضورؐ ورته اوفرمائيل، تا هغې د پاره څۀ سامان تيار كړے دے، هغۀ عرض اوكړ ما بغير د دے نه نور څۀ تياري نۀ دے كړے، چه زۀ الله او د هغۀ رسول محبوب لرم: په دے ورته حضورؐ اوفرمائيل، تۀ به هغه چاسره ئې، چا سره چه محبت ساتې. حضرت انسؓ وائي. مونږ په هيڅ خبره دومره خوشحاله نۀ شو، څومره چه د نبي عليه السلام په دے قول، چه تۀ به هغه چاسره ئې، چه تۀ ورسره محبت

فَأَنَا أُحِبُّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَبَا بَكْرٍ وَ عُمَرَ وَ اَرْجُوْ اَنْ اَكُوْنَ مَعَهُمْ بِحُبِّىْ اِيَّاهُمْ وَ اِنْ لَّمْ اَعْمَلْ بِمِثْلِ اَعْمَالِهِمْ.

ساتے، حضرت انسؓ فرمائي، زهٔ رسول الله صلي الله عليه وسلّم او حضرت عمرؓ سره محبت لرم، او خما پوره اُميد دے، چه خما دے حضراتو سره محبت دے، نو زهٔ به هغوي سره يم، اګر که ما دَ دے حضراتو په شان اعمال نهٔ دي کړے.

ف: يا الله، خمونږ هم دَ دے حضراتو محبت او ملګرتيا نصيب کړے. اللّٰهم آمين.

۸۸۹: حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ قَزَعَةَ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ قَزَعَةَ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِىْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِىْ هُرَيْرَةَ رَضِىَ اللّٰهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَقَدْ كَانَ فِيْمَا قَبْلَكُمْ مِنَ الْاُمَمِ مُحَدَّثُوْنَ فَاِنْ يَكُ فِىْ اُمَّتِىْ اَحَدٌ فَاِنَّهُ عُمَرُ زَادَ زَكَرِيَّآءُ بْنُ اَبِىْ زَآئِدَةَ عَنْ سَعْدٍ عَنْ اَبِىْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِىُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَقَدْ كَانَ فِيْمَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ مِنْ بَنِىْ اِسْرَآئِيْلَ رِجَالٌ يُكَلَّمُوْنَ مِنْ غَيْرِ اَنْ يَّكُوْنُوْا اَنْبِيَآءَ فَاِنْ يَّكُنْ مِّنْ اُمَّتِىْ مِنْهُمْ اَحَدًا فَعُمَرُ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ مِّنْ نَبِيٍّ وَلَا مُحَدَّثٍ.

۸۸۹: يحيي بن قزعه. ابراهيم بن سعد. سعد. ابو سلمه. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلے دي، تاسو نه وړمبني اُمتونو کښې څنے خلق محدّث وو، که خما اُمت کښې څوک محدث (ملهم) شو، نو هغه به عمرؓ وي. زکرياء ابن ابي زائده، سعد، ابي سلمه، حضرت ابوهريرهؓ دويم روايت کښې دومره زيات دي، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، تاسو نه مخکښې بني اسرائيلو کښې څهٔ خلق داسے وو، چه هغوي سره به (دَ اللّٰه تعالٰي دَ جانب نه) خبرے کيدلے، بغير دَ دے نه چه هغه نبي وو. خما اُمت کښې که داسے څوک وي، نو هغه به عمر رضي اللّٰه تعالٰي نه وي.

ف: محدث، ملهم، چه الهام ورته کيږي.

۸۹۰: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ حَدَّثَنَا عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ وَ اَبِىْ سَلَمَةَ

۸۹۰: عبداللّٰه. ليث. عقيل. ابن شهاب. سعيد بن مسيب او ابو سلمه. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، هغهٔ اووے، يو خل رسول الله صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، يو ګډه به دَ خپلو چيلو په رمه کښې وو، چه يو

عَبْدِ الرَّحْمٰنِ قَالَا سَمِعْنَا اَبَا هُرَيْرَةَؓ يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَمَا رَاعٍ فِيْ غَنَمِهٖ اِذْ عَدَا الذِّئْبُ فَاَخَذَ مِنْهَا شَاةً فَطَلَبَهَا حَتّٰى اسْتَنْقَذَهَا فَالْتَفَتَ اِلَيْهِ الذِّئْبُ فَقَالَ لَهٗ مَنْ لَهَا يَوْمَ السَّبُعِ لَيْسَ رَاعٍ غَيْرِيْ فَقَالَ النَّاسُ سُبْحَانَ اللّٰهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاِنِّيْ اُوْمِنُ بِهٖ وَ اَبُوْبَكْرٍؓ وَ عُمَرُؓ وَمَا ثَمَّ اَبُوْ بَكْرٍؓ وَ عُمَرُؓ.

شرمخ ذ هغه په رمه حمله اوکړله او ذ هغې نه ئې يوه چيلئې اوتښتوله، هغه ګډبه هغې شرمخ پسې شو او هغه چيلئې ئې ترې خلاصه کړه نو هغې شرمخ هغې ګډبه ته اووې، چه په يوم السبع (شلولکې واله ورځ) يعني د قيامت په ورځ به ذ هغې څوک محافظ وي چه په هغه ورځ به بغير څما نه ذ دې بل څوک څرونکې نه وي خلقو (دې واقعې آوريدو سره اووې) سبحان الله (شرمخ او خبرې کوي) رسول الله صلي الله عليه وسلم دې آوريدو سره اوفرمائيل، چه ما، ابوبکرؓ او عمرؓ هم په دې ايمان راوړې دې. حالانکه ابوبکرؓ او عمرؓ هلته موجود نۀ وو.

١٨٩١: حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ اُمَامَةَ ابْنُ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّؓ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ بَيْنَا اَنَا نَائِمٌ رَاَيْتُ النَّاسَ عُرِضُوْا عَلَيَّ وَ عَلَيْهِمْ قُمُصٌ فَمِنْهَا مَا يَبْلُغُ الثُّدِيَّ وَ مِنْهَا مَا يَبْلُغُ دُوْنَ ذٰلِكَ وَ عُرِضَ عَلَيَّ عُمَرُ وَ عَلَيْهِ قَمِيْصٌ اِجْتَرَّهٗ قَالُوْا فَمَا اَوَّلْتَهٗ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ الدِّيْنُ.

١٨٩١: يحيٰي بن بکير. ليث. عقيل. ابن شهاب. ابو امامه. حضرت ابو سعيد خدريؓ نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، زۀ اُوده ووم، نو څۀ ګورم، چه خلق څما مخې ته راوستې شي (او ماته ښودلې شي) دې ټولو خلقو قميصونه اغستلې وو، هغوي کښې ذ بعضو قميصونه سينوته رسيدلې وو، او ذ بعضو ذ هغې نه لاندې. بيا څما مخې ته عمر بن خطاب راوستلې شو دومره اوږود قميص ئې اغستلې وو چه په زمکه راکښلو سره تلو. خلقو (يعني صحابهؓ) عرض اوکۀ، يا رسول الله تاسو ذ دې څۀ تعبير کړې دې، حضورؐ ورته اوفرمائيل، دين (اسلام).

١٨٩٢: حَدَّثَنَا الصَّلْتُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا اَيُّوْبُ

١٨٩٢: صلت. اسمٰعيل. ايوب. ابن ابي مليکه. حضرت مسور بن مخرمهؓ نه روايت کوي کوم وخت چه حضرت عمرؓ زخمي کړې شو، نو هغه ذ تکليف

عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ قَالَ لَمَّا طُعِنَ عُمَرُ جَعَلَ يَأْلَمُ فَقَالَ لَهُ ابْنُ عَبَّاسٍؓ وَ كَاَنَّهُ يُجَزِّعُهُ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَلَئِنْ كَانَ ذَاكَ لَقَدْ صَحِبْتَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَحْسَنْتَ صُحْبَتَهُ ثُمَّ فَارَقْتَهُ وَهُوَ عَنْكَ رَاضٍ ثُمَّ صَحِبْتَ صَحْبَتَهُمْ فَاَحْسَنْتَ صُحْبَتَهُمْ وَلَئِنْ فَارَقْتَهُمْ لَتُفَارِقَنَّهُمْ وَهُمْ عَنْكَ رَاضُوْنَ قَالَ اَمَّا مَا ذَكَرْتَ مِنْ صُحْبَةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ رِضَاهُ فَاِنَّمَا ذَاكَ مَنٌّ مِنَ اللّٰهِ تَعَالٰى مَنَّ بِهٖ عَلَيَّ وَ اَمَّا مَا ذَكَرْتَ مِنْ صُحْبَةِ اَبِيْ بَكْرٍ وَ رِضَاهُ فَاِنَّمَا ذَاكَ مَنٌّ مِنَ اللّٰهِ جَلَّ ذِكْرُهُ مَنَّ بِهٖ عَلَيَّ وَ اَمَّا مَا تَرٰى مِنْ جَزَعِيْ فَهُوَ مِنْ اَجْلِكَ وَ اَجْلِ اَصْحَابِكَ وَاللّٰهِ لَوْ اَنَّ لِيْ طِلَاعَ الْاَرْضِ ذَهَبًا لَافْتَدَيْتُ بِهٖ مِنْ عَذَابِ اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ قَبْلَ اَنْ اَرَاهُ

اظهار اوکړلو. حضرت ابن عباسؓ ذَ هغهٔ په بې صبري (ژړا انګولا) ګویا هغه ملامت کولو سره اووې. امیر المؤمنین که دا خبره شوه یعني که تاسو ته مرګ راغې نو هیڅ غم نشته، ځکه چه تاسو ذَ رسول الله صلي الله علیه وسلم په صحبت کښې پاتې شوې ئې او ستاسو صحبت ډیر ښهٔ پاتې شوې دې، چه ذَ هغوي حق صحبت مو ډیر ښهٔ ادا کړې دې، بیا چه رسول الله صلي الله علیه وسلم تاسو نه رخصت شو، نو حضور اکرم تاسو نه ډیر خوشحاله او راضي وو. بیا تاسو ذَ حضرت ابوبکرؓ صحبت کښې پاتې شوې او هغوي سره هم ستاسو صحبت ډیر ښهٔ پاتې شوې وو، چه ذَ هغوي حق صحبت مو هم ښهٔ ادا کړې دې. بیا چه هغوي تاسو نه جُدا شو، نو تاسو نه هغوي هم خوشحاله او راضي وو. بیا تاسو (خپل ایام خلافت کښې) ذَ مسلمانانو یعني ذَ هغوي ذَ صحابه ؤ صحبت کښې پاتې شوې. او هغوي سره هم ستاسو صحبت ښهٔ پاتې شو، اوس که تاسو ذَ هغوي نه جُدا کیږئې نو هغوي تاسو نه راضي او خوشحاله دي. حضرت عمرؓ اوفرمائیل، تا چه ذَ رسول الله صلي الله علیه وسلم ذَ صحبت ذکر اوکهٔ، او ذَ حضورؐ ذَ راضي کیدو او خوشحالیدو سره ذَ رخصت ذکر اوکهٔ، نو دا محض ذَ الله احسان دې، چه هغهٔ په ما کړې دې. بیا چه تا ذَ حضرت ابوبکرؓ ذَ صحبت او خوشنودي ذکر کړې دې، نو هغهٔ محض ذَ الله یو احسان دې، چه هغهٔ په ما کړې دې او اوس چه تهٔ ماپه تکلیف کښې وینې، نو هغه ستا او ستا ذَ دوستانو په سبب دې (یعني ذَ دې خوف نه چه ځما نه پس چرته تاسو فتنه کښې آخته نهٔ شې) په

قَالَ حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ دَخَلْتُ عَلٰى عُمَرَ بِهٰذَا.

خدائے م دے قسم وي، که ماسره د زمکے برابر سره زر (سونا) وے، نو د عذاب الهي په بدله کښې به م هغه قرباني کړے وے قبل ددے نه چه زۀ هغه اووینم.

۸۹۳: حَدَّثَنَا يُوسُفُ ابْنُ مُوسٰى حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ قَالَ حَدَّثَنِي عُثْمَانُ بْنُ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا أَبُو عُثْمَانَ النَّهْدِيُّ عَنْ أَبِي مُوسٰى قَالَ كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَائِطٍ مِنْ حِيطَانِ الْمَدِينَةِ فَجَاءَ رَجُلٌ فَاسْتَفْتَحَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ افْتَحْ لَهُ وَ بَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ فَفَتَحْتُ لَهُ فَإِذَا أَبُوبَكْرٍ فَبَشَّرْتُهُ بِمَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَمِدَ اللّٰهَ ثُمَّ جَاءَ رَجُلٌ فَاسْتَفْتَحَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ افْتَحْ لَهُ وَ بَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ فَفَتَحْتُ لَهُ فَإِذَا هُوَ عُمَرُ فَأَخْبَرْتُهُ بِمَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَمِدَ اللّٰهَ ثُمَّ اسْتَفْتَحَ رَجُلٌ فَقَالَ لِي افْتَحْ لَهُ وَ بَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ عَلٰى بَلْوٰى تُصِيبُهُ فَإِذَا عُثْمَانُ فَأَخْبَرْتُهُ بِمَا قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَمِدَ اللّٰهَ ثُمَّ قَالَ اللّٰهُ الْمُسْتَعَانُ.

۸۹۳: یوسف. ابو اسامه. عثمان بن غیاث. ابو عثمان نهدي. حضرت ابو موسیٰؓ نه روایت کوي، هغه اوفرمائیل، زۀ مدینه منوره کښې یو باغ کښې رسول الله صلي الله علیه وسلّم سره ووم، چه یو سړے راغے، او د هغے باغ دَ دروازے پرانستلو ئے اووے، نبي صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، دروازه لرے کړه، او هغې راتلونکي ته دَ جنت زیرے ورکه، ځنګه چه رسول الله صلي الله علیه وسلّم فرمائیلے وو، په هغې ابوبکرؓ د الله حمد ثنا اووے، او شکر ئے ادا کۀ، بیا یو سړے راغے، او هغۀ دَ دروازے پرانستلو اووے، رسول الله صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، دروازه لرے کړه، او دۀ ته هم د جنت زیرے ورکړه، نو ما دروازه لرے کړه، او وم لیدل، چه هغه حضرت عمرؓ وو، ما هغه دَ رسول الله صلي الله علیه وسلّم د بشارت خبر کۀ، هغه هم دَ خدائے تعالیٰ حمد و ثنا اوکړه، او شکر ئے ادا کۀ، دے نه پس یو بل سړي دَ دروازے پرانستلو اووے، نو رسول الله صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، هغۀ ته دروازه پرانزه، او دَ جنت زیرے ورکړه، په هغے مصیبتونو چه راتلونکي ته به رسیږي، ما دروازه پرانسته، نو اووم لیدل، چه هغه حضرت عثمانؓ وو. ما هغه هم دَ رسول الله صلي الله علیه وسلّم دَ ارشاد نه آګاه کړلو، هغه هم په دے دَ الله تعالیٰ حمد و ثنا او شکر ادا کۀ. دے نه پس ئے اووے، الله تعالیٰ خما مددګار او ناصر دے.

۸۹۴: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ حَيْوَةُ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ عُقَيْلٍ زُهْرَةُ بْنُ مَعْبَدٍ اَنَّهُ سَمِعَ جَدَّهُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ هِشَامٍ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ اٰخِذٌ بِيَدِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ.

۸۹۴: يحيي بن سليمان. ابن وهب. حيوه. ابو عقيل. زهره بن معبد. حضرت عبدالله بن هشام نه روايت كوي، مونږ رسالت مـيب صلي الله عليه وسلم سره وو، او حضور صلي الله عليه وسلم ذ حضرت عمر بن خطاب لاس خپل لاس كښې نيولے وو.

## باب ۳۸۹: مُنَاقِبِ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ اَبِيْ عَمْرٍو الْقُرَشِيِّ وَ قَالَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يَّحْفَرُ بِئْرَ رُوْمَةَ فَلَهُ الْجَنَّةُ فَحَفَرَهَا عُثْمَانُ وَ قَالَ مَنْ جَهَّزَ جَيْشَ الْعُسْرَةِ فَلَهُ الْجَنَّةُ فَجَهَّزَهُ عُثْمَانُ.

## باب ۳۸۹: ذ حضرت عثمان بن عفان (ابو عمرو قرشي) ذ مناقب بيان. ذ رسول الله صلي الله عليه وسلم ارشاد دے، چا چه چاهِ رومه (ذ رومه كوهے) اوكنولو، هغۀ ذ پاره جنت دے، او هغه حضرت عثمان كنولے يعني (جوړ كړے) وو، او څوک چه ذ غزوه تبوک لښكر له سامان تيار كړي هغه هم ذ جنت مستحق دے، نو ذ هغے حضرت عثمان ټول سامان تيار كړے وو.

۸۹۵: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ عَنْ اَيُّوْبَ عَنْ اَبِيْ عُثْمَانَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ حَائِطًا وَّ اَمَرَنِيْ بِحِفْظِ بَابِ الْحَائِطِ فَجَآءَ رَجُلٌ يَسْتَأْذِنُ فَقَالَ ائْذَنْ لَهُ وَ بَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ فَاِذَا اَبُوْبَكْرٍ ثُمَّ اٰخَرُ يَسْتَأْذِنُ فَقَالَ ائْذَنْ لَهُ وَ بَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ فَاِذَا عُمَرُ ثُمَّ جَآءَ اٰخَرُ يَسْتَأْذِنُ فَسَكَتَ هُنَيْهَةً ثُمَّ قَالَ ائْذَنْ لَهُ وَ بَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ عَلٰى بَلْوٰى سَتُصِيْبُهُ فَاِذَا عُثْمَانُ ابْنُ عَفَّانَ قَالَ حَمَّادُ وَّ حَدَّثَنَا عَاصِمُ

۸۹۵: سليمان. حماد. ايوب. ابو عثمان. حضرت ابو موسي نه روايت كوي، يو ورځے رسول الله صلي الله عليه وسلم يو با غ ته تشريف يوړلو، او ماته ئے ذ ذ دروازے ذ حفاظت حكم اوكه، بيا يو سړيْ دننه ذ راتلو اجازت طلب كه، حضور صلي الله عليه وسلم اوفرمائيل، دۀ ته اجازت وركړه او ذ جنت زيرے هم وركړه، دروازه پرانستو سره ما اوليدل، چه هغه ابوبكرؓ وو، بيا يو بل سړي دننه ذ راتلو اجازت اوغوښتلو نو حضورؐ اوفرمائيل، دۀ ته هم ذ راتلو اجازت وركړه، او ذ جنت زيرے هم وركړه، دروازه چه م پرانسته، نو اوم ليدل، چه هغه حضرت عمرؓ وو، بيا يو بل سړے اجازت غوښتلوله راغے، نو رسول الله صلي الله عليه وسلم لږ ساعت خاموش شولو. بيائے اوفرمائيل، دۀ ته ذ راتلو

الْاَحْوَلُ وَ عَلِيُّ ابْنُ الْحَكَمِ سَمِعَا اَبَا عُثْمَانَ يُحَدِّثُ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى بِنَحْوِهٖ وَ زَادَ فِيْهِ عَاصِمٌ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ قَاعِدًا فِيْ مَكَانٍ فِيْهِ مَآءٌ قَدِ انْكَشَفَ عَنْ رُكْبَتَيْهِ اَوْ رُكْبَتِهٖ فَلَمَّا دَخَلَ عُثْمَانُ غَطَّاهَا.

اجازت ورکړه، او ذَ جنت زیرے هم ورکړه، په هغے مصیبت باندے چه دۀ ته به رسي. نو څۀ ګورم چه حضرت عثمانؓ بن عفان وو، او عاصم دومره نور الفاظ زیات کړے دي، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم یو داسے ځائے باندے ناست وو. کوم ځائے چه اُوبه وے، او حضورؐ خپلے دواړه پنډۍ یا یوه پرانستے وه، بیا چه عثمانؓ راغے، نو حضورؐ هغه پټه کړله (یا پټے کړلے).

۸۹۶: حَدَّثَنِيْ اَحْمَدُ بْنُ شَبِيْبِ بْنِ سَعِيْدٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ عَنْ يُوْنُسَ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ اَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ اَنَّ عُبَيْدَ اللّٰهِ بْنَ عَدِيِّ بْنِ الْخِيَارِ اَخْبَرَهٗ اَنَّ الْمِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ وَ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ الْاَسْوَدِ بْنِ عَبْدِ يَغُوْثَ قَالَ مَا يَمْنَعُكَ اَنْ تُكَلِّمَ عُثْمَانَ لِاَخِيْهِ الْوَلِيْدِ فَقَدْ اَكْثَرَ النَّاسُ فِيْهِ فَقَصَدْتُّ لِعُثْمَانَ حَتّٰى خَرَجَ اِلَى الصَّلٰوةِ قُلْتُ اِنَّ لِيْ اِلَيْكَ حَاجَةً وَهِيَ نَصِيْحَةٌ لَكَ قَالَ يَا اَيُّهَا الْمَرْءُ قَالَ مَعْمَرٌ اُرَاهُ قَالَ اَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْكَ فَانْصَرَفْتُ فَرَجَعْتُ اِلَيْهِمْ اِذْ جَآءَ رَسُوْلُ عُثْمَانَ فَاَتَيْتُهٗ فَقَالَ مَا نَصِيْحَتُكَ فَقُلْتُ اِنَّ اللّٰهَ سُبْحَانَهٗ بَعَثَ مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْحَقِّ وَ اَنْزَلَ عَلَيْهِ الْكِتَابَ وَ كُنْتَ مِمَّنِ اسْتَجَابَ لِلّٰهِ

۸۹۶: احمدؒ. شبیب. یونس. ابن شهاب. عروه. عبیداللّٰه بن خیار نه بیان کوي، چه حضرت مسور بن مخرمهؓ او عبدالرحمٰن بن اسود بن عبد یعوث هغه اووے، چه تاته حضرت عثمان سره ذَ هغۀ ذَ ورور ولید باره کښ ذَ خبرو کولو نه څۀ څیز مانع دے، حالانکه خلقو ذَ هغۀ باره کښ ډیرے خبرے کړے دي، نو ما حضرت عثمان سره ذَ خبرو کولو اراده اوکړله، هغۀ ذَ مونځ ادا کولو ذَ پاره راغے نو ما هغۀ ته اووے، خما تاسو سره څۀ کار دے، چه هغے کښ ستاسو خیر دے، هغوي اووے، ستا نه ذَ خدائے پنا (غواړم) نو زۀ واپس راغلم، او هغے خلقوته واپس شوے وُوم چه دے کښ ذَ حضرت عثمان قاصد راغے زۀ حضرت عثمان له ورغلم، نو هغوي اووے څۀ خبره کول غواړے، ما عرض اوکۀ، چه خدائے تعالٰي حضرت محمد صلي اللّٰه عليه وسلّم حق سره پیدا کړلو، په هغوي ئے خپل کتاب نازل کړلو، تاسو هغے خلقو کښ وئے، چه هغوي ذَ خدائے تعالٰي او رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خبره اومنله، بیا تاسو دوه ځله هجرت اوکۀ، او ذَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم صحبت کښ پاتے شوے، او ذَ حضورؐ روش مو اولیدلو. خلقو عام طور

وَ لِرَسُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَهَاجَرْتَ الْهِجْرَتَيْنِ وَ صَحِبْتَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ رَأَيْتَ هَدْيَهٗ وَقَدْ اَكْثَرَ النَّاسُ فِيْ شَأْنِ الْوَلِيْدِ قَالَ اَدْرَكْتَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْتُ لَا وَلٰكِنْ خَلَصَ اِلَيَّ مِنْ عِلْمِهٖ مَا يَخْلُصُ اِلَى الْعَذْرَآءِ فِيْ سِتْرِهَا قَالَ اَمَّا بَعْدُ فَاِنَّ اللّٰهَ بَعَثَ مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْحَقِّ فَكُنْتُ مِمَّنِ اسْتَجَابَ لِلّٰهِ وَ لِرَسُوْلِهٖ وَ اٰمَنْتُ بِمَا بُعِثَ بِهٖ وَ هَاجَرْتُ الْهِجْرَتَيْنِ كَمَا قُلْتَ وَ صَحِبْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ بَايَعْتُهٗ فَوَاللّٰهِ مَا عَصَيْتُهٗ وَلَا غَشَشْتُهٗ حَتّٰى تَوَفَّاهُ اللّٰهُ ثُمَّ اَبُوْ بَكْرٍ مِثْلُهٗ ثُمَّ عُمَرُ مِثْلُهٗ ثُمَّ اسْتُخْلِفْتُ اَفَلَيْسَ لِيْ مِنَ الْحَقِّ مِثْلُ الَّذِيْ لَهُمْ قُلْتُ بَلٰى قَالَ فَمَا هٰذِهِ الْاَحَادِيْثُ الَّتِيْ تَبْلُغُنِيْ عَنْكُمْ اَمَّا مَا ذَكَرْتَ مِنْ شَأْنِ الْوَلِيْدِ فَسَنَاْخُذُ فِيْهِ بِالْحَقِّ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ ثُمَّ دَعَا عَلِيًّا فَاَمَرَهٗ اَنْ يَّجْلِدَهٗ فَجَلَدَهٗ ثَمَانِيْنَ.

سره دَ وليد متعلق ډير څهٔ وائي' حضرت عثمان اوفرمائيل' تا رسول الله صلي الله عليه وسلّم ليدلے دے. ما عرض اوکهٔ ما ليدلے خو نه دے' ليکن ماته دَ حضورؐ علم رارسيدلے دے[1]' څنګه چه پيغلے جينۍ ته دَ هغے پرده کښې رسي' په دے حضرت عثمانؓ اوفرمائيل: خدائے تعالٰي يقينًا حضرت محمد صلي اللّٰه عليه وسلّم حق سره راليږلے دے او زهٔ دَ هغے خلقو نه يم' چه هغوي دَ خدائے تعالٰي او دَ هغهٔ دَ رسول خبره اومنله' او ما په هغے څيز هم ايمان راوړلو' چه سرور عالم صلي اللّٰه عليه وسلّم باندے نازل شوے دے' او ما دوه ځله هجرت کړے دے' څنګه چه تا بيان اوکهٔ' او ځما دَ رسول اللّٰه دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم صحبت هم نصيب شوے دے' او دَ حضورؐ نه م بيعت کړے دے. ليکن قسم په خدائے' ما دَ حضورؐ نافرماني نهٔ ده کړے' او نه م حضورؐ سره چل وَل (فريب) کړے دے' خدائے تعالٰي حضورؐ وفات کړلو' بيا دغه شان دَ حضرت ابوبکرؓ دَ صحبت نه فيضياب شوم' بيا دغه شان دَ حضرت عمرؓ دَ صحبت نه. دے نه پس بيا زهٔ خليفه جوړ کړے شوم' نو آيا ځما هغه حق نه دے' څنګه چه دَ هغے خلقو وو' ما عرض اوکهٔ' او ضرور دے' نو حضرت عثمانؓ اووے' بيا دا څنګه خبرے دي' چه تهٔ ما سره کوے. دَ وليد معامله چه هغه تا بيان کړله' نو انشاء اللّٰه دے کښې به مونږ په حق عمل کوو' دے نه پس هغهٔ حضرت عليؓ راوغښتلو' او هغهٔ ته ئے حکم ورکړلو' چه وليد اتيا دُرّے اووهي' نو هغهٔ اتيا دُرّے اووهلو[2].

[1]. يعني د حضور صلي الله عليه وسلّم د فرموداتو اشاعت دومره عام او شائع او ذائع دے چه ددے د

علم نه هيڅ يو مسلمان خالي نه دے. پيغله جينۍ کومه چه د خپل شرم او حجاب د پاره مشهوره ده هغه هم دحضورؐ د فرموداتو علم لري نو بيا ماته به ولے نه وي هر کله چه زهٔ د هغے حاصلولو د پاره لګيايم کوشش هم کوم.

۲. د وليد د نورو بے لارے والي تذکرو سره چه کومه خاصه واقعه دغه وخت پيښه شوے وه هغه د هغهٔ د شرابو څکلو وه او په دے باندے مسلمانانو کښے ډيره ناقلاري پيدا شوے وه. چونکه د حضرت عثمان رضي الله عنه د انتظامانو خلاف بعضے خلقو به صرف د فتنے خورؤلو په غرض سره نکته چيني کوله، په دے وجه کله چه عبيدالله بن عدي بن خيار رضي الله عنه هغوئ ته ددے واقعے ذکر اوکړو او په دے واقعه باندے د عوامو او خواصو دَ عامے ناقلارئ ذکر او کړو نو حضرت عثمان رضي الله عنه دا هم اولاً د دغه نقطه نظر ترجماني اوګنړله او په دے باندے تر يو حده پورے د ناراضګئ اظهار هم اوفرمائيلو، ليکن روستو د واقعے تحقيق طرفته متوجه شو او کله چه د دوؤ سړو ګواهي د هغه د شرابو په استعمالولو باندے اوشوه نو هغه ئے اتيا کوړے اووهلو، کومه چه په اسلامي شريعت کښے د شرابو څکلو سزا ده.

۸۹۷: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ حَاتِمِ بْنِ بَزِيْعٍ حَدَّثَنَا شَاذَانُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزُ بْنُ اَبِيْ سَلَمَةَ الْمَاجِشُوْنَ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كُنَّا فِيْ زَمَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا نَعْدِلُ بِاَبِيْ بَكْرٍؓ اَحَدًا ثُمَّ عُمَرَ ثُمَّ عُثْمَانَ ثُمَّ نَتْرُكُ اَصْحَابَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا نُفَاضِلُ بَيْنَهُمْ تَابَعَهُ عَبْدُ اللّٰهِ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيْزِ.

۸۹۷: محمد بن حاتم بن بزيع. شاذان. عبدالعزيز بن ابي سلمه الماجشون. عبيدالله. نافع. حضرت ابن عمرؓ نه روايت کوي، هغهٔ اووے. مونږ دَ رسالت مىٓب صلي الله عليه وسلم په عهد مبارک کښې دَ حضرت ابوبکرؓ برابر هيڅوک نهٔ ګنړل، بيا حضرت عمرؓ، بيا حضرت عثمانؓ. دے نه پس مونږ اصحاب دَ رسول الله صلي الله عليه وسلم پريښودل، يعني هغوي کښې به مو خپلو کښې يو بل له ترجيح نه ورکوله.

۸۹۸: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ هُوَ ابْنُ مَوْهِبٍ قَالَ جَآءَ رَجُلٌ مِنْ اَهْلِ الْمِصْرَ حَجَّ الْبَيْتَ فَرٰى قَوْمًا جُلُوْسًا فَقَالَ مَنْ هٰؤُلَاءِ الْقَوْمُ قَالُوْا هٰؤُلَآءِ قُرَيْشٌ قَالَ فَمَنِ الشَّيْخُ

۸۹۸: موسٰي. ابو عوانه. عثمان بن موهب نه بيان کوي، يو سړے دَ مصر والو نه راغے او هغهٔ حج دَ بيت الله اوکهٔ، نو يو ځائے ئے څو کسان ناست اوليدل، وئيلے، دا کوم خلق دي، چا اووے، دا قريش دي، هغهٔ تپوس اوکهٔ، دَ دوي شيخ څوک دے، خلقو اووے، عبدالله بن عمرؓ، هغه سړے ابن عمرؓ ته متوجه شو ورته ئے اووے، ابن عمرؓ زهٔ تانه څهٔ تپوس کوم تهٔ دَ هغے

فِيهِمْ قَالُوا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ قَالَ يَا ابْنَ عُمَرَ اِنِّيْ سَآئِلُكَ عَنْ شَيْءٍ فَحَدِّثْنِيْ هَلْ تَعْلَمُ اَنَّ عُثْمَانَ فَرَّ يَوْمَ اُحُدٍ قَالَ نَعَمْ فَقَالَ تَعْلَمُ اَنَّهٗ تَغَيَّبَ عَنْ بَدْرٍ وَلَمْ يَشْهَدْ قَالَ نَعَمْ فَقَالَ تَعْلَمُ اَنَّهٗ تَغَيَّبَ عَنْ بَيْعَةِ الرِّضْوَانِ فَلَمْ يَشْهَدْهَا قَالَ نَعَمْ قَالَ اللّٰهُ اَكْبَرُ قَالَ ابْنُ عُمَرَ تَعَالَ اُبَيِّنْ لَكَ اَمَّا فِرَارُهٗ يَوْمَ اُحُدٍ فَاَشْهَدُ اَنَّ اللّٰهَ عَفَا عَنْهُ وَ غَفَرَ لَهٗ وَ اَمَّا تَغَيُّبُهٗ عَنْ بَدْرٍ فَاِنَّهٗ كَانَتْ تَحْتَهٗ بِنْتُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ كَانَتْ مَرِيْضَةً فَقَالَ لَهٗ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ لَكَ اَجْرَ رَجُلٍ مِمَّنْ شَهِدَ بَدْرًا وَ سَهْمَهٗ وَ اَمَّا تَغَيُّبُهٗ عَنْ بَيْعَةِ الرِّضْوَانِ فَلَوْ كَانَ اَحَدٌ اَعَزَّ بِبَطْنِ مَكَّةَ مِنْ عُثْمَانَ لَبَعَثَهٗ مَكَانَهٗ فَبَعَثَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عُثْمَانَ وَ كَانَتْ بَيْعَةُ الرِّضْوَانِ بَعْدَ مَا ذَهَبَ عُثْمَانُ اِلَى مَكَّةَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهِ الْيُمْنٰى هٰذِهٖ يَدُ

جواب راكه. آيا تاته معلومه ده، چه عثمان جنګ اُحد كښې تښتيدلے وو. ابن عمرؓ اوويے، او، دغسے شوے وو، بيا هغهٔ تپوس اوكهٔ، تاته معلومه ده، چه عثمان دَ بدر جنګ نه غائب وو، او جنګ كښې شريک نه وو، ابن عمرؓ اوويے، او، بيا هغهٔ اوويے، تاته معلومه ده، چه عثمان بيعت رضوان كښې شريک نهٔ وو، او غائب وو، ابن عمرؓ ورته اوويے، او، په دے هغے سړي الله اكبر اوويے، نو ابن عمرؓ هغهٔ ته اوفرمائيل، دلته راشه، چه زهٔ تاته حقيقت بيان كړم. دَ اُحد په ورځ دَ عثمان تښتيدل چه دي، نو خدائے تعالٰي دَ هغهٔ دا قصور معاف كهٔ، او هغه ئے اوبښلو، او دَ بدر په ورځ دَ هغهٔ غائب كيدل چه دي، نو ددے ۯاقعه داده، چه دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم لور (بي بي رقيه) دَ هغهٔ بي بي وه، او هغه دغه زمانه كښې ناروغه وه، حضورؐ حضرت عثمانؓ دَ هغے دَ خبر ګيري دَ پاره مدينه كښې پريښے وو، اووے فرمائيل عثمان ته به بدر كښې دَ حاضريدونكي سړي برابر ثواب رسي، او مال غنيمت كښې به هم پوره حصه وركيږي. پاتے شو، دَ بيعت رضوان نه دَ عثمان غائب كيدل، نو دَ هغے وجه دا وه، كه مكه كښې دَ عثمان نه زيات هر دلعزيز او باعزته بل سړے وے، نو رسول الله صلي الله عليه وسلّم به هغه مكے ته ليږلے وو (ليكن داسے څوک نهٔ وو، په دے وجه حضورؐ هغه مكے ته اوليږلو، او دَ هغهٔ دَ تلو نه پس دَ بيعت رضوان واقعه پيښه شوه. او دَ بيعت په وخت حضورؐ خپل ښے لاس اوچت كهٔ، وئيلے، دا دَ عثمان لاس دے. بيا هغه لاس ئے په خپل بل لاس اووهلو، اووے فرمائيل، دا دَ عثمان بيعت دے. دے نه پس ابن عمرؓ اوويے، نه

عُثْمَانَ فَضَرَبَ بِهَا عَلٰى يَدِهٖ فَقَالَ لَهٗ ابْنُ عُمَرَ اِذْهَبْ بِهَا الْاٰنَ مَعَكَ.

خما دا بيان يوسه، چه ما ستا مخکښ کړے دے. (دا بيان ستا ذ سوالونو مکمل جواب دے).

**۸۹۹:** حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ سَعِيْدٍ عَنْ قَتَادَةَ اَنَّ اَنَسًا حَدَّثَهُمْ قَالَ صَعِدَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُحُدًا وَّ مَعَهٗ اَبُوْ بَكْرٍ وَ عُمَرُ وَ عُثْمَانُ فَرَجَفَ وَ قَالَ اسْكُنْ اُحُدُ اَظُنُّهٗ ضَرَبَهٗ بِرِجْلِهٖ فَلَيْسَ عَلَيْكَ اِلَّا نَبِيٌّ وَ صِدِّيْقٌ وَ شَهِيْدَانِ.

**۸۹۹:** مسدد. يحيي. سعيد. قتاده. حضرت انسؓ نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم يوه ورځ اُحد غر ته ختلے وو. او حضورؐ سره حضرت ابوبکرؓ، عمرؓ او عثمانؓ هم وو، کوم وخت چه غر (د خوشحالي نه) په جرقيدو شو، نو حضورؐ اوفرمائيل. اے اُحد، او دريږه خيال م دے، چه حضورؐ هغے له يو ټوکر ورکه، اووے فرمائيل، ستا ذ پاسه يو نبي، يو صديق او دوه شهيدان دي.

**بَابٌ ۳۹۰:** قِصَّةِ الْبَيْعَةِ وَ الْاِتِّفَاقِ عَلٰى عُثْمَانَ ابْنِ عَفَّانَ وَ فِيْهِ مَقْتَلُ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ.

**باب ۳۹۰:** حضرت عثمان بن عفان نه بيعت کولو باندے ذ ټولو ذ متفق کيدو بيان.

**۹۰۰:** حَدَّثَنَا مُوْسَى ابْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ حُصَيْنٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُوْنٍ قَالَ رَاَيْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ قَبْلَ اَنْ يُّصَابَ بِاَيَّامٍ بِالْمَدِيْنَةِ وَقَفَ عَلٰى حُذَيْفَةَ بْنِ الْيَمَانِ وَ عُثْمَانَ بْنِ حُنَيْفٍ قَالَ كَيْفَ فَعَلْتُمَا اَتَخَافَانِ اَنْ تَكُوْنَا قَدْ حَمَّلْتُمَا الْاَرْضَ مَا لَا تُطِيْقُ قَالَ حَمَّلْنَاهَا اَمْرًا هِيَ لَهٗ مُطِيْقَةٌ مَا فِيْهَا كَبِيْرُ

**۹۰۰:** موسي. ابو عوانه. حصين. عمر بن ميمون. چه ما حضرت عمرؓ بن خطاب ذ شهيد کيدو نه څو ورځے مخکښ مدينه کښ اوليد، هغه حذيفه بن يمان او عثمان بن حنيف سره ولاړ وو، فرمائيل ئے، چه تاسو دواړو څه اوکړل، ښه مو اونه کړل، آيا تاسوته ذ هغے خبرے خيال رانغے، چه تاسو په زمکه سوا د ذ هغے د طاقت نه زيات خراج (محصول) مقرر کړے دے. هغے دواړو عرض اوکه، نه مونږ په هغے دومره ماليه مقرر کړے ده، چه ذ هغے هغه طاقت لري، دے کښ د زياتے هيڅ خبره نشته، حضرت عمرؓ اوفرمائيل غور اوکړئے، شايد تاسو په دے زمکه دومره محصول مقرر کړے دے، چه ذ هغے هغه طاقت نه لري. په دے خبره هغوي عرض اوکه، چه نه، بيا حضرت عمرؓ اوفرمائيل، که خدائے

فَضْلٍ قَالَ اُنْظُرَا اَنْ تَكُوْنَا
حَمَّلْتُمَا الْاَرْضَ مَالَا تُطِيْقُ قَالَ
قَالَا فَقَالَ عُمَرُ لَئِنْ سَلَّمَنِيَ
اللّٰهُ لَاَدَعَنَّ اَرَامِلَ اَهْلِ
الْعِرَاقِ لَا يَحْتَجْنَ اِلٰى رَجُلٍ
بَعْدِيْ اَبَدًا قَالَ فَمَا
اَتَتْ عَلَيْهِ اِلَّا رَابِعَةٌ حَتّٰى
اُصِيْبَ قَالَ اِنِّيْ لَقَائِمٌ مَا
بَيْنِيْ وَ بَيْنَهٗ اِلَّا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ
عَبَّاسٍ غَدَاةَ اُصِيْبَ وَ كَانَ
اِذَا مَرَّ بَيْنَ الصَّفَّيْنِ قَالَ
اسْتَوُوْا حَتّٰى اِذَا لَمْ يَرَ فِيْهِنَّ
خَلَلًا تَقَدَّمَ فَكَبَّرَ وَ رُبَمَا قَرَاَ
سُوْرَةَ يُوْسُفَ اَوِ النَّحْلَ اَوْ نَحْوَ
ذٰلِكَ فِي الرَّكْعَةِ الْاُوْلٰى حَتّٰى
يَجْتَمِعَ النَّاسُ فَمَا هُوَ اِلَّا اَنْ
كَبَّرَ فَسَمِعْتُهٗ يَقُوْلُ قَتَلَنِيْ اَوْ
اَكَلَنِيْ الْكَلْبُ حِيْنَ طَعَنَهٗ
فَطَارَ الْعِلْجُ بِسِكِّيْنٍ ذَاتِ طَرَفَيْنِ
لَا يَمُرُّ عَلٰى اَحَدٍ يَمِيْنًا وَّ شِمَالًا
اِلَّا طَعَنَهٗ حَتّٰى طَعَنَ ثَلٰثَةَ عَشَرَ
رَجُلًا مَّاتَ مِنْهُمْ سَبْعَةٌ فَلَمَّا
رَاٰى ذٰلِكَ رَجُلٌ مِّنَ الْمُسْلِمِيْنَ
طَرَحَ عَلَيْهِ بُرْنُسًا فَلَمَّا ظَنَّ الْعِلْجُ
اَنَّهٗ مَاْخُوْذٌ نَحَرَ نَفْسَهٗ وَ تَنَاوَلَ عُمَرُ
يَدَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ فَقَدَّمَهٗ

تعالٰي زۀ سلامت اوساتلم، نو زۀ به دَ اهل عراق کُنډې ښځې دومره خوشحاله کړم، چه څما نه پس به هغوي دَ چا متازه نه وي. عمرو بن ميمون وائي، په څلورمه ورځ هغه شهيد کړې شو، او عمرو بن ميمون وائي په کومه ورځ چه هغه شهيد شوې وو، زۀ ولاړ ووم. څما او دَ هغه مينځ کښې سوا دَ عبداللّٰه بن عباسؓ نه بل څوک نۀ وو، او حضرت عمرؓ به دَ دوو صفونو په مينځ کښې تيريدلو، نو دَ صف نيغولو تلقين به ئې کولو، تردې چه صفونو کښې به څۀ خلل پاتې نه شو، نو مخکښې به شو، او اکثر به ئې سورۀ يوسف يا سورۀ نحل يا دغسې يو سورت په ورمبني ركعت كښې لوستلو، دَ پاره ددې چه ټول خلق جمع شي، څنګه چه حضرت عمرؓ تکبير اوکه (نو يو سړي حضرت عمرؓ زخمي کړلو، ما دَ حضرت عمرؓ نه واوريدل، زۀ سپي قتل کړم يا وې وژلم، او هغه غلام دوه مخيزې چاړۀ سره اوتښتيدلو، نو ښي او کس اړخ ته چرته چه به تلو، نو خلق به ئې په هغې وهل هغه ديارلس سړي زخمي کړل، هغوي کښې اُووه خو مړه شو، نو يو مسلمان اوليد، هغه څپل اوږود کوټ په هغه ورواچولو، بيا هغې غلام ته خيال شو، چه هغه به ګرفتار کړې شي، نو هغه هغې خنجر سره خودکشي اوکړله، حضرت عمرؓ دَ حضرت عبدالرحمٰن بن عوف لاس اونيولو، هغه ئې مخکښې که، چه هغه وخت حضرت عمرؓ ته نزدې وو، هغه دا خبرې ليدې، چه ما ليدې، او کوم خلق چه دَ جمات په غاړه ولاړ وو، هغوي ته هيڅ معلوم نۀ شو، هغوي صرف دَ حضرت عمرؓ آواز واونه ريدلو، او هغوئ به سبحان اللّٰه سبحان اللّٰه ونيلې. بيا هغې خلقو ته

فَمَنْ يَلِيْ عُمَرَ فَقَدْ رَاَى الَّذِيْ اَرٰى
وَاَمَّا نَوَاحِي الْمَسْجِدِ فَاِنَّهُمْ
لَا يَدْرُوْنَ غَيْرَ اَنَّهُمْ قَدْ فَقَدُوْا
صَوْتَ عُمَرَ وَهُمْ يَقُوْلُوْنَ سُبْحَانَ
اللّٰهِ سُبْحَانَ اللّٰهِ فَصَلّٰى بِهِمْ عَبْدُ
الرَّحْمٰنِ صَلَاةً خَفِيْفَةً فَلَمَّا انْصَرَفُوْا
قَالَ يَا ابْنَ عَبَّاسٍ اُنْظُرْ مَنْ
قَتَلَنِيْ فَجَالَ سَاعَةً ثُمَّ جَآءَ
فَقَالَ غُلَامُ الْمُغِيْرَةِ قَالَ الصَّنَعُ قَالَ
نَعَمْ قَالَ قَاتَلَهُ اللّٰهُ لَقَدْ اَمَرْتُ
بِهٖ مَعْرُوْفًا اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ لَمْ
يَجْعَلْ مِيْتَتِيْ بِيَدِ رَجُلٍ
يَدَّعِي الْاِسْلَامَ قَدْ كُنْتَ اَنْتَ وَ
اَبُوْكَ تُحِبَّانِ اَنْ تَكْثُرَ الْعُلُوْجُ
بِالْمَدِيْنَةِ وَكَانَ اَكْثَرُهُمْ رَقِيْقًا
فَقَالَ اِنْ شِئْتَ فَعَلْتُ اَيْ اِنْ
شِئْتَ قَتَلْتُ قَالَ كَذَبْتَ بَعْدَ
مَا تَكَلَّمُوْا بِلِسَانِكُمْ وَ
صَلُّوْا قِبْلَتَكُمْ وَحَجُّوْا
حَجَّكُمْ فَاحْتُمِلَ اِلٰى بَيْتِهٖ
فَانْطَلَقْنَا مَعَهٗ وَكَانَ النَّاسُ
لَمْ تُصِبْهُمْ مُصِيْبَةٌ قَبْلَ يَوْمَئِذٍ
فَقَائِلٌ يَقُوْلُ لَا بَأْسَ وَقَائِلٌ
يَقُوْلُ اَخَافُ عَلَيْهِ فَاُتِيَ بِنَبِيْذٍ
فَشَرِبَهٗ فَخَرَجَ مِنْ جُرْحِهٖ فَعَلِمُوْا
اَنَّهٗ مَيِّتٌ فَدَخَلْنَا عَلَيْهِ وَجَآءَ

عبدالرحمٰن بن عوف په تادي مونځ ورکړلو کوم وخت چه خلق دَ مانځه نه فارغ شو، نو حضرت عمرؓ اوفرمائیل، ابن عباسؓ اوګوره په ما چا حمله اوکړله، هغه لږ ساعت اخوا دیخوا چکر اُوَهلو، بیا هغه اووے، دَ مغیره غلام په تاسو حمله کړے ده، حضرت عمرؓ تپوس اوکۀ، آیا هغے کاریګر، حضرت ابن عباسؓ جواب ورکۀ، جي او، نو حضرت عمرؓ اوفرمائیل، خدائے تعالیٰ دے هغه تباه کړي، ما خو هغۀ ته یوه مناسبه خبره ښودلے وه، دَ خدائے تعالیٰ شکر دے، چه هغه خما مرګ دَ یو داسے سړي دَ لاسه نۀ کړلو، چه دَ اسلام دَ پیروي کیدو دعويٰ لري بلاشبه، تا او ستا پلار به دا خبره خوښوله، چه مدینه منوّره کښې غلامان زیات شي. حضرت عباسؓ سره دَ ټولو نه زیات غلامان وو. هغۀ یو ځل ماته اووے، که تۀ غواړے، نو زۀ به داسے کوم، کني که غواړے، نو زۀ به دوي قتل کړم، ما ورته اووے، داسے کول مناسب نۀ دي، ځکه چه هغوي ستاسو ژبه کښې خبرے کوي، او ستاسو قبلے طرف ته مونځ کوي، او ستاسو پشان حج کوي، نو بیا تۀ هغوي قتلولے نۀ شے. بیا حضرت عمرؓ خپل کور ته یوړے شو، دَ خلقو دَ خفګان دا حال وو، چه ګویا هغوي ته دَ هغے ورځ نه مخکښې څۀ مصیبت هډو ورسیدلے نۀ وو، چا به وئیلے، دَ فکر هیڅ خبره نشته، ښۀ به شي، او چا به وئیلے، دَ هغۀ دَ ژوند څۀ اُمید نشته. بیا دَ خوشتو چوهارُو اُوبه ورته راوړلے شوے، حضرت عمرؓ هغه اوڅکلے، نو هغه دَ هغۀ دَ خیټے نه اووتلے، خلق پوهه شو، چه اوس هغه ژوندے نشي پاتے کیدے. بیا مونږ ټول دَ هغوي په خدمت کښې حاضر شو. هلته نور خلق هم

النَّاسُ يُثْنُوْنَ عَلَيْهِ وَ جَاءَ رَجُلٌ شَابٌّ فَقَالَ اَبْشِرْ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ بِبُشْرَى اللّٰهِ لَكَ مِنْ صُحْبَةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قِدَمٍ فِي الْاِسْلَامِ مَا قَدْ عَلِمْتَ ثُمَّ وُلِّيْتَ فَعَدَلْتَ ثُمَّ شَهَادَةٌ قَالَ وَدِدْتُّ اَنَّ ذٰلِكَ كَفَافًا لَا عَلَيَّ وَلَا لِيْ فَلَمَّا اَدْبَرَ اِذَا اِزَارُهٗ يَمَسُّ الْاَرْضَ قَالَ رُدُّوْا عَلَيَّ الْغُلَامَ قَالَ ابْنَ اَخِيْ اِرْفَعْ ثَوْبَكَ فَاِنَّهٗ اَبْقٰى لِثَوْبِكَ وَ اَتْقٰى لِرَبِّكَ يَا عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ اُنْظُرْ مَا عَلَيَّ مِنَ الدَّيْنِ فَحَسَبُوْهُ فَوَجَدُوْهُ سِتَّةً وَّ ثَمَانِيْنَ اَلْفًا اَوْ نَحْوَهٗ قَالَ اِنْ وَفٰى لَهٗ مَالُ اٰلِ عُمَرَ فَاَدِّهٖ مِنْ اَمْوَالِهِمْ وَ اِلَّا فَسَلْ فِيْ بَنِيْ عَدِيِّ بْنِ كَعْبٍ فَاِنْ لَّمْ تَفِ اَمْوَالُهُمْ فَسَلْ فِيْ قُرَيْشٍ وَّلَا تَعْدُهُمْ اِلٰى غَيْرِهِمْ فَاَدِّ عَنِّيْ هٰذَا الْمَالَ اِنْطَلِقْ اِلٰى عَائِشَةَ اُمِّ الْمُؤْمِنِيْنَ فَقُلْ يَقْرَاُ عَلَيْكِ عُمَرُ السَّلَامَ وَلَا تَقُلْ اَمِيْرُ الْمُؤْمِنِيْنَ فَاِنِّيْ لَسْتُ الْيَوْمَ لِلْمُؤْمِنِيْنَ اَمِيْرًا وَّ قُلْ يَسْتَاْذِنُ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ اَنْ يُّدْفَنَ

راتلل، اکثر خلقو دَ هغوي تعريف کولو، بيا يو ځلمے سړے راغے، هغهٔ اووے، اے امير المؤمنين، تاسو ته دے د خدائے تعالٰي دَ طرف نه خوشخبري وي، ځکه چه تاسو ته دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم صحبت او اسلام قبولولو کښې تقدم حاصل شو، چه تاسو ته خپله هم معلومه ده. او کوم وخت چه تاسو خليفه جوړ کړے شو، نو تاسو انصاف اوکړهٔ، او آخر شهادت مو بيامند، حضرت عمرؓ اوفرمائيل، زهٔ غواړم، چه دا ټولے خبرے په ما برابر شي، نهٔ عذاب وي، نهٔ ثواب، کوم وخت چه هغه ځلمے واپس شو، نو دَ هغهٔ تهبند په زمکه راکښلے شو. حضرت عمرؓ اوفرمائيل دغه هلک ماته راولئے، نو هغه راوستے شو، نو حضرت عمرؓ اوفرمائيل، اے وراره، خپله کپړه اُوچته کړه، چه دا خبره به کپړه صفا (صافه) ساتي، او خدائے ته هم غوره ده. بيائے خپل ځوئ عبداللّٰه ته اووے، اوګوره، دَ خلقو په ما څومره قرض دے، خلقو حساب اولګولو، نو تقريبًا شپږ اتيا زره قرضه وه، وے فرمائيل، که دَ دے قرضے دَ ادائيګي دَ پاره دَ عمرؓ دَ اولاد مال کافي وي، نو دَ هغوي دَ مال نه دا ادا کړئے، کني بيا بني عدي بن کعب نه اوغواړئے، که دَ هغوئ مال هم ناکافي وي، نو قريشو نه طلب کړئے، دَ دے نه سِوا بل چانه اخستو سره ځما قرض مهٔ ادا کوئے (يعني ځما دَ قرض دَ ادائيګي دَ پاره دا خلق کافي دي) دَ اُم المؤمنين بي بي عائشےؓ خدمت کښې حاضر شه او ورته وايه، عمر تاسو ته سلام کوي، امير المؤمنين مه وايه، ځکه چه اوس زه امير المؤمنين نهٔ يم، او ورته وايه، چه عمر بن خطاب تاسو ته دَ دے خبرے اجازت غواړي، چه هغه خپلو دواړو

مَعَ صَاحِبَيْهِ فَسَلَّمَ وَاسْتَأْذَنَ
ثُمَّ دَخَلَ عَلَيْهَا فَوَجَدَهَا قَاعِدَةً تَبْكِيْ
فَقَالَ يَقْرَأُ عَلَيْكِ عُمَرُ بْنُ
الْخَطَّابِ السَّلَامَ وَ يَسْتَأْذِنُ اَنْ
يُدْفَنَ مَعَ صَاحِبَيْهِ فَقَالَتْ كُنْتُ
اُرِيْدُهٗ لِنَفْسِيْ وَلَاُوْثِرَنَّ بِهٖ
الْيَوْمَ عَلٰى نَفْسِيْ فَلَمَّا اَقْبَلَ
قِيْلَ هٰذَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ قَدْ
جَآءَ قَالَ ارْفَعُوْنِيْ فَاَسْنَدَهٗ
رَجُلٌ اِلَيْهِ فَقَالَ مَا لَدَيْكَ قَالَ
الَّذِيْ تُحِبُّ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ
اَذِنَتْ قَالَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ مَا كَانَ
مِنْ شَيْءٍ اَهَمُّ اِلَيَّ مِنْ ذٰلِكَ
فَاِذَا اَنَا قَضَيْتُ فَاحْمِلُوْنِيْ ثُمَّ
سَلِّمْ فَقُلْ يَسْتَأْذِنُ عُمَرُ بْنُ
الْخَطَّابِ، فَاِذَا اَذِنَتْ فَاَدْخِلُوْنِيْ
وَاِنْ رَدَّتْنِيْ رُدُّوْنِيْ اِلٰى
مَقَابِرِ الْمُسْلِمِيْنَ وَجَآءَتْ
اُمُّ الْمُؤْمِنِيْنَ حَفْصَةُ وَالنِّسَآءُ
تَسِيْرُ مَعَهَا فَلَمَّا رَاَيْنَاهَا قُمْنَا
فَوَلَجَتْ عَلَيْهِ فَبَكَتْ عِنْدَهٗ
سَاعَةً وَاسْتَأْذَنَ الرِّجَالُ
فَوَلَجَتْ دَاخِلًا لَّهُمْ فَسَمِعْنَا
بُكَاءَهَا مِنَ الدَّاخِلِ فَقَالُوْا
اَوْصِ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ
اسْتَخْلِفْ قَالَ مَا اَجِدُ اَحَقَّ

دوستانو يعني د حضرت محمد صلي الله عليه وسلم او ابوبکرؓ په اړخ کښې دفن کړے شي. نو عبدالله بن عمر چه هلته اورسيد، دَ سلام نه پس ئے دننه د تلو اجازت طلب کړ (چه اجازت ورکړے شو) دننه ورغے. نو ام المؤمنين ئے په ژړا اُوليده. حضرت عبدالله بن عمر عرض اوکړ، چه عمر بن خطاب په تاسو سلام وائي. او دَدے خبرے اجازت غواړي، چه خپلو دوستانو سره دفن کړے شي. بي بي عائشےؓ ورته اوفرمائيل. دا خائے ما خان دَ پاره ساتلے وو، خو اوس زۀ هغه له په خپل ذات ترجيح ورکوم، عبدالله بن عمرؓ چه واپس راغے. نو حضرت عمرؓ ته اطلاعًا اووئيلے شو، چه عبدالله بن عمرؓ راغے، نو حضرت عمرؓ اوفرمائيل، ما اوچت کړئے نو يو سړي دَ ځان په تکيه (سهاره) کينولو. حضرت عمرؓ عبدالله بن عمرؓ نه تپوس اوکړ، څۀ جواب دے راوړلو، هغه جواب ورکړ، امير المؤمنين، هغه کوم چه تاسو ئے خوښوئے، بي بي عائشےؓ اجازت اوکړلو، حضرت عمرؓ اوفرمائيل، دَ خدائے تعالٰي شکر دے ما څۀ څيز دَ دے نه زيات اهم نۀ خيال کولو، چه زۀ مړشم، نو ما اوچت کړئے، او بيا بي بي عائشےؓ ته دَ سلام نه پس اووائے، چه عمر بن خطاب اجازت غواړي، که هغه اجازت اوکړي، نو ما اوسپارئے، او که هغه م واپس کړي، نو ما دَ مسلمانانو قبرستان ته يوسئے، دے نه پس اُم المؤمنين بي بي حفصےؓ تشريف راوړلو، او هغے سره نورے ښځے هم راغلے، چه مونږ هغه اوليده، نو مونږ خلق پاسيدو، هغوي ټولے حضرت عمرؓ له راغلے اَو ساعت هغۀ سره کيناستے، ژړا ئے اوکړله، چه سړو دننه دَ راتلو اجازت

بِهٰذَا الْاَمْرِ مِنْ هٰؤُلَآءِ النَّفَرِ اَوِ الرَّهْطِ الَّذِيْنَ تُوُفِّيَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ عَنْهُمْ رَاضٍ فَسَمّٰى عَلِيًّا وَّ عُثْمَانَ وَالزُّبَيْرَ وَ طَلْحَةَ وَّ سَعْدًا وَّ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ وَ قَالَ يَشْهَدُكُمْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَؓ وَ لَيْسَ لَهٗ مِنَ الْاَمْرِ شَيْءٌ كَهَيْئَةِ التَّعْزِيَةِ لَهٗ فَاِنْ اَصَابَتِ الْاِمْرَةُ سَعْدًا فَهُوَ ذَاكَ وَ اِلَّا فَلْيَسْتَعِنْ بِهٖ اَيُّكُمْ مَّا اُمِّرَ فَاِنِّيْ لَمْ اَعْزِلْهُ عَنْ عَجْزٍ وَّلَا خِيَانَةٍ وَ قَالَ اُوْصِي الْخَلِيْفَةَ مِنْ بَعْدِيْ بِالْمُهَاجِرِيْنَ الْاَوَّلِيْنَ اَنْ يَّعْرِفَ لَهُمْ حَقَّهُمْ وَ يَحْفَظَ لَهُمْ حُرْمَتَهُمْ وَ اُوْصِيْهِ بِالْاَنْصَارِ خَيْرًا تَبَوَّؤُ الدَّارَ وَالْاِيْمَانَ مِنْ قَبْلِهِمْ اَنْ يُّقْبَلَ مِنْ مُّحْسِنِهِمْ وَ اَنْ يُّعْفٰى عَنْ مُسِيْئِهِمْ وَ اُوْصِيْهِ بِاَهْلِ الْاَمْصَارِ خَيْرًا فَاِنَّهُمْ رِدْءُ الْاِسْلَامِ وَ جُبَاةُ الْمَالِ وَ غَيْظُ الْعَدُوِّ وَ اَنْ لَّا يُؤْخَذَ مِنْهُمْ اِلَّا فَضْلُهُمْ عَنْ رِضَاهُمْ وَ اُوْصِيْهِ بِالْاَعْرَابِ خَيْرًا فَاِنَّهُمْ اَصْلُ الْعَرَبِ وَ مَادَّةُ الْاِسْلَامِ

اوغوښتلو، نو هغه ښځې مكان ته لاړلې. بيا مونږ ذ هغوي ذ ژړا آواز واوريدلو. خلقو عرض اوكړ، امير المؤمنين، څۀ وصيت اوكړئ، او څوک خليفه جوړ كړئ. حضرت عمرؓ اووے، څما په نزد، ذ دے خلقو نه زيات ذ خلافت څوک مستحق نشته، چه هغوي نه رسول الله صلي الله عليه وسلّم ذ وفات په وخت راضي وو. بيا هغه ذ حضرت عليؓ، عثمانؓ، زبيرؓ، طلحهؓ، سعدؓ، عبدالرحمٰن بن عوفؓ نومونه واخستل، اووے فرمائيل عبدالله بن عمرؓ به تاسوته حاضر وي، خو خلافت كښې ذ هغۀ هيڅ حصه نشته، هغوي دا جمله ذ ابن عمرؓ ذ تسلي ذ پاره اوونيله اووے وئيل، كه خلافت سعد ته حاصل شي، نو هغه حقيقتًا ذدے اهل دے. كني كوم سړے چه خليفه جوړ كړے شي، هغه دے ذ دۀ نه امور خلافت كښې مدد اخلي. ما دے ذ ناقابليت يا خيانت په وجه معزول كړے نۀ دے. هغوي دا هم اوفرمائيل، څما نه پس چه كوم خليفه مقرر شي، هغۀ ته وصيت كوم، چه ذ مهاجرين اولين حق اوپيژني، ذ هغوي ذ عزت خيال اوساتي، هغۀ ته انصارو سره ذ ښيګړے كولو هم وصيت كوم، چه دارالهجرت، دارالايمان كښې ذ مهاجرينو نه مخكښې مقيم دي. خليفه له پكار دي، چه هغوي كښې ذ نيكانو خلقو نيكو كاري ته په ښۀ نظر اوكوري، او ذ هغوي ذ خطاكارو خلقو خطا معاف كړي، او زۀ هغۀ ته ذ ټولو ښارونو مسلمانانو سره ذ نيكئ كولو وصيت كوم، ځكه چه دغه خلق ذ اسلام پشت پناه دي، هم هغوي مال غنيمت حاصلونكي او دشمن تباه كونكي دي، او وصيت كوم، چه هغوي نه ذ هغوي رضامندئ سره ذومره

نْ يُؤْخَذَ مِنْ حَوَاشِيْ
مْوَالِهِمْ وَ تُرَدَّ عَلٰى فُقَرَآئِهِمْ
وْاُوْصِيْهِ بِذِمَّةِ اللّٰهِ وَ ذِمَّةِ
سُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
نْ يُوْفٰى لَهُمْ بِعَهْدِهِمْ
وَاَنْ يُقَاتَلَ مِنْ وَّرَائِهِمْ
وَلَا يُكَلَّفُوْا اِلَّا طَاقَتَهُمْ
فَلَمَّا قُبِضَ خَرَجْنَا
بِهٖ فَانْطَلَقْنَا نَمْشِيْ فَسَلَّمَ
عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ قَالَ
يَسْتَاْذِنُ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ
قَالَتْ اَدْخِلُوْهُ فَاُدْخِلَ
فَوُضِعَ هُنَالِكَ مَعَ صَاحِبَيْهِ
فَلَمَّا فُرِغَ مِنْ دَفْنِهٖ
اجْتَمَعَ هٰٓؤُلَآءِ الرَّهْطُ
فَقَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ
اجْعَلُوْا اَمْرَكُمْ اِلٰى ثَلٰثَةٍ
مِنْكُمْ فَقَالَ الزُّبَيْرُ قَدْ
جَعَلْتُ اَمْرِيْ اِلٰى عَلِيٍّ
فَقَالَ طَلْحَةُ قَدْ جَعَلْتُ
اَمْرِيْ اِلٰى عُثْمَانَ وَ قَالَ
سَعْدُ قَدْ جَعَلْتُ اَمْرِيْ
اِلٰى عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ
عَوْفٍ فَقَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ
اَيُّكُمَا تَبَرَّاَ مِنْ هٰذَا الْاَمْرِ
فَنَجْعَلُهٗ اِلَيْهِ وَالْاِسْلَامُ

قدرې مال واخستے شي، چه د هغوي د ژوند د ضروریاتونه زیاتي وي. زۀ هغه ته اعرابو سره د نیکي کولو وصیت کوم، ځکه چه هم هغوي اصل عرب او مادۀ اسلام دي، او دَ هغوي نه دے دَ هغوي د ضروریاتو نه زیاتي مال اخستے شي، او دَ هغوي په فقراؤ دے تقسیم کولے شي، زۀ هغه ته دَ خدائے تعالي او رسول صلي الله علیه وسلّم د ذمے وصیت کوم، چه هغوي سره دَ هغوي عهد پوره کړے شي، او دَ هغوي په حمایت پُرزور جنګ اوکړے شي، او هغوي نه دے دَ هغوي د طاقت نه زیات کار نۀ شي اخستلے. کوم وخت چه حضرت عمرؓ وفات شو، نو مونږ خلقو هغه اُوړلو. چه حضرت عبدالله بن عمرؓ بي بي عائشےؓ له ورغے، سلام ئے ورته اوکه، اووئیلے، چه عمرؓ بن خطاب اجازت غواړي. بي بي عائشےؓ اوفرمائیل، هغه داخل کړئے، نو هغه دننه کړے شو، او هلته دَ خپلو دواړو دوستانو په اړخ کښې دفن کړے شو، دَ هغۀ دَ دفن کولو نه پس هغه خلق چه دَ حضرت عمرؓ په نظر کښې دَ خلافت مستحق وو، راجمع شو. حضرت عبدالرحمٰن بن عوف اووے، دا معامله صرف په درے سړو پریږدئے په دے زبیر بن عوامؓ اووے، چه ما خپل حق حضرت عليؓ ته اوسپارلو، او حضرت طلحہؓ اووے، چه ما خپل حق حضرت عثمانؓ ته ورکړلو، او حضرت سعدؓ اووے چه ما خپل حق حضرت عبدالرحمٰن بن عوف له ورکړلو. بیا عبدالرحمٰن بن عوفؓ حضرت عثمانؓ او حضرت عليؓ ته اووے، تاسو دواړو کښې چه کوم یو دَ دے کار (خلافت) نه برأت ظاهر کړي، نو مونږ به خلافت هغۀ ته اوسپارو، او په هغۀ

لَیَنْظُرَنَّ اَفْضَلَهُمْ فِيْ نَفْسِهٖ فَاُسْكِتَ الشَّيْخَانُ فَقَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ اَفَتَجْعَلُوْنَهٗ اِلَيَّ وَاللّٰهُ عَلَيَّ اَنْ لَّا اٰلُوْا عَنْ اَفْضَلِكُمْ قَالَا نَعَمْ فَاَخَذَ بِيَدِ اَحَدِهِمَا فَقَالَ لَكَ قَرَابَةٌ مِنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْقِدَمُ فِي الْاِسْلَامِ مَا قَدْ عَلِمْتَ فَاللّٰهُ عَلَيْكَ لَئِنْ اَمَّرْتُكَ لَتَعْدِلَنَّ وَلَئِنْ اَمَّرْتُ عُثْمَانَ لَتَسْمَعَنَّ وَلَتُطِيْعَنَّ ثُمَّ خَلَا بِالْاٰخَرِ فَقَالَ لَهٗ مِثْلَ ذٰلِكَ فَلَمَّا اَخَذَ الْمِيْثَاقَ قَالَ ارْفَعْ يَدَكَ يَا عُثْمَانُ فَبَايَعَهٗ فَبَايَعَ لَهٗ عَلِيٌّ وَّ وَلَجَ اَهْلُ الدَّارِ فَبَايَعُوْهُ.

به ذ اللّٰه او اسلام ذ حقوقو حفاظت لازم وي. هر یو له غور کول پکار دي، چه ذ هغهٔ په خیال کښې کوم سړے افضل دے، هغه دے خلیفه کړي. په دے خبره شیخینو یعني عثمانؓ او عليؓ خاموشي اختیار کړه. چه دا حضرات چپ شو، نو عبدالرحمٰن اووے، آیا تاسو دواړه ذ خلیفه ذ انتخاب مسئله خما په حواله کوئے، په خدائے چه په ما لازم دي، چه زهٔ به تاسو کښې افضل سړه کوتاهي اونه کړم. نو دواړو وئیلے، او، دا مسئله تاته سپارلے شي. عبدالرحمٰن دواړو کښې ذ یو یعني ذ حضرت عليؓ لاس اونیولو، اووئیلے، تاته ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم قرابت او اسلام قدامت حاصل دے، چه تاته معلوم دے، ذ خدائے ذ پاره په تا لازم دي، که زهٔ تا خلیفه جوړ کړم، نو تهٔ عدل او انصاف کوه، او که زهٔ عثمانؓ خلیفه جوړ کړم، نو تهٔ ذ هغهٔ خبره آوره، او اطاعت ئے کوه. دے نه پس ئے ذ حضرت عثمانؓ لاس اونیولو، او هغه ته ئے هم دغسے اووے، نو عبدالرحمٰن عهد واخست. بیائے اووے، عثمانؓ نه خپل لاس اوچت کړهٔ، عبدالرحمٰنؓ او د هغهٔ نه پس عليؓ ذ هغهٔ نه بیعت اوکهٔ بیا ټولو مدینه والو حاضرینو د حضرت عثمانؓ نه بیعت اوکهٔ.

## بَاب ۱۳۹۱: مَنَاقِبِ عَلِيِّ ابْنِ اَبِيْ طَالِبِ الْقُرَشِيِّ الْهَاشِمِيِّ اَبِي الْحَسَنِ وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِعَلِيٍّ اَنْتَ مِنِّيْ وَ اَنَا مِنْكَ وَ قَالَ تُوُفِّيَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ عَنْهُ رَاضٍ.

باب ۱۳۹۱: ذ حضرت علي بن ابي طالب (ابوالحسن قرشي هاشمي) ذ فضائلو بیان. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم حضرت عليؓ ته اوفرمائیل، چه تهٔ خما نه ئے، او زهٔ تانه یم، او ذ حضرت عمرؓ بیان دے، چه حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم په وخت ذ وفات ذ هغهٔ نه راضي وو.

۱۹۰۱: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ

۱۹۰۱: قتیبه. عبدالعزیز. ابو حازم. حضرت سهل

سَعِيدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ عَنْ أَبِيْ حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ ابْنِ سَعْدٍؓ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَأُعْطِيَنَّ الرَّايَةَ غَدًا رَجُلًا يَفْتَحُ اللّٰهُ عَلَى يَدَيْهِ قَالَ فَبَاتَ النَّاسُ يَدُوْكُوْنَ لَيْلَتَهُمْ أَيُّهُمْ يُعْطَاهَا فَلَمَّا أَصْبَحَ النَّاسُ غَدَوْا عَلَى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّهُمْ يَرْجُوْا أَنْ يُعْطَاهَا فَقَالَ أَيْنَ عَلِيُّ ابْنُ أَبِيْ طَالِبٍ فَقَالُوْا يَشْتَكِيْ عَيْنَيْهِ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ فَأَرْسِلُوْا إِلَيْهِ فَأْتُوْنِيْ بِهٖ فَلَمَّا جَآءَ بَصَقَ فِيْ عَيْنَيْهِ وَ دَعَا لَهٗ فَبَرَأَ حَتّٰى كَأَنْ لَّمْ يَكُنْ بِهٖ وَجَعٌ فَأَعْطَاهُ الرَّايَةَ فَقَالَ عَلِيٌّ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ أُقَاتِلُهُمْ حَتّٰى يَكُوْنُوْا مِثْلَنَا فَقَالَ انْفُذْ عَلٰى رِسْلِكَ حَتّٰى تَنْزِلَ بِسَاحَتِهِمْ ثُمَّ ادْعُهُمْ إِلَى الْإِسْلَامِ وَ أَخْبِرْهُمْ بِمَا يَجِبُ عَلَيْهِمْ مِّنْ حَقِّ عَلَيْهِمْ مِّنْ حَقِّ اللّٰهِ فَوَاللّٰهِ لَأَنْ يَّهْدِيَ اللّٰهُ بِكَ رَجُلًا وَّاحِدًا خَيْرٌ لَّكَ مِنْ أَنْ يَّكُوْنَ لَكَ حُمُرُ النَّعَمِ.

بن سعدؓ نه بيان كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم دَ خيبر په ورځ اوفرمائيل، صبا له به زهٔ دا جنډه يو سړي له وركوم، چه دَ هغه په لاس به خداوند تعالي (دَ خيبر قلعه) فتح كړي. دَ شپې ټولو خلقو سوچ كولو، ګورو، چه صبا له جنډه چاته وركيږي، چه سحر شو، نو ټول خلق دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم په خدمت كښ دے اُميد سره حاضر شو، چه جنډه به هغه ته وركيږي حضورؐ تپوس اوكه، عليؓ بن طالب كوم ځائے دے. خلقو عرض اوكه، يا رسول الله، دَ هغهٔ ستركې خوږيږي، حضورؐ اوفرمائيل، څوک لاړ شئے، هغه راغواړئے هغه راغوښتلے شو. څه وخت چه هغه راغے نو حضورؐ دَ هغهٔ په دواړو ستركو خپلے لاړے مباركے پورے كړے، او دُعائے اوكړه، نو هغه ښے شولے، ګويا چه هغه هډو خوږيدے نه. بيا حضورؐ هغه ته جنډه عطا كړله. حضرت عليؓ عرض اوكه، يا رسول الله، زهٔ به دے خلقو (يعني دشمنانو) سره هغهٔ وخته پورے جنګيږم، څو پورے چه څمونږ په شان مسلمانان نشي، حضورؐ ورته اوفرمائيل، صبر كوه، كله چه ته ميدان جنګ ته اورسے، نو اول هغوي ته دَ اسلام دعوت وركه. (يعني اسلام ته ئے اوبله) بيا دَ خدائے حق چه په هغوي واجب دے، دَ هغے نه هغوي خبر كړه، په خدائے چه، كه ستا دَ تحريک او تبليغ په ذريعه الله تعالي يو سړي ته هم هدايت اوكړي، نو ستا دَ پاره دَ سرو اوښانو نه هم دا په درجو بهتره ده:

۹۰۲ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا حَاتِمٌ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ أَبِيْ عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ قَالَ كَانَ عَلِيٌّ قَدْ تَخَلَّفَ عَنِ

۹۰۲ : قتيبه. حاتم. يزيد. حضرت سلمهؓ نه روايت كوي، هغه اووے. حضرت عليؓ خيبر كښ رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه ورستو پاتے شوے وو،

النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي خَيْبَرَ وَ كَانَ بِهِ رَمَدٌ فَقَالَ اَنَا اَتَخَلَّفُ عَنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَخَرَجَ عَلِيٌّ فَلَحِقَ بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا كَانَ مَسَاءُ اللَّيْلَةِ الَّتِي فَتَحَهَا اللّٰهُ فِيْ صَبَاحِهَا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَاُعْطِيَنَّ الرَّايَةَ اَوْ لَيَاْخُذَنَّ الرَّايَةَ غَدًا رَّجُلًا يُحِبُّهُ اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهُ وَ قَالَ يُحِبُّ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهُ يَفْتَحُ اللّٰهُ عَلَيْهِ فَاِذَا نَحْنُ بِعَلِيٍّ وَمَا نَرْجُوْهُ فَقَالُوْا هٰذَا عَلِيٌّ فَاَعْطَاهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَفَتَحَ اللّٰهُ عَلَيْهِ.

د هغې وجه داده' چه د هغهٔ سترګې خوږیدې' هغه خپل زړهٔ کښې اووې' ماته د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه ورستو پاتې کیدل ښهٔ نهٔ ښکاري' نو حضرت عليؓ تیزئ سره رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم له راورسیدلو' چه مابنام شو' د هغې په دویمه ورځ سحر خدائې تعالٰي فتح ورکړه' نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل' زهٔ به صباله جنډه داسې سړي له ورکوم' چه اللّٰه او رسول محبوب لري' یا وې فرمائيل' چه اللّٰه او د هغه رسول محبوب لري' خدائې تعالٰي به د هغهٔ په لاس فتح نصیب کړي. ناساپه ځمونږ ملاقات حضرت عليؓ سره اوشو' ځمونږ د هغه د راتلو اُمید نه وو' خلقو اووې' دا عليؓ دې' نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم جنډه هغهٔ ته مرحمت کړه' او خدائې د هغهٔ په لاس فتح اوکړه.

۹۰۳: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّ رَجُلًا جَآءَ اِلٰى سَهْلِ ابْنِ سَعْدٍ فَقَالَ هٰذَا فُلَانٌ لِاَمِيْرِ الْمَدِيْنَةِ يَدْعُوْا عَلِيًّا عِنْدَ الْمِنْبَرِ قَالَ فَيَقُوْلُ مَاذَا قَالَ يَقُوْلُ لَهُ اَبُوْ تُرَابٍ فَضَحِكَ قَالَ وَاللّٰهِ مَا سَمَّاهُ اِلَّا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَا كَانَ لَهُ اِسْمٌ اَحَبَّ اِلَيْهِ مِنْهُ فَاسْتَطْعَمْتُ الْحَدِيْثَ سَهْلًا وَ قُلْتُ يَا اَبَا عَبَّاسٍ كَيْفَ قَالَ دَخَلَ عَلِيٌّ عَلٰى فَاطِمَةَ ثُمَّ خَرَجَ

۹۰۳: عبداللّٰه بن مسلمه. عبدالعزيز بن ابي حازم. حضرت ابو حازم نه بيان کوي' يو سړي حضرت سهل بن سعد ته اووې' فلانې سړې د مدينې امير حضرت عليؓ ته د منبر د پاسه (برسر منبر) بد وائي حضرت سهل تپوس اوکهٔ' هغه کوم الفاظ استعمالوي هغه جواب ورکهٔ' هغه ورته ابو تراب وائي نو سهل اوخاندل' وئيلې' قسم په خدائې د هغهٔ دا نوم خو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ايښې دې. او ځومره چه دا نوم د هغهٔ خوښ دې' بل نوم ئې دومره خوښ نهٔ دې بيا ما پوره حديث د سهل نه درنيافت کهٔ. ما عرض اوکهٔ' اې ابوالعباس' دا واقعه څنګه شوې وه' هغهٔ اوفرمائيل' يوه ورځ بي بي فاطمهؓ له حضرت عليؓ لږ ناوخته ورغې. او

فَاضْطَجَعَ فِي الْمَسْجِدِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيْنَ ابْنُ عَمِّكِ قَالَتْ فِي الْمَسْجِدِ فَخَرَجَ إِلَيْهِ فَوَجَدَ رِدَآءَهُ قَدْ سَقَطَ عَنْ ظَهْرِهِ وَخَلَصَ التُّرَابُ إِلَى ظَهْرِهِ فَجَعَلَ يَمْسَحُ التُّرَابَ عَنْ ظَهْرِهِ فَيَقُولُ اِجْلِسْ يَا أَبَا تُرَابٍ مَرَّتَيْنِ.

بیا بهر راغے، جمات کښ اُوده شو، نو حضورؐ د بي بي فاطمےؓ نه تپوس او کۀ، ستا د ترۀ خوئے کوم خائے دے، هغے اووے جمات کښ، نو حضورؐ هغۀ پسے جمات ته تشریف یوړلو، نو وے لیدل، چه د هغۀ څادر د شا نه بیرته شوے وو، او د هغۀ په شا بس خاوره او خاوره وه. حضورؐ ترے خاوره څنډله، او فرمائیل، اے ابو تراب، پاسه. دوه خله حضورؐ دغسے اوفرمائیل.

۹۰۴: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ حَدَّثَنَا حُسَيْنٌ عَنْ أَبِي حُصَيْنٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ عُبَيْدَةَ قَالَ جَآءَ رَجُلٌ إِلَى ابْنِ عُمَرَؓ فَسَأَلَهُ عَنْ عُثْمَانَ فَذَكَرَ عَنْ مَحَاسِنِ عَمَلِهِ قَالَ لَعَلَّ ذَاكَ يَسُوْءُكَ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَأَرْغَمَ اللّٰهُ بِأَنْفِكَ ثُمَّ سَأَلَهُ عَنْ عَلِيٍّ فَذَكَرَ مَحَاسِنَ عَمَلِهِ قَالَ هُوَ ذَاكَ بَيْتُهُ أَوْسَطُ بُيُوتِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ لَعَلَّ ذَاكَ يَسُوْءُكَ قَالَ أَجَلْ قَالَ فَأَرْغَمَ اللّٰهُ بِأَنْفِكَ انْطَلِقْ فَاجْهَدْ عَلَى جَهْدِكَ.

۹۰۴: محمد. حسین. زائده. حصین. حضرت سعد بن عبیدهؓ نه روایت کوي، یو سړے د حضرت ابن عمرؓ خدمت کښ حاضر شو، او د هغۀ نه ئے د حضرت عثمانؓ متعلق تپوس او کۀ، حضرت ابن عمرؓ ورته د حضرت عثمانؓ نیک اعمالئے بیان کړے، حضرت ابن عمرؓ اوفرمائیل، شاید دا خبرے په تا بدے لږي، هغۀ اووے، او، نو دوي ورته اوفرمائیل الله دے تا ذلیل او خوار کړي. بیا هغے سړي د حضرت علیؓ بابت کښ تپوس او کۀ، حضرت ابن عمرؓ د هغه هم نیک عملئے بیان کړے، ونیلے هغه داسے دے، د هغه کور، د رسول الله صلي الله عليه وسلّم د کورونو مینځ کښ دے. بیائے اوفرمائیل، شاید دا خبرے هم په تا بدے لږي، هغه سړي اووے، او، حضرت ابن عمرؓ ورته اوفرمائیل، خدائے دے تا ذلیل کړي، ځه (ورک شه) او ماته د نقصان رسولو کوشش کوه (یعني لاس دے آزاد).

۹۰۵: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْحَكَمِ سَمِعْتُ ابْنَ أَبِي لَيْلَى قَالَ حَدَّثَنَا عَلِيٌّ أَنَّ فَاطِمَةَ

۹۰۵: محمد. غندر. شعبه. حکم. ابن ابي لیلٰي. حضرت علیؓ نه بیان کوي، بي بي فاطمےؓ ته چه د میچنے کولو (چکی پیسنے کی) په وجه کوم تکلیف رسیدلے وو، د هغے ئے رسول الله صلي الله عليه وسلّم ته شکایت

عَلَيْهَا السَّلَامُ شَكَتْ مَا تَلْقٰى مِنْ اَثَرِ الرَّحٰى فَاَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَبْيٌ فَانْطَلَقَتْ فَلَمْ تَجِدْهُ فَوَجَدَتْ عَائِشَةَ فَاَخْبَرَتْهَا فَلَمَّا جَآءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَخْبَرَتْهُ عَائِشَةُ بِمَجِيْءِ فَاطِمَةَ فَجَآءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَيْنَا وَقَدْ اَخَذْنَا مَضَاجِعَنَا فَذَهَبْتُ لِاَقُوْمَ فَقَالَ عَلٰى مَكَانِكُمَا فَقَعَدَ بَيْنَنَا حَتّٰى وَجَدْتُ بَرْدَ قَدَمَيْهِ عَلٰى صَدْرِيْ وَ قَالَ اَلَا اُعَلِّمُكُمَا خَيْرًا مِّمَّا سَاَلْتُمَا اِذَا اَخَذْتُمَا مَضَاجِعَكُمَا تُكَبِّرَا اَرْبَعًا وَّ ثَلٰثِيْنَ وَ تُسَبِّحَا ثَلٰثًا وَّ ثَلٰثِيْنَ وَ تَحْمَدَا ثَلٰثًا وَّ ثَلٰثِيْنَ فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمَا مِنْ خَادِمٍ.

او کۀ او څۀ وخت چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ته څۀ قيديان راغلل، نو بي بي فاطمهؓ حضورؐ له ورغله خو حضورؐ ئې بيانۀ منَدلو. بي بي عائشهؓ کور کښې وه او هغې ته ئې د خپلو راتلو وجه بيان کړه. څه وخت چه حضورؐ تشريف راوړلو نو بي بي عائشېؓ ورته د بي بي فاطمېؓ د راتلو وجه بيان کړه، نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم مونږ پله تشريف راوړلو، داسې وخت چه مونږ په بسترو ملاست وو. مونږ پاسيدل اوغوښتل نو حضورؐ اوفرمائيل تاسو دواړه په خپل ځائې اوسئې او حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم خمونږ د دواړو مينځ کښې کيناستلو، ما د حضورؐ د پښو مبارکو يخ والې خپلې سينه کښې محسوس که، حضورؐ اوفرمائيل زۀ تاته يوه داسې خبره ښائيم چه ستا د طلب کړده څيز نه په درجو بهتره ده. کله چه اودۀ کيدو د پاره بسترې ته ورځې نو څلور ديرش ځله اللّٰه اکبر وايه او درې ديرش ځله سبحان اللّٰه او درې ديرش الحمدللّٰه وايه، دا ستا د پاره د خادم نه بهتر دي.

۹۰۶: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَعْدٍ قَالَ سَمِعْتُ اِبْرَاهِيْمَ ابْنَ سَعْدٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِعَلِيٍّ اَمَا تَرْضٰى اَنْ تَكُوْنَ مِنِّيْ بِمَنْزِلَةِ هٰرُوْنَ مِنْ مُوْسٰى.

۹۰۶: محمد بن بشار. غندر. شعبه. سعد. ابراهيم نه بيان کوي، هغۀ اوورې، ما د سعد بن ابي وقاص نه آوريدلې دي، حضرت عليؓ ته رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلې وو، آيا تۀ دا خبره نه خوښوې، چه تۀ ماسره په هغه درجه ئې، په کومه درجه چه حضرت هارونؑ حضرت موسي عليه السلام سره وو.

۹۰۷: حَدَّثَنَا عَلِيُّ ابْنُ الْجَعْدِ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَيُّوْبَ عَنِ ابْنِ سِيْرِيْنَ عَنْ عُبَيْدَةَ عَنْ

۹۰۷: علي بن جعد. شعبه. ايوب. ابن سيرين. عبيده. حضرت عليؓ نه روايت کوي، چه تاسو خلقو څنګه فيصله کوله، هغسې فيصله کوئې، ځکه چه زۀ

عَلِيٌّ قَالَ اقْضُوْا كَمَا كُنْتُمْ تَقْضُوْنَ فَإِنِّيْ اَكْرَهُ الْإِخْتِلَافَ حَتّٰى يَكُوْنَ لِلنَّاسِ جَمَاعَةٌ اَوْ اَمُوْتَ كَمَا مَاتَ اَصْحَابِيْ فَكَانَ ابْنُ سِيْرِيْنَ يَرٰى اَنَّ عَامَّةَ مَا يُرْوٰى عَنْ عَلِيٍّ الْكَذِبُ.

اختلاف بد گنړم، ټول خلق دې متفق او یو جماعت جوړ شي، یا بیا ماله دې هم مرګ راشي، څنګه چه اصحاب کبار (لویو صحابهؓ) مرګ سره غاړه غټې شوې دي. ذ ابن سیرین رائې ده، اکثر روایتونه چه حضرت علي کرم الله وجهه نه منقول شوي دي، په دروغو مبني دي. (کوم چه رَوافضو نقل کړي دي)

باب ۲۹۲: مَنَاقِبِ جَعْفَرِ بْنِ اَبِيْ طَالِبٍ وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَشْبَهْتَ خَلْقِيْ وَ خُلُقِيْ.

باب ۲۹۲: ذ حضرت جعفر بن ابي طالب (هاشمي) ذ فضائلو بیان. ذ نبي صلے الله علیه وسلّم ارشاد دے، (اے جعفره) تهٔ صورت او سیرت کښې څما مشابه ئے.

۹۰۸: حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ اَبِيْ بَكْرٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ بْنِ دِيْنَارٍ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ الْجُهْنِيُّ عَنِ ابْنِ اَبِيْ ذِئْبٍ عَنْ سَعِيْدِ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ النَّاسَ يَقُوْلُوْنَ اَكْثَرَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ وَ اِنِّيْ كُنْتُ اَلْزَمُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِشِبْعِ بَطْنِيْ حِيْنَ لَا اٰكُلُ الْخَمِيْرَ وَلَا اَلْبَسُ الْحَبِيْرَ وَلَا يَخْدُمُنِيْ فُلَانٌ وَلَا فُلَانَةٌ وَ كُنْتُ اُلْصِقُ بَطْنِيْ بِالْحَصْبَاءِ مِنَ الْجُوْعِ وَ اِنْ كُنْتُ لَاَسْتَقْرِئُ الرَّجُلَ الْاٰيَةَ هِيَ مَعِيَ كَيْ يَنْقَلِبَ بِيْ فَيُطْعِمُنِيْ وَ كَانَ اَخْيَرَ النَّاسِ لِلْمَسَاكِيْنِ جَعْفَرُ بْنُ اَبِيْ طَالِبٍ كَانَ يَنْقَلِبُ بِنَا فَيُطْعِمُنَا مَا كَانَ فِيْ بَيْتِهٖ حَتّٰى اِنْ كَانَ لَيُخْرِجُ اِلَيْنَا الْعُكَّةَ

۹۰۸: احمد. محمد. ابن ابي ذئب. سعید المقبري. حضرت ابوهریرهؓ نه بیان کوي، خلق وائي، ابوهریرهؓ ډیر حدیثونه بیانوي، اصل وجه داده، چه زهٔ به ذ رسول الله صلي الله علیه وسلّم خدمت کښې خیتې ډکولو نه پس هر وخت لږیدلے ووم، خمیره ډوډئ او ذ فخر لباس اغستلو ذ پاره ما نهٔ بیا مندل، او وینزه غلام څما خدمت ذ پاره ما سره نهٔ وو، او ذ ډیرے لوږے نه م په خیټه کانړي تړل، ذ بعضے آیتونو معنے به ماته معلومے وے. لیکن ذ دے باوجود ذ بعضے خلقو نه ما په دے وجه دریافت کولو، چه څوک ما کور ته بوځي، او طعام را باندے اوخوروي. مسکینانو سره ذ ټولو نه زیات ښهٔ سلوک کونکے جعفر بن ابي طالب وو، هغهٔ به زهٔ خپل خان سره بوتلم، او څهٔ چه به ذ هغهٔ کور کښې موجود وو، په ما به ئے خورول، هغهٔ به ما ته ذ غوړو کوپئ راوړله، چه هغے کښې به څهٔ نهٔ وو، نو

الَّتِیْ لَیْسَ فِیْهَا شَیْءٌ فَیَشُقُّهَا فَنَلْعَقُ مَا فِیْهَا.

پہ دے سبب بہ ئے ماتولہ. بیا چہ ھغے کبن بہ ھر څہ وو ھغہ بہ مونږ څټل.

۹۰۹: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِیٍّ حَدَّثَنَا یَزِیْدُ بْنُ هٰرُوْنَ اَخْبَرَنَا اِسْمٰعِیْلُ بْنُ اَبِیْ خَالِدٍ عَنِ الشَّعْبِیِّ اَنَّ ابْنَ عُمَرَؓ کَانَ اِذَا سَلَّمَ عَلَی ابْنِ جَعْفَرٍ قَالَ اَلسَّلَامُ عَلَیْكَ یَا ابْنَ ذِی الْجَنَاحَیْنِ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ یُقَالُ کُنْ فِیْ جَنَاحِیْ کُنْ فِیْ نَاحِیَتِیْ کُلُّ جَانِبَیْنِ جَنَاحَانِ.

۹۰۹: عمرو بن علي. یزید بن هارون اسماعیل بن ابي خالد. شعبي نه روایت کوي حضرت ابن عمرؓ چه به د حضرت جعفرؓ خوي (عبداللّه) ته سلام کولو نو وئیل به ئے السلام علیک یا ابن ذي الجناحین یعني اے د دوه، بازو کانو (وزرو) واله خویه، په تا دے سلامتي وي. (ذوالجناحین د حضرت جعفرؓ لقب وو).

باب ۳۹۳: ذِکْرِ الْعَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ.

باب ۳۹۳: د حضرت عباسؓ بن عبدالمطلب د فضائلو بیان.

۹۱۰: حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الْاَنْصَارِیُّ حَدَّثَنِیْ اَبِیْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ الْمُثَنّٰی عَنْ ثُمَامَةَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَنَسٍ عَنْ اَنَسٍؓ اَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ کَانَ اِذَا قَحَطُوْا اِسْتَسْقٰی بِالْعَبَّاسِ ابْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ فَقَالَ اَللّٰهُمَّ اِنَّا کُنَّا نَتَوَسَّلُ اِلَیْكَ بِنَبِیِّنَا صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَتَسْقِیْنَا وَ اِنَّا نَتَوَسَّلُ اِلَیْكَ بِعَمِّ نَبِیِّنَا فَاسْقِنَا قَالَ فَیُسْقَوْنَ.

۹۱۰: حسن بن محمد. محمد بن عبداللّه انصاري. ابو عبداللّه بن مثنی. ثمامه بن عبداللّه بن انسؓ نه روایت کوي چه کله به قحط راغے نو حضرت عمرؓ بن خطاب به د حضرت عباسؓ بن عبدالمطلب په وسیله د باران دعا غوښتله، چه اے خدایه، مونږ به ستا د رسول واسطه تاته مخکے کوله او تا به باران ورولو او اوس ستا د رسول د تره (چچا) واسطه تاته مخے ته کوو ته باران اوکړے نو ښه باران به اوشولو.

باب ۳۹۴: مَنَاقِبِ قَرَابَةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وَ مَنْقَبَةِ فَاطِمَةَ عَلَیْهَا السَّلَامُ بِنْتِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ

باب ۳۹۴: د رسول اللّه صلي اللّه علیه وسلم د رشته دارانو د فضائلو بیان. د حضور د لور بي بي فاطمے د فضائلو بیان. د رسول اللّه صلي اللّه علیه وسلم ارشاد

النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاطِمَةُ سَيِّدَةُ نِسَآءِ أَهْلِ الْجَنَّةِ.

٩١١: حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ فَاطِمَةَ عَلَيْهَا السَّلَامُ أَرْسَلَتْ إِلَى أَبِي بَكْرٍ تَسْأَلُهُ مِيرَاثَهَا مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيمَا أَفَآءَ اللّٰهُ عَلَى رَسُولِهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّتِي بِالْمَدِينَةِ وَفَدَكَ وَمَا بَقِيَ مِنْ خُمُسِ خَيْبَرَ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا نُوْرَثُ مَا تَرَكْنَا فَهُوَ صَدَقَةٌ إِنَّمَا يَأْكُلُ اٰلُ مُحَمَّدٍ مِّنْ هٰذَا الْمَالِ يَعْنِيْ مَالِ اللّٰهِ لَيْسَ لَهُمْ أَنْ يَزِيْدُوْا عَلَى الْمَاكِلِ وَ إِنِّيْ وَاللّٰهِ لَا أُغَيِّرُ شَيْئًا مِّنْ صَدَقَاتِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَأَعْمَلَنَّ فِيهَا بِمَا عَمِلَ فِيهَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَشَهَّدَ عَلِيٌّ ثُمَّ قَالَ إِنَّا قَدْ عَرَفْنَا يَا أَبَا بَكْرٍ فَضِيْلَتَكَ وَ ذَكَرَ قَرَابَتَهُمْ مِنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَقَّهُمْ فَتَكَلَّمَ أَبُو بَكْرٍ فَقَالَ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَقَرَابَةُ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحَبُّ إِلَيَّ أَنْ أَصِلَ مِنْ قَرَابَتِيْ.

مبارک دي: فاطمهٔ به ذ جنت د ښځو سرداره وي.

٩١١: ابواليمان. شعيب. زهري. عروه بن زبير. بي بي عائشې نه روايت کوي: بي بي فاطمې حضرت ابوبکر صديق ته سړے اوليږلو: چه د هغهٔ نه ئے خپل ميراث طلب که، يعني هغه څيزونه چه خدائے خپل رسول ته د فئ (غنيمت) په طور ورکړے وو: او د رسول الله صلي الله عليه وسلّم مصرف خير چه مدينه منوره او فدک کښې وو: او د خيبر د متروکه آمدني پنځمه حصه. نو حضرت ابوبکرؓ ورته اوفرمائيل: خمونږ د رسول الله صلي الله عليه وسلّم ارشاد دے: چه خمونږ هيڅوک وارث نه وي: څه چه مونږ پريږدو: هغه صدقه ده. آل محمدؐ يعني خداداد مال نه خوړے شي: هغوي ته دا اختيار نشته، چه ذ خوراک نه زيات واخلي قسم په خدائے، ذ صدقانو کوم حالت چه د حضور صلي الله عليه وسلّم په زمانه کښې وو زهٔ هغے کښې هيڅ تبديلي نه کوم، بلکه هغه عمل به کوم، کوم چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم کړلو، حضرت عليؓ تشهد اولوست بيانئے اوو: اے ابوبکرؓ: مونږ ستا ذ بزرګي او فضيلت نه ښهٔ واقف يُو. دے نه پس هغه رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره د بي بي فاطمې قرابت او حق واضح کړ: نو حضرت ابوبکرؓ اووے، قسم دے په هغه ذات: چه د هغهٔ قبضه کښې خما ساه ده: زهٔ د رسول الله صلي الله عليه وسلّم قرابت سره (ښهٔ) سلوک کول خپل قرابت سره ذ سلوک کولو نه زيات خوښوم.

۲ ۱ ۹: حَدَّثَنَا خَالِدُ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدُ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ وَاقِدٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبِيْ يُحَدِّثُ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنْ اَبِيْ بَكْرٍؓ قَالَ ارْقُبُوْا مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ اَهْلِ بَيْتِهِ.

۲ ۱ ۹: عبدالله بن عبدالوهاب. خالد. شعبه. واقد. ذ هغهٔ پلار. حضرت ابن عمرؓ. حضرت ابوبكرؓ نه روايت كوي، ذ حضرت محمد صلي الله عليه وسلّم خوشنودي ذ حضور صلي الله عليه وسلّم د اهل بيتو خدمت او محبت كښې اوګڼړئې.

۳ ۱ ۹: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِيْنَارٍ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ الْمَخْرَمَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَاطِمَةُ بِضْعَةٌ مِّنِّيْ فَمَنْ اَغْضَبَهَا اَغْضَبَنِيْ.

۳ ۱ ۹: ابوالوليد. ابن عيينه. عمرو. ابن ابي مليكه. حضرت مسور بن مخرمهٔ نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم فرمائيلي دي، فاطمهؓ ځما ذ غوښې يوه ټكړه ده، چا چه دا خفه كړه، نو هغهٔ زهٔ خفه كړم.

۴ ۱ ۹: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ قَزْعَةَ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَآئِشَةَ قَالَتْ دَعَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاطِمَةَ ابْنَتَهُ فِيْ شَكْوَاهُ الَّتِيْ قُبِضَ فِيْهَا فَسَارَّهَا بِشَيْءٍ فَبَكَتْ ثُمَّ دَعَاهَا فَسَارَّهَا فَضَحِكَتْ قَالَتْ فَسَاَلْتُهَا عَنْ ذٰلِكَ فَقَالَتْ سَارَّنِيْ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرَنِيْ اَنَّهُ يُقْبَضُ فِيْ وَجْعِهِ الَّذِيْ تُوُفِّيَ فِيْهِ فَبَكَيْتُ ثُمَّ سَارَّنِيْ فَاَخْبَرَنِيْ اَنِّيْ اَوَّلُ اَهْلِ بَيْتِهِ اَتْبَعُهُ فَضَحِكْتُ.

۴ ۱ ۹: يحيٰي بن قزعه. ابراهيم بن سعد. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم خپله لور فاطمهؓ خپل مرض كښې چه هغې كښې وفات كيدلو، راوغښتله (كوم وخت چه هغه راغله) هغې سره ئې رُو، رُو څهٔ خبره اوكړله، نو هغه په ژړا شوه، بيائې رو شان څهٔ خبره اوكړه، نو هغه په خندا شوه، ما ذ بي بي فاطمےؓ نه ذ هغې سبب اوپښتهٔ، نو هغې جواب راكهٔ، زهٔ رسول الله صلي الله عليه وسلّم رو شان ذ دے خبرے نه خبرداره كړے ووم، چه حضورؐ به دے مرض كښې وفات شي، نو زهٔ په ژړا شوم، څه وخت چه دوباره حضورؐ رو شان دا اووے، چه زهٔ به ذ حضورؐ په اهل كښې ذ ټولو نه ورمبے حضور صلي الله عليه وسلّم سره يوځائے كيږم، نو زهٔ په خندا شوم.

باب ۳۹۵: مَنَاقِبِ الزُّبَيْرِ بْنِ الْعَوَّامِ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ هُوَ حَوَارِيُّ

باب ۳۹۵: ذ حضرت زبير بن عوام ذ فضائلو بيان. ابن عباسؓ فرمائي، هغه ذ سرور عالم صلي

النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ سُمِّيَ الْحَوَارِيُّوْنَ لِبَيَاضِ ثِيَابِهِمْ.

**۹۱۵:** حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيْهِ قَالَ أَخْبَرَنِيْ مَرْوَانُ ابْنُ الْحَكَمِ قَالَ أَصَابَ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ رُعَافٌ شَدِيْدٌ سَنَةَ الرُّعَافِ حَتّٰى حَبَسَهُ عَنِ الْحَجِّ وَ أَوْصٰى فَدَخَلَ عَلَيْهِ رَجُلٌ مِّنْ قُرَيْشٍ قَالَ اسْتَخْلِفْ قَالَ وَ قَالُوْهُ قَالَ نَعَمْ قَالَ وَمَنْ فَسَكَتَ فَدَخَلَ عَلَيْهِ رَجُلٌ آخَرُ أَحْسِبُهُ الْحَارِثُ فَقَالَ اسْتَخْلِفْ فَقَالَ عُثْمَانُ وَ قَالُوْا فَقَالَ نَعَمْ قَالَ وَمَنْ هُوَ فَسَكَتَ قَالَ فَلَعَلَّهُمْ قَالُوْا الزُّبَيْرَ قَالَ نَعَمْ قَالَ أَمَا وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ إِنَّهُ لَخَيْرُهُمْ مَا عَلِمْتُ وَ إِنْ كَانَ لَأَحَبَّهُمْ إِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**۹۱۶:** حَدَّثَنِيْ عُبَيْدُ بْنُ إِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا أَبُوْ أُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ أَخْبَرَنِيْ أَبِيْ سَمِعْتُ مَرْوَانَ كُنْتُ عِنْدَ عُثْمَانَ أَتَاهُ رَجُلٌ فَقَالَ اسْتَخْلِفْ قَالَ وَ قِيْلَ ذَاكَ قَالَ نَعَمْ الزُّبَيْرُ قَالَ

الله علیه وسلّم حواري وو' او سفید پوش ته حواري وائي.

**۹۱۵:** خالد. علي. هشام. عروه. حضرت زبیرؓ نه بیان کوي' ماته مروان بن حکم خبر راکهٔ د نکسیر د مرض په کال حضرت عثمان ته دومره سخت نکسیر اوشو (یعني په پوزه ئې وینه راماته شوه) چه هغه دَ حج نه پاتې شو' او وصیت ئې هم کړې وو. چه یو قریشي ورته عرض اوکهٔ' چه څوک خلیفه مقرر کړئې' حضرت عثمانؓ ورته اووې' آیا خلق خلیفه مقررولو دَ پاره وائي' هغهٔ اووې' او' حضرت عثمانؓ اووې' څوک هغه سړې خاموش شو' بیا یو بل سړې ورله راغې' څما خیال دې' چه هغه حارث وو' هغهٔ ورته اووې' څوک خلیفه جوړ کړئې' حضرت عثمانؓ دَ هغهٔ نه هم تپوس اوکهٔ' آیا خلق خلیفه مقررولو دَ پاره وائي' هغهٔ اووې' او' حضرت عثمانؓ هغهٔ ته اوفرمائیل' شاید هغه هم لږ ساعت خاموش شو' بیائې اووې' څوک خلیفه کول غواړي دَ خلقو رائې ده' چه زبیرؓ خلیفه جوړ کړي' نو حضرت عثمانؓ اووې' په هغه ذات مِ دې قسم وي' چه دَ هغهٔ په قبضه کښې څما ساه ده' څما علم کښې زبیرؓ دَ ټولونه بهتر دې' یقیناً هغه دَ سردار عالم صلي الله علیه وسلّم دَ ټولونه زیات محبوب وو.

**۹۱۶:** عبید. ابو اسامه. هشام. حضرت عروه نه روایت کوي' ما دَ مروان نه آوریدلې دي' زهٔ حضرت عثمان سره ناست ووم' یو سړې راغې' او حضرت عثمانؓ ته ئې اووې' اوس تاسو څوک خلیفه جوړ کړې' حضرت عثمانؓ تپوس اوکهٔ' آیا خلق خلیفه مقررولو دَ پاره وائي' هغهٔ اووې' او' حضرت زبیرؓ مقررول غواړي'

اَمَا وَاللّٰهِ اِنَّكُمْ لَتَعْلَمُوْنَ اَنَّهٗ خَيْرُكُمْ ثَلٰثًا.

حضرت عثمانؓ درے خله اووے، خبردار شے، چه زبيرؓ ذ تولو نه بهتر دے.

۷ ۱ ۹ : حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ هُوَ ابْنُ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ عَنْ جَابِرٍؓ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ لِكُلِّ نَبِيٍّ حَوَارِيًّا وَّ اِنَّ حَوَارِيَّ الزُّبَيْرُ بْنُ الْعَوَّامِ.

۷ ۱ ۹ : مالک بن اسماعيل. عبدالعزيز. ابن ابي سلمه. محمد. محمد بن منكدر. حضرت جابرؓ نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، ذ هر نبي حواري وي، او يقينًا ځما حواري زبيرؓ دے.

ف : حواري: دوست، يار، آشنا، شاګرد، هغه سړے چه ډيرے وفاداري سره كار كوي، او ذ خپل آقا ذ پاره هر وخت كفن په اوږه او سر په تلي كښں ساتي.

۸ ۱ ۹ : حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الزُّبَيْرِ قَالَ كُنْتُ يَوْمَ الْاَحْزَابِ جُعِلْتُ اَنَا وَ عُمَرُ بْنُ اَبِيْ سَلَمَةَ فِي النِّسَآءِ فَنَظَرْتُ فَاِذَا اَنَا بِالزُّبَيْرِ عَلٰى فَرَسِهٖ يَخْتَلِفُ اِلٰى بَنِيْ قُرَيْظَةَ مَرَّتَيْنِ اَوْ ثَلٰثًا فَلَمَّا رَجَعْتُ قُلْتُ يَا اَبَتِ رَاَيْتُكَ تَخْتَلِفُ قَالَ اَوَ هَلْ رَاَيْتَنِيْ يَا بُنَيَّ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ يَّاْتِ بَنِيْ قُرَيْظَةَ فَيَاْتِيْنِيْ بِخَبَرِهِمْ فَانْطَلَقْتُ فَلَمَّا رَجَعْتُ جَمَعَ لِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَبَوَيْهِ فَقَالَ فِدَاكَ اَبِيْ وَ اُمِّيْ.

۸ ۱ ۹ : احمد. هشام. عروه. حضرت عبداللّٰه بن زبيرؓ نه روايت كوي، ذ جنګ احزاب په ورځو كښں ما او عمر بن ابي سلمه ذ ښځو حفاظت كولو. ما حضرت زبيرؓ اوليد، چه هغه دوه درے ځله بني قريظه طرف ته آمدورفت كولو، كوم وخت چه زۀ ذ جنګ نه واپس راغلم، ما اووے، اے ځما بابا جانه (پلاره) ما تاسو اوليدئے، چه تاسو تګ راتګ كولو، هغۀ اوفرمائيل، ځما بچيه، تا زۀ اوليدم؟ ما عرض اوكۀ، هاؤ هغه اووے، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيلے وو، څوک شته، چه بني قريظه طرف ته لاړ شي، او ذ هغوي خبر ماله راوړي، نو زۀ لاړم، بيا چه واپس راغلم، نو حضورؐ خپل مور پلار جمع كړل، اووے فرمائيل، چه ځما مور پلار دے په تا قربان وي.

۹ ۱ ۹ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ حَفْصٍ

۹ ۱ ۹ : علي. ابن مبارک. هشام. حضرت عروه

حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ اَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّ اَصْحَابَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالُوْا لِلزُّبَيْرِ يَوْمَ الْيَرْمُوْكِ اَلَا تَشُدُّ فَنَشُدُّ مَعَكَ فَحَمَلَ عَلَيْهِمْ فَضَرَبُوْهُ ضَرْبَتَيْنِ عَلٰى عَاتِقِهٖ بَيْنَهُمَا ضَرْبَةٌ ضُرِبَهَا يَوْمَ بَدْرٍ قَالَ عُرْوَةُ فَكُنْتُ اُدْخِلُ اَصَابِعِيْ فِيْ تِلْكَ الضَّرَبَاتِ اَلْعَبُ وَ اَنَا صَغِيْرٌ.

نه بيان كوي، د رسول الله صلي الله عليه وسلّم اصحابو جنګ يرموک کښې حضرت زبيرؓ ته اووې تاسو ولې حمله نۀ کوئې، مونږ هم تاسو سره حمله کول غواړو. حضرت زبيرؓ حمله اوکړه، نو کافرو دوه خايه په اوږه زخمي کړلو، دَ دې دواړو زخمونو په مينځ کښې هغه زخم هم وو، چه دَ بدر په ورځ هغۀ ته لږيدلے وو. حضرت عروه وائي، کوم وخت چه زۀ وړوکے ووم، نو لوبو کښې به ما خپله ګوتې دَ هغۀ دَ زخمونو نښه کښې دننه کولے.

**باب ۳۹۶: طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللّٰهِ** وَ قَالَ عُمَرُ تُوُفِّيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ عَنْهُ رَاضٍ.

**باب ۳۹۶: دَ حضرت طلحهؓ بن عبيدالله دَ فضائلو بيان.** حضرت عمرؓ فرمائيلي وو، رسول الله صلي الله عليه وسلّم دَ خپل وفات په وخت دَ طلحهؓ نه راضي وو.

**۹۲۰:** حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ اَبِيْ بَكْرٍ الْمُقَدَّمِيُّ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَبِيْ عُثْمَانَ قَالَ لَمْ يَبْقَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ بَعْضِ تِلْكَ الْاَيَّامِ الَّتِيْ قَاتَلَ فِيْهِنَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَيْرَ طَلْحَةَ وَ سَعْدٍ عَنْ حَدِيْثِهِمَا.

**۹۲۰:** محمد. معتمر. ابو معتمر. حضرت ابو عثمان نه روايت كوي، يو زمانه کښې چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم خپله جنګ کښې شرکت کړے وو، نو ماسوا، دَ طلحه او سعد نه هغه زمانه کښې حضور صلي الله عليه وسلّم سره هم رکاب باقي څوک پاتې شوې نۀ وو.

**۹۲۱:** حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا خَالِدٌ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ خَالِدٍ عَنْ قَيْسِ بْنِ اَبِيْ حَازِمٍ قَالَ رَاَيْتُ يَدَ طَلْحَةَ الَّتِيْ وَقٰى بِهَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ شَلَّتْ.

**۹۲۱:** مسدد. خالد. ابن ابي خالد. حضرت قيس بن ابي حازم نه روايت كوي، ما دَ حضرت طلحهؓ لاس بيکاره او شَل اوليدل، هغه په دې لاس (دَ اُحد په ورځ) حضور صلي الله عليه وسلّم دَ كفارو دَ حملو نه بچ کړے وو.

**باب ۳۹۷: سَعْدِ بْنِ اَبِيْ**

**باب ۳۹۷: دَ حضرت سعد بن ابي وقاص**

وَقَّاصٍ اَلزُّهْرِيّ وَ بَنُوْ زُهْرَةَ اَخْوَالُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ سَعْدُ بْنُ مَالِكٍ.

ذَ فضائلو بيان. بنو زهره ذَ نبي صلى الله عليه وسلم ننهالي عزيزان دي او سعد بن مالک ذ حضورؐ ماما وو.

ف: اخوال: ذَ خال جمع. ماما. ذَ مور ورور. ننهالي عزيزان، ذَ مور طرف نه يعني ماماخيل عزيزان يا خپلوان.

۹۲۲: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ قَالَ سَمِعْتُ سَعْدًا يَّقُوْلُ جَمَعَ لِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَبَوَيْهِ يَوْمَ اُحُدٍ.

۹۲۲: محمد بن مثنٰي. عبدالوهاب. يحيٰي. حضرت سعيد بن مسيب نه روايت کوي ما ذَ سعد نه واوريدل، ذَ اُحد په ورځ رسول الله صلي الله عليه وسلم خما ذَ پاره خپل دواړه مور پلار جمع کړي وو، يعني فرمائيلے وو، خما مور پلار دے په تا قربان وي، غشے چلوه.

۹۲۳: حَدَّثَنَا مَكِّيُّ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا هَاشِمُ بْنُ هَاشِمٍ عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ لَقَدْ رَاَيْتُنِيْ وَ اَنَا ثُلُثُ الْاِسْلَامِ.

۹۲۳: مکي بن ابراهيم. هاشم بن هاشم. عامر بن سعد. حضرت سعدؓ نه روايت کوي، زۀ ذَ خپل ځان نه بنۀ واقف يم، زه دريم سړے يم، چه اسلام کښې داخل شوم (يعني بي بي خديجےؓ او حضرت ابوبکر صديقؓ نه پس ذَ ټولو نه وړنبے مسلمان يم).

۹۲۴: حَدَّثَنِيْ اِبْرٰهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا ابْنُ اَبِيْ زَائِدَةَ حَدَّثَنَا هَاشِمُ بْنُ هَاشِمِ بْنِ عُتْبَةَ ابْنِ اَبِيْ وَقَّاصٍ قَالَ سَمِعْتُ سَعِيْدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ يَقُوْلُ سَمِعْتُ سَعْدَ بْنَ اَبِيْ وَقَّاصٍ يَقُوْلُ مَا اَسْلَمَ اَحَدٌ اِلَّا فِي الْيَوْمِ الَّذِيْ اَسْلَمْتُ فِيْهِ وَلَقَدْ مَكَثْتُ سَبْعَةَ اَيَّامٍ وَّ اِنِّيْ لَثُلُثُ الْاِسْلَامِ تَابَعَهُ اَبُوْ اُسَامَةَ حَدَّثَنَا هَاشِمٌ.

۹۲۴: ابراهيم بن موسٰي. ابن ابي زائده. هاشم بن هاشم بن عتبه بن ابي وقاص. سعيد بن مسيب نه روايت کوي، هغه وائي، ما ذَ حضرت سعد بن ابي وقاصؓ نه آوريدلے دي، په کوم ورځ چه ما اسلام راوړلو، په هغه ورځ نور خلق په اسلام مشرف شول، او بيشکه اوو ورځو پورے زۀ دے حالت کښې ووم، چه زۀ ذَ اسلام دريم سړے ووم (يعني بي بي خديجےؓ ذَ ابوبکر صديقؓ نه پس دريم مسلمان يم).

٩٢٥: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ إِسْمَاعِيْلَ عَنْ قَيْسٍ قَالَ سَمِعْتُ سَعْدًا رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَقُوْلُ إِنِّيْ لَأَوَّلُ الْعَرَبِ رَمٰى بِسَهْمٍ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَكُنَّا نَغْزُوْا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَا لَنَا طَعَامٌ إِلَّا وَرَقُ الشَّجَرِ حَتّٰى إِنَّ أَحَدَنَا لَيَضَعُ كَمَا يَضَعُ الْبَعِيْرُ أَوِ الشَّاةُ مَالَهُ خَلْطٌ ثُمَّ أَصْبَحَتْ بَنُوْ أَسَدٍ تُعَزِّرُنِيْ عَلَى الْإِسْلَامِ لَقَدْ خِبْتُ إِذًا وَّضَلَّ عَمَلِيْ وَكَانُوْا وَشَوْا بِهٖ إِلٰى عُمَرَ قَالُوْا لَا يُحْسِنُ يُصَلِّيْ.

۹۲۵: هاشم. عروه بن عون. خالد بن عبدالله قیس نه روایت کوي هغه وائي: ما د سعد نه آوریدلے دي، په ټولو عربو کښې زهٔ وړُمبے سړے یم چا چه د الله په لار کښې غشے اوچلولو او مونږ حضور صلے الله علیه وسلّم سره په بعضے جهادونو کښې د اُونو پاڼے خوړلے گزاره مو کوله، تردے چه خمونږ د هر یو لونے بوټ داسے وو لکه دَ چیلئے یا اوښ پچې، چه په کښې د نرمئے نښه هم نه وَه (یعني بالکل اوچ) باوجود د دے بني اسد ماته مونځ ښائي که داسے اوشو نو زهٔ بالکل بے نوا او بدنصیب پاتے شوم، او خما ټول کارونه برباد شو. (خکه چه بني اسد حضرت عمرؓ ته دَ سعد چُغلي خوړلے وه. دائے وئیلے وو چه هغهٔ په ښه شان مونځ هم اونه کړلو).

باب۳۹۸: ذِكْرُ أَصْهَارِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْهُمْ أَبُو الْعَاصِ بْنُ الرَّبِيْعِ.

باب۳۹۸: دَ رسول الله صلي الله علیه وسلّم دَ سخر گني رشته دارانو بیان، چه هغې کښې ابو العاص بن ربیع هم دے.

٩٢٦: حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَلِيُّ بْنُ حُسَيْنٍ أَنَّ الْمِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ قَالَ إِنَّ عَلِيًّاؓ خَطَبَ بِنْتَ أَبِيْ جَهْلٍ فَسَمِعَتْ بِذٰلِكَ فَاطِمَةُ فَأَتَتْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَزْعُمُ قَوْمُكَ أَنَّكَ لَا تَغْضَبُ لِبَنَاتِكَ وَهٰذَا عَلِيٌّ نَاكِحٌ بِنْتَ أَبِيْ جَهْلٍ فَقَامَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلّٰى

۹۲۶: ابوالیمان. شعیب. زهري. علي بن حسین. حضرت مِسور بن مخرمه نه بیان کوي: کوم وخت چه حضرت عليؓ دَ ابو جهل لور له د نکاح پیغام ورکړو نو بي بي فاطمهؓ دے آوریدو سره دَ رسول الله صلي الله علیه وسلّم په خدمت کښې حاضره شوه، او عرض ئے اوکهٔ، ستاسو دَ قوم خیال دے چه تاسو دَ خپلو لونړو په حمایت کښې نه غصه کیږئے، خکه خو عليؓ دَ ابو جهل لور سره دَ نکاح کولو خبرے اترے مکمل کړے دي. دے آوریدو سره رسول الله صلي الله علیه وسلّم اودریدلو، اول ئے تشهّد اووے، بیائے اوفرمائیل،

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَمِعْتُهُ حِيْنَ تَشَهَّدَ يَقُوْلُ اَمَّا بَعْدُ اَنْكَحْتُ اَبَا الْعَاصِ بْنَ الرَّبِيْعِ فَحَدَّثَنِيْ فَصَدَقَنِيْ وَ اِنَّ فَاطِمَةَ بَضْعَةٌ مِنِّيْ وَ اِنِّيْ اَكْرَهُ اَنْ يَّسُوْٓءَهَا وَاللّٰهِ لَا تَجْتَمِعُ بِنْتُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ بِنْتُ عَدُوِّ اللّٰهِ عِنْدَ رَجُلٍ وَّاحِدٍ فَتَرَكَ عَلِيٌّ الْخِطْبَةَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَلِيٍّ عَنْ مِسْوَرٍ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ ذَكَرَ صِهْرًا لَّهُ مِنْ بَنِيْ عَبْدِ شَمْسٍ فَاَثْنٰى عَلَيْهِ فِيْ مُصَاهَرَتِهٖ اِيَّاهُ فَاَحْسَنَ قَالَ حَدَّثَنِيْ فَصَدَقَنِيْ وَ وَاعَدَنِيْ فَوَفٰى لِيْ.

ما ابوالعاص بن ربیع سره (د خپلے لور) نکاح اوکړله نو ابوالعاص چه کومه خبره ماسره اوکړله رښتیاني اوکړله. فاطمهؓ یقینا زما د غوښے یوه ټکړه ده او زه دا خبره نه خوښوم چه هغے ته څهٔ صدمه یا تکلیف اورسي. په خدائے تعالی م دے قسم وي دَ رسول الله لور او د عدوُ الله لور یوځائے جمع کیدے نشي. نو حضرت عليؓ هغه کویدنه پریښوده. یو بل روایت کښ علي بن حسین (حضرت زین العابدین) نه روایت دے هغهٔ د حضرت مسور نه واوریدل. ما خپله دَ رسول الله صلي الله علیه وسلّم نه آوریدلے دي حضورؐ دَ قبیله عبد شمسؓ واله خپل زوم (داماد) ذکر اوکهٔ او دَ هغه ئے تعریف اوکړ دے فرمائیل هغه چه ماسره کومه خبره اوکړه رښتیاني اوکړه او ما سره ئے چه کومه وعده اوکړه هغه ئے پوره کړه.

## باب ٣٩٩: مَنَاقِبِ زَيْدِ بْنِ حَارِثَةَ مَوْلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

وَ قَالَ الْبَرَآءُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْتَ اَخُوْنَا وَ مَوْلَانَا.

## باب ٣٩٩: دَ حضرت زید بن حارثه (دَ رسول الله صلي الله علیه وسلّم آزاد کرده غلام) فضائل.

حضرت براء د نبي صلي الله علیه وسلّم نه روایت کړے دے (حضورؐ زیدؓ ته اوفرمائیل) ته زمونږ ورور او آزاد کرده غلام ئے.

٧٢٩: حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ دِيْنَارٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْثًا وَّ اَمَّرَ عَلَيْهِمْ اُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ فَطَعَنَ بَعْضُ النَّاسِ فِيْ اِمَارَتِهٖ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى

٧٢٩: خالد بن مخلد. سلیمان. عبدالله بن دینار. حضرت عبدالله بن عمرؓ نه روایت کوي رسول الله صلي الله علیه وسلّم یو لښکر جمع کهٔ او د هغے سردار ئے حضرت اُسامه بن زید جوړ کړلو. بعضے خلقو دَ هغهٔ په سرداري اعتراض اوکهٔ په دے خبره رسول الله صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل که د هغهٔ په سرداري طعن و تشنیع (بیغور) او

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنْ تَطْعَنُوْا فِيْ اِمَارَتِهٖ لَقَدْ كُنْتُمْ تَطْعَنُوْنَ فِيْ اِمَارَةِ اَبِيْهِ مِنْ قَبْلُ وَ اَيْمُ اللّٰهِ اِنْ كَانَ لَخَلِيْقًا لِلْاِمَارَةِ وَ اِنْ كَانَ لَمِنْ اَحَبِّ النَّاسِ اِلَيَّ وَ اِنَّ هٰذَا لَمِنْ اَحَبِّ النَّاسِ اِلَيَّ بَعْدَهٗ.

ملامتیا) کوی (نو د څهٔ تعجب خبره نه ده؛ ځکه چه) بیشکه تاسو اول د هغهٔ د پلار په سرداری هم طعنه زنی کوله، حالانکه په خدائے چه هغه سرداری د پاره ډیر موزون وو، هغه د ټولو خلقو نه ماته زیات محبوب وو او د هغهٔ نه پس دا اسامه د ټولو خلقو نه ماته زیات محبوب دے.

**۹۲۸**: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ قَزَعَةَ حَدَّثَنَا اِبْرَاهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ دَخَلَ عَلَيَّ قَائِفٌ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَاهِدٌ وَّ اُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ وَ زَيْدُ بْنُ حَارِثَةَ مُضْطَجِعَانِ فَقَالَ اِنَّ هٰذِهِ الْاَقْدَامَ بَعْضُهَا مِنْ بَعْضٍ قَالَ فَسُرَّ بِذٰلِكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَعْجَبَهٗ فَاَخْبَرَ بِهٖ عَائِشَةَ.

**۹۲۸**: یحیی. ابراهیم. زهری. عروه. بی بی عائشهٔ نه روایت کوی، رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلم ماسره تشریف فرما وو، او اسامه بن زید او زید بن حارثه دواړه ملاست وو، یو قیافه شناس راغے او وئیلے چه دا دواړه پښے خپلو کښ ذ یوے بلے نه پیدا شوے دي. بی بی عائشهٔ فرمائی، رسول اللّٰه صلی اللّٰه علیه وسلم په دے خبره ډیر خوشحاله شو، او حضور ته دا خبره ډیره ښه ښکاره شوه، او حضور ماته دا واقعه بیان کړله.

## باب ۴۰۰: اُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ.

## باب ۴۰۰: ذ حضرت اسامه بن زید د فضائلو بیان.

**۹۲۹**: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا لَيْثٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَنَّ قُرَيْشًا اَهَمَّهُمْ شَاْنُ الْمَرْاَةِ الْمَخْزُوْمِيَّةِ فَقَالُوْا مَنْ يَجْتَرِئُ عَلَيْهِ اِلَّا اُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ حِبُّ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَحَدَّثَنَا عَلِيٌّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ ذَهَبْتُ

**۹۲۹**: قتیبه. لیث. زهری. عروه. بی بی عائشے نه بیان کوی، یوے مخزومے ښځے قریش ډیر فکر کښ اچولے وو، هغوی اووے، ما سوا د اسامه، محبوب رسول نه بل داسے سړے نشته، چه حضور ته د سفارش جرأت اوکړے شي. علي (بن مديني) بیان کوی، ماته سفیان بیان اوکه، زهٔ حضرت زهري له ذ مخزومي ښځے ذ قصے تپوس له ورغلم، هغه خما نه خفه شو؛ ما ذ سفیان نه دریافت اوکه، آیا تا دا قصه (واقعه) ذ چا نه آوریدلے وه؟

اَسْأَلُ الزُّهْرِيَّ عَنْ حَدِيْثِ الْمَخْزُوْمِيَّةِ فَصَاحَ بِيْ قُلْتُ لِسُفْيَانَ فَلَمْ تَحْمِلْهُ عَنْ اَحَدٍ قَالَ وَجَدْتُّهُ فِيْ كِتَابٍ كَانَ كَتَبَهُ اَيُّوْبُ بْنُ مُوْسٰى عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَنَّ امْرَاَةً مِّنْ بَنِيْ مَخْزُوْمٍ سَرَقَتْ قَالُوْا مَنْ يُكَلِّمُ فِيْهَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يَجْتَرِئْ اَحَدٌ اَنْ يُّكَلِّمَهُ فَكَلَّمَهُ اُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ فَقَالَ اِنَّ بَنِيْ اِسْرَآئِيْلَ كَانَ اِذَا سَرَقَ فِيْهِمُ الشَّرِيْفُ تَرَكُوْهُ وَ اِذَا سَرَقَ الضَّعِيْفُ قَطَعُوْهُ وَلَوْ كَانَتْ فَاطِمَةَ لَقَطَعْتُ يَدَهَا.

هغهٔ انکار اوکهٔ، او وئیلے، البته ما دا واقعه یو کتاب کښې لیدلے ده، چه هغه ایوب بن موسٰي دَ زهري په حواله درج کړے ده، هغه دَ عروه په واسطه دَ بي بي عائشہؓ نه نقل کوي چه بني مخزوم کښې یوے ښځے غلا اوکړه. نو خلقو اووے: څوک شته، چه رسول الله صلي الله علیه وسلّم سره دے باره کښې خبرے اترے (سفارش) اوکړي. هیچا په دے خبره کولو جرأت اونهٔ کړے شو چه حضورؐ سره خبرے اوکړي، نو حضرت اسامه بن زیدؓ حضورؐ سره خبرے اترے اوکړے. په دے نبي اکرم صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، دَ بني اسرائیلو دا دستور وو، چه یو شریف سړي به غلا اوکړه، نو هغه به ئے معاف کولو او چه یو کمزوري سړي به غلا اوکړه، نو دَ هغهٔ لاس به ئے پریکولو، که فاطمہؓ نه هم داسے فعل شوے وے (حضورؐ فرمائي) نو یقیناً ما به دَ هغے هم لاس پریکړے وے.

## باب ۴۰۱:

## باب ۴۰۱: (دَ دے باب څهٔ سرخي نشته).

۹۳۰ : حَدَّثَنِي الْحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَبَّادٍ يَحْيَى ابْنُ عَبَّادٍ حَدَّثَنَا الْمَاجِشُوْنَ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ دِيْنَارٍ قَالَ نَظَرَ ابْنُ عُمَرَ يَوْمًا وَّهُوَ فِي الْمَسْجِدِ اِلٰى رَجُلٍ يَسْحَبُ ثِيَابَهُ فِيْ نَاحِيَةٍ مِّنَ الْمَسْجِدِ فَقَالَ انْظُرْ مَنْ هٰذَا لَيْتَ هٰذَا عِنْدِيْ قَالَ لَهُ اِنْسَانٌ اَمَا تَعْرِفُ هٰذَا اَبَا عَبْدِ الرَّحْمٰنِ هٰذَا مُحَمَّدُ بْنُ اُسَامَةَ قَالَ فَطَاْطَاَ ابْنُ عُمَرَ رَاْسَهُ وَ نَقَرَ بِيَدَيْهِ فِي الْاَرْضِ ثُمَّ قَالَ لَوْ رَاٰهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

۹۳۰ : حسن بن محمد. ابو عباد. یحیٰي بن عباد. ماجشون. حضرت عبدالله بن دینار نه روایت کوي، چه ابن عمرؓ یو سړے اولیدو چه د جومات یو کوټ کښے خپلے جامے خورؤلے حضرت ابن عمرؓ اووے، او کورے دا سردار څوک دے. کاش چه دے ماسره وے (نو ما به ورته نصیحت کړے وے) یو سړي عرض اوکهٔ، آیا تاسو دے نهٔ پیژنے، دا محمد بن اسامه دے، نو حضرت ابن عمرؓ خپل سر خکته کهٔ، په دواړو لاسونو ئے زمکه کرول شروع کړل. دے نه پس ئے او فرمائیل، که رسول الله صلي الله علیه وسلّم دے لیدلے وے، نو یقیناً محبوب به ئے

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَاَحَبَّهُ.

١٩٣١ : حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ اِسْمٰعِيلَ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ قَالَ سَمِعْتُ اَبِىْ حَدَّثَنَا اَبُوْ عُثْمَانَ عَنْ اُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا حَدَّثَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ كَانَ يَاْخُذُهُ وَالْحَسَنَ فَيَقُوْلُ اَللّٰهُمَّ اَحِبَّهُمَا فَاِنِّي اُحِبُّهُمَا وَ قَالَ نُعَيْمٌ عَنِ ابْنِ الْمُبَارَكِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَنِيْ مَوْلًى لِاُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ اَنَّ الْحَجَّاجَ بْنَ اَيْمَنَ بْنِ اُمِّ اَيْمَنَ وَ كَانَ اَيْمَنُ بْنُ اُمِّ اَيْمَنَ اَخَا اُسَامَةَ لِاُمِّهٖ وَهُوَ رَجُلٌ مِّنَ الْاَنْصَارِ فَرَاٰهُ ابْنُ عُمَرَ لَمْ يُتِمَّ رُكُوْعَهُ وَلَا سُجُوْدَهُ فَقَالَ اَعِدْ قَالَ اَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ وَ حَدَّثَنِيْ سُلَيْمَانُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ حَدَّثَنَا الْوَلِيْدُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ نَمِرٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَنِيْ حَرْمَلَةُ مَوْلٰى اُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ اَنَّهُ بَيْنَمَا هُوَ مَعَ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اِذَا دَخَلَ الْحَجَّاجُ بْنُ اَيْمَنَ فَلَمْ يُتِمَّ رُكُوْعَهُ وَلَا سُجُوْدَهُ فَقَالَ اَعِدْ فَلَمَّا وَلّٰى قَالَ لِيَ ابْنُ عُمَرَ مَنْ هٰذَا! قُلْتُ الْحَجَّاجُ بْنُ اَيْمَنَ بْنِ اُمِّ اَيْمَنَ فَقَالَ ابْنُ عُمَرَ لَوْ رَاٰى هٰذَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَاَحَبَّهُ فَذَكَرَ حُبَّهُ وَمَا وَلَدَتْهُ اُمُّ اَيْمَنَ

كړلے وے.

١٩٣١ : موسي بن اسمعيل. معتمر. ابو معتمر ابو عثمان اسامه بن زيدؓ نه روايت كوي: رسول الله صلي الله عليه وسلم به دے (يعني اسامه) او حسن (غير كښې) اخستل او فرمائيل به يے اے خدايه! زۀ دے دواړو سره محبت كوم نو ته هم دوی سره محبت اوكړے. او نعيم، ابن المبارك، معمر، زهري، اسامه بن زيد ذ مولي نه منقول دي: حجاج بن ايمن چه ذ اسامه اخيافي ورور وو او يو انصاري وو، حضرت ابن عمر اوليدل چه هغه ركوع او سجده پوره نۀ كوي. نو حضرت ابن عمرؓ هغۀ ته اووے تۀ خپل مونځ دوباره اوكړه. او يو بل روايت كښې دَ اسامه بن زيد ذ مولي حرمله نه منقول دي، هغه حضرت عبدالله بن عمرؓ سره ناست وو، دے كښې حجاج بن ايمن راغے مونځ ئے اوكۀ، او ركوع او سجده ئے پوره طور سره ادا نۀ كړه، حضرت ابن عمرؓ ورته اوفرمائيل، تۀ مونځ دوباره اوكړه، بيا چه هغه واپس شو، نو حضرت ابن عمرؓ اووے، دا څوك دے، ما ورته اووے حجاج بن ايمن بن أم ايمن، نو هغۀ اوفرمائيل كه رسول الله صلے الله عليه وسلّم دے ليدلے وے، نو يقيناً دے به ئے دوست كنړلے وے بيا هغه ذ حضور صلي الله عليه وسلّم ذ محبت واقعات ذ أم ايمن اولاد سره بيان كړل. ابو عبدالله وائي. څما بعضے دوستانو روايت كښې دا الفاظ زيات كړے

قَالَ وَ حَدَّثَنِیْ بَعْضُ اَصْحَابِیْ عَنْ سُلَیْمَانَ وَ کَانَتْ حَاضِنَةَ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ.

دي. چه اُم ایمن د رسول اللّه صلي اللّه علیه وسلّم په غیږ پاللې یا ساتلې (روزې کړلائي) وه.

ف: (۱) مولي: مددګار. آزاد کونکے. آقا. سردار. ملګرے. آزاد کړے شوے. همسایه. غلام. (۲) اخیاني: هغه زرور چه د هغه مور یوه او پلار جدا جدا وي.

## باب ۲۰۴: مَنَاقِبِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُمَا.

## باب ۲۰۴: دَ عبدالله بن عمر رضي الله عنهما د فضائلو بیان.

۲۹۳۲: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ عَنْ مَعْمَرٍ عَنِ الزُّهْرِیِّ عَنْ سَالِمٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ کَانَ الرَّجُلُ فِیْ حَیٰوةِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اِذَا رَاٰی رُؤْیَا قَصَّهَا عَلَی النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَتَمَنَّیْتُ اَنْ اَرٰی رُؤْیَا اَقُصُّهَا عَلَی النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وَ کُنْتُ غُلَامًا اَعْزَبَ وَ کُنْتُ اَنَامُ فِی الْمَسْجِدِ عَلٰی عَهْدِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَرَاَیْتُ فِی الْمَنَامِ کَاَنَّ مَلَکَیْنِ اَخَذَانِیْ فَذَهَبَا بِیْ اِلَی النَّارِ فَاِذَا هِیَ مَطْوِیَّةٌ کَطَیِّ الْبِئْرِ وَ اِذَا لَهَا قَرْنَانِ کَقَرْنَیِ الْبِئْرِ وَ اِذَا فِیْهَا نَاسٌ قَدْ عَرَفْتُهُمْ فَجَعَلْتُ اَقُوْلُ اَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ النَّارِ اَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ النَّارِ فَلَقِیَهُمَا مَلَکٌ اٰخَرُ فَقَالَ لِیْ لَنْ تُرَاعَ فَقَصَصْتُهَا عَلٰی حَفْصَةَ فَقَصَّتْهَا حَفْصَةُ عَلَی

۲۹۳۲: اسحٰق. عبدالرزاق. معمر. زهري. سالم. حضرت ابن عمر نه روایت کوي: د رسول اللّه صلي اللّه علیه وسلّم ژوند مبارک کښې چه به چا خوب لیدلو، نو هغه به ئې حضور صلي اللّه علیه وسلّم ته بیانولو. زهٔ یو لونلو (مجرد) ځلمے ووم. د رسول اللّه صلي اللّه علیه وسلّم په د عهد مبارک کښې به جمات کښې دننه اُوده کېدم، ما خوب اولید، چه دوو فریښتو زهٔ اونیولم، او دوزخ طرف ته ئې بوتلم، چه تاؤ راتاؤ د خانه دار کوهي په شان پیچ در پیچ وو. او د کوهي په شان ئې دوه غاړې وې. هغې کښې څهٔ خلق موجود وو، چه هغوی ما اوپیژندل، نو اُوم وئیل: اعوذ باللّه من النار، اعوذ باللّه من النار: یعني زهٔ د دوزخ نه د خدائے پناه غوارم، بیا هغې فریښتو کښې یوې ماته اووے: ته مه ویریږه. بیا ما دا خوب بي بي حفصې ته بیان کړو، او بي بي حفصې رسول اللّه صلي اللّه علیه وسلّم ته بیان کړو، نو حضور صلي اللّه علیه وسلّم اوفرمائیل: عبداللّه

النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ نِعْمَ الرَّجُلُ عَبْدُ اللّٰهِ لَوْ كَانَ يُصَلِّيْ مِنَ اللَّيْلِ قَالَ سَالِمٌ فَكَانَ عَبْدُ اللّٰهِ لَا يَنَامُ مِنَ اللَّيْلِ اِلَّا قَلِيْلًا.

ښه سړے دے. کاش چه هغه د شپے مونځ کولے. سالم وائي بیا به عبدالله د شپے ډیر کم اوده کیدلو (یعنـي د شپے به یے عبادت کولو).

۹۳۳: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنْ اُخْتِهٖ حَفْصَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهَا اِنَّ عَبْدَ اللّٰهِ رَجُلٌ صَالِحٌ.

۹۳۳: یحیي. ابن وهب. یونس. زهري. سالم. حضرت ابن عمر نه روایت کړي. هغه د خپلے خور بي بي حفصے په ذریعه بیان اوکړ. هغے ته حضور صلي الله علیه وسلم اوفرمائیل عبدالله ښه سړے دے.

باب ۴۰۳: مَنَاقِبِ عَمَّارٍ وَ حُذَيْفَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا.

باب ۴۰۳: د حضرت عمار او حضرت حذیفه د فضائلو بیان.

۹۳۴: حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا اِسْرَآئِيْلُ عَنِ الْمُغِيْرَةِ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ قَالَ قَدِمْتُ الشَّامَ فَصَلَّيْتُ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ قُلْتُ اَللّٰهُمَّ يَسِّرْلِيْ جَلِيْسًا صَالِحًا فَاَتَيْتُ قَوْمًا فَجَلَسْتُ اِلَيْهِمْ فَاِذَا شَيْخٌ قَدْ جَآءَ حَتّٰى جَلَسَ اِلٰى جَنْبِيْ قُلْتُ مَنْ هٰذَا قَالُوْا اَبُو الدَّرْدَآءِ فَقُلْتُ اِنِّيْ دَعَوْتُ اللّٰهَ اَنْ يُّيَسِّرَ لِيْ جَلِيْسًا صَالِحًا فَيَسَّرَكَ لِيْ قَالَ مِمَّنْ اَنْتَ قُلْتُ مِنْ اَهْلِ الْكُوْفَةِ قَالَ اَوَلَيْسَ عِنْدَكُمُ ابْنُ اُمِّ عَبْدٍ صَاحِبُ النَّعْلَيْنِ وَالْوِسَادِ وَالْمِطْهَرَةِ وَ فِيْكُمُ الَّذِيْ اَجَارَهُ اللّٰهُ مِنَ الشَّيْطَانِ عَلٰى

۹۳۴: مالک. اسرائیل. مغیره. حضرت علقمه نه روایت کوي. زه ملک شام ته لاړم. نو ما دوه رکعاته مونځ اوکړ. بیا ما دا دعا اوکړله، اے الله ماته څوک نیک بخت هم نشین (ملګرے) راکړے. بیا زه یو جماعت ته اورسیدم او هغوي سره کیناستم. ناساپه یو بوډا راغے، او زما خوا کښې کیناست. ما د خلقو نه تپوس اوکړ دا څوک دے؟ خلقو اووے ابو درداء دے. ما هغه ته اووے ما د خدائے نه سوال کړے دے چه هغه ماته یو صالح ملګرے راکړي. نو خدائے تعالي ته رالیږلے. ابو درداء مانه تپوس اوکړ ته څوک یے. ما ورته اووے د کوفے اوسیدونکے یم. هغه اووے آیا تاسو کښې ابن ام عبد (عبدالله بن مسعود) نشته، چه د رسول الله صلي الله علیه وسلم پنړے، تکیه او بتکے به یے خان سره ساتلو. آیا تاسو کښې هغه سړے نشته، چه هغه ته الله

لِسَانِ نَبِيِّهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوَ لَيْسَ فِيكُمْ صَاحِبُ سِرِّ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّذِيْ لَا يَعْلَمُ أَحَدٌ غَيْرُهُ ثُمَّ قَالَ كَيْفَ يَقْرَأُ عَبْدُ اللّٰهِ وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشٰى فَقَرَأْتُ عَلَيْهِ وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشٰى وَالنَّهَارِ إِذَا تَجَلّٰى وَمَا خَلَقَ الذَّكَرَ وَالْأُنْثٰى قَالَ وَاللّٰهِ لَقَدْ أَقْرَأَنِيهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ فِيهِ إِلٰى فِيَّ.

دَ نبي په ژبه دَ شیطان نه پناه ورکړې ده (یعني عمارؓ) او آیا تاسو کښې هغه سړې نشته، چه دَ رسول الله صلي الله علیه وسلّم په اسرارو (رازونو) پوهیدونکې دې، چه دَ هغې نه دَ هغهٔ نه سِوا نور هیڅوک واقف نهٔ دي (یعني حذیفهؓ) ما اووې، او، شته، بیا هغهٔ اووې، او وایه، چه عبدالله بن مسعود: واللیل اذا یغشی و النهار اذا تجلّی وما خلق الذکر والانثٰی: څنګه لولي، ما هغهٔ ته واورولو، هغه اووې، قسم په خدائې، رسول الله صلي الله علیه وسلّم ماته هم دغسې دا سورت ښودلې دې. دغه شان ئې دَ خپلې خولې (منه) نه څما خوله کښې اچولې دې.

۹۳۵: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُغِيْرَةَ عَنْ إِبْرَاهِيمَ قَالَ ذَهَبَ عَلْقَمَةُ إِلَى الشَّامِ فَلَمَّا دَخَلَ الْمَسْجِدَ قَالَ اَللّٰهُمَّ يَسِّرْ لِيْ جَلِيسًا صَالِحًا فَجَلَسَ إِلٰى أَبِي الدَّرْدَاءِ فَقَالَ أَبُو الدَّرْدَاءِ مِمَّنْ أَنْتَ قَالَ مِنْ أَهْلِ الْكُوفَةِ قَالَ أَلَيْسَ فِيكُمْ أَوْ مِنْكُمْ صَاحِبُ السِّرِّ الَّذِيْ لَا يَعْلَمُهُ غَيْرُهُ يَعْنِي حُذَيْفَةَ قَالَ قُلْتُ بَلٰى قَالَ أَلَيْسَ فِيكُمْ أَوْ مِنْكُمُ الَّذِيْ أَجَارَهُ اللّٰهُ عَلٰى لِسَانِ نَبِيِّهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْنِي مِنَ الشَّيْطَانِ يَعْنِي عَمَّارًا قُلْتُ بَلٰى قَالَ أَلَيْسَ فِيكُمْ أَوْ مِنْكُمْ صَاحِبُ السِّوَاكِ أَوِ السِّوَادِ قَالَ بَلٰى قَالَ كَيْفَ كَانَ عَبْدُ اللّٰهِ يَقْرَأُ وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشٰى وَالنَّهَارِ

۹۳۵: سلیمان. شعبه. مغیره. حضرت ابراهیم (نخعي) نه روایت کوي، کوم وخت چه حضرت علقمه ملک شام ته راغې، او جمات کښې داخل شو، نو دا دُعائې اوکړله، اې الله تعالٰي ماته څوک ښه هم نشین راکړې، نو حضرت ابو درداءؓ سره کیناستلو، ابو درداء ترې تپوس اوکهٔ، تهٔ څوک ئې، علقمه ورته اووې، زهٔ دَ کوفې اوسیدونکې یم، هغهٔ ورته اووې، آیا تاسو کښې هغه سړې نشته، چه هغهٔ له خدائې تعالٰي دَ رسول په ژبه دَ شیطان نه پناه ورکړې ده (یعني عمارؓ) علقمه اووې، او، شته، هغهٔ بیا اووې، آیا تاسو کښې هغه سړې نشته، چه دَ رسول الله صلي الله علیه وسلّم په اسرارو (رازونو) پوه دې، چه دَ هغې نه دَ هغهٔ نه علاوه بل څوک واقف نهٔ دې، (یعني حذیفهؓ) علقمه اووې، او، هغه هم موجود دې. بیا هغهٔ اووې، آیا تاسو کښې صاحب مسواک (یعني عبدالله بن مسعودؓ) نشته، علقمهؒ ورته اووې، او، شته دې، بیا هغهٔ اووې، چه حضرت عبدالله: و اللیل اذا

إِذَا تَجَلَّى قُلْتُ وَالذَّكَرِ وَالْأُنْثَى قَالَ مَا زَالَ بِيْ هٰؤُلَاءِ حَتّٰى كَادُوْا يَسْتَنْزِلُوْنِيْ عَنْ شَيْءٍ سَمِعْتُهُ مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

يغشى والنهار اذا تجلّى څنګه لولي، نو ما ورته دا سورت واورولو: والذكر والانثى، ابو درداء اوفرمائيل، دا خلق ما پسے شروع دي او ما چه څنګه رسول الله صلي الله عليه وسلم نه آوريدلے دے، دوي نه خلق ما بيرته كول غواړي.

باب ۴۰۴: مَنَاقِبِ أَبِيْ عُبَيْدَةَ بْنِ الْجَرَّاحِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ.

باب ۴۰۴: د حضرت ابو عبيده بن جراحؓ د فضائلو بيان.

۹۳۶: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلٰى حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ أَبِيْ قِلَابَةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ لِكُلِّ أُمَّةٍ أَمِيْنًا وَإِنَّ أَمِيْنَنَا أَيَّتُهَا الْأُمَّةُ أَبُوْ عُبَيْدَةَ بْنُ الْجَرَّاحِ.

۹۳۶: عمرو بن علي، عبدالاعلي، خالد، ابي قلابه، حضرت انس بن مالکؓ نه روايت کوي، رسالتماب صلي الله عليه وسلم ارشاد فرمائيلے دے، هر اُمت کښې يو آمين وي او زمونږ د اُمت آمين ابو عبيده بن جراح دے.

۹۳۷: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِيْ إِسْحٰقَ عَنْ صِلَةَ عَنْ حُذَيْفَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَهْلِ نَجْرَانَ لَأَبْعَثَنَّ يَعْنِيْ عَلَيْكُمْ يَعْنِيْ أَمِيْنًا حَقَّ أَمِيْنٍ فَأَشْرَفَ أَصْحَابُهُ فَبَعَثَ أَبَا عُبَيْدَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ.

۹۳۷: مسلم بن ابراهيم، شعبه، ابو اسحٰق، صله، حضرت حذيفهؓ نه روايت کوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم اهل نجران ته فرمائيلي وو، زه به تاسو له يو داسے سړے حاکم در اوليږم، چه امين به وي، دے آوريدو سره صحابه وُ د امارت (اميري) انتظار کولو، بيا حضورؐ ابو عبيده (د حاکم په حيثيت) اوليږلو.

باب ۴۰۵: ذِكْرِ مُصْعَبِ بْنِ عُمَيْرٍ.

باب ۴۰۵: د حضرت مصعب بن عميرؓ حالات.

باب ۴۰۶: مَنَاقِبِ الْحَسَنِ وَالْحُسَيْنِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ نَافِعُ

باب ۴۰۶: د حضرت حسنؓ او حسينؓ د فضائلو بيان، نافع بن جبيرؒ حضرت ابوهريرهؓ نه بيان

بْنُ جُبَيْرٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَانَقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْحَسَنَ.

۹۳۸ : حَدَّثَنَا صَدَقَةُ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ حَدَّثَنَا اَبُوْ مُوْسٰى عَنِ الْحَسَنِ سَمِعَ اَبَا بَكْرَةَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْمِنْبَرِ وَ الْحَسَنُ اِلٰى جَنْبِهٖ يَنْظُرُ اِلَى النَّاسِ مَرَّةً وَّ اِلَيْهِ مَرَّةً وَّ يَقُوْلُ ابْنِيْ هٰذَا سَيِّدٌ وَّ لَعَلَّ اللّٰهَ اَنْ يُّصْلِحَ بِهٖ بَيْنَ فِئَتَيْنِ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ.

۹۳۹ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ قَالَ سَمِعْتُ اَبِيْ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عُثْمَانَ عَنْ اُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ كَانَ يَأْخُذُهٗ وَالْحَسَنَ وَ يَقُوْلُ اللّٰهُمَّ اِنِّيْ اُحِبُّهُمَا فَاَحِبَّهُمَا اَوْ كَمَا قَالَ.

۹۴۰ : حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْحُسَيْنِ ابْنِ اِبْرٰهِيْمَ قَالَ حَدَّثَنِيْ حُسَيْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ اُتِيَ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ زِيَادٍ بِرَاْسِ الْحُسَيْنِ عَلَيْهِ السَّلَامُ فَجُعِلَ فِيْ طَسْتٍ فَجَعَلَ يَنْكُتُ وَ قَالَ فِيْ حُسْنِهٖ شَيْئًا فَقَالَ اَنَسٌ كَانَ اَشْبَهَهُمْ بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

كوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم حضرت حسنؓ خپلے سينے او غاړے سره جُخت کړلو.

۹۳۸ : صدقه. ابن عيينه. ابو موسیٰ. حسن. حضرت ابوبکرؓ نه روايت كوي، هغه وائي ما رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم داسے حال کښې په منبر ليدلے دے چه حضرت حسنؓ دَ حضورؐ په غيږ کښې وو. کله به حضورؐ خلقوته متوجه کيدلو، او کله حضرت حسنؓ جانب ته، اوفرمائيل ئے، ځما دا ځوئے سردار دے، او شايد اللّٰه تعالٰي دَدهٔ په ذريعه دَ مسلمانانو دَ دوؤ فرقو مينځ کښې صلح اوکړي.

۹۳۹ : مسدد. معتمر. ابو عثمان. حضرت اسامه بن زيدؓ نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم به دے (يعني اسامهؓ) او حسنؓ اوچتولو، او فرمائيل به ئے، اے اللّٰه تعالٰي زهٔ دے دواړو سره محبت کوم. ته هم دوي سره محبت اوکړے. او کما قال.

۹۴۰ : محمد بن حسين بن ابراهيم. حسين بن محمد. جرير. محمد. حضرت انس بن مالکؓ نه روايت كوي، کوم وخت چه عبيداللّٰه بن زياد ته د حضرت حسينؓ سر مبارک راوړے شو، او تالي کښې کيښودے شو. نو ابن زياد، په هغهٔ لرگے وهلو او دَ هغهٔ په خوب صورتي ئے اعتراض اوکړ، نو حضرت انسؓ اوفرمائيل، دے دَ ټولو نه زيات دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم مشابه وو. او دغه وخت دَ حضرت حسينؓ سر او گيره کښې دَ وسمے خضاب شوے وو. (استغفر

كان مَخْضُوبًا بِالْوَسْمَةِ.

الله).

۹۴۱ : حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَدِيٌّ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَآءَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ رَاَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْحَسَنُ عَلٰى عَاتِقِهٖ يَقُوْلُ اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اُحِبُّهٗ فَاَحِبَّهٗ.

۹۴۱ : حجاج. شعبه. عدي. حضرت براءً نه روايت كوي، هغهٔ اووے، ما رسول الله صلي الله عليه وسلّ داسے حال كښې اوليدلو چه حضرت حسن بن عليٌ د حضور صلي اللّه عليه وسلّم په اُوږه مبارك وو، او حضورٌ دا فرمائيل، اے اللّه، زهٔ دهٔ سره محبت كوم، ته هم دهٔ سره محبت او كړے.

۹۴۲ : حَدَّثَنَا عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُمَرُ بْنُ سَعِيْدِ بْنِ اَبِيْ حُسَيْنٍ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ الْحَارِثِ قَالَ رَاَيْتُ اَبَا بَكْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وَ حَمَلَ الْحَسَنَ وَهُوَ يَقُوْلُ بِاَبِيْ شَبِيْهٌ بِالنَّبِيِّ لَيْسَ شَبِيْهٌ بِعَلِيٍّ وَ عَلِيٌّ يَضْحَكُ.

۹۴۲ : عبدان. عبداللّه. عمر بن سعيد بن ابي حسين. ابن ابي مليكه. حضرت عقبه بن حارث نه روايت كوي، هغهٔ اووے، حضرت ابوبكرٌ ما داسے حال كښې اوليدلو، چه حضرت حسنٌ ئے غيږ كښې آخستے وو، او وئيل ئے، خما مور پلار دے په تا قربان وي، ته د رسول الله صلي الله عليه وسلّم مشابه ئے، د عليٌ مشابه نهٔ ئے، او حضرت علي ولاړ وو، مُسكے كيدلو.

۹۴۳ : حَدَّثَنِيْ يَحْيَى بْنُ مَعِيْنٍ وَ صَدَقَةُ قَالَا اَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ وَاقِدِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ اَبُوْ بَكْرٍ اُرْقُبُوْا مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ اَهْلِ بَيْتِهٖ.

۹۴۳ : يحيي بن معين او صدقه: محمد بن جعفر. شعبه. واقد بن محمد. محمد. حضرت ابن عمرٌ نه روايت كوي، حضرت ابوبكرٌ اوفرمائيل، د محمد صلي اللّه عليه وسلّم خوشنودي د هغويٌ د اهل بيتو (خدمت او محبت) كښې پتبه او مضمره او كنړئے.

۹۴۴ : حَدَّثَنِيْ اِبْرٰهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ يُوْسُفَ عَنْ مَعْمَرٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ اَخْبَرَنِيْ اَنَسٌ قَالَ لَمْ يَكُنْ اَحَدًا اَشْبَهَ بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْحَسَنِ بْنِ

۹۴۴ : ابراهيم بن موسي. هشام. معمر. زهري. حضرت انسٌ نه روايت كوي هغهٔ اوفرمائيل، حضرت حسن بن عليٌ نه زيات مشابه د رسول اللّه صلي اللّه عليه وسلّم بل څوك

عَلِيٍّ.

نه وو.

۹۴۵: حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اَبِي يَعْقُوبَ سَمِعْتُ بْنَ اَبِي نُعْمٍ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ وَ سَأَلَهُ عَنِ الْمُحْرِمِ قَالَ شُعْبَةُ اَحْسِبُهُ يَقْتُلُ الذُّبَابَ فَقَالَ اَهْلُ الْعِرَاقِ يَسْأَلُوْنَ عَنِ الذُّبَابِ وَقَدْ قَتَلُوْا ابْنَ ابْنَةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هُمَا رَيْحَانَتَايَ مِنَ الدُّنْيَا.

۹۴۵: محمد بن بشار. غندر. شعبه. محمد بن ابي يعقوب. حضرت ابن ابي نعم نه روايت كوي هغه اووے، ما د عبدالله بن عمرؓ نه واوريدل، هغه ته چا دا مسئله پښتلے وه، كه څوک محرم (يعني هغه سړے چه د احرام حالت كښې وي يو مچ (مكهى) مړ كړي نو آيا دے ګنهګار دے حضرت ابن عمرؓ اوفرمائيل، عراقيان د مچ باره كښے تپوس كوي. حال دا چه دوئ د رسول الله صلي الله عليه وسلّم د لور ځوئے (حسينؓ) قتل كړے دے، حالانكه نبي صلي الله عليه وسلّم فرمائيلے دي، دا دواړه ځما د دُنيا دوه ګلونه دي.

بَاب ۴۰۷: مَنَاقِبِ بِلَالِ بْنِ رِبَاحٍ مَوْلَى اَبِي بَكْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا وَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمِعْتُ دَفَّ نَعْلَيْكَ بَيْنَ يَدَيَّ فِي الْجَنَّةِ.

باب ۴۰۷: د حضرت بلال بن رباح (د حضرت ابوبكرؓ آزاد كړده غلام) د فضائلو بيان نبي صلي الله عليه وسلّم حضرت بلالؓ ته فرمائيلي وو، ما جنت كښې خپل مخكښې مخكښې ستا د پڼړو آواز آوريدلے دے.

۹۴۶: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ اَبِي سَلَمَةَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ اَخْبَرَنَا جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ كَانَ عُمَرُ يَقُوْلُ اَبُوْ بَكْرٍ سَيِّدُنَا وَ اَعْتَقَ سَيِّدَنَا يَعْنِيْ بِلَالًا.

۹۴۶: ابو نعيم. عبدالعزيز بن ابي سلمه. محمد بن المنكدر. حضرت جابر بن عبداللهؓ نه روايت كوي، هغه اووے، حضرت عمرؓ اوفرمائيل، ابوبكرؓ ځمونږ سردار دے، او هغه ځمونږ سردار (يعني بلالؓ آزاد كړے دے).

۹۴۷: حَدَّثَنَا ابْنُ نُمَيْرٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عُبَيْدٍ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ عَنْ قَيْسٍ اَنَّ بِلَالًا قَالَ لِاَبِيْ بَكْرٍ اِنْ كُنْتَ

۹۴۷: ابن نمير. محمد. اسمٰعيل. حضرت قيس (بن حازم) نه روايت كوي. د رسالت مئاب صلي الله عليه وسلّم د وفات نه پس چه حضرت ابوبكرؓ بلالؓ ته اووے، ته ما سره اوسه، او آذان كوه، نو حضرت بلالؓ

إِنَّمَا اشْتَرَيْتَنِيْ لِنَفْسِكَ فَأَمْسِكْنِيْ وَإِنْ كُنْتَ إِنَّمَا اشْتَرَيْتَنِيْ لِلّٰهِ فَدَعْنِيْ وَعَمَلَ اللّٰهِ.

حضرت ابوبكرؓ ته اووے، كه تا، زهٔ دَ خپل ذات دَ پاره اخستے يم، نو ما خپل خان سره ساته، او كه تا خدائے دَ پاره آخستے يم، (يعني دَ خدائے دَ خوشنودي دَ پاره) نو ما په خپل حال پريږده، چه خدائے دَ پاره عمل كوم.

باب ۴۰۸: ذِكْرِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا.

باب ۴۰۸: دَ حضرت ابن عباسؓ دَ فضائلو بيان.

۹۴۸: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ عَنْ خَالِدٍ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ ضَمَّنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى صَدْرِهٖ وَقَالَ اللّٰهُمَّ عَلِّمْهُ الْحِكْمَةَ وَحَدَّثَنَا أَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ وَقَالَ عَلِّمْهُ الْكِتَابَ.

۹۴۸: مسدد. عبدالوارث. خالد. عكرمه. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم زهٔ خپلے سينے سره اولږولم، اووے فرمائيل، اے اللّٰه، دهٔ ته حكمت عطا كړے، او يو بل روايت كښې دا الفاظ دي، چه اے اللّٰه دهٔ له دَ كتاب (قرآن) علم ور كړے.

ف: يا اللّٰه مونږ هم په دے علم مشرف كړے. اللّٰهم آمين.

باب ۴۰۹: مَنَاقِبِ خَالِدِ بْنِ الْوَلِيْدِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ.

باب ۴۰۹: دَ حضرت خالد بن وليد دَ فضائلو بيان.

۹۴۹: حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ وَاقِدٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ أَيُّوْبَ عَنْ حُمَيْدِ بْنِ هِلَالٍ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَعَى زَيْدًا وَجَعْفَرًا وَابْنَ رَوَاحَةَ لِلنَّاسِ قَبْلَ أَنْ يَأْتِيَهُمْ خَبَرُهُمْ فَقَالَ أَخَذَ الرَّايَةَ زَيْدٌ فَأُصِيْبَ ثُمَّ أَخَذَ جَعْفَرٌ فَأُصِيْبَ ثُمَّ أَخَذَ ابْنُ رَوَاحَةَ فَأُصِيْبَ وَعَيْنَاهُ تَذْرِفَانِ حَتّٰى أَخَذَ سَيْفٌ مِّنْ

۹۴۹: احمد بن واقد. حماد. ايوب. حميد. حضرت انسؓ نه روايت كويْ، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم، زيد، جعفر، ابن رواحه دَ وژلو (شهادت) خبر دَ دے نه مخكښې چه دَ ميدان جنګ نه دَ هغوي دَ شهادت خبر راشي) ور كړے وو، دے سلسله كښې حضورؐ اوفرمائيل، زيدؓ جنډه لاس كښې واخسته او شهيد كړے شو، بيا جعفر واخسته هغه هم شهيد شو بيا ابن رواحه جنډه پورته كړه، او هغه هم شهادت بيامند، (حضورؐ دا واقعه بيانوله) او دَ ستر ګو نه ئے اوښكے جاري وے (بيائے اوفرمائيل) دے نه پس نشان هغے سړي اوچت كهٔ، چه دَ

سُيُوفِ اللّٰهِ حَتّٰى فَتَحَ اللّٰهُ عَلَيْهِ.

خدائے ذ تورو نه يوه توره ده (يعني خالدؓ بن وليد) تردے چه خدائے تعالي مسلمانانوته په دشمنانو فتح ورکړله.

## باب ۴۱۰: مَنَاقِبِ سَالِمٍ مَوْلٰى اَبِيْ حُذَيْفَةَ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ.

باب ۴۱۰: ذ حضرت ابو حذيفةؓ د آزاد کرده غلام سالم ذ فضائلو بيان.

۹۵۰: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ عَنْ مَسْرُوْقٍ قَالَ ذُكِرَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو فَقَالَ ذَاكَ رَجُلٌ لَا اَزَالُ اُحِبُّهُ بَعْدَ مَا سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِسْتَقْرِؤُا الْقُرْاٰنَ مِنْ اَرْبَعَةٍ مِنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ فَبَدَاَ بِهٖ وَ سَالِمٍ مَوْلٰى اَبِيْ حُذَيْفَةَؓ وَ اُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ وَ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ لَا اَدْرِيْ بَدَاَ بِاُبَيٍّ اَوْ بِمُعَاذٍ.

۹۵۰: سليمان بن حرب. شعبه. عمرو بن مره. ابراهيم. حضرت مسروق نه روايت کوي، ذ حضرت عبداللّٰه بن عمرؓ مخکښ چه ذ حضرت عبداللّٰه بن مسعودؓ تذکره اوکړے شوه، نو حضرت عبداللّٰه بن عمرؓ اوفرمائيل، هغه داسے سړے دے، چه زۀ هغه برابر درست ګڼړم، ذ کله نه چا ما ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه دا آوريدلے دي، چه قرآن ذ څلورو سړو نه لولئے (پړهو) (۱) عبداللّٰه بن مسعودؓ نه (۲) سالم، مولٰي (يعني آزاد کرده غلام) ذ حذيفهؓ نه (۳) ابي بن کعب نه (۴) او معاذ بن جبلؓ نه. حضرت ابن عمرؓ وائي ذ ټولو نه مخکښ حضورؐ ذ عبداللّٰه بن مسعودؓ نوم واخستلو. ذ راوي بيان دے ماته ياد نۀ دي، چه وړمبے ئے د ابي بن کعب نوم واخست يا ذ معاذ بن جبل.

## باب ۴۱۱: مَنَاقِبِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ.

باب ۴۱۱: ذ حضرت عبداللّٰه بن مسعودؓ ذ فضائلو بيان.

۹۵۱: حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَؓ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سُلَيْمَانَ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا وَآئِلٍ قَالَ سَمِعْتُ مَسْرُوْقًا قَالَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَكُنْ فَاحِشًا وَّلَا مُتَفَحِّشًا وَ قَالَ اِنَّ مِنْ

۹۵۱: حفص بن عمر. شعبه. سليمان. ابا وائل. مسروق. حضرت عبداللّٰه بن عمرؓ روايت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم فحش ګو او فحش کار کونکے نۀ وو. حضورؐ اوفرمائيل، ټولو خلقو کښ هغه سړے خما زيات خوښ دے، چه تاسو

اَحَبِّكُمْ اِلَيَّ اَحْسَنُكُمْ اَخْلَاقًا وَ قَالَ اسْتَقْرِءُوا الْقُرْاٰنَ مِنْ اَرْبَعَةٍ مِّنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ وَّ سَالِمٍ مَّوْلٰى اَبِيْ حُذَيْفَةَ وَ اُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ وَ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ.

کښې دَ ټولو نه زیات خوش خلق وي' او حضورﷺ اوفرمائیل قران دَ څلورو کسانو نه زده کوئې. (۱) عبدالله بن مسعودؓ نه (۲) سالم' آزاد کړده غلام دَ ابي حذیفةؓ نه (۳) ابن بي کعب نه (۴) او معاذ بن جبل نه.

۹۵۲: حَدَّثَنَا مُوْسٰى عَنْ اَبِيْ عَوَانَةَ عَنْ مُغِيْرَةَ عَنْ اِبْرَاهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ دَخَلْتُ الشَّامَ فَصَلَّيْتُ رَكْعَتَيْنِ فَقُلْتُ اَللّٰهُمَّ يَسِّرْ لِيْ جَلِيْسًا صَالِحًا فَرَاَيْتُ شَيْخًا مُّقْبِلًا فَلَمَّا دَنٰى قُلْتُ اَرْجُوْ اَنْ يَّكُوْنَ اسْتَجَابَ قَالَ مِنْ اَيْنَ اَنْتَ قُلْتُ مِنْ اَهْلِ الْكُوْفَةِ قَالَ اَفَلَمْ يَكُنْ فِيْكُمْ صَاحِبُ النَّعْلَيْنِ وَالْوِسَادِ وَالْمِطْهَرَةِ اَوَ لَمْ يَكُنْ فِيْكُمُ الَّذِيْ اُجِيْرَ مِنَ الشَّيْطَانِ اَوَ لَمْ يَكُنْ فِيْكُمْ صَاحِبُ السِّرِّ الَّذِيْ لَا يَعْلَمُهٗ غَيْرُهٗ كَيْفَ قَرَاَ ابْنُ اُمِّ عَبْدٍ وَّاللَّيْلِ فَقَرَاْتُ وَاللَّيْلِ اِذَا يَغْشٰى وَالنَّهَارِ اِذَا تَجَلّٰى وَالذَّكَرِ وَالْاُنْثٰى قَالَ اَقْرَاَنِيْهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَفَاهُ اِلٰى فِيَّ فَمَا زَالَ هٰؤُلَآءِ حَتّٰى كَادُوْا يَرُدُّوْنِيْ.

۹۵۲: موسٰي. ابو عوانه. مغیره. ابراهیم. حضرت علقمةؓ نه روایت کوي' زهٔ ملک شام ته راغلم' او دوه رکعاته مونځ مِ اوکهٔ' بیا ما دُعا اوکړه' اے الله تعالٰي' ماته څوک ښه هم نشین عطا کړے' نو ما یو بوډا سړے راتلونکے اولید' کوم وخت چه هغه ماته نزدے راغے' نو ما (زړهٔ کښې) اووے' څما اُمید دے چه خدائے تعالٰي څما دعا قبوله کړه' هغهٔ تپوس اوکهٔ' تهٔ څوک ئې' ما ورته اووے زهٔ دَ کوفې اوسیدونکے یم' هغهٔ اووے' آیا تاسو سره دَ حضورﷺ پنړے' تکیه او بتکے څان سره ساتونکے (عبدالله بن مسعودؓ) نشته. آیا تاسو کښې هغه سړے نشته' چه هغهٔ له دَ شیطان نه پناه ورکړے شوے ده' یا تاسو کښې هغه سړے نشته' چه اسرار (رازونه) پیژندونکے دے' چه دَ هغې نه دَ هغهٔ نه علاوه بل څوک واقف نهٔ دے (ښهٔ ده اوښایه) ابن ام عبد: سورت واللیل: څنګه لولي. ما اولوست: واللیل اذا یغشٰی والنهار اذا تجلّٰی والذکر والانثٰی: نو هغهٔ اووے' ماته هم رسول الله صلي الله علیه وسلّم دا سورت داسے اورولے دے. هغه څما مخامخ ناست وو' دا خلق ما پسے لګیدلے دي' چه ما دَ داسے لوستونه واړوي.

۹۵۳: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ

۹۵۳: سلیمان. شعبه. ابو اسحاق. حضرت عبدالرحمٰن بن یزید نه روایت کوي' هغهٔ اووے' مونږ

عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ يَزِيْدَ قَالَ سَأَلْنَا حُذَيْفَةَ عَنْ رَجُلٍ قَرِيْبِ السَّمْتِ وَالْهَدْيِ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى نَأْخُذَ عَنْهُ فَقَالَ مَا اَعْرِفُ اَحَدًا اَقْرَبَ سَمْتًا وَّ هَدْيًا وَّ دَلًّا بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ اِبْنِ اُمِّ عَبْدٍ.

دَ حضرت حذيفهؓ نه يو داسے سړي دريافت كړه، چه رسول اللّٰه صلى اللّٰه عليه وسلّم ته خوئ او سيرت كښې زيات نزدے وي، چه موږ دَ هغه نه څه حاصل كړو. حضرت حذيفهؓ او فرمائيل زۀ څوک نه پيژنم، چه رسول اللّٰه صلى اللّٰه عليه وسلّم ته اخلاقو او عاداتو كښې دَ اُم عبد (عبداللّٰه بن مسعودؓ) نه زيات قريب وي.

۹۵۴ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ يُوْسُفَ بْنِ اَبِيْ اِسْحٰقَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ قَالَ حَدَّثَنِي الْاَسْوَدُ بْنُ يَزِيْدَ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا مُوْسَى الْاَشْعَرِيَّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَقُوْلُ قَدِمْتُ اَنَا وَ اَخِيْ مِنَ الْيَمَنِ فَمَكَثْنَا حِيْنًا مَا نَرٰى اِلَّا اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ مَسْعُوْدٍ رَجُلٌ مِّنْ اَهْلِ بَيْتِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِمَا نَرٰى مِنْ دُخُوْلِهٖ وَ دُخُوْلِ اُمِّهٖ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۹۵۴ : محمد بن العلاء. ابراهيم بن يوسف بن ابي اسحاق. يوسف. ابو اسحاق. اسود بن يزيد. حضرت ابو موسى اشعريؓ نه روايت كوي، هغه اووے، زۀ او زما ورور دَ يمن نه (مدينے ته) راغلو، او يو موده پورے مو (مدينه كښې) قيام او كړۀ، موږ هميشه دا خيال كولو، چه حضرت عبداللّٰه بن مسعودؓ دَ رسول اللّٰه صلى اللّٰه عليه وسلّم دَ اهل بيتو يو سړے دے، په دے وجه چه موږ عبداللّٰه بن مسعود او دَ هغه مور اكثر رسول اللّٰه صلى اللّٰه عليه وسلّم سره په تلو راتلو ليدل.

## بَابٌ ۱۲۴۱ : ذِكْرِ مُعَاوِيَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ.

## باب ۱۲۴۱ : دَ حضرت معاويهؓ دَ فضيلت او بيان.

۹۵۵ : حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ بِشْرٍ حَدَّثَنَا الْمُعَافٰى عَنْ عُثْمَانَ بْنِ الْاَسْوَدِ عَنِ ابْنِ اَبِيْ مُلَيْكَةَ قَالَ اَوْ تَرَ مُعَاوِيَةُ بَعْدَ الْعِشَاءِ بِرَكْعَةٍ وَ عِنْدَهٗ مَوْلًى لِابْنِ عَبَّاسٍ فَاَتَى

۹۵۵ : حسن. معافي. عثمان. ابن ابي مليكه نه روايت كوي، هغه وائي حضرت معاويهؓ دَ ماسختن نه پس يو وتر او كړۀ، هغه سره دَ حضرت ابن عباسؓ يو آزاد كړے غلام ناست وو، هغه راغے او ابن عباسؓ ته ئے اووے، كوره، حضرت معاويهؓ يو ركعت وتر كوي، حضرت ابن

ابْنِ عَبَّاسٍ فَقَالَ دَعْهُ فَإِنَّهُ صَحِبَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

عباسؓ اوفرمائيل: دغه پرېږده، حكه چې دے د رسول الله صلي الله عليه وسلم صحبت كښې پاتے شوے دے

٩٥٦: حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي مَرْيَمَ حَدَّثَنَا نَافِعُ بْنُ عُمَرَ حَدَّثَنِي ابْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ قِيلَ لِابْنِ عَبَّاسٍ هَلْ لَكَ فِي أَمِيرِ الْمُؤْمِنِينَ مُعَاوِيَةَ فَإِنَّهُ مَا أَوْتَرَ إِلَّا بِوَاحِدَةٍ قَالَ إِنَّهُ فَقِيهٌ

٩٥٦: ابن ابي مريم، نافع، حضرت ابن ابي مليكه نه روايت كوي چې حضرت ابن عباسؓ نه تپوس اوشو، د امير المؤمنين معاويةؓ متعلق ستا څه رائے ده؟ هغه يو ركعت وتر كوي نو حضرت ابن عباسؓ اوفرمائيل، هغه خپله فقيه دے

٩٥٧: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَبَّاسٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي التَّيَّاحِ قَالَ سَمِعْتُ حُمْرَانَ بْنَ أَبَانَ عَنْ مُعَاوِيَةَ قَالَ إِنَّكُمْ لَتُصَلُّونَ صَلَاةً لَقَدْ صَحِبْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَا رَأَيْنَاهُ يُصَلِّيهِمَا وَلَقَدْ نَهَى عَنْهُمَا يَعْنِي الرَّكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعَصْرِ

٩٥٧: عمرو، محمد، شعبه، ابو تياح، حمران: حضرت معاويةؓ نه روايت كوي، هغه اوس يو خلقو ته وئيلے وو، تاسو يو مونځ داسے كوئ چې مونږ د رسول الله صلي الله عليه وسلم صحبت كښې پاتے كيدو باوجود د حضورؐ نه د داسے مونځ كولو عمل نه دے ليدلے. د مونځ د دوه ركعاتو نه چې تاسو يې د مازيگر د مونځ نه پس دا ادا كوئ، حضور صلي الله عليه وسلم منع فرمائيلے ده.

باب ٤١٣: مَنَاقِبِ فَاطِمَةَ عَلَيْهَا السَّلَامُ وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاطِمَةُ سَيِّدَةُ نِسَاءِ أَهْلِ الْجَنَّةِ

باب ٤١٣: د بي بي فاطمےؓ د فضائلو بيان. د نبي صلي الله عليه وسلم ارشاد دے، چې فاطمهؓ د جنتي ښځو سرداره ده

٩٥٨: حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَاطِمَةُ بَضْعَةٌ مِنِّي فَمَنْ أَغْضَبَهَا أَغْضَبَنِي

٩٥٨: ابو الوليد، ابن عيينه، عمرو بن دينار، ابن ابي مليكه، حضرت مسور بن مخرمةؓ نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمائيلي دي: فاطمهؓ زما د بدن يو ټكړه ده، چا چې فاطمهؓ غضبناكه كړه، هغه زه غضبناك كرم.

۹۵۹: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ قَزَعَةَ اَنَا اِبْرَاهِيمُ ابْنُ سَعْدٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ دَعَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاطِمَةَ ابْنَتَهُ فِيْ شَكْوَاهُ الَّتِيْ قُبِضَ فِيْهَا فَسَارَّهَا بِشَيْءٍ فَبَكَتْ ثُمَّ دَعَاهَا فَسَارَّهَا فَضَحِكَتْ قَالَتْ فَسَأَلْتُهَا عَنْ ذٰلِكَ قَالَتْ سَارَّنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرَنِيْ اَنَّهُ يُقْبَضُ فِيْ وَجْعِهِ الَّذِيْ تُوُفِّيَ فِيْهِ فَبَكَيْتُ ثُمَّ سَارَّنِيْ فَاَخْبَرَنِيْ اَنِّيْ اَوَّلُ اَهْلِ بَيْتِهٖ اَتْبَعُهُ فَضَحِكْتُ.

۹۵۹: یحیٰي بن قزعه. ابراهیم بن سعد. سعد. عروه. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم خپله لور فاطمهؓ خپل مرض کښ چه هغے کښ وفات کیدلو، راوغښتله (کوم وخت چه هغه راغله) هغے سره ئے رو رو، څۀ خبره اوکړله، نو هغه په ژړا شوه، بیائے رو، شان څۀ خبره اوکړه، نو هغه په خندا شوه، ما دَ بي بي فاطمےؓ نه دَ هغے سبب اوپښتۀ، نو هغے جواب راکۀ، زۀ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم رو، شان، دَ دے خبرے نه خبرداره کړے ووم، چه حضورؐ به دے مرض کښ وفات شي، نو زۀ په ژړا شوم، څۀ وخت چه دوباره حضورؐ رو، شان دا اووے، چه زۀ به دَ حضورؐ په اهل کښ دَ ټولونه وړمبے حضورؐ سره یوځائے کیږم نو خکه په خندا شوم.

باب ۴۱۴: فَضْلِ عَائِشَةَؓ.

باب ۴۱۴: دَ بي بي عائشے صدیقےؓ دَ فضائلو بیان.

۹۶۰: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَبُوْ سَلَمَةَؓ اِنَّ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا يَا عَائِشُ هٰذَا جِبْرِيْلُ يُقْرِئُكِ السَّلَامَ فَقُلْتُ وَ عَلَيْهِ السَّلَامُ وَ رَحْمَةُ اللّٰهِ وَ بَرَكَاتُهٗ تَرٰى مَالَا اَرٰى تُرِيْدُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۹۶۰: یحیٰي بن بکیر. لیث. یونس. ابن شهاب. ابو سلمه. بي بي عائشے صدیقےؓ نه روایت کوي، هغه فرمائي، یوه ورځ ماته رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، دا جبرائیلؑ دے، تاته سلام کوي، ما جواب کښ اووے، و علیه السلام و رحمة اللّٰه و برکاته، اے رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم، تاسو هغه څۀ وینئے، چه زۀ نشم لیدے.

۹۶۱: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ وَ حَدَّثَنَا عَمْرُو اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ عَنْ مُرَّةَ عَنْ

۹۶۱: ادم. شعبه. عمرو بن مره. مره. حضرت ابو موسي اشعريؓ نه روایت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه

أَبِيْ مُوْسَى الْاَشْعَرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَمُلَ مِنَ الرِّجَالِ كَثِيْرٌ وَّلَمْ يَكْمُلْ مِنَ النِّسَاءِ إِلَّا مَرْيَمُ بِنْتُ عِمْرَانَ وَ اٰسِيَةُ امْرَأَةُ فِرْعَوْنَ وَ فَضْلُ عَائِشَةَ عَلَى النِّسَاءِ كَفَضْلِ الثَّرِيْدِ عَلٰى سَائِرِ الطَّعَامِ.

عليه وسلّم ارشاد اوفرمائيلو سړو كښې خو ډير كامل شوي دي ليكن ښځو كښې مريم بنت عمران او آسيه (د فرعون ښځه) كاملې شوې دي. او د بي بي عائشې بزرګي په ټولو ښځو داسې ده' لكه د ماتې ډوډې (ثريد) بزرګي يا فضيلت چه په ټولو طعامونو دې.

ف: ښوروا كښې ماتې ډوډې ته ثريد وائي.

٩٦٢: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ أَنَّهُ سَمِعَ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَقُوْلُ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ فَضْلُ عَائِشَةَ عَلَى النِّسَاءِ كَفَضْلِ الثَّرِيْدِ عَلَى الطَّعَامِ.

٩٦٢: عبدالعزيز بن عبداللّٰه. محمد بن جعفر. عبداللّٰه بن عبدالرحمٰن. حضرت انس بن مالكؓ نه روايت كوي' هغهٔ اوريے' ما د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه آوريدلي دي' د بي بي عائشې بزرګي په ټولو ښځو داسې ده' څنګه چه د ماتې ډوډې بزرګي په ټولو طعامونو ده.

٩٦٣: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ عَبْدِ الْمَجِيْدِ حَدَّثَنَا ابْنُ عَوْنٍ عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ أَنَّ عَائِشَةَ اشْتَكَتْ فَجَاءَ ابْنُ عَبَّاسٍ قَالَ يَا أُمَّ الْمُؤْمِنِيْنَ تَقْدَمِيْنَ عَلٰى فَرَطِ صِدْقٍ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ عَلٰى أَبِيْ بَكْرٍ.

٩٦٣: محمد بن بشار. عبدالوهاب. ابن عون. حضرت قاسم بن محمد نه روايت كوي' بي بي عائشهؓ ناروغه شوه' نو حضرت ابن عباسؓ راغې' وئيلې' اے اُم المومنين' تهٔ ريښتني مخكښې تلونكي (يعني رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم او حضرت ابوبكر صديق) له ورځې.

٩٦٤: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ

٩٦٤: محمد بن بشار. غندر. شعبه. حكم. حضرت ابو وائل نه روايت كوي' حضرت

الْحَكَمِ سَمِعْتُ اَبَا وَائِلٍ قَالَ لَمَّا بَعَثَ عَلِيٌّ عَمَّارًا وَّالْحَسَنَ اِلَى الْكُوفَةِ لِيَسْتَنْفِرَهُمْ خَطَبَ عَمَّارٌ فَقَالَ اِنِّي لَاَعْلَمُ اَنَّهَا زَوْجَتُهُ فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ ابْتَلَاكُمْ لِتَتَّبِعُوْهُ اَوْ اِيَّاهَا.

علي، عمار، او حسن كوفې ته روان كړل، چه د هغې خلقو د جهاد د پاره تيار كړي، نو عمار خطبه كښې اوويې، زه ښه پوهيږم، چه يقينا بي بي عائشه د حضورﷺ د دنيا او آخرت كښې بي بي ده. ليكن خدائې په ستاسو آزمينيت كوي، چه تاسو د عليؓ اتباع كوئې يا د عائشېؓ.

۹۶۵: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَنَّهَا اسْتَعَارَتْ مِنْ اَسْمَآءَ قِلَادَةً فَهَلَكَتْ فَاَرْسَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَاسًا مِّنْ اَصْحَابِهٖ فِيْ طَلَبِهَا فَاَدْرَكَتْهُمُ الصَّلٰوةُ فَصَلُّوْا بِغَيْرِ وُضُوْءٍ فَلَمَّا اَتَوُا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَكَوْا ذٰلِكَ اِلَيْهِ فَنَزَلَتْ اٰيَةُ التَّيَمُّمِ فَقَالَ اُسَيْدُ بْنُ حُضَيْرٍ جَزَاكِ اللّٰهُ خَيْرًا فَوَاللّٰهِ مَا نَزَلَ بِكِ اَمْرٌ قَطُّ اِلَّا جَعَلَ اللّٰهُ لَكِ مِنْهُ مَخْرَجًا وَّ لِلْمُسْلِمِيْنَ فِيْهِ بَرَكَةً.

۹۶۵: عبيد. ابو سلمه. هشام. عروه. بي بي عائشېؓ نه روايت كوي، ما يو هار د خپلې خور بي بي اسماءؓ نه عاريتًا واخستې، هغه وركې شولو (گم ہو گیا) نو رسول الله صلي الله عليه وسلم د هغې تلاش د پاره څو صحابهؓ اوليږل. د لارې (يعني سفر) دوران كښې د مونځ وخت راغې (چه اوبه پيدا نۀ شوې نو) هغوي بې او دسه مونځ اوكۀ، او نبي صلى الله عليه وسلم له چه واپس راغلل، نو هغوي ته ئې شكايت اوكۀ، چه په هغې د تيمم آيت نازل شولو، اسيد بن حضير عرض اوكۀ (اې عائشېؓ) الله تعالي دې تاته جزائې خير دركړي، خدائې كو، كومه خبره چه تاته پيښه شوې ده، خدائې تعالي ته په هغې كښې بري كړې ئې. او مسلمانانو د پاره ئې هغې كښې بركت اچولې دې.

۹۶۶: حَدَّثَنِيْ عُبَيْدُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا كَانَ فِيْ مَرَضِهٖ جَعَلَ يَدُوْرُ فِيْ نِسَآئِهٖ وَ يَقُوْلُ اَيْنَ اَنَا غَدًا حِرْصًا عَلٰى بَيْتِ عَائِشَةَ قَالَتْ عَائِشَةُ فَلَمَّا كَانَ يَوْمِيْ سَكَنَ.

۹۶۶: عبيد. ابو اسامه. هشام. حضرت عروهؓ نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلم چه د مرګ مرض كښې شو، نو خپلو بيبيانو ته به ئې روزانه فرمائيل، صبا له به زه كوم خائې يم. صبا له به زه كوم خائې يم، بي بي عائشهؓ فرمائي، كله چه خما ورځ راغله، نو حضورﷺ په آرام شولو.

۹٦۷ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ كَانَ النَّاسُ يَتَحَرَّوْنَ بِهَدَايَاهُمْ يَوْمَ عَآئِشَةَ قَالَتْ عَائِشَةُ فَاجْتَمَعَ صَوَاحِبِيْ اِلٰى اُمِّ سَلَمَةَ فَقُلْنَ يَا اُمَّ سَلَمَةَ وَاللّٰهِ اِنَّ النَّاسَ يَتَحَرَّوْنَ بِهَدَايَا هُمْ يَوْمَ عَآئِشَةَ وَ اِنَّا نُرِيْدُ الْخَيْرَ كَمَا تُرِيْدُهُ عَائِشَةُ فَمُرِيْ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يَّأْمُرَ النَّاسَ اَنْ يُهْدُوْا اِلَيْهِ حَيْثُ مَا كَانَ اَوْ حَيْثُ مَا دَارَ قَالَتْ فَذَكَرَتْ ذٰلِكَ اُمُّ سَلَمَةَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ فَاَعْرَضَ عَنِّيْ فَلَمَّا عَادَ اِلَيَّ ذَكَرْتُ لَهُ ذٰلِكَ فَاَعْرَضَ عَنِّيْ فَلَمَّا كَانَ فِي الثَّالِثَةِ ذَكَرْتُ لَهُ فَقَالَ يَا اُمَّ سَلَمَةَ لَا تُؤْذِيْنِيْ فِيْ عَآئِشَةَ فَاِنَّهُ وَاللّٰهِ مَا نَزَلَ عَلَيَّ الْوَحْيُ وَ اَنَا فِيْ لِحَافِ امْرَأَةٍ مِنْكُنَّ غَيْرَهَا.

۹٦۷ : عبدالله. حماد. هشام. حضرت عروةؓ نه روایت کوي، خلقو به هديې حضور صلي الله علیه وسلم ته ذ بي بي عائشې د نمبر په ورځ پیش کولې. بي بي عائشهؓ فرمائي: یوه ورځ ماسره همسرې بیبیانې اُم سلمه ته جمع شوې اوونیلې، اې ام سلمهؓ، په خدائې چه خلق قصدا خپلې هديې ذ بي بي عائشې ذ نمبر په ورځ لیږي، حالانکه څۀ رنګ چه عائشېؓ ته ذ خیر خواهش دې، دغه شان مونږ ته هم دې، نو تۀ رسول الله صلي الله علیه وسلم ته عرض اوکړه، چه خلقو ته دا اوفرمائي، چه زۀ چرته یم، هلته هديې رالیږئې. بي بي عائشهؓ فرمائي، اُم سلمهؓ حضورؐ ته دې باره کښې عرض اوکۀ، ام سلمهؓ فرمائي، حضورؐ خما نه مخ واړولو، خما په دوه درې واره ونیلو حضورؐ اوفرمائیل، اې ام سلمهؓ، ماله ذ عائشېؓ په باره کښې تکلیف مۀ راکوه، په خدائې چه ماله د یوې بي بي په بړستن کښې وحي نۀ راځي، خو ذ عائشې بړستن (لحاف) کښې (جبرئیل وحي راوړي).

## الحمد لِلّٰه والشکر لِلّٰه څوارلسمه پاره ختمه شوه

تاج

# تاج البخاری

## پښتو شرح صحيح البخاری

پاره ۱۵

شارح: مولانا ظهور الباری اعظمی فاضل دارالعلوم دیوبند

پښتو ترجمه: مولانا محمد امين دراني

نظرثاني: حافظ قاری فضل کريم

اهتمام: دکتور محمد دين البشاوری

تاج کتب خانه رجسٹرڈ

قصه خوانی پشاور
فون: 214454

C-15

# تاج البخاري پاره ۱۵ دمضامینو فهرست

تمت

# پنځلسمه پاره

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

باب ۱۵ ۴: مَنَاقِبِ الْاَنْصَارِ وَالَّذِيْنَ تَبَوَّءُوا الدَّارَ وَالْإِيْمَانَ مِنْ قَبْلِهِمْ يُحِبُّوْنَ مَنْ هَاجَرَ اِلَيْهِمْ وَلَا يَجِدُوْنَ فِيْ صُدُوْرِهِمْ حَاجَةً مِّمَّا اُوْتُوْا.

باب ۱۵ ۴: دَ انصارو دَ مناقبو بيان. او آيت كريمه' او كوم خلق چه دار (هجرت) او دار الاسلام يعني مدينه كښې دَ مهاجرينو (دَ راتلونه مخكښې) قيام پذير دي' چه هغوي طرف ته هجرت كوي راځي' هغوي سره محبت كوي' او مهاجرينو ته چه څۀ ور كړے شي' نو هغوي هغے سره خپلو زړونو كښې خلش نۀ بيامومي.

۹۶۸: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا مَهْدِيُّ ابْنُ مَيْمُوْنَ حَدَّثَنَا غَيْلَانُ بْنُ جَرِيْرٍ قَالَ قُلْتُ لِاَنَسٍ اَرَاَيْتَ اسْمَ الْاَنْصَارِ كُنْتُمْ تُسَمَّوْنَ بِهٖ اَمْ سَمَّاكُمُ اللّٰهُ قَالَ بَلْ سَمَّانَا اللّٰهُ كُنَّا نَدْخُلُ عَلٰى اَنَسٍ فَيُحَدِّثُنَا مَنَاقِبَ الْاَنْصَارِ وَ مَشَاهِدَهُمْ وَيُقْبِلُ عَلَيَّ اَوْ عَلٰى رَجُلٍ مِنَ الْاَزْدِ فَيَقُوْلُ فَعَلَ قَوْمُكَ يَوْمَ كَذَا وَ كَذَا كَذَا وَ كَذَا.

۹۶۸: موسىٰ بن اسمٰعيل. مهدي بن ميمون. غيلان بن جرير فرمائي' ما دَ حضرت انسؓ نه تپوس او كۀ' چه لږ دَ انصار دَ نوم متعلق راته اووايه' چه دا نوم تاسو (يعني انصارو خپله) ايښے دے' يا اللّٰه تعالىٰ دا نوم ايښے دے (غيلان) وائي' مونږ به حضرت انس له تلو' نو هغۀ به مونږ ته دَ انصارو مناقب او دَ هغوي كارنامے بيانولے' او ماته يا دَ قبيلۀ از د يو سړي ته به متوجه۱ شو' فرمائيل به ئے' په فلانئے فلانئے ورځ ستا قوم (انصارو) فلانے فلانے كار اوكۀ.

۱. راوي ته شک دے چه په دے دوؤ جملو كښے غيلان رحمة اللّٰه عليه كومه جُمله وئيلے وه؟ بهرحال د دوارو مقصد يو دے' او د دواړونه مراد پخپله د هغوئ خپل ذات دے' هغه پخپله دَ اَزد قبيلے فرد وو.

۹۶۹: حَدَّثَنِيْ عُبَيْدُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ يَوْمُ بُعَاثَ يَوْمًا قَدَّمَهُ اللّٰهُ

۹۶۹: عبيد بن اسماعيل. ابو اسامه. د هغۀ پلار' بي بي عائشےؓ نه روايت كوي' هغه فرمائي' دَ جنگ بعاث ورځ خدائے تعالىٰ دَ خپل رسول (د كاميابي) د پاره د مخكښې نه مقرر كړے وه' څۀ وخت چه مدينے ته

لِرَسُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَدِمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدِ افْتَرَقَ مَلَؤُهُمْ وَ قُتِلَتْ سَرَاتُهُمْ وَ جُرِحُوْا فَقَدَّمَهُ اللّٰهُ لِرَسُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ دُخُوْلِهِمْ فِي الْاِسْلَامِ.

رسول الله صلي الله عليه وسلم تشريف راوړلو، نو دَ هغوي جماعتونه د مخکښ نه خراب شوے وو، دَ هغوي څهٔ سرداران زخمي او څهٔ وژلے شوے وو، نو الله تعالي دَ خپل رسول دَ پاره دا ورځ دَ مخکښ نه دَ دے جماعتونو اسلام کښ داخليدو دَ پاره (چه ورستو دَ انصارو په لقب اوپاللے شو) مقرر کړے وه.

۹۷۰ : حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِي التَّيَّاحِ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسًا رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَقُوْلُ قَالَتِ الْاَنْصَارُ يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ وَ اَعْطٰى قُرَيْشًا وَاللّٰهِ اِنَّ هٰذَا لَهُوَ الْعَجَبُ اِنَّ سُيُوْفَنَا تَقْطُرُ مِنْ دِمَاءِ قُرَيْشٍ وَ غَنَائِمُنَا تُرَدُّ عَلَيْهِمْ فَبَلَغَ ذٰلِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَعَا الْاَنْصَارَ قَالَ فَقَالَ مَا الَّذِيْ بَلَغَنِيْ عَنْكُمْ وَ كَانُوْا لَا يَكْذِبُوْنَ فَقَالُوْا هُوَ الَّذِيْ بَلَغَكَ قَالَ اَوَلَا تَرْضَوْنَ اَنْ يَرْجِعَ النَّاسُ بِالْغَنَائِمِ اِلٰى بُيُوْتِهِمْ وَ تَرْجِعُوْنَ بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلٰى بُيُوْتِكُمْ لَوْ سَلَكَتِ الْاَنْصَارُ وَادِيًا اَوْ شِعْبًا لَسَلَكْتُ وَادِيَ الْاَنْصَارِ اَوْ شِعْبَهُمْ.

۹۷۰ : ابو الوليد. شعبه. ابوالتياح فرمائي، ما دَ حضرت انسؓ نه واوريدل، حضور صلي الله عليه وسلم قريشو ته دَ مکے دَ فتح په ورځ څهٔ عطيّه ورکړے وه، نو انصارو اووے، په خدائے چه دا خو ډيره دَ تعجب خبره ده، چه څمونږ دَ تورونه دَ قريشو وينه څاخي، او څمونږ غنيمتونه هغوي ته حواله کيږي. دا خبر پيغمبر صلي الله عليه وسلم ته اورسيد، نو حضورؐ انصار، راوبلل، ورته ئے اُفرمائيل کوم خبر چه ستاسو دَ جانب نه مونږ ته رارسيدلے دے، دا څنګه دے، او انصارو به دروغ نهٔ وئيلے، نو هغوي جواب ورکړهٔ دا اطلاع چه تاسوته رسيدلے ده، بالکل ټيک ده. حضورؐ اوفرمائيل، آيا تاسو په دے خبره راضي نه ئے، چه خلق خپلو کورونو ته مال غنيمت سره واپس کيږي (چه ډير حقير څيز دے) او تاسو خپلو کورونوته دَ الله رسول سره واپس ځئے (چه ددے نه لوئے نعمت دُنيا کښ نشي کيدے) کوم ميدان يا غاښي کښ چه انصار ځي، نو زهٔ به هم دَ هغوي په هغے ميدان يا غاښي ځم.

## باب ۱۶ ۴ : قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْلَا الْهِجْرَةُ لَكُنْتُ مِنَ الْاَنْصَارِ قَالَهٗ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ زَيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۱۶ ۴ : دَ رسول الله صلي الله عليه وسلم ارشاد، که ما هجرت نهٔ وے کړے، نو زهٔ به دَ انصارو نه ووم. دا عبدالله بن زيد دَ نبي صلے الله عليه وسلم نه روايت کړے دے.

۹۷۱ : حَدَّثَنِیْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ زِيَادٍ عَنْ اَبِیْ هُرَيْرَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ اَنَّ الْاَنْصَارَ سَلَكُوْا وَادِيًا اَوْ شِعْبًا لَسَلَكْتُ فِیْ وَادِی الْاَنْصَارِ وَلَوْلَا الْهِجْرَةُ لَكُنْتُ امْرَءً ا مِنَ الْاَنْصَارِ فَقَالَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ مَا ظَلَمَ بِاَبِیْ وَ اُمِّیْ اٰوَوْهُ وَ نَصَرُوْهُ اَوْ كَلِمَةً اُخْرٰی.

۹۷۱ : محمد بن بشار. غندر. شعبه. محمد بن زیاد. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي، ابوالقاسم صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، انصار چه کوم میدان یا غاښ کښې ځي، نو زهٔ به هم په هغې ځم، او که د هجرت فضیلت نه وې نو زهٔ به دَ انصارو یو فرد ووم. حضرت ابوهریرهؓ عرض اوکهٔ، ځما مور پلار دې په تاسوٌ قربان وي، تاسو دا خبره خلاف حق نهٔ ده کړې، ځکه انصارو تاسوٌ ته دَ اوسیدو ځائې درکړلو، او ستاسو مدد ئې اوکهٔ، یا څهٔ بله کلمه حضرت ابوهریرهؓ اوفرمائیله.

باب ۴۱۷ : اِخَاءِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ الْمُهَاجِرِيْنَ وَالْاَنْصَارِ.

باب ۴۱۷ : دَ سرکار دو عالم صلي الله علیه وسلّم دَ مهاجرینو او انصارو مینځ کښې دَ اخوت قائمولو بیان.

۹۷۲ : حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِیْ اِسْمٰعِيْلُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ جَدِّهٖ قَالَ لَمَّا قَدِمُوا الْمَدِيْنَةَ اٰخٰی رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ وَ سَعْدِ بْنِ الرَّبِيْعِ قَالَ لِعَبْدِ الرَّحْمٰنِ اِنِّیْ اَكْثَرُ الْاَنْصَارِ مَالًا فَاَقْسِمُ مَا لِیْ نِصْفَيْنِ وَلِیَ امْرَاَتَانِ فَانْظُرْ اَعْجَبَهُمَا اِلَيْكَ فَسَمِّهَا لِیْ اُطَلِّقْهَا فَاِذَا انْقَضَتْ عِدَّتُهَا فَتَزَوَّجْهَا قَالَ بَارَكَ اللّٰهُ لَكَ فِیْ اَهْلِكَ وَ مَالِكَ اَيْنَ سُوْقُكُمْ فَدَلُّوْهُ عَلٰی سُوْقِ بَنِیْ قَيْنُقَاعَ

۹۷۲ : اسماعیل بن عبدالله. ابراهیم بن سعد. دَ خپل پلار او نیکه نه روایت کوي، کوم وخت چه مهاجرین مدینې ته راغلل، نو رسول الله صلي الله علیه وسلّم دَ عبدالرحمٰن او سعد بن ربیع مینځ کښې اخوت قائم کهٔ. سعد، عبدالرحمٰن ته اووې، زهٔ انصارو کښې زیات دولتمند یم، زهٔ خپل مال دوه حصې کوم (یوه حصه تهٔ واخله) او ځما دوه ښځې دي، ته لاړ شه اوګوره، کومه چه هغې کښې ستا خوښه وي، دَ هغې نوم راته اوښایه، زهٔ به هغې له طلاق ورکړم، او هر کله چه عدت تیر شي، نو تهٔ هغې سره نکاح اوکړه. عبدالرحمٰن ورته اووې، خدائې دې ستا مال او بیبیانو کښې برکت واچوي، دا راته اووایه، چه ستاسو بازار کوم ځائې دې نو هغهٔ ته قینقاع نومې بازار اوښودلې شو. څهٔ وخت چه هغه دَ بازار نه واپس راغې، نو هغه سره څهٔ پنیر او غوړي

فَمَا انْقَلَبَ اِلَّا وَ مَعَهُ فَضْلٌ مِنْ اَقِطٍ وَ سَمْنٍ ثُمَّ تَابَعَ الْغُدُوَّ ثُمَّ جَاءَ يَوْمًا وَ بِهٖ اَثَرُ صُفْرَةٍ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَهْيَمْ قَالَ تَزَوَّجْتُ قَالَ كَمْ سُقْتَ اِلَيْهَا قَالَ نَوَاةٌ مِنْ ذَهَبٍ اَوْ وَزْنَ نَوَاةٍ مِنْ ذَهَبٍ شَكَّ اِبْرٰهِيْمُ.

وو. دے نه پس به هغه برابر سحر كښې بازار ته تلو. بيا يوه ورځ هغه راغے' نو په هغهٔ دَ زردئ څه اثر وو. نبي صلے اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل' دا څهٔ دي' هغهٔ ورته اووے' ما نكاح كړے ده' حضورؐ ترے تپوس اوكه' تا هغے له څومره مَهر وركړلو' عبدالرحمٰن اووے' يو كټكے يا دائے اووے' چه دَ يوے كټكي برابر سرهٔ زر. ابراهيم راوي ته دلته شك شوے دے.

۹۷۳ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ اَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّهُ قَالَ قَدِمَ عَلَيْنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَوْفٍ وَ اٰخَى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَهُ وَ بَيْنَ سَعْدِ بْنِ الرَّبِيْعِ وَ كَانَ كَثِيْرَ الْمَالِ فَقَالَ سَعْدٌ قَدْ عَلِمَتِ الْاَنْصَارُ اَنِّيْ مِنْ اَكْثَرِهَا مَالًا سَاَقْسِمُ مَالِيْ بَيْنِيْ وَ بَيْنَكَ شَطْرَيْنِ وَلِيْ امْرَاَتَانِ فَانْظُرْ اَعْجَبَهُمَا اِلَيْكَ فَاُطَلِّقُهَا حَتّٰى اِذَا اَحَلَّتْ تَزَوَّجْتَهَا فَقَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بَارَكَ اللّٰهُ لَكَ فِيْ اَهْلِكَ فَلَمْ يَرْجِعْ يَوْمَئِذٍ حَتّٰى اَفْضَلَ شَيْئًا مِنْ سَمْنٍ وَ اَقِطٍ فَلَمْ يَلْبَثْ اِلَّا يَسِيْرًا حَتّٰى جَآءَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ عَلَيْهِ وَضَرٌ مِنْ صُفْرَةٍ فَقَالَ

۹۷۳ : قتيبه. اسمٰعيل بن جعفر. حميد. حضرت انسؓ نه روايت كوي' هغه فرمائي' كوم وخت چه مونږ ته (مديني ته دَ هجرت نه پس) عبدالرحمٰن بن عوف راغے' او رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ هغهٔ او سعد بن ربيع په مينځ كښې ورور ولي قائمه كړه. او سعد ډير مالدار وو' نو سعد هغهٔ ته اووے' ټولو انصارو ته معلومه ده' چه زهٔ دَ دے ټولو نه زيات دولتمند يم' زهٔ خپل مال دَ ځان او ستا مينځ كښې په دوو حصو تقسيموم' او ځما دوه بيبيانے دي' نو اوګوره' هغے كښې چه كومه ستا خوښه وي' هغے له به زهٔ طلاق وركړم' هر كله چه دَ هغے عدت پوره شي' نو تهٔ ورسره نكاح اوكړه. عبدالرحمٰن جواب وركړهٔ' اللّٰه تعالٰي دے ستا مال او كور والو كښې بركت واچوي (ماته دَ دے ضرورت نشته' ما ته بازار اوښايه' نو ورته اوښودلے شو) هغه چه په هغه ورځ دَ بازار نه واپس شو' نو نفع كښې ورته څهٔ غوړي او پنير حاصل شو. دے حال كښې عبدالرحمٰن لږے ورځے وو' حتّي چه يوه ورځ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته راغے' داسے حال كښې' چه دَ هغهٔ په لباس دَ زردي داغونه لږيدلے وو' نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ترے تپوس اوكهٔ دا څهٔ دي' هغه

رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْهُمْ قَالَ تَزَوَّجْتُ امْرَأَةً مِنَ الْاَنْصَارِ فَقَالَ مَا سُقْتَهَا قَالَ وَزْنَ نَوَاةٍ مِنْ ذَهَبٍ اَوْ نَوَاةً مِنْ ذَهَبٍ فَقَالَ اَوْلِمْ وَلَوْ بِشَاةٍ.

اوورے، ما يو انصاري ښځې سره نکاح کړې وو. حضور ورته اوفرمائيل، تا هغې له څومره مهر ورکړے دے، عبدالرحمٰن اوورے، ډ يو کټکي برابر سرۀ زر (سونا) يا وے فرمائيل، ډ سرو زرو يوه کټکے. حضورؐ ورته اوفرمائيل، اوس وليمه اوکړه، اګر که يوه چيلئے وي.

ف: (۱) عدت: هغه موده چه ښځې ته ډ دوئمې نکاح کولو اجازت په کښې نه وي. ډ طلاقې ښځې ډ پاره درے مياشتے، ګنډلے ډ پاره څلور مياشتے او لس ورځې، او اميدوارې ډ پاره تر زيږون يا لنګون، ډ عدت شرعي حد مقرر دے. (۲) وليمه: ډ وادۀ روټې يا دعوت خو چه ورپسې شپه تيره شي. ډ نکاح ضيافت ډ وادۀ په موقع ميلمنو ته ډوډي ورکول. (۳) نواة: ډ يو کټکي (ګٹھلی) برابر سرۀ زر.

۹۷۴: حَدَّثَنَا صَلْتُ بْنُ مُحَمَّدٍ اَبُوْ هَمَّامٍ قَالَ سَمِعْتُ الْمُغِيْرَةَ بْنَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ حَدَّثَنَا اَبُو الزِّنَادِ عَنِ الْاَعْرَجِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَتِ الْاَنْصَارُ اَقْسِمْ بَيْنَنَا وَ بَيْنَهُمُ النَّخْلَ قَالَ لَا قَالَ تَكْفُوْنَا الْمُؤْنَةَ وَ تُشْرِكُوْنَا فِي الثَّمَرِ قَالُوْا سَمِعْنَا وَ اَطَعْنَا.

۹۷۴: صلت بن محمد ابو همام. مغيره بن عبدالرحمٰن. ابوالزناد. اعرج. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت کوي، هغه فرمائي، انصارو عرض اوکړه، يا رسول اللّٰه، څمونږ او مهاجرينو مينځ کښې ډ قجورو اونې تقسيم کړئے، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، نه انصارو اوورے، تاسو محنت کوئے، او قجورو کښې به ستاسو شرکت وي، مهاجرينو اوورے، مونږ او منله.

باب ۴۱۸: حُبِّ الْاَنْصَارِ.

باب ۴۱۸: انصارو سره ډ محبت ساتلو بيان.

۹۷۵: حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَدِيُّ بْنُ ثَابِتٍ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوْ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْاَنْصَارُ لَا يُحِبُّهُمْ اِلَّا مُؤْمِنٌ وَلَا يُبْغِضُهُمْ اِلَّا مُنَافِقٌ فَمَنْ اَحَبَّهُمْ اَحَبَّهُ اللّٰهُ وَمَنْ اَبْغَضَهُمْ

۹۷۵: حجاج بن منهال. شعبه. عدي بن ثابت. حضرت براء بن عازبؓ فرمائي ما ډ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم نه واوريدل چه انصارو سره خو به مؤمن محبت ساتي، او هغوي سره به بغض صرف منافق ساتي او څوک چه انصارو سره مينه ساتي، اللّٰه تعالٰي به هغه سره مينه ساتي. او څوک چه انصارو سره بغض ساتي، نو اللّٰه تعالٰي به هغه سره بغض

اَبْغَضَهُ اللّٰهُ.

ساتي.

۹۷۶ : حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اٰيَةُ الْاِيْمَانِ حُبُّ الْاَنْصَارِ وَ اٰيَةُ النِّفَاقِ بُغْضُ الْاَنْصَارِ.

۹۷۶ : مسلم بن ابراهيم. شعبه. عبدالرحمٰن بن عبداللّٰه بن جبير. حضرت انس بن مالک رضی الله عنه نه روايت کوي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، انصارو سره محبت ساتل دَ ايمان علامت دے، او انصارو سره بغض ساتل دَ نفاق علامت دے.

باب ۱۹ ۴ : قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْاَنْصَارِ اَنْتُمْ اَحَبُّ النَّاسِ اِلَيَّ.

باب ۱۹ ۴ : دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم انصاروته فرمائيل، تاسو ماته دَ ټولو نه زيات محبوب ئي.

۹۷۷ : حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ عَنْ اَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ رَاَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النِّسَاءَ وَالصِّبْيَانَ مُقْبِلِيْنَ قَالَ حَسِبْتُ اَنَّهُ قَالَ مِنْ عُرُسٍ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُمْثِلًا فَقَالَ اللّٰهُمَّ اَنْتُمْ مِنْ اَحَبِّ النَّاسِ اِلَيَّ قَالَهَا ثَلٰثَ مِرَارًا.

۹۷۷ : ابو معمر. عبدالوارث. عبدالعزيز. حضرت انس رضی الله عنه نه روايت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ښځے او بچي غالبًا دَ يو وادهٔ نه په راتلو اوليدل، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اودريدلو، او درے ځله ئے ارشاد اوفرمائيلو، خدائے ګواه دے، چه تاسو ماته دَ ټولو نه زيات خوارهٔ او محبوب ئي.

۹۷۸ : حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ بْنِ كَثِيْرٍ حَدَّثَنَا بَهْزُ بْنُ اَسَدٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَخْبَرَنِيْ هِشَامُ بْنُ زَيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسَ ابْنَ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ جَاءَتْ اِمْرَاَةٌ مِنَ الْاَنْصَارِ اِلَى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

۹۷۸ : يعقوب بن ابراهيم بن کثير. بهز بن اسد. شعبه. هشام. انس بن مالک رضی الله عنه نه روايت کوي، هغه فرمائي، يو انصاري ښځے خپلے بچے اخستے رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم له راغله، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم هغے سره خبرے اترے اوکړے (نو دَ خبرو اترو

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ مَعَهَا صَبِيٌّ لَهَا فَكَلَّمَهَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ اِنَّكُمْ اَحَبُّ النَّاسِ اِلَيَّ مَرَّتَيْنِ.

دوران كښې) حضورؐ دوه ځله اوفرمائيل' په هغه ذات م دے قسم وي' ذَ چا په قبضه كښې چه ځما ساه ده' چه تاسو ماته ذَ ټولونه زيات محبوب يئ.

## باب ۴۲۰: اَتْبَاعِ الْاَنْصَارِ.

## باب ۴۲۰: ذَ انصارو ذَ اتباع كولو بيان.

۹۷۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدُرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرٍو سَمِعْتُ اَبَا حَمْزَةَ عَنْ زَيْدِ بْنِ اَرْقَمَ قَالَتِ الْاَنْصَارُ لِكُلِّ نَبِيٍّ اَتْبَاعٌ وَ اِنَّا قَدِ اتَّبَعْنَاكَ فَادْعُ اللّٰهَ اَنْ يَّجْعَلَ اَتْبَاعَنَا مِنَّا فَدَعَا بِهٖ فَنَمَيْتُ ذٰلِكَ اِلَى ابْنِ اَبِيْ لَيْلٰى قَالَ قَدْ زَعَمَ ذٰلِكَ زَيْدٌ.

۹۷۹: محمد بن بشار. غندر. شعبه. عمر. ابو حمزه. حضرت يزيد بن ارقم فرمائي' انصارو' نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ته عرض اوكړ' ذَ هر نبي څۀ پيرو كار وي' او مونږ ستاسو پيروي كړے ده' نو ذَ اللّٰه نه دُعا اوغواړے' چه ځمونږ پيرو كار ځمونږ ذَ ډلے نه جوړ كړي' حضورؐ دا دُعا اوكړله' (عمر وائي) ما دا حديث ذَ ابو ليلٰي مخكښې بيان كړ' نو هغۀ اوفرمائيل' چه زيد بعينهٖ داسے وئيلے دي.

۹۸۰: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مُرَّةَ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا حَمْزَةَ رَجُلًا مِّنَ الْاَنْصَارِ قَالَ قَالَتِ الْاَنْصَارُ اِنَّ لِكُلِّ قَوْمٍ اَتْبَاعًا وَ اِنَّا قَدِ اتَّبَعْنَاكَ فَادْعُ اللّٰهَ اَنْ يَّجْعَلَ اَتْبَاعَنَا مِنَّا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَللّٰهُمَّ اجْعَلْ اَتْبَاعَهُمْ مِنْهُمْ قَالَ عَمْرٌو فَذَكَرْتُهٗ لِابْنِ اَبِيْ لَيْلٰى قَالَ قَدْ زَعَمَ ذٰلِكَ زَيْدٌ قَالَ شُعْبَةُ اَظُنُّهٗ زَيْدَ بْنَ اَرْقَمَ.

۹۸۰: آدم. شعبه. عمرو بن مره وائي' ما ذَ يو انصاري سړي ابو حمزه نه دا واوريدل' انصارو حضورؐ ته عرض اوكړ' ذَ هر قوم څۀ پيروكار وي' او مونږ ستاسوؐ پيروي كړے ده' نو ذَ اللّٰه تعالٰي نه دُعا اوغواړئ' چه ځمونږ پيرو كار ځمونږ نه كړي. نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم دُعا اوكړله. اے اللّٰه' ذَ دوي پيرو كار ذَ دوي نه كړے. عمرو وائي' ما دا حديث ابو ليلٰي ته بيان كړ' نو هغۀ اوفرمائيل' زيد بعينهٖ دا شان دا حديث بيان كړے دے. شعبه وائي ځما خيال كښې هغه زيد بن ارقم دے.

## باب ۴۲۱: فَضْلِ دُوْرِ الْاَنْصَارِ.

## باب ۴۲۱: ذَ انصارو ذَ كورونو ذَ فضيلت بيان.

۹۸۱: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ

۹۸۱: محمد بن بشار. غندر. شعبه.

حَدَّثَنَا غُنْدُرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ سَمِعْتُ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ اَبِيْ اُسَيْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْرُ دُوْرِ الْاَنْصَارِ بَنُو النَّجَّارِ ثُمَّ بَنُوْ عَبْدِ الْاَشْهَلِ ثُمَّ بَنُوا الْحَارِثِ بْنِ خَزْرَجٍ ثُمَّ بَنُوْ سَاعِدَةَ وَ فِيْ كُلِّ دُوْرِ الْاَنْصَارِ خَيْرٌ فَقَالَ سَعْدٌ مَا اَرَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَّا قَدْ فَضَّلَ عَلَيْنَا فَقِيْلَ قَدْ فَضَّلَكُمْ عَلٰى كَثِيْرٍ وَ قَالَ عَبْدُ الصَّمَدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ سَمِعْتُ اَنَسًا قَالَ اَبُوْ اُسَيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهٰذَا اَوْ قَالَ سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ.

حضرت انس بن مالکؓ حضرت ابو اسیدؓ نه روایت کوي' نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل' دَ تولونه بهترینه انصاري کورنئ دَ بني نجار ده' بیا دَ بني الاشهل' بیا دَ بني حارث' بیا دَ بني خزرج او دَ بني ساعده ده' او (هسې خو) هرې انصاري کورنئ کښې بهتري ده' نو سعد اورې' خما خیال دې' چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم نوروله په مونږ ترجیح ورکړې ده' نو هغهٔ له جواب ورکړې شو' چه تاله حضورؐ په ډیرو فضیلت ورکړې دې. عبدالصمد' شعبه' قتاده' حضرت انسؓ او حضرت ابو اسیدؓ دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم نه دغسې حدیث بیان کړې دې. (البته) هغهٔ دَ سعد په ځائې سعد بن عباده وئیلې دې.

۹۸۲ : حَدَّثَنَا سَعْدُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا شَيْبَانُ عَنْ يَحْيٰى قَالَ اَبُوْ سَلَمَةَ اَخْبَرَنِيْ اَبُوْ اُسَيْدٍ اَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ خَيْرُ الْاَنْصَارِ اَوْ قَالَ خَيْرُ دُوْرِ الْاَنْصَارِ بَنُو النَّجَّارِ وَ بَنُوْ عَبْدَ الْاَشْهَلِ وَ بَنُو الْحَارِثِ وَ بَنُوْ سَاعِدَةَ.

۹۸۲ : سعد بن حفص. شیبان. یحیٰي. ابو سلمه. ابو اسیدؓ نه روایت کوي' هغهٔ دَ نبي اکرم صلي اللّٰه علیه وسلّم نه واوریدل' بهترین انصار' یا حضورؐ داسې اوفرمائیل' چه بهترینې انصاري کورنئ بني نجار' بني عبدالاشهل' بني حارث او بني ساعده دي.

۹۸۳ : حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مُخَلَّدٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَمْرُو بْنُ يَحْيٰى عَنْ عَبَّاسِ بْنِ سَهْلٍ عَنْ اَبِيْ حُمَيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ خَيْرَ دُوْرِ

۹۸۳ : خالد بن مخلد. سلیمان. عمرو بن یحیٰي. عباس بن سهل. حضرت ابو حمیدؓ نه روایت کوي' نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل' بهترینه انصاري کورنئ دَ بني نجار ده. بیا دَ عبد الاشهل' بیا دَ بني حارث کورنئ'

الْاَنْصَارِ دَارُ بَنِي النَّجَّارِ ثُمَّ عَبْدُ الْاَشْهَلِ ثُمَّ دَارُ بَنِي الْحَارِثِ ثُمَّ سَاعِدَةَ وَ فِيْ كُلِّ دُوْرِ الْاَنْصَارِ خَيْرٌ فَلَحِقْنَا سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ فَقَالَ اَبُوْ اُسَيْدٍ اَلَمْ تَرَ اَنَّ نَبِيَّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيَّرَ الْاَنْصَارَ فَجَعَلَنَا اَخِيْرًا فَاَدْرَكَ سَعْدُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ خُيِّرَ دُوْرُ الْاَنْصَارِ فَجُعِلْنَا اٰخِرًا فَقَالَ اَوَلَيْسَ بِحَسْبِكُمْ اَنْ تَكُوْنُوْا مِنَ الْخِيَارِ.

بيا دَ بني ساعده، او هر انصاري كور كښې بهتري ده. بيا سعد بن عباده سره خمونږ ملاقات اوشو. نو ابو اسيد اووے، آيا تا اُونه ليدل، چه حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ انصارو فضيلت بيان كړ، مونږ ئے دَ ټولو نه آخر كښې كړو. نو حضرت سعد حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم سره يوځائے شو. او عرض ئے اوكړ، يا رسول اللّٰه، دَ انصاري كورنو فضيلت بيان كړے شو، او مونږ ټولو كښې آخر ته پاتے شو، حضورٌ ورته اوفرمائيل آيا دا خبره تاسو له كافي نهٔ ده، چه تاسو دَ بهترينو خلقو نه ئے.

**باب ۲۲۴: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْاَنْصَارِ اِصْبِرُوْا حَتّٰى تَلْقَوْنِيْ عَلَى الْحَوْضِ قَالَهُ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ زَيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.**

**باب ۲۲۴:** دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم انصاروته فرمائيل، تاسو صبر كوئے، حتّٰي چه ما سره په حوض كوثر يوځائے شئے، دا حديث عبداللّٰه بن زيد، دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه روايت كړے دے.

**۹۸۴:** حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ سَمِعْتُ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ ابْنِ مَالِكٍ عَنْ اُسَيْدِ بْنِ حُضَيْرٍ اَنَّ رَجُلًا مِّنَ الْاَنْصَارِ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَلَا تَسْتَعْمِلُنِيْ كَمَا اسْتَعْمَلْتَ فُلَانًا قَالَ سَتَلْقَوْنَ بَعْدِيْ اُثْرَةً فَاصْبِرُوْا حَتّٰى تَلْقَوْنِيْ عَلَى الْحَوْضِ.

**۹۸۴:** محمد بن بشار. غندر. شعبه. قتاده. حضرت انس بن مالك. حضرت اسيد بن حضير نه روايت كوي، يو انصاري عرض اوكړ، يا رسول اللّٰه، آيا تاسو به ما دَ فلاني سړي په شان عامل (گورنر) جوړ نهٔ كړئے، حضورٌ ورته اوفرمائيل، تاسو به خما نه پس خان باندے نوروله ترجيح وركونكي بيامومئے. نو تاسو صبر كوئے، تردے چه ماسره حوض كوثر باندے يوځائے شے.

**۹۸۵:** حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ

**۹۸۵:** محمد بن بشار. غندر. شعبه. هشام. حضرت انس بن مالكٌ نه

هِشَامٍ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَقُوْلُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْاَنْصَارِ اِنَّكُمْ سَتَلْقَوْنَ بَعْدِيْ اُثْرَةً فَاصْبِرُوْا حَتّٰى تَلْقَوْنِيْ وَ مَوْعِدُكُمُ الْحَوْضُ.

روايت كوي، حضورؐ انصارو ته اوفرمائيل، تاسو به خما نه پس په خپل خان ذ نورو ترجيح اووينئ نو تاسو صبر كوئي، ترديے ماسره يوخائے شئي، او ذ ملاقات خائے حوض كوثر دے.

۹۸۶ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ سَمِعَ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حِيْنَ خَرَجَ مَعَهُ اِلَى الْوَلِيْدِ قَالَ دَعَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْاَنْصَارَ اِلٰى اَنْ يُقْطِعَ لَهُمُ الْبَحْرَيْنَ فَقَالُوْا لَا اِلَّا اَنْ تُقْطِعَ لِاِخْوَانِنَا مِنَ الْمُهَاجِرِيْنَ مِثْلَهَا قَالَ اِمَّا لَا فَاصْبِرُوْا حَتّٰى تَلْقَوْنِيْ فَاِنَّهُ سَيُصِيْبُكُمْ بَعْدِيْ اُثْرَةٌ.

۹۸۶ : عبدالله بن محمد. سفيان. يحيٰي بن سعيد. حضرت انس بن مالكؓ نه، كوم وخت چه هغهٔ هغهٔ سره وليدله تلو، دا واوريدل، چه نبي صلي الله عليه وسلّم انصار، ذ بحرين جاگيرونه ذ هغوي په قوم ليكلو ذ پاره راوبلل، نو انصارو عرض اوكۀ، مونږته دا په دے شان منظوره ده، چه خمونږ مهاجرينو رونړو ته هم دغسے جاگيرونه وركړئے. حضورؐ ورته اوفرمائيل كه تاسوته منظور نۀ وي، نو (اوس) تاسو صبر كوئے، حتٰي چه ماسره يوخائے شئے، خكه چه خما نه پس به ستاسو مقابله كښ نوروته ترجيح وركولے شي. (ترجيح يعني فوقيت).

## بَاب ۴۲۳: دُعَاءِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَصْلِحِ الْاَنْصَارَ وَالْمُهَاجِرَةَ.

## باب ۴۲۳: ذ نبي صلي الله عليه وسلّم دُعا، اے الله، ذ انصارو او مهاجرينو حالت درست كړے.

۹۸۷ : حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا اَبُوْ اِيَاسٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا عَيْشَ اِلَّا عَيْشُ الْاٰخِرَةِ فَاَصْلِحِ الْاَنْصَارَ وَالْمُهَاجِرَةَ وَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

۹۸۷ : آدم. شعبه. ابو اياس. حضرت انس بن مالكؓ نه روايت كوي، نبي صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل 'اے الله، عيش خو صرف ذ آخرت عيش دے نو ذ انصارو او مهاجرينو حالت درست كړے. او قتاده هم ذ نبي صلي الله عليه وسلّم نه دغسے روايت كوي (بس دومره فرق دے) چه حضورؐ دا اوفرمائيل نو انصار او مهاجرين

وَسَلَّمَ مِثْلَهُ وَ قَالَ فَاغْفِرْ لِلْاَنْصَارِ.

اُوبښيے.

۹۸۸: حَدَّثَنَا اٰدَمُ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ حُمَيْدِ الطَّوِيْلِ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كَانَتِ الْاَنْصَارُ يَوْمَ الْخَنْدَقِ تَقُوْلُ ـ

نَحْنُ الَّذِيْنَ بَايَعُوْا مُحَمَّدًا
عَلَى الْجِهَادِ مَا بَقِيْنَا اَبَدًا

فَاَجَابَهُمُ اَللّٰهُمَّ لَا عَيْشَ اِلَّا عَيْشُ الْاٰخِرَةِ فَاَكْرِمِ الْاَنْصَارَ وَالْمُهَاجِرَةَ.

۹۸۸: آدم. شعبه. حميد طويل. حضرت انس بن مالكؓ نه روايت كوي، جنګ خندق كښ انصارو رجز وئيلے، يعني ذ جنګ په حقله ئے دا اشعار وئيل:

مونږ هغه خلق يو، چه هغوي ذ محمد صلي الله عليه وسلّم نه تر ژونده ژونده ذ جهاد بيعت كړے دے.

نو نبي صلي الله عليه وسلّم به هغوي له جواب وركولو چه: اے اللّٰه، عيش خو صرف ذ آخرت عيش دے، نو ذ انصارو، او مهاجرينو عزت افزائي او كړے.

ف: رجز: شعر لوستل، هغه شعرونه چه په كښ عرب خلق په خپل جنګ په خپله توره او مړانه فخر كوي، ميدان جنګ كښ داسے شعرونه وئيل، چه په دشمن رعب پريوځي.

۹۸۹: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ سَهْلٍ قَالَ جَآءَ نَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ نَحْنُ نَحْفِرُ الْخَنْدَقَ وَ نَنْقُلُ التُّرَابَ عَلٰى اَكْتَادِنَا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَللّٰهُمَّ لَا عَيْشَ اِلَّا عَيْشُ الْاٰخِرَةِ فَاغْفِرْ لِلْمُهَاجِرِيْنَ وَالْاَنْصَارِ.

۹۸۹: محمد بن عبداللّٰه. ابن ابي حازم. ذ هغه پلار، حضرت سهلؓ نه روايت كوي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم هغه وخت مونږ پله تشريف راوړلو، كوم وخت چه مونږ خندق كنولو، او په خپلو اوږو مو خاوره اوړله، نو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل: اے اللّٰه، عيش خو صرف ذ آخرت عيش دے، نو ذ انصارو او مهاجرينو، مغفرت نصيب كړے.

باب ۴۲۴: وَ يُؤْثِرُوْنَ عَلٰى اَنْفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ.

باب ۴۲۴: آيت كريمه، او هغوي مهاجرينو له په ځان ترجيح وركوي، اګر كه خپله حاجتمند وي.

۹۹۰: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ دَاوُدَ عَنْ فُضَيْلِ ابْنِ غَزْوَانَ عَنْ اَبِيْ

۹۹۰: مسدد. عبداللّٰه بن داؤد. فضيل بن غزوان. ابي حازم. حضرت ابو هريرهؓ نه روايت كوي، يو سړے نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم له راغے، حضورؐ،

حَازِمٍ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَجُلًا اَتَی النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَبَعَثَ اِلٰی نِسَآئِهٖ فَقُلْنَ مَا مَعَنَا اِلَّا الْمَاءُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ مَنْ یَّضُمُّ اَوْ یُضَیِّفُ هٰذَا فَقَالَ رَجُلٌ مِّنَ الْاَنْصَارِ اَنَا فَانْطَلَقَ بِهٖ اِلٰی امْرَاَتِهٖ فَقَالَ اَکْرِمِیْ ضَیْفَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ مَا عِنْدَنَا اِلَّا قُوْتُ صِبْیَانِیْ فَقَالَ هَیِّئِیْ طَعَامَكِ وَ اَصْبِحِیْ سِرَاجَكِ فَهَیَّأَتْ طَعَامَهَا وَاَصْبَحَتْ سِرَاجَهَا وَ نَوَّمَتْ صِبْیَانَهَا ثُمَّ قَامَتْ کَاَنَّهَا تُصْلِحُ سِرَاجَهَا فَاَطْفَاَتْهُ فَجَعَلَا یُرِیَانِهٖ اَنَّهُمَا یَاْکُلَانِ فَبَاتَا طَاوِیَیْنِ فَلَمَّا اَصْبَحَ غَدَا اِلٰی رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ ضَحِكَ اللّٰهُ اللَّیْلَةَ اَوْ عَجِبَ مِنْ فَعَالِکُمَا فَاَنْزَلَ اللّٰهُ وَ یُؤْثِرُوْنَ عَلٰی اَنْفُسِهِمْ وَلَوْ کَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ وَمَنْ یُّوْقَ شُحَّ نَفْسِهٖ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ.

باب ۴۲۵: قَوْلِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَقْبَلُوْا مِنْ مُحْسِنِهِمْ وَ تَجَاوَزُوْا عَنْ مُسِیْئِهِمْ.

۱۹۹۱: حَدَّثَنِیْ مُحَمَّدُ بْنُ

خپلو بیبیانوته (هغهٔ دَ پاره طعام راوړلوله) یو سړے اولیږلو. هغوي جواب ورکهٔ، مونږ سره دَ اوبو نه بغیر نور هیڅ نشته، نو نبي صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل څوک شته، چه دا میلمه خان سره بوځي، یا دائے اوفرمائیل، څوک شته، چه دَ دهٔ میلمستیا اوکړي. یو انصاري عرض اوکهٔ، چه زهٔ (یا رسول الله) نو هغه میلمه ئے خپل کور ته بوتلو، او خپلے بي بي ته ئے اووے، دَ رسول الله صلي الله علیه وسلّم دَ میلمه ښهٔ قدر اوکړه، هغے اووے، مونږ کره خو صرف دَ بچو ډوډي پاتے ده، نو هغے انصاري ورته اووے، تهٔ طعام خو تیار کړه کنه، او ډیوه بله کړه. بچي که ډوډئ اوغواړي، نو هغوي (په څهٔ طریقه) اُودهٔ کړه. هغے بي بي روټي تیاره کړه، ډیوه ئے بله کړه. او بچي ئے اُودهٔ کړل. بیا هغه گویا دَ ډیوے دَ درست کولو دَ پاره اودریده، خو ډیوه ئے مړه کړله. اُوس هغے دواړو ښځه خاوند میلمه ته دا ښودله، چه هغهٔ سره ډوډئ خوري حالانکه حقیقت کښ هغوي په نهاره شپه تیره کړله، هر کله چه هغه انصاري سحر وخت دَ حضورؐ په خدمت کښ حاضر شو، نو حضورؐ ورته اوفرمائیل، خدائے تعالیٰ ستاسو دَ شپے دَ کار نه ډیر خوشحاله شو. بیا الله پاک دا آیت نازل کړلو: او هغوي نوروله په ځان ترجیح ورکوي. اګر که خپله حاجتمند وي، او چا چه خپل نفس دَ حرص نه بچ کړلو، نو هم دغه خلق کامیاب دي.

باب ۴۲۵: ارشاد نبويؐ، دَ نیکو کارو انصارو نیکي قبوله کړئ، او خطا کارو ته عفوه اوکړئ.

۱۹۹۱: محمد بن یحيٰ. ابو علي. دَ عبدان ررو

يَحْيٰى اَبُوْ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا شَاذَانُ اَخُوْ عَبْدَانَ حَدَّثَنَا اَبِيْ اَخْبَرَنَا شُعْبَةُ بْنُ الْحَجَّاجِ عَنْ هِشَامِ بْنِ زَيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ يَقُوْلُ مَرَّ اَبُوْ بَكْرٍ وَالْعَبَّاسُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا بِمَجْلِسٍ مِنْ مَجَالِسِ الْاَنْصَارِ وَهُمْ يَبْكُوْنَ فَقَالَ مَا يُبْكِيْكُمْ قَالُوْا ذَكَرْنَا مَجْلِسَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَّا فَدَخَلَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرَهُ بِذٰلِكَ قَالَ فَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ عَصَبَ عَلٰى رَاْسِهٖ حَاشِيَةَ بُرْدٍ قَالَ فَصَعِدَ الْمِنْبَرَ وَلَمْ يَصْعَدْهُ بَعْدَ ذٰلِكَ الْيَوْمِ فَحَمِدَ اللّٰهَ وَ اَثْنٰى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ اُوْصِيْكُمْ بِالْاَنْصَارِ فَاِنَّهُمْ كَرِشِيْ وَ عَيْبَتِيْ وَقَدْ قَضَوُا الَّذِيْ عَلَيْهِمْ وَ بَقِيَ الَّذِيْ لَهُمْ فَاَقْبَلُوْا مِنْ مُحْسِنِهِمْ وَ تَجَاوَزُوْا عَنْ مُسِيْئِهِمْ.

شاذان. دَ هغهٔ پلار شعبه بن حجاج. هشام بن زيد. حضرت انسؓ نه روايت کوي، چه حضرت ابوبکرؓ او عباسؓ دَ انصارو په يو مجلس تير شولو، چه هلته هغوي ژړل، دوي ترې تپوس اوکهٔ تاسو ولې ژاړئې، انصارو ورته اووې، مونږ ته دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم خان سره ناسته يادېږي (هغې ورځو ته چې حضور صلي الله عليه وسلّم ناروغه وو) بيا ابوبکرؓ حضورً له راغې، او دَ دې واقعې خبر ئې ورکهٔ، نو نبي صلي الله عليه وسلّم دَ څادر يو پلسکې په سر پټنې کړې بهر ته ئې تشريف راوړلو، او په منبر کيناستلو. دې نه پس حضور صلي الله عليه وسلّم هيڅ کله منبر ته تشريف راونه ړلو (او څو ورځې پس وفات شولو) نو حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، زهٔ تاسو ته دَ انصارو باره کښې وصيت کوم (چه هغوي سره ښهٔ سلوک کوئې) ځکه چه هغوي خما دَ معدې او زنبيل (تهيلۍ) په درجه کښې دي، او هغوي خو خپله ذمه واري پوره کړه، او دَ هغوي حقوق اوس باقي دي، نو تاسو دَ هغوي دَ نيکو کارو نيکي قبلوئې او خطاکاروته عفه کوئې.

**ف:** کرشي و عيبتي: انصار خما خيته او بوځخکئې دي، څنګه چه خيته کښې خوراک جمع کيږي، دغسې بوځخکنې يا پنډو کوټې کښې کېږې، دغه شان خما دَ راز خبرې او آمانتونه انصارو سره دي. مطلب دا دې، چه انصار خما محرم اسرار او معتمد عليه او رازدار دي. بعضو ونيلې دي، دَ کرشي نه مراد جماعت دې يعني جماعت او خما اصحاب دي.

۹۹۲ : حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ يَعْقُوْبَ حَدَّثَنَا ابْنُ الْغَسِيْلِ سَمِعْتُ عِكْرِمَةَ يَقُوْلُ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا يَقُوْلُ خَرَجَ رَسُوْلُ

۹۹۲ : احمد بن يعقوب. ابن غسيل. عکرمه. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي، نبي صلي الله عليه وسلّم (دَ خپل وفات مرض کښې) خپل څادر په دواړو اوږو اچولې وو، او يوه غوړه (يعني چه تيل پرې لړيدلې

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ عَلَيْهِ مِلْحَفَةٌ مُتَعَطِّفًا بِهَا عَلٰى مَنْكِبَيْهِ وَ عَلَيْهِ عِصَابَةٌ رَسْمَاءُ حَتّٰى جَلَسَ عَلَى الْمِنْبَرِ فَحَمِدَ اللّٰهَ وَ اَثْنٰى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ اَمَّا بَعْدُ اَيُّهَا النَّاسُ فَاِنَّ النَّاسَ يَكْثُرُوْنَ وَ تَقِلُّ الْاَنْصَارُ حَتّٰى يَكُوْنُوْا كَالْمِلْحِ فِي الطَّعَامِ فَمَنْ وَّلِيَ مِنْكُمْ اَمْرًا يَضُرُّ فِيْهِ اَحَدًا اَوْ يَنْفَعُهُ فَلْيَقْبَلْ مِنْ مُحْسِنِهِمْ وَ يَتَجَاوَزْ عَنْ مُسِيْئِهِمْ.

وو) پـتـې پـه سـر تړلې بهر ته تشريف راوړلو، او په منبر كيناستلو، او ذَ اللّٰـه تـعـالٰي ذَ حمد و ثنا نـه پـس ئې اوفرمائيل، اما بعد، اې خلقو، ذَ نورو خلقو تعداد خو به زياتيږي. ليكن ذَ انصارو تعداد به كميږي، او كميدو كميدو سره به دې حد ته اورسي، چه خوراک كښې د مالگې برابر به پاتې شي، نو تاسو كښې چه كوم سړې په داسې اقتدار راشي، چه هغه چاته نفع يا ضرر رسولې شي، نو هغهٔ له پكار دي، چه انصارو كښې ذَ نيكو كارو نيكي قبولـه كـړي، او خـطـا كـارو سـره ذَ معافـي نـه كـار اخلي.

۹۹۳ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدُرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ سَمِعْتُ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْاَنْصَارُ كَرِشِيْ وَ عَيْبَتِيْ وَالنَّاسُ سَيَكْثُرُوْنَ وَ يَقِلُّوْنَ فَاقْبَلُوْا مِنْ مُحْسِنِهِمْ وَ تَجَاوَزُوْا عَنْ مُسِيْئِهِمْ.

۹۹۳ : مـحـمـد بـن بشـار. غـنـدر. شعبـه. قتـاده. حـضـرت انـس بـن مـالكؓ نـه روايـت كـوي، نبـي صـلـي اللّٰـه عليـه وسلّم اوفـرمـائيـل، انـصـار ځـمـا خيتـه او كسـوړئ (تهيلـي) دي. او خـلـق بـه زيـاتيـږي، خـو دوي بـه كـميـږي، نـو دوي كـښـې د نيـكـو كـارو نيـكـي قبلـوئـې، او خـطـا كـارو تـه عـفـه كوې.

## بَابُ ۴۲۶: سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ.

## باب ۴۲۶: ذَ حضرت سعد بن معاذؓ ذَ مناقبو بيان.

۹۹۴ : حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ غُنْدُرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَقُوْلُ اُهْدِيَتْ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُلَّةُ حَرِيْرٍ فَجَعَلَ اَصْحَابُهُ يَمَسُّوْنَهَا وَ يَعْجَبُوْنَ مِنْ لِيْنِهَا

۹۹۴ : مـحـمـد بـن بشـار. غـنـدر. شعبـه. ابو اسحاق. حـضـرت بـراءؓ نه روايت كوي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ته تحفه كښې يوه ريښمينه خلكه (جُبّه، حُله چُغه) راوړلې شوه، صحابه كرامو چه هغه مس كړه، ذَ هغې په نرمئ ئې تعجب اوكړ، نو حضورؐ اوفرمائيل، تاسو ذَ دې پـه نـرمـئ تـعجب كوئې (حالانكه) ذَ سعد بن معاذ

فَقَالَ اَتَعْجَبُوْنَ مِنْ لِيْنِ هٰذِهٖ لَمَنَادِيْلُ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ خَيْرٌ مِنْهَا اَوْ اَلْيَنُ رَوَاهُ قَتَادَةُ وَ الزُّهْرِيُّ سَمِعَا اَنَسًا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

رومالونه (جنت کښې) ذ دې نه هم ښۀ دي' يا دائې اوفرمائيل' چه ددې نه زيات نرم دي. دا قتاده او زهري په واسطه ذ انس' نبي صلي الله عليه وسلّم نه روايت کړې دې.

۹۹۵: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا فَضْلُ بْنُ مُسَاوِرٍ خَتَنُ اَبِيْ عَوَانَةَ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ سُفْيٰنَ عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اهْتَزَّ الْعَرْشُ لِمَوْتِ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ عَنِ الْاَعْمَشِ حَدَّثَنَا اَبُوْ صَالِحٍ عَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ فَقَالَ رَجُلٌ لِجَابِرٍ فَاِنَّ الْبَرَاءَ يَقُوْلُ اهْتَزَّ السَّرِيْرُ فَقَالَ اِنَّهُ كَانَ بَيْنَ هٰذَيْنِ الْحَيَّيْنِ ضَغَائِنُ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اهْتَزَّ عَرْشُ الرَّحْمٰنِ لِمَوْتِ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ.

۹۹۵: محمد بن مثني. فضل بن مساور' ذ ابو عوانه زوم (داماد) ابو عوانه. اعمش. ابو سفيان. حضرت جابرؓ نه روايت کوي' ما ذ نبي صلي الله عليه وسلّم نه واوريدل' چه ذ سعد بن معاذ مرګ سره عرش هم اوخوزيدلو. اعمش ابو صالح' جابر' نبيّ صلي الله عليه وسلّم نه روايت کوي' يو سړي حضرت جابر ته اووې' حضرت براء خو دا وائي' چه ذ عرش نه مراد' ذ جنازې کټ دې' يعني هغه کټ خوزيدلې وو' نو جابرؓ اووې' چه ذ دې دواړو (يعني ذ سعد او براء) قبيلو مينځ کښې څۀ عداوت[1] وو (په دې وجه هغۀ دا تاويل اوکۀ' چه درست نۀ دې' څکه) چه ما ذ نبي صلي الله عليه وسلّم نه دا آوريدلې دي' چه ذ رحمٰن (يعني الله تعالیٰ) عرش اوخوزيدلو.

۱. هغه عداوت او دشمنئ طرفته اشاره ده کومه چه د انصارو دوؤ قبيلو اَوس او خزرج تر مينځه د جاهليت په زمانه کښې وه. ليکن ظاهره ده چه د اسلام نه پس د هغې اثرات يو فيصد هم باقي نه وو پاتې. سعد رضي الله عنه د اوس قبيلې سردار وو او د براء رضي الله عنه تعلق خزرج سره وو. د جابر رضي الله عنه مقصد دا دې چه د دغه زړې دشمنئ په وجه هغوئ حديث په پوره توګه بيان نه کړو. دا کلمات د صحابؤ په خپلو کښې د يو بل متعلق دي' هغوئ په خپلو کښې معاصر وُو' په مرتبه کښې ئې هم څه زيات فرق نه وو او ټول حضرات د رسول الله صلي الله عليه وسلّم په صحبت سره فيض ياب شوي وو' دې د باره د بشري تقاضو ماتحت هغوئ د يو بل باره کښې د ډير څه وئيلو مجاز کيدې شي' ليکن مونږه دا قسمه څه خبره په ژبه نشو راوستې او نه مونږ د پاره دا جائز دي. علامه انور شاه کشميري صاحب رحمة الله عليه ليکلي دي چه په حديث کښې دا قسمه تغير او تبدّل د صحابؤ د شان نه قطعًا مستبعد دي' هغوئ ددې نه ډير ارفع او اعلیٰ دي چه د هغوئ د ذات سره دا قسمه څه شُبه هم په ذهن کښې راوستې شي.

بهرحال حديث په دواړه شان له راغلے دے او محدثينو د دواړو صورتونو دا تشريح کړے ده چه په دے کښے د سعد بن معاذ رضي الله عنه وفات يو امر عظيم او يوه عظيمه حادثه ښودلے شوے ده، د هغوی مرتبه کمزول د هيڅا پيش نظر نه وه.

۹۹۶ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَرْعَرَةَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَعْدِ بْنِ إِبْرٰهِيمَ عَنْ أَبِي أُمَامَةَ بْنِ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ إِنَّ أُنَاسًا نَزَلُوا عَلٰى حُكْمِ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ فَأَرْسَلَ إِلَيْهِ فَجَاءَ عَلٰى حِمَارٍ فَلَمَّا بَلَغَ قَرِيبًا مِنَ الْمَسْجِدِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُومُوا إِلٰى خَيْرِكُمْ أَوْ سَيِّدِكُمْ فَقَالَ يَا سَعْدُ إِنَّ هٰؤُلَاءِ نَزَلُوا عَلٰى حُكْمِكَ قَالَ فَإِنِّي أَحْكُمُ فِيهِمْ أَنْ تُقْتَلَ مُقَاتِلَتُهُمْ وَ يُسْبٰى ذَرَارِيُّهُمْ قَالَ حَكَمْتَ بِحُكْمِ اللّٰهِ أَوْ بِحُكْمِ الْمَلِكِ.

۹۹۶ : محمد بن عرعره. شعبه. سعد بن ابراهيم. ابو امامه. سهل بن حنيف. حضرت ابو سعيد خدريؓ نه روايت کوي چه څنے خلقو (يعني يهود بني قريظه) دَ سعد بن معاذ ثالثي تسليم کړه (او مثله) او دَ قلعه نه بهر راووتل، نو سعد بن معاذ راوغوښتلے شو، هغه په يو خر سور راغے، څهٔ وخت چه جمات ته رانزدے شو، نو نبي صلي الله عليه وسلّم صحابهٔ ته اوفرمائيل، خپلو کښې بهترين سړي يا دائے اوفرمائيل، چه دَ خپل سردار په اعزاز کښې اودريږئے. بيا حضور صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل، اے سعد، دا خلق ستا په ثالثي (دَ قلعے نه) بهر راوتلے دي، نو سعد اووے، زهٔ دَ دوي باره کښې دا فيصله کوم، چه دوي کښې کوم دَ جنګ کولو قابل دي، هغوي دے قتل کړے شي، او دَ هغوي ښځے او بچي دے قيد کړے شي، نو حضورؐ ورته اوفرمائيل تا دَ الله دَ حکم مطابق فيصله کړے ده.

## بَاب ۴۲۷ : مَنْقَبَةِ أُسَيْدِ بْنِ حُضَيْرٍ وَ عَبَّادِ بْنِ بِشْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا.

## باب ۴۲۷ : دَ اسيدؓ بن حضير او عبادؓ بن بشر دَ منقبت بيان.

۹۹۷ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْلِمٍ حَدَّثَنَا حِبَّانُ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ أَخْبَرَنَا قَتَادَةُ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَنَّ رَجُلَيْنِ خَرَجَا مِنْ عِنْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي لَيْلَةٍ مُظْلِمَةٍ وَ

۹۹۷ : علي بن مسلم. حبان. همام. قتاده. حضرت انسؓ نه روايت کوي، دوه سړي يو تياره شپه کښې دَ نبي صلي الله عليه وسلّم (دَ مجلس) نه اووتل، نو دَ هغے دواړو مخے ته ناساپه يو نور ظاهر شولو، حتي چه کوم وخت هغه دواړه

إِذَا نُورٌ بَيْنَ أَيْدِيهِمَا حَتَّى تَفَرَّقَا فَتَفَرَّقَ النُّورُ مَعَهُمَا وَ قَالَ مَعْمَرٌ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ أُسَيْدَ بْنَ حُضَيْرٍ وَ رَجُلًا مِنَ الْأَنْصَارِ وَ قَالَ حَمَّادٌ أَخْبَرَنَا ثَابِتٌ عَنْ أَنَسٍ كَانَ أُسَيْدُ بْنُ حُضَيْرٍ وَ عَبَّادُ بْنُ بِشْرٍ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

جدا شو، نو هغه نور هم هغوي سره جدا جدا شو. معمر په واسطه دَ ثابت او انس ونیلے دي، چه دا دواړه اسید بن حضیر او یو بل انصاري وو. او حماد په واسطه دَ ثابت او انس بیان کړے دے، چه اُسید بن حضیر او عباد بن بشر، نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم سره وو (او دا د دے دواړو واقعه ده).

باب ۴۲۸: مَنَاقِبِ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ.

باب ۴۲۸: دَ حضرت معاذ بن جبلؓ دَ مناقب بیان.

۹۹۸: حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرٍو عَنْ إِبْرٰهِيمَ عَنْ مَسْرُوقٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ اسْتَقْرِؤُا الْقُرْاٰنَ مِنْ أَرْبَعَةٍ مِنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ وَّ سَالِمٍ مَوْلٰى أَبِيْ حُذَيْفَةَ وَ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ وَ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ.

۹۹۸: محمد بن بشار. غندر. شعبه. عمرو. ابراهیم. مسروق. حضرت عبداللّٰه بن عمرؓ نه روایت کوي، ما دَ نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم نه آوریدلے دي، چه قرآن شریف دَ څلورو سړو نه زده کړئ. (۱) حضرت ابن مسعود (۲) حضرت سالم دَ ابو حذیفه آزاد کړده غلام (۳) حضرت اُبي بن کعبؓ (۴) او حضرت سعد بن معاذ.

باب ۴۲۹: مَنْقَبَةِ سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وَ قَالَتْ عَائِشَةُ كَانَ قَبْلَ ذٰلِكَ رَجُلًا صَالِحًا.

باب ۴۲۹: دَ حضرت سعد بن عباده دَ منقبت بیان. بي بي عائشهؓ فرمائي چه هغه دَ دے (واقعه افک) نه مخکښ ډیر نیک سړے وو.

۹۹۹: حَدَّثَنَا إِسْحٰقُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَ أَبُوْ أُسَيْدٍ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

۹۹۹: اسحاق. عبدالصمد. شعبه. قتاده. حضرت انس بن مالکؓ نه روایت کوي، ابو اسید اووے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم فرمائیلے دي، انصارو کښ بهترین کورنئ دَ بني نجار ده. بیا

خَيْرُ دُوْرِ الْاَنْصَارِ بَنُو النَّجَّارِ ثُمَّ بَنُوْ عَبْدِ الْاَشْهَلِ ثُمَّ بَنُو الْحٰرِثِ بْنِ الْخَزْرَجِ ثُمَّ بَنُوْ سَاعِدَةَ وَ فِيْ كُلِّ دُوْرِ الْاَنْصَارِ خَيْرٌ فَقَالَ سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ وَ كَانَ ذَاقِدَمٍ فِي الْاِسْلَامِ اَرٰى رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ فَضَّلَ عَلَيْنَا فَقِيْلَ لَهٗ قَدْ فَضَّلَكُمْ عَلٰى نَاسٍ كَثِيْرٍ.

بنو عبدالاشهل. بيا بني حارث بن خزرج. بيا بني ساعده او هر انصاري كور كښې بهتري ده، زهٔ نهٔ پوهيږم، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم په مونږ نورولـه ترجيح وركړه، نو هغهٔ تـه جواب وركړے شو، چه تاته هم په ډيرو خلقو حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم فضيلت دركړے دے.

باب ۴۳۰: مُنَاقِبِ اُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ.

باب ۴۳۰: دَ حضرت ابي بن كعبؓ دَ مناقب بيان.

۱۰۰۰: حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ عَنْ مَسْرُوْقٍ قَالَ ذُكِرَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْعُوْدٍ عِنْدَ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو فَقَالَ رَجُلٌ لَا اَزَالُ اُحِبُّهٗ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ خُذُوا الْقُرْاٰنَ مِنْ اَرْبَعَةٍ مِنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ فَبَدَاَ بِهٖ وَ سَالِمٍ مَوْلٰى اَبِيْ حُذَيْفَةَ وَ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ وَ اُبَيِّ ابْنِ كَعْبٍ.

۱۰۰۰: ابوالوليد. شعبه. عمرو بن مره. ابراهيم. مسروق نه روايت كوي، دَ حضرت عبداللّٰه بن عمرؓ مخكښې دَ عبداللّٰه بن مسعودؓ ذكر اوشو، نو هغه اوفرمائيل، هغه يو داسے سړے دے چه زهٔ به هغه سره برابر محبت ساتم، ما دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم نه آوريدلے دي، چه قرآن دَ څلورو سړونه حاصلوئے: (۱) عبداللّٰه بن مسعودؓ چه دے ئے دَ ټولونه مخكښې ذكر كهٔ (۲) سالم دَ ابو حذيفه آزاد كرده غلام (۳) معاذ بن جبل (۴) او ابي بن كعب.

۱۰۰۱: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ قَالَ سَمِعْتُ شُعْبَةَ سَمِعْتُ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِاُبَيِّ اِنَّ اللّٰهَ اَمَرَنِيْ اَنْ اَقْرَاَ عَلَيْكَ لَمْ يَكُنِ الَّذِيْنَ قَالَ وَ

۱۰۰۱: محمد بن بشار. غندر. شعبه. قتاده. انس بن مالكؓ نه روايت كوي، نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ابي بن كعب ته اوفرمائيل، اللّٰه تعالٰي ماته حكم راكړے دے، چه زهٔ تاته: لم يكن الذين كفروا: واوروم، نو هغهٔ عرض اوكهٔ، آيا اللّٰه زما نوم اخستے دے، او داسے ئے فرمائيلے دي. حضورؐ ورته اوفرمائيل، او، نو ابي بن

سَمَّانِيْ قَالَ نَعَمْ فَبَكٰى.

کعب بے اختیاره په ژړا شولو.

## بَاب ۱ ۴۳: مَنَاقِبِ زَيْدِ ابْنِ ثَابِتٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ.

## باب ۱ ۴۳: دَ حضرت زید بن ثابتؓ دَ مناقب بیان.

۲ ۰ ۰ ۱: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ جَمَعَ الْقُرْاٰنَ عَلٰى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرْبَعَةٌ كُلُّهُمْ مِنَ الْاَنْصَارِ اُبَيٌّ وَّ مُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ وَّ اَبُوْ زَيْدٍ وَ زَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ قُلْتُ لِاَنَسٍ مَنْ اَبُوْ زَيْدٍ قَالَ اَحَدُ عُمُوْمَتِيْ.

۲ ۰ ۰ ۱: محمد بن بشار. یحیي. شعبه. قتاده. حضرت انسؓ نه روایت کوي، هغهٔ اوفرمائیل، دَ رسول اللّٰه صلي الله علیه وسلّم زمانه کښې څلور سړي په قرآن کښې سند ګڼړے کیدل، او هغه څلور واړه انصار وو: (۱) ابي بن کعب (۲) معاذ بن جبل (۳) ابو زید (۴) زید بن ثابت. ما دَ انسؓ نه تپوس اوکړ، ابو زید څوک دے، نو هغهٔ اوفرمائیل، چه څما یو ترهٔ (چچا) وو.

## بَاب ۲ ۴۳: مَنَاقِبِ اَبِيْ طَلْحَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ.

## باب ۲ ۴۳: دَ حضرت ابو طلحهؓ دَ مناقبو بیان.

۳ ۰ ۰ ۱: حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ عَنْ اَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ لَمَّا كَانَ يَوْمُ اُحُدٍ انْهَزَمَ النَّاسُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَبُوْ طَلْحَةَ بَيْنَ يَدَيِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُجَوِّبٌ بِهٖ عَلَيْهِ بِحَجَفَةٍ لَهٗ وَ كَانَ اَبُوْ طَلْحَةَ رَجُلًا رَامِيًا شَدِيْدًا لَقَدْ يَكْسِرُ يَوْمَئِذٍ قَوْسَيْنِ اَوْ ثَلٰثًا وَ كَانَ الرَّجُلُ يَمُرُّ مَعَهُ الْجُعْبَةُ مِنَ النَّبْلِ فَيَقُوْلُ انْشُرْهَا لِاَبِيْ طَلْحَةَ فَاَشْرَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْظُرُ اِلَى الْقَوْمِ

۳ ۰ ۰ ۱: ابو معمر. عبدالوارث. عبدالعزیز. حضرت انسؓ نه روایت کوي، هغه فرمائي، دَ اُحد په ورځ چه خلقو رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم پریښود، او او تښتیدل، نو ابو طلحهؓ دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم مخکښې خپل ځان دَ یو ډهال مخکښې پټ کړے موجود وو. او ابو طلحهؓ یو ښهٔ تیر انداز وو، چه دَ هغهٔ د لیندے جنے به ډیره سخته وه، او په دغه ورځ ئے دوه یا درے لیندے ماتے کړے وے، او کله چه به چا سړي دَ هغهٔ خوا کښې دَ غشو نه ډک ترکش اُوړلو، نو هغهٔ ته به ئے وئیل، چه دا غشي دَ ابو طلحهؓ مخکښې اُوغُرځوه، بیا رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم سر مبارک اوچت کړ کافرو ته به ئے کتل، نو ابو طلحهؓ به ورته عرض

فَيَقُوْلُ اَبُوْ طَلْحَةَ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ بِاَبِيْ اَنْتَ وَ اُمِّيْ لَا تُشْرِفْ يُصِيْبُكَ سَهْمٌ مِنْ سِهَامِ الْقَوْمِ نَحْرِيْ دُوْنَ نَحْرِكَ وَلَقَدْ رَاَيْتُ عَائِشَةَ بِنْتَ اَبِيْ بَكْرٍ وَ اُمَّ سُلَيْمٍ وَ اِنَّهُمَا لَمُشَمِّرَتَانِ اَرٰى خَدَمَ سُوْقِهِمَا تُنْقِزَانِ الْقِرَبَ عَلٰى مُتُوْنِهِمَا تُفْرِغَانِهِ فِيْ اَفْوَاهِ الْقَوْمِ ثُمَّ تَرْجِعَانِ فَتَمْلَاٰنِهَا ثُمَّ تَجِيْئَانِ فَتُفْرِغَانِهِ فِيْ اَفْوَاهِ الْقَوْمِ وَلَقَدْ وَقَعَ السَّيْفُ مِنْ يَدَیْ اَبِيْ طَلْحَةَ اِمَّا مَرَّتَيْنِ وَ اِمَّا ثَلٰثًا.

کولو، یا رسول اللّٰه، خما مور پلار دې په تاسو قربان وي، سر، مه پورته کوئې، داسې نه چه دَ کافرو تیر درته اولیږي. خما سینه ستاسو دَ سینې دَ وړاندې ده (انس وائي، چه) ما عائشہؓ لور دَ ابوبکر صدیقؓ او اُم سلیمؓ اولیده، دې دواړو خپلې لمنې اوچتې کړې وې، ما دَ دوي دَ پښو کالي لیدل، دې دواړو به په شا ډک مشکونه راوړل، او دَ زخمي خلقو په خوله (منه) کښې به ئې اُوبه اچولې. بیا به واپس تلې هغه به ئې ډک راوړل، او دَ خلقو خوله کښې به ئې اوبه اچولې. او دَ ابو طلحهؓ دَ لاس نه دغه ورځ دوه یا درې ځله توره خطا شوه، اُوغورځیده.

## بَاب ۴۳۳: مَنَاقِبِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَلَامٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ.

## باب ۴۳۳: دَ حضرت عبداللّٰه بن سلام دَ مناقبو بیان.

۱۰۰۴: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ سَمِعْتُ مَالِكًا يُحَدِّثُ عَنْ اَبِي النَّضْرِ مَوْلٰى عُمَرَ بْنِ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدِ بْنِ اَبِيْ وَقَّاصٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ مَا سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لِاَحَدٍ يَمْشِيْ عَلَى الْاَرْضِ اِنَّهُ مِنْ اَهْلِ الْجَنَّةِ اِلَّا لِعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَلَامٍ قَالَ وَ فِيْهِ نَزَلَتْ هٰذِهِ الْاٰيَةُ وَ شَهِدَ شَاهِدٌ مِنْ بَنِيْ اِسْرَائِيْلَ الْاٰيَةَ قَالَ لَا اَدْرِيْ قَالَ مَالِكٌ الْاٰيَةَ اَوْ فِي الْحَدِيْثِ.

۱۰۰۴: عبداللّٰه بن یوسف. مالک دَ عمر بن عبیداللّٰه آزاد کړده غلام ابوالنضر. عامر بن سعد بن ابي وقاص. سعد بن ابي وقاص نه روایت کوي، سوا دَ عبداللّٰه بن سلام نه دَ زمکې په سر تلونکو کښې ما دَ هیچا متعلق دَ نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم نه دا نۀ دي آوریدلې، چه هغه دَ اهل جنت نه دې. سوا د عبداللّٰه بن سلام نه وې فرمائیل، او دَ هغهٔ په شان کښې آیت نازل شوې دې، چه: بني اسرائیلو کښې یو ګواه ګواهي ورکړه: الاية، راوي وائي ماته معلومه نهٔ ده لفظ الاية دَ مالک قول دې یا حدیث کښې دې.

۱۰۰۵: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا اَزْهَرُ السَّمَّانُ عَنِ ابْنِ

۱۰۰۵: عبداللّٰه بن محمد. ازهر. سمان. ابن عون. محمد. قیس بن عباده نه روایت کوي،

عَوْنٍ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ قَيْسِ بْنِ عُبَادَةَ قَالَ كُنْتُ جَالِسًا فِيْ مَسْجِدِ الْمَدِيْنَةِ فَدَخَلَ رَجُلٌ عَلٰى وَجْهِهٖ اَثَرُ الْخُشُوْعِ فَقَالُوْا هٰذَا رَجُلٌ مِّنْ اَهْلِ الْجَنَّةِ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ تَجَوَّزَ فِيْهِمَا ثُمَّ خَرَجَ وَ تَبِعْتُهٗ فَقُلْتُ اِنَّكَ حِيْنَ دَخَلْتَ الْمَسْجِدَ قَالُوْا هٰذَا رَجُلٌ مِّنْ اَهْلِ الْجَنَّةِ قَالَ وَاللّٰهِ مَا يَنْبَغِيْ لِاَحَدٍ اَنْ يَّقُوْلَ مَالَا يَعْلَمُ وَ سَاُحَدِّثُكَ لِمَ ذَاكَ رَاَيْتُ رُؤْيَا عَلٰى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَصَصْتُهَا عَلَيْهِ وَ رَاَيْتُ كَاَنِّيْ فِيْ رَوْضَةٍ ذَكَرَ مِنْ سَعَتِهَا وَ خُضْرَتِهَا وَسَطَهَا عَمُوْدٌ مِنْ حَدِيْدٍ اَسْفَلُهٗ فِي الْاَرْضِ وَ اَعْلَاهُ فِي السَّمَآءِ فِيْ اَعْلَاهُ عُرْوَةٌ فَقِيْلَ لَهٗ اِرْقَهْ قُلْتُ لَا اَسْتَطِيْعُ فَاَتَانِيْ مِنْصَفٌ فَرَفَعَ ثِيَابِيْ مِنْ خَلْفِيْ فَرَقِيْتُ حَتّٰى كُنْتُ فِيْ اَعْلَاهَا فَاَخَذْتُ بِالْعُرْوَةِ فَقِيْلَ لَهُ اسْتَمْسِكْ فَاسْتَيْقَظْتُ وَ اِنَّهَا لَفِيْ يَدِيْ فَقَصَصْتُهَا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ تِلْكَ الرَّوْضَةُ الْاِسْلَامُ وَ ذٰلِكَ الْعَمُوْدُ عَمُوْدُ الْاِسْلَامِ وَ تِلْكَ الْعُرْوَةُ عُرْوَةُ الْوُثْقٰى عَلَى الْاِسْلَامِ حَتّٰى تَمُوْتَ وَ ذَاكَ الرَّجُلُ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَلَامٍ وَ قَالَ لِيْ خَلِيْفَةُ حَدَّثَنَا مُعَاذٌ حَدَّثَنَا ابْنُ عَوْنٍ

هغه فرمائي، زهٔ مسجد نبوي كښې ناست ووم، يو سړے چه دَ هغهٔ په مخ دَ خشوع و خضوع آثار بيامنديے شو داخل شو. خلقو چه هغه اوليد، نو وئيلے، دا سړے دَ اهل جنت نه دے. هغهٔ مختصر طور سره دوه ركعاته اوكړل. بيا هغه دَ جمات نه اووتلو، او زهٔ هغه پسے لاړم. ما ورته عرض اوكهٔ، چه تاسو جمات كښې داخل شوئے، نو خلقو اووے، چه دا سړے دَ اهل جنت نه دے. هغه اووے، په خدائے چه، چاله داسے خبره كول چه هغهٔ ورته معلوم نهٔ وي، وئيل مناسب نهٔ دي، او زهٔ تاته دَ دے وجه بيانوم، ما دَ نبي صلي الله عليه وسلّم زمانه كښې يو خوب وليد، چه ما حضورٌ ته بيان كهٔ، ما اوليد، گويا زهٔ يو باغ كښې يم، چه دَ هغے وسعت، سرسبزي او شادابي هغهٔ بيان كړه. دَ هغے باغ مينځ كښې دَ اوسپنے يو ستن ده، چه دَ هغے لاندينے حصه زمكه كښې او دَ پاسه حصه آسمان كښې ده، دَ هغے دَ پاسه حصه كښې يوه كُنډه ده (چه هغے كښې كُنډه آويزانده ده) هغهٔ ته اووئيلے شو، په دے اوخيژه، ما اووے، زهٔ نشم ختلے، نو ماله يو غلام راغے هغه دَ شا طرف نه خما كپړے اوچتے كړے نو زهٔ اوختلم، حتي چه زهٔ دَ هغے دَ پاسه ووم، نو ما هغه كُنډه، اُونيوله، نو هغهٔ ته اووئيلے شو، چه مضبوط اُونيسه. زهٔ بيدار شوم، نو هغه خما لاس كښې وه. ما دا خوب حضور صلي الله عليه وسلّم ته بيان كهٔ، نو حضورٌ (تعبيرًا) ارشاد اوفرمائيلو، چه هغه باغ خو اسلام دے. او هغه ستن دَ اسلام ستن ده، او

عَنْ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا قَيْسُ بْنُ عَبَّادٍ عَنِ ابْنِ سَلَامٍ قَالَ وَ صِيفٌ مَكَانَ مِنْصَفٍ.

ف: عروة وثقي: مضبوطه كړئ.

هغه كړئ، عروه وثقي ده، نو ته به آخر دمه پورې په اسلام قائم ئې، او دا سړے عبدالله بن سلامؓ دے.

۱۰۰۶: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ ابْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَعِيدِ بْنِ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْهِ اَتَيْتُ الْمَدِيْنَةَ فَلَقِيْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ سَلَامٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فَقَالَ اَلَا تَجِيْءُ فَاُطْعِمُكَ سَوِيْقًا وَ تَمْرًا وَ تَدْخُلُ فِيْ بَيْتٍ ثُمَّ قَالَ اِنَّكَ بِاَرْضٍ اَلرِّبَا بِهَا فَاشٍ اِذَا كَانَ لَكَ عَلٰى رَجُلٍ حَقٌّ فَاَهْدٰى اِلَيْكَ حِمْلَ تِبْنٍ شَعِيْرٍ اَوْ حِمْلَ قَتٍّ فَلَا تَاْخُذْهُ فَاِنَّهٗ رِبًا وَلَمْ يَذْكُرِ النَّضْرُ وَ اَبُوْ دَاوٗدَ وَ وَهْبٌ عَنْ شُعْبَةَ الْبَيْتَ.

۱۰۰۶: سليمان بن حرب. شعبه. سعيد بن ابي برده. دَ خپل پلار نه روايت كوي، هغه فرمائي، چه زهٔ مديني ته راغلم، نو عبدالله بن سلامؓ سره مِ ملاقات اوشو، هغهٔ اووے، تهٔ مونږ پله ولے نهٔ راځے، چه مونږ درباندے ستوان او قجورے اوخورو، او تهٔ (باعزته) كور كښ داخل شے بيائے اوفرمائيل، تهٔ داسے ځائے كښ اوسيږے چه هلته دَ سود، رواج زيات دے، نو په چا چه ستا قرض وي، او هغه تاته وابنه، وربشے يا خوراک (په شان حقير خيز) هديه تحفه راوليږي، نو هغه مهٔ آخله، ځكه چه دا هم سود دے. نضر ابو داؤد، او وهب دَ شعبه نه لفظ البيت نهٔ دے بيان كړے.

بَابُ ۴۳۴: تَزْوِيْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَدِيْجَةَ وَ فَضْلِهَا رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا.

باب ۴۳۴: دَ نبي صلي الله عليه وسلم بي بي خديجےؓ سره نكاح او دَ هغے دَ فضيلت بيان.

۱۰۰۷: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ اَخْبَرَنَا عَبْدَةُ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ جَعْفَرٍ قَالَ سَمِعْتُ عَلِيًّا رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَقُوْلُ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ.

۱۰۰۷: محمد. عبده. هشام بن عروه. دَ هغهٔ پلار. عبدالله بن جعفر. حضرت عليؓ نه روايت كوي، ما دَ نبي صلي الله عليه وسلم نه آوريدلے دي.

۱۰۰۸: حَدَّثَنِيْ صَدَقَةُ اَخْبَرَنَا عَبْدَةُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ

۱۰۰۸: صدقه. عبده. هشام. دَ هغهٔ پلار. عبدالله بن جعفر. حضرت عليؓ نه روايت كوي،

سَمِعْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنِ جَعْفَرٍ عَنْ عَلِيّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ عَنِ النَّبِيّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ خَيْرُ نِسَائِهَا مَرْيَمُ وَ خَيْرُ نِسَائِهَا خَدِيْجَةُ.

نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل چه دنيا کښې ذ تولو ښځو نه بهتره بي بي مريمؑ وه او دُنيا کښې (موجوده اُمت کښې) ذ ټولو نه افضله بي بي خديجهؓ ده.

۱۰۰۹ : حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ عُفَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ قَالَ كَتَبَ اِلَيَّ هِشَامٌ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ مَا غِرْتُ عَلٰى خَدِيْجَةَ هَلَكَتْ قَبْلَ اَنْ يَّتَزَوَّجَنِيْ لِمَا كُنْتُ اَسْمَعُهُ يَذْكُرُهَا وَ اَمَرَهُ اللّٰهُ اَنْ يُبَشِّرَهَا بِبَيْتٍ فِي الْجَنَّةِ مِنْ قَصَبٍ وَ اِنْ كَانَ لَيَذْبَحُ الشَّاةَ فَيُهْدِيْ فِيْ خَلَائِلِهَا مِنْهَا مَا يَسَعُهُنَّ.

۱۰۰۹ : سعيد بن عفير . ليث . هشام . د هغه پلار . بي بي عائشےؓ نه روايت کوي، هغه فرمائي، ماته چه خومره رشک (پسخيدل) په بي بي خديجهؓ راتلو، دومره ذ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم په بله بي بي نهٔ راتلو . حالانکه هغه خما ذ نکاح نه آګاهو وفات شوے وه، په دے وجه چه ما به اکثر ذ حضورؐ نه ذ هغے ذکر آوريدلو، او اللّٰه تعالي حضورؐ ته حکم ورکړے وو، چه بي بي خديجےؓ ته جنت کښې ذ موتي محل بشارت ورکړي . او حضورؐ چه به چيلئے ذبح کوله، نو ذ بي بي خديجے ملګرو بيبيانوله به ئے به قدر کفالت ذ تحفے په طور ليږله.

۱۰۱۰ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا حُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ هِشَامِ ابْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ مَا غِرْتُ عَلٰى اِمْرَاَةٍ مَا غِرْتُ عَلٰى خَدِيْجَةَ مِنْ كَثْرَةِ ذِكْرِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِيَّاهَا قَالَتْ وَ تَزَوَّجَنِيْ بَعْدَهَا بِثَلٰثِ سِنِيْنَ وَ اَمَرَهُ رَبُّهٗ عَزَّ وَ جَلَّ اَوْ جِبْرِيْلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ اَنْ يُبَشِّرَهَا بِبَيْتٍ فِي الْجَنَّةِ مِنْ قَصَبٍ.

۱۰۱۰ : قتيبه بن سعيد . حميد بن عبدالرحمٰن . هشام بن عروه . ذ هغهٔ پلار . بي بي عائشےؓ نه روايت کوي، هغه فرمائي، چه ماته به خومره رشک په بي بي خديجےؓ ذ حضورؐ ذ اکثر يادولو په وجه راتلو، دومره به ذ حضورؐ په بله بي بي نهٔ راتلو . بي بي عائشهؓ فرمائي، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم ته اللّٰه عز و جل يا حضرت جبرئيلؑ دا حکم ورکړے وو، چه بي بي خديجے ته جنت کښې ذ يو موتي محل (ذ ملغلرو ذ محل) زيرے ورکړه.

۱۰۱۱ : حَدَّثَنِيْ عُمَرُ بْنُ

۱۰۱۱ : عمر بن محمد بن حسن . ذ هغهٔ

مُحَمَّدِ بْنِ حَسَنٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا حَفْصٌ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ مَاغِرْتُ عَلٰى اَحَدٍ مِنْ نِّسَاءِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَاغِرْتُ عَلٰى خَدِيْجَةَ وَمَا رَاَيْتُهَا وَلٰكِنْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُكْثِرُ ذِكْرَهَا وَ رُبَّمَا ذَبَحَ الشَّاةَ ثُمَّ يُقَطِّعُهَا اَعْضَاءً ا ثُمَّ يَبْعَثُهَا فِيْ صَدَائِقِ خَدِيْجَةَ فَرُبَمَا قُلْتُ لَهُ كَاَنَّهُ لَمْ يَكُنْ فِي الدُّنْيَا اِمْرَاَةٌ اِلَّا خَدِيْجَةُ فَيَقُوْلُ اِنَّهَا كَانَتْ وَ كَانَتْ وَ كَانَ لِيْ مِنْهَا وَلَدٌ.

پلار. حفص. هشام. دَ هغـه پلار. بي بي عائشةؓ نه روايت كوي، هغه فرمائي، زهٔ چه څومره بي بي خديجےؓ ته پسخيږم، دومره دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم بلے بي بي ته نهٔ پسخيدم، حالانكه هغه مِ ليدلے هم نه وه، ليكن رسول الله صلي الله عليه وسلّم به كثرت سره دَ هغے ذكر كولو. او اكثر چه به حضورؐ چيلئ حلالوله، بيا به ئے هغه ټكړے كړه، نو دَ بي بي خديجےؓ سهيلو ته به ئے ليږله، او كله به ما حضورؐ ته وئيلے، چه دُنيا كښ دَ بي بي خديجےؓ نه سِوا هلو بله ښځه نشته، نو حضورؐ به فرمائيل، او هغه داسے وه، او دَ هغے نه څما اولاد شوے دے.

۱۰۱۲: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ اِسْمَاعِيْلَ قَالَ قُلْتُ لِعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِيْ اَوْفٰى رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا بَشَّرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَدِيْجَةَ قَالَ نَعَمْ بِبَيْتٍ مِنْ قَصَبٍ لَا صَخَبَ فِيْهِ وَلَا نَصَبَ.

۱۰۱۲: مسدد. يحيٰي. اسمٰعيل نه روايت كوي، هغه فرمائي، ما حضرت عبدالله بن ابي اوفيٰؓ ته اووے، آيا نبي صلي الله عليه وسلّم بي بي خديجےؓ ته څهٔ زيرے وركړے وو، هغهٔ اووے، او جنت كښ دَ يو موتي محل زيرے ئے وركړے وو، چه هغے كښ به نهٔ شور و شغب وي، نهٔ تكليف.

۱۰۱۳: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ ابْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ عَنْ عُمَارَةَ عَنْ اَبِيْ زُرْعَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ قَالَ اَتٰى جِبْرِيْلُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هٰذِهٖ خَدِيْجَةُ اَتَتْ مَعَهَا اِنَاءٌ فِيْهِ اِدَامٌ اَوْ طَعَامٌ اَوْ شَرَابٌ فَاِذَا هِيَ اَتَتْكَ فَاقْرَاْ عَلَيْهَا السَّلَامَ مِنْ

۱۰۱۳: قتيبه بن سعيد. محمد بن فضيل. عماره. ابو زرعه. حضرت ابو هريرهؓ نه روايت كوي، حضرت جبرائيلؑ حضور صلي الله عليه وسلّم له راغے، هغه فرمائي، اوونيلے، يا رسول الله، بي بي خديجهؓ لوښي كښ دَ خوراك څكاك څيز راوړي، كوم وخت چه دا تاله راشي، نو دَ الله تعالٰي او څما طرفه ورته سلام وايه، او جنت كښ دَ موتي محل زيرے وركړه، چه هغے كښ

زَيْنَهَا وَ مِنِّيُ وَ بَشِّرِهَا بِبَيْتٍ فِي الْجَنَّةِ مِنْ قَصَبٍ لَا صَخَبَ فِيهِ وَلَا نَصَبَ وَ قَالَ إِسْمَاعِيلُ بْنُ خَلِيلٍ اَخْبَرَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ اِسْتَأْذَنَتْ هَالَةُ بِنْتُ خُوَيْلِدٍ اُخْتُ خَدِيْجَةَ عَلَى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَرَفَ اِسْتِيْذَانَ خَدِيْجَةَ فَارْتَاعَ لِذٰلِكَ فَقَالَ اللّٰهُمَّ هَالَةُ قَالَتْ فَغِرْتُ فَقُلْتُ مَا تَذْكُرُ مِنْ عَجُوْزٍ مِنْ عَجَائِزِ قُرَيْشٍ حَمْرَاءَ الشِّدْقَيْنِ هَلَكَتْ فِي الدَّهْرِ قَدْ اَبْدَلَكَ اللّٰهُ خَيْرًا مِّنْهَا.

بــه نــه شور و شغب وي، او نــهٔ تكليف، اسمعيل بن خليل، علي بن مسهر، هشام، دَ هغهٔ پلار، بي بي عائشې نه روايت كوي، هغه فرمائي، دَ بي بي خديجې خور هاله بنت خويلد، دَ حضورؐ نه (دننه دَ راتللو) اجازت اُوغُښتلو، نو حضورؐ دَ بي بي خديجې اجازت اوګڼړلو، نو حضورؐ (دَ ډير خفګانه) اولړزيد، بيا حضورؐ اوفرمائيل، دا خو، هاله ده، بي بي عائشةؓ فرمائي، زهٔ ډيره اُوپسخيدم، نو ما اووے، تاسوٌ څهٔ يادوئے، يعني يوه سره اننګو والــه قريشي بوډۍ، چه دَ هغې دَ مرګ زمانه شوے ده، حالانکه اللّٰه تعالي تاسوٌ لـه دَ هغې نه بهتره ؎ بدله دركړے ده.

۱. د مسند احمد په يو روايت كښې دي چه نبي كريم صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ عائشې رضي اللّٰه عنها په دې خبره باندې دومره غصه شو چه مخ مبارک ئې سُوړ شو او وې فرمائيل چه د هغې نه بهتر څه څيز ماته ملاؤ شوے دے؟ عائشه رضي اللّٰه عنها اوډريده او دَ اللّٰه په حضور كښې ئې توبه اوكړه او بيائې چرې داقسمه خبره د حضورؐ په وړاندې اونه كړه.

## بَابُ ۴۳۵: ذِكْرِ جَرِيْرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ الْبَجَلِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ.

## باب ۴۳۵: دَ حضرت جرير بن عبداللّٰه بجليؓ بيان.

۱۰۱۴: حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ الْوَاسِطِيُّ حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ بَيَانٍ عَنْ قَيْسٍ قَالَ سَمِعْتُهُ يَقُوْلُ قَالَ جَرِيْرُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ مَا حَجَبَنِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُنْذُ اَسْلَمْتُ وَلَا رَاٰنِيْ اِلَّا ضَحِكَ وَ عَنْ قَيْسٍ عَنْ جَرِيْرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ كَانَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ بَيْتٌ

۱۰۱۴: اسحٰق واسطي. خالد. بيان. قيس نه روايت كوي، هغه وائي، ما دَ جرير بن عبداللّٰه بجليؓ نه واوريدل، دَ كله نه چه ما اسلام راوړيدے، زهٔ نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم هيڅ كله نه يم ټوكلے، او كله چه حضورؐ به زهٔ اوليدم، نو خوشحاله به شو. اوٌ جرير بن عبداللّٰه نه په واسطه دَ قيس روايت دے، زمانه جاهليت كښې يو مكان وو، چه هغې ته به ئې ذو الخلصه وئيلے، او هغې ته به ئې كعبهٔ يمانيه يا كعبهٔ شاميه

يُقَالُ لَهُ ذُوالْخَلَصَةِ وَ كَانَ يُقَالُ لَهُ الْكَعْبَةُ الْيَمَانِيَّةُ اَوِ الْكَعْبَةُ الشَّامِيَّةُ فَقَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلْ اَنْتَ مُرِيْحِيْ مِنْ ذِى الْخَلَصَةِ قَالَ فَنَفَرْتُ اِلَيْهِ فِيْ خَمْسِيْنَ وَ مِائَةِ فَارِسٍ مِنْ اَحْمَسَ قَالَ فَكَسَرْنَا وَ قَتَلْنَا مَنْ وَّجَدْنَا عِنْدَهٗ فَاَتَيْنَا فَاَخْبَرْنَاهُ فَدَعَا لَنَا وَلِاَحْمَسَ.

وئيلے، نو ماته رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، آيا تهٔ به ذوالخلصه ورانه كړے، او دَ هغې طرف نه به ما مطمئن كړے، جرير وائي، ما دَ قبيلهٔ احمس يو نيم سل سوارهٔ واخستل، او هلته لاړم، او مونږ هغه ذرے ورے كړه، او دَ هغې خوا كښې چه څوک مونږ اُومندل، هغه مو قتل كړل، بيا مونږ راغلو، او حضورؐ ته مو دَ هغې اطلاع وركړه، نو حضورؐ مونږ دپاره او دَ احمس خلقو دَ پاره دُعا اوكړله.

ف: ذوالخلصه: بت خانه.

## باب ۴۳٦: ذِكْرُ حُذَيْفَةَ بْنِ الْيَمَانِ الْعَبَسِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ.

باب ۴۳٦: دَ حضرت حذيفهؓ بن يمان عبسي بيان.

۱۰۱۵: حَدَّثَنِيْ اِسْمٰعِيْلُ بْنُ خَلِيْلٍ اَخْبَرَنَا سَلَمَةُ بْنُ رَجَاءٍ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ لَمَّا كَانَ يَوْمُ اُحُدٍ هُزِمَ الْمُشْرِكُوْنَ هَزِيْمَةً بَيِّنَةً فَصَاحَ اِبْلِيْسُ اَىْ عِبَادَ اللّٰهِ اُخْرَاكُمْ فَرَجَعَتْ اُوْلَاهُمْ عَلٰى اُخْرَاهُمْ فَاجْتَلَدَتْ اُخْرَاهُمْ فَنَظَرَ حُذَيْفَةُ فَاِذَا هُوَ بِاَبِيْهِ فَنَادٰى اَىْ عِبَادَ اللّٰهِ اَبِىْ اَبِىْ فَقَالَتْ فَوَاللّٰهِ مَا احْتَجَزُوْا حَتّٰى قَتَلُوْهُ فَقَالَ حُذَيْفَةُ غَفَرَ اللّٰهُ لَكُمْ قَالَ اَبِىْ فَوَاللّٰهِ مَا زَالَتْ فِيْ حُذَيْفَةَ مِنْهَا بَقِيَّةُ خَيْرٍ حَتّٰى لَقِيَ اللّٰهَ عَزَّ وَ جَلَّ.

۱۰۱۵: اسمٰعيل بن خليل. سلمه بن رجاء. هشام بن عروه. دَ هغهٔ دَ پلار نه روايت كوي، بي بي عائشهؓ اوفرمائيل، دَ جنگ اُحد په ورځ چه مشركانو شكست اُخوړلو، نو ابليس چغه كړے، وئيلے، اے دَ خدائے بنديانو، خپل ورستو (والا قتل كړئے) نو مخكښې مسلمانانو په ورستو مسلمانانو حمله اوكړه، او سخت جنگ اوشولو. اتفاقًا (مقابل صف كښې) حضرت حذيفه خپل پلار اوليدلو نو هغهٔ چغې كړے، اے دَ خدائے بنديانو دا څما پلار دے، څما پلار دے (دے قتل نهٔ كړے) بي بي عائشهؓ وائي، په خدائے، چه هغوي منع نهٔ شولو، حتٰي چه هغه ئې قتل كهٔ، نو حذيفهؓ اووے، اللّٰه دے تاسو اوبښي، دَ عروه پلار اووے، په خدائے چه حذيفهؓ (دَ خپل پلار قاتلانو دَ پاره) تر مرگه پورے دَ مغفرت دعا غوښتله.

باب ۴۳۷: ذِكْرِ هِنْدِ بِنْتِ عُتْبَةَ بْنِ رَبِيْعَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا. وَ قَالَ عَبْدَانُ اَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ اَخْبَرَنَا يُوْنُسُ عَنِ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَنِيْ عُرْوَةُ اَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ جَاءَتْ هِنْدُ بِنْتُ عُتْبَةَ قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا كَانَ عَلٰى ظَهْرِ الْاَرْضِ مِنْ اَهْلِ خِبَاءٍ اَحَبُّ اِلَيَّ اَنْ يَّذِلُّوْا مِنْ اَهْلِ خِبَائِكَ ثُمَّ مَا اَصْبَحَ الْيَوْمَ عَلٰى ظَهْرِ الْاَرْضِ اَهْلُ خِبَاءٍ اَحَبُّ اِلَيَّ اَنْ يَّعِزُّوْا مِنْ اَهْلِ خِبَائِكَ قَالَتْ وَ اَيْضًا وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ اَبَا سُفْيٰنَ رَجُلٌ مِّسِّيْكٌ فَهَلْ عَلَيَّ حَرَجٌ اَنْ اُطْعِمَ مِنَ الَّذِيْ لَهٗ عَيَالَنَا قَالَ لَا اُرَاهُ اِلَّا بِالْمَعْرُوْفِ.

باب ۴۳۷: ذَ هند بنت عتبه[1] بن ربیعه بیان. عبدان. عبدالله. یونس. زهري. عروه نه روایت کوي، بي بي عائشې اوفرمائیل، هند بنت عتبه راغله، ونیلې، یا رسول الله (ذ اوس نه مخکښ) ذَ یوې کورنۍ ذلت ماته ستاسو ذَ کورنۍ ذَ ذلت نه زیات خوښ نه وو. خو، اوس ذَ زمکې په مخ ذَ هیڅ کورنۍ عزت ماته ستاسوَ ذَ کورنۍ ذَ عزت نه زیات خوښ نهٔ دې. راوي اووې، قسم دې په هغه ذات، چه ذَ هغهٔ قبضه کښ خما ساه ده، هغې دا هم اووې، یا رسول الله، ابوسفیان یو بخیل سړې دې، که زهٔ ذَ هغهٔ ذَ مال نه (خهٔ پټ کړم او) په خپلو بچو، ئې اوخوروم، نو په ما به خهٔ ګناه خو، نهٔ وي حضورٌ ورته اوفرمائیل، زهٔ صرف ذَ دستور موافق جائز ګنړم.

۱. یعني د ابو سفیان بي بي او د معاویه رضي الله عنه مور. د مکې فتح کیدو نه پس ئې اسلام راوړې وو. ابوسفیان رضي الله عنه هم په دغه زمانه کښې اسلام راوړې وو.

باب ۴۳۸: حَدِيْثِ زَيْدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ نُفَيْلٍ.

باب ۴۳۸: ذَ زید بن عمرو بن نفیل ذَ قصې بیان.

۱۰۱۶: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ اَبِيْ بَكْرٍ حَدَّثَنَا فُضَيْلُ بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا مُوْسٰى حَدَّثَنَا سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَقِيَ زَيْدَ بْنَ عَمْرِو بْنِ نُفَيْلٍ بِاَسْفَلَ بَلْدَحٍ قَبْلَ اَنْ يُّنْزَلَ

۱۰۱۶: محمد بن ابوبکر. فضیل بن سلیمان. موسٰي. سالم بن عبدالله. حضرت عبدالله بن عمرٌ نه روایت کوي ذَ نزول وحي نه مخکښ ذَ نبي صلي الله علیه وسلّم ذَ مقام بلدح نشیبي حصه کښ زید بن عمرو بن نفیل سره ملاقات اوشو بیا ذَ رسول الله صلي الله علیه وسلّم مخکښ دسترخوان خور کړې شو، نو حضورٌ ذَ طعام خوړلو نه انکار اوکړلو.

عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
الْوَحْيُ فَقُدِّمَتْ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ سُفْرَةٌ فَأَبَى أَنْ يَأْكُلَ مِنْهَا ثُمَّ
قَالَ زَيْدٌ إِنِّيْ لَسْتُ آكُلُ مِمَّا تَذْبَحُوْنَ
عَلٰى أَنْصَابِكُمْ وَلَا آكُلُ إِلَّا مَا ذُكِرَ
اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ وَ إِنَّ زَيْدَ بْنَ عَمْرٍو
كَانَ يَعِيْبُ عَلٰى قُرَيْشٍ ذَبَائِحَهُمْ وَ
يَقُوْلُ الشَّاةُ خَلَقَهَا اللّٰهُ وَ أَنْزَلَ لَهَا مِنَ
السَّمَآءِ الْمَاءَ وَ أَنْبَتَ لَهَا مِنَ الْأَرْضِ
ثُمَّ تَذْبَحُوْنَهَا عَلٰى غَيْرِ اسْمِ اللّٰهِ
إِنْكَارًا لِذٰلِكَ وَ إِعْظَامًا لَهُ قَالَ مُوْسٰى
حَدَّثَنِيْ سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ وَلَا
أَعْلَمُهُ إِلَّا تَحَدَّثَ بِهِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ
زَيْدَ بْنَ عَمْرِو بْنِ نُفَيْلٍ خَرَجَ إِلَى
الشَّامِ يَسْأَلُ عَنِ الدِّيْنِ وَ يَتَّبِعُهُ
فَلَقِيَ عَالِمًا مِنَ الْيَهُوْدِ فَسَأَلَهُ عَنْ
دِيْنِهِمْ فَقَالَ إِنِّيْ لَعَلِّيْ أَنْ أَدِيْنَ
دِيْنَكُمْ فَأَخْبِرْنِيْ فَقَالَ لَا تَكُوْنُ عَلٰى
دِيْنِنَا حَتّٰى تَأْخُذَ بِنَصِيْبِكَ مِنْ غَضَبِ
اللّٰهِ قَالَ زَيْدٌ مَا أَفِرُّ إِلَّا مِنْ غَضَبِ
اللّٰهِ وَلَا أَحْمِلُ مِنْ غَضَبِ اللّٰهِ شَيْئًا
أَبَدًا وَ أَنّٰى أَسْتَطِيْعُهُ فَهَلْ تَدُلُّنِيْ
عَلٰى غَيْرِهٖ قَالَ مَا أَعْلَمُهُ إِلَّا أَنْ
يَكُوْنَ حَنِيْفًا قَالَ زَيْدٌ وَمَا الْحَنِيْفُ
قَالَ دِيْنُ إِبْرٰهِيْمَ لَمْ يَكُنْ يَهُوْدِيًّا وَلَا
نَصْرَانِيًّا وَلَا يَعْبُدُ إِلَّا اللّٰهَ فَخَرَجَ زَيْدٌ

بیا زید اووې، زۀ هم دَ دې نه بالکل نۀ خورم، چه
تاسو ئې دَ خپلو بُتانو په نوم ذبح کوئې، او زۀ خو
صرف هغه څیز خورم، چه په هغې دَ ذبح په وخت
صرف دَ اللّٰه نوم اخستې شوې وي. او دَ زید بن
عمرو، او قریشو ذبیحه به ئې خرابه گنړله، او ونیل
به ئې، چیلئې اللّٰه پیدا کړې ده، هغې دَ پاره ئې دَ
آسمان نه باران اُوورولو، او هغې دَ پاره هغۀ دَ زمکې
نه گیاه پیدا کړه، بیا تاسو دا دَ غیرِ اللّٰه په نوم ذبح
کوئې، دا خبره هغۀ ډیره عیب ناکه او خرابه
گنړله. موسٰي اووې، ماته سالم بن عبدالله بیان اوکۀ،
او خما خیال دې چه هغۀ ته هم دا روایت ابن عمر
بیان کړې وي، چه زید بن عمرو بن نفیل دَ دین
حق تلاش او اتباع کښِ ملک شام طرف ته لاړلو، نو یو
یهودي عالم سره ئې ملاقات اوشو. زید دَ هغۀ دَ مذهب
په باره کښِ تپوس اوکۀ، اووئیلې، ممکنه ده، چه زۀ ستا
دین اختیار کړم، نو ماته اوښایه، هغۀ ورته اووې، تۀ هغه
وخته پورې خمونږ په دین کیدې نه شې، څو پورې چه
دَ غضب الٰهي نه خپله حصه وانخلې، زید اووې، زۀ خو دَ
غضب الٰهي نه تښتم، او دَ هغه غضب هیڅ کله زغملې
نشم، او نۀ ما کښِ دَ هغې طاقت شته، نو آیا تۀ ماته څۀ بل
مذهب ښودلې شې. هغه اُوې زۀ دَ حنیف نه سِوا بل څۀ
مذهب تاته نشم ښودلې، زید اووې، حنیف څۀ څیز دې،
هغۀ ورته اووې دین ابراهیمي، نه هغه یهودي وو، او نه
نصراني، او سِوا دَ اللّٰه تعالٰي نه ئې دَ بل چا عبادت نۀ
کولو، نو زید دَ هغې ځائې نه لاړ، او یو نصراني عالم سره
ئې ملاقات اوکه، هغه ته ئې هم دغسې بیان اوکۀ، هغۀ

فَلَقِيَ عَالِمًا مِنَ النَّصَارٰى فَذَكَرَ مِثْلَهُ فَقَالَ لَنْ تَكُوْنَ عَلٰى دِيْنِنَا حَتّٰى تَأْخُذَ بِنَصِيْبِكَ مِنْ لَعْنَةِ اللّٰهِ قَالَ مَا اَفِرُّ اِلَّا مِنْ لَعْنَةِ اللّٰهِ وَلَا اَحْمِلُ مِنْ لَعْنَةِ اللّٰهِ وَلَا مِنْ غَضَبِهٖ شَيْئًا اَبَدًا وَ اَنّٰى اَسْتَطِيْعُ فَهَلْ تَدُلُّنِيْ عَلٰى غَيْرِهٖ قَالَ مَا اَعْلَمُهٗ اِلَّا اَنْ تَكُوْنَ حَنِيْفًا قَالَ وَمَا الْحَنِيْفُ قَالَ دِيْنُ اِبْرٰهِيْمَ لَمْ يَكُنْ يَهُوْدِيًّا وَّلَا نَصْرَانِيًّا وَلَا يَعْبُدُ اِلَّا اللّٰهَ فَلَمَّا رَاٰى زَيْدٌ قَوْلَهُمْ فِيْ اِبْرٰهِيْمَ عَلَيْهِ السَّلَامُ خَرَجَ فَلَمَّا بَرَزَ رَفَعَ يَدَيْهِ فَقَالَ اَللّٰهُمَّ اِنِّيْ اَشْهَدُ اَنِّيْ عَلٰى دِيْنِ اِبْرٰهِيْمَ وَ قَالَ اللَّيْثُ كَتَبَ اِلَيَّ هِشَامٌ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَسْمَاءَ بِنْتِ اَبِيْ بَكْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَتْ رَاَيْتُ زَيْدَ بْنَ عَمْرِو بْنِ نُفَيْلٍ قَائِمًا مُسْنِدًا ظَهْرَهٗ اِلَى الْكَعْبَةِ يَقُوْلُ يَا مَعْشَرَ قُرَيْشٍ وَاللّٰهِ مَا مِنْكُمْ عَلٰى دِيْنِ اِبْرٰهِيْمَ غَيْرِيْ وَ كَانَ يُحْيِي الْمَوْءُوْدَةَ يَقُوْلُ لِلرَّجُلِ اِذَا اَرَادَ اَنْ يَقْتُلَ ابْنَتَهٗ لَا تَقْتُلْهَا اَنَا اَكْفِيْكَهَا مُؤْنَتَهَا فَيَاْخُذُهَا فَاِذَا تَرَعْرَعَتْ قَالَ لِاَبِيْهَا اِنْ شِئْتَ دَفَعْتُهَا اِلَيْكَ وَ اِنْ شِئْتَ كَفَيْتُكَ مُؤْنَتَهَا.

ورته اووې. كه ته خمونږ په دين كيږې نو د خدائے د لعنت نه خپله حصه به آخلې. زيد اووې. زۀ خو د خدائے د لعنت نه تښتم. او د اللّه لعنت او غضب بالكل برداشت كولے نشم. او نۀ ما كښې د دے طاقت شته. آيا ته څۀ بل مذهب ماته ښودلے شې. هغۀ ورته اووې. زۀ ستا د پاره د حنيف نه سوا بل مذهب نۀ پيژنم. هغۀ ترے تپوس او كۀ، حنيف څۀ څيز دے، هغۀ ورته اووې. د ابراهيم عليه السلام دين، هغه نۀ يهودي وو، او نۀ نصراني. د اللّه تعالي نه سوا د بل چا عبادت ئے نه كولو. زيد چه د هغۀ خبرے د ابراهيم عليه السلام په باب كښې واوريدے، نو د هغۀ ځائے نه روان شو. چه بهر راووتلو، نو خپل دواړه لاسونه ئے اوچت كړل، وے وئيل. اے خدايه، زۀ ګواهي كوم، چه زۀ په دين ابراهيمي يم. ليث اووې، ماته هشام په واسطه د خپل پلار او اسماء بنت ابوبكر اوليكل. اسماء فرمائي، ما زيد بن عمرو بن نفيل كعبے سره شا لږولے، ولاړ اُوليد، هغۀ وئيلے، اے جماعت قريش، خما نه علاوه تاسو كښې هيڅوك په دين ابراهيمي نۀ دے، او هغه به موء ودة (يعني هغه نوزائيده جينۍ چه هغه به ژوندے ګور كښې اچولے شوه) هم بچ كوله، هغه به هغے سړي ته، چه د خپلے جينۍ د قتل اراده به ئے كوله، فرمائيل، چه دا مۀ قتلوه، او زۀ به ستا په ځائے د دے خدمت كوم، نو هغه به پرورش د پاره بوتله، چه كله به لويه شوه نو د هغے پلار ته به ئے وئيلے، كه ته غواړے، نو زۀ دا جينۍ تاته حواله كوم، او كه تا خوښه وي، نو زۀ به د دے خدمت كوم.

## بَابٌ ۴۳۹: بُنْيَانِ الْكَعْبَةِ.

## باب ۴۳۹: د كعبے د تعمير بيان.

۱۰۱۷: حَدَّثَنِیْ مَحْمُوْدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ قَالَ اَخْبَرَنِیْ ابْنُ جُرَیْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِیْ عَمْرُو بْنُ دِیْنَارٍ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ لَمَّا بُنِیَتِ الْكَعْبَةُ ذَهَبَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وَ عَبَّاسٌ یَنْقُلَانِ الْحِجَارَةَ فَقَالَ عَبَّاسٌ لِلنَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اجْعَلْ اِزَارَكَ عَلٰی رَقَبَتِكَ یَقِیْكَ مِنَ الْحِجَارَةِ فَخَرَّ اِلَی الْاَرْضِ فَطَمَحَتْ عَیْنَاهُ اِلَی السَّمَاءِ ثُمَّ اَفَاقَ فَقَالَ اِزَارِیْ فَشُدَّ عَلَیْهِ اِزَارُهٗ.

۱۰۱۷: محمود. عبدالرزاق. ابن جریج. عمرو بن دینار. حضرت جابر بن عبدالله نه روایت کوي، هغه فرمائي، کوم وخت چه دَ کعبې تعمیر شروع شو، نو نبي صلي الله علیه وسلّم او حضرت عباسؓ به کاڼړي راوړل، نو حضرت عباسؓ نبي صلي الله علیه وسلّم ته اووے، چه خپل تهبند (کوز کړه او) په اُوږه ئے واچوه، چه هغے سره دَ کاڼړو (دَ رګړ) نه محفوظ شے. حضورؐ دغسے اوکړل، لیکن حضورؐ په زمکه راوغُرځیدلو، او دَ حضورؐ سترګے مبارکے آسمان طرف ته شوے. بیا چه حضورؐ هوش کښې شو، نو وے فرمائیل، ځما تهبند، ځما تهبند، نو هغه تهبند ورته اوتړلے شو.

۱۰۱۸: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَیْدٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِیْنَارٍ وَ عُبَیْدِ اللّٰهِ بْنِ اَبِیْ یَزِیْدَ قَالَا لَمْ یَكُنْ عَلٰی عَهْدِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ حَوْلَ الْكَعْبَةِ حَائِطٌ كَانُوْا یُصَلُّوْنَ حَوْلَ الْبَیْتِ حَتّٰی كَانَ عُمَرُ فَبَنٰی حَوْلَهٗ حَائِطًا قَالَ عُبَیْدُ اللّٰهِ جَدْرُهٗ قَصِیْرٌ فَبَنَاهُ ابْنُ الزُّبَیْرِ.

۱۰۱۸: ابو النعمان. حماد بن زید نه روایت کوي، چه عمرو بن دینار او عبیدالله ابن ابو زید اوفرمائیل، دَ نبي صلي الله علیه وسلّم په زمانه کښې دَ کعبے شریفے نه ګیر چاپیره دیوال نۀ وو. خلقو به دَ بیت الله خواوشا کښې مونځ کولو، حتّٰي چه دَ حضرت عمرؓ زمانه راغله، نو هغۀ ترے ګیر چاپیر دیوال تعمیر کړلو، عبیدالله اووے، دَ هغے دیوالونه وړوکي وو، بیا دَ هغے تعمیر ابن زبیرؓ اوکړلو (او دیوالونه ئے ورله اوچت کړل).

## باب ۴۴۰: اَیَّامِ الْجَاهِلِیَّةِ.

## باب ۴۴۰: دَ جاهلیت دَ زمانے بیان.

۱۰۱۹: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا یَحْیٰی قَالَ هِشَامٌ حَدَّثَنِیْ اَبِیْ عَنْ عَائِشَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ عَاشُوْرَآءَ یَوْمًا تَصُوْمُهٗ قُرَیْشٌ فِیْ

۱۰۱۹: مسدد. یحیٰي. هشام. دَ هغۀ پلار. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي، هغه فرمائي، دَ عاشورے په ورځ به قریشو هم روژه نیوله، او نبي اکرم صلي الله علیه وسلّم هم، بیاچه حضورؐ هجرت اوکۀ، مدینے شریفے ته

الْجَاهِلِيَّةِ وَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصُوْمُهُ فَلَمَّا قَدِمَ الْمَدِيْنَةَ صَامَهُ وَ اَمَرَ بِصِيَامِهِ فَلَمَّا نَزَلَ رَمَضَانُ كَانَ مَنْ شَآءَ صَامَهُ وَمَنْ شَآءَ لَا يَصُوْمُهُ.

ئے تشریف راوړلو، نو دَ عاشورے ئے خپله هم روژه اونیوله، او نورو مسلمانانو ته ئے هم دَ هغې دَ نیولو حکم ورکړلو. دَ رمضان دَ روژو د فرضیت د نازلیدو نه پس دَ چا زړهٔ چه به غوښتل، دَ عاشورے روژه به ئے نیوله، او چا به نهٔ نیوله.

۱۰۲۰: حَدَّثَنَا مُسْلِمٌ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا ابْنُ طَاوُسٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ كَانُوْا يَرَوْنَ اِنَّ الْعُمْرَةَ فِيْ اَشْهُرِ الْحَجِّ مِنَ الْفُجُوْرِ فِي الْاَرْضِ وَ كَانُوْا يُسَمُّوْنَ الْمُحَرَّمَ صَفَرَ وَ يَقُوْلُوْنَ اِذَا بَرَأَ الدَّبَرُ وَ عَفَا الْاَثَرُ حَلَّتِ الْعُمْرَةُ لِمَنِ اعْتَمَرَ قَالَ فَقَدِمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَصْحَابُهُ رَابِعَةً مُهِلِّيْنَ بِالْحَجِّ وَ اَمَرَهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يَّجْعَلُوْهَا عُمْرَةً قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اَيُّ الْحِلِّ قَالَ الْحِلُّ كُلُّهُ.

۱۰۲۰: مسلم. وهیب. ابن طاؤس. د هغه پلار. حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي، هغه فرمائي، د جاهلیت زمانه کښې د خلقو دا عقیده وه. چه د حج میاشتو کښې عمره کول دُنیا کښې لویه ګناه ده، او هغوي به ماه محرم ته صفر وئیلې، او وئیل به ئے، چه دَ اوښ زخم ښهٔ شي، او نښه ئے ورکه شي، نو عمره کونکو دَ پاره عمره درست شي. هغهٔ اوفرمائیل، چه نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم او دَ حضورؐ صحابهؓ په څلورم تاریخ احرام تړلے مکے ته راورسیدل، او نبي اکرم صلي اللّٰه علیه وسلّم خپلو صحابه ؤ ته حکم اوکهٔ، چه هغوي دا عمره جوړه کړي. هغوي عرض اوکهٔ، یا رسول اللّٰه، څومره احرام پرانزو، حضورؐ ورته اوفرمائیل، پوره احرام پرانزئے.

۱۰۲۱: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ قَالَ كَانَ عَمْرٌو يَقُوْلُ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ جَاءَ سَيْلٌ فِي الْجَاهِلِيَّةِ فَكَسَا مَا بَيْنَ الْجَبَلَتَيْنِ قَالَ سُفْيٰنُ وَ يَقُوْلُ اِنَّ هٰذَا الْحَدِيْثَ لَهُ شَانٌ.

۱۰۲۱: علي بن عبداللّٰه. سفیان. عمرو. سعید بن مسیب. دَ هغهٔ پلار او دَ هغهٔ دَ نیکه (دادا) نه روایت کوي. دَ هغهٔ نیکه وائي دَ جاهلیت زمانه کښې سیلاب راغے، نو دَ دواړو غرونو مینځ کښې خور شو. سفیان اووے، دَ دے حدیث لویه واقعه ده.

۱۰۲۲: حَدَّثَنَا اَبُو النُّعْمَانِ

۱۰۲۲: ابوالنعمان. ابو عوانه. بیان. ابوالبشر.

حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ بَيَانٍ اَبِيْ بِشْرٍ عَنْ قَيْسِ ابْنِ اَبِيْ حَازِمٍ قَالَ دَخَلَ اَبُوْ بَكْرٍ عَلٰى اِمْرَاَةٍ مِنْ اَحْمَسَ يُقَالُ لَهَا زَيْنَبُ فَرَاٰهَا لَا تَكَلَّمُ فَقَالَ مَا لَهَا لَا تَكَلَّمُ قَالُوْا حَجَّتْ مُصْمِتَةً قَالَ لَهَا تَكَلَّمِيْ فَاِنَّ هٰذَا لَا يَحِلُّ هٰذَا مِنْ عَمَلِ الْجَاهِلِيَّةِ فَتَكَلَّمَتْ فَقَالَتْ مَنْ اَنْتَ فَقَالَ امْرَءٌ مِنَ الْمُهَاجِرِيْنَ قَالَتْ اَيُّ الْمُهَاجِرِيْنَ قَالَ مِنْ قُرَيْشٍ قَالَتْ مِنْ اَيِّ قُرَيْشٍ اَنْتَ قَالَ اِنَّكِ لَسَئُوْلٌ اَنَا اَبُوْبَكْرٍ قَالَتْ مَا بَقَآؤُنَا عَلٰى هٰذَا الْاَمْرِ الصَّالِحِ الَّذِيْ جَاءَ اللّٰهُ بِهٖ بَعْدَ الْجَاهِلِيَّةِ قَالَ بَقَآؤُكُمْ عَلَيْهِ مَا اسْتَقَامَتْ بِكُمْ اَئِمَّتُكُمْ قَالَتْ وَمَا الْاَئِمَّةُ قَالَ اَمَا كَانَ لِقَوْمِكِ رُءُوْسٌ وَ اَشْرَافٌ يَاْمُرُوْنَهُمْ فَيُطِيْعُوْنَهُمْ قَالَتْ بَلٰى قَالَ فَهُمْ اُولٰٓئِكَ عَلَى النَّاسِ.

قیس بن حازم نه روایت کوي، هغه وائي. حضرت ابوبکرؓ د قبیلهٔ احمس یوې ښځې له راغې، چه د هغې نوم زینب وو نو هغه ئې اولیده، چه خبرې نه کوي، هغهٔ اوفرمائیل، په دې څهٔ چل شوې دې چه خبرې نه کوي. خلقو ورته اووې، دې د خاموشي دَ حج نیت کړې دې، نو ابوبکرؓ هغې ته اووې، خبرې کوه، ځکه چه دا طریقه جائز نهٔ ده، دا دَ جاهلیت دَ زمانې عمل دې، نو هغې خبرې شروع کړې، او تپوس ئې اوکهٔ، تاسو څوک ئې، ابوبکرؓ ورته اوفرمائیل، زهٔ یو مهاجر سړې یم، هغې اووې څنګه مهاجر، هغهٔ ورته اوفرمائیل، قریشي، هغې اووې، قریشو کښې څوک، هغه ورته اوفرمائیل تهٔ ډیره تپوس کونکې ئې، زهٔ ابوبکر یم، هغې اووې، په هغې نیک کار چه اللّٰه تعالٰي دَ جاهلیت نه پس مونږ ته رالیږلې دې، مونږ به څو پورې روان یُو، ابوبکر ورته اوفرمائیل، څو پورې چه ستاسو پیشوا په هغې قائم وي. هغې اووې، پیشوا څنګه، هغهٔ ورته اوفرمائیل، آیا ستاسو قوم کښې داسې شریف او رئیس نشته، چه خلقوته حکم ورکوي، او هغوي ئې اطاعت کوي هغې اووې. ولې نشته، نو ابوبکرؓ ورته اوفرمائیل چه دغه خلق خو پیشوا دي کنه.

۱۰۲۳ : حَدَّثَنِيْ فَرْوَةُ ابْنُ اَبِي الْمَغْرَاءِ اَخْبَرَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ اَسْلَمَتْ اِمْرَاَةٌ سَوْدَاءُ لِبَعْضِ الْعَرَبِ وَ كَانَ لَهَا حِفْشٌ فِي الْمَسْجِدِ قَالَتْ فَكَانَتْ تَاْتِيْنَا فَتَحَدَّثُ

۱۰۲۳ : فروه بن ابي المغراء. علي بن مسهر. هشام. دَ هغهٔ پلار. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي، هغه فرمائي، یو حبشي ښځه چه دَ یو عرب وینزه وَه، ایمان راوړلو، او دَ جمات خوا کښې دَ هغې یوه جونګړه وه، هغې کښې به اوسیدله. بي بي عائشهؓ فرمائي، هغه به مونږ له راتله او مونږ سره به ئې خبرې کولې. او چه خبرې به

بَيْنَنَا فَاِذَا فَرَغَتْ مِنْ حَدِيْثِهَا قَالَتْ:

وَيَوْمُ الْوِشَاحِ مِنْ تَعَاجِيْبِ رَبِّنَا
اَلَا اِنَّهُ مِنْ بَلْدَةِ الْكُفْرِ اَنْجَانِيْ

بَيْنَنَا اَكْثَرَتْ قَالَتْ لَهَا عَائِشَةُ وَمَا يَوْمُ الْوِشَاحِ قَالَتْ خَرَجَتْ جُوَيْرِيَّةٌ لِبَعْضِ اَهْلِيْ وَ عَلَيْهَا وِشَاحٌ مِنْ اَدَمٍ فَسَقَطَ مِنْهَا فَانْحَطَّتْ عَلَيْهِ الْحُدَيَّا وَهِيَ تَحْسِبُهُ لَحْمًا فَاتَّهَمُوْنِيْ بِهٖ فَعَذَّبُوْنِيْ حَتّٰى بَلَغَ مِنْ اَمْرِيْ اَنَّهُمْ طَلَبُوْنِيْ قُبُلِيْ فَبَيْنَمَا هُمْ حَوْلِيْ وَ اَنَا فِيْ كَرْبِيْ اِذْ اَقْبَلَتِ الْحُدَيَّا حَتّٰى وَازَتْ بِرُءُوْسِنَا ثُمَّ اَلْقَتْهُ فَاَخَذُوْهُ فَقُلْتُ لَهُمْ هٰذَا الَّذِيْ اتَّهَمْتُمُوْنِيْ بِهٖ وَ اَنَا مِنْهُ بَرِيْئَةٌ.

ئے خلاصے کړے نو دا به ئے وئیل چه:

او' هار واله ورځ دَ پروردګار دَ عجائبات قدرت نه ده
او هغهٔ ماله دَ کفر دَ ښار نه خلاصے راکهٔ

چه هغے ډیر خله داسے اووے' نو بي بي عائشےؓ ترے تپوس اوکهٔ' دَ هار واله ورځ واقعه څهٔ ده' هغے اووے' خما دَ آقا یوه (ماشومه) لور بهر ته راووتله' په هغے دَ څرمنے یو هار وو' هغه هار دَ هغے نه اُوغرځیدلو' یو تپوس ته هغه غوښه ښکاره شوه' هغهٔ پرے حمله اوکړه' او اُوچت ئے کړلو. خلقو په ما تُهمت اولږولو' او ماله ئے سزا راکړه' حتٰي چه خما معامله دے حد ته اورسیده' چه هغوي خما دَ شرمګاه تالا شي هم واخسته. خلق خما نه چاپیره وو' او زهٔ خپل مصیبت کښ راګیره ووم' چه ناساپه هغه تپوس راغے' کوم وخت چه هغه خمونږ په سرونو راغے' نو هغه هار ئے راوغرځولو. خلقو هغه اوچت کهٔ' نو ما اووے' تاسو په ما دَ دے تهمت لږولے وو' حالانکه دَ دے نه زهٔ بیخي بري ووم.

۱۰۲۴: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ ابْنُ جَعْفَرٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَلَا مَنْ كَانَ حَالِفًا فَلَا يَحْلِفُ اِلَّا بِاللّٰهِ فَكَانَتْ قُرَيْشٌ تَحْلِفُ بِاٰبَائِهَا فَقَالَ لَا تَحْلِفُوْا بِاٰبَائِكُمْ.

۱۰۲۴: قتیبه. اسمٰعیل بن جعفر. عبدالله بن دینار. حضرت ابن عمرؓ نه روایت کوي' نبي صلي الله علیه وسلّم' ګورے' څوک چه قسم خوړل غواړي' نو هغهٔ له دَ الله نه سِوا دَ بل چا قسم خوړل نهٔ دي پکار' او قریشو دَ خپل پلار نیکهٔ قسم خوړلو' نو حضورؐ ورته اوفرمائیل' چه دَ خپلو پلرونو' نیکونو په نوم قسم مهٔ خورئ.

۱۰۲۵: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ وَهْبٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَمْرٌو اَنَّ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ ابْنِ

۱۰۲۵: یحیٰي بن سلیمان. ابن وهب. عمرو. عبدالرحمٰن بن قاسم نه روایت کوي' چه قاسم به دَ جنازے نه مخکښ مخکښ تلو' او چه هغهٔ به

الْقَاسِمِ حَدَّثَهُ اَنَّ الْقَاسِمَ كَانَ يَمْشِيْ بَيْنَ يَدَيِ الْجَنَازَةِ وَلَا يَقُوْمُ لَهَا وَ يُخْبِرُ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ اَهْلُ الْجَاهِلِيَّةِ يَقُوْمُوْنَ لَهَا يَقُوْلُوْنَ اِذَا رَاَوْهَا كُنْتِ فِيْ اَهْلِكِ مَا اَنْتِ مَرَّتَيْنِ.

اولیده، نو اودریدلو به نه، نو هغه دَ بي بي عائشهؓ په واسطه بیان اوکړ، هغې اوفرمائیل، دَ جاهلیت زمانه کښې چه به خلقو جنازه اولیده نو اوبه دریدل، او دوه ځله به ئې وئیل، چه ته خپلو عزیزانو سره ئې، څنګه چه مخکښې وې.

۱۰۲۶: حَدَّثَنِيْ عَمْرُو بْنُ عَبَّاسٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمٰنِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اَبِيْ اِسْحَاقَ عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُوْنٍ قَالَ قَالَ عُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اِنَّ الْمُشْرِكِيْنَ كَانُوْا لَا يُفِيْضُوْنَ مِنْ جَمْعٍ حَتّٰى تَشْرُقَ الشَّمْسُ عَلٰى ثَبِيْرٍ فَخَالَفَهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَفَاضَ قَبْلَ اَنْ تَطْلُعَ الشَّمْسُ.

۱۰۲۶: عمرو بن عباس. عبدالرحمٰن. سفیان. ابو اسحاق. عمرو بن میمون نه روایت کوي. حضرت عمرؓ اوفرمائیل، چه مشرکین به ثبیر نومې غر باندې دَ نمر راختلو نه پس دَ مزدلفې نه وتل، نو نبي اکرم صلي اللّٰه علیه وسلّم دَ نمر ختلو نه مخکښې دَ هغې ځائې نه اووتلو، او دَ هغوي مخالفت ئې اوکړ.

۱۰۲۷: حَدَّثَنِيْ اِسْحَاقُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ قَالَ قُلْتُ لِاَبِيْ اُسَامَةَ حَدَّثَكُمْ يَحْيَى ابْنُ الْمُهَلَّبِ حَدَّثَنَا حُصَيْنٌ عَنْ عِكْرِمَةَ وَ كَاْسًا دِهَاقًا قَالَ مَلْاٰى مُتَتَابِعَةً قَالَ وَ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ سَمِعْتُ اَبِيْ يَقُوْلُ فِي الْجَاهِلِيَّةِ اِسْقِنَا كَاْسًا دِهَاقًا.

۱۰۲۷: اسحاق بن ابراهیم. ابو اسامه: یحيٰي بن مهلب. حضرت حصین نه روایت کوي، عکرمه اوفرمائیل، وَ کاسًا دهاقًا معني دي ډکه پیالې، او دا به ئې هم وئیل، حضرت ابن عباسؓ فرمائیلې دي، چه ما دَ خپل پلار نه آوریدلې دي، هغهٔ به دَ جاهلیت زمانه کښې وئیلې، په مونږ دَ شرابو ډکې پیالې اوڅکوه.

۱۰۲۸: حَدَّثَنَا اَبُوْ نُعَيْمٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَصْدَقُ كَلِمَةٍ قَالَهَا الشَّاعِرُ لَبِيْدٍ اَلَا

۱۰۲۸: ابونعیم. سفیان. عبدالملک. ابو سلمه. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلم اوفرمائیل دَ شاعر دَ ټولو نه ریښتنې خبره دَ لبید خبره ده چه ګورې، دَ اللّٰه تعالٰي نه سِوا هر څیز باطل دې، او

كُلُّ شَيْءٍ مَا خَلَا اللّٰهِ بَاطِلٌ وَ كَادَ أُمَيَّةُ بْنُ أَبِي الصَّلْتِ أَنْ يُسْلِمَ.

نـزدے ده چـه امیـه ابـن ابي الـصلـت اسـلام راوړے دے.

۱۰۲۹ : حَـدَّثَـنَـا إِسْمٰعِيْلُ حَدَّثَنِي أَخِيْ يَحْيَى بْنُ سَعِيْدٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْقَاسِمِ عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ لِأَبِيْ بَكْرٍ غُلَامٌ يُخْرِجُ لَهُ الْخَرَاجَ وَ كَانَ أَبُوْ بَكْرٍ يَأْكُلُ مِنْ خَرَاجِهِ فَجَاءَ يَوْمًا بِشَيْءٍ فَأَكَلَ مِنْهُ أَبُوْ بَكْرٍ فَقَالَ لَهُ الْغُلَامُ تَدْرِيْ مَا هٰذَا فَقَالَ أَبُوْبَكْرٍ وَمَا هُوَ قَالَ كُنْتُ تَكَهَّنْتُ لِإِنْسَانٍ فِي الْجَاهِلِيَّةِ وَمَا أُحْسِنُ الْكَهَانَةَ إِلَّا أَنِّيْ خَدَعْتُهُ فَلَقِيَنِيْ فَأَعْطَانِيْ بِذٰلِكَ فَهٰذَا الَّذِيْ أَكَلْتَ مِنْهُ فَأَدْخَلَ أَبُوْبَكْرٍ يَدَهُ فَقَاءَ كُلَّ شَيْءٍ فِيْ بَطْنِهِ.

۱۰۲۹ : اسماعیل. دَ هغهٔ ورور. سلیمان. یحیٰي بن سعید. عبدالرحمٰن ابن قاسم. قاسم بن محمد. بي بي عـائشےؓ نـه روایـت کوي، هغه فرمائي، دَ ابوبکرؓ یو غلام وو، هـغـهٔ تـه بـه ئـے څهٔ محصول ورکولو، او ابوبکرؓ به دَ هغهٔ محصول دَ خوراک په کار کښ راوستلو. یوه ورخ هـغـه څهٔ څیز راوړلو، نو حضرت ابوبکرؓ ورته اوفرمائیل، څـهٔ څیـز وو، هـغـه ورتـه اووے ما دَ جاهلیت زمانه کښ راتلونکے یوه خبره (کہانت پیشگوئی) یو سړي ته کړے ده، حـالانـکـه زهٔ خپـلـه په دے فن نهٔ پوهیدم، بلکه ما هغهٔ له دهـوکـه ورکـړے وه، نـو نـن هـغـه سړے ماسره یوځائے شـولـو، او دا څیـز هغهٔ ماله دَ هغے عوضانه راکړے ده، او دغـه څیـز تـاسـو او خـوړلـو، نو ابوبکرؓ خپله گوته خوله (منه) کښ ننباسله، او دَ خیټے هر څیز ئے بهر راقے کړلو.

۱۰۳۰ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ أَخْبَرَنِيْ نَافِعٌ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ كَانَ أَهْلُ الْجَاهِلِيَّةِ يَتَبَايَعُوْنَ لُحُوْمَ الْجُزُوْرِ إِلٰى حَبْلِ الْحَبَلَةِ وَ حَبْلُ الْحَبَلَةِ أَنْ تُنْتِجَ النَّاقَةُ مَا فِيْ بَطْنِهَا ثُمَّ تَحْمِلَ الَّتِيْ نَتَجَتْ فَنَهَاهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذٰلِكَ.

۱۰۳۰ : مسـدد. یـحیٰي. عبیداللّٰـه. نافع. حـضـرت ابـن عـمـرؓ نـه روایـت کـوي، هغـه فـرمـائـي، دَ جـاهـلیـت زمـانـه کـښ بـه خـلـقـو دَ حبـل الـحبـلـه پـه وعـده خریـد و فـروخـت کـولـو، او حبـل الـحبـلـه دا څیـز دے چـه دَ اُوښے بـچے پیدا شـي، بیـا هغـه بـچئ حـامـلـه شـي، نـو رسـول اللّٰـه صـلـي اللّٰـه علیـه وسلّم دَ دے فعـل نـه ممـانعت فرمائیلے دے.

۱۰۳۱ : حَدَّثَنَا أَبُو النُّعْمَانِ حَدَّثَنَا مَهْدِيٌّ قَالَ غَيْلَانُ بْنُ جَرِيْرٍ

۱۰۳۱ : ابـوالـنـعـمـان. مهـدي. غیـلان بـن جـریـر نــه روایـت کـوي، هـغـه وائي، مونږ بـه حضرت

كُنَّا نَأْتِيْ اَنَسَ بْنَ مَالِكٍ فَيُحَدِّثُنَا عَنِ الْاَنْصَارِ وَ كَانَ يَقُوْلُ لِيْ فَعَلَ قَوْمُكَ كَذَا وَ كَذَا يَوْمَ كَذَا وَ كَذَا وَ فَعَلَ قَوْمُكَ كَذَا وَ كَذَا يَوْمَ كَذَا وَ كَذَا.

انس بن مالک له ورتلو هغهٔ به مونږ ته دَ انصارو خبرے آورولے او ماته ئے فرمائیل' چه ستا قوم (انصارو) په فلانئے ورځ داسے او کړل' اوپه فلانئے ورځ ئے داسے اوکړل.

## بَـابُ ۱۴۴۱: اَلْقَسَامَةُ فِي الْجَاهِلِيَّةِ.

## باب ۱۴۴۱: دَ جاهلیت دور کښې دَ قسامت (قسم ورکولو) بیان.

**ف**: قسامت دے ته وائي' چه یو محله یا کلي کښې یو داسے قتل شوے سړے بیامندے شي' چه دَ هغهٔ دَ قاتل پته نهٔ لږي' نو دَ هغے محلے یا دَ کلي دَ څهٔ خلقو نه دَ دے خبرے قسم آخستلے شي' چه مونږ نهٔ دے قتل کړے' او نهٔ دَ دهٔ قاتل راته معلوم دے.

**۱۰۳۲**: حَدَّثَنَا اَبُوْ مَعْمَرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ حَدَّثَنَا قَطَنٌ اَبُو الْهَيْثَمِ حَدَّثَنَا اَبُوْ يَزِيْدَ الْمَدَنِيُّ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ اِنَّ اَوَّلَ قَسَامَةٍ كَانَتْ فِي الْجَاهِلِيَّةِ لَفِيْنَا بَنِيْ هَاشِمٍ كَانَ رَجُلٌ مِنْ بَنِيْ هَاشِمٍ اسْتَأْجَرَهُ رَجُلٌ مِنْ قُرَيْشٍ مِنْ فَخِذٍ اُخْرٰى فَانْطَلَقَ مَعَهُ فِيْ اِبِلِهِ فَمَرَّ رَجُلٌ بِهِ مِنْ بَنِيْ هَاشِمٍ قَدِ انْقَطَعَتْ عُرْوَةُ جُوَالِقِهِ فَقَالَ اَغِثْنِيْ بِعِقَالٍ اَشُدُّ بِهِ عُرْوَةَ جُوَالِقِيْ لَا تَنْفِرُ الْاِبِلُ فَاَعْطَاهُ عِقَالًا فَشَدَّ بِهِ عُرْوَةَ جُوَالِقِهِ فَلَمَّا نَزَلُوْا عُقِلَتِ الْاِبِلُ اِلَّا بَعِيْرًا وَاحِدًا فَقَالَ الَّذِيْ

**۱۰۳۲**: ابو معمر. عبدالوارث. قطن. ابوالهیثم. ابو یزید مدني. عکرمه نه روایت کوي' حضرت ابن عباس اوفرمائیل دَ جاهلیت دور کښې دَ ټولونه وړمبے قسامت بنو هاشم کښې اوشو (دَ هغے واقعه داسے وه چه) یو هاشمي سړے دَ قریشو دَ یو بل شاخ سړي په مزدورئ اوساتلو' هغه' هغهٔ سره دَ هغه اوښانو کښې تلو' چه یو بل هاشمي پرے تیر شولو' چه دَ هغهٔ دَ غلے دَ بورئ خوله پرانستے شوے وه (یعني دَ خولے دَ بندولو رسئ ئے وه' تړونے ئے شلیدلے وو) نو هغه هاشمي مزدور ته اووے' ماله یو داسے تړونے راکړه چه هغے سره دَ خپلے بورئ خوله بنده کړم (اوتړم) چه اوښ هم اونه تښتي' څما مدد وکړه. نو یوه رسئ (یا سوتلئے) ئے ورله ورکړله' چه هغے سره ئے دَ خپلے بورئ خوله او تړله (او لاړلو) هر کله چه هغے خلقو پړاؤ واچولو' نو سوا دَ یو اوښ نه ټول اوتړلے شو' نو هغے قریشي چه هاشمي ئے په مزدوري لږولے وو' (هاشمي ته اووے) څهٔ وجه ده' چه دا اُوښ دَ نورو اوښانو په شان تړلے شوے نهٔ دے. هغهٔ جواب ورکهٔ' دَ دے پړے

اسْتَأْجَرَهُ مَا شَأْنُ هٰذَا الْبَعِيْرِ
لَمْ يُعْقَلْ مِنْ بَيْنِ الْإِبِلِ قَالَ
لَيْسَ لَهُ عِقَالٌ قَالَ فَأَيْنَ
عِقَالُهُ قَالَ فَحَذَفَهُ بِعَصًا
كَانَ فِيْهَا أَجَلُهُ فَمَرَّ بِهٖ رَجُلٌ
مِنْ أَهْلِ الْيَمَنِ فَقَالَ أَتَشْهَدُ
الْمَوْسِمَ قَالَ مَا أَشْهَدُ وَ
رُبَمَا شَهِدْتُهُ قَالَ هَلْ أَنْتَ
مُبْلِغٌ عَنِّيْ رِسَالَةً مَرَّةً مِنَ الدَّهْرِ قَالَ
نَعَمْ قَالَ فَكُنْتَ إِذَا أَنْتَ
شَهِدْتَ الْمَوْسِمَ فَنَادِيَا آلَ
قُرَيْشٍ فَإِذَا أَجَابُوْكَ فَنَادِيَا آلَ
بَنِيْ هَاشِمٍ فَإِنْ أَجَابُوْكَ فَسْئَلْ
عَنْ أَبِيْ طَالِبٍ فَأَخْبِرْهُ أَنَّ
فُلَانًا قَتَلَنِيْ فِيْ عِقَالٍ وَّ مَاتَ
الْمُسْتَأْجَرُ فَلَمَّا قَدِمَ الَّذِيْ
اسْتَأْجَرَهُ أَتَاهُ أَبُوْ طَالِبٍ قَالَ مَا
فَعَلَ صَاحِبُنَا قَالَ مَرِضَ فَأَحْسَنْتُ
الْقِيَامَ عَلَيْهِ فَوَلِيْتُ دَفْنَهُ
قَالَ قَدْ كَانَ أَهْلُ ذَاكَ مِنْكَ
فَمَكَثَ حِيْنًا ثُمَّ إِنَّ الرَّجُلَ
الَّذِيْ أَوْصٰى إِلَيْهِ أَنْ يُبَلِّغَ
عَنْهُ وَافَى الْمَوْسِمَ فَقَالَ يَا
آلَ قُرَيْشٍ قَالُوْا هٰذِهٖ قُرَيْشٌ
قَالَ يَا آلَ بَنِيْ هَاشِمٍ قَالُوْا
هٰذِهٖ بَنُوْ هَاشِمٍ قَالَ أَيْنَ

(رسۍ) نشته، هغهٔ تپوس اوکهٔ، د دهٔ رسۍ څهٔ شوله. هاشمي ورته واقعه بيان کړه په هغې هغه ډير غصه شولو ابن عباسؓ اوفرمائيل، نو قريشي هغه هاشمي (مزدور) له په کوتک داسې ګزار ورکهٔ، چه د هغهٔ د مرګ باعث شو دَ هغې هاشمي آخري سلګې وې، چه يو يمني سړے دغې خوا تيريدلو. هاشمي ورته اووے، آيا تهٔ د حج موسم کښې څے، هغهٔ اووے نه، او، بيا به څم. هاشمي ورته اووے، نو خما دَ طرف نه به څهٔ وخت، يو پيغام اورسوے، هغهٔ ورته اووے، او، ابن عباسؓ اوفرمائيل، هغهٔ اووے کله چه تهٔ موسم حج کښې لاړ شے نو آواز اوکړه چه اے آل قريش. چه هغوي تاله جواب درکړي نو آواز اوکړه چه اے آل بنو هاشم، که هغوي هم تاله جواب درکړي، نو ابو طالب معلوم کړه او هغهٔ ته دا اطلاع ورکړه، چه فلاني (قريشي) زهٔ صرف په يوې رسۍ قتل کړم. دے وئيلو سره هغه هاشمي مړ شولو، کله چه هغه قاتل مکے ته راغے نو ابو طالب ورله ورغے ورته ئې اووے چه زمونږه هغه سړے څه شو؟ هغهٔ ورته اووے، هغه ناجوړه شوے وو. ما ئې ښهٔ علاج اوکهٔ، نو هغه مړ شولو، نو ما دَ هغهٔ دَ کفن دفن بندوبست اوکړلو. ابو طالب ورته اووے، تانه هم دا توقع وه. لږه موده لا تيره شوې نهٔ وه، چه هغه سړے کوم ته چه هغې هاشمي دَ پيغام رسانۍ وصيت کړے وو، دَ حج موسم کښې راغے، نو هغهٔ اووے اے آل قريش. خلقو اووے. قريش دا دي بيا هغهٔ اووے، اے آل بني هاشم، خلقو اووے، بنو هاشم دا دي، هغهٔ اووے، ابو طالب چرته دے، خلقو ورته اووے، ابو طالب دا دے، هغهٔ ورته اووے، ماته فلاني سړي دا حکم راکړے دے، چه زهٔ تاته دَ هغهٔ پيغام

اَبُـوْ طَـالِـبٍ قَـالَ اَمَـرَنِـيْ فُلَانٌ اَنْ اُبَـلِّـغَكَ رِسَـالَةً اَنَّ فُلَانًـا قَتَـلَـهُ فِـيْ عِقَـالٍ فَـاَتَـاهُ اَبُـوْ طَـالِبٍ فَـقَـالَ لَـهُ اِخْتَرْ مِنَّا اِحْدٰى ثَلَاثٍ اِنْ شِـئْـتَ اَنْ تُـؤَدِّيَ مِـائَةً مِـنَ الْاِبِـلِ فَـاِنَّكَ قَتَـلْـتَ صَاحِبَنَـا وَ اِنْ شِـئْـتَ حَـلَفَ خَـمْـسُـوْنَ مِـنْ قَـوْمِكَ اَنَّكَ لَـمْ تَـقْتُـلْـهُ فَـاِنْ اَبَيْـتَ قَتَـلْـنَـاكَ بِـهٖ فَـاَتٰـى قَوْمَـهُ فَـقَـالُـوْا نَـحْلِفُ فَاَتَتْهُ اِمْرَاَةٌ مِنْ بَنِيْ هَـاشِـمٍ كَـانَـتْ تَـحْـتَ رَجُـلٍ مِـنْـهُـمْ قَـدْ وَلَـدَتْ لَـهٗ فَـقَـالَـتْ يَـا اَبَـا طَـالِـبٍ اُحِـبُّ اَنْ تُـجِيْـزَ اِبْـنِـيْ هٰـذَا مِـنَ الْـخَـمْـسِيْـنَ وَلَا تُـصْبِـرْ يَـمِيْـنَـهُ حَيْـثُ تُـصْبَـرُ الْاَيْـمَـانُ فَـفَـعَـلَ فَـاَتَـاهُ رَجُـلٌ مِنْهُمْ فَـقَـالَ يَـا اَبَـا طَـالِـبٍ اَرَدْتَّ خَـمْسِيْـنَ رَجُلًا اَنْ يَـحْـلِفُوْا مَكَـانَ مِـائَةٍ مِـنَ الْاِبِـلِ يُـصِيْـبُ كُـلَّ رَجُـلٍ بَعِيْرَانِ هٰذَانِ بَعِيْرَانِ فَاقْبَلْهُمَا عَنِّـيْ وَلَا تُـصْبِرْ يَمِيْنِيْ حَيْثُ تُصْبَرُ الْاَيْـمَـانُ فَـقَبِلَـهُـمَـا وَ جَـاءَ ثَـمَـانِيَةٌ وَّ اَرْبَـعُـوْنَ فَـحَـلَـفُوْا قَـالَ ابْنُ عَبَّـاسٍؓ فَـوَالَّـذِيْ نَـفْسِيْ بِيَدِهٖ مَا حَالَ الْحَوْلُ وَمِنَ الثَّمَانِيَةِ وَ اَرْبَعِيْنَ عَيْنٌ تَطْرِفُ.

اُورسوم' چه فلاني سړي هغه صرف په يوه رسۍ وژلے دے' ابو طالب هغې قاتل له ورغے' او هغۀ ته ئې اووے' خمونږ دَ طرف نه په درے خبرو کښې يوه خبره ځان دَ پاره اختيار کړه' که تۀ غواړے' نو سل اوښان دَ ديت (خون بها) ادا کړه' ځکه چه تا خمونږ سړے قتل کړے دے' او که تۀ غواړے' نو ستا دَ قوم پنځوس سړي دے دَ دے خبرے قسم اوخوري' چه تا هغۀ نۀ دے قتل کړے' او که دے کښې دا درته منظوره نۀ وي' نو مونږ به دَ دے بدله کښې تا قتلو' هغه سړے خپل قوم له ورغے' نو قوم ورته اووے' مونږ به قسم اوخورو' بيا يو هاشمي ښځه چه دَ هغې خاندان دَ يو سړي په نکاح کښې وه' او ورسره يو بچے هم وو' راغله' او وئيلے' اے ابو طالب' زۀ غواړم' چه تۀ ځما دا بچے منجمله دَ پنځوس سړو معاف کړے' او دۀ نه قسم مۀ اخله کوم ځائے چه قسمونه اخستے شي (يعني دَ رکن او مقام مينځ کښې) ابو طالب (دا خبره) منظوره کړه بيا ابو طالب ته دَ هغوي نه يو بل سړے راغے' او هغۀ اووے. اے ابو طالب' تۀ دَ سلو اُوښانو بدله کښې دَ پنځوسو سړو نه قسم اخستل غواړے (په دے لحاظ دَ هر سړي په حصه کښې دوه اُوښان راغلل' نو دا دوه اوښان ځما دَ طرف نه منظور کړه' او مانه دِے ځائے کښې قسم مۀ اخله. ابو طالب دا هم منظوره کړه' دوه اوښان ئې ترے واخستل' او اته څلويښت کسانو قسم اوخوړلو. ابن عباسؓ فرمائي' په هغه ذات مِ دے قسم وي' دَ چا قبضه کښې چه ځما ساه ده' يو کال پس هغې اته څلويښت کسانو کښې يو هم بچ! نۀ شولو.

١. که چرے په يوے محله يا کلي وغيره کښې څوک سړے مړ پروت بيامونتے شي' د قاتل هيڅ پته

نه لګي اونـۀ د هغۀ باره کښې د صحيح معلوماتو حاصلولو ذرائع موجود وي نو په داسې صورت کښې د دغه محلې د يو لوئې شمار خلقونه ددې خبرې قسم اخستې کيږي چه د هغوئ په دې قتل کښې هيڅ حصه نيشته او نه هغوئ ته ددې باره کښې څه معلومات شته. ذَ قسامه کومه طريقه چه د جاهليت په دَور کښې رائج وه، اسلام په هغې کښې د څه ترميم نه بغير هغه باقي اولرله، ذَ احنافو همدا رائې ده.

۱۰۳۳ : حَدَّثَنِي عُبَيْدُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ يَوْمُ بُعَاثَ يَوْمًا قَدَّمَهُ اللّٰهُ لِرَسُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَدِمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدِ افْتَرَقَ مَلَؤُهُمْ وَ قُتِلَتْ سَرَوَاتُهُمْ وَ جُرِحُوْا قَدَّمَهُ اللّٰهُ لِرَسُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ دُخُوْلِهِمْ فِي الْاِسْلَامِ وَ قَالَ ابْنُ وَهْبٍ اَخْبَرَنَا عَمْرٌو عَنْ بُكَيْرِ بْنِ الْاَشَجِّ اَنَّ كُرَيْبًا مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ حَدَّثَهُ اَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ قَالَ لَيْسَ السَّعْيُ بِبَطْنِ الْوَادِيْ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ سُنَّةٌ اِنَّمَا كَانَ اَهْلُ الْجَاهِلِيَّةِ يَسْعَوْنَهَا وَ يَقُوْلُوْنَ لَا نُجِيْزُ الْبَطْحَاءَ اِلَّا شَدًّا.

۱۰۳۳ : عبيد بن اسماعيل. ابو اسامه. هشام. ذَ هغۀ پلار. بي بي عائشې نه روايت كوي، هغه فرمائي، ذَ جنګ بعاث ورځ اللّٰه تعالیٰ ذَ خپل رسول ذَ فائدې ذَ پاره ذَ مخکښې نه مقرر کړې وه. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم چه كوم وخت مدينې ته تشريف راوړلو، نو ذَ هغوي په جماعتونو کښې بې اتفاقي خوره شوې وه. ذَ هغوي سرداران وژلې شوې وو، او (څه) زخمي شوې وو. اللّٰه تعالیٰ هغه ورځ ذَ خپل رسول اكرم صلي اللّٰه عليه وسلّم ذَ فائدې ذَ پاره ذَ مخکښې نه متعين کړې وه، چه هغوي به اسلام کښې داخليږي او ابن وهب، عمرو، بكير بن اشج، ذَ حضرت ابن عباسؓ آزاد كرده غلام كريب، حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي، هغۀ اوفرمائيل، ذَ صفا او مروه مينځ ذَ وادي بطن کښې منډې وهل سنت نه دي، بلکه ذَ جاهليت زمانه کښې خلقو به دې کښې منډې وهلې، او وئيل به ئې، چه مونږ به ذَ بطحاء نه په منډه تيريږو.

**ف:** بطحاء: ذَ زمکې زوړ نوم. ذَ مکې معظمې وادي. کاڼريجنه ناله. يثرب: ذَ مدينې زوړ نوم کوم ځائې چه ذَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم مزار مبارک دې.

۱۰۳۴ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ الْجُعْفِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ اَخْبَرَنَا مُطَرِّفٌ سَمِعْتُ اَبَا السَّفَرِ يَقُوْلُ سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا يَقُوْلُ يَا

۱۰۳۴ : عبداللّٰه بن محمد. جعفي. سفيان. مطرف. ابوالسفر نه روايت دې. ما ذَ حضرت ابن عباسؓ نه واوريدل، هغۀ فرمائيل، اې خلقو، خما خبره واورئې، او خپله خبره ماته واوروئې، او

اَيُّهَا النَّاسُ اسْمَعُوْا مِنِّيْ مَا اَقُوْلُ لَكُمْ وَ اَسْمِعُوْنِيْ مَا تَقُوْلُوْنَ وَلَا تَذْهَبُوْا فَتَقُوْلُوْا قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ مَنْ طَافَ بِالْبَيْتِ فَلْيَطُفْ مِنْ وَّرَآءِ الْحِجْرِ وَلَا تَقُوْلُوْا الْحَطِيْمِ فَاِنَّ الرَّجُلَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ كَانَ يَحْلِفُ فَيُلْقِيَ سَوْطَهُ اَوْ نَعْلَهُ اَوْ قَوْسَهُ.

بغیر پوهیدو مه ځئ، چه وائے به، ابن عباسؓ دا اووے او دا اووے (یاد لرے) څوک چه دَ بیت اللّٰه طواف اوکړي، نو دَ حجر (حطیم) دَ شا، نه دے کوي، او دا مه وائے چه حطیم دَ کعبے نه خارج دے. دے ته حطیم ځکه وائي، چه دَ جاهلیت زمانه کښې به چا قسم خوړلو، نو دلته به ئے خپله کوړه، پنړے یا لینده غورځوله۱.

۱. د عربو عادت وو چه کله به ورته په څه اهمه معامله کښې ثبوت ملاؤ نشو او قسم خوړل به شُو نو دغلته به راتلل او قسم به ئے خوړلو او د هغے د ثبوت په طور به ئے دغلته څه څیز غورزولو، او هغه به ئے تر هغه وخته پورے نه اوچتولو تر څو پورے به چه د هغوئ د قسم صحیح کیدل ثابت شوي نه وؤ. او په همدے وجه دے حصے ته حطیم وائي. ابن عباسؓ د حطیم د همدے مناسبت تر مخه دے ته د حطیم وئیلو نه منع کړے وه لیکن اُمت په دے سلسله کښې د ابن عباسؓ پیروي اونه کړه او بغیر د څه نکیر نه خلق لګیا دي دے ته حطیم وائي.

۱۰۳۵: حَدَّثَنَا نُعَيْمُ بْنُ حَمَّادٍ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ عَنْ حُصَيْنٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُوْنٍ قَالَ رَاَيْتُ فِي الْجَاهِلِيَّةِ قِرْدَةً اِجْتَمَعَ عَلَيْهَا قِرَدَةٌ قَدْ زَنَتْ فَرَجَمُوْهَا فَرَجَمْنٰهَا مَعَهُمْ.

۱۰۳۵: نعیم بن حماد. هشیم. حصین. عمرو بن میمون نه روایت کوي، هغه وائي، ما دَ جاهلیت زمانه کښې یوه بیزو (بندر) چه زنا، ئے کړے، اولیده چه ډیرے بیزو ګانے هغے ته راجمع شوے وے. او هغے تولو هغه سنګسار کړه، ماهم هغوي سره هغه سنګسار کړه.

۱۰۳۶: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ سَمِعَ ابْنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ خِصَالٌ مِنْ خِصَالِ الْجَاهِلِيَّةِ اَلطَّعْنُ فِي الْاَنْسَابِ وَالنِّيَاحَةُ وَ نَسِيَ الثَّالِثَةَ قَالَ سُفْيٰنُ وَ يَقُوْلُوْنَ اِنَّهَا اَلْاِسْتِسْقَاءُ بِالْاَنْوَاءِ.

۱۰۳۶: علي بن عبداللّٰه. سفیان. عبیداللّٰه نه روایت کوي، چه دَ حضرت ابن عباسؓ نه مِ واوریدل، دَ چا په نسب کښې طعنه زنې کول او په مړي سیندے (ویر کول) وئیل دَ جاهلیت خصلت دے، دریمه خبره دَ عبیداللّٰه نه هیره شوه. سفیان اووے، خلق وائي، چه هغه دریمه خبره دَ ستورو په سبب دَ باران وریدل دي.

## بَاب ۴۴۲: مَبْعَثِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُحَمَّدُ بْنُ

## باب ۴۴۲: دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم دَ بعثت بیان، او محمد (صلي اللّٰه علیه

عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلَبِ بْنِ هَاشِمِ بْنِ عَبْدِ مُنَافِ ابْنِ قُصَيِّ بْنِ كِلَابِ بْنِ مُرَّةَ بْنِ كَعْبِ بْنِ لُؤَيِّ بْنِ غَالِبِ بْنِ فِهْرِ بْنِ مَالِكِ بْنِ النَّضْرِ بْنِ كِنَانَه بْنِ خُزَيْمَةَ بْنِ مُدْرِكَةَ بْنِ اِلْيَاسِ بْنِ مُضَرَ بْنِ نَزَارِ بْنِ مَعَدِّ بْنِ عَدْنَانٍ.

وسلّم) بن عبدالله بن عبدالمطلب بن هاشم بن عبد مناف بن قصي بن كلاب بن مره بن كعب بن لوي بن غالب بن فهر بن مالک بن نضر بن كنانه بن خزيمه بن مدركه بن الياس بن مضر بن نزار بن معد بن عدنان.

ف: بعثت: ذَ حق ذَ تبليغ ذَ پاره د حضور صلي الله عليه وسلّم مقرريدل. ذَ رسالت د اعلان د پاره ماموريدل، رسالت، پيغمبري، ذَ پيغمبر راستولے كيدل، ذَ رسالت زمانه يا مُوده خصوصا د حضور صلي الله عليه وسلّم.

۱۰۳۷ : حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ اَبِيْ رَجَاءٍ حَدَّثَنَا النَّضْرُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ اُنْزِلَ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ ابْنُ اَرْبَعِيْنَ فَمَكَثَ ثَلٰثَ عَشَرَةَ سَنَةً ثُمَّ اُمِرَ بِالْهِجْرَةِ فَهَاجَرَ اِلَى الْمَدِيْنَةِ فَمَكَثَ بِهَا عَشْرَ سِنِيْنَ ثُمَّ تُوُفِّيَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۱۰۳۷ : احمد بن رجاء. نضر. هشام. عكرمه. حضرت ابن عباسؓ نه روايت كوي، هغه فرمائي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم باندے ذَ څلويښتو كالو په عمر كښې وحي نازلے شوے. حضورؐ مكه كښې ذَ نبوت نه پس ديارلس كاله پاتے شو. بيا حضورؐ ته ذَ هجرت حكم اوشو، او هلته لس كاله وو. بيا حضور صلي الله عليه وسلّم وفات شولو.

باب ۴۴۳ : مَا لَقِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَصْحَابُهٗ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ بِمَكَّةَ.

باب ۴۴۳ : رسول الله صلي الله عليه وسلّم او ذَ حضورؐ اصحابوؓ ته ذَ مشركينو ذَ لاسه ذَ تكليفونو رسيدو بيان.

۱۰۳۸ : حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ حَدَّثَنَا بَيَانٌ وَاِسْمَاعِيْلُ قَالَا سَمِعْنَا قَيْسًا يَقُوْلُ سَمِعْتُ خَبَّابًا يَقُوْلُ اَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مُتَوَسِّدٌ بُرْدَةً وَهُوَ فِيْ

۱۰۳۸ : حميدي. سفيان. بيان. او اسماعيل. قيس نه روايت كوي، حضرت خباب اوفرمائيل، زهٔ رسول الله صلي الله عليه وسلّم له راغلم، حضورؐ هغه وخت ذَ كعبے په سوري كښې خپل څادر سره ډډه وهلے ناست وو، مونږ ته ذَ مشركينو ذَ طرف نه ډير تكليف رسيدلے وو، ما عرض اوكهٔ، تاسوٌ دُعا ولے نهٔ كوئے،

ظِلِّ الْكَعْبَةِ وَقَدْ لَقِيْنَا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ شِدَّةً فَقُلْتُ اَلَا تَدْعُو اللّٰهَ فَقَعَدَ وَهُوَ مُحْمَرٌّ وَجْهُهٗ فَقَالَ لَقَدْ كَانَ مَنْ قَبْلَكُمْ لَيُمْشَطُ بِمَشَاطِ الْحَدِيْدِ مَا دُوْنَ عِظَامِهٖ مِنْ لَحْمٍ اَوْ عَصَبٍ مَا يَصْرِفُهٗ ذٰلِكَ عَنْ دِيْنِهٖ وَ يُوْضَعُ الْمِنْشَارُ عَلٰى مَفْرَقِ رَأْسِهٖ فَيُشَقُّ بِاثْنَيْنِ مَا يَصْرِفُهٗ ذٰلِكَ عَنْ دِيْنِهٖ وَلَيُتِمَّنَّ اللّٰهُ هٰذَا الْاَمْرَ حَتّٰى يَسِيْرَ الرَّاكِبُ مِنْ صَنْعَاءَ اِلٰى حَضْرَ مَوْتَ مَا يَخَافُ اِلَّا اللّٰهَ زَادَ بَيَانٌ وَالذِّئْبَ عَلٰى غَنَمِهٖ.

حضورٌ چه دا واوریدل، نیغ کیناستلو، او دَ حضورٌ مخ مبارک سُر شولو. بیا حضور اوفرمائیل ستاسو نه مخکښ داسے خلق وو، چه دَ هغوي په هډوکو به دَ غوښے یا پټو (پټهوں) نه لاندے دَ اوسپنے گومنزے راښکلے شو، خو دے شدید تکلیف هم هغوي دَ دین نه آړولے نهٔ شو، او دَ بعضو سر به په مینځ په آرے دوه ټکړے کولے شو. بیا هم دے څیز هغوي دَ خپل دین نه بیرته کولے نهٔ شو، او په خدائے چه اللّٰه تعالٰي به دا دین کامل کړي، حتٰي چه یو سور (سوار) به دَ صنعاء نه حضر موت پورے (دغه شان بے خوفه) سفر کوي، چه دَ اللّٰه تعالٰي نه سِوا به ئے دَ بل چا نه ویره نه وي. بیان دا الفاظ هم زیات روایت کړے دي، چه په خپلو چیلو به ورسره دَ شرمخ خوف، وي.

۱۰۳۹ : حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنِ الْاَسْوَدِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَرَأَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّجْمَ فَسَجَدَ فَمَا بَقِيَ اَحَدٌ اِلَّا رَجُلٌ رَأَيْتُهٗ اَخَذَ كَفًّا مِنْ حَصًا فَرَفَعَهٗ فَسَجَدَ عَلَيْهِ وَ قَالَ هٰذَا يَكْفِيْنِيْ فَلَقَدْ رَأَيْتُهٗ بَعْدُ قُتِلَ كَافِرًا بِاللّٰهِ.

۱۰۳۹ : سلیمان بن حرب. شعبه. ابو اسحاق. اسود. حضرت عبداللّٰهؓ نه روایت کوي، هغه فرمائي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم سورۀ نجم اولوست، بیا حضورٌ سجدۀ تلاوت ادا کړله، نو حضورٌ سره ټولو خلقو سجده اوکړله، خو ما یو سړے اولید، چه لاس کښ ئے څو کنکر اوچت کړل، او په هغے ئے سجده اوکړه، او وئیلے، ماله دا کافي ده، ما هغے نه پس اولیدل، چه هغه دَ کفر حالت کښ قتل شو.

۱۰۴۰ : حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُوْنٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ

۱۰۴۰ : محمد بن بشار. غندر. شعبه. ابو اسحاق. عمرو بن میمون. حضرت عبداللّٰهؓ نه روایت کوي، هغه فرمائي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم په سجده کښ وو، او دَ حضورٌ نه چاپیره

بَيْنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَاجِدٌ وَ حَوْلَهُ نَاسٌ مِنْ قُرَيْشٍ جَاءَ عُقْبَةُ ابْنُ اَبِيْ مُعَيْطٍ بِسَلٰى جَزُوْرٍ فَقَذَفَهُ عَلٰى ظَهْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يَرْفَعْ رَاْسَهُ فَجَاءَتْ فَاطِمَةُ عَلَيْهَا السَّلَامُ فَاَخَذَتْهُ مِنْ ظَهْرِهٖ وَدَعَتْ عَلٰى مَنْ صَنَعَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَللّٰهُمَّ عَلَيْكَ الْمَلَاَ مِنْ قُرَيْشٍ اَبَا جَهْلِ ابْنِ هِشَامٍ وَ عُتْبَةَ بْنِ رَبِيْعَةَ وَشَيْبَةَ بْنَ رَبِيْعَةَ وَ اُمَيَّةَ ابْنَ خَلْفٍ اَوْ اُبَيَّ ابْنَ خَلْفٍ شُعْبَةُ الشَّاكُّ فَرَاَيْتُهُمْ قُتِلُوْا يَوْمَ بَدْرٍ فَاُلْقُوْا فِيْ بِئْرٍ غَيْرَ اُمَيَّةَ اَوْ اُبَيٍّ تَقَطَّعَتْ اَوْصَالُهٗ فَلَمْ يُلْقَ فِي الْبِئْرِ.

دَ قريشو څه خلق هم وو، دے کښې عقبه بن ابي معيط دَ يو ذبح شوي اوښ ګند بلا (لرے کولمے، پيټه) راوړل او هغه ئے دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم په شا کيښودل، نو حضورؐ دَ هغے په وجه خپل سر اوچت نۀ کړلو. بيا بي بي فاطمهؓ راغله او هغه ئے دَ حضورؐ دَ شا، نه لرے کړل، او دے حرکت کونکي ته ئے بددُعا شروع کړله بيا رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل اے خدايه، دَ قريشو جماعت اُونيسے، يعني ابوجهل بن هشام، عتبه بن ربيعه، شيبه بن ربيعه او اُميه بن ربيعه يا ابي بن خلف، دے کښې شعبه ته شک دے، نو ما دا ټول جنګ بدر کښې قتل شوي اوليدل، دوي په يو کوهي کښې غرخولے شوي وو، علاوه دَ اُميه يا اُبي نه، چه دَ هغه جوړ جوړ جدا وو. په دے وجه هغه کوهي کښې اُونۀ غرخولے شو.

۱۰۴۱ : حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا جَرِيْرٌ عَنْ مَنْصُوْرٍ حَدَّثَنِيْ سَعِيْدُ بْنُ جُبَيْرٍ اَوْ قَالَ حَدَّثَنِي الْحَكَمُ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ اَمَرَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ اَبْزٰى قَالَ سَلِ ابْنَ عَبَّاسٍ عَنْ هَاتَيْنِ الْاٰيَتَيْنِ مَا اَمْرُهُمَا وَلَا تَقْتُلُوا النَّفْسَ الَّتِيْ حَرَّمَ اللّٰهُ وَمَنْ يَّقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا فَسَاَلْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ فَقَالَ لَمَّا اُنْزِلَتِ الَّتِيْ فِي الْفُرْقَانِ

۱۰۴۱ : عثمان بن ابي شيبه. جرير. سعيد بن جبير يا حکم. سعيد بن جبير نه روايت کوي، هغه وائي، ماته عبدالرحمٰن بن ابزي دَ دے خبرے حکم راکه، چه ابن عباسؓ نه دَ دے دوو آيتونو باره کښې معلوم کړم، چه دَ دے خبرے حکم راکه، چه ابن عباسؓ نه دَ دے دوو آيتونو باره کښې معلوم کړم، چه دَ دے څۀ مطلب دے (آيت) او هغه نفس مۀ قتلوئے چه دَ هغے قتل اللّٰه تعالٰي حرام کړے دے. او (آيت) او څوک چه يو مومن قصدًا قتل کړي، ما د ابن عباسؓ نه دريافت اوکۀ، هغۀ اوفرمائيل، کوم وخت چه سورۀ فرقان واله آيت نازل شولو، نو مشرکين مکه اووے مونږ دَ اللّٰه حرام کړے

قَالَ مُشْرِكُوا اَهْلِ مَكَّةَ فَقَدْ قَتَلْنَا النَّفْسَ الَّتِيْ حَرَّمَ اللّٰهُ وَ دَعَوْنَا مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ وَقَدْ اَتَيْنَا الْفَوَاحِشَ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ اِلَّا مَنْ تَابَ وَ اٰمَنَ الْاٰيَةَ فَهٰذِهٖ لِاُولٰٓئِكَ وَ اَمَّا الَّتِيْ فِي النِّسَاءِ الرَّجُلُ اِذَا عَرَفَ الْاِسْلَامَ وَ شَرَائِعَهٗ ثُمَّ قَتَلَ فَجَزَاءُهٗ جَهَنَّمُ فَذَكَرْتُهٗ لِمُجَاهِدٍ فَقَالَ اِلَّا مَنْ نَدِمَ.

نفس هم قتل كړ، الله سره مو بل معبود اوبللهٔ (دَ هغهٔ عبادت مو هم اوكړهٔ) او مونږ نورے هم خرابے خبرے كړے دي، نو الله تعالى دا آيت نازل كړلو: خو څوک چه توبه كړي او ايمان راوړي، نو دا آيت دَ هغهٔ په حق كښې دے. او دَ سورهٔ نساء واله آيت مطلب دا دے، هر كله چه انسان اسلام او دَ هغے شريعت اوپيژني. بيا قتل اوكړي، نو دَ هغهٔ سزا جهنم ده. ما دا مجاهد ته بيان اوكړهٔ، نو هغهٔ اووے، او، خو كوم سړے چه توبه كړي، نو هغه دَ دے نه مستثنى دے.

۱. د ړومبي آيت نه د توبے نه پس د معافئ او دَ دويم آيت نه مطلقًا د جزا دَ وجوب ثبوت كيږي نو په دے دواړو كښے د موافقت څه صورت كيدے شي؟

۲ ۴ ۰ ۱ : حَدَّثَنَا عَيَّاشُ بْنُ الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا الْوَلِيْدُ بْنُ مُسْلِمٍ حَدَّثَنِيْ الْاَوْزَاعِيُّ حَدَّثَنِيْ يَحْيَى بْنُ اَبِيْ كَثِيْرٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اِبْرَاهِيْمَ التَّيْمِيِّ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُرْوَةُ ابْنُ الزُّبَيْرِ قَالَ سَأَلْتُ ابْنَ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ اَخْبِرْنِيْ بِاَشَدِّ شَيْءٍ صَنَعَهُ الْمُشْرِكُوْنَ بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ فِيْ حِجْرِ الْكَعْبَةِ اِذْ اَقْبَلَ عُقْبَةُ بْنُ اَبِيْ مُعَيْطٍ فَوَضَعَ ثَوْبَهٗ فِيْ عُنُقِهٖ فَخَنَقَهٗ خَنْقًا شَدِيْدًا فَاَقْبَلَ اَبُوْبَكْرٍ حَتّٰى اَخَذَ بِمَنْكِبِهٖ وَ دَفَعَهٗ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَتَقْتُلُوْنَ رَجُلًا اَنْ يَقُوْلَ

۲ ۴ ۰ ۱ : عياش بن وليد. وليد بن مسلم. اوزاعي. يحيى بن ابي كثير. محمد بن ابراهيم تيمي. عروه بن زبير نه روايت كوي، هغه وائي، ما دَ عمرو بن العاص نه دريافت اوكړهٔ، چه دَ ټولو نه سخته خبره چه مشركينو رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره كړے وه، هغه ماته اوبنايه، هغهٔ اووے، واوره، يوه ورځے رسول الله صلي الله عليه وسلّم حطيم كعبه كښې مونځ كولو. دے كښې عقبه بن ابي معيط راغے، دَ حضورؐ په گردن كښې ئے كپړه واچوله، او زور سره ئے مرئ تا ووهله، نو حضرت ابوبكرؓ مخے ته ورغے، دَ هغهٔ متے ئے اونيولے، او هغه ئے دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه ليرته كړلو. او وے فرمائيل، آيا تاسو يو داسے سړے قتلوئے چه وائي خما رب الله دے. الآية، ابن اسحاق ددے متابع حديث

نَبِيِّ اللّٰهُ الْآيَةَ تَابَعَهُ ابْنُ إِسْحَاقَ حَدَّثَنِي يَحْيَى ابْنُ عُرْوَةَ عَنْ عُرْوَةَ قُلْتُ لِعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ عَبْدَةُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ أَبِيهِ قِيلَ لِعَمْرِو بْنِ الْعَاصِ وَ قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو عَنْ أَبِي سَلَمَةَ حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ الْعَاصِ.

بيان كړے دے. يحيي بن عروه. عروه نه روايت كوي، هغه وائي: ما عبدالله بن عمرؓ ته اووے. (دويم سند) عبده. هشام. ذ هغه ذ پلار نه روايت دے، چه عمرو بن العاص ته اووئيلے شو (دريم سند) محمد بن عمرو. ابو سلمه نه روايت دے، چه ماته عمرو بن العاص حديث بيان كه.

## باب ۴۴۴: إِسْلَامِ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ.

## باب ۴۴۴: ذَ حضرت ابوبكرؓ ذ اسلام بيان.

۱۰۴۳: حَدَّثَنِي عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ حَمَّادٍ الْآمُلِيُّ قَالَ حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ مُعِينٍ حَدَّثَنَا إِسْمٰعِيلُ ابْنُ مُجَالِدٍ عَنْ بَيَانٍ عَنْ وَبْرَةَ عَنْ هَمَّامِ بْنِ الْحٰرِثِ قَالَ قَالَ عَمَّارُ بْنِ يَاسِرٍ رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَا مَعَهُ إِلَّا خَمْسَةُ أَعْبُدٍ وَامْرَأَتَانِ وَ أَبُو بَكْرٍ.

۱۰۴۳: عبدالله بن حماد آملي. يحيي بن معين. اسماعيل بن مجالد. بيان. وبره. همام بن حارث نه روايت كوي. حضرت عمار بن ياسر اوفرمائيل، ما رسول الله صلي الله عليه وسلم اوليدلو، چه حضورؐ سره پنځه غلامان، دوه ښځے او حضرت ابوبكرؓ وو (چه اسلام ئے راوړے وو).

## باب ۴۴۵: إِسْلَامِ سَعْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ.

## باب ۴۴۵: ذَ حضرت سعد ذَ اسلام بيان.

۱۰۴۴: حَدَّثَنِي إِسْحٰقُ أَخْبَرَنَا أَبُو أُسَامَةَ حَدَّثَنَا هَاشِمٌ قَالَ سَمِعْتُ سَعِيدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا إِسْحٰقَ سَعْدَ بْنَ أَبِي وَقَّاصٍ يَقُولُ مَا أَسْلَمَ أَحَدٌ إِلَّا فِي الْيَوْمِ الَّذِي أَسْلَمْتُ فِيهِ وَلَقَدْ مَكَثْتُ سَبْعَةَ أَيَّامٍ وَإِنِّي لَثُلُثُ الْإِسْلَامِ.

۱۰۴۴: اسحاق. ابو اسامه. هاشم. سعيد بن مسيب نه روايت دے، هغه فرمائي، ما ذ ابو اسحاق سعد بن ابي وقاص نه واوريدل، هيچا اسلام راونه ړلو، خو په هغه ورځ چه ما اسلام راوړلو، او زهٔ اوو ورځو پورے اسلام كښ دريم سړے ووم.

## باب ۴۴۶: ذِكْرِ الْجِنِّ وَ قَوْلِ

## باب ۴۴۶: ذَ پيريانو (جناتو) بيان. آيت

اللّٰہِ تَعَالٰی قُلْ اُوْحِیَ اِلَیَّ اَنَّهُ اسْتَمَعَ نَفَرٌ مِّنَ الْجِنِّ.

کریمه: اے نبي ته ورته اووایه، ماته وحي شوې ده، چه د پیریانو (جناتو) یو جماعت قرآن غور سره واوریدلو.

۱۰۴۵: حَدَّثَنِیْ عُبَیْدُ اللّٰہِ بْنُ سَعِیْدٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ حَدَّثَنَا مِسْعَرٌ عَنْ مَعْنِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ قَالَ سَمِعْتُ اَبِیْ قَالَ سَأَلْتُ مَسْرُوْقًا مَنْ اٰذَنَ النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ بِالْجِنِّ لَیْلَةَ اسْتَمَعُوا الْقُرْاٰنَ فَقَالَ حَدَّثَنِیْ اَبُوْكَ یَعْنِیْ عَبْدَ اللّٰہِ اَنَّهُ اٰذَنَتْ بِهِمْ شَجَرَةٌ.

۱۰۴۵: عبیدالله بن سعید، ابو اسامه، مسعر، معن بن عبدالرحمن، د هغه د پلار نه روایت کوي، هغه فرمائي، ما د مسروق نه تپوس اوکه، رسول الله صلي الله علیه وسلم نه د پیریانو (جناتو) اطلاع په کومه شپه چه هغوي قرآن آوریدلے وو، چا ورکړله، نو هغه اوفرمائیل، ما ته ستا پلار یعني عبدالله دا بیان کړے دے، چه د هغوي اطلاع حضورؐ ته یوې اونې ورکړې وه.

۱۰۴۶: حَدَّثَنَا مُوْسَی ابْنُ اِسْمَاعِیْلَ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ یَحْیٰی بْنِ سَعِیْدٍ قَالَ اَخْبَرَنِیْ جَدِّیْ عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ اَنَّهُ كَانَ یَحْمِلُ مَعَ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اِدَاوَةً لِوُضُوْئِهٖ وَ حَاجَتِهٖ فَبَیْنَمَا هُوَ یَتْبَعُهُ بِهَا فَقَالَ مَنْ هٰذَا فَقَالَ اَنَا اَبُوْ هُرَیْرَةَ فَقَالَ اَبْغِنِیْ اَحْجَارًا اَسْتَنْفِضْ بِهَا وَلَا تَاْتِنِیْ بِعَظْمٍ وَلَا بِرَوْثَةٍ فَاَتَیْتُهُ بِاَحْجَارٍ اَحْمِلُهَا فِیْ طَرَفِ ثَوْبِیْ حَتّٰی وَضَعْتُ اِلٰی جَنْبِهٖ ثُمَّ انْصَرَفْتُ حَتّٰی اِذَا فَرَغَ مَشَیْتُ فَقُلْتُ مَا بَالُ الْعَظْمِ وَالرَّوْثَةِ قَالَ هُمَا مِنْ طَعَامِ الْجِنِّ وَ اِنَّهُ اَتَانِیْ وَفْدُ جِنِّ نَصِیْبِیْنَ وَ نِعْمَ الْجِنُّ

۱۰۴۶: موسي بن اسماعیل، عمرو بن یحیي بن سعید، د هغه نیکه (دادا) حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کوي، هغه فرمائي هغه رسول الله صلي الله علیه وسلم پسې د حضورؐ د اودس او نور حاجت د پاره یو لوښے اخستے ورستو روان وو. حضورؐ اوفرمائیل څوک دے، هغه اووے، زه ابوهریرهؓ یم، حضورؐ اوفرمائیل، ما د پاره کانړي تلاش کړه، راوړه، چه زه استنجا اوکړم، لیکن هډوکے او خاشنړه (لید) مه راوړه. ما د خپلے کپړے په یو کټ کښې کانړي اوچت کړي. حضورؐ له راغلم، حتي چه هغه م د حضورؐ په خوا کښې کیښودل. بیا زه د هغے خائے نه بیرته شوم. څه وخت چه حضورؐ فارغ شولو، زه راغلم ما عرض اوکه، هډوکي او خاشنړو (لید) کښې څه خبره ده، (چه تاسو د هغے د راوړلو نه منع فرمائیلے ده). حضورؐ اوفرمائیل، دا دواړه څیزونه د پیریانو (جناتو) خوراک دے. او ماته د نصیبین ښار نه د پیریانو یو وفد راغلے وو، او هغه څه ښه پیریان وو، هغوي ماته د

فَسَأَلُوْنِي الزَّادَ فَدَعَوْتُ اللّٰهَ لَهُمْ اَنْ لَا يَمُرُّوْا بِعَظْمٍ وَّلَا بِرَوْثَةٍ اِلَّا وَجَدُوْا عَلَيْهَا طَعَامًا.

خوراک خواهش او کړ. نو ما د اللّه تعالي نه د هغوي د پاره دعا او کړه. چه په کوم هډوکي یا خاشړو (لید) د هغوي تیریدل کیږي. نو په هغے دے خوراک بیامومي.

## بَاب ۷۴۷: اِسْلَامِ اَبِيْ ذَرٍّ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ.

## باب ۷۴۷: د حضرت ابوذر د اسلام بیان.

۱۰۴۷: حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مَهْدِيٍّ حَدَّثَنَا الْمُثَنّٰى عَنْ اَبِيْ جَمْرَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ لَمَّا بَلَغَ اَبَا ذَرٍّ مَبْعَثُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِاَخِيْهِ ارْكَبْ اِلٰى هٰذَا الْوَادِيْ فَاعْلَمْ لِيْ عِلْمَ هٰذَا الرَّجُلِ الَّذِيْ يَزْعَمُ اَنَّهٗ نَبِيٌّ يَّاْتِيْهِ الْخَبَرُ مِنَ السَّمَآءِ وَاسْمَعْ مِنْ قَوْلِهٖ ثُمَّ ائْتِنِيْ فَانْطَلَقَ الْاَخُ حَتّٰى قَدِمَهٗ وَسَمِعَ مِنْ قَوْلِهٖ ثُمَّ رَجَعَ اِلٰى اَبِيْ ذَرٍّ فَقَالَ لَهٗ رَاَيْتُهٗ يَاْمُرُ بِمَكَارِمِ الْاَخْلَاقِ وَكَلَامًا مَا هُوَ بِالشِّعْرِ فَقَالَ مَا شَفَيْتَنِيْ مِمَّا اَرَدْتُ فَتَزَوَّدَ وَحَمَلَ شَنَّةً لَهٗ فِيْهَا مَآءٌ حَتّٰى قَدِمَ مَكَّةَ فَاَتَى الْمَسْجِدَ فَالْتَمَسَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا يَعْرِفُهٗ وَكَرِهَ اَنْ يَّسْاَلَ عَنْهُ حَتّٰى اَدْرَكَهٗ بَعْضُ اللَّيْلِ اضْطَجَعَ فَرَاٰهُ عَلِيٌّ فَعَرَفَ اَنَّهٗ

۱۰۴۷: عمرو بن عباس. عبدالرحمن بن مهدي. ابو جمره. حضرت ابن عباس نه روایت کوي. هغه فرمائي. ابو ذر ته چه د رسول اللّه صلي اللّه علیه وسلم د بعثت خبر اورسید نو هغه خپل وروړته اووے چه ته لاړ شه او ماته د هغے سړی (د حالاتو او تعلیماتو) باره کښې اوښایه. چه د خپل نبي کیدو او د آسماني خبرونو د راتلو دعوی کوي. او ته د هغه خبرے واوره. بیا ماله راشه. نو د هغه وړور حضور صلي اللّه علیه وسلم له راغے. د حضور خبرے ئے واوریدے. او ابوذر ته واپس لاړلو. او هغه ته ئے اووے. چه ما هغه د ښو اخلاقو حکم ورکونکے اولید. او د هغه نه مے داسے کلام واوریدلو. چه شعر نه دے. ابوذر اووے: څه چه ما غوښتل د هغے تسلي مے او نه شوله. بیا ابوذر خپله د لارے توښه برابر کړه. او یو مشک چه هغے کښې اوبه وے. خان سره ئے واخستلو. حتي چه مکے ته راورسید. بیا جمات ته راغے او رسول اللّه صلي اللّه علیه وسلم ئے تلاش کولو. او ابوذر حضور نه پیژندلو. او چانه ئے د حضور باره کښې تپوس کول هم خوښ نه ګڼړل. حتي چه شپه شوه. او دے سملاست بیا دے حضرت علي اولیدلو. نو هغه پوهے شو چه دا څوک مسافر دے. چه دے حضرت علي اولید. نو هغه سره شولو. او دوي کښې

غَرِيبٌ فَلَمَّا رَآهُ تَبِعَهُ فَلَمْ يَسْأَلْ وَاحِدٌ مِنْهُمَا صَاحِبَهُ عَنْ شَيْءٍ حَتَّى أَصْبَحَ ثُمَّ احْتَمَلَ قِرْبَتَهُ وَزَادَهُ إِلَى الْمَسْجِدِ وَظَلَّ ذٰلِكَ الْيَوْمَ وَلَا يَرَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى أَمْسَى فَعَادَ إِلَى مَضْجَعِهِ فَمَرَّ بِهِ عَلِيٌّ فَقَالَ أَمَا نَالَ لِلرَّجُلِ أَنْ يَعْلَمَ مَنْزِلَهُ فَأَقَامَهُ فَذَهَبَ بِهِ مَعَهُ لَا يَسْأَلُ وَاحِدٌ مِنْهُمَا صَاحِبَهُ عَنْ شَيْءٍ حَتَّى إِذَا كَانَ يَوْمُ الثَّالِثِ فَعَادَ عَلِيٌّ مِثْلَ ذٰلِكَ فَأَقَامَ مَعَهُ ثُمَّ قَالَ أَلَا تُحَدِّثُنِي مَا الَّذِي أَقْدَمَكَ قَالَ إِنْ أَعْطَيْتَنِي عَهْدًا وَمِيثَاقًا لَتُرْشِدَنَّنِي فَعَلْتُ فَفَعَلَ فَأَخْبَرَهُ قَالَ فَإِنَّهُ حَقٌّ هُوَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِذَا أَصْبَحْتَ فَاتَّبِعْنِي فَإِنِّي إِنْ رَأَيْتُ شَيْئًا أَخَافُ عَلَيْكَ قُمْتُ كَأَنِّي أُرِيقُ الْمَاءَ فَإِنْ مَضَيْتُ فَاتَّبِعْنِي حَتَّى تَدْخُلَ مَدْخَلِي فَفَعَلَ فَانْطَلَقَ يَقْفُوهُ حَتَّى دَخَلَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَدَخَلَ مَعَهُ فَسَمِعَ مِنْ قَوْلِهِ وَأَسْلَمَ مَكَانَهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ

هیچا دَ یو بل نه تپوس اونهٔ که، حتٰي چه صبا شو، بیا دهٔ خپله مشکیزه او دَ لارے توښه واخسته، جمات ته راغے او ټوله ورځ هلته وو. لیکن نبي صلي اللّٰه علیه وسلّم نے اونه لیدلو، حتٰي چه ماښام بیا خپل خواب ګاه طرف ته واپس شولو. بیا حضرت عليؓ اخوا تیریدلو، نو هغهٔ اوفرمائیل، آیا اوسه پورے دے سړي ته دَ خپل کور پته نهٔ ده لګیدلے، چه هلته ئے قیام کړے وے او هغه ئے (بیا) ځان سره بوتلو، دوي کښې یو هم دَ بل نه څهٔ تپوس پښتنه اونهٔ کړه، حتٰي چه په دریمه ورځ هم حضرت علي دغسے اوکړل، او هغه ئے ځان سره ایسار کړلو. بیائے هغهٔ ته اووے، تهٔ دَ خپلو راتلو سبب ماته ولے نهٔ بنائے. ابوذرؓ ورته اووے، که تهٔ ماسره وعده او کړے چه ځما رهبري به کوے، نو زهٔ به درته حال اووایم، حضرت عليؓ ورسره عهد اوکهٔ، نو هغهٔ ورته خپله قصه بیان کړه. حضرت عليؓ ورته اووے، بیشکه هغه دَ اللّٰه په حقه رسول دے. سحر ته، تهٔ ما پسے راځه، که لار کښې ماته ستا حق کښې دَ خوف څهٔ خبره په نظر راغله، نو زهٔ به ایسار شم، او داسے به ظاهره کړم، چه زهٔ واړهٔ بول کوم. بیا که زهٔ روان شم. نو تهٔ هم ماپسے راځه، تردے چه زهٔ کوم ځائے کښې داخل شوم، نو تهٔ هم هلته داخل شه بیا حضرت عليؓ روان شو، او ابوذرؓ هغهٔ پسے روان شو، تردے چه حضرت عليؓ حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ته داخل شو، نو دے هم هغهٔ سره داخل شو، بیا ابوذرؓ دَ حضورؐ خبرے واوریدے، او هلته مسلمان شولو، هغهٔ ته حضورؐ اوفرمائیل، تهٔ خپل قوم ته واپس لاړ شه، او هغوي ته هر څهٔ بیان کړه، حتٰي چه تاته ځما غلبه معلومه شي،

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِرْجِعْ اِلٰى قَوْمِكَ فَاَخْبِرْهُمْ حَتّٰى يَأْتِيَكَ اَمْرِيْ قَالَ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَاَصْرُخَنَّ بِهَا بَيْنَ ظَهْرَانِيْهِمْ فَخَرَجَ حَتّٰى اَتَى الْمَسْجِدَ فَنَادٰى بِاَعْلٰى صَوْتِهٖ اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ اَنَّ مُحَمَّدًا رَسُوْلُ اللّٰهِ ثُمَّ قَامَ الْقَوْمُ فَضَرَبُوْهُ حَتّٰى اَضْجَعُوْهُ وَ اَتَى الْعَبَّاسُ فَاَكَبَّ عَلَيْهِ قَالَ وَيْلَكُمْ اَلَسْتُمْ تَعْلَمُوْنَ اَنَّهٗ مِنْ غِفَارٍ وَ اِنَّ طَرِيْقَ تُجَّارِكُمْ اِلَى الشَّامِ فَاَنْقَذَهٗ مِنْهُمْ ثُمَّ عَادَ مِنَ الْغَدِ لِمِثْلِهَا فَضَرَبُوْهُ وَ ثَارُوْا اِلَيْهِ فَاَكَبَّ الْعَبَّاسُ عَلَيْهِ.

هغهٔ اووے، په هغه ذات م دے قسم وي، دَ چا په قبضه کښې خما ساه ده، زهٔ خو به دَ ټولو خلقو دَ وړاندے په چغه چغه دَ دے کلمے اعلان کوم. بيا هغه بهر ته راووتلو، جمات ته راغے، او ښهٔ په اوچت آواز ئے اووے. "اشهد ان لا اله الّا اللّٰه واشهد ان محمدًا رسول اللّٰه" نو خلق پرے راپاسيدل، او هغه ئے اووهلو، حتي چه په وهلو وهلو ئے راوغرځولو. عباس راغے، او په هغه راخکته شو. هغے خلقوته ئے وئيلے، تباه شئے، تاسو ته معلومه نهٔ ده؛ چه دے دَ قبيلهٔ غفار سړے دے او ستاسو دَ سوداګرو شام ته لار په دے جانب ده، نو عباسؓ هغه دَ کفارو نه بچ کړلو. بيا په دويمه ورځ هم ابوذرؓ دغسے اوکړل، نو کفارو هغه اووهلو، او په هغه را حمله شو، بيا عباس په هغهٔ راښکته شو (او دَ کافرو نه ئے بچ کړلو).

## بَابُ ۴۴۸: اِسْلَامِ سَعِيْدِ بْنِ زَيْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ.

باب ۴۴۸: دَ حضرت سعيد بن زيد دَ اسلام بيان.

۱۰۴۸: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ اِسْمَاعِيْلَ عَنْ قَيْسٍ قَالَ سَمِعْتُ سَعِيْدَ بْنَ زَيْدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ نُفَيْلٍ فِيْ مَسْجِدِ الْكُوْفَةِ يَقُوْلُ وَاللّٰهِ لَقَدْ رَاَيْتُنِيْ وَ اِنَّ عُمَرَ لَمُوْثِقِيَّ عَلَى الْاِسْلَامِ قَبْلَ اَنْ يُسْلِمَ عُمَرُ وَلَوْ اَنَّ اُحُدًا ارْفَضَّ لِلَّذِيْ صَنَعْتُمْ بِعُثْمَانَ لَكَانَ.

۱۰۴۸: قتيبه بن سعيد. سفيان. اسماعيل. قيس نه روايت کوي، هغه وائي ما دَ سعيد بن زيد بن عمرو بن نفيل نه دَ کوفے جمات کښې واوريدل، په خدائے چه ما خپل ځان دَ حضرت عمرؓ دَ اسلام راوړلو نه مخکښې اوليد، چه هغهٔ زهٔ په اسلام دَ قائم پاتے کيدو په وجه تړونکے ووم، او که دَ هغے حرکت په وجه چه تاسو حضرت عثمانؓ سره کړے دے (يعني شهيد کول) اُحد غر هم دَ خپل ځائے نه اوخوزي، نو څهٔ بعيده[۱] نهٔ ده.

۱. ګويا حضرت سعيد رضي اللّٰه عنه د زمانے په انقلاب باندے حريان دے چه يو وخت داسے وو چه عمر رضي اللّٰه عنه لا تر هغه وخته پورے اسلام نه وو راوړے، يو مسلمان سره کوم چه د هغه عزيز او قريب هم نه وو دا قسمه طرز عمل به ئے اختيارولو، او چونکه هغه کافر وو په دے وجه هغهٔ يو مسلمان د انتقام د

جذبې په وجې سره ترلې وو. ليكن اوس د كفر او اسلام سوال پورته شو. پخپله مسلمانانو د اسلام د دعوې باوجود يو مسلمان جليل القدر صحابي مبشر بالجنة كوم چه د هغوئ امير هم دې به څومره بيدردۍ سره نې اووژلو.

## بـاب ۲۴۹: إسْلَامِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ.

باب ۲۴۹: د حضرت عمرؓ بن خطاب د اسلام بيان.

۱۰۴۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ اَبِيْ خَالِدٍ عَنْ قَيْسِ بْنِ اَبِيْ حَازِمٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ مَا زِلْنَا اَعِزَّةً مُنْذُ اَسْلَمَ عُمَرُ.

۱۰۴۹: محمد بن كثير. سفيان. اسماعيل بن ابي خالد. قيس بن ابي حازم. حضرت عبدالله بن مسعودؓ نه روايت كوي، هغه وائي: كوم وخت چه حضرت عمرؓ اسلام راوړلو، نو مونږ به برابر غالب كيدلو.

۱۰۵۰: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ وَهْبٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُمَرُ بْنُ مُحَمَّدٍ قَالَ فَاَخْبَرَنِيْ جَدِّيْ زَيْدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ بَيْنَمَا هُوَ فِي الدَّارِ خَائِفًا إِذْ جَاءَهُ الْعَاصُ بْنُ وَائِلٍ السَّهْمِيُّ اَبُوْ عَمْرٍو عَلَيْهِ حُلَّةُ حِبَرَةٍ وَّ قَمِيْصٌ مَكْفُوْفٌ بِحَرِيْرٍ وَّهُوَ مِنْ بَنِيْ سَهْمٍ وَهُمْ حُلَفَاءُ نَا فِي الْجَاهِلِيَّةِ فَقَالَ لَهُ مَا بَالُكَ قَالَ زَعَمَ قَوْمُكَ اَنَّهُمْ سَيَقْتُلُوْنِيْ اَنْ اَسْلَمْتُ قَالَ لَا سَبِيْلَ اِلَيْكَ بَعْدَ اَنْ قَالَهَا اٰمِنْتُ فَخَرَجَ الْعَاصُ فَلَقِيَ النَّاسَ قَدْ سَالَ بِهِمُ الْوَادِيْ فَقَالَ اَيْنَ تُرِيْدُوْنَ فَقَالُوْا

۱۰۵۰: يحيي بن سليمان. ابن وهب. عمر بن محمد. د هغه نيكه (دادا) زيد بن عبدالله بن عمر. حضرت ابن عمرؓ نه روايت كوي، هغه فرمائي (د اسلام راوړلو نه پس) حضرت عمرؓ خپل كور كښې خوفزده وو، چه هغه ته عاص بن وائل سهمي ابو عمر وراغې چه يوه ريښمينه جُبَه او د يو ريښمين كوټ قميص ئې اغستې وو، عاص د قبيله بنو سليم هغوئې زمانه جاهليت كښې خمونږ حليف (دوستان) وو نو عاص عمرؓ ته اووې. ستا څه حال دې هغه جواب وركړ، ستا د قوم خلق وائي، كه زه مسلمان شوم، نو هغوي به ما قتل كړي هغه ورته اووې، په تا به د چا وس نه رسي د عاص دې خبرې كولو سره حضرت عمرؓ اووې، اوس زه بې خوفه يم. بيا عاص بهر اووتلو، نو خلق ئې اوليدل، چه د مكې وادي د هغوي نه ډكه شوې ده. عاص د هغوي نه تپوس اوكه، د كوم ځائې اراده موده، هغوي ورته اووې، مونږ عمر بن خطاب له ورځو، چه د خپل دين نه اوړيدلې

نُرِيْدُ هٰذَا ابْنَ الْخَطَّابِ الَّذِيْ صَبَا قَالَ لَا سَبِيْلَ اِلَيْهِ فَكَرَّ النَّاسُ.

دے. عاص ورته اووے: په هغه ستاسو وس نشي چليدے. دے آوریدو سره ټول واپس شو.

ف: وادي: د درے د وړاندے سمه زمکه. خنګل، میره، صحرا، ژوره.

۱۰۵۱ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ قَالَ عَمْرُو بْنُ دِيْنَارٍ سَمِعْتُهُ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا لَمَّا اَسْلَمَ عُمَرُ اجْتَمَعَ النَّاسُ عِنْدَ دَارِهٖ وَ قَالُوْا صَبَا عُمَرُ وَ اَنَا غُلَامٌ فَوْقَ ظَهْرِ بَيْتِيْ فَجَاءَ رَجُلٌ عَلَيْهِ قُبَاءٌ مِنْ دِيْبَاجٍ فَقَالَ قَدْ صَبَا عُمَرُ فَمَا ذَاكَ فَاَنَا لَهٗ جَارٌ قَالَ فَرَاَيْتُ النَّاسَ تَصَدَّعُوْا عَنْهُ فَقُلْتُ مَنْ هٰذَا قَالُوا الْعَاصُ بْنُ وَائِلٍ.

۱۰۵۱ : علي بن عبدالله. سفیان. عمرو بن دینار. عبدالله بن عمرؓ نه روایت کوي: هغه فرمائي: حضرت عمرؓ چه اسلام راوړلو، نو د هغه د مکان څلور طرف ته کفار راجمع شو. او وئیل ئے: چه عمرؓ د خپل دین نه واوړیدلو (مونږ به هغه قتل کړو) زۀ هغه وخت هلک ووم، د خپل کور په چهت ولاړ ووم، بیا یو سړے ریښمینه قبا اغستے راغے، او هغۀ کافرو ته اووے: که عمرؓ د خپل دین نه واوړیدو نو څۀ اوشو، زۀ د هغه حمایتي (مددګار) یم. ابن عمرؓ اووے، ما اولیدل، چه دے آوریدو سره هغوي تس نس شولو. ما تپوس اوکۀ، دا څوک دے، نو هغوي اووے، عاص بن وائل دے.

۱۰۵۲ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِيْ ابْنُ وَهْبٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ عُمَرُ اَنَّ سَالِمًا حَدَّثَهٗ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ مَا سَمِعْتُ عُمَرَ بِشَيْءٍ قَطُّ يَقُوْلُ اِنِّيْ لَاَظُنُّهٗ كَذَا اِلَّا كَانَ كَمَا يَظُنُّ بَيْنَمَا عُمَرُ جَالِسٌ اِذْ مَرَّ بِهٖ رَجُلٌ جَمِيْلٌ فَقَالَ لَقَدْ اَخْطَاَ ظَنِّيْ اَوْ اِنَّ هٰذَا عَلٰى دِيْنِهٖ فِي الْجَاهِلِيَّةِ اَوْ لَقَدْ كَانَ كَاهِنَهُمْ عَلَيَّ الرَّجُلَ فَدُعِيَ لَهٗ فَقَالَ لَهٗ ذٰلِكَ

۱۰۵۲ : یحیي بن سلیمان. ابن وهب. عمر. سالم. حضرت عبدالله بن عمرؓ نه روایت کوي: هغه فرمائي، ما چه د حضرت عمرؓ نه د یو څیز باره کښې کله هم داسے واوریدل، خما خیال دے کښې داسے دے نو هغه به د حضرت عمرؓ د خیال مطابق وو. یو ورځ حضرت عمرؓ ناست وو، چه یو خوبصورته سړے اخوا تیر شولو نو حضرت عمرؓ اوفرمائیل یا خو خما خیال غلط دے، یا دا سړے د خپل جاهلیت په دین دے، یا کاهن دے، دا سړے ماله راولئے. هغه راوستے شو، هغه ته ئے هم دغسے اوفرمائیل، هغه اووے، ما د نن په شان هیڅ کله نۀ دي لیدلے، چه مسلمان سړي سره داسے خبره شوے وي، حضرت عمرؓ ورته اوفرمائیل، زۀ تاته قسم

فَقَالَ مَا رَأَيْتُ كَالْيَوْمِ اُسْتُقْبِلَ بِهِ رَجُلٌ مُسْلِمٌ قَالَ فَاِنِّيْ اَعْزِمُ عَلَيْكَ اِلَّا مَا اَخْبَرْتَنِيْ قَالَ كُنْتُ كَاهِنَهُمْ فِي الْجَاهِلِيَّةِ قَالَ فَمَا اَعْجَبُ مَا جَاءَتْكَ بِهِ جِنِّيَّتُكَ قَالَ بَيْنَمَا اَنَا يَوْمًا فِي السُّوْقِ جَآءَتْنِيْ اَعْرِفُ فِيْهَا الْفَزَعَ فَقَالَتْ اَلَمْ تَرَ الْجِنَّ وَ اِبْلَاسَهَا وَ يَاْسَهَا مِنْ بَعْدِ اِنْكَاسِهَا وَ لُحُوْقَهَا بِالْقِلَاصِ وَ اَحْلَاسِهَا قَالَ عُمَرُ صَدَقَ بَيْنَمَا عِنْدَ اٰلِهَتِهِمْ اِذْ جَاءَ رَجُلٌ بِعِجْلٍ فَذَبَحَهُ فَصَرَخَ بِهِ صَارِخٌ لَمْ اَسْمَعْ صَارِخًا قَطُّ اَشَدَّ صَوْتًا مِنْهُ يَقُوْلُ يَا جَلِيْحُ اَمْرٌ نَجِيْحٌ رَجُلٌ فَصِيْحٌ يَقُوْلُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ فَوَثَبَ الْقَوْمُ قُلْتُ لَا اَبْرَحُ حَتّٰى اَعْلَمَ مَا وَرَآءَ هٰذَا ثُمَّ نَادٰى يَا جَلِيْحُ اَمْرٌ نَجِيْحٌ رَجُلٌ فَصِيْحٌ يَقُوْلُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ فَقُمْتُ فَمَا نَشِبْنَا اَنْ قِيْلَ هٰذَا نَبِيٌّ.

در کوم، چه ماته ضرور اوښایه. هغهٔ اووے، زهٔ دَ جاهلیت په زمانه کښې کاهن (ترويتي) ووم، حضرت عمرؓ ترے تپوس او کهٔ، کومے خبر چه تاته جنيه (پيري) ښودلے دي، هغے کښې دَ ټولو نه زياته حيران کن خبره کومه يوه وه. هغهٔ اووے، او، يوه ورځ زهٔ بازار کښې روان ووم نو هغه جنيه ماله راغله، هغه خپله خوفزده شان وه، هغے اووے، آيا تاته معلومه نهٔ ده، چه جنّاتو (پيريانو) کښې دَ آوريدونه پس څومره حيرت او مايوسي بيا منډے شي، او هغوي دَ اوښانو والو او څادر والو (اهل عرب) تابع شوے دي. حضرت عمرؓ اوفرمائيل، ريښتيا وائي، ځکه چه يوه ورځ زهٔ هم دَ هغوي بُتانو سره اُودهٔ ووم، يو سړي يو سخے (بچھڑا) راوست، ذبح ئے کهٔ. بيا يو چغه وهونکي دومره زور سره چغه اووهله، چه ما دَ هغے نه مخکښې داسے سخت آواز نهٔ وو آوريدلے، هغهٔ وئيل، اے دشمن، يوه سمه معامله ظاهريدونکے ده، چه يو فصيح سړے به وائي: لا اله الا انت: نو خلقو ټوپ کړے اوتښتيدل، خو ما اووے، زهٔ به دَ ځائے نه هغه وخته پورے نهٔ خوزم، څو پورے چه ماته دَ دے شاته څيز معلوم نشي. بيا آواز راغے. اے دشمن، يوه نيغه (سمه) معامله ظاهريدونکے ده، چه يو فصيح سړے به وائي: لا اله الا انت: نو بيا زهٔ اوچت پاسيدم، او لږه موده پس چرچه شوه، چه دے نبي دے.

۱۰۵۳ : حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا يَحْيٰى حَدَّثَنَا اِسْمٰعِيْلُ حَدَّثَنَا قَيْسٌ قَالَ سَمِعْتُ سَعِيْدَ بْنَ زَيْدٍ يَقُوْلُ لِلْقَوْمِ لَقَدْ رَاَيْتُنِيْ

۱۰۵۳ : محمد بن مثنٰي. يحيٰي. اسماعيل. قيس نه روايت کوي، هغه فرمائي، ما دَ سعيد بن زيد نه قوم ته دا وئيل واوريدل چه ما دَ حضرت عمرؓ دَ اسلام راوړلو نه مخکښې خپل ځان او دَ هغهٔ خور (فاطمه)

مُوْثِقِيْ عُمَرُ عَلَى الْاِسْلَامِ اَنَا وَ اُخْتَهُ وَمَا اَسْلَمَ وَلَوْ اَنَّ اُحَدًا انْقَضَّ لِمَا صَنَعْتُمْ بِعُثْمَانَ لَكَانَ مَحْقُوْقًا اَنْ يَّنْقَضَّ.

اوليدله چه عمرؓ مونږ تړلے وو. او كوم حركت چه تاسو حضرت عثمان سره كړے دے، كه ذ هغے وجے نه اُحد غر اوچوي (پهٹ جائے) نو بعيده نه ده (څه ناشونے نه ده).

## باب ۴۵۰: اِنْشِقَاقِ الْقَمَرِ.

## باب ۴۵۰: ذ شق قمر بيان.

۱۰۵۴: حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ اَبِيْ عَرُوْبَةَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ اَهْلَ مَكَّةَ سَاَلُوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يُرِيَهُمْ اٰيَةً فَاَرَاهُمُ الْقَمَرَ شِقَّتَيْنِ حَتّٰى رَاَوْا حِرَآءَ بَيْنَهُمَا.

۱۰۵۴: عبدالله بن عبدالوهاب. بشر بن مفضل. سعيد بن ابي عروبه. قتاده. حضرت انس بن مالكؓ نه روايت كوي، هغه فرمائي، اهل مكه ذ رسول الله صلي الله عليه وسلم نه يو معجزه طلب كړه، نو حضورؐ هغوي ته سپوږمئ دوه ټكړے كړے اُوښودله، حتي چه هغوي حِراء غر، ذ دے دواړو ټكړو په مينځ كښ اوليدلو (يعني هغه دواړه ټكړے په دومره فاصله شوے وے، چه حرا غر ذ هغے په مينځ كښ په نظر راتلو).

ف: معجزه شق القمر کا ہے مدینہ سے عیاں
مہ نے شق کر ہولیا ہے دین کو آغوش میں

۱۰۵۵: حَدَّثَنَا عَبْدَانُ عَنْ اَبِيْ حَمْزَةَ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ عَنْ اَبِيْ مَعْمَرٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ انْشَقَّ الْقَمَرُ وَ نَحْنُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِنًى فَقَالَ اشْهَدُوْا وَ ذَهَبَتْ فِرْقَةٌ نَحْوَ الْجَبَلِ وَ قَالَ اَبُو الضُّحٰى عَنْ مَسْرُوْقٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ انْشَقَّ بِمَكَّةَ وَ تَابَعَهُ مُحَمَّدُ بْنُ مُسْلِمٍ عَنِ ابْنِ اَبِيْ نَجِيْحٍ عَنْ مُجَاهِدٍ عَنْ اَبِيْ مَعْمَرٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ.

۱۰۵۵: عبدان. ابو حمزه. اعمش. ابراهيم. ابو معمر. حضرت عبداللهؓ نه روايت كوي، هغه فرمائي، كوم وخت چه ذ شق القمر معجزه ظاهره شوه، نو مونږ رسول الله صلي الله عليه وسلم سره مِنٰي كښ وو، حضورؐ اوفرمائيل، ګواه اُوسئ، او ذ سپوږمئ يوه ټكړه غر جانب ته تلے وه. ابوالضحي په واسطه ذ مسروق، عبدالله نه روايت كړے دے، چه شق القمر مكه كښ اوشو، او ذ دے متابع محمد بن مسلم، ابن ابي نجيح، مجاهد، ابو معمر، عبدالله نه حديث روايت كړے دے.

۱۰۵۶ : حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ اَبِيْ صَالِحٍ حَدَّثَنَا بَكْرُ بْنُ مُضَرَ قَالَ حَدَّثَنِيْ جَعْفَرُ بْنُ رَبِيْعَةَ عَنْ عِرَاكِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ مَسْعُوْدٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ الْقَمَرَ اِنْشَقَّ عَلٰى زَمَانِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۱۰۵۶ : عثمان بن صالح. بکر بن مضر. جعفر بن ربیعه. عراک بن مالک. عبیدالله بن عبدالله بن عتبه بن مسعود. حضرت عبدالله بن عباسؓ نه روایت کوي، هغه فرمائي، د رسول الله صلي الله علیه وسلّم زمانه کښ شق القمر شوے وو.

۱۰۵۷ : حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا اَبِيْ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ عَنْ اَبِيْ مَعْمَرٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ اِنْشَقَّ الْقَمَرُ.

۱۰۵۷ : عمر بن حفص. ذ هغهٔ پلار. اعمش. ابراهیم. حضرت عبدالله نه روایت کوي، هغه فرمائي، چه شق القمر شوے دے.

باب ۱۵۴ : هِجْرَةِ الْحَبْشَةِ وَ قَالَتْ عَائِشَةُ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُرِيْتُ دَارَ هِجْرَتِكُمْ ذَاتَ نَخْلٍ بَيْنَ لَابَتَيْنِ فَهَاجَرَ مَنْ هَاجَرَ قِبَلَ الْمَدِيْنَةِ وَ رَجَعَ عَامَّةُ مَنْ كَانَ هَاجَرَ بِاَرْضِ الْحَبْشَةِ اِلَى الْمَدِيْنَةِ فِيْهِ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى وَ اَسْمَاءَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

باب ۱۵۴ : مملکت حبشه ته د هجرت کولو بیان. بي بي عائشهؓ فرمائي، رسول الله صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، ما ستاسو د هجرت ځائے خوب کښ لیدلے دے، هلته د قجورو اُونے ډیرے زیاتے دي، او هغه د دوو غرونو مینځ کښ دے. دے نه پس چه چا هجرت مدینے ته اوکړ، او اکثر هغه خلق هم چه حبشو ته ئے هجرت کړے وو، واپس راغلل، دے مضمون کښ ابو موسي او اسماء هم د نبي صلي الله علیه وسلّم نه روایت کوي.

۱۰۵۸ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ الْجُعْفِيُّ حَدَّثَنَا هِشَامٌ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَنَا عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ اَنَّ عُبَيْدَ اللّٰهِ بْنَ عَدِيِّ بْنِ الْخِيَارِ اَخْبَرَهُ اِنَّ الْمِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ

۱۰۵۸ : عبدالله بن محمد جعفي. هشام. معمر. زهري. عروه بن زبیر. عبیدالله بن عدي بن خیار نه روایت کوي، هغه وائي، ماته مسور بن مخرمه او عبدالرحمٰن بن اسود بن عبد یغوث اووے، چه ته خپل ماما (حضرت عثمان بن عفان) سره د هغهٔ د ورور، ولید

وَ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ الْاَسْوَدِ بْنِ عَبْدِ
يَغُوْثَ قَالَا لَهُ مَا يَمْنَعُكَ اَنْ تُكَلِّمَ
خَالَكَ عُثْمَانَ فِيْ اَخِيْهِ الْوَلِيْدِ بْنِ
عُقْبَةَ وَ كَانَ اَكْثَرَ النَّاسُ فِيْمَا فَعَلَ بِهٖ
قَالَ عُبَيْدُ اللّٰهِ فَانْتَصَبْتُ لِعُثْمَانَ
حِيْنَ خَرَجَ اِلَى الصَّلٰوةِ فَقُلْتُ لَهُ اِنَّ
لِيْ اِلَيْكَ حَاجَةً وَ هِيَ نَصِيْحَةٌ فَقَالَ
اَيُّهَا الْمَرْءُ اَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْكَ فَانْصَرَفْتُ
فَلَمَّا قَضَيْتُ الصَّلٰوةَ جَلَسْتُ اِلَى
الْمِسْوَرِ وَ اِلَى ابْنِ عَبْدِ يَغُوْثَ
فَحَدَّثْتُهُمَا بِالَّذِيْ قُلْتُ لِعُثْمَانَ وَ قَالَ
لِيْ فَقَالَا قَدْ قَضَيْتَ الَّذِيْ كَانَ عَلَيْكَ
فَبَيْنَمَا اَنَا جَالِسٌ مَعَهُمَا اِذْ جَاءَ نِيْ
رَسُوْلُ عُثْمَانَ فَقَالَا لِيْ قَدِ ابْتَلَاكَ
اللّٰهُ فَانْطَلَقْتُ حَتّٰى دَخَلْتُ عَلَيْهِ
فَقَالَ مَا نَصِيْحَتُكَ الَّتِيْ ذَكَرْتَ اٰنِفًا
قَالَ فَتَشَهَّدْتُ ثُمَّ قُلْتُ اِنَّ اللّٰهَ بَعَثَ
مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ
اَنْزَلَ عَلَيْهِ الْكِتَابَ وَ كُنْتَ مِمَّنِ
اسْتَجَابَ لِلّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اٰمَنْتُ بِهٖ وَ هَاجَرْتَ
الْهِجْرَتَيْنِ الْاُوْلَيَيْنِ وَ صَحِبْتَ رَسُوْلَ
اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ رَاَيْتَ
هَدْيَهٗ وَقَدْ اَكْثَرَ النَّاسُ فِيْ شَاْنِ وَلِيْدِ
بْنِ عُقْبَةَ فَحَقٌّ عَلَيْكَ اَنْ تُقِيْمَ عَلَيْهِ
الْحَدَّ فَقَالَ لِيْ يَا ابْنَ اَخِيْ اَدْرَكْتَ

بن عقبه معامله کښې خبرې ولې نه کوې٬ او اکثر خلق ئې په تائيد کښې وو. عبيدالله وائي٬ څه وخت چه حضرت عثمانؓ مانځه د پاره راووتلو٬ نو زهٔ هغهٔ ته مخامخ شوم. ما عرض او کړو٬ خما تاسو سره يوه ضروري خبره ده٬ چه هغې کښې ستا خير دې. هغهٔ اوفرمائيل٬ اې سړيه٬ زهٔ د الله په ذريعه ستا د شبهې نه پناه غواړم٬ نو زهٔ لرې شوم٬ مونځ نه چه فارغ شو٬ نو مسور او ابن عبد يغوث سره کيناستم٬ او هغوي ته م خپله او د حضرت عثمان خبره نقل کړه٬ هغوي ماته اووې تا خپل حق پوره (ادا) کړهٔ. زهٔ لا هغې دواړو سره ناست ووم٬ چه ماته د حضرت عثمانؓ قاصد راغې. زهٔ هغهٔ له ورغلم٬ نو هغه (عثمانؓ) اووې٬ هغه کوم نصيحت وو٬ چه د هغې تا ماته اوس ذکر او کړو٬ هغه وائي٬ بيا ما تشهد اووې٬ او ونيلې د٬ چه الله تعالي محمد صلي الله عليه وسلّم مبعوث کړلو٬ او قرآن ئې پرې نازل کړلو٬ او تاسو هغې خلقو کښې ئې چه هغوي د الله او رسول په دعوت لبيک ونيلې دې٬ او په هغې مو ايمان راوړې دې او تاسو ورمبي دوه هجرته (اول حبشه ته او بل مدينې ته) هم کړې دي٬ او تاسو رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره پاتې شوې ئې٬ د هغوي سيرت مو هم ليدلې دې. او اوس خلق د وليد بن عقبه باره کښې قسما قسم خبرې کوي٬ نو په تاسو ضروري ده٬ چه په هغهٔ حد جاري کړې٬ نو هغه ماته اوفرمائيل٬ اې وراره٬ آيا تا رسول الله صلي الله عليه وسلّم ليدلې دې. ما اووې٬ نه٬ ليکن د حضورؐ حالات اې راته داسې معلوم دي٬ لکه پيغلې جينۍ ته چه پرده کښې معلوم وي٬ هغه وائي بيا حضرت

رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قُلْتُ لَا وَلٰكِنْ قَدْ خَلَصَ اِلَيَّ مِنْ عِلْمِهٖ مَا خَلَصَ اِلَى الْعَذْرَآءِ فِي سِتْرِهَا قَالَ فَتَشَهَّدَ عُثْمَانُ فَقَالَ اِنَّ اللّٰهَ قَدْ بَعَثَ مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْحَقِّ وَ اَنْزَلَ عَلَيْهِ الْكِتَابَ وَ كُنْتُ مِمَّنِ اسْتَجَابَ لِلّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اٰمَنْتُ بِمَا بُعِثَ بِهٖ مُحَمَّدٌ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ هَاجَرْتُ الْهِجْرَتَيْنِ الْاُوْلَيَيْنِ كَمَا قُلْتَ وَ صَحِبْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ بَايَعْتُهٗ وَاللّٰهِ مَا عَصَيْتُهٗ وَلَا غَشَشْتُهٗ حَتّٰى تَوَفَّاهُ اللّٰهُ ثُمَّ اسْتَخْلَفَ اللّٰهُ اَبَا بَكْرٍ فَوَاللّٰهِ مَا عَصَيْتُهٗ وَلَا غَشَشْتُهٗ ثُمَّ اسْتُخْلِفَ عُمَرُ فَوَاللّٰهِ مَا عَصَيْتُهٗ وَلَا غَشَشْتُهٗ ثُمَّ اسْتُخْلِفْتُ اَفَلَيْسَ لِيْ عَلَيْكُمْ مِثْلُ الَّذِيْ كَانَ لَهُمْ عَلَيَّ قَالَ بَلٰى قَالَ فَمَا هٰذِهِ الْاَحَادِيْثُ الَّتِيْ تَبْلُغُنِيْ عَنْكُمْ فَاَمَّا مَا ذَكَرْتَ مِنْ شَانِ وَلِيْدِ بْنِ عُقْبَةَ فَسَنَاْخُذُ فِيْهِ اِنْ شَاءَ اللّٰهُ بِالْحَقِّ قَالَ فَجَلَدَ الْوَلِيْدَ اَرْبَعِيْنَ جَلْدَةً وَ اَمَرَ عَلِيًّا اَنْ يَّجْلِدَهٗ وَ كَانَ هُوَ يَجْلِدُهٗ وَ قَالَ يُوْنُسُ وَابْنُ اَخِي الزُّهْرِيِّ اَفَلَيْسَ لِيْ عَلَيْكُمْ مِنَ الْحَقِّ مِثْلُ الَّذِيْ كَانَ لَهُمْ.

عثمانؓ تشهد اووے وے فرمائیل بیشکه الله تعالي محمد صلي الله عليه وسلّم حق سره راليږلے دے. او په حضورؐ ئے قرآن نازل کړے دے. او ما دَ الله تعالي او دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم په دعوت لبيک وئيلے دے، او ما د رسول صلي الله عليه وسلّم په راوړلے څيزونو ايمان راوړے دے، او ما ستا دَ قول مطابق ورمبني دوه هجرته کړي دي، او زهٔ رسول الله صلي الله عليه وسلّم سره پاتے شوے يم، او دَ حضور صلي الله عليه وسلّم نه مِ بيعت هم کړے دے په خدائے چه نهٔ خو ما دَ هغوئ نافرماني کړے ده او نه مِ دهوکه ورکړے ده، حتٰي چه خدائے تعالي حضورؐ وفات کړلو. بيا الله تعالي ابوبکرؓ خليفه جوړ کړلو، په خدائے چه ما دَ هغوي هم نافرماني نه ده کړے، او نهٔ مِ دهوکه ورکړے ده بيا حضرت عمرؓ خليفه شو په خدائے چه ما دَ هغوي هم نافرماني نه ده کړے او نه مِ دهوکه ورکړے ده بيا زه خليفه جوړ کړے شوم آيا څما په تاسو داسے حق نهٔ دے څنګه چه دَ مخکنو خلفاؤ په ما وو. هغهٔ اووے، ولے نهٔ دے، حضرت عثمانؓ ورته اوفرمائيل. بيا دا څنګه خبرے دي، چه ما ته ستاسو دَ طرف نه رارسي، او تا چه دَ وليد بن عقبه په حقله کوم ذکر کړے دے، نو دے باره کښ به انشاء الله مونږ په حق عمل کوو، هغه وائي بيا حضرت عثمانؓ دَ وليد دَ څلويښت کوړو دَ وهلو فيصله اوکړه، او حضرت عليؓ ته ئے دَ کوړو وهلو حکم ورکړلو، او حضرت عليؓ به کوړے وهلے. او يونس دَ زهري وراره په واسطه دَ زهري: "افليس لي عليكم من الحق مثل الّذي كان لهم" روايت کړے دي.

۱۰۵۹ : حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ هِشَامٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبِيْ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَنَّ اُمَّ حَبِيْبَةَ وَ اُمَّ سَلَمَةَ ذَكَرَتَا كَنِيْسَةً رَاَيْنَهَا بِالْحَبْشَةِ فِيْهَا تَصَاوِيْرُ فَذَكَرَتَا لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اِنَّ اُولٰٓئِكَ اِذَا كَانَ فِيْهِمُ الرَّجُلُ الصَّالِحُ فَمَاتَ بَنَوْا عَلٰى قَبْرِهٖ مَسْجِدًا وَ صَوَّرُوْا عَلَيْهِ تِلْكَ الصُّوَرَ اُولٰٓئِكَ شِرَارُ الْخَلْقِ عِنْدَ اللّٰهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ.

۱۰۵۹ : محمد بن مثنی. یحیی. هشام. د هغه پلار. بي بي عائشې نه روایت کوي: هغه فرمائي: اُم حبیبهٔ او اُم سلیمهٔ د هغې کرجې ذکر اوکړ: چه هغوي حبشه کښې لیدلې وه، هغې کښې بس تصویرونه او تصویرونه وو، بیا هغوي د هغې کرجې تذکره رسول الله صلي الله علیه وسلّم ته اوکړه، نو حضور صلي الله علیه وسلّم ورته اوفرمائیل دغې خلقو کښې چه به کله یو نیک سړے مړ شولو، نو د هغهٔ په قبر به ئې جمات جوړولو، او هغې کښې به ئې دغه تصویر نقش کولو. دا خلق به د قیامت په ورځ د الله تعالي په نزد د بدترین مخلوقاتو نه وي.

۱۰۶۰ : حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ ابْنُ سَعِيْدِ السَّعِيْدِيُّ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اُمِّ خَالِدٍ بِنْتِ خَالِدٍ قَالَتْ قَدِمْتُ مِنْ اَرْضِ الْحَبْشَةِ وَ اَنَا جُوَيْرِيَّةٌ فَكَسَانِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَمِيْصَةً لَهَا اَعْلَامٌ فَجَعَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْسَحُ الْاَعْلَامَ بِيَدِهٖ وَ يَقُوْلُ سَنَاهُ سَنَاهُ قَالَ الْحُمَيْدِيُّ يَعْنِيْ حَسَنٌ حَسَنٌ.

۱۰۶۰ : حمیدي. سفیان. اسحاق بن سعید سعیدي. د هغهٔ پلار، ام خالد بنت خالد نه روایت کوي، هغه فرمائي: زهٔ وړه بچئ ووم، چه د حبشې نه راغلم، نو رسول الله صلي الله علیه وسلّم یو څادر د پسه سرولو د پاره راکړلو، چه هغې کښې د اُونو وغیره تصویرونه وو، نو حضورؐ په هغې لاس راکښلو، فرمائیل: ښکلې ښهٔ دي، ښکلې ښهٔ دي، حمیدي وائي، سناه په معنی د حسن (ښهٔ) دي.

۱۰۶۱ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَمَّادٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ سُلَيْمَانَ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كُنَّا نُسَلِّمُ عَلَى

۱۰۶۱ : یحیی بن حماد. ابو عوانه. سلیمان. ابراهیم. علقمه. حضرت عبدالله. نه روایت کوي، هغه فرمائي، مونږ به نبي صلي الله علیه وسلّم ته چه مونځ به ئې کولو، سلام کولو، حضورؐ به د مونځ حالت کښې مونږ ته جواب راکولو. بیا چه مونږ د نجاشي نه واپس راغلو،

النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يُصَلِّيْ فَيَرُدُّ عَلَيْنَا فَلَمَّا رَجَعْنَا مِنْ عِنْدِ النَّجَاشِيِّ سَلَّمْنَا عَلَيْهِ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْنَا فَقُلْنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّا كُنَّا نُسَلِّمُ عَلَيْكَ فَتَرُدُّ عَلَيْنَا قَالَ اِنَّ فِي الصَّلٰوةِ شُغْلًا فَقُلْتُ لِاِبْرٰهِيْمَ كَيْفَ تَصْنَعُ اَنْتَ قَالَ اَرُدُّ فِيْ نَفْسِيْ.

نو مونږ حضور ته د مونځ کولو دوران کښې سلام اوکړ خو حضور جواب رانه کړلو (فراغت نه پس) مونږ عرض اوکړ یا رسول الله مونږ به تاسو ته سلام کولو نو تاسو به جواب راکولو (خو اوس تاسو جواب رانه کړلو يعني وعليكم السلام مو اونه وئيلے) حضور اوفرمائيل مونځ کښې (خدائے سره) مشغولي وي سليمان وائي ما د ابراهيم نه تپوس اوکړ ستا څۀ طريقه ده وئيلے زۀ خپل زړۀ کښې جواب ورکوم.

**۱۰۶۲:** حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ حَدَّثَنَا بُرَيْدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ بَلَغَنَا مَخْرَجُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ نَحْنُ بِالْيَمَنِ فَرَكِبْنَا سَفِيْنَةً فَاَلْقَتْنَا سَفِيْنَتُنَا اِلَى النَّجَاشِيِّ بِالْحَبْشَةِ فَوَافَقْنَا جَعْفَرَ اَبِيْ طَالِبٍ فَاَقَمْنَا مَعَهُ حَتّٰى قَدِمْنَا فَوَافَقْنَا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ افْتَتَحَ خَيْبَرَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَكُمْ اَنْتُمْ يَا اَهْلَ السَّفِيْنَةِ هِجْرَتَانِ.

**۱۰۶۲:** محمد بن علاء. ابو اسامه. بريد بن عبدالله. ابو بردة. حضرت ابو موسيٰ نه روايت کوي هغه فرمائي مونږ ته چه د رسول الله صلي الله عليه وسلم د ظهور خبر راورسيد نو مونږ يمن کښې وو مونږ يوه کشتئ کښې سوارۀ شو (چه د حضور خدمت کښې حاضر شو او په اسلام مشرف شو) خو خمونږ کشتئ مونږ حبشه ته نجاشي ته وراوديکلو هلته مونږ جعفر بن ابي طالب سره يو ځائے شو مونږ هغه سره مقيم (ديره) وو حتي چه مونږ مدينے ته واپس شو نو حضور صلي الله عليه وسلم سره هغه وخت يو ځائے شو کوم وخت چه حضور خيبر فتح کړلو او حضور اوفرمائيل ستاسو د پاره اے کشتئ والو (په اعتبار د ثواب) دوه هجرتونه دي.

## بَابٌ ۴۵۲: مَوْتِ النَّجَاشِيِّ.

## باب ۴۵۲: د نجاشي (د حبشه بادشاه) د وفات بيان.

**۱۰۶۳:** حَدَّثَنَا اَبُو الرَّبِيْعِ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنْ عَطَاءٍ عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ

**۱۰۶۳:** ابوالربيع. ابن عيينه. ابن جريج. عطاء. حضرت جابر نه روايت کوي هغه فرمائي په کومه ورځ چه نجاشي باچا وفات

النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ مَاتَ النَّجَاشِيُّ مَاتَ الْيَوْمَ رَجُلٌ صَالِحٌ فَقُوْمُوْا فَصَلُّوْا عَلٰى اَخِيْكُمْ اَصْحَمَةَ.

شو نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل نن یو صالح سړے وفات شولو نو راپاسئ په خپل وړور اصحمه (د نجاشي په جنازه) مونځ اوکړئ.

۱۰۶۴ : حَدَّثَنَا عَبْدُ الْاَعْلٰى بْنُ حَمَّادٍ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيْدٌ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ اَنَّ عَطَاءً حَدَّثَهُمْ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ الْاَنْصَارِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ نَبِيَّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلّٰى عَلَى النَّجَاشِيِّ فَصَفَّنَا وَرَآءَهُ فَكُنْتُ فِي الصَّفِّ الثَّانِيْ اَوِ الثَّالِثِ.

۱۰۶۴ : عبدالاعلی بن حماد. یزید بن زریع. سعید. قتاده. عطاء. حضرت جابر بن عبداللّٰه انصاري نه روایت کوي رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم د نجاشي (په جنازے) مونځ اوکړه حضورﷺ پسے مونږ صفونه اوتړل او دریدلو زه حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم پسے دویم یا دریم صف کښې ووم.

۱۰۶۵ : حَدَّثَنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ عَنْ سُلَيْمِ بْنِ حَيَّانَ حَدَّثَنَا سَعِيْدُ بْنُ مِيْنَآءَ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلّٰى عَلٰى اَصْحَمَةَ النَّجَاشِيِّ فَكَبَّرَ عَلَيْهِ اَرْبَعًا تَابَعَهُ عَبْدُ الصَّمَدِ.

۱۰۶۵ : عبداللّٰه بن ابي شیبه. یزید. سلیم بن حیان. سعید بن میناء. حضرت جابر بن عبداللّٰهؓ نه روایت کوي رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم د (حبشه بادشاه چه د هغهٔ نوم) اصحمه نجاشي (وو د جنازے) مونځ اوکه. حضورﷺ هغے کښې څلور تکبیرونه اووے. عبدالصمد د دے متابع حدیث روایت کړے دے.

۱۰۶۶ : حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ اِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا اَبِيْ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ وَابْنُ الْمُسَيَّبِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَخْبَرَهُمَا اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَعٰى

۱۰۶۶ : زهیر بن حرب. یعقوب بن ابراهیم. د هغهٔ پلار. صالح ابن شهاب. ابو سلمه بن عبدالرحمن. او سعید بن مسیبؒ. حضرت ابوهریرهؓ نه روایت کړے دے. رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم صحابه کرامو د حبشه د بادشاه د وفات خبر په هغه ورځ ورکړه په کومه ورځ چه هغه وفات شو او حضور صلي اللّٰه

لَهُمُ النَّجَاشِيَّ صَاحِبَ الْحَبَشَةِ فِي الْيَوْمِ الَّذِيْ مَاتَ فِيْهِ وَ قَالَ اسْتَغْفِرُوْا لِاَخِيْكُمْ وَ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ سَعِيْدُ ابْنُ الْمُسَيَّبِ اَنَّ اَبَا هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ اَخْبَرَهُمْ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَفَّ بِهِمْ فِي الْمُصَلّٰى فَصَلّٰى عَلَيْهِ وَ كَبَّرَ اَرْبَعًا.

علیه وسلَم اوفرمائیل، ذ خپل ورور ذ پاره (د جنازے ذ مونځ په ذریعه) استغفار اوکړئے. صالح. ابن شهاب. سعیا بن مسیب. حضرت ابوهریرهٔ نه روایت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلَم عیدګاه کښ صحابهٔ صف بسته اودرول، او هغوي ته ئے (ذ نجاشي ذ جنازے) مونځ ورکړهٔ، نو حضورٌ څلور تکبیرونه اووئیل.

## باب ۴۵۳: تَقَاسُمِ الْمُشْرِكِيْنَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

## باب ۴۵۳: ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلَم مخالفت کښ ذ مشرکانو خپلو کښ ذ قسمونو خوړلو بیان.

۱۰۶۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ اِبْرٰهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ اَرَادَ حُنَيْنًا مَنْزِلُنَا غَدًا اِنْ شَآءَ اللّٰهُ بِخَيْفِ بَنِيْ كِنَانَةَ حَيْثُ تَقَاسَمُوْا عَلَى الْكُفْرِ.

۱۰۶۷: عبدالعزیز بن عبداللّٰه. ابراهیم بن سعد. ابن شهاب. ابو سلمه بن عبدالرحمٰن. حضرت ابوهریرهٔ نه روایت کوي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلَم چه ذ جنګ اراده اوکړله نو فرمائیل ئے، صبا له به انشاء اللّٰه خمونږ قیام پخیف بني کنانه کښ وي، کوم ځائے چه مشرکانو په کفر (ذ قائم پاتے کیدو) قسم خوړلے وو.

## باب ۴۵۴: قِصَّةِ اَبِيْ طَالِبٍ.

## باب ۴۵۴: ذ ابو طالب قِصه.

۱۰۶۸: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنْ سُفْيٰنَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ الْحَارِثِ حَدَّثَنَا الْعَبَّاسُ بْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا اَغْنَيْتَ عَنْ عَمِّكَ فَاِنَّهُ كَانَ

۱۰۶۸: مسدد. یحیٰي. سفیان. عبدالملک. عبداللّٰه بن حارث. حضرت عباسٌ بن عبدالمطلب نه روایت کوي، هغهٔ ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلَم نه تپوس اوکهٔ، چه تاسو خپل ترهٔ (چچا) ابو طالب ته څه نفع اُورسولیه، ځکه چه هغه به ستاسو حمایت (مدد) کولو، او ستاسوٌ طرفداریٔ کښ به ئے په مخالفینو غُصه

يَحُوطُكَ وَ يَغْضَبُ لَكَ قَالَ هُوَ فِيْ ضَحْضَاحٍ مِنْ نَّارٍ وَلَوْلَا اَنَا لَكَانَ فِي الدَّرْكِ الْاَسْفَلِ مِنَ النَّارِ.

**۱۰۶۹ :** حَدَّثَنَا مَحْمُوْدُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنِ ابْنِ الْمُسَيَّبِ عَنْ اَبِيْهِ اَنَّ اَبَا طَالِبٍ لَمَّا حَضَرَتْهُ الْوَفَاةُ دَخَلَ عَلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ عِنْدَهُ اَبُوْ جَهْلٍ فَقَالَ اَيْ عَمِّ قُلْ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ كَلِمَةً اُحَاجُّ لَكَ بِهَا عِنْدَ اللّٰهِ فَقَالَ اَبُوْ جَهْلٍ وَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اُمَيَّةَ يَا اَبَا طَالِبٍ تَرْغَبُ عَنْ مِلَّةِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ فَلَمْ يَزَالَا يُكَلِّمَانِهٖ حَتّٰى قَالَ اٰخِرَ شَيْءٍ كَلَّمَهُمْ بِهٖ عَلٰى مِلَّةِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَاَسْتَغْفِرَنَّ لَكَ مَالَمْ اُنْهَ عَنْهُ فَنَزَلَتْ مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اَنْ يَّسْتَغْفِرُوْا لِلْمُشْرِكِيْنَ وَلَوْ كَانُوْا اُولِيْ قُرْبٰى مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمْ اَنَّهُمْ اَصْحٰبُ الْجَحِيْمِ وَ نَزَلَتْ اِنَّكَ لَا تَهْدِيْ مَنْ اَحْبَبْتَ.

**۱۰۷۰ :** حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ حَدَّثَنَا ابْنُ الْهَادِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ خَبَّابٍ عَنْ

کوله، نو حضورﷺ اوفرمائیل، هغه ګیټو پورې اور کښې دے، او که زۀ نۀ وے، نو هغه به د دوزخ لاندینۍ طبقه کښې وو.

**۱۰۶۹ :** محمود. عبدالرزاق. معمر. زهري. ابن مسیب. خپل پلار نه روایت کوي، د ابو طالب د مرګ وخت چه نزدے شو، نو رسول الله صلي الله علیه وسلم هغه له راغے، دغه وخت ابوجهل هم ابو طالب سره وو، نو حضورﷺ هغۀ ته اوفرمائیل، اے خما تره (کاکا جي) صرف یو کلمه: لا اله الا الله: اووایه، نو زۀ به الله تعالي ته د دے په وجه (ستا د بښنې د پاره) د عرض کولو مستحق شم، نو ابوجهل او عبدالله بن امیه ورته اووے، اے ابو طالب، ته د عبدالمطلب د دین نه آوړے، نو دے دواړو هغه ته برابر دغسے وئیلے، حتي چه ابوطالب هغوي ته چه کومه آخري خبره اوکړه، هغه دا وه، چه زۀ د عبدالمطلب په دین مرم (مرتا ہوں) نو حضورﷺ اوفرمائیل، زۀ به د دۀ د پاره هغه وخته پورے بښنۀ غواړم (استغفار کوم) څو پورے چه زۀ منع نۀ کړے شم، نو دا آیت نازل شولو: نبي او ایمان والو د پاره مناسب نۀ دي چه مشرکینو د پاره استغفار او کړي، اګر که هغوي ئے خپلوان وي، حضورﷺ ته چه معلومه شوه، چه ابو طالب دوزخي دے، او دا آیت نازل شو، چه تۀ څوک غواړے (یعني څوک دے خوښ وي) هغۀ ته هدایت نۀ شے کولے. (نو ابو طالب د پاره استغفار ئے پریښنودو)

**۱۰۷۰ :** عبدالله بن یوسف. لیث. ابن هاد. عبدالله بن خباب. حضرت ابو سعید خدريؓ نه روایت کوي، د رسول الله صلي الله علیه

عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ ذُكِرَ عِنْدَهُ عَمُّهُ فَقَالَ لَعَلَّهُ تَنْفَعُهُ شَفَاعَتِيْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَيُجْعَلُ فِيْ ضَحْضَاحٍ مِّنَ النَّارِ يَبْلُغُ كَعْبَيْهِ يَغْلِيْ مِنْهُ دِمَاغُهُ.

وسلَم مخکښې د حضورؐ د تره (چچا) ابو طالب ذکر اوشو. نو حضورؐ اوفرمائيل اُميد دے چه د قيامت په ورځ به هغه ته خما شفاعت څه نفع اورسوي چه هغه به د اُور درمياني درجه کښې واچولے شي چه اُور به د هغه ګټو ته رسي چه هغے سره به د هغه دماغ جوشيږي.

۱۰۷۱ : حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ حَمْزَةَ حَدَّثَنَا ابْنُ اَبِيْ حَازِمٍ وَالدَّرَاوَرْدِيُّ عَنْ يَزِيْدَ بِهٰذَا وَ قَالَ تَغْلِيْ مِنْهُ اُمُّ دِمَاغِهِ.

۱۰۷۱ : ابراهيم بن حمزه. ابن ابي حازم او دراوردي. يزيد نه دغه شان روايت کوي فرق دا دے هغے روايت کښې دي چه د دماغ په خانے به نے ماژغه جوشيږي.

باب ۴۵۵ : حَدِيْثُ الْاِسْرَآءِ. وَ قَوْلِ اللّٰهِ تَعَالٰى سُبْحَانَ الَّذِيْ اَسْرٰى بِعَبْدِهٖ لَيْلًا مِّنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ اِلَى الْمَسْجِدِ الْاَقْصٰى.

باب ۴۵۵ : د شب اسراء حديث. او د قرآن پاک آيت دے هغه ذات چه شپه په شپه ئے خپل بنده (محمدؐ) د مسجد حرام نه مسجد اقصيٰ ته بوتلو.

۱۰۷۲ : حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّهُ سَمِعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَمَّا كَذَّبَنِيْ قُرَيْشٌ قُمْتُ فِي الْحِجْرِ فَجَلَّى اللّٰهُ لِيْ بَيْتَ الْمُقَدَّسِ فَطَفِقْتُ اُخْبِرُهُمْ عَنْ اٰيَاتِهٖ وَ اَنَا اَنْظُرُ اِلَيْهِ.

۱۰۷۲ : يحيي بن بکير. ليث. عقيل. ابن شهاب. ابو سلمه بن عبدالرحمن. حضرت جابرؓ نه روايت کوي. هغه د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه واوريدل د معراج سلسله کښې چه قريشو خما تکذيب اوکړ. نو زه حجر کښې اودريدم نو الله تعالي خما مخے ته بيت المقدس ښکاره کړلو. ما قريشو ته د هغے علامتونه ښودل. او بيت المقدس خما د نظر مخکښې وو.

باب ۴۵۶ : الْمِعْرَاجِ.

باب ۴۵۶ : د معراج بيان.

۱۰۷۳ : حَدَّثَنَا هُدْبَةُ بْنُ

۱۰۷۳ : هدبه بن خالد. همام بن يحيي. قتاده.

قَالَ حَدَّثَنَا قَتَادَةُ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ مَالِكِ بْنِ صَعْصَعَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ نَبِيَّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدَّثَهُمْ عَنْ لَيْلَةِ اُسْرِيَ بِهٖ بَيْنَمَا اَنَا فِي الْحَطِيْمِ وَ رُبَمَا قَالَ فِي الْحِجْرِ مُضْطَجِعًا اِذْ اَتَانِيْ اٰتٍ فَقَدَّ قَالَ وَ سَمِعْتُهُ يَقُوْلُ فَشَقَّ مَا بَيْنَ هٰذِهٖ اِلٰى هٰذِهٖ فَقُلْتُ لِلْجَارُوْدِ وَهُوَ اِلٰى جَنْبِيْ مَا يَعْنِيْ بِهٖ قَالَ مِنْ ثُغْرَةِ نَحْرِهٖ اِلٰى شِعْرَتِهٖ وَ سَمِعْتُهُ يَقُوْلُ مِنْ قَصِّهٖ اِلٰى شِعْرَتِهٖ فَاسْتَخْرَجَ قَلْبِيْ ثُمَّ اُتِيْتُ بِطَسْتٍ مِنْ ذَهَبٍ مَمْلُوْءَةٍ اِيْمَانًا فَغَسَلَ قَلْبِيْ ثُمَّ حُشِيَ ثُمَّ اُعِيْدَ ثُمَّ اُتِيْتُ بِدَآبَّةٍ دُوْنَ الْبَغْلِ وَ فَوْقَ الْحِمَارِ اَبْيَضَ فَقَالَ لَهُ الْجَارُوْدُ هُوَ الْبُرَاقُ يَا اَبَا حَمْزَةَ قَالَ اَنَسٌ نَعَمْ يَضَعُ خَطْوَهُ عِنْدَ اَقْصٰى طَرْفِهٖ فَحُمِلْتُ عَلَيْهِ فَانْطَلَقَ بِيْ جِبْرِيْلُ حَتّٰى اَتَى السَّمَاءَ الدُّنْيَا فَاسْتَفْتَحَ فَقِيْلَ مَنْ هٰذَا قَالَ جِبْرِيْلُ قِيْلَ وَمَنْ مَعَكَ قَالَ مُحَمَّدٌ قِيْلَ وَقَدْ اُرْسِلَ اِلَيْهِ قَالَ نَعَمْ قِيْلَ مَرْحَبًا بِهٖ فَنِعْمَ الْمَجِيْءُ جَاءَ فَفَتَحَ فَلَمَّا خَلَصْتُ فَاِذَا فِيْهَا اٰدَمُ فَقَالَ هٰذَا اَبُوْكَ اٰدَمُ فَسَلِّمْ

حضرت انس بن مالک. مالک بن صعصعه نه روايت کوي: رسول الله صلي الله عليه وسلم د صحابه و مخکښې د شب معراج واقعه داسې بيان کړله: چه زهٔ حطيم کښې اوکله (د حطيم په ځائې) ئې حجر اووې: ملاست ووم: چه يو راتلونکې ماله راغې: نو هغهٔ خما سينه دې ځائې نه هغې ځائې پورې اوڅيرله (راوي وائي) ما د جارود نه چه ماسره خوا کښې ناست وو تپوس اوکهٔ "دې ځائې نه هغې ځائې پورې" نه څه مطلب دې: نو هغهٔ اووې: د حلقوم نه زير ناف پورې: نو هغهٔ خما زړهٔ راوښکلو. بيا د ايمان نه ډک د سرو زرو يو تالې ماته راوړلې شو: نو خما زړهٔ اووينزلې شو. بيا هلته کيښودلې شو. بيا ماته د قچرې نه وړوکې او د خر نه لوئې يو سپين څناور راوستې شو. جارود: د حضرت انسؓ نه تپوس اوکهٔ: چه اې ابو حمزه: هغه براق وو: نو انسؓ اووې: او: هغه به د نظر لړيدو په انتها خپل قدم ايښودلو. حضور صلي الله عليه وسلم فرمائي زهٔ په هغې (براق) سور کړې شوم: او هغهٔ زه والوخولم: حتي چه د دنيا آسمان ته راغلو نو د هغې دروازه ئې پرانستل غوښتل: تپوس اوشو: څوک دې: ونيلې جبرئيلؑ دې: تپوس اوشو: تاسره څوک دي: ونيلې: محمد صلي الله عليه وسلم تپوس اوشو: آيا دوي راغبنتلې شوي دي: ونيلې: او: او ونيلې شو: په خيره راغلې: څومره بهترينه تشريف آوري ده. بيائې دروازه پرانسته: چه دننه ورواورسيدو: نو هلته مو حضرت آدم عليه السلام اوليدلو: جبرائيلؑ اووې: دا ستاسو پلار آدم عليه السلام دې. دهٔ ته سلام اوکړئې ما هغهٔ ته سلام اوکړلو: هغهٔ جواب

عَلَيْهِ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَرَدَّ السَّلَامَ
ثُمَّ قَالَ مَرْحَبًا بِالْاِبْنِ الصَّالِحِ
وَ النَّبِيِّ الصَّالِحِ ثُمَّ صَعِدَ حَتّٰى
اَتَى السَّمَآءَ الثَّانِيَةَ فَاسْتَفْتَحَ
قِيْلَ مَنْ هٰذَا قَالَ جِبْرِيْلُ قِيْلَ
وَمَنْ مَّعَكَ قَالَ مُحَمَّدٌ قِيْلَ
وَقَدْ اُرْسِلَ اِلَيْهِ قَالَ نَعَمْ قِيْلَ
مَرْحَبًا بِهٖ فَنِعْمَ الْمَجِيْءُ جَآءَ
فَفَتَحَ فَلَمَّا خَلَصْتُ اِذَا يَحْيٰى
وَ عِيْسٰى وَ هُمَا ابْنَا الْخَالَةِ قَالَ
هٰذَا يَحْيٰى وَ عِيْسٰى فَسَلِّمْ
عَلَيْهِمَا فَسَلَّمْتُ فَرَدَّا ثُمَّ قَالَا
مَرْحَبًا بِالْاَخِ الصَّالِحِ وَالنَّبِيِّ
الصَّالِحِ ثُمَّ صَعِدَ بِيْ اِلَى
السَّمَآءِ الثَّالِثَةِ فَاسْتَفْتَحَ قِيْلَ
مَنْ هٰذَا قَالَ جِبْرِيْلُ قِيْلَ وَمَنْ
مَّعَكَ قَالَ مُحَمَّدٌ قِيْلَ وَقَدْ اُرْسِلَ
اِلَيْهِ قَالَ نَعَمْ قِيْلَ مَرْحَبًا بِهٖ
فَنِعْمَ الْمَجِيْءُ جَاءَ فَفَتَحَ
فَلَمَّا خَلَصْتُ اِذَا يُوْسُفُ قَالَ
هٰذَا يُوْسُفُ فَسَلِّمْ عَلَيْهِ
فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَرَدَّ ثُمَّ قَالَ
مَرْحَبًا بِالْاَخِ الصَّالِحِ وَالنَّبِيِّ
الصَّالِحِ ثُمَّ صَعِدَ بِيْ حَتّٰى
اَتَى السَّمَآءَ الرَّابِعَةَ فَاسْتَفْتَحَ
قِيْلَ مَنْ هٰذَا قَالَ جِبْرِيْلُ قِيْلَ

راكړهٔ' اوونيلے' چه اے نبي صالح' او صالح خويه' هر كله راشے. بيا جبرئيلؑ پورته بوتلم' حتي چه دويم آسمان ته اورسيدو' او دروازه ئے پرانستل غوښتل' تپوس ئے اوكړهٔ' څوك دي' ونيلے جبرئيلؑ' تپوس ئے اوكړهٔ' تاسره څوك دي' ونيلے' محمد صلي الله عليه وسلم تپوس ئے اوكړه' آيا دوي' راغوښتلے شوے دي' ونيلے' او' اوونيلے شو' هر كله راشے' ستاسو تشريف آوري څومره مباركه ده' نو دروازه پرانستے شوه' څهٔ وخت چه زهٔ دننه ورغلم' نو هلته م يحييٰؑ او عيسيٰؑ اوليدل' او هغوي دواړو سره د تروررئے خامن (خالہ زاد بھائی) دي. جبرئيلؑ اووے' دا يحييٰؑ او عيسيٰؑ دے. دوي ته سلام اوكړه' ما هغوي ته سلام اوكړهٔ' نو هغوي جواب راكړلو' ونيلے برادر صالح او نبي صالح' هر كله راشے. بيا زهٔ جبرئيلؑ دريم آسمان ته اوخيژولم' او دروازه پرانستل ئے اوغوښتل' تپوس اوشو' څوك دي' ونيلے جبرئيل دے' تپوس اوشو' تاسره څوك دي ونيلے' محمد صلي الله عليه وسلم تپوس اوشو' آيا دوي راغښتلے شوے دي' ونيلے' او' اوونيلے شو' هر كله راشے' ستاسو تشريف آوري څومره ښهٔ ده' او دروازه ئے پرانسته' څهٔ وخت چه زهٔ ورغلم' نو هلته م يوسف عليه السلام اوليدلو' جبريل اووے' دا يوسفؑ دے' دهٔ ته سلام اوكړئے' ما هغهٔ ته سلام اوكړلو' نو هغهٔ جواب راكړلو' ونيلے' اے برادر صالح او اے نبي صالح' په خيره راغلے' بيا جبريلؑ زهٔ پورته اوخيژولم حتي چه څلورم اسمان ته اورسيدو' او دروازه پرانستل ئے اوغوښتل' تپوس اوشو' څوك دي' ونيلے جبريل' تپوس ئے اوكړهٔ' تاسره بل څوك دي'

وَمَنْ مَّعَكَ قَالَ مُحَمَّدٌ قِيْلَ قَدْ
أُرْسِلَ اِلَيْهِ قَالَ نَعَمْ قِيْلَ مَرْحَبًا
بِهٖ فَنِعْمَ الْمَجِيْءُ جَاءَ فَفَتَحَ
فَلَمَّا خَلَصْتُ فَاِذَا اِدْرِيْسُ قَالَ
هٰذَا اِدْرِيْسُ فَسَلِّمْ عَلَيْهِ
فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَرَدَّ ثُمَّ قَالَ
مَرْحَبًا بِالْاَخِ الصَّالِحِ وَالنَّبِيِّ
الصَّالِحِ ثُمَّ صَعِدَ بِيْ حَتّٰى
اَتَى السَّمَآءَ الْخَامِسَةَ فَاسْتَفْتَحَ
قِيْلَ مَنْ هٰذَا قَالَ جِبْرِيْلُ قِيْلَ
وَمَنْ مَّعَكَ قَالَ مُحَمَّدٌ قِيْلَ
وَقَدْ اُرْسِلَ اِلَيْهِ قَالَ نَعَمْ قِيْلَ
مَرْحَبًا بِهٖ فَنِعْمَ الْمَجِيْءُ جَاءَ
فَلَمَّا خَلَصْتُ فَاِذَا هَارُوْنُ قَالَ
هٰذَا هَارُوْنُ فَسَلِّمْ عَلَيْهِ
فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَرَدَّ ثُمَّ قَالَ
مَرْحَبًا بِالْاَخِ الصَّالِحِ وَالنَّبِيِّ
الصَّالِحِ ثُمَّ صَعِدَ بِيْ حَتّٰى
اَتَى السَّمَاءَ السَّادِسَةَ فَاسْتَفْتَحَ
قِيْلَ مَنْ هٰذَا قَالَ جِبْرِيْلُ قِيْلَ
وَمَنْ مَّعَكَ قَالَ مُحَمَّدٌ قِيْلَ
وَقَدْ اُرْسِلَ اِلَيْهِ قَالَ نَعَمْ قَالَ
مَرْحَبًا بِهٖ فَنِعْمَ الْمَجِيْءُ جَاءَ
فَلَمَّا خَلَصْتُ فَاِذَا مُوْسٰى قَالَ
هٰذَا مُوْسٰى فَسَلِّمْ عَلَيْهِ فَسَلَّمْتُ
عَلَيْهِ فَرَدَّ ثُمَّ قَالَ مَرْحَبًا بِالْاَخِ

وئيلے محمد صلي الله عليه وسلّم تپوس اوشو، آيا دوي بللے شوے دي، وئيلے "او" اوونيلے شو، هر كله راشے. ستاسو تشريف آوري خومره ښه ده بيائے دروازه پرانستله. زۀ چه دننه اورسيدم نو جبريل اووے "دا ادريسؑ دے" دۀ ته سلام او كړه" ما هغۀ ته سلام او كړلو" هغۀ جواب راكۀ، وئيلے" اے برادر صالح او نبي صالح په خيره راغلے" بيا هغۀ زۀ پورته اوخيژولم" حتي چه پنځم آسمان ته اورسيدو" او دروازه پرانستل ئے اوغوښتل" تپوس اوشو" څوك دي، وئيلے" جبريل" تپوس ئے او كۀ" تاسره بل څوك دي، وئيلے" محمد صلي الله عليه وسلّم تپوس اوشو آيا دوي بللے شوے دي. وئيلے "او" اوونيلے شو" هر كله راشه" ستاسو تشريف آوري خومره ښه ده. څۀ وخت چه زۀ دننه ورغلم" نو حضرت هارون عليه السلام سره يو ځائے شوم جبرائيلؑ اووے" دا هارونؑ دے" دۀ ته سلام او كړه" ما هغۀ ته سلام او كه، هغۀ جواب راكه" وئيلے" هر كله راشے برادر صالح او نبي صالح، بيا زۀ جبرائيل پورته اوخيژولم" حتي چه شپږم آسمان ته اورسيدو" او دروازه پرانستل ئے اوغوښتل، تپوس اوشو" څوك دي" وئيلے جبرائيل دے، تپوس ئے او كۀ، تاسره بل څوك دي. وئيلے محمد صلي الله عليه وسلّم تپوس ئے او كه" آيا دويّ بللے شوے دي. وئيلے "او" او وئيلے شو" په خيره راغلے (ستړے مه شے) ستا تشريف راوړل خومره خوشحالونكي دي. كوم وخت چه زۀ دننه ورغلم، نو حضرت موسٰي عليه السلام سره يو ځائے شوم، جبرائيلؑ اووے" دا موسٰيؑ دے. دۀ ته سلام او كړه" ما هغه ته سلام او كه، هغه جواب راكۀ، وئيلے هر كله راشے"

الصَّالِحِ وَالنَّبِيِّ الصَّالِحِ فَلَمَّا
تَجَاوَزْتُ بَكٰى قِيْلَ لَهٗ مَا يُبْكِيْكَ
قَالَ اَبْكِيْ لِاَنَّ غُلَامًا بُعِثَ
بَعْدِيْ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مِنْ اُمَّتِهٖ
اَكْثَرُ مَنْ يَّدْخُلُهَا مِنْ اُمَّتِيْ ثُمَّ
صَعِدَ بِيْ اِلَى السَّمَاءِ السَّابِعَةِ
فَاسْتَفْتَحَ جِبْرِيْلُ قِيْلَ مَنْ هٰذَا
قَالَ جِبْرِيْلُ قِيْلَ وَمَنْ مَّعَكَ
قَالَ مُحَمَّدٌ قِيْلَ وَقَدْ بُعِثَ اِلَيْهِ
قَالَ نَعَمْ قَالَ مَرْحَبًا بِهٖ فَنِعْمَ الْمَجِيْءُ
جَاءَ فَلَمَّا خَلَصْتُ فَاِذَا اِبْرٰهِيْمُ
قَالَ هٰذَا اَبُوْكَ فَسَلِّمْ عَلَيْهِ
قَالَ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَرَدَّ السَّلَامَ
قَالَ مَرْحَبًا بِالْاِبْنِ الصَّالِحِ
وَالنَّبِيِّ الصَّالِحِ ثُمَّ رُفِعْتُ اِلٰى سِدْرَةِ
الْمُنْتَهٰى فَاِذَا نَبِقُهَا مِثْلُ قِلَالِ
هَجَرَ وَ اِذَا وَرَقُهَا مِثْلُ اٰذَانِ
الْفِيْلَةِ قَالَ هٰذِهٖ سِدْرَةُ الْمُنْتَهٰى
وَ اِذَا اَرْبَعَةُ اَنْهَارٍ نَهْرَانِ بَاطِنَانِ
وَ نَهْرَانِ ظَاهِرَانِ فَقُلْتُ مَا هٰذَانِ
يَا جِبْرِيْلُ قَالَ اَمَّا الْبَاطِنَانِ
فَنَهْرَانِ فِي الْجَنَّةِ وَ اَمَّا
الظَّاهِرَانِ فَالنِّيْلُ وَالْفُرَاتُ ثُمَّ
رُفِعَ لِيَ الْبَيْتُ الْمَعْمُوْرُ ثُمَّ اُتِيْتُ
بِاِنَاءٍ مِنْ خَمْرٍ وَ اِنَاءٍ مِنْ لَبَنٍ وَ
اِنَاءٍ مِنْ عَسَلٍ فَاَخَذْتُ اللَّبَنَ

صالح وروره، صالح نبي. کوم وخت چه زهٔ مخ پـه وړاندے شوم، نو موسیٰ په ژړا شو، هغهٔ نه تپوس اوشو، تاسو ولے ژاړئ، هغهٔ وئيلے، خکه ژاړم، چه خما نه پس یو خلمے نبي راولیږلے شو، چه د هغهٔ د اُمت خلق به خما د اُمت نه زيات جنت کښ داخل شي (الحمد لله). بيا زهٔ جبرائیل اووم آسمان تـه بوتلم، او هغهٔ دروازه پرانستل غوښتل تپوس اوشو څوک دي. وئیلے، محمد صلي اللّٰه علیه وسلّم دے. تپوس اوشو، آيا دوي بللے شوے دي. وئیلے، او، اووئیلے شو، هر کله راشے، ستاسو تشریف راوړل څومره بهترین دي. څهٔ وخت چه زهٔ دننه ورغلم، نو حضرت ابراهیم علیه السلام م اولیدلو. جبرائیلؑ اووے، دا ستاسوَ پلار دے. دهٔ ته سلام اوکړئ، ما هغوي ته سلام اوکهٔ، نو هغهٔ جواب راکړو، وئیلے، صالحه خویه، او صالحه نبي، هر کله راشے. بيا خما مخے ته سدرة المنتهي (اووم آسمان کښ د بيرے اُونه) ظاهر کړے شوه، نو د هغے میوه ذ مقام هجر ذ متکو (چاټو) په شان وه، او د هغے پاڼړے ذ هاتي د غوږونو په شان (لوئے) وے. او هلته ما څلور نهرونه اولیدل، دوه پټ او دوه ظاهر. ما تپوس اوکه. اے جبرئیل، دا دوه نهرونه څنګه دي، هغه اووے، دوه پټ نهرونه خو د جنت دي. او دوه ظاهر (څرګند) نهرونه نیل او فرات دي. بيا خما مخکښ بيت المعمور پیش کړے شو، بيا ماته ذ شرابو، پیؤ او شاتو یوه یوه پیالے پیش کړے شوه. ما د پیؤ پیالے واخسته، نو جبرائیل اووے، دا فطرت دے، چه په هغے به تاسوَ او ستاسو اُمت وي. بيا خما په اُمت یومیه (یعني ورځ کښ) پنځوس مونځونه فرض شو. زهٔ

فَقَالَ هِيَ الْفِطْرَةُ اَنْتَ عَلَيْهَا وَ اُمَّتُكَ ثُمَّ فُرِضَتْ عَلَيَّ الصَّلَوَاتُ خَمْسِيْنَ صَلٰوةً كُلَّ يَوْمٍ فَرَجَعْتُ فَمَرَرْتُ عَلٰى مُوْسٰى فَقَالَ بِمَا اُمِرْتَ قَالَ اُمِرْتُ بِخَمْسِيْنَ صَلٰوةٍ كُلَّ يَوْمٍ قَالَ اِنَّ اُمَّتَكَ لَا تَسْتَطِيْعُ خَمْسِيْنَ صَلٰوةً كُلَّ يَوْمٍ وَ اِنِّيْ وَاللّٰهِ قَدْ جَرَّبْتُ النَّاسَ قَبْلَكَ وَ عَالَجْتُ بَنِيْ اِسْرَائِيْلَ اَشَدَّ الْمُعَالَجَةِ فَارْجِعْ اِلٰى رَبِّكَ فَاسْأَلْهُ التَّخْفِيْفَ لِاُمَّتِكَ فَرَجَعْتُ فَوَضَعَ عَنِّيْ عَشْرًا فَرَجَعْتُ اِلٰى مُوْسٰى فَقَالَ مِثْلَهُ فَرَجَعْتُ فَوَضَعَ عَنِّيْ عَشْرًا فَرَجَعْتُ اِلٰى مُوْسٰى فَقَالَ مِثْلَهُ فَرَجَعْتُ فَاُمِرْتُ بِعَشْرِ صَلَوٰتٍ كُلَّ يَوْمٍ فَرَجَعْتُ فَقَالَ مِثْلَهُ فَرَجَعْتُ فَاُمِرْتُ بِخَمْسِ صَلَوٰتٍ كُلَّ يَوْمٍ فَرَجَعْتُ اِلٰى مُوْسٰى فَقَالَ بِمَا اُمِرْتَ قُلْتُ اُمِرْتُ بِخَمْسِ صَلَوٰتٍ كُلَّ يَوْمٍ قَالَ اِنَّ اُمَّتَكَ لَا تَسْتَطِيْعُ خَمْسَ صَلَوٰتٍ وَ اِنِّيْ قَدْ جَرَّبْتُ النَّاسَ قَبْلَكَ وَ عَالَجْتُ بَنِيْ اِسْرَائِيْلَ اَشَدَّ الْمُعَالَجَةِ فَارْجِعْ اِلٰى رَبِّكَ فَاسْئَلْهُ التَّخْفِيْفَ لِاُمَّتِكَ قَالَ سَأَلْتُ رَبِّيْ حَتّٰى اسْتَحْيَيْتُ وَلٰكِنْ رَضِيَ وَ اُسَلِّمُ قَالَ فَلَمَّا جَاوَزْتُ

واپس شوم. تردې چه په موسي عليه السلام تيريدم. نو هغه تپوس او كه: تاسو ته څه حكم دركړے شو. حضور ورته اوفرمائيل: ورځ كښې د پنځوسو مونځونو حكم راكړے شوے دے. حضرت موسیٰ اووے. ستاسو اُمت ورځ كښې پنځوس مونځونه نشي ادا كولے. په خدائے چه ما ستاسو نه مخكښې د خلقو تجربه كړے ده. او بني اسرائيل م آزمائيلے دي. تاسو خپل رب ته واپس لاړ شئ. او د خپل اُمت د پاره د تخفيف درخواست او كړه. زۀ واپس راغلم. نو الله تعالىٰ اول پنځه بيا په دويم خل پنځه يعني كل لس مونځونه معاف كړل. بيا زۀ حضرت موسیٰ له راغلم. نو هغۀ بيا هغسے اووے. زۀ بيا واپس لاړم. او الله تعالىٰ دوه خله كښې لس مونځونه نور معاف كړل. بيا زۀ حضرت موسیٰ له واپس راغلم. نو هغۀ بيا هغسے اووے. زۀ بيا واپس لاړم. نو پنځه مونځونه بيا معاف شولو. او ماته يوميه د لس مونځونو حكم اوشو. بيا زۀ واپس راغلم. نو حضرت موسیٰ بيا هغسے اووے. زۀ بيا واپس لاړم. نو پنځه مونځونه نور معاف شو. حتي چه اوس ماته يوميه د پنځو مونځونو حكم اوشو. بيا زۀ حضرت موسیٰ له راغلم. نو هغۀ تپوس او كه: تاسو ته څۀ حكم دركړے شوے دے. يوميه د پنځو مونځونو حكم راكړے شوے دے. هغۀ اووے ستاسو اُمت يوميه پنځه مونځونه نشي كولے. او د خپل رب نه د خپل اُمت د پاره د تخفيف سوال او كه. حضور ورته اوفرمائيل: ما الله تعالىٰ ته دومره زيات خواستونه او كړل. چه اوس ماته د زيات خواست كولو نه شرم راځي. اوس زۀ راضي يم. او تسليم كوم. كوم وخت چه په وړاندې لاړم. نو يو منادي

نَادٰى مُنَادٍ اَمْضَيْتُ فَرِيْضَتِيْ وَ خَفَّفْتُ عَنْ عِبَادِيْ.

(آواز كونكي) آواز اوكه چه ما خپل فريضه جاري كړله او په خپلو بنديانو م تخفيف اوكه.

ف: بيت معمور: څلورم آسمان كښې د كعبې مقابل يو جمات دے چه فرښتو نه معمور او آباد دے.

۱۰۷۴: حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ حَدَّثَنَا عَمْرٌو عَنْ عِكْرَمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا فِيْ قَوْلِهٖ تَعَالٰى وَمَا جَعَلْنَا الرُّؤْيَا الَّتِيْ اَرَيْنَاكَ اِلَّا فِتْنَةً لِلنَّاسِ قَالَ هِيَ رُؤْيَا عَيْنٍ اُرِيَهَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةَ اُسْرِيَ بِهٖ اِلٰى بَيْتِ الْمُقَدَّسِ قَالَ وَالشَّجَرَةَ الْمَلْعُوْنَةَ فِي الْقُرْاٰنِ قَالَ هِيَ شَجَرَةُ الزَّقُّوْمِ.

۱۰۷۴: حميدي. سفيان. عمرو. عكرمه. حضرت ابن عباسؓ نه آيت قرآني: او هغه خوب چه مونږ تاته اوښودلو هغه صرف د خلقو د امتحان د پاره وو "په تفسير كښې د هغه قول نقل كوي چه دا د سترګې رويت (ليدل) دي چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم ته په هغه شپه چه هغې كښې په حضورؐ د بيت المقدس سيل اوكړے شو اوښودلے شو. ابن عباسؓ فرمائي چه قرآن كښې شجره ملعونه نه مراد د زقوم اونه ده.

ف: زقوم: تهوهر سيند: يو قسم ازغن او زهردار بوټے چه پڼے هم كوي يعني پڼے ترے نه هم راوځي.

باب۴۵۷: وَفُوْدِ الْاَنْصَارِ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَكَّةَ وَ بَيْعَةِ الْعَقَبَةِ.

باب۴۵۷: د انصارو د وفودو د رسول اللّٰه عليه وسلم خدمت كښې مكه او بيت العقبه ته د تلو بيان.

۱۰۷۵: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ حَدَّثَنَا اَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ حَدَّثَنَا يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ كَعْبٍ وَ كَانَ قَائِدَ كَعْبٍ حِيْنَ عَمِيَ قَالَ سَمِعْتُ كَعْبَ بْنَ مَالِكٍ يُحَدِّثُ حِيْنَ تَخَلَّفَ عَنِ النَّبِيِّ

۱۰۷۵: يحيي بن بكير. ليث. عقيل. ابن شهاب. (دونم سند) احمد بن صالح. عنبه. يونس. ابن شهاب. عبدالرحمن بن عبداللّٰه بن كعب بن مالك. د كعب بن مالك د نابينا كيدو نه پس د هغه نيونكے او بوتلونكے عبداللّٰه بن كعب حضرت كعب بن مالكؓ نه روايت كوي چه هغه خپله هغه قصه كوم وخت چه هغه غزوه تبوك كښې د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نه ورستو پاتے شوے وو، واورولـه، او پوره

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ غَزْوَةِ تَبُوْكَ بِطُوْلِهِ قَالَ ابْنُ بُكَيْرٍ فِيْ حَدِيْثِهِ وَلَقَدْ شَهِدْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةَ الْعَقَبَةِ حِيْنَ تَوَاثَقْنَا عَلَى الْإِسْلَامِ وَمَا أُحِبُّ أَنَّ لِيْ بِهَا مَشْهَدُ بَدْرٍ وَ إِنْ كَانَتْ بَدْرٌ أَذْكَرَ فِي النَّاسِ مِنْهَا.

واقعه ئې واورولـه. ابن بكير وائي، د هغه په قصه كښې دا هم وو، چه زه شپه (بيعت) عقبه كښې رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم سره ووم. چه مونږ په اسلام د قائم پاتې كيدو عهد و پيمان كړے وو. او ماته د هغې په بدله كښې د بدر حضوري غوره نه ده، اګر كه په خلقو كښې د بدر زياته تذكره ده.

۱۰۷۶: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ قَالَ كَانَ عَمْرٌو يَقُوْلُ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا يَقُوْلُ شَهِدَ بِيْ خَالَايَ الْعَقَبَةَ قَالَ أَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ ابْنُ عُيَيْنَةَ أَحَدُهُمَا الْبَرَاءُ بْنُ مَعْرُوْرٍ.

۱۰۷۶: علي بن عبداللّٰه. سفيان. عمرو. جابر عبداللّٰهؓ نه روايت كوي، هغه فرمائي، زۀ خپلو دواړو ماما ګانو (بيعت) عقبه ته بوتلم امام بخاريؒ فرمائي، ابن عيينه اووې يو د هغوي نه براء بن معرور وو.

۱۰۷۷: حَدَّثَنِيْ إِبْرٰهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى أَخْبَرَنَا هِشَامٌ أَنَّ ابْنَ جُرَيْجٍ أَخْبَرَهُمْ قَالَ عَطَاءٌ قَالَ جَابِرٌ أَنَا وَ أَبِيْ وَ خَالِيْ مِنْ أَصْحٰبِ الْعَقَبَةِ.

۱۰۷۷: ابراهيم بن موسي. هشام. ابن جريج. عطاء نه روايت كوي، حضرت جابرؓ اوفرمائيل، زۀ خما پلار او خما دواړه ماما ګان اصحاب (بيعت) عقبه نه وو.

۱۰۷۸: حَدَّثَنِيْ إِسْحٰقُ بْنُ مَنْصُوْرٍ أَخْبَرَنَا يَعْقُوْبُ بْنُ إِبْرٰهِيْمَ حَدَّثَنَا ابْنُ أَخِي ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَمِّهِ قَالَ أَخْبَرَنِيْ أَبُوْ إِدْرِيْسَ عَائِذُ اللّٰهِ أَنَّ عُبَادَةَ بْنَ الصَّامِتِ مِنَ الَّذِيْنَ شَهِدُوْا بَدْرًا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمِنْ أَصْحَابِهِ لَيْلَةَ الْعَقَبَةِ أَخْبَرَهُ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَ

۱۰۷۸: اسحاق بن منصور. يعقوب بن ابراهيم. د ابن شهاب وراره. ابن شهاب. ابو ادريس. عائذ اللّٰه. حضرت عباده بن صامت نه (چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم سره بدر كښې شريك وو، او د حضور د اصحاب ليلة العقبه نه هم وو) روايت كوي. هغه فرمائي، د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم ګير چاپيره د صحابهٔ يو جماعت ناست وو. حضورؐ اوفرمائيل. راشئ او خما په لاس بيعت اوكړئ. چه اللّٰه تعالي سره به څوك شريك نۀ جوړوئ غلا به نۀ كوئ، زنا به نۀ كوئ، نۀ به

حَوْلَهُ عِصَابَةٌ مِنْ اَصْحَابِهٖ تَعَالَوْا بَايِعُوْنِيْ عَلٰى اَنْ لَّا تُشْرِكُوْا بِاللّٰهِ شَيْئًا وَّلَا تَسْرِقُوْا وَلَا تَزْنُوْا وَلَا تَقْتُلُوْا اَوْلَادَكُمْ وَلَا تَأْتُوْا بِبُهْتَانٍ تَفْتَرُوْنَهٗ بَيْنَ اَيْدِيْكُمْ وَ اَرْجُلِكُمْ وَلَا تَعْصُوْنِيْ فِيْ مَعْرُوْفٍ فَمَنْ وَ فٰى مِنْكُمْ فَاَجْرُهٗ عَلَى اللّٰهِ وَمَنْ اَصَابَ مِنْ ذٰلِكَ شَيْئًا فَعُوْقِبَ بِهٖ فِي الدُّنْيَا فَهُوَ لَهٗ كَفَّارَةٌ وَمَنْ اَصَابَ مِنْ ذٰلِكَ شَيْئًا فَسَتَرَهُ اللّٰهُ فَاَمْرُهٗ اِلَى اللّٰهِ اِنْ شَآءَ عَاقَبَهٗ وَ اِنْ شَآءَ عَفَا عَنْهُ قَالَ فَبَايَعْتُهٗ عَلٰى ذٰلِكَ.

خپل اولاد قتلوئے' او نه به داسے بُهتان تړئے' چه تاسو د خپل لاس پښو مينځ کښ افتراء' اوکړے (يعني د خان نه ئے جوړ کړئے) او نه به يو ه ښهٔ خبره کښ څما نافرماني کوے' کوم سړے چه دا بيعت پوره کړي نو د هغه اجر په خدائے دے' او چا چه په دے خبرو کښ څه نافرماني اوکړه نو يا خو دُنيا کښ به هغه ته څهٔ سزا ورکړے شي' نو هغه دُنياوي سزا د هغه د پاره کفاره ده. يا به خلاف ورزي کوي' او هغهٔ ته دنيا کښ هيڅ سزا نه رسي' بلکه الله تعالي د هغه پرده پوشي کوي' نو د هغه معامله الله ته حواله ده' که هغه غواړي' نو آخرت کښ به سزا ورکړي' او که خوښه ئے وي' نو معاف به ئے کړي' عباده وائي' ما هم د حضورؐ نه د دے بيعت اوکړهٔ.

۱۰۷۹ : حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ قَالَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ يَزِيْدَ بْنِ اَبِيْ حَبِيْبٍ عَنْ اَبِي الْخَيْرِ عَنِ الصُّنَابِحِيِّ عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ اَنَّهٗ قَالَ اِنِّيْ مِنَ النُّقَبَآءِ الَّذِيْنَ بَايَعُوا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ قَالَ بَايَعْنَاهُ عَلٰى اَنْ لَّا نُشْرِكَ بِاللّٰهِ شَيْئًا وَلَا نَسْرِقَ وَلَا نَزْنِيَ وَلَا نَقْتُلَ النَّفْسَ الَّتِيْ حَرَّمَ اللّٰهُ اِلَّا بِالْحَقِّ وَلَا نَنْتَهِبَ وَلَا نَعْصِيَ بِالْجَنَّةِ اِنْ فَعَلْنَا ذٰلِكَ فَاِنْ غَشِيْنَا مِنْ ذٰلِكَ شَيْئًا كَانَ قَضَآءُ ذٰلِكَ اِلَى اللّٰهِ.

۱۰۷۹ : قتيبه. ليث. يزيد بن ابي حبيب. قتيبه. ليث. يزيد بن ابي حبيب. ابوالخير. صنابحي. حضرت عباده بن صامتؓ نه روايت کوي' هغه فرماني زهٔ هغے نقيبانو (محافظانو) کښ ووم' چه هغوي د رسول الله صلي الله عليه وسلم نه بيعت کړے وو' هغه فرمائي' مونږ د حضورؐ د جنت په وعده بيعت کړے وو' چه مونږ به الله تعالي سره هيڅوک نه شريکوو' غلا به نه کوو' زنا به نه کوو' او د چا قتل چه الله تعالي حرام کړے دے' مونږ به هغه نه قتلوو' او لوټ مار به نه کوو' او نه به د حضورؐ نافرماني کوو' که مونږ د دے تعميل اوکړو' نو جنت به حاصل کړو. او که خلاف ورزي اوکړو' نو د هغے فيصله د الله په حواله ده.

## بَاب ۴۵۸: تَزْوِيْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَائِشَةَ وَ

## باب ۴۵۸: د حضور صلي الله عليه وسلم بي بي عائشے صديقےؓ سره نکاح او د هغے مدينے ته د راتلو

قُدُوْمُهُ الْمَدِيْنَةَ وَبِنَائِهِ بِهَا.

او رخصتي بیان.

١٠٨٠ : حَدَّثَنِيْ فَرْوَةُ ابْنُ اَبِى الْمَغْرَآءِ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَلِيُّ ابْنُ مُسْهِرٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ تَزَوَّجَنِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَنَا بِنْتُ سِتِّ سِنِيْنَ فَقَدِمْنَا الْمَدِيْنَةَ فَنَزَلْنَا فِيْ بَنِي الْحَارِثِ بْنِ الْخَزْرَجِ فَوُعِكْتُ فَتَمَرَّقَ شَعْرِيْ فَوَفَا جُمَيْمَةً فَاَتَتْنِيْ اُمِّيْ اُمُّ رُوْمَانَ وَ اِنِّيْ لَفِيْ اُرْجُوْحَةٍ وَّ مَعِيَ صَوَاحِبُ لِيْ فَصَرَخَتْ بِيْ فَاَتَيْتُهَا مَا اَدْرِيْ مَا تُرِيْدُ بِيْ فَاَخَذَتْ بِيَدِيْ حَتّٰى اَوْ قَفَتْنِيْ عَلٰى بَابِ الدَّارِ وَ اِنِّيْ لَاُنْهِجُ حَتّٰى سَكَنَ بَعْضُ نَفَسِيْ ثُمَّ اَخَذَتْ شَيْئًا مِنْ مَّاءٍ فَمَسَحَتْ بِهٖ وَجْهِيْ وَ رَاْسِيْ ثُمَّ اَدْخَلَتْنِى الدَّارَ فَاِذَا نِسْوَةٌ مِنَ الْاَنْصَارِ فِي الْبَيْتِ فَقُلْنَ عَلٰى خَيْرٍ وَالْبَرْكَةِ وَ عَلٰى خَيْرِ طَائِرٍ فَاَسْلَمَتْنِيْ اِلَيْهِنَّ فَاَصْلَحْنَ مِنْ شَاْنِيْ فَلَمْ يَرُعْنِيْ اِلَّا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضُحًى فَاَسْلَمْنَنِيْ اِلَيْهِ وَ اَنَا يَوْمَئِذٍ بِنْتُ تِسْعِ سِنِيْنَ.

١٠٨٠ : فروه بن ابي المغراء. علي بن مسهر. هشام. د هغه پلار. بي بي عائشې نه روایت کوي. هغه فرمائي، زۀ د شپږو کالو ووم، چه نبي صلي الله علیه وسلم سره خما نکاح اوشوه، بیا مونږ په هجرت مدینې ته راغلو، نو د حارث بن خزرج په مکان کښې کوز شولو، بیا خما دومره سخته تبه شوه، چه خما د سر ویښتۀ غُرخیدل، او هغه غوړونو پورې پاتې شو. بیا زۀ یو ورځ خپلو سهیلو سره تال (زانګو) کښې ناسته ووم چه خما مور اُم رومان ماله راغله، او ماته ئې په زوره آواز کۀ. زۀ هغې له ورغلم، حالانکه ماته معلومه نۀ وه. چه هغې څه له بللې یم، هغې خما لاس اونیولو، او زۀ ئې د یو مکان په دروازه اودرولم. خما ساه په سکیندو، وه، حتي چه لږ شان اوبه ئې واخستې، خما په مخ او سر ئې لاس رابښکلو بیا مکان کښې ئې داخله کړم. نو ما کمره کښې څو انصاري ښځې اولیدې، هغوي اووې. خیر وبرکت او نیک فال سره راځه. خما مور زۀ هغوي ته حواله کړم، بیا غرمه کښې حضور تشریف راوړلو، او هغوي زۀ حضور نه حواله کړم، دغه وخت خما عمر نهه کاله، وو.

۱. حجاز چونکه ګرم ملک دې په دې وجه هلته قدرتي طور سره هلکان او جینکۍ په ډیر کم عمر کښې بالغ شي. په دې وجه د عائشې رضي الله عنها د رخصتي وخت کښې صرف نهو کالو عمر باندې تعجب کول نه دي پکار. ګرم ملکونه چه یخ دي په هغې کښې د بلوغ عمر هندوستان (پاکستان) نه زیات دې.

۱۰۸۱: حَدَّثَنَا الْمُعَلّٰى قَالَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهَا اُرِيْتُكِ فِي الْمَنَامِ مَرَّتَيْنِ اُرٰى اَنَّكِ فِيْ سَرَقَةٍ مِنْ حَرِيْرٍ وَّ يَقُوْلُ هٰذِهِ امْرَأَتُكَ فَاَكْشِفُ عَنْهَا فَاِذَا هِيَ اَنْتِ فَاَقُوْلُ اِنْ يَكُ هٰذَا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ يُمْضِهٖ.

۱۰۸۲: حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ اِسْمٰعِيْلَ قَالَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ تُوُفِّيَتْ خَدِيْجَةُ قَبْلَ مَخْرَجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَى الْمَدِيْنَةِ بِثَلٰثِ سِنِيْنَ فَلَبِثَ سَنَتَيْنِ اَوْ قَرِيْبًا مِنْ ذٰلِكَ وَ نَكَحَ عَائِشَةَ وَ هِيَ بِنْتُ سِتِّ سِنِيْنَ ثُمَّ بَنٰى بِهَا وَ هِيَ بِنْتُ تِسْعِ سِنِيْنَ.

باب ۴۵۹: هِجْرَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَصْحَابِهٖ اِلَى الْمَدِيْنَةِ. وَ قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ زَيْدٍ وَ اَبُوْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْلَا الْهِجْرَةُ لَكُنْتُ امْرَءًا مِنَ الْاَنْصَارِ وَ قَالَ اَبُوْ مُوْسٰى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاَيْتُ فِي الْمَنَامِ اَنِّيْ اُهَاجِرُ مِنْ مَكَّةَ اِلٰى اَرْضٍ بِهَا نَخْلٌ فَذَهَبَ وَهْلِيْ اِلٰى اَنَّهَا الْيَمَامَةُ اَوْ

۱۰۸۱: معلي. وهيب. هشام بن عروه. د هغهٔ پلار. بي بي عائشهؓ نه روايت كوي، هغه فرمائي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم هغې ته اوفرمائيل، چه ماته (د نكاح نه مخكښې) دوه خله خوب كښې ريښمنو كپړو كښې انغښتې اوليدې، او ماته اوونيلې شو، چه دا ستا بي بي ده. كوم وخت چه ما هغه كپړه بيرته كړه، نو تهٔ په نظر راغلې، ما اووې، كه دا د اللّٰه د جانب نه وي نو هغه به دا پوره كړي.

۱۰۸۲: عبيد بن اسماعيل. ابو اسامه. هشام. د هغهٔ دَ پلار نه روايت كوي، د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم مدينې طرف ته د هجرت كولو نه درې كاله مخكښې بي بي خديجهؓ وفات شوه، نو حضورؐ كم و بيش دوه كاله توقف اوكړ، بيا بي بي عائشهؓ سره ئې چه هغه وخت دَ هغې عمر شپږ كاله وو، نكاح اوكړله. او بيا د نهو كالو په عمر كښې ئې رخصتي اوشوه.

باب ۴۵۹: دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلم او دَ هغوي دَ اصحابو مدينې ته دَ هجرت كولو بيان. عبداللّٰه بن زيد او ابوهريرهؓ، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم نه روايت كوي، حضورؐ اوفرمائيل، كه د هجرت فضيلت نه وې نو زهٔ به دَ انصارو يو فرد ووم. او ابو موسيٰؓ دَ نبي صلي اللّٰه عليه وسلم نه روايت كوي. حضورؐ اوفرمائيل، ما خوب كښې اوليدل، چه زهٔ دَ مكې نه داسې زمكې طرف ته هجرت كوم، چه هغې كښې د قجورو اُونې كثرت سره دي، خما خيال كښې راغله، چه هغه يمامه يا حجر دې. ليكن

هَجَرُ فَاِذَا هِيَ الْمَدِيْنَةُ يَثْرِبُ.

۱۰۸۳ : حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا الْاَعْمَشُ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا وَائِلٍ يَقُوْلُ عُدْنَا خَبَّابًا فَقَالَ هَاجَرْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نُرِيْدُ وَجْهَ اللّٰهِ فَوَقَعَ اَجْرُنَا عَلَى اللّٰهِ فَمِنَّا مَنْ مَّضٰى لَمْ يَاْخُذْ مِنْ اَجْرِهٖ شَيْئًا مِنْهُمْ مُصْعَبُ بْنُ عُمَيْرٍ قُتِلَ يَوْمَ اُحُدٍ وَ تَرَكَ نَمِرَةً فَكُنَّا اِذَا غَطَّيْنَا بِهَا رَاْسَهٗ بَدَتْ رِجْلَاهُ وَ اِذَا غَطَّيْنَا رِجْلَيْهِ بَدَا رَاْسُهٗ فَاَمَرَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ نُغَطِّيَ رَاْسَهٗ وَ نَجْعَلَ عَلٰى رِجْلَيْهِ شَيْئًا مِّنْ اِذْخِرَ وَ مِنَّا مَنْ اَيْنَعَتْ لَهٗ ثَمَرَتُهٗ فَهُوَ يَهْدِبُهَا.

۱۰۸۴ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ هُوَ ابْنُ زَيْدٍ عَنْ يَحْيٰى عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ اِبْرٰهِيْمَ عَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَقَّاصٍ قَالَ سَمِعْتُ عُمَرَ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ الْاَعْمَالُ بِالنِّيَّةِ فَمَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهٗ اِلٰى دُنْيَا يُصِيْبُهَا اَوِ امْرَاَةٍ يَتَزَوَّجُهَا فَهِجْرَتُهٗ اِلٰى مَا هَاجَرَ اِلَيْهِ وَمَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهٗ اِلَى اللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ فَهِجْرَتُهٗ اِلٰى

هغه مدینه یا یثرب وو.

۱۰۸۳ : حمیدي. سفیان. اعمش. ابو وائل نه روایت کوي، مونږ د خبابؓ پښتنې له ورغلو، نو هغه اوفرمائیل، مونږ خاص د خدائے د پاره نبي صلي الله علیه وسلم سره هجرت او کړ، نو خمونږ ثواب الله تعالیٰ سره شو. لیکن مونږ کښې بعضے حضرات دُنیا نه داسے حال کښې لاړل، چه هغوي دُنیا کښې د هغے هیڅ اجر وانخست (هغوي ته دُنیا کښې څه راحت حاصل نه شو) هغوي کښې مصعب بن عمیر (هم) دے جنګ اُحد کښې شهید شولو، او صرف یو کمبل هغهٔ پریښودلو. کوم وخت چه مونږ کفن کښې د هغهٔ سر پټولو، نو پښې به ئے څرګندیدے، او چه پښې به مو ورله پټولے، نو سر به ئے څرګندیدلو، نو مونږ ته حضورؐ دا حکم راکړلو، چه مونږ د هغهٔ سر (کمبل سره) پټ کړو، او په پښو ورله اذخر (وابنه) واچوو، هغه پټے کړو. او مونږ کښې بعضے حضرات داسے دي، چه هغوي د پاره د هغوي میوه پخه شوه، او هغوي هغه شوکوي، خوري.

۱۰۸۴ : مسدد. حماد بن زید. یحیي. محمد بن ابراهیم. علقمه بن وقاص. حضرت عمرؓ نه روایت کوي، هغه وائي، ما د رسول الله صلي الله علیه وسلم نه واوریدل، د اعمالو دارومدار په نیت دے. د چا هجرت چه دُنیا حاصلولو د پاره یا یوے ښځے سره د نکاح کولو په خاطر وي، نو د هغهٔ هجرت به د هغے کار د پاره لیکلے شي. او چا چه الله او رسول الله د پاره هجرت او کړ،

اللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

نو د هغه هجرت سره اللّٰه او رسول اللّٰه د پاره ليکلے شي.

۱۰۸۵ : حَدَّثَنِيْ اِسْحٰقُ بْنُ يَزِيْدَ الدِّمَشْقِيُّ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَمْزَةَ قَالَ حَدَّثَنِي اَبُو عَمْرٍو الْاَوْزَاعِيُّ عَنْ عَبْدَةَ ابْنِ اَبِيْ لُبَابَةَ عَنْ مُجَاهِدِ بْنِ جَبْرٍ الْمَكِّيِّ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا كَانَ يَقُوْلُ لَا هِجْرَةَ بَعْدَ الْفَتْحِ.

۱۰۸۵ : اسحاق بن يزيد دمشقي. يحيي بن حمزه. ابو عمرو اوزاعي. عبده بن ابو لبابه. مجاهد بن جبر مكي. حضرت عبداللّٰه بن عمر نه روايت كوي هغه فرمائي د مكے د فتح نه پس هجرت باقي پاتے نه شو.

۱۰۸۶ : حَدَّثَنِي الْاَوْزَاعِيُّ عَنْ عَطَآءِ بْنِ اَبِيْ رَبَاحٍ قَالَ زُرْتُ عَائِشَةَ مَعَ عُبَيْدِ بْنِ عُمَيْرٍ اللَّيْثِيِّ فَسَاَلْنَاهَا عَنِ الْهِجْرَةِ فَقَالَتْ لَا هِجْرَةَ الْيَوْمَ كَانَ الْمُؤْمِنُوْنَ يَفِرُّ اَحَدُهُمْ بِدِيْنِهٖ اِلَى اللّٰهِ تَعَالٰى وَ اِلٰى رَسُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَخَافَةَ اَنْ يُفْتَنَ عَلَيْهِ فَاَمَّا الْيَوْمَ فَقَدْ اَظْهَرَ اللّٰهُ الْاِسْلَامَ وَالْيَوْمَ يَعْبُدُ رَبَّهٗ حَيْثُ شَآءَ وَلٰكِنْ جِهَادٌ وَ نِيَّةٌ.

۱۰۸۶ : اوزاعي. عطاء بن ابي رباح نه روايت كوي هغه وائي زه عبيد بن عمير ليثي سره د بي بي عائشے زيارت د پاره لاړم مونږ د هغے نه د هجرت باره كښ تپوس او كه هغے اووے اوس هجرت نشته (پخوا زمانه كښ د هجرت سشاء دا وه چه) مسلمانان د خپل دين (محفوظ كولو د پاره) اللّٰه او رسول طرف ته فتنه كښ د غرخيدو د خوف نه په تيښته راتلل. ليكن اوس اللّٰه اسلام غالب كړلو نو اوس چه كوم خائے غواړي د خپل رب عبادت كولے شي. البته د جهاد او نيت ثواب حاصليږي.

۱۰۸۷ : حَدَّثَنِيْ زَكَرِيَّآءُ بْنُ يَحْيٰى حَدَّثَنَا ابْنُ نُمَيْرٍ قَالَ هِشَامٌ فَاَخْبَرَنِيْ اَبِيْ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَنَّ سَعْدًا قَالَ اَللّٰهُمَّ اِنَّكَ تَعْلَمُ اَنَّهٗ لَيْسَ اَحَدٌ اَحَبَّ اِلَيَّ اَنْ اُجَاهِدَهُمْ فِيْكَ مِنْ قَوْمٍ كَذَّبُوْا رَسُوْلَكَ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ

۱۰۸۷ : زكريا بن يحيي. ابن نمير. هشام. د هغه پلار. بي بي عائشے نه روايت كوي هغه فرمائي حضرت سعد به وئيلے اے اللّٰه ته ښه پوهيږے ماته ستا لار كښ جهاد كول د هيچا نه دومره خوښ نه دي خومره چه د دے قوم سره دي چه هغوي ستا د رسول تكذيب او كه چه هغه ئے د خپل وطن نه اوښكلو (يعني قريشو نه) اے اللّٰه

اَخْرَجُوْهُ اَللّٰهُمَّ فَاِنِّيْ اَظُنُّ اِنَّكَ قَدْ وَضَعْتَ الْحَرْبَ بَيْنَنَا وَ بَيْنَهُمْ وَ قَالَ اَبَانُ بْنُ يَزِيْدَ حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ اَبِيْهِ اَخْبَرَتْنِيْ عَائِشَةُ مِنْ قَوْمٍ كَذَّبُوْا نَبِيَّكَ وَ اَخْرَجُوْهُ مِنْ قُرَيْشٍ.

خما خیال دے چه اوس تا خمونږ او د هغوی مینځ کښې جنګ ختم کړے دے. او ابان بن یزید هشام د هغه پلار او بي بي عائشې په واسطه دا الفاظ روایت کړے دي: من قوم کذبوا نبیک و اخرجوه من قریش.

۱۰۸۸: حَدَّثَنِيْ مَطَرُ بْنُ الْفَضْلِ حَدَّثَنَا رَوْحٌ حَدَّثَنَا هِشَامٌ حَدَّثَنَا عِكْرِمَةُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ بُعِثَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِاَرْبَعِيْنَ سَنَةً فَمَكَثَ بِمَكَّةَ ثَلٰثَ عَشَرَةَ سَنَةً يُوْحٰى اِلَيْهِ ثُمَّ اُمِرَ بِالْهِجْرَةِ فَهَاجَرَ عَشَرَ سِنِيْنَ وَ مَاتَ وَهُوَ ابْنُ ثَلَاثٍ وَ سِتِّيْنَ.

۱۰۸۸: مطر بن فضل. روح. هشام. عکرمه. حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي. هغه فرمائي: رسول الله صلي الله عليه وسلم ته د څلویښتو کالو عمر کښې نبوت حاصل شو. حضورؐ مکه کښې دیارلس کاله داسې حال کښې چه په حضورؐ به وحي نازلیدلې پاتې وو. بیا حضورؐ ته د هجرت حکم اوشو. نو حضورؐ د هجرت حالت کښې لس کاله مدینه کښې تیر کړل. او د دریشپیتو کالو په عمر کښې حضور صلي الله عليه وسلم وفات شولو.

۱۰۸۹: حَدَّثَنِيْ مَطَرُ بْنُ الْفَضْلِ حَدَّثَنَا رَوْحُ بْنُ عُبَادَةَ حَدَّثَنَا زَكَرِيَّاءُ ابْنُ اِسْحَاقَ حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ دِيْنَارٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ مَكَثَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَكَّةَ ثَلٰثَ عَشَرَةَ وَ تُوُفِّيَ وَهُوَ ابْنُ ثَلٰثٍ وَ سِتِّيْنَ.

۱۰۸۹: مطر بن فضل. روح بن عباده. زکریا بن اسحاق. عمرو بن دینار. حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي. هغه فرمائي: د نبوت نه پس رسول اکرم صلي الله عليه وسلم مکه کښې دیارلس کاله وو. او د حضورؐ عمر مبارک درے شپیته کاله وو. چه حضور صلي الله عليه وسلم وفات شولو.

۱۰۹۰: حَدَّثَنَا اِسْمَاعِيْلُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ حَدَّثَنِيْ مَالِكٌ عَنْ اَبِي النَّضْرِ مَوْلٰى عُمَرَ بْنِ عُبَيْدِ اللّٰهِ عَنْ عُبَيْدٍ يَعْنِيْ ابْنَ حُنَيْنٍ عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ

۱۰۹۰: اسماعیل بن عبدالله. مالک. د عمر بن عبیدالله آزاد کرده غلام ابو نضر. عبید بن حنین. حضرت ابو سعید خدريؓ نه روایت کوي. هغه فرمائي. رسول الله صلي الله عليه وسلم د وفات مرض کښې منبر ته تشریف راوړلو. او وې فرمائیل: الله تعالي خپل یو

الْـخُـدْرِيِّ رَضِـيَ اللّٰـهُ عَنْـهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰـهِ صَلَّـى اللّٰـهُ عَلَيْـهِ وَسَلَّـمَ جَلَـسَ عَلَى الْمِنْبَرِ فَقَالَ اِنَّ عَبْـدًا خَيَّـرَهُ اللّٰـهُ بَيْـنَ اَنْ يُّـؤْتِـيَـهُ مِـنْ زَهْـرَةِ الدُّنْـيَا مَا شَآءَ وَ بَيْـنَ مَـا عِـنْـدَهُ فَـاخْـتَـارَ مَـا عِنْدَهُ فَبَـكَـى اَبُـوْ بَـكْـرٍ وَ قَـالَ فَدَيْنَـاكَ بِـاٰبَـائِـنَـا وَ اُمَّهَـاتِنَـا فَعَجِبْنَـا لَـهُ وَ قَـالَ الـنَّـاسُ اُنْظُـرُوْا اِلٰـى هٰـذَا الشَّيْـخِ يُـخْبِـرُ رَسُـوْلُ اللّٰـهِ صَلَّـى اللّٰـهُ عَـلَيْـهِ وَسَلَّمَ عَنْ عَبْدٍ خَيَّرَهُ اللّٰهُ بَيْنَ اَنْ يُّؤْتِيَهُ مِنْ زَهْرَةِ الدُّنْيَا وَ بَيْـنَ مَـا عِـنْـدَهُ وَهُـوَ يَـقُوْلُ فَدَيْنَاكَ بِـاٰبَـائِـنَـا وَ اُمَّهَـاتِنَـا فَكَـانَ رَسُوْلُ اللّٰـهِ صَلَّـى اللّٰـهُ عَلَيْـهِ وَسَلَّمَ هُـوَ الْـمُـخَيَّـرُ وَ كَـانَ اَبُـوْ بَـكْـرٍ هُوَ اَعْـلَـمُـنَـا بِـهٖ وَ قَـالَ رَسُـوْلُ اللّٰـهِ عَـلَيْـهِ وَسَـلَّـمَ اِنَّ مِنْ اَمَنِّ النَّـاسِ عَـلَـيَّ فِـيْ صُحْبَتِهٖ وَ مَـالِهٖ اَبَا بَكْرٍ وَلَـوْ كُـنْـتُ مُتَّـخِذًا خَلِيْلًا مِّنْ اُمَّتِيْ لَا تَّـخَـذْتُ اَبَـا بَـكْرٍ اِلَّا خُلَّةَ الْاِسْلَامِ لَا يَبْـقَيَـنَّ فِـي الْـمَسْجِـدِ خَوْخَةٌ اِلَّا خَوْخَةَ اَبِيْ بَكْرٍ.

بنده ته اختيار ور كړلو، چه هغه دُنيا او د هغې تر و تازګي اختيار كړي، يا الله سره چه كوم نعمتونه دي، هغه اختيار كړي، نو هغې بنده الله سره نعمتونه اختيار كړل (دے آوريدو سره) ابوبكر په ژړا شو، او عرض ئې او كړ يا رسول الله: مونږ په تاسو خپل مور پلار قربانوو. (راوي وائي) مونږ ته په ابوبكرؓ تعجب اوشو، او خلقو اووے. دے بوډا ته خو اوګورئ، چه رسول الله صلي الله عليه وسلم د يو بنده حال بيانوي، چه الله پاک هغهٔ ته د ترو تازګي او خپل خان سره د انعاماتو مينځ كښې اختيار ور كړلو. او دا بوډا وائي، چه مونږ خپل مور پلار په تاسو قربانوو (او ژاړي) ليكن څو ورځے پس چه حضورؑ وفات شو، نو مونږ په دے راز پوهه شولو، چه حضرت ابوبكرؓ ولے ژړل. حقيقت دا دے چه رسول الله صلي الله عليه وسلم ته اختيار ور كړے شوے وو (ګويا دَ حضورؑ وفات طرف ته اشاره وه، چه ابوبكرؓ پرے پوهه شوے وو) او حضرت ابوبكرؓ مونږ ټولو نه لوئے عالم وو، او حضورؑ اوفرمائيل، د خپلے ملګرتيا او مال دَ اعتبار نه په ما د ټولو نه زيات احسان د ابوبكرؓ دے كه ما خپل اُمت كښې څوک خليل (حقيقي دوست) جوړولے، نو ابوبكرؓ به م جوړ كړے وے ليكن د اسلام دوستي كافي ده (ګورے) جمات كښې سوا دَ ابوبكرؓ د دروازے نه بله هيڅ يوه دروازه دے (پرانستے) باقي پاتے نشي. (يعني نورے ټولے بندے كړئ).

**۱۰۹۱**: حَـدَّثَـنَـا يَـحْيَى بْنُ بُـكَيْـرٍ حَـدَّثَـنَـا الـلَّيْـثُ عَنْ عُقَيْلٍ قَـالَ ابْـنُ شِهَـابٍ فَاَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ بْنُ

**۱۰۹۱**: يحيي بن بكير. ليث. عقيل. ابن شهاب. عروه بن زبير. د رسول الله صلي الله عليه وسلم ښـر بي بي عائشے نه روايت كوي، هغه فرمائي، د كوم

الزُّبَيْرِ اَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا
زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ قَالَتْ لَمْ اَعْقِلْ اَبَوَيَّ قَطُّ
اِلَّا وَهُمَا يَدِيْنَانِ الدِّيْنَ وَلَمْ
يَمُرَّ عَلَيْنَا يَوْمٌ اِلَّا يَاْتِيْنَا فِيْهِ
رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
وَسَلَّمَ طَرَفَيِ النَّهَارِ بُكْرَةً وَّ عَشِيَّةً
فَلَمَّا ابْتُلِيَ الْمُسْلِمُوْنَ خَرَجَ اَبُوْ بَكْرٍ
مُهَاجِرًا نَحْوَ اَرْضِ الْحَبَشَةِ حَتّٰى
بَلَغَ بَرْكَ الْغِمَادِ لَقِيَهُ ابْنُ الدَّغِنَةِ
وَهُوَ سَيِّدُ الْقَارَةِ فَقَالَ اَيْنَ تُرِيْدُ يَا اَبَا
بَكْرٍ فَقَالَ اَبُوْ بَكْرٍ اَخْرَجَنِيْ قَوْمِيْ
فَاُرِيْدُ اَنْ اَسِيْحَ فِي الْاَرْضِ
وَاَعْبُدَ رَبِّيْ قَالَ ابْنُ الدَّغِنَةِ
فَاِنَّ مِثْلَكَ يَا اَبَا بَكْرٍ لَا يَخْرُجُ
وَلَا يُخْرَجُ اِنَّكَ تَكْسِبُ الْمَعْدُوْمَ
وَ تَصِلُ الرَّحِمَ وَ تَحْمِلُ الْكَلَّ
وَ تَقْرِي الضَّيْفَ وَ تُعِيْنُ عَلٰى
نَوَائِبِ الْحَقِّ فَاَنَا لَكَ جَارٌ اِرْجِعْ
وَاعْبُدْ رَبَّكَ بِبَلَدِكَ فَرَجَعَ وَارْتَحَلَ
مَعَهُ ابْنُ الدَّغِنَةِ عَشِيَّةً فِيْ
اَشْرَافِ قُرَيْشٍ فَقَالَ لَهُمْ اِنَّ
اَبَا بَكْرٍ لَا يَخْرُجُ مِثْلُهُ وَلَا يُخْرَجُ
اَتُخْرِجُوْنَ رَجُلًا يَكْسِبُ الْمَعْدُوْمَ
وَ يَصِلُ الرَّحِمَ وَ يَحْمِلُ الْكَلَّ وَ
يَقْرِي الضَّيْفَ وَ يُعِيْنُ عَلٰى نَوَائِبِ

وخت نه چه زۀ هوش کښې راغلې یم، نو خپل مور پلار م
په دین اسلام مشرف لیدلي دي، او یوه ورځ به داسې نه
وه، چه هغې کښې به رسول الله صلي الله علیه وسلم
سحر ماښام مونږ کره نۀ راتلو. کوم وخت چه
مسلمانانو ته تکلیف رسول شروع شو، نو حضرت
ابوبکرؓ حبشو ته دَ هجرت په اراده دَ کور نه اووتلو، حتي
چه مقام برک الغماد ته اورسیدلو، نو ابن الدغنه سره ئې
چه دَ قبیلۀ قاره سردار وو، ملاقات اوشو. هغۀ ترې تپوس
اوکۀ، اے ابوبکرؓ چرته ځې، دۀ جواب ورکۀ، زۀ خپل قوم
اوښکلے یم، زۀ غواړم، چه زمکه کښې اوګرځم (هجرت
اوکړم) او دَ خپل رب عبادت اوکړم ابن الدغنه ورته
اووے، اے ابوبکرؓ ستا په شان سړے نۀ وتلے شي، نۀ ئې
څوک اوښکلے شي، ته دَ فقیرانو مدد کوے، رشته دارانو
سره حسن سلوک کوے. دَ بې کسو کفالت کوے، دَ
میلمنو میلمستیا کوے. او دَ حق په لار کښې (راتلونکې)
مصائبو کښې مدد کوے. زۀ ستا حامي (حمایت کونکے،
مددګار) یم، ځه واپس شه، او خپل وطن کښې دَ خپل
رب عبادت کوه، نو ابن الدغنه سره واپس راغې. بیا ابن
الدغنه ماښام وخت دَ قریشو په ټولو اشرافو چکر
اولږولو، او هغوي ته ئې اووے، دَ ابوبکرؓ په شان سړے نه
خو خپله وتلے شي، او نه اوښکلے کیدے شي، آیا تاسو
داسې سړے اوکاږئې، چه د فقیرانو مدد کوي، رشته
دارانو سره ښۀ سلوک کوي دَ بې کسانو کفالت کوي
(یعنې دَ هغوي بوج په خپل سر اخلي، اخراجات ئې
برداشت کوي). دَ میلمنو ضیافت کوي، او د حق په لار
کښې راتلونکو مصیبتونو کښې مدد کوي. نو قریشو د

الْحَقِّ فَلَمْ تُكَذِّبْ قُرَيْشٌ بِجِوَارِ
ابْنِ الدَّغِنَةِ وَقَالُوْا لِابْنِ الدَّغِنَةِ
مُرْ اَبَا بَكْرٍ فَلْيَعْبُدْ رَبَّهُ فِيْ دَارِهٖ
فَلْيُصَلِّ فِيْهَا وَلْيَقْرَأْ مَا شَآءَ
وَلَا يُؤْذِيْنَا بِذٰلِكَ وَلَا يَسْتَعْلِنْ بِهٖ
فَاِنَّا نَخْشٰى اَنْ يُّفْتِنَ نِسَآءَ نَا وَ
اَبْنَآءَ نَا فَقَالَ ذٰلِكَ ابْنُ الدَّغِنَةِ
لِاَبِيْ بَكْرٍ فَلَبِثَ اَبُوْ بَكْرٍ بِذٰلِكَ
يَعْبُدُ فِيْ دَارِهٖ وَلَا يَسْتَعْلِنُ بِصَلٰوتِهٖ
وَلَا يَقْرَأُ فِيْ غَيْرِ دَارِهٖ ثُمَّ بَدَا
لِاَبِيْ بَكْرٍ فَابْتَنٰى مَسْجِدًا بِفِنَآءِ
دَارِهٖ وَكَانَ يُصَلِّيْ فِيْهِ وَيَقْرَأُ
الْقُرْاٰنَ فَيَتَقَذَّفُ عَلَيْهِ نِسَآءُ
الْمُشْرِكِيْنَ وَاَبْنَآءُهُمْ وَهُمْ
يَعْجَبُوْنَ مِنْهُ وَيَنْظُرُوْنَ اِلَيْهِ وَ
كَانَ اَبُوْ بَكْرٍ رَجُلًا بَكَّآءً وَلَا
يَمْلِكُ عَيْنَيْهِ اِذَا قَرَأَ الْقُرْاٰنَ وَ
اَفْزَعَ ذٰلِكَ اَشْرَافَ قُرَيْشٍ مِنَ
الْمُشْرِكِيْنَ فَاَرْسَلُوْا اِلَى ابْنِ
الدَّغِنَةِ فَقَدِمَ عَلَيْهِمْ فَقَالُوْا اِنَّا
كُنَّا اَجَرْنَا اَبَا بَكْرٍ بِجِوَارِكَ عَلٰى
اَنْ يَعْبُدَ رَبَّهُ فِيْ دَارِهٖ فَقَدْ جَاوَزَ
ذٰلِكَ فَابْتَنٰى مَسْجِدًا بِفِنَآءِ
دَارِهٖ فَاَعْلَنَ بِالصَّلٰوةِ وَالْقِرَآءَةِ فِيْهِ وَ اِنَّا
قَدْ خَشِيْنَا اَنْ يُّفْتِنَ نِسَآءَ نَا وَ
اَبْنَآءَ نَا فَانْهَهُ فَاِنْ اَحَبَّ اَنْ

امان ورکولو نه انکار اونه کړلو. او ابن الدغنه ته ئے
اووے' ابوبکر ته اووایه چه خپل کور کښې د خپل رب
عبادت کوي. کور کښې مونځ کوي' او څه چه ئے زړهٔ
غواړي' هغه دې لولي' او مونږ ته دې د هغې نه تکلیف نهٔ
راکوي. او زور سره دې نهٔ وائي' ځکه مونږ سره ویره
ده' چه خمونږ ښځې او بچي (دې نوې دین کښې) آخته
نشي. ابن الدغنه' حضرت ابوبکرؓ ته دغه خبره اوکړله'
څهٔ موده پورې حضرت ابوبکرؓ دغسې خپل کور کښې د
خپل رب عبادت کولو' چه نه به ئے زور سره مونځ کولو'
او نه به ئے د کور نه سِوا کولو' بیا دَ ابوبکرؓ په زړهٔ کښې
راغله' نو هغه دَ خپل کور مخکښې یو جمات جوړ کړلو'
او اوس به ئے دغې جمات کښې مونځ او قرآن لوستلو' او
دَ مشرکینو ښځې او ځامن به هغه سره جمع کیدل' هغه
سره به خوشحالیدل' او هغه طرف ته به ئے کتل' خبره
داده' چه حضرت ابوبکرؓ (دَ زړهٔ دَ نرم والي دَ وجې نه)
ډیر ژړیدونکے وو' چه قرآن به ئے لوستلو' نو په خپلو
سترګو به ئے اختیار نهٔ وو' دَ قریشو اشراف خلق دَ دې نه
اویریدل' او هغوي ابن الدغنه راوغښتلو' چه هغه راغې'
نو هغوي ورته اووے' مونږ ستا دَ آمان ورکولو په وجه
ابوبکرؓ ته په دې شرط آمان ورکړے وو' چه هغه دَ خپل
رب عبادت اوکړي خو هغه دَ دې حد نه وړاندې شو. او
هغهٔ دَ خپل کور مخکښې جمات جوړ کړلو' او هغې کښې
زور سره مونځ او قرآن لولي' او مونږ سره خوف دے چه
خمونږ ښځې او بچي چرته (دې نوې دین کښې) راګیر
نشي. نو هغه منع کړه' که هغه دَ خپل رب عبادت کور
کښې کولو باندې اکتفا کوي' نو ډیره ښهٔ ده' او که هغهٔ

يَقْتَصِرَ عَلٰى اَنْ يَّعْبُدَ رَبَّهُ فِيْ دَارِهٖ فَعَلَ وَ اِنْ اَبَا اِلَّا اَنْ يُّعْلِنَ بِذٰلِكَ فَسَلْهُ اَنْ يَّرُدَّ اِلَيْكَ ذِمَّتَكَ فَاِنَّا قَدْ كَرِهْنَا اَنْ نُّخْفِرَكَ وَلَسْنَا مُقِرِّيْنَ لِاَبِيْ بَكْرٍ الْاِسْتِعْلَانَ قَالَتْ عَائِشَةُ فَاَتٰى ابْنُ الدَّغِنَةِ اِلٰى اَبِيْ بَكْرٍ فَقَالَ قَدْ عَلِمْتَ الَّذِيْ عَاقَدْتُّ لَكَ عَلَيْهِ فَاِمَّا اَنْ تَقْتَصِرَ عَلٰى ذٰلِكَ وَ اِمَّا اَنْ تُرْجِعَ اِلَيَّ ذِمَّتِيْ فَاِنِّيْ لَا اُحِبُّ اَنْ تَسْمَعَ الْعَرَبُ اَنِّيْ اُخْفِرْتُ فِيْ رَجُلٍ عَقَدْتُّ لَهُ فَقَالَ اَبُوْبَكْرٍ فَاِنِّيْ اَرُدُّ اِلَيْكَ جِوَارَكَ وَاَرْضٰى بِجِوَارِ اللّٰهِ عَزَّ وَ جَلَّ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَئِذٍ بِمَكَّةَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْمُسْلِمِيْنَ اِنِّيْ اُرِيْتُ دَارَ هِجْرَتِكُمْ ذَاتَ نَخْلٍ بَيْنَ لَابَتَيْنِ وَهُمَا الْحَرَّتَانِ فَهَاجَرَ مَنْ هَاجَرَ قِبَلَ الْمَدِيْنَةِ وَ رَجَعَ عَامَّةُ مَنْ كَانَ هَاجَرَ بِاَرْضِ الْحَبَشَةِ اِلَى الْمَدِيْنَةِ وَ تَجَهَّزَ اَبُوْ بَكْرٍ قِبَلَ الْمَدِيْنَةِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى رِسْلِكَ فَاِنِّيْ اَرْجُوْ اَنْ يُّؤْذَنَ لِيْ فَقَالَ اَبُوْ بَكْرٍ وَّ

اعلان كولو بغير نه مني نو هغهٔ ته اووايه' چه هغه ستا ذمه واري واپس كړي· ځكه چه مونږ ستا خبره غرخول هم نه خوښوو' او مونږ ابوبكر په دے اعلان پريښودے هم نه شو. بي بي عائشه فرمائي. ابن الدغنه' ابوبكرؓ له راغے' او ورته نے ونيلے· په كومه خبره چه ما تاسره معاهده كړے وه' هغه تاته معلومه ده' اوس يا په هغے قائم پاتے شه يا خما ذمه واري ماته اوسپاره ځكه دا خبره زهٔ نشم زغملے' چه اهل عرب دا واوري' چه ما كوم سړي سره معاهده كړے ده' ذ هغه بابت كښ خما خبره لاندے شي. حضرت ابوبكرؓ ورته اووے' ستا آمان زهٔ تاته واپس كوم' او ذ الله عز و جل په امان راضي يم' رسول الله صلي الله عليه وسلّم دغه زمانه كښ مكه كښ وو' بيا نبي صلي الله عليه وسلّم مسلمانانوته اوفرمائيل' ماته (خوب كښ) ستاسو ذ هجرت ځائے ښودلے شوے دے' او هلته ذ قجورو اونے دي' او هغه ذ دوه غريزو علاقو مينځ كښ واقع دے. بيا چا چه هجرت اوكهٔ' نو مدينے ته ئے اوكهٔ او كوم خلق چه حبشه ته تلے وو' هغوي كښ اكثر مدينے ته واپس راغلل' حضرت ابوبكرؓ هم مدينے طرف ته ذ هجرت تياري اوكړله' نو رسول الله صلي الله عليه وسلّم ورته اوفرمائيل چه تهٔ لږ ايسار شه' زهٔ اُميد كوم چه ماته هم ذ هجرت اجازت اوشي. حضرت ابوبكرؓ (ذ ډيرے خوشحالي نه) عرض اوكهٔ' خما مور پلار دے په تاسو قربان وي' آيا تاسو داسے اُميد لرئے' حضورؐ اُفرمائيل هاؤ بيا حضرت ابوبكرؓ ذ رسول الله صلي الله عليه وسلّم ذ ملګرتيا ذ كبله ايسار شولو' او دوه اوښے چه هغهٔ سره وے' هغے ته ئے څلور مياشتے ذ كيكر پانړے وركولے.

هَلْ تَرْجُوا ذٰلِكَ بِأَبِيْ أَنْتَ قَالَ نَعَمْ فَحَبَسَ أَبُوْبَكْرٍ نَفْسَهُ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيَصْحَبَهُ وَ عَلَفَ رَاحِلَتَيْنِ كَانَتَا عِنْدَهُ وَرَقَ السَّمُرِ وَهُوَ الْخَبَطُ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ قَالَ عُرْوَةُ قَالَتْ عَائِشَةُ فَبَيْنَمَا نَحْنُ يَوْمًا جُلُوْسٌ فِي بَيْتِ أَبِيْ بَكْرٍ فِي نَحْرِ الظَّهِيْرَةِ قَالَ قَائِلٌ لِأَبِيْ بَكْرٍ هٰذَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُتَقَنِّعًا فِيْ سَاعَةٍ لَمْ يَكُنْ يَأْتِيْنَا فِيْهَا فَقَالَ أَبُوْ بَكْرٍ فِدَآءٌ لَهُ أَبِيْ وَ أُمِّي وَاللّٰهِ مَا جَاءَ بِهٖ فِيْ هٰذِهِ السَّاعَةِ إِلَّا أَمْرٌ قَالَتْ فَجَاءَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَأْذَنَ فَأُذِنَ لَهُ فَدَخَلَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَبِيْ بَكْرٍ أَخْرِجْ مَنْ عِنْدَكَ فَقَالَ أَبُوْ بَكْرٍ إِنَّمَا هُمْ أَهْلُكَ بِأَبِيْ أَنْتَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ فَإِنِّيْ قَدْ أُذِنَ لِيْ فِي الْخُرُوْجِ فَقَالَ أَبُوْ بَكْرٍ الصَّحَابَةُ بِأَبِيْ أَنْتَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَعَمْ قَالَ أَبُوْ بَكْرٍ فَخُذْ بِأَبِيْ أَنْتَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ إِحْدٰى رَاحِلَتَيَّ هَاتَيْنِ. قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالثَّمَنِ قَالَتْ عَائِشَةُ فَجَهَّزْنَا هُمَا أَحَثَّ الْجِهَازِ وَ

ابن شهاب په واسطه د عروه بي بي عائشےؓ نه روایت کوي' هغه فرمائي' مونږ یوه ورځ د ابوبکرؓ مکان کښې تیک غرمه وخت کښې ناست وو' چه یو ویونکي ابوبکرؓ ته اووے (ګوره) هغه دے رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم په مخ څادر اچولے دے' تشریف راوړي. د حضورؐ دا تشریف آوري داسے وخت کښې وه' چه حضورؐ به هیڅ کله داسے وخت کښې تشریف نه راوړلو' حضرت ابوبکرؓ اووے خما مور پلار دے په حضورؐ قربان وي' په خدائے چه' ضرور څه خبره شته' ځکه خو هغویٰ دے وخت کښې تشریف راوړلے دے. بي بي عائشهؓ فرمائي' بیا رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم تشریف راوړلو. او دننه د راتلو اجازت ئے اوغوښتلو' حضورؐ ته اجازت ورکړے شو' حضورؐ دننه راغے بیا حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم ابوبکرؓ ته اوفرمائیل' نور خلق د ځان نه اخوا کړه' حضرت ابوبکرؓ عرض اوکړ' یا رسول اللّٰه خما مور پلار دے په تاسوؐ قربان وي' دلته خو صرف ستاسو کور واله ده. نو حضورؐ اوفرمائیل' ماته د هجرت حکم راکړے شوے دے. ابوبکرؓ عرض اوکړ' یا رسول اللّٰه' خما مور پلار دے په تاسوؐ فدا وي' ماته به هم د ملګرتیا شرف عطا شي' حضورؐ ورته اوفرمائیل. او (د سفر ملګرے به راسره ته ئے) حضرت ابوبکرؓ عرض اوکړ' یا رسول اللّٰه' خما مور پلار درنه قربان شه' خما یوه اُوښه تاسو واخلئ' رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم ورته اوفرمائیل' مونږ خو به ئے په قیمت آخلو' بي بي عائشهؓ فرمائي. بیا مونږ هغوي دواړو د پاره تادي سره چه څهٔ تیاریدے شو' هغه تیار کړل. او مونږ هغوي د پاره د خرمنے یوے

صَنَعْنَا لَهُمْ سُفْرَةً فِيْ جِرَابٍ فَقَطَعَتْ اَسْمَاءُ بِنْتُ اَبِيْ بَكْرٍ قِطْعَةً مِنْ نِطَاقِهَا فَرَبَطَتْ بِهٖ عَلٰى فَمِ الْجِرَابِ فَبِذٰلِكَ سُمِّيَتْ ذَاتَ النِّطَاقِ قَالَتْ ثُمَّ لَحِقَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَبُوْ بَكْرٍ بِغَارٍ فِيْ جَبَلِ ثَوْرٍ فَكَمِنَا فِيْهِ ثَلٰثَ لَيَالٍ يَبِيْتُ عِنْدَهُمَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِيْ بَكْرٍ وَهُوَ غُلَامٌ شَابٌّ ثَقِفٌ لَقِنٌ فَيُدْلِجُ مِنْ عِنْدِهِمَا بِسَحَرٍ فَيُصْبِحُ مَعَ قُرَيْشٍ بِمَكَّةَ كَبَائِتٍ فَلَا يَسْمَعُ اَمْرًا يُكْتَادَانِ بِهٖ اِلَّا وَعَاهُ حَتّٰى يَاْتِيَهُمَا بِخَبَرِ ذٰلِكَ حِيْنَ يَخْتَلِطُ الظَّلَامُ وَ يَرْعٰى عَلَيْهِمَا عَامِرُ بْنُ فُهَيْرَةَ مَوْلٰى اَبِيْ بَكْرٍ مِنْحَةً مِنْ غَنَمٍ فَيُرِيْحُهَا عَلَيْهِمَا حِيْنَ يَذْهَبُ سَاعَةٌ مِنَ الْعِشَاءِ فَيَبِيْتَانِ فِيْ رِسْلٍ وَهُوَ لَبَنُ مِنْحَتِهِمَا وَ رَضِيْفُهُمَا حَتّٰى يَنْعِقَ بِهَا عَامِرُ بْنُ فُهَيْرَةَ بِغَلَسٍ يَفْعَلُ ذٰلِكَ فِيْ كُلِّ لَيْلَةٍ مِنْ تِلْكَ اللَّيَالِي الثَّلَاثِ وَاسْتَاْجَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَبُوْ بَكْرٍ رَجُلًا مِنْ بَنِي الدِّيْلِ وَهُوَ مِنْ بَنِيْ عَبْدِ بْنِ عَدِيٍّ هَادِيًا خِرِّيْتًا وَالْخِرِّيْتُ الْمَاهِرُ بِالْهِدَايَةِ قَدْ غَمَسَ حِلْفًا فِيْ اٰلِ الْعَاصِ بْنِ وَائِلٍ السَّهْمِيِّ وَهُوَ عَلٰى دِيْنِ كُفَّارِ قُرَيْشٍ فَاَمِنَاهُ فَدَفَعَا اِلَيْهِ

تهیلـــۍ کښې لېږ شـان خوراک کیښودلو. اسماء بنت ابوبکر د خپل ازار بند (پرتوغابنې) یوه ټکړه پرېکړله او د تهیلۍ خوله ئې پرې بنده کړه. په دې وجه د هغې لقب (ذات النطاق) ازار بند والې (پرتوغابنې واله) شو. بي بي عائشه فرمائي بیا نبي صلي الله علیه وسلم او ابوبکر د جبل ثور یو غار ته اورسیدل. او هغې کښې درې ورځو پورې پټ وو. عبدالله بن ابوبکر چه ځلمے هوښیار او ذهین هلک وو، دے حضراتو سره به ئې شپه تیروله او سحر تیارۀ مال به د هغوي نه راتللو او د مکې قریشو سره به ئې دا شان سحر کولو، گویا چه هغۀ دلته شپه تیره کړې ده. او د قریشو هره هغه د مکر او فریب خبره چه د دې دواړو حضراتو متعلق به هغوي کوله، هغه به ئې یادوله، او چه تیارۀ به شوه نو راتللو به، او هغوي به ئې ترې خبر کړل. او د ابوبکر آزاد کرده غلام عامر بن فهیره د هغوي خوا کښې د ورځې چیلئې څرولې، او چه لږه شپه به تیره شوه نو هغه به هغوي دواړو له چیلئې بوتلې، او دې دواړو حضراتو به د چیلو پئې څکل، او اطمینان سره به ئې شپه تیروله، حتي چه عامر بن فهیره به سحر تیارۀ مال هغه چیلې راواپس کړې. او دے درې شپو کښې ئې دغسې کول او رسول الله صلي الله علیه وسلم او ابوبکر د بنو دیل یو سړے چه د بني عبد بن عدي نه وو، په مزدوري اونیولو. هغه ډیر واقف کار رهبر (لار ښودونکے) وو، او د آل عاص بن وائل سهمي حلیف (دوست) وو، دے دواړو حضراتو هغه امین جوړ کړلو، او خپلې دواړه سورلۍ ئې د هغۀ په حواله کړې او درې شپې پس سحر وخت کښې د دې دواړو سورلو

رَاحِلَتَيْهِمَا وَ وَاعَدَاهُ غَارَ ثَوْرٍ بَعْدَ ثَلَاثِ لَيَالٍ بِرَاحِلَتَيْهِمَا صُبْحَ ثَلَاثٍ وَانْطَلَقَ مَعَهُمَا عَامِرُ بْنُ فُهَيْرَةَ وَالدَّلِيلُ فَاَخَذَ بِهِمْ طَرِيْقَ السَّوَاحِلِ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ وَ اَخْبَرَنِيْ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ ابْنُ مَالِكٍ الْمُدْلِجِيُّ وَهُوَ ابْنُ اَخِيْ سُرَاقَةَ ابْنَ جُعْشُمٍ اَنَّ اَبَاهُ اَخْبَرَهُ اَنَّهُ سَمِعَ سُرَاقَةَ ابْنَ جُعْشُمٍ يَقُوْلُ جَاءَنَا رُسُلُ كُفَّارِ قُرَيْشٍ يَجْعَلُوْنَ فِيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَبِيْ بَكْرٍ دِيَةَ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مَنْ قَتَلَهُ اَوْ اَسَرَهُ فَبَيْنَمَا اَنَا جَالِسٌ فِيْ مَجْلِسٍ مِنْ مَجَالِسِ قَوْمِيْ بَنِيْ مُدْلِجٍ اَقْبَلَ رَجُلٌ مِنْهُمْ حَتّٰى قَامَ عَلَيْنَا وَ نَحْنُ جُلُوْسٌ فَقَالَ يَا سُرَاقَةُ اِنِّيْ قَدْ رَاَيْتُ اٰنِفًا اَسْوِدَةً بِالسَّاحِلِ اُرَاهَا مُحَمَّدًا وَ اَصْحَابَهُ قَالَ سُرَاقَةُ فَعَرَفْتُ اَنَّهُمْ هُمْ فَقُلْتُ لَهُ اِنَّهُمْ لَيْسُوْا بِهِمْ وَلٰكِنَّكَ رَاَيْتَ فُلَانًا وَ فُلَانًا اِنْطَلَقُوْا بِاَعْيُنِنَا ثُمَّ لَبِثْتُ فِي الْمَجْلِسِ سَاعَةً ثُمَّ قُمْتُ فَدَخَلْتُ فَاَمَرْتُ جَارِيَتِيْ اَنْ تَخْرُجَ بِفَرَسِيْ وَ هِيَ مِنْ وَّرَآءِ اَكَمَةٍ فَتَحْبِسَهَا عَلَيَّ وَ اَخَذْتُ رُمْحِيْ فَخَرَجْتُ بِهٖ مِنْ ظَهْرِ الْبَيْتِ فَخَطَطْتُ بِزُجِّهِ الْاَرْضَ وَ خَفَضْتُ عَالِيَهُ حَتّٰى

غار ثور ته د راوستلو وعده نې ترې واخسته، نو هغه د وعدې مطابق راغې، او دا دواړه حضرات عامر بن فهيره او هغه رهبر سره د ساحل په لاره روان شو. ابن شهاب اوفرمائيل: د سراقه بن جعشم وراره عبدالرحمن بن مالک مدلجي په واسطه د خپل پلار سراقه بن جعشم نه روايت کړې دې، هغه فرمائي مونږ ته د قريشو کفارو قاصدان راغلل (چه اعلان نې کولو) چه کوم سړې رسول الله صلي الله عليه وسلم او حضرت ابوبکرؓ قتل کړي، يا نيولې نې راولي، نو هغهٔ ته به د هر يو په عوض کښې سل اوښان ورکولې شي (يعني دواړو د پاره دوه سوه اوښان انعام مقرر شولو، چه وې نيسي) دې حال کښې د خپل قوم بنو مدلج يو مجلس کښې ناست ووم. چه هغوي کښې يو سړې راغې، مونږ سره اوډيدلو، مونږ ناست وو، هغهٔ اووې، اې سراقه، ما اُوس څو سړي ساحل سره ليدلې دي، څما خيال دې، چه هغه محمد صلي الله عليه وسلم او د هغويَّ ملګري دي سراقه وائي، زه پوه شوم، چه دا هغه خلق دي، خو ما هغه له دهوکه ورکولو د پاره (چه هغه څما حاصل کرده انعام کښې شريک نشي) هغهٔ ته اووې، دا هغه خلق نه دي. بلکه تا فلانې فلانې سړې ليدلې دې، چه اوس څمونږ نه تلې دي، زهٔ لږ ساعت هغې مجلس کښې ايسار شوم، بيا راپاسيدم، کور ته راغلم، او خپلې وينزې ته م اووې، چه هغه څما آس بوځي او د فلانې ډهيرئ شاته څما د پاره آس نيولې اودريږي، او ما خپله نيزه واخسته، د هغې په شوکه م په زمکه کربنه راښکله، او د پاسه حصه م ورله راخکته کړې وه، د کور د شا طرف نه راووتلم، حتي

أَتَيْتُ فَرَسِيْ فَرَكِبْتُهَا فَرَفَعْتُهَا تُقَرِّبُ بِيْ حَتّٰى دَنَوْتُ مِنْهُمْ فَعَثَرَتْ بِيْ فَرَسِيْ فَخَرَرْتُ عَنْهَا فَقُمْتُ فَاَهْوَيْتُ يَدَيَّ اِلٰى كِنَانَتِيْ فَاسْتَخْرَجْتُ مِنْهَا الْاَزْلَامَ فَاسْتَقْسَمْتُ بِهَا اَضُرُّهُمْ اَمْ لَا فَخَرَجَ الَّذِيْ اَكْرَهُ فَرَكِبْتُ فَرَسِيْ وَ عَصَيْتُ الْاَزْلَامَ تُقَرِّبُ بِيْ حَتّٰى اِذَا سَمِعْتُ قِرَاءَةَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ لَا يَلْتَفِتُ وَ اَبُوْ بَكْرٍ يُكْثِرُ الْاِلْتِفَاتَ سَاخَتْ يَدَا فَرَسِيْ فِي الْاَرْضِ حَتّٰى بَلَغَتَا الرُّكْبَتَيْنِ فَخَرَرْتُ عَنْهَا ثُمَّ زَجَرْتُهَا فَنَهَضَتْ فَلَمْ تَكَدْ تُخْرِجُ يَدَيْهَا فَلَمَّا اسْتَوَتْ قَائِمَةً اِذَا لِاَثَرِ يَدَيْهَا عُثَانٌ سَاطِعٌ فِي السَّمَاءِ مِثْلُ الدُّخَانِ فَاسْتَقْسَمْتُ بِالْاَزْلَامِ فَخَرَجَ الَّذِيْ اَكْرَهُ فَنَادَيْتُهُمْ بِالْاَمَانِ فَوَقَفُوْا فَرَكِبْتُ فَرَسِيْ حَتّٰى جِئْتُهُمْ وَ وَقَعَ فِيْ نَفْسِيْ حِيْنَ لَقِيْتُ مِنَ الْحَبْسِ عَنْهُمْ اَنْ سَيَظْهَرُ اَمْرُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ لَهُ اِنَّ قَوْمَكَ قَدْ جَعَلُوْا فِيْكَ الدِّيَةَ وَ اَخْبَرْتُهُمْ اَخْبَارَ مَا يُرِيْدُ النَّاسُ بِهِمْ وَ عَرَضْتُ عَلَيْهِمُ الزَّادَ وَالْمَتَاعَ فَلَمْ يَرْزَاَنِيْ وَلَمْ يَسْاَلَانِيْ اِلَّا اَنْ قَالَ اَخْفِ عَنَّا فَسَاَلْتُهُ اَنْ يُكْتَبَ لِيْ كِتَابُ اَمْنٍ فَاَمَرَ عَامِرَ بْنَ فُهَيْرَةَ

چه زهٔ خپل اس له راغلم، نو ما خپل اس تیز کهٔ، چه هلته زهٔ او رسم. کوم وخت چه هغے حضراتو ته نزدے شوم، نو خما اس ټوکر اوخوړلو، او زهٔ راپریوتم، زهٔ سمدستي اودریدم، خپل ترکش ته م لاس کړلو. دَ هغے نه م تیرونه راوښکل. بیا ما دَ هغے تیرونو نه دا فال اوښکلو، چه آیا زهٔ هغوي ته نقصان رسولے شم، یا نه، نو هغه خبره راووتله، چه خما نهٔ وه خوښه، بیا زهٔ په خپل اس سور شوم، او ما دَ هغے تیرونو دَ فال پروا اونهٔ ساتله هغے اس زهٔ هغوي ته نزدے بوتلم، حتٰي چه ما دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم دَ تلاوت آواز مبارک واوریدلو. حضورؐ اخوا دیخوا نهٔ کتل، او ابوبکرؓ به اخوا دیخوا ډیر کتل، چه خما دَ اَس مخکنے پښے دَ کنډو پورے زمکه کښ ښخے شوے، او زهٔ دَ هغے دَ پاسه نه راوغرځیدم، ما خپل اس له آواز ورکهٔ، هر کله چه ډیر مشکل سره هغه نیغ شولو، نو دَ هغهٔ دَ مخکینو پښو په وجه یو غُبار (ګرد) اوچت شو، او دَ لوګي په شان آسمان ته اوختلو. بیا ما تیرونو سره فال اوښکلو، نو هغے کښ خما ناخوښه خبره راووتله بیا ما هغے حضراتو ته آمان طلب کولو سره آواز اوکهٔ، هغوي اودریدل، زهٔ سور هغوي پله راغلم، نو هغوي ته رسیدو کښ چه کوم مشکلات ماته پیښ شو، دَ هغے پیش نظر خما زړهٔ کښ دا خیال راغے، چه دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم دین به غالب شي. ما حضورؐ ته عرض اوکه، چه ستاسوؐ قوم ستاسو دَ ګرفتارئ یا قتل په سلسله کښ سل اُوښان انعام مقرر کړے دي، او ما هغوي ته هغه ټول خبرونه ورکړل چه دَ خلقو دَ هغوي په حقله دَ هغے اراده لرله، او ما هغوي ته خوراک او سامان پیش

فَكَتَبَ فِيْ رُقْعَةٍ مِنْ اَدِيْمٍ ثُمَّ مَضٰى
رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
قَالَ ابْنُ شِهَابٍ فَاَخْبَرَنِيْ عُرْوَةُ بْنُ
الزُّبَيْرِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَقِيَ الزُّبَيْرَ فِيْ رَكْبٍ
مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ كَانُوْا تُجَارًا قَافِلِيْنَ
مِنَ الشَّامِ فَكَسَا الزُّبَيْرُ رَسُوْلَ اللّٰهِ
صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَبَا بَكْرٍ
ثِيَابُ بِيَاضٌ وَّ سَمِعَ الْمُسْلِمُوْنَ
بِالْمَدِيْنَةِ بِمَخْرَجِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ مَكَّةَ فَكَانُوْا
يَغْدُوْنَ كُلَّ غَدَاةٍ اِلَى الْحَرَّةِ
فَيَنْتَظِرُوْنَهُ حَتّٰى يَرُدَّهُمْ حَرُّ الظَّهِيْرَةِ
فَانْقَلَبُوْا يَوْمًا بَعْدَ مَا اَطَالُوْا انْتِظَارَهُمْ
فَلَمَّا اَوَوْا اِلٰى بُيُوْتِهِمْ اَوْفٰى رَجُلٌ
مِّنْ يَهُوْدَ عَلٰى اُطُمٍ مِنْ اٰطَامِهِمْ لِاَمْرٍ
يَنْظُرُ اِلَيْهِ فَبَصُرَ بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَصْحَابِهٖ
مُبَيِّضِيْنَ يَزُوْلُ بِهِمُ السَّرَابُ فَلَمْ
يَمْلِكِ الْيَهُوْدِيُّ اَنْ قَالَ بِاَعْلٰى صَوْتِهٖ
يَا مَعْشَرَ الْعَرَبِ هٰذَا جَدُّكُمُ الَّذِيْ
تَنْتَظِرُوْنَ فَثَارَ الْمُسْلِمُوْنَ اِلَى
السَّلَاحِ فَتَلَقَّوْا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِظَهْرِ الْحَرَّةِ فَعَدَلَ
بِهِمْ ذَاتَ الْيَمِيْنِ حَتّٰى نَزَلَ بِهِمْ فِيْ
بَنِيْ عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ وَ ذٰلِكَ يَوْمَ

کړلو لیکن هغوي ترې هیڅ وانخستل، او نه ئې خما نه څۀ اوغوښتل، صرف دومره ئې اووې، چه خمونږ حال پټ ساته، بیا ما حضورؐ ته خواست اُوکه، چه ماته دَ امن یو تحریر راکړې. حضورؐ عامر بن فهیره ته حکم ورکړلو، هغۀ دَ څرمنې په ټکړه تحریر اولیکۀ. بیا رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم لاړلو ابن شهاب وائي، ماته عروه بن زبیر بیان اوکۀ، دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم ملاقات زبیرؓ سره اوشولو چه دِ مسلمانانو تاجرانو یوه قافله کښې دَ شام نه راتلو، نو زبیرؓ، رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم او حضرت ابوبکرؓ له اغستلو دَ پاره سپینې کپړې ورکړې. اخوا دَ مدینې مسلمانانو دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم دَ مکې نه دَ وتلو خبر آوریدلې وو، نو هغوي به روزانه سحر مال کښې دَ مقام حره پورې دَ حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم دَ استقبال دَ پاره راتلل، او دَ حضورؐ انتظار به ئې کولو، تردې چه دَ ټکنه غرمې دَ ګرمي په وجه به واپس لاړل. یوه ورځ هغوي دَ اُوږد انتظار نه پس واپس لاړل، او کوم وخت چه خپلو خپلو کورونو ته اورسیدل، نو اتفاق سره یو یهودي دَ خپل څۀ څیز کتلو دَ پاره دَ مدینې په یوې ډهیرئې اوختلو، نو هغۀ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم او دَ حضورؐ اصحابؓ سپینې کپړې آغستې اولیدل چه سراب دَ هغوي نه پټ شوې دې (سراب: دَ پیریانو اُوبه، ډاګ، دَ شګلنې زمکې بریښ یا ځلیدنه، چه څۀ وخت دَ نمر رنړا وي، نو دَ لرې نه په داسې ځائې دَ اُوبو ګمان کیږي. دوکه) نو هغې یهودي بې اختیاره اوچت آواز سره چغه کړه، اې دَ عربو، ډلې، دا دې ستاسو هغه نصب العین او مقصود، چه

الِاثْنَيْنِ مِنْ شَهْرِ رَبِيْعِ الْاَوَّلِ فَقَامَ اَبُوْ بَكْرٍ لِلنَّاسِ وَ جَلَسَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَامِتًا فَطَفِقَ مَنْ جَاءَ مِنَ الْاَنْصَارِ مِمَّنْ لَمْ يَرَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحَيِّيْ اَبَا بَكْرٍ حَتّٰى اَصَابَتِ الشَّمْسُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَقْبَلَ اَبُوْ بَكْرٍ حَتّٰى ظَلَّلَ عَلَيْهِ بِرِدَآئِهٖ فَعَرَفَ النَّاسُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَ ذٰلِكَ فَلَبِثَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ بَنِيْ عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ بِضْعَ عَشَرَةَ لَيْلَةً وَ اَسَّسَ الْمَسْجِدَ الَّذِيْ اُسِّسَ عَلَى التَّقْوٰى وَ صَلّٰى فِيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ رَكِبَ رَاحِلَتَهٗ فَسَارَ يَمْشِيْ مَعَهُ النَّاسُ حَتّٰى بَرَكَتْ عِنْدَ مَسْجِدِ الرَّسُوْلِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْمَدِيْنَةِ وَهُوَ يُصَلِّيْ فِيْهِ يَوْمَئِذٍ رِجَالٌ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ وَ كَانَ مِرْبَدًا لِلتَّمْرِ لِسُهَيْلٍ وَ سَهْلٍ غُلَامَيْنِ يَتِيْمَيْنِ فِيْ حَجْرِ اَسْعَدَ بْنِ زُرَارَةَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ بَرَكَتْ بِهٖ رَاحِلَتُهٗ هٰذَا اِنْشَاءَ اللّٰهُ الْمَنْزِلُ ثُمَّ دَعَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ذ هغۀ تاسو انتظار کولو. دے آوریدو سره مسلمانان خپلو وسلو سره (ذ سیلاب په شان) راووتل، او ذ مقام حره شاته نے د رسول الله صلي الله علیه وسلّم استقبال (هرکلے) او کۀ. حضورؐ هغے ټولو سره ذ بني طرف لار اختیار کړله، حتی چه حضورؐ ماه ربیع الاول، ذ ګُل (پیر) په ورځ بن عمرو بن عوف سره قیام اوفرمائیلو، نو ابو بکرؓ د خلقو مخکښې اودریدلو، او رسول الله صلي الله علیه وسلّم خاموش ناست وو، کوم انصارو چه رسول الله صلي الله علیه وسلّم نۀ وو لیدلے، هغوي به راتلل، او حضرت ابوبکرؓ ته به ئے سلام کولو، تردے چه په رسول الله صلي الله علیه وسلّم باندے نمر راغے نو حضرت ابوبکرؓ رامخکښې شو، او خپل څادر ئے په نبي صلعم سورے اوکړلو. دغه وخت خلقو رسول الله صلي الله علیه وسلّم اوپیژندلو، بیا حضور صلي الله علیه وسلّم بني عمرو بن عوف سره ذ لس ورځو نه زیات مقیم وو، او دلته ئے ذ هغے جمات بنیاد کیښودلو، چه ذ هغے بنیاد په تقوي دے، او هغے کښې رسول الله صلي الله علیه وسلّم مونځ اوکۀ، بیا حضورؐ په خپلے اوښے سور شو، روان شو، او خلق حضور سره تلل، تردے چه هغه اُوښه مدینه کښې (کوم ځائے چه اوس) مسجد نبوي (دے، هلته) کیناستله، او هلته هغه وخت څۀ مسلمانانو مونځ کولو، او هغه زمکه ذ دوو یتیمانو بچو وه، چه ذ سعد بن زراره په تربیت کښې وو، او ذ هغوي نومونه سهل او سهیل وو. او ذ هغوي ذ قجورو درمند وو، کوم وخت چه ذ حضورؐ اُوښه کیناسته، نو نبي صلي الله علیه وسلّم اوفرمائیل، انشاء الله دا به خمونږ مقام وي. بیا رسول

الْغُلَامَيْنِ فَسَاوَمَهُمَا بِالْمِرْبَدِ لِيَتَّخِذَهُ مَسْجِدًا فَقَالَا لَا بَلْ نَهِبُهُ لَكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَاَبٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ يَقْبَلَهُ مِنْهُمَا هِبَةً حَتّٰى اِبْتَاعَهُ مِنْهُمَا ثُمَّ بَنَاهُ مَسْجِدًا وَ طَفِقَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْقُلُ مَعَهُمُ اللَّبِنَ فِيْ بُنْيَانِهِ وَ يَقُوْلُ وَهُوَ يَنْقُلُ اللَّبِنَ هٰذَا الْحِمَالُ لَا حِمَالُ خَيْبَرَ هٰذَا اَبَرُّ رَبَّنَا وَ اَطْهَرُ وَ يَقُوْلُ اللّٰهُمَّ اِنَّ الْاَجْرَ اَجْرُ الْاٰخِرَةْ فَارْحَمِ الْاَنْصَارَ وَالْمُهَاجِرَةْ فَتَمَثَّلَ بِشِعْرِ رَجُلٍ مِّنَ الْمُسْلِمِيْنَ لَمْ يُسَمَّ لِيْ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ لَمْ يَبْلُغْنَا فِي الْاَحَادِيْثِ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَمَثَّلَ بِبَيْتِ شِعْرٍ تَامٍ غَيْرَ هٰذَا الْبَيْتِ.

اللّٰه صلي الله عليه وسلّم هغه دواړه بچي راوغبتل' او هلته د جمات جوړولو د پاره حضورﷺ د هغې درمند د هغوي نه قيمت معلوم كۀ' نو هغوي اووے' مونږ قيمت نه اخلو' بلكه يا رسول اللّٰه' مونږ دا زمكه تاسوته هبه كوو. ليكن حضورﷺ ددے نه انكار اوكړو او هغوئ له ئے قيمت وركړو بيا حضورﷺ هغه ځائے كښې د جمات بنياد كښېودلو' او رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم صحابه كرامو رض سره د هغے په تعمير كښې ښختے راوړلے. او فرمائيل ئے دا د خيبر بوجونه اوچتول نه دي[٢] اے خمونږ ربه دا ډير نيك او پاكيزه كار دے. او حضورﷺ به فرمائيل' اے خدايه' ثواب خو صرف د آخرت دے' په انصارو او مهاجرينو رحم اوكړے' بيا حضورﷺ د يو مسلمان شاعر شعر اووے' چه د هغۀ نوم ماته اونۀ ښودلے شو. ابن شهاب وائي' احاديثو كښې مونږ ته دا خبره معلومه نۀ شوه' چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم د دے شعر نه سوا بل شعر پوره لوستلے وي.

١. دا ټوله كارروائي دے د پاره كړلے شوه چه د چا شك رانشي چه د حضور اكرم صلي اللّٰه عليه وسلّم فداه ابي و امي نيولو پسے ورتګ كيږي. او دا چه پاك حضرتﷺ واقعي د ساحل په لاره باندے مدينے طرفته تشريف اوړي' ولے چه كه چرے بل چاته پته لګيدلے وے او ورسره شوے وے نو انعام به تقسيم شوے وو او پوره حصه به دغه صاحب ته نشوه ملاويدے. په نورو روايتونو كښې دي چه هغۀ د روانيدونه مخكښې هم د جاهليت دستور مطابق فال ويستے وو او د هر څل فال نتيجه به همدا راوتله چه دا اراده پريښودل پكار دي.

٢. خيبر په مدينه كښې د خپلو كجورو وغيره پيداوار د پاره مشهور وو. همدغے طرفته اشاره ده چه د هغه ځائے د باغونو مالكان چه كومه ميوه او غله د هغه ځائے بار كوي او راوړي او په خپل زړه كښې ورته خوشاليږي نو دا بوج (پيټے) د هغے نه ډير بهتر او پاك دے ځكه چه ددے قيمت او بدله به اللّٰه تعالٰي وركوي څوك چه هميشه باقي پاتے كيدونكے دے.

١٠٩٢: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ اَبِيْ شَيْبَةَ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ

١٠٩٢: عبداللّٰه بن ابي شيبه. ابو اسامه. هشام. د هغۀ پلار. او فاطمه. بي بي اسماءؓ نه روايت كوي' هغه

حَدَّثَنَا هِشَامٌ عَنْ اَبِيْهِ وَ فَاطِمَةُ عَنْ اَسْمَاءَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا صَنَعْتُ سُفْرَةً لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَبِيْ بَكْرٍ حِيْنَ اَرَادَ الْمَدِيْنَةَ فَقُلْتُ لِاَبِيْ مَا اَجِدُ شَيْئًا اَرْبِطُهُ اِلَّا نِطَاقِيْ قَالَ فَشُقِّيْهِ فَفَعَلْتُ فَسُمِّيْتُ ذَاتَ النِّطَاقَيْنِ.

فرماني: رسول اللّه صلي الله عليه وسلّم او حضرت ابوبكرؓ چه مديني ته د تلو اراده اوكړله نو ما هغوی د پاره خوراكه تياره كړه او ما خپل پلار ته اووے چه ما سره د دے توشه دان د خولے (منه) بندولو د پاره د خپل پرتوغابن نه سوا نه هيڅ نشته نو خما پلار (ابوبكر) اوفرمائيل چه دا اوشلوه نو ما دغسے اوكړل په دے وجه خما لقب "ذات النطاقين" (يعنى دوو كمر بندو والا) شولو.

۱۰۹۳ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ اَبِيْ اِسْحٰقَ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ لَمَّا اَقْبَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَى الْمَدِيْنَةِ تَبِعَهُ سُرَاقَةُ بْنُ مَالِكِ بْنِ جُعْشُمٍ فَدَعَا عَلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَاخَتْ بِهِ فَرَسُهُ قَالَ ادْعُ اللّٰهَ لِيْ وَلَا اَضُرُّكَ فَدَعَا لَهُ قَالَ فَعَطِشَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَرَّ بِرَاعٍ قَالَ اَبُوْ بَكْرٍ فَاَخَذْتُ قَدَحًا فَحَلَبْتُ فِيْهِ كُثْبَةً مِّنْ لَّبَنٍ فَاَتَيْتُهُ فَشَرِبَ حَتّٰى رَضِيْتُ.

۱۰۹۳ : محمد بن بشار. غندر. شعبه. ابو اسحاق. حضرت براء بن عازب نه روايت كوي هغه فرمائي، كوم وخت چه نبي صلي اللّه عليه وسلّم مديني جانب ته روان شولو، نو سراقه بن مالك بن جعشم، حضورؐ پسے اولګيدلو حضورؐ هغهٔ ته بددُعا اوكړله. نو ذ هغهٔ اس زمكه كښې ښخ شولو. هغهٔ اووے، تاسوؐ اللّه نه ما ذ پاره دُعا اوغواړئے، زهٔ به تاسو ته څهٔ ضرر نهٔ رسوم، نو حضورؐ هغهٔ ته دُعا اوكړله. بيا حضورؐ تږے شو. نو په يو ګډ به تيريدل. حضرت ابوبكرؓ وائي، چه ما يوه پيالـه واخسته، او هغے كښې م پئے اولښل. بيا م حضورؐ لـه راوړل، حضورؐ اوڅكل، حتي چه زهٔ خوشحاله شوم.

۱۰۹۴ : حَدَّثَنِيْ زَكَرِيَّاءُ بْنُ يَحْيٰى عَنْ اَبِيْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَسْمَاءَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَنَّهَا حَمَلَتْ بِعَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الزُّبَيْرِ قَالَتْ فَخَرَجْتُ وَ اَنَا مُتِمٌّ فَاَتَيْتُ

۱۰۹۴ : زكريا بن يحيي. ابو اسامه. هشام بن عروه. ذ هغهٔ پلار، بي بي اسماءؓ نه روايت كوي، چه عبداللّه بن زبيرؓ ذ هغے په خيټه كښې وو، هغه وائي، خما ورځے پوره وے، چه زهٔ روانه شوم، او مديني ته راغلم. بيا زهٔ قبا كښې مقيمه شوم، نو قباء

الْمَدِيْنَةَ فَنَزَلْتُ بِقُبَاءٍ فَوَلَدْتُهُ بِقُبَاءٍ ثُمَّ اَتَيْتُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَضَعْتُهُ فِيْ حَجْرِهٖ ثُمَّ دَعَا بِتَمْرَةٍ فَمَضَغَهَا ثُمَّ تَفَلَ فِيْ فِيْهِ فَكَانَ اَوَّلُ شَيْءٍ دَخَلَ جَوْفَهُ رِيْقُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ حَنَّكَهُ بِتَمْرَةٍ ثُمَّ دَعَا لَهُ وَ بَرَّكَ عَلَيْهِ وَ كَانَ اَوَّلُ مَوْلُوْدٍ وُلِدَ فِي الْاِسْلَامِ تَابَعَهُ خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ عَنْ عَلِيِّ بْنِ مُسْهِرٍ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ اَسْمَآءَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَنَّهَا هَاجَرَتْ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ هِيَ حُبْلٰى.

کښې عبداللّٰه پیدا شولو، نو ما هغه رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم له راوستلو، او هغه م د حضورﷺ په غیږ مبارکه کښې کیښودلو. بیا حضورﷺ قجوره راوغښتله، هغه ئې اوچویله او ذ هغهٔ په خوله کښې ئې واچوله نو د ټولونه اول څیز چه د هغه خیټې ته داخل شو هغه د حضورﷺ لاړې مبارکې وې او برکت ذ پاره ئې ورته دُعا او کړله او دا ذ ټولونه وړمبنے بچې دې، چه اسلام کښې (ذ هجرت نه پس) پیدا شو. ذ دې متابع حدیث خالد بن مخلد په واسطه ذ علي بن مسهر، هشام، ذ هغهٔ پلار، بي بي اسماءؓ دا شان روایت کوي، چه هغې ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم طرف ته ذ حمل په حالت کښې هجرت کړې وو.

**ف**: ددې حدیث مبارک نه یوه ښکلې خبره دا هم راووخي، چه یو ماشوم پیدا شي، او هغهٔ له ذ خدائې یو نیک بنده خوله کښې جویلې قجوره ورکړي، او دُعا ورته اوکړي، نو انشاء اللّٰه چه هغه ماشوم به خدائې تعالي ډیر سَعادت مند او مبارک کړي.

**۱۰۹۵**: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ عَنْ اَبِيْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ اَوَّلُ مَوْلُوْدٍ وُلِدَ فِي الْاِسْلَامِ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ الزُّبَيْرِ اَتَوْا بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخَذَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَمْرَةً فَلَا كَهَا ثُمَّ اَدْخَلَهَا فِيْ فِيْهِ فَاَوَّلُ مَا دَخَلَ بَطْنَهُ رِيْقُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**۱۰۹۵**: قتیبه. ابو اسامه. هشام بن عروه. ذ هغهٔ پلار. بي بي عائشېؓ نه روایت کوي هغه فرمائي، ذ ټولونه وړمبے بچې چه اسلام کښې (ذ هجرت نه پس) پیدا شو، هغه عبداللّٰه بن زبیر وو، هغه ئې رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم ته راوستلو، حضور صلي اللّٰه علیه وسلّم یوه قجوره اوجویله بیائې ذ هغهٔ خوله کښې واچوله، ذ هغهٔ خیټه کښې ذ ټولو نه وړمبنے څیز ذ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم لعاب مبارک وو.

**۱۰۹٦**: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ

**۱۰۹٦**: محمد. عبدالصمد. ذ هغهٔ پلار.

حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ حَدَّثَنَا اَبِيُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ بْنُ صَهَيْبٍ حَدَّثَنَا اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ اَقْبَلَ نَبِيُّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِلَى الْمَدِيْنَةِ وَهُوَ مُرْدِفٌ اَبَا بَكْرٍ وَ اَبُوْ بَكْرٍ شَيْخٌ يُعْرَفُ وَ نَبِيُّ اللّٰهِ شَابٌّ لَا يُعْرَفُ قَالَ فَيَلْقَى الرَّجُلُ اَبَا بَكْرٍ فَيَقُوْلُ يَا اَبَا بَكْرٍ مَنْ هٰذَا الرَّجُلُ الَّذِيْ بَيْنَ يَدَيْكَ فَيَقُوْلُ هٰذَا الرَّجُلُ يَهْدِيْنِي السَّبِيْلَ قَالَ فَيَحْسِبُ الْحَاسِبُ اَنَّهُ اِنَّمَا يَعْنِي الطَّرِيْقَ وَ اِنَّمَا يَعْنِيْ سَبِيْلَ الْخَيْرِ فَالْتَفَتَ اَبُوْ بَكْرٍ فَاِذَا هُوَ بِفَارِسٍ قَدْ لَحِقَهُمْ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هٰذَا فَارِسٌ قَدْ لَحِقَ بِنَا فَالْتَفَتَ نَبِيُّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اللّٰهُمَّ اصْرَعْهُ فَصَرَعَهُ الْفَرَسُ ثُمَّ قَامَتْ تُحَمْحِمُ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مُرْنِيْ بِمَ شِئْتَ قَالَ فَقِفْ مَكَانَكَ لَا تَتْرُكَنَّ اَحَدًا يَلْحَقُ بِنَا قَالَ فَكَانَ اَوَّلَ النَّهَارِ جَاهِدًا عَلٰى نَبِيِّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ كَانَ اٰخِرَ النَّهَارِ مَسْلَحَةً لَهُ فَنَزَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

عبدالعزیز بن صهیب. انس بن مالکؓ نه روایت کوي، هغه فرمائي، رسول الله صلي الله علیه وسلّم مدینې ته تشریف راوړلو، او حضورؐ پسې ورستو (پـه خپلې سورلي) ابوبکرؓ وو. ابوبکر به تجارت وغیره کولو، نو د هغهٔ مثال په مثل ذ هغې بوډا وو، چه خلقو پیژندلو، او د نبي صلي الله علیه وسلّم معامله بهر نو خلقو سره نهٔ وه شوې، نو هغويّ په مثل ذ هغې ځلمي وو، چه خلقو سره ئې پیژندګلو نهٔ وهٔ، نو لار کښې به چه څوک ابوبکرؓ سره یوځائې کیدلو، نو ذ هغه نه به ئې تپوس کولو، اې ابوبکرؓ تاسره دا سړې (مراد حضور صلي الله علیه وسلّم) څوک دې، نو ابوبکرؓ به جواب ورکولو، چه دا ماته لار ښودونکې دې، نو پوهیدونکي به ذ هغې نه معروف لاره مراد اخستله، حالانکه د ابوبکرؓ مراد د نیکئ لار وه. بیا ابوبکرؓ یوځائې کښې په ورستو اوکتل، نو وې لیدل چه یو سور هغوي ته رارسیدل غواړي. نو سمدستي ابوبکرؓ اووې یا رسول اللهؐ دا سور مونږ ته رارسیدل غواړي، رسول الله صلي الله علیه وسلّم چه ورستو اوکتل، نو وې فرمائیل اې الله دې راوغرځوې، نو هغه د اس نه راوغرځیدلو، بیا هغهٔ اس اودریدلو آواز ئې اوکړلو. نو هغې سور اووې، یا رسول اللهؐ تاسو چه د کومې خبرې حکم کوئې، ماته حکم راکړئې، حضورؐ ورته اوفرمائیل، تهٔ دغلته اودریږه، او څوک مونږ ته مهٔ راپریږده، انسؓ وائي (ذ خدائې قدرت وو) سحر هغه سړې ذ حضورؐ دشمن وو، او مابنام د حضورؐ دوست جوړ شولو. بیا رسول الله صلي الله علیه وسلّم مقام حره کښې کوز شولو، او انصار ئې راوغښتل نو هغوي رسول

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَانِبَ الْحَرَّةِ ثُمَّ بَعَثَ إِلَى الْأَنْصَارِ فَجَاءُوْا إِلَى نَبِيِّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَلَّمُوْا عَلَيْهِمَا وَ قَالُوْا رُكَبَا اٰمِنَيْنِ مُطَاعَيْنِ فَرَكِبَ نَبِيُّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَبُوْ بَكْرٍ وَ حَفُّوْا دُوْنَهُمَا بِالسَّلَاحِ فَقِيْلَ فِى الْمَدِيْنَةِ جَاءَ نَبِيُّ اللّٰهِ جَاءَ نَبِيُّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَشْرَفُوْا يَنْظُرُوْنَ وَ يَقُوْلُوْنَ جَاءَ نَبِيُّ اللّٰهِ جَاءَ نَبِيُّ اللّٰهِ فَاَقْبَلَ يَسِيْرُ حَتّٰى نَزَلَ جَانِبَ دَارِ اَبِىْ اَيُّوْبَ فَاِنَّهُ لَيُحَدِّثُ اَهْلَهُ اِذْ سَمِعَ بِهِ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَلَامٍ وَهُوَ فِىْ نَخْلٍ لِاَهْلِهِ يَخْتَرِفُ لَهُمْ فَعَجَّلَ اَنْ يَضَعَ الَّذِىْ يَخْتَرِفُ لَهُمْ فِيْهَا فَجَآءَ وَ هِىَ مَعَهُ فَسَمِعَ مِنْ نَبِيِّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ رَجَعَ اِلٰى اَهْلِهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَىُّ بُيُوْتِ اَهْلِنَا اَقْرَبُ فَقَالَ اَبُوْ اَيُّوْبَ اَنَا يَا نَبِيَّ اللّٰهِ هٰذِهٖ دَارِىْ وَ هٰذَا بَابِىْ قَالَ فَانْطَلِقْ فَهَيِّىءْ لَنَا مَقِيْلًا قَالَ قُوْمَا عَلٰى بَرَكَةِ اللّٰهِ فَلَمَّا جَاءَ نَبِيُّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم له راغلل' او هغے دواړو حضراتو ته هغوي سلام او كړ' او هغوي ته ئے عرض او كړ' بنه اطمينان سره سور' خے' مونږ ستاسو مطيع (تابعدار) يُو' نو رسول اللّٰه صلي الله عليه وسلّم او حضرت ابوبكرؓ سور شولو' او ټول انصار ذ هغوي نه وسلو سره چاپيره شو. هغه وخت مدينه كښ يو شور جوړ شولو' چه د الله رسول راغے' ذ الله رسول راغے' خلق بلندئ باندے ختل كتل اووئيل ئے' ذ الله رسول راغے' ذ اللّٰه رسول راغے' ذ الله رسول راغے' حضورؐ برابر روان وو' حتي چه ذ ابو ايوب انصاري مكان ته نزدے راغے. حضورؐ ذ هغهٔ كور والو سره خبرے كولے' چه حضرت عبدالله بن سلام ذ حضورؐ ذ تشريف آوري خبر واوريدلو' او هغهٔ' هغه وخت ذ خپل كور والو په باغ كښ قجورے شوكولے (دے خبر آوريدو سره) هغه شوكولے قجورے تادئ سره كيښودے' راغے ذ رسول اللّٰه صلي الله عليه وسلّم خبرے ئے واوريدے بيا خپل كورته واپس لاړلو. رسول اللّٰه صلي الله عليه وسلّم اوفرمائيل' ځمونږ خلقو كښ ذ چا كور دلته نزدے دے. ابو ايوب عرض او كړ' زهٔ يم يا رسول الله' دا ځما كور دے' او دا ذ هغے دروازه ده. حضورؐ ورته اوفرمائيل' ته لاړ شه او ځمونږ ذ آرام كولو سامان برابر كړه' هغه عرض او كړ' ذ اللّٰه تعالي بركت دے' تاسو دواړه صاحبان تشريف راوړئے. بيا چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم تشريف راوړلو. نو حضرت عبدالله بن سلام راغے' او وے وئيل' زهٔ گواهي كوم' چه تاسوٌ ذ اللّٰه رسول ئے' او تاسو ريښتنے مذهب راوړلے دے.

وَسَلَّمَ جَاءَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَلَامٍ فَقَالَ اَشْهَدُ اَنَّكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ وَ اَنَّكَ جِئْتَ بِحَقٍّ وَقَدْ عَلِمَتْ يَهُوْدُ اَنِّيْ سَيِّدُهُمْ وَابْنُ سَيِّدِهِمْ وَ اَعْلَمُهُمْ وَابْنُ اَعْلَمِهِمْ فَادْعُهُمْ فَاسْأَلْهُمْ عَنِّيْ قَبْلَ اَنْ يَّعْلَمُوْا اَنِّيْ قَدْ اَسْلَمْتُ فَاِنَّهُمْ اِنْ يَّعْلَمُوْا اَنِّيْ قَدْ اَسْلَمْتُ قَالُوْا فِيَّ مَا لَيْسَ فِيَّ فَاَرْسَلَ نَبِيُّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَقْبَلُوْا فَدَخَلُوْا عَلَيْهِ فَقَالَ لَهُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا مَعْشَرَ الْيَهُوْدِ وَيْلَكُمْ اِتَّقُوْا اللّٰهَ فَوَاللّٰهِ الَّذِيْ لَا اِلٰهَ اِلَّا هُوَ اِنَّكُمْ لَتَعْلَمُوْنَ اَنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ حَقًّا وَّ اَنِّيْ جِئْتُكُمْ بِحَقٍّ فَاَسْلِمُوْا قَالُوْا مَا نَعْلَمُهُ قَالُوْا لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَهَا ثَلٰثَ مِرَارٍ قَالَ فَاَيُّ رَجُلٍ فِيْكُمْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَلَامٍ قَالُوْا ذَاكَ سَيِّدُنَا وَابْنُ سَيِّدِنَا وَ اَعْلَمُنَا وَابْنُ اَعْلَمِنَا قَالَ اَفَرَاَيْتُمْ اِنْ اَسْلَمَ قَالُوْا حَاشٰى لِلّٰهِ مَا كَانَ لِيُسْلِمَ قَالَ اَفَرَاَيْتُمْ اِنْ اَسْلَمَ قَالُوْا حَاشٰى لِلّٰهِ مَا كَانَ لِيُسْلِمَ قَالَ اَفَرَاَيْتُمْ اِنْ اَسْلَمَ قَالُوْا حَاشٰى لِلّٰهِ مَا كَانَ لِيُسْلِمَ قَالَ يَا ابْنَ سَلَامٍ اُخْرُجْ عَلَيْهِمْ فَخَرَجَ فَقَالَ يَا مَعْشَرَ الْيَهُوْدِ اِتَّقُوا اللّٰهَ فَوَاللّٰهِ الَّذِيْ

يهوديانو ته معلوم ده، چه زهٔ د هغوي سردار او د سردار خوئے يم. د هغوي لوئے عالم او د لوئے عالم خوئے يم. تاسو دوي (يهوديان) راأغوارئے، او خما د اسلام هغوي ته د علم نه مخکښ د هغوي نه خما باره کښ معلومات اوکړئے، ځکه که هغوي ته خما دَ اسلام راوړلو علم اوشو، نو بيا به هغوي خما په نسبت داسے خبرے کوي، چه هغه ما کښ نشته، نو رسول الله صلي الله عليه وسلم هغوي راوغوښتل. کوم وخت چه هغوي دننه داخل شو، نو حضورؐ ورته اوفرمائيل، اے دَ يهودو جماعته، ستاسو دے بنياد اوخي، دَ الله نه اويريږئے، ځکه چه په هغه ذات م دے قسم وي، چه دَ هغهٔ نه سوا بل معبود نشته، تاسو ته معلومه ده، چه زهٔ دَ الله ريښتينے رسول يم او ريښتنے مذهب م تاسو ته راوړے دے، نو مسلمانان شئے. هغوي اووے، چه مونږ ته دا معلومه نه ده. درے ځله ئے دغسے اووے. بيا حضورؐ ورته اوفرمائيل، ښه، عبدالله بن سلام تاسو کښ څنګه سړے دے. هغوي اووے، هغهٔ خمونږ سردار او دَ سردار خوئے دے. لوئے عالم دے، او دَ لوئے عالم خوئے دے. حضورؐ ورته اوفرمائيل، ښه دا راته اووائے که هغه مسلمان شي (نو بيا) هغوي اووے، خدائے دے نهٔ کړي، هغه څنګه منلمانيدے شي، حضورؐ ورته اوفرمائيل، ښه که، مسلمان شي، هغوي اووے، خدائے مه کړه، چه هغه مسلمان شي. بيا حضورؐ اوفرمائيل، که هغه مسلمان شي، هغوي اووے خدائے دے نهٔ کړي، هغه خو هيڅ کله مسلمانيدے نه شي، نو حضورؐ اوفرمائيل، اے ابن سلامه، لږ دَ دوي مخے ته راشه، نو هغه بهر ته راووت، اووئيلے، اے دَ يهودو

لَآ اِلٰـهَ اِلَّا هُوَ اِنَّكُمْ لَتَعْلَمُوْنَ اَنَّهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَنَّهُ جَاءَ بِحَقٍّ فَقَالُوْا كَذَبْتَ فَاَخْرَجَهُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

جماعته، دَ اللّٰه نه اويريږئ، ځكه چه په هغه ذات م دئ قسم وي، چه دَ هغهٔ نه سوا بل معبود نشته، يقينًا تاسو پوهيږئ، چه حضورؐ دَ اللّٰه رسولؐ دئ، او ريښتني مذهب ئې راوړے دے. نو يهوديانو اووے، تهٔ دروغجن ئې. بيا هغوي حضورؐ بهرته اوښكل.

۱. حضور اكرمؐ د ابوبكرؓ نه دوه كاله او څو مياشتے په عمر كښے مشر وو. ليكن هغه وخته پورے د هغوئ ويسته تور وُو، په دے وجه حضورؐ خوان ښكاريدو، ليكن د ابوبكر رضي اللّٰه عنه د ګيرے ويښته كافي سپين شوي وو. راوي همدغه خبره بيان كړے ده.

ابوبكر رضي اللّٰه عنه چونكه تاجر وو او اكثر د عربو د اطرافو سفر به ئې كولے، په دے وجه ډيرو خلقو به هغهٔ پيژندلو.

۱۰۹۷ : حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ مُوْسٰى اَخْبَرَنَا هِشَامٌ عَنْ ابْنِ جُرَيْجٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ فَرَضَ لِلْمُهَاجِرِيْنَ الْاَوَّلِيْنَ اَرْبَعَةَ اٰلَافٍ فِيْ اَرْبَعَةٍ وَ فَرَضَ لِابْنِ عُمَرَ ثَلٰثَةَ اٰلَافٍ وَ خَمْسَمِائَةٍ فَقِيْلَ لَهُ هُوَ مِنَ الْمُهَاجِرِيْنَ فَلِمَ نَقَصْتَهُ مِنْ اَرْبَعَةِ اٰلَافٍ فَقَالَ اِنَّمَا هَاجَرَ بِهِ اَبَوَاهُ يَقُوْلُ لَيْسَ هُوَ كَمَنْ هَاجَرَ بِنَفْسِهٖ.

۱۰۹۷ : ابراهيم بن موسٰي. هشام. ابن جُريج. عبيداللّٰه بن عمر. نافع. حضرت ابن عمرؓ. حضرت عمرؓ نه روايت كوي، حضرت عمر رضي اللّٰه عنه دَ مهاجرين اولين وظيفه څلور زره درهمه سالانه مقرر كړله او دَ ابن عمرؓ خپل ځوئې ئې درے نيم زره نو هغهٔ ته اووئيلے شو، چه ابن عمرؓ خو هم مهاجر دے. تاسو دَ هغهٔ وظيفه ولے د څلور زره نه كمه كړه. حضرت عمرؓ ورته اوفرمائيل، چه هغهٔ خپل مور پلار سره هجرت كړے وو. مطلب دَ هغهٔ دا وو، چه دے دَ هغے خلقو په شان نهٔ دے، چه هغوي تنها (ځان له يوازے) هجرت كړے دے.

۱۰۹۸ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ اَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنِ الْاَعْمَشِ عَنْ اَبِيْ وَائِلٍ عَنْ خَبَّابٍ قَالَ هَاجَرْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

۱۰۹۸ : محمد بن كثير. سفيان. اعمش. ابو وائل. حضرت خبابؓ نه روايت كوي، هغه فرمائي، مونږ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم سره هجرت اوكړ.

۱۰۹۹ : حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيٰى عَنِ الْاَعْمَشِ قَالَ سَمِعْتُ

۱۰۹۹ : مسدد. يحيٰي. اعمش. شقيق بن سلمه. حضرت خبابؓ نه روايت كوي، هغه فرمائي، مونږ رسول

شَقِيقُ بْنُ سَلَمَةَ قَالَ حَدَّثَنَا خَبَّابٌ قَالَ هَاجَرْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَبْتَغِيْ وَجْهَ اللّٰهِ وَ وَجَبَ اَجْرُنَا عَلَى اللّٰهِ فَمِنَّا مَنْ مَضٰى لَمْ يَاْكُلْ مِنْ اَجْرِهٖ شَيْئًا مِنْهُمْ مُصْعَبُ بْنُ عُمَيْرٍ قُتِلَ يَوْمَ اُحُدٍ فَلَمْ نَجِدْ شَيْئًا نُكَفِّنُهُ فِيْهِ اِلَّا نَمِرَةً كُنَّا اِذَا غَطَّيْنَا بِهَا رَاْسَهُ خَرَجَتْ رِجْلَاهُ فَاِذَا غَطَّيْنَا رِجْلَيْهِ خَرَجَ رَاْسُهُ فَاَمَرَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ نُغَطِّيَ رَاْسَهُ بِهَا وَ نَجْعَلَ عَلٰى رِجْلَيْهِ مِنْ اِذْخَرَ وَ مِنَّا مَنْ اَيْنَعَتْ لَهٗ ثَمَرَتُهٗ فَهُوَ يَهْدِبُهَا.

اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم سره خاص ذ خدائے ذ پاره هجرت اوکړ، او خمونږ اجر اللّٰه تعالٰي سره جمع شو. اوس مونږ کښې بعضے هغه دي، چه دُنيا نه داسے تير شو، چه هغوي ذ خپل آجر، نه دُنيا کښې هيڅ بيانۀ مندل (يعني دُنيا کښې هيڅ خوشحالي ئے اونه ليدله). مصعب بن عمير هم ذ دغے کسانو نه دے، چه ذ اُحد په ورځ شهيد شولو، نو مونږ ته ذ هغه ذ کفن کولو ذ پاره ذ يو کمبل نه علاوه نور هيڅ په لاس رانغلل (او هغه کمبل هم دومره وړوکے وو، چه په هغے به مو ورله سر پټولو، پښے به ئے خرګندے پاتے کيدے، او که پښے به مو ورله پټولے سر به ئے خرګند پاتے کيدلو، حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم مونږ ته دا حکم راکړلو، چه کمبل سره ورله سر پټ کړو، او پښے ورله اذخر وابنو سره پټے کړو. او بعضے مونږ کښې هغه دي، چه هغوي ذ پاره ذ هغوي ميوه دُنيا کښې هم پخه شوه. او هغوي ذ هغے نه فائده اوچتوي.

۱۱۰۰: حَدَّثَنَا يَحْيَى ابْنُ بِشْرٍ حَدَّثَنَا رَوْحٌ حَدَّثَنَا عَوْفٌ عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ قُرَّةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ بُرْدَةَ بْنِ اَبِيْ مُوْسَى الْاَشْعَرِيّ قَالَ قَالَ لِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ هَلْ تَدْرِيْ مَا قَالَ اَبِيْ لِاَبِيْكَ يَا اَبَا مُوْسٰى هَلْ يَسُرُّكَ اِسْلَامُنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ هِجْرَتُنَا وَ جِهَادُنَا مَعَهٗ وَ عَمَلُنَا كُلُّهٗ مَعَهٗ بَرَدَ لَنَا وَ اِنَّ كُلَّ عَمَلٍ عَمِلْنَاهُ بَعْدَهٗ

۱۱۰۰: يحيٰي بن بشير. روح. عوف. معاويه بن قره. حضرت ابو برده بن ابو موسٰي اشعري نه روايت کوي، هغه وائي، ماته عبداللّٰه بن عمرؓ اوفرمائيل، تاته معلومه ده، چه خما پلار ستا پلار ته دا وئيلي وو چه اے ابو موسٰي، آيا ستا دا خبره خوښه نه ده، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم سره خمونږ اسلام خمونږ هجرت، خمونږ جهاد، او هر هغه کار چه مونږ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم سره (يعني د حضورؐ زمانه کښې کړے دے، هغه قائم پاتے شي (يعني ذ هغے ثواب مونږ ته حاصل شي) او خومره اعمال چه مونږ د حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه ورستو کړے دي، ذ هغے نه برابر خلاص شو

نَجُوْنَا مِنْهُ كَفَافًا رَأْسًا بِرَأْسٍ فَقَالَ اَبِيْ لَا وَاللّٰهِ قَدْ جَاهَدْنَا بَعْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ صَلَّيْنَا وَ صُمْنَا وَ عَمِلْنَا خَيْرًا كَثِيْرًا وَ اَسْلَمَ عَلٰى اَيْدِيْنَا بَشَرٌ كَثِيْرًا وَّ اِنَّا لَنَرْجُوْا ذٰلِكَ فَقَالَ اَبِيْ لٰكِنِّيْ اَنَا وَالَّذِيْ نَفْسُ عُمَرَ بِيَدِهٖ لَوَدِدْتُ اَنَّ ذٰلِكَ بَرَدَ لَنَا وَ اِنَّ كُلَّ شَيْءٍ عَمِلْنَاهُ بَعْدَهٗ نَجَوْنَا كَفَافًا رَأْسًا بِرَأْسٍ فَقُلْتُ اِنَّ اَبَاكَ وَاللّٰهِ خَيْرٌ مِّنْ اَبِيْ.

(چه نه د نیکو ثواب بیامومو، او نهٔ د گناهونو عذاب) نو ستا پلار خما پلار ته اُووے، نه وروره، په خدائے چه مونږ دَ رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه پس جهادونه کړے دي، مونځونه مو کړے دي، روژے مو نیولے دي ډیر نیک کارونه مو کړے دي. او ډیرو خلقو خمونږ په لاس اسلام راوړے دے. او خمونږ دَ هغے دَ ثواب اُمید دے. خما پلار اووے لیکن زهٔ دَ هغے ذات قسم خورم، چه دَ هغهٔ په قبضه کښ دَ عمر ساه ده، زهٔ دا غوارم چه خمونږ هغه عمل خو باقي پاتے شي، او نور خومره اعمال چه مونږ دَ حضورؐ نه پس کړے دي، دَ هغے نه برابر خلاص شو، نو ما اووے، په خدائے چه ستا پلار خما دَ پلار نه افضل دے.

۱۱۰۱: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ صَبَّاحٍ اَوْ بَلَغَنِيْ عَنْهُ حَدَّثَنِيْ اِسْمَاعِيْلُ عَنْ عَاصِمٍ عَنْ اَبِيْ عُثْمَانَ قَالَ سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اِذَا قِيْلَ لَهٗ هَاجَرَ قَبْلَ اَبِيْهِ يَغْضَبُ قَالَ فَقَدِمْتُ اَنَا وَ عُمَرُ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَجَدْنَاهُ قَائِلًا فَرَجَعْنَا اِلَى الْمَنْزِلِ فَاَرْسَلَنِيْ عُمَرُ وَ قَالَ اذْهَبْ فَانْظُرْ هَلِ اسْتَيْقَظَ فَاَتَيْتُهٗ فَدَخَلْتُ عَلَيْهِ فَبَايَعْتُهٗ ثُمَّ انْطَلَقْتُ اِلٰى عُمَرَ فَاَخْبَرْتُهٗ اَنَّهٗ قَدِ اسْتَيْقَظَ فَانْطَلَقْنَا اِلَيْهِ نُهَرْوِلُ هَرْوَلَةً حَتّٰى دَخَلَ عَلَيْهِ فَبَايَعَهٗ ثُمَّ بَايَعْتُهٗ.

۱۱۰۱: محمد بن صباح. اسماعيل. عاصم. ابو عثمان فرمائي، حضرت ابن عمرؓ ته اووئيلے شو، چه هغهٔ دَ خپل پلار نه مخکښ هجرت کړے دے، نو هغه به ناراضه شولو! او فرمائيل به ئے، چه (هجرت نه پس) زهٔ او حضرت عمرؓ دواړه رسول الله صلي الله عليه وسلّم له راغلو، مونږ ته معلومه شوه، چه حضورؐ اُودهٔ دے نو مونږ کورته واپس شولو، بیا زهٔ حضرت عمرؓ اولیږلم، اووئیلے، لاړ شه، اوګوره، چه حضورؐ بیدار شوے دے. زهٔ حضورؐ له راغلم، او دننه لاړم. نو ما دَ حضورؐ نه بیعت اوکړهٔ. بیا زهٔ حضرت عمرؓ له راغلم، او هغهٔ ته مِ حال اووے، چه حضور صلي الله عليه وسلّم بیدار شوے دے، نو مونږ دواړه په تادي (په منډه) حضورؐ له راغلو، حضرت عمرؓ دننه لاړلو، او دَ حضور اکرم صلي الله عليه وسلّم نه ئے بیعت اوکړهٔ، بیا ما هم بیعت اوکړهٔ.

۱. ولے چه دے سره جُزوي طور باندے د هغوئ په خپل پلار باندے فضيلت ثابتيږي. دے د پاره كه چرے چا به دا قسمه څه خبره او كړه نو هغوئ له به غصه ورتله.

۲. يعني حقيقت صرف دومره دے چه ما پاک حضرتؐ سره بيعت د هجرت نه پس د حضرت عمر رضي الله عنه نه مخكښے كړے وو. او د هغے صورت دا جوړ شوے وو. كنے ظاهره ده چه هجرت خونے د خپل مور پلار سره كړے وو.

**۳۱۰۲: حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عُثْمَانَ حَدَّثَنَا شُرَيْحُ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ يُوسُفَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي إِسْحٰقَ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ يُحَدِّثُ قَالَ ابْتَاعَ أَبُو بَكْرٍ مِنْ عَازِبٍ رَحْلًا فَحَمَلْتُهُ مَعَهُ قَالَ فَسَأَلَهُ عَازِبٌ عَنْ مَسِيرِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أُخِذَ عَلَيْنَا بِالرَّصَدِ فَخَرَجْنَا لَيْلًا فَأَحْثَثْنَا لَيْلَتَنَا وَيَوْمَنَا حَتّٰى قَامَ قَائِمُ الظَّهِيرَةِ ثُمَّ رُفِعَتْ لَنَا صَخْرَةٌ فَأَتَيْنَاهَا وَلَهَا شَيْءٌ مِنْ ظِلٍّ قَالَ فَفَرَشْتُ لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرْوَةً مَعِيَ ثُمَّ اضْطَجَعَ عَلَيْهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَانْطَلَقْتُ أَنْفُضُ مَا حَوْلَهُ فَإِذَا أَنَا بِرَاعٍ قَدْ أَقْبَلَ فِي غُنَيْمَةٍ يُرِيدُ مِنَ الصَّخْرَةِ مِثْلَ الَّذِي أَرَدْنَا فَسَأَلْتُهُ لِمَنْ أَنْتَ يَا غُلَامُ فَقَالَ أَنَا لِفُلَانٍ فَقُلْتُ لَهُ هَلْ فِي غَنَمِكَ مِنْ لَبَنٍ قَالَ نَعَمْ قُلْتُ لَهُ هَلْ أَنْتَ حَالِبٌ قَالَ نَعَمْ فَأَخَذَ شَاةً مِنْ غَنَمِهِ فَقُلْتُ لَهُ انْفُضِ الضَّرْعَ قَالَ فَحَلَبَ كُثْبَةً مِنْ لَبَنٍ وَمَعِيَ**

**۳۱۰۲:** احمد بن عثمان. شريح بن مسلمه. ابراهيم بن يوسف. د هغهٔ پلار. ابو اسحاق. حضرت براء بن عازب نه روايت كوي هغه فرمائي' چه حضرت ابوبكرؓ خما د پلار عازب نه يوه كجاوه (په بيع) اوخسته' ما هغه كجاوه اوچته كړه' هغهٔ سره م يوړله' نو عازب د حضرت ابوبكرؓ نه د رسول الله صلي الله عليه وسلّم د سفر (د هجرت) كيفيت اوپښتنه. حضرت ابوبكرؓ اووے' په مونږ (جاسوسان) مقرر وو. نو مونږ د غار ثور نه د شپے اُووتلو او يَو شوا روز تيز تلو' تردے چه تكنه غرمه شوه مونږ ته يو چټان په نظر راغے' مونږ هغے له راغلو' او د هغے كټ (چټان) لږ شان سورے وو' ما خپل يو پوستين چه ماسره وو' رسول الله صلي الله عليه وسلّم د پاره اوغوړولو' حضور صلي الله عليه وسلّم په هغے سملاستلو. زهٔ اخوا ديخوا كتلو د پاره لاړم' نو ما يو شپونكے وليد' چه څهٔ چيلئے ورسره وے' او مخے ته راتلو او هغه هم د هغے كټ د سوري په تلاش كښې راتلو' ما د هغهٔ نه تپوس او كهٔ' تهٔ د چا غلام يې' هغهٔ اووے' د فلاني' ما ورته اووے' آيا ستا چيلو كښې پئے شته' هغه اووے' او' ما ورته اووے' آيا تهٔ پئے لشلے شے' هغهٔ اووے' او. بيا هغهٔ يوه چيلئے اونيوله. ما هغهٔ ته اووے چه د دے غلانزه صفا كړه. بيا هغهٔ لږ شان پئے اولشل. ما سره يو كپړه بند' لوښے وو' چه ما د رسول

اِدَاوَةٌ مِنْ مَّآءٍ عَلَيْهَا خِرْقَةٌ قَدْ رَوَّأْتُهَا لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَبَبْتُ عَلَى اللَّبَنِ حَتّٰى بَرَدَ اَسْفَلُهٗ ثُمَّ اَتَيْتُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ اشْرَبْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَشَرِبَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى رَضِيْتُ ثُمَّ ارْتَحَلْنَا وَالطَّلَبُ فِيْ اَثَرِنَا قَالَ الْبَرَاءُ فَدَخَلْتُ مَعَ اَبِيْ بَكْرٍ عَلٰى اَهْلِهٖ فَاِذَا عَائِشَةُ ابْنَتُهٗ مُضْطَجِعَةٌ قَدْ اَصَابَتْهَا حُمّٰى فَرَاَيْتُ اَبَاهَا فَقَبَّلَ خَدَّهَا وَ قَالَ كَيْفَ اَنْتِ يَا بُنَيَّةُ.

اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم ذَ پاره تړلے وو. ما هغے پيۆ كښې اوبه واچولے، تردے چه لاندے پورے يخ شولو، بيا ما هغه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم له راوړل، او عرض م اوكهٔ، يا رسول اللّٰه، دا اوڅكئے، نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم هغه پئے اوڅكل، تردے چه زهٔ خوشحاله شوم. بيا مونږ ذَ هغے ځائے نه كوچ (سفر) اوكهٔ او تلاش كونكي راپسے ورستو ورستو راروان وو. حضرت براءؓ وائي، زهٔ حضرت ابوبكرؓ سره ذَ هغهٔ كور ته لاړم، نو ذَ هغه لور بي بي عائشهؓ ملاسته وه. هغے له تبه راغلے وه، نو ما ذَ هغے پلار اوليد، چه هغهٔ هغه (بي بي عائشهؓ) په مخ ښكل كړه. بيائے تپوس اوكهٔ. لورے، طبيعت دے څنگه دے (يعني بيمار پرسي ئے اوكړله).

ف: اللّٰه پاك دے څمونږ هم ذَ نيكانو خلقو اطاعت كښې خوشحالي نصيب كړي. اللّٰهم آمين.

۳ ۰ ۱ ۱: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حُمَيْرٍ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ اَبِيْ عَبْلَةَ اَنَّ عُقْبَةَ بْنَ وَسَّاجٍ حَدَّثَهٗ عَنْ اَنَسٍ خَادِمِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ لَيْسَ فِيْ اَصْحَابِهٖ اَشْمَطُ غَيْرَ اَبِيْ بَكْرٍ فَغَلَّفَهَا بِالْحِنَّاءِ وَالْكَتَمِ وَ قَالَ دُحَيْمٌ حَدَّثَنَا الْوَلِيْدُ حَدَّثَنَا الْاَوْزَاعِيُّ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ عُبَيْدٍ عَنْ عُقْبَةَ ابْنِ وَسَّاجٍ حَدَّثَنِيْ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ فَكَانَ اَسَنَّ اَصْحَابِهٖ اَبُوْ بَكْرٍ فَغَلَّفَهَا بِالْحِنَّاءِ

۳ ۰ ۱ ۱: سليمان بن عبدالرحمٰن. محمد بن حمير. ابراهيم بن عبله. عقبه بن وساج. خادم ذَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم حضرت انسؓ نه روايت كوي، هغه فرمائي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم مدينے ته تشريف راوړلو، نو ذَ حضورؐ په اصحابو كښې گډوډ ويښتو واله (يعني چه نيم ويښته ئے سپين او نيم تور وي) سِوا ذَ ابوبكرؓ نه بل څوك نهٔ وو، هغهٔ ذَ وسمے او نكريزو خضاب اولږولو. دحيم، وليد، اوزاعي، ابو عبيد، عقبه بن وساج، حضرت انس بن مالكؓ نه روايت كوي، هغه فرمائي، كوم وخت چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم مدينے ته تشريف راوړلو، نو ذَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم په صحابهؓ ؤ كښې ذَ زيات عمر سړے حضرت ابوبكر صديقؓ وو. حضرت ابوبكرؓ په خپله گيره ذَ نكريزو او

وَالْكَتَمِ حَتّٰى قَنَاْلُوْنُهَا.

۴ ۰ ۱ ۱ : حَدَّثَنَا اَصْبَغُ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عُرْوَةَ ابْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ اَبَا بَكْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ تَزَوَّجَ اِمْرَأَةً مِّنْ كَلْبٍ يُقَالُ لَهَا اُمُّ بَكْرٍ فَلَمَّا هَاجَرَ اَبُوْ بَكْرٍ طَلَّقَهَا فَتَزَوَّجَهَا ابْنُ عَمِّهَا هٰذَا الشَّاعِرُ الَّذِيْ قَالَ هٰذِهِ الْقَصِيْدَةَ رَثّٰى كُفَّارَ قُرَيْشٍ.

وَمَا ذَا بِالْقَلِيْبِ قَلِيْبِ بَدْرٍ
مِنَ الشِّيْزٰى تُزَيَّنُ بِالسَّنَامِ
وَمَا ذَا بِالْقَلِيْبِ قَلِيْبِ بَدْرٍ
مِنَ الْقَيْنَاتِ وَالشَّرْبِ الْكِرَامِ
تُحَيِّى بِالسَّلَامَةِ اُمُّ بَكْرٍ
وَ هَلْ لِيْ بَعْدَ قَوْمِيْ مِنْ سَلَامٍ
يُحَدِّثُنَا الرَّسُوْلُ بِاَنْ سَنَحْيٰى
وَ كَيْفَ حَيَاةُ اَصْدَاءٍ وَّ هَامٍ

۵ ۰ ۱ ۱ : حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ اَنَسٍ عَنْ اَبِيْ بَكْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْغَارِ فَرَفَعْتُ رَاْسِيْ فَاِذَا اَنَا بِاَقْدَامِ الْقَوْمِ فَقُلْتُ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ لَوْ اَنَّ بَعْضَهُمْ طَاْطَاَ بَصَرَهُ رَاٰنَا قَالَ اسْكُتْ يَا اَبَا بَكْرٍ اِثْنَانِ اللّٰهُ ثَالِثُهُمَا.

وسمے خضاب اولږولو، حتٰي چه هغه تیزه سره شوله.

۴ ۰ ۱ ۱ : اصبغ. ابن وهب. یونس. ابن شهاب. عروه بن زبیر. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي، هغه فرمائي، حضرت ابوبکرؓ دَ قبیلهٔ کلب یوے ښځے سره چه دَ هغے نوم اُم بکر وو، نکاح اوکړله. څهٔ وخت چه حضرت ابوبکرؓ هجرت اوکړهٔ، نو هغے له ئے طلاق ورکړلو، دے نه پس دَ اُم بکر دَ تره خوي (چچازاد بھائی) هغے سره نکاح اوکړله. دا هغه شاعر دے چه هغهٔ دا قصیده (دَ بدر مقتول) کفار قریش په مرثیه کښ وئیلے ده:

"او دَ بدر کوهي کښ هغه خلق پاتے نهٔ شو، چه دَ هغے پیالو مالکان وو، چه دَ شیزئ لرګي وو، او دَ اوښانو دَ قُب دَ غوښے نه مزین وو. او دَ بدر کوهي کښ سندر غاړے ښځے او شراب څکلو کښ شریک خلق هم پاتے نهٔ شو. ماته ام بکر دَ سلامتي دُعا کوي حالانکه څما دَ قوم دَ هلاکت نه پس څما سلامتي چرته ده. دا رسول (اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم) مونږ ته وائي چه مونږ به دوباره ژوندي کیږو، حالانکه هډوکي او کپرئ څنګه ژوندے کیدے شي".

۵ ۰ ۱ ۱ : موسٰي بن اسمٰعیل. همام. ثابت. انس. حضرت ابوبکرؓ نه روایت کوي، زهٔ رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم سره غار ثور کښ ووم. ما چه خپل سر اوچت کهٔ، نو دَ خلقو پښے م اولیدے. ما عرض اوکهٔ، یا رسول اللّٰه، که دوي کښ څوک خپل نظر ښکته کړي، نو مونږ به اووینـي، نو حضورؐ اوفرمائیل. ابوبکرؓ خاموش شه. مونږ دوه سړي یو، خو مونږ سره دریم اللّٰه دے.

۱۱۰۶ : حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا الْوَلِيْدُ بْنُ مُسْلِمٍ حَدَّثَنَا الْاَوْزَاعِيُّ وَ قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا الْاَوْزَاعِيُّ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَطَاءُ بْنُ يَزِيْدَ اللَّيْثِيُّ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَبُوْ سَعِيْدٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ جَاءَ اَعْرَابِيٌّ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَاَلَهُ عَنِ الْهِجْرَةِ فَقَالَ وَيْحَكَ اِنَّ الْهِجْرَةَ شَانُهَا شَدِيْدٌ فَهَلْ لَكَ مِنْ اِبِلٍ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَتُعْطِيْ صَدَقَتَهَا قَالَ نَعَمْ قَالَ فَتَحْلِبُهَا يَوْمَ وُرُوْدِهَا قَالَ نَعَمْ قَالَ فَاعْمَلْ مِنْ وَّرَآءِ الْبِحَارِ فَاِنَّ اللّٰهَ لَنْ يَّتِرَكَ مِنْ عَمَلِكَ شَيْئًا.

۱۱۰۶ : علي بن عبداللّٰه. وليد بن مسلم. اوزاعي (دويم سند) محمد بن يوسف. اوزاعي. زهري. عطاء بن يزيد ليثي. حضرت ابو سعيدؓ نه روايت كوي، هغه وائي، يو بانډيسے (اعرابي) دَ حضورؐ په خدمت كښې حاضر شو. او دَ هجرت متعلق ئے تپوس شروع كۀ، حضورؐ ورته اوفرمائيل، دَ هجرت معامله ډيره سخته ده، آيا تا سره څۀ اوښان شته، هغۀ اووے، او، حضورؐ ورته اوفرمائيل، آيا تۀ دَ هغے صدقه وركوے، هغۀ اووے، او، حضورؐ ورته اوفرمائيل، آيا تۀ دَ هغے پئے هم خيرات كوے، هغۀ اووے، او، حضورؐ ورته اوفرمائيل، اوس كه تۀ سمندر پار هم (لاړ شے) عمل كوے، نو اللّٰه تعالٰي به ستا عمل (ثواب) كښې هيڅ هم كمے اونۀ كړي.

باب ۴۲۶۰ : مَقْدَمِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَصْحَابِهِ الْمَدِيْنَةَ.

باب ۴۲۶۰ : دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلم او دَ هغوي دَ صحابهؓ مدينے ته دَ تشريف آوري بيان.

۱۱۰۷ : حَدَّثَنَا اَبُو الْوَلِيْدِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ اَنْبَاَنَا اَبُوْ اِسْحٰقَ سَمِعَ الْبَرَاءَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ اَوَّلُ مَنْ قَدِمَ عَلَيْنَا مُصْعَبُ بْنُ عُمَيْرٍ وَابْنُ اُمِّ مَكْتُوْمٍ ثُمَّ قَدِمَ عَلَيْنَا عَمَّارُ بْنُ يَاسِرٍ وَ بِلَالٌ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ.

۱۱۰۷ : ابوالوليد. شعبه. ابو اسحاق. حضرت براء بن عازبؓ نه روايت كوي، هغه فرمائي، دَ ټولو نه مخكښې (مدينے ته) مونږ له مصعب بن عمير او ابن ام مكتوم راغلے وو. دے نه پس عمار بن ياسر او بلالؓ تشريف راوړے وو.

۱۱۰۸ : حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ

۱۱۰۸ : محمد بن بشار. غندر. شعبه. ابو اسحاق. حضرت براء بن عازبؓ نه روايت كوي

اَبِيْ اِسْحَاقَ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ بْنَ عَازِبٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ اَوَّلُ مَنْ قَدِمَ عَلَيْنَا مُصْعَبُ بْنُ عُمَيْرٍ وَابْنُ اُمِّ مَكْتُوْمٍ وَ كَانَا يُقْرِئَانِ النَّاسَ فَقَدِمَ بِلَالٌ وَ سَعْدٌ وَ عَمَّارُ بْنُ يَاسِرٍ ثُمَّ قَدِمَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ فِيْ عِشْرِيْنَ مِنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَا رَاَيْتُ اَهْلَ الْمَدِيْنَةِ فَرِحُوْا بِشَيْءٍ فَرْحَهُمْ بِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى جَعَلَ الْاِمَآءُ يَقُلْنَ قَدِمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَا قَدِمَ حَتّٰى قَرَاْتُ سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْاَعْلٰى فِيْ سُوَرٍ مِّنَ الْمُفَصَّلِ.

هغه فرمائي، مونږ له (مدينې ته) د ټولو مخکښې حضرت مصعب بن عميرؓ او ابن ام مکتومؓ راغلي وو، او دې دواړو حضراتو به خلقو ته قرآن ښودلو. بيا حضرت بلالؓ سعدؓ او عمار بن ياسر راغلل. بيا عمر بن خطابؓ شل صحابه ؤ د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم سره تشريف راوړلو. بيا رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم تشريف راوړلو، ما اهل مدينه هيڅ کله دومره خوشحاله نۀ وو ليدلي، څومره چه د رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم تشريف راوړلو سره خوشحاله وو. حتّي چه وينزو به هم دا ونيلې، چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم تشريف راوړلو. او کوم وخت چه حضورؐ تشريف راوړلو، نو ما دغه وخت: سبح اسم ربک الاعلٰى د مفصل څو سورتونو سره وئيلې وو.

۹ ۰ ۱ ۱ : حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يُوْسُفَ اَخْبَرَنَا مَالِكٌ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا اَنَّهَا قَالَتْ لَمَّا قَدِمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ وُعِكَ اَبُوْبَكْرٍ وَّ بِلَالٌ قَالَتْ فَدَخَلْتُ عَلَيْهِمَا فَقُلْتُ يَا اَبَتِ كَيْفَ تَجِدُكَ وَ يَا بِلَالُ كَيْفَ تَجِدُكَ فَكَانَ اَبُوْ بَكْرٍ اِذَا اَخَذَتْهُ الْحُمّٰى يَقُوْلُ.

كُلُّ امْرِىءٍ مُصَبَّحٌ فِيْ اَهْلِهٖ
وَالْمَوْتُ اَدْنٰى مِنْ شِرَاكِ نَعْلِهٖ

وَ كَانَ بِلَالٌ اِذَا اَقْلَعَ عَنْهُ الْحُمّٰى

۹ ۰ ۱ ۱ : عبداللّٰه بن يوسف. مالک. هشام بن عروه. د هغهٔ پلار. بي بي عائشيؓ نه روايت کوي، هغه فرمائي، کوم وخت چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم مدينې ته تشريف راوړلو، نو حضرت ابوبکرؓ او حضرت بلالؓ تبې اونيول. زۀ هغې دواړو له ورغلم. او ما اووې بابا جانه، طبيعت مو څنګه دې او اې بلاله! ته څنګه ئې بي بي عائشهؓ فرمائي، د حضرت ابوبکر دا حال وو، چه کله به هغه تبې اونيولو، نو دا شعر به ئې وئيلې:

هر سړې خپل کور والو سره صبا کوي او مرګ
د هغه د پيزار د تسمې نه هم زيات نزدې دې

او بلالؓ چه به تبې پريښودلو، نو هغهٔ به په زوره زوره دا

يَرْفَعُ عَقِيْرَتَهُ وَ يَقُوْلُ ؎
اَلَا لَيْتَ شِعْرِیْ هَلْ اَبِيْتَنَّ لَيْلَةً
بِـوَادٍ وَّ حَـوْلِیْ اِذْخَرٌ وَّ جَلِيْلُ
وَ هَـلْ اَرِدَنْ يَـوْمًـا مِّيَـاهَ مَجِنَّةٍ
وَهَـلْ يَبْدُوَنْ لِیْ شَامَةٌ وَّ طَفِيْلُ
قَـالَتْ عَـائِشَةُ فَجِئْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّـى اللّٰـهُ عَلَيْـهِ وَسَلَّـمَ فَـاَخْبَـرْتُـهُ فَـقَـالَ اللّٰهُـمَّ حَبِّبْ اِلَيْـنَـا الْـمَـدِيْـنَةَ كَحُبِّنَـا مَـكَّةَ اَوْ اَشَـدَّ وَ صَـحِّـحْهَـا وَ بَـارِكْ فِـیْ صَـاعِهَـا وَ مُـدِّهَـا وَانْـقُـلْ حُـمَّـاهَـا فَـاجْعَـلْهَـا بِالْجُحْفَةِ.

اشعار وئیلے:
کاش چه ماته معلومه دے، چه آيا زهٔ به يوه شپه
وادي مکه کښې تيره کړے شم، چه څما څلور
طرف ته اذخر، او جليل، واښه وي. او زهٔ به
مجنه نومے چينے ته کله اورسيږم، او ماته به
شامه او طفيل نومے غرونه کله ښکاري شي
بي بي عائشهؓ وائي، زهٔ حضورؐ له راغلم، او دا حالت مې ورته اوښودلو، نو حضورؐ دا دُعا اوفرمائيله، اے خدايه، مدينه مونږ ته محبوبه کړے، څنګه چه مکے سره څمونږ محبت دے، بلکه دَ دے نه هم زيات. دَ دے آب و هوا صحت بخښ کړے. دَ دے په مُد کښې مونږ دَ پاره برکت واچوے. او دَ دے بخار (تبه) منتقل کړے، جحفے ته ئے اوليږے.

**ف**: "مُد" او "صاع" دوه پيمانے دي، دَ دے تفصيل مخکښې څو ځايه تير شوے دے.

۱۱۱۰: حَدَّثَنِیْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا هِشَامٌ اَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِیِّ حَدَّثَنِیْ عُرْوَةُ اَنَّ عُبَيْدَ اللّٰهِ بْـنَ عَـدِیِّ اَخْبَـرَهُ قَـالَ دَخَـلْتُ عَلٰى عُثْمَانَ وَ قَالَ بِشْرُ بْنُ شُعَيْبٍ حَدَّثَنِیْ اَبِـیْ عَـنِ الـزُّهْرِیِّ حَدَّثَنِیْ عُرْوَةُ بْنُ الـزُّبَيْـرِ اَنَّ عُبَيْـدَ الـلّٰهِ بْنَ عَدِیِّ بْنِ خِيَـارٍ اَخْبَرَهُ قَالَ دَخَلْتُ عَلٰى عُثْمَانَ فَتَشَهَّدَ ثُمَّ قَالَ اَمَّا بَعْدُ فَاِنَّ اللّٰهَ بَعَثَ مُـحَـمَّـدًا صَـلَّـى اللّٰـهُ عَلَيْـهِ وَسَلَّمَ بِـالْـحَقِّ وَ كُنْتُ مِمَّنِ اسْتَجَابَ لِلّٰهِ وَ لِـرَسُـوْلِه وَ اٰمَـنَ بِـمَـا بُعِثَ بِهٖ مُحَمَّدٌ

۱۱۱۰: عبداللّٰه بن محمد. هشام. معمر. زهري. عروه. عبيداللّٰه بن عدي نه روايت کوي، هغه فرمائي، زهٔ حضرت عثمان له راغلم (دوئم سند) بشر بن شعيب، دَ هغهٔ پلار. زهري. عروه بن زبير. عبيداللّٰه بن عدي بن خيار نه روايت کوي، هغه فرمائي، زهٔ حضرت عثمان له راغلم، نو هغهٔ تشهد اووے، بيائے اوفرمائيل، اما بعد، اللّٰه تعالٰي، محمد صلي اللّٰه عليه وسلّم ريښتني مذهب سره راليږلے دے، او زهٔ دَ هغے کسانو نه يم، چه هغوي دَ اللّٰه تعالٰي او دَ هغهٔ دَ رسولؐ په دعوت لبيک اووے، او څهٔ چه محمد صلي اللّٰه عليه وسلّم راوړے وو، په هغے مو ايمان راوړلو. بيا ما دوه هجرتونه اوکړل او ما دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ هَاجَرْتُ هِجْرَتَيْنِ وَ نِلْتُ صِهْرَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ بَايَعْتُهُ فَوَاللّٰهِ مَا عَصَيْتُهُ وَلَا غَشَشْتُهُ حَتّٰى تَوَفَّاهُ اللّٰهُ تَابَعَهُ اِسْحٰقُ الْكَلْبِيُّ حَدَّثَنَا الزُّهْرِيُّ مِثْلَهُ.

وسلّم د زوم توب (داماد) شرف حاصل کړلو. او حضورﷺ نه م بیعت اوکه، په خدائے چه نه ما د حضورﷺ نافرماني کړے ده، نه م حضورﷺ سره دهوکه کړے ده، تردے چه حضور صلي الله عليه وسلّم د دُنيا نه سفر اوکه. اسحاق کلبي د زهري نه د دے متابع حديث بيان کړے دے.

۱۱۱۱: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنِيْ اِبْنُ وَهْبٍ حَدَّثَنَا مَالِكٌ وَ اَخْبَرَنِيْ يُوْنُسُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ اَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ اَخْبَرَهُ اَنَّ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ ابْنَ عَوْفٍ رَجَعَ اِلٰى اَهْلِهٖ وَهُوَ بِمِنًى فِيْ اٰخِرِ حَجَّةٍ حَجَّهَا عُمَرُ فَوَجَدَنِيْ فَقَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ فَقُلْتُ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ اِنَّ الْمَوْسِمَ يَجْمَعُ رَعَاعَ النَّاسِ وَ اِنِّيْ اَرٰى اَنْ تُمْهِلَ حَتّٰى تَقْدَمَ الْمَدِيْنَةَ فَاِنَّهَا دَارُ الْهِجْرَةِ وَالسُّنَّةِ وَ تَخْلُصَ لِاَهْلِ الْفِقْهِ وَ اَشْرَافِ النَّاسِ وَ ذَوِيْ رَاْيِهِمْ قَالَ عُمَرُ لَاَقُوْمَنَّ فِيْ اَوَّلِ مَقَامٍ اَقُوْمُهٗ بِالْمَدِيْنَةِ.

۱۱۱۱: يحيي بن سليمان. ابن وهب. مالک (دوئم سند) يونس ابن شهاب. عبيدالله بن عبدالله. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي، هغه فرمائي، عبدالرحمٰن بن عوف خپل کورته واپس تلو، او هغه، هغه وخت حضرت عمرؓ سره د هغهٔ آخري حج کښ مِنٰي کښ مقيم وو، نو زهٔ هغهٔ سره لار کښ يوځائے شوم. هغهٔ ماته اووے، حضرت عمرؓ د خلقو مخکښ د حج موسم کښ د وعظ اراده اوفرمائيله نو ما هغهٔ ته اووے، اے امير المؤمنين، حج کښ د هر قسم خلق جمع کيږي، خما رائے داده، چه دوي پريږدے (يعني وعظ ورته مهٔ کوئے) حتي چه تاسو مدينے ته لاړ شئے (نو هغلته وعظ اوکړئے) ځکه چه هغه دارالهجرت او دارالسنة دے، هلته به تاسو د پوهے، شريف او عقلمند حضرات بياموئے، چه ستاسو خبره باندے به په ښهٔ شان پوهه شي. نو حضرت عمرؓ دا رائے خوښه کړه، او وے فرمائيل. د ټولونه مخکښ چه زهٔ مدينے ته لاړ شم، نو هلته به وعظ اوکرم.

۱۱۱۲: حَدَّثَنَا مُوْسَى بْنُ اِسْمَاعِيْلَ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ بْنُ سَعْدٍ اَخْبَرَنَا ابْنُ شِهَابٍ عَنْ خَارِجَةَ بْنِ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ اَنَّ اُمَّ الْعَلَاءِ اِمْرَاَةً مِنْ

۱۱۱۲: موسيٰ بن اسماعيل. ابراهيم بن سعد. ابن شهاب. خارجه بن زيد بن ثابتؓ نه روايت کوي، اُم علاء چه د هغے ښځو نه ده، چه د رسول الله صلي الله عليه وسلّم نه ئے بيعت کړے وو، وے فرمائيل. انصارو

نِسَائِهِمْ بَايَعَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَخْبَرَتْهُ اَنَّ عُثْمَانَ بْنَ مَظْعُوْنٍ طَارَ لَهُمْ فِي السُّكْنٰى حِيْنَ اقْتَرَعَتِ الْاَنْصَارُ عَلٰى سُكْنَى الْمُهَاجِرِيْنَ قَالَتْ اُمُّ الْعَلَاءِ فَاشْتَكٰى عُثْمَانُ عِنْدَنَا فَمَرَّضْتُهُ حَتّٰى تُوُفِّيَ وَ جَعَلْنَاهُ فِيْ اَثْوَابِهِ فَدَخَلَ عَلَيْنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ رَحْمَةُ اللّٰهِ عَلَيْكَ اَبَا السَّائِبِ شَهَادَتِيْ عَلَيْكَ لَقَدْ اَكْرَمَكَ اللّٰهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَا يُدْرِيْكَ اَنَّ اللّٰهَ اَكْرَمَهُ قَالَتْ قُلْتُ لَا اَدْرِيْ بِاَبِيْ اَنْتَ وَ اُمِّيْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَمَنْ قَالَ اَمَّا هُوَ فَقَدْ جَاءَهُ وَاللّٰهِ الْيَقِيْنُ وَاللّٰهِ اِنِّيْ لَاَرْجُوْ لَهُ الْخَيْرَ وَمَا اَدْرِيْ وَاللّٰهِ وَ اَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ مَا يُفْعَلُ بِيْ قَالَتْ فَوَاللّٰهِ لَا اُزَكِّيْ اَحَدًا بَعْدَهُ قَالَتْ فَاَحْزَنَنِيْ ذٰلِكَ فَنِمْتُ فَاُرِيْتُ لِعُثْمَانَ بْنِ مَظْعُوْنٍ عَيْنًا تَجْرِيْ فَجِئْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاَخْبَرْتُهُ فَقَالَ ذٰلِكَ عَمَلُهُ.

چه دَ مهاجرینو دَ سکونت په سلسله کښې قرعه اندازي اوکړه نو حضرت عثمان بن مظعون دَ هغوي په حصه کښې راغلے. هغه وائي، بیا عثمان مونږ کره ناروغه شولو، نو بیماري کښې ئې ما خدمت اوکړ، حتي چه هغه مړ شولو، مونږ هغه خپلو کپړو کښې پریښودلو. بیا رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم مونږ پله راغلے، نو زهٔ عثمان ته مخاطب شوم، ورته م اووے، اے ابو سائب، په تا دے دَ اللّٰه رحمت وي. زهٔ شهادت کوم، یقینًا اللّٰه تهٔ عزتمند کړے ئې، نو رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم اوفرمائیل، تا ته څنګه معلومه شوه، چه اللّٰه تعالٰي هغه عزتمند کړے دے. ما عرض اوکړ، یا رسول اللّٰه، څما مور پلار دے په تاسو قربان وي. ماته نهٔ ده معلومه (خو که په دهٔ مهربانے نهٔ وي، نو په چا به وي. حضورؐ اوفرمائیل ګوره، عثمان، خو په خدائے چه وفات شولو، او زهٔ دَ هغه باره کښې ښهٔ اُمیدونه لرم، او په خدائے چه، حالانکه زهٔ دَ اللّٰه رسول یم، ما ته دا نهٔ ده معلومه، چه ماسره به دَ اللّٰه په نزد څهٔ معامله کیږي. هغه بي بي وائي، ما عرض اوکړ، دَ نن نه پس به زهٔ دَ چا تقدیس (پاکي) بیان نه کړم. هغه وائي، ماته په دے خبره ډیر خفګان اورسید، بیا زهٔ اُوده شوم، نو ماته دَ عثمان بن مظعون یو نهر په نظر راغے، چه بهیدلو. زهٔ راغلم، حضورؐ ته م دا حال اووے، نو حضورؐ اوفرمائیل، چه دا دَ هغه نیک عمل دے.

۳ ۱ ۱ ۱ : حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ سَعِيْدٍ حَدَّثَنَا اَبُوْ اُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ يَوْمُ بُعَاثٍ يَوْمًا قَدَّمَهُ اللّٰهُ

۳ ۱ ۱ ۱ : عبیداللّٰه بن سعید. ابو اسامه. هشام. دَ هغهٔ پلار. بي بي عائشےؓ نه روایت کوي، هغه فرمائي، دَ بعاث ورځ، اللّٰه تعالٰي دَ خپل رسول دَ فائدے دَ پاره دَ مخکښې نه مقرر کړے وه (یعني دَ دے خلقو دَ اسلام

عَزَّ وَ جَلَّ لِرَسُوْلِهٖ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ وَقَدِ افْتَرَقَ مَلَؤُهُمْ وَ قُتِلَتْ سَرَاتُهُمْ فِيْ دُخُوْلِهِمْ فِي الْإِسْلَامِ.

راوړلو ذریعه جوړه شوه) رسول الله صلي الله علیه وسلّم چه مدینې ته تشریف راوړلو' نو ذ هغوي جماعت کښې بې اتفاقي پیدا شوې وه' او ذ هغوي سرداران وژلې شوې وو.

۱۱۱۴: حَدَّثَنِيْ مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنّٰى حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ هِشَامٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ اَبَا بَكْرٍ دَخَلَ عَلَيْهَا وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَهَا يَوْمَ فِطْرٍ اَوْ اَضْحٰى وَ عِنْدَهَا قَيْنَتَانِ تُغَنِّيَانِ بِمَا تَقَاذَفَتِ الْاَنْصَارُ يَوْمَ بُعَاثٍ فَقَالَ اَبُوْ بَكْرٍ مِزْمَارُ الشَّيْطَانِ مَرَّتَيْنِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعْهُمَا يَا اَبَا بَكْرٍ اِنَّ لِكُلِّ قَوْمٍ عِيْدًا وَ اِنَّ عِيْدَنَا هٰذَا الْيَوْمُ.

۱۱۱۴: محمد بن مثني. غندر. شعبه. هشام. ذ هغهٔ پلار' بي بي عائشې نه روایت کوي' ذ وړوکي یا لوئې آختر په ورځ بي بي عائشې سره رسول الله صلي الله علیه وسلّم تشریف فرما وو' چه حضرت ابوبکر هم دننه راغې' دغه وخت بي بي عائشې سره دوه جینکو هغه رجزیه اشعار (سُر کښې) وئیلې' کوم چه انصار جنګ بعاث کښې وئیلې' نو حضرت ابوبکر دوه خله اووې "شیطاني راګ (او حضور صلي الله علیه وسلّم ته نږدې) نو نبي صلي الله علیه وسلّم ورته اوفرمائیل دوي پریږده. اې ابوبکره' کوره' هر قوم کښې ذ خوشحالي ورځ وي' او نن خمونږ ذ خوشحالئ ورځ ده (یعني دوي مهٔ منع کوه' پریږده چه خوشحالي اوکړي).

۱۱۱۵: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ وَ حَدَّثَنَا اِسْحٰقُ بْنُ مَنْصُوْرٍ اَخْبَرَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ قَالَ سَمِعْتُ اَبِيْ يُحَدِّثُ حَدَّثَنَا اَبُو التَّيَّاحِ يَزِيْدُ بْنُ حُمَيْدٍ الضُّبَعِيُّ قَالَ حَدَّثَنِيْ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ لَمَّا قَدِمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ نَزَلَ فِيْ عُلْوِ الْمَدِيْنَةِ فِيْ حَيٍّ يُقَالُ لَهُمْ بَنُوْ عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ قَالَ فَاَقَامَ فِيْهِمْ اَرْبَعَ عَشْرَةَ

۱۱۱۵: مسدد. عبدالوارث (دویم سند) اسحاق بن منصور. عبدالصمد. ذ هغهٔ پلار. ابو التیاح. یزید بن حمید ضبعي. حضرت انس بن مالک نه روایت کوي' کوم وخت چه رسول الله صلي الله علیه وسلّم مدینې ته تشریف راوړلو' نو اعالي مدینه کښې قبیلهٔ بنو عمرو بن عوف کښې ئې قیام اوفرمائیلو. حضور هلته څوارلس ورځې پاتې وو' بیا حضور ذ بنو النجار جماعت راوغښتلو' نو هغوي وسله اچولي راغلل' حضرت انس وائي' اوس هم خما نظر کښې هغه نقشه ګرځي' چه رسول الله

لَيْلَةً ثُمَّ اَرْسَلَ اِلٰى مَلَاءِ بَنِيْ النَّجَارِ قَالَ فَجَاءُ وْا مُتَقَلِّدِيْ سُيُوْفِهِمْ قَالَ وَ كَاَنِّيْ اَنْظُرُ اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى رَاحِلَتِهٖ وَ اَبُوْ بَكْرٍ رَدِفُهٗ وَ مَلَاءُ بَنِي النَّجَارِ حَوْلَهٗ حَتّٰى اَلْقٰى بِفِنَاءِ اَبِيْ اَيُّوْبَ قَالَ فَكَانَ يُصَلِّيْ حَيْثُ اَدْرَكَتْهُ الصَّلٰوةُ وَ يُصَلِّيْ فِيْ مَرَابِضِ الْغَنَمِ ثُمَّ قَالَ اِنَّهٗ اُمِرَ بِبِنَاءِ الْمَسْجِدِ فَاَرْسَلَ اِلٰى مَلَاءِ بَنِي النَّجَارِ فَجَاؤُا فَقَالَ يَا بَنِي النَّجَّارِ ثَامِنُوْنِيْ حَائِطَكُمْ هٰذَا قَالُوْا لَا وَاللّٰهِ لَا نَطْلُبُ ثَمَنَهٗ اِلَّا اِلَى اللّٰهِ قَالَ فَكَانَ فِيْهِ مَا اَقُوْلُ لَكُمْ كَانَتْ فِيْهِ قُبُوْرُ الْمُشْرِكِيْنَ وَ كَانَتْ فِيْهِ خَرِبٌ وَ كَانَ فِيْهِ نَخْلٌ فَاَمَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقُبُوْرِ الْمُشْرِكِيْنَ فَنُبِشَتْ وَ بِالْخَرِبِ فَسُوِّيَتْ وَ بِالنَّخْلِ فَقُطِعَ قَالَ فَصَفُّوا النَّخْلَ قِبْلَةَ الْمَسْجِدِ قَالَ وَ جَعَلُوْا عِضَادَتَيْهِ حِجَارَةً قَالَ جَعَلُوْا يَنْقُلُوْنَ ذَاكَ الصَّخْرَ وَهُمْ يَرْتَجِزُوْنَ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَهُمْ يَقُوْلُوْنَ اللّٰهُمَّ اِنَّهٗ لَا خَيْرَ اِلَّا خَيْرَ الْاٰخِرَةِ فَانْصُرِ الْاَنْصَارَ وَالْمُهَاجِرَةَ.

صلي اللّٰه عليه وسلّم مخکښې وو. حضورؐ پسې (په خپله سورلي) حضرت ابوبکرؓ وو، او دَ بنو نجار جماعت ترې چاپیره وو، تردې چه حضورؐ خپل اسباب دَ ابو ایوبؓ په احاطه کښې کوز کړلو. حضرت انسؓ وائي، کوم ځائې چه به دَ مونځ وخت راغې، نو حضورؐ به هلته مونځ کولو، او بعضې وختونو کښې به ئې دَ چیلو په ګاړه کښې (دَ نجاست نه یو طرف ته) مونځ کولو. بیا حضورؐ دَ جمات دَ تعمیر حکم اوکړلو، او بنو نجار، ئې راوغبنتل، کوم وخت چه هغوي راغلل، نو حضورؐ اوفرمائیل، اې بنو نجار، تاسو دا خپل باغ په ما خرڅ کړئې، هغوي اووې نه، قسم په خدائې، مونږ به دَ دې قیمت دَ اللّٰه نه (دَ ثواب په شکل کښې) آخلو. حضرت انسؓ وائي، چه دلته دا څیزونه وو، چه زهٔ ئې تاسو ته بنائم، یعني دَ مشرکانو قبرونه، هلته وران ویجاړ ځائې هم وو، البته څهٔ اُونې دَ خُرما هم وې. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خو دَ مشرکینو دَ قبرونو دَ ورانولو حکم اوکړ، او وران ویجاړ ځائې ئې برابر کړلو. او اُونې ئې اووهلې. بیا صحابهؓ دَ جمات قبلې طرف ته دغه اُونې یو قطار کښې نصب کړلې. او دَ هغې مینځ کښې ئې کاڼړي کیښودل. حضرت انسؓ وائي، صحابهؓ به کاڼړي اوچتول، او رجز به ئې وئیلې، او رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم به هم هغوي سره وئیلې، اې خدایه، عیش خو دَ آخرت دې. دَ انصارو او مهاجرینو مدد اوکړې.

## بَاب ۴۶۱: اِقَامَةِ الْمُهَاجِرِ

## باب ۴۶۱: دَ مهاجر مکه کښې دَ حج ادا کولو

بِمَكَّةَ بَعْدَ قَضَاءِ نُسُكِهِ.

۱۱۱۶: حَدَّثَنِيْ إِبْرٰهِيْمُ بْنُ حَمْزَةَ حَدَّثَنَا حَاتِمٌ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ حُمَيْدٍ الزُّهْرِيِّ قَالَ سَمِعْتُ عُمَرَ بْنَ عَبْدِ الْعَزِيْزِ يَسْأَلُ السَّائِبَ بْنَ أُخْتِ النَّمِرِ مَا سَمِعْتَ فِيْ سُكْنٰى مَكَّةَ قَالَ سَمِعْتُ الْعَلَاءَ بْنَ الْحَضْرَمِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلٰثٌ لِلْمُهَاجِرِ بَعْدَ الصَّدَرِ.

نه پس ذَ ايساريدو بيان.

۱۱۱۶: ابراهيم بن حمزه. حاتم. عبدالرحمٰن بن حميد زهري نه روايت كوي، عمر بن عبدالعزيز ذَ سائب بن اخت نمر نه دريافت اوكڅ، تا مهاجر ذَ پاره ذَ حج نه پس مكه كښ ذَ ايساريدو باره كښ څهٔ آوريدلے دي، هغهٔ اووے. ما ذَ علاء بن حضرمي نه واوريدل، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم اوفرمائيل، مهاجر ته ذَ طواف صدر نه پس درے ورځے (مكه كښ ذَ ايساريدو) اجازت دے.

## بَابٌ ۴۶۲: (التَّارِيْخِ)

## باب ۴۶۲: (ذَ دے باب سُرخي نشته).

۱۱۱۷: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيْزِ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ مَا عَدُّوْا مِنْ مَبْعَثِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا مِنْ وَفَاتِهِ مَا عَدُّوْا إِلَّا مِنْ مَقْدَمِهِ الْمَدِيْنَةَ.

۱۱۱۷: عبداللّٰه بن مسلمه. عبدالعزيز. ذَ هغهٔ پلار. سهل بن سعد نه روايت كوي، هغه فرمائي، چه خلقو (ذَ سنه تاريخ) شمار، نهٔ ذَ رسالت مىٓب ذَ بعثت نه كړے دے، نهٔ ذَ وفات نه، بلكه ذَ حضورؐ مدينے ته ذَ تشريف آوري نه ئے كړے دے.

۱۱۱۸: حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَزِيْدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ فُرِضَتِ الصَّلٰوةُ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ هَاجَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَفُرِضَتْ أَرْبَعًا وَتُرِكَتْ صَلٰوةُ السَّفَرِ عَلَى الْأُوْلٰى تَابَعَهُ عَبْدُ الرَّزَّاقِ عَنْ مَعْمَرٍ.

۱۱۱۸: مسدد. يزيد بن زريع. معمر. زهري. عروه. بي بي عائشےؓ نه روايت كوي، هغه فرمائي مونځ دوه دوه ركعاته فرض شوے وو. بيا حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم هجرت اوكړلو، نو څلور، څلور، ركعاته فرض شولو. او ذَ سفر مونځ په ورمبني حالت باقي پاتے شو. عبدالرزاق ذَ معمر نه ذَ دے متابع حديث روايت كړے دے.

## بَابٌ ۴۶۳: قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَللّٰهُمَّ أَمْضِ

## باب ۴۶۳: ذَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم فرمائيل، چه اے خما خدايه، خما ذَ صحابهٔ ؤ هجرت

لِاَصْحَابِيْ هِجْرَتَهُمْ وَ مَرْثِيَّتَهُ لِمَنْ مَاتَ بِمَكَّةَ.

قبول كړې. او كوم خلق چه بغير هجرت نه مكه كښې وفات شوي دي، هغوي دَ پاره دَ حضورؐ د خفگان بيان.

۱۱۱۹: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ قَزْعَةَ حَدَّثَنَا اِبْرٰهِيْمُ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ عَادَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ حَجَّةِ الْوِدَاعِ مِنْ مَّرَضٍ اَشْفَيْتُ مِنْهُ عَلَى الْمَوْتِ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ بَلَغَ بِيْ مِنَ الْوَجَعِ مَا تَرٰى وَ اَنَا ذُوْ مَالٍ وَّلَا يَرِثُنِيْ اِلَّا ابْنَةٌ لِّيْ وَاحِدَةٌ اَفَاَ تَصَدَّقُ بِثُلُثَيْ مَالِيْ قَالَ لَا قَالَ فَاَتَصَدَّقُ بِشَطْرِهٖ قَالَ الثُّلُثُ يَا سَعْدُ وَالثُّلُثُ كَثِيْرٌ اِنَّكَ اَنْ تَذَرَ ذُرِّيَّتَكَ اَغْنِيَاءَ خَيْرٌ مِّنْ اَنْ تَذَرَهُمْ عَالَةً يَتَكَفَّفُوْنَ النَّاسَ قَالَ اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ عَنْ اِبْرٰهِيْمَ اَنْ تَذَرَ ذُرِّيَّتَكَ وَلَسْتَ بِنَافِقٍ نَفَقَةً تَبْتَغِيْ بِهَا وَجْهَ اللّٰهِ اِلَّا اٰجَرَكَ اللّٰهُ بِهَا حَتَّى اللُّقْمَةَ الَّتِيْ تَجْعَلُهَا فِيْ فِيِّ امْرَاَتِكَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اُخَلَّفُ بَعْدَ اَصْحَابِيْ قَالَ اِنَّكَ لَنْ تُخَلَّفَ فَتَعْمَلُ عَمَلًا تَبْتَغِيْ بِهٖ وَجْهَ اللّٰهِ اِلَّا ازْدَدْتَّ بِهٖ دَرَجَةً وَ رِفْعَةً وَ لَعَلَّكَ تُخَلَّفُ حَتّٰى يَنْتَفِعَ بِكَ اَقْوَامٌ وَّ يُضَرَّبِكَ

۱۱۱۹: يحيٰي بن قزعه. ابراهيم. زهري. عامر بن سعد بن مالک دَ خپل پلار (حضرت سعد) نه روايت كوي، رسول الله صلي الله عليه وسلّم دَ حجة الوداع په كال په هغه مرض كښې خما دَ بيماري پښتنه اوكړه، چه هغې كښې خما دَ بچ كيدو څۀ اُميد نه وو. ما عرض اوكړ، يا رسول الله، خما دَ تكليف شدت حال تاسوؐ ته معلوم دے. زۀ مالدار سړے يم، سِوا، دَ يوې جينۍ نه خما څوک وارث نشته، نو آيا زۀ خپل ۲/۳ (دوه تهائي) مال خيرات كړم. حضورؐ اوفرمائيل، نه، هغه اووې، نيم مال خيرات كړم. حضور ورته اوفرمائيل، نه، ورته ئے اوفرمائيل، اے سعد ۱/۳ (دريمه حصه) مال خيرات كړه، او دريمه حصه (تهائي) مال هم ډير دے. كه تۀ خپل آولاد مالدار پريږدې، نو دا دَ دے نه بهتره ده، چه هغوي محتاج پريږدے، چه هغوي بيا گرځي او خلقو نه خير غواړي، احمد بن يونس دَ ابراهيم نه دا الفاظ هم روايت كړي دي، چه هر څه چه ته دَ خدائے دَ پاره خرچ كوے، نو الله تعالي به دَ هغے تاله ثواب دركوي تردې چه هغه نوړے (لقمه) چه تۀ دَ خپلې بي بي په خوله كښې اچوے (په دے به هم ثواب دركولے شي) ما عرض اوكړ، يا رسول الله، آيا زۀ به دَ خپلو ملگرو نه پس مكه كښې يوازے پريښودے شم. حضورؐ ورته اوفرمائيل، تۀ به نۀ شے پريښودے او كه پريښودے هم شے، نو مقصود خو به (هر حال كښې) حاصل شي، چه تۀ كوم عمل محض دَ الله دَ پاره كوے، نو دَ هغے په وجه به ستا درجه او ستا

أخَــرُوْنَ اَللّٰهُمَّ اَمْضِ لِاَصْحَابِيْ هِجْرَتَهُمْ وَلَا تَرُدَّهُمْ عَلٰى اَعْقَابِهِمْ لٰكِنَّ الْبَائِسَ سَعْدُ بْنُ خَوْلَةَ يَرْثِيْ لَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ تُوُفِّيَ بِمَكَّةَ وَ قَالَ اَحْمَدُ بْنُ يُوْنُسَ وَ مُوْسٰى عَنْ اِبْرَاهِيْمَ اَنْ تَذَرَ وَرَثَتَكَ.

عزت زياتيږي، حتي چه څهٔ خلقوته به ستا نه نفع او څه خلقوته به ستا نه ضرر اورسيږي. اے اللّٰه! څما دَ صحابه وُ هجرت قبول کړے، او هغوي په آړولو پښو واپس مهٔ کړے. ليکن قابل رحم خو سعد بن خوله دے. رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم به مکه کښې دَ هغهٔ په وفات افسوس کولو. احمد بن يونس او موسيٰ دَ ابراهيم نه: ان تذر ورثتک: نقل کړے دي.

باب ۴۴۴: كَيْفَ اٰخَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ اَصْحَابِهٖ وَ قَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَوْفٍ اٰخَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنِيْ وَ بَيْنَ سَعْدِ بْنِ الرَّبِيْعِ لَمَّا قَدِمْنَا الْمَدِيْنَةَ وَ قَالَ اَبُوْ جُحَيْفَةَ اٰخَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ سَلْمَانَ وَ اَبِي الدَّرْدَآءِ.

باب ۴۴۴: رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم خپلو اصحابو کښې اخوّت څنګه قائم کړلو. عبدالرحمٰن بن عوف وائي، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم څما او سعد بن ربيع په مينځ کښې ورورولي قائمه کړه، کوم وخت چه مونږ مدينے ته راغلو. او ابو جحيفه وائي، چه نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ سلمان او ابو درداء مينځ کښې ورور ولي قائمه کړه.

۱۱۲۰: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ حُمَيْدٍ عَنْ اَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَدِمَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَوْفٍ فَاٰخَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَهٗ وَ بَيْنَ سَعْدِ بْنِ الرَّبِيْعِ الْاَنْصَارِيِّ فَعَرَضَ عَلَيْهِ اَنْ يُنَاصِفَهٗ اَهْلَهٗ وَمَالَهٗ فَقَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بَارَكَ اللّٰهُ لَكَ فِيْ اَهْلِكَ وَمَالِكَ دُلَّنِيْ عَلَى السُّوْقِ فَرَبِحَ شَيْئًا مِنْ اَقِطٍ وَ سَمْنٍ فَرَاٰهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ اَيَّامٍ وَ عَلَيْهِ

۱۱۲۰: محمد بن يوسف. سفيان. حميد. حضرت انسؓ نه روايت کوي، هغه فرمائي. عبدالرحمٰن بن عوف مدينے ته راغے، رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم دَ هغهٔ او سعد بن ربيع مينځ کښې اخوت قائم کړلو. سعد هغوي ته خواست اوکه، څما بيبيانے او څما مال نيم په نيمه اوويشهٔ (تقسيم کړهٔ) نو عبدالرحمٰن ورته اووے، اللّٰه تعاليٰ دے ستا کور واله او مال کښې برکت واچوي، ماته بازار اوښايه، هلته عبدالرحمٰن تجارت اوکه، او نفع کښې ئے څهٔ پنير اوغوړي حاصل کړل. څو ورځے پس رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم په عبدالرحمٰن دَ زردي څهٔ

وَضُرٌ مِّنْ صُفْرَةٍ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَهْيَمْ يَا عَبْدَ الرَّحْمٰنِ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ تَزَوَّجْتُ اِمْرَاَةً مِّنَ الْاَنْصَارِ قَالَ فَمَا سُقْتَ فِيْهَا فَقَالَ وَزْنَ نَوَاةٍ مِّنْ ذَهَبٍ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوْلِمْ وَلَوْ بِشَاةٍ.

اثر اوليد، نو حضورؐ ورته اوفرمائيل اے عبدالرحمانه دا څۀ دي، هغۀ عرض اوکۀ يا رسول اللّٰه، ما يوے انصاري ښځے سره نکاح کړے ده. حضورؐ ورته اوفرمائيل، تا څومره مهر ورکړے دے، هغۀ جواب ورکړلو. دَ يو کټهکي برابر سرۀ زر، نو نبي صلي اللّٰه عليه وسلّم ورته اوفرمائيل، وليمه اوکړه، اګر که يوه چيلئے وي.

## باب ۴۶۵:

## باب ۴۶۵: (دا باب بے عنوانه يعني بے سرخي دے).

**۱۱۲۱:** حَدَّثَنِيْ حَامِدُ بْنُ عُمَرَ عَنْ بِشْرِ بْنِ الْمُفَضَّلِ حَدَّثَنَا حُمَيْدٌ حَدَّثَنَا اَنَسٌ اَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ سَلَامٍ بَلَغَهٗ مَقْدَمُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ فَاَتَاهُ يَسْاَلُهٗ عَنْ اَشْيَاءَ فَقَالَ اِنِّيْ سَائِلُكَ عَنْ ثَلٰثٍ لَا يَعْلَمُهُنَّ اِلَّا نَبِيٌّ مَا اَوَّلُ اَشْرَاطِ السَّاعَةِ وَمَا اَوَّلُ طَعَامٍ يَاْكُلُهٗ اَهْلُ الْجَنَّةِ وَمَا بَالُ الْوَلَدِ يَنْزِعُ اِلٰى اَبِيْهِ اَوْ اِلٰى اُمِّهٖ قَالَ اَخْبَرَنِيْ جِبْرِيْلُ اٰنِفًا قَالَ ابْنُ سَلَامٍ ذَاكَ عَدُوُّ الْيَهُوْدِ مِنَ الْمَلَائِكَةِ قَالَ اَمَّا اَشْرَاطُ السَّاعَةِ فَنَارٌ تَحْشُرُهُمْ مِنَ الْمَشْرِقِ اِلَى الْمَغْرِبِ وَ اَمَّا اَوَّلُ طَعَامٍ يَاْكُلُهٗ اَهْلُ الْجَنَّةِ فَزِيَادَةُ كَبِدِ الْحُوْتِ وَ اَمَّا الْوَلَدُ فَاِذَا سَبَقَ مَاءُ الرَّجُلِ مَآءَ الْمَرْاَةِ نَزَعَ الْوَلَدَ وَ اِذَا

**۱۱۲۱:** حامد بن عمر. بشر بن مفضل. حميد. حضرت انسؓ نه روايت کوي، هغه فرمائي، دَ رسول اللّٰه صلي اللّٰه عليه وسلّم مدينے ته دَ تشريف اوري خبر چه عبداللّٰه بن سلام ته اورسيدلو، نو هغه راغے، او دَ حضور صلي اللّٰه عليه وسلّم نه ئے څو تپوسونه اوکړل. اووے وئيل. زۀ تاسوؐ نه درے داسے تپوسونه کوم، چه هغه بغير دَ نبي نه بل چاته نۀ دي معلوم. دَ ټولونه مخکښ دا چه دَ قيامت علامت څۀ دے، او دَ ټولونه وړمبنے خوراک چه هغه به اهل جنت خوري، څۀ څيز دے. او څۀ وجه ده، چه بچے کله د پلار مشابه وي او کله دَ مور. حضورؐ ورته اوفرمائيل، جبرئيلؑ اوس ماته دَ دے جواب ښودلے دے. ابن سلام اووے چه هغه خو دَ يهوديانو خصوصي دشمن دے. حضورؐ ورته اوفرمائيل، دَ قيامت دَ ټولونه وړمبنے علامت به يو اُور وي، چه خلق به دَ مشرق نه مغرب طرف ته بوځي. او دَ اهل جنت دَ ټولونه وړمبنے خوراک به دَ کب دَ اينے ټکره وي. او پاتے شوه دَ بچي معامله، کله چه دَ سړي نطفه دَ ښځے په نطفه غالبه راشي، نو بچے دَ پلار په شکل وي، او که دَ ښځے نطفه دَ سړي

سَبَقَ مَآءُ الْمَرْاَةِ مَآءَ الرَّجُلِ نَزَعَتِ الْوَلَدَ قَالَ اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰـهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ اَنَّكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ الْيَهُوْدَ قَوْمٌ بُهُتٌ فَاسْئَلْهُمْ عَنِّيْ قَبْلَ اَنْ يَّعْلَمُوْا بِاِسْلَامِيْ فَجَاءَتِ الْيَهُوْدُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَيُّ رَجُلٍ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَلَامٍ فِيْكُمْ قَالُوْا خَيْرُنَا وَابْنُ خَيْرِنَا وَ اَفْضَلُنَا وَابْنُ اَفْضَلِنَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرَاَيْتُمْ اِنْ اَسْلَمَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَلَامٍ قَالُوْا اَعَاذَهُ اللّٰهُ مِنْ ذٰلِكَ فَاَعَادَ عَلَيْهِمْ فَقَالُوْا مِثْلَ ذٰلِكَ فَخَرَجَ اِلَيْهِمْ عَبْدُ اللّٰهِ فَقَالَ اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰـهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ اَنَّ مُحَمَّدً رَّسُوْلُ اللّٰهِ قَالُوْا شَرُّنَا وَابْنُ شَرِّنَا وَ تَنَقَّصُوْهُ قَالَ هٰذَا كُنْتُ اَخَافُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ.

په نطفه غالب راشي، نو بچے د ښځے مشابه وي. نو هغه اووے: اشهد ان لا اله الا الله و انک رسول الله: بیائے اووے، یا رسول اللّٰہ! یهودیان ډیر دروغ تړونکے قوم دے. خما د اسلام راوړلو هغوي ته د علم کیدونه مخکښ تاسو د هغوي نه خما باره کښ تپوس اوکړئے، نو رسول اللّٰه صلي الله علیه وسلم یهویان راوغښتل. کوم وخت چه هغوي راغلل، حضور ترے تپوس اوکړو، عبدالله بن سلام تاسو کښ څنګه سړے دے. هغوي ورته اووے مونږ کښ ده تولونه بهتر او د بهترین سړي خوئے دے. او مونږ کښ ده تولونه افضل او ده افضل سړي خوئے دے. حضور صلي الله علیه وسلم ورته اوفرمائیل، اووائے، که عبدالله بن سلام مسلمان شي، نو آیا تاسو به هم اسلام راوړئے هغوي اووے الله دے هغه ده دے نه محفوظ اوساتي. حضور دوباره دغسے اوفرمائیل، نو هغوي هم هغه جواب ورکړو. بیا عبدالله بن سلام د هغوي مخکښ راووتلو، اووے ونیل: اشهد ان لا اله الّا الله و ان محمدا رسول الله، نو یهودیانو اووے. دے مونږ کښ د تولونه بدتر او د بدتر سړي خوئے دے، او د هغه بدئ بیانول ئے شروع کړل، نو هغه اووے، یا رسول الله، ماته د دوي نه د دے خبرے اندیښنه وه.

۱۱۲۲: حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ عَمْرٍو سَمِعَ اَبَا الْمِنْهَالِ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ مُطْعِمٍ قَالَ بَاعَ شَرِيْكٌ لِّيْ دَرَاهِمَ فِي السُّوْقِ نَسِيْئَةً فَقُلْتُ سُبْحَانَ اللّٰهِ اَيَصْلُحُ هٰذَا فَقَالَ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَاللّٰهِ لَقَدْ

۱۱۲۲: علي بن عبدالله. سفیان. عمرو. ابوالمنهال. عبدالرحمن بن مطعم نه روایت کوي، هغه فرمائي، خما یو شریک کار څو اشرفئے بازار کښ قرض خرڅے کړے. ما اووے، سبحان الله، آیا دا جائز دي، هغه جواب راکړه، سبحان الله، په الله م دے قسم وي، ما هغه په ډک بازار کښ خرڅے کړے، نو هیچا پرے هم بد

بِعْتُهَا فِي السُّوقِ فَمَا عَابَهُ اَحَدٌ فَسَاَلْتُ الْبَرَاءَ بْنَ عَازِبٍ فَقَالَ قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ نَحْنُ نَتَبَايَعُ هٰذَا الْبَيْعَ فَقَالَ مَا كَانَ يَدًا بِيَدٍ فَلَيْسَ بِهٖ بَأْسٌ وَمَا كَانَ نَسِيْئَةً فَلَا يَصْلَحُ وَ الْقَ زَيْدَ بْنَ اَرْقَمَ فَسْئَلْهُ فَاِنَّهُ كَانَ اَعْظَمَنَا تِجَارَةً فَسَاَلْتُ زَيْدَ بْنَ اَرْقَمَ فَقَالَ مِثْلَهُ وَ قَالَ سُفْيٰنُ مَرَّةً فَقَالَ قَدِمَ عَلَيْنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ نَحْنُ نَتَبَايَعُ وَ قَالَ نَسِيْئَةً اِلَى الْمَوْسِمِ اَوِ الْحَجِّ.

اونه كړل' نو ما د حضرت براء بن عازب نه تپوس اوكړ' هغهٔ جواب راكړ' چه رسول الله صلي الله عليه وسلّم په هجرت مدينے ته راغلے او مونږ به دَ دے قسم خريد او فروخت كولو' نو هغهٔ اوفرمائيل (سرو سپينو كښې) كه معامله لاس په لاس وي' نو دے كښې هيڅ حرج نشته' اوكه په قرض وي' نو جائز نهٔ دي' او ته زيد بن ارقم له لاړ شه' دَ هغهٔ نه هم دے باره كښې تپوس پښتنه اوكړه' ځكه چه هغه مونږ كښې لوئے سوداګر دے' ما دَ حضرت زيد بن ارقم نه تپوس اوكړ' نو هغهٔ هم دَ براء بن عازب په شان جواب راكړه' اوكله به سفيان دا الفاظ روايت كول چه: قدم علينا النبي صلى الله عليه وسلّم المدينة و نحن نتبائع و قال نسيئة الى الموسم او الحجّ.

## بَابٌ ۴۶۶: اِتْيَانِ الْيَهُوْدِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ قَدِمَ الْمَدِيْنَةَ.

هَادُوْا صَارُوْا يَهُوْدًا وَ اَمَّا قَوْلُهُ هُدْنَا تُبْنَا هَائِدٌ تَائِبٌ.

## باب ۴۶۶: رسول الله صلي الله عليه وسلّم چه مدينے ته تشريف راوړلو' نو حضورؐ ته دَ يهوديانو دَ راتلو بيان.

دَ هادوا: معني دي' يهوديان شو' ليكن قرآن كښې چه (هُدنا) دے. دَ دے معني: مونږ توبه كړه. هائد: توبه كونكي ته وائي.

۱۱۲۳: حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ اِبْرَاهِيْمَ حَدَّثَنَا قُرَّةُ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَوْ اٰمَنَ بِيْ عَشَرَةٌ مِنَ الْيَهُوْدِ لَاٰمَنَ بِيَ الْيَهُوْدُ.

۱۱۲۳: مسلم بن ابراهيم. قره. محمد. حضرت ابوهريرهؓ نه روايت كوي' هغه فرمائي حضورؐ ارشاد اوفرمائيلو كه لس يهودي (عالمانو) په ما ايمان راوړے وے' نو ټول يهوديان به مسلمان شوے وو.

۱۱۲۴: حَدَّثَنِيْ اَحْمَدُ اَوْ مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدِ اللّٰهِ الْغُدَانِيُّ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ اُسَامَةَ اَخْبَرَنَا اَبُوْ عُمَيْسٍ عَنْ قَيْسِ بْنِ مُسْلِمٍ عَنْ طَارِقِ بْنِ

۱۱۲۴: احمد يا محمد بن عبيدالله غداني. حماد بن اسامه. ابو عميس. قيس بن مسلم. طارق بن شهاب. حضرت ابو موسي اشعريؓ نه روايت كوي' هغه فرمائي' څهٔ وخت چه حضورؐ مدينے

شِهَابٍ عَنْ اَبِيْ مُوْسٰى رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ وَ اِذَا اُنَاسٌ مِنَ الْيَهُوْدِ يُعَظِّمُوْنَ عَاشُوْرَاءَ وَ يَصُوْمُوْنَهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْنُ اَحَقُّ بِصَوْمِهٖ فَاَمَرَ بِصَوْمِهٖ.

ته تشریف راوړلو، یهودیانو ئې اولیدل، چه د عاشورې د ورځې عزت ئې کولو، او په هغه ورځ هغوي روژه نیولې وه، نو رسالت مېب صلي الله علیه وسلّم ارشاد اوفرمائیلو، مونږ په دې ورځ د یهودیانو نه زیات حقدار یو، چه روژه اونیسو، بیا حضورﷺ د هغې ورځ د روژې حکم ورکړلو.

۱۱۲۵ : حَدَّثَنَا زِيَادُ بْنُ اَيُّوْبَ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ حَدَّثَنَا اَبُوْ بِشْرٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ لَمَّا قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ وَجَدَ الْيَهُوْدَ يَصُوْمُوْنَ عَاشُوْرَاءَ فَسُئِلُوْا عَنْ ذٰلِكَ فَقَالُوْا هٰذَا الْيَوْمُ الَّذِيْ اَظْفَرَ اللّٰهُ فِيْهِ مُوْسٰى وَ بَنِيْ اِسْرَآئِيْلَ عَلٰى فِرْعَوْنَ وَ نَحْنُ نَصُوْمُهُ تَعْظِيْمًا لَهٗ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْنُ اَوْلٰى بِمُوْسٰى مِنْكُمْ ثُمَّ اَمَرَ بِصَوْمِهٖ.

۱۱۲۵ : زیاد بن ایوب. هشیم. ابو بشر. سعید بن جبیر. حضرت ابن عباسؓ نه روایت کوي، هغه فرمائي، کوم وخت چه رسول اللّٰه صلي اللّٰه علیه وسلّم مدینې ته تشریف راوړلو، نو یهودیان ئې اولیدل، چه د عاشورې په ورځ به ئې روژه نیوله، د یهودیانو نه ئې د دې د وجې تپوس اوکۀ، هغوي جواب ورکۀ اللّٰه تعالي په دې ورځ موسٰي علیه السلام او بني اسرائیل په فرعون غالب کړې وو. ځکه مونږ د دې په تعظیم کښې په دې ورځ روژه نیسو، نو رسول د خدائې او فرمائیل، مونږ ستاسو په نسبت موسٰي علیه السلام ته زیات نزدې یو. بیا حضورﷺ په هغه ورځ د روژې نیولو حکم اوکړلو.

۱۱۲۶ : حَدَّثَنَا عَبْدَانُ حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ عَنْ يُوْنُسَ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عُبَيْدُ اللّٰهِ بْنُ عُتْبَةَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَسْدِلُ شَعْرَهٗ وَ كَانَ الْمُشْرِكُوْنَ يَفْرُقُوْنَ رُءُوْسَهُمْ وَ كَانَ اَهْلُ الْكِتٰبِ يَسْدِلُوْنَ رُءُوْسَهُمْ وَ كَانَ

۱۱۲۶ : عبدان. عبداللّٰه. یونس. زهري. عبیداللّٰه بن عبداللّٰه بن عتبه. حضرت عبداللّٰه بن عباسؓ نه روایت کوي، هغه فرمائي رسالت مآب صلي اللّٰه علیه وسلّم به ویښتو کښې کرښه نۀ اوښکله (مانگ نہیں نکالتے تھے) او مشرکینو به سر کښې کرښه اوښکله. او اهل کتابو به هم کرښه نۀ اوښکله، او رسالت مېب صلي اللّٰه علیه وسلّم ته چه به کومه معامله کښې د

النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِمْ يُحِبُّ مُوَافَقَةَ اَهْلِ الْكِتَابِ فِيْمَا لَمْ يُؤْمَرْ فِيْهِ بِشَيْءٍ ثُمَّ فَرَّقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاْسَهُ.

اللّٰه تبارک و تعالىٰ دَ طرف څۀ حکم نۀ وو، نو هغې باره کښې به ئې دَ اهل کتابو موافقت خوښولو. بيا به حضورﷺ هم کرښه اوښکله.

۱۱۲۷: حَدَّثَنِي زِيَادُ بْنُ اَيُّوبَ حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ اَخْبَرَنَا اَبُوْ بِشْرٍ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ هُمْ اَهْلُ الْكِتَابِ جَزَّؤُوْهُ اَجْزَآءً فَاٰمَنُوْا بِبَعْضِهٖ وَ كَفَرُوْا بِبَعْضِهٖ.

۱۱۲۷: زياد بن ايوب. هشيم. ابوبشر. سعيد بن جبير. حضرت ابن عباسؓ نه روايت کوي، هغه فرمائي، هغه اهل کتاب دي، چه هغوي تورات ټکړې ټکړې کړلو. او په بعض ئې ايمان راوړلو، او بعض نه ئې انکار اوکړ.

بَابٌ ۴۶۷: اِسْلَامُ سَلْمَانَ الْفَارِسِيِّ.

باب ۴۶۷: دَ حضرت سلمان فارسيؓ دَ اسلام بيان.

۱۱۲۸: حَدَّثَنِي الْحَسَنُ بْنُ عُمَرَ بْنِ شَقِيْقٍ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ قَالَ اَبِيْ وَ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ عَنْ سَلْمَانَ الْفَارِسِيِّ اَنَّهُ تَدَاوَلَهُ بِضْعَةَ عَشَرَ مِنْ رَبٍّ اِلٰى رَبٍّ.

۱۱۲۸: حسن بن عمر بن شقيق. معتمر. دَ هغۀ پلار. ابو عثمان. حضرت سلمان فارسيؓ نه روايت کوي، هغه فرمائي، زۀ دَ لسو نه دَ زياتو مالکانو په قبضه کښې دَ يو نه بل ته بدليدم.

۱۱۲۹: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُوْسُفَ حَدَّثَنَا سُفْيٰنُ عَنْ عَوْفٍ عَنْ اَبِيْ عُثْمَانَ قَالَ سَمِعْتُ سَلْمَانَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَقُوْلُ اَنَا مِنْ رَامَ هُرْمُزَ.

۱۱۲۹: محمد بن يوسف. سفيان. عوف. ابو عثمانؒ نه روايت کوي، هغه فرمائي، ما دَ سلمان فارسيؓ نه آوريدلي دي، چه زۀ دَ رام هرمز (ښار) اوسيدونکې يم.

۱۱۳۰: حَدَّثَنِي الْحَسَنُ بْنُ مُدْرِكٍ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَمَّادٍ اَخْبَرَنَا اَبُوْ عَوَانَةَ عَنْ عَاصِمٍ الْاَحْوَلِ عَنْ اَبِيْ عُثْمَانَ عَنْ سَلْمَانَ قَالَ فَتْرَةٌ

۱۱۳۰: حسن بن مدرک. يحيٰي بن حماد. ابو عوانه. عاصم احول. ابو عثمان. حضرت سلمان فارسيؓ نه روايت کوي، هغه فرمائي، دَ حضرت عيسٰي بن مريمؑ او حضرت محمّد رسول

بَيْنَ عِيْسَى وَ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سِتُّمِائَةِ سَنَةٍ.

الله صلي الله عليه وسلم تر مينځه شپږ سوه كاله موده ده[۱].

۱. پـخـپـلـه د سـلـمـان فارسي رضي الله عنه عمر درې نيم سوه كاله دې او د هغوى ملاقات د عيسي عليه السلام وصي سره ثابت دې. دِ فَتْرت زمانه دلته هغوئ شپږ سوه كاله بنودلې ده. ليكن محققينو ليكلي دي چه پنځه نيم سوه كاله ده. په بيان كښې د دومره مودې فرق د شمسي او قمري كال د حساب په فرق سره راتلې شي.

الحمد لله وَالشكر لله پنځلسمه پاره ختمه شوه